# تسهيل الهداية

## پښتو شرح د هدايه

مع

المرآة الصافية لتخريج أحاديث الهداية

الأقوال الراجحة في مسائل الهداية

حل لغات الهداية

تاليف

مولانا پروفيسر شاه فيصل
فاضل امداد العلوم

فيصل کتب خانه
محله جنګي پېښور

نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهیل الهدایه

په قندهارئ او یوسفزئ پښتو کې شرح

# هدایه

جلد: ①

تالیف: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامداد العلوم

## خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهارئ او یوسفزئ پښتو کډون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربئ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پېښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# د حقوقو په باره کښې



**دکتاب نوم**: تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف**: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاویدو پتې:**

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵
رشیدیه کتب خانه اکوړه ختک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷
علمیه کتب خانه اکوړه ختک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹
مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶
مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵
مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱
مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵
راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱
قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳
عبدالمجید کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹
اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷
مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰
مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸

**د قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو**

هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی مو ړ د قوسینو په مینځ کښې قندهاری ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دې اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارۍ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزۍ پښتو مثلا مونږ او موږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالب علم په دې کتاب کښې د یوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورۍ**





بسم الله الرحمن الرحیم

## مقدمه

الحمدلله رب العالمین، والصلاة والسلام علی سیدالعرب والعجم وأفضل المرسلین ، وعلی آله وصحبه أجمعین.

اما بعد! هدایه ته الله تعالی مقبولیت ورکړې دې.ځکه چې د فقه حنفي یو مستند او قابل فخر سرمایه ده.ددې کتاب په عربۍ وغیره ژبو کې ګڼ شروحات شوي دي.خو په پښتو کې ددې شرح لا تراوسه پورې چا نه ده لیکلې.په اول ځل په پښتو ژبه کې خپلو پښتنو ورونړو ته د هدایه شرح د ،،تسهیل الهدایه،، په نوم وړاندې کوم په دې کې چې کوم خصوصیات دي دا په نورو اردو او پښتومترجمو شروحاتو کې نشته الله تعالی دې زما دې کوښښ او محنت ته قبولیت ورکړی اودا دې په خپل دربار کې دآخرت د نجات ذریعه اوګرځوي آمین

① **د قندهارۍ اویوسفزۍ پښتو کډون**: الله تعالی چې تسهیل الهدایه ته کوم مقبولیت ورکړې دې هغه د چا نه پټ نه دې خو دومره ده چې زه پخپله د پیښور د سیمې سره تعلق لرم او د دې ځائې په پښتو کې مې تسهیل الهدایه لیکلې ده زما کوم ورونړه چې په کوئټه کې اوسیږی یا په قندهار کې نو هغوی قندهارۍ پښتو ته ترجیح ورکوی د خپل دغه طالبانو ورونړو دپاره مې په تمام تسهیل الهدایه کې په هغه ټکو کې سبدیلی او توپیر راوستل چې کوم په یوسفزۍ او قندهارۍ پښتو کې توپیر لروهغه داسې چې ګرده یوسفزی ټکی مې په قندهارۍ پښتو کې بدل کړل خو کوم ټکې چې په کتاب کې په اول ځل راغلې وو نو هغې ته مې یوسفزۍ پښتو هم لیکلې ده دغه شان کوم الفاظ چې داسې وو چې په یوسفزۍ او قندهارۍ پښتو کې یې زیات توپیر او فرق لرود نوهلته مې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او د دې نه علاوه دا چې د دغه ټکو فهرس مې جوړ کړو اوهغه فهرس مې د کتاب په آخر کې په دې غرض اولګولو که یو طالب علم ته په څه ټکی کې مشکل پیښ شی نو د حروف تهجی په ترتیب سره خپل مطلوبه ټکی په قندهارۍ یا یوسفزۍ پښتو کې په آسانتیا سره معلومولې شی. نو اوس د قندهاریانو ورونړو خواهش پوره شو او تسهیل الهدایه دوی ته هم په خپله قندهارۍ ژبه کې تیاره شوه

② **دهر متن لپاره مناسب عنوان**❁ په موجوده وخت کې عنواناتو ته هغه مقام او حیثیت حاصل دې.هغه د چا نه پټ پناه نه دې.نوما دهر متن نه وړاندې هغې ته مناسب عنوان ورکړو.

③ **د لفظي ژباړې التزام**❁ د کتاب الشفعه په دواړو ټوکونو کې د لفظي ژباړې التزام کړې شوې دې ځکه چې په دې طریقه د هریو ټکي معنی په آسانه زده کیدای شي او هغه طالبان چې په عربۍ کې ښې استعداد کم وي د هغوي لپاره دا طریقه زیاته مفیده ده،پاته شو مطلب او مفهوم نو هغه هسې هم په تسهیل کې بیانولې شي نو ځکه لفظي ژباړې ته ترجیح ورکړې شوه.اوپه نورو درې برخو یعني صلاة ،نکاح او بیوع کې بامحاوره ژباړه شوې ده ددې خپل افادیت دې

④ **د ژباړې یو نوې ترتیب**❁ په عامو کتابونوکې زموږ په ملك کې د ژباړې دوې (دوه) قسمونه رائج دي یودا چې اول واړه عربي عبارت نقل کړې شي او بیا ورپسې د هغې ژباړه اوکړې شي.خوبه دې ژباړه کې یومبتدي طالب ته دا پته نه لګی چې دا ژباړه په متن کې د کومې جملې ده اومنتهي طالب ته اګرچې پته لګي خو هغه به ضرور دا تکیلف برداشت کوی چې د متن په عبارت به په نظراوچوي او د هغې څخه به معلوموی چې دا ژباړه د دې جملې ده.زموږ په ملك کې د ژباړې دوې (دوه) طریقې دا رائج دی چې اوله کرښه کې عبارت وي او لاندې دویمه کرښه کې د هغې ژباړه وي اګرچې کوښښ دا کولای شی چې هرلفظ ته مخکی د هغې ژباړه ښکاری چې په دې لاندې کرښه کې هم د پورتني عبارت پوره ژباړه ده خوبیا هم ضرور داسې کیږی چې د لومړنی کرښې د عبارت ژباړه د دریمې کرښې دعبارت د ژباړې لاندې لیکلې شي یقیني خبره ده چې

يومبتدي طالب لپاره دا د تشويش او خفګان باعث دي.ددې امله ما په تسهيل الهدايه کي د ژباړي يو نوې ډول اختيار کړو.هغه دا چې د عربۍ هره يوه جمله او وروسته دستي متصل هم د هغې ژباړه يعني ما د هري جملي ژباړه په هغې پسې کړې ده نه مې اوله طريقه اختيار کړې ده او نه مې دويمه طريقه اختيار کړې ده په دې کي فائده دا ده چې هريوکتونکي ته په آسانتيا سره دا معلوميږي چې دا ژباړه د عربۍ د دې جملي ده.

⑤ **دعبارتونو تقسيم** ◉ دمتن دهريوبحث په جلا جلا شرحي سره وضاحت مثلاً نفس مسئله،دهغې دليل،هر مذهب ،د هر مذهب دليل،د خصم د دلائلو ځواب وغيره په جلا جلا شرحي سره حل شوي دي په نورو شروحاتو کي اول يو د بحث اوږد متن نقل کولای شي او د هغې نه روسته شرح او وضاحت کولای شي که تاسو اوګورئ نود متن عبارت په يوه صفحه باندي وي او د هغې عبارت د آخري برخي شرح په دريمه او څلورمه صفحه باندي وي نويوطالب کله متن ته ګوري او کله شرحي ته ګوري اودغه ډول بار بار صفحات اړوي راړوي دې مشکل نه د خلاصولو لپاره موږ د متن د هري خبري وضاحت هم هغې پسي متصل کړي دي. او دا طريقه کار خاص کر د هغه استاذانو لپاره ډير مفيد دي ځوک چي هدايه د تقرير په طريقه نه وائي بلکه طالبانو ته د هدايه متن حل کوي اود هدايه د هري يوې خبري ورته بالترتيب وضاحت کوی.

⑥ **دلغاتو حل** د هرمتن نه روسته چې په هغې کي کوم لغات وي د ،، حل اللغة،، په نوم مو دهغې معنی کړې ده خوپه معنی کي موږ اکثر د فعل هغه معنی کړې ده کومه چې په متن کي مراد وی.يعني که ماضي وي نو د ماضي معنی مو کړې ده اوکه مضارع وي نو د مضارع معنی مو کړې ده او که امر وي نو د امر معنی موکړې ده اومصدري معنی مو هم کړې ده البته دا ده چې د افعالو يا اسماو سره کوم ضمائرراغلی دي يا په فعل باندي حرف نفي داخل شوې وي نواکثر مو صرف د فعل او اسم معنی کړې ده د ضمائرمرجع مو نه ده ذکر کړې اوکه په اسماؤ کي تثنيه يا جمع راغلي وي نو د هغې مفرد مو خودلې دي او بيا مو د مفرد معنی کړې ده.

⑦ **عربي عنوانات:** د متن نه روسته د تسهيل په نوم باندي د متن د عبارت وضاحت شوي دي او په دې تسهيل کي چې کوم مباحث بيانولي شي نو د کتاب الصلاة په دوو ټوکونو کي بالاستيعاب او په نورو جلدونوکي بالانتخاب په عربۍ ژبه کي هري يوې خبري ته عنوان ورکړې شوې دي په عربۍ کي مو د عنوان انتخاب ځکه اوکړو چې عربي يوه جامع ژبه ده په مختصرو الفاظو کي ډيرمطلب راګيروي ګني پکاردا وه چې دا شرح په پښتو ژبه کي ده اوعنوانات هم په پښتو کي وي.خوصرف د عربۍ د جامعيت د امله مو عنوانات په عربۍ کي ورکړل.

⑧ **د عبارت د وضاحت لپاره په قوسينو کي اضافي قيودات** ◉ په کوم عبارت کي چې داسې ابهام وی.چې معنی او مطلب نې واضح نه وی. نود تفهيم او پوهولو لپاره ما په قوسينو کي څه اضافي قيودات لګولي دی.چې په پوهيدلو کي آساني وی.او ددې طريقې تجربه راته د خپلې شرح ،،بستان الصالحين شرح رياض الصالحين ،، نه شوې ده.چې په هغې کي هم احقر شاه فيصل د احاديثو په ژباړه کي د قوسينو په مينځ کي اضافي قيودات لګولي دی.او الحمدلله د علماؤ او طلباؤ د اړخ نه راته حوصله افزائي ملاؤ شوې ده.

⑨ **غيرمعرب متن ته اعراب لګول:** په تسهيل الهدايه کښې د هدايه متن غير معرب (بغيرزور زير پيش وغيره) نه وو په دې ايډيشن کښې د هدايه ټول متن ته اعراب لګولي شوې دي چې طالب ته د عبارت په وئيلو کښې مشکل نه وی

⑩ **د قدوری،جامع صغير اوهدايه د متن امتياز:** دا خو تاسو ته معلومه ده چې هدايه د مختصر القدوری او جامع صغير د عبارتونو شرح ده کومې عربۍ نسخې چې زمونږ په مدارسو کښې لوستلې شي په هغې کښې متن ته لاندې کرښه ورکړې شوې ده د کومې نه چې معلوميږی چې دا متن دې او کوم چې د علامه مرغيناني شرح ده هغه بغير کرښې پريښولې (پريخودې) شوې دې د هغې نه دا معلوميږی چې دا شرح ده ليکن په اردو او پښتو شروحاتو کښې د متن او شرحې امتياز نشته په دې ايډيشن کښې مونږ د قدوری اوجامع صغير عبارت په



بارډر کښې بند کړې دې يعنی د هغې نه مو څلور واړه طرفونو ته کرښه راښکلې ده او شرح کوم چې د صاحب هدايه وضاحت دې هغه مو بغير بارډره پريښولې (پريخودې) دې په دې طريقه يو کتونکی ته دا پته لګيدې شی چې دا متن دې او دا شرح ده

⑩ **الاقوال الراجحه في مسائل الهدايه** ◉ هدايه د فقه حنفي يو معتمد اومشکل کتاب دې په دې کې لکه څنګه چې د نورو امامانو مثلاً امام شافعی امام مالك رحمهما الله سره اختلاف ذکر شوې دې دغه ډول د احنافو عالمانو په خپل مينځ کي چې کوم اختلاف دې هغه هم ذکر شوې دې مثلاً په يوه مسئله کي د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب يو وي او د صاحبينومذهب دهغې نه خلاف وي نوپه داسې مسائلو کې طالبعلم په خفګان کي اخته کيږی چې په دې کي کوم قول راجح دې په دې موضوع باندي زمونږ د وطن يو نامتو او مايه نازعالم مفتي غلام قادر دارالعلوم اکوړه ختك د ،،ترجيح الراجح بالرواية في مسائل الهداية يعنى بيان القول الراجح في المسائل الإختلافية في المذهب الحنفى التى ذكرها الشيخ برهان الدين المرغينانى في كتابه المسمى بالهداية ،، په نوم ليکلې دې نودا کتاب مې مخکي کيخودو او ددې نه مې په مختصرو الفاظو کي د ،،الأقوال الراجحه في مسائل الهدايه،، په نوم باندې په اختلافي مسائلو کي راجح اقوال راجمع کړل په دې کي زما طريقه دا ده چې مفتي غلام قادر مدظله العالي په خپل کتاب کي اول د هدايه متن نقل کړې او بيا په هغې کي د اختلاف وضاحت اوکړې او په دريم وار په هغې کي د راجح قول تعين اوکړې او د راجح قول د تعين لپاره اکثر دا عنوان راوړی مثلاً ،،القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله ،، او د هغې نه روسته د کوموکتابونو نه چې دا معلوميږی چې هغوي په ذکرشوي اختلافي مسئله کي دغه قول ته ترجيح ورکړې ده دهغه کتابونوعبارتونه نقل کوي او لاندې په حاشيه کي د هغې کتاب د ټوك او صفحې نمبرې ورکوي نو ما د ،،القول الراجح،، لنډيز په مختصرو الفاظو کي پيش کړې ده هغه داسې چې په اختلافي مسئله کي کوم قول يا روايت راجح وي د هغې خودنه کوم او د هغې نه روسته د کومو کتابونو نه چې د هغې راجحيت معلوميږي د هغې د ټوك او صفحې حواله ورکوم اميد دې چې زما دې سعی او کوښښ ته به عالمان او طالبان د قدر په نظر سره اوګوري او دالله نه سوال کوم چې زما دا کوښښ په خپل دربار کي قبول کړي آمين

⑪ **دهدايه د احاديثوتخريج** ◉ په نورو اردو شروحاتو کي د هدايه د احاديثو تخريج نشته احقرشاه فيصل په خپله شرح ،،تسهيل الهدايه ،، کي د «المرآة الصافيه لتخريج أحاديث الهدايه» په نوم د هدايه د احاديثوتخريج اوکړلو.

دتخريج په اړه کي زما طريقه کار دا دې.چې د هدايه په متن کي کوم احاديث راغلي دی. نوصرف دهغې تخريج مې کړې دې.داشرف الهدايه د احاديثود تخريج ذمه واري مې په خپل سرنه ده اخستې.ځکه چې د تخريج اوتحقيق کار د اوسپنې نينې چيچل دی.ځکه زما غوندي کم همته کس دې کارته بدې نشي وهلې.البته دهدايه د تخريج کار چونکه آسان په دې وو.چې امام زيلعي رحمه الله د نصب الرايه په نوم د هدايه د احاديثوتخريج کړې دې.نوماخان ته نصب الرايه مخکی کيخوده.اود نصب الرايه په کومك سره مې مختصر تخريج پيل کړلو.چې تفصيل ئې دا دې.

① امام زيلعی رحمه الله د يو حديث مختلف طرق اواسناد بيان کړي دی.خوما د دغه مختلفو اسنادو اوطرقو نه صرف د يو صحابی رضي الله عنه د روايت په ذکر کاوه اکتفاء کړې ده.مثلاً يو حديث د حضرت ابوهريره،حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په رواياتو سره امام زيلعی رحمه الله ذکرکړې وی.نوماصرف د يو صحابي رضي الله عنه د روايت حواله ورکړې ده.

② صاحب دهدايه رحمه الله دخپلې مدعا لپاره پوره حديث نه ذکر کوی.بلکه د هغې نه مختصره جمله راخلی.او امام زيلعي رحمه الله هغه حديث پوره د سند سره ذکرکوی.ماد اختصار د امله دحديث په تخريج کي د دوو خبرو التزام کړې دې.يود راوي خودنه چې دا روايت فلاني راوي نقل کړې دې.اوبل د مصدر ذکرچې دا روايت د احاديثو فلاني مصدر اوکتاب ذکرکړې دې.دحديث د الفاظو نقل کاوه التزام مې نه دې کړې.

(۳) کوم احادیث چې صاحب دهدایه په داسې الفاظو سره ذکرکړې وی.چې هغه الفاظ امام زیلعي رحمه الله ته نه وي ملاؤ شوي.نودوي د هغې په تخریج کي فرمائی.((قلت غریب بهذا اللفظ)) یعني دا روایت په دې الفاظو ناشنا اونادردې.اودا مراد نه وی.چې دا حدیث د مصطلح الحدیث د امامانو په نیز غریب دې.اوبیا امام زیلعي رحمه الله داسې روایت ذکر کوی.چې د هغې نه د علامه مرغینانی رحمه الله د دعوې تائید کیږی.

(۴) په داسې مقاماتوکي چې امام زیلعي رحمه الله دهدایه د روایت د تخریج په ځائې خپل روایت ذکرکوی. نوما د خپل عربي تالیف ((سنن الصلاة في فقه الأحناف)) نه د دغه مسئلې لپاره د احنافو مستدل رانقل کړې دې.دا کتاب احقرډیرد عرق ریزئ نه روسته تالیف کړې دې.په دې کي ئې د صلاة سره متعلق د فقه حنفي د هرې مسئلې لپاره د فقه په ترتیب احادیث سره د تخریج اوتحقیق راجمع کړي دی.او بیا په دې باندې د تقریظ لپاره ئې کراچئ ته سفرکړې دې.اوهلته ئې د رئیس وفاق المدارس مدظله العالي وشیخي مولانا سلیم الله خان اوشهید ملت مفتي اعظم پاکستان مولانا نظام الدین شامزئ نه په دې کتاب تعریفي کلمات اوتقریظات اخستي دی.احقر بغیرد څه انانیت نه دا دعوی کوی.چې د فقه حنفي د خدمت په لړکي لاتراوسه پورې د تالیف اوتصنیف د ډګر شهسوارانو په دې نهج اوډول قدم نه دې ایخودې.

(۵) په نصب الرایه باندې لاندې یومحقق احمد شمس الدین دا خدمت کړې دې.چې د هغه بابونو ،د کتابونود صفحاتو اود د احادیثو د ارقامو خودنه ئې کړې ده.دکومو مصادرو چې امام زیلعي رحمه الله حوالي ورکړي دی.اوبل خدمت ئې دا کړې دې.چې د هغې مصادرو نه علاوه که دغه حدیث ورته په بل کتاب کي ملاؤ شوي دې.نودهغې حواله ئې هم ورکړې ده.ما دا خدمت غنیمت اوګڼړلو .اودوی چې د کتابونو ،صفحاتو، ټوکونو اود احادیثو د ارقامو ورکړي دی.هغه مې په خپل تخریج کي ذکرکړل.نو په دې کار کي زه صرف ناقل محض یم.اصل تحقیق او کوښښ د محقق شمس الدین صاحب دې.که ژوندې وي الله دې ورته عمردراز ورکړی.اوکه وفات وی.نوالله دې ورته قبردنور نه ډك کړی.آمین

**اول ضروری وضاحت:** د هدایه د احادیثو د تخریج په اړه کښې مې دا خیال راغلو چې په تخریج کښې ما د کومو احادیثو حوالې ورکړی دی نو د هغې احادیثو متن هم ذکر کړم خود ځینې مخلصو ملګرو سره چې مې په دې اړه کښې مشوره اوکړه نو هغوی راته دا اوفرمائیل چې مونږ مدرسین د هدایه په درس کښې طالبانو ته اول خو د حدیث د متن نه زیاته توجه د هغې تخریج ته ورکوو چې دا حدیث په فلانی کتاب کښې راغلې دې د دې وجې د حدیث متن ته په تسهیل الهدایه کښې څه ضرورت نشته دویمه دا چې د احادیثو متن په درسی هدایه باندې چې کومه ،،درایه ،، پرته ده په هغې کښې ذکر دی نو که مدرس یا عالم ته ضرورت پېښیږی درسی هدایه ته رجوع کولې شی بلکه د درس په مهال کښې هم د حدیث متن ته که غواړی کتلی شی ځکه چې درایه لاندې په حاشیه کښې موجود ده

**دوهم ضروری وضاحت:** د اقوال راجحه په اړه کښې مې دا خیال راغلو چې د اقول راجحه په تعین کښې ما صرف حوالې ورکړی دی چې د فلانی امام قول ته په دې کتابونو کښې ترجیح ورکړې شوې ده نو په دې کښې د ،،القول الراجح،، تصنیف مفتی غلام قادر صاحب مدظله العالی نه هغه عبارتونه هم نقل کړم کوم چې صاحب د قول راجح نقل کړی او ما ئې صرف حوالې ورکړی دی خو په دې کښې راته هم د هدایه مدرسینو دا مشوره راکړه چې اصل مقصود د قول راجح تعین دې هغه تا په تسهیل کښې د حوالو ذکر کولو په مدد سره کړې دې پاته د دغه حوالو عبارتونه نقل کولو ته ضرورت ځکه نشته چې یوخو صاحب د قول راجح مفتی غلام قادر صاحب چې کوم عبارتونه نقل کړی دی د هغې په لوستلو سره هم یو قاری پوره ترهغه وخته پورې کما حقه نشی پوهیدلې ترڅو چې ئې هغه کتاب ته رجوع نه وی کړې د کوم نه چې مفتی صاحب دغه عبارت نقل کړې دې نوهغوی راته دا مشوره راکړه چې د ،،القول الراجح ،، نه ترجیح پوره عبارت نقل کول د تطویل بما لم ینفع مصداق دې آوبله دا چې په دې وجه د تسهیل الهدایه په ټوکونو کښې هم تقریباً یو ټوك زیاتیدې شی آوښکاره خبره ده چې جلدونه زیات شی نو په چپائې به خرچې هم زیاته راځی آوطالبانو ته



به په ګران قیمت هم ملاویږی نو دطالبانو د معاشی مدنظر او د هغوی د قیمتی وخت بچت کولو په رڼرا کښې د دې کار نه ځان یو طرف ته کړه د دې وجې ما د هغوی په مشوره عمل اوکړواو د اقول راجحه په تعین کښې مې صرف په حوالو باندې بسنه (بسوالې) برقرار اوساتله

**خواست او التجاء:** زما د اسلام خوږو ورونړواو د علم دین عالمانواوطالبانو ما عاجز بنده شاه فیصل ډیره عجلت کي د لغات حل کړې دې ځکه چې تصحیح ته ئې هم نه یم جوړ شوې دغه ډول د هرې جملې پسې د هغې ژباړه لګول ما پخپله نه ده کړه بلکه زما سره د دې ټوکونو په دې کار کي مولانا مفتي معاذ ،مولانا همایون، مولانا برهان الدین،مولانا شمس الحق صاحبانودا کار کړې دې او ماته په هغې باندې د نظرثاني فرصت هم نه دې ملاؤ شوې دغه ډول که زه په دې موقع باندې د خپلو دوو شریك کار ملګرو اونکړم نودا به احسان فراموشي وي یو عبدالکریم صدیقي صاحب او دوهم قاري امیر نوازطه صاحب،دوی هم ما سره د تسهیل په تکمیل کي د خپل وس مطابق د کمپوزنګ کار کړې دې الله دوی ته جزاء خیر ورکړي اوپه دنیا او آخرت کي دې ورته ددې بدلې ورکړي نوکه په دې کي څه کتابي یاعلمي غلطئ پاتې شوي وي تاسو ترې موږ خبر کړئ انشاء الله په ائنده چاپ کي به ئې تصحیح اوکړو او ستاسو به ډیرمننونکي شو.اود عجلت وجه دا ده چې چونکه د راروان کال یعني شوال ۱۴۲۹ لپاره د تسهیل الهدایه تیارول مهم وو.نوځکه نظرثاني او تصحیح ته جوړ شوي نه یم ددې امله کیداې شي چې په دې کي . غلطئ پاتې شوې وی.

په آخره کي ددې کتاب په تکمیل کي چې ما کوم کوښښ کړې دې د هغې یوه مختصره واقعه بیانوم هغه دا چې د دې کتاب د تکمیل نه دوې (دوه) ورځې وړاندې په جمات کي د تراویحو د ادا کاوه نه روسته کور ته راغلم او کمپوټر ته کیناستم په دې مهال کي راته خپلې د ژوند اندیوالې د انګورو یوه غنچې راوړله چې دا د کابل انګور دي ګاوندیانو رالیږلي دي ماچې انګورو ته اوکتل نو په خپل کار کي د مصروفیت په وجه مې د خوړلونه معذرت پیش کړلو د دې نه روسته هغې د انګور دانې ماته په خوله کشې راکولې او ما به یو اړخ ته دتسهیل الهدایه د تکمیل منزلونه طې کول او بل اړخ ته مې په انکورو شخوند وهلو په دغه مهال کي د یوې واقعه په رایادیدو خوشحاله شوم او مسکې شوم دغه واقعه ما په خپل تالیف ،، د وخت قدر او زمونږغفلت،، نومې کتاب کي ذکر کړې ده نو خپلې بي بي رانه پوښتنه اوکړه چې ولې دې مسکې شوې ما ورته اووئیل چې زموږ په عالمانو کي حضرت مولانا شیخ الحدیث محمد زکریا رحمه الله تیر شوې دې هغوي په خپل تالیفي کار کي دومره مشغوله وو.چې د ډوډئ خوراك ته هم نه اوزګاریدل نوخپلې خور به ورته ګوله (نمړئ) جوړولې او په خوله کي به ئې ورکولې اوهغوي به خپل لیکل کول نوپه دې خوشحاله شوم چې ما د نبي صلی الله علیه وسلم د امت د یو عالم سنت ژوندې کړلو اوتا د دغه عالم د خورو سنت او طریقه ژوندئ کړه

احقرالعباد شاه فیصل عفي عنه

۹ارمضان ۱۴۲۹ھ مطابق ۲۰ ستمبر ۲۰۰۸



## د هدایه د مصنف مختصر حالات

دعلامه مولانا عبدالحیؒ صاحب لکنهوي نورالله مرقده دبیان مطابق د هدایه د مصنف نوم علي ، کنیت ئې ابوالحسن،لقب ئې برهان الدین او دپلار نوم ئې ابوبکر وو.پوره سلسله نسب ئې دادي.شیخ الاسلام، الامام برهان الدین،ابوالحسن، علي بن ابي بکر بن عبدالجلیل،الفرغاني المرغیناني.دوی دسیدنا ابوبکرصدیقؓ په اولاد کي دی .دفرغانه په نسبت دوی ته فرغاني اود فرغانه دیوښارمرغینان په نسبت دوي ته مرغیناني وئیلې شی چې دا ددوي خپل وطن وو.

**ولادت اووفات**۞ ددوي ولادت د دوشنبه په ورځ د مازیګر د لمانځه نه روسته په ۸ رجب ۵۱۱هجریٔ کي اوشو.او وفات ئې د سه شنبې په ورځ څلوارلسمه ذي الحجه ۵۹۳هجریٔ کي اوشو.په سمر قند کښې دوي دفن کړې شو. الله ﷻ دې دوی ته راحت ورکړی.

**د دوی استاذان**۞ صحاب د هدایه دخپلې زمانې د لوئې لوئې صاحب علم استاذانو نه علوم دینیه حاصل کړل.دځو استاذانو نومونه ئې دادی.مفتی الثقلین، نجم الدین ابوحفص عمر النسفی صاحب عقائد نسفیه، امام صدر الشهید حسام الدین عمر بن عبدالعزیز، امام ضیاء الدین محمد بن الحسین البند ینجی تلمیذ رشید صاحب التحفه علام الدین السمرقندی امام قوام الدین احمد بن عبدالرشید البخاری پلار د صاحب خلاصه الفتاوی.

**د دوی د معاصرینو اعتراف**۞ ددوی دفضل وکمال او دتبحر علمی اعتراف ددوی دزمانې مشائخو هم کړې دې.لکه امام فخرالدین قاضی خان، صدرالکبیر،برهان الدین صاحب المحیط البرهانی، الشیخ الامام ظهیر الدین محمد بن احمد البخاری صاحب الفتاوی الظهیریه،شیخ زین الدین ابو نصر احمد بن محمد بن عمر العتابی.

**زهد**۞ حضرت علامه مولانا عبد الحیؒ ددوی دفضل کمال او زهد تعریف په دې الفاظو کړې دې.(کان اماما فقیها حافظا محدثا مفسرا جامعاً للعلوم، ضابطاً للفنون، متقنا، محققا، نظارا، مدققا، زاهدا ورعا بارعا فضلا ماهرا اصولیا، ادیبا، شاعرا، لم ترالعیون، مثله فی العلم والادب وله الید الباسطة فی الخلاف والباع الممتد فی المذهب) یعنی صاحب هدایه امام وخت، فقیه ،حافظ عصر او محدث زمان، مفسر قران جامع علوم، ضابط فنون پخته علم، محقق وبالغ النظر باریك بین، عابد و زاهد، پرهیزګار،فائق وفاضل ماهر فنون،اصولی، ادیب، شاعر وو.په علم ادب کي ددوی ثانی نه وه.دوی ته په اختلاف ائمه او مذاهب باندې عبور حاصل وو.

**تالیف هدایه**۞ صاحب هدایه په خپله لیکلی دی چې دشروع نه ماته داخیال وو چې په فقه کي یو داسې کتاب اولیکلې شی چې دعبارت په لحاظ سره مختصر وی اود معانی او مسائلو لحاظ سره حاوی وی.دا یو حُسن اتفاق وو.چې ما د امام قدوریؒ مختصر القدوری اولیدله.او ما اوکتل چې د امت اکابرین دجامع الصغیر د حفظ او ضبط ډیر زیات اهتمام کوی.نوما ددې دواړو کتابونو مطالعه اوکړه.او دتبرك په طور مې دجامع صغیر دترتیب مطابق یو کتاب د هدایه المبتدی په نوم سره تالیف کړو.او بیا مې وئیل چې که د الله تعالی توفیق راسره ګډ شو.نو ددې شرح به لیکم.چې دهغې نوم به کفایت المنتهی وی.دوی ته دشرح توفیق الله ﷻ ورکړو.اوپه اتیا جلدونوکي ئې ددې شرح اولیکله.چې دهغې نوم کفایت المنتهی وو.اګر چې دا شرح ډیره کامیابه وه.خوبیا ئې ددې شرح اختصار اوکړو.چې د هدایه په نوم یادیږی.موصوف په ماه ذیعقده ۵۷۳هجریٔ کي د چهار شنبې په ورځ د ماپښین دلمونځ نه روسته په دې کار پیل کړې وه.اوډیر په تیزیٔ سره پیوسته دیارلس کالو پورې مصروف وو.په دې دروان کي به دوی همیشه روژه نیوله.چې کله به خادم ډوډیٔ راوړو نوهغه ته به ئې اووئیل چې ډوډیٔ کیږده اوزه.خو دوی به هغه ډوډیٔ په یو طالب علم باندې خوړله.کله چې به خادم راغلو نو هغه به لوښی تش اولیدل او هغه به ئې یوړل.

**د درس په پیل کې د صاحب هدایه معمول**۞ صاحب دهدایه به د درس آغاز د چهارشنبې د ورځې نه کولو.او په



دې سلسله کي به ئې د نبی کریم ﷺ فرمان ﴿ما من شئ بدئ یوم الاربعاء إلا تم﴾ ذکر کولو.یعنی چې کوم کار دچهار شنبې په ورځ پیل شی.نو هغه به ضرور پوره کیږی.دحضرت امام اعظم ابوحنیفهؒ معمول هم دا وو.ځینې محدثینو په دې روایت کي کلام کړې دې خو صاحب د هدایه دا حدیث په سند متصل سره روایت کړې دې.اودجابرؓ حدیث چې (یوم الاربعاء یوم نحس) ددې معنی ملا علی قاریؒ داسې بیانوی چې د چهارشنې ورځ د کفارو په حق کي منحوسه ده نه چې د مؤمنانو په حق کي بختوره ده. مولانا عبدالحیؒ صاحب هم لیکلی دی.چې نبی کریم ﷺ په مسجد فتح کي دپیر ، نهه اود چهارشنبې په ورځ دعا اوکړه.او دچهارشنبې په ورځ د ماپښین او د مازیګر ترمینځه قبوله شوه.ددې حدیث راوی حضرت جابرؓ فرمایي چې ماته به کله یو مشکل کار پیښ شو نوما به دچهارشنبې په ورځ د ماپښین اود مازیګر په مینځ کي دعا کوله.نو الله تعالی به هغه قبلوله.نو ددې نه دا ثابته شوه.چې دچهارشنبې په ورځ کي څه ساعت داسې دې چې هغه مستجاب دې.ددې په وجه عالمان د چهارشنبې په ورځ د سبق پیل کول ښه ګڼړی.

**د صاحب هدایه تالیفات** ۞ ددوی ډیر زیات ګرانقدر او نافع تالیفات دی.چې په هغې کي قابل ذکر دا دی. کتاب مجموعة النوازل، کتاب التجنیس والمزید، کتاب المنقی، کتاب فی الفرائض، بدایة المبتدی، کتاب کفایة المنتهی،کتاب الهدایه او ، مناسك حج.

**د هدایه د احادیثو متعلق د یو شک ازاله**۞ صاحب د هدایهؒ چې د مسائلو په سلسله کي دکومو احادیثوآثار نه استدلال کړې دې ځینې حسدکونکودهغې متعلق دضعف او په صاحب دهدایه دقلت نظرشك کړې دې.په دې وجه عالمانو د هدایه د احادیثو تخریج په سلسله کي مختلف کتابونه تصنیف کړی دی.

① العنایة بمعرفه احایث الهدایة.د امام محی الدین عبدالقادر بن محمد القرشی المصری متوفی ۷۷۵ هجری.

② الکفایة فی معرفة احایث الهدایة د شیخ علاوالدین. ③ نصب الرایه لاحادیث الهدایة دجمال الدین بن عبدالله بن یوسف الزیلعی متوفی ۷۶۳هجری.په کتاب هدایه کي دصاحب هدایه خصوصیات.

① صاحب هدایه چې کله قال رضی الله عنه﴾ وائی نو ددې نه دده خپل ذات مراد وی.شیخ عبدالحق محدث دهلویؒ دا وئیلی دی.خوابو السعود وائی چې کله خپل ذات اخستلو.نو وائی چې ﴿قال العبد الضعیف عفی الله عنه﴾خو ددوی د وفات نه روسته ددوی شاګردانو دا عبارت په ﴿قال رضی الله عنه﴾ کي بدل کړلو.صاحب هدایه خپل ذات دمتکلم صیغې سره نه ذکر کوی چې دانانیت د شك نه ځان بچ کړی.او دا عادت دې د سادات فقهاء او محدثینو.

② دصاحب هدایه دا هم عادت دې چې کوم مذهب دوی ته مختار دې دهغې دلیل موخر کوی چې دا دلیل دمخښکینو دلیلونو ځواب ورکوی اګرچې داقوالو نقل کولو په وخت کي قوی دلیل مقدم کوی.

③ صاحب هدایه چې کله ﴿قال مشائخنا﴾ وائی نو ددې نه ددوی مراد د بخارا اود سمر قند عالمان وی.

④ فاضل مصنف چې کله﴿فی دیارنا﴾ وائی نو ددې نه ما وراء النهرښارونه مراد وی.(فتح القدیر)

⑤ چې کوم ایت مخکې تیر شوې وی دهغې دتعبیر کولو لپاره فرمایي چې ﴿بما تلونا﴾ اوپه مخکښی کي د ذکر شوی دلیل عقلی طرف ته داشارې کولو لپاره ﴿بما ذکرنا﴾او ﴿ما بینا﴾وائی اود مخکښی حدیث طرف ته داشارې لپاره وائی چې ﴿لما روینا کذا فِي نتائج الأفكار فِي كشف الرموز والأسرار) او کله دکتاب، سنت او دلیل عقلی هریو لپاره لما بینا وائی.

⑥ صاحب هدایه اکثر وخایونو کي په اصل مسئله کي د نص قرانی نه استدلال کوی او بیا ددې نص علت بیانوی نو هغه علت په اصلی مسئله باندې مسقل دلیل عقلی وی.(نتائج الافکار).

⑦ کله کله د عقلی دلیل مخ د فقه په لفظ سره تعبیر کوی لکه وائی چې ﴿الفقه فیه کذا﴾ (مفتاح السعاده).

(۸) چې کله دیو عقلی دلیل نه روسته بل عقلی دلیل راوړی نو ددې دوهم دلیل نه د ړومبی دلیل لمی او علت بیانول مقصود وی.(نتائج الافکار).

(۹) که په مدعی علیه باندې دذکر کولو نه روسته اوونی چې «وهذا الان» نو ددې مطلب داوی چې دلیل (انی) دذکر کولو نه روسته دلیل (لمی) ذکر کوی.دلیل (انی) او (لمی) کې توپیر دادې چې حد اوسط ثبوت اکبر للاصغر لپاره که واقع شی او نفس الامر کې علت وی نو دې دلیل ته لمی وئیلې شی.او که حد اوسط صرف په ذهن کې علت وی او په نفس الامر کې نه وی نو هغه دلیل (انی)دې.(مرقاة فی المنطق).

(۱۰) صاحب هدایه چې کله د «الاصل» لفظ ذکرکوی نو ددې نه دهغوی مرادامام ابوعبدالله محمد بن الحسن الشیبانی مبسوط وی.

(۱۱) او د لفظ «المختصر»نه مراد مختصر القدوری اود لفظ «الکتاب»نه مراد جامع صغیر وی.

(۱۲) مصنف دهدایه رحمه الله دباب په پیل کې د قدوری مسائل ذکر کوی.اود باب په آخر کې دجامع الصغیر مسائل ذکر کوی.

(۱۳) که د قدوری او د جامع الصغیر په عبارت کې څه اختلاف وی نو هغه ځائې کې وفی الجامع الصغیر»اووائی. او ددې صراحت کوی.

(۱۴) که صاحب هدایه رحمه الله د «قالوا» لفظ استعمال کړی نو ددې نه مراد دا وی چې په دې مسئله کې د عالمانو اختلاف دې.

(۱۵) که صاحب د هدایه «هذا الحدیث محمول علی کذا» ووایي نو ددې نه مراد داوی چې محدثینو (رح) ددے په معنی حمل کړې دې اوکه «نحمله» ووایي نوددې نه خپل ذات مراد بنائی.

(۱۶) که «عن فلان» ووایي نو ددې نه مردا دا وی چې دفلانی نه روایت دې یعنی دده مذهب نشته دې او دمذهب بیانولو لپاره فرمایي چې «عند فلان»

(۱۷) صاحب د هدایه رحمه الله د نحات د ځینې اقوالو په اتباع کې د «اما» په ځواب کې «فا» نه ذکر کوی.

(۱۸) د «ان» وصلیه نه واو ساقط کوی حالانکه په «ان» وصلیه باندې واو داخل دې.خو ددې دواړو عادتونو رعایت په موجوده نسخو کې کم مونډې شي

(۱۹) موصوف چې دیوې مسئلې مثال پیش کوی.او بیا دې مثال او دې طرفت ته اشاره کول وی نو د نظیر یا مثال طرف ته داشارې کولو لپاره اسم اشاره بعید استعمالوی اوهغه مسئلې ته داشارې کولو لپاره اسم اشاره قریب استعمالوی.

(۲۰) صاحب هدایه رحمه الله چې د یوسوال مقدر ځواب ورکوی نوددې سوال تصریح نه کوی او هغې ته وائی «فان قیل کذا» سره اشاره کوی.سوا ددرې ځایونو نه، دوې (دوه) په کتاب ادب القاضی کې اویو په کتاب الغصب کې چې په دې درې ځایونو کې د سوال وځواب تصریح شوې ده.





بسم الله الرحمن الرحیم

**دفقه تاریخی روسته منظر:**-په ټوله دنیا کې چې تر ننه پورې ځومره مذاهب راغلی دی په دې کې اسلام دټولو نه زیات جامع،واضح او مکمل قوانین راوړی دی.چې د انسانی فطرت سره دموافقت دامله آسان او د عمل وړ دی.ددې قوانینو مجموعه داسلامی فقه په نوم سره یادیږی.دعلم فقه د پیل کیدو نه وړاندې دځوځبرو پیژندل ضروری دی.د هغې نه موږ په مبادی سره تعبیر کوو.

**دعلم فقه لغوی او اصطلاحی تعریف:**- فقه مصدر دې.او د باب سمع او کرم نه راځی.دسمع نه ئې معنا دا ده. چې دیوشی پیژندل اوپه هغې پوهیدل.دیو شی پرانیستل او وضاحت کول.اود باب کرم نه معنا دا ده.چې فقیه ګرځیدل، په علم کې پورته کیدل.فقه بکسر القاف پیژندل او بفتح القاف بل پوهول اوبضم القاف په فقه کې کمال پیدا کول او مهارت حاصلولو ته وائی.علامه زمحشری په کتاب الفائق کې لیکی «الفقة حقیقة الشق والفتح والفقیه العالم الذی یشق الاحکام ویفتش عن حقائقها ویفتح ماستغلق منها»

**د فقه لغوی معنی** :- دیو شی پرانیستل اوښکاره کول دی.اوفقیه هغه عالم ته وائی.چې هغه د احکامو (شرعیو) وضاحت کوی.اوددې د حقائقو پته لګوی.اود مغلق او ګرانو مسائلو وضاحت کوی.

**اصطلاحی معنی** :- ددې مشهور تعریف دادې «هو العلم بالاحکام الشرعیة الفرعیة من ادلتها التفصیلیة» فقه په احکام شرعیه کې هغه احکامو ته وائی.چې هغه د تفصیلی دلائلو نه حاصل شوی وی.دکومو احکامو تعلق چې عمل سره وی. هغې ته احکام فروعی وائی.اودکومو تعلق چې اعتقادیاتوسره وی.هغې ته احکام اصول وائی .ابن خلدون په خپله مقدمه کې لیکی" په کوم علم سره چې د مکلفینو د افعالوپه اړه کې دالله پاك د احکاماتو معرفت حاصلیږی.پدې حیثیت چې هغه واجب یا ممنوع یا مندوب یا مکروه یا مباح وی نو هغې ته علم فقه وائی.

**د فقه غرض او غایت:**- د غرض او غایت نه څه مراد دې؟غرض هغې ارادې ته وائی دکومې لپاره چې یوکار کولې شی.او غایت هغه نتیجه ده.چې په هغې باندې مرتب وی.لکه دقلم اخستلو لپاره بازار ته تګ غرض دې. او قلم اخستل غایت دې.نو غرض او غایت دواړه د مصداق په اعتبار سره یو شی دې.خو دابتداء او انتها توپیر دې. په عامه توګه غرض او غایت یوځیزته وئیلې شی.ځکه که صحیح طریقه اختیار کړې شی نوپه غرض باندې غایت مرتب کیږی.

**دعلم فقه موضوع:**- :دمکلف فعل دې.لیکن داخیال پکار دې چې موضوع مطلقه نه وی.بلکه دڅه نه څه قید سره مقیده وی.لکه دنحو موضوع کلمه او کلام دې.اود ،،من حیث الاعراب والبناء"په قید سره مقید دې. دغه ډول دعلم طب موضوع د انسان بدن ده.اود «من حیث الصحة والمرض»په قید سره مقید دې.اودعلم صرف موضوع کلمه ده.او د "من حیث التصریف" په قید سره مقید دې.نو دغه ډول دمکلف فعل په "من حیث الحلال والحرام" مقید دې.

**دفقه مآخذ:**-هغه ذرائع چې دکومو نه قانون جوړولې شی.دکوم ځائې نه قوانین د دلائلو سره حاصلولې شی. اوپه کوم فن کې چې ددغه ذرائع او مقاماتو نه بحث کولې شی.هغې ته اصول فقه وائی.چې تعریف ئې دادې. «هو علم بقواعد یتوصل بها الی استنباط الاحکام الفقهیة عن دلائلها»اصول فقه دیو څو داسې کلی اصولو نوم دې.چې دکومو په ذریعه د دلائلو نه د قوانینو داستنباط طریقه معلومولې شی.

**بنیادی مآخذ** :- د اسلامی قانون بنیادی مآخذ لاندې ذکر کولې شی.(ا) قرآن (ب)سنت (ج) قیاس (د) اجماع.

**د فقه اسلامی لومړې مآخذ قران:**- د اسلامی قانون اولنې بنیادی او اساسی مآخذ او مصدر قران حکیم دې.

قران کریم د بنی نوع انسان د راهنمائی لپاره نازل شوی دې.دا د اسلامی قانون لومړنی او حقیقی سرچشمه ده.داپه نقل متواتر سره موږ ته رارسیدلې دې .اوپه دې کې هیڅ شك نشته.چې دا دالله تعالی کلام ،مصدر او قانون دې.

**د قرانی احکامو دوې (دوه) قسمونه** قرانی احکام په دوو قسمونو تقسیمولې شی.

① عبادات دا بغیر د نیت نه نهٔ صحیح کیږی. لکه لمونځ او روژه خالص عبادتونه دی. او بعضې مالی اوتمدنی عبادتونه دی. لکه زکاة شو. او بعضې بدنی او تمدنی دی. لکه حج شو. داڅلور عبادتونه دایمان نه روسته داسلام بنا (بنیاد) ګڼړلې شوې دې.

② معاملات ددې څلور قسمونه دی.

(ځ) قوانین تحفظ دعوت اسلام یعنی جهاد

(ب) قوانین استقلال خاندان یعنی هغه احکام چې نکاح، طلاق، نسب او وراثت سره تعلق ساتی.

(ت) قوانین معاملات باهمی یعنی بیع او اجاره وغیره.

(ث) قوانین تحریری یعنی حدود او قصاص.

**دفقه اسلامی دوهم مآخذ سنت:-** د سنت لغوی معنی عادت، طریقه اوخوښه لاره ده. خوپه فقهی اصطلاح کې د سنت نه مراد د نبی ﷺ اقوال، افعال او تقریرات(دتقریر مفهوم دادې چې نبی ﷺ یو صحابی په کار لیدلې وی. یانې ترې څه خبره اوریدلې وی. او په هغې چوپ پاتې شوې وی. نو دا خبره په سنت کې داخله ده. ځکه چې د نبی ﷺ چوپوالې ددې فعل په تائید کې کافی ده. د نبی ﷺ د ذات نه داخبره لرې ده. چې نبی ﷺ په یو ناروا کار باندې چوپوالې اوکړی) اود دصحابه کرامو ؓ اقوال سنت دی. پدې کې شك نشته. چې د فقه اولنې مآخذ قران دې. لیکن قران احکام اجمالاً طور بیانوی. ددې تفصیل مورِ ته په سنتو کې ملاویږی ډاکټر حمیدالله لیکی چې په حدیث نبوی کې دفقهی ضوابطو تعداد دقران دضوابطو نه زیات دې. حدیث په قران پاك پسې په دویمه درجه کې ساتلې شوی دی. ددې اصل وجه د احادیثو دصحت په ثبوت کې مشکلات دی. لیکن پدې کې شك نشته چې قران پاك ښکاره او غیرمشروط طور سره دنبی ﷺ فرمان ته دقران پاك برابر درجه ورکړې ده. ځکه چې د رسول ﷺ امر، قول د مرسل دارخه ګڼړلې شی.

**قران کریم کې د سنت بنا (بنیاد)**: په قران کریم کې دالله پاك ارشاد دې چې ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ﴾ پدې آیتونو کې ښکاره نبی ﷺ دقران کریم شارح او موضح ګرځولې شوې دې. نبی ﷺ به په خپلو اقوالو او افعالو کې د قرآن د مطلبونو او مقاصدو وضاحت کولو. په کتاب المیزان کې دحضرت عمر ؓ یو قول نقل شوې دې. چې هغوی فرمائیل «سیاتی قوم یجادلونکم فی شبهات القران فخذوهم بالسنن فان اصحاب السنن اعلم بکتاب الله». روستو به داسې خلګ پیدا شی چې هغوی به په قرانی متشابهاتو کې تاسو سره جګړې کوی نو تاسو په هغوی باندې دسنت په ذریعه حجت قائم کړنی ځکه چې اصحاب السنن په کتاب الله ښه پوهیږی.

**د سنت تشریعی حیثیت**: نبی ﷺ دمجمل آیتونو تشریح دمشکلو آیتونو تفسیر اومطلق آیتونو نه د موقع اومحل په لحاظ سره مقید اوګرځول. د مجمل احکامو دعمل کیفیت، اسباب اوشرطونو او لوازماتو وغیره تفصیل نې اوکړلو. د لمونځ او زکاة کوم تفصیلات چې په سنتو کې ذکر دی. هغه واړه هم دقران وضاحت دې. دقرآنی حکمونو وجوهات، اسباب، حکمت او مصلحت نې بیان کړلو. د هغې نه ډیر اصول او قواعد مستنبط شو.

**داحادیثو دوې (دوه) قسمونه** حضرت شاه ولی الله رحمه الله دنبی ﷺ دفرموداتو په مجموعی حیثیت سره دوې (دوه) قسمونه بیان کړی دی.

① اول هغه چې دهغې تعلق دپغمبرانه فرائضو، تبلیغ او رسالت سره دې. آیت ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا﴾ تعلق هم ددې برخې سره دې. پدې کې عقائد، عبادات، اخلاق، معاملات او دآخرت وغیره سره متعلق تفصیلات دی.

② دوهم هغه چې دهغې تعلق د مشورې او رائې سره دې. دنبی ﷺ ارشاد دې. «انما انا بشر اذا امرتکم بشئ من



دینکم فخذوه واذا امرتکم بشئ من رائی فانما انا بشر» زه انسان یم کله چې ستاسو ددین په اړه کې څه حکم اوکړم نو په هغې عمل کوئی. او کله چې په خپله رائې سره دڅه حکم اوکړم نو ښکاره خبره ده. چې زه انسان یم. پدې کې دا لاندینی تشریحات ګډ دی.

① هغه احکام چې په عارضی مصلحت یا سیاست باندې مبنی وی. هغه چې دطریقه کار متعلق وی. او د زمانې تیریدو سره بدلیږی رابدلیږی

② هغه کارونه چې هغه دملکی عادتونو او رواج مطابق اختیار شوی وی.

③ دعربو د بعضې تجربو، علاج، زراعت او باغبانۍ وغیره سره متعلق څیزونو اړه کښې چې نې څه فرمائیلی وی.

دفقه اسلامی دریم مأخذ اجماع دقران او سنت نه روسته داسلامی قانون دریم مآخذ اجماع ده. په لغوی معنی کې ددې مطلب عزم او اتفاق دې. اوپه شرعی اصطلاح کې ددې تعریف په دې لاندینو الفاظو کې کولې شی.

،، په یوه زمانه کې دټولو مجتهدینو او عالمانو په یوه فیصله باندې متفق کیدلو ته اجماع وئیلې شی. قاضی بیضاوی رحمه الله لیکی چې «وهو اتفاق اهل الحل والعقد من امة محمد ﷺ علی أمرمن الأمور» د رسول الله ﷺ دامت اهل حل وعقد په یوه فیصله باندې داتفاق کاوه نوم اجماع ده.

**دریم ماخذ**

**د فقه اسلامی دریم ماخذ اجماع:-** دقران او سنت نه روسته داسلامی قانون دریم مآخذ اجماع ده. په لغوی معنی کې ددې مطلب عزم او اتفاق دې. اوپه شرعی اصطلاح کې ددې تعریف په دې لاندینو الفاظو کې کولې شی.

،، په یوه زمانه کې دټولو مجتهدینو او عالمانو په یوه فیصله باندې متفق کیدلو ته اجماع وئیلې شی. قاضی بیضاوی لیکی چې «وهو اتفاق اهل الحل والعقد من امة محمد ﷺ علی أمرمن الأمور» د رسول الله ﷺ دامت اهل حل وعقد په یوه فیصله باندې داتفاق کاوه نوم اجماع ده.

**په اجماع باندې قرانی دلائل:-** داجماع په تائید کې په قران او حدیث کې دلائل موجود دی.

① ﴿وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ نساء» اوڅوك چې مخالفت د پیغمبر کوی. روسته ددې نه چې ښکاره شوې وی ورته هدایت او تابعداری کوی سوا د لارې د مسلمانانو. نوموږ به دې واړوو. هغه اړخ ته چې دې ورته اوریدلې دې. اوداخل به کړو جهنم ته. اوډیر بد ځائې دې.

② ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ نساء» اې د ایمان خاوندانو! تابعداری دالله کوئ. اوتابعداری د پیغمبر کوئ. او د حاکمانو په تاسو کې. ددې آیت نه ضمناً دا هم معلومه شوه. چې د اتفاق په صورت کې اجماع د امت د شرعی دلیل په حیثیت سره قابل قبول ده.

**دفقه اسلامی څلورم مأخذ قیاس:-** داسلامی قانون څلورم مآخذ قیاس دې. ددې لغوی معنی اندازه کول دی. دفقهاؤ په اصطلاح کې قیاس په علت او حکم کې فرع داصل سره د برابرولو نوم دې. داصول فقه په کتابونو کې چې دقیاس کوم تعریف شوې دې. د هغې حاصل دا دې. په نورالانوار کې نقل شوی دی چې «تقدیر الفرع بالاصل فی الحکم والعلة» په حکم او علت کې فرع داصل مطابق ګرځول. قیاس پدې حیثیت چې دا د اسلامی قانون مآخذ دې. د دې په اړه کې فقهائې کرامو دا لاندینی دلائل پیش کړی دی.

**دقیاس دلائل** (ا) دالله ﷻ ارشاد دې چې ﴿فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾ حشر» اعتبار اوکړنی اې د نظر خاوندانو. د اعتبار معنی قیاس ده. وئیلې شی «اعتبرت الشئ بالشئ» چې یو په بل باندې قیاس کړی. په تلویح توضیح کې د اعتبار مطلب داسې بیان شوې دې «ردالشئ الی نظیره ای الحکم علی الشئ بما هو ثابت لنظیره» یو شی دهغې نظیر اړخ ته اړول یعنی کوم حکم چې دهغې د نظیر وی هم هغه حکم ددې شی ګرځول.

**په شرعی لحاظ سره د قیاسی سند حیثیت** کوم احکام چې په قیاس سره مستنبط وی هغه د مستند کیدو په لحاظ سره داسې نه وی. کوم چې په قران حدیث یا اجماع سره ثابت وی. داهل سنت داصول فقه مسئله ده. چې دیو فقیه رائې غلطه هم کیدای شی او صحیح هم. نو ځکه د مقدماتو د فیصلې په وخت کې دا ضروری نه ده. چې هغه صرف د دې امله د یوې خاص قاعدې پابند وی. چې هغه بعضې فقهاو خوښه کړې وی بلکه هغه ته دخپلې رائې مطابق د فیصلې کاوه اجازت شته. که په قیاس باندې دعلماء اجماع اوشی. نود هغې شرعی حیثیت بدل شی. ددې تبدیلۍ وجه اجماع وی دعالمانو قیاس نه وی. یو قیاس بل قیاس نشی باطلولې. که دوې (دوه) قیاسونه د یوبل نه خلاف وی. نو فقیه ته اختیاردې. چې په دواړو کې کوم یو اختیار وی. ددې وجه دا ده. چې دقیاس انحصار د مجتهد په استعداد اوپه علم باندې وی.

**دعلم فقه شرعی حکم:-** دعلم فقه زده کول فرض عین هم دی او فرض کفایه هم. دهر یو کس لپاره ضروری ده. چې دومره علم حاصل کړی. چې دهغې اړتیا په دین کې پیښیږي. نو دا فرض دې. اوکه د اړتیا نه زیات دنورو فائدو لپاره وی. نو د هغې حصول فرض کفایه دی. چې نور خلګ هم د مهلکاتو نه بچ کړی. په علم فقه کې کمال حاصلول مستحب دې. خو په توانګر باندې د زکاة او حج مسائل، په وادۀ کونکی د نکاح مسائل، په طلاق ورکونکی د طلاق مسائل، په سوداګر د سوداګرۍ مسائل، په زمیندار د زمینداریۍ مسائل. لنډیز دا چې هریو کس دکوم شی شغل او کسب کوی. په هغه باندې دهغې مسائلو زده کول ضروری دی. چې دحرام د ارتکاب نه په کې محفوظ شی.

**دعلم فقه دائره کار:** په تجریدی عمل کې دفقه په صفت کې د تبدیلۍ د امله اوس دفقه تعلق ددې لاندینو مباحثو سره دې.

① عبادات❁ هغه امور چې دالله ﷻ اودبنده په مینځ کې د تعلق ساتلو لپاره دی. اود ژوند په ډګر کې دخاص ډول پالسۍ اود زاویه نګاه تعین کوی.

② معاملات❁ معاشرتی او مالیاتی قوانین، کوم چې د تعاون او باهمی اشتراك عمل لپاره مقرر دی. مثلاً اخستل خرڅول، عاریت او امانت او ضمانت وغیره.

③ مناکحات❁ دنسل انسانی متعلق قوانین چې په هغې کې نکاح طلاق، عدت ، نسب، دیت، وراثت وغیره واړه ګډ دی.

④ عقوبات❁ پدې کې د جرمونو او ددے دسزا نه بحث کیږی. قتل، غلا ، تهمت وغیره. دغه ډول قصاص ، تعزیرات او خون بها وغیره.

⑤ مخاصمات❁ پدې کې عدالتی مسائل، قانون او مدافعه او اصول محاکمه بیانولې شی.

⑥ حکومت او خلافت❁ پدې کې قومی او بین الاقوامی معاملات، دصلحې اودجنګ احکام، وزارت ، محاصل وغیره تفصیلات بیانولې شی. د دې تفصیل نه معلومیږی. چې داسلامی فقه دائره کار څومره وسیع دې. ددې د قانونی ګرفت یا اخلاقی احساس نه خو د ژوند انفرادی اعمال خالی دی. اونه اجتماعی. د دې نه دا اندازه هم کیدای شی. چې زموږ د اسلافو او قدیم فقهاؤ نظر څومره ژور وو. چې هغوی په وړه وړه مسئله کې دقران او حدیث نه رهنمائی حاصله کړې ده. او یائې اجتهاد او استنباط کړې دې. اودهغې شرعی حل اوصورت ئې راویستې دی.

**په احادیثو کې د امام ابوحنیفه رحمه الله طریقه کار** ① د حدیث متواتر علم قطعی وی. او دخبر واحد ظنی. ځکه امام اعظم رحمه الله صرف خبر متواترد ایمان مدار ګرځولو.

② اوپه خبر واحد باندې ئې عمل واجب ګڼړلو. خو دا ئې په ایمانیاتو کې حجت نه ګڼړلو. امام اعظم رحمه الله خبرواحد ته هغه درجه نه ورکوله. کومه چې ورته په شافعی یا حنبلی مسلك کې حاصله ده. خو دوی خبر مشهور د خبرمتواتر سره نزدې مرتبه ورکړې وه. مشهور احادیث ډیر دی.



③ د خبر واحد د قبول معیار دامام اعظم رحمه الله په نیز ډیر سخت وو. هغوی به هغه روایت نه منل چې د هغې تصادم به دقران یاحدیث سره وو.

④ که دوې (دوه) روایتونه په ظاهره مختلف وو. چې یو صرف ظاهری معنی لرله. او بل کې تاویل ګنجانش هم وو. نو هغوی به ددغه تاویل د امله تطبیق کولو.

⑤ که په دوو احادیثو کې به داسې تعارض وو. چې د موافقت څه صورت په کې په نظر نه راتلو. نو په هغې کې به ئې هغه اختیارولو. دکوم تائید چې به د صحابه کرامو رضي الله عنهم په عمل سره ثابت وو. یا دکوم راوی چې به په ضبط عدالت او فهم کې اوچت وو.

⑥ که دخبر واحد موازنه به دقیاس سره اوشوه. نو امام رحمه الله ترجیح خبر واحد ته ورکوله. داسې روایت ته احناف رحمهم الله (غیر شناس) وائی. یعنی دعقل نظر ددې د ادراك نه عاجزدې. امام اعظم رحمه الله په بعضې اخباراحاد باندې عمل نه کولو. خود هغې سبب به یو مخفی سقم یا بل څه دلیل وو. ګنی اصولی طور د امام اعظم رحمه الله په نظر کې خبر واحد ته په قیاس باندې ترجیح حاصله وه. امام اعظم رحمه الله به خبر مرسل ته هم په قیاس باندې ترجیح ورکوله.

**په اجماع د صحابه کرامو رضي الله عنهم کې د ابوحنیفه رحمه الله طریقه کار:** د امام اعظم رحمه الله په نیز دقران او سنت نه روسته د صحابه کرامو اجماع ده. دصحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع دنبی ﷺ دسنتو وضاحت دې.

① که په یوه مسئله کې صرف دیو صحابی قول ملاؤشی. اود بل صحابی د فتوې سره متضاد نه وی. نو احناف هغه هم یو ډول اجماع یعنی اجماع سکوتی ګڼړی. خوپدې شرط چې د قران اوسنت نه خلاف نه وی.

② که دصحابه کرامو رضي الله عنهم په رائې کې اختلاف وی. نو امام اعظم رحمه الله هغه قول اخلی. کوم چې قران او سنت ته نزدے وی.

③ کوم عمل چې په صحابه کرامو او تابعینوکښې پیوسته راروان وی. نو امام اعظم رحمه الله هغه حجت ګڼړی. ځکه چې په صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو دا ګمان کول فضول خبره ده. چې هغوی به په تواتر سره (همیشه) د سنت نه خلاف کړې وی. ④ امام اعظم رحمه الله پخپله هم تابعی وو او دتابعینو د انفرادی اقوالو پابند نه وو. بلکه په هغې کې به ئې اجتهاد کولو. امام اعظم رحمه الله په نظری لحاظ سره په هر دور کښې د اجماع قائل وو.

**په قیاس کې د امام ابوحنیفه رحمه الله طریقه کار:** په فقه حنفی کې په قیاس باندې عمل په هغه وخت کې جائز دې کله چې ددې نه سوا بل څه دلیل ملاؤنشی. دقیاس بنا (بنیاد) په علت منضبطه باندې دې. یعنی په اصل فرع کې د اشتراك هغه وجه کومه چې دا دواړه په حکم کې برابروی. امام اعظم رحمه الله د قیاس په کاوه کې ډیر محتاط وو. خو هغوی نه یواځې د پیښو شوو مسائلو حل لټون کړې وو. بلکه په فرعی مسائلو کې ئې هم غور او فکر کړې وو. ځکه د دوی سره د قیاسی فتوو ډیر تعداد موجود وو. دملك او تمدن وسعت ورځ په ورځ زیاتیدلونو امام اعظم رحمه الله ضروری اوګڼړلو. چې د فقه د تدبر لمن هم وسیعه شی. لیکن ور سره داهم ضروری وه. چې رائې هم بې لارې نشی. ددې د حدودو تعین لازمی وو. دوی دفکر او نظر لپاره قاعدې اوضوابط مقرر کړل اوقیاس ته ئې د یو فن شکل ورکړلو. چې په دے کې په هیڅ صورت کې د غلو صورت پیدا نشی. د مسئلو دکثرت باوجود د دوی مسلك د نقل او عقل په اعتبار سره یو ښکلې امتزاج او ګډون پیش کوی. امام اعظم رحمه الله چې کومه ذمه واری اخستې وه. هغه ډیره ګرانه او مشکله وه. په هغه وخت کې بعضې ائمه کرام ددې طریقې خلاف وو. او فرضی مسائل ئې یو اړخ ته کړه. چې په پیښو شوو واقعاتو کې به هم ترڅو پورې هغوی ته سابقه نظیر وړاندې وو. نو هغوی به د رائې ور کاوه نه پرهیز کولو. دامام اعظم رحمه الله رائې مختلفه وه. اګرچې علم دین یوه نازکه مرحله ده. لیکن په دوی کې ددې ذمه دارۍ اهلیت وو. که د اهلیت باوجود ئې ددې نه پرهیز کول جرم ګڼړلو. د دوی قول دې. که ما سره د علم ضائع کیدو ویره نه وه. نو د

فتوو ورکاوه ذمه واری به مې نه وه قبوله کړې.

**امام ابو حنیفه ؒ او د فقه تدوین** ° د فقه پیل خو د نبی ﷺ د زمانے نه شوې وه. د الله ﷻ ارشاد دې. ﴿لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ په دې کې د تفقه تاکید دې. نبی ﷺ ترغیب هم ورکړې دې. او فضیلت ئې بیان کړې دې. ارشاد دې. ﴿من يرد الله به خيرا يفقه في الدين﴾ یعنی چاسره چې الله پاك د خیګړې اراده اوکړی. نو هغه ته په دین کې پوهه ورکړی.

**په عهد نبوی ﷺ کې فقه:** -دصحابوؓ په دور کښې په مسائلو کې د فرض، واجب وغیره تفصیل نه وو ۞ صحابه کرامو ؓ به د نبی ﷺ نه تفقه هم حاصلولو. او ډیر صحابه کرامو ؓ په دې کې د ممتاز حیثیت مالکان وو. لیکن دهغوی په زمانه کې د احکامو قسمونه پیدا شوی نه وو. نبی ﷺ به دصحابه کرامو ؓ مخکې اودس کولو. لیکن دا ئې نه وو فرمائیلی. چې دا رکن دې. او دا فرض دې. او دا سنت دې. او دا مستحب دې. صحابه کرامو ؓ به نبی ﷺ لیدلو. او هغه شان اودس به ئې کولو. نبی ﷺ به کله یویو ځل د اودس اندامونه اوپریمنځل. اوکله دوې (دوه) دوې (دوه) ځله. او کله به ئې درې درے ځله. او په دے به ئې زیادت نه کولو. د دے نه خو دا اندازه شوې وه. چې کم ازکم یو ځل پریمنځل ضروری دی. او د دے نه زیات وینځلو نه ئې منع کړې وه. لیکن دا ئې نه وو فرمائیلی. چې دا فرض دی او دا سنت دی او دا مستحب دی. دغه ډول حضرت عثمان ؓ او حضرت علی ؓ د نبی ﷺ د اودس د طریقے تعلیم ورکولو. دے حضراتو هم څه تفصیل نه وو بیان کړې. دلمونځ هم دا حال وو. صحابه کرامو ؓ د فرضو، واجبو، سنتو او مستحبو څه تحقیق نه کولو. ځنګه چې ئې نبی ﷺ په لمانځه لیدلے وو. هم هغه شان لمونځ به ئې کولو. د نبی ﷺ ارشاد دې. چې ﴿صلوا كما رأيتموني أصلي﴾ دهغه وخت په حالاتو کې هم دا سادګی مناسب وه. هغوی ته خو د نبی ﷺ په هره ادا باندې ځان قربانولو کې خوند ملاویدلو. خو په ځینې وختونو کې نبی ﷺ دا ارشاد هم فرمائیلے وو. ﴿قم فصل فانك لم تصل﴾ یعنی پاسه لمونځ اوکړه. لمونځ دے اونه شو.

**په نبی ﷺ د هیرې راتلو حکمت** ۞ دغه ډول تکوینی طور په نبی ﷺ باندې هیره هم راتله. چې خلګو ته په داسې صورت کې مسئله معلومه شی. فرمائی چې ﴿لا انسى ولكن انسى لاسن﴾ یعنی زه په نه هیروم. بلکه زما نه هیرول کولې شی. ددے لپاره چې په ماپسې په دغه هیره کښے اقتدار اوشی. (یعنی که د نبی ﷺ نه هیره نه وه شوې. حالانکه د امت نه هیره کیږی. نو که امت ته د هیرے د امله څه مسئله پیښه شوې وه. څه به ئې کولو. د داسې صورت پیدا کیدو لپاره الله تعالی په خپل پیغمبر ﷺ باندې ځینې وخت هیره راوستے ده. چې امت ته د هیرے په صورت کښے هم د نبی ﷺ طریقه معلومه شی.)

**د اجتهاد د اړتیا پیښیدو وجه** ۞ بهرحال د نبی د وفات نه روسته د اسلامی فتوحاتو سلسله وسیع شوه. او د تمدن دائره وسیع شوه. واقعات دومره زیات شول. چې د اجتهاد او استنباط اړتیا پیښ شو. اود اجمالی احکامو تفصیل ضروری شو. مثلاً که چا به په غلطئ سره په لمونځ کې څه عمل پریښولو نو اوس سوال داپیدا شو. چې لمونځ اوشو او که نه؟ بیا دا خوممکنه نه وه. چې واړه اعمال دے فرض شی. دغه ډول دا به هم غلطی وه. چې واړه اعمال دے مستحب شی. چې دهغې په پریښولو څه نقصان نه راځی. ځکه چې په ځینې موقعو باندې د نبی ﷺ نه سجده سهوه نقل ده. ځکه ددے تحقیق اړتیا پیښ شو. چې په لمانځه کې څومره شیان فرض دی او څومره واجب؟ څومره سنت دی او څومره مستحب دی؟

**په اصولو کې د اختلاف وجه** ۞ اود دے امتیاز لپاره چې کوم اصول مقرر کولې شی. او کوم معیار ګرځولې شی. په هغه اصولو کې د ټولو اتفاق هم ګران وو. ځکه چې د اسلامی فتوحاتو د وجه صحابه کرام ؓ د جهاد، تبلیغ او تعلیمی مصلحتونو لپاره په ملکونو او اطرافو کې خپاره شوی وو. بیا د ټولو په طریقو د استنباط کې یو شان والې هم نشو کیدې. نو ځکه په مسائلو کې اختلاف پیدا کیدل هم لازمی وو. ډیر داسې واقعات پیښ شول. چې دهغې نظائر د نبی ﷺ په زمانه کې موجود نه وو. صحابه کرامو ؓ په هغه صورتونو کې د استنباط تفریع، اود حمل النظیر علی النظیر نه کار اخستلو. غرض دا چې دصحابه کرامو ؓ په زمانه





کې د احکامو او مسائلو یوه لویه ذخیره تیاره شوې وه.

**د فقه په تدوین کې د امام ابو حنیفه ؒ اود هغوی د شاردانو کردار:-** دحضرت عبدالله بن مسعود ؓ دفتاوو زیاته ذخیره وه. لیکن مرتبه نه وه. چې چا به ترے څه پوښتنه اوکړه. هغوی به ځواب ورکړلو. اوشاګردانو به اولیکلو. هغه ذخیره حضرت علقمه ؒ ته رارسیدلے وه. هغوی دهغې وضاحت او تشریح اوکړله. هغه ئې ښه واضحه او تازه کړې. او هغې ته ئې قوت ورکړو. بیا حضرت ابراهیم نخعی ؒ دهغه په ګدئی کیناستلو. هغوی د دے سلسلے ټولے فائدے اونوادر جمع کړل. اود دے قابلے ئې جوړے کړې. چې دهغې نه فائده اخستل آسان شو. بیا چې کله دهغوی په ګدئ سلیمان ؒ کیناستلو. نو هغوی د دے ښه وضاحت اوکړلو. لکه ځنګه چې غله د بوسه وغیره نه صفا شی. حضرت حماد ؒ چې کله په کال ۱۲۰ھ کې وفات شو. نو خلګو حضرت امام ابوحنیفه ؒ ته منت اوکړلو. او دوی ئې دهغوی په ګدئی باندې کینولو. د امام اعظم ؒ د زمانے پورې اګر چې د فقه کافی مسئلې مدون شوې وې. لیکن بې ترتیبه وے او هغې ته فنی حیثیت حاصل نه وو. نه خو د استنباط او استدلال قواعد وو. او نه د مسائلو د تفریع اصول مقرر وو. نه په حدیثو کې امتیاز د مرتبو وو. او نه د قیاس او استحسان او الحاق النظیر بالنظیر قواعد مقرر وو. لنډیز دا چې فقه تر او سه پورې د جزوی مسائلو نوم وو. دا قانونی مرتبې ته رسولو کې ډیر محنت پکار وو.

**د امام اعظم ؒ اوچت اوصاف** ۞ د الله ﷻ احسان وو چې امام ابوحنیفه ؒ ته ئې ډیره اوچته حافظه ورکړې وه. د ناسخ او منسوخ په تحقیق کې ورته کمال حاصل وو. دلغت اود عربیت تدوین په کوفه کې پیدا شوې وو. الله ﷻ ورته مناسب طبیعت او اوچت فهم ورکړې وو. د سوداګرئی وسعت او ملکی تعلقاتو هغوی د معاملاتو د اړتیا نه خبرکړی وو. هغوی ښه پوهیدل چې لین دین معاشرت او معاملاتو کې خلګ څه کوی. په دې کې کومے کومے خرابئ دی. او د دے اصلاح به ځنګه اوکړې شی؟ د اطرافو ځخه به د کوفے مرکزی دارالعلوم ته په سوونو استفتاګانے راتلې. د دے نه ورته هم ښه تجربه حاصله شوې وه. الله ﷻ په کې د فقه د تدوین جذبه پیدا کړله. په دې سلسله کې د دوی خوبونه او زیری ډیر مشهور دی. طبیعت ئې د اجتهاد اود غیر معمولی تقوی په صفت موصوف وو. بیا

**د امام ابوحنیفه ؒ د تدوین محتاطه طریقه** ۞ چې امام ابو حنیفه ؒ په کومه طریقه د فقه د تدوین اراداه کړې وه. هغه ډیره وسیع اود خطرو نه ډك او د ذمه وارئی کار وو. دوی دا غوښتل چې دا شریعت مکمل او دائمی دې. نو د دے په رڼا کښے چې کوم کار وی هغه به هم په دائمی ضروریاتو حاوی او مشتمل وی. نو ځکه دومره لوئې کار دوی صرف په خپلو ذاتی معلوماتو باندې کولو. بلکه په خپلو نامتو شاګردانو کې چې څوك د فن ماهران اوصاحب د کمال وو. هغوی ئې منتخب کړل. لکه یحیی بن ابی زائده، حفص بن غیاث، قاضی ابویوسف، داود طائی، حبان مندل. دوی په آثارو احادیثو کې ډیر مهارت لرلو. امام زفر په قوت استنباط کې زیات مشهور وو. قاسم بن معن او امام محمد ته په آدب او عربیت کې کمال حاصل وو. بیان شوې دې. چې د امام ابو حنیفه ؒ د تدوینی بورډ شریکان او ممبران څلویښت لوئې لوئې عالمان او د فن ماهرین وو.

**د امام ابو حنیفه ؒ د تحقیق او تدوین طریقه**° د امام ابو حنیفه ؒ په شاګردانو کې لس نفر ممتاز او وړاندې وو. په دوی کې امام ابو یوسف ؒ، امام زفر ؒ، داود طائی ؒ، اسد بن عمر ؒ یوسف بن خالد ؒ، یحیی بن زکریا بن ابی زائده ؒ، حفص بن غیاث ؒ، صبان بن مندل ؒ، قاسم بن معن ؒ، امام محمد وو. یحیی بن زکریابن ابی زائده ؒ تر دیرشو کالو پورې لیکل کول. د اسد بن فرات په یو روایت کې داهم دی. چې په بعضو مسائلو کې به ئې درے درے ورځې سوچ او فکر کولو. په کتابت کې به ئې تونډی نه کوله. کله چې به مسئله واضحه شوه او اطمینان به ورته حاصل شو. نو بیا به ئې هغه لیکله. یحیی بن معین ؒ په تاریخ او علل کې لیکلی دی،، امام زفر ؒ فرمائی. چې موږ به امام ابوحنیفه ؒ ته تلو راتلو. موږ سره به امام ابو یوسف ؒ او امام محمد ؒ وو. موږ به د امام ابو حنیفه ؒ خبرے اوریدلې. یوه

ورځ امام ابو حنیفه رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله ته اوفرمائیل: چې زما هره خبره مه لیکئ. ځکه چې په یوه مسئله کې زما یو ورځ یو رائې وی. خو په بله ورځ هغه پرېږدم. ددې حاصل هم دا دې. چې تر څوپورې یوه مسئله د بحث او مباحثې نه روسته محققه شوې نه وی. ترهغه وخته پورې لیکل مه کوه. دا د تقوی اواحتیاط، خوف او وېرې د احساس او د ذمه وارئی کمال وو. الله اکبر.

موفق مکی فرمائی. چې امام ابو حنیفه رحمه الله دخپل مذهب په متعین کاوه کې صرف په خپله ذاتی رائې اکتفا نه ده کړې. بلکه دالله جل جلاله اود رسول اکرم ﷺ د اوچت مقام خیال ئې ساتلو. او دمسلمانانو سره ئې د اخلاص اوخیرخواهئی پوره کوښښ کولو. اود دین په باره (باره) کې ئې د پوره کوښښ او احتیاط نه کار اخستې وو. مجلس شوری ئې مقرر کړې وه. بیا به یوه یوه مسئله وړاندې کیدله. اود ټولو دلائل او نظریات به اورېدې شول. او خپله رائې به ئې هم ښکاره کوله. کله کله به په مهمو مسئلو کې تر یوې میاشتې بلکه ددې نه هم زیات مباحثه روانه وه. تر دې چې په یو قول به فیصله اوشوه. نو امام ابویوسف رحمه الله به هغه په اصولو کې اولیکله. تر دې چې واړه اصول هم د پوره تحقیق نه روسته اولیکلی شوه.

صمیری رحمه الله د خپل مسند نه نقل کړی دی. که د امام ابو حنیفه رحمه الله شاګردانو په یوه مسئله کې خبرې کولې او قاضی عافیه بن یزید به موجود نه وو. نوامام ابو حنیفه رحمه الله به اوفرمائیل. د عافیه تر راتلو پورې صبر اوکړئ. کله چې به هغه راغلو. او اتفاق به ئې ور سره اوکړلو. نو مسئله به اولیکلې شوه. لنډیز دا چې دیو خاص باب یوه مسئله به ئې وړاندې کړه. او خلګ به په هغې باندې متفق شو. نو په هغه وخت به اولیکلې شوه. او ډېر په آزادئ سره به بحث پیل شو. امام اعظم رحمه الله به واړه دلائل ډېر په توجه اوسوچ سره اورېدل. اوپه آخر کې به ئې فیصله کوله. اکثر به ددوی په محققه فیصله باندې متفق شو. او هغه به ئې اولیکله. خو که خلګ به په خپلو رائې ګانو قائم وو. نوپه هغه وخت کې به واړه اقوال لیکلې شو. او دغه ډول دا عظیم الشان کار د دیرشو کالو په اوږده موده کې پوره شو.

**دمدون مسائلو تعداد:** دا مجموعه ډېره لویه علمی ذخیره وه. په مقدمه د نصب الرایه کې دی. چې «واقل ما یقال فی مسائله انها تبلغ ثلاثا و ثمانین الفا». یعنی کم ازکم ددوی علمی مسائل درې اتیا زره ته رسیدلې وې. ځینې حضراتو لیکلی دی. چې حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله چې څومره مسائل مدون کړی دی. دهغې تعداد ئې لیکلې دې. دا مسائل شپې لکه وې. د امام محمد رحمه الله دتصنیفاتو نه دومره اندازه کیږی. چې هغه مسائل ډېر زیات وو. دصحیح تعداد متعلق فیصله کول ګران دی. دحافظ ابو المحاسن رحمه الله دبیان مطابق ئې ترتیب داسې وو. باب الطهارت، باب الصلوة، باب الصوم او بیاد عبادتونو بابونه. ددې روسته په معاملاتو کې په ټولو کې آخری باب باب المیراث وو. بهر حال دامام اعظم رحمه الله داکار یو نوې کار وو. دحضرت امام اعظم رحمه الله داکار من حیث المجموع په اسلامی تاریخ کې بلکه په دنیاوی تاریخ کې بې نظیره دې. په دنیا کې نور قومونه هم شته. اود آسمانی کتابونو دعویدار هم دی. لیکن هیڅ یو قوم نه دعوی کولې شی. او نه ثابتولې شی. چې دوی د مسائلو د استنباط لپاره اصول او ضوابط مقرر کړی دی. اودیو مستقل فن نقشه ئې دنیا ته پیش کړې ده.

علامه سیوطی رحمه الله په خپل کتاب "تبیض الصحیفه" کې لیکلی دی چې دامام اعظم رحمه الله په مناقبو کې یو داهم دې. چې علم شریعت دټولو نه وړاندې دوی مدون کړې دې. په دې موقع هغه مشهوره لطیفه ذکر کول هم مناسب دی. چې ابن مسعود رحمه الله د فقه پټې کرلې وو. او علقمه ورته اوبه ورکړې وې. اوسیراب کړې ئې وو. اوابراهیم نخعی رحمه الله هغه کټ کړلو او حماد رحمه الله هغه غوبل کړلو. او امام محمد دهغې نه ډوډئ پخې کړې چې نن ئې واړه خلګ خوری.

**دعلامه زاهد کوثری په ژبه دفقه حنفی اصول:** علامه زاهد کوثری په ،، تانیث الخطیب علی ماساقه فی ترجمة أبی حنیفه من الأکاذیب،، کښې شپاړس مهم اصول ذکر کړی دی. د هغې لنډیز دا ده.

① د ثقه راویانو مرسل رویاتونه قبلول خوچې هغې سره قوی روایت معارض نه وی.



② امام اعظم رحمه الله به ،، اخبار احاد ،، په هغه اصولو باندې تلل. کوم چې د شرع د مواردو لټولونه روسته هغوی سره جمع شوی وو. نوکه یو خبر واحد به د هغو د اصولو نه مخالف وو. د هغې په مقابله کې به ئې اصل اختیارولو. چې په قوی دلیل باندې عمل اوشی. اوهغه خبرچې د اصل څخه به مخالف وو. هغه به ئې شاذ ګرځولو. په معانی الآثار کښې ددې مثالونه زیات موجود دی.

③ اخبار احاد به ئې دکتاب په ظواهرو او عموماتو ټولو باندې تلل. نوکه یو خبر به دکتاب د عموم یا ظاهر نه خلاف وو. امام اعظم رحمه الله به قوی دلیل باندې عمل کاوه لپاره دخبر په ځائې په کتاب الله عمل کولو. ځکه چې لکه څنګه کتاب الله قطعی الثبوت دې. دامام اعظم رحمه الله په نیز دغه ډول ددې ظواهر او عمومات هم قطعی الدلاة دی. لکه چې داصولو په کتابونو کې تفصیلی دلائل دی. اوکله چې به یو خبر دکتاب الله د عموم یا ظاهر نه مخالف وو. بلکه د هغې د اجمال بیان به وو. نو هغه به ئې قبلولو. ځکه چې په هغې کې د بیان نه بغیر دلالت نه وی.

④ په خبر واحد به هله عمل کولې شی. تر څوچې هغه دسنت مشهوره نه خلاف نه وی. که هغه سنت فعلیه وی اوکه قولیه وی.

⑤ دغه ډول دا هم شرط دې. چې هغه دخپل خان په شان خبر نه سره هم معارض نه وی. که معارض وی. نود تعارض په وخت کې به یو ته په بل باندې ترجیح ورکولې شی. اووجوه د ترجیح د مجتهدینو د افکارو د اختلاف د امله مختلف دی.

⑥ چې د راوی عمل د حدیث نه مخالف وی. لکه دحضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت چې کله سپې په لوښی کې خوله اووهی. نو هغه اووه ځله وینځی. دا د اووه ځله وینځلو روایت د ابو هریره رضي الله عنه دفتوی نه خلاف دې

⑦ دکوم خبر په متن یا سند کې چې زیاتې وی. نو په دین کې د احتیاط په نقطه نظر سره به دغه زیات روایت په هغه روایت عمل کولې شی. په کوم کې چې کمې اونقص وی.

⑧ چې دخبر واحد تعلق عام او زیات پیښیدونکې واقعې سره نه وی. ځکه چې په داسې عمل باندې دحکم ثبوت دشهرت یا تواتر نه بغیر نشی منلې. په دې کې حدود او کفارات هم ګډ دی کوم چې دشبهې د وجه ساقطیږی.

⑨ که د یوې مسئله په حکم کې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف پاتې شوې وی. اوچې کوم صحابی په کې اختلاف کړې وی خوهغه نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته په استدلال او احتجاج کې خبر واحد نه وی پیش کړې. بلکه په هغې ئې استدلال پرېښولې (پرېخودې) وی. نو په داسې صورت کې به هم هغه خبر واحد معمول به نشی جوړولې.

⑩ که په خبر واحد باندې په سلفو کې چا طعن کړې وی. نوپه دې صورت کې به هم خبر واحد نشی قبلولې.

⑪ چې مختلف روایات موجود وی. نو په دې صورت کې به هم حدود او عقوباتو کې په آسان روایت عمل کولې شی.

⑫ چې راوی دکوم وخت نه دخپل استاد نه روایت اوریدلې وی. او په کوم وخت کې بیا د هغې روایت کوی. نو دا ضروری ده. چې دغه روایت ورته په دې موده کې یاد وی. او ددې په مینځ کې ترې هیڅ وخت کې هیر شوې نه وی. اوکه داسې نه وی. نودهغه په روایت باندې استدلال صحیح نه دې. حالانکه پاتې واړه محدثین دا شرط لازمی نه ګڼړی. او د بار بار هیرولو باوجود په روایت باندې استدلال کول صحیح ګڼړی.

⑬ که دحدیث راوی ته خپل حدیث یاد نه وی. او هغه په خپلو لیکلو باندې اعتماد اوکړلو. اوروایت ئې اوکړلو. نو په داسې صورت کې هم دامام اعظم رحمه الله په نیزې قابل حجت پاتې نشو. حالانکه نور محدثین داهم حجت ګڼړی.

⑭ کوم حدود چې د شبهاتو په وجه ساقطیږی. که د هغې په اړه کې روایات مختلف وی. نو امام اعظم رحمه الله

احوط روايت باندې عمل كوي.لكه په دے روايت كښے چې راغلي دي.چې لاس به د هغه ځيز په غلا كي كټ كولې شي.چې هغه د دينار د څلورمے حصې برابر وي.خو امام اعظم رحمه الله ددے په مقابله كي هغه روايت معمول بها جوړ وي.چې په هغې كي دلسو دراهمو په برابر د شي په غلا باندې د لاس كټ كاوه حكم راغلے دې.ځكه چې د دراهمو په روايت باندې عمل كولوكي زيات احتياط دې.خو چې په دواړو رواياتو كي د يو تقدم او تاخير معلوم نه وي.ځكه كه داسې وي نو چې كوم موخروي هغه به د مقدم لپاره ناسخ وي.

⑮ امام اعظم رحمه الله په داسې حديث باندې عمل كوي.چې د هغې په تائيد كي آثار زيات وي.

⑯ چې خبر دصحابو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله دعمل متواتر نه مخالف نه وي.كه دغه حضرات دكوم يوښار تعلق ساتي.د دوي په نيز د يو ښار تخصيص نشته.د هدايه په اړه كي يو څو اشعار لوستونكو ته پيش كوم.

كتاب الهداية يهدى الهدى الى حافظيه ويجعلو العمى
فلا زمه واحفظه ياذا الحجى فمن ناله نال اقصى المنى
ان الهداية كالقران قد نسخت ما صنعوا قبلها فى الشرع من كتب
فاحفظ قواعد واسلك مسالكها يسلم مقالك من زيغ ومن كذب

① هدايه كتاب خپل ساتونكو ته د هدايت رڼا وركوي.اوهغوي بينا كوي اڼې دعقل خاونده.

② دا لازمه اونيسه!! او د دے ساتنه كوه.څوك چې دا حاصله كړي.نودخپلو اميدونو حصول ته به اورسي.

③ هدايه دقران كريم په څير وړاندينی كتابونه منسوخ كړل

④ نو ځكه ددے كتاب قواعد ياد كړه. او ددے په خودلے شوو طريقو عمل اوكړه نو ستا خبرے به د دروغو او غلطو نه محفوظ شي.





بسم الله الرحمن الرحيم

## حمد او صلاة او د مجتهدينو رحمهم الله مقام

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ** واړه تعريفونه دالله لپاره دی **أَعْلٰى مَعَالِمَ الْعِلْمِ وَأَعْلَامَهٗ** .چې دعلم نښې او جنډې ئې اوچتې كړې دي **وَأَظْهَرَ شَعَائِرَ الشَّرْعِ وَأَحْكَامَهٗ** او د شريعت شعائر او احكام ئې ښكاره كړي دي

**تشريح:- المسلكان فى الف لام الحمد:-** ① د الحمدلام داهل سنت په نزد د جنس لپاره دې يا د استغرق دپاره ② او د معتزلو په نزد د عهد لپاره دې.ځكه چې معتزله بندګان دافعالو خالق ګڼړي.نود هغوي په نزد چې كوم حمد دبندګانو دافعالو په مقابله كښې وي. د هغې مستحق به بندګان وي الله نه.نو بيا الله تعالى د حمد دټولو افرادو مستحق څنګه كيداې شي؟اوچونكه داهل سنت په نزد دټولو افعالو خالق الله تعالى دې.نوځكه به د حمد د ټولوافراد مستحق هم هغه وي.

**توضيح كلمة ،، الله،،** ❁ حمد د تعظيم او تكريم په لحاظ سره ښكلې صفات بيانول دی.(كلمه د الله) منقول ده يا مرتجل ، مشتق ده يا غير مشتق، علم دې يا غير علم، په دې اړه كي د علماؤ اختلاف دې.الله هغه ذات ته وائي.چې واجب الوجود وي.او د الوهيت واړه صفات په كي موجود وي.

**المعالم لغة و المراد منها** ❁ «معالم» د معلم جمع ده.خانې دعلم يا خانې د علامت① دلته كي د معالم نه اصول د شرع مراددی.يعنی كتاب،سنت، اجماع ، قياس.او د دې اصولواوچتول داسې دی.چې الله تعالى موږ ته ددې د تابعدارئ اوپه دې دعمل كاوه حكم كړې دې.دالله تعالى ارشاد دې.﴿اتَّبِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَيْكُم﴾ ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ﴾ او﴿وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ او ﴿فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾② او بعضې حضرات فرمايي .چې د معالم نه مراد عالمان دی.او د علماؤ اوچتولوالې ښكاره دې.دالله تعالى ارشاد دې.﴿يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ﴾

**المعانى الثلاثة للاعلام** ❁ «واعلامه» اعلام جمع د علم ده.معنی ئې ده.علامت، غر،بيرغ ① په اول صورت كي به دليل مراد وي.② په دوهم صورت كي به عالمان ③ او په دريم صورت كي به بعينه ذات دعلم مراد وي.په دې طريقه چې د علم تشبيه ئې دهغه بادشاه سره وركړې ده.چې دهغه په لاس كي بيرغ وي.او وجه د تشبيه واجب الاطاعت او واجب الانقياد ده.

**الرايان في المراد من الاعلام** ❁ ① شيخ ابن الهمام صاحب دفتح القدير فرمائی.چې د معالم نه مراد اسباب شرعيه دی.لكه د لمر زائله كيدل د ماپښين د لمانځه سبب دې.او ملك د نصاب د وجوب زكاة، راتګ دشهر رمضان د وجوب صوم او شرافت د مكان دوجوب حج سبب دې.دليل دا دې.چې علم په معنی دعلامت دې.او اسباب شرعيه هم د احكامو د وجوب علامات وي. ② اود بعضو رائې دا ده.چې د اعلام نه مراد عالمان دی.چې په هغوی پسې اقتداء كولې شي.په اكثرو ځايونو كي د اعلام نه هم عالمان مراد وي.

**القولان في المراد من الشعائر** ❁ «واظهرشعائر الشرع» ① شعائر جمع د شعيرة ده.لكه چې صحائف جمع د صحيفة ده. شعيرة هغه شی دې.چې دالله تعالى د عبادت نښانه وي.② او بعضې حضراتو فرمائيلي دی. چې د شعائر نه هغه عبادتونه مراد دی.چې هغه د شهرت لپاره استعماليږی.لكه اذان، د جمعې مونځ، د اختر لمونځ خطبه قربانی او د ذكر عرفات نه په عرفه كي د حاجيانوجمع كيدل.دلته كي د شرع نه مشروعات مراد دی.شارع نه دې.

**الاقوال الثلاثة في تعريف الحكم** ❁ «احكامه» احكام دحكم جمع ده. ①حكم اثر مرتب على الشئ ته

واني.لکه جواز ،فساد ،حرمت ، حلت وغيره② يا حکم هغه خطاب باری تعالی ته واني.چې بندګانو پورې متعلق وی. ③ يا د نسبت تامه نوم حکم دې.(ملا عبدالغفور) په خطبه کې د احکامو ذکر د براعت الاستهلال په طور دې.يعنی په احکامو سره دې اړخ ته اشاره ده.چې دا کتاب په احکامو او مسائلو مشتمل دې.

وَبَعَثَ او مبعوث کړی دی. رُسُلًا وَأَنْبِيَاءَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِينَ نبيان او رسولان إِلَى سُبُلِ الْحَقِّ هَادِينَ او چې نې د حق لارې اړخ ته خودونکی جوړ کړی دی

**تشريح:- الفرق بين الرسول والنبی**◉ ﴿وبعث رسلا و أنبياء﴾ رسول هغه پيغمبر وی.چې هغه سره کتاب وی.لکه حضرت موسی عليه السلام اونبی هغه وی.چې دالله تعالی د احکامو تبليغ کوی.اګرچې هغه سره کتاب نه وی.لکه حضرت يوشع عليه السلام.(کشاف)

**معنی الهداية** ◉ ﴿هادين﴾ دا د انبياؤ صفت دې.﴿ هداه الطريق﴾ يعنی بغير د واسطې نه هدايت ته رسول او ددې معنی تحقق صرف دالله تعالی د اړخه کيږی. اوپه ﴿اهدنا الصراط المستقيم﴾ کې دې طرفته اشاره ده. او ﴿هداه إلی الطريق﴾ يعنی په واسطه سره هدايت کول دا د انبياؤ عليهم السلام طريقه منصب دې.

د هدايت مختلف مراتب دی ① الهامی هدايت:لکه بچې چې د مور نه پيداښې نو دمور تې ته روی دا د تی رولو طريقه ورته د الهام په ذريعه شوې ده ② هدايت حسی: کله چې بنده د خواس ظاهری او خواس باطنی مالك شی نو نيك اوبد شيان اوپيژنی دې ته هدايت حسی وائی ③ هدايت عقلی:کومو ځيزونو ته د خواس رسيدل نه کيږی او په خواس خمسه سره د هغې ادراك نه کيږی نود عقل په ذريعه دغه معلومولې شی دې ته هدايت عقلی وائی لکه په لاره وزه بچې پرتې دی ددې نه د عقل په ذريعه دا معلوميږی چې په دې لار وزه تلې ده ④ هدايت استدلالی او نظری: يعنی په کوم شی چې علم دعقل په ذريعه هم نه راځی نو په دسغه شی باندې د علم راتلو لپاره نظری دلائلو نه کار اخستې شی او په دغه شی باندې پوهه حاصله کړې شی دې ته هدايت استدلالی وائی ⑤ هدايت انبيائی : يعنی کوم شيان چې د عقل او نظر په ذريعه هم نشی معلوميدې نووحی الهی په ذريعه باندې پيغمبرانو عليهم السلام ته د هغې علم ورکړې شی لکه د قيامت حالات وغيره دې ته هدايت انبيائی وائی

وَأَخْلَفَهُمْ عُلَمَاءَ او عالمان نې د پيغمبرانو نائبان جوړ کړی دی إِلَى سُنَنِ سُنَنِهِمْ دَاعِينَ طريقې د سنتو د هغوی ته بلونکی دی يَسْلُكُونَ فِيمَا لَمْ يُؤْثَرْ عَنْهُمْ مَسْلَكَ الِاجْتِهَادِ جاری کوی په په هغه ځيزونو کې چې د پيغمبرانونه منقول نه دی لاره د اجتهاد مُسْتَرْشِدِينَ مِنْهُ فِي ذَلِكَ موندونکې د رشد اوهدايت دې د الله تعالی د اړخه په دې باب کې وَهُوَ وَلِيُّ الْإِرْشَادِ اوالله تعالی مالك دې د صحيح لارې خودونکې

**تشريح:- العلماء ورثة الانبياء** ◉ ﴿وأخلفهم علماء﴾ ،،أخلف خلف فلان فلانا،، نه ماخوذ دې.او کله چې په باب افعال کې راغلو.نو دوو مفعولينو ته متعدی شو.يعنی الله تعالی عالمان د انبياء خليفګان جوړ کړل.په حديث کې دی.﴿ العلماء ورثة الأنبياء﴾ او وارث د خپل مورث خليفه او ګده نشين وی.او علماء جمع د عالم ده.لکه څنګه چې شعراء جمع د شاعر ده.

**معنی السنة لغة**◉ ﴿الی سنن سننهم﴾ سنن د سنت جمع ده.په معنی د لارې او عادت.د اول سنن نه مراد طرق دی.او د سنن ثانی نه مراد عادات دی.ژباړه به داشی.چې داسې لارو اړخ ته دعوت ورکونکی دی.چې هغه د انبياؤ عاداتو ته رسونکی دی.

وَخَصَّ أَوَائِلَ الْمُسْتَنْبِطِينَ بِالتَّوْفِيقِ اوخاص کړې نې دی اولنی مجتهدين په خاص توفيق ور کاوه سره حَتَّى وَضَعُوا مَسَائِلَ مِنْ كُلِّ جَلِيٍّ وَدَقِيقٍ نتيجه نې دا راوته چې هغوی مستنبط کړې مسئلې هرقسم که ښکاره وی او که ګرانې



**تشريح:- المراد من الاوائل**◉ ﴿رخص أوائل المستنبطين﴾ د اوائل مستنبطين نه مراد امام اعظم رحمه الله او دهغه انډيوالان دی. ځکه چې هم دا حضرات د نصوصو نه د دلائلو په استنباط کې سبقت حاصلونکی دی.او د مسائلو په راويستلو کې د فضيلت درجې حاصلونکی دی.روستو واړه امامان د د وی په نقش قدم باندې روان دی.

**معنی الاستنباط** ◉ د استنباط معنی ده.مځکه کنستل او دهغې نه اوبه راويستل او د استنباط لفظ د نصوصو نه د وصف موثره راويستلو په معنی کې هم استعماليږی .ځکه په دواړه ځايونو کې کلفت او مشقت دې.هم دا وجه ده.چې د علماء درجات او مرتبې نورې هم اوچتيږی.او په اوبو او علم کې ددې وجه هم مشابهت دې.چې اوبه د اجسامو د ژوند سبب دې.او علم د روحونو د ژوند سبب دې.دې ته دالله تعالی په دې قول کې اشاره شوې ده.﴿ وَأَحْيَيْنَا بِهِ بَلْدَةً مَيْتًا ﴾او ﴿ أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ ﴾

**المراد من الجلی والدقيق**◉ ﴿من كل جلی ودقيق﴾ د دې نه مسائل قياسيه او استحسانيه مراد دی. مثلا په کوهی کې پچې پريوتې.نو د قياس د تقاضا مطابق ددې اوبه پليتې شوې.ځکه چې په لړو او بو کې نجاست پريوتې دې.او استحسان دا دې.چې اوبه نه پليتيږی.ځکه چې د ځنګل په کوهيانو باندې سر نه وی.اوصورت دا دې.چې څاروی د کوهی په خوا و شاه کې پچې کوی.او هواګانې هغه اوچتوی.او په کوهی کې ئې اچوی.نو د پچو لږ مقدار د اړتيا د امله معاف شو.او په زيات مقدار کې څه اړتيا نشته.نو ځکه هغه معاف نشو.

غَيْرَ أَنَّ الْحَوَادِثَ مُتَعَاقِبَةُ الْوُقُوعِ وَالنَّوَازِلَ خو دومره ده چې حوادث د زمانې او واقعات بلا ناغه واقع کيدونکی دی يَضِيقُ عَنْهَا نِطَاقُ الْمَوْضُوعِ چې په يوه موضوع کې د هغې راټيټکول (رايېرول) ګران دی وَاقْتِنَاصُ الشَّوَارِدِ بِالِاقْتِبَاسِ مِنَ الْمَوَارِدِ او د ځنګلی ځناورو په څير (نابلده مسائل دی) چې په درو (د دوو غرونو په مينځ کې لار) کې د هغې ښکار کول ګران دې. وَالِاعْتِبَارُ بِالْأَمْثَالِ مِنْ صَنْعَةِ الرِّجَالِ وَبِالْوُقُوفِ عَلَى الْمَآخِذِ يَعَضُّ عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ او په مثالونو سره دهغې وضاحت کول، او د جامو په غاښونو سره د نيولو قابل ماخذو باندې پوهه راوستل د سړو کار دې.

**تشريح:- الجواب من الاشكال المقدر**◉ ﴿غير ان الحوادث﴾ دا د اشکال ځواب دې .سوال دا دې.چې کله جلی او خفی واړه مسائل مستنبط شوی دی.نو بيا روستو راتلونکی حضرات د دلائلو په استنباط او د مسائلو وضع کاوه پسې ولې لګيدلی دی؟ او تاته د هدايه د تصنيف کاوه اړتيا ولې پيښ شو.په دې عبارت کې ئې ددې ځواب ورکړو.او د ځواب حاصل دا دې.چې واقعات او حادثات هره ورځ پيښيږی.او دا مسائل په يوه موضوع کې راګيرول هم ګران دی.نو ځکه ددې حوادثو او واقعاتو د واقع کيدو مناسب په هره زمانه کې مسائل وضع کولی شی.

**تشبيه المسائل الصعبة بصيد الحيوانات**◉ ﴿واقتناص الشوارد بالإقباس من الموارد﴾ اقتناص ښکار کول،او شوارد جمع د شاردة ده.ځنګلی ځناور.اقتباس اخذ کول، اخستل، او د مواردو نه اصول مراد دی.په دې عبارت کې ئې د ګرانومسائلو د استنباط تشبيه د ځنګلی ځناورو د ښکار سره ورکړې ده. ﴿والإعتبار بالأمثال من صنعة الرجال﴾ يعنی احکام په خپلو نظائرو باندې قياس کول د عظيم شخصياتو کار دې.يعنی دا کار ډير ګران دې. ﴿ يعض عليها بالنواجذ﴾ عض په غاښ چك لګول.او نواجذ جمع د ناجذة ده. په معنی د داړې.

**د کفايت المنتهی او هدايه د تاليف سبب**

وَقَدْ جَرَى عَلَى الْوَعْدِ فِي مَبْدَأِ بِدَايَةِ الْمُبْتَدِي اوحقيقت دا دی.چې د بداية المبتدی په مقدمه کې زما د اړخ نه دا وعده شوې وه .أَنْ أَشْرَحَهَا بِتَوْفِيقِ اللّٰهِ تَعَالَى شَرْحًا چې انشاء الله زه به ددې شرح ليکم أَرْسُمُهُ بِكِفَايَةِ الْمُنْتَهِي.چې دهغې نوم به کفاية المنتهی وی. فَشَرَعْتُ فِيهِ نوپه هغې مې پيل اوکړه وَالْوَعْدُ يَسُوغُ بَعْضَ الْمَسَاغِ.او په وعده کې وسعت او ګنجائش پيدا کيدلو .وَحِينَ أَكَادُ أَتَّكِئُ عَنْهُ اتِّكَاءَ الْفَرَاغِ اوپه کوم وخت کې چې فارغيدو

تـه نزدے شوم. تَبَيَّنْتُ فِيهِ نُبَذًا مِنَ الْإِطْنَابِ نو ما دا محسوسه کړه. چې په دے کې خبره ډیره اوږده شوې ده. وَخَشِيتُ او زما دا ویره شوه. أَنْ يُهْجَرَ لِأَجْلِهِ الْكِتَابُ چې هسے نه د اوږدوالی د وجه أصل کتاب بدایة المبتدی پاتې نشی.

**حل اللغة:** ﴿اطناب﴾ هغه کلام چې هغه د څه نکتے د وجه د مقصود نه زیاتی وی. او که په هغے کې څه فائده نه وی. نو هغه تطویل وی

**تشریح:- خلاصة کلام المصنف** ۞ علامه مرغینانی رحمه الله دحمد او صلاة نه روسته اوفرمائیل. چې الله تعالی اولنی مجتهدین د انبیاء علیهم السلام ګده نشین جوړ کړی وو. اوهدایت ئې ورتـه کړې وو. نو هغوی هرقسم مسائل مستنبط کړل. لیکن حادثات وخت په وخت پیښیږی. او یوه موضوع هغه نشی راګیرولې. او دا د عظیم شخصیاتو کار دی. چې ددے استنباط اوکړی. او د ،، بدایة المبتدی،، په مقدمه کې مې د کفایة المنتهی د لیکلو وعده کړې وه. نو د وعدے مطابق چې کله مې لیکل پیل کړل. او ختمیدو ته نزدے شوه. نو ما ته په کې اوږد والې او اطناب محسوس شو. او دا ویره پیدا شوه. چې هسے نه د طوالت د امله کم همته خلګ دا ترک نکړی.

فَصَرَفْتُ الْعِنَانَ وَالْعِنَايَةَ إِلَى شَرْحٍ آخَرَ نو ځکه د بلے شرحے لیکلو ته زما متوجه کیدل ضروری شو مَوْسُومٍ بِالْهِدَايَةِ. چې د هغے نوم هدایه دی أَجْمَعُ فِيهِ بِتَوْفِيقِ اللهِ تَعَالَى بَيْنَ عُيُونِ الرِّوَايَةِ وَمُتُونِ الدِّرَايَةِ په دے کې دالله په توفیق سره زه ښه روایات او مضبوط دلائل عقلیه جمع کوم تَارِكًا لِلزَّوَائِدِ فِي كُلِّ بَابٍ. او ددے په هرباب کې مې د زوائدو د پریښودلو اراده ده مُعْرِضًا عَنْ هَذَا النَّوْعِ مِنَ الْإِسْهَابِ او د اوږدو بیاناتو نه د بچ کیدو نیت مې کړې دی. مَعَ مَا أَنَّهُ يَشْتَمِلُ عَلَى أُصُولٍ. لیکن ددے باوجود به دا په داسې اصولو مشتمله وی. يَنْسَحِبُ عَلَيْهَا فُصُولٌ چې په هغے باندې به فروع متفرع کیدې شی.

**حل اللغة:** ﴿عیون الروایة﴾ ،،عین الشئ خیار الشئ،، ته وائی. او روایات په معنی د مرویات دی. دا د ،، اضافة الصفت الی الموصوف،، د قبیلے نه دی. یعنی خوښ مرویات ﴿متون الدرایة﴾ متون جمع دمتن ده. په معنی د مضبوط او مستحکم. د متون الدرایت نه مراد عقلی دلائل دی.

**تشریح:-** نوځکه مې د دویمې شرحے په لیکلو چې هغه به د لومړئی په مقابله کې مختصره وی. شروع اوکړله. او په هغے کې مې غوره روایات او مضبوط دلائل جمع کړل. او د اختصار باوجود په داسې اصولو باندې مشتمله ده. چې په هغے باندې ډیر فروع متفرع کیدې شی.

وَأَسْأَلُ اللهَ تَعَالَى او زما دالله تعالی نه درخواست دی. أَنْ يُوَفِّقَنِي لِإِتْمَامِهَا چې ماته ددے د پوره کیدو توفیق راکړی وَيَخْتِمَ لِي بِالسَّعَادَةِ بَعْدَ اخْتِتَامِهَا. او ددے د ختمولو نه روسته زما خاتمه بالخیر اوشی. حَتَّى أَنَّ مَنْ سَمَتْ هِمَّتُهُ إِلَى مَزِيدِ الْوُقُوفِ حاصل دا که د زیات علم حاصلو لپاره د چا همت اوچت وی يَرْغَبُ فِي الْأَطْوَلِ وَالْأَكْبَرِ. نو د هغه لپاره لوئې شرحے (کفایت) ته رغبت کول پکار دی. وَمَنْ أَعْجَلَهُ الْوَقْتُ عَنْهُ اوکه چا سره وخت او فرصت کم وی يَقْتَصِرُ عَلَى الْأَقْصَرِ وَالْأَصْغَرِ. نو هغه دے په وړه شرح (هدایه) باندې اکتفا اوکړی. وَلِلنَّاسِ فِيمَا يَعْشَقُونَ مَذَاهِبُ وَالْفَنُّ خَيْرٌ كُلُّهُ. د خلګو خوښه جلا جلا وی. او دا فن (دعلم فقه) سراسر خیر دی

**حل اللغة: لاتمامها بعد اختتامها:** دواړه ضمیرین د مفرد دی. او مرجع ئې هدایه ده. او په ځینې نسخو کې دا ضمیرین د تثنیه دی. په دے صورت کې مرجع دواړه شرحے دی. یعنی هدایه اوکفایه ﴿وللناس فیما یعشقون مذاهب﴾ دمذاهب نه مراد طرق مختلفه دی. ﴿والفن﴾ د فن نه مراد علم فقه ده. او د مجموعه ثانی نه مراد هدایه ده.

**تشریح:-** الله تعالی دے ددے د پوره کیدو سره زما خاتمه هم بالخیر کړی. نو چې څوك زیات واقفیت غواړی. هغه دے شرح اکبر یعنی کفایه اوګوری. او چا ته چې فرصت کم وی. نوهغه دے شرح اصغر یعنی په



هدایه اکتفا اوکړی

ثُمَّ سَأَلَنِي بَعْضُ إِخْوَانِي أَنْ أُمْلِيَ عَلَيْهِمُ الْمَجْمُوعَ الثَّانِيَ. بیا زما ځینې دوستانو د دے دویمې مجموعے (هدایه) د املاء کاوه درخواست اوکړلو فَافْتَتَحْتُهُ مُسْتَعِينًا بِاللهِ تَعَالَى فِي تَحْرِيرِ مَا أُقَاوِلُهُ. نوځکه زه په دے پیل کوم. او دکلام په لیکلو کې دالله تعالی نه کومك غواړم مُتَضَرِّعًا إِلَيْهِ فِي التَّيْسِيرِ لِمَا أُحَاوِلُهُ. او د مقصد د پوره کیدو لپاره عاجزانه التجاء کوم. إِنَّهُ الْمُيَسِّرُ لِكُلِّ عَسِيرٍ بیشکه هم هغه مشکل آسانونکې دی. وَهُوَ عَلَى مَا يَشَاءُ قَدِيرٌ اوچې څه غواړی هغه کوی. وَبِالْإِجَابَةِ جَدِيرٌ او د درخواستونو منظورول دهغه د شان سره لائق دی. وَحَسْبُنَا اللهُ زمونږ لپاره الله کافی دی وَنِعْمَ الْوَكِيلُ او هغه بهترین کارساز دی

**تشریح:-** بیا ځینې دوستانو اوغوښتل. چې دویمه شرح د دوی لپاره اولیکم. نو ما په عاجزئ سره دالله تعالی نه کومك اوغوښتلو. او پیل مے اوکړله. وحسبنا الله ونعم الوکیل

## کتاب الطهارات

ژباړه:- (دا) کتاب د پاکو( د احکامو په بیان کې ) دی.

**تشریح:- المباحث الثلاثة في الجملة** ۞ په دے جمله کې درے مباحث دی. ① دکتاب د لفظ سره متعلق ② ترکیب نحوی ③ د طهارت د لفظ سره متعلق، د نحوی ترکیب په اعتبار سره درے احتمالات دی.

**معنی الکتاب لغة وشرعاً** ۞ د دوهم بحث حاصل دا دی. چې د کتاب او کتابت لغوی معنی ده. د یو شی جمع کیدل، او د کتاب نوم کتاب ځکه کیخودې شوې دی. چې په دې کې حروف جمع کیږی. او کتاب د مکتوب په معنی کې هم استعمالیږی. لکه خلګ چې د مخلوق په معنی کې استعمالیږی. او په اصطلاح کې کتاب د مسائلو هغه مجموعه ته وائی. چې مستقلا معتبره وی. او په مختلفو انواعو مشتمله وی. یا په مختلفو انواعو مشتمله نه وی.

**ترکیب کتاب الطهارات** دا چې کتاب الطهارات خبردے د مبتدا محذوف چې "هـذا" دی. یعنی ﴿هـذا کتاب الطهارات﴾ ② دوهم دا چې دا مبتدا وی. او خبر ئې محذوف وی. یعنی ﴿کتاب الطهارات هـذا﴾ ③ دریم دا چې دا مفعول وی د فعل محذوف یعنی ﴿خذ کتاب الطهارات یا إقرأ کتاب الطهارات﴾

**معنی الطهارة لغة وشرعا** ۞ د دریم بحث حاصل دا دی. چې په لغت کې طهارت بضم الطاء دهغه اوبو نوم دی. چې په هغے سره پاکی حاصلولے شی. او بکسر الطاء د آله نظافت نوم دی. او بفتح الطاء مصدر دی. دنظافت په معنی، او په شریعت کې طهارت د حدث (حکمي مرداري )یا خبث (حقیقي مرداري ) نه پاکیدو ته وائی. او ځینې عالمانو فرمائیلی دی. چې طهارت د درے اندامونووینځلو او په سر د مسح کاوه نوم دی.

**سبب وجوب الطهارة وحکمها** ۞ د وجوب طهارت سبب حدث( حکمي مرداري )یا خبث (حقیقي مرداري ) موجودګی ده. او دطهارت حکم دهغه شی اباحت دی . چې بغیر د طهارت نه حلال نه وی.

**وجه تقدیم الطهارة** ۞ پاتې شوه دا خبره چې کتاب الطهارات ولے مقدم کړې شو؟ نو ددے وجه دا ده. چې مشروعات څلور دی. ① خالص حقوق الله ② خالص حقوق العباد ③ چې دواړه جمع شی. مګر حق الله غالب وی. ④ چې دواړه جمع شی. مګر حق العبد غالب وی. علامه مرغینانی په ترتیب کې حقوق الله (عبادات) د دې د عظمت د وجه مقدم کړلو. بیا په عباداتو کې لمونځ وړاندې بیان شو. ځکه چې لمونځ دایمان څخه روسته په اسلامی ارکانوکې د ټولو څخه مهم دی. الله تعالی فرمایي ﴿فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ اونبی علیه السلام فرمائیلی دی. ﴿الصلاة عماد الدین من أقامها فقد أقام الدین ومن هدمها فقد هدم الـدین﴾ دغه ډول په ارکان اسلام کې د توحید څخه روسته د ټولو څخه وړاندې هم لمونځ فرض شوې دی. او طهارت چونکه د لمونځ شرط دی. ارشاد دی. ﴿مفتاح الصلاة الطهور﴾ او دا قانون دی. چې شرط د یو شی مقدم وی په هغه شی باندې نوځکه طهارت په لمونځ باندې مقدم کړې شو.

**وجه ايراد جمع الطهارة** ◉ سوال به دا كيږي.چې صاحب دهدايه طهارات د جمع صيغه ولې ذكر كړله. حالانكه طهارت مصدر دې.او مصدر جمع او تثنيه نه راځي.ځواب دا دې.كه دمصادرو په اخر كې تاء تانيث وي.نو دهغې تثنيه او جمع راوړل ټيك دى.او دلته ئې طهارت دجمع په صيغه ذكر كړلو.نو د طهارت مختلفو انواعو ته ئې اشاره اوكړله.ځكه چې رفع د نجاست هم طهارت دې.او رفع د خبث هم طهارت دې.حالانكه دواړه مختلفې نوعې دى.

## د اودس د فرضيت دليل اواصل

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ اے دايمان خاوندانو!كله چې تاسو د لمونځ لپاره د اودريدو (اراده) اوكړئ . نو خپل مخونه اووينځئ

**تشريح:- وجه ابتداء كتاب الطهارة بالاية** ◉ علامه مرغيناني رحمه الله د اودس پيل په آيت باندې كړې ده.حالانكه قاعده دا ده.چې دعوو كې دعوى مقدم وي.او دهغې دليل روستو ذكر كولې شى.ليكن دلته كې ئې دالله تعالى كلام تبركاً او تيمناً مقدم كړې دې.اګرچې د مر امله قاعدے نه خلاف كار دې.د اودس د فرضيت پوره عبارت دا دې.﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ يعنى مسلمانانو كله چې تاسو لمونځ ته د اودريدو اراده اوكړئ. نو اووينځئ خپل مخونه اوخپل لاسونه تر څنګلو پورې او مسح كوئ په خپلوسرو او (اووينځئ) خپلې پښې تر ګيټو پورې.

**فرضية الطهارة للصلاة قبل نزول هذه الاية** ◉ دلته يو خبره دا ده.چې دا آيت په اجماع سره مدنى دې.ځكه چې په بخارى كې دى.چې د حضرت عائشې رضي الله عنها دهار وركيدو واقعه بيانولو نه روسته فرمائى: فنزلت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ إلى قوله لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ او دا واقعه په اتفاق سره دهجرت نه څه موده روسته پيښه شوې وه.نوثابته شوه.چې آيت مدنى دې.او دا خبره هم مسلمه ده.چې د لمونځ د فرضيت په وخت كې هم په مكه كې اودس فرض شوې وو.حضرت ابن عبدالبر رحمه الله فرمائيلي دى.چې واړه اهل مغازيو ته دا خبره معلومه ده.چې نبى عليه السلام د لمونځ فرض كيدو نه روسته هيڅ يولمونځ هم بغير د طهارت نه ندے كړې.او ددے نه انكار جاهل يا عنادى سړې كولې شي.

**ما لحكمة في نزول اية الوضوء؟** اوس پاتې شوه دا خبره چې كله په اودس باندې د وړاندې نه عمل موجود وو.نو د آيت په نازلولو كې څه حكمت دے؟ ① حضرت مولانا عبدالحى رحمه الله په سعايه كې ليكلى دى.چې ددے حكمت دا دې.چې داودس فرضيت متلو بالقرآن شى. ② اودا هم احتمال شته.چې اول د آيت چې په هغې كې د اودس ذكر دې.په مكه كې نازل شوى وى.د فرضيت د لمانځه سره نازل شوى وى.او پاته آيت چې په هغې كې د تيمم ذكر دې.په مدينه منوره كې نازل شوې وى.(كذا في الاتقان)

**ما يقتضيه ظاهر الاية؟** ◉ دوهم خبره دا ده چې د آيت ظاهر ددے خبرے تقاضا كوى.چې اودس دې په هر هغه كس باندې فرض وى.چې لمانځه ته د اودريدو اراده لرى.كه بې اودسه وى اوكه په اودس كې وى.د اصحاب ظاهر هم دا مذهب دې. ليكن د جمهور عالمانو مذهب ددے نه خلاف دې.جمهور عالمان فرمائى.چې آيت په تقدير د عبارت سره داسې دې.﴿إذا قمتم إلى الصلاة وأنتم محدثون﴾ ② اوداهم دليل دې.چې بې اودسى د اودس د وجوب لپاره شرط دې.او ددے ثبوت په دلالة النص سره دې.په دې طريقه چې الله تعالى په آيت ﴿وَإِنْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ كې تيمم د بې اودسئ سره مشروط كړې دې.نومعلومه شوه. چې د تيمم د وجوب لپاره حدث شرط دې.او تيمم د اودس بدل او نائب دې.اوقاعده دا ده.چې كوم شى په بدل كې نص وى . هغه به په اصل كې هم نص وى.نوثابته شوه.چې بې اودسى د وجوب د اودس لپاره شرط دې.

## په اودس كې دمخ وينځلو فرضيت



﴿فَفَرْضُ الطَّهَارَةِ﴾ نو داودس فرض ﴿غَسْلُ الْأَعْضَاءِ الثَّلَاثَةِ﴾ د درې اندامونو پريمنځل ﴿وَمَسْحُ الرَّأْسِ﴾ او د سر مسح كول دى ﴿بِهَذَا النَّصِّ﴾ (اودا) په دې نص سره (ثابت) دى

**تشريح:- معانى الفرض لغة** ◉ فرض په ډيرو معانيو كې مستعمل دې.(۱) قطع، وڼيلې شي. ﴿فرض الخياط الثوب﴾ درزى كالى كټ كړه. ② بيان، الله تعالى فرمائيلي دى.﴿قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ يعنى بين لكم كفارة ايمانكم﴾ ③ تقدير، الله تعالى فرمائيلي دې. ﴿فنصف ما فرضتم يعنى قدرتم﴾ ④ حد، الله تعالى فرمائيلي دى ⑤ تفضيل،الله تعالى فرمائيلي دى. ﴿سُورَةٌ أَنزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا يعنى فضلناها﴾

**تعريف الفرض وحكمه** ◉ او زموږ په نزد فرض هغه حكم ته وائى.چې په داسې يقينى دليل سره ثابت شوې وى.چې په هغې كې څه شك نه وى.او ددے حكم دا دې.چې كونكې ئې مستحق د ثواب او پرېښولونكې (پريخودونكې) ئې مستحق د عذاب دې.(او منكر ئې كافر اومرتد دے)

**تعريف الواجب وحكمه** ◉ او واجب هغه حكم دې. چې دهغې لزوم په دليل ظنى سره ثابت وى.او ادا كونكې ئې د فرض ادا كونكى نه د كم ثواب مستحق دې. او پريخودونكې ئې د فرضو پريخودونكى نه د كم عذاب مستحق دې.(اوددے منكر كافر اومرتد نه دې.)

**الاقسام الاربعة للدلالة** ◉ ياد ساتئ چې د دلالت څلور قسمه دى.(۱) قطعى الثبوت اوقطعى الدلالت، لكه قرآنى آياتونه او احاديث متواتره صريحى چې د تاويل احتمال په كې نه وى.② قطعى الثبوت ظنى الدلالت، لكه آياتونه او احاديث موولة ③ ظنى الثبوت قطعى الدلالت ، لكه اخبار احاد صريحى ④ ظنى الثبوت ظنى الدلالت، لكه اخبار احاد چې په هغې كې د ډير معانيو احتمال وى.اول يقين پيدا كوى.او دوهم ظن پيدا كوى. دريم مفيد د وجوب او مكروه تحريمى دې.او څلورم مفيد د سنت او استحباب دې. (حاشيه شرح نقايه)

﴿وَالْغَسْلُ هُوَ الْإِسَالَةُ وَالْمَسْحُ هُوَ الْإِصَابَةُ﴾ او غسل د اوبو بيولو او مسح د اوبو رسولو نوم دې

**حل اللغة** ① اسالة: بيول ② اصابه: رسول

**تشريح:- الوجوه الثلاثة لتقديم الوضوء** ◉ صاحب دهدايه د اودس احكام مقدم كړل.(۱) دكثرت حاجت د امله ② دويمه وجه دا ده.چې د اودس محل د غسل د محل جزء دې.او جزء مقدم وى په كل باندې ③ دريمه وجه دا ده.چې الله تعالى هم اودس په غسل باندې مقدم كړې دې.اول ئې دا فرمائيلي دى ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ او د دې نه روسته ئې فرمائيلي دى.﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾

**الوجوه الثلاثة في حركات الغسل** ◉ غُسل" په پيښ سره هغه اوبه چې غسل پرے كولې شي. او د واړه بدن د وينځلو نوم هم غسل دې.اوغِسل "په زير سره هغه شى چې وينځل پرے كولې شى.يعنى خطمى وغيره او غَسل، په زور سره مصدر دې.يعنى پريمنځل

**الرد على مالك رحمه الله** ◉ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چې په اودس كې څلور فرض دى د درے اندامونو پريمنځل او دسر مسح كول او د درے واړو د فرضيت ثبوت ئې په مذكوره آيت سره كړې دې.دغه ډول فرمايې چې د غسل معنى ده.اوبه بيول. په دې كې په امام مالك رحمه الله باندې رد مقصود دې.ځكه چې د هغوى په نيز اوبه بيول كافى نه دى.بلكه دلك يعنى مګل هم شرط دې.اود مسح معنى بغير د اوبو څڅيدلو نه اوبه رسول دى.

﴿وَحَدُّ الْوَجْهِ﴾ او د مخ حد ﴿مِنْ قِصَاصِ الشَّعْرِ إِلَى أَسْفَلِ الذَّقَنِ﴾ (د سر) د ويختو راټوكيدلو د آخرى حصې نه تر د زنے لاندې پورې ﴿وَإِلَى شَحْمَتَيِ الْأُذُنِ﴾ او د دواړو غوږونو د دواړو پوسكو پورې ﴿لِأَنَّ الْمُوَاجَهَةَ تَقَعُ بِهَذِهِ الْجُمْلَةِ﴾ ځكه چې مواجهت (مخكې كيدل) په دې مجموعه باندې راځى ﴿وَهُوَ مُشْتَقٌّ مِنْهَا﴾ او "وجه" هم د دې مواجهت نه ماخوذ دې.

**حل اللغة:** ① **قصاص** د سر د ويختو د راوتلو آخرى حد ② **اسفل** لاندې ③ **ذقن**: زنه ⑤ **شحمتي**: دَ شحمة تثنيه دَغوږ نرمنى ⑥ **مواجهه** مخكې كيدل

**تشريح:- حد الوجه طولاً وعرضاً**◉ علامه مرغينانى رحمه الله په اوږدولى او پلنوالى د مخ حد بندى داسې كړې ده.چې د سر د ويختو راټوكيدو د ځائې نه واخله تر د زنې لاندې حصې پورې او د غوږ د پوسكۍ نه واخله تر دبل غوږ پوسكۍ پورې د مخ پرېمنځل فرض دى.

**دليله**◉ دليل دا دې.چې وجه د مواجهت نه مشتق ده.او مواجهت(مخكې كيدل په دې ټوله برخه باندې كيږى.نو ځكه د دې ټولې حصې وينځل فرض دى.

### د څنګلو او ګيټو د وينځلو په فرضيت كې اختلاف

| |
|---|
| **وَالْمِرْفَقَانِ** دواړه څنګلې **وَالْكَعْبَانِ يَدْخُلَانِ فِي الْغَسْلِ** او دواړه ګيټې په وينځلو كې داخل دى **عِنْدَنَا**[1] زموږ په نزد |

**حل اللغة:** ① **مرفقان**: دَمرفق تثنيه زنګون ② **كعبان**: دكعب تثنيه ګيټې

**تشريح:- تحقيق المرفق والكعب**◉ دميم په فتحه او فاء په فتحې سره او ددې په عكس هم جائز دې.يعنى دميم فتحه او فاء كسره،د مټ او مروند جوړ ته مرفق وائى .كعب دامام محمد په نزد د قدم په ظاهر باندې د تسمې تړلو ځائې ته وائى.ليكن دا صحيح نه ده. صحيح دا ده.چې د لينګۍ نه كښته د راپورته هډوكى نوم كعب دې.ددې نه كاعب مشتق دې.چې جمع ئې كواعب راځى. كواعب هغه ځوانې نجونې (جينكۍ) دى.چې سينې ئې راوتې وى.

**المذهبان في دخول المرفقين والكعبين في الغسل**◉ په دې اړه كې اختلاف دې.چې مرفقين په غسل يدين او كعبين په غسل رجلين كې داخل دى.كه خارج دى.يعنى د لاسونو په خير د څنګلو او دپښو په خير د ګيټو پرېمنځل هم شرط دې كه نه؟ ①دائمه ثلاثه يعنى امام صاحب اود صاحبينو رحمهم الله مذهب دا دې.چې دلاسونو سره د څنګلو او د پښو سره د ګيټو پرېمنځل هم فرض دى.هم دا قول دامام شافعى رحمه الله او امام احمد رحمه الله هم دې.اوهم دا د امام مالك رحمه الله نه هم يو روايت دې

| |
|---|
| **خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او خلاف دې د زفر رحمه الله **هُوَ يَقُوْلُ** هغوى فرمايي **الْغَايَةُ لَا تَدْخُلُ تَحْتَ الْمُغَيَّا** چې غايه په مغيا كې داخله نه ده **كَاللَّيْلِ فِي بَابِ الصَّوْمِ** لكه شپه د روژې په باب كې |

**حل اللغة:** ①**غايه** موده ② **مغيا**: دَ كوم دَ پاره چې غايت مقرر كړې شوې وى

**تشريح:-** اوامام زفر رحمه الله فرمائى.چې مرفقين او كعبين په وينځلو كې داخل نه دى.يعنى د څنګلو او ګيټو پرېمنځل فرض نه دى.دا د امام مالك رحمه الله نه يو روايت دې

**دليل زفر رحمه الله** ◉د امام زفر رحمه الله دليل دا دې.چې په آيت كې مرافق او كعبين غايت دې.او غايت مطلقاً د مغيا په حكم كې داخل نه وى. لكه په ﴿اتموا الصيام إلى الليل﴾ كې چې شپه د روژې په حكم كې داخله نه ده.دغه ډول به مرافق د يدينو او كعبين او رجلينو په حكم كې داخل نه وى.

| |
|---|
| **وَلَنَا** او زموږ دليل دا دې **أَنَّ هٰذِهِ الْغَايَةَ لِإِسْقَاطِ مَا وَرَاءَهَا** چې دا غايت خو د ماوراء د اسقاط لپاره ده **إِذْ لَوْلَاهَا** ځكه كه دا غايت نه وه **لَاسْتَوْعَبَتِ الْوَظِيْفَةُ الْكُلَّ** نو پرېمنځل به واړه اندام ته ګډ وو |

[1] القول الراجح هو قول علمائنا الثلاثة من دخول المرفقين والكعبين فى غسل اليدين والرجلين وقال زفرانما يدخلان فى المفروض كذا فى فتح القدير(١٣\١) وردالمحتار(٧٣\١) والهندية (٤\١) نقلا عن القول الراجح (١\١)_



**حل اللغة:** ①**لاستوعبت**: دَاستوعب،استيعاباً: راګيرول ②**وظيفه**: عمل معين، روزينه

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** رحمهم الله ◉زموږ دليل دا دې.چې د امام زفر رحمه الله دا وينا چې غايت دمغيا په حكم كې مطلقاً داخل نه وى.دا نه منو.بلكه د غايت دوې (دوه) قسمونه دى.يو دا چې غايت د ما قبل يعنى مغيا د جنس ځنې وى.يعنى كه غايت لرې كړې شى.نو صدر دكلام يعنى مغيا به غايت او ماوراء غايت ټولو ته ګډ وى. دوهم داچې غايت دماقبل يعنى مغيا دجنس ځنې نه وى.يعنى د غايت په لرې كاوه سره به صدر دكلام يعنى مغيا غايت او ما وراء غايت ته نه شامليږى.اوكه د ډول اول ځنې وى.نوغايت په مغيا كې داخليږى.او كه دقسم ثانى ځنې وى.نو غايت د مغيا په حكم كې نه داخليږى

| |
|---|
| **وَفِي بَابِ الصَّوْمِ لِمَدِّ الْحُكْمِ إِلَيْهَا** او په باب الصوم كې شپې پورې د حكم رسولو لپاره ده **إِذِ الْإِسْمُ يُطْلَقُ عَلَى الْإِمْسَاكِ سَاعَةً** ځكه چې د صوم د لفظ اطلاق په لږ ساعت امساك باندې هم كيږى **وَالْكَعْبُ هُوَ الْعَظْمُ النَّاتِئُ** او كعب راپورته هډوكې دې **هُوَ الصَّحِيْحُ** هم دا صحيح ده **وَمِنْهُ الْكَاعِبُ** او هم ددې لفظ نه كاعب (مشتق) دې. |

**حل اللغة:** ①**امساك**: بنديدل ⑧**عظم**: هډوكې

**تشريح:- الجواب عن دليل زفر** رحمه الله ◉نو ليل د روژې دجنس ځنې نه دې. ځكه به ليل د روژې په حكم كې داخل نه وى.او مرفقين او يدين او كعبين د رجلينو دجنس ځنې دى.نو ځكه به دا دواړه غايتين دخپلې مغيا په حكم كې داخل وى.يعنى څنګلې د لاسونو په وينځلو كې او ګيټې د پښو په وينځلو كې داخل وى.

**توضيح مرام صاحب الهداية** رحمه الله ◉ د صاحب هدايه د پيش كړى دليل حاصل دا دې.چې غايت كله ددې لپاره ذكر كولې شى.چې حكم راښكى.او مغيا ته ئې اورسوى . اوكله د ما وراء غايت داسقاط لپاره ذكركولې شى.حاصل دا چې دغايت دوې (دوه) قسمونه دى.غايت اثبات او غايت اسقاط او په دې دواړو كې ما به الامتياز دا دې.كه صدر كلام يعنى غايت په مغيا كې ګډ وى.نودا به غايت اسقاط وى. اوكه ګډ نه وى.نو دا به غايت اثبات وى.اوغايت اثبات د مغيا په حكم كې داخل نه وى.لكه په ﴿اتموا الصيام إلى الليل﴾ كې ليل دصوم په حكم كې داخل نه ده.اوبه غايت اسقاط كې ما وراء غايت ساقط كولې شى.نوغايت به د مغيا په حكم كې داخل وى.لكه په ﴿ايديكم الى المرافق﴾ كې غايت يعنى مرافق ذكر شوى دى.د ما وراء غايت د ويستلو لپاره نو د وينځلو حكم به په مرفق كې پاته وى

### د سر د مسح په مقدار كې څلور مذاهب

| |
|---|
| **قَالَ** فرمايي **وَالْمَفْرُوْضُ فِي مَسْحِ الرَّأْسِ مِقْدَارُ النَّاصِيَةِ** او په مسح د سر كې فرض مقدار دناصيه دې **وَهُوَ رُبُعُ الرَّأْسِ** او دا څلورمه برخه د سر ده. |

**حل اللغة:** ① **ناصبه**:تندې

**تشريح:-** مسح وائى لوند لاس راښكلوته كه د اوبو لوندوالې د لوښى وى او كه د مغسول اندام د وينځلو نه روسته پاتې شوې وى.د سر مسح كول په اتفاق سره فرض ده.ځكه چې ددې ثبوت په نص صريحى سره دې.خو په فرض مقدار كې اختلاف دې.① داحنافو عالمانوپه نزد د سر د څلورمې حصې مسح كول فرض ده.كه د سر د مخكنۍ حصې وى او كه د روستنۍ او كه د ښى اړخ څلورمې حصې وى اوكه د چپه طرف

| |
|---|
| **لِمَا رَوَى الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ** رضي الله عنه دهغه حديث د امله چې مغيره بن شعبه رضي الله عنه ئې روايت كړې دې **أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ** |

أَتَى سُبَاطَةَ قَوْمٍ چې رسول ﷺ د يو قوم ډيران ته تشريف يوړلو فَبَالَ نونبى عليه السلام متيازې اوكړلې وَتَوَضَّأَ اواودس ني اوكړلو وَمَسَحَ عَلَى نَاصِيَتِهِ وَخُفَّيْهِ (١) اومسح ني اوكړله.په خپله ناصيه اودواړو موزو باندې وَالْكِتَابُ مُجْمَلٌ او د قرآن پاك آيت مجمل دې فَالْتَحَقَ بَيَانًا بِهِ نودا حديث دهغې بيان شو اوهغې پورې لاحق شو،

**حل اللغة*** ① **سباطه**: ګند خځله ② **خفيه**: دخف تثنيه موزه ③ **فالتحق**: التحاقاً: ملاويدل

**تشريح:- استدلال الاحناف**◉احناف عالمان فرمائي.چې د مسح د مقدار په سلسله كې آيت .﴿ وَامْسَحُوا بِرُؤُوسِكُمْ ﴾ مجمل دې. او مجمل دبيان محتاج وي.او دلته د حضرت مغيره رضی الله عنه حديث دې.مغيره بن شعبه رضی الله عنه فرمائي«أن النبي ﷺ أتى سباطة قوم فبال وتوضا ومسح على ناصيته وخفيه»صاحب دهدايه چې كوم حديث ذكر كړې دې.نو دا حديث دحضرت مغيره رضی الله عنه او حضرت حذيفه رضی الله عنه د حديث نه مركب دې.(١) د مغيره رضی الله عنه حديث كوم چې امام مسلم رحمه الله نقل كړې دې.دهغې الفاظ دا دي.« أن النبي ﷺ توضا فمسح بناصيته وعلى العمامة وعلى خفيه» ② او د حديث د حذيفه رضی الله عنه چې شيخينو ني روايت كړې دې.د هغې الفاظ دا دي.« أتى النبي صلى الله عليه وسلم سباطة قوم فبال قائماً ثم دعا بماء فجئته بماء فتوضا» ددې احاديثو لنډيز دا ده.چې نبي عليه السلام د متيازو كولونه روسته اودس اوكړلو.او په مقدار د ناصيه باندې ني مسح اوكړله.اومقدار د ناصيه او څلورمه برخه يوخبره ده.نوځكه احناف عالمان رحمهم الله په دې آيت استدلال كوي. او فرمايي .چې دسر څلورمه برخه مسح فرض ده.

**تقديرالناصية بثلاث اصابع ودليله**◉ داحنافو ځينې عالمانو د ناصيه د مقدار اندازه د دريو ګوتو سره كړې ده. اودليل ني دا دې. چې مسح په لاس باندې كيږي.او په لاس كې اصل ګوتې دي.او درې ګوتې اكثردي.اودا قاعده ده.چې «للاكثر حكم الكل» د دې امله ني درې ګوتې قائم مقام د كل اوګرځولې.او حكم ني وركړلو.كه د درې ګوتو په مقدار باندې ني مسح اوكړه.نو شرعاً به كافي وي.

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ او هم دا حديث دامام شافعي رحمه الله خلاف حجت دې فِي التَّقْدِيرِ بِثَلَاثِ شَعَرَاتٍ د درې ويختو په اندازه لګولو كې

**تشريح:-** چونكه امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د مطلق سر مسح فرض ده.نو دهغوى په نزد كه د درې ويختو يا په يو روايت كې ني د يو ويخته مسح اوكړه.نوهم فرض ادا شو

**استدلال الشافعي رحمه الله** ◉اوامام شافعي رحمه الله فرمائي.چې آيت د مسح د مقدار په اړه كې مطلق دې.نو د «المطلق يجرى على إطلاقه» قاعدې مطابق به د مطلق سر مسح فرض وي.نود امام شافعي رحمه الله په نزد د سر د معمولي حصې مسحې سره فرض ادا كيږي.او په معمولي كې يو ويخته هم معتبر دې.يا د صاحب هدايه رحمه الله د قول مطابق درې ويخته معتبر دي.

د احنافو رحمهم الله مستدل حديث د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت دى. او د دوى خلاف ځكه حجت دې.كه چرته د څلورمې حصې نه په كمه باندې مسح جائز وه.نو يوځل خو به د بيان جواز لپاره په دې باندې ضرور عمل شوې وو.حالانكه د څلورمې حصې نه په كمه باندې مسح د نبي عليه السلام نه ثابته نه ده.

وَعَلَى مَالِكٍ رحمه الله او په امام مالك رحمه الله خلاف حجت دې فِي اشْتِرَاطِ الِاسْتِيعَابِ داستيعاب شرط لګولو كې وَفِي

(١) قال الزيلعي رحمه الله هذا حديث مركب من حديثين جعلهما المصنف حديثا واحدا فحديث المسح على الناصية والخفين اخرجه مسلم (اى فى الطهارة رقم ٨٣) عن عروة بن المغيرة عن ابيه المغيرة رضی الله عنه بن شعبة :ان النبى ﷺ توضا ومسح بناصيته وعلى العمامة وعلى الخفين .....وحديث السباطة رواه ابن ماجه (اى فى الطهارة باب ١٣) وفيه عن المغيرة بن شعبة رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ اتى سباطة قوم فبال قائما (نصب:١١/٤٠)_ ٤٠)_



بَعْضِ الرِّوَايَاتِ قَدَّرَ بَعْضُ أَصْحَابِنَا بِثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ او په ځينې رواياتو كې د ناصيه مقدار په تقدير كې زموږ ځينې ملګرو د لاس درې ګوتوپورې لګولې دې لِأَنَّهَا أَكْثَرُ ځكه چې درې ګوتې زياتې دى مَا هُوَ الْأَصْلُ فِي آلَةِ الْمَسْحِ.دهغه شى چې په آله د مسح كې اصل دې

**تشريح:-** چونكه امام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائيلي دي.چې د واړه سر مسح فرض ده.

**استدلال مالک**◉ دليل د الله تعالى دا قول دې.﴿ وَامْسَحُوا بِرُؤُوسِكُمْ ﴾ دې.طريقه د استدلال دا ده چې (باء) زائده ده.يعني﴿وَامْسَحُوا رُؤُوسَكُمْ ﴾ اصل عبارت داسې دې. يعنى دخپلو سرونو مسح اوكړئ.او بنكاره ده.چې د ،،راس،، (سر) اطلاق په واړه سر باندې كيږي.نه چې په ځينې . نومعلومه شوه. چې دواړه سر مسح فرض ده.صاحب د شرح نقايه رحمه الله ليكلي دي.چې امام مالك رحمه الله په احتياط باندې عمل كړې دې.

**ترجيح مذهب الاحناف**◉ د احنافو رحمهم الله مستدل حديث د امام مالك خلاف هم حجت دې ځكه كه چرته د واړه سر مسح فرض وه.نو موجد شريعت صلى الله عليه وسلم به د سر د څلورمې حصې په مسح ولې اكتفا كوله.

## په اودس كې د دواړو لاسونو وينځلو مسنونيت

قَالَ فرمايي وَسُنَنُ الطَّهَارَةِ چې داودس سنت غَسْلُ الْيَدَيْنِ دواړه لاسونه وينځل قَبْلَ إِدْخَالِهِمَا الْإِنَاءَ د دې دواړو په لوښي كې د داخلولو نه وړاندې إِذَا اسْتَيْقَظَ الْمُتَوَضِّئُ مِنْ نَوْمِهِ چې كله متوضى دخپل خوب نه رابيدار شى

**حل اللغة*** ① **استيقظ**: استيقاظاً : بيداريدل

**تشريح:- تعريف السنة وحكمها**◉ سنن ، د سنت جمع ده.سنت په دين كې داسې رائجې طريقې ته وائي.چې هغه نه فرض وي اونه واجب.او دهغې ادا كونكې مستحق د ثواب او نه ادا كونكې مستحق د ملامتيا او عذاب وي.علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلي دى.سنت هغه دې.چې نبي عليه السلام كله كله د پريخودو سره په هغې هميشوبلې كړې وي.

**وجه جمع صيغة السنة**◉پاته شوه دا خبره چې علامه مرغيناني فرض په صيغه د واحد او سنت په صيغه د جمع ولې ذكر كړل.نوددې ځواب دا دې.چې "فرض" په اصل كې مصدر دې.او مصادر د تثنيې اوجمعې نه مستثنى وي.او ددې په خلاف سنت مصدر نه دى.نو ځكه ئې دا په صيغه دجمعې سره راوړلو.

**طرق غسل اليدين للمستيقظ**◉په هر حال په اودس كې د ټولو نه ړومبې سنت دا دې.چې كله متوضى دخوب نه رابيدار شى.نو هغه دې دواړه لاسونو په لوښي كې د داخلولونه وړاندې درې ځله اووينځي .اود وينځلو طريقه دا ده.① كه اوبه ني په وړكى لوښي كې ايخې وى.نوبه چپه لاس دې راپورته كړي.او په ښي لاس دې واچوى.اوبيا دې په ښي لاس سره په چپه باندې اوبه واچوى. ② اوكه لوښې دومره غټ وو.چې د هغې پورته كول ممكن نه وو.نو وړكې لوښې دې واخلى.او په هغې دې ترې اوبه راوباسى.او بيا دې په خپل چپه لاس سره په ښي لاس اوبه واچوى.او په ښي لاس سره دې په چپه لاس اوبه واچوى.③ اوكه وړوكې لوښې نه وى.نود چپه لاس ګوتې دې جوختې كړي.او د غټ لوښي نه دې اوبه راواخلى.په ښي لاس دې واچوى.تلې به په اوبو كې نه داخلوى.او بيا دې په ښي لاس سره اوبه راواخلى.او چپه لاس دې اووينځي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم قول دې إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ كله چې په تاسو كې څوك دخپل خوب نه رابيدار شى فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ نوخپل لاس دې په لوښي كې نه داخلوى حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا ترڅو چې ني هغه درې ځله وينځلې نه وى فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي ځكه چې پته ورته نه لګى أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ (١) د ده لاس په كوم ځائې كې پاتې شوې دې

١) من حديث ابى هريرة رضی الله عنه اخرجه البخارى فى الوضوء باب ١٦ ومسلم فى الطهارة رقم ٨٧)_

**حل اللغة:** ① **فلايغمسن**: مه داخلوئی

**تشريح:- دليله النقلى:** د حضرت ابوهريره ﷺ حديث دی. كوم چې شيخينو روايت كړی دی. «إذا إستيقظ أحدكم من منامه فلايغمسن يده في الإناء حتى يغسلها فإنه لايدرى أين باتت يده.» او د مسلم الفاظ دا دی. «حتى يغسلها ثلاثا.» او په خينې رواياتو كې دی. «فلا يغمسن.» په نون تاكيد سره دی. حاصل دا دی چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی. كله چې په تاسو كې څوك د خوب نه رابيدار شی. نو خپل لاس دې په لوښی كې د غوپه كاوه نه وړاندې درې خله اووينځی. ځكه چې ده ته پته نه لګی. چې دده لاس په كومه برخه پاتې شوی دی.

**اطلاق غسل اليدين في ا لوضوء:** په مسبوط كې دی. چې اودس نه وړاندې د دواړو لاسونو پرېمنځل مطلقاً سنت دی. كه دخوب نه راپاسيدلے وی او كه نه وی. ځكه چې د لاس وينځلو علت په بيدار سړی كې هم موجود دی. يعنی كيدې شی. چې هغه په خپل لاس سره د خپل بدن رګونه مس كړی وی. حاصل دا دی. چې د لاس وينځلو علت ګمان د نجاست دی. او ګمان د نجاست په دواړو صورتونو كې دی. كه د خوب نه رابيدار شوی وی. او كه د وړاندې نه ويخ وی. اودا ويځل دهغه وخته پورې سنت دی. چې نجاست ښكاره نه وی. ګنی نجاست لرې كول به فرض وی.

**وَلِأَنَّ الْيَدَآلَةُ التَّطْهِيرِ** او ځكه چې لاس آله د تطهير دی **فَتُسَنُّ الْبُدَاءَةُ بِتَنْظِيفِهَا** نو په خپله ددے پاكول مسنون دی **وَهٰذَاالْغَسْلُ إِلَى الرُّسْغِ** او دا پرېمنځل به د منګلو پورې وی **لِوُقُوعِ الْكِفَايَةِ بِهِ فِي التَّنْظِيفِ** ځكه چې هم په دې سره دپاكئ په حاصلولو كې كفايت كولی شی.

**حل اللغة:** ① **بدايه**: پيل كول ② **تنظيف**: صفاكول ③ **رسغ**: اورسيدو

**تشريح:- دليله العقلى:** او دوهم دليل دا دی. چې لاس د پاكولو آله ده. نو اول به ددے پاكول مسنون وی. او پرېمنځل د مړوندونو پورې مسنون دی. ځكه د پاكئ په حاصلولو كې دومره مقدار كافی كيږی. او "رسغ" د راء په پيښ اوسين په سكون سره دی.

**په اودس كې د بسم الله مسنونيت**

**قَالَ** فرمايي **وَتَسْمِيَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى فِي ابْتِدَاءِ الْوُضُوءِ** او دالله تعالى نوم اخستل په اول د اودس كې

**تشريح:- صيغ التسمية:** صاحب دقدوری ﷫ فرمائيلی دی. چې د دواړو لاسونو تر مړوندونو پورې پرېمنځل خوپه اودس باندې وړاندې دی. خو چې كله اودس پيل كوی. ① نو د الله په نوم دې پيل كوی. او د تسميه ادنی درجه دا ده. چې بسم الله اووائی. اوشروع اوكړی. او اعلى درجه ئې دا ده. چې بسم الله الرحمن الرحيم اووائی. ② او علامه ابن الهمام ﷫ فرمائيلی دی. چې امام طحاوی ﷫ فرمائيلی دی. چې «بسم الله العظيم والحمدلله على دين الإسلام» دې وائی. هم دا د سلفو نه منقول ده. او بعضو فرمائيلی دی. چې دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه مرفوعا نقل دی.

**لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی **لَاوُضُوءَ** چې دهغه سړی اودس نه كيږی **لِمَنْ لَمْ يُسَمِّ اللّٰهَ** (١) چا چې بسم الله اونه وئيله **وَالْمُرَادُ بِهٖ نَفْيُ الْفَضِيلَةِ** او ددے نه مراد دفضيلت نفی ده

**تشريح:- المذهبان في حكم التسمية:** ① بهر حال زمونږ په نزد د اودس په اول كې تسميه وئيل سنت ده. ② او اصحاب ظاهر او امام احمد ﷫ فرمائی. چې تسميه په اودس كې شرط ده. بغير د تسميه نه اودس نه كيږی.

**دليل الخصم:** دليل ئې هغه حديث دی. كوم چې حاكم او ابوداود نقل كړی دی. «عن ابی هريرة ﷺ أن النبى

٢) من حديث ابى هريرة ﷺ اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ٤٨ رقم ١٠١)_



صلى الله عليه وسلم قال لا صلاة لمن لا وضوءله ولا وضوء لمن لم يذكر إسم الله عليه.» يعنی د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دی. چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. دهغه چا لمونځ نه كيږی. چې اودس ئې نه وی كړی. او دهغه چا اودس نه كيږی. چې دالله نوم ئې نه وی ياد كړی. اهل ظواهر فرمائی. چې په حديث كې كلمه د "لا" د نفی د جنس لپاره ده. يعنی بغير د تسميه څخه به اودس نه كيږی.

**الجواب من الحديث:** ليكن زمونږ د اړخه به ځواب دا وی. چې په حديث كې د اودس د فضيلت نفی ده. يعنی بغير د تسميه نه خو اودس كيږی. خو افضله نه ده. لكه «لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد.» كې د لمونځ دكمال نفی ده. د لمونځ د صحت نفی نه ده. او لكه په «لا إيمان لمن لا عهدله.» كې د ايمان دكمال نفی شوې ده. د نفس ايمان نفی نه ده شوې. نو دغه ډول به د تسميه په حديث كې هم د اودس د كمال او فضيلت نفی وی. د اودس دجواز او صحت نفی به نه وی.

**تائيدالاحناف بالحديثين:** زمونږ تائيد د على بن يحى بن خلاد په حديث سره كيږی. ① هغه حديث دا دی. «إن النبى صلى الله عليه وسلم قال للمسئ صلاته إذا قمت فتوضا كما امرك الله.» يعنی نبی عليه السلام هغه كس ته اوفرمائيل. چې د لمونځ اركان ئې په صحيح طريقه نه ادا كول. چې كله ته د لمونځ ادا كاوه اراده اوكړې. نو داسې اودس كوه. ځنګه چې درته الله تعالى حكم كړی دی. او الله تعالى چې د كوم اودس حكم كړی دی. په هغے كې تسميه نشته. ② او دارقطنى روايت كړی دی. «من توضا وذكر الله فإنه يطهر جسده ومن توضا ولم يذكر الله لم يطهر إلا موضع الوضوء.» يعنی كوم كس چې د اودس په پيل كې دالله نوم ياد كړی. نو دهغه واړه بدن پاك شی. او چا چې د الله نوم ياد نكړلو. نو داودس د اندامونو نه سوا نور څه نه پاكيږی. د دې دواړو حديثينو نه معلومه شوه. چې تسميه په اودس كې شرط نه ده.

**وَالْأَصَحُّ** او اصح دا ده **أَنَّهَا مُسْتَحَبَّةٌ** چې تسميه مستحب ده **وَإِنْ سَمَّاهَا فِي الْكِتَابِ سُنَّةً** اګرچې په كتاب كې ئې دې ته سنت وئيلې ده.

**تشريح:- عدم صحة استحباب التسمية:** صاحب دهدايه فرمائی. چې اصح قول دا دے. چې تسميه په اودس كې مستحب ده. اګرچې صاحب د قدوری ورته سنت وئيلی دی. علامه بدرالدين عينی ﷫ شارح د هدايه فرمائيلی دی. چې د تسميه د استحاب قول به ځنګه صحيح شی. سره ددے نه چې ډير احاديث ددے په سنتيت دلالت كوی. (نو صحيح قول دا دی. چې تسميه سنت ده.)

**وَيُسَمِّي قَبْلَ الْاِسْتِنْجَاءِ وَبَعْدَهُ** او بسم الله د استنجاء نه وړاندې او روستو هم **هُوَالصَّحِيحُ** هم دا صحيح ده.

**تشريح:- القول الاول في محل التسمية في الاستنجاء:** ① علامه مرغينانى فرمائی. چې تسميه به د استنجاء نه وړاندې هم وائی. او روستو هم. دا صحيح قول دی. دليل دا دی. چې استنجاء د اودس په سنتو كې يو سنت دی. نو ددے نه وړاندې دې بسم الله وائی. ددے لپاره چې د اودس واړه افعال كه فرض وی يا سنت وی. په بسم الله سره اوشی. ②

**القول الثانى ودليله:** د ځينې راويانو رائې دا ده. چې صرف د استنجاء نه وړاندې دې تسميه وائی دليل دا دی. چې د استنجاء نه وړاندې د عورت د ښكاره والی حالت وی. او د عورت ښكاره والی په وخت كې دالله نوم اخستل مناسب نه دی. نو ځكه دې د استنجاء نه روسته بسم الله وائی.

**القول الثالث:** د بعضو خيال دی. چې صرف د استنجاء نه روسته دې وائی. دليل دا دی. چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی. «كل أمر ذى بال لم يبدأ فيه بذكر الله.» دا ددے خبرے مقتضی دی. چې د اودس په اول كې دې د الله نوم ياد كړې شی. او چونكه استنجاء هم د اودس د ملحقاتو نه ده. نو ځكه د استنجاء كاوه نه وړاندې هم بسم الله وئيل مستحب دی.

**په اودس كې د مسواك مسنونيت**

قَالَ فرمائی وَالسِّوَاكُ ومسواك (سنت دی) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُوَاظِبُ عَلَيْهِ (١) ځکه چې نبی علیه السلام به په دې باندې دوام کولو

**حل اللغة:** ① **يواظب:** مواظبه: همیشه والې

**تشریح:- فضل السواك:** په أحاديثوکي د مسواك ډير فضيلت راغلی دې.په مسند احمدکي روايت دې. ﴿انه عليه الصلاة والسلام قال: صلاة بسواك أفضل من سبعين صلاة بغير سواك.﴾ مسواك سره يو لمونځ د بې مسواکه لمونځ نه يو په اويا درجې زيات ثواب لري.

**مواضع استحباب السواك:** په لټون اوتتبع سره په پنځو ځايونوکي د مسواك استحباب ثابت دې.①چې غاښونه زيړ وی.②دخولې بوئې خراب وی③چې د خوب نه رابيدارشی ④چې اقامت اوشی⑤ د اودس په وخت.

**صفات السواك:** پکار ده.①چې مسواك نرم وی. ② او د ګوتې په اندازه غټ وی.③ يو لويشت اوږد وی. ④ نيغ وی. ⑤چې غوټې په کې کمې وی ⑥دترښې ونې وی.چې بلغم ختموی. ⑦سينه صفا کونکې وی⑧ او خوراك زر هضم کوی.

**كيفية السواك:** اود مسواك کاوه طريقه دا ده.چې مسواك به په پلنوالی هم کوی.او په اوږدوالی هم.اوکه په يو اکتفا کول غواړی.نو صرف په اوږدو دې اوکړی.دا خبره ياد ساتئ چې د غاښونو پلنوالې د خولې اوږدوالې دې.(شرح نقايه)

**سنية السواك:** فرمائی چې مسواك کول سنت دی.دليل دا دې.چې نبیٔ عليه السلام د مسواك په استعمال باندې هميشوالې کړې دې.البته کله کله ئې پريخې دې.اوکه مسواك نه وی.نود ښی لاس په ګوته دې غاښونه اومګی.ځکه چې دا هم د نبی عليه السلام نه ثابت دی.

**عدم وجوب السواك ودليله:** او مواظبت مع الترك د سنتيت دليل دې.او بغير دترك نه مواظبت دليل د وجوب دې.او په ترك د مسواك باندې دليل دا دے.چې نبی عليه السلام د يوکلی خلګ وته د اودس اود لمونځ تعليم ورکړې وو.خوپه هغې کې د مسواك استعمال منقول نه دې.که دمسواك استعمال واجب وے . نو نبی عليه السلام به ورته خامخا تعليم ورکړې وو.(عنايه)

**السواك سنة الوضوء:** دا خبره دې ښکاره وی.چې د مسواك په مسنونيت کې درے اقوال دی. اول دا چې مسواك سنت داودس دې.

**دلائله:** ①ځکه چې نسائی دحضرت ابوهريره ﷺ حديث ﴿لولا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواك عند كل وضوء.﴾ يعنی که زما په امت ګرانه نه وه.نو ما به ورته دهر اودس سره د مسواك حکم کړې وو.② او ابوداود د حضرت عائشې ﷺ نه روايت کړې دې. ﴿أنه عليه السلام كان لا يرقد من ليل ولا نهار فيستيقظ إلا تسوك قبل أن يتوضأ.﴾ يعنی نبی ﷺ چې به په شپه يا ورځ کې کله هم اوده شو.او رابيدار به شو.نو داودس کاوه نه وړاندې به ئې مسواك استعمالو.

**السواك سنة الصلاة ودليله:** دويمه دا چې مسواك د لمونځ سنت دې.دليل د حضرت ابوهريره ﷺ دا حديث دې. ﴿لو لا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواك عند كل صلاة يا مع كل صلاة .﴾ رواه الستة

**السواك سنة الدين:** دريم دا چې ددين سنت دې.دا قول زيات قوی دې.اوامام ابوحنيفه ﷺ نه هم منقول دې.

**دلائله:** ①دليل دابوايوب انصاری ﷺ حديث دې.کوم چې ترمذی ذکرکړې دې. ﴿أربع من سنن المرسلين الختان والتعطر والسواك والنكاح﴾ يعنی څلورشيان د پيغمبرانو عليهم السلام سنت دی.ختنه ،عطرلګول ، مسواك او

---

١) فيه احاديث منها حديث حذيفة ﷺ ان النبي ﷺ كان اذا قام من الليل يشوص فاه بالسواک اخرجه البخاری فی الوضوء باب (٧٣)_



نکاح کول.② او دحضرت عائشې ﷺ حديث دې.چې لس شيان د فطرت څخه دی.او په هغې کې ئې مسواك شمار کړې دې.

وَعِنْدَ فَقْدِهِ يُعَالِجُ بِالْأَصْبَعِ.او ددے دنشتوالی په صورت کې به د ګوتې نه کار اخلی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَعَلَ كَذَلِكَ (١)ځکه چې نبی عليه السلام داسې کړی دی

**حل اللغة:** ① **فقده:** اورکول، نه کيدل ② **يعالج معالجه:** مشق کول ③**اصبع:** ګوته

**تشریح:- استعمال الاصبع عند فقده:** اوچې مسواك نه وی.نوګوته به د مسواك قائم مقام وی.په دې باندې دليل دا دې.چې نبیعليه السلام فرمائيلی دی. ﴿يجزئ من السواك الأصبع رواه البيهقي عن انس﴾ يعنی ګوتې د مسواك کار ورکوی.او امام طبرانی ﷺ د عائشې ﷺ نه روايت کړې دې.چې ﴿قلت يا رسول الله الرجل يذهب فوه يستاك قال نعم قلت كيف يصنع قال يدخل اصبعه في فيه﴾ يعنی حضرت عائشه ﷺ فرمائی.چې ما عرض اوکړلو.يارسول الله چې دکوم سړی په خوله کې غاښونه نه وی.هغه به هم مسواك کوی.نبی عليه السلام ووېل آو.ماپوښتنه اوکړه.څنګه به کوی.نونبی ﷺ اوفرمائيل.خپله ګوته دې په خوله کې داخله کړی.(فتح القدير ،شرح نقايه)

## په خوله اوپزه کې داوبو اچولو مسنونيت

قَالَ فرمائی وَالْمَضْمَضَةُ په خوله کې اوبه اچول وَالِاسْتِنْشَاقُ او په پزه کې اوبه اچول(هم سنت دی)

**حل اللغة:** ① **مضمضه:** غړغړې کول ②**استنشاق:** پزه کې اوبه اچول

**تشریح:- الاقوال الاربعة في كيفية المبالغة:** په خوله او پزه کې اوبه اچول هم په اودس کې سنت دی. او په دې دواړو کې دې مبالغه کوی.① نو په مضمضه کې مبالغه دا ده.چې ټولې خولې ته اوبه اورسی.② اوشيخ الاسلام ﷺ فرمائيلی دی.چې په مضمضه کې مبالغه دا ده.چې غرغره اوکړی.يعنی د حلق آخری حصې ته اوبه اورسوی.خوپه دې شرط چې دا کس روژه دار نه وی.③ او شمس ايمه حلوانی ﷺ فرمائی.چې مبالغه دا ده.چې اوبه په خولې کې د يو اړخ نه بل اړخ ته اوباسی.اواستنشاق کې مبالغه دا ده.چې اوبه د پوزے تير ته اورسوی.④ او وئيلی شوی دی.چې په پزه کې اوبه واچوه.او ساه پوره واخله.چې اوبه پورته اوخيژی.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَعَلَهُمَا عَلَى الْمُوَاظَبَةِ (٢) ځکه چې نبی عليه السلام دا دواړه هميشه لپاره کړی دی

**تشریح:- ثبوتهما من الاحاديث والكيفيتان فيهما:** د مضمضه او استنشاق په مسنونيت باندې دليل دا دې.چې نبی عليه السلام په دې دواړو هميشوالې کړې دې.او ٢٢صحابه کرامو ﷺ د نبی عليه السلام د اودس کاوه حکايت کړې دې.او ټولو په کې مضمضه او استنشاق ذکر کړې دې.

**الروايتان في عدد المضمضة والاستنشاق:** البته د شمار په اړه کې بعضو چپوالے اختيار کړې دې.① او بعضوذکر کړې دې.چې نبی عليه السلام يوځل مضمضه کړې ده.او په پزه کې ئې اوبه اچولی دی.② او بعضو د درے کرته ذکر کړې دې.

**عدم فرضيتهما في الوضوء:** صاحب دهدايه د مواظبت سره د ترك ذكر نه دې کړې.حالانکه په اودس کې د مضمضې او استنشاق ترك ثابت دې.

**دلائله:** دليل دا دې.① چې نبی عليه السلام يو باندېچی ته د اودس خودنه کړې وه.ليکن په هغې کې ئې د مضمضه او استنشاق ذکر نه دې کړې.② دغه ډول حضرت عائشې ﷺ د نبی عليه السلام د اودس حکايت کړې دې.ليکن دوی د مضمضه او استنشاق ذکر نه دےکړې.هرکله چې په څينېوختونو کې د دې دواړو ترك

---

(١) من حديث انس ﷺ قال ان النبي ﷺ قال يجزئ من السواک الاصابع اخرجه البيهقی فی السنن الکبری (١\٦٦) وضعفه)_

ثابت دي.نودا دواړه کارونه به په اودس کي سنت وي.فرض اوواجب به نه وي.لکه اهل حديث چې د نبی عليه السلام په مواظبت باندې استدلال کوی.او دا دواړه په اودس او غسل کي فرض ګرځوی.③ دغه ډول ابن عباس ﷺ نه موقوفاً او مرفوعاً حديث نقل دې.چې «هما سنتان في الوضوء واجبتان في الغسل» يعنی په خوله کي اوبه اچول اوپه پزه کي اوبه اچول په اودس کي سنت دی.او په غسل کي واجب دی.(عنايه،کفايه)

وَكَيْفِيَّتُهُ أَنْ يُمَضْمِضَ ثَلَاثًا او د دې دواړو طريقه دا ده.چې درے خله دې خوله کي اوبه واچوی يَأْخُذُ لِكُلِّ مَرَّةٍ مَاءً جَدِيدًا هر خل دې نوے اوبه راخلی ثُمَّ يَسْتَنْشِقَ كَذٰلِكَ او بيا دې دغه ډول په پزه کي اوبه واچوی هُوَ الْمَحْكِي مِنْ وُضُوءِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (١) د نبی عليه السلام اودس هم داسې حکايت کړې شوې دې.

**تشريح:- المذهبان في كيفيتهما**۞صاحب دهدايه د مضمضه او په پزه کي د اوبو اچولو طريقه دا بيان کړې ده①چې اول به درے خله مضمضه اوکړی.او هر خل به نوے اوبه استعمالوی.ځکه چې د نبی عليه السلام داسې اودس کول منقول دی.② ليکن امام شافعی ﷺ فرمائی.چې يوخل به اوبه راواخلی.په هغے به مضمضه اوکړی.او په پزه کي به واچوی.

**دليل الشافعي** ﷺ ۞ځکه چې ابوداود په خپل سنن کي روايت کړې دې.چې حضرت علی دنبی ﷺ د اودس بيانولو.نويو خل ئې اوبه راواخستلے.په هغے ئې مضمضه اوکړله.اوهم په هغے ئې استنشاق اوکړلو.ددے نه معلومه شوه.چې د دواړو لپاره يو خل اوبه راخستل کافي دی.(شرح نقايه)

**الجواب**۞ صاحب دعنايه په ځواب کي فرمائی.چې خوله او پزه جلا جلا دوې (دوه) اندامونه دی.نوپه يو اوبو کي به دا دواړه نشی جمع کولې.لکه څنګه چې نور اندامونه دی.چې په هغے کي دوې (دوه) په يو اوبو کي نشی جمع کولې.دغه ډول به به خوله او پزه نشی جمع کولې.

مناسب راته ښکاری.چې دخپل تاليف مفتاح الفلاح شرح نورالايضاح وضاحت په دې ځائې کي نقل کړم.

**كيفية المضمضة والاستنشاق** ۞دمضمضه او استنشاق په طريقه کي پنځه صورتونه دی.

①**غرفة واحدة بالوصل**۞چې يوه لپه اوبه راواخلی.او هغے نه په لړو اوبو سره مضمضه او استنشاق دواړه اوکړی.اوبيا ترے په لړو اوبو سره مضضه او استنشاق اوکړی.او په دريم خل ترے بيا مضمضه اواستنشاق اوکړی.

② **غرفة واحدة بالفصل**۞چې لپه اوبه راواخلی. او په هغے درے خله په لړو لړو اوبو مضمضه اوکړی.او بيا بله لپه راوخلی او درے خله په پزه کي اوبه واچوی.

③ **غرفتان بالفصل**۞چې يوه لپه اوبه راواخلی.په هغے باندې استنشاق اوکړی .بيا بله لپه راواخلی. او په هغے باندې مضمضه اوکړی.

④**ثلاث غرفات بالوصل** ۞چې يوه لپه راوخلی او د هغے نه په لړو اوبو سره مضمضه اوکړی. او په پاته اوبو باندې استنشاق اوکړی. او هم دغه ډول بيا دويمه او بيا دريمه لپه راواخلی.اوچې څنګه ئې په لومړنی لپه کړې وو.هغه شان په دويمه او دريمه لپه هم اوکړی.

⑤ **ست غرفات بالفصل**۞چې يوه لپه راواخلی په هغے مضمضه اوکړی.بيا په دويمه او بيا په دريمه لپه مضمضه اوکړی. او د مضمضے نه روسته استنشاق هم په دې طريقه په دريو لپو اوکړی.اګرچې پنځه واړه طريقے جائز دی.ليکن دا پنځمه طريقه داحنافو په نزد افضله او غوره ده.(ناقلاً عن درس ترمذی) شاه فيصل عفی عنه

(١) من حديث كعب بن عمرواليمانی ﷺ ان رسول الله ﷺ توضا فمضمض ثلاثا واستنشق ثلاثا ياخذ لكل واحدة ماء جديدا وغسل وجهه ثلاثا الحديث اخرجه الطبرانی فی معجمه (نصب:١١/٥٨)_



**الترتيب فيهما واستعمال اليدين**۞صاحب دنقايه ليکلی دی.چې لکه څنګه مضمضه او استنشاق سنت دی.نودغه ډول مضمضه په استنشاق باندې وړاندې کول هم سنت دی.اودا ئې هم ليکلی دی.چې په مضمضه او استنشاق کي به هر يو په خپل ښې لاس باندې کوی.او بعضو وئيلی دی.چې استنشاق دې په ګس لاس کوی.خوصحيح دا ده.چې په پزه کي اوبه خو به په ښی لاس اچوی.ليکن دا به په ګس لاس سونړوی.

## د غوږونو د مسح مسنونيت

وَمَسْحُ الْأُذُنَيْنِ اود دواړو غوږونومسح کول (سنت) ده وَهُوَ سُنَّةٌ او دا سنت ده بِمَاءِ الرَّأْسِ د سر په اوبو باندې عِنْدَنَا زموږ.

**تشريح:- كيفية مسح الاذنين**۞ داودس په سنتوکي د دواړو غوږونومسح کول هم ده. د غوږونود مسح کاوه طريقه علامه حلوانی اود شيخ الاسلام ﷺ دقول مطابق دا ده.چې خپله کچې ګوته به په غوږونو کي ورداخله کړی.اوحرکت به ورکړی.اوفرمائيلی ئې دی.چې نبی ﷺ هم داسې کړی دی.او په ابن ماجه کي په صحيح سند سره دابن عباس ﷺ نه نقل دی.« أنه عليه الصلاة والسلام مسح أذنيه فادخلهما السبابتين وخالف إبهاميه إلى ظاهر أذنيه فمسح ظاهرهما وباطنهما» يعنی نبی عليه السلام د خپلو دواړو غوږونو مسح اوکړله. نو خپلے دواړه د شهادت ګوتے ئې په غوږونوکي ورداخلے کړې.او دواړه متے ګوتے ئې د غوږونو سربيره تيرے کړې.نود غوږونودظاهری او باطنی‌حصے‌مسح ئې اوکړله . او فرمائيلے ئې هم دا بهتره ده.(فتح القدير)

**المذهبان في ماء مسح الاذنين**۞ ①دغوږونومسح زموږ په نزد د سر په اوبو باندې مسنون ده.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ ﷺ د امام شافعی ﷺ اختلاف دې

**تشريح:-** امام مالك، امام شافعی او احمد ﷺ فرمائی.چې په تازه اوبو باندې د سر مسح کول سنت ده.

**دليلهم** ۞ددے حضراتو دليل هغه حديث دې.کوم چې حاکم روايت کړې دې.چې حبان بن واسع ته د هغه پلار بيان کړې دې.« أنه سمع عبدالله بن زيد يذكر أنه رأى رسول الله صلى الله عليه وسلم يتوضأ فأخذ لأذنيه ماء خلاف الماء الذی أخذ لرأسه» يعنی ابن حبان د عبدالله بن زيد ﷺ نه نقل کړی دی.چې هغوی نبی عليه السلام داودس په حالت کي ليدلے وو.چې نبی عليه السلام د غوږونو د مسحې لپاره دهغه اوبو نه سوا نورے اوبه راواخستلې.کومے چې د سر د مسح لپاره وې.د دې حديث نه معلومه شوه.چې د غوږونو د مسحې لپاره نوے اوبه راخستل سنت دی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ (١) ځکه چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی. «الأذنان من الرأس» وَالْمُرَادُ بَيَانُ الْحُكْمِ اومراد د حکم بيان دې. دُونَ الْخِلْقَةِ. د صورت نه دې.

**تشريح:- دلائل الاحناف** ﷺ ۞ ①زموږ دليل د حضرت ابن عباس ﷺ حديث دې. «أن النبی صلى الله عليه وسلم قال الأذنان من الرأس»او ددے حديث نه مراد د حکم بيانول دی.يعنی دسر او غوږونو دواړو حکم يودې.د خلګ ت بيانول مقصود نه دی.ځکه چې نبی عليه السلام د احکامو بيانولو لپاره راليږلے شوې دې.د موجوداتود حقائقو بيانولو لپاره نه دې راليږلے شوې.

**السوال** ۞ ليکن که څوك سوال اوکړی.چې هرکله د سر او غوږونو حکم يو دې.نو د دواړو غوږونو مسح کول د سر د مسح قائم مقام ګرځول پکار وو. حالانکه داسې نه ده؟

**الجواب**۞ ددے ځواب دا دې.چې د سرد مسحې وجوب په يقينی دليل سره ثابت شوې دې.او د غوږونو مسح په خبرواحد سره ثابته شوې ده.کومه چې مسنون ده.او په مسنون سره فرض نشی ادا کيدې.

**المقيس عليه** ۞لکه څنګه چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی.« الحطيم من البيت» يعنی د کعبې حطيم په

١) من حديث ابی امامة ﷺ اخرجه ابوداود فی الطهارة باب ٥١ والترمذی فی الطهارة باب ٢٩وابن ماجه فی الطهارة باب٥٣)

كعبه كي داخل دی.نولكه څنګه چي د بيت الله طواف كولی شی.دغه ډول د حطيم طواف هم كولی شی.ليكن صرف حطيم اړخ ته په مخ كاوه سره لمونځ نه جائز كيږی.څكه چي خانه كعبې ته لمونځ كول په يقيني دليل سره ثابت دی.او د حطيم په كعبه كي داخليدل په خبر واحد سره ثابت دی.او په خبر واحد باندی به عمل په هغه وخت كي واجب وی.چي په دليل قطعی باندی عمل نه باطليږی.اوكه په خبرواحد باندی عمل كاوه سره په دليل قطعی باندی عمل كول باطليږی.نو په خبر واحد به عمل نشی كولی.

**الدليل الثانی**۞ دوهم دليل هغه حديث دی.كوم چي حاكم، ابن خزيمه او ابن حبان د حضرت ابن عباس ﷺ نه نقل كړی دی.﴿انه قال الا أخبركم بوضوء رسول الله صلى الله عليه وسلم وفيه ثم غرف غرفة فمسح بها رأسه وأذنيه﴾يعنی ابن عباس ﷺ اوفرمائيل.آيا تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس خبرنكړم.(بيا ئې واړه اودس بيان كړو) يو په هغې كي دا وو.چي بيا ئې يوه لپه اوبه راواخستې.په هغې باندی ئې د سر او د دواړو غوږونو مسح اوكړله.ددې حديث نه هم ښكاره شوه.چي د غوږونو مسح كاوه لپاره د نوې اوبه راخستلو اړتيا نشته.والله اعلم

## د ږيري د خلال مسنونيت

| |
|---|
| قَالَ فرمايي **وَتَخْلِيلُ اللِّحْيَةِ** اود ږيرې خلال كول لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِذَلِكَ (١) څكه چي جبرئيل عليه السلام نبی عليه السلام ته د ږيرې د خلال حكم كړی وو |

**حل اللغة**① **تخليل**: خلال كول

**تشريح:- دليل سنية خلال اللحية**۞ ①امام قدوری ﷫ فرمائيلی دی.چي د ږيرې خلال كول هم سنت دی.دليل دا دې چي جبرئيل عليه السلام نبی عليه السلام ته د ږيرې دخلال حكم كړی وو.صاحب دعنايه دا الفاظ نقل كړی دی.﴿قال عليه السلام نزل علی جبرئيل عليه السلام وأمرنی أن أخلل لحيتی إذا توضأت﴾ نبی عليه السلام فرمائی.چي جبرئيل عليه السلام ماته راغلو.اووې فرمائيل:كله چي اودس كوې.نو دخپلې ږيرې خلال كوه! ② اوترمذی او ابن ماجه دحضرت عثمان ﷺنه روايت كړی دی.﴿كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يخلل لحيته﴾ يعنی نبی عليه السلام به دخپلې ږيرې خلال كولو. ③ او دحضرت انس ﷺ حديث دی.﴿قال كان عليه الصلاة والسلام إذا توضأ خلل لحيته﴾ يعنی حضرت انس ﷺفرمائی.چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به كله اودس كولو.نو د خپلې ږيرې خلال به ئې كولو.

| |
|---|
| **وَقِيلَ** او وئيلی شوی دی **هُوَ سُنَّةٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** (٢) ﷫ چي دا د امام ابويوسف ﷫ په نزد سنت دی **جَائِزٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** ﷫.اودامام ابوحنيفه ﷫ او امام محمد ﷫ په نزد جائز دی |

**تشريح:- اختلاف الاحناف في حكم خلال اللحية**۞ اوځيني عالمانوفرمائيلی دی.① چي د ږيرې خلال كول دامام ابويوسف ﷫ په نزد سنت دی.② او دطرفينو ﷫ په نزد جائز دی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ السُّنَّةَ إِكْمَالُ الْفَرْضِ فِي مَحَلِّهِ** څكه چي سنت د فرضو پوره كول دی.په خپل محل كي **وَالدَّاخِلُ لَيْسَ بِمَحَلِّ الْفَرْضِ** او د ږيرې دننه برخه په فرض محل كي نه ده |

**حل اللغة**① **اكمال**: پوره كول

---

١) من حديث انس ﷺ ان النبی ﷺ قال اتانی جبرئيل ﷺ فقال: اذا توضات فخلل لحيتک اخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه ورواه ابن عدی فی الكامل (نصب:١\٦٦)_

٢) القول الراجح هو قول ابی يوسف ﷫ كذا فی سنن الترمذی وفتح القدير(١\٢٦) وردالمحتار(١\٨٦) والهندية (١\٧) والحلبی (١\٢٣) نقلا عن القول الراجح(١\٣)-



**تشريح:- دليل الطرفين** ﷫۞ د طرفينو دليل دا دی.چي په اودس كي سنت هغه وی.چي د فرضو محل پرې پوره شی. او د ږيرې دننه برخه دفرضو محل نه دی.څكه چي په اتفاق سره دننه حصې ته اوبه رسول واجب نه دی .نوچي د ږيرې دننه برخه دفرضو محل نه دی.نو ددې كول به هم سنت نه وی.اوچونكه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه خلال كول ثابت دی.نوڅكه بدعت هم نه دی.حاصل دا چي هركله نه سنت دی.او نه بدعت دی. نو جائز به وی.

## دګوتو دخلال مسنونيت

| |
|---|
| قَالَ فرمايي **وَتَخْلِيلُ الْأَصَابِعِ** اود ګوتو خلال كول |

**حل اللغة**① **اصابع**: دَ اصبع جمع ګوته

**تشريح:- كيفية خلال اصابع اليدين**۞ د اودس په سنتو كي دلاسونو او پښو د ګوتو خلال كول هم دی. دلاسونو په ګوتوكي د خلال كاوه بهترينه طريقه دا ده.چي د يولاس ګوتې دې د بل لاس په ګوتوكي د پنجې په صورت كي واچوی.او په شرح نقايه كي ئې ليكلی دی.چي غوره دا ده.چي د ښی لاس دتلی باطن د چپه لاس د تلی په شاه باندې كيږدی.او بيا د چپه لاس دتلی باطن د ښی لاس د تلی په شاه باندې كيږدی.

**كيفية خلال اصابع الرجلين**۞اود پښو په ګوتو كي دخلال كاوه طريقه دا ده .چي خپل چپه لاس د خپلې ښۍ پښې لاندې كيږدی.اوكڅې ګوته د ګوتوپه مينځ كي ورداخله كړی.د ښۍ پښې د كچۍ ګوتې نه پيل اوكړی.او د ګسې پښې په كچۍ ګوته ئې ختم كړی.(شرح نقايه)

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** څكه چي نبی عليه السلام فرمائيلی دی **خَلِّلُوا أَصَابِعَكُمْ** .تا سودخپلو ګوتو خلال كوئ **كَيْ لَا تَتَخَلَّلَهَا نَارُ جَهَنَّمَ** (١) هسې نه چي ددې په مينځ كي د جهنم اور داخل نشی **وَلِأَنَّهُ إِكْمَالُ الْفَرْضِ فِي مَحَلِّهِ** او بله داچي د فرضو په خپل محل كي پوره والې دی. |

**حل اللغة**① **تتخللها**: **تخللا**: داخليدل

**تشريح:- دلائل خلال الاصابع**۞ ①دليل خوئې يو هم دا حديث دی.كوم چي صاحب دهدايه ذكر كړی دی.② او په طبرانی كي دی.چي ﴿من لم يخلل أصابعه بالماء خللها الله بالنار يوم القيامة﴾ يعنی كوم كس چي په خپلو ګروتونو كي اوبه داخلې نكړی.نوالله تعالی به د قيامت په ورځ ددې په مينځ كي اور ورداخل كړی.③ د ابن عباس ﷺ حديث دی.﴿قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا توضأت فخلل بين أصابع يديك و رجليك﴾ ابن عباس ﷺ فرمائی.چي رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.كله چي ته اودس كوې.نود خپلولاسونو د پښو د ګوتو خلال كوه. ④ علامه ابن الهمام صاحب د فتح القدير ﷫ فرمايي .چي د تخليل په احاديثوكي د ټولو نه زيات مناسب هغه حديث دی.كوم چي لقيط بن صبره ﷺ په سنن اربعه كي نقل كړی دی.﴿قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا توضأت فاسبغ الوضوء وخلل بين الأصابع﴾ يعنی رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی.كله چي ته اودس كوې.نوپوره اودس كوه.او د ګوتو په مينځ كي خلال كوه.

**السوال**۞دلته كي يو سوال دی.هغه دا چي په دې ټولو احاديثوكي دخلال كاوه ذكر د امر په صيغه سره شوی دی.او امر د وجوب لپاره راځی.نو د ګوتو خلال پكار دا وه.چي واجب وو.سنت نه وو؟

**الاجوبة**۞ ① كه د ګوتومينځ ته اوبه اونه رسی.نو د ګوتوپه مينځ كي خلال كول او اوبه رسول واجب دی.اوكه د ګوتومينځ ته اوبه اورسيدلې.نوخلال كول سنت دی. ② عقلی ځواب دا دی.چي د لاسونو او د پښوګوتو ينځ فرض دی.اوپه خلال كاوه سره دفرضو په محل كي اكمال راځی.اوپه اودس كي چي په كوم شی

---

١) قال الزيلعی ﷫ غريب بهذا اللفظ واخرج الدارقطنی فی سننه (ای فی ١\٩٥) عن ابی هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ خللوا اصابعكم لايتخللها الله النار يوم القيامة.نصب:١\٧٠)_

سره چې د فرضو اکمال د هغې په محل کې وي.نو هغه څېزسنت وي.نوځکه به تخليل د ګوتو سنت وي.
③حضرت مولانا عبدالحی رحمه الله ځواب ورکړې دې.چې د امر د صيغې د امله د ګوتو خلال کول بايد ده چې واجب وو.ليکن په اودس کې واجب نشته.نو ځکه به خلال واجب نه وي.او په اودس کې واجب د دې د امله نشته.چې اودس د لمونځ لپاره شرط دې.نو اودس به د لمانځه تابع وي.نو که په اودس کې هم واجب اومنلې شي.نو په دې به تابع د اصل سره برابر شي.او دا په هيڅ صورت کې مناسب نه دی.

**د دري ځله وينځلو سنيت**

| |
|---|
| قَالَ فرمايي **وَتَكْرَارُ الْغَسْلِ إِلَى الثَّلَاثِ** اود وينځلو درې کرته مکرر کول |

**تشريح:- الاقوال الشتى في حكم كل واحد من الغسلات**◉ داودس په سنتو کې اعضاء مغسوله درې درې ځله پريمنځل (وينځل) هم دی.چې دوينځلوقيد ئې اولګولو.نودې اړخ ته ئې اشاره اوکړه.چې د مسح تکرار مسنون نه دې.①ياد ساتئ⑧ چې دځينې فقهاؤ قول دا دې.چې يوځل پريمنځل فرض دی.او په دوهم ځل پريمنځل سنت دی.او دريم ځل پريمنځل د سنت اکمال (پوره کول) دی.② او بعضو وئيلی دی.چې دوهم اودريم ځل پريمنځل سنت دی.③ او بعضو وئيلی دی.چې دوهم سنت اودريم نفل دی.④ او بعضو وئيلی دی.چې په دوهم ځل پريمنځل نفل او په دريم ځل پريمنځل سنت دی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً** ځکه چې نبی عليه السلام په يو يو ځل وينځلو سره اودس اوکړلو **وَقَالَ** او وې فرمائيل **هَذَا وُضُوءٌ** چې دا داسې اودس دې **لَا يَقْبَلُ اللَّهُ تَعَالَى الصَّلَاةَ إِلَّا بِهِ** چې الله تعالی نه قبلوی.لمونځ بغير ددې نه **وَتَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ** او اودس ئې اوکړلو. دوې (دوه) دوې (دوه) ځله**وَقَالَ** او وې فرمائيل: **هَذَا وُضُوءُ مَنْ** چې دا اودس دهغه کس دې.**يُضَاعِفُ اللَّهُ لَهُ الْأَجْرَ مَرَّتَيْنِ** چې هغه لپاره الله تعالی ثواب دوچنده کوی **وَتَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا** او اودس ئې اوکړلو.درې درې ځله **وَقَالَ** او وې فرمائيل:**هَذَا وُضُوئِي** دا زما اودس دې **وَوُضُوءُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِي** او زما نه د وړاندې پيغمبرانو عليهم السلام اودس وو **فَمَنْ زَادَ عَلَى هَذَا** نو چا چې په دې باندې زياتې اوکړلو **أَوْ نَقَصَ** يا ئې کمې اوکړو **فَقَدْ تَعَدَّى** نوهغه د حد نه تير شو **وَظَلَمَ**.[1] اوظلم ئې اوکړو |

**حل اللغة**① **يقبل**: **قبولاً** (س): قبلول ②**يضاعف، مضاعفه**: ډبل کول ③**تعدی، تعديا**: د حدنه وړاندې کيدل

**تشريح:- دلائل تثليث الغسل**◉ ①درې ځله وينځلوباندې يوحديث خو علامه مرغينانی ذکر کړې دې.چې نبی عليه السلام يو ځل د اودس اندامونو وينځلو نه روسته اوفرمائيل:چې ددې نه بغير لمونځ نه قبليږي.اودوې (دوه) دوې (دوه) ځله ئې اندامونه اوپريمنځل اووې فرمائيل:چې دا داسې اودس دې.چې په دې باندې دوچنده ثواب ملاويږي.او درې درې ځله ئې اووينځل.او وې فرمائيل:چې دا زما او زمانه د وړاندې پيغمرانو عليهم السلام اودس دې.او وعيد ئې هم بيان کړلو.چې چا په دې کې اضافه اوکړه.نو دحد نه ئې تجاوز اوکړلو.اوچا چې کمې اوکړلو.نوهغه ظلم اوکړو.

| |
|---|
| **وَالْوَعِيدُ لِعَدَمِ رُؤْيَتِهِ سُنَّةً** او وعيد په درې ځله سنت نه ګڼړلوپه وجه دې |

**تشريح:- معنى التعدي والظلم ومحمل الوعيد** ◉په حديث کې د "تعدی" لفظ د "زاد" سره تعلق ساتی.او د "ظلم" لفظ د نقص سره تعلق ساتی .اود ظلم معنی هم کمول راځی.الله تعالی فرمائيلی دی.( وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ شَيْئًا ) يعنی «لم تنقص» علامه مرغينانی فرمايي .چې دا وعيد په هغه وخت کې دې.چې دا اعتقاد اوساتی.چې

[1]) من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنه اخرجه الدارقطنی فی سننه (۸۰۱۱)_



کامله اودس په درې ځله باندې نه پوره کيږي.نو ده تعدی او ظلم اوکړلو.او که د شک په صورت کې د زړه داطمينان لپاره په درې ځله زيادت اوکړی.يا د اړتيا د امله د درې ځله نه ئې کم اووينځی.نوپه دې کې څه قباحت نشته.ځکه چې نبی عليه السلام په خپله هم درې درې ځله اوکله دوې (دوه) دوې (دوه) ځله او کله يو يو ځل پريمنځل کړی دی.

**دنيت استحباب**

| |
|---|
| قَالَ فرمايي **وَيُسْتَحَبُّ لِلْمُتَوَضِّئِ عِنْدَنَا** اود متوضی لپاره مستحب دی **أَنْ يَنْوِيَ الطَّهَارَةَ** چې د طهارت نيت اوکړی **فَالنِّيَّةُ فِي الْوُضُوءِ سنة عِنْدَنَا** نونيت په اودس کې زمونږ په نزد سنت دې |

**تشريح:- شروط صحة النية** ◉ ①يا د بې اودسئ لرې کاوه اراده اوکړی.② نيت دا دې.چې په زړه سره د اودس اراده اوکړی.③ يا د داسې عبادت قصد اوکړی.چې هغه بغيرد طهارت نه نه صحيح کيږي.
**المذهبان في حكم النية في الوضوء**◉ د اودس د نيت په حکم کې د عالمانو اختلاف دې.① داحنافو عالمانو رحمهم الله په نزد په اودس کې نيت کول سنت دې.

| |
|---|
| **وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله **فَرْضٌ** او دامام شافعی رحمه الله په نزد فرض دې **لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ** ځکه چې اودس عبادت دې **فَلَا تَصِحُّ بِدُونِ النِّيَّةِ** اوعبادت بغير د نيت نه نهٔ صحيح کيږي **كَالتَّيَمُّمِ** تيمم پشان. |

**تشريح:-** د امام مالك او شافعي او احمد رحمهم الله په نزد په اودس کې نيت فرض دې.
**دلائلهم** ◉ ① اودس يو عبادت دی.او عبادت بغير دنيت نه نه صحيح کيږي.دالله تعالی فرمان دې.﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾او اخلاص بغير د نيت نه ممکن نه دې.نوځکه موږ وايو.چې هيڅ يو عبادت بغير د نيت نهٔ معتبر نه دې.② د ائمه ثلاثو دليل د نبی عليه السلام ارشاد دې.«إنما الأعمال بالنيات» يعنی عملونه په نيتونو باندې موقوف دی.او اودس هم يوعمل دې.نو دا به هم په نيت باندې موقوف وی.③ دوهم دليل دا دې.چې لکه څنګه چې په تيمم کې په اتفاق سره نيت فرض دې.(نودغه ډول په اودس کې هم فرض دې.)

| |
|---|
| **وَلَنَا** او زمونږ دليل دا دې **أَنَّهُ لَا يَقَعُ قُرْبَةً إِلَّا بِالنِّيَّةِ** چې دا صرف په نيت باندې قربت واقع کيږي **وَلَكِنَّهُ يَقَعُ مِفْتَاحًا لِلصَّلَاةِ** خو دا اودس لمونځ لپاره مفتاح (آله او ذريعه) جوړيږي **لِوُقُوعِهِ طَهَارَةً بِاسْتِعْمَالِ الْمُطَهِّرِ** ځکه چې دا اودس د پاکونکی اوبو په استعمال سره طهارت اوګرځيدلو |

**حل اللغة**① **قربه**: نيک کار ②**مفتاح**: کنجی

**تشريح:- دلائل الاحناف**◉ ①زمونږ دليل دا دې.چې يو سړی د نبی عليه السلام نه داودس په اړه کې پوښتنه اوکړه.نونبی عليه السلام هغه ته د نيت تعليم ورنکړلو . (شرح نقايه) ددې نه معلومه شوه.چې نيت په اودس کې فرض نه دې.ګنی نبی عليه السلام به هغه ته د نيت تعليم ضرور ورکړې وې.② دوهم دليل دا دې.چې اودس د لمونځ شرط دې.او د لمانځه نور شرطونه د نيت محتاج نه دی.نو اودس به هم محتاج نه وی.
**الجواب من حديث الائمة** رحمهم الله ◉ صاحب دهدايه چې کوم دليل ذکر کړې دې.دا په اصل کې دامام شافعی رحمه الله د دليل ځواب دې.حاصل د ځواب دا دے .چې بيشکه چې اودس عبادت دې.نو بغير د نيت نه نهٔ صحيح کيږي.ليکن اودس بغيردنيت نه دلمانځه لپاره مفتاح جوړيدے شی.ځکه چې د لمانځه مفتاح طهارت دې.او طهارت په نيت او بغير دنيت دواړو طريقو متحقق کيږي.ځکه چې اوبه د خپل ذات په اعتبار سره پاکې دی.الله تعالی فرمائيلی دی.﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ نود پاکونکې اوبو په استعمال سره طهارت واقع شو.که دطهارت نيت ئې کړې وی او که نه وی.

| |
|---|
| **بِخِلَافِ التَّيَمُّمِ** او ددې په خلاف تيمم دې **لِأَنَّ التُّرَابَ غَيْرُ مُطَهِّرٍ** ځکه چې خاوره پاکونکې نه ده **إِلَّا فِي حَالِ إِرَادَةِ** |

الصَّلَاةِ مګر د ارادے دلمانځه په حالت کې أَوْهُوَيُنْبِئُ عَنِ الْقَصْدِ یا دا چې تیمم د قصد خبر ورکوی.

**حل اللغة:** ① نواب: خاوره ② ینبئ، انباء: خبرورکول

**تشریح:- الاجوبة من قیاس الشافعی** رحمه الله ① د تیمم په خلاف دامام شافعی رحمه الله د قیاس ځواب دا دې چې اودس په تیمم باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې. ځکه چې اودس په اوبو سره کیږي. او اوبه دخپل ذات په اعتبار سره پاکونکې دی. او تیمم په خاورے سره کیږي. او خاوره دخپل ذات په اعتبار سره پاکونکې نه ده. مګر په هغه حالت کې چې د لمانځه اراده په کې شوې وی. نو په خاوره باندې پاکې حاصلول امر تعبدی (خلاف القیاس) دې. او امور تعبدی د نیت محتاج وی. نوځکه په تیمم باندې قیاس کول ټیک نه دی. ② دوهم ځواب دا دې چې د تیمم لغوی معنی قصد او اراده ده. او په شرعی امورو کې لغوی معنی ملحوظه وی. نو ځکه په تیمم کې د نیت او قصد شرط اولګولې شو. ③ اود حدیث «إنما الأعمال بالنیات» ځواب دا دې چې په حدیث کې داعمالو نه مراد عبادات دې. ځکه چې ډیر مباحات په شریعت کې بغیر د نیت نه معتبر وی. مثلا نکاح، طلاق، بلکه د دے نه طاعات مستقلة (عبادات محضه) مراد دی. او اودس طاعت مستقله نه دې بلکه د لمونځ لپاره وسیله ده. او صاحب دشرح وقایه فرمائیلی دی. چې د اعمال نه ورانده د ثواب لفظ مقدر دې. نواوس به مطلب دا وی. چې د اعمالو ثواب په نیت باندې موقوف دې. او نفس عمل په نیت باندې موقوف نه دې.

## د ټول سر د مسحې مسنونیت

وَيَسْتَوْعِبُ رَأْسَهُ بِالْمَسْحِ او چې راګیرکړی خپل واړه سر په مسحې سره وَهُوَسُنَّةٌ اوهم دا سنت دی

**تشریح:- کیفیة مسح الراس:** صاحب دهدایه اوفرمائیل: چې د واړه سر مسح هم مسنون ده. د واړه سر د مسح کاوه طریقه دا ده. چې دواړه تلی او د دواړو لاسونو ګوتې دې اول لوندےکړی. بیا دې د دواړو لاسونو درے درے ګوتې د سر په مخکنی برخه کیږدی. او دواړه قتے او مسواکې ګوتے او تلی دې جلا ساتی. بیا دې دا راکاږی. او روستو طرفته دې راولی. او بیا دې دواړه تلی د سر د دواړو طرفونو نه مخے اړخ ته بوځی. بیا دې په دواړو متو ګوتو د دواړو غوږونو په ظاهری برخه او په دواړو مسواکو ګوتو د دواړو غوږونو باطنی برخه مسح کړی. (فتح القدیر) او په ،،نهایه،، کې دومره زیادت دې. چې د دواړو لاسونو په ظاهر دې د خپل څټ مسح اوکړی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او شافعی رحمه الله فرمایی السُّنَّةُ التَّثْلِيثُ چې سنت خو درے ځله مسح کول دی بِمِيَاهٍ مُخْتَلِفَةٍ په مختلفو اوبو سره اعْتِبَارًا بِالْمَغْسُولِ په مغسول اندام باندې قیاس کوی بِخِلَافِ الْغَسْلِ د غسل په خلاف لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّكْرَارُ ځکه چې تکرار دغسل لپاره نقصانی نه دې.

**حل اللغة:** ① میاه: د ماء جمع، اوبه

**تشریح:- المذاهبان فی عدد المسح علی الراس:** ① په هرحال زموږ په نزد یو ځل د واړه سر مسح کول سنت ده. ② او امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې په درے مختلفو اوبو سره درے ځله د پوره سر مسح کول سنت ده.

① **دلیل الشافعی** رحمه الله: امام شافعی رحمه الله د سر مسح په مغسول اندام باندې قیاس کوی. یعنی لکه څنګه چې په خوله اود پوزے دننه برخه درے ځله پریمنځل سنت دی. نو دغه ډول د واړه سر درے ځله مسح کول هم سنت ده.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا چې انس رضی الله عنه اودس اوکړلو درے درے ځله وَمَسَحَ



بِرَأْسِهِ وَاحِدَةً اود خپل سرمسح نې یو ځل اوکړله وَقَالَ. او وے فرمائیل هَذَا وُضُوءُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (۱) چې دا د رسول الله ﷺ اودس دې وَالَّذِي يُرْوَى مِنَ التَّثْلِيثِ (۲) اوهغه کوم روایت چې د درے ځله (مسح کولو) نقل کولې شی مَحْمُولٌ عَلَيْهِ بِمَاءٍ وَاحِدٍ نوهغه محمول دې. درے ځله په یو اوبو سره وَهُوَ مَشْرُوعٌ اودا مشروع ده عَلَى مَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بنا په هغه روایت کوم چې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دې

**تشریح:- دلائل الاحناف:** ① اوزموږ دلیل دا دے چې حضرت انس رضی الله عنه اودس اوکړلو. درے درے ځله. او مسح نې اوکړله یو ځل. او وے فرمائیل دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس دې. او پاتے شو هغه حدیث چې حضرت عثمان او حضرت علی رضی الله عنه د نبی علیه السلام داودس حکایت کړې دې. او په هغې کې دا دی چې درے درے ځله نې اندامونه اووینځل. او درے ځله نې مسح اوکړله. نو دهغے ځواب دا دې چې نبی علیه السلام په یو اوبو سره درے ځله مسح کړې وه. او دا دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد هم مشروع ده. ② دوهم دلیل دا دې چه فرض خومسح ده. او د تکرار په وجه به مسح پریمنځل شی. او دا دکتاب، سنت او اجماع ټولو نه خلاف خبره ده. نوځکه په مسح کې تکرار سنت نه دې. ③ نو د سر مسح د موزے د مسحې په څیر شوه. یعنی لکه څنګه چې د موزے په مسح کې تکرار مسنون نه دې. نودغه ډول به د سر په مسح کې هم تکرار سنت نه وی.

وَلِأَنَّ الْمَفْرُوضَ هُوَ الْمَسْحُ اوځکه چې مشروع خو مسح ده وَبِالتَّكْرَارِ يَصِيرُ غَسْلًا او په تکرار سره خو به هغه پریمنځل شی. وَلَا يَكُونُ مَسْنُونًا نوداسې مسح مسنون نه ده فَصَارَ كَمَسْحِ الْخُفِّ نود سر مسح د موزے دمسحې په څیر شوه

**حل اللغة:** ① یصیر، اض: کیدل ② خف: موزه

**تشریح:- الجواب من السوال التقدیری:** او په خلاف د غسل ځکه چې هغه د تکرار په وجه نه فاسدیږی. یعنی د تکرار باوجود غسل هم غسل پاتې کیږی. نو ځکه په غسل کې درے ځله پورې تکرار کول سنت دی.

## د ترتیب او تیامن مسنونیت

قَالَ فرمایی وَيُرَتِّبُ الْوُضُوءَ اوپه ترتیب سره به کوی اودس فَيَبْدَأُ نوشروع به کوی بِمَا بَدَأَ اللهُ تَعَالَى بِذِكْرِهِ دهغه اندام نه. چې د کوم نه چې پیل کړې ده الله تعالى وَبِالْمَيَامِنِ (اوشروع دې کوی) دښیے اړخ نه،

**حل اللغة:** ① یرتب، ترتیبا: په ترتیب سره کول ② بدأ، بدأ (ن): پیل کول ③ میامن: د میمنة جمع: راسته اړخ ④ تعقیب: ورستوراتګ، روستو راوستل ⑤ تقتضی، اقتضاء: تقاضاکول، غوښتل ⑥ تنعل: څپلنی اچول ⑦ ترجل: ګمنز کول

**تشریح:- بحث المسئلتین:** په دے عبارت کې دوې (دوه) مسئلې زیربحث دی. (۱) مسئله دترتیب ② ابتداء بالتیامن،

فَالتَّرْتِيبُ فِي الْوُضُوءِ سُنَّةٌ عِنْدَنَا ترتیب په اودس کې زموږ په نزد سنت دې

۱) قال الزیلعی رحمه الله غریب من حدیث انس والحدیث فی الصحیحین (ای البخاری فی الوضوء باب ۳۸ ومسلم فی الطهارة رقم ۱۸) من روایة عبدالله بن زید رضی الله عنه انه مسح راسه فاقبل بهما وادبرمرة واحدة (نصب: ۱/۷۵)_

۲) قال الزیلعی فی تثلیث المسح احادیث بعضها صریحة وبعضها بالمفهوم ثم نقل من الصریحة حدیث عامربن شقیق بن جمرة عن شقیق بن سلمة قال رایت عثمان بن عفان رضی الله عنه غسل ذراعیه ثلاثا ثلاثا ومسح راسه ثلاثا ثم قال رایت رسول الله ﷺ فعل هذا وعزاه الی ابی داود (نصب: ۱/۷۷)_

**تشريح:-** حكم الترتيب في الوضوء۞ د اودس په فرض اندامونوکي د ترتیب مسئله مختلف فیه ده.
① داحنافو عالمانو رحمهم الله په نزد د اودس په فرض اندامونوکي ترتيب سنت دي.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِي** رحمه الله **فَرْضٌ** اود شافعي رحمه الله په نزد فرض دي **لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ} الآيَةَ** ځکه چې الله تعالى فرمائيلي دي.﴿فاغسلوا وجوهكم ..﴾ **وَالْفَاءُ لِلتَّعْقِيبِ** اوفاء لپاره د تعقيب ده |

**تشريح:-** دامام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نزدفرض دي.

**دلائلهم**۞ ① ددې حضراتودليل دالله تعالى ارشاد دي.﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاة فاغسلُواْ وُجُوهَكُمْ﴾ وجه د استدلال دا ده.چې فاء لپاره د تعقيب راځي.او تعقيب دترتيب په معنى دلالت كوي.ځكه چې دتعقيب معنى ده.د فاء نه روسته په ماقبل د فاء باندې مرتب كول.نود آيت نه لمانځه ته قيام اود مخ په وينځلو كي ترتيب ثابت شو.اوكله چې د مخ په وينځلوكي ترتيب ثابت شو. نو په نورو اندامو كي هم ترتيب ثابتيږي.ځكه چې پاته اندامونه په "غسل وجه" باندې معطوف دي.اوچې كوم شى په ترتيب وار څيزباندې معطوف وي.هغه به هم ترتيب وار وي.نوځكه په پاته اندامونوكي هم ترتيب ثابتيږي. ② بله داكه په پاته اندامونو كي ترتيب نه وي.نود اودس په فرض اندامونوكي د فصل قول اختيارول په كي راځي.حالانكه د فصل څوك هم قائل نه دي.بلكه يا خوپه اندامونوكي د ترتيب قول دي.اويا دعدم ترتيب.ددې څوك قائل نه دي.چې په ځينې اندامونو كي دې ترتيب وي او په بعضو كي دې نه وي.

| |
|---|
| **وَلَنَا** اوزمونږ دليل دا دي **أَنَّ الْمَذْكُورَ فِيهَا حَرْفُ الْوَاوِ** چې په ذكر شوى آيت كي حرف واو دي **وَهِيَ لِمُطْلَقِ الْجَمْعِ بِإِجْمَاعِ أَهْلِ اللُّغَةِ** اود اهل لغت په اتفاق سره دا لپاره د مطلق جمع دي **فَتَقْتَضِي إِعْقَابَ غَسْلِ جُمْلَةِ الْأَعْضَاءِ** نوتقاضا كوي.واړه اندامونه چې د وينځلو نه روسته دې وي |

**تشريح:- جواب الاحناف فى ضمن الدليل** ۞. ① او زمونږ دليل دا دي.چې د اودس دفرض اندامونوپه مينځ كي "واو" ذكر دي.او داهل لغت په دې اجماع ده.چې واو د مطلق جمع لپاره راځي.نوكه مونږ دا هم تسليم كړو.چې فاء لپاره د تعقيب راځي.نوددې مطلب به دا وي.چې د څلورواندامو د مجموعې پرېمنځل به لمانځه ته په اودريدوباندې مرتب وي.داسې نه چې په څلورواندامونوكي به ترتيب وي. حالانكه كلام دڅلورواندامو په ترتيب كي دې.اوپه څلورو اندامونوباندې واو داخل دې.او هغه د ترتيب فائده نه وركوي.نوځكه مونږ وايو.چې د اودس په فرض اندامونو كي ترتيب فرض نه دې.خو چې نبي عليه السلام د قرآن پاك د ذكركړي ترتيب موافق اودس كړې دې.نوځكه به په اودس كي ترتيب سنت وي فرض نه.

**السوال على صاحب الهداية**۞ دلته يو اشكال دې.هغه دا چې واو لپاره د جمع دې.په دې باندې د صاحب هدايه داجماع دعوى تيك نه ده.ځكه چې ځينې حضرات واو مفيد د ترتيب ګڼړي.او ځينې مفيد د قران (اتصال)

**الجواب**۞ ابوعلى فارسى ذكركړى دى.چې د نحويانو په دې باندې اجماع ده.چې واو دمطلق جمع لپاره دې.د نحو امام سيبويه په خپل كتاب كي په اوولس ځايونو كي ذكر كړى دى.چې واو د مطلق جمع لپاره راځي.نود علامه مرغينانى په دې باندې اعتماد كړې دې.او د اجماع دعوى ئې كړې ده.او د څو كسانو اختلاف مانع د اجماع نه دې.

| |
|---|
| **وَالْبُدَاءَةُ بِالْمَيَامِنِ فَضِيلَةٌ** او ښي د ښي اړخ نه غوره ده **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبي عليه السلام فرمائيلي دى **إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يُحِبُّ التَّيَامُنَ فِي كُلِّ شَيْءٍ** الله تعالى په هر څيزكي تيامن ( دښي اړخ نه شروع) خوښوى **حَتَّى التَّنَعُّلِ وَالتَّرَجُّلِ** (¹) تردې چې د پڼړې په اچولو اوګومنځلو كي هم. |

¹) قال الزيلعى رحمه الله غريب بهذا اللفظ وروى الايمة الستة فى كتبهم من حديث مسروق عن عاشة رضي الله عنها قالت قالت:كان



**تشريح:- القولان في حكم التيامن في الوضوء** ۞. ① دويمه مسئله ابتداء د ښي اړخه ده.د لاسونواوپښو په وينځلو كي د ښي اړخ نه پيل كول افضل او مستحب دى. ② صاحب د شرح نقايه ليكلى دى.چې اصح دا ده.چې دا سنت دې.

**دلائل ترجيح سنية التيامن**۞ ① لكه چې په تحفه كي دى.چې د ښي اړخ نه په پيل باندې نبى عليه السلام هميشوالې كړې دې. ② دغه ډول نبى عليه السلام فرمائيلي دى. ﴿إذا توضأتم فابدوا بميامنكم﴾ (رواه ابوداود وابن ماجه وابن خزيمه وابن حبان) يعنى كله چې تاسو اودس كوئ.نو د ښي اړخ نه پيل كوئ. ③ دغه ډول نبى عليه السلام فرمائيلي دى.﴿ إن الله يحب التيامن في كل شئ حتى التنعل والترجل﴾ ④ او په يو حديث كي دى.﴿ حتى فى طهوره وتنعله و ترجله وشان كله﴾ يعنى الله تعالى په هر شى كي پيل دښي اړخه خوښوي.تردې چې په اودس كي اوپه چمپلان (څپلۍ) په پښو كاوه كي اوپه ګومنځلو كي او په هر شى كي .(چې د خير وي.)

### د سبيلينو نه په خروج د اودس ماتيدل (اجار سيتنلب)

| |
|---|
| **فَصْلٌ فِي نَوَاقِضِ الْوُضُوءِ**: (دا) فصل د نواقضو په بيان كي دې **اَلْمَعَانِي النَّاقِضَةُ لِلْوُضُوءِ** كوم اسباب چې د اودس ماتونكى وى **كُلُّ مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيلَيْنِ** هر هغه څيزچې د سبيلينونه اوځي |

**تشريح:- نسبة النقض الى الاجسام والمعانى** ۞ دا فصل د اودس ماتونكو څيزونو په بيان كي دې.نواقض د ناقضة جمع ده.اونقض كه اجسامو اړخ ته منسوب وى.نو د دې معنى د هغې تاليف اوتركيب باطلول وى.اوكه معانيو ته منسوب شى.نومعنى به ئې دا وى.چې د مطلوب حاصلولو نه ئې خارجوى.اودلته كي د اودس مطلوب د لمونځ اباحت دې.او دمعانيو نه مراد اودس ماتونكى علتونه او اسباب دى.په حديث كي دى.﴿ لا يحل دم إمرئ مسلم إلا باحدى ثلاث﴾ يعنى د يو مسلمان وينه نه حلاليږي.مګر په درې علتونو كي د يو په وجه.

**الخروج من احد السبيلين معتاداً وغير معتاد**۞ بهرحال د اودس په نواقضوكي هر هغه شى دې.كوم چې د متيازو يا غټو بولو د لارې نه راوځي.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ تَعَالَى (أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ)** دالله تعالى د ارشاد ﴿أَوْ جَاء أَحَدٌ مِنكُم مِن الْغَائط﴾ امله |

**تشريح:- دلائله**۞ ① دليل دا دې.چې الله تعالى فرمائيلي دى.﴿أَوْ جَاء أَحَدٌ مِنكُم مِن الْغَائط﴾ اوغائط هغه كښته مځكې ته وائى.كومې ته انسان دخپل قضاء حاجت لپاره ځى.حاصل دا دې.چې الله تعالى فرمائيلي دى.كه په تاسوكي څوك د قضاء حاجت نه واروسته راشى.او اوبه نه وى.نو تيمم دې اوكړى.نوثابته شوه.چې په خروج من السبيلين سره اودس ماتيږي.ځكه كه اودس نه ماتيدلو.نود اوبو د نشتوالى په صورت كي به د تيمم حكم ولې وركولې شو.

| |
|---|
| **وَقِيلَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** او رسول الله ﷺ ته اووئيلى شو **مَا الْحَدَثُ** چې حدث څه څيزدې؟ **قَالَ** نونبى ﷺ ورته اوفرمائيل: **مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيلَيْنِ** (¹) كوم شى چې د سبيلينونه اوځي |

رسول الله ﷺ يحب التيامن فى كل شئ حتى فى طهوره وتنعله وترجله وشانه كله (وهو فى البخارى فى الصلاة باب ٤٧ ومسلم فى الطهارة رقم ٦٦)_

¹) قال الزيلعى رحمه الله غريب وروى الدارقطنى فى كتابه غرائب مالک .... عن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ لاينقض الوضوء الا ما خرج من قبل اودبر(نصب:١\٨٣)_

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دي.چې درسول الله ﷺنه پوښتنه اوشوه چې دالله پیغمبره ﷺ حدث څه شی دي.نونبی علیه السلام ورته وویل ﴿ما يخرج من السبيلين﴾کوم شی چې د میتازو یا غټو بولو د لارے نه اوځی.نونبی حدیث کي کلمه د "ما" عامه ده.چې معتاد او غیر معتاد ټولو ته شامله ده.یعنی معتاد شی لکه متیازے اوغټ بول شو.اوغیر معتاد لکه چینجي او ګټکے اود استحاضه وینه ده.دا واړه ناقض د اودس دی.

| |
|---|
| **وَكَلِمَةُ مَا عَامَّةٌ** اوکلمه د "ما" د عموم لپاره ده **فَتَتَنَاوَلُ الْمُعْتَادَ وَغَيْرَهُ** نومعتاد اوغیر معتاد دواړو ته شامله شوه. |

**تشریح:- خلاف مالک رحمه الله في غيرالمعتاد** ۞ حضرت امام مالک رحمه الله فرمائی.چې غیر معتاد شیان مثلا چینجي، ګټکے،د استحاضه وینه، سلسل البول او د خیټے نه هوا وتل وغیره ناقض داودس نه دی.ځکه چې الله تعالی د غټو بولو نه په کنایت سره د قضاء حاجت ذکر اوکړلو.اوقضاء حاجت معتاد دي.

**جواب الاحناف في ضمن الدليل**۞لیکن موږ وایو.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی.﴿المستحاضة تتوضا لوقت كل صلاة﴾ یعنی مستحاضه ښځه به اودس کوی.دهر لمانځه په وخت کي او استحاضه غیر معتاده ده.نومعلومه شوه.چې غیر معتاد شیان چې د سبیلینو نه اوځی.هغه هم ناقض د اودس دی.

### د غیرسبیلینو نه په خروج اودس ماتیدل.

| |
|---|
| **وَالدَّمُ وَالْقَيْحُ إِذَا خَرَجَا مِنَ الْبَدَنِ** او وینه او پیپ (زوه)کله چې دواړه دبدن نه ووځی **فَتَجَاوَزَا إِلَى مَوْضِعٍ** اوهغه ځائي ته اورسی. **يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيرِ** کوم پورې چې د پا کاوه حکم ملحق شوې وی **وَالْقَيْءُ مِلْءُ الْفَمِ** اوپه ډکه خوله قئ |

**تشریح:- المذهبان في نقض الوضوء بخروج الدم والقيح من البدن** ۞ ①اوپه نواقضو د اودس کي دا هم ده.چې د ژوندی سړی د بدن نه وینه یاپیپ(زوه) اوځی.او بیا ښکاره شی.په داسې ځائې کي په تجاوز کاوه سره.چې په غسل یا په اودس کي دکوم د پا کاوه حکم شوې وی.یعنی دسبیلینونه علاوه د بل ځائې نه په خروج کي صرف د پلیتۍ ښکاره کیدل کافی نه دی.بلکه بهیدل شرط دي. نوکه وینه د زخم سربیره شوه.لیکن بهیدلے نه وی.نو په دې باندې اودس نه ماتیږی. اوپه نواقضو د اودس کي په ډکه خوله قئ کول دی.اوپه ډکه خوله قئ دا دي.چې هغه بغیر د مشقت اوتکلیف نه بندولے شی.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی **الْخَارِجُ مِنْ غَيْرِ السَّبِيلَيْنِ لَا يَنْقُضُ الْوُضُوءَ** چې دغیر سبیلین نه وتلے شی ناقض د اودس نه دې **لِمَا رُوِيَ** ځکه چې روایت شوې دي **أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَاءَ** چې نبی ﷺ قئ اوکړو **فَلَمْ يَتَوَضَّأْ**(1)خو اودس ئې اونکړو |

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله په نزد د غیرسبیلین نه د یوڅیز په وتلو اودس نه ماتیږی.

**دلائله**۞ ①دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دي.چې نبی ﷺ قئ اوکړلو.خواودس ئې اونکړلو .نومعلومه شوه.چې قئ ناقض داودس نه دي.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ غَسْلَ غَيْرِ مَوْضِعِ الْإِصَابَةِ أَمْرٌ تَعَبُّدِيٌّ** او بله ددے وجه چې د نجاست د ځائې نه علاوه د بل ځائې پریمنځل امرتعبدی دي **فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِ الشَّرْعِ** نوپه مورد د شرع پورې به خاص وی **وَهُوَ الْمَخْرَجُ الْمُعْتَادُ** او هغه مخرج معتاد دي. |

---

(1) قال الزيلعي رحمه الله غريب جدا وروى من حديث تميم الداري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الوضوء من كل دم سائل اخرجه الدارقطني في سننه (١٥٧/١)_



**تشریح:-** دوهم عقلی دلیل دا دي.چې دخروج من السبیلین په صورت کي د څلورواندامونو د وینځلو حکم امر تعبدی (خلاف قیاس) دي.ځکه چې دعقل تقاضا دا ده.چې په کوم ځائې پورې نجاست لګیدلے وی.هغه ځائې اووینځلے شی.خودد ے خلاف د نورو اندامو د وینځلو حکم خلاف القیاس صرف د بندګۍ ښکاره کاوه لپاره دي.اوقاعده دا ده.چې په امرتعبدی یعنی خلاف القیاس باندې بل شی نشی قیاس کولې.نود څلورواندامو د وینځلو حکم دے‌به مورد د شرع پورې خاص وی. او مورد د شریعت صرف مخرج معتاد دی.یعنی د مخرج معتاد (سبیلینو)نه که نجاست خارج شی.نو د څلورو اندامونو د وینځلو یعنی د اودس حکم دي.اوکه د مخرج معتاد نه علاوه یعنی د غیر سبیلینونه نجاست خارج شو.نود څلورو اندامونو د وینځلوحکم به نشی کولې . نومعلومه شوه.چې خارج من غیر السبیلین ناقض د اودس نه دی.

### دغیر سبیلین نه وینې وغیره په وتلو د اودس ماتیدلو دلائل

| |
|---|
| **وَلَنَا** او زموږ دلیل دا دي **قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** .چې نبی ﷺ فرمائیلی دی **الْوُضُوءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ** د هرے بهیدونکې وینے نه اودس ( واجب) دي |

**تشریح:- دلائل الاحناف**۞ ①او زموږ دلیل دا دي.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. اودس (واجب) دي.د هر هغه وینے د امله چې د بدن نه اوځی. اواوبهیږی.په دې حدیث باندې داسې استدلال کیږی.چې د داسې ترکیب نه هم وجوب معلومیږی. لکه د نبی ﷺ قول ﴿في خمس من الابل شاة﴾په اتفاق سره فرضیت ثابت دي.او په ﴿انما الماء من الماء﴾کي د خروج د منۍ د امله په اتفاق سره په وجوب د غسل دلالت کوی.نو ددے حدیث معنی به دا وی.چې ﴿توضوء من كل دم سائل من البدن﴾ یعنی دهر هغه وینے نه اودس کوئ.چې د بدن نه اوځی.او اوبهیږی

| |
|---|
| **وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او د نبی ﷺ قول دي **مَنْ قَاءَ** چا چې قئ اوکړلو **أَوْ رَعَفَ فِي صَلَاتِهِ** یا ئې پزه ماته شوه په لمانځه کي **فَلْيَنْصَرِفْ** نوهغه دي واروسته لاړ شی **وَلْيَتَوَضَّأْ** اودس دي اوکړی **وَلْيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ** او په خپل لمونځ دي بنا اوکړی **مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ** (1) ترڅو پورې چې ئې خبرے نه وی کړې |

**تشریح:-** دوهم دلیل دا دي.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی.کوم کس چې قئ اوکړی.یا ئې په لمانځه کي پزه ماته شی.(وینه ترے روانه شوه.) نوداسې کس دې بیا لاړشی.او اودس دې اوکړی.او په خپل لمونځ دې بنا اوکړی.ترڅو چې ئې خبرے نه وی کړې.حاصل د استدلال دا شو.چې په حدیث کي د اودس حکم شوې دی.اوامر لپاره د وجوب وی.نو معلومه شوه. چې په قی کاوه او پوزے ماتیدو باندې اودس واجبیږی.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ خُرُوجَ النَّجَاسَةِ مُؤَثِّرٌ فِي زَوَالِ الطَّهَارَةِ** او بله دا چې د نجاست خروج د طهارت په زوال کي موثر دې **وَهَذَا الْقَدْرُ فِي الْأَصْلِ مَعْقُولٌ** اودا مقدار په اصل کي معقول دي. **وَالْاقْتِصَارُ عَلَى الْأَعْضَاءِ الْأَرْبَعَةِ غَيْرُ مَعْقُولٍ** او په څلورواندامونو باندې اکتفا کول غیر معقول دی **لَكِنَّهُ يَتَعَدَّى ضَرُورَةَ تَعَدِّي الْأَوَّلِ**.لیکن دا به متعدی کیږی د اول د متعدی کیدو د امله **غَيْرَ أَنَّ الْخُرُوجَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ بِالسَّيَلَانِ** مګر چې دا خروج متحقق شی.په بهیدو سره **إِلَى مَوْضِعٍ يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيرِ** داسې ځائې ته چې هغے پورې د پا کاوه حکم لاحق شوې وی. **وَبِمِلْءِ الْفَمِ فِي الْقَيْءِ** او په ډکه خوله قی سره **لِأَنَّ بِزَوَالِ الْقِشْرَةِ تَظْهَرُ النَّجَاسَةُ فِي مَحَلِّهَا** ځکه چې په پټ لرې کیدو سره نجاست په خپل محل کي ښکاره کیږی **فَتَكُونُ بَادِيَةً** نودے ته د نجاست ښکاره کیدل وائی **لَا خَارِجَةً** خارج کیدونکې ورته نه وائی |

**تشریح:- الجواب عن الشافعي رحمه الله في ضمن الدليل الثالث العقلي**۞دلیل عقلی کوم چې په حقیقت کي د امام شافعی رحمه الله د عقلی دلیل نه ځواب دي.د هغے حاصل دا دي.چې دسبیلینو نهٔ د نجاست خروج د طهارت په

---

(1) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابن ماجه في الاقامة باب ١٣٧)_

زوال كي موثردي.يعنى چې د سبيلينو نه نجاست خارج شی.نوطهارت زائله كيږي.او دومره مقدار په اصل يعنى مقيس عليه (چې په خروج من السبيلين)كي معقول يعنى دقياس مطابق دي.اوپه ځلورو اندامونو باندې اكتفاء كول غير معقول يعنى خلاف قياس ده. (يعنى پكار دا وه.چې په خروج د نجاست من السبيلين سره زوال د طهارت صرف د سبيلينو نه شوې وو.خو موږ ګورو.چې دلته كي خروج د نجاست د طهارت په زائله كاوه كي صرف په سبيلينو باندې اكتفاء اونكړله.بلكه د اودس ځلورو اندامونو ته نې تعدى اوتجاوز اوكړلو.حالانكه پكار دا وه. چې دا تجاوز او تعدى واړه بدن ته شوې وه.لكه په غسل كي چې خروج د منی اوشی.نو زوال د طهارت د واړه بدن نه كيږي.خودلته كي د اودس په باب كي د واړه بدن نه د طهارت زوال نه كيږي.بلكه صرف د اودس د اندامونو نه كيږي.او په دې اكتفاء كولې شی. نودلته كي په حقيقت كي دوې (دوه) خبرے خلاف القياس دی.يودا چې طهارت صرف د سبيلينو نه زائله نشو.بلكه تعدى او تجاوز نې د سبيلينونه اوكړلو .دويمه دا چې تعدى او تجاوز صرف د اودس ځلورو اندامونو پورې خاص شو. واړه بدن ته ګډ نه شو .نوداودس په ځلورو اندامونو دا بس والے او اكتفاء هم خلاف القياس شوه. نوخروج د نجاست من غير السبيلين په سبيلين باندې قياس شو.اود طهارت د زوال حكم اولګولو شو.(يعنى څنګه چې خروج د نجاست من السبيلين د طهارت په زائله كاوه كي موثر دي.دغه ډول به خروج د نجاست من غيرالسبيلين هم په زوال د طهارت كښے موثر وی.)اود زوال د طهارت لپاره چونكه طهارت لازم دې.(يعنى چې د كوم ځائې نه طهارت زائله كيږي. او ختميږي.نو دا لازمی خبره ده.چې هلته به د وړاندې نه طهارت موجود وی.لكه چې د يو ځائې نه د رڼا په راتلو سره چاغه (تياره) ختمه شی.نودا ښكاره خبره ده.چې د رڼا د راتلو نه وړاندې به هلته چاغه (تياره) موجود وه.)څكه چې هركله په خروج د نجاست من غير السبيلين سره طهارت زائله شو.نو د ځلورو اندامو د طهارت حكم به پخپله ثابت شی.(يعنى دا به معلومه شی.چې دا ځلور اندامونه وړاندې پاك وو.خو په خروج د نجاست من غيرالسبيلين سره ترے طهارت زائله شو.) لنډيز دا چې كله مقيس عليه اول يعنى خروج د نجاست من غير سبيلين نه زوال د طهارت ته متعدى شو.(اودا حكم اولګولې شو. چې د غيرسبيلين نه د نجاست په وتلو صرف د هغه محل نه زوال د طهارت نه راځی.د كوم ځائې نه چې خروج د نجاست شوې دې.بلكه په زوال د طهارت كي دخروج د محل نه تجاوز اوتعدیكوی.او دا تجاوز خلاف القياس دې.) نو د ځلورو اندامونو په وينځلو باندې اكتفاء كول (اګرچې خلاف القياس دې.) هم متعدى شو.څكه چې دا ددے د لوازماتو نه ده.

يعنى لكه څنګه چې په خروج من السبيلين كي په حقيقت كي دوې (دوه) خبرے خلاف القياس وې. يو تعدى او تجاوز،په دې خبره كي خروج من السبيلين طهارت زائله ګوی.او بله دا چې دا تجاوز اوتعدى د واړه بدن په ځائې صرف د اودس ځلورو اندامونو پورې وی.نولكه څنګه چې هلته دا دواړه خبرے خلاف القياس دی. دلته په مسئله ده غيرالسبيلين كي به هم دا دواړه خبرے خلاف القياس وی. داسې نه چې موږ د غيرالسبيلين نه صرف تعدى خو اومنو.اود اودس په ځلورو اندامونو باندې اكتفاء ددے وجې اونه منو.چې دا اكتفاء خلاف القياس ده. داخبره څكه ټيك نه ده.چې لكه څنګه په ځلورو اندامونو اكتفاء كول خلاف القياس ده. دغه ډول دخروج نجاست د محل نه د طهارت زائله كاوه تعدى هم خلاف القياس ده.نوچې د تعدى په صورت كي په خلاف القياس عمل كولې شی.نوپه ځلورو اندامونو د اكتفاء په مسئله كي به هم په خلاف القياس عمل كولې شی. والله اعلم)

| |
|---|
| بِخِلَافِ السَّبِيلَيْنِ د سبيلينو په خلاف، لِأَنَّ ذٰلِكَ الْمَوْضَعَ لَيْسَ بِمَوْضِعِ النَّجَاسَةِ څكه چې دا محل، محل دنجاست نه دې فَيُسْتَدَلُّ بِالظُّهُورِ عَلَى الْإِنْتِقَالِ وَالْخُرُوجِ چې په ښكاره كيدو سره پرے په انتقال استدلال كولے شی. |

**تشريح:- السوال** ۞دلته كي يو سوال كيږي.هغه دا چې د غير سبيلين نه نجاست وتل د سبيلين نه د نجاست وتلو په څير دی.نولكه څنګه چې په سبيلينو كي صرف خروج معتبر دې.يعنى چې څنګه نجاست خارج شی.نواودس ماتيږي.نو دغه ډول په غير سبيلين كي هم صرف خروج معتبر ګرځول پكار وو.حالانكه تاسو د خروج سره دسيلان شرط هم لګوئ؟

**الجواب** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله په ځواب كي اوفرمائيل: چې معتبر خو په اصل او فرع دواړو كي صرف خروج دې.ليكن خبره دا ده.چې په وينه او پيپ كي خروج هله متحقق كيږي.چې داسې ځائې ته سيلان اوشی.كوم پورې چې په غسل يا اودس كي د طهارت حكم لاحق شوې وی.او په قی كي به خروج په هغه وخت كي معتبر وی.چې هغه په ډكه خوله وی.

**دليل هذا التوجيح** ۞ دليل نې دا دې.چې د څرمنې په پټ پريوتو باندې د نجاست خروج نه دې راغلې.بلكه په خپل محل كي ښكاره شو.نو دې نجاستته "باديه" يعنى ښكاره كيدونكې وئيلی شی.وتونكې نه.د سبيلينوپه خلاف څكه چې دا ځائې د نجاست پاتې كيدو محل نه دې.نوهلته به د نجاست په ښكاره كيدو سره دا ګنړلې شی.چې هغه دخپل ځائې نه منتقل شو. او خارج شو.حاصل دا چې په حقيقت كي خو معتبر خروج دې.او د خروج تحقق په سبيلينو كي داسې كيږي چې نجاست د محل نه منتقل شی.اود متيازو يا غټو بولو اندام خولې ته راشی.اود سبيلينونه علاوه كي صرف د نجاست په ښكاره كيدو سره دا نه متحقق كيږي.چې دخپل ځائې نه منتقل شو.څكه چې دهرے څرمن د لاندې وينه وی.نود څرمنے د پټ په لرې كيدو سره صرف په نظر راغله.او د خپل ځائې نه منتقل كيدل هم به هله كيږي.چې هغه اوبهيږي.

### په قی كي د امام زفر رحمه الله خلاف

| |
|---|
| وَمِلْءُ الْفَمِ اوډكه خوله دا ده أَنْ يَكُونَ بِحَالٍ لَا يُمْكِنُ ضَبْطُهُ إِلَّا بِتَكَلُّفٍ چې بغير د تكلف نه دهغے قابو كولوممكن نه وی لِأَنَّهُ يَخْرُجُ ظَاهِرًا نو چې ظاهر ته راوځی فَاعْتُبِرَ خَارِجًا نوخارج ګنړلې شی |

**تشريح:- نقض الوضوء بالقئ**۞ ①اوپه قی كي به خروج په هغه وخت كي متحقق وی.چې په ډكه خوله وی.اوډكه خوله دا ده.چې بغير د مشقت نه د هغے ايسارول ممكن نه وی.

**توجيح قول الاحناف**۞ دليل ددے دا دې.چې د خولې د دننه حصې دوې (دوه) حيثيتونه دی.ظاهر اوباطن.څكه كه خوله كهولاو كړی.نود ظاهر سره مشابه وی.اوكه خوله بنده كړی.نودباطن سره مشابه وی.نوموږ د دواړو مشابهتونو لحاظ ساتلے دې.وائ‌كه قئ په ډكه خوله نه وی.نو د باطن د مشابهت خيال به ساتلی شی.او دا به وئيلی شی.چې خروج نه دې واقع شوې.څكه چې په دې صورت كي عدم خروج غالب دې.نو په دې صورت كي به اودس نه ماتيږي.اوكه قئ په ډكه خوله وی.نو د ظاهر د مشابهت اعتبار به كولې شی.څكه چې په دې صورت كي ظاهر غالب دې.نو په دې صورت كي به اودس ماتيږي.

| |
|---|
| وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله اوامام زفر رحمه الله فرمايي قَلِيْلُ الْقَيْءِ وَكَثِيْرُهُ سَوَاءٌ چې د قی كم اوزيات واړه برابر دي وَكَذَا لَا يُشْتَرَطُ السَّيَلَانُ عِنْدَهُ اعْتِبَارًا بِالْمَخْرَجِ الْمُعْتَادِ او دغه ډول په مخرج معتاد باندې قياس كوی چې د سيلان شرط په كي نشته وَلِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْقَلْسُ حَدَثٌ (١)اود نبی ﷺ د قول «القلس حدث» د اطلاق د امله |

**تشريح:- توضيح مذهب زفر رحمه الله** ۞ دامام زفر رحمه الله مذهب دا دې چې د هغوی په نزد خارج من غير سبيلين مطلقاً ناقض د اودس دې.كم او ډير قے د اودس په ماتولو كي دواړه برابر دی.دغه ډول دهغوی په نزد سيلان هم شرط نه دې.د سيلان د عدم شرطيت لپاره امام زفر رحمه الله په مخرج معتاد باندې قياس دليل ګرځولې دې.يعنى څنګه چې د مخرج معتاد يعنى د سبيلينو نه كوم شی اوځی.نوپه هغے باندې د اودس ماتيدو لپاره د سيلان شرط نشته.او د اودس په ماتيدوكي د كم او زيات قی په برابريدو باندې دليل دا دې.چې نبی ﷺ مطلق قی ته حدث يعنى د اودس ماتونكې وئيلې دې.

(١) من حديث سوار بن مصعب عن زيد بن على عن ابيه عن جده ؓ اخرجه الدارقطنى فى سننه (١١٥٥)_

وَلَنَا اوزموږ دليل دا دی قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. لَيْسَ فِي الْقَطْرَةِ وَالْقَطْرَتَيْنِ مِنَ الدَّمِ وُضُوءٌ د وينې په يو څاڅکی اودوو څاڅکو کې اودس نشته إِلَّا أَنْ يَكُونَ سَائِلًا(١) مگر دا چې بهيدونکې وی وَقَوْلُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوحضرت علی رضي الله عنه قول دی حِينَ عَدَّ الْأَحْدَاثَ جُمْلَةً په کوم وخت کې چې هغوی واړه نواقض شمار کړل.(نوپه هغې کې ئې ونيلی وو.) أَوْ دَسْعَةً تَمْلَأُ الْفَمَ(٢) يا قی چې په ډکه خوله وی

**تشريح:- دليل عدم السيلان لنقض الوضوء**اوپه دې باندې زموږ دليل چې د خارج من غير سبيلين د نقض وضوء لپاره سيلان شرط نه دی.د نبی ﷺ قول دی.چې د وينې په يو څاڅکی او دوو څاڅکو اودس نه واجبيږی.مگر دا چې وينه بهيدونکې وی. «دارقطنی از شرح نقايه» اوپه کم قی د اودس نه ماتيدو لپاره د نبی ﷺ دا قول شاهد عدل دی.چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. «يعاد الوضوء من سبع من أقطار البول والدم السائل والقيح ومن دسعة تملأ الفم ونوم مضطجع وقهقهة الرجل في الصلاة و خروج الدم» يعنی اودس به داووه څيزونو په وجه دوباره کولې شی .دمتيازو څخيدلو سره.اود بهيدونکې وينې سره، او پيپ او قئ سره،چې په ډکه خوله وی.او په ډډه خوب کاوه سره.اود سړی په لمانځه کې په خندائې قهقهه سره.او د وينې په وتلو سره.

**الاستدلال**ددې حديث نه معلومه شوه.چې په ډکه خوله قئ ناقض د اودس دی.هم دا خبره علامه مرغينانی کړې ده.چې حضرت علی رضي الله عنه داودس واړه نواقض شمار کړل.او په هغې کې دی.چې «او دسعة تملأ الفم» يعنی قئ چې په ډکه خوله وی.

وَإِذَا تَعَارَضَتِ الْأَخْبَارُ اوچې روايات متعارض شو يُحْمَلُ مَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَى الْقَلِيلِ نو کوم چې امام شافعی رحمه الله روايت کړې دی.هغه به په قليل حمل کولې شی وَمَا رَوَاهُ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَى الْكَثِيرِ او کوم چې امام زفر رحمه الله روايت کړې دی.هغه به په کثير حمل کولې شی وَالْفَرْقُ بَيْنَ الْمَسْلَكَيْنِ او توپير په دواړو مسلکونوکې هغه دی قَدْ بَيَّنَّاهُ کوم چې موږ وړاندې بيان کړې دی.

**تشريح:- التعارض بين الحديثين**پاته شوه دا خبره.چې د قی په ناقض کيدو کې روايات متعارض دی.ځکه چې دامام شافعی رحمه الله دحديث «قاء فلم يتوضأ» نه معلوميږی.چې قئ مطلقاً ناقض داودس نه دی.او د امام زفر رحمه الله د پيش کړی حديث «القلس حدث» نه معلوميږی.چې قئ مطلقاً ناقض د اودس دی.

**التطبيق بين الحديثين**ددې په مينځ کې دتطبيق صورت دا دی.چې دامام شافعی رحمه الله روايت کړې حديث «قاء فلم يتوضأ» په قليل قی باندې حمل شی. او د امام زفر رحمه الله روايت کړې حديث «القلس حدث» په کثير قی باندې حمل شی.نوځه تعارض به پاتې نشی.او توپير د مسلك په معتاد او غير معتاد دواړو کې دی.او هغه موږ وړاندې بيان کړې دی.

**د متفرق قی جمع کولو اصول**

وَلَوْ قَاءَ مُتَفَرِّقًا اوکه متوضی څوکرته قئ اوکړلو بِحَيْثُ لَوْ جُمِعَ په داسې طريقه که جمع کړې شی. يَمْلَأُ الْفَمَ نو خوله

١) من حديث حسن بن علی الرزاز اخرجه الدارقطنی فی سننه (١٥٧١١)

٢) قال الزيلعی رحمه الله غريب واخرج البيهقی فی الخلافيات عن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ يعاد الوضوء من سبع من افطارالبول والدم السائل والقئ ومن دسعة تملا الفم ونوم المضطجع وقهقهة الرجل فی الصلاة وخروج الدم (نصب الراية:٩١١١)_



ډکوی فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله نودابويوسف رحمه الله په نزد يُعْتَبَرُ اتِّحَادُ الْمَجْلِسِ د مجلس يو والې معتبر دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله اود امام محمد رحمه الله په نزد يُعْتَبَرُ اتِّحَادُ السَّبَبِ() د سبب يووالې معتبر دی وَهُوَ الْغَثَيَانُ او سبب ئې جوش دی

**حل اللغة*** ① يملأ: ملأ: ډکيدل ② غثيان: د قی جوش

**تشريح:- اختلاف الصاحبين في جمع متفرق القئ** ①مسئله دا ده.که متوضی څوکرته قئ اوکړلو.اوهر ځل د ډکې خولې نه کم وو.او په داسې اندازه وو.که چرته جمع کړې شی.نو خوله ډکوی.نوپه دې صورت کې دامام ابويوسف رحمه الله په نزد د مجلس اتحاد معتبر دی.نوکه په يو مجلس کې څو ځله قئ اوکړی.که سبب ئې يو وی او که مختلف.نوجمع کولې به شی.ځکه چې د متفرقاتو په جمع کاوه کې د مجلس ډير تاثير دی.مثلاً که په يومجلس کې د سجدې يوآيت بار بار اولولی.نوصرف يوه سجده واجبيږی. ② اود امام محمد رحمه الله په نزد د سبب اتحاد معتبر دی.اودقی سبب د زړه جوش دی.نوکه د هر ځل دقی سبب يووی.که مجلس يو وی اوکه زيات وی.هغه به جمع کولې شی.که خوله پرې ډکه شی.نواودس به ماتوی.دليل دا دی.چې حکم د سبب د ثبوت مطابق وی. نو ځکه به د سبب د اتحاد د امله حکم هم يو کيږی.

ثُمَّ مَا لَا يَكُونُ حَدَثًا بيا چې کوم شی حدث نه وی لَا يَكُونُ نَجِسًا هغه به نجس هم نه وی يُرْوَى ذٰلِكَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله (٢) دا حکم دامام ابويوسف رحمه الله نه نقل کولې شی

**تشريح:- القاعدة والخلاف فيها** علامه مرغينانی رحمه الله يوه ضابطه نقل کړې ده.① او هغه ضابطه د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل کولې شی.ضابطه دا ده.چې کوم شی د اودس ناقض نه وی.هغه به پليت هم نه وی.نوقليل قئ او وينه چې بهيدونکې نه وی.دا به نجس نه وی.ځکه چې ناقض نه دی.اودا قول زيات صحيح دی.ددې امله چې د شريعت د حکم مطابق دا نجس نه دی.ځکه چې طهارت پرې نه ماتيږی.

وَهُوَ الصَّحِيحُ اوهم دا صحيح دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَجِسٍ حُكْمًا ځکه چې هغه حکماً نجس نه دی حَيْثُ لَمْ تَنْتَقِضْ بِهِ الطَّهَارَةُ ځکه چې په هغې باندې طهارت نه ماتيږی

**تشريح:-** په «وهو الأصح» وئيلو سره د امام محمد رحمه الله د قول نه احتراز دی.ځکه چې امام محمد رحمه الله قئ قليل او دم غير سائل ته نجس وائی.

**د قی قسمونه اوپه دې د اودس په نقض کې اختلاف**

وَهٰذَا اودا حکم إِذَا قَاءَ په هغه وخت کې دی.چې ده قئ کړې وی مِرَّةً د ترخو اوبو أَوْ طَعَامًا أَوْ مَاءً يا دخوراك يا د اوبو فَإِنْ قَاءَ بَلْغَمًا اوکه د بلغم قئ اوکړی فَغَيْرُ نَاقِضٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نو د امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نزد غير ناقض دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله (٢) اوابويوسف رحمه الله فرمايې نَاقِضٌ چې ناقض دی إِذَا كَانَ مِلْءَ الْفَمِ خوچې په ډکه خوله ئې کړې وی وَالْخِلَافُ فِي الْمُرْتَقِي او اختلاف په هغه بلغم کې دی

١) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی الكفاية (٤٠١١) والخانية (١٨١١) والهندية (١١١١) والدرالمختار(١٠٣١١)نقلا عن القول الراجح (٤١١)-

٢) القول الراجح هوهذا قول ابی يوسف رحمه الله كذا فی فتح القدير(٤٠١١) والكفاية (٤٠١١) والهندية (١٢١١) والسعاية (٢٢٥١١) نقلا عن القول الراجح (٥١١)-

٣) القول الراجح الاختلاف صوری حيث تصور الطرفين رحمهما الله ان البلغم يهيج من جواب الفم فاجا انه طاهر وتصور لابی يوسف انه يهيج من البطن ويعلومنه فاجاب بانه نجس كذا فی الكفاية (٤١١١) وردالمحتار(١٠٣١١) وبدائع (٢٧١١) نقلا عن القول الراجح (٦١١)_

**مِنَ الْجَوْفِ** چې د خيټې د مينځ نه راوخيژي. او(قئ شوې وي **أَمَّا النَّازِلُ مِنَ الرَّأْسِ** او پاته شو.هغه چې د سر نه راغلې وي.(اوقئ شوې وي **فَغَيْرُ نَاقِضٍ بِالْإِتِّفَاقِ** نو هغه په اتفاق سره غيرناقض دې **لِأَنَّ الرَّأْسَ لَيْسَ بِمَوْضِعِ النَّجَاسَةِ** ځكه چې سر د نجاست ځائې نه دې

**حل اللغة**° ① مرة: صفرا يا سودا ② مرتقى: ختونكې ③نازل: كوزيدونكې

**تشريح:- المراد من البلغم في المتن**◉په دے عبارت كې علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې په ډكه خوله قئ باندې د اودس ماتيدل په هغه وخت كې دى.چې د ترخو اوبو قئ ئې كړې وي.يا دخوراك يا د اوبو،

**الصورتان للبلغم الخارج من الفم**◉خوكه ده د خالص بلغم قئ كړې وي.چې په هغې كې د خوراك وغيره څه ګډون نه وي.نو ددے دوې (دوه) صورتونه دى.① يا خو به دا دماغو نه راغلى وي.② اويا به د جوف معدے نه راختلے وي.اول خو په اتفاق سره ناقض د اودس نه دې.ځكه چې سر او دماغ د نجاست محل نه دې.او دوهم صورت ①دطرفينو رحمهما الله په نزد ناقض نه دې.② خو دامام ابويوسف رحمه الله په نزد ناقض دې.خوپه دے شرط چې په ډكه خوله وي.

**لِأَبِي يُوسُفَ** رحمه الله د ابو يوسف رحمه الله دليل دا دې **أَنَّهُ نَجِسٌ بِالْمُجَاوَرَةِ** چې راختونكې بلغم د اتصال (نجاست) د امله نجس دې

**تشريح:- دليل ابى يوسف** رحمه الله ◉ دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چې بلغم اګرچې په خپله نجس نه دې.ليكن د معدے سره د اتصال د امله نجس شو.او هغه ځائې ته راووتلو.كوم پورې چې د وينځلو حكم لاحق شوې دې.يعنى په غسل كې مضمضمه كول فرض دى.نو چې خروج د نجاست راغلو.ناقض د اودس به وي. لكه څنګه چې د خوراك او د ترخو اوبو قئ دې.

**وَلَهُمَا** او دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې **أَنَّهُ لَزِجٌ** چې بلغم يو زيږه څيزدې **لَا تَتَخَلَّلُهُ النَّجَاسَةُ** دهغې مينځ ته نجاست ننشى ورتلې **وَمَا يَتَّصِلُ بِهِ** اوكوم نجاست چې هغې سره متصل وي **قَلِيلٌ** هغه كم وي **وَالْقَلِيلُ فِي الْقَيْءِ غَيْرُ نَاقِضٍ** او په قى كې قليل غير ناقض دې.

**حل اللغة**° ① لزج: لهيدار

**تشريح :- دليل الطرفين** ◉او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چې بلغم زيګ وي.دے پورې نجاست نه انخلى.او كوم نجاست چې دے پورې لګيدلے وي.نوهغه لږ وي.او په قى كې كم مقدار ناقض داودس نه دې.نو ځكه د بلغم قے ناقض د اودس نه شو.

**د چكه وينې په قى كې اختلاف**

**وَلَوْ قَاءَ دَمًا** اوكه د وينے قے ئې اوكړلو **وَهُوَ عَلَقٌ** اوچكه وينه وه **يُعْتَبَرُ فِيهِ مِلْءُ الْفَمِ** نوپه دے كې به ډكه خوله معتبر وي **لِأَنَّهُ سَوْدَاءُ مُحْتَرِقَةٌ** ځكه چې دا سوزيدلے "سوداء" ده

**حل اللغة**° ① علق: ټينګه شوې وينه ②سوداء: په اخلاط اربعه كې د يواخلاط نوم ③محترقة: سوزيدلې

**تشريح:- نقض الوضوء بقئ الدم الجامد بشرط ملا الفم**◉ صورت د مسئلې دا دې.كه د وينے قئ ئې اوكړلو.نوددے وينے دوې (دوه) قسمونه دى.يا خوبه هغه وينه چكه وي يا بهيدونكې.كه چكه وي.نوپه دے كې ډكه خوله معتبر ده.ځكه چې دا سوزيدلے سوداء ده.اودا د معدے نه راوځى.او د معدے نه راوتونكې شى ناقض داودس وى . خو په دے شرط چې هغه په ډكه خوله وى.

**وَإِنْ كَانَ مَائِعًا** او كه هغه وينه بهيدونكې وه **فَكَذَٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله نو دامام محمد رحمه الله په نزد هم دا حكم دې **اعْتِبَارًا بِسَائِرِ أَنْوَاعِهِ** د قى په ټولو انواعو باندې ئې قياس كوى



**تشريح:- نقض الوضوء بقئ الدم المائع بشرط ملا الفم عندمحمد** ◉ اوكه وينه بهيدونكې وي.نوامام محمد رحمه الله په دے كې هم د ډكے خولې خيال ساتي. يعنى كه دومره قے وي.چې خوله ډكوي.نوناقض به وي ګنى نه به وي.

**دليل محمد** رحمه الله ◉ دليل دا دې.چې امام محمد رحمه الله د وينے قئ په نورو قيونو باندې قياس كړې دې.او نور پنځه دى.(١) دخوراك ② داوبو③ د ترخو اوبو④ دصفراء⑤ د سوداء .يعنى لكه څنګه چې په دے پنځوكې د اودس ماتيدو لپاره ډكه خوله شرط ده.نودغه ډول به د وينے په قى كې هم ډكه خوله معتبر وى.

**وَعِنْدَهُمَا** [1] او د شيخينو رحمهما الله په نزد **إِنْ سَالَ بِقُوَّةِ نَفْسِهِ** وينه په خپل قوت سره اوبهيدله **يَنْتَقِضُ الْوُضُوءُ** نواودس مات شو **وَإِنْ كَانَ قَلِيلًا** اګركه لږه وى **لِأَنَّ الْمَعِدَةَ لَيْسَتْ بِمَحَلِّ الدَّمِ** ځكه چې معده د وينے ځائې نه دې **فَيَكُونُ مِنْ قُرْحَةٍ فِي الْجَوْفِ** نودا به د خيټې د زخم نه راغلے وى.

**حل اللغة**° ① قرحة: پولنى ⑤ جوف: خيټه

**تشريح:- عدم النقض بقئ الدم المائع مطلقاً عند الشيخين**◉اوشيخين رحمهما الله فرمائى.كه وينه اووتله.اوپه خپل قوت سره اوبهيدله.نواودس به ماتيږى.اګرچې كمه وى.

**دليل الشيخين** رحمهما الله ◉دليل دا دې.چې معده د وينے محل نه دې.نوهم دا به وئيلى شى.چې دا وينه د خيټے د څه زخم نه راوتلے ده.نودا به په وينه باندې قياس كولې شى.كوم چې د ښكاره زخم نه راوتلے وى.اوكومه وينه چې د ظاهرى زخم نه راوتلے وى.نوچونكه په هغې كې داودس د نقض لپاره سيلان معتبر دې.نودلته كې به هم سيلان معتبر وى.كه په ډكه خوله وى او كه نه وى.

**د سر نه د راغلې وينې حكم**

**وَلَوْ نَزَلَ مِنَ الرَّأْسِ** اوكه وينه راغله د سر نه **إِلَىٰ مَا لَانَ مِنَ الْأَنْفِ** د پوزے نرمے حصې ته **نَقَضَ بِالْإِتِّفَاقِ** نو دے اودس مات كړلو په اتفاق سره **لِوُصُولِهِ إِلَىٰ مَوْضِعٍ** ځكه چې دا وينه داسې ځائې ته اورسيدله **يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيرِ** چې هغے پورې د پاكوالى حكم لاحق دې **فَيَتَحَقَّقُ الْخُرُوجُ** نو خروج (سيلان) متحقق شو

**حل اللغة**° ① لان: يلين لينًا (ض): نرميدل

**تشريح:- نقض الوضوء بالدم النازل من الانف**◉مسئله دا ده.چې وينه دسر نه راشى. او اوبهيږى د پوزے نرمے حصې ته لاړه شى .نو په دے باندې په اتفاق سره اودس ماتيږى.دليل دا دې.چې دا وينه داسې ځائې ته اورسيدله . چې هغے پورې د پاكوالى حكم لاحق دې.يعنى په غسل كې .نو سيلان متحقق شو.

**كوم خوب د اودس ماتونكې دې**

**وَالنَّوْمُ مُضْطَجِعًا** اوخوب په داسې حالت كې چې په ډډه وى **أَوْ مُتَّكِئًا** يا ئې تكيه وهلى وى **أَوْ مُسْتَنِدًا إِلَىٰ شَيْءٍ** يا ئې يوڅيز اډانه كړې وى **لَوْ أُزِيلَ عَنْهُ** كه هغه شى ترے لرې كړې شى **لَسَقَطَ** نودا سړې راپريوځى.

**تشريح:- صورالنقض وعدمه**◉ داودس په نواقضو كې دا هم دې. ①چې متوضى په ډډه باندې ويده (اوده) شى. ②يا ئې تكيه لګولې وى.اوده شى.③ يا ئې يو شى اډانه كړې وى.اواوده شى.كه هغه شى ترے لرې كړې شى.نو راغوزيږى.

**تحقيق شارح النقاية**◉صاحب د شرح نقايه ليكلى دى.① كه په ډډه باندې اوده شى.يا په كوناټو باندې اوده شى.نوپه اتفاق سره اودس مات شو.② اوكه څه شى ته ئې تكيه وهلے وى.اواوده شى.كه هغه ترے لرې كړې

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(١٠٣١١) والهندية (١١١١) وبدائع الصنائع (٢٧١١) نقلا عن القول الراجح (٧١١)_

شي. نو راغورځيږي . نو د دې دوې (دوه) صورتونه دي.

**حكم النوم مستنداً الى شيئ**۞(١)كه مقعد د مځکې نه اوچت شو.نو په اتفاق سره اودس مات شو.② اوكه اوچت شوې نه وي.نو امام طحاوی رحمه الله اوامام قدوری رحمه الله ذکر کړی دی.چې اودس ماتيږی.ځکه چې استرخاء د مفاصلو راغله .او د ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چې اودس نه ماتيږی.ځکه چې په مځکه باندې د مقعد برقرار پاتې کيدل د ريح د وتلو لپاره مانع دي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الِاضْطِجَاعَ سَبَبٌ** ځکه چې اضطجاع(په ډډه خوب)سبب دے **لِاسْتِرْخَاءِ الْمَفَاصِلِ** د جوړونو د سستيا **فَلَا يَعْرَى عَنْ خُرُوجِ شَيْءٍ عَادَةً** او دا دعادت مطابق دځه شی د وتلو نه خالی نه وی **وَالثَّابِتُ عَادَةً** اوكوم شی چې په عادت سره ثابت وی **كَالْمُتَيَقَّنِ بِهِ** هغه داسې دي.لکه چې يقيني وی |

**حل اللغة**° ① اضطجاع: په اړخ سملاستل ② استرخاء: سستيدل ③ مفاصل: دَ مفصل جمع: جوړ

**تشريح:- دليل النقض اى استرخاء المفاصل**۞ په اضطجاع سره د اودس ماتيدو دليل دا دي.چې په اضطجاع يعنی ډډه باندې ويده (اوده) کيدل د جوړونود سستيدو سبب دي. او په ډډۀ باندې ويده (اوده) کيدل په عادت کې د ځه شی د وتلونه خالی نه وی. (يعنی چې سړی په ډډه ويده (اوده) شی.نومشاهده ده.او تجربه ده.چې ددۀ نه باد اوځی.) اوكوم شی چې په عادت سره ثابت وی.هغه د يقين درجه لری.نو ثابته شوه.چې په ډډه ويده (اوده) کيدو سره باد وغيره وتلی دی.اود باد په وتلو سره اودس يقيناً ماتيږی .نوځکه په داسې خوب سره اودس مات شو.

**النوم غير ناقض في نفسه**۞د دے دليل مقتضی دا ده.چې خوب د خپل ذات په اعتبار سره حدث نه دې.اود بعضورانې ده.چې خوب دخپل ذات په اعتبار سره حدث دې.اوپاته شوه.په تکيه لګولو سره خوب کول نو دا داسې شی دې.چې د بيدارئ رکاوټ ختموی.ځکه چې په دغه صورت کې مقعد د مځکې نه اوچتيږی.نو په حالت د خوب کې به د اندامونو کلك والے په طريقه اولی سره سستيږی.

| |
|---|
| **وَالِاتِّكَاءُ يُزِيلُ مَسْكَةَ الْيَقَظَةِ** اوتکيه لګول د بيدارئ رکاوټ ختموی **لِزَوَالِ الْمَقْعَدِ عَنِ الْأَرْضِ** د مځکې نه د مقعد د زائله کيدو د امله **وَيَبْلُغُ الِاسْتِرْخَاءُ غَايَتَهُ بِهَذَا النَّوْعِ مِنَ الِاسْتِنَادِ**.او سستيا په خوب کې په داسې تکيه وهلو سره خپلے انتها ته رسی **غَيْرَ أَنَّ السَّنَدَ يَمْنَعُهُ مِنَ السُّقُوطِ** خو تکيه هغه د غوزيدلو نه منع کوی. |

**حل اللغة**° ① مسكه: بنديز

**تشريح:- نقض الوضوء بالنوم مستنداً**۞خيزته تکيه لګولو اوخوب کولوکې استرخاء د مفاصلوپوره کيږی.او خپل آخری حد ته رسی.صرف دومره خبره ده.چې تکيه دے د غورځولو نه منع کړې دې.كه تکيه ترے لرې شی.نودے راغورځيږی.

**كوم خوب ناقض د اودس نه دي ؟**

| |
|---|
| **بِخِلَافِ النَّوْمِ حَالَةَ الْقِيَامِ وَالْقُعُودِ وَالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ فِي الصَّلَاةِ** په خلاف د حالت د قيام، قعود، رکوع اوسجدې په حالت د لمانځه **وَغَيْرِهَا** يا په بل حالت کې **هُوَ الصَّحِيحُ** دا صحيح ده |

**تشريح:- حالة عدم نقض الوضوء بالنوم**۞ ددے په خلاف كه دقيام په حالت ويده (اوده) شی. يا د قعود يا د رکوع اوسجدې په حالت کې .نواودس نه ماتيږی.كه دا كيفيت په لمانځه کې وی اوكه د لمانځه نه بهر وی.هم دا صحيح قول دې.يعنی ظاهرروايت هم دا دې.

| |
|---|
| **لِأَنَّ بَعْضَ الِاسْتِمْسَاكِ بَاقٍ** ځکه چې ځينې استمساك پاته وی **إِذْ لَوْ زَالَ** اوكه استمساك بالکل ختم شوې وې **لَسَقَطَ** نو راغورزيدلې به وو **فَلَمْ يَتِمَّ الِاسْتِرْخَاءُ** نو استرخاء پوره رانغلۀ |

**تشريح:- وجه نقض الوضوء**۞د دے دليل دا دې.چې په دے حالتونو کې ځه نه ځه استمساك (رکاوټ) پاته



وی.ځکه كه بيخی استمساك ختم شوې وو.نو دا کس به خامخا راغورځيدلے وو.نو معلومه شوه.چې په دے حالتونو کې كامله استرخاء نشته.اوچې كامله استرخاء نشته.نو اودس هم نه ماتوی.ځکه چې نقض د اودس په كمال استرخاء باندې مبنی دي.

| |
|---|
| **وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او دليل په دے کې د نبی ﷺ قول دی **لَا وُضُوءَ عَلَى مَنْ نَامَ** چې نشته دے اودس په هغه چا چې ويده (اوده) شی **قَائِمًا** په ولاړه **أَوْ قَاعِدًا** يا په ناسته **أَوْ رَاكِعًا** يا په حالت د رکوع **أَوْ سَاجِدًا** يا سجده کې **إِنَّمَا الْوُضُوءُ عَلَى مَنْ** اودس خو په هغه چا دې **نَامَ مُضْطَجِعًا، فَإِنَّهُ إِذَا نَامَ مُضْطَجِعًا** چې په ډډۀ ويده (اوده) شی **اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ**(١) نو دهغه جوړونه سست شی. |

**تشريح:- دلائل عدم النقض**۞ ①او په دے باب کې دا حديث اصل دې.چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی.كوم کس چې د قيام په حالت کې ويده (اوده) شو.يا د قعود يا د رکوع يا د سجدې په حالت کې .نوپه هغه اودس واجب نه وی. بلکه اودس په هغه کس واجب دې.چې په ډډه ويده (اوده) شی.ځکه چې كله ځوك په ډډۀ ويده (اوده) شی . نو د هغه جوړونه سست شی.② ابوداود او ترمذی رحمه الله دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په دے الفاظو کې روايت کړې دې.«أنه رأى النبي ﷺ نام وهو ساجد حتى غط أو نفخ ثم قام فصلى فقلت يا رسول الله إنك نمت فقال إن الوضوء لا يجب إلا على من نام مضطجعا فإنه إذا إضطجع إسترخت مفاصله» يعنی ابن عباس رضی الله عنه نبی ﷺ د سجدې په حالت کې ويده (اوده) اوليدلو.تردې چې نبی عليه السلام خړخړ کول پيل کړلو.بيا نبی عليه السلام پاسيدو.او لمونځ ئې اوکړلو.نوما ورته عرض اوکړو.يارسول الله ﷺ تاسوخو ويده (اوده) شوی وئ.نبی ﷺ اوفرمائيل: اودس په هغه کس واجب دې.چې په ډډۀ ويده (اوده) شی.ځکه چې كله هغه په ډډه اوده شی. نوجوړونه ئې سست شی.(او باد خارج شی.

**په بې هوشئ اوليونتوب سره د اودس ماتيدل**

| | | | |
|---|---|---|---|
| **وَالْغَلَبَةُ عَلَى الْعَقْلِ بِالْإِغْمَاءِ** | اود بيهوشئ د امله په عقل باندې غلبه | **وَالْجُنُونُ** | او ليونتوب |

**حل اللغة**° ① اغماء: بې هوشی ② جنون: ليونتوب

**تشريح:- نقض الوضوء بالاغماء والجنون والفرق بينهما**۞اغماء يو ډول مرض دې.چې انسانی قوتونه كمزورے كوی. او مراد ددے نه دا دې.چې عقل مغلوبه شی.اګرچې هرځه موجود وی.(په ظاهره نور واړه اندامونه بنه برابر وی) اوجنون داسې مرض دې.چې عقل زائله كوی او سلب كوی .حاصل دا چې داغماء په حالت کې عقل مغلوب وی.او د جنون په حالت کې عقل مسلوب وی.هم دا وجه ده.چې د پيغمبرانو عليهم السلام په حق کې اغماء خوجائز ده.(يعنی په دوی باندې اغماء راتلے شی.) ليكن جنون جائز نه دې.بهر حال د اغماء اوجنون حالت ناقض د اودس دې.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ فَوْقَ النَّوْمِ مُضْطَجِعًا فِي الِاسْتِرْخَاءِ** ځکه چې په اغماء او جنون دواړو کې په هر يو کې استرخاء د ډډے د خوب نه زياته ده **وَالْإِغْمَاءُ حَدَثٌ فِي الْأَحْوَالِ كُلِّهَا** اواغماء په ټولو حالتونو کې حدث دې **وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي النَّوْمِ** او په خوب کې قياس دې |

**حل اللغة**° ① استرخاء: نرميدل

**تشريح:- دليله العقلی**۞د دے دليل دا دې.چې په دے دواړو کې په هر يوکې استرخاء د مفاصلو په ډډه د خوب كاوه نه زياته ده.اواغماء په ټولوحالتونوکې ناقض د اودس ده.يعنی دقيام قعود وغيره په حالت کې هم.دقياس تقاضا خو په خوب کې هم دا وه.چې خوب دے په ټولو حالتونوکې ناقض د اودس وې.

| |
|---|
| **إِلَّا أَنَّا عَرَفْنَاهُ بِالْأَثَرِ** ليكن موږ دا په اثر سره اوپيژندلۀ **وَالْإِغْمَاءُ فَوْقَهُ** اواغماء ددے نه زياته ده **فَلَا يُقَاسُ عَلَيْهِ** نواغماء به په خوب باندې نشی قياس كولې. |

**حل اللغة:** ① **عرفناه: عرف معرفة** (ض): پيژندل

**تشريح:-** خو د نبي ﷺ د حديث د امله مونږ قياس پريښولو .او چونكه اغماء د خوب نه قوي ده. نو ځكه اغماء په خوب باندې نشي قياس كولې.اود اغماء د قوت دليل دا دې.چې په چا باندې اغماء جاري وي.هغه په تنبيه ور كاوه سره نه بيداريږي.په خلاف د اوده ځكه چې هغه په تنبيه ور كاوه سره بيداريږي.اوجنون چونكه داغماء نه هم قوي دے . نو ځكه به جنون په طريقه اولي سره ناقض د اودس وي.

**په خندائي قهقهه داودس ماتيدل**

| |
|---|
| **وَالْقَهْقَهَةُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ ذَاتِ رُكُوعٍ وَسُجُودٍ** اوقهقهه د او ركوع اوسجدې په لمونځ كي |

**تشريح:- الاقسام الثلاثة للضحك** ① قهقهه دا ده.چې سړي ئې پخپله اوري.او هغه سره چې نزدے څوك وي هغوی ئې هم اوري.كه غاښونه ئې ښكاره شوي وي او كه نه وي. ② او ضحك هغه دې.چې سړي ئې په خپله اوري.خو ور سره ناست نفر ئې نه اوري. ③ او تبسم دا دې.چې څوك ئې واونري.په تبسم نه لمونځ ماتيږي او نه اودس.او په ضحك باندې لمونځ خوماتيږي.ليكن اودس نه.

**حكم القهقهة في الصلاة** ① او د عاقل بالغ د قهقهې حكم دا دې. چې هغه د ركوع اوسجدې په لمانځه كي موجوده شي.يا د ركوع او سجدې لمونځ په اشارے سره كوي.او په دے كي قهقهه موجوده شي.نودا د لمونځ ماتونكې هم ده.او داودس ناقضه هم.

| |
|---|
| **وَالْقِيَاسُ** اوقياس دا دې **أَنَّهَا لَا تَنْقُضُ** چې قهقهه ناقضه نه وي **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله اودا دامام شافعي رحمه الله قول دې **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِخَارِجٍ نَجِسٍ** ځكه چې دا نجس شي نه دې **وَلِهٰذَا لَمْ يَكُنْ حَدَثًا** او د دے وجه قهقهه حدث نه ده **فِي صَلَاةِ الْجِنَازَةِ** په لمونځ دجنازې كي **وَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ** او سجده د تلاوت كي **وَخَارِجِ الصَّلَاةِ** او د لمونځ نه بهر |

**حل اللغة:** ① **لاتنقض، نقض نقضًا** (ن): ماتول

**تشريح:-** امام مالك امام شافعي اواحمد رحمهم الله فرمائي. چې قهقهه ناقضه د اودس نه ده.او هم دا قياس دې.

**دليلهم** ❁ ددے حضراتو دليل دا دې.چې په قهقهه كي خروج د نجاست نشته.حالانكه خروج د نجاست ناقض د اودس دې.هم دا وجه ده.چې قهقهه دجنازې په لمونځ كي اوپه سجده د تلاوت كي او بهر دلمانځه نه ناقض نه دے .

| |
|---|
| **وَلَنَا** اوزمونږ دليل دا دې **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې نبي عليه السلام فرمائيلي دي **ألا من ضحك منكم قهقهة أَلَا مَنْ ضَحِكَ مِنْكُمْ قَهْقَهَةً** خبردار كوم كس چې په تاسو كي په قهقهه سره اوخاندلو **فَلْيُعِدِ الْوُضُوءَ وَالصَّلَاةَ جَمِيعًا**[1] نو هغه دے اودس او لمونځ دواړه راوګرځوي **وَبِمِثْلِهِ يُتْرَكُ الْقِيَاسُ** اوپه داسې نص سره به قياس ترك كولې شي **وَالْأَثَرُ وَرَدَ فِي صَلَاةٍ مُطْلَقَةٍ** او نص وارد شوې دې.په مطلق لمونځ كي **فَيُقْتَصَرُ عَلَيْهَا** نوپه دے به اكتفاء كولې شي. **وَالْقَهْقَهَةُ** او قهقهه هغه ده **مَا يَكُونُ مَسْمُوعًا لَهُ** چې سړي ئې په خپله واوري **وَلِجِيرَانِهِ** او چې ور سره څوك وي هغوی ئې هم واوري **وَالضَّحِكُ** او ضحك هغه دې **يَكُونُ مَسْمُوعًا لَهُ** چې سړي ئې په خپله واوري **دُونَ جِيرَانِهِ** او ور سره خلګ ئې واونري **وَهُوَ عَلَى مَا قِيلَ يُفْسِدُ الصَّلَاةَ دُونَ الْوُضُوءِ** اوضحك ددے قول په بنا چې اووئيلې شو.لمونځ فاسدوي اودس نهٔ. |

**حل اللغة:** ① **ضحك، ضحكا** (س): خندل ③ **يترك تركا** (ن): پريښول ④ **جيران**: ګاونډي، ملګرې

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ❁ اوزمونږ دليل دا دې.چې يوځل نبي ﷺ لمونځ كولو.يو باندېچې چې نظر ئې كمزورے وو.راغلو او راپريوتلو.صحابه كرامو رضي الله عنهم چې په لمانځه كي شريك وو.هغوی اوخاندل.نبي ﷺ د لمانځه د فراغت نه روسته اوفرمائيل:واورئ په تاسو كي چې كوم كس په خنداء قهقهه سره خاندلې وي.هغه دے خپل لمونځ اواودس راوګرځوي.اودا حديث مشهور دې.او دحديث مشهور د امله قياس پريښولې



(پريښودې) شي.چونكه دا حديث په كامل لمونځ يعني د ركوع اوسجدې په لمونځ كي وارد شوې دې.نوهم په دے پورې به خاص كولې شي.او ددے نه علاوه كه د جنازې لمونځ اوسجده دتلاوت او دلمانځه نه بهر ته تجاوز اوكړي.نواودس به نه ماتوي.ځكه چې خلاف قياس حكم دخپل مورد نه تجاوز نشي كولې.

**د مقعد نه د چينجي د وتلو حكم**

| |
|---|
| **وَالدَّابَّةُ تَخْرُجُ مِنَ الدُّبُرِ** او چينجے كوم چې دغټو بولود لارے نه راوځي **نَاقِضَةٌ** ناقض د اودس دي **فَإِنْ خَرَجَتْ مِنْ رَأْسِ الْجُرْحِ** اوكه چينجے دزخم دسرنه راووتلو **أَوْسَقَطَ اللَّحْمُ** يا دزخم نه غوښه پريوتله **تَنْقُضُ** نودا ناقض داودس نه دی **والمراد بالدابة الدودة وَالْمُرَادُ بِالدَّابَّةِ الدُّودَةُ** او د دابه نه مراد چينجے دې |

**حل اللغة:** ① **الدابة**: چينجې ② **تخرج، خروجًا** (ن): وتل ③ **دبر**: د ډكومتيازو لار ④ **جرح**: زخم ⑤ **سقط سقوطًا** (ن) پريوتل

**تشريح:- نقض الوضوء بخروج الدود من الدبر** ❁ مسئله دا ده.چې كوم چينجے د مقعد د دننه نه راوځي. هغه اودس ماتوي.لكه څنګه چې باد او ګټكے د اودس ماتونكې دی.

**عدم نقض الوضوء بخروج الدود من الجرح** ❁ اوكه چينجے د دبر نه علاوه دبل ځائې د زخم نه بهر شو.يا د زخم نه غوښه پريوته.نودا ناقض د اودس نه دی.په متن كي د ،، دابة،، نه مراد چينجے دې.

| |
|---|
| **وَهٰذَا** او دا **لِأَنَّ النَّجَسَ** د دے امله چې نجاست هم هغه هومره دے **مَا عَلَيْهَا** كوم چې په چينجے دې **وَذٰلِكَ قَلِيلٌ** او دا نجاست ډيركم دي **وَهُوَ حَدَثٌ فِي السَّبِيلَيْنِ** اودا په سبيلينو كي حدث دے **دُونَ غَيْرِهِمَا** نه چې د دے نه علاوه په نورو كي **فَأَشْبَهَ الْجُشَاءَ وَالْفُسَاءَ** نو دا د اډرقي او بيِ آوازه ( پوسكۍ ) په څير شو |

**حل اللغة:** ① **جشاء**: اډركې ② **فساء**: بغيرد آواز نه هوا

**تشريح:- وجه الفرق الصورتين المذكورتين** ❁ په دے دواړو صورتونو كي وجه د توپير دا ده.چې چينجے په خپله نجس نه دې.بلكه څه چې په هغې پورې لګيدلې وي.هغه نجس وي.او دا قليل نجاست دې.او قليل نجاست په سبيلينوكي حدث يعني ناقض داودس دې.ليكن د سبيلينو نه علاوه كم مقدارناقض نه دې.نوځكه مونږ وايو.كه چينجے د غټوبولو د لارے نه رابهر شو.نو ناقض دې.او كه دبل ځائې د زخم نه اووتلو. نو ناقض نه دې.

**نظيرالدود الخارج من الجرح** ❁ نو دا به د اډرقي او پوسكۍ په څير وي.يعني اډرقے چونكه د غير سبيلين نه وي.نوناقض نه دې.اوپوسكۍ چونكه د دبر نه اوځي. نو ناقض داودس ده.

| |
|---|
| **بِخِلَافِ الرِّيحِ الْخَارِجَةِ مِنْ قُبُلِ الْمَرْأَةِ وَذَكَرِ الرَّجُلِ** په خلاف دهغه باد كوم چې د ښځے د فرج نه او دسړي د ذكر نه اوځي **لِأَنَّهَا لَا تَنْبَعِثُ عَنْ مَحَلِّ النَّجَاسَةِ** ځكه چې هغه د محل د نجاست نه نهٔ اوځي |

**حل اللغة:** ① **لاتنبعث، انبعث انبعاثًا**: پاسيدل ⑨ **مراة مقضاة**: هغه ښځه د كومې چې د وړواو لويو متيازو ځائ ملاؤشوې وي

**تشريح:- حكم الريح الخارج من الفرج والذكر** ❁ ددے په خلاف هغه باد چې د ښځے د فرج يا د سړي د ذكر نه اوځي.ناقض نه دې.ځكه چې هغه دنجاست دځائې نه نهٔ راځي.

**السوال** ❁ ليكن كه څوك دا اشكال اوكړي.چې نبي عليه السلام «كل ما يخرج من السبيلين» ته ناقض فرمائيلي دي.كه هغه باد وي اوكه د باد نه علاوه بل څه وي.نود فرج يا د ذكر نه وتلے باد بايد ده چې ناقض وي.

**الجواب** ❁ ځواب دا دې.چې واړه مجتهدين په دے متفق دي.چې د «كل ما يخرج من السبيلين» نه «كل نجس» مراد دې.او د فرج اوذكر نه وتونكې باد چونكه نجس نه وي.نوځكه ناقض نه دې.

حَتّٰى لَوْكَانَتْ مُفْضَاةً تردې كه ښځه مفضاة وي يُسْتَحَبُّ لَهَا الْوُضُوءُ نودهغې لپاره اودس كول مستحب دي لِاحْتِمَالِ خُرُوجِهَا مِنَ الدُّبُرِ ځكه چې احتمال شته.چې باد دهغې ددبرنه وتلې وي.

تشريح:- حكم المراة المفضاة ۞ اوكه يوه ښځه مفضاة وي.يعنې د متيازو اوحيض دواړه لارې ئې يوځائې شوې وي.او ددغه مفضاة د فرج نه باد خارج شي.نودهغې لپاره اودس كول مستحب دې.ځكه چې كيدې شي.چې دا باد دهغې د دبر نه وتلې وي.او واجب ځكه نه دې.چې اودس په يقين سره موجود دې.اود نقض حكم به په يقيني دليل سره وي.په خالي احتمال سره نه.

**د داخنې نه په وينه وتلو داودس ماتيدل**

فَإِنْ قُشِرَتْ نَفْطَةٌ كه د دانې نه پوست (پوستكې) جلا شو فَسَالَ مِنْهَا مَاءٌ او دهغې نه اوبه اوبهيدلې أَوْصَدِيدٌ يا پيپ (زوه)، أَوْغَيْرُهُ يا ددې نه علاوه إِنْ سَالَ عَنْ رَأْسِ الْجُرْحِ كه هغه دزخم د سرنه بهيدلې وي نَقَضَ نو اودس مات شو وَإِنْ لَمْ يَسِلْ او كه نه وي بهيدلې لَايَنْقُضُ (١) نونهٔ ماتيږي

حل اللغة° ① قشرت قشراً (ن،ض) خرمن يا پوست (پوستكې) ويستل ② نفطة: پولئى ③ سال، سيلانا (ض) بهيدل ④ صديد: پيپ

تشريح:- نقض الوضوء بخروج الدم من النفطة عندالاحناف ۞ مسئله دا ده.كه د دانې پوست (پوستكې) پريوتلو.بيا اوبه يا زيړې اوبه يا ددې نه علاوه بل څه اووتلو.نوددې دوې (دوه) صورتونه دي.بهيدلې به وي يا به نه وي.كه د وتلو سره بهيدلې هم وي.نو اودس ماتيږي.او كه بهيدلې نه وي.نو اودس نه ماتيږي.دا مذهب د امام زفر رحمه الله نه علاوه د احنافو عالمانو رحمهم الله دې.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمايي يَنْقُضُ فِي الْوَجْهَيْنِ چې په دواړو صورتونو كې ماتيږي

حل اللغة° ① فى الوجهين: په دواړو صورتونوكې

تشريح:- نقض الوضوء بخروج الدم من النفطة عندزفر ۞ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمائى.چې په دواړو صورتونو كې اودس ماتيږي.كه بهيدلې وي او كه نه وي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله فرمايي لَايَنْقُضُ فِي الْوَجْهَيْنِ چې په دواړو صورتونوكې نه ماتيږي

نقض الوضوء بخروج الدم من النفطة عندالشافعي ۞ رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائى.چې په دواړو صورتونو كې اودس نه ماتيږي،

وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْخَارِجِ مِنْ غَيْرِ السَّبِيلَيْنِ او دا مسئله د خارج من غير سبيلين ده

تشريح:- حقيقة المسئلة ۞ په حقيقت كې دا مسئله د خارج من غير السبيلين ده.يعنې خارج من غير السبيلين د امام زفر رحمه الله په نزد مطلقاً ناقض د اودس دې.اودامام شافعي رحمه الله په نزد مطلقاً غير ناقض دې. او زموږ په نزد كه بهيدل راغلي وي.نوناقض دې او كه نه وي نو نه دې.

وَهٰذِهِ الْجُمْلَةُ نَجِسَةٌ او دا واړه نجس دي لِأَنَّ الدَّمَ يَنْضَجُ ځكه چې وينه پخه شي. فَيَصِيرُ قَيْحًا نوهغه لڅې وينه شي ثُمَّ يَزْدَادُ نُضْجًا چې بيا نوره پخه شي. فَيَصِيرُ صَدِيدًا نوپيپ ترې جوړ شي ثُمَّ يَصِيرُ مَاءً بيا (چې نرم شي.نو) اوبه ترې جوړې شي هٰذَا اوپورتنې حكم په هغه وخت كې دې إِذَاقَشَرَهَا چې د دې پوست (پوستكې) جلا كړي فَخَرَجَ بِنَفْسِهِ اوپخپله اوبهيږي

١) القول الراجح هو قول الجمهور كذا فى الخانية (٣٦\١)و ردالمحتار(١٠٣\١) والحلبى (ص،٣١) نقلا عن القول الراجح (٨\١)_



حل اللغة° ① نضج، انضجاجاً: پخيدل ② قيحا: پيپ

تشريح:- دليل نقض الوضوء في هذه الصورة ۞ صاحب دهدايه فرمائى.چې دا ټولې يعنې دزخم نه وتلې اوبه، او زيړې اوبه ، او لڅې وينه، نجس دي.ځكه چې كله خرابه وينه پخه شي.نو لڅې وينه شي.او چې بيا زياته پخه شي.نو پيپ ترې جوړ شي.اوچې بيا نرمه شي.نو اوبهٔ ترې جوړې شي.نوهركله چې دا واړه پليت دي.نو د نجاست خروج راغلل.او خروج دنجاست په شرط د بهيدلو سره ناقض وي.نو ځكه به په دې صورتونوكې هم اودس ماتيږي.

وأَمَّا إِذَاعَصَرَهَا اوكه هغه نچوړ كړي فَخَرَجَ بِعَصْرِهِ اودهغې په نچوړلو سره راووتلې لَايَنْقُضُ نواودس نه ماتيږي لِأَنَّهُ مُخْرَجٌ ځكه چې هغه راويستې شوى دى وَلَيْسَ بِخَارِجٍ په خپله نه دى راوتلې وَاللهُ أَعْلَمُ اوالله ښه پوهيږي.

حل اللغة° ① عصر: نچوړى كول

تشريح:- المراد من خروج الدم في المتن ۞ او فرمائى.چې داودس د ماتيدو حكم به په هغه وخت كې وي.چې د دانې پوست ئې لرې كړلو.نوپليت مواد په خپله بهر شي . اوكه په خپله نه وي بهر شوې.بلكه چې هغه دانه باندې زور كړي.او نچوړ كړي . نوپليت مواد ترې راوځي.نو په دې صورت كې اودس نه ماتيږي.ځكه چې دا راوتلې نه دى.بلكه راويستې شوى دى.

**دغسل فرائض**

فَصْلٌ فِي الْغُسْلِ دا) فصل د غسل داحكامو په بيان كې دې: وَفَرْضُ الْغُسْلِ دغسل فرض الْمَضْمَضَةُ خوله كې اوبهٔ اچول وَالِاسْتِنْشَاقُ پزه كې اوبهٔ اچول وَغَسْلُ سَائِرِ الْبَدَنِ او د واړه بدن پريمنځل دى

حل اللغة° ① مضمضة: غرغرې كول ② استنشاق: پزه كې اوبه اچول ③ سائر: واړه

تشريح:- وجوه تقديم الوضوء على الغسل ۞ علامه مرغيناني رحمه الله د غسل احكام د اودس د احكامو نه روسته بيان كړل.① ځكه چې د اودس محل د بدن جزء دې.او د غسل محل كل بدن دې.او جزء مقدم وي په كل باندې.ځكه ئې د اودس احكام وړاندې او دغسل احكام روستو بيان كړل.② دويمه وجه دا ده. چې د كتاب الله اقتداء مقصود ده.ځكه چې په قرآن پاك كې اودس اوغسل په دې ترتيب بيان شوى دى. او غسل د غين په پيښ سره په معنى د اغتسال راځي.يعنې د واړه بدن وينځل.③ دريمه وجه دا ده. چې د غسل په نسبت د اودس حاجت زيات دې.

حكم المضمضة والاستنشاق ۞ ① داحنافو فقهاؤ رحمهم الله په نزد په غسل كې درې فرض دى.(١) خوله كې اوبه اچول.② پزه كې اوبه اوچول.③ دواړه بدن وينځل.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او دامام شافعي رحمه الله په نزد هُمَا سُنَّتَانِ فِيهِ دا دواړهٔ په غسل كې سنت دى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ لس شيان فطرت أَيْ مِنَ السُّنَّةِ يعنې سنت دى وَذَكَرَ مِنْهَا الْمَضْمَضَةَ وَالِاسْتِنْشَاقَ (١) او په هغې كې ئې خوله كې اوبه اچول او پزه كې اوبه اچول ذكر كړى دى وَلِهٰذَا كَانَتَا سُنَّتَيْنِ فِي الْوُضُوءِ اوهم ددې امله دا دواړه په اودس كې سنت دى

حل اللغة° ① فطرت: عادت

تشريح:- امام مالك شافعي رحمهما الله فرمائى.چې خوله كې اوبه اچول اوپه پزه كې اوبه اچول هم داسې سنت دى. لكه څنګه چې په اودس كې

١) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه مسلم فى الطهارة رقم ۵۶ وابوداود فى الطهارة باب ٢٩ والترمذى فى الادب باب ١٤ والنسائى فى الزينة باب ١ وابن ماجه فى الطهارة باب ٨)_

**دلائلهما** ◉ ①دامام مالك رحمه الله اوشافعي رحمه الله دليل دا دي. چې نبي ﷺ فرمائيلي دی.لس شيان فطرتی يعنی سنت دی.بعضو وئيلی دی . چې په دے کي د پنځو څيزونوتعلق د سر سره دې.او د پنځو د نوربدن سره دے .نود کومو پنځوڅيزونوتعلق چې د سر سره دې.هغه دا دی.(١)په سرکي لار ويستل. ② مسواك كول③ خوله کي اوبه اچول.④ پزه کي اوبه اچول(٥) او بريت کټ کول.او د کومو پنځو تعلق چې د نور بدن سره دې.هغه (١) ختنه کول ② زيرناف ويخته کټ کول③ د ترخونو ويخته ويستل ④ نوکونه پرې کول⑤ اوپه اوبو سره استنجاء كول.د دے حديث نه معلومه شوه.چې خوله کي اوبه اچول او په پزه کي اوبه اچول سنت دی.② دوهم عقلی دليل دادےچې دا دواړه حضرات په غسل کي مضمضه واستنشاق په اودس باندې قياس کوی.يعنی څنګه چې په اودس کي مضمضه اواستنشاق سنت دی .دغه ډول به په غسل کي هم سنت وی.

| |
|---|
| وَلَنَا اوزمونږ دليل قَوْلُهُ تَعَالَى دالله تعالى ارشاد ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ دي وَهُوَ أَمْرٌ بِتَطْهِيرِ داطهار حكم ئې ورکړې دي جَمِيعِ الْبَدَنِ او دا د واړه بدن پاکوالے دي إِلَّا أَنَّ مَا يَتَعَذَّرُ إِيصَالُ الْمَاءِ إِلَيْهِ مګرهغه ځائې کوم ته چې د اوبورسول ممكن نه وی خَارِجٌ عَنِ النَّصِّ هغه ترے خارج دي |

**حل اللغة*** ① جنبا: دَ ناپاکئی حالت ② جميع: واړه ③ تعذر: سخت ④ايصال: رسيدل

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ◉اوزمونږ دليل دا دي.چې الله تعالى فرمائيلي دی.كه تاسو په حالت دجنابت کي ئې.نوبښه ځان پاك كړئ.يعنی الله رب العزت مكلفينو ته په طريقے د مبالغے د واړه بدن د وينځلو حكم کړي دي.ځکه چې ﴿فَاطَّهَّرُوا﴾ ئې فرمائيلي دی.او تطهير په مبالغے سره د واړه بدن وينځلو ته وائی.مګر دا چې يو ځائې ته اوبه رسول ممكن نه وی.نوهغه دد ے حكم نه خارج دې.لكه د سترګو دننه برخه شوه.او کوم ځائې ته چې په اوبو رسولو کي څه حرج نه وی.هغه به دد ے حكم د لاندې پاته وی.نوخولې او پوزے ته اوبه رسولوکي څه تکليف نشته . نو ځکه د دے دواړوپريمنځل د كتاب الله په حكم باندې فرض شو.

| |
|---|
| بِخِلَافِ الْوُضُوءِ په خلاف د اودس لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ غَسْلُ الْوَجْهِ ځکه چې واجب په هغے کي د مخ پريمنځل دی وَالْمُوَاجَهَةُ فِيهِمَا مُنْعَدِمَةٌ او په دے دواړو (يعنی د پزه او خوله)کي مواجهت نشته |

**حل اللغة*** مواجهة: مخكى

**تشريح:- الجواب من قياس الامامين** رحمهما الله ◉ او د اودس په خلاف.ځکه چې په اودس کي حكم د مخ د وينځلو شوې دې.ځکه چې الله تعالى فرمائيلی دی.﴿ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ ﴾اود مضمضه او استنشاق چې كوم محل دې.په هغے کي مواجهت (مخکی کيدل) نشته.

| |
|---|
| وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ او مراد دهغے نه چې روايت ئې كړې دې حَالَةُ الْحَدَثِ د حدث حالت دې. بِدَلِيلِ دليل دا دی قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې نبي ﷺ فرمائيلی دی إِنَّهُمَا فَرْضَانِ فِي الْجَنَابَةِ دا دواړه په جنابت کي فرض دی سُنَّتَانِ فِي الْوُضُوءِ[1] اوپه اودس کي سنت دی. |

**تشريح:- الجواب من الحديث** ◉ او دامام شافعي رحمه الله پيش كړې حديث (په كوم كي چې مضمضه او استنشاق هم د فطرت په امورو کي شمارلے شوی دی.) به په اودس باندې حمل کولې شی.

**تائيد توجيه الاحناف** رحمهم الله ◉ځکه چې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه او جابر رضي الله عنه نه روايت دې.چې مضمضه او استنشاق په جنابت کي فرض دی.او په اودس کي سنت دی.

### د غسل مسنون طريقه

| |
|---|
| قَالَ وَسُنَّتُهُ اود غسل سنت دا دی أَنْ يَبْدَأَ الْمُغْتَسِلُ چې غسل كونكې پيل اوكړی فَيَغْسِلَ يَدَيْهِ وَفَرْجَهُ نو خپل دواړه لاسونه اوخپله شرمګاه اووينځی وَيُزِيلَ نَجَاسَةً اونجاست لرې كړی إِنْ كَانَتْ عَلَى بَدَنِهِ كه دهغه په بدن باندې وی ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ بيا دے اودس اوكړی.(لكه څنګه چې د خپل) لمونځ لپاره كوی إِلَّا رِجْلَيْهِ بغير د دواړو پښو نه ثُمَّ يُفِيضُ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهِ بيا دے په خپل سر اوبه واچوی وَسَائِرِ جَسَدِهِ ثَلَاثًا اوپه خپل واړه بدن درے خله ثُمَّ يَتَنَحَّى عَنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ بيا دے د هغه ځائې نه اخوا شی فَيَغْسِلُ رِجْلَيْهِ او خپلے پښے دے اووينځی |

**حل اللغة*** ① ان يبداء، بدأ، بدا (ن،ف) پيل كول ② مغتسل: غسل كونكې ③فرج: شرمګاه ④يزيل ازالة: زائل كول⑤يتوضا، توضأ: اودس كول ⑥يفيض، افاضة: بيول ⑦جسد: وجود ⑧ يتنحى: لرې كيدل، جلا كيدل

**تشريح:- كيفية الغسل** ◉ په غسل کي سنت طريقه دا ده.چې دټولو نه ړومبې خپل دواړه لاسونه تر مړوندونو پورې اووينځی.ځکه چې دا دواړه د پا كاوه آله ده. اوخپله شرمګاه اووينځی.ځکه چې هغه محل د نجاست دې.نواحتمال شته.چې نجاست ورپورے لګيدلے وی.اوكه په بدن پورې حقيقي مرداري لګيدلے وی.نو هغه دے هم لرې كړی.چې د اوبو په لګيدو سره زيات نشی.بيا دے داسې اودس اوكړی.لكه څنګه چې د لمانځه لپاره كوی.خوخپلے پښے به نه وينځی.بيا دے په سر باندې درے خله اوبه اوبيوی.اودرے خله دے په واړه بدن اوبه تيرے كړی.

**الاقوال الثلاثة في افاضة الماء**◉ ①شمس الائمه حلوانی رحمه الله فرمائيلی دی. چې اول دے په ښئ اوږه درے خله اوبه راواچوی.او بيا په ګسه باندې او بيا په واړه بدن باندې ②او بعضو وئيلی دی.چې دسر نه دے پيل اوكړی.د قدوری دعبارت نه دا معلوميږی.بيا دے دهغه ځائې نه اخوا شی.او خپلے دواړه پښے دے اووينځی. ③او بعضو فرمائيلی دی.چې د ښئ اوږے نه دے پيل اوكړی .بيا په سر اوبيا دے په ګسه اوږه اوبه اوبيوی.

| |
|---|
| هَكَذَا حَكَتْ مَيْمُونَةُ رضي الله عنها هم دغه ډول نقل كړې دے حضرت مي مونږ رضي الله عنها اغْتِسَالَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1] د رسول الله ﷺ غسل |

**تشريح:- دليل هذه الكيفية المسنونة**◉ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چې حضرت مي مونږ رضي الله عنها د نبي عليه السلام غسل هم داسې نقل كړې دې.صاحب د فتح القدير ابن الهمام رحمه الله پوره حديث داسې نقل كړې دې.

﴿روى الجماعة عنها قالت وضعت للنبي ﷺ ماء يغتسل به فأفرغ على يديه فغسلهما مرتين أوثلاثا ثم أفرغ بيمينه على شماله،فغسل مذاكيره، ثم دلكه بيده الأرض ثم تمضمض واستنشق ثم غسل وجهه ويديه،ثم غسل رأسه ثلاثا،ثم أفرغ على جسده ثم تنحى عن مقامه فغسل قدميه﴾ دمي مونږ رضی الله عنها نه يوے ډلے (دمحدثينو) روايت كړې دې.چې حضرت مي مونږ رضي الله عنها فرمائيلی دی.ما د رسول الله ﷺ د غسل لپاره اوبه كيخودې.نو نبي ﷺ په خپلو دواړو لاسونو باندې راواچولې. دوې (دوه) يا درے ځله ئې خپل لاسونه اووينځل.بيا نبي ﷺ په خپل ښي لاس د ښي لاس نه اوبه واچولې.بيا نبي ﷺ خپله شرمګاه اووينځله.بيا ئې خپله لاس په مځكه باندې اومګلو.بيا ئې په خوله کي اوبه واچولې. اوپه پزه کي ئې اوبه واچولې.بيا ئې خپل مخ او لاسونه اووينځل.بيا ئې درے ځله خپل سر اووينځلو.بيا ئې په خپل بدن باندې اوبه اوبيولې.بيا دهغه ځائې نه اخوا شو.او قدمونه ئې اووينځل.

| |
|---|
| وَإِنَّمَا يُؤَخِّرُ غَسْلَ رِجْلَيْهِ او د دواړو پښو د وينځلو روستوالے ددے لپاره دې. لِأَنَّهُمَا فِي مُسْتَنْقَعِ الْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ چې هغه دواړه د مستعملو اوبو جمع كيدو په ځائې کي وی فَلَا يُفِيدُ الْغَسْلُ نو (د هغے)پريمنځل څه فائده نه وركوی حَتَّى لَوْ كَانَ عَلَى لَوْحٍ خوكه په تخته وی. لَا يُؤَخِّرُ نو روستوكولې به نشی وَإِنَّمَا يَبْدَأُ بِإِزَالَةِ النَّجَاسَةِ الْحَقِيقِيَّةِ اود حقيقي مرداري د زائله كاوه نه دے پيل اوكړی كَيْ لَا تَزْدَادَ بِإِصَابَةِ الْمَاءِ هسے نه چې اوبه ورته اورسی.او زيات شی |

---

[1] ) اخرجه البخارى فى الغسل باب ٨ ومسلم فى الحيض رقم ٣٧ وابوداود فى الطهارة باب ٩٧ والترمذى فى الطهارة باب ٧٦ والنسائى فى الغسل باب ٢٢ وابن ماجه فى الطهارة باب ٩٤ )_

**حل اللغة:** ① **یوخر، تاخیراً:** ناوخته کول

**تشریح:- وجه تاخیر غسل القدمین** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې پښې به دد ے امله روستو کوی. چې هغه د مستعملو اوبو په خاني کي جمع کیږی. نوکه په اوچت خاني لکه تخته وغیره باندې ولاړ وی. اوغسل کوی. نود پښو دوینځلو روستو کاوه ته څه اړتیا نشته،

## په غسل کې د کونسو او ږیرې وینځلو حکم

**وَلَيْسَ عَلَى الْمَرْأَةِ أَنْ تَنْقُضَ ضَفَائِرَهَا فِي الْغُسْلِ** او په ښځه باندې دخپلې کونسو پرانستل واجب نه دی **إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أُصُولَ الشَّعْرِ** چې اوبه د ویختو جرړو ته رسیږی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِأُمِّ سَلَمَةَ** رضي الله عنها خکه چې نبی ﷺ حضرت ام سلمې رضي الله عنها ته وویل **أَمَا يَكْفِيكِ** ستا لپاره کافی ده **إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أُصُولَ شَعْرِكِ** چې اوبه ستا ویختو ته رسی **وَلَيْسَ عَلَيْهَا بَلُّ ذَوَائِبِهَا** اوپه ښځه باندې دخپلو کونسو لوندول هم واجب نه دی. **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا صحیح ده **لِمَا فِيهِ مِنَ الْحَرَجِ** خکه چې په دے کې تکلیف دی

**حل اللغة:** ① **ضفائر،** دِ ضفیرة واحد، خیرن شوی ویښته ② **بلغ، بلوغاً** (ن) اورسیدلو ③ **اصول:** جرړې ④ **یکفیک، کفی کفایة** (ض) کافی کیدل، کفایت کول ⑤ **ذوائب:** چونټې ⑥ **حرج:** تنګی

**تشریح:- توضیح دلیل عدم نقض الضفائر** مسئله دا ده. چې د ښځې د کونسود ویختو بیخونو ته اوبه رسی. نو په هغې باندې د خپلو کونسو پرانستل واجب نه دی. دلیل ئې په صحیح مسلم وغیره کې دحضرت ام سلمې رضي الله عنها حدیث دې. «قلت یارسول الله إنی إمرأة أشد ضفررأسی أفأنقضه في غسل الجنابة فقال لا إنما یکفیك أن تحثی علی رأسك ثلاث حثیات ثم تفیض علیك الماء فتطهرین» (فتح القدیر) یعنی حضرت ام سلمې رضي الله عنها عرض اوکړو. یا رسول الله ﷺ زه داسې ښځه یم. چې د خپلو ویختو کوڅیو (کونسئ) سختې تړم. نو آیا د جنابت په غسل کې دا پرانیزم؟ نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: نه، ستا لپاره بس دا کافی ده. چې ته په خپل سر درے لپے واچوې. اوبیا په خپل بدن اوبه اوبیوې. نوپاکه به شې. د دے حدیث نه معلومه شوه. چې په هغه ښځه باندې د ویختو لوندول واجب نه دی. چې کوڅیو (کونسئ) ئې جوړے کړې وی.

**عدم وجوب ایصال الماء الی تحت الضفائر** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې په دے ښځه باندې د کونسو لوندول هم واجب نه دی. هم دا صحیح قول دې. خکه چې د کونسو په لوندولو کې دښځې لپاره تکلیف دې.

**بِخِلَافِ اللِّحْيَةِ** په خلاف د ږیرے **لِأَنَّهُ لَا حَرَجَ فِي إِيصَالِ الْمَاءِ إِلَى أَثْنَائِهَا** خکه چې د ږیرے مینځ ته اوبو رسولو کې څه تکلیف نشته.

**حل اللغة:** **اثناء:** مینځ

**تشریح:- وجوب ایصال الماء الی تحت اللحیة** او ږیره ددے په خلاف ده. خکه چې دهغې مینځ ته اوبو رسولو کې څه تکلیف نشته. نو ږیرے ته دننه اوبه رسول واجب دی. دغه ډول که د ښځې ویخته پرانستی وی. نود هغې مینځ ته اوبه رسول واجب دی. خکه چې په دے صورت کې په کې څه تکلیف او مشقت نشته.

## غسل واجبونکې اسباب

**قَالَ** فرمایې **وَالْمَعَانِي الْمُوجِبَةُ لِلْغُسْلِ** اوهغه اسباب **کوم چې غسل واجبوی** **إِنْزَالُ الْمَنِيِّ** انزال د منئ **عَلَى وَجْهِ الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ** په طریقه د ټوپ اوشهوت سره **مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ** که دسړی نه وی اوکه د ښځې نه **حَالَةَ النَّوْمِ وَالْيَقَظَةِ** که دخوب په حالت کې وی اوکه د بیدارئ په حالت کې

**حل اللغة:** ① **معانی:** شیان، ② **دفق:** ټوپ کول، وردانګل ③ **یقظه:** په ویښه

**تشریح:- حکم المنی والمذی والودی وحکمها** انزال د باب افعال مصدر دے. نزاله (دنون سره) نه ماخوذ دې. معنی ئې ده د سړی اوبه. دلته کې درے الفاظ قابل ذکر دی. منی، مذی او ودی. اول موجب دغسل



ده. اودویمه او دریمه موجب د اودس دی.

**تعریف الاشیاء الثلاثة عند قتادة وعکرمة** په دے درے واړو کې توپیر مصنف عبدالرزاق په خپل مصنف کې د حضرت قتاده او عکرمه رحمهما الله نه نقل کړې دې. فرمائی چې منی هغه د ټوپ اوبه دی. چې شهوت ور سره وی. او دهغې نه بچې پیدا کیدې شی. اومذی هغه اوبه دی. چې د لوبو په وخت کې اوخی. او ودی هغه اوبه دی. چې د متیازو نه روسته اوخی. (عینی)

**تعریف المنی عند عائشة** رضي الله عنها **شیخ ابن الهمام په فتح القدیر کې لیکلی دی. چې یوے ښځې د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د مذئ په اړه کې پوښتنه اوکړه. نوهغوی ورته وویل. دهر سړی نه مذی خی. او دا په حقیقت کې درے شیان دی. ① مذی ② ودی ③ اومنی، نومذی خودا ده. چې سړې د خپلې بی بی سره لوبې کوی. اود هغه په عضو تناسل باندې یوڅیزښکاره شی. نوهغه دے خپل ذکر او خصیتین اووینځی. او اودس دے اوکړی. غسل دے نه کوی. او، ودی هغه ده. چې کومه د متیازو نه روسته راخی. دلته کې هم د خپل ذکر او خصیتینوپریمنځل اواودس کول واجب دی. اوغسل نه دې. او منی هغه ټینګې اوبه دی. چې په شهوت سره اوخی. په دے کې غسل دې.

**تعریف المنی عند النووی** علامه نووی رحمه الله فرمائی. چې مذی سپینې نرمې او څلیخناکې اوبه وی. کومې چې د لوبو په وخت په شهوت سره اوخی. لیکن د دے نه روسته په طبعیت کې فتورنه راخی.

**تعریف المذی عند صاحب الهدایة** او علامه مرغینانی فرمائی. چې مذی هغه اوبه دی. چې نرمې اوسپین والی ته مائلې وی. د لوبو په وخت کې اوخی.

**المذهبان في شرطیة الشهوة لوجوب الغسل** علامه مرغینانی رحمه الله په دے عبارت کې دغسل موجبات بیانوی. ① اول سبب په شهوت او ټوپ سره د منئ وتل دی. که انزال د منئ د سړی نه وی آوکه د ښځې نه. اوکه دخوب په حالت کې وی اوکه د ویخې په حالت کې. په هر صورت کې غسل واجب دې.

**وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله اودامام شافعی رحمه الله په نزد **خُرُوجُ الْمَنِيِّ كَيْفَمَا كَانَ يُوجِبُ الْغُسْلَ** منی چې څنګه هم وی. غسل واجبوی. **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** خکه چې نبی ﷺ ارشاد فرمائیلې دې **الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ**[1] او به د اوبونه واجبیږی. **أَيِ الْغُسْلُ مِنَ الْمَنِيِّ** یعنی غسل په منئ سره واجبیږی

**حل اللغة:** ① **یوجب، ایجاباً:** واجب کول

**تشریح:-** امام شافعی او امام مالک رحمه الله فرمائی. چې په مطلق خروج د منئ سره غسل واجبیږی. که منی په شهوت سره وتلې وی اوکه بغیر د شهوت نه. ،،،،

**ثمرة الخلاف** نوکه د وزن اوچتولو د امله منی اووتله. یا د اوچت خاني نه په راغورځیدو سره اووتله. یا دلړکې یا بل څه په ګزار سره د شاه نه اووتله. نوپه دے صورتونوکې زموږ په نزد غسل نه واجبیږی. او دامام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نزدواجبیږی.

**دلیل الامامین** دامام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله دلیل د نبی ﷺ قول دې. چې «الماء من الماء» یعنی غسل په منئ سره واجبیږی. دا حدیث د شهوت د قید نه مطلق دې. (دا قید په کې نشته. چې په شهوت سره وتلی وی. نو غسل واجبیږی.) نود «المطلق یجری علی إطلاقه» مطابق به په خپل اطلاق پاته کیږی.

**وَلَنَا** اوزموږ دلیل دا دې **أَنَّ الْأَمْرَ بِالتَّطْهِيرِ يَتَنَاوَلُ الْجُنُبَ** چې د تطهیر حکم جنب ته ګډ دې **وَالْجَنَابَةُ فِي اللُّغَةِ خُرُوجُ الْمَنِيِّ** او جنابت په لغت کې وتلو د منئ ته وائی. **عَلَى وَجْهِ الشَّهْوَةِ** په طریقه د شهوت سره **يُقَالُ أَجْنَبَ الرَّجُلُ** ونیلې شی. «اجنب الرجل» **إِذَا قَضَى شَهْوَتَهُ مِنَ الْمَرْأَةِ** کله چې سړې د ښځې نه خپل شهوت پوره کړی.

---

[1] من حدیث ابی سعیدالخدری رضي الله عنه اخرجه مسلم فی الحیض رقم ٨١ وابوداود فی الطهارة باب ٨٣)_

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زموږ دليل دا دی.چې الله تعالیٰ فرمائيلي دي.﴿ وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ﴾ آيت کې د تطهير حکم جنب ته هم ګډ دی.او په لغت کې جنابت وائی.په شهوت سره د منی وتلو ته.کله چې سړی د ښځې نه خپل شهوت پوره کړی.نو عرب وائی.﴿ أجنب الرجل﴾ نومعلومه شوه.چې د منی په شهوت سره وتل جنابت دی.نو چې انزال د منی په شهوت سره اوشی.نو غسل به واجب وی.

| |
|---|
| **وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى خُرُوجِ الْمَنِيِّ عَنْ شَهْوَةٍ** او حديث په شهوت سره وتلو باندې محمول دی |

**تشريح:- الجواب من حديث الشافعی** رحمه الله ﴿اوپاته شو هغه حديث کوم چې امام شافعی رحمه الله پيش کړې دی.دهغې نه ځواب دا دی.چې دا حديث په شهوت سره د منی په خروج باندې محمول دی.ددې امله چې حديث دخپلو الفاظو په اعتبار سره عام دی.ځکه چې دا متيازو، مذی ، ودی، منی ته که په شهوت وی اوکه بغير د شهوته وی.ټولو ته ګډ دی.او په اتفاق سره په حديث کې واړه شيان مراد نه دی.چونکه چې منی په شهوت سره اوځی.نو په دې باندې په اتفاق سره غسل واجبيږی.نوځکه به دا حديث هم په دې حمل کولې شی.

| |
|---|
| **ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله(١) **انْفِصَالُهُ عَنْ مَكَانِهِ عَلَى وَجْهِ الشَّهْوَةِ** بيا دامام ابوحنيفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نزد په شهوت سره د منی د خپل محل نه جلا کيدل دی |

**حل اللغة*** ① **انفصال**: جلا کيدل

**تشريح:- خلاف الطرفين وابی يوسف فی شرط الشهوت عند الظهور**﴿احناف علماء رحمهم الله په دې خو متفق دی.چې دغسل د وجوب لپاره دا ضروری ده.چې کله منی دخپل ځائې نه يعنی شاه نه جلا شی.چې شهوت وی.خوچې کله د عضوتناسل نه بهر ته اوځی.نوپه هغه وخت کې د شهوت وجود شرط دے که نه دے؟ نوپه دے اړه کې اختلاف دی.① د طرفينو رحمهما الله په نزد د منی دظهور په وخت د شهوت وجود ضروری نه دی.

| |
|---|
| **وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **ظُهُورُهُ أَيْضًا** اودامام ابويوسف رحمه الله په نزد ددے ښکاره کيدل (هم معتبر) دی **اعْتِبَارًا لِلْخُرُوجِ بِالْمُزَايَلَةِ** خروج په جلا کيدو باندې قياس کوی **إِذِ الْغُسْلُ يَتَعَلَّقُ بِهِمَا** ځکه چې غسل د دواړو سره متعلق دی |

**حل اللغة*** ① **مزايلة**: خپل مينځ کې جلا کيد

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله په نزد په هغه وخت کې هم د شهوت وجود ضروری دی.

**دليله**﴿دامام ابويوسف رحمه الله دليل قياس دی.چې لکه څنګه منی دخپل محل يعنی شاه نه راوځی.نوپه هغه وخت کې شهوت ضروری دی.نودغه ډول د عضو تناسل نه د وتلو په وخت کې هم د شهوت وجود ضروری دی.اوجامع دا دی.چې دغسل تعلق د دواړو سره دی.

| |
|---|
| **وَلَهُمَا أَنَّهُ مَتَى وَجَبَ مِنْ وَجْهٍ** او د طرفينو رحمهما الله په نزد هرکله چې من وجه واجب شو **فَالِاحْتِيَاطُ فِي الْإِيجَابِ** نو احتياط په واجب کاوه کې دی. |

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله﴿د طرفينو رحمهما الله دليل دا دی.چې د منی د انفصال په وخت کې شهوت موجود وو.نود دے تقاضا ده.چې غسل واجب شی.او دخروج په وخت چونکه شهوت نه وو.نوددے تقاضا ده.چې غسل دے واجب نه شی.نو په دے صورت کې دغسل وجوب اوعدم وجوب دواړه احتمال شته.خوموږ په احتياط باندې عمل کوو.او غسل مو واجب کړلو.

**ثمرة الخلاف**﴿فائده د اختلاف دا ده.چې يوسړی استمناء باليد اوکړله.(موټک ئې اووهلو) او عضوتناسل ئې اونيولو.کله چې ئې شهوت ختم شو.نو منی بغير دشهوت نه خارج شوه.په دے صورت کې به د طرفينو

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(١١١١) و الدرالمختار(١١٩١٠)والهندية (٣٦١١) نقلا عن القول الراجح(٩١١)_



رحمهما الله په نزد غسل واجب وی.او دامام ابويوسف رحمه الله په نزد به واجب نه وی.

## وجوب دغسل په التقاء دختانينو

| |
|---|
| **وَالْتِقَاءُ الْخِتَانَيْنِ مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ** اوپه خپلو کې د ختانينو جنګيدل بغير د انزال نه |

**حل اللغة*** ① **التقاء**: ملاويدل ② **ختانين**: دواړه شرمګانونه

**تشريح:- حکم الختنان للرجل والمراة**﴿ختان د ښځې او سړی د ختنه (کټ کولو)ځائې دے .دعربو عادت وو.چې هغوی به د هلکانوپه شان د جينکو ختنه هم کوله.ابن الهمام رحمه الله ليکی.چې ختنه د سړو لپاره سنت ده.اود ښځو لپاره عزت .ځکه چې د مختونې ښځې سره په جماع کاوه کې زيات خوند وی.سړی که ختنه پريږدی.نوهغه به مجبورولے شی.البته که په ختنه کې دهلاکت غالب ګمان وی. نو بيا به نشی مجبورولې.(مثلا د شوګر مريض وی.چې زخم ئې نه جوړيږی.)

**وجوب الغسل بالتقاء الختانين**﴿مسئله ده.که ختانين دواړه ملاوشی.او خشفه (دذکر سر) دښځې په شرمګاه کې پټ شی.نوپه دواړو به غسل واجب وی.که انزال شوی وی اوکه نه وی.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلي دی **إِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ** کله چې دواړه ختانين ملاؤ شی **وَتَوَارَتِ الْحَشَفَةُ** او خشفه پټه شی **وَجَبَ الْغُسْلُ** نوغسل واجب شو **أَنْزَلَ أَوْ لَمْ يُنْزِلْ**(١).که انزال شوی وی اوکه نه وی **وَلِأَنَّهُ سَبَبُ الْإِنْزَالِ** ځکه چې التقاء سبب دانزال دی **وَنَفْسُهُ يَتَغَيَّبُ عَنْ بَصَرِهِ** اونفس آله د ده دنظر نه پټه شی **وَقَدْ يَخْفَى عَلَيْهِ** او انزال (کله) په دغه کس باندې هم پټ شی **لِقِلَّتِهِ** د قلت د منی د امله **فَيُقَامُ مَقَامَهُ** نوالتقاء د ختانينو دانزال قائم مقام شو |

**حل اللغة*** ① **غابت، غاب، غيبة (ض)**: غيبيدل، پټيدل ② **حشفة**: دَ سپاری سړی دَ ذکر وړاندينې برخه

**تشريح:- دلائله**﴿ ①دليل دا حديث دی.﴿ إذا إلتقى الختان الختان وغابت الحشفة وجب الغسل أنزل اولم يـنزل﴾ يعنی کله چې دواړه ختان په خپل مينځ کې يوځائې شی.نوغسل واجبيږی.که انزال شوی وی اوکه نه وی.② دوهم دليل دا دی.چې په کوم شی حکم مرتب کيږی.هغه مخفی وی.اودهغے سبب ښکاره وی.نو هغه ظاهری سبب به د پټ شی قائم مقام وی.او حکم به په دغه سبب باندې مرتب وی.نودلته کې التقاء د ختانينوسبب د انزال دی.او په نفس انزال باندې دغسل ترتب دی.او هغه يوپټ شی دی. ځکه چې د سترګو نه پټ وی.اوکله د منی د قلت دوجےدا پته هم نه لږی.چې انزال شوی دے اوکه نه دی.نوځکه به التقاء د انزال قائم مقام وی.او دغسل ترتب به په التقاء وی په انزال به نه وی.

| |
|---|
| **وَكَذَا الْإِيلَاجُ فِي الدُّبُرِ**.او هم دا حال د ادخال في الدبر هم دی **لِكَمَالِ السَّبَبِيَّةِ** ځکه چې سبب واړه موجود دی |

**حل اللغة*** ① **ايلاج**: داخلول

**تشريح:- وجوب الغسل بالادخال في الدبر**﴿اوکه دفرج نه علاوه ئې په دبر کې ادخال اوکړلو.نوهم به غسل واجب وی.ځکه چې په دے صورت کې هم کمال سببيت موجود دی.او ډير فاسقان د فرج په مقابله کې په دے لاره باندې شهوت پوره کاوه ته ترجيح ورکوی.ځکه ځينې فقهاؤ ليکلی دی.چې په لمانځه کې د بې ډيرى هلکانوپه برابری کې داسې لمونځ فاسدوی.لکه څنګه چې د ښځو په محاذاة باندې لمونځ ماتيږی.

| |
|---|
| **وَيَجِبُ عَلَى الْمَفْعُولِ بِهِ احْتِيَاطًا** اواحتياطاً به په مفعول هم واجب وی |

**تشريح:- وجوب الغسل على المفعول به**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چې احتياطاً په مفعول به باندې هم غسل واجب دی.ځکه چې دا احتمال هم شته.چې مفعول به هم خوند محسوس کړی. او

(١) من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده رضی الله عنه اخرجه ابومحمد عبدالله بن وهب فی مسنده (نصب:١٣١١١)_

منی ترے خارج شي. اودا احتمال هم شته چې هغه خوند محسوس نکړي. او خروج د منۍ اونشي. اوطهارت کي چونکه احتياط مطلوب دي. نوځکه په مفعول به هم احتياطاً غسل واجب دي.

**بِخِلَافِ الْبَهِيمَةِ وَمَادُونَ الْفَرْجِ** په خلاف د ځناور او د فرج نه علاوه په بل ځائې کي (په انزال سره) **لِأَنَّ السَّبَبِيَّةَ نَاقِصَةٌ** ځکه چي سبب ناقص دي.

**حل اللغة** بهيمة: ځاروی

**تشريح:- عدم وجوب الغسل في ادخال البهائم وغير السبيلين**۞ ددے په خلاف كه د ځناور سره د ادخال كار اوكړي شي. يا د سبيلينو نه علاوه په ورون وغيره باندې دا كار اوكړي. نود انزال نه بغير صرف په ادخال باندې غسل نه واجبيږي. د دے امله چې په دے صورتونو كي سببيت ناقص دې. ځكه چې طبعييت سليمه ددے نه نفرت كوی.

## وجوب دغسل په حيض اونفاس

**قَالَ وَالْحَيْضِ** اوحيض **لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ځكه چي الله تعالى فرمائيلي دی **حَتَّى يَطَّهَّرْنَ** تردې چې ښځے ښه پاكې شي **بِالتَّشْدِيدِ** دا صيغه) په (تشديد) سره ده **وَكَذَا النِّفَاسُ لِلْإِجْمَاعِ** (. او هم دا حكم په اجماع سره د نفاس دې.

**حل اللغة** ① **حيض:** ماهواری ناروغی (ناروغی (بيماری)) ② **نفاس:** دَ ماشوم دَ پيداكيدونه روسته وينه راتګ

**تشريح:- وجوب الغسل بالحيض والنفاس**۞ دغسل په موجباتوكي نفس اوحيض دی. او بعضو وئيلی دی. چې انقطاع دحيض موجب دغسل دې.

**دنيله**۞ دليل دالله تعالى ارشاد دې. ﴿حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ﴾ (په تشديد سره) يعنی حائضوښځو ته نزدے مه ورځئ. تردې چې هغوی ښه پاكې شی. اودا ښه پاكيدل په هغه وخت كي راځی. چې د وينے د انقطاع نه روسته غسل هم اوكړی.

**السوال**۞ ليكن كه دا اعتراض اوكړې شی. چې د ﴿يَطْهُرْنَ﴾ بغير د تشديد نه هم قراءت متواتره دې.

**الجواب**۞ ددے ځواب دا دې. چې دوې (دوه) قراءتونه په منزله د دوو آياتونو وی. نوامام ابوحنيفه رحمه الله په دواړو باندې عمل كړې دې. هغه داسې كه د حيض په لسمه ورځ وينه اودريږی. نود خاوند لپاره ور سره وطی كول جائز ده. اګرچې غسل ئې نه وی كړې. په دے صورت كښے به د تشديد نه بغير قراءت دليل وی. ځكه چې وينه بنده شوه. او پاكه شوه. اوكه د لسو ورځو نه په كمه موده كي وينه اودريږی. نود وطی د جواز لپاره به په دے باندې غسل واجب وی. په قرات مشدده ﴿يَطَّهَّرْنَ﴾ باندې د عمل كاوه دپاره. هم دا حكم د نفاس هم دې. په اجماع سره نفاس موجب د غسل دې.

**دليله** دحضرت معاذ رضی الله عنه نه مرفوع روايت دې. كه په نفاسه ښځه باندې اووه ورځې تيرے شی. او بيائې وينه اوليدله. نو غسل دے كوی. او لمونځ دے كوی.

## د غسل مسنون مواقع

**قَالَ وَسَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُسْلَ لِلْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَعَرَفَةَ وَالْإِحْرَامِ** ([1]) او رسول الله ﷺ د جمعے

١) اما غسل يوم الجمعة ففی حديث عمربن الخطاب رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال اذا جاء احدكم الى الجمعة فليغتسل اخرجه البخاری فی الجمعة باب ٥ رقم ٨٨٢ ومسلم فی الجمعة رقم ٤ واما غسل يوم العيدين وعرفة ففيهما حديث عبدالرحمن بن عقبة بن الفاكه عن جده الفاكه بن سعدوكانت له صحبة ان رسول الله ﷺ كان يتغسل يوم الفطروالنحر ويوم عرفة وكان الفاكه يامراهله بالغسل فی هذه الايام اخرجه ابن ماجه فی الاقامة باب ١٦٩ رقم ١٣١٦ واما غسل الاحرام ففی حديث زيد بن ثابت رضی الله عنه انه رای رسول الله ﷺ تجرد لاهلاله واغتسل اخرجه الترمذی باب ٨)_



اخترونو، احرام اوعرفے لپاره غسل سنت ګرځولې دې **نَصَّ عَلَى السُّنِّيَّةِ** صاحب دكتاب ددے غسلونو د مسنونيت تصريح اوكړله **وَقِيلَ هَذِهِ الْأَرْبَعَةُ مُسْتَحَبَّةٌ** اووے فرمائيل: چې دا مستحب دی

**حل اللغة** ① سن، سناً: طريقه مقرر كول

**تشريح:- مواقع الغسل المسنون**۞ په دے عبارت كي د مسنون غسل بيان دې. ① قدوری رحمه الله په صورتونوكي د مسنون غسل صراحت كړې دې. (١) جمعه ② اخترونه ③ عرفه ④ احرام. ② او بعضو وئيلی دی. چې دا ځلور واړه مستحب دی.

**وَسَمَّى مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ حَسَنًا فِي الْأَصْلِ** او امام محمد رحمه الله په كتاب الاصل كي د جمعے دورځې غسل ته حسن وئيلی دی

**تشريح:- المذهبان في حكم غسل الجمعة**۞ اوامام محمد رحمه الله په مبسوط كي دجمعے د ورځې غسل ته حسن وئيلی دی.

**وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ** (او امام مالك رحمه الله فرمائی) **هُوَ وَاجِبٌ** چې واجب دې **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی **مَنْ أَتَى الْجُمُعَةَ** كوم كس چې د جمعے په ورځ راشی **فَلْيَغْتَسِلْ** ([2]) نوغسل دے اوكړی

**حل اللغة** ① **فليغتسل، اغتسل، اغتسالا:** غسل كول

**تشريح:- دلائله**۞ ① دامام مالك رحمه الله دليل دې. چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. ﴿من أتى الجمعة فليغتسل﴾ ② دوهم د مسلم حديث دې. كوم چې د ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه نقل شوې دې.

**وَلَنَا** اوزمونږ دليل دا دې **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې نبی عليه السلام فرمائيلی دی **مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ** چا چې د جمعے په ورځ اودس اوكړلو. نوتيك ده **وَمَنْ اغْتَسَلَ** اوچا چې غسل اوكړلو **فَهُوَ أَفْضَلُ** ([1]) نو دا غوره ده

**تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله**۞ او زمونږ دليل دا دې. چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. چا چې د جمعے په ورځ اودس اوكړو. نو ښه ده. او چاچې غسل اوكړو. نودا غوره ده. ددے حديث نه د سنتيت ثبوت نه كيږی. البته استحباب ترے ثابتيږی. نود وجوب په حديث اوپه دے حديث كي په ظاهره تعارض پيدا شو. نود دے امله په دے دواړو احاديثو كي به تطبيق اوكړې شی. او يا به ناسخ او منسوخ اوګنړلې شی.

**وَبِهَذَا يُحْمَلُ مَا رَوَاهُ عَلَى الْاسْتِحْبَابِ** اوهم ددے حديث د امله به لومړې حديث په استحباب باندې حمل كولې شی **أَوْ عَلَى النَّسْخِ** اويا به په منسوخ باندې حمل كولے شی

**تشريح:- الاجوبة من حديث مالك**۞ ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې دامام مالك رحمه الله بيان كړې حديث ﴿من أتى ا لجمعة فليغتسل﴾ به په استحباب حمل كولې شی. چې په دواړوحديثونوكي تطبيق راشی. اوتعارض پاته نشی. اود ابوسعيد خدری رضی الله عنه په حديث كي دَ واجب متعارفه معنی مراد نه ده. بلكه د واجب معنی مؤكد اولازم ده. نوددے حديث نه د جمعے د ورځې غسل كول سنت موكده ثابت شو. ② دوهم ځواب دا دے چې د وجوب حديث به په نسخ حمل شی. يعنی په ابتداء داسلام كي د جمعے د ورځې غسل كول واجب وو. ددے نه روسته منسوخ شو.

**تائيد النسخ بالحديث**۞ او په نسخ باندې دليل هغه حديث دې. كوم چې امام ابوداود رحمه الله د عكرمه رحمه الله نه

[1]) من حديث سمرة بن جندب رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الطهارة باب ١٢٨ والترمذی فی الجمعة باب ٥ والنسائی فی الجمعة باب ٩ وابن ماجه فی الاقامة باب ٨١ والدارمی فی الصلاة باب ١٩)_

نقل كړې دي. «ان ناسا من أهل العراق جآءوا فقالوا يا ابن عباس أترى الغسل يوم الجمعة واجبا فقال لا، لكنه طهر و خير لمن إغتسل ومن لم يغتسل فليس عليه بواجب وسأخبركم كيف بدأ الغسل كان الناس مجهودين ويلبسون الصوف ويعملون على ظهورهم وكان مسجدهم ضيقا متقارب السقف، إنما هو عريش فخرج النبي ﷺ في يوم حار وعرق الناس في ذالك الصوف حتى صارت منهم رياح حتى أذى بعضهم بعضا فلما وجد النبي ﷺ تلك الرياح فقال يا ايها الناس إذا كان هذا اليوم فاغتسلوا وليمس أحدكم أمثل ما يجده من دهنه وطيبه قال ابن عباس رضي الله عنه ثم جآء الله بالخير ولبسوا غير الصوف وكفوا العمل ووسع مسجدهم وذهب بعض الذى كان يوذى بعضهم بعضا من العرق» يعني عكرمه رحمه الله فرمائي. چې د عراق څه خلګو اوونيل: اے ابن عباس آيا ته دجمعې غسل واجب ګنړې. ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل: نه. ليکن کوم سړې چې غسل اوکړلو. نو دهغه لپاره غوره ده. اوچا چې غسل اونکړلو. نو په هغه واجب نه دي. اوزه تاسو ته بيانوم. چې دغسل پيل څنګه شوې وه. (واقعه دا ده) خلګو به محنت او مشقت کولو. او دوړئ جامې به ئې اغوستلې. اوددوی جمات تنګ وو. چهت کښته وو. لکه چې جونګړه وی. يوه ورځ نبی ﷺ په ښخته ګرمه ورځ کې تشريف راوړلو. او خلګ د وړئ په جامو کې د خولې نه ډك وو. تر دے چې د هغې خولې بدبوی هوا اوړله. او خلګو ته ئې تکليف رسولو. نونبی عليه السلام اوفرمائيل: خلګ وددے ورځې يعنی د جمعې د ورځې غسل کوئ. اوتيل يا خوشبوی لګوئ. ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل: بيا چې کله الله تعالى احسان اوکړلو. (يعنی د خلګ وحالت لږ ښه شو) او د وړئ د جامو نه سوا نورے جامې ئې اغوستل پيل کړل. اود کارونو نه هم منع شو. اودهغوی جمات هم کهولاو شو. او تکليف ورکونکې شی يعنی خوله هم ختمه شوه. (نودغسل وجوب ختم شو) ددے پوره روايت نه ښکاره شوه. چې په اول کې د جمعې د ورځې غسل واجب وو. ددے نه روسته وجوب منسوخ شو.

## غسل د جمعې دورځ لپاره دي که د مانځه دپاره

ثُمَّ هٰذَا الْغُسْلُ لِلصَّلَاةِ عِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ رحمه الله بيا دا غسل د ابويوسف رحمه الله په نزد دلمونځ لپاره دي هُوَ الصَّحِيْحُ هم دا صحيح قول دي لِزِيَادَةِ فَضِيْلَتِهَا عَلَى الْوَقْتِ خکه چې لمونځ ته په وخت باندې فضيلت دي وَاخْتِصَاصِ الطَّهَارَةِ بِهَا او طهارت د لمانځه سره خاص دي وَفِيْهِ خِلَافُ الْحَسَنِ او په دے کې د حسن رحمه الله اختلاف دي..

**تشريح:- المذهبان في كون الغسل للجمعة او للصلاة؟**◉پاته شوه دا خبره چې د جمعې د ورځې غسل د جمعې د ورځې لپاره مسنون دي. او که دجمعې د لمانځه دپاره. نوپه دے اړه کې اختلاف دي. ① دحسن رحمه الله نه روايت دي. چې دجمعې د ورځې د غسل فضيلت دجمعې د ورځې لپاره دي. خکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. دجمعې ورځ د ورځو سرداره ده. ② او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چې د غسل فضيلت دجمعې دلمانځه لپاره دي. اود ملا علی رحمه الله د قول مطابق دا صحيح قول دي.

**وجوه الترجيح لقول ابی يوسف**◉خکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. ① «اذا جآء أحدكم الجمعة فليغتسل» (شيخين) يعنی په تاسو کې چې څوك دجمعې لمونځ ته راشي. نو هغه دے د جمعې د لمانځه لپاره غسل اوکړی. ② دويمه وجه دا ده. چې دجمعې لمانځه ته د جمعې په ورځ فضيلت حاصل دي. اود جمعې د ورځې سرداری د جمعې د لمانځه د امله ده. ③ دغه ډول د طهارت تعلق دلمانځه سره دي. د ورځې سره نه دي. نوخکه د غسل فضيلت د لمانځه د امله کيدل پکار دی. د جمعې د ورځې د امله نه.

**ثمرة الاختلاف**◉ په امام ابويوسف رحمه الله او حسن بن زياد رحمه الله کې فائده د اختلاف داسې ښکاره کيږی. چې يو سړی د جمعې په ورځ غسل اوکړلو. او بيا بې اودسه شو. اواودس ئې اوکړلو. او لمونځ ئې اوکړلو. نو د امام ابويوسف رحمه الله په نزد سنت غسل ادا نشو. خود حسن بن زياد رحمه الله په نزد مسنون غسل ادا شو.

وَالْعِيْدَانِ بِمَنْزِلَةِ الْجُمُعَةِ او دواړه اخترونه د جمعې په درجه کې دی لِأَنَّ فِيْهِمَا الْاِجْتِمَاعُ خکه چې په دے دواړو کې اجتماع کيږی فَيُسْتَحَبُّ الْاِغْتِسَالُ دَفْعًا لِلتَّأَذِّيْ بِالرَّائِحَةِ. نود بدبوئې لرلے کاوه لپاره غسل کول مستحب دي وَأَمَّا فِيْ عَرَفَةَ وَالْاِحْرَامِ فَسَنُبَيِّنُهُ فِي الْمَنَاسِكِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى اوپاته شوه عرفه او احرام نو انشاء الله په مناسك کې به



دهغې بيان اوکړلو.

**حل اللغة**° ① تاذي: تکليف

**تشريح:- مسنونية غسل يوم العيدين**◉ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چې عيدين هم په منزله د جمعې دی. خکه چې په دے دواړو کې هم خلګ راجمع کيږی. نوغسل کول به مستحب وی. چې د خولې وغيره د امله بدبوئې نه وی.

**دليله سنية الغسل للعيدين**◉د عيدينو د لمونځ لپاره غسل کول د احاديثو نه هم ثابت دي. دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي. چې «انه ﷺ كان يغتسل يوم العيدين» يعنی نبی ﷺ به د اخترونو په ورځ غسل کولو. اودعرفې او احرام لپاره دغسل بيان به په باب المناسك کې راشي.

**انواع الغسل**◉حاصل د کلام دا شو. چې د غسل يوولس انواع دی. په دے کې پنځه فرض دی. (١) د انزال د منی د امله ② د التقاء ختانينو د امله ③ د احتلام د امله ④ دحيض د امله ⑤ د نفاس د وجې. او څلور سنت دی. ① د جمعې د ورځې غسل ② دعرفې د ورځې ③ د اخترونود ورځې ④ داحرام په وخت. او يو واجب دي. يعنی د مړی غسل. او يو مستحب دي. يعنی کله چې کافر مسلمان شی. او جنب نه وی. نو دهغه لپاره غسل کول مستحب دي.

## د مذئ اوودئ په وتلو د اودس وجوب

قَالَ فرمايي وَلَيْسَ فِي الْمَذْيِ وَالْوَدْيِ غُسْلٌ اوپه مذی اوودی کې غسل نشته وَفِيْهِمَا الْوُضُوْءُ په دے دواړو کې اودس دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی كُلُّ فَحْلٍ يُمْذِيْ د هرځوان نه مذی څی وَفِيْهِ الْوُضُوْءُ[1] اوپه دے کې اودس دے وَالْوَدْيُ الْغَلِيْظُ مِنَ الْبَوْلِ او ودی تينګې متيازے وی يَتَعَقَّبُ الرَّقِيْقَ مِنْهُ خُرُوْجًا چې د نرمو متيازو پسې راوځې فَيَكُوْنُ مُعْتَبَرًا بِهِ نودا به په هغې باندې قياس کولې شی وَالْمَنِيُّ خَاثِرٌ أَبْيَضُ او منی سپينې اوبه دی يَنْكَسِرُ مِنْهُ الذَّكَرُ ددے په وتلو سره ذکر مړاوے شی وَالْمَذْيُ رَقِيْقٌ يَضْرِبُ إِلَى الْبَيَاضِ اومذی نرئ او زيړے اوبه وی. سپينوالی ته مائله وی يَخْرُجُ عِنْدَ مُلَاعَبَةِ الرَّجُلِ أَهْلَهُ دسړی دخپلې ښځې سره د لوبو کاوه د امله اوځی وَالتَّفْسِيْرُ مَأْثُوْرٌ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها (١) او دا تفسير دحضرت عائشې رضي الله عنها نه منقول دي.

**حل اللغة**° ① **مذی**: هغه نرئ اوبه چې دَ ملاعبت يا ښکلولو وخت کې اوځی ② **ودی**: هغه تينګې اوبه چې دَ متيازو نه روسته اوځی ③ **ملاعبت**: مچی کول (ښکلول) راښکلول ④ **ماثور**: نقل شوې.

**تشريح:-دليل وجوب الوضوء في المذی والودی**◉صاحب دکتاب فرمائي. چې د ودئ او مذئ د وتلو په صورت کې غسل واجب نه دي. بلکه اودس واجب دي. دليل د نبی ﷺ ارشاد دي. چې «كل فحل يمذی وفيه الوضوء»

**لم ذكر المذی والودی في باب الغسل؟**◉ دلته کې يوسوال دي. اوهغه دا چې کله د مذئ او ودئ په وتلو سره اودس واجبيږی. اوغسل نه. نو دا دواړه پکار وو. چې په «فصل في الوضوء» کې ئې ذکر کړې وې. په «فصل في الغسل» کې نه دے ذکر کړې.

**التوجيهان لذكرهما في الغسل**◉ ① ددے ځواب دا دي. چې دا دواړه چونکه د منئ سره مشابه دی. خکه په «فصل في الغسل» کې ذکر کړې شو. ② اودلته بهتره توجيه دا ده. چې دلته کې ئې د دواړو ذکر خکه اوکړلو. چې امام احمد رحمه الله په يو روايت کې په دے دواړو د غسل د وجوب قائل دي. نو دلته کې ددے دواړو ذکر د امام احمد رحمه الله د قول د ترديد لپاره ذکر شوې دي.

---

٢) قال الزيلعی رحمه الله غريب ورواه عبدالرزاق فی مصنفه (١٥٩١١) عن قتادة وعكرمة قالا هی ثلاثة :المنی والمذی والودی اما المنی فهو الماء الدافق الذی يكون فيه الشهوة ومنه يكون الولد ففيه الغسل واما المذی فهوالذی يخرج اذا لاعب الرجل امراته ففيه غسل الفرج والوضوء واما الودی فهو الذی يكون مع البول وبعده فيه غسل الفرج والوضوء (نصب:١١٤٠١)_

**لم ذكرالمذي والودي مكرراً** ۞ دوهم سوال دا کیږي.چي کله د ماقبل نه دا معلومه شوه.چي «كل ما خرج من السبيلين» ناقض د اودس دی.نو په هغې کي دمذئ او ودئ ذکر هم موجود وو.نودے ځائې کي د دے د ذکر کاوه څه اړتیا وو؟

**تكرارهما للرد على مالك** ؒ ۞ ددے دواړو ذکر ئې صراحةً اوکړلو.دامام مالك ؒ د قول د تردید دپاره. ځکه چي امام مالك ؒ د دے دواړو په وتلو د اودس د وجوب قائل نه دي.

**كيف يكون الودي ناقضاً مستقلاً؟** ۞ دريم سوال دا کیږي.چي د ودئ وتلو نه روسته اودس څنګه کیدې شی.حالانکه ودی خو د متیازو د وتلونه روسته خارجیږی.نو اودس د ودی د وتلو نه وړاندې د متیازو په وتلو سره واجبیږی.د ودئ په دے کي څه دخل نشته؟

**صورته** ۞ ددے صورت دا دې.چي متیازے اوکړي.بیا اودس اوکړي.اوبیا ودی اوځي.نوپه دغه کس دوباره اودس کول واجب شو.د منئ او مذئ او ودئ تعریفونه وړاندې تیر شوی دی.او دلته کي هم په ژباړه کي ذکر دی.وے ګورئ. «والله اعلم بالصواب»

## د اوبو احکام

| بَابُ الْمَاءِ الَّذِي يَجُوزُ بِهِ الْوُضُوءُ وَمَا لَا يَجُوزُ |
|---|

ژباړه:- (دا) باب دهغه اوبو (په بیان کي) دې.چي په هغې اودس جائز وی او (یا) چي په هغې اودس ناجائز وی.

**تشريح:- اقسام الماء المطلق** ۞ کله چي علامه مرغینانی ؒ د طهارتینویعنی اودس او غسل د بیان نه فارغ شو.نو په دے باب کي به دهغه شی بیان کوی.په کوم چي طهارت حاصلیږی.یعنی اوبه مطلق، د مطلقو اوبو نه مراد د باران ،خوړونو، چینو اوبه،او د کوهیانو اوبه او د دریابونواوبه ،

**دليلي طهوريته** ۞ ①او ددے په مطهر کیدو باندې دلیل دا قول د الله تعالی دې. ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾
②او نبی ﷺ فرمائیلی دی. «الماء طهور لا ينجسه شئ إلا ما غير لونه أوطعمه أو ريحه».

## د پاکونکواوبو اقسام اودليل د طهارت

| الطَّهَارَةُ مِنَ الْأَحْدَاثِ جَائِزَةٌ د ړاودسو نهٔ پاکی حاصلول جائز دی بِمَاءِ السَّمَاءِ د آسمان په اوبو وَالْأَوْدِيَةِ د خوړونو په اوبو وَالْعُيُونِ د چینوپه اوبو، وَالْآبَارِ د کوهیانو په اوبو وَالْبِحَارِ اود دریابونو په اوبوسره |
|---|

**حل اللغة:** ① اوديه: چینې ② آبار: کوهیان ③ بحار: سمندر

**تشريح:- نوعي الحدث** ۞ احداث دحدث جمع ده.اود حدث دوې (دوه) قسمونه دی. حدث اصغر اوحدث اکبر،یا داسې ونیلی شی.چې د حدث دوې (دوه) قسمونه دی.حدث غلیظه او حدث خفیفه، بهرحال د احداثونهٔ پاکی حاصلول جائزدی.دآسمان په اوبو د خوړونو په اوبو،د چینوپه اوبو،د کوهیانو او دریابونو په اوبو،

| لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چي الله تعالی فرمائیلی دی وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا موږ دآسمان نه پاکونکې اوبه نازل کړې دی |
|---|

**حل اللغة:** ① انزلنا، انزل، انزلاً: کوزول یا نازلول ⑤ طهور: پاك

**تشريح:- دلائل طهورية الماء المطلق** ۞ ① دلیل دالله تعالی دا ارشاد دې.﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ ② او نبی ﷺ فرمائیلی دی. «الماء طهور لا ينجسه شئ إلا ما غير لونه أوطعمه أو ريحه». یعنی موږ د آسمان نه پاکې اوبه نازل کړې دی.اود نبی ﷺ ارشاد چي دا اوبه پاکې دی.څه شی دانشی پلیتولې.مګرداچې د دے رنګ ،خوند او بوئی بدل شی.



| وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی علیه السلام قول دې وَالْمَاءُ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ اوبه پاکې دی.دا څه شی نشی پلیتولې.إِلَّا مَا غَيَّرَ لَوْنَهُ أَوْ طَعْمَهُ أَوْ رِيحَهُ [1] البته دا چي ددے رنګ یا خوند یا بوئی بدل شی .وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبی علیه السلام فرمائیلی دی فِي الْبَحْرِ هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ د دریاب د اوبو په اړه کي چي ددے اوبه پاکې دی وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ [2] اوددے مړزکي (مرداره) حلاله ده وَمُطْلَقُ الِاسْمِ يَنْطَلِقُ عَلَى هَذِهِ الْمِيَاهِ اود مطلق اوبو نوم ددے اوبو لپاره استعمالیږی. |
|---|

**حل اللغة:** ① لون: رنګ ② طعم: خوند مزه ③ ريح: بوئی ⑨ حل: حلال ⑩ ميتة: مړزکي (مرداره) ⑪ مياه: واحد ماء: په معنی د اوبو

**تشريح:-** او د سنن اربعه صاحبانود حضرت ابوهريره ؓ نه روایت کړې دې.چي «إن رجلا سأل رسول الله ﷺ فقال يا رسول الله إنا نركب البحر ونحمل معنا القليل من الماء فإن توضأنا به عطشنا أفنتوضأ من البحر؟ فقال ﷺ هوالطهور ماءه والحل ميته» یعنی د حضرت ابوهريره ؓ نه روایت دې. چي یوسړی دنبی ﷺ نه پوښتنه اوکړه.یارسول ﷺ موږ په دریابونوکي سفر کوو. او موږ سره لږے غوندې اوبه وی.که موږ په هغې باندې اودس اوکړو.نو تګی پاتې کیږو.نوآیا موږ د دریاب په اوبوباندې اودس کولې شو.نبی ﷺ اوفرمائیل: ددے اوبه پاکې او تړوك حلاله ده.

**الدليلان لكون اقسام الماء المطلق في الحقيقة ماء السماء** ۞ ددے حدیث نه معلومه شوه.چي د سمندراو دریابونو اوبه پاکې دي. ① د چینواو کوهیانو اوخوړونو اوبه په حقیقت کي د آسمان اوبه دی.دالله تعالی ارشاد دې.﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ ﴾ آیا تا نه دی کتلي تا چي الله تعالی نازل کړي دی.د آسمان نه اوبه.نو خوړے کړې ئې دی.دا د چینو په شکل کي په مځکه کي .(شاه رفیع الدین)
②او فرمائی.﴿ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا ﴾ یعنی الله تعالی دآسمان نه اوبه نازل کړې دی.بیا نالئ په خپله اندازه باندې روانے شی.(ژباړه تهانوی)

**السوال على الاستدلال** ۞ د صاحب هدایه په پیش کړی درے واړو نصونو کي دطهور لفظ دې.ددے نه د اوبودخپل ذات په اعتبار سره پاك والے خوثابتیږی .لیکن دبل څیزدپا کاوه ثبوت ترے نه کیږی ځکه چي غوره دا ده.چي د الله تعالی قول ﴿وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ ﴾ باندې استدلال اوکړې شی.یعنی موږ دآسمان نه اوبه نازلے کړې دی.چي تاسو پرے پاك کړو. د دے آیت نه د اوبو مطهر کیدل ثابتیږی.

**توجيه الاستدلال** ۞ خو صاحب د فتح القدير لیکلی دی.چي دشریعت په اصطلاح کي طهور هم دے ته وائی.چي بل شی پاکوی.نود طهور ددے تفسیر مطابق د صاحب هدایه دا مذکوره نصوص په دلیل کي پیش کول به صحیح شی فرمائی

## د وونې اومیوې په نچوړ شوو اوبو د اودس حکم

| قَالَ فرمایي وَلَا يَجُوزُ او اودس جائزنه دي بِمَا اعْتُصِرَ په داسے شی چي په نچوړولو سره حاصل شوې وی مِنَ الشَّجَرِ (برابره ده) که د وونے وی وَالثَّمَرِ او که د میوے وی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَاءٍ مُطْلَقٍ ځکه چي دا اوبه مطلقے نه دی. وَالْحُكْمُ عِنْدَ فَقْدِهِ مَنْقُولٌ إِلَى التَّيَمُّمِ او چي اوبه نه وی.نو حکم د تیمم اړخ ته منتقل کړې شوې دي |
|---|

**حل اللغة:** ① لايجوز، جاز جوازاً: جائز کیدل ② اعتصر، اعتصار: نچوړی کول ③ شجر: ونه ④ ثمر: میوه

---

[1]) من حديث عبدالله بن سعد ؓ اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۸۲)_
[2]) قال الزيلعى ؒ غريب ورواه عبدالرزاق فى مصنفه (۱۵۹۱۱) عن قتادة وعكرمة قالا هى ثلاثة :المنى والمذى والودى اما المنى فهو الماء الدافق الذى يكون فيه الشهوة ومنه يكون الولد ففيه الغسل واما المذى فهوالذى يخرج اذا لاعب الرجل امراته ففيه غسل الفرج والوضوء واما الودى فهو الذى يكون مع البول وبعده فيه غسل الفرج والوضوء (نصب:۱۱:۱۴۰)_

**تشريح:- الماء المعتصر ليس بماء مطلق** مسئله دا ده.چې كومې اوبه د ونې يا ميوې نه په نچوړ كاوه سره اووتلې شي.نوپه دې باندې اودس كول جائزنه دي.ځكه چې دا اوبه مطلق نه دي.

**دليله** اوددې دليل دا دې.كه د يوانسان په كور كې د درياب او د كوهى اوبه وى. اوبه هغې كې نچوړشوې اوبه هم وى.او بيا چاته اووائې.چې اوبه راوړه.نواول ډول ته به ئې ذهن ځى. دوهم قسم ته به نه ځى.نومعلومه شوه.چې نچوړ شوې اوبه ، مطلق اوبهٔ نهٔ دى.اوداوبو د نشتوالى په صورت كې حكم تيمم اړخ ته منتقل كړې شوې دې. الله تعالى فرمائيلى دى.﴿ فَلَمْ تَجِدُواْ مَاءً فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا ﴾ نومعلومه شوه.چې د ونې يا ميوې نه نچوړ شوې اوبه د اودس قابلې نه دى.

| |
|---|
| **وَالْوَظِيفَةُ فِي هَذِهِ الأَعْضَاءِ تَعَبُّدِيَّةٌ** اووظيفه په دې اندامونو كې تعبدى ده **فَلَا تَتَعَدَّى إِلَى غَيْرِ الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ** نوغير منصوص عليه ته به نشى متعدى كيداې |

**حل اللغة** ① **فلا تتعدى، تعدى تعدياً**: زياتيدل

**تشريح:- السوال التقديرى** او په «والوظيفة في هذه الأعضاء» كې د يواعتراض ځواب دې. اعتراض دا دې.چې نچوړ شوې اوبه اګرچې اوبه مطلق نه دى.ليكن د اوبو مطلقو په حكم كې دى.ځكه چې د شيخينو رحمهما الله په نزد په دې باندې حقيقي مرداري لرې كول جائز دې.نوهركله چې د حقيقي مرداري په ازالـه كې دا د اوبو مطلقو سره يوځائې كړې شوې دى.لكه چې شيخينو رحمهما الله كړى دى.نو د نجاست حكميه په لرې كاوه كې هم دا د اوبو مطلقو سره يوځائې كول پكار دى .چې په نچوړ شوو اوبو باندې اودس اوغسل جائز شى.حالانكه تاسو ورته ناجائز وائې.

**شرطية صحة القياس ان يكون حكم المقيس عليه وافقاً للقياس** د ځواب نه وړاندې دا خبره په ذهن كې اچول پكار دى.چې د قياس د صحت لپاره شرط دا دې.چې د مقيس عليه حكم خلاف قياس نه وى.نواوس به د ځواب حاصل دا شى.چې د څلورواندامونو لپاره د مطلق اوبو استعمال خلاف قياس دې.ځكه چې د محدث (بې اودسه) اندامونه په حقيقت كې هم پاك دى.او په حكم كې هم.

**طهارة اعضاء المحدث حقيقة وحكما** حقيقةً خو ځكه چې په دې اندامونو حقيقي مرداري نه وى اوحكماً ځكه كه يو كس محدث ياجنب په خپل ځان سور كړلو.او لمونځ ئې كولو.نو دهغه لمونځ صحيح دې.حالانكه كه دې نجس وو.نو د ده لمونځ به نه صحيح كيدلو.بهر حال د محدث اندامونه پاك دى. او د پاك شى پاكول محال دى.ځكه چې تحصيل دحاصل دې.

**الماء المقيد ليس بماء مطلق من كل الوجوه** او اوبه مقيدې من كل الوجوه د اوبو مطلقو په معنى كې نه دى.ځكه چې د اوبومطلقو د منع كاوه تدبيرونه نشى كولې.بلكه مفت حاصليږى.اواوبه مقيدې منع كولې شى.او هغه كمې ملاويږى.

**خلاصة المقدمات** بهرحال كله چې د اوبو مطلقوپه اندامونو كې استعمال هم خلاف قياس دې.او ماء مقيد من كل الوجوه دماء مطلق په معنى كې هم نه دى. نوماء مقيد په ماء مطلق باندې نشى قياس كولې.نوځكه موږ وايو.چې د ماء مطلقوحكم د دې نه علاوه نور پاكو بهيدونكو څيزونوته نشى متعدى كيدې. يعنى ماء مقيد اړخ ته نشى متعدى كيدې.د دې په خلاف په ماء مطلقو سره د حقيقي مرداري لرې كول دقياس مطابق دى.نوماء مقيد يعنى نور بهيدونكى شيان به په دې باندې قياس كول هم صحيح وى.او علت مشتركه د حقيقي مرداري ازاله ده.

| |
|---|
| **وَأَمَّا الْمَاءُ الَّذِي يَقْطُرُ مِنَ الْكَرْمِ** پاته شوې هغه اوبه چې د انګورو د ونې نه په خپله څڅيدلې وى **فَيَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ** په هغې باندې اودس كول جائزدې **لِأَنَّهُ مَاءٌ يَخْرُجُ مِنْ غَيْرِ عِلَاجٍ** ځكه چې دا اوبه بغير د نچوړولو نه رابهر شوې دى **ذَكَرَهُ فِي جَوَامِعِ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله دا مسئله په جوامع د ابويوسف رحمه الله كې ذكرده **وَفِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ** او په كتاب كې دې اړخ ته اشاره ده. **حَيْثُ شَرَطَ الِاعْتِصَارَ** ځكه د اعتصار شرط لګولې شوې دې. |



**حل اللغة** ① **يقطر، قطراً (ن)** څڅيدل، څاڅكې ② **كرم**: د انګورو زيلنى ③ **اعتصار**: نچوړى كول

**تشريح:- الفرق بين الخروج والاخراج** پاته شوې هغه اوبه چې د انګور د ونې نه په خپله راوځى.نو په هغې باندې اودس كول جائز دې.ځكه چې دا داسې اوبه دى.چې بغير د عمل نه راوتلى دى.دا مسئله په جوامع ابى يوسف كې ذكر ده.او قدورى رحمه الله دې اړخ ته اشاره كړې ده.ځكه چې د متن په مسئله كې ئې د اعتصار (نچوړولو) شرط لګولې دې . يعنى دا ئې وئيلى دى.چې اوبه د ونې يا ميوې نه نچوړ شوې وى.دا ئې نه دى وئيلې چې په خپله راووتلې وى.نوحاصل د خبرې دا شو.كه په نچوړولو سره ئې اوبه راويستې وى.نوپه دې باندې اودس جائز نه دې. او كه په خپله راوتلې وې. نو په دې اودس جائز دې.(فتح القدير)

### په مغلوبه اوبو د طهارت حكم

| |
|---|
| **قَالَ** فرمايي **وَلَا يَجُوزُ** اواودس جائز نه دې **بِمَاءٍ غَلَبَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ** په داسې اوبو سره چې په هغې باندې د اوبو نهٔ علاوه (بل څيز) غلبه كړې وى. **فَأَخْرَجَهُ عَنْ طَبْعِ الْمَاءِ** نوهغې اوبه ئې د خپل طبعيت نه ويستې وى **كَالْأَشْرِبَةِ وَالْخَلِّ** لكه شربت ،سركه **وَمَاءِ الْبَاقِلَّا** او د لوبيا اوبه **وَالْمَرَقِ** ښوروواه **وَمَاءِ الْوَرْدِ** اود ګلاب اوبهٔ **وَمَاءِ الزَّرْدَجِ** اود ګازرې اوبه، |

**حل اللغة** ① **غلب غلبة (ض)**: غلبه موندل، برى موندل ② **فاخرجه، اخرج، اخراجًا**: وتل ③ **اشربه، واحد شراب**: د څښلو شى ④ **خل**: سركه ⑤ **ماءالورد**: عرق ګلاب

**تشريح:- حكم الماء المغلوب** مسئله دا ده.كه د اوبو سره بل شى ګډ شى.او په اوبو باندې غالب شى.تردې چې دا اوبه دخپل طبعيت نه اوباسى.او د اوبو طبعيت نرموالے اوبهيدل دى.نو په داسې اوبو باندې شرعاً اودس كول معتبر نه دې.لكه شربت، سركه ، د ګلاب عرق،د لوبيا اوبه، ښوروواه او د ګازرې اوبه.

**المراد من الاشربة المعصورات** ابن الهمام ليكلى دى.كه د شربتونونه مراد هغه وى.كوم چې د ونې نه راويستې شوى وى.لكه د انار شربت،د انناس شربت، او د سركې نه خالصه سركه مراد وى.نو دا دواړه به دهغه اوبو نظير وى.كومې چې د ونې يا ميوې نه نچوړ شوې وى.او د لوبيااوبه او ښوروواه به دهغه اوبو نظير وى.په كوم چې بل شى غالب شوې وى.او په عبارت كې به لف نشرمرتب وى.يعنى د «ما إعتصر من الشجر والثمر» مثالونه به مقدم وى.او «ما غلب عليه غيره وغيره» مثالونه به موخر وى.لكه چې دالله تعالى ارشاد دې.﴿ وَمِن رَّحْمَتِهِ جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ ﴾ په دې كې د لف نشر مرتب خيال ساتلې شوې دې.

**المراد من الاشربة المياه العذبة وتوضيحها** او كه د شربتونونه هغه اوبه مراد وى.چې په هغې كې خوږوالې ملاوشوې وى.لكه ګوړه ئې په كې ګډه كړې وى.يا شهد ئې په كې ګډ كړې وى.او دسركې نه مراد هغه سركه وى.كومه چې د اوبو سره ګډه شوې وى.نوپه دې صورت كې به دا واړه د هغه اوبو نظير وى.چې په هغې باندې بل څيزغالب شوې وى.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى مَاءً مُطْلَقًا** ځكه چې دې كې يو ته هم ماء مطلق نه وائى |

**تشريح:- دليل عدم جواز الطهارة** او په دې اوبو باندې داودس د عدم جواز دليل دا دې.چې دې ته اوبه مطلق نه وائى .يعنى د اوبو په لفظ سره دې څيزونو ته ذهن نه ځى.هم دا وجه ده.چې ددې اوبو نه د اوبو نوم لرې كول ټيك دى.هر سړې چې اووائى.چې ما اوبه نه دى څكلې.حالانكه ده د لوبيا اوبه يا ښوروواه څكلې وى .نو داسې كس ته دروغژن نشى وئيلې.كه دا په حقيقت كې اوبه وې.نوددې څخه به د اوبو د صفت نفى كول ټيك نه وو .ځكه چې حقيقت د مسمى نه نه جلا كيږى.

| |
|---|
| **وَالْمُرَادُ بِمَاءِ الْبَاقِلَّا** اود باګرو (كلول) د اوبو نه مراد دا دې **مَا تَغَيَّرَ بِالطَّبْخِ** چې په پخولو سره اوبه بدلې شى **فَإِنْ تَغَيَّرَ** |

بِدُوْنِ الطَّبْخِ كه بغير پخولو نه بدلے شي يَجُوْزُ التَّوَضُّؤُبِهٖ نوپه هغے باندې اودس جائزدې.

**حل اللغة:** ① تغير، تغيراً: بدليدل ⑧ **توضی:** اودس كول

**تشريح:- الحكمان لماء الباقلاء** ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. ① چې د لوبيا نه هغه اوبه مراد دي.چې په اوبوكې لوبيا واچولې شي.او پخے شي.او دے سره هغه اوبه متغيرے شي.نوپه هغے باندې اودس كول جائز نه دې. ② اوكه بغير د پخولو نه مغيرے شي.نواودس پرے جائزدې.

### په دوې (دوه) صفته اوبو د طهارت حكم

قَالَ فرمائي وَتَجُوْزُ الطَّهَارَةُ وپاكي حاصلول جائزدي بِمَاءٍ خَالَطَهُ شَيْءٌ طَاهِرٌ .په داسې اوبو چې هغے سره څه پاك څيزګډ شوې وي فَغَيَّرَ اَحَدَ اَوْصَافِهٖ نوهغے د اوبو په صفتونوكې يوصفت بدل كړې وي كَمَاءِ الْمَدِّ وَالْمَاءِ الَّذِي اخْتَلَطَ بِهِ اللَّبَنُ اَوِ الزَّعْفَرَانُ اَوِ الصَّابُوْنُ اَوِ الْاُشْنَانُ لكه دسيلاب اوبه او هغه اوبه چې هغے سره زعفران يا صابون يا اشنان ګډ شوې وي

**حل اللغة:** ① **لايجوز، جاز جوازاً(ن):** جائز كيدل ② **خالطه، خالط مخالطة** ګډوډ كيدل ③ **اشنان:** يوقسم جاړي بوټی دې

**تشريح:- حكم الطهارة بما غيروصفه الواحد** ﴿ مسئله دا ده.كه په اوبوكې څه پاك شی ګډ شي.اوهغے د اوبو درے صفتونه (رنګ، خوند او بوئی)كې يوبدل كړلو.نوپه دے اوبو باندې اودس كول جائز دې.لكه د سيلاب اوبه يا د زعفران،صابون او اشنان سره ګډے شوې اوبه .اشنان يوه ترخه ګياه ده.او دصابون په څير جامې پاكوی.(خينې خلګ ورته زمئ وائی.) د قدوری دمصنف رحمه الله عبارت دے اړخ ته اشاره كوی.كه د اوبو دوې (دوه) صفتونه يا درے صفتونه بدل شو.نو په هغے باندې اودس كول جائز نه دې.

**روايه جواز الطهارة بالماء الذی تغيربكثرة الاوراق** ﴿اوپه نهايه كې نې ليكلي دی. چې د استاذانو نه نقل دی .چې په دے باندې اودس جائز دې.تردې چې د خزان په موسم كې كله د ونو نه پاڼرے غورځيږی.او په هغے باندې د اوبو درے واړه صفتونه (رنګ خوند او بوئی) بدل شی. په شرح طحاوی كې هم دے اړخ ته اشاره ده.مګردا شرط دې.چې د اوبو رقت پاته شی.نوكه د يو شی په ګډون سره اوبه ټينګې شی.نوددے حضراتو په نزد هم په هغے باندې اودس كول جائز نه دې.

**روايه عدم جواز الطهارة بالماء الذی تغيربكثرة الاوراق** ﴿علامه ابن ا لهمام په فتح القدير كې ليكلی دی.چې د فقيه احمد بن ابراهيم الميدانی رحمه الله نه ددے اوبو په اړه كې پوښتنه اوشوه.چې دهغے رنګ د زياتو پاڼرو د امله بدل شوې وی.چې كله هم په لاس كې اوبه راواخستلے شی.نود پاڼرو رنګ په كې ښكاره كيږی.نوهغوی ورته اوفرمائيل: په داسې اوبو اودس كول جائز نه دې.ليكن ددے څښل او نور شيان په دے باندې پريمنځل جائز دی.خكه چې دا پاكې دی.او اودس پرےخكه جائز نه دې.چې كله په اوبو باندې د پاڼرو رنګ غالب شی. نوهغه مقيدےاوبه شوې.لكه د لوبيا اوبه او وړاندې تيرشو.چې په مقيدو اوبو اودس كول جائز نه دې.

**السوال** ﴿ دلته كې علامه مرغينانی رحمه الله په عبارت باندې يواشكال كيږی.هغه داچې وړاندې دنبی ﷺ ارشاد ﴿لا ما غير طعمه او لونه او ريحه﴾ تير شوې دے .د هغے تقاضا خو دا ده.كه د اوبو يو صفت هم بدل شی. نو په هغے دے اودس جائز نشی.حالانكه علامه مرغينانی رحمه الله د قدوری ددے صورت دجواز قائل دې.

**الجواب** ﴿ خواب دا دې.چې په حديث كې د شی نه مراد نجس شی دې. يعنی ﴿لا ينجسه شیء نجس﴾ اودا حديث د جاری اوبو په اړه كې دې.نو اوس به د حديث مطلب دا شی.چې جاری اوبه پاكې دی.ناپاك شی هغه نه پليتوی. مګر دا چې دهغے رنګ يا خوند يا بوئی بدل شی.يعنی كه نجاست په كې ښكاره شی.يا د هغے خوند يا بوئی محسوس شی.نو د هغه اوبو استعمال جائز نه دې. خكه چې دا صفات د نجاست په وجود باندې دلالت كوی.



قَالَ الشَّيْخُ الْاِمَامُ مصنف رحمه الله فرمائي اَجْرٰى فِي الْمُخْتَصَرِ مَاءَ الزَّرْدَجِ مَجْرَى الْمَرَقِ چې په مختصرالقدوری كې صاحب د قدوری د ګازرے اوبه د ښورواه داوبو په څير ګرځولی دی وَالْمَرْوِيُّ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ رحمه الله اودامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی اَنَّهٗ بِمَنْزِلَةِ مَاءِ الزَّعْفَرَانِ چې دا د زعفرانو د اوبو په مرتبه كې دی وَهُوَ الصَّحِيْحُ هم دا صحيح قول دې كَذَا اخْتَارَهُ النَّاطِفِيُّ وَالْاِمَامُ السَّرَخْسِيُّ رحمه الله هم دا ناطفی رحمه الله او امام سرخسی رحمه الله غوره كړې دي

**تشريح:- القولان في حكم ماء الزردج** ﴿ ① صاحب دهدايه فرمائي.چې صاحب د قدوری په خپل مختصر القدوری كې د ګازرو اوبه د خورواه په مرتبه كې ساتلے دی.يعنی چې په دواړو اودس كول جائز نه دې. ② اود امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چې د ګازرے اوبه د زعفرانو د اوبو په مرتبه كې دی.يعنی د يوصفت د تغير په وخت كې په دواړو باندې اودس جائز دې.اوامام ناطفی او امام سرخسی رحمه الله هم دا قول غوره كړې دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمايي لَا يَجُوْزُ التَّوَضُّؤُ بِمَاءِ الزَّعْفَرَانِ وَاَشْبَاهِهٖ مِمَّا لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الْاَرْضِ چې په زعفران او ددے په څير نورو څيزونو چې د جنس د مځكې څخه نه وی د هغے په اوبو باندې اودس كول جائز نه دې لِاَنَّهٗ مَاءٌ مُقَيَّدٌ خكه چې دا مقيدے اوبه دی اَلَا تَرٰى ولے كتلې نشی اَنَّهٗ يُقَالُ مَاءُ الزَّعْفَرَانِ چې دے ته د زعفرانو اوبه وائی

**حل اللغة:** ① اشباه: يوشان كيدل

**تشريح:- عدم جوازالطهارة بماء خالطه شیء من غيرجنس الارض عندالشافعی** ﴿امام شافعی رحمه الله فرمائي.چې زعفران اوكوم شيان چې ددے په څير د جنس د مځكې نه نه وی.په هغے اودس جائز نه دے.

**دليل الشافعی رحمه الله** ﴿دليل دا دې.چې دا مقيدے اوبه دی.خكه چې دے ته ماء زعفران يعنی د زعفرانو اوبه وئيلی شی.اواضافت چونكه تقييد پيدا كوی.لكه ماء شجر،ماءثمر، او ماء ورد، نوخكه به ماء زعفران هم مقيدے وی.مطلق به نه وی. او د مطلق اوبو د نشتوالی په صورت كې د تيمم حكم وركړې شوې دې.الله تعالی فرمائيلی دی.﴿فَلَمْ تَجِدُوْا مَاءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا﴾ نوثابته شوه.چې د زعفران وغيره ډول اوبو په موجودګئ كې تيمم كول جائز دې.

بِخِلَافِ اَجْزَاءِ الْاَرْضِ په خلاف د مځكې د اجزاؤ نه لِاَنَّ الْمَاءَ لَا يَخْلُوْ عَنْهَا عَادَةً خكه چې عادتاً ددے نه هيڅ ډول اوبه خالی نه وی

**تشريح:- جواب الشافعی رحمه الله عن السوال يرد عليه** ﴿په خلاف د مځكې د اجزاؤ خكه چې په عادت كې هيڅ ډول اوبه د مځكې داجزاؤ د خړوالی نه خالی نه وی.نوهركله چې هيڅ ډول اوبه د مځكې د اجزاؤ نه خالی نه وی.نومعلومه شوه.چې د مځكې د اجزاؤ د ګډون د امله په اوبومطلق كې څه توپير نه راځی.نوحاصل دا شو.كه په اوبو كې د زمكے اجزاء ګډ شی.نواوبه مطلق پاتې كيږی.او په دے باندې به اودس جائز وی. او كه د مځكې د اجزاؤ نه علاوه بل څيزپه اوبوكې ګډ شو.نوهغه به مقيد اوبه وی.اوپه هغے باندې به اودس جائز نه وی.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دې اَنَّ اسْمَ الْمَاءِ بَاقٍ عَلَى الْاِطْلَاقِ چې د اوبونوم علی الاطلاق پاته دې اَلَا تَرٰى ولے ګورئ نه اَنَّهٗ لَمْ يَتَجَدَّدْ لَهٗ اسْمٌ عَلٰى حِدَةٍ چې ددے خان ته مستقل څه نوےنوم نشته وَاِضَافَتُهٗ اِلَى الزَّعْفَرَانِ اوزعفرانو ته د دے نسبت داسې دې كَاِضَافَتِهٖ اِلَى الْبِئْرِ وَالْعَيْنِ.لكه كوهی او چينے ته چې د دے نسبت دې

**حل اللغة:** ① بير: څاه (كوهې) ② عين: چينه

**تشريح:- دلائل الاحناف رحمهم الله** ﴿ ① اوزموږ دليل دا دې.چې د اوبو نوم علی الاطلاق پاته دې.ګورے نه چې ددے خان ته مستقل نوم نشته.(يعنی څوك صرف زعفران نه وائی.بلكه د اوبو قيد ور سره لګوی.)

**السوالان** ❁ ① اوكه څوك اووائي.چي د زعفرانو اوبه د اضافت دقيد سره نوے نوم دي.ځكه چي اول په كي اضافت نه وو.او اوس ور سره اضافت شو. نوددے ځواب دا دي.چي زعفرانو ته ددے نسبت كول داسي دي.لكه چينےاو كوهى ته چي د اوبو نسبت دي.(يعنى خلگ ماء العين او ماء البير، وائى.) نولكه څنگه چي د چينےاوكوهى اوبه مطلق دى.دغه ډول د زعفرانو اوبه هم مطلق دي.② ليكن په دے به اعتراض كيږي.چي هم دا حال د ماء باقلاء او ماء ورد ،هم دي.نوپه هغے باندي هم اودس كول بايد ده چي جائز وى. حالانكه تاسو د عدم جواز قائل ئي.

**الجواب** ❁ بيشكه په ماء باقلاء كي بل څه نوے نوم نه دے بيدا شوي.ليكن د باقلاء د ګډون د امله اوبه په خپل طبيعت پاتي شوي نه دى.نو ځكه پرے اودس جائز نه دي.دغه ډول كه زعفران په اوبوكي دومره ګډ شي.چي د اوبو طبيعت يعنى رقت زائله شي.نوپه هغے باندي هم اودس نه كيږي.

**وَلِأَنَّ الْخَلْطَ الْقَلِيلَ** او ددے امله چي لږ غوندي ګډون داسي شى دي **لَامُعْتَبَرَبِهِ** چي ددے اعتبار نشى كولي **لِعَدَمِ إِمْكَانِ الِاحْتِرَازِعَنْهُ** ځكه چي بچ كيدل ددے نه ممكن نه وى **كَمَافِي أَجْزَاءِ الْأَرْضِ** لكه د مځكي د اجزاؤ نه **فَيُعْتَبَرُالْغَالِبُ** نو دغالب اعتبار به كولي شى

**حل اللغة:** ① **خلط:** يوځاى كيدل ② **احتراز:** ډډه كول

**تشريح:- الدليل الثانى للاحناف** ﷭ ❁ او دوهم دليل دا دي.چي لږغوندي ګډون داسي څيزدي.چي ددے اعتبار نه وى.ځكه چي ددے نه احترازممكن نه وى.لكه د مځكي د خاكى اجزاء نه چي د اوبو بچ كول ممكن نه دى.نوخامخا به دغالب اعتبار وى.

**وَالْغَلَبَةُ بِالْأَجْزَاءِ** او دغلبي اعتبار به په اجزاؤ سره وى **لَابِتَغَيُّرِاللَّوْنِ** د رنگ په بدليدو سره به نه وى **هُوَالصَّحِيحُ**.دا صحيح ده.

**حل اللغة:** ① **لون:** رنگ

**تشريح:- الغلبة باللون اوالاجزاء ؟** ❁ پاته شوه دا خبره چي غلبه به څنګه معتبروى.د اجزاء په اعتبار سره كه د رنگ په اعتبار سره؟نو وے فرمائيل:چي غلبه به د رنگ په اعتبار سره معتبره وى.هم دا صحيح قول دي.

### د هغه اوبو حكم چي بل څيز په كي پخ شوي وى

**فَإِنْ تَغَيَّرَبِالطَّبْخِ بَعْدَمَاخُلِطَ بِهِ غَيْرُهُ** اوكه د اوبو سره بل شى ګډ شي.او د پخولو د امله اوبه متغيرے شى **لَايَجُوزُ التَّوَضُّؤُبِهِ** نو په هغے باندي اودس كول جائز نه دي **لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ فِي مَعْنَى الْمُنَزَّلِ مِنَ السَّمَاءِ** ځكه چي دا پخ شوي اوبه داسمان نه د نازل شوي اوبو په معنى پاتي نشوي

**حل اللغة:** ① **تغير،تغيراً:** بدليدل، متغيركيدل ② **طبخ:** پخول ③ **توضى:** اودس كول ④ **نظافة** پاكوالي صفائى ⑤ **وردت:** **ورد، وروداً:** راتگ ، وارد كيدل ⑥ **ان يغلب، غلب، غلبة** (ض): غلبه موندل، برې موندل ⑦ **سويق:** ستوان

**تشريح:- عدم جواز الوضوء بالماء المطبوخ مع غيره** ❁ مسئله دا ده.كه په اوبو كي څه څيزواچوى.اوپوخ كړي شي.نو په هغے باندي اودس كول جائز نه دي.ليكن كه صرف اوبه ئي پخ كړي وى.اوهغه د پخولو د امله متغيرے شوي.نوپه هغے اودس كول جائز دي.ځكه چي څه شى ور سره ګډ كړى.او جوش كړي شى. نو دا اوبه د آسمان نه د نازل شوو اوبو په څير نه پاتي كيږى.نوځكه پرے اودس كول جائز نه دي.

**إِلَّاإِذَاطُبِخَ فِيهِ** خو كه په دے اوبوكي داسي شى ګډ شوي وى **مَايُقْصَدُبِهِ الْمُبَالَغَةُفِي النَّظَافَةِ** چي په هغے سره نظافت مقصود وى **كَالْأُشْنَانِ وَنَحْوِهِ** لكه اشنان او ددے په څير شيان

**تشريح:- جوازالوضوء اذا كان لزيادة التنظيف** ❁ البته كه په اوبوكي ئي داسي شى ګډ كړي وى.چي په هغے سره



زيات نظافت مقصود وى.لكه اشنان وغيره.نو په دے باندي اودس كول جائزدي.

**لِأَنَّ الْمَيِّتَ قَدْيُغْسَلُ بِالْمَاءِ** ځكه چي مړى ته په داسي اوبو سره غسل وركولي شى **الَّذِي أُغْلِيَ بِالسِّدْرِ** چي هغے ته د بيرو په پاڼرو جوش وركړي شوي وى **بِذَٰلِكَ وَرَدَتِ السُّنَّةُ** (١) په دے طريقه سنت راغلے دي

**تشريح:-** ځكه چي مړى ته په هغه اوبو باندي غسل وركولي شى. چي په هغے كي د بيرو پاڼرے اچولي شوى وى.او جوش شوي وى.او هم دا طريقه مسنون ده.

**اعتراض صاحب النقاية على صاحب الهداية** ❁ صاحب د شرح نقايه ليكلي دى .چي دا طريقه په سنت كي راغلے ده.په دے به الله تعالى پوهيږى.ليكن په صحيحينو كي د هغه سړى په اړه كي چي دخپلے اوښے نه راپريوتے وو.او څټ ئي مات شوي او مړ شوي وو.دا راغلى دى.چي «اغسلوه بماء وسدر» يعنى دے سړى ته په اوبو او بيرو باندي غسل وركړئ.په حديث كي «اغلى بالسدر» نشته.لكه څنګه چي صاحب دهدايه ذكر كړى دى.

**الجواب عن السوال** ❁ ليكن موږ ځواب وركوو.چي په اوبو د بيرو په پاڼرو ،باندي غسل وركول په هغه وخت كي مقصود وى.چي دا دواړه ګډ وډ كړي شوي وى.او اختلاط بغير د پخولو نه نۀ راځى.نوځكه علامه مرغينانى ﷬ د «اغلى بالسدر» اوفرمائيل: او د حديث مراد ئي بيان كړلو.

**إِلَّاأَنْ يَغْلِبَ ذَٰلِكَ عَلَى الْمَاءِ** مګر دا چي هغه څيزپه اوبو باندي غالب شى **فَيَصِيرَكَالسَّوِيقِ الْمَخْلُوطِ** نودا به په اوبوكي د ګډ شوى ستوانو په څير شى **لِزَوَالِ اسْمِ الْمَاءِعَنْهُ** ځكه چي د هغے نه د اوبو نوم زائله شوي وى.

**تشريح:-** البته دومره خبره ضرور شته.كه په نظافت كي د مبالغے لپاره څه شى په اوبوكي واچولي شى.او پخے شي.او هغه په اوبوغالب نه وى.اوكه په اوبو غالب شي.نوپه هغے سره اود س كول جائز نه دي.لكه چي په اوبو كي ستوان واچوى.اوګډ شى.نوپه هغے سره اودس كول جائز نه دي.ځكه چي په دےصورت كي د اوبو نوم زائله شو.

### په اوبوكي دنجاست د پريوتو حكم

**وَكُلُّ مَاءٍوَقَعَتْ فِيهِ النَّجَاسَةُ** اوهرهغه اوبه چي په هغے كي نجاست پريوځي **لَمْ يَجُزِالْوُضُوءُبِهِ** نوپه هغه اوبو اودس جائز نه دي **قَلِيلًاكَانَتِ النَّجَاسَةُأَوْكَثِيرًا** برابره ده) كه نجاست كم وى اوكه زيات وى

**حل اللغة:** ① **وقعت، وقع، وقوعاً** (ف): واقع كيدل،پريوتل ② **نجاسة** ناپاكى

**تشريح:- المراد من الماء** ❁ په عبارت كښے د ماء نه هغه اوبه مراد دى.كومے چي نه جارى اوبه وى اونه د جارى اوبو په حكم كي وى.ځكه چي د جارى اوبو حكم په روستنۍ مسئله كي ذكر دي.

**وَقَالَ مَالِكٌ** ﷬ (.اوامام مالك ﷬ فرمايي **يَجُوزُ** چي جائز دي **مَالَمْ يَتَغَيَّرْأَحَدُأَوْصَافِهِ** ترخو پورې د اوبو په صفتونو كي يوصفت بدل شوي نه وى **لِمَارَوَيْنَا** دهغه حديث د امله كوم چي موږ روايت كړي دي

**تشريح:-** د امام مالك ﷬ په نيز كم نجاست اوبه نه پليتوى.ترڅوچي داوبو درے صفاتوكي يوصفت بدل شوي نه وى.

**دليله** ❁ او استدلال په هغه روايت كوى.كوم چي وړاندي تير شو. يعنى «الماء طهورلاينجسه شئ إلا ما غير لونه أو طعمه او ريحه»

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** ﷬ او امام شافعى ﷬ فرمايي **يَجُوزُ** چي جائز دي **إِذَاكَانَ الْمَاءُقُلَّتَيْنِ** خو چي اوبه قلتين

---

١) قال الزيلعى ﷬ غريب ولم يحسن شيخنا علاء الدين اذ استشهد لهذا بحديث الذى وقصته راحلته وفيه،فقال اغسلوه بماء وسدر،والذى قلد الشيخ اعتذر فقال بعد ان ذكره وليس فى الحديث ان الماء اغلى بالسدر فيقال له فاى فائدة فى ذكره؟(نصب:١/١٥٣)_

وی لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې د نبی ﷺ ارشاد دي. إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ چې کله اوبه قلتینو ته اورسي لَمْ يَحْمِلْ خَبَثًا[1] نو نجاست نه اوچتوی.

**تشریح:- امام شافعی** رحمه الله فرمائی. که اوبه قلتین وی. او په دے کې نجاست پریوځی. نو په دے باندې اودس جائز دې.

**دلیله** ۞ او په دلیل کې د قلتینو حدیث پیش کوی. یعنی کله چې اوبه قلتینو ته اورسی. نو نجاست نه اوچتوی.

وَلَنَا حَدِيْثُ الْمُسْتَيْقِظِ مِنْ مَنَامِهٖ[1] او زمونږ دلیل د «مستیقظ من منامه» حدیث دې وَقَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ او د نبی ﷺ قول. لَا يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ چې په تاسو کې دے څوک په ولاړو اوبو کې متیازے نه کوی وَلَا يَغْتَسِلَنَّ فِيْهِ مِنَ الْجَنَابَةِ[2] او نه دے په دے کې د جنابت نه غسل کوی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ (په حدیث کې) څه تفصیل نشته

**حل اللغة** ① جنابة دَ ناپاکئی حالت ② لایبولن، بال، بولاً (ن) بولې کول

**تشریح:- دلائل الاحناف** ۞ ① او زمونږ دلیل د نبی ﷺ قول دې. چې «إذا إستيقظ احدكم من منامه فلا يغمسن يده في الإناء حتى يغسلها ثلاثا» په دے حدیث باندې استدلال داسې کیږی. چې، کله چې د نجاست د احتمال د امله لاس په لوښی کې د داخلولو نه منع شوې دې. نو د حقیقی نجاست په صورت کې خو به په طریقه اولی سره اوبه پلیتیږی. ② دوهم دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې. چې «لا يبولن احدكم في الماء الدائم ولا يغتسلن فيه من الجنابة» دا حدیث د دواړو خلاف حجت دې. د امام مالک رحمه الله په نیز خو ځکه چې په ولاړو اوبو کې د جنابت د غسل کاوه نه منع شوې ده. حالانکه د جنابت د غسل په کاوه سره د اوبو څه صفت په یقین سره نه بدلیږی. او د امام شافعی رحمه الله خلاف ځکه حجت دې. چې دا حدیث مطلق دې. په دے کې د قلیتینو او غیر قلتینو څه تفصیل نشته.

وَالَّذِيْ رَوَاهُ مَالِكٌ رحمه الله او هغه حدیث کوم چې امام مالک رحمه الله نقل کړې دې وَرَدَ فِيْ بِئْرِ بُضَاعَةَ هغه د بیر بضاعه په حق کې راغلے دې وَمَاؤُهَا كَانَ جَارِيًا فِي الْبَسَاتِيْنِ[2] او د بیربضاعه اوبه په باغونو کې جاری وې

**حل اللغة** ① جاریًا: روانیدل

**تشریح:- الجواب من حدیث مالک** رحمه الله ۞ صاحب د هدایه فرمائی. چې د امام مالک رحمه الله پیش کرده حدیث «الماء طهور...» د بیربضاعه په اړه کې وارد شوې دې. او د بیر بضاعه اوبه په باغونو کې روانے وې. صاحب د عنایه فرمائی. چې د بیر بضاعه څخه به پنځه باغونه خړوب کیدل. نو دا د جاری اوبو په حکم کې شو. او د جاری اوبو نه زمونږ په نیز هم اودس جائز دې. اګرچې نجاست په کې پریوځی. پوره حدیث داسې دې. «عن أبي سعيد الخدري قال قيل يارسول الله ﷺ أنتوضأ من بير بضاعة وهي تلقى فيها الحيض ولحوم الكلاب والنتن؟ فقال النبي ﷺ إن الماء طهور لا ينجسه شيء الحديث» (ترمذی، نسائی، ابوداود) حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه فرمائی. چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوشوه. چې مونږ د بیربضاعه نه اودس کوو؟ حالانکه په دے کې د حیض چیرے، د سپو غوښے، او بدبودار شیان غورځیږی. نبی علیه السلام اوفرمائیل: دا اوبه پاکې دی. دا څه شی نشی پلیتولې. مګر دا چې د دے یو صفت بدل شی. نو چې دا حدیث د بیربضاعه د ماء جاری په حق کې دې. د دے نه د ولاړو اوبو په عدم نجاست باندې استدلال کول صحیح نه دې.

---

[1] تقدم تخریجه

[2] کما نقله الطحاوی رحمه الله فی شرح الاثار عن الواقدی (نصب: ۱۶۳۱۱)



**السوال علی صاحب الهدایة** ۞ دلته کې په علامه مرغینانی رحمه الله باندې یو اعتراض کیدې شی. هغه دا چې په اول باب کې علامه مرغینانی رحمه الله د دے حدیث نه د مطلق اوبو په پاکوالی باندې استدلال کړې وو. او دلته کې نې په بیربضاعه باندې حمل کوی. نو په «الماء طهور» کې که لام د جنس لپاره وی. نو د دے حدیث نه د مطلقو اوبو په طهارت باندې استدلال کول خو صحیح دې. خو په بیر بضاعه باندې د دے حمل کول باطل دی. او که لام د عهد لپاره وی. نو په بیربضاعه باندې حمل کول خو به ټیک شی. لیکن د مطلق اوبو په طهارت باندې پرے استدلال صحیح نه دې.

**الجواب** ۞ صاحب د عنایه د علامه علاؤالدین عبدالعزیز په حواله سره د دے ځواب ورکړې دې. چې لام د جنس لپاره دې. او د دے حدیث نه استدلال صحیح دې. او په بیربضاعه باندې حمل کول هم باطل نه دی. ځکه چې دا حدیث په دوو مقدمو مشتمل دې. «الماء طهور لا ينجسه شيء» نو په اوله مقدمه د اوبو په طهارت باندې استدلال اوشو. او دویمه مقدمه په بیر بضاعه باندې حمل کړې شوه.

**السوال علی الجواب** ۞ پاته شوه دا خبره چې د "لا ينجسه" ضمیر راجع دے "الماء" ته. او په "الماء" کې لام د جنس لپاره اومنلے شو. نو په معین یعنی بیر بضاعه باندې حمل کول څنګه صحیح کیږی؟

**الجواب** ۞ نو د دے ځواب دا دې. چې په حدیث کې صنعت استخدام دې. استخدام دا چې د یو لفظ دوې (دوه) معانی وی. د هغے لفظ نه یوه معنی مراد وی. او د ضمیر نه نې بله معنی مراد وی. نو دلته د «الماء طهور» نه جنس اوبه او ماء مطلق مراد واخستلے شوې. د اوبو په پاکوالی باندې نې استدلال اوکړلو. او کله چې نې د «لاینجسه» ضمیر راجع کړلو. نو د بیربضاعه اوبه نې ترے مراد واخستلې. د دے نظیر دا شعر دې.

«إذا نزل السمآء بارض قوم ۞ رعيناه وإن كانوا غضبانا»

یعنی کله چې د یو قوم په مځکه باندې باران کیږی. نو مونږ خړیږو په ګیاه کې اګر که هغه غصه وی. شاعر په دے شعر کې د "سماء" د لفظ نه آسمان مراد اخستے دې. او د "رعيناه" د مفعول د ضمیر نه نې شنه ګیاه مراد اخستے ده.

**ایضاح بیربضاعة** ۞ **بضاعة** د باء په ک سره او ضمه دواړو اعرابو سره وئیلی شی. (صحاح) او په لویدیځ (مغرب) کتاب کې دی. چې صرف په ک سره راغلے دې. بي ربضاعه په مدینه منوره کې یو ډیر غټ کوهے وو. په هغے کې ډیرے اوبه وې. ځینې کسانو وئیلی دی. چې د هغے هر بازو اته ګزه وو. یعنی اته ګزه اوږد او هم دومره پلن وو. د حضرت عائشے رضي الله عنها نه منقول دی. چې د هغے څخه به پنځو یا اووه باغونوته اوبه ورکولې شوې.

وَمَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او حدیث د قلیتینو، چې امام شافعی رحمه الله نقل کړې دې ضَعَّفَهُ أَبُوْ دَاوُدَ هغے ته امام ابوداود ضعیف وئیلې دې وَهُوَ يَضْعُفُ عَنِ احْتِمَالِ النَّجَاسَةِ یا دا معنی ده. چې هغه د نجاست د برداشت کاوه نه کمزورے دی.

**تشریح:- تضعیف حدیث القلتین من الامامین** ۞ او پاته شو حدیث د قلتینو، کوم چې امام شافعی رحمه الله روایت کړې دې. د هغے ځواب دا دې. چې د دے حدیث په سند کې ضعف دې. ① ابوداود سلیمان بن الاشعث السجستانی رحمه الله ورته ضعیف وئیلی دی. فرمائی چې حدیث د قلیتنو ثابت نه دې. ② او د محمد بن اسماعیل بخاری استاذ علی بن مدینی رحمه الله فرمائیلی دی. «لم يثبت حديث القلتين»

**تائید ضعف الحدیث بواقعة بیر زمزم** ۞ د غه ډول ابن عباس او ابن زبیر رضي الله عنهم د بیر زمزم د اوبو ویستلو حکم کړې وو. کله چې په هغه کې یو حبشی غلام مړ شوې وو. که چرته حدیث د قلتینو صحیح وې. نو نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعینو رحمهم الله به د هغوی خلاف په حدیث د قلتینو سره احتجاج کړې وې. نو معلومه شوه. چې حدیث د قلتینو په څه خاص واقعه پورې متعلق دې. نو د حدیث «مما مسته النار» په شان به حدیث د قلتینو هم رد کولې شی.

**الاضطراب في الجزء الاول من المتن** ۞ بیا د دے حدیث په متن کې هم اضطراب دې. ① په ځینې روایاتو کې

دی.چې «اذا بلغ القلتين أو ثلاثا» ② او په بعضو کي دی. «أربعين قلة» ③ او په بعضو کي دی. «أربعين غربا» ④ او په بعضو کي دی. «أربعين دلوا»

**الاضطراب في الجزء الثانيمن المتن**◉ دغه ډول په دوهم جزء کي ① په بعضو روایاتو کي «لا يحمل الخبث» دی.② او په بعضو کي «لم ينجس» ③ او به بعضو کي «لم ينجسه شئ» ④ او په بعضو کي «لم يحمل خبثا» دی.او په متن کي اضطراب موجب د ضعف دی.اګرچې رجال څومره ثقه وی.د دے باوجود چې ددے حدیث په سند کي هم اضطراب دی.

**جهالة القلة**◉ دغه ډول قله في نفسه هم مجهول ده.① ځکه چې د ،،قلة،، نه د سړی قامت هم مراد اخستلے شی.② اوکله د غر سر ته وانی.③ او کله ترے د منګی معنی مراد کیدې شی.④ او کله د مشك په معنی کښے استعمالیږی.اولکه څنګه چې د «لا يحمل خبثا» هغه معنی ده.کومه چې ترے امام شافعی رحمه الله مراد اخستے ده.یعنی چې اوبه دوو قلو ته اورسی.نو نجاست نه قبلوی.بلکه هغه لرې کوی.دغه ډول دا معنی هم کیدې شی.چې هغه د نجاست برداشت کاوه نه کمزورے کیږی.یعنی پلیتیږی.نو د دومره احتمالاتو او اضطراباتو باوجود دا حدیث قابل د استدلال نشی پاتې کیدې.

## په روانو اوبوکې د نجاست پریوتل

| |
|---|
| وَالْمَاءُ الْجَارِي إِذَا وَقَعَتْ فِيهِ نَجَاسَةٌ اوپه روانو اوبو کي چې کله نجاست پریوځی جَازَ الْوُضُوءُ مِنْهُ نود هغے نه اودس کول جائز دی. إِذَا لَمْ يُرَ لَهَا أَثَرٌ تا ترڅو چې ددغه نجاست څه اثر ښکاره شوې نه وی |

**حل اللغة**° ① وقعت، وقع، وقوعاً (ف) واقع کیدل، پریوتل

**تشریح:- عدم نجاسة الماء الجاری بوقوع النجاسة** ◉مسئله دا ده.که په جاری اوبو کي نجاست پریوځی.نو دهغے نه اودس جائز دی.خو په دے شرط چې د نجاست څه اثر نه ښکاری.برابره ده که نجاست مرئی وی اوکه غیر مرئی وی.

| |
|---|
| لِأَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ مَعَ جَرَيَانِ الْمَاءِ ځکه چې نجاست د اوبو د جاری والی سره نشی ایساریدې وَالْأَثَرُ هُوَ الرَّائِحَةُ أَوِ الطَّعْمُ أَوِ اللَّوْنُ او د اثر نه مراد خوند یا بوئی یا رنګ دی |

**حل اللغة**° ① طعم: خوند ③ لون: رنګ

**تشریح:- دلیله**◉دلیل دا دې.چې نجاست د اوبو دجاری والی سره ایساریدے نشی. نوځکه د نجاست غورځیدو باوجود جاری اوبه پاکې وی.او د نجاست داثر نه مراد ددے خوند یا بوئی یا رنګ دی.

| |
|---|
| وَالْجَارِي او جاری اوبه هغه دی مَا لَا يَتَكَرَّرُ اسْتِعْمَالُهُ چې دهغے استعمال مکرر نه وی وَقِيلَ او وئیلی شوی دی مَا يَذْهَبُ بِتِبْنَةٍ چې جاری اوبه هغه دی.چې بوسه اوړی. |

**تشریح:- تعریفات الماء الجاری**◉ دجاری اوبو په تعریف کي د فقهاؤ اختلاف دی.① ځینې فقهاؤ فرمائیلی دی.چې جاری اوبه هغه دی.چې دهغے استعمال مکرر نه وی.ددے صورت دا دی.چې د ویاله (نهر) نه اوبه راواخلی.او لاس اووینځی.او هغه اوبه په ویاله (نهر) کي اوغورځیږی.نو کله په دوهم ځل د ویاله (نهر) نه اوبه راخستے شی.نو د اولنو اوبو نه څه پاته نه وی.بلکه لومړنی اوبه بهیدلے وی او وړاندې تلے وی.② او د بعضو عالمانو رحمهم الله خیال دی.چې جاری اوبه هغه دی.چې اوچ ډکے اوړی.③ او بعضو وئیلی دی.چې جاری اوبه هغه دی.که یو کس په پلنوالی خپل لاس په اوبو کي کیږدی.نو د اوبو بهیدل نه اودریږی.④ او د بعضو رائې دا ده.چې خلګ کومو اوبو ته جاری وانی.هغه جاری دی.

**تائید مسئلة المتن بروایة محمد**◉ امام محمد رحمه الله فرمائی.که په دریانې فرات کي چا د شرابو منګے مات کړلو.او دهغے نه کښته چې کوم اړخ ته اوبه روانے وی.یو سړې اودس کوی.نو ترڅو چې په اوبو کي د



شرابو خوند یا بو یا رنګ محسوس شوې نه وی. نو اودس جائز دی.دامام محمد رحمه الله په روایت د متن د مسئلې تائید کیږی.(فتح القدیر)

## په لوئې حوض کې د نجاست پریوتل

| |
|---|
| قَالَ فرمایي وَالْغَدِيرُ الْعَظِيمُ اولوئې حوض هغه دې الَّذِي لَا يَتَحَرَّكُ أَحَدُ طَرَفَيْهِ بِتَحْرِيكِ الطَّرَفِ الْآخَرِ چې دهغے یواړخ نه خوزی په خوزلو دبل طرف إِذَا وَقَعَتْ نَجَاسَةٌ فِي أَحَدِ جَانِبَيْهِ چې ددے یو اړخ ته نجاست وی جَازَ الْوُضُوءُ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ نو د بل اړخ نه اودس جائز دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ ځکه چې ظاهر دا دې أَنَّ النَّجَاسَةَ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ چې نجاست بل اړخ ته نه رسی رسد إِذْ أَثَرُ التَّحْرِيكِ فِي السِّرَايَةِ فَوْقَ أَثَرِ النَّجَاسَةِ ځکه چې دخوزولو اثر په خوریدو کي د نجاست داثرنه زیات وی |

**حل اللغة**° ① غدیر: تالات ② تحریک: راغوښتل

**تشریح:- رایٔ المتاخرین في ایصال الماء**◉داحنافو عالمانو رحمهم الله په دے باندې اتفاق دے.که د اوبو یوه برخه بلے حصې ته رسی.نوهغه اوبه قلیل دی.اوکه نه رسی.نوهغه ماءکثیر دی.لیکن ددے د رسیدو په طریقه کي اختلاف دی. متقدمین احناف فرمائی.چې دے ته په حرکت ور کاوه سره به معلومولے شی.یعنی که د یو اړخ په خوزولو سره بل اړخ نه خوزیدلو.نو دا لوئې تالاب دې.او ماء کثیر دی.اوکه بل اړخ اوخوزیدلو.نوهغه ماء قلیل دی .اود خوزیدو نه مراد دا دې.چې د حرکت په وخت کي اوبه کښته پورته کیږی.ځکه که اوبه ډیرے وی .نوچې اوچتے شی.نو حرکت کوی.او د بوبړقو څه اعتبار نشته.ځکه چې بوربړقۍ خود لږو اوبو په حرکت ور کاوه سره هم پیدا کیږی.

| |
|---|
| ثُمَّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بیا دابوحنیفه رحمه الله نه روایت دی أَنَّهُ يُعْتَبَرُ التَّحْرِيكُ بِالِاغْتِسَالِ چې خوزول هغه معتبر دی.چې په غسل کاوه سره وی وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او هم دا د ابویوسف رحمه الله قول دی وَعَنْهُ او دامام صاحب رحمه الله نه دا هم روایت دې التَّحْرِيكُ بِالْيَدِ چې دلاس خوزول معتبر دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله [1] او دامام محمد رحمه الله نه روایت دې بِالتَّوَضُّؤِ چې په اودس کاوه سره خوزیدل معتبر دی. |

**تشریح:- الروایات الثلاث في سبب التحریک**◉ بیا متقدمین حضرات د تحریك په سبب کي مختلف شوی دی. ① امام ابویوسف رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کړې دې.چې دغسل کاوه حرکت معتبر دې.یعنی چې د حوض په یواړخ یوکس په مناسب انداز کي غسل کوی.نو بل اړخ نه خوزی.نودا لوئې حوض دې.او که بل اړخ خوزیدلو.نودا لوئې حوض نه دې.امام ابویوسف رحمه الله دا روایت غوره کړې دې.② او امام ابویوسف رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله نه دا روایت هم کړې دې.چې صرف په لاس باندې خوزیدل معتبر دی.③ اودامام محمد رحمه الله نه روایت دې.چې د اودس کاوه حرکت معتبر دې.

| |
|---|
| وَوَجْهُ الْأَوَّلِ د اولنی قول وجه دا ده أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى الِاغْتِسَالِ فِي الْحِيَاضِ أَشَدُّ مِنْهَا چې په حوضونو کي د غسل حاجت زیات وی إِلَى التَّوَضُّؤِ په نسبت سره اودس کاوه ته |

**تشریح:- توجیه الروایة الاولی**◉ داولنی روایت دلیل دا دې.چې په حوضو او تالابونو کي داودس په نسبت غسل کاوه اړتیا زیات پیښیږی.ځکه چې په عامه توګه اودس په کورونو کي کیږی.نوځکه به د تحریك بالاغتسال اعتبار وی.

| |
|---|
| وَبَعْضُهُمْ قَدَّرُوا بِالْمِسَاحَةِ او ځینې عالمانو رحمهم الله د لوئې حوض اندازه په مساحت سره لګولې ده عَشْرًا فِي عَشْرٍ بِذِرَاعٍ |

[1] القول الراجح هو قول محمد كذا في السعاية (٢٧٧/١) والكفاية (٧١/١) وردالمحتار(١٤١/١) نقلا عن القول الراجح -(١١/١)

الْكِرْبَاسِ او هغه د جامې په ګز سره لس ګزه دي تَوْسِعَةً لِلْأَمْرِ عَلَى النَّاسِ په خلګو د آسانۍ کاوه لپاره وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى او هم په دې قول باندې فتوی ده

**تشريح:- التقدير بالمسافة** ۞ ① ابوسليمان جوزجاني رحمه الله مساحت خيال ساتلې دې. يعنی که هغه ده در ده (چې لس ګزه اوږد او لس ګزه پلن) وی. نو هغه ماء کثير دی. او که د هغې نه کم وی. نو دا ماء قليل دی. دامام محمد رحمه الله نه روايت دې. په کوم وخت کې چې د دوی نه ددې په اړه کې پوښتنه اوشوه. نو هغوی اوفرمائيل: که زما د جمات د حوض برابر وی. نو هغه ماء کثير دی. او که برابر نه وی. نو هغه ماء قليل دی. کله چې د امام محمد رحمه الله د جمات د حوض پيمائش اوشو. نو د يو روايت مطابق هغه هشت در هشت (يعنی اته ګزه اوږده او اته ګزه پلن وو.) او دبل روايت مطابق هغه ده در ده وو. او ځينې حضراتو فرمائيلي دی. چې د دننه برخه ئې هشت درهشت (۸ضرب ۸) وه. او د بهر نه چې ئې پيمائش اوکړلو. نو ده در ده (۱۰ضرب ۱۰) وو. بهر حال عامو مشائخو د ابوسليمان جوزجاني رحمه الله قول اختيار کړې دې.

**القولان في الزراع** ۞ پاته شوه دا خبره چې کوم ګز معتبر دې. ① نو په فتاوی قاضی خان کې دی. چې د مساحت (پيمائش) ګز معتبر دې. او د مساحت ګز دا دې. چې اووه موټی وی. او په هر موټی باندې يوه ولاړه ګوته زياتی وی. ② او علامه مرغيناني رحمه الله د جامو د ګزاعتبار کړې دې. او د جامو ګز اووه موټی وی. او په موټی باندې ولاړه ګوته زياتی نه وی. علامه مرغيناني فرمائی. چې په ماء کثير کې د جامو د ګز اعتبار د خلګو دآسانتيا لپاره شوې دې. او فتوی هم په دې باندې ده.

وَالْمُعْتَبَرُ فِي الْعُمْقِ أَنْ يَكُونَ بِحَالٍ او په ژوروالی کې معتبره دا ده. چې په داسې حالت کې وی لَا يَنْحَسِرُ بِالْاِغْتِرَافِ چې په لپه راخستو سره مځکه نه ښکاری هُوَ الصَّحِيحُ هم دا اصح روايت دې

**حل اللغة** ① عميق: ژور ⑤ اغتراف: ډکول

**تشريح:- الاقوال الاربعة في عمق الغدير** ۞ ① او د ژوروالی په اړه کې معتبره دا ده. چې بس دومره ژوروالې کافی دې. چې په لپه راخستلو سره مځکه نه ښکاره کيږی. او دا صحيح ده. ② او د بعضو رائې دا ده. چې لږترلږ يو ګز وی. ③ اوبعضو د دوو ګزود مقدار اعتبار کړې دې. ④ او بعضو د يو لويشت اعتبار کړې دې.

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ. او څه چې ئې په کتاب کې فرمائيلي دی وَجَازَ الْوُضُوءُ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ چې د بل اړخ نه اودس جائز دې إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يَتَنَجَّسُ مَوْضِعُ الْوُقُوعِ نو دا اشاره ده. چې کوم اړخ ته نجاست غورځيدلې وی نو هغه دنجاست خانې پليتيږی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله[1] او ابويوسف رحمه الله نه روايت دې أَنَّهُ لَا يَتَنَجَّسُ چې د (نجاست غورځيدو خانې) هم نه پليتيږی إِلَّا بِظُهُورِ أَثَرِ النَّجَاسَةِ فِيهِ مګر دا چې نجاست په کې ښکاره شی كَالْمَاءِ الْجَارِي لکه د جاری اوبو (په حکم کې چې) دی.

**حکم الموضع الذي وقعت فيه النجاسة في الغدير** ۞ علامه مرغيناني فرمائی. چې دا کوم څه په قدوری کې ونيلی شوی دی. چې دغدير عظيم د بل اړخ نه اودس جائز دې. په دې کې دې اړخ ته اشاره ده. چې په کوم خانې کې نجاست غورځيدلې وی. هغه د نجاست غورځيدو خانې به پليت وی. برابره ده که نجاست مرئی وی او که غير مرئی وی. اودامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. چې د نجاست غورځيدو مقام به هم پليت نه وی. مګر په دې صورت کې چې هلته نجاست ښکاره شی. لکه څنګه چې د جاری اوبو حکم دې.

## په اوبو کې د بې وينې ځيز د مرګ حکم

[1] ) القول الراجح هو قول ابی يوسف رحمه الله كذا فی فتح القدير(۷۲:۱) والدرالمختار(۱۴۰:۱) وردالمحتار(۱۴۰:۱) نقلا عن القول الراجح (۱۲:۱)-



قَالَ فرمايي وَمَوْتُ مَا لَيْسَ لَهُ نَفْسٌ سَائِلَةٌ فِي الْمَاءِ او په اوبو کې د داسې شی مرګ چې په هغې کې وينه نه وی. لَا يُنَجِّسُهُ نو هغه اوبه نه پليتوی كَالْبَقِّ لکه ماشې وَالذُّبَابِ، مچ، وَالزَّنَابِيرِ مچئ وَالْعَقْرَبِ او لړم وَنَحْوِهَا او ددې په شان

**حل اللغة** ① بق: منګوړ (کتمل) ② ذباب: مچ ③ زنابير: مچۍ ④ عقرب: لړم

**تشريح:- المذهبان في نجاسة الماء بموت ما ليس فيه دم سائلة** ① ۞ مسئله دا ده. که په اوبو کې داسې ځناور مړ شی. چې په هغې کې بهيدونکې وينه نه وی. نو دهغې په مرګ سره اوبه نه پليتيږی. لکه مچ، ماشې مچئ او لړم وغيره،

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله. اوامام شافعی رحمه الله فرمايي يُفْسِدُهُ چې د داسې ځناورو مرګ هم اوبه خرابوی لِأَنَّ التَّحْرِيمَ لَا بِطَرِيقِ الْكَرَامَةِ خکه که تحريم په طريقه د کرامت نه وی آيَةُ النَّجَاسَةِ نو دا د. نجاست نښانه ده بِخِلَافِ دُودِ الْخَلِّ وَسُوسِ الثِّمَارِ په خلاف د شهدو د مچود بچواود ميوو د چينجو لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً خکه چې په دې کې اړتيا دې

**حل اللغة** ① يفسد، افسد، افساداً: فاسد کول، خرابول ⑨ اية علامت نښانه

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې دداسې ځناورو مرګ هم اوبه پليتوی.

**دليله** ۞ د امام شافعی رحمه الله دليل دا دې. چې دا شيان حرام دی. خکه چې الله تعالی فرمائيلي دی. ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ﴾ او تحريم که په طريقه د کرامت اوعزت نه وی. نو دا دليل د نجاست دې. او په ﴿لا بطريق الكرامة﴾ سره ئې انسان خارج کړلو. خکه که سړې جنب نه وی. اوهغه په اوبو کې مړ شی. نو دهغه په مرګ سره اوبه نه پليتيږی. (مګردا چې په بدن ئې ظاهری مرداری وی. يا په اوبو کې اوړسيږی.) خکه چې د سړی تحريم په طريقه دکرامت دې. اوکه د شهدود مچئ بچې په اوبو کې مړشی. يا د ميوو چينجی په ميوو کې مړه شی. نو په دې سره شهد او ميوې نه پليتيږی. دليل دا دې. چې د قياس تقاضا خودا وه. چې دا شيان (ځيزونه) هم پليت شوي وې. ليکن د اړتيا د وجې دا پاك اوګرځولی شو.

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيهِ چې ددې په اړه کې دنبی عليه السلام قول چې هَذَا هُوَ الْحَلَالُ أَكْلُهُ وَشُرْبُهُ حلال دې. ددې خوراك څکاك وَالْوُضُوءُ مِنْهُ[1] او ددې نه اودس کول،،

**تشريح:- دلائل الاحناف** ۞ ① زمونږ دليل دحضرت سلمان فارسی رضی الله عنه حديث دې. ﴿أن النبی ﷺ سئل عن إناء فيه طعام أو شراب يموت فيه ما ليس له دم سائل فقال ﷺ هذا هوالحلال أكله وشربه والوضوء منه﴾ كفايه) يعنی د نبی ﷺ نه د هغه لوښی په اړه کې پوښتنه اوشوه. چې په هغې کې د خوارك څکاك شی وی. اوپه دې کې هغه ځناور مړ شی. چې په هغه کې بهيدونکې وينه نه وی؟ نبی ﷺ اوفرمائيل: ددې خوراك څکاك حلال دې. اود دې نه اودس کول جائز دې. او په دارقطنی کې دا حديث داسې دې. ﴿ياسلمان كل طعام وشراب وقعت فيه دابة ليس لها دم سائل فمات فيه فهو حلال أكله وشربه ووضوئه﴾ اې سلمان د خوراك څکاك هر هغه شی چې په هغې کې داسې ځناور پريوځی. چې په هغې کې وينه نه وی. او په هغې کې مړ شی. نو دا شی حلال دې. ددې خوراك او څکاك او ددې نه اودس کول. دارقطنی دا حديث روايت کړې دې. اوفرمائيلي ئې دی. چې د بقيه راوی نه سوا بل هيڅ چا دې ته مرفوع نه دی وئيلی. اوهغه د سعيد بن ابی سعيد الزبيدی نه روايت کړې دې. اوهغه ضعيف دی.

وَلِأَنَّ الْمُنَجِّسَ هُوَ اخْتِلَاطُ الدَّمِ الْمَسْفُوحِ بِأَجْزَائِهِ اوددې وجې چې پليتونکې خو د دم مسفوح د اوبو د اجزاؤ سره ګډون دې عِنْدَ الْمَوْتِ د مرګ په وخت کې حَتَّى حَلَّ الْمُذَكَّى تردې چې ذبح شوې ځناور حلاليږی لِانْعِدَامِ الدَّمِ فِيهِ خکه چې په هغې کې وينه نه وی وَلَا دَمَ فِيهَا او په دې ځناورو کې بيخی وينه نشته

**حل اللغة** ① اختلاط: ملاويدل ② انعدام: نيش کيدل ③ دم: وينه

**تشريح:-** دليل عقلی دا دی.چې د كوم خناور په مرګ باندې اوبه پليتيږی.نو دمرګ په وخت كې دهغه د دم مسفوح اجزاء د اوبو سره ګډيږی.(نو ځكه دغه اوبه پليتيږی.) چې كوم خناور ذبح شوې وی.نوهغه حلال او پاك وی.ځكه چې په هغه كې دم مسفوح نه وی.اودا خناور چې پورته ئې ذكر اوشو.داسې دی.چې په دوی كې داسې وينه نشته.يعنی په دے خناورو كې دم سائل نشته.اوچې اوبه پليتوی.نو هغه هم دا دم سائل وی.كومه چې د خناور د مرګ په وخت كې داوبو د اجزاؤ سره ګډه شی.د دے خناورو په مرګ سره دا وينه په اوبو كې نه ګډيږی.د دے وجې په دے باندې اوبه نه پليتيږی

**وَالْحُرْمَةُ لَيْسَتْ مِنْ ضَرُورَتِهَا النَّجَاسَةُ** اود حرمت لپاره نجاست ضروری نه دې **كَالطِّينِ** لكه خاوره شوه

**تشريح:- الجواب من دليل الشافعی** رحمه الله ۞ اود «والحرمة ليست» په دے سره دامام شافعی رحمه الله ځواب وركوی .حاصل د ځواب دا دې.چې د حرمت د لوازماتو نه نجاست نه دې.يعنی چې كوم شی حرام وی.نودا ضروری نه ده.چې هغه دے نجس وی.مثلا خاوره ،زهر او كونله وغيره دا واړه شيان (ځيزونه ) حرام دی.ليكن په دے كې يو هم نجس نه دې.

## په اوبوكې داوسيدونكې ځيز په مرلو د اوبو حكم

**قَالَ** فرمايي **وَمَوْتُ مَا يَعِيشُ فِي الْمَاءِ فِيهِ** اوپه اوبوكې د داسے ځيزمرګ چې په اوبو كې ژوند تيروی **لَا يُفْسِدُهُ** اوبه نه پليتيږی **كَالسَّمَكِ** لكه كب **وَالضِّفْدَعِ** چيندخه **وَالسَّرَطَانِ** اوشمشتئ، (كونږے كب)

**حل اللغة°** ① **يعيش**، عاش – عيشا (ض) ژوندې اوسيدل ② **سمك**: كب ③ **ضفدع**: چيندخه

**تشريح:- المذهبان فی حكم موت حيوان البحر فيه** ۞ ①مسئله دا ده.كه په اوبوكې هم د اوبو خناور مړ شی.نو اوبه كه قليل وی او كه كثير ددے په مرګ اوبه نه پليتيږی

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمايي **يُفْسِدُهُ إِلَّا السَّمَكَ** چې سوا د كب نه (نورشيان (ځيزونه )) اوبه خرابوی **لِمَا مَرَّ** دهغے دليل د وجې كوم چې تير شو

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چې د كب نه علاوه د نورو ځيزونو په مرګ اوبه پليتيږی.

**دليله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دليل هم هغه دې.كوم چې وړاندې تير شو.كه تحريم په طريقه د كرامت نه وی. نو هغه د نجاست نښانه ده.اوچونكه دا خناور حرام دی.نوددے حرمت دليل د نجاست دې.

**السوال علی الشافعی** رحمه الله ۞ ليكن په امام شافعی رحمه الله دا اشكال وارديږی.چې په كتاب الذبائح كې ذكر دی.چې دامام شافعی رحمه الله په نيز د چيندخے او كشور (شمشتئ) خوراك حلال دې.نو دا دليل څنګه صحيح كيدې شی.؟

**جواب الشوافع** ۞ ځواب وركړې شوې دې.چې په كتاب الذبائح كې چې څه ذكر دی.شوافع هغه نه منی.امام نووی شافعی المسلك رحمه الله فرمائی.چې كوم خناور په اوبوكې ژوند تيروی.كه هغه داسې وی.چې غوښه ئې خوړلے شی.نو په دے كې شك نشته.چې هغه اوبه نه پليتوی.اوكه خناور داسې وی.چې دهغے غوښه نشی خوړلې.لكه چنګوښه (چيندخ) وغيره نو كله چې هغه په لږواوبويا په بل بهيدونكې نرم شی كې كه قليل وی اوكه كثير.كې مړ شی.نوهغه پليتوی.هم داسې د كشور (شمشتئ) په اړه كې صراحت موجود دې. نو معلومه شوه.چې دامام شافعی رحمه الله په نيز د چنګوښه (چيندخ) او كشور حرمت راجح دې.

**وَلَنَا** اوزموږ دليل دا دې **أَنَّهُ مَاتَ فِي مَعْدِنِهِ** چې هغه خناور په خپل معدن كښے مړ شوې دې **فَلَا يُعْطَى لَهُ حُكْمُ النَّجَاسَةِ** نو دهغه په حق كې به دنجاست حكم نشی وركولې **كَبَيْضَةٍ حَالَ مُحُّهَا دَمًا** لكه هغه اګۍ چې په هغے كې زيړ وينه شوې وی

**تشريح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله **من عدم ضرر النجاسة فی معدنها** ۞ ①اوزموږدليل دا دې.كه د اوبوخناور په اوبو كې



مړ شی.نوهغه په خپل معدن كې مړ شو.اوكوم ځيزچې په خپل معدن كې مړ شی.نوهغه به په خپل معدن كې نجس وی.او كوم ځيزچې په خپل معدن كې اوسيږی.او نجس وی.نو هغے ته د نجاست حكم نشی وركولې.ځكه كه نجاست ته په خپل معدن كې دنجاست حكم وركړې شی.نو هيڅ يو سړې پاك نشی پاتې كيدې.ځكه چې د ټولو رګونه د وينے نه ډك دی.نومعلومه شوه.چې نجاست چې ترڅو په خپل معدن كې وی.هغے ته د نجاست حكم نشی وركولې.لكه هغه اګۍ چې زيړ ئې وينه شوې وی.نو ځو چې دننه وی.نو اګۍ پليته نه ده. تردې كه داسې اګۍ ئې په جيب كې وی.او لمونځ اوكړی.نودے سره لمونځ جائز دې.ددے په خلاف كه نجاست په خپل معدن كې نه وی.نوهغے ته به د نجاست حكم وركولې شی.نو كه هنداره (شيشه) د وينے نه ډكه كړې شی.اوپه جيب كې ئې كيږدی.اولمونځ كوی.نو لمونځ جائزنه دې.ځكه چې هنداره (شيشه) دهغے وينے معدن نه دې.نومعلومه شوه.كه آبی خناور په اوبو كې مړ شی. نوهغه به نجس نه وی.ځكه چې اوبه دهغه معدن دې.اونجاست چې تر كومے په خپل معدن كې وی.هغے ته دنجاست حكم نشی وركولې.

**وَلِأَنَّهُ لَا دَمَ فِيهَا** اود دے وجې چې په دے دريابی خناورو كې وينه نه وی **إِذِ الدَّمَوِيُّ لَا يَسْكُنُ الْمَاءَ** ځكه چې د وينے خناور په اوبوكې نشی پاتې كيدای **وَالدَّمُ هُوَ الْمُنَجِّسُ** اوهم وينه پليته ده

**تشريح:-** د دوهم دليل حاصل دا دې.چې نجس په اصل كې بهيدونكې وينه وی.او د وينے مزاج ګرم دې.او اوبه يخے وی.په دواړو كې تغائر دې.نو چې په كوم خناور كې وينه وی.هغه د اوبو اوځيدونكې نه دې.او چې كوم خناور د اوبو وی.په هغے كې وينه نه وی.

**الجواب الانكاری** ۞ ددے نه علاوه وينه په لمر كې توريږی. اوپه دے خناورو كې چې كوم شی وی.هغه اوبهيږی.نوهغه په لمر كې سپينيږی.نومعلومه شوه.چې په دے خناورو كې وينه نشته.هركله چې په دے كې وينه نشته. نو زموږ په نيز په اتفاق سره ددے خناورو په مرګ سره اوبه نه پليتيږی.كه اوبه لږے وی او كه زياتې وی.

**وَفِي غَيْرِ الْمَاءِ قِيلَ** اوداوبو نه په علاوه كې وئيلی شوی دی **غَيْرُ السَّمَكِ يُفْسِدُهُ** چې د كب نه سوا نورخناور هغه ځيزپليتوی **لِانْعِدَامِ الْمَعْدِنِ** ځكه چې معدن نشته **وَقِيلَ** اووئيلی شوی دی **لَا يُفْسِدُهُ** چې دا ئې هم نه پليتوی **لِعَدَمِ الدَّمِ** ځكه چې وينه په كې نشته **وَهُوَ الْأَصَحُّ** او هم دا اصح قول دې

**تشريح:- الروايتان فی حكم موت حيوان الماء فی المائع** ۞اوكه د اوبو دخناورونه يوخناورد اوبونه علاوه په بل بهيدونكی ځيزكې مړ شی.لكه سركه ،شربت، اوشيدې وغيره شو.نو په دے كې اختلاف دې.① ځينې فقهاء فرمايي .چې د كب نه علاوه نور آبی خناور دا شيان (ځيزونه ) پليتوی.ځكه چې په خپل معدن كې نه دی مړه شوی.② اود بعضو خيال دې.چې دا شيان (ځيزونه ) نه پليتوی.ځكه چې په آبی خناورو كې وينه نه وی.حالانكه په وينه باندې پليتيږی.

**وَالضِّفْدَعُ الْبَحْرِيُّ** او كه چنګوښه (چيندخ) د اوبو وی **وَالْبَرِّيُّ** اوكه د اوچې **فِيهِ سَوَاءٌ** د دواړو (حكم) برابر دې **وَقِيلَ** او وئيلې شوی دی **الْبَرِّيُّ مُفْسِدٌ** چې د اوچے چيندخ (اوبه ) پليتوی **لِوُجُودِ الدَّمِ** ځكه چې وينه موجود ده **وَعَدَمِ الْمَعْدِنِ** اومعدن معدوم دې

**حل اللغة°** ① **بحری**: سمندری ⑤ **بری**: دَ اوچې خناور

**تشريح:- الروايتان فی حكم موت الضفدع فی المائع** ۞ ①د علامه مرغينانی رحمه الله دوهم قول ته ترجيح وركړې ده.او فرمائی.كه چنګوښه (چيندخ) د اوچے وی.او كه داوبو.دواړه په دے حكم كې برابر دی.يعنی د دواړو په مرګ سره اوبه نه پليتيږی.او د اوبو او د اوچے د چنګوښه په مينځ كې توپير دا دې.چې د اوبود چنګوښه د ګروتونوپه مينځ كې د بطے د ګوتو په څير پرده وی.اود اوچے په چنګوښه كې نه وی.② اوځينې فقهاء فرمائی.چې د اوچے د چنګوښه په اوبو كې مرګ سره اوبه پليتيږی.ځكه چې د اوچے په چنګوښه كې وينه

موجود وی.نو دنجاست علت موجود شو.او پاته دا خبره چې دغه سيال شی نې معدن نه دې.نودا د نجاست دحكم ښكاره كاوه لپاره دې.(يعنی كله چې يوځناور د خپل معدن نه علاوه په بل ځائې كې مړ شی.نو دهغه د نجاست ځيژد نجاست حكم ښكاره كيږی.اوكه په خپل معدن كې مړ شی.نواګرچې پليت وی.ليكن د نجاست حكم نې نه ښكاره كيږی.)

| |
|---|
| وَمَا يَعِيشُ فِي الْمَاءِ او كوم ځناورچې په اوبو كې ژوند تيروی مَا يَكُونُ تَوَلُّدُهُ وَمَثْوَاهُ فِي الْمَاءِ هغه دی.چې دهغې اګئ بچی پيدا كيدل، او دستوګنې ځائې په اوبو كې وی وَمَا فِي الْمَعَاشِ دُونَ مَا فِي الْمَوْلِدِ مُفْسِدٌ او هغه ځناور چې په اوبو كې ژوند تيروی.ليكن د هغې داګو او بچو ځائې نه وی.نوهغه اوبه پليتونكی دی. |

**حل اللغة*** ① **توالد:** پيدائش ② **مثواى:** ټكانه

**تشريح:- الصفتان لحيوان الماء** ۞ پاته شوه دا خبره.چې داوبو ځناور څه ته وائی. نوصاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چې داوبو په ځناور كې دوې (دوه) صفتونه وی.①يو دا چې اوبه ئې مسكن وی.② دوهم دا چې ددے پيدائش په اوبو كې وی.يعنی اګئ او بچی ئې په اوبو كې وی.او هغه ځناور چې مسكن ئې اوبه وی.ليكن د پيدائش ځائې ئې هغه نه وی.نودهغې په مرګ سره اوبه پليتيږی.

## د مستعملو اوبو حكم

| |
|---|
| قَالَ فرمايي وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ لَايطهربه الْأَحْدَاثِ اومستعملې اوبه احداث نه پاكوی |

**تشريح:- المباحث الثلاثة** ۞ علامه مرغينانی رح په مستعملو اوبو كې درے بحثونه كړی دی.①د مستعملو اوبو په حكم كې.② ددے دسبب په بيان كې ③ د دے د وخت په بيان كې . علامه مرغينانی رح د مستعملو اوبوبيان ځكه مقدم كړلو.چې هم دا مقصود دې.

**اقسام الماء المستعمل** ۞ اوبه مستعملې په درے قسمه دی.① يوداچې دپاك شی وينځلو لپاره استعمال شوې وی.مثلاً غلې، او سبزيانې او پاكې جامې.دا په اتفاق سره پاكې دی.② دوهم دا چې د حقيقي مرداري لرې كاوه لپاره استعمال شوې وی.لكه داستنجاء اوبه او د پليتو جامو اوبه ، دا په اتفاق سره نجسې دی.

| |
|---|
| خِلَافًا لِمَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ رحمهما الله د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په كې اختلاف دې. هُمَا يَقُولَانِ دوی دواړه فرمايي إِنَّ الطَّهُورَ چې طهورهغه دی مَا يُطَهِّرُ غَيْرَهُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى چې پاكوی بل شی يوځل روسته دبل ځل نه كَالْقَطُوعِ.لكه قطوع |

**تشريح:-** دريم ډول دا دې چې د حكمي مرداري دلرې كاوه لپاره استعمال شوې وی.يا دقربت اوثواب په اراده استعمال شوې وی.نودا ډول نورې بې اودسی نه لرې وی

امام مالك اوشافعي رحمهما الله فرمائی.چې دا طاهر مطهر دی.يعنی په خپله هم پاكې دی.او بل شی هم پاكوی.

**دليلهما** ۞ دامام مالك اوشافعي رحمهما الله دليل دا دې.چې الله رب العزت په خپل كتاب كې ماء مطلقو ته طهور ونيلی دی.ارشاد فرمائی.﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا﴾ او طهور د فعول په وزن د مبالغې صيغه ده.معنی ئې ده بار بار پاكونكې.لكه څنګه چې د قطوع معنی ده بار بار كټ كونكې.نو لفظ د طهور ددے خبرے فائده وركوی.چې اوبه يوځل په استعمالولو سره دواړه پاكول كوی.او په دريم ځل به پاكول كوی .نومعلومه شوه.چې مستعملې اوبه مطهر يعنی پاكونكې دی.اوچې كوم شی مطهر وی.نوطاهر به خامخا وی.او ماء مستعل طاهر مطهر دواړه دی.

**الاجوبة** ۞ ①علامة الهند مولانا عبدالحي رحمه الله دهدايه دشروحاتوپه رڼا كې ددے نه څو ځوابونه وركړی دی. لومړې ځواب دا دې. چې مونږدا نه منو .چې فعول د مبالغې په معنی دې.بلكه دا د طهور په وزن د فعول مصدر دے .د طهارت په معنی دې.لكه چې په حديث كې دی.﴿ لاصلاة إلا بطهور يعني بطهارة﴾



اوداحديث چې ﴿مفتاح الصلاة الطهور يعني الطهارة﴾او﴿وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا﴾ امامانو دنحو سيبويه ،خليل ،مبرد، اصمعی اوابن السكيت رحمه الله هم د دے تصريح كړې ده.نوهركله چې طهور مصدر شو.نوددے معنی بار بارپريمنځل نه دی.نو د ماء مستعمل مطهر كيدل هم ثابت نشو.② دوهم ځواب دا دې.چې طهورد هغه شی نوم دې.چې په هغې باندې طهارت حاصلولے شی.لكه سحور چې دهغه خوراك نوم دې.كوم چې د سهار راختو نه وړاندې خوړلے شی.نو په دے صورت كې د اوبو په بار بار پا كاوه باندې دلالت نه كوی.③ دريم ځواب دا دې.چې مونږ منو.چې د فعول وزن د مبالغې لپاره دې.ليكن طهور د"طهر" لازم نه مشتق دې.د "طهر"متعدی نه مشتق نه دې. نوپه دے صورت كې به د طهور معنی شی.زيات پاك. لنډيز دا كه د مبالغې صيغه د فعل لازم نه ماخوذ وی.نودا به د مبالغې في الفاعل لپاره وی.اود دے سره به د مفعول څه تعلق نه وی.اوكه د فعل متعدی نه ماخوذ وی.لكه قطوع شو.نو په مفعول كې به مبالغه اواضافه وی.نوپه دے صورت كې به هم د اوبو ښه پاكوالے ثابت شی.ليكن بار بار پاكونكې ترے نه ثابتيږی.(سعايه)

| |
|---|
| وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله اوامام زفر رحمه الله فرمايي وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اوهم دا دامام شافعي رحمه الله په دوو قولونو كې يو قول دې إِنْ كَانَ الْمُسْتَعْمِلُ مُتَوَضِّئًا كه استعمالونكې په اودس كې وی فَهُوَ طَهُورٌ نوطهور دی وَإِنْ كَانَ مُحْدِثًا اوكه بې اودسه وی فَهُوَ طَاهِرٌ غَيْرُ طَهُورٍ نوهغه په خپله كاكې بل لره پاكونكې دی . |

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی.چې د مطلقو اوبواستعمالونكې په اودس كې وی.او دے په اودس باندې بل اودس اوكړی.نودا مستعملې اوبه طاهرمطهر دی. يعنی په خپله هم پاكې دی.او نور شيان (څيزونه ) هم پاكوی.اوكه بې اودسه وی.نومستعملې اوبه طاهر غير مطهر دی.يعنی په خپله پاكې دی.ليكن نور شيان (څيزونه ) نه پاكوی.او هم دا دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله نه هم يو روايت دې.چې دا مستعملې اوبه طاهر غير مطهر دی.② اوشيخين فرمائی.چې نجس دی.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْعُضْوَ طَاهِرٌ حَقِيقَةً ځكه چې اندام خوحقيقتاً پاك وی وَبِاعْتِبَارِهِ يَكُونُ الْمَاءُ نوپه دے اعتبار سره به اوبه پاكې وی لَكِنَّهُ نَجِسٌ حُكْمًا اوكه حكماً نجس وی وَبِاعْتِبَارِهِ يَكُونُ الْمَاءُ نَجِسًا نوپه دے اعتبار سره به اوبه پليتې وی |

**تشريح:- دليل زفر رحمه الله** ۞ دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چې د محدث اندامونه په حقيقت كې پاك دی.ځكه چې په ظاهری اندامونو باندې څه نجاست نشته.البته د شريعت دحكم د وجې نجس دی.ځكه چې داسلامی شريعت مطابق په محدث باندې اودس كول فرض دې.نوماء مستعمل د اول په اعتبار سره پاكې دی.اود ثانی په اعتبار سره پليتې دی.او په دواړو باندې عمل كول غوره دې.ددے په نسبت چې په دے كې په يو باندې عمل اوشی.اوبل پريښولې (پريخودې)شی.

| |
|---|
| فَقُلْنَا نومونږ وايو بِانْتِفَاءِ الطَّهُورِيَّةِ وَبَقَاءِ الطَّهَارَةِ چې طهوريت منتفی شو.او طهارت پاته دې عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ په دواړو مشابهتونو باندې عمل كاوه دپاره. |

**تشريح:-** نومونږ په دواړو مشابهتينو عمل كوو.او وايو.چې ماء مستعمل طاهر غير مطهر دی.يعنی د اندامونو حقيقت ته چې نظر اوشو.نودے ته طاهرے اووئيلې شوې.اوچې د شريعت حكم ته نظر اوشو.نودے ته غير مطهرے اووئيلې شوې.نوځكه دا ماء مستعمل په خپله پاكې دی.خوبل څه نشی پاكولې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمايي **وَهُوَرِوَايَةٌعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله اودا يو روايت دامام اعظم رحمه الله نه هم دے **هُوَطَاهِرٌغَيْرُطَهُورٍ** ([1]) چې مستعملې اوبه طاهر غير مطهر دي **لِأَنَّ مُلَاقَاةَالطَّاهِرِلِلطَّاهِرِلَاتُوجِبُ التَّنَجُّسَ** خكه چې دپاك شي د پاك سره نښليدل موجب دنجاست نه وي **إِلَّاأَنَّهُ أُقِيمَتْ بِهِ قُرْبَةٌ** مګردا چې په هغے عبادت ادا شوې وي **فَتَغَيَّرَتْ بِهِ صِفَتُهُ** اوپه هغے سره د هغے صفت بدل شوې وي **كَمَالِ الصَّدَقَةِ** لكه مال د صدقې

**تشريح:- مذهب محمد ودليله** ۞ امام محمد رحمه الله فرمايي چې مستعملې اوبه په خپله پاكې دي خو بل نه پاكوي دامام محمد رحمه الله د دليل حاصل دا دې چې د اودس كونكي اندامونه هم پاك دي.اواوبه هم پاكې دي.او دپاك شي دپاك سره نښليدل موجب د نجاست نشے كيدې.خو كه په اوبو باندې قربت او عبادت ادا شوې وي. نو د دے وجې د اوبو وصف متغير شو.لكه څنګه چې د صدقې او زكاة مال دې.خكه چې مال في نفسه مطهر دې.الله تعالى فرمائي.( خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا ) نود كوم مال سره چې زكاة وركړې شي. شريعت هغے ته خيرے ونيلي دې.خكه د زكاة مال په نبي عليه السلام او ددوى په اولاد باندې په شريعت كې حرام دې.نودغه ډول ماء مستعمل چې په دے باندې قربت ادا شوې وي.يا حدث زائله شوې وي.نودا د نجاست حكميه د وجې خيرنيږي.او د خپلے اصلي مرتبې نه غورځيږي.نوځكه هغه د مطهر د فهرست نه ويستلے شي.اګرچې په طهارت باندې پاته دې.نوثابته شوه.چې ماء مستعمل طاهرے غير مطهرے دی. نجس نه دی.

**وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَأَبُويُوسُفَ** رحمهما الله اوابوحنيفه اوابويوسف رحمهما الله فرمايي **هُوَنَجِسٌ** چې دا پليتے دی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** خكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دی **لَايَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ** په تاسو كې دے څوك په ولاړو اوبو كې متيازے نه كوى اونه دے په دے كې دجنابت نه غسل كوى. **الْحَدِيثَ، وَلِأَنَّهُ مَاءٌ أُزِيلَتْ بِهِ النَّجَاسَةُ الْحُكْمِيَّةُ** اوددے وجې چې مستعملے اوبه داسې اوبه دی.چې په دے باندې حكمي مرداري لرې كړې شوې وی **فَيُعْتَبَرُ بِمَاءٍ** نودا به په داسې اوبو باندې قياس كولې شی **أُزِيلَتْ بِهِ النَّجَاسَةُ الْحَقِيقِيَّةُ** چې په هغے باندې حقيقي نجاست لرې شوې وی

**تشريح:- دلائل الشيخين** ۞ (۱) د شيخينو رحمهما الله په نيز اوبه مستعمل پليتې دی او د دې په نجاست باندې دليل دا دې.چې نبي ﷺ په ولاړو اوبو كې څنګه د حقيقي مرداري يعنى متيازو نه منع كړې ده.نودغه ډول د نجاست حكميه يعنى غسل كاوه نه ئې هم منع كړې ده.نوپه ولاړو اوبو كې غسل كول داسې دی.لكه متيازے كول. نو ثابته شوه.چې لكه څنګه متيازے ماء راكد پليتوى.دغه ډول غسل كول ئې هم پليتوى. (۲) دوهم دليل دا دې.چې ماء مستعمل هغه اوبه دی .چې په هغے باندې نجاست حكميه لرې كړې شوې وی. نو دا به په هغه اوبو باندې قياس كولې شی.چې په كومو حقيقي مرداري لرې كړې شوې وی.او په كومو اوبو چې حقيقي مرداري لرې كړې شوې وی.هغه پليتے وی.نو دغه ډول به ماء مستعملے هم پليتے وی.

**ثُمَّ فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله بيا د ابوحنيفه رحمه الله نه دحسن په روايت كې دی **أَنَّهُ نَجِسٌ نَجَاسَةً غَلِيظَةً** چې (اوبه مستعملے نجس) په نجاست غليظه سره دی **اعْتِبَارًابِالْمَاءِ** په هغه اوبو باندې قياس كوى **الْمُسْتَعْمَلِ فِي النَّجَاسَةِ الْحَقِيقِيَّةِ** چې په حقيقي مرداري كې استعمال شوې وی **وَفِي رِوَايَةِ أَبِي يُوسُفَ عَنْهُ** رحمه الله **وَهُوَقَوْلُهُ** او د ابوحنيفه رحمه الله نه د ابويوسف رحمه الله په روايت كې نقل دی **أَنَّهُ نَجِسٌ** چې دا نجس دی **نَجَاسَةً خَفِيفَةً** په نجاست خفيفه سره **لِمَكَانِ الِاخْتِلَافِ** خكه چې په دے كې اختلاف دې.

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى فتح القدير(۷۵۱۱) والكفاية (۷۵۱۱) وردالمحتار(۱۴۷۱۱) نقلا عن القول الراجح (۱۳۱۱)_۱



**تشريح:- المذهبان في نوعية نجاسة الماء المستعمل** ۞ داخبره دے واضحه وی.(۱) چې امام حسن بن زياد رحمه الله د ماء مستعمل د نجاست غليظه لپاره په قياس استدلال كوی. يعنى هغه اوبه چې دحقيقي مرداري په ازاله كاوه كې استعمال شوې وی. نولكه څنګه چې دا د نجاست غليظه په حكم كې دی.نودغه ډول به ماء مستعمل چې د نجاست حكميه په ازاله كې استعمال شوې دی.هغه به هم د نجاست غليظه په حكم كې وی.(۲) اوامام ابويوسف رحمه الله په نجاست خفيفه باندې دا دليل پيش كوی.چې د ماء مستعمل په طهارت او نجاست كې د علماو اختلاف دې. او د علماؤ اختلاف تخفيف پيدا كوی.نوماء مستعمل به د نجاست خفيفه په حكم كې وی.دنجاست غليظه په حكم كې به نه وی.

### د اوبو د مستعملو كرځيدو سبب

**قَالَ** فرمايي **وَالْمَاءُالْمُسْتَعْمَلُ** اوماء مستعمل هغه دی **هُوَمَاأُزِيلَ بِهِ حَدَثٌ** چې په هغے سره لرې كړې شوې وی.څه حدث **أَوِاسْتُعْمِلَ فِي الْبَدَنِ عَلَى وَجْهِ الْقُرْبَةِ** يا هغه د تقرب په طور په بدن كې استعمال شوې وی **قَالَ** رحمه الله علامه مرغيناني رحمه الله فرمايي **وَهَذَاعِنْدَأَبِي يُوسُفَ** رحمه الله چې دا د ابويوسف رحمه الله په نيز دې **وَقِيلَ هُوَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ أَيْضًا** رحمه الله ([1]) او ونيلي شوی دی.چې دا د ابوحنيفه رحمه الله قول هم دې

**تشريح:- المذهبان في سبب الاستعمال** ۞ په دے بحث كې د دوهم بحث يعنى د ماء مستعمل حقيقت اوددے په سبب كې كلام دې.(۱) دشيخينو رحمهما الله په نيز د اوبو داستعمال سبب دوې (دوه) شيان (څيزونه ) دی.(۱) حدث لرې كول (۲) د قربت اوثواب نيت كول.چې دا دواړه خبرے موجود شی.يا په دے كې يوه موجود شی.نو په دواړو صورتونو كې اوبه مستعملے ګرځی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمايي **لَايَصِيرُمُسْتَعْمَلًا** چې دا مستعمل نه دی **إِلَّابِإِقَامَةِ الْقُرْبَةِ** مګر په تقرب پوره كاوه سره **لِأَنَّ الِاسْتِعْمَالَ بِانْتِقَالِ نَجَاسَةِ الْآثَامِ إِلَيْهِ** خكه چې استعمال خو چې ګناهونه دے ته منتقل شی.په دے راځی **وَإِنَّهَاتُزَالُ بِالْقُرَبِ** او دا نجاست صرف په تقرب سره زائله كولے شی **وَأَبُويُوسُفَ** رحمه الله **يَقُولُ**.او ابويوسف رحمه الله فرمايي **إِسْقَاطُ الْفَرْضِ مُؤَثِّرٌأَيْضًا** چې فرض ساقط كول هم موثر دی **فَيَثْبُتُ الْفَسَادُبِالْأَمْرَيْنِ** نوفساد به په دواړو خبرو سره ثابتيږی.

**حل اللغة**° (۱) **استعمل، استعمالاً**: استعمالول (۲) **قربة** نزديكت (۳) **آثام واحد اثم**: ګناه

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله په نيز د اوبو د مستعمل ګرځيدو سبب صرف نيت د قربت دې.

**دليله** ۞ د امام محمد رحمه الله دليل دا دې.چې استعمال خو هله راځی .چې دګناهونونجاست اوبو ته منتقل شي.او دا نجاست د ګناهونوصرف د قربت او ثواب په نيت سره زائله كيږی.نومعلومه شوه.چې اوبه د قربت او ثواب د نيت نه بغير مستعملے نه ګرځی.

**خلاصة مذهب الشيخين** رحمهما الله ۞ اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چې فرض ساقط كول يعنى بې اودسی لرې كول هم موثر دی.حاصل د كلام دا چې د شيخينو رحمهما الله په نيز داوبو وصف په هغه وخت كې متغير كيږی.چې كله نجاست حكميه د محل نه زائله شی.او اوبو ته منتقل شی.اونجاست حكميه په دواړو صورتونو كې اوبو ته منتقل كيږی.نوفساد د اوبو يعنى د ماء مستعمل ګرځيدل په دواړو خبرو سره ثابتيږی.

**صورثمرة الاختلاف** ۞ (۱) نوكه يومحدث اوبې اودسه كس د قربت اوثواب په نيت اودس اوكړلو.نوپه اتفاق سره

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى الخانية (۱۵۱۱) وتبيين الحقائق (۲۴۱۱) والهندية (۲۲۱۱) نقلا عن القول الراجح (۱۵۱۱)_

اوبه مستعملې اوګرځیدلې.اوکه متوضی کس د یخوالی لپاره اودس اوکړلو.نوپه اتفاق سره اوبه مستعملې ګرځی.② او که محدث د یخوالی لپاره اودس اوکړلو.نود شیخینو رحمهما الله په نیز اوبه مستعملې نه محمد رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله په نیز مستعملې نه ګرځی.دامام محمد رحمه الله په نیز اوبه مستعملې ګرځی.اودامام قربت نیت نشته.او دامام شافعی رحمه الله په نیز ځکه چې بغیر د نیت نه حدث زائله نشو.③ اوکه یو متوضی کس د قربت اوثواب په نیت دوباره اودس اوکړلو.نودامام ابوحنیفه اوابویوسف او امام محمد رحمهم الله په نیز اوبه مستعملې ګرځی.او دامام زفر اوامام شافعی رحمه الله په نیز مستعملې نه ګرځی . (عنایه)

## د اوبو د مستعملو ګرځیدو وخت

وَمَتٰى يَصِيرُ الْمَاءُ مُسْتَعْمَلًا او اوبه کله مستعمل ګرځی اَلصَّحِيحُ نوصحیح دا ده اَنَّهُ كَمَا زَايَلَ الْعُضْوَ چې کله هغه د اندام نه جلا شی صَارَ مُسْتَعْمَلًا نو مستعملې ګرځی

**تشریح:- المذهبان في صيرورة الماء مستعملاً**۞ په دې عبارت کې دریم بحث د ماء مستعمل د وخت متعلق شوی دی.ددې حاصل دا دی.چې احناف عالمان رحمهم الله په دې خو متفق دی.چې اوبه ترڅو پورې په اندام پورې وی.نوهغې ته د استعمال حکم نشی ورکولې.لیکن کله چې د اندام نه جلا شی.خو په بل ځائې یا لوښی کې ایسارې شوې نه وی.نوددې په مستعملو ګرځیدوکې اختلاف دې ① داحنافو مذهب دا دې.چې اوبه کله د اندام نه جلا شوې.نوهغه مستعملې شوې.د هغې په یوځائې کې ایساریدل د استعمال لپاره شرط نه دې.② سفیان ثوری ابراهیم نخعی اود بلخ ځینې نورو مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چې مستعملې نه ګرځی.ترڅوچې د بدن نه جلا شوې نه وی.اوبل ځائې کې ایسارې شوې نه وی.دا قول امام طحاوی رحمه الله غوره کړې دې.

**ثمرة الخلاف**۞ ① تردې که دبدن نه جلا شوې.اوپه جامې پورې اولګیدلې . نو جامې د شیخینو رحمهم الله په نیز پلیتې شوې.② اواحنافو فقهاؤ لیکلی دی.که د یو کس نه دخپل سر مسح هیره شوه.او هغه د خپلې ږیرې لوندوالې راواخستلو.او په هغې باندې ئې د سر مسح اوکړله.نودا جائز نه ده.دلیل دا دې.چې د بدن نه د جلا کیدو نه وړاندې ورته د استعمال حکم د اړتیا د وجې نشی ورکولې. لیکن د جلا کیدو نه روسته څه اړتیا پاتې نشو.نوځنګه چې د اندام نه جلا شی.د استعمال حکم به ورته ورکولې شی.؟

لِأَنَّ سُقُوطَ حُكْمِ الْاِسْتِعْمَالِ قَبْلَ الْاِنْفِصَالِ لِلضَّرُوْرَةِ ځکه چې د (اندام نه) د جلا کیدو نه وړاندې د استعمال حکم ساقط کیدل د اړتیا د وجې وی. وَلَا ضَرُوْرَةَ بَعْدَهٗ او ددې نه روسته څه اړتیا پاته نشو

**حل اللغة**۞ ① انفصال: جداکیدل

**تشریح:-** دلیل دا دې چې د بدن نه د جلا کیدو نه وړاندې اوبو ته د استعمال حکم د اړتیا په وجه نه دې ورکړې شوې خو د جلا کیدو نه روسته اړتیا پاته نشو د دې امله چې ځنګه د بدن نه جلا شی نو د استعمال حکم به ور کولای شی

## په کوهی کې د جنب غوپه وهل

وَالْجُنُبُ اِذَا انْغَمَسَ فِي الْبِئْرِ جنب چې کله په اوبوکې غوپه اووهله لِطَلَبِ الدَّلْوِ د بوقې راویستلودپاره

**حل اللغة**۞ ① انغمس، انغماساً: ډوبیدل، غوپه کیدل ② بیر: څاه (کوهی) ③ طلب: غوښتل، لواړه ④ دلو: ډول

**تشریح:- حكم البير عند انغماس الجنب فيها**۞ دجنب نه مراد هغه کس دې.چې دهغه په بدن باندې حقیقی نجاست نه وی.اود کوهی نه مراد هغه دې.چې هغه د "ده در ده" (۱۰ضرب ۱۰) نه کم وی.① اوس صورت دا شو.چې یو جنب د بوقې راویستلو لپاره یا خان یخولو لپاره په کوهی کې غوپه اووهله .لیکن په بدن باندې ئې اوبه اونه بیولې.

فَعِنْدَ اَبِي يُوْسُفَ رحمه الله الرَّجُلُ بِحَالِهٖ نو دامام ابو یوسف رحمه الله په نیزهغه کس په خپل حالت باندې جنب دې لِعَدَمِ



الصَّبِّ (ځکه چې د اوبوپه بدن باندې) بهیدل موجود نشو وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَهٗ لِاِسْقَاطِ الْفَرْضِ حالانکه د فرض ساقط کاوه لپاره د ابویوسف رحمه الله په نیز دا شرط دې وَالْمَاءُ بِحَالِهٖ او اوبه هم په خپل حالت باندې (پاکې) دی لِعَدَمِ الْاَمْرَيْنِ ځکه چې دواړه خبرې نشته

**حل اللغة**۞ ① صب: بیول، غورزول، اړول

**تشریح:-** نود امام ابویوسف رحمه الله په نیز سړی په خپل حال باندې جنب دې.اواوبه په خپل حال باندې پاکې دی.

**دلیله**۞ دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چې په بدن باندې اوبه بیول د فرض ساقط کاوه لپاره شوط دې اوهغه دلته کې نشته.نوځکه ددې جنب فرض ساقط نشو.اوچې فرض ساقط نشو.نوجنب په خپل حالت جنابت باندې پاته دې.اواوبه ددې وجې پاکې دی.چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د اوبود مستعملو ګرځیدو لپاره دوې (دوه) سببه دی.① حدث لرې کول ② اود قربت اوثواب نیت، ددې نه علاوه بل څه سبب نشته.نوهر کله چې دواړه اسباب موجود نه دی. نواوبه مستعملې نشوې.بلکه په سابقه حالت باندې پاته دی.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله كِلَاهُمَا طَاهِرَانِ اودامام محمد رحمه الله په نیز دواړه پاك دی اَلرَّجُلُ لِعَدَمِ اشْتِرَاطِ الصَّبِّ سړی خوځکه چې بیول شرط نه دې وَالْمَاءُ لِعَدَمِ نِيَّةِ الْقُرْبَةِ او اوبه د قربت د نیت عدم وجود د امله

**تشریح:-** اودامام محمد رحمه الله په نیز سړی او اوبه دواړه پاکې دی.

**دلیله**۞ دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چې اوبه بیول د فرض ساقط کاوه لپاره شرط نه دې.نوبغیر د اوبو بیولو صرف په غوپه وهلو سره دهغه فرض جنابت ساقط شو.اودې پاك شو.اواوبه ددې وجې پاکې دی.چې ده د قربت او ثواب نیت نه دې کړې.حالانکه دامام محمد رحمه الله په نیز د اوبو د مستعملو ګرځیدو لپاره د قربت نیت کول شرط دې.د قربت د نیت نه بغیر د هغوی په نیز اوبه مستعملې نه دی.

وَعِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله او دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز كِلَاهُمَا نَجِسَانِ[1] دواړه پلیت دی اَلْمَاءُ لِاِسْقَاطِ الْفَرْضِ عَنِ الْبَعْضِ بِاَوَّلِ الْمُلَاقَاةِ اوبه خوپه اول ملاقات سره د ځینې اندامونو نه د فرض ساقط کاوه د امله وَالرَّجُلُ لِبَقَاءِ الْحَدَثِ فِي بَقِيَّةِ الْاَعْضَاءِ او سړی په پاته اندامونو کې د حدث د موجودوالی د امله وَقِيْلَ او وئیلی شوی دی عِنْدَهٗ نَجَاسَةُ الرَّجُلِ بِنَجَاسَةِ الْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ چې د سړی نجاست د ماء مستعمل د نجاست د وجې دې

**تشریح:-** اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سړی او اوبه دواړه پلیتې دی.

**التوجیهان لدلیل ابی حنیفة رحمه الله**۞ ① او دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چې اوبه خوددې وجې پلیتې دی.چې د دغه جنب ځینې اندامونه چې کله د اوبو سره اولګیدل.نو په هغه بعضې اندامونو سره فرض ساقط شو.او دهغې د وجې اوبه مستعملې اوګرځیدلې.اګرچې نیت نه دې موجود شوې.ځکه چې د فرض جنابت ساقط کاوه لپاره نیت شرط نه دې.اوسړې د دې وجې پلیت دې.چې دده په ځینې اندامونو کې جنابت پاته دې.ځکه چې پاته اندامونه په پلیتو اوبو سره پاك شوی نه دی.② او وئیلی شوی دی.چې سړې ددې وجې پلیت دې.چې دامام ابوحینفه رحمه الله په نیز د فرض ساقط کیدو لپاره نیت شرط نه دې.نوفرض غسل خو د نیت نه بغیر ساقط شو.لیکن دمستعملواوبو د نجاست دوجې د ده بدن پلیت شو.ددې قول په بناء دده لپاره قرات د قرآن جائز دې.لیکن لمونځ نشی کولې.

وَعَنْهُ اوهم د امام رحمه الله نه روایت دې اَنَّ الرَّجُلَ طَاهِرٌ چې سړې پاك شو لِاَنَّ الْمَاءَ لَا يُعْطٰى لَهٗ حُكْمُ الْاِسْتِعْمَالِ قَبْلَ الْاِنْفِصَالِ ځکه چې د جلا کیدو نه وړاندې اوبوته د استعمال حکم نشی ورکولې وَهُوَ اَوْفَقُ الرِّوَايَاتِ عَنْهُ د

[1] القول الراجح هو قول ابی حنیفة رحمه الله یعنی الروایة الاخیرة کذا فی فتح القدیر(۱\۸۰) والبحرالرائق (۱\۹۸) وتبیین الحقائق (۱\۲۵) وردالمحتار(۱\۱۴۸) والهندیة (۱\۲۴) نقلا عن القول الراجح (۱\۱۶)_

Scanned with CamScanner

امام اعظم رحمه الله نه دا روايت په ټولو رواياتوكي زيات زيات موافق دي.

**تشريح:- الرواية المطابقة لاصول الامام** اودامام رحمه الله نه يو روايت دا دي.چې سړې پاك شو.ځكه چې اوبوته د بدن نه د جلا كيدو نه وړاندې د استعمال حكم نشي وركولې.نوكله چې دغه سړې د اوبونه جلا شو.نوهغه اوبه مستعملې اوګرځيدلې. او چې يوځل ترے دے رابهر شو.نودوباره په كي غوپه شوې نه دې.نو ځكه پليت شوې نه دي.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چې دا روايت دامام ابوحنيفه رحمه الله د اصولو سره زيات مناسبت لري.ځكه دا روايت راجح دي.

## په دباغت باندې د څرمن طهارت

**قَالَ** فرمايي **وَكُلُّ إِهَابٍ دُبِغَ** اوهره څرمن چې رنګ كړې شي **فَقَدْ طَهُرَ** نوهغه پاكه شوه **وَجَازَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ** او په دغه رنګ شوې څرمن كښے لمونځ جائز دي **وَالْوُضُوءُ مِنْهُ** اوددے نه اودس كول (هم جائز دے **إِلَّا جِلْدَ الْخِنْزِيرِ وَالْآدَمِيِّ** سوا د خنزيراوبنی آدم د څرمنے نه.

**حل اللغة** ① **اهاب**: څرمن ② **دبغ دباغة** (ض،ن،ف) څرمن پخول ③ **طهر، طهوراً**(ن): پاكيدل ④ **جازت، جاز جوزاً** (ن): جائزكيدل

**تشريح:- المسائل الثلاثة المتعلقة بالدباغة** **اهاب**: دهمزۀ په ك سره سره دي.ددے جمع أهب او أُهُبٌ راځي.صاحب د بنايه ذكر كړې دی.چې د دباغت نه روسته څرمن ته اديم وائي.او د دباغت نه وړاندې اهاب وائي.او لفظ د ټوك دواړو ته ګډ دي.

**تعلق الاحكام الثلاثة بالجلد** صاحب د عنايه ليكلی دی.چې د څرمنے د دباغت سره درے مسئلې متعلق دی.① يوخوپه خپله ددغه څرمن پاكيدل.② دوهم د دے نه لباس جوړول او اوغوستل اودهغے نه مصلی جوړول ③ دريم دهغے نه ژي (مشكيزه) جوړول اودهغے نه اودس كول،.د اول تعلق د كتاب الصيد سره دي.اود دوهم تعلق د كتاب الصلاة سره دي.او د دريم تعلق ددے باب سره دي.

**وجه تاخير ذكر الادمی** په عبارت كي چې ئې خنزير په بنيادم باندې مقدم كړې دي.ددے وجه دا ده.چې دا مقام د اهانت دي.ځكه چې دلته د نجاست بيان كيږي.او په مقام د اهانت كښے په موخر كاوه كي تعظيم وی.په مقدم كولوكي نه وی.لكه د الله تعالی په دے ارشاد ﴿ لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ ﴾ كي د جماتونوذكر روستو دي.

**النكتة في والصلاة فيه** شيخ قدوری فرمائي.چې «والصلاة فيه» يعنی چې كومه څرمن رنګ شوې وی.نوچې هغه واغوندی.په هغے كي لمونځ كول جائز دی .او داسې ئې نه دی وئيلی «والصلاة عليه» يعنی چې ددے نه مصلی جوړه كړی . او لمونځ پرے كوی. اګرچې د دواړو حكم يو شان دي.ددے وجه دا ده.چې د جامو طهارت منصوص عليه دي.ځكه چې الله تعالی فرمائيلی دی.﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ او د لمانځه د ځائې طهارت په دلالت النص ثابت دي.

**المذاهب الثلاثة في طهارة الجلدبالدباغة** صورت د مسئلې دا دي.① چې زموږ په نيز د خنزيراوبنی آدم نه علاوه دهر څيزڅرمن په دباغت سره پاكيږی.كه هرڅنګه وی.نو د رنګ شوې څرمن نه جامے جوړول او په هغے كي لمونځ كول جائز دي.اودهغے نه په جوړه شوی ژي (مشكيزه) كي اوبه اچول اودهغے نه اودس كول جائز دي.



**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی.**أَيُّمَا إِهَابٍ دُبِغَ** كومے څرمنے ته چې دباغت وركړې شو **فَقَدْ طَهُرَ** (١) نوهغه پاكه شوه.

**تشريح:- دليلنا** زموږ دليل د نبی ﷺ ارشاد دي.چې «كل إهاب دبغ فقد طهر» يعنی هرهغه څرمن چې دباغت شوه.نو پاكه شوه

**وَهُوَ بِعُمُومِهِ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ** رحمه الله **فِي جِلْدِ الْمَيْتَةِ** اودا حديث د عموم دوجې د مردارے د څرمنے په حق كي دامام مالك رحمه الله خلاف حجت دي

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې زموږ دا مستدل د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دي ځكه چې امام مالك رحمه الله فرمائي.چې دمردارے څرمن په دباغت سره نه پاكيږی.

**دليله** د امام مالك رحمه الله دليل دا حديث دي. «عن عبدالله بن حكيم عن النبی ﷺ أنه كتب إلی جهينة قبل موته بشهر أن لا تنفعوا من الميتة بإهاب ولا عصب» يعنی د نبی ﷺ نه روايت دي.چې دوی دخپل وفات نه يو مياشت وړاندې جهينه قبيلے ته ليكلی وو.چې تاسود مردارے د څرمن او پټے نه فائده مه اخلئ.د دے حديث نه معلومه شوه.چې د مردارے څرمن پليته ده.

**وَلَا يُعَارَضُ بِالنَّهْيِ** اودهغه نهی سره معارض نشی كيدې **الْوَارِدِ عَنِ الِانْتِفَاعِ مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ** كوم چې د مردارے نه دفائدے اخستلوپه اړه كي راغلے دي **وهوقوله عليه الصلوة والسلام(لاتنتفعوامن الميتة بإهاب)**(٢)اوهغه د نبی ﷺ دا ارشاد دي. «لا تنتفعوا من الميتة بإهاب» يعنی د مردارے دڅرمن نه فائده مه اخلئ **لِأَنَّهُ اسْمٌ** ځكه چې اهاب نوم دي **لِغَيْرِ الْمَدْبُوغِ** بغير د دباغت نه د څرمنې

**حل اللغة** ① **انتفاع**: فائده اوچتول ② **ميتة** ټوك

**تشريح:- الجواب عن دليل مالك** رحمه الله اودامام مالك رحمه الله د دليل ځواب دا دي.چې دوی پيش كړې دليل «لا تنفعوا من الميتة بإهاب» د «أيما إهاب دبغ فقد طهر» معارض نشی كيدې.ځكه چې اهاب د دباغت نه بغير څرمن ته وائي.نوپه حديث «لا تنتفعوا بإهاب» كي د هغه څرمنے نه د فائدے اخستلو ممانعت شوې دي. چې غير مدبوغ وی.ځكه چې دا لا تراوسه پورې نجس دي.او په «أيما إهاب دبغ فقد طهر» كي فرمائي.چې د دباغت نه روسته د مردارے څرمن پاكيږی.نو په دے دواړو حديثونوكي څه تعارض نشته.

**السوال** ليكن دا اعتراض كيدے شی.چې د «أيما إهاب دبغ فقد طهر» ددے عموم ددے خبرے متقضی دي.چې هره يوه څرمن په دباغت سره پاكيږی.كه هغه د خنزير وی اوكه د انسان وی.

**الجواب** ددے ځواب دا دي.چې ددے حديث نه د خنزير او بنی آدم څرمن خاص كړې شوې دی.ځكه چې د خنزير نجس العين ثابت دي.لكه چې الله تعالی فرمائيلی دی.﴿ أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ ﴾ اود بنی آدم معزز كيدل ثابت دی.ځكه چې الله تعالی فرمائي.﴿ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ ﴾ نود دباغت باوجود د خنزير څرمن ددے د نجس العين د وجې قابله د انتفاع نه ده.او د بنی آدم د معزز كيدو د وجې ددے څرمن قابل انتفاع نه ده.

**وَحُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي جِلْدِ الْكَلْبِ** اود سپی دڅرمنے په اړه كي د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دي.

---

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه الترمذی فی اللباس باب ٧ والنسائی فی الفرع والعتيرة باب ٤ وابن ماجه فی اللباس باب ٢٥ رقم ٣٦٠٩)_

(٢) من حديث عبدالله بن حكيم رضي الله عنه اخرجه ابوداود فی اللباس باب ٣٩ رقم ٤١٢٧ والترمذی فی اللباس باب ٧ والنسائی فی الفرع والعتيرة باب ٥ وابن ماجه فی اللباس باب ٢٦)_

**حل اللغة:** ① **جلد:** څرمن

**تشريح:- علامه مرغيناني** رحمه الله فرمايي چې زموږ دليل د امام شافعي رحمه الله خلاف هم حجت دې ځکه چې دوی فرمائي. چې د سپي څرمن په دباغت سره نه پاکيږي. په مبسوط کې ذکر دی. چې دامام شافعي رحمه الله په نيز د غير ماکول اللحم څرمن هم په دباغت سره نه پاکيږي.

**دليله ⊛** دامام شافعي رحمه الله دليل قياس دې. يعنی څنګه چې د خنزير څرمن په دباغت سره نه پاکيږي. نو دغه ډول د سپي څرمن هم ده. او د مبسوط د روايت مطابق د غير ماکول اللحم څرمن هم په دباغت سره نه پاکيږي.

| |
|---|
| وَلَيْسَ الْكَلْبُ بِنَجِسِ الْعَيْنِ حالانکه سپے نجس العين نه دې أَلَا يُرَى ولے تاسو دا نه ګورئ أَنَّهُ يُنْتَفَعُ بِهِ چې د سپي نه فائده اخستے شی حِرَاسَةً وَاصْطِيَادًا ساتنه او ښکار کاوه لپاره |

**تشريح:- الجواب عن قياس الشافعي رحمه الله ⊛** او دامام شافعي رحمه الله د قياس نه ځواب دا دې. چې د سپي څرمن د خنزير په څرمن باندې قياس کول قياس مع الفارق دې. ځکه چې د صحيح قول مطابق سپے نجس العين نه دې. او ددے دليل دا دې. چې د ساتنه او ښکار لپاره د سپي ساتل جائز دی. که چرته سپے نجس العين وې. نو شرعاً به ددے نه فائده اخستل ممنوع وه.

**السوال ⊛** خوکه دا اعتراض اوشي. چې فائده اخستل خو د نجس العين نه هم جائز ده. مثلاً سوټے نجس العين دی. ليکن دا د اور بلولو په کار کې او د پټي زرخيز کاوه لپاره د سرے (يوقسم خاوره ده) په طور استعمالولے شی. نو د سپي نه فائده اخستل د ددے دليل څنګه کيدې شی. چې سپے نجس العين نه دې.

**الجواب ⊛** ددے نه ځواب دا دې. چې بيشکه د سوټو نه نفع اخستلے شی. ليکن د هغے دهلاکت نه پس. او په نجس العين کې دا خبره جائزده. چې دهغے دهلاکت نه روسته دهغے نه نفع اخستلے شی. بهرحال دا خبره ثابته شوه. چې سپے نجس العين نه دې.

| |
|---|
| بِخِلَافِ الْخِنْزِيرِ په خلاف د خنزير لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځکه چې خنزير نجس العين دې إِذِ الْهَاءُ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِ ځکه چې ،،ها،، ضمير د الله تعالى په دے قول ﴿فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ کې خنزير ته راجع دې لقربه د وجې د نزديکت نه وَحُرْمَةُ الِانْتِفَاعِ بِأَجْزَاءِ الْآدَمِيِّ لِكَرَامَتِهِ او د بنی آدم د اجزاؤ نه د نفع اخستلو حرمت د ده د کرامت د وجې دې. فَخَرَجَا نو دا دواړه څرمنے خارج شوې عَمَّا رَوَيْنَا په هغے سره چې موږ ئې روايت اوکړلو |

**تشريح:-** خنزير نجس العين دے ځکه چې الله تعالى فرمائيلی دی. ﴿قُل لَّا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ يعنی ته ورته اووايه. چې کوم احکام د وحی په ذريعه ماته راغلی دی. په هغے کې خو زه حرام خوراك نه وينم د خوراك کونکی دپاره. څوك چې ئې خوری. مګر دا چې هغه ټوك وی. يا بهيدونکې وينه وی. يا دخنزير غوښه وی. ځکه چې دا بيخی پليت دی.

**طريق الاستدلال ⊛** ددے آيت نه استدلال په دے طريقه کيږی. چې د ،، فإنه،، د ضمير په مرجع کې اګرچې دوې (دوه) احتمالات دی. يو دا چې "لحم" وی. او دوهم دا چې "خنزير" وی. ليکن د اقربيت د وجې خنزير مرجع ګرځول بهتردی. نو په دے صورت کې به معنی دا وی. چې خنزير پليت اونجس دې.

**السوال ⊛** ليکن که اعتراض اوشی. چې په آيت کې خنزير مضاف اليه ده. او مضاف اليه غير مقصود وی. نو د "فإنه" ضمير بايد ده چې "خنزير" نشی.

**الجواب ⊛** نوددے ځواب دا دې. چې مضاف اليه د ضمير مرجع ګرځول بغير د انکار نه مشهوره ده. لکه د الله تعالى په قول کې ﴿وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ د اياه د ضمير مرجع مضاف اليه (الله) دې. او دالله تعالى ارشاد کې ﴿يَنقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِن بَعْدِ مِيثَاقِهِ﴾ دواړه صورتونه جائز دی. يعنی د ميثاقه د ضمير مرجع مضاف اليه (الله) هم کيدې شی. او مضاف (عهد) هم کيدې شی. او کله د ضمير مرجع صرف مضاف وی. لکه



چې يو کس اووائی. «رأيت ابن زيد فكلمته» په دے مثال کې د مفعول د ضمير مرجع مضاف (ابن) دې. نو هرکله چې ثابته شوه. چې مرجع مضاف اليه کيدې شی. نو په آيت «فإنه رجس» کې مضاف اليه (خنزير) مرجع ګرځولو کې څه قباحت نشته. نوددے آيت نه د خنزير نجس العين ثابت شو. او هرکله چې خنزير نجس العين او سپے غير نجس العين دې. نو د سپي څرمن به دخنزير په څرمن قياس کول څنګه ټيك کيدې شی؟

| |
|---|
| ثُمَّ مَا يَمْنَعُ النَّتْنَ وَالْفَسَادَ نو کوم شی چې ختموی. بدبوئی او خرابيدل فَهُوَ دِبَاغٌ هغه دباغت دې. وَإِنْ كَانَ تَشْمِيسًا اګرچې په لمر کې اوچول أَوْ تَتْرِيبًا يا په خاوره باندې اوچول وی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ يَحْصُلُ بِهِ ځکه چې مقصود (خوپه دے حاصليږی) فَلَا مَعْنَى لِاشْتِرَاطِ غَيْرِهِ نو ځکه ددے سره د غير د شرط لګولو څه جواز نشته |

**تشريح:- تعريف الدباغة ⊛** په «ثم ما يمنع النتن والفساد» په دے عبارت سره علامه مرغيناني د دباغت تعريف کوی. نو فرمائی. چې د څرمنے بدبوئی اود خرابيدو لرې کاوه نوم دباغت دې. امام محمد رحمه الله په کتاب الآثار کې ليکلی دی. چې «أخبرنا ابوحنيفه عن حماد عن إبراهيم قال كل شئ يمنع الجلد من الفساد فهو دباغ» يعنی کوم شی چې څرمن د خرابيدو نه بچ کوی. هغه دباغت دې. که په لمر سره ئې اوچې کړې وی. او که يا ئې په خاوره کې اچولې وی. ځکه چې د نجس رطوبتونو لرې کولو چې کوم مقصد دې. هغه په دے طريقو باندې حاصليږی. نو د دے نه علاوه د بل شی قيد لګول څه معنی نه لری. لکه څنګه چې امام شافعي رحمه الله د سلم د اونے (يوه ازغيداره اونه ده. چې دباغت پرے کولې شی.) دهغے په پاڼو او شث (د وړو سيوانو په څير يوخوشبودار تريخ اومزيداره ميوه ده. دهغے اونه ده. په هغے کې ازغی نه وی. اوهغه د څرمن په دباغت کې استعماليږی.) اود مازو د اونے شرط لګولے دې.

| |
|---|
| ثُمَّ مَا يَطْهُرُ جِلْدُهُ بِالدِّبَاغِ. او د کوم ځناور څرمن چې په دباغت سره پاکه شی يَطْهُرُ بِالذَّكَاةِ نو پاکيږی په ذبح کاوه سره لِأَنَّهَا تَعْمَلُ عَمَلَ الدِّبَاغِ ځکه چې ذبحه کول د دباغت کار ورکوی فِي إِزَالَةِ الرُّطُوبَاتِ النَّجِسَةِ د رطوبات نجسه لرې کولو کې وَكَذَلِكَ يَطْهُرُ لَحْمُهُ او دغه ډول ذبح کول د هغه ځناور غوښه هم پاکوی هُوَ الصَّحِيحُ او هم دا مذهب صحيح دې وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَأْكُولًا. اګرچې هغه ځناور داسې نه وی. چې د هغے غوښه خوړلے شی. |

**حل اللغة:** ① **ذكاة** پاکول ② **ازالة** ختمول ③ **لحم:** غوښه

**تشريح:- تطهير الجلد بالذكاة الشرعی ⊛** دا خبره ياده ساتئ. چې د کوم ځناور څرمن په دباغت سره پاکيږی. د هغه څرمن په ذبحے سره هم پاکيږی. خو په دے شرط چې دا ذبح د داسې سړی په لاس وی. چې هغه د ذبحے اهل وی. نو د مجوسی ذبح دا نه پاکوی. دليل دا دې. چې ذبح د دباغت کار ورکوی. په دے معنی چې نجس رطوبات زائله کوی. او هم دغه ډول ذبح د دغه ځناور غوښه هم پاکوی. او د وينے نه سوا پاته واړه اجزاء پاکوی. دا صحيح مذهب دې. اګرچې هغه ځناور داسې وی. چې دهغے غوښه نشی خوړلې. يعنی په ذبح کاوه سره د غير ماکول اللحم غوښه هم پاکيږی. (خوياد ساتئ. چې ددے د غوښے پاکيدل ددے دخوراك د جواز دليل نشی کيدې. ځکه چې يو څيز به پاك وی. لمونځ به ور سره کيږی. خوخوراك به ئې ناجائزوی. لکه خاوره شوه.) والله اعلم

### دمردارې د ويخته او هډوکی حکم

| |
|---|
| قَالَ فرمايي وَشَعْرُ الْمَيْتَةِ اود مردار ځناور ويخته وَعَظْمُهَا او دهغه هډوکے طَاهِرٌ پاك دی |

**حل اللغة:** ① **شعر:** ويښته ② **ميتة** ټوك ③ **عظم:** هډوکې

**تشريح:- المذهبان فی حکم الشعر والعظم ⊛** مسئله دا ده. ① چې دمردار ويخته اوددے هډوکے پاك دی. يعنی که په اوبوکښے اوغورځيږی. نو په هغے باندې اودس جائز دې. اوهم دا حکم د پټے دې. سُم، ښکر، وړئ، پنړه، نوك،

او مخوکه ،

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمايي نَجِسٌ چې دا نجس دی لِاَنَّهٗ مِنْ اَجْزَاءِ الْمَيْتَةِ خکه چې دا د مردارے اجزاء دی

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چې دا شیان (څیزونه ) نجس دی.

**دلیله** ۞ خکه چې دا شیان (څیزونه ) د مردارے اجزاء دی.اومردار د ټولو اجزاؤ سره نجس ده.نودا واړه شیان (څیزونه ) به نجس وی.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دې اَنَّهٗ لَاحَيَاةَ فِيْهِمَا چې په ویختو او هډوکي کي ژوند نه وی وَلِهٰذَا لَايَتَاَلَّمُ بِقَطْعِهِمَا او ددے وجې د دے په کټ کاوه هغه تکلیف نه محسوسوی فَلَايَحُلُّهُمَا الْمَوْتُ نوپه دے به مرګ هم نه راځي

**حل اللغة:** ① **لايتالم، تالم، تالمًا:** تکلیف اوچتول،محسوس کول

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞ اوزمونږدلیل دا دې.چې د مردارے واړه اجزاء پلیت نه دی.بلکه صرف هغه اندامونه ناپاک دی.په کومو کي چې ژوند وی.اود مرګ په وجه زائله شی.اودا کوم شیان (څیزونه ) چې پورته بیان شو.په دے کي حیات نشته.خکه که په دے کي یو څیزکټ کړې شی.نو ځناور تکلیف نه محسوسوی.نوهرکله چې په دے کي حیات نشته.نو مرګ په کي حلول هم نه کوی.خکه چې مرګ خو د ژوند د زوال نوم دی.

اِذِالْمَوْتُ زَوَالُ الْحَيَاةِ خکه چې مرګ خو د ژوند د زوال نوم دې

**تشریح:- الموت زوال الحياة**۞که دلته کي د موت اوحیات مسئله راغلے ده.نوخکه د دے دواړو په اړه کي لږ غوندې کلام کولے شی.صاحب د عنایه د مرګ دوې (دوه) تعریفونه کړی دی.یوزوال د حیات دې.یعنی د ژوند فنا کیدل.دهغه کس د ژوند لرې کیدل چې دهغه شان د ژوند وو.په دے تعریف کي مرګ یو عدمی شی دے .او په دے او د مرګ په مینځ کي د عدم او ملکه تقابل دې.

وَشَعْرُ الْاِنْسَانِ وَعَظْمُهٗ طَاهِرٌ او د انسان ویخته اوهډوکے پاک دی

**تشریح:- المذهبان في حكم الشعر والعظم**۞ شیخ قدوری دویمه مسئله دا بیان کړې ده. چې د انسان ویخته او هډوکے پاک دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ اوامام شافعی رحمه الله فرمايي نَجِسٌ چې نجس دی لِاَنَّهٗ لَايُنْتَفَعُ بِهٖ خکه چې ددے نه نفع نشی اخستلې وَلَايَجُوْزُ بَيْعُهٗ اوددے بیع جائز نه ده

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چې دا پلیت دی.

**دلیله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.چې انسانی ویخته او هډوکے ناقابل انتفاع دی.اونه ددے خرڅول جائزدی.نوددے دواړو نه معلومه شوه.چې دا دواړه نجس دی.

وَلَنَا اوزمونږ دلیل دا دے اَنَّ عَدَمَ الْاِنْتِفَاعِ وَالْبَيْعِ لِكَرَامَتِهٖ چې د انتفاع او بیع حرمت د کرامت د وجې دې فَلَا يَدُلُّ عَلٰى نَجَاسَتِهٖ، وَاللّٰهُ اَعْلَمُ نودا د دے د نجاست دلیل نشی کیدې.

**حل اللغة:** ① **انتفاع** فائده اوچتول ② **كرامت** بزرګی شرافت ③ **لايدل، دل، دلالة** (ن): لار خودنه دلالت کول

**تشریح:- دليلي الاحناف** رحمهم الله ۞اوزمونږ دلیل دا دې.① چې د دے دواړو نه انتفاع اخستلو اودخرڅو حرمت د بنی آدم دکرامت دوجې دې.د نجاست دوجې نه دې.② دغه ډول په صحت سره دا خبره ثابته شوې ده.چې نبی ﷺ دخپل سر ویخته خریولی وو.او په صحابه کرامو رضي الله عنهم کي نې ویش کړی وو.دا هم د پاکۍ دلیل دې.والله اعلم



## په کوهی کي دنجاست پریوتواحکام

(فَصْلٌ فِي الْبِئْرِ) دا) فصل دکوهی (په بیان کي ) دے (وَاِذَاوَقَعَتْ فِي الْبِئْرِ نَجَاسَةٌ کله چې په کوهی کي څه نجاست پریوځي نُزِحَتْ نوهغه کوهی به تشولے شی وَكَانَ نَزْحُ مَافِيْهَا ودهغه شی ویستل کوم چې په کوهی کي وی مِنَ الْمَاءِ یعنی اوبه طَهَارَةً لَهَا) دا به د کوهی د لپاره پاکوالے وی. بِاِجْمَاعِ السَّلَفِ،د سلفو د اجماع په وجه وَمَسَائِلُ الْاٰبَارِ مَبْنِيَّةٌ عَلَى اتِّبَاعِ الْاٰثَارِ او د کوهی مسائل د آثارو په تابعدرئ مبنی دی دُوْنَ الْقِيَاسِ په قیاس نه دی.

**حل اللغة:** ① **وقعت، وقع وقوعا** (ف): واقع کیدل پریوتل ② **بير:** څاه (کوهې) ③ **نزحت، نزح نزحًا** (ف): وتل ④ **آثار:** په معنی احادیث

**تشریح:- وجه استقلال مسائل الابار بالفصل**۞وړاندې بیان شوې وو.که په لږو اوبوکي نجاست پریوځی. نواوبه پلیتیږی.اوتولے اوبه به بیولے شی.لیکن په دے باندې نقض (ددےخلاف خبره) واردیدله .که په کوهی کي نجاست پریوځی.نو په څینې صورتونو کي اوبه نشی راویستلې.نوهرکله چې د کوهیانوځینې احکام د وړاندینی احکامو نه مختلف وو.خکه نې ورته جلا فصل مقرر کړلو. او وے فرمائیل.که په کوهی کي دځناور نه علاوه بله څه مرداری پریوځی.مثلا متیازے، شراب، وینه، خنزیر او دا نجاست لږ وی.یا زیات وی.نو د کوهے ټولے اوبه راویستل ضروری دی.او ټولے اوبه راویستل د کوهی پاکی ده.یعنی د کوهی د دیوالونوپریمنځل واجب نه دی.صرف په اوبو راویستلو به کوهے پاک شی.دلیل نې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعینو رحمهم الله اجماع ده.

**مخالفة القياس في مسائل الابار** ۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چې دکوهی مسائل دآثارو په اتباع باندې مبنی دی.قیاس ته په کي څه دخل نشته.یعنی د قیاس په رڼا کي د اوبو څه مقدار نشی راویستلې..اوقیاس په دے باب کي د دے وجې هم معتبر نه دې.چې د کوهی په اوبو کي دوې (دوه) قیاسونه متضاد دی.

**عدم نجاسة البيرقياساً**۞د یو قیاس تقاضا خو دا ده.چې اوبه دے هډو پلیتے نه وی.خکه چې په کوهی کي د لاندې نه پیوسته اوبه راوځی.نود کوهی اوبه د جاری اوبو په حکم کي دی. او جاری اوبه د نجاست په پریوتو نه پلیتیږی.

**نجاسة البيرقياساً**۞ او دوهم قیاس دا دې.چې اوبه هډو پاکیږی نه.خکه چې نجاست په کوهی کي پریوتلو.نو اوبه پلیتے شوې. او دیوالونه پلیت شو.اوددے خټه پلیته شوه.او حال دا دې.چې څومره اوبه راویستلے شی.نو هغه هومره د لاندې نه راوځی.اوهغه پلیتے اوبو، پلیتے خټے، او پلیتو دیوالونو سره ملاویږی.نوهغه هم پلیتیږی .نودا سلسله ترقیامته پورې نه ختمیږی.او د کوهی اوبه به نه پاکیږی.

## په کوهی کي د پچوپریوتوحکم

(فَاِنْ وَقَعَتْ فِيْهَا بَعْرَةٌ اَوْبَعْرَتَانِ مِنْ بَعْرِ الْاِبِلِ اَوِالْغَنَمِ که په کوهی کي یوه هسکه (پچه) یا دوې (دوه) پچے د اوښ یا د وزه پریوتلې لَمْ تُفْسِدِ الْمَاءَ) اِسْتِحْسَانًا،نو په دلیل د استحسان اوبه نه پلیتیږی

**حل اللغة:** ① **بعرة** پچې ② **ابل:** اوښ ③ **غنم:** چیلئی ④ **لم تفسد، افسد، افسادًا:** فاسد کول، خرابول

**تشریح:- دليل القياس**۞مسئله دا ده.که په کوهی کي د اوښ یا د وزه یوه پچې یا دوې (دوه) هسکې (پچې) پریوځی.نو استحساناً اوبه نه پلیتیږی.

وَالْقِيَاسُ اوقیاس دا وائی اَنْ تُفْسِدَهٗ چې اوبه دے پلیتے شی لِوُقُوْعِ النَّجَاسَةِ فِي الْمَاءِ الْقَلِيْلِ. خکه چې په لږو اوبو کي نجاست پریوتے دې

**حل اللغة:** ① **وقوع:** واقع کید ل

**تشريح:-** او قياساً پليتيږي.د يو او دوو پچو نه كم مقدار مراد دي.د قياس دليل دا دي.چي په ماء قليل كي نجاست پريوتې دي.او وړاندې تير شوي دي.چي ماء قليل د نجاست په پريوتلو پليتيږي.كه نجاست كم وي او كه زيات وي.او دلته كي هغه كوهې مراد دي.چي دلس ضرب لس نه كم وي.

> **وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ** او د استحسان وجه دا ده **أَنَّ آبَارَ الْفَلَوَاتِ لَيْسَتْ لَهَا رُؤُوسٌ حَاجِزَةٌ** چي د ځنګلونو د كوهيانو په سرونوباندې څه ايسارونكې نه وي **وَالْمَوَاشِي تَبْعَرُ حَوْلَهَا** او څاروي دهغې نه شاو خوا پچې كوي **فَتُلْقِيهَا الرِّيحُ فِيهَا** اودغه پچې هوا په كوهيانوكي غورځوي **فَجُعِلَ الْقَلِيلُ عَفْوًا لِلضَّرُورَةِ**،نو د اړتيا د وجې قليل معاف كړې شوې **وَلَا ضَرُورَةَ فِي الْكَثِيرِ**،او په كثير كي څه اړتيا نشته

**حل اللغة*** (1) **آبار واحد بئر:** په معنى دَ كوهى (7) **فلوات:** ځنګل (8) **رءوس:** بام بام (چت) (9) **حاجزة** منع كونكې (10) **فتلقيها، القى القاء:** اچول، غورزول (11) **ريح:** هوا (12) **عفواً:** معافى

**تشريح:- الوجه الاول للاستحسان** اود استحسان دوې (دوه) وجوه دى.يوه خو دا چي په ځنګلونو او بيابانونوكي دكوهيانوپه سرونود ساتنه څه شى نه وي.يعنى دهغې غاړه وغيره نه وي.اوځناور دهغې نه شاو خوا پچې كوي.بيا باد هغه پچې په كوهى كي غورځوي.نوځكه د اړتيا د وجې كم مقدار معاف كړې شو.اوچونكه په كثير كي اړتيا نشته.نوځكه هغه معاف نكړې شو.

> **وَهُوَ** او كثير هغه دى **مَا يَسْتَكْثِرُهُ النَّاظِرُ إِلَيْهِ** چي هغې ته كتونكى هغه ډيرے اوګنړي **فِي الْمَرْوِيِّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ**،په هغه قول كي چي د ابوحنيفه رحمه الله نه نقل شوې دي **وَعَلَيْهِ الْاِعْتِمَادُ**،اوهم په دے قول باندې اعتماد دي

**تشريح:- الفرق بين القليل والكثير** پاته شوه.دا خبره چي په قليل او كثير كي څه حد دي.نوپه دے اړه كي د علماؤ مختلف اقوال دى.(1) بعضو فرمائيلي دى.چي كثيردا دى.چي دومره پچې وي.چي د اوبو څلورمې حصې ته اورسى.(2) اووئيلي شوي دى.چي دريمې حصې ته رسى.(3) او وئيلي شوي دى.چي د نيمواوبو نه په زياتو اوبو كنبې خوارے شى.(4) اوبعضووئيلي دى.چي پچې ټولےاوبه راګيرے كړى.(5) اوبعضو وئيلي دى.چي يوه سلواغه (بوقه) هم د پچې نه خالي نه وي.(6) او بعضو وئيلي دى.كه درے پچې وي.نوكثير دى.(7) او امام ابوحينفه رحمه الله نه نقل دى.كه مبتلى به هغه زياتې اوګنړي. نو كثيرے دى.ګنى قليل دى.اوهم په دے قول باندې اعتماد دې. ځكه چي ابوحنيفه رحمه الله په داسے مسائلوكي چي كومے د تقدير او اندازے محتاج وى.هغه كس ته حواله كوى .چا ته چي هغه پيښے شوې وى. يعنى په داسے مسائلو كي امام ابوحنيفه رحمه الله د هغه كس رائې ته د قدر په نظر اوګوى.اودهغه رائې ته اعتبار وركوى.چاته چي واقعه پيښه شوې وى.لكه يو كس چي قبله پرے مشتبه شى.اوڅوك ور سره نه وى.چي د قبله پوښتنه ترے اوكړى. نودے به په خپله رائې عمل كوى.چي كوم اړخ ته ئې غالب ګمان شى.هغه اړخ ته به لمونځ كوى.دغه ډول د رمضان د مياشتې په ليدو كي فقهاؤ ليكلى دى.چي هله به شهادت قبلولے شى .چي جمع كثيرة د مياشتے ليدو ګواهى وركړى.اوس په دے مقام كي هم چونكه قاضى ته دا واقعه پيښه شوې ده.نوكه دومره كسانو ګواهى وركړه.چي قاضى ته هغه جمع كثيره ښكاريدله.نوشهادت به قبلوى.

> **وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرَّطْبِ وَالْيَابِسِ** او لنده او ووچې كي څه توپير نشته **وَالصَّحِيحِ وَالْمُنْكَسِرِ** اونه په روغه او ماته كي څه توپير شته **وَالرَّوْثِ وَالْخِثْيِ وَالْبَعْرِ** اونه په خوشه او خاشنړواو پچو كي **لِأَنَّ الضَّرُورَةَ تَشْمَلُ الْكُلَّ** ځكه چي اړتيا په ټولوكي دي

**حل اللغة*** (1) رطب لمده (2) يابس اوچې (3) منكسر ماته شوې (4) **روث:** سوټه (5) **خشى:** خاشنړه (6) **تشمل، شمل، شمولا** (س) شامليدل، مشتمل كيدل

**تشريح:- ثمرة الاستحسان** ◉ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چي ددے استحسان د وجې لوندے پچې او ووچې، روغې



اوماتې ټولے برابر دى.دغه ډول د سوټو ، خاشنړو اوپچو حكم يوشان دې.ځكه چي اړتيا ټولوته ګډ دې.لكه ځنګه چي دے كوهيانوته د چيلود راوستلو حاجت شته.دغه ډول داوښانو او د اسونو او دغواګانواوميخو د راوستو اړتيا هم شته.اودهغې سوټې اوخاشنړه په كي هم غورځيږى.

> **وَفِي الشَّاةِ تَبْعَرُ فِي الْمِحْلَبِ بَعْرَةً أَوْ بَعْرَتَيْنِ** او (په داسې صورت كي) كه وزه چيلئ د شيدې لوشلو په لوښى كي يوه يا دوې (دوه) پچې اوكړى **قَالُوا** نو مشائخو فرمائيلي دى **تُرْمَى الْبَعْرَةُ** چي پچې دے اوغورځولې شى **وَيُشْرَبُ اللَّبَنُ** او شيدې دے اوڅكلى شى **لِمَكَانِ الضَّرُورَةِ**،د اړتيا د امله **وَلَا يُعْفَى الْقَلِيلُ فِي الْإِنَاءِ** او قليل به نشى معاف كولې د لوښى په صورت كي **عَلَى مَا قِيلَ** ددے وجې چي وئيلي شوى دى **لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ**. چي عدم اړتيا دې. **وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى** او دابوحنيفه رحمه الله نه روايت دي **إِنَّهُ كَالْبِئْرِ فِي حَقِّ الْبَعْرَةِ وَالْبَعْرَتَيْنِ** چي لوښے هم د يوے يا دوو پچو په حق كي د كوهى په څير دي

**تشريح:- وقوع النجاسة في الاناء** ◉ صاحب دهدايه دا مسئله بيان كړې ده.چي د پيو لوشلوپه وخت كي كه د وزه يوه يا دوې (دوه) پچې په لوښى كي پريوځى.نوپچې دے راويستلے شى.او شيدې) دے اوڅكلى شى.ځكه چي په دے كي ضروت دې.ځكه چي د چيلو عادت وى.چي هغوى دلوشلوپه وخت كي پچې كوى.اوكه په هسے پروت لوښى كي پچې اوكړى.(يعنى چي د لوشلوپه مهال كي نه وى.) نو كم مقدار هم معاف نه دې.ځكه چي دلته كي څه اړتيا نشته.ځكه چي د لوښى پواړه خوممكن دى.نوكه په لوښى كي دومره نجاست پريوځى.چي كتونكي هغه لږګنړى.نوهم اوبه پليتيږى.اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چي لوښے هم د يوے او دوو پچو په حق كي د كوهى په څير دې.يعنى لكه ځنګه چي په يوه يا دوو پچو كوهے نه پليتيږى.دغه ډول لوښے هم نه پليتيږى

## په كوهى كي د مرغو د ګندګئ پريوتلوحكم

> **(فَإِنْ وَقَعَ فِيهَا خُرْءُ الْحَمَامِ أَوِ الْعُصْفُورِ** كه په كوهى كي د كونترے يا د چوغكه (مرغئ) چټلې (ګندګى) پريوځى **لَا يُفْسِدُهُ)** نوكوهے نه پليتوى

**حل اللغة*** (1) **خرء:** دَمرغوسيل (2) **حمام:** كونتره (3) **عصفور:** چرچنړه

**تشريح:- المذهبان في خرء الحمام والعصفورة** ◉ دكونترے او چوغكه (مرغئ) په ګندګئ كي د عالمانو اختلاف دى.(1) زموږ په نيز پاك دى.كه په كوهى كي پريوځى. نو كوهے نه پليتوى.

> **خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ** د امام شافعى رحمه الله په كښے اختلاف دي **.لَهُ أَنَّهُ اسْتَحَالَ إِلَى نَتَنٍ وَفَسَادٍ** ځكه چي دا چټلې (ګندګى) بدبوئې اوفساد اړخ ته بدل شوې دي **فَأَشْبَهَ خُرْءَ الدَّجَاجِ**. نود چرګې د ګندګئ سره مشابه شو

**حل اللغة*** (1) **نتن:** بدبوئى (2) **دجاجة** چرګه

**تشريح:-** دامام شافعى رحمه الله په نيز پليت دى.كه په كوهى كي پريوځى.نوكوهے پليتوى.اوقياس هم ددے مقتضى دې.

**دليله** ◉ دامام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چي د خوراك د خپل حالت نه بل حالت ته بدليدل په دوې (دوه) قسمه دى. (1) يودا چي بدبوئې او فساد اړخ ته منتقل شى.لكه متيازے اوغټ بول.او دا په اتفاق سره نجس دى.(2) او دوهم داچې اصلاح او ښه والى اړخ ته منتقل شى.لكه اګئ، شيدې) او شهد ، اودا په اتفاق سره پاك دى.نود كونترے وغيره چټلې (ګندګى) داول ډول ځنے ده.نو دا د چرګې د ګندګئ سره مشابه ده.او د چرګې چټلې په اتفاق سره پليته ده.نودغه ډول به د كونترے وغيره چټلې هم نجسه وى.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دے إِجْمَاعُ الْمُسْلِمِينَ عَلَى اقْتِنَاءِ الْحَمَامَاتِ فِي الْمَسَاجِدِ چې مومنانو (صحابو ﷺ او تابعينو ﷺ) په جمات کې د کونترو په ساتلو اجماع کړې ده مَعَ وُرُودِ الْأَمْرِ بِتَطْهِيرِهَا (۱) سره ددے نه چې د جماتونو د پاکوه حکم شوې دې.

حل اللغة: ① حماة چڼړې

تشريح:- اسكان الحمامات في المساجد بالاجماع ◉ او زموږ دليل دا دې. چې صحابواو تابعينو ﷺ په جماتونو کې د کونترو په ساتلو اجماع کړې ده. سره ددے نه چې د جماتونو د پاك ساتلو حکم شوې دې. د ابوداود روايت دې. ﴿ عن سمرة أنه كتب إلى بنيه أما بعد فإن النبي ﷺ كان يأمرنا أن نضع المساجد في دورنا ونصلح صنعتها ونطهرها ﴾ دحضرت سمره ﷺ نه روايت دې. چې دوی خپلوخامنوته ليکلی وو. چې مونږته رسول الله ﷺ په کورونوکې د جماتونو جوړولو او دهغے د پاکئ حکم کړې وو. ددے دواړو حديثونو نه ښکاره ثابته شوه. چې د جماتونو پاك ساتل ضروري دی.

وَاسْتِحَالَتِهِ لَا إِلَى نَتْنٍ رَائِحَةٍ او ددے بدلون بدبوئي اړخ ته نه دې فَأَشْبَهَ الْحَمْأَةَ نو د اوبو د ويخ د تورے خاورے سره مشابه شو (ختم)

تشريح:- الجواب من دليل الشافعي ◉ او دامام شافعي ﷫ د دليل ځواب دا دې. چې د نجاست اسباب دوې (دوه) شيان (څيزونه) دی. يو بدبوئی او بل فساد، او د کونترے وغيره په چټلې کې بدبوئی نه وی. او انتفا د جزء مستلزم وی انتفاء دکل لره. يعنی د نجاست دسبب د يوجزء په منتفی کيدو سره واړه سبب منتفی شو. اوکله چې سبب د نجاست منتفی شو. نود کونترے چټلې هم پليته نشوه.

السوال من الشافعي ﷫ ◉ اوکه دامام شافعي ﷫ دا ړخه دا اعتراض اوشی. چې صرف فسادهم نجاست پيدا کوی. نوموږ د دے ځواب ورکوو. چې منی سبب د فساد دغذا دې. ليکن امام شافعي ﷫ دمنئ د طهارت قائل دې. او دغه ډول د خوراك شيان (څيزونه) چې ډير وخت پرے تير شی. نوخرابيږی. ليکن پليتيږی نه. نومعلومه شوه. چې صرف فساد موجب د نجاست نه دې. حاصل دا چې د کونترے وغيره چټلې د زمکے د ويخ د تورے خاورے سره مشابه شوه. او د مځکې د ويخ توره خاوره په اتفاق سره نجس نه ده. نو د کونترے وغيره چټلې به هم پليته نه وی.

## په کوهی کې د ماکول اللحم دمتيازوکولوحکم

(فَإِنْ بَالَتْ فِيهَا شَاةٌ نوکه په کوهی کې وزه متيازے اوکړې نُزِحَ الْمَاءُ كُلُّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ. (۲) نودامام ابوحنيفه او امام ابويوسف ﷫ په نيز به ټولے اوبه راويستلے شی

حل اللغة: ① بالت، بال، بولاً (ن)، بولې کول ② نزحت، نزحاً (ف) ويستل

تشريح:- المذهبان في بول ماكول اللحم ◉ صورت د مسئله دا دې. که په کوهی کې وزه متيازے اوکړی. ① نود شيخينو ﷫ په نيز به د کوهی ټولے اوبه راويستلے شی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ او امام محمد ﷫ فرمايي لَا يُنْزَحُ چې اوبه به نشی راويستلې إِلَّا إِذَا غَلَبَ عَلَى الْمَاءِ مګر دا چې متيازے په اوبو باندې غالبې شی فَيَخْرُجُ مِنْ أَنْ يَكُونَ طَهُورًا نواوبه به د مطهر (د بل څيزد پاکولو) نه

(۱) فى تطهير المساجد احاديث منها حديث عائشة ﷺ قال امر رسول الله ﷺ ببناء المساجد فى الدور وان تنظف وتطيب اخرجه ابوداؤد فى الصلوة باب ۱۳ والترمذى فى الجمعة باب ٦٤ وابن ماجه فى المساجد باب ۹

(۲) القول الراجح هو قول الشيخين ﷫ كذا فى ردالمحتار (۱۵٤\۱) والخانية (۹\۱۱) نقلا عن القول الراجح (۱۷\۱)-



اوځی

حل اللغة: ① فيخرج، خرج خروجاً (ن): وتل

تشريح:- امام محمد ﷫ فرمائی. چې د اوبو راويستل ضروري نه دی. خوکه متيازے په اوبو غالبے شوې. نو اوبه مطهر (د بل شی پاکونکے) نه دی. خو په خپله پاکې دی.

وَأَصْلُهُ او د دے اختلاف اصل دا دې أَنَّ بَوْلَ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ عِنْدَهُ چې دکوم ځناور غوښه خوړلے شی. نودهغه ځناور متيازے دامام محمد ﷫ په نيز پاکې دی نَجِسٌ عِنْدَهُمَا اودشيخينو ﷫ په نيز پليتے دی. دامام محمد ﷫ دليل دا دې

حل اللغة: ① لحم: غوښه

تشريح:- اصل الخلاف بين الايمة ◉ ددے اختلاف اصل دا دې. چې دکوم ځناور غوښه خوړلے شی. ① نو د هغے متيازے د امام محمد ﷫ په نيز پاکې دی. که په لږو اوبو کې پريوځی. نوهغه نه پليتوی. بلکه دهغے نه اودس کول جائزدی. خو که متيازے په اوبو باندې غالبې شوې. نو طاهر غير مطهردی. ② اود شيخينو ﷫ په نيز د ماکول اللحم متيازے پليتے دی. که د متيازو يو څاڅکے په اوبو کې پريوتلو. نو اوبه پليتيږی.

لَهُ {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ الْعُرَنِيِّينَ بِشُرْبِ أَبْوَالِ الْإِبِلِ وَأَلْبَانِهَا} (۱) چې نبی ﷺ عرنيينو ته د اوښانو د متيازو او پيو څښلو حکم کړې وو

حل اللغة: ① عرنيين، عرنه دعرفات مقابل يوه وادی ده د هغې طرفته منسوب سړی ته عرنی وائی د دې جمع ده عرنييون تشريح:- دليل محمد ﷫ واقعة عرنيين ◉ او د امام محمد ﷫ دليل حديث د عرنيينو دې. ،،عرينه،، تصغير دے د ،،عرنة،،. او عرنـة عرفات سره نزدے د يوخوړ نوم دے. دغه اړخ ته ئې نسبت شوې دې. نودے خلګو ته عرنيين وائی. واقعه دا وه. چې عرينه خلګ مدينې منورې ته راغلل. او په اسلام مشرف شو. ليکن په هغوی باندې د مدينې منورې آب هوا موافق رانغله. او دهغوی خيټے اوپړسيدې. نو نبی ﷺ هغوی ته حکم اوکړلو. چې د صدقے د اوښانو ميتازے او شيدې څکئ. دغه خلګ وهم داسې اوکړلو. نو صحت ياب شول. بيا دوی مرتد شو. او څرونکې ئې قتل کړلو. او اوښان ئې خان سره اوشړل. نبی ﷺ وريسې د صحابه کرامو ﷺ يوه ډله اوليږله. او هغوی ئې په لار کې اونيول. بيا ئې د هغوی لاسونه او پښے کټ کړلې. اودهغوی په سترګوکې ئې ګرم سيخونه اومنډل. اوپه ګرمه شګه باندې ئې هغوی څملول. تردې چې دا واړه مړه شول.

طريق الاستدلال ◉ ددے حديث نه استدلال په دے طريقه دې. چې نبی ﷺ هغوی ته د متيازو څښلو حکم ورکړې وو. که چرته د ماکول اللحم ځناورو متيازے پليتے وې. نو دغه خلګو ته به نې د متيازو څښلو حکم نه ورکولو. ځکه چې د نجاست په صورت کې به هغه حرام وو. او نبی ﷺ فرمائيلی دی. ﴿ إن الله لم يجعل شفاءكم فيما حرم عليكم ﴾ يعنی الله تعالی په حرامو څيزونو کې ستاسو شفا نه ده ګرځولې.

"وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او دشيخينو ﷫ دليل دا حديث دې {اسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ چې خپل ځانونه د متيازو نه بچ ساتئ فَإِنَّ عَامَّةَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْهُ} (۲) ځکه چې اکثر عذاب قبر ددے د وجې وی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير د څه تفصيل نه

حل اللغة: ① استنزهوا، استنزه استنزهاً: بچ کيدل ډډه کول

(۱) من حديث انس ﷺ اخرجه البخارى فى الوضوء باب ٦٦ ومسلم فى الايمان رقم ۱۸٤ و ابوداؤد فى الحدود باب ۳ والترمذى فى الطهارة باب ۵۵ والنسائى فى الطهارة باب ۱۹۰)-

(۲) من حديث انس ﷺ اخرجه الدار قطنى فى سننه (۱۲۷\۱)

**تشريح:- دلائل الشيخين** ﷺ ① دشيخينو رحمهما الله دليل د نبی ﷺ قول چې «استنزهوا من البول فإن عامة عذاب القبر منه» دی.يعنی د متيازو نه بچ اوسئ. خکه چې اکثر عذاب قبر د دے نه وی.په دے حديث کی مطلقاً د متيازو نه دځان ساتلو حکم ورکړې شوې دې.متيازے که د ماکول اللحم وی او که دغير ماکول اللحم وی. په حديث کي د امر صيغه ده.او امر لپاره د وجوب وی.نو معلومه شوه.چې متيازے نجس دی.ګنی ددے نه د بچ کيدو حکم به ئې نه ورکولو

| |
|---|
| وَلِأَنَّهُ يَسْتَحِيلُ إِلَى نَتْنٍ وَفَسَادٍاو ددے وجې چې د ماکول اللحم څناورو متيازے بدبويدارے وی اوفساد ارخ ته منتقل کيږی فَصَارَ كَبَوْلِ مَالَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ. نو دا دغير ماکول ا للحم د متيازو په څير شوې |

**تشريح:-** دشيخينو رحمهما الله عقلی دليل دا دې.چې دماکول اللحم څناورو متيازے هم بدبواو فساد ته اوړی.نودا هم د غير ماکول اللحم د متيازو سره مشابه شوې.نولکه څنګه چې د غير ماکول اللحم څناورو متيازے نجس دی.دغه ډول به د ماکول ا للحم څناورومتيازے هم نجس وی.

| |
|---|
| وَتَأْوِيلُ مَا رُوِيَاوتاويل دهغه حديث کوم چې امام محمد رحمه الله نقل کړې دې.دا دې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَرَفَ شِفَاءَهُمْ فِيهِ وَحْيًا، چې نبی ﷺ ته د عرنيينو شفا د وحی په ذريعه معلومه شوې وه |

**تشريح:- الاجوبة عن دليل محمد** ﷺ ① دامام محمد رحمه الله د پيش کړی حديث ځواب خو يو هغه دې.چې علامه مرغينانی ورکړې دې.چې نبی ﷺ ته د وحی په ذريعه معلومه شوې وه.چې د دے خلګو شفا په متيازو کي ده. نو خکه ورته د متيازو د څښلو حکم ورکړې شوې وو.اوچونکه اوس دا خبره نشی معلوميدې.نو اوس خکه ددے وجې دا دوانی هم نشی ګرځيدلی.② دوهم ځواب دا دې.چې په حديث کي د ابوال" لفظ نه دې.بلکه صرف دالبان" دې.يعنی نبی ﷺ هغه خلګو ته صرف د پيو څښلو حکم ورکړې وو.د متيازو څښلو حکم ئې نه وو روکړې.③ دريم ځواب دا دې.چې دا حديث منسوخ دې.نواوس دا حديث قابل استدلال پاتې نه دې.(خکه چې په دے حديث کي دمثله ذکر هم دې.چې دهغوی په سترګوکي ئې ګرم سيخونه، اومنډل.او پښے لاسونه ئې ترے کټ کړلو.او مثله روستو په اسلام کي منسوخ شوې ده.(نودغه ډول د متيازو څښل به هم منسوخ ګنړلی شی.)

| |
|---|
| ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى لَا يَحِلُّ شُرْبُهُ لِلتَّدَاوِي وَلَا لِغَيْرِهِبيا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دماکول ا للحم متيازے د شفا لپاره هم څښل جائز نه دی لِأَنَّهُ لَا يُتَيَقَّنُ بِالشِّفَاءِ فِيهِخکه چې په دے متيازو کي شفا يقينی طور معلومه نه ده فَلَا يُعْرِضُ عَنِ الْحُرْمَةِ، نود حرمت څخه به اعراض نشی کولې وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى يَحِلُّ لِلتَّدَاوِي(¹) اودامام ابويوسف رحمه الله په نيز د شفا لپاره ئې څښل جائز دی لِلْقِصَّةِ،د عرنيينود قصے :د امله وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَحِلُّ لِلتَّدَاوِي وَغَيْرِهِ.اود امام محمد رحمه الله په نيز د دوائي او غير دوائي دواړه لپاره ئې څښل حلال دی لِطَهَارَتِهِ عِنْدَهُخکه چې دا د امام محمد رحمه الله په نيز پاکې دی. |

**حل اللغة:** ① **تداوی:** دارو کول، دَ دارو په توګه استعمالول

**تشريح:- استعمال الحرام للدواء** ﷺ بيا دے دا خبره ښکاره وی.① چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د متيازو څښل د دوائي لپاره هم جائز نه دی.خکه چې اوس (چونکه د وحی سلسله ختمه شوې ده.) په متيازو کي د شفا وجود ضروری نه دې. نو د دے د حرام ګنړلو څخه به چشم پوشی نشی کولې.② اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائی. چې د دوائي لپاره ئې څښل جائز دی.اودليل ئې قصه دعرنيينو ده.③ اوامام محمد رحمه الله چونکه د

¹) القول الراجح هو قول ابی يوسف رحمه الله كذا فی الدرالمختار(۱۵۴۱۱) والبحر(۲۰۵۱۱) نقلا عن القول الراجح (۱۸۱۱)



ماکول ا للحم د متيازو د طهارت قائل دې.نوځکه هغوی مطلقاً فرمائيلی دی.چې د دوائي لپاره ئې استعمال جائز دې.او بغير د دوائي نه هم.والله اعلم بالصواب

## په کوهی کي دحيواناتود مړلو حکم

| |
|---|
| قَالَ (فَإِنْ مَاتَتْ)او که مړه شوه فِيهَا فَأْرَةٌپه دے کي مږے أَوْ عُصْفُورَةٌيا چوغکه (مرغئ) أَوْ صَعْوَةٌيا توراړنکه أَوْ سُودَانِيَّةٌيا چته أَوْ سَامٌّ أَبْرَصُيا کربوړے نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ عِشْرِينَ دَلْوًانود کوهی څخه به شل بوقے راويستلے شی إِلَى ثَلَاثِينَتر ديرش بوقو پورې بِحَسَبِ كِبَرِ الدَّلْوِ وَصِغَرِهَا)د غټے او وړے بوقے په اعتبار سره يَعْنِي بَعْدَ إِخْرَاجِ الْفَأْرَةِيعنی په د راويستلو د مږې نه |

**حل اللغة:** ① **ماتت، مات، موتاً(ن):** مړه کيدل ② **فارة** مږه ③ **عصفورة** چرچنړه ④ **سودانيه:** تورانئی (تکه توره مرغئی) ⑤ **صعوة** ممولا (وړه غونډې مرغئ‌ده چې په نس ئې کربښې وی) ⑥ **سام ابرص** لويه چمچورکنی ⑦ **دلو:** ډولچه

**تشريح:- صورسقوط الحيوان في البير** ﷺ که په کوهی کي د دې څناورو څه مړ شو کوم چې په متن کي ذکر دی نو د شلو بوقو نه واخله تر ديرشو بوقو پورې به ترې راويستې شی

**المراد من الدلو** ﷺ اودلته منځنی سلواغه (بوقه) مراد ده.او د منځنی بوقے نه مراد هغه سلواغه (بوقه) ده.چې په ښارونوکي عام طوراستعماليږی.يا په دغه کوهی باندې په عامه طريقه استعماليږی.نوکه په غټه سلواغه باندې اوبه راوويستلې شوې.نوپه دے حساب سره به د شلوبوقونه کمے بوقے راوويستلے شی.اوکه په وړه سلواغه باندې اوبه راوويستلې شی.نوپه دے حساب سره به په شلو بوقو زيادت کولې شی.

| |
|---|
| لِحَدِيثِ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُدحديث انس رضی الله عنه د وجې {أَنَّهُ قَالَ فِي الْفَأْرَةِ إِذَا مَاتَتْ فِي الْبِئْرِچې هغوی د داسې مږے په صورت کي فرمائيلی دی چې په کوهی کي پريوځی.او مړه شی وَأُخْرِجَتْ مِنْ سَاعَتِهَااو هم هغه وخت راوويستلے شی نُزِحَ مِنْهَا عِشْرُونَ دَلْوًا} .(¹)چې د کوهی څخه به شل بوقے راوويستلے شی وَالْعُصْفُورَةُ وَنَحْوُهَا او چوغکه او ددے په څير تُعَادِلُ الْفَأْرَةَ فِي الْجُثَّةِ چې په جوثه کښے وی.د مږے برابر وی فَأَخَذَتْ حُكْمَهَا،نوهغے هم د مږے حکم واختستلو وَالْعِشْرُونَ بِطَرِيقِ الْإِيجَابِ وَالثَّلَاثُونَ بِطَرِيقِ الِاسْتِحْبَابِ بيا د شلو بوقو ويستل د واجبو په حيثيت سره دی وَالثَّلَاثُونَ بِطَرِيقِ الِاسْتِحْبَابِ او د ديرشو د مستحبو په حيثيت سره دی |

**حل اللغة:** ① **اخرجت، اخرج اخراجاً** ويستل ② **جثه:** بدن ③ **فاخذت، اخذ اخذاً(ن)** اخستل، نيول

**تشريح:- دلبله والتوافق بينهما** ﷺ دليل دا دې.چې د حضرت انس رضی الله عنه حديث دې.کله چې په کوهی کي مږه پريوځی.اوهم هغه وخت راوويستلے شی.نوپه دے اړه کي دوی فرمائيلی دی.چې شل بوقے به راوويستلے شی.اود ابن عباس رضی الله عنه حديث دې.چې دوی د ديرشو بوقو راوويستلوحکم کړې دې.نو په دواړو حديثونوکي د موافقت لپاره به د حضرت انس رضی الله عنه حديث په وجوب باندې حمل کړې شی. او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه به په استحباب باندې حمل کړې شی.

## په کوهی کي د کونترې وغيره د مړلو حکم

¹) قال مصنف فيما فات الزيلعي منية الالمعي رواه ابوزيد الدبوسی باسناده فی کتاب الاسرار مرفوعا وحديث انس رضی الله عنه قال رفعه شاذ و الصحيح انه موقوف وخرجت انا العبد الضعيف شاه فيصل فی تاليفی سنن الصلوة فی فقه الاحناف لثبوت اخراج العشرين من البئر بموت الفارة فيها اثر عطاء قال اذا وقع الجراذ (نوع من الفارة) فی البئر نزح منها عشرون دلوا فان تفسخ فاربعون دلوا فاذا وقعت الشاة نزح منها اربعون دلوا فان تفسخت نزحت كلها او مائة دلوا ناقلا عن شرح معجم الاثار فی الطهارة باب الماء يقع فيه النجاسة رقم ۱۷۱۴ (۱۷۱۱)

قَالَ فرمايي (فَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا حَمَامَةٌ) كه په كوهي كي كونتره مړه شوه أَوْنَحْوُهَا كَالدَّجَاجَةِ وَالسِّنَّوْرِ يا د دے په خير لكه چوغكه اوچرګه او پيشي (پيشو) نُزِحَ مِنْهَا مَابَيْنَ أَرْبَعِينَ دَلْوًا نو دكوهي څخه به څلويښت بوقي إِلَى سِتِّينَ، ترشپيتوبوقو پورې راوويستلے شي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وپه جامع صغير كي دى أَرْبَعُونَ أَوْخَمْسُونَ) چې دڅلويښتو نه پنځوسو پورې بوقي وَهُوَالْأَظْهَرُ اوهم دا اظهر قول دې

حل اللغة ① حمامة كونتره ② دجاجة چرګه ③ سنور: پيشي (پيشو)

تشريح:- **القولان في حكم موت الحمام ونحوه في البير** ① دوهم صورت دا دې.چې په كوهي كي د كونترے يا د دے په خير څه خناور مړ شي.مثلا چرګه او پيشي .نو د دے حكم دا دې.چې د كوهي څخه به د څلويښتو بوقو نه تر شپيتو پورې راوويستلےشي.يعنى د څلويښتو بوقو راوويستل واجب دى.او د شپيتو راوويستل مستحب دى. ② اوامام محمد رحمه الله په جامع صغير كي بيان كړى دى.چې څلويښت يا پنځوس .يعنى څلويښت واجب دى.او پنځوس مستحب دى. علامه مرغيناني رحمه الله دے قول ته اظهر وئيلي دې.ځكه چې جامع صغير د امام محمد رحمه الله آخرى تصنيف دې.نوچې په دے كي څه ذكر وى.هغه به دامام محمد رحمه الله مرجوع اليه قول وى.

لِمَارُوِيَ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځكه چې د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې. {أَنَّهُ قَالَ فرمايي فِي الدَّجَاجَةِ إِذَامَاتَتْ فِي الْبِئْرِ، دهغه چرګې په اړه كي چې مړه شوې وى په كوهي كي يُنْزَحُ مِنْهَا أَرْبَعُونَ اوهم دا قول اظهردې دَلْوًا} () چې د دے نه دے څلويښت بوقے راوويستلے شي وَهَذَا الْبَيَانُ دا مقدار د بيان ايجاب لپاره دې. الْإِيجَابِ، وَالْخَمْسُونَ بِطَرِيقِ الْاِسْتِحْبَابِ او د پنځوس بوقو حكم لپاره د استحباب دې

تشريح:- **دليل اخراج اربعين دلوا** دليل دا دې.چې دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې.چې دوى دهغه چرګې په اړه كي فرمائيلى دى.كومه چې په كوهي كي مړه شوې وى.چې د هغے نه څلويښت بوقے راوويستلے شي.

ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ فِي كُلِّ بِئْرٍ اوبيا معتبر به په هر كوهي كي (په پاكولو كي) دَلْوُهَا الَّذِي يُسْتَقَى بِهِ مِنْهَا،هم د هغه كوهي سلواغه وى.چې په كومه اوبه راوويستلے شي وَقِيلَ اوونيلى شوى دى دَلْوٌ يَسَعُ فِيهَا صَاعًا، چې داسې سلواغه (معتبره) ده.چې په هغے كي يوصاع (اوبه) راځى

حل اللغة ① يسع، سعة (س) كولاويدل، ارتيدل

تشريح:- **القولان في الدلو المعتبر** بيا دے دا خبره واضحه وى. ① چې په هر كوهي كي هم د هغے سلواغه معتبر ده.يعنى چې په كومه سلواغه اوبه راوويستلے شي.نودكوهي په پا كاوه كي به هم هغه سلواغه معتبره وى. ② اويو ضعيف قول دا دې.چې هغه سلواغه معتبرده.چې په هغے كي يوصاع اوبه راځى.

وَلَوْنُزِحَ مِنْهَا بِدَلْوٍعَظِيمٍ مَرَّةً اوكه دكوهي نه په غټه سلواغه (اوبه) راوويستلے شوې مِقْدَارُعِشْرِينَ دَلْوًا په اندازه د شلو بوقو جَازَ نوجائز ده لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ. ځكه چې مقصود حاصل شو

حل اللغة ① عظيم: لوئى

تشريح:- **العبرة للقدر دون الدلو** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چې د كوهي په پا كاوه كي د بوقو شمار معتبر نه دې.بلكه په دغه اندازه باندې اوبه راوويستل معتبر دى.نوكه د يوكوهي نه د غټے بوقے په ذريعه په يوځل د

[1]) نقل الزيلعى رحمه الله قول شيخ علاء الدين رحمه الله ان هذه الرواية رواه الطحاوى رحمه الله ثم قال الزيلعى رحمه الله لكن لم اجده فى شرح معانى الاثار للطحاوى ثم قال ولكن الطحاوى رحمه الله اخرج عن .. عن حماد بن ابى سليمان انه قال فى دجاجة وقعت فى البئر فماتت قال ينزح منها قدر اربعين دلوا او خمسين (نصب ١٨١/١)-



څلويښتو بوقو برابر اوبه راوويستلے شي.نودا جائزده.ځكه چې مقصود حاصل شو.ځكه چې كوم مقدار مقرر وو.هغه راوويستلے شو.

### په كوهي كي د وزه وغيره په مرګ داوبو حكم

قَالَ فرمايي (فَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا شَاةٌ أَوْكَلْبٌ أَوْآدَمِيٌّ اوكه په كوهي كي وزه يا بنى آدم يا سپے مړشو. نُزِحَ جَمِيعُ مَا فِيهَا مِنَ الْمَاءِ) نو كومے اوبه چې په هغے كي وى.هغه ټولے به راوويستلے شي لِأَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَابْنَ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَفْتَيَا ځكه چې ابن عباس رضي الله عنه اوابن زبير رضي الله عنه فتوى وركړې وه بِنَزْحِ الْمَاءِ كُلِّهِ.دپوره اوبوويستلو حِينَ مَاتَ زِنْجِيٌّ فِي بِئْرِ زَمْزَمَ ()كله چې د آب زمزم په كوهي كي يو حبشي مړ شوې وو.

حل اللغة ① شاة چيلئى ② كلب: سپې ③ افتيا، افتى افتاء: فتوه وركول ④ زنجى: حبشي

تشريح:- **نزح البيربموت الادمى وغيره في البير** دريم صورت دا دې.كه په كوهي كي وزه يا بنى آدم يا سپے مړ شي.نود كوهي ټولے اوبه راوويستل واجب دى.

**دليله** دليل دا دې.چې كله يو حبشي د آب زمزم په كوهي كي مړ شو. نو ابن عباس رضي الله عنه او ابن زبير رضي الله عنه د ټولو اوبو راوويستلوفتوى وركړې وه.

### په كوهي كي د حيوان پړسيدل اورژيدل

(فَإِنْ انْتَفَخَ الْحَيَوَانُ فِيهَا كه په دے كي خناور اوپړسيدلو أَوْتَفَسَّخَ يا اورژيدلو نُزِحَ جَمِيعُ مَا فِيهَا نوپه دے كي چې كومے اوبه وى.هغه ټولے به راوويستلے شي صَغُرَ الْحَيَوَانُ أَوْكَبُرَ (برابره ده) كه خناور وركوټے وى اوكه غټ وى

حل اللغة ① انتفخ، انتفاخا: پړسيدل ② تنسخ، تفسخا: شليدل ③ صغر: صغرا (ن) وړوكې كيدل

تشريح:- **نزح البير بانتفاخ الحيوان وتفسخه في البير** مسئله دا ده.چې په كوهي كي يوخناور پريوځي.او مړشي.او اوپړسي يا اورژي.نوكه ممكن وى.دكوهي ټولے اوبه دے راوويستلے شي.كه خناور وركوټے وى او كه غټ وى.

لِانْتِشَارِ الْبِلَّةِ فِي أَجْزَاءِ الْمَاءِ. ځكه چې واړه پليت اجزاء لوندوالے په اوبو كي خپاره شوى دى

حل اللغة ① انتشار: خوريدل ② بلة لوند

تشريح:- **دليله** دليل دا دې.چې د رژيدلى خناور نجس اجزاء لوندوالے په اوبو كي خور شي. نوځكه ټولے اوبه پليتيږى .لكه څنګه چې په اوبو كي د وينے يا شرابو يو څاڅكے پريوځي.نوپه ټولو اوبو كي خور شي.او هغه پليتوى.نودغه ډول دا هم.

### په دريابى كوهي د پاكئ حكم

قَالَ فرمايي (وَإِنْ كَانَتِ الْبِئْرُ مَعِينًا وكه كوهے دريابى وى. لَايُمْكِنُ نَزْحُهَا داسې چې دهغے ټولے اوبه راوويستل ممكن نه وى أَخْرَجُوا مِقْدَارَ مَا كَانَ فِيهَا مِنَ الْمَاءِ) نوكومے اوبه چې په هغے كي (د پريوتو په وخت) موجود وى.هغه مقدار دے اوويستلے شي

حل اللغة ① معينة جارى ② نزح: ويستل

تشريح:- **توضيح المسئلة** مسئله دا ده.كه كوهے دريابى وى يعنى دهغے اوبه نه ختميږى .نوپه داسې صورت كي حكم دا دې.چې د نجاست د واقع كيدوپه وخت كي په هغے كي څومره اوبه موجود وى.هغه دے راوويستلے شي.

[1]) خرجته فى تاليفى سنن الصلوة فى فقه الاحناف ناقلا عن شرح معانى الاثار فى الطهارة (١٧/١)-

**وَطَرِيقُ مَعْرِفَتِهِ** او ددې د پيژندګلو طريقه دا ده **أَنْ تُحْفَرَ حُفْرَةٌ مِثْلُ مَوْضِعِ الْمَاءِ مِنَ الْبِئْرِ** چې په کوهي ترکومې پورې اوبه وي. د هغې په مقدار دې يوه کنده اوکنستلې شي **وَيُصَبُّ فِيهَا مَا يُنْزَحُ مِنْهَا** چې کومې اوبه د کوهي نه راويستلې شي. هغه دې په دې کنده کې اچولې شي **إِلَى أَنْ تَمْتَلِئَ** تردې چې هغه کنده ډکه شي

**حل اللغة:** ① **حفرة** کنده ② **يصب، صب** سهار (ن) راړول ③ **ان تمتلئ، امتلأ، امتلاء** ډکول

**تشريح:- طريق نزح البير عند ابى يوسف** رحمه الله ⊛ اود موجوده اوبو د پيژندګلو دامام ابويوسف رحمه الله نه دوې (دوه) طريقې منقول دی. ① يوه دا چې په کوهي کې ترکوم ځائې پورې اوبه وي. نو په اوګودوالې پلنوالي اوژوروالي دې دهغې په څير يوه کنده اوکنستلې شي. اود کوهي نه دې اوبه راوباسي. اوپه دغه کنده کې دې اچوي. کله چې دغه کنده ډکه شي. نوداسې دې اوګڼرلې شي. چې د کوهي ټولې اوبه راوويستلې شوې. اوکوهې پاک شو.

**أَوْ تُرْسَلَ فِيهَا قَصَبَةٌ** يا دا چې په کوهي کې يو نل (بانړس) ورکښته کړې شي **وَيُجْعَلَ لِمَبْلَغِ الْمَاءِ عَلَامَةٌ** او چې اوبه ترکوم ځائې پورې رسيږي. په هغه ځائې دې نښانه اوکړې شي **ثُمَّ يُنْزَحُ مِنْهَا عَشْرُ دِلَاءٍ مَثَلًا** بيا دې د کوهي نه مثلا لس بوقې راوباسي **ثُمَّ تُعَادُ الْقَصَبَةُ** بيا دې په کې دوباره ورکښته کړې **فَيُنْظَرُ** او اودې کتلې شي **كَمْ انْتَقَصَ** چې څومره اوبه کمې شوې دی **فَيُنْزَحُ لِكُلِّ قَدْرٍ مِنْهَا عَشْرُ دِلَاءٍ**، نود هر مقدار لپاره دې د هغې نه لس بوقې راوويستلې شي **وَهَذَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ**، او دا دواړه طريقې د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.

**حل اللغة:** ① **ترسل، ارسل، ارسالاً:** پريښول ② **قصبة** بانړس ③ **لم يقدر، قدر، تقديراً** مقررول، اندازه لګول

**تشريح:-** دويمه طريقه دا چې په کوهي کې يو نل (بانړس) ورکښته کړې شي. يا دې درون کانړې په رسئ پورې اوتړلې شي. اوپه اوبو کې دې ورکښته کړې شي. کله چې هغه ويخ ته اورسي. نو واروسته دې راوباسي. او اودې کتلې شي. چې اوبه ترکومې پورې رسيدلې دی. هلته دې نښانه اولګوي. بيا دې د کوهي نه په يو ځل لس بوقې راوباسي. او ټونې دې کړې. بيا دې دغه نل (بانړس) يا رسئ دوباره کوهي ته ورکښته کړې. او اودې ګوري. چې څومره اوبه کمې شوې دی. مثلا په کوهي کې لس فټه اوبه دی. او په يوځل په لس بوقوراويستلو سره يو فټ اوبه کمې شوې. نو معلومه شوه. چې ټولې اوبه نې سل بوقې دی. نو لس کم سل بوقې دې نورې راوويستلې شي. چې پوره سل بوقې شي. نوچې سل بوقې راوويستلې شي. داسې به ګڼرلې شي. چې د نجاست پريوتو په وخت کې څومره اوبه په کوهي کې وې. هغه ټولې راوويستلې شوې.

**وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ** اودامام محمد رحمه الله نه نقل دی **نُزِحَ مِائَتَا دَلْوٍ إِلَى ثَلَاثِمِائَةٍ**[1] چې د دوو سوو نه تر درې سوو پورې بوقې دې راوويستلې شي **فَكَأَنَّهُ بَنَى قَوْلَهُ عَلَى مَا شَاهَدَ فِي بَلَدِهِ**، کېدې شي چې امام محمد رحمه الله په خپل ښار کې کومه مشاهده کړې وه. په هغې باندې ئې خپل قول مبنی کړې وی

**تشريح:- مذهب محمد** رحمه الله **في نزح البير** ⊛ اودامام محمد رحمه الله نه روايت دې. چې د کوهي نه دې د دوو سوو نه تر درې سوو پورې بوقې راوويستلې شي. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائلي دی. چې دامام محمد رحمه الله دقول بنا (بنياد) دهغه په مشاهده باندې دې. ځکه چې دامام محمد رحمه الله د ښار بغداد د کوهو اوبو په عامه توګه د دوو سوو نه تر درې سوو په مينځ کې وې. ليکن ددې اندازې په هرځائې کې ټيک کيدل ضروری نه دی. ځکه چې په کومو ځايونو کې اوبه زياتې وی. نوهلته دهغې په مقدار ټولې اوبه راويستلې شي.

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ فِي مِثْلِهِ** اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه په جامع صغير کې د داسې دريابې کوهي په اړه کې روايت دې **مَا يُنْزَحُ حَتَّى يَغْلِبَهُمُ الْمَاءُ** چې تشولې دې شي. ترديې چې اوبه په دوی باندې غالبې شي **وَلَمْ يُقَدِّرِ الْغَلَبَةَ بِشَيْءٍ** او دغلبې څه مقدار ئې په څه شي پورې مقرر کړې نه دې. **كَمَا هُوَ دَأْبُهُ**. لکه چې دامام

---

[1] ) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى ردالمحتار(١\١٥٨) نقلا عن القول الراجح(١\١٩)_



صاحب رحمه الله اصول دی

**تشريح:- رواية ابى حنيفه** رحمه الله **في نزح البير** ⊛ او په جامع صغير کې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د داسې دريابې کوهي په اړه کې نقل دی. چې دپليت کوهي د پاکاوه لپاره به دومره اوبه راويستلې شي. چې اوبه خلګ ستړی کړی. او مغلوب شي. اود خپل عادت مطابق امام ابوحنيفه رحمه الله دغلبې لپاره څه مقدار مقرر کړې نه دې. يعنی د امام اعظم رحمه الله عادت وو. چې هغوی به داسې صورتونو کې حکم د مبتلی به په رائې پورې پرينښولو.

**وَقِيلَ** او ونيلی شوی دی **يُؤْخَذُ بِقَوْلِ رَجُلَيْنِ** چې د دوو سړوعادلانو قول به اخستلې شي **لَهُمَا بَصَارَةٌ فِي أَمْرِ الْمَاءِ**، چې هغوی ته د اوبوپه اړه کې مهارت حاصل وی **وَهَذَا أَشْبَهُ بِالْفِقْهِ**. اودا قول فقه سره زيات مشابه دې.

**تشريح:- اعتبار قول العدلان** ⊛ او دځينې فقهاؤ رائې دا ده. چې کومو خلګو ته د اوبو د اندازې په اړه کې مهارت وی. نود داسې دوې (دوه) عادلانو سړو په قول باندې به عمل کولې شي. که هغوی د دوو سوو بوقو اندازه اولګوی. نو د کوهي دپاکئ لپاره به دوې (دوه) سوه بوقې راويستل واجب وی. اوکه ددې نه د کم يا زيات اندازه اولګوی. نو دهغې راويستل به ضروری وی. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائي. چې دا قول فقه سره زيات مشابه دې. د فقه نه مراد هغه معنی ده. چې د قرآن او سنت نه مستنبطه وی. الله تعالی د ښکارد قيمت په اړه کې د دووعادلانو قول ته اعتبار ورکړې دې. دالله ﷻ ارشاد دې. ( فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِنْكُمْ ) اود شهادت په بيان کې دی. ( وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ )

وجه اعتبارقول العادلين ⊛ اود اوبوپه اړه کې ئې د مهارت تجربې شرط ځکه لګولې دې. چې احکام د صاحب علم نه زده کولې شي. اود الله ﷻ قول دې ( فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ )

## د مړ ځناور په موندو دکوهي داوبونجاست حکم

قَالَ فرمايي **(وَإِنْ وَجَدُوا فِي الْبِئْرِ فَأْرَةً أَوْ غَيْرَهَا)** وکه خلګ وپه کوهي کې مږه يا بل ځناور (مړ) اومندلو **وَلَا يُدْرَى** اومعلومه نه وه **مَتَى وَقَعَتْ** چې کله پريوتې دې **وَلَمْ تَنْتَفِخْ وَلَمْ تَتَفَسَّخْ** و هغه تراوسه پورې پړسيدلې نه وي **أَعَادُوا صَلَاةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ** نودا خلګ دې خپل د يوې ورځې او شپې مونځونه راوګرځوي **إِذَا كَانُوا تَوَضَّئُوا مِنْهَا** که په دغه اوبو ئې اودسونه کړی وی. (اومونځونه ئې پړې کړی وی) **وَغَسَلُوا كُلَّ شَيْءٍ أَصَابَهُ مَاؤُهَا**، او هر هغه شي دې اووينځي. چې د دغه کوهي اوبه ورته رسيدلې وی **وَإِنْ كَانَتْ قَدِ انْتَفَخَتْ أَوْ تَفَسَّخَتْ** وکه وه پړسيدلې يا رژيدلې **أَعَادُوا صَلَاةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا**، راګرځوی به مونځونه د درې ورځو اوشپو **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ.**[1] اودا په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله

**حل اللغة:** ① **وجدوا، وجدو، دجدانًا** (ض) موندل ② **فارة** مږه ③ **وقعت، وقع وقوعاً** (ف): واقع غورزيدل ④ **اعادوا، عاد، اعادة:** واروسته کول

**تشريح:- االمذهبان في حكم وجود الحيوان ميتاً في البير** ⊛ ① مسئله دا ده. چې خلګو په يو کوهي کې مړ ځناور بيا موندلو. اودا نشوه معلوميدې. چې کله پريوتې دې. او تراوسه پورې پړسيدلې او رژيدلې هم نه وی. نو په دې صورت کې حکم دا دې. چې د دغه کوهي په اوبو باندې ئې اودسونه کړی وی. او لمونځ ئې پړې ادا کړې وی.

---

[1] ) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار(١\١٦) والبحر(١\١٦) ومجموعة الرسائل (١\٣٥) وردالمحتار(١\١٦) والدرالمختار وقال المفتى غلام قادر مدظله فى اخر هذا البحث ،،فالحاصل انه قول الامام مبنى على الاحتياط وقول الصاحبين رحمهما الله مبنى على التيسير وقولهما ارفق بالناس فالاولى ان يفتى بقولهما نقلا عن القول الراجح (١\٢٠)_

نو د یوې ورځې او شپې مونځونه دې راوګرځوی. اوکومو څیزونو ته چې د دغه کوهی اوبه رسیدلی وی.هغه دې اوویننځی. ② اوکه هغه ځناور پړسیدلے وو. اویا رژیدلے وو. نود درې ورځو او شپو مونځونه به راګرځوی. ①دا حکم د حضرت امام اعظم رحمه الله په نیز دی.

**وَقَالَا:** او صاحبین رحمهما الله فرمایي **لَيْسَ عَلَيْهِمْ إِعَادَةُ شَيْءٍ** چې په دوی باندې د څه شی راګرځول واجب نه دی **حَتّٰى يَتَحَقَّقُوا** تردې چې دوی ته متحقق شی **مَتٰى وَقَعَتْ** چې دا کله پریوتې ده **لِأَنَّ الْيَقِينَ لَا يَزُولُ بِالشَّكِّ،** ځکه چې یقین په شك سره نه زائله کیږی **وَصَارَ** اودا داسې شوه **كَمَنْ رَأٰى فِي ثَوْبِهٖ نَجَاسَةً** لکه چې یو کس په خپلو جاموکې نجاست اولیدلو **وَلَا يَدْرِي** اوهغه ته دا پته نه وی **مَتٰى أَصَابَتْهُ.** چې دا کله ګنده شوې دی

**حل اللغة**:① **يتحققوا،تحقق، تحققًا**: ثابتول ⑥**لايدری، دری، دراية**: پیژندل ⑦**اصابته، اصاب، اصابة**: رسیدل

**تشریح:-** دصاحبینو رحمهما الله مذهب دا دې. چې په دغه خلګ ود څه شی راګرځول نشته. تردې چې په تحقیق سره معلومه شی. چې دا ځناور کله پریوتې دې.

**دلیلهما**۞ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چې کوهې په یقین سره پاك وو. لیکن په هغې کې مړ شوې ځناور موندلو سره په تیرو شوو ورځو کې ددې د نجاست شك پیدا شو. ځکه چې دا احتمال هم شته. چې دا ځناور په اوبو کې لږ غونډې وړاندې غورځیدلے وی. اوتراوسه پورې د دغه اوبو استعمال نه وی شوې .اودا هم احتمال شته. چې څو ورځې وړاندې غورځیدلی وی. او ددې په اوبو باندې اودسونه اومونځونه شوی وی. بهرصورت په تیرو شوو ورځو کې په دې کې د ځناور دپریوتو شك پیدا شو. او یقین د شك په وجې سره نشی زائله کیدې. نوتر څو پورې چې دا ثابته شوې نه وی. چې دا کله پریوتې دې. نو په تیرو شوو ورځو کې به د دې د نجاست حکم نشی ورکولې. البته که ددې د غورځیدو وخت معلوم وی. نو د کوم وخت نه چې غورځیدلے وی. دهغه وخت څخه به نجس ګڼړلې شی. ځکه چې یو یقین په بل یقین سره زائله کیږی.

**نظیره**: او دا حکم داسې دې. لکه چې یو سړی په خپلو جامو باندې نجاست اولیدلو. اودا نشوه معلومیدې. چې دا وربورې کله لګیدلے دې. نوپه دغه کس د لمونځ وغیره راګرځول واجب نه دی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دی. **أَنَّ لِلْمَوْتِ سَبَبًا ظَاهِرًا** چې د مرګ لپاره یو سبب ظاهری دی. **وَهُوَ الْوُقُوعُ فِي الْمَاءِ** او هغه په اوبو کې غورځیدل دی **فَيُحَالُ عَلَيْهِ،** نوهم په دې سبب باندې به حمل کولې شی **إِلَّا أَنَّ الْاِنْتِفَاخَ وَالتَّفَسُّخَ دَلِيلُ التَّقَادُمِ** خو دومره ده چې ددې پړسیدل د زوړوالی دلیل دې **فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ،** نوپه درې ورځو پورې به مقدر کولې شی

**حل اللغة**:①**انتفاخ**: پړسیدل ② **تفسخ**: شلیدل اوبدلیدل

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة رحمه الله** ۞ او دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چې په اوبو کې د ځناور غورځیدل د مرګ ظاهری سبب دې. اوقاعده دا ده. که مسبب خفی وی. نو په ظاهری سبب به حکم لګول واجب وی. نود دې ځناور د مرګ نسبت به اوبو کې غورځیدلو ته کولې شی. یعنی دا به ونیلی شی. چې دا ځناور هم په اوبو کې مړ شوې دې. اګرچې دا احتمال هم شته. چې په څه بل سبب مړ شوې وی. او په اوبو کې غورځیدلے وی. لیکن دا احتمال یووهمی شی دې. او وهمی شی ښکاره خبره ده چې د ظاهرپه مقابله کې معتبر نه وی. نو ځکه به دا احتمال هم د اعتبار لائق نه وی.

**نظیره** ۞او دا داسې ده. لکه چې یو سړی بل سړې زخمی کړلو. اوهغه د دغه زخم د وجې صاحب فراش شو .تردې چې مړ شو. نوهم دا به ونیلی شی. چې دده مرګ دهغه زخم د وجې واقع شو. اګرچې ددې نه علاوه د بل شی احتمال هم کیدې شی. چې دهغې د وجې مړ شوې وی. اوس په دې مسئله کې د ځناور پړسیدل او رژیدل ددې خبرې دلیل دې. چې د دې ځناور د مرګ وخت شوې دې. او د تقادم روستوالی ادنی موده درې ورځې ده.



**وَعَدَمُ الْاِنْتِفَاخِ وَالتَّفَسُّخِ دَلِيلُ قُرْبِ الْعَهْدِ** اونه پړسیدل او نه رژیدل د نزدې زمانې دلیل دې **فَقَدَّرْنَاهُ بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ** نوموږ ددې مقدار د یوې ورځې او شپې پورې مقرر کړلو **لِأَنَّ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ سَاعَاتٌ لَا يُمْكِنُ ضَبْطُهَا،** ځکه چې ددې نه کم خو وختونه وی. چې د هغې په ضبط کې راوستل ممکن نه دی

**تشریح:- نظیر ان ادنی مدة التقادم ثلاثة ایام**۞لکه ګوره چې څوك بغیر دجنازې د لمونځ نه ښخ شی. نودهغه په قبر تر درې ورځو پورې لمونځ کولې شی. او د درې ورځو نه روسته په قبر باندې لمونځ کول ټیك نه دې. ځکه چې د درې ورځو په موده کې لاش پړسیږی. نو ځکه د تقادم ادنی موده د درې ورځو پورې مقرر کړې شوه. او په کوم صورت کې چې پړسیدل او رژیدل نه وی شوې. نودا د دې خبرې دلیل دې. چې دا ځناور په نزدې زمانه کې غورځیدلے دې. اومړ شوې دې. او د مقادیرو کم نه کم موده یوه ورځ او یوه شپه ده. ځکه چې ددې نه کم ګهنټې دی. چې دهغې ضبط (او یاد ساتل) ممکن نه دی. نوځکه ددې موده موږ یوه ورځ او شپه مقرر کړله.

**وَأَمَّا مَسْأَلَةُ النَّجَاسَةِ** **وأما مسألة النجاسة** او پاته شوه مسئله د جامې د نجاست **فَقَدْ قَالَ الْمُعَلّٰى:** نومعلی رحمه الله ونیلی دی **هِيَ عَلَى الْخِلَافِ،** چې دا هم اختلافی ده **فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ فِي الْبَالِي** نوپه زوړ نجاست کې به د درې ورځو سره **وَبِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِي الطَّرِيِّ** او په تازه نجاست کې به د یوې ورځې سره مقدر کولې شی **وَلَوْ سُلِّمَ** اوکه چې دا اومنلے شو. (چې په دې کې اختلاف نشته) **فَالثَّوْبُ بِمَرْأَى عَيْنِهٖ** نوکالی دده په نظر کې دی **وَالْبِئْرُ غَائِبَةٌ عَنْ بَصَرِهٖ** او کوهې دده د نظر نه غائب دې **فَيَفْتَرِقَانِ.** نو په دواړو صورتونو کې توپیر شو.

**تشریح:- الاجوبة من قیاس الصاحبین رحمهما الله** ۞ ①او پاته شود نجاست په مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله د قیاس نه ځواب نوصاحب دهدایه دوې (دوه) ځوابونه ورکړی دی. اول خو دا چې په جامو باندې د نجاست دلګیدو مسئله هم اتفاقی نه ده. بلکه مختلف فیه ده. فقیه عصر او محدث یے مثال حضرت معلی بن منصور رحمه الله فرمائیلی دی .چې دا مسئله هم اختلافی ده. نو د امام رحمه الله په نیز به د زوړ نجاست په صورت کښې د درې ورځو او شپو په مقدار موده مقرر کولې شی. او د تازه نجاست په صورت کې بخ د یوې ورځې اوشپې په مقدار موده مقرر کولې شی. تردې که په دغه پلیت کالی کې نې مونځونه کړی وی. نو د هغې راګرځول هم واجب دی. ② دوهم ځواب دا دې. که دا اومنلے شی. چې دا مسئله اتفاقی ده. په دې کې اختلاف نشته. نو بیا هم په هغه کالی چې نجاست وربورې لګیدلے وی. قیاس ټیك نه دې. ځکه چې جامې دده په بدن پورې وی. نوهر وخت دده د نظر وړاندې وی. که نجاست د وړاندې نه لګیدلے وو. نوبه هغه وخت کې به نې لیدلے وو. اوچې ده اوس اولیدلو. نودا ددېخبرې دلیل دې. چې دا نجاست وربورې اوس لګیدلے دې. اوکوهې د ده د نظر نه غائب وی. کیدې شی. چې ځناور د وړاندې نه مړ شوې وی. لیکن ده ته علم نه وی. حاصل دا چې په دې دواړو صورتونو کې توپیر دې. ددې وجې د کوهی مسئله د جامو په مسئله نشی قیاس کولې. ځکه چې دا قیاس مع الفارق دې. او قیاس مع الفارق صحیح نه دې.

**د جوټو احکام**

## فصل فی الآسار وغیرها

(دا ) فصل د جوټو وغیره (په بیان) کې دې.

**تشریح:- الربط بما قبلها**۞کله چې علامه مرغینانی رحمه الله په اوبو کې دځناور د غورځیدو د وجې داوبو د پلیتیدو اونه پلیتیدو د بیان نه فارغ شو. نو اوس په دې فصل کې د اوبو سره د لاړو یوځائې کیدو په وجه د اوبو د نجاست او عدم نجاست بیان کوی.

**الاقسام الاربعة للسؤر**۞آسار جمع د سور ده. معنی ئې ده. پاتې شوې خوراك او اوبه. چې په عرف کې ورته پسخورده (جوټه) وائی. زموږ په نیز د جوټې څلور قسمونه دی. ①پاکه لکه د بنی آدم او ماکول اللحم

پسخورده (جوټه) ② مكروه لكه د پيشي پسخورده. ③ پليته لكه د خنزيراو ماتونكوخناورو پسخورده. ④ مشكوك فيه لكه د خر او قچر پسخورده.

## دهر څناور خوله دهغې د جوټې حكم لري

وَعَرَقُ كُلِّ شَيْءٍ مُعْتَبَرٌ بِسُؤْرِهِ او د هر څناور خوله دهغې په جوټه باندې قياس كولې شي

**حل اللغة** ① **عرق:** خوله ② **سور:** جوټه پاته

**تشريح:- السوال على صاحب الهداية** رحمه الله ◉ شيخ ابن همام رحمه الله فرمائي. چې مناسب دا وو. چې علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي وو. «وسؤر كل شئ معتبر بعرقه» ځكه چې خبره د جوټې په بيان كې ده. د خولې په بيان كې نه ده.

**جواب صاحب العناية عنه** ◉ صاحب دعنايه فرمائي. چې دا صحيح نه ده. ځكه چې علامه مرغيناني رحمه الله د جوټو په ضمن كې د خولې بيان كوي. كه چرته علامه مرغيناني رحمه الله. «وسؤر كل شئ معتبر بعرقه» فرمائيلي وو. نوددے نه روسته دا واجب وه. چې «عرق الآدمى كذا، وعرق الكلب كذا» نو په دے صورت كې به دا فصل د خولې دبيان لپاره وو. د جوټې د بيان لپاره به نه وو. حالانكه دا فصل د سور (جوټې) د بيان لپاره دې. د خولې دبيان لپاره نه دې.

**اتحاد حكم العرق واللعاب** ◉ بهرحال مسئله دا ده. چې د هر څناور خوله به دهغه په جوټه باندې قياس كولې شي. كوم حكم چې د جوټې وي. هم هغه حكم به د خولې وي.

لِأَنَّهُمَا يَتَوَلَّدَانِ مِنْ لَحْمِهِ. ځكه چې لاړے او خوله دواړه د هغه څناور د غوښے نه پيدا كيږي فَأَخَذَ أَحَدُهُمَا حُكْمَ صَاحِبِهِ نو يو د بل حكم واخستلو.

**حل اللغة لحم:** غوښه

**تشريح:- وجه الاتحاد** ◉ دليل دا دې. چې خولهٔ او جوټهٔ يعنى لاړے دواړه د غوښے نه پيدا كيږي. نود دواړو حكم به يو شان وي.

**السوال** ◉ ليكن په دے باندې دا اعتراض كيدې شي. چې د خر جوټه مشكوكه ده. حالانكه خوله ئې پاكه ده. نو قياس څه شو؟

**الجواب** ◉ ځواب دا دې. چې په پاكوالى كې ئې شك نشته. بلكه په پا كاوه كې ئې شك دې. يعنى په دے كې شك دې. چې آيا د خر جوټه شوې اوبه ددے قابلے پاتې شوې دى. چې په دے باندې طهارت حاصل كړې شى. كه نه؟ او په دے باندې د ټولو اتفاق دې. چې دا په خپله پاكې دى. نوددے خوله به هم پاكه وي.

## د پاكې جوټې بيان

قَالَ فرمايي ابوالحسين قدورى رحمه الله وَسُؤْرُ الْآدَمِيِّ د بنى آدم جوټه وَمَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ او دكوم څناور غوښه چې خوړلے شى طَاهِرٌ پاكه ده

**حل اللغة** ① **يوكل، اكل، اكلاً (ن)** خوراك ② **طاهر:** پاك

**تشريح:- طهارة سور الادمى ومايؤكل لحمه** ◉ په دے عبارت كې د جوټې په څلورو قسمونو كې د اولنى ډول بيان دې. يعنى د بنى آدم جوټه پاكه ده. كه هغه مسلمان وي اوكه كافر. او كه جنب وي اوكه حائضه وي. يا نفاسه وي. دغه ډول دهغه څناورو جوټه پاكه ده. چې دهغې غوښه خوړلے شى. لكه غوا، چيلۍ، اوښ وغيره.

لِأَنَّ الْمُخْتَلِطَ بِهِ اللُّعَابُ ځكه چې په دے جوټه كې لاړے ملاؤ شوې وى وَقَدْ تَوَلَّدَ مِنْ لَحْمٍ طَاهِرٍ لعاب پيدا شوې دى. د پاكې غوښے نه فَيَكُونُ طَاهِرًا او. نودا به پاكه وى

**حل اللغة** ① **مختلط:** يوځائ شوې ② **لعاب:** توكاڼړې ③ **تولد، تولداً:** پيداكيدل

**تشريح:- دليل طهارة سؤرماكول اللحم** ◉ دليل دا دې. چې اوبه د خولهٔ د لاړو دوجې جوټه كيږي. او لعاب پيدا



كيږي. د غوښے نه. او ددے څناورو غوښه پاكه ده. نو لعاب به ئې هم پاك وي. اوهركله چې ئې لعاب پاك شو. نو چې په كوم شى كې لعاب خلط شى. هغه به هم پاك وي.

وَيَدْخُلُ فِي هَذَا الْجَوَابِ الْجُنُبُ وَالْحَائِضُ وَالْكَافِرُ او په دے حكم كې جنب، حائضه او كافر داخل دى.

**حل اللغة** ① **جنب:** جنبى ② **حائض:** حائضه ښځه

**تشريح:- الدليل النقلى لطهارة سؤر الادمى** ◉ د بنى آدم د جوټې په پاكوالى باندې د رسول الله ﷺ حديث شاهد عدل دې. «ان النبى ﷺ اتى بقدح من لبن فشرب وناول الى اعرابياً كان من يمينه فشربه ثم ناول ابابكر فشربه» يعنى نبى ﷺ ته د پيو يوه پيالۍ راوړلے شوه. نبى ﷺ ترے اوڅكل. او بنى اړخ ته ئې يو بانډيچى وو. هغه ته ئې وركړل. او بيا ئې حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته وركړل. نوهغوى هم اوڅكل. ددے حديث نه ثابته شوه. چې د بنى آدم جوټه پاكه ده.

**الدليل العقلى لطهارة سؤر الادمى** ◉ او عقلى دليل دا دې. چې د بنى آدم ذات پاك دې. نو دده جوټه به هم پاكه وي. پاته شوه دا خبره چې د بنى آدم غوښه نشى خوړلې. نو د بنى آدم غوښه چې نشى خوړلې. دا د ده د كرامت دوجې ده، د نجاست دوجې نه ده.

**الدليل النقلى لطهارة سؤر الجنب** ◉ دجنب سړى د جوټې طهارت هم د حديث نه ثابت دې. «روى أن النبى ﷺ لقى حذيفة رضي الله عنه فمد يده ليصافحه فقبض يده وقال إنى جنب فقال ﷺ المومن لاينجس» روايت دې. چې نبى ﷺ د حضرت حذيفه رضي الله عنه سره ملاقات اوكړلو. نبى عليه السلام ورته د مصافحے لپاره لاس وروړاندې كړلو. نو هغوى خپل لاس بند كړلو. او عرض ئې اوكړلو. حضرت زه جنب يم. (نو پليت يم. تاسو سره د لاس ملاوهلوقابل نه يم) نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل: مومن نه پليتيږى. (يعنى په جنابت سره نجس العين نه گرځى.)

**الدليل على طهارة سؤر الحائض** ◉ اودحائضے دجوټې طهارت باندې د حضرت عائشے رضي الله عنها په حدث باندې استدلال كړې شوې دې. «أن عائشة رضي الله عنها شربت من إناء في حال حيضها فوضع رسول الله ﷺ فمه على موضع فمها وشرب» يعنى حضرت عائشے رضى الله عنها د حيض په حالت كې د لوښى نه اوبه اوڅكلې. نو نبى ﷺ دهغې د خولې په ځائې خوله كيخودله. او اوبه ئې اوڅكلې. نوكه د حائضې جوټه پليته وه. نبى ﷺ به ولے دحضرت عائشے رضي الله عنها جوټه اوبه څكلې. حالانكه هغه په حالت دحيض كې وه.

**الدليل على طهارة سؤرالكافر** ◉ د كافر او مشرك د جوټې د طهارت لپاره زه دخپل كتاب " سنن الصلاة في فقه الأحناف" عربى تاليف نه دليل نقل كوم. حضرت ابوعبيده د خپل پلار عبدالله رضى الله عنه نه روايت كوى. فرمائى رسول الله عليه السلام فرمائيلي دى. شيطان ما سره تيريدلو. نوما راونيولو. او مرئ مے ورته خفه كړله. زه د هغه د ژبے لوندالے اوس هم محسوسوم نو شيطان راته اوے چې اودے دردولم. اودے دردولم.» مجمع الزوائد فى الطهارة باب سوء الكافر قال الهيثمى بعد ذكرهذا الحديث رواه احمد وابو عبيده لم يسمع من ابيه وبقية رجاله رجال الصحيح)

**وجه الا ستدلال.** ◉ امام هيثمى رحمه الله په دے حديث باندې استدلال كړې دے. چې د كافر جوټه پاكه ده. ځكه چې نبى عليه السلام ددے بيان اونكړوچې ما د شيطان د ژبے د لوندوالى نه خپل لاس اووينځلو. حالانكه نبى عليه السلام د احكامو په بيانولو باندې مكلف وو. نومعلومه شوه چې د كافر جوټه پاكه ده. شاه فيصل عفى عنه

## د سپى د جوټې حكم

وَسُؤْرُ الْكَلْبِ نَجِسٌ او د سپى جوټه پليته ده وَيُغْسَلُ الْإِنَاءُ مِنْ وُلُوغِهِ ثَلَاثًا لوښے به درے ځله وينځلے شى دده د خولې داخلولو د وجې

**حل اللغة** ① **يغسل غسلاً (ض)** وينځل ② **ولوغ:** څټل ③ **اناء:** لوښى

**تشريح:- المذهبان في سؤرالكلب** ◉ په دے عبارت كې د سپى د جوټه شوې اوبو حكم ذكر دې. ① دحضرت امام

مالك رحمه الله نه علاوه د پاته ټولو په نیز د سپی جوټه پلیته ده. که سپے په لوښی کې خوله اووهی. نو په درے باندې درے خله د لوښی پريمنځل واجب دی. ② خو امام مالك رحمه الله د سپی د جوټې د طهارت قائل دے. حاصل دا چې دلته دوې (دوه) خبرے دی. ① د سپی د جوټې نجاست ② او د ه د خولې وهلو د وجې د لوښی درے خله وینځل.

**لِقَوْلِهٖ عَلَیْهِ الصَّلٰوۃُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی **یُغْسَلُ الْاِنَاءُ مِنْ وُلُوْغِ الْکَلْبِ ثَلَاثًا** (۱) د سپی د خولې وهلو نه دے لوښے درے خله وینځلے شی **وَلِسَانُهٗ یُلَاقِی الْمَاءَ** او (د ځښلو په وخت) د سپی ژبه د اوبو سره یوځاې وی **دُوْنَ الْاِنَاءِ** د لوښی سره نه **فَلَمَّا تَنَجَّسَ الْاِنَاءُ** نو چې لوښے پلیت شو **فَالْمَاءُ اَوْلٰی** اوبه خو به خامخا پلیتیږی

**حل اللغة** ① یلاقی، لاقی ملاقاة: ملاویدل

**تشریح:- دلیل نجاسة سؤر الکلب** د دے لپاره د نبی ﷺ په قول باندې استدلال کولې شی. که سپے په لوښی کې خوله اووهی. نو هغه دے درے خله اووینځلی شی. وجه د استدلال دا ده. چې ژبه د اوبو سره لګی د لوښی سره نه لګی. نو هر کله چې د سپی په لوښی کې خوله لګولو سره لوښے پلیت شو. نو اوبه خو به په طریقه اولی سره پلیتیږی.

**السوال** ځینې حضراتو اعتراض کړے دے. چې کیدې شی. په حدیث کې د ولوغ نه مراد څټل وی. نو په دے صورت کې خو ژبه د لوښی سره لګیدلے وی. اوبو سره نه. نو د دے حدیث نه استدلال بالاولویت پوره نه دے.

**الجواب** د دے ځواب دا دے. چې د ولوغ حقیقی معنی د سپی د ژبې په سر اوبه وغیره ځښل دی. او قاعده دا ده. چې تر څو پورې د معنی حقیقی خلاف قرینه موجود نه وی. نو حقیقی معنی به مراد وی. بهرحال د حدیث نه دوې (دوه) خبرے ثابتے شوې. یوه دا چې د سپی لعاب نجس دی. او دویمه د وینځلو تعداد ئې درے خله دی.

**وَهٰذَا یُفِیْدُ النَّجَاسَةَ** او دا حدیث د دے خبرے فائده ورکوی. چې اوبه پلیتے شوې **وَالْعَدَدَ فِی الْغَسْلِ** او د درے خله وینځلو فائده ورکوی **وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَی الشَّافِعِیِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِی اشْتِرَاطِ السَّبْعِ** او دا حدیث په اووه ځله شرط لګولو کې په امام شافعی رحمه الله حجت دے

**حل اللغة** ① سبع: اووه

**تشریح:- مذهب الشافعی في غسل الاناء سبعاً** دا حدیث د امام شافعی خلاف حجت دے. ځکه چې امام شافعی رحمه الله اووه خله وینځل واجب ګرځوی.

**دلیله** او دلیل چې د حضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه حدیث دے. چې «انه ﷺ قال إذا ولغ الکلب في إناء أحدکم فاغسلوه سبعا وعفروه الثامنة بالتراب» یعنی نبی ﷺ فرمائیلی دی. کله چې ستاسو د یو کس په لوښی کې خوله اووهی. نو هغه اووه خله اووینځئ. او په اتم ځل ئې په خاوره اومګئ.

**جواب الاحناف** لیکن زمونږ د اړخه ځواب دا دے. چې په ابتداء د اسلام کې د ولوغ الکلب نه اووه خله د وینځلو حکم وو. بیا منسوخ شو.

**وَلِاَنَّ مَا یُصِیْبُهٗ بَوْلُهٗ** او د دے وجې چې کوم شی پورې د سپی متیازے اولګوی **یَطْهُرُ بِالثَّلَاثِ** نو هغه په درے خله (وینځلو سره) پاکیږی. **فَمَا یُصِیْبُهٗ سُؤْرُهٗ** نو چې کوم شی پورې د دے جوټه اولګی **وَهُوَ دُوْنَهٗ** حالانکه هغه د متیازو نه کمه ده **اَوْلٰی** دا به په طریقه اولی سره پاکیږی

**تشریح:- علة التشدید في امر الکلاب** په اصل کې خبره دا وه. چې په ابتداء د اسلام کې نبی ﷺ په خلګو د سپو په اړه کې سختی کړې وه. چې د سپو د ساتلو نه منع شی. بیا چې کله ترے عادت ختمیدلو. نو دا حکم منسوخ شو.



**وَالْاَمْرُ الْوَارِدُ بِالسَّبْعِ** (۱) او هغه حکم چې په اووه خله وینځلو باندې وارد شوې دے **مَحْمُوْلٌ عَلٰی ابْتِدَاءِ الْاِسْلَامِ** نو هغه په ابتداء د اسلام باندې حمل دے.

**تشریح:- الدلیل الالزامی علی الشافعی رحمه الله** صاحب د هدایه رحمه الله په امام شافعی رحمه الله باندې دلیل الزامی پیش کوی. او فرمائی. چې کوم ځیز پورې د سپی متیازے اولګوی. نو هغه په درے خله وینځلو سره پاکیږی. نو کوم شی پورې چې د دے جوټه اولګی. حالانکه د هغے نجاست د دے نه کم دے. نو هغه خو به په طریقه اولی سره په درے خله وینځلو پاکیږی. د سپی جوټې ته ئې د دے د متیازو د نجاست نه ځکه کمه اووئیله. چې د سپی د متیازو د طهارت څوك قائل نه دی. او د دے جوټې ته امام مالك رحمه الله پاکه وائی. والله اعلم

## د خنزیر او درندګانو د جوټې حکم

| | |
|---|---|
| **وَسُؤْرُ الْخِنْزِیْرِ نَجِسٌ** | او د خنزیر جوټه پلیته ده **لِاَنَّهٗ نَجِسُ الْعَیْنِ** ځکه چې خنزیر نجس العین دے **عَلٰی مَا مَرَّ** لکه چې وړاندې تیر شو |
| **وَسُؤْرُ سِبَاعِ الْبَهَائِمِ نَجِسٌ** | او د ماتونکی ځناورو جوټه پلیته ده. |

**تشریح:- الخلاف في سور البهائم** مسئله دا ده. ① چې زمونږ په نیز د ماتونکو ځناورو (شرمخ، زمری، پړانګ وغیره) جوټه پلیته ده.

**خِلَافًا لِلشَّافِعِیِّ رحمه الله فِیْمَا سِوَی الْکَلْبِ وَالْخِنْزِیْرِ** د سپی او خنزیر نه په علاوه کې امام شافعی رحمه الله اختلاف کړے دے

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې د سپی او خنزیر نه علاوه پاته د ټولو درندګانو جوټه پاکه ده.

**دلائله** ① د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دے. چې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دے. چې د نبی ﷺ نه د هغه حوضونو په اړه کې پوښتنه اوشوه. کوم چې د مکې او مدینې منورې په مینځ کې وو. نبی ﷺ ته دا هم اووئیلی شو. چې سپی او درنده ګان هلته د اوبو ځښلو لپاره راځی. نو نبی ﷺ اوفرمائیل: «لها ما أخذت بطونها ولنا ما بقی شراب وطهور» یعنی کومے چې هغوی په خپلو خیټو کې واچولې. هغه د هغوی شوې. او چې څه پاتې شوې هغه زمونږ د ځښلو او پاکئ حاصلولو لپاره دی. ② او په یو حدیث کې دی چې «أنتوضأ بما أفضلت الحمر؟ فقال ﷺ نعم وبما أفضلت السباع» آیا مونږ د خرونو په پاتې شوې اوبو اودس کوو؟ نو نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل: آو. او د درندګانو په پاتې شوې اوبو باندې هم. د دے دواړو حدیثونو نه معلومه شوه. چې د درندګانو جوټه پاکه ده.

**الجوابان من دلائل الشافعی** د حضرت امام شافعی رحمه الله بیان کړی احادیثو نه ځواب دا دے. ① چې د درندګانو د جوټه شوې اوبو د پاکوالی حکم په ابتداء اسلام کې وو. چې لا د درندګانو حرمت نه وو راغلے. بیا دا حکم منسوخ شو. ② دوهم ځواب دا دے. چې پوښتنه د لوئې حوضونو په اړه کې وه. او د هغے مونږ هم قائل یو. چې لوئې حوض نه پلیتیږی.

**لِاَنَّ لَحْمَهَا نَجِسٌ** ځکه چې د دے ماتونکو ځناورو غوښه حرامه ده **وَمِنْهُ یَتَوَلَّدُ اللُّعَابُ** او لعاب هم د دے نه پیدا کیږی **وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِی الْبَابِ** او په دے باب کې هم غوښه معتبر ده.

**تشریح:- دلائل الاحناف** زمونږ رحمهم الله ① دلیل دا دے. چې «أن عمر رضی الله عنه و عمرو بن العاص رضی الله عنه وردو حوضا فقال عمرو بن العاص رضی الله عنه یا صاحب الحوض أتردو السباع ماءك؟ فقال عمر رضی الله عنه یا صاحب الحوض لا تخبرنا فلولا أنه أخبر بورود السباع یتعذر علیهما إستعماله لما نهاه عن ذلك» حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه دواړه یو حوض ته ورغلل. نو حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه د حوض د مالك نه پوښتنه اوکړه. چې ته مونږ ته دا خبر راکړه. چې ستا

---

۱) من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال یغسل الاناء اذا ولغ فیه الکلب سبع مرات اخرجه البخاری فی الوضوء باب ۳۳ ومسلم فی الطهارة رقم ۸۹)_

دے حوض تـه درنګان راځي؟ نوحضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل: اے دحوض مالکه موږ تـه دا خبر مه راکوه.خکه که د درندګانو د راتلو خبر راته راکړي.نو په موږ دواړو به ددے استعمال منع شی.خکه چې نبی ﷺ ددے نه منع کړې ده. د دے واقعه نه معلومه شوه.چې د درندګانو جوټه پلیته ده. ② زمونږ دا رخه عقلي دلیل دا دےچې د درنګانو غوښه پلیته وي.اولعاب د دے نه پیدا کیږي.اود لعابو په نجاست او طهارت کې هم غوښه معتبره ده.یعنی که غوښه نجسه وي.نو لعاب به هم نجس وي.او که غوښه پاکه وي.نو لعاب به هم پاك وي.

## د پیشی دجوټې حکم

وَسُؤرُ الْهِرَّةِ طَاهِرٌ اود پیشوجوټه پاکه ده مَكْرُوهٌ (١) مګر مکروه ده

حل اللغة: ① هرة پیشی

تشریح:- المذهبان في سؤرالهرة: د پیشی په جوټه کې داحنافو فقهاؤ اختلاف دې.① طرفین رحمهما الله فرمائی.چې د پشو جوټه پاکه ده.خومکروه ده.بیا امام طحاوی رحمه الله دکراهت تحریمی قائل دې.اوامام کرخی رحمه الله دکراهت تنزیهی قائل دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله أَنَّهُ غَيْرُ مَكْرُوهٍ او ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چې غیر مکروه ده لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُصْغِي لَهَا الْإِنَاءَ (..خکه چې نبی ﷺ به دے ته لوښے کښته کولو فَتَشْرَبُ مِنْهُ او دے به ترے اوبه څښلې ثُمَّ يَتَوَضَّأُ بِهِ او بیا به نبی ﷺ دهغے نه اودس کولو

حل اللغة: ① یصغی، اصغی اصغاءً: ټیټ واړه ② یتوضأ، توضا توضأ: اودس کول

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چې د پشو جوټه غیر مکروه ده.او دا د امام شافعی رحمه الله قول هم دې.

دلائله: ① دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چې نبی ﷺ به پیشی تـه لوښے کښته کولو.او هغے بـه ترے اوبه څکلې.اوبیا به نبی ﷺ دهغے نه اودس کولو.د دے حدیث دذکر کاوه نه روسته امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی .« کیف أکره مع هذا الحدیث »ددے حدیث باوجود زه د پیشی جوټې ته څنګه مکروه اووایم.② په یو بل حدیث کې دی.« عن عائشة رضي الله عنها قالت کنت أتوضا أنا و رسول الله ﷺ في إناء واحد قداصابت منه الهرة قبل ذلك »حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چې ما او رسول الله ﷺ د یو لوښی نه اودس کولو.حالانکه ددے نه وړاندې به پیشودهغے نه څښل کړي وو.ددے نه هم ثابته شوه.چې د پیشی جوټه بغیر د کراهته پاکه ده.

وَلَهُمَا اود طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې نبی ﷺ فرمائیلی دی الْهِرَّةُ سَبُعٌ (٢) پیشی درنده دې وَالْمُرَادُ بَيَانُ الْحُكْمِ او مراد بیانول د حکم دي دُونَ الْخِلْقَةِ وَالصُّورَةِ د پیدائش اوشکل بیان نه وو

حل اللغة: ① سبع: لیوه سقطت، سقط،سقوطاً (ن): غورزیدل

تشریح:- دلیل الطرفین رحمهما الله: اود طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. «الهرة سبع»چې پیشی درنده دې.ددے قول نه د الله ﷺ د پیغمبر ﷺ مقصد د پیدائش او صورت بیان نه دې.بلکه د حکم بیانول ئې مقصود دې.خکه چې نبی ﷺ د شریعت داحکامو بیانولو لپاره رالیږلے شوي وو.د خلګ ت او صورت بیانولو لپاره نه وو.نوهرکله چې د پیشوحکم هغه شو.کوم چې د درنده دې.نو د درنده د جوټې په څیر به ددے جوټه هم پلیته وی.حالانکه ته ددے د نجاست قائل نه ئې.

---

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في العناية (١١\٩٧) والدرالمختار(١١\١٦٥) والنهاية (١١\٤٥) نقلا عن القول الراجح (١١\٢)_

(٢) من حديث ابى هريرة رضي الله عنه اخرجه الحاكم فى المستدرك (١١\١٨٣)_



إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَتِ النَّجَاسَةُ لِعِلَّةِ الطَّوْفِ لیکن د طواف د علت دوجې نجاست ساقط شو فَبَقِيَتِ الْكَرَاهَةُ او کراهت پاته پاتې شو

تشریح:- المراد من علة الطواف، الضرورة: صاحب دهدایه رحمه الله په خواب کې فرمائی.چې د قیاس تقاضا هم دا وه.لیکن دطواف دعلت دوجې د پیشی د جوټې نجاست ساقط شو.او کراهت پاته شو.او دطواف د علت نه خو یا اړتیا مراد دې. یعنی د اړتیا د وجې د پیشی (پیشو)د جوټې نجاست ساقط شو.

نظیرسقوط الحکم لاجل الحرج: لکه څنګه چې الله ﷻ په هغه کس باندې اجازت غوښتل واجب کړي دی.څوك چې د چا کور ته د ورداخلیدو اراده لری. لیکن د اړتیا دوجې نې د غلامانو اوماشومانو نه د درے ختونو (د سحر د لمانځه نه وړاندې او د ماپښین په وخت د خوب کې اودماسخوتن د لمانځه نه پس) نه علاوه داحکم ساقط کړې دې.دالله ﷻ ارشاد دے﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُمْ مِنَ الظَّهِيرَةِ وَمِنْ بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ ﴾ یعنی اے دایمان خاوندانو! (تاسو ته د راتلو لپاره دے) ستاسو غلامان او په تاسوکې چې څوك بلوغ ته نه رسیدلے وی. دهغوی لپاره په دے درے ختونو کې اجازت غوښتل پکار دی.(یوخو) دسحر د لمانځه نه وړاندې (او دوهم کله چې تاسو (د خوب لپاره ) د ماپښین (بعضے) جامے اوباسئ.او (دریم) ماسخوتن د لمانځه نه پس.دا درے وختونه ستاسو د پردے (وختونه دی.اوددے درے وختونونه علاوه په نوروکې نه په تاسوخه ګناه شته.اونه (بغیر داجازت نه په درتلو )په هغوی باندې څه ګناه شته.خکه چې دوی زیات تاسو ته څی راځی.څوك چاته ورځی او څوك چاته.

المراد من العلة في حديث عائشة رضي الله عنها: اودا هم ممکن ده.چې د علت طواف نه دحضرت عائشے رضي الله عنها حدیث ته اشاره وی.حدیث دا دې.« عن عائشة رضي الله عنها أنها كانت تصلي وفي بيتها قصعة من هريسة فجاءت هرة وأكلت منها فلما فرغت من صلاتها دعت جارات لها فكن يتحامين من موضع فمها فمدت يدها وأخذت موضع فمها وأكلت وقالت سمعت رسول الله ﷺ يقول الهرة ليست بنجسة إنما هي من الطوافين والطوافات عليكم فما لكم لا تأكلن » دحضرت عائشے رضي الله عنها نه روایت دې.چې دوی لمونځ کولو.او د دوی په کور کې هریسه (دا یو ډول خوارك دې.چې پیو او غوښے نه تیاریږی) په پیالۍ کې پرته وه.نو پیشی راغله.او دهغے نه ئې خوراك اوکړلو.کله چې حضرت عائشه رضي الله عنها دلمونځ نه فارغه شوه.نوخپلے ګاونډیانے ئې راوغوښتلې.نوهغوی دهغه ځائې نه پرهیز کولو.په کوم ځائې چې پیشی خپله خوله لګولې وه.نوحضرت عائشے رضي الله عنها خپل لاس هغه ځائې ته وروړاندې کړلو.کوم ځائې کې چې پیشی خوله لګولې وه.او وے فرمائیل: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وو.چې فرمائیل ئې. پیشی پلیته نه ده.دا تاسو ته څی راځی.نوتاسو ولے (ددے ځائې نه )خوراك نه کوئ.حاصل دا چې مقتضا د قیاس خو هم دا وه.چې د پیشوجوټه پلیته وه.لیکن ددے حدیث د وجې ددے نجاست ساقط شو.خوکراهت پاته دې.

وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ اوهغه روایت چې امام ابویوسف رحمه الله روایت کړې دې عَلَى مَا قَبْلَ التَّحْرِيمِ په ما قبل التحریم حمل دې

تشریح:- اودامام ابویوسف رحمه الله دلیل په هغه وخت باندې حمل دې.چې د پیشی د حرمت بیان نه وو شوې.

ثُمَّ قِيلَ بیا وئیلی شوی دی. كَرَاهَتُهُ لِحُرْمَةِ اللَّحْمِ چې ددے کراهت د غوښے د حرمت د وجې دې وَقِيلَ او وئیلی شوی دی لِعَدَمِ تَحَامِيهَا النَّجَاسَةَ چې ددے د نجاست نه د ځان نه ساتلو د وجې دې وَهَذَا يُشِيرُ إِلَى التَّنَزُّهِ اوکراهت تنزیهی اړخ ته اشاره ده وَالْأَوَّلُ إِلَى الْقُرْبِ مِنَ التَّحْرِيمِ اواول قول تحریم ته زیات نزدے دې.

حل اللغة: ① تحامی: بچ کیدل

تشریح:- دلیل الطحاوی رحمه الله لحرمة التحريمة: بیا دامام طحاوی رحمه الله دلیل په دے خبره چې د پیشی جوټه مکروه تحریمی ده.دا دې.چې د پیشی دجوټې د وجې په اوبو کې کراهت د غوښے د حرمت د وجې راځی.اوښکاره

خبره ده چې د تحریم د وجې کوم کراهت راځي. هغه به مکروه تحریمي وي. کراهت تنزیهي به نه وي.

**دليل الكرخي رحمه الله لحرمة التنزيهية**۞ او په کراهت تنزیهي د امام کرخي رحمه الله دلیل دا دی. چې د پیشي په جوټه کې کراهت د دې وجې پیدا شو. چې هغه د نجاست نه احتیاط نه کوي. او ښکاره خبره ده. چې د عدم احتیاط د وجې کوم کراهت پیدا کیږي. هغه به کراهت تنزیهي وي.

## د مږې خوړلو نه روسته د پیشي د جوټې حکم

| |
|---|
| **وَلَوْ أَكَلَتْ فَارَةً** او که پیشي مږه اوخوړله **ثُمَّ شَرِبَتْ عَلَى فَوْرِهَا الْمَاءَ** او هم په هغه وخت ئې اوبه اوڅښلې **تَنَجَّسَ** نو اوبه پلیتیږي. |

**حل اللغة** ① **اكلت، اكل، اكلاً(ن)** خوراك ② **فارة** مږه ③ **شربت، شرب شرباً(س)** څښل ④ **فور**: زر

**تشريح:- الصورة الاتفاقية في نجاسة سؤرها**۞ مسئله دا ده. چې پیشوګنګه مږه اوخوړله. او دستي ئې په لوښي کې خوله ورد ننه کړه. او اوبه ئې اوڅکلې. نو دا اوبه پلیتیږي.

| |
|---|
| **إِلَّا إِذَا مَكَثَتْ سَاعَةً** خو که لږه غوندې ایساره شوه **لِغَسْلِهَا فَمَهَا بِلُعَابِهَا** چې پیشي خپله خوله په خپلو لاړو باندې اووینځي **وَالِاسْتِثْنَاءُ عَلَى مَذْهَبِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله[1] او استثناء دابوحنیفه اوابویوسف رحمهما الله په مذهب کې ده **وَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الصَّبِّ لِلضَّرُورَةِ** او د اړتیا په وخت د تویولو اعتبار ساقط کیږي. |

**حل اللغة** ① **مكثت، مكث مكثاً(ن)** حصاریدل ② **ساعة** لږ ساعت

**تشريح:- المذهبان في صورة واحدة** ۞ ① البته دا چې لږ غوندې وخت ئې تیر کړلو. او بیا ئې اوبه اوڅکلې. نو د شیخینو رحمهما الله په نیز په دې صورت کې اوبه نه پلیتیږي. ② خود امام محمد رحمه الله په نیز په دې صورت کې هم اوبه پلیتیږي.

**دليل الشيخين رحمهما الله**۞ د شخینو رحمهما الله دلیل دا دی. چې د دوی په نیز په بهیدونکي پاك شي باندې د نجاست لرې کول جائز دي. نو پیشوچې کله مږه اوخوړله. او وخت ئې تیر کړلو. نو هغې په خپله ژبه د شونډو نجاست پاك کړلو. او هغه ئې تیر کړلو. او دهغې نه روسته ئې د لوښي نه اوبه اوڅکلې. نو چونکه د دې خوله په لاړو سره پاکه شوې وه. نو اوبه نه پلیتیږي.

**السوال على اصل ابي يوسف رحمه الله**۞ خو که دلته کې څوك اعتراض اوکړي. چې دامام ابویوسف رحمه الله په نیز داندام د پاکاوه لپاره اوبه بیول شرط دي. او دلته کې په لاړو باندې د خولې په پاکاوه کې بیول موجود نشو.

**الجواب**۞ نو د دې ځواب دا دی. چې د اړتیا په وجه د بیولو شرط ساقط شو.

**دليل محمد رحمه الله** ۞ او دامام محمد رحمه الله په نیز چونکه بغیر د اوبو نه نجاست نه زائله کیږي. نو ځکه د داسې پیشي جوټه په هر صورت کې پلیته ده. که هغې په لاړو باندې خپله خوله پاکه کړې وي او که نه.

## دچرګې د جوټې حکم

| |
|---|
| **وَسُؤْرُ الدَّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِ مَكْرُوهٌ** او په چټلې ګرځیدونکې چرګې جوټه مکروه ده **لِأَنَّهَا تُخَالِطُ النَّجَاسَةَ** ځکه چې مخلاته چرګه چټلې سره ګرځي |

**حل اللغة** ① **الدجاجة المخلاة**: آزاده چرګه، بهر ګرځیدونکې چرګه ② **تخالط، خالط مخالطة** ملاویدل

**تشريح:- نجاسة سؤر الدجاجة المخلاة وعلتها**۞ مسئله دا ده. چې په نجاساتو او غلاظونو باندې د ګرځیدونکې

---

[1] ) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (۱۱/۱۶۴) و شرح المجلة (۱۱/۵۵) والهندية (۱۱/۲۴) نقلا عن القول الراجح (۱۱/۲۳)-



چرګې جوټه مکروه ده. دلیل دا دی. چې مخلات چرګه د نجاست سره مخلوطه اوسي. نو ځکه د دې جوټه د کراهت نه خالي نه ده.

| |
|---|
| **وَلَوْ كَانَتْ مَحْبُوسَةً** او که تړلې شوې وي **بِحَيْثُ لَا يَصِلُ مِنْقَارُهَا إِلَى مَا تَحْتَ قَدَمَيْهَا** چې د چرګې مخوکه دهغې د پنجو نه لاندې نه رسي **لَا يُكْرَهُ** نو مکروه نه ده **لِوُقُوعِ الْأَمْنِ عَنِ الْمُخَالَطَةِ** ځکه چې د اختلاط نجاست نه امن واقع دې |

**حل اللغة** ① **محبوسة**: قید بنده ② **لايصل، وصل وصولاً(ض)**: رسیدل ③ **منقار**: مښوکه

**تشريح:- طهارة سؤر الدجاجة المخلاة وعلتها**۞ او که چرګه په پنجره وغیره کې بنده شوې وي. په داسې طریقه چې دهغې مخوکه د پنجو نه لاندې نه رسي. نو دهغې جوټه مکروه نه ده. دلیل دا دی. چې اختلاط د نجاست د وجې وو. او په تړلو سره د اختلاط نه امن راغلو. نو ځکه به ئې جوټه مکروه نه وي.

| |
|---|
| **وَكَذَا سُؤْرُ سِبَاعِ الطَّيْرِ** او هم دغه ډول د ښکاري مارغانو جوټه (مکروه) ده **لِأَنَّهَا تَأْكُلُ الْمَيْتَاتِ** ځکه چې دا ښکاري مارغان مردار خناور خوري **فَأَشْبَهَ الْمُخَلَّاةَ** نو د مخلات چرګې مشابه شو |

**حل اللغة** ① **ميتات، واحدميتة**: ټوك

**تشريح:- حكم سؤر سباع الطيور**۞ دا حکم د ښکاري مارغه هم دی. یعنی د ښکاري مارغانو جوټه به هم پلیته وي. دلیل دا دی. چې ښکاري مارغان مردارے خوري. نو دا به هم د مخلات چرګې په شان وي.

**علة طهارة سؤرسباع الطيور**۞ صاحب دعنایه لیکي. چې د درندګانو په جوټه باندې قیاس کاوه تقاضا خو دا وه. چې د ښکاري مارغانو جوټه دې هم پلیته وي. لیکن استحساناً دے ته نجس نشي وئیلې. وجه داستحسان دا ده. چې مارغان په خپلو مخوکو اوبه څکي. او هغه اوچ هډوکي دي.

**علة نجاسة سؤر سباع البهائم**۞ د دې په خلاف د درنګانو جوټه پلیته ده. ځکه چې هغوی په خپله ژبه باندې څکاك کوي. او هغه د لعابو د وجې لنده وي. نو درنده ځناور چې کله په اوبو کې خوله اووهي. نو دهغې د خولې نجس لعاب داوبو سره ګډ شي. او د دې د وجې اوبه پلیتې شي.

| |
|---|
| **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله او د ابویوسف رحمه الله نه روایت دی **أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ مَحْبُوسَةً** که دا ښکاري مارغان تړلې شوې وي **وَيَعْلَمُ صَاحِبُهَا** او د دے مالك پیژني **أَنَّهُ لَا قَذَرَ عَلَى مِنْقَارِهَا** چې د دے په مخوکه نجاست نشته **لَا يُكْرَهُ** نو دهغې جوټه هم مکروه نه ده ځکه چې د نجاست د اختلاط نه امن دی **وَاسْتَحْسَنَ الْمَشَايِخُ هَذِهِ الرِّوَايَةَ** او مشائخو رحمهم الله دا روایت ښه ګڼړلې دې |

**تشريح:- صورة طهارة سؤرسباع الطيور** ۞ او دامام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی که ښکاري مرغۀ بنده کړې شي. او د هغې مالك ته یقین وي. چې مخوکه ئې نجاست سره نه ده لګیدلې. نو دهغې جوټه به هم مکروه نه وي. ځکه چې په دې صورت کې د اختلاط نجاست نه امن راغلې دی. مشائخو دا روایت مستحسن ګرځولې دی. او هم په دې باندې فتوی ده. فقیه ابوالليث رحمه الله فرمائیلي دي. چې حسن بن زیاد د ابوحنیفه رحمه الله نه نقل کړې دي. که دا مرغۀ ټوك نه خوري. نو د دې په جوټه باندې اوبه نه پلیتیږي.

## په کورونو کې د اوسیدونکو ځناورو د جوټې حکم

| |
|---|
| **وَسُؤْرُ مَا يَسْكُنُ الْبُيُوتَ** او دهغه ځناورو جوټه چې په کورونو کې اوسیږي **كَالْحَيَّةِ وَالْفَارَةِ** لکه د مار، مږے جوټه **مَكْرُوهٌ** مکروه ده. |

**حل اللغة** ① **يسكن، سكن سكوناً(ن)**: اوسیدل ② **بيوت واحد بيت**: کور ③ **حية**: مار

**تشريح:- علة كراهة سؤرما يسكن البيوت**۞ په کورونو کې د اوسیدونکو ځناورو لکه مار، مږه وغیره د دې جوټه شوې اوبه هم مکروه دي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ حُرْمَةَ اللَّحْمِ أَوْجَبَتْ نَجَاسَةَ السُّؤْرِ** ځکه چې د دے د غوښې نجاست د دے د جوټې نجاست واجبوي **إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَتْ** |

النَّجَاسَةُ لِعِلَّةِ الطَّوْفِ. لیکن دطواف دوجې دا نجاست ساقط شو فَبَقِيَتِ الْكَرَاهَةُ اوکراهت پاته شو

حل اللغة:① طواف: تاویدل راتاویدل

تشریح:- دلیل دا دي.چې ددے دغوښې حرمت خو ددے خبرے مقتضی وو.چې ددے جوټه دے هم پلیته وي. د طواف (ګرځیدو راګرځیدو) د وجې نجاست ساقط شو.خوکراهت پاته شو.

وَالتَّنْبِيهُ عَلَى الْعِلَّةِ فِي الْهِرَّةِ او په علت باندې د پیشی په مسئله کې تنبیه ورکړې شوې ده

حل اللغة:① هرة: پیشی

تشریح:- **السوال**: اوپه ﴿والتنبیه علی العلة﴾ سره د سوال مقدرځواب دې. سوال دا دې.چې د سواکن البیوت د جوټې نه د نجاست د سقوط علت ،چې علت طواف دے څنګه معلوم شو.

**الجواب**: ځواب دا دې.چې نبی ﷺ د پیشود جوټې نه د کراهت د سقوط لپاره علت طواف بیان کړې دې. فرمائیلی ئې دی.﴿ إنها من الطوافین علیکم والطوافات﴾ او دا علت په سواکن البیوت کې په درجه اتم موجود دې .څکه چې د کور د روشندان او بل سوری په بندولو د پیشی بندول ممکن نه دی.او د سواکن البیوت مار،مږه وغیره په کور کې دګرځیدو نه منع کول ممکن نه دی.نوچې دعلت طواف د وجې دپیشی د جوټې نه نجاست ساقط شو.نود سواکن البیوت دجوټې څخه به نجاست په طریقه اولی سره ساقطیږی.

### دخر اوقچر د جوټې حکم

قَالَ فرمائیلی دی ابوالحسین قدروی رحمه الله وَسُؤْرُ الْحِمَارِ وَالْبَغْلِ مَشْكُوكٌ فِيهِ اود خر او د قچر جوټه مشکوکه ده

حل اللغة:① حمار: خر ② بغل: قچر

تشریح:- **وجود الشک في طهورية سؤرالحمار الاهلية والبغل**: په عبارت کې کورنے خر مراد دې.او د قچر نه هغه قچر مراد دې.چې مور ئې خره وی.اوکه دده مور غوا یا اسپه وه.نوددے جوټه پاکه ده.(شرح نقایه) اوس حاصل د مسئلې دا دې.چې کورنے خر او هغه قچر چې د خرے د خیټے نه پیدا شوې وی.د دے دواړو جوټه مشکوکه ده.دا حکم د اکثرو مشائخو رحمهم الله په نیز دې.

قِيلَ وئیلې شوی دی الشَّكُّ فِي طَهَارَتِهِ چې په طهارت کې شك دې لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ طَاهِرًا څکه که چرته پاکه وه لَكَانَ طَهُورًا مَا لَمْ يَغْلِبِ اللُّعَابُ عَلَى الْمَاءِ نو ځوپورې چې لعاب په اوبه باندې غالب نه وو.نوپاکونکې به وه

حل اللغة:① لم یغلب، غلب غلبة: غالب کیدل، برې بیاموندل

تشریح:- **وجود الشک في طهارته**: پاته شوه دا خبره چې د اکثرو مشائخو په نیز شك ددے په طهارت (پاك والی ) کې دې.او که د دے په مطهر (د بل پاکونکی) کې دې.نو په دے اړه کې اختلاف دې.بعضو فرمائیلی دی.چې د خر دلعابو په طهارت کې شك دې.یعنی چې ددے لعاب پاك دی اوکه نه؟

**دلیل الشک في طهارته**: دلیل دا دې.که چرته د خرلعاب پاك وو.نو چې په کومو اوبو کې هغه ګډیدلو.هغه به مطهر پاته وو.ترهغه وخته پورې چې لعاب په اوبه باندې غالب شوې وو.لکه څنګه چې په اوبو کې د پاکو څیزونو د ګډیدو حکم دې.حالانکه بغیر د غلبې نه هم په دے سره پاکی حاصلول کافی نه ده.نومعلومه شوه.چې شك ددے په طهارت کی دې.

وَقِيلَ او وئیلې شوی دی. الشَّكُّ فِي طَهُورِيَّتِهِ چې ددے په پا کاوه کې شك دې لِأَنَّهُ لَوْ وَجَدَ الْمَاءَ الْمُطْلَقَ څکه که اوبه موجود شی لَا يَجِبُ عَلَيْهِ غَسْلُ رَأْسِهِ نوپه ده باندې دخپل سرپریمنځل واجب نه دی

حل اللغة:① وجد، وجدانًا (ض) موندل

تشریح:- **الشک في طهوريته**: اود ځینې مشائخو رحمهم الله دا رائې ده.چې شك ددے په مطهر اوطهور کیدو کې دې.یعنی دخر لعاب په خپله خو پاکې دی.لیکن په دے کې شك دې.چې دا بل شی پاکوی که نه؟



**دلیل الشک في طهوريته**: دلیل دا دې.که یو سړی اول د خر په جوټه باندې د سرمسح اوکړله.او بیا ورته اوبه مطلق ملاؤ شوې.نوپه ده باندې د سرپریمنځل واجب نه دی.که د خرد جوټې په طهارت کې شك وو.نو په ده باندې به د سروینځل واجب وو.نو معلومه شوه.چې دخر جوټه په خپله خو پاکه ده.لیکن بل شی پاکولې شی که نه ؟په دے کی شك دې.

وَكَذَا لَبَنُهُ طَاهِرٌ او دغه ډول ددے شیدې هم پاك دی وَعَرَقُهُ لَا يَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلَاةِ او ددے خوله د جواز د لمانځه نه مانع نه ده وَإِنْ فَحُشَ اګرچې زیاته وی فَكَذَا سُؤْرُهُ نو دغه ډول به ددے جوټه هم وی وَهُوَ الْأَصَحُّ او دا زیاته صحیح ده وَيُرْوَى او روایت شوې دې نَصُّ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَى طَهَارَتِهِ[1] چې امام محمد رحمه الله د پاکوالی صراحت کړې دې

حل اللغة:① عرق: خوله

تشریح:- **حکم لبن الحمار**: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چې دخرے شیدې هم پاك دی.لیکن دا حکم دظاهر روایت مطابق نه دې.بلکه دامام محمد رحمه الله نه روایت دې.او په ظاهر روایت کې دی.چې د خرې شیدې پلیت دی.

**الروایات الثلاث في لعاب الحمار**: او د خر په خوله کې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه درے روایات منقول دی.① دا چې دخر خوله پاکه ده.د لمونځ د جواز نه مانع نه ده.② نجاست خفیفه ده.③ نجاست غلیظه ده.لیکن د مشهور روایاتو مطابق پاکه ده.نو دغه ډول به ددے جوټه هم پاکه وی.څکه خوله او جوټه دواړه د غوښې نه پیدا کیږی.نو د دواړو حکم به یو وی.

**تحکیم صاحب الهدایة**: صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چې دا صحیح ده.چې شك د خر دجوټې په طهوریت کې دې. د دے په طهارت کې نه دې.حضرت محمد رحمه الله هم دخر د جوټې په طهارت باندې صراحت کړې دې. دامام محمد رحمه الله نه نقل دی.چې په څلورو څیزونو کې جامے غوبه شی.نوهغه نه پلیتیږی. اوهغه څلور شیان (څیزونه ) دا دی.① دخر جوټه ② ماء مستعمل ③ د خرے شیدې .④ د ماکول اللحم ځناورو متیازې.

وَسَبَبُ الشَّكِّ تَعَارُضُ الْأَدِلَّةِ فِي إِبَاحَتِهِ وَحُرْمَتِهِ اود شك سبب د دے اباحت اوددے په حرمت کې د دلائلو تعارض دې

تشریح:- **تعارض الاحادیث في لحم الحمر**: صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چې دجوټې په طهارت کې د شك دوې (دوه) اسباب دی.یودا چې ددے په اباحت او حرمت کې دلائل مختلف دی.

**روایة طهارة لحوم الحمر**: روایت دې.چې ﴿أن غالب بن ابجر رضي الله عنه سأل رسول الله ﷺ وقال لم یبق لی مال إلا حمیرات فقال ﷺ کل من سمین مالك﴾ غالب بن ابجر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه.چې زما په مال کې صرف خرے پاتې شوی دی.نبی ﷺ ورته وفرمائیل چې ستا په مال کې کوم غټ او تازه وی.هغه خوره.دا حدیث د خر دغوښې په طهارت باندې دلالت کوی.

**روایة حرمة لحوم الحمر**: اوروایت شوې دې.چې ﴿أن رسول الله ﷺ حرم لحوم الحمر الأهلية يوم خيبر﴾ چې رسول الله ﷺ د خیبر په ورځ د خرو غوښه حرامه کړې وه.ددے نه ښکاره معلومه شوه.چې دخرو غوښه حرامه ده.

أَوِ اخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ فِي نَجَاسَتِهِ وَطَهَارَتِهِ یا ددے په پاکوالی او نه پاکوالی کې د صحابو رضي الله عنهم اختلاف دې

تشریح:- **اختلاف الصحابة في حکم الحمر**: دوهم سبب دا دې.چې د خرد جوټې په پاکوالی و نجاست کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف دې.دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه ددے نجاست منقول دې.اود حضرت ابن عباس

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في الكفاية (۱۰۲\۱) وردالمحتار(۱۶۶\۱) وتاترخانية (۳۲\۱)) والهندية (۲٤\۱) نقلا عن القول الراجح (۲٤\۱)_

ﷺ نه ددې طهارت منقول دي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دي.) أَنَّهُ نَجِسٌ چې د خر جوټه پليته ده تَرْجِيحًا لِلْحُرْمَةِ وَالنَّجَاسَةِ خكه چې حرمت او نجاست راجح دي وَالْبَغْلُ مِنْ نَسْلِ الْحِمَارِ او قچر هم د خر د نسل نه دي فَيَكُونُ بِمَنْزِلَتِهِ نو دا به هم د خر په شان وي.

**تشريح:- تائيد نجاسة سؤر الحمار** ۞ شيخ الاسلام فرمائيلي دي. چې د خر غوښه بغير د څه شك نه حرامه ده.او ددې جوټه نجسه ده. خكه چې دلته محرم او مبيح دواړه جمع شو. اوپه داسې صورت كې محرم ته په مبيح باندې ترجيح وركولې شي. لكه چې يو عادل سړي خبر دركړي. چې دا غوښه د مجوسي ذبيحه ده. اوبل كس اووائي. چې دا د مسلمان ذبيحه ده. نو دهغې خوړل حلال نه دي. دامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم يو روايت دي. چې دخر جوټه پليته ده. خكه چې حرمت او نجاست راجح دي. او قچر چونكه دخر د نسل نه دي. نو دقچر حكم به هم هغه وي. كوم چې د خر دي.

## په ماء مشكوك د اودس حكم

فَإِنْ لَمْ يَجِدْ غَيْرَهُمَا كه متوضى د دې دواړونه علاوه نورې نه موندلې يَتَوَضَّأُ بِهِمَا نوپه دې دواړو دې اودس اوكړي وَيَتَيَمَّمُ او تيمم دې اوكړي وَيَجُوزُ أَيُّهُمَا قَدَّمَ او جائز ده. چې په دې دواړو كې كوم يو وړاندې كړي

**حل اللغة** ① **لم يجد، وجد وجدانًا** (ض): موندل ② **يتوضا، توضا توضاً**: اودس كول ③ **يتيمم، تيمم تيممًا**: تيمم كول ④ **يجوز، جاز جوازًا** (ن): جائز كيدل

**تشريح:- المذهبان في تقديم الوضوء والتيمم بالماء المشكوك** ۞ مسئله دا ده. كه متوضى سره د آب مشكوك نه علاوه نورې اوبه نه وي. نو حكم دا دي. چې په آب مشكوك دې اودس اوكړي. او تيمم دې اوكړي. او په دواړو كې چې ئې كوم يو خوښ وي. مقدم دې كړي. او چې كوم ئې خوښ وي. موخر دې كړي.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمايي لَا يَجُوزُ چې جائز نه ده إِلَّا أَنْ يُقَدِّمَ الْوُضُوءَ مګر دا چې اودس وړاندې كړي لِأَنَّهُ مَاءٌ وَاجِبُ الِاسْتِعْمَالِ خكه چې دا واجب الاستعمال اوبه دي فَأَشْبَهَ الْمَاءَ الْمُطْلَقَ نو د ماء مطلق سره مشابه شوې

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائي. چې صرف اودس به وړاندې كوي.

**دليله** ۞ دامام زفر رحمه الله دليل دا دي. چې آب مشكوك واجب الاستعمال دي. نو دا د ماء مطلق په شان شوې.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دي أَنَّ الْمُطَهِّرَ أَحَدُهُمَا چې په دې دواړو كې يو پاكونكونې دي فَيُفِيدُ الْجَمْعُ نو دا به مفيد د جمعې وي دُونَ التَّرْتِيبِ د ترتيب نه

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** رحمهم الله ۞ او زموږ دليل دا دي. چې د ماء مشكوك نه اودس كول او تيمم كول په دواړو كې يو شى پاكونكې دي. يعنى په دواړو كې په يو باندې طهارت راځي. نو كه په آب مشكوك باندې طهارت حاصل شو. نو د خاورې په استعمال كې څه فائده نشته. كه وړاندې ئې كړي او كه روستو. او كه پاكونكې خاوره وي. نو په تقديم او تاخير كې څه نقصان نشته. حاصل دا چې كله په دې دواړو كې يو مطهر دي. نو دواړه جمع كول مفيد دي. ترتيب مفيد نه دي.

وَسُؤْرُ الْفَرَسِ طَاهِرٌ عِنْدَهُمَا او د اس جوټه د صاحبينو رحمهما الله په نيز پاكه ده لِأَنَّ لَحْمَهُ مَأْكُولٌ خكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د اس غوښه خوړلې شي

**تشريح:- حكم سؤر الفرس عند الصاحبين** ۞ رحمهما الله او اس كه نر وي او كه ښځه. ددې جوټه د صاحبينو په نيز پاكه ده.



وَكَذَا عِنْدَهُ فِي الصَّحِيحِ او دغه ډول دامام صاحب په نيز هم په صحيح روايت كې دى لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِإِظْهَارِ شَرَفِهِ خكه چې ددې د غوښې كراهت د دې د شرافت ښكاره كاوه لپاره دي.

**الروايات الاربعة عن ابى حنيفة في سؤر الفرس** ۞ او دامام اعظم رحمه الله نه څلور روايات دى. اول دا چې ددې نه علاوه په نورو اوبو اودس كول غوره دى. دوهم دا چې ددې د غوښې په شير ددې جوټه هم مكروه ده. دريم دا چې د خر دجوټې په شير مشكوكه ده. څلورم دا چې پاكه ده. او دا صحيح مذهب دي.

**السوال على رواية الطهارة** ۞ پاته شوه دا خبره چې د امام صاحب رحمه الله په نيز د اس غوښه مكروه ده. نو د دې جوټه څنګه پاكه كيدې شي.

**الجواب** ۞ نو ددې ځواب دا دي. چې د اس د غوښې كراهت دهغوى په نيز د كرامت او عزت دوجې دي. خكه چې دا د جهاد آله ده. د اهانت او نجاست دوجې نه دي. نوځكه دده د غوښې كراهت د ده په جوټه نه اثرانداز كيږي. (لكه څنګه چې د بنى آدم څرمن دده د كرامت د وجې ممنوع الانتفاع ده. حالانكه د بنى آدم جوټه پاكه ده. دغه ډول دلته كې هم.)

## په نبيذ تمر د اودس حكم

فَإِنْ لَمْ يَجِدْ كه متوضى اوبه نه موندلې إِلَّا نَبِيذَ التَّمْرِ سوا د نبيذ تمر نه قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي يَتَوَضَّأُ بِهِ چې په دې باندې دې اودس اوكړي وَلَا يَتَيَمَّمُ او تيمم دې نه كوي

**حل اللغة** ① **توضا، توضأ**: اودس كول.

**تشريح:- وجوب الوضوء بنبيذ التمر** ۞ مسئله دا ده. كه دنبيذ تمر نه سوا نورې اوبه نه وي. نو دامام ابوحنيفه رحمه الله نه په دې اړه كې درې روايات منقول دى. په جامع صغير او زيادات كې دى. چې اودس دې اوكړي. او تيمم دې نه كوي.

لِحَدِيثِ لَيْلَةِ الْجِنِّ دليل حديث د شب جن دي فَإِنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تَوَضَّأَ بِهِ حِينَ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ (1) چې نبى ﷺ اوبه اونه موندلې نوپه نبيذ تمر ئې اودس اوكړلو

**تشريح:- دليله** ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله د اولنى روايت وجه حديث د شب جن دي. هغه دا دي. دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي. چې يوه شپه نبى ﷺ خطبه وركړله. اوبيا ئې اوفرمائيل: ما سره دې د تلو لپاره هغه كس اودريږي. چې دهغه په زړه كې د اورى د دانې هومره تكبر نه وي. نو ابن مسعود رضي الله عنه ودريدلو. نبى ﷺ هغه ځان سره بوتلو. حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي. چې موږ د مكې نه بهر ته اووتلو. نو نبى ﷺ زما نه شاو خوا يوه كرښه راښكله. او ماته ئې اوفرمائيل: د دې كرښې نه بهرته مه راوځه. څكه كه رابهر شوې. نود قيامته پورې به ما سره ملاو نشې. بيا نبى ﷺ پيريانو ته د ايمان دعوت وركولو. او هغوى ته ئې قرآن لوستلو. تردې چې سهار شو. بيا نبى ﷺ د سهار راختونه روسته واروسته تشريف راوړلو. او ماته ئې اوفرمائيل: څه پاتې اوبه شته چې اودس پرې اوكړم؟ ما ورته عرض اوكړلو. چې نه البته په لوښى كې نبيذ تمر دى. نو نبى ﷺ اوفرمائيل: كهجورې پاكې دى. او پاكونكې اوبه دى. بيا نبى ﷺ هغه واخستلې. اودس ئې اوكړلو. اولمونځ ئې پرې ادا كړلو. د دې حديث نه معلومه شوه. كه د نبيذ تمرنه سوا نورې اوبه نه وى. نوپه دې باندې اودس كولې شى. او دتيمم كاوه اړتيا نشته. لكه چې د الله ﷻ پاك پيغمبر ﷺ اوكړلو.

---

1) من حديث ابن مسعود رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۴۲ والترمذى فى الطهارة باب ۶۵ وابن ماجه فى الطهارة باب ۳۷

**وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او امام ابویوسف رحمه الله فرمانی) **يَتَيَمَّمُ** چې تیمم دے اوکړی **وَلَايَتَوَضَّأْبِهِ** (۱) او اودس دے نه کوی **وَهُوَرِوَايَةٌعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ** رحمه الله اوهم دا یو روایت دې.د ابوحنیفه رحمه الله نه **وَبِهِقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله اوهم ددے قائل امام شافعی رحمه الله دي

**تشريح:- وجوب التيمم دون الوضوء بنبيذ التمر**۞ نوح بن ابی مریم اوحسن بن زیاد رحمه الله روایت کړې دي.چې تیمم دے اوکړی.او په نبیذ تمر دے اودس نه کوی.هم دا قول امام ابو یوسف رحمه الله اخستے دي.اوهم دا قول دامام شافعی رحمه الله دي.

**عَمَلًابِآيَةِ التَّيَمُّمِ** په آیت کریمه باندې د عمل کولو د امله **لِأَنَّهَاأَقْوىٰ** ځکه چې آیت زیات قوی دي **أَوْهُوَمَنْسُوْخٌبِهَا** یا حدیث مذکور په دے آیت سره منسوخ دي **لِأَنَّهَامَدَنِيَّةٌ** ځکه چې آیت مدنی دي **وَلَيْلَةُ الْجِنِّ كَانَتْ مَكِّيَّةً** اود شب جن واقعه مکی ده

**تشريح:- دلائل عدم جواز الوضوء بالنبيذ**۞ ① د حضرت امام ابویوسف رحمه الله او امام شافعی رحمه الله د قول وجه دا ده.چې د تیمم په آیت ﴿ فَلَمْ تَجِدُواْ مَاء فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ کي د تطهیر حکم د مطلق اوبو د عدم وجود په وخت کي تیمم ته منتقل شوي دي.او نبیذ تمر مطلق اوبه نه دی.نودا حدیث به د آیت په مقابله کي مردود وی.ځکه چې آیت د حدیث په مقابله کي قوی دې.② یا به داسې اووئیلی شی.چې حدیث د شب جن په آیت سره منسوخ دي.ځکه چې آیت د تیمم په مدینه منوره کي د هجرت نه روستـه نازل شوې وو.او واقعه د شب جن په مکه کي پیښه شوې وه. او دا خبره معلومه ده.چې روستنے حکم د سابقه حکم لپاره ناسخ وی.نو په نبیذ تمر باندې د اودس حکم په آیت د تیمم سره منسوخ شو.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمايي **يَتَوَضَّأُبِهِ** چې په نبیذ تمر به اودس هم کوی **وَيَتَيَمَّمُ** او تیمم به هم کوی **لِأَنَّ فِي الْحَدِيْثِ اضْطِرَابًا** ځکه چې په حدیث کي اضطراب دي **وَفِي التَّارِيْخِ جَهَالَةٌ** اوپه تاریخ کي جهالت دي. **فَوَجَبَ الْجَمْعُ احْتِيَاطًا** نو د احتیاط د وجې د دواړو جمع کول واجب شو

**تشريح:- الجمع بينهما عند محمد** رحمه الله ۞ اوامام محمد رحمه الله فرمائی.چې په نبیذ تمر باندې دے اودس هم اوکړی اوتیمم دے هم اوکړی.

**تشريح:- دلائله** ۞ ① دامام محمد رحمه الله دلیل دا دي.چې حدیث د شب جن مضطرب دي.د ځینې روایاتو نه معلومیږی .چې حضرت عبدالله بن مسعود رحمه الله د نبی ﷺ سره په شب جن کي موجود وو.او ځینې روایات دلالت کوی. چې ابن مسعود رضي الله عنه د نبی ﷺ سره په دے شپه کي نه وو.② دغه ډول د شب جن په تاریخ کي جهالت دي. صحیح معلومه نه ده.چې دا واقعه کله پیښه شوې وه.نواحتیاط په دے کي دي.چې په دواړو باندې عمل اوکړې شی.یعنی په نبیذ تمرباندې اودس هم اوشی.اوتیمم هم اوکړې شی.

**قُلْنَا** مونږ ځواب ورکوو **لَيْلَةُ الْجِنِّ كَانَتْ غَيْرَوَاحِدَةٍ** چې شب جن څو کرته وه **فَلَايَصِحُّ دَعْوَى النَّسْخِ** نو د نسخے دعوی کول ټیک نه ده

**حل اللغة**: ① فلايصح، صح صحيحا(ض): درست کیدل

**تشريح:- الاجوبة من استدلال ابي يوسف** رحمه الله ۞ ① دامام ابویوسف رحمه الله داستدلال نه ځواب دا دي. چې شب جن یو ځل نه بلکه څو خله واقع شوې وه.صاحب د عنایه د "تیسیر" په حواله سره لیکلی دی.چې پیریان دوې (دوه) خله نبی ﷺ ته راغلی وو. ممکن ده.چې دوهم ځل په مدینه منوره کي د آیت تیمم نه روسته راغلی وی.

(۱) القول الراجح هو قول ابی یوسف رحمه الله کذا فی ردالمحتار(۱۶۷/۱) والهندیة (۲۲/۱) نقلا عن القول الراجح (۲۶/۱)



**وقوع واقعة الجن ست مرات**۞ دغه ډول صاحب دفتح القدير لیکلی دی.چې عام احادیث کوم چې ددے په اره کي وراد شوی دی.په هغے کي د شپې څله پیښیدو ذکر دے یوځل په بقیع الغرقد کي دا واقعه پیښه شوې وه.په دے ځل حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د نبی ﷺ سره وو.او دوې (دوه) خله په مکه معظمه کي ځلورم ځل د مدینې منورې نه بهر، او په دے موقع حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه د نبی ﷺ سره وو.نود شب جن واقعه څو خله پیښه شوې وه.کیدې شی.چې په کومه واقعه کي په نبیذ تمر باندې د اودس کاوه ذکر راغلے دې.هغه په مدینه منوره کي د آیت تیمم نه روسته واقع شوې وی.نوپه داسې صورت کي د تیمم په آیت ددے حدیث د منسوخیت دعوی څنګه صحیح کیدې شی.

**وَالْحَدِيْثُ مَشْهُوْرٌ** او مشهور حدیث دي **عَمِلَتْ بِهِ الصَّحَابَةُ** صحابه کرامو رضي الله عنهم په دے عمل کړې دي **وَبِمِثْلِهِ يُزَادُعَلَى الْكِتَابِ** اوپه داسې مشهورحدیث سره په کتاب الله زیادت جائزدي

**تشريح:-** دصاحب هدیه رحمه الله د اړخه دوهم ځواب دا دي.چې دا حدیث مشهور دي.اود صحابه کرامو رضي الله عنهم دیوے دلے په دے باندې عمل پاتې شوې دے

**جواز الوضوء بالنبيذ عند علي** رضي الله عنه ۞ د حضرت علی رضي الله عنه نه روایت دي.فرمائی.چې ﴿الوضوء بنبيذ التمر وضوء من لم يجد الماء﴾ یعنی په نبیذ تمر به اودس هغه کس کوی.چې اوبه نه مومی.اوپه مختلفواسنادو سره د حضرت علی رضي الله عنه نه نقل دی.چې ﴿انه كان لا يرى بأسا بالوضوء بنبيذ التمر حال عدم الماء﴾ یعنی حضرت علی رضي الله عنه د اوبو د نشتوالی په صورت کي په نبیذ تمر باندې په اودس کاوه کي څه باك نه ګنړلو.

**جواز الوضوء بالنبيذ عند ابن عباس** رضي الله عنه ۞ اوعکرمه د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کوی.چې ﴿انه قال توضؤا بنبيذ التمر ولا توضؤا باللبن﴾ یعنی ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلی دی.چې تاسو په نبیذ تمر باندې اودس کوئ. اوپه پیو باندې اودس مه کوئ.بهر حال دا حدیث مشهور هم دي.او اکابرین صحابو رضي الله عنهم معمول بها هم پاتې شوې دي.اوپه کتاب الله باندې په حدیث مشهور باندې زیادت کولې شی.

**وَأَمَّاالْإِغْتِسَالُ بِهِ** باقی پاتې شو په نبیذ تمر باندې غسل کول **فَقَدْقِيْلَ يَجُوْزُعِنْدَهُ اعْتِبَارًا بِالْوُضُوْءِ** نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اودس باندې دقیاس کاوه د وجې جائز دے **وَقِيْلَ لَايَجُوْزُلِأَنَّ فَوْقَهُ** اووئیلی شوی دی.چې غسل جائز نه دي.

**حل اللغة**: ① اغتسال: غسل کول ② یجوز، جاز جوازا: روا کیدل

**تشريح:- الروايتان في الغسل بنبيذ التمر**۞ پاته شوه دا خبره چې دابوحنیفه رحمه الله په نزد په نبیذ تمر باندې غسل جائز دے که نه؟ نو په دے اړه کي د احنافو عالمانو رحمهم الله اختلاف دي.① ځینې عالمان فرمائی.چې په اودس باندې دقیاس د وجې د امام صاحب په نیز پرے غسل جائز دي.② او دوهم قول دا دي.چې په نبیذ تمر باندې غسل کول جائز نه دي.ځکه چې د جنابت حدث د اودس د حدث نه لویه دي. نو ځکه اودس په اودس باندې د غسل قیاس نشی کیدې.

بلکه دا چې په نبیذ تمر باندې اودس کول خلاف قیاس ثابت دي.ځکه چې نبیذ تمر اوبه مطلق نه دی.چې اودس پرے جائز شی.خوچونکه په حدیث کي پرے د اودس جواز منقول دي.اودا د اصولو فقه مسئله ده.چې دکوم ځیز حکم ثابت شی خلاف قیاس نوهغه حکم به مختص وی په خپل مورد پورې نو اوس دلته کي په نبیذ تمر باندې اودس ثابت شوې دے خلاف قیاس.نو خاص به وی په اودس پورې او غسل ته به تجاوز نه کوی.اوداسې نه ده.چې مونږ دا اووایو.چې غسل پرے هم کیږی.لکه څنګه چې په لمانځه کي په خندائې قهقهه باندې داودس ماتیدل ثابت دی خلاف قیاس.نو دابه خاص وی صرف په لمانځه پورې د لمانځه نه بهر ته به تجاوز نه کوی.چې د لمانځه نه بهر هم په خندا باندې د اودس ماتیدو حکم ورکړې شی.شاه فیصل عفی عنه

## د نبيذ تمر تعريف

وَالنَّبِيذُ الْمُخْتَلَفُ فِيهِ او نبيذ چې په کوم کې اختلاف دې. أَنْ يَكُونَ حُلْوًا رَقِيقًا دا دے چې خوږ او نرم وی يَسِيلُ عَلَى الْأَعْضَاءِ كَالْمَاءِ چې په اندامونو باندې داوبو په شير بهيږی

حل اللغة* ① حلوا: خوږ ② رقيق: نرې ③ يسيل، سال سيلانا (ض): بهيدل

تشريح:- تعريف النبيذ المختلف فيه ۞ په دے عبارت کې د نبيذ په کوم کې چې د امام صاحب رحمه الله او صاحبين رحمهما الله اختلاف دې. د هغې حقيقت بيان شوې دې. امام محمد رحمه الله په نوادر کې ذکر کړی دی. چې په کوم نبيذ د اودس په جواز او عدم جواز کې د ائمه ثلاثه اختلاف دې. هغه دا دې. چې په اوبو کې کهجورے واچولی شی. تردې چې خوږے او نرئ شی. او په اندامونو لکه د اوبو په شير بهيږی. چې نه ټينګ وی او نه نشه راوستونکې وی.

وَمَا اشْتَدَّ مِنْهَا اوچې کوم نبيذ داسې وی. چې ټينګ وی صَارَ حَرَامًا نو هغه حرام دې لَا يَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ په هغې باندې اودس جائز نه دې

تشريح:- مال يجوز به الوضوء من النبيذ ۞ اوکه ټينګ او تريخ وی. نوپه دے په اجماع سره اودس کول جائز نه دی. ځکه چې دا نشه راوستونکې او حرام دې.

وَإِنْ غَيَّرَتْهُ النَّارُ اوکه نبيذ په اور باندې بدل شوې وی فَمَا دَامَ حُلْوًا رَقِيقًا نوچې تر څو پورې خوږ وی فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ هغه مختلف فيه دې

حل اللغة* ① غيرته، غير تغيرا: بدل ورکول، بدلول

تشريح:- حكم النبيذ الذى اشتد بحرالنار والخلاف فيه ۞ اوکه دا په اور سره ګرم کړې شوې وی. نو چې تر څو پورې هغه خوږے او نرئ وی. او په اندامونو باندې لکه د اوبو په شير بهيږی. نوهغه هم د امام صاحب او صاحبين رحمهم الله په مينځ کې مختلف فيه دې.

وَإِنْ اشْتَدَّ اوکه ټينګ والے ئې زيات شو فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله يَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په هغې باندې اودس جائز دې لِأَنَّهُ يَحِلُّ شُرْبُهُ عِنْدَهُ ځکه چې د هغوی په نيز ددے څښل حلال دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله لَا يَتَوَضَّأُ بِهِ او د امام محمد رحمه الله په نيز ددے نه اودس کول جائز نه دې لِحُرْمَةِ شُرْبِهِ عِنْدَهُ ځکه د هغوی په نيز د دے څښل حرام دی

حل اللغة* ① شرب: څښل

تشريح:- که په جوش کاوه سره ټينګ شوې وی. نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د دے نه اودس کول جائز دې. ځکه چې ددے څښل حلال دی. اودامام محمد رحمه الله په نيز چونکه د دے څښل حرام دی. نوځکه پرے اودس کول هم جائز نه دی.

وَلَا يَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْأَنْبِذَةِ. او د نبيذ تمرنه علاوه په نورو نبيذو اودس کول جائز نه دې. جَرْيًا عَلَى قَضِيَّةِ الْقِيَاسِ د مقتضا د قياس د وجې

حل اللغة* ① سواه: علاوه

تشريح:- عدم جواز الوضوء بالنبيذ غير التمر ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې دنبيذ تمر نه علاوه په نورو نبيذونو باندې اودس کول جائزنه دې. لکه د کشمس اوانزر نبيذ شو.

دليله ۞ دليل دا دې. چې په نبيذ تمر اودس کول خلاف قياس د حديث نه ثابت شوې دې. نونور نبيذونه به د قياس مطابق پاتې کيږی. يعنی په هغې باندې به اودس جائز نه وی.

شرطية النية في الوضوء بنبيذ التمر ۞ امام قدوری په شرح د قدوری کې د احنافو عالمانو رحمهم الله نه نقل کړی دی. چې په نبيذ تمر باندې د اودس کاوه لپاره نيت شرط دې. لکه څنګه چې د تيمم لپاره شرط دې.



دليله ۞ دليل دا دې. چې نبيذ تمر د اوبو نه بدل دې. هم دا وجه ده. چې مطلق اوبه وی. نوپه نبيذ تمر باندې اودس کول جائز نه دې. اوکه په نبيذ ئې اودس اوکړلو. او بيا ئې ماء مطلق اوموندلې. نوورانديني اودس باطل شو. لکه څنګه چې د اوبو پيدا کيدو په صورت کې تيمم ماتيږی.

# باب التيمم

(دا) باب د تيمم (په بيان کې) دې.

تشريح:- الوجهان لتاخير التيمم عن الوضوء ۞ ① چونکه په اوبو باندې طهارت حاصلول اصل دې. او په خاوره باندې طهارت حاصلول ددے خليفه دې. اوخليفه د اصل نه روسته وی. نوځکه علامه مرغينانی دتيمم باب داودس نه روسته ذکر کړلو. ② ددے ترتيب دويمه وجه د قرآن کريم اتباع ده. ځکه چې د قرآن کريم په آيت ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ إلخ﴾ کې اودس غسل او تيمم په دے ترتيب سره ذکر شوی دی.

تعريف التيمم لغةً وشرعاً ۞ دتيمم لغوی معنی مطلقاً اراده کول دی. اود حج لغوی معنی د څه معظم او لوئې شی ارده کول. او د شريعت په اصطلاح کې د تيمم معنی ده. د طهارت حاصلولو لپاره د پاکې خاورے اراده کول. حضرت شيخ الادب په حاشيه دشرح نقايه کې د علامه ابن الهمام رحمه الله په حوالے سره ذکر کړی دی. چې د تيمم شرعی تعريف د مخ او دواړو لاسونوپه پاکه خاوره باندې مسح کول دی.

تاريخ اية التيمم ومقامها ۞ اودحضرت عائشے رضی الله عنها قصه چې په هغې کې د تيمم آيت نازل شوې وو. ددے په ځائې اووخت کې اختلاف دې. د وخت په اړه کې درے اقوال دی. ① څلورمه هجری ② پنځمه هجری ③ شپږمه هجری او د ځائې په اړه کې دوې (دوه) اقوال دی. ① غزوه مريسيع چې هغې ته غزوه بنی مصطلق هم وائی. ② غزوه ذات الرقاع

واقعة نزول اية التيمم ۞ دحضرت عائشے رضی الله عنها دهار ورکيدو قصه په ګڼرو احاديثو کې په مختلفوالفاظو سره راغلے ده. د هغې بيان دا دې چې دحضرت عائشے رضی الله عنها د نبی ﷺ دبی‌بی نه روايت دې. دوی بيان کوی. چې يوځل زه د رسول الله ﷺ سره په سفرباندې تلے وم. کله چې موږ مقام بيدا ء يا مقام ذات الجيش ته اورسيدو. نوزما هار ورك شو. رسول الله ﷺ هم په هغه ځائې کې ايسار شو. او خلګو دهار لټون کولو. اودلته کې اوبه نه وې. اودوی سره هم اوبه نۀ وې. څه خلګ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورغلل. او ورته ئې اوونيل: دا عجيبه خبره اوشوه. چې د حضرت عائشے رضی الله عنها د وجې نبی ﷺ او نور خلګ ايسار شو. نۀ خو دوی د اوبو سره دی. او نۀ ورسره اوبه شته. په دغه وخت کې رسول الله ﷺ زما په ورون باندې سرمبارك ايخودے وو. او اوده وو. په دے کې حضرت ابوبکر رضی الله عنه راغلو. او وئيل ئې اے عائشے تا رسول الله ﷺ او خلګ په داسې ځائې کې ايسار کړل. چې نه دلته اوبه شته. او نه دوی سره اوبه شته. اوهغه ماته سختې خبرے اوکړې. اوچې څه ئې خوښ وو. هغه ئې راته اووئيل: او هغه ماته په تشی کې ټونګے راکولې. خو زه ددے نه خوزيدم. چې د رسول الله ﷺ سر زما په زنګون باندې پروت وو. آخردا چې سهار شو. نورسول الله ﷺ رابيدار شو. خواوبه نه وې. په هغه وخت کې الله ﷻ دا آيت (يعنی د تيمم آيت) نازل کړلو. حضرت سعيد بن حضير رضی الله عنه اوفرمائيل: اے دابوبکر اولاده دا ستاسو لومړنۍ بزرګی نه ده. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی. کله چې زما اوښ ودريدلو. نو دهغے دلاندې هار پيدا شو. او ماته ملاؤ شو.

## دتيمم د جواز شرطونه

وَمَنْ لَمْ يَجِدْ مَاءً اوڅوك چې اوبه نه مومی وَهُوَ مُسَافِرٌ خودا سړې مسافر وی أَوْ خَارِجَ الْمِصْرِ يا د ښار نه بهر وی بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمِصْرِ نَحْوُ مِيلٍ أَوْ أَكْثَرَ او د ده اود ښار په مينځ کې يو ميل يا زياته فاصله وی يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيدِ نو(د داسې کس لپاره جائز ده. چه) په پاکه خاوره تيمم اوکړی

**حل اللغة** ① **لم يجد، وجد وجدانًا(ض)**: موندل ② **مصر**: ښار ③ **صعيد**: پاکه خاوره

**تشريح:- جوازالتيمم عند فقد الماء** ۞ صورت د مسئلې دا دې چې د کوم سړي سره دومره اوبه نه وي چې د حدث د لرې کاوه لپاره کافي وي. په داسې حال کې چې دے مسافر وي. يا مسافر نه وي. ليکن د ښار نه بهر وي. او ده او د ښار په مينځ کې د يو ميل فاصله وي. يا د يوميل نه زياته وي. نو د داسې کس لپاره جائز دي. چې هغه په پاکه خاوره باندې تيمم اوکړي.

| |
|---|
| **قَوْلُهُ تَعَالَى** ځکه چې الله تعالی فرمائيلي دي ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ کله چې تاسو اوبه نه مومئ. نو تيمم کوئ په خاوره پاکه باندې |

**تشريح:- دلائله** ۞ ① ددے دوي (دوه) دليلونه دي. اول دالله ﷻ قول چې ( فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا ) يعنی که اوبه موجود نه وي. نو په پاکه خاوره تيمم اوکړئ.

| |
|---|
| **وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او نبی ﷺ فرمائيلي دي. **التُّرَابُ طَهُورُ الْمُسْلِمِ** د مسلمان لپاره خاوره پاکونکې ده **وَلَوْ إِلَى عَشْرِ حِجَجٍ** اګرچې لس کاله پورې وی **مَا لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ**[1] چې اوبه نه مومي |

**حل اللغة** ① **تراب**: خاوره ② **حجج**: کال

**تشريح:-** دوهم دليل د نبی ﷺ ارشاد دې چې خاوره دمسلمان لپاره پاکوالے دې. اګرکه لس کالو پورې داوبو په استعمال قادر نه وي. (ددے حديث شان ورود دا دې..) دحضرت ابوذر غفاري ﷺ نه روايت دې. چې دوی به په سفر باندې تلو. اوخپل اهل ته به (د سفر په مهال کښے) ورتلو. اوبه هغه به جنابت راتلو. (يعنی د خپلے بی بی سره د صحبت کاوه نه روسته به جنب شو. او اوبه به نۀ وې. ځکه چې سفر به وو.) نوهغوی نبی ﷺ ته خبر ورکړلو. نبی ﷺ ورته اوفرمائيل: ﴿الصعيدالطيب طهورالمسلم ولو إلى عشر سنين مالم يجد الماء فـإذا وجـدا لمـاء فليمسه بشره﴾ يعنی پاکه مځکه د مسلمان لپاره پاکونکې ده. اګر چې لسو کالوپورې اوبه نه مومي. بيا چې کله اوبه اومومي. نوپه خپل ظاهري بدن دے اوبيوي

| |
|---|
| **وَالْمِيلُ هُوَ الْمُخْتَارُ فِي الْمِقْدَارِ** اويوميل دمقدار په حق کې مختار دې **لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُ الْحَرَجُ بِدُخُولِ الْمِصْرِ** ځکه چې په دې کې ښار تلو ته تکليف واقع کيږي |

**حل اللغة** ① **يلحقه، لحق لحوقًا(س)**: ملاويدل، لاحق کيدل

**تشريح:- ترجيح القول** ۞ صاحب دهدايه فرمائي. چې ديوميل قول هم دا د مسافه په مقدارکې مختار دې. ځکه چې دښار نه يو ميل لرې تلو اوبيا واروسته راتلو کې ده ته تکليف ملاويږي. اودتيمم مشروعيت خود حرج لرې کاوه لپاره دې. الله تعالی فرمائي. چې ﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ﴾

**قدرالميل** ۞ صاحب دعنايه ليکلي دي. چې يو ميل درے فرسخه وي. او يو فرسخ دولس زره قدمونه وي. او ابن شجاع ونيلي دي. چې ميل د درے نيم زره ګزو نه تر څلور زره ګزو پورې وي.

مناسب راته ښکاري. چې ددے مسئلے لپاره دخپل عربئ کتاب ،،سنن الصلاة،، نه نقلي دليل نقل کړم. په دے کتاب کې احقر داحنافو د طهارت او صلاة دهرے مسئلې لپاره حديث ذکر کړې دې. او دا کتاب ئې د حديثو په ډول ليکلے دې. او د هرحديث تخريج او درجه د صحت ئې بيان کړې ده. الله دے ورته مقبوليت ورکړی. که صلاة متعلق د احنافو مستدلات په اختصار اوجامعيت سره ګورې. چې ددے کتاب نه غافله نه شے!!!!

حَدَّثَنِي يَحْيَى عَنْ مَالِك عَنْ نَافِعٍ أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ مِنْ الْجُرُفِ حَتَّى إِذَا كَانَا بِالْمِرْبَدِ نَزَلَ عَبْدُ اللَّـهِ فَتَيَمَّمَ صَعِيدًا طَيِّبًا فَمَسَحَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثُمَّ صَلَّى

**الاستدلال**: قال العينى قال الشافعى الجرف قريب من المدينة وزعم ابن الزبير ﷺ أن الجرف على ميل من المدينة وقال ابن إسحاق على فرسخ وهناك كان المسلمون يعسكرون إذا أرادوا الغزو[1]



| |
|---|
| **وَالْمَاءُ مَعْدُومٌ حَقِيقَةً** او اوبه په حقيقت کې نشته |

**تشريح:- السوال** ۞ دلته اعتراض دا دې چې آيت مطلق دې. په دے کې د مسافه تعين نشته. اوتاسو ور سره د يو ميل قيد اولګولو. نودا د کتاب اطلاق په خپله رائې سره مقيد کول دی. حالانکه دا جائز نه ده.

**الجواب** ۞ ځواب دا دې. چې په آيت کې دا ذکر دی. چې اوبه په حقيقت کې نه وي. نوتيمم جائز دې. ليکن موږ ته په يقين سره دا خبره معلومه ده. چې اوبه نه وي. ليکن بغير دحرج نه د هغے په استعمال باندې قدرت وي. مثلا د دروازے سره د سړي سره اوبه نشته. ليکن دننه په کور کې شته. نو دده تيمم جائز نه دې. تردې چې د سل پنځوس قدمونو پورې که اوبه وي. نوتيمم جائز نه دې بلکه پکار دا ده. چې دومره لرې وي. چې هلته په تلو کې حرج وي. نوتيمم به جائز وي. اواوس په حقيقت کې اوبه نشته. نو ددے مسافه اندازه به د مختار مذهب په بناء يو ميل وي.

| |
|---|
| **وَالْمُعْتَبَرُ الْمَسَافَةُ** او معتبر مسافه دې **دُونَ خَوْفِ الْفَوْتِ** نه چې (مونځ) د فوت کيدو ويره **لِأَنَّ التَّفْرِيطَ يَأْتِي مِنْ قِبَلِهِ** ځکه چې بې غوری (کوتاهي) د ده د اړخه ده. |

**تشريح:- رد قول زفر** رحمه الله ۞ امام زفر رحمه الله فرمائي. که د لمونځ دفوت کيدوويره وي. نو تيمم جائزدې. اګرچې اوبه د يو ميل نه کمے لرې وي. علامه مرغيناني دا قول رد کړې دې. او فرمائي. چې اعتبار مسافه لره دې. د لمونځ فوت کيدو لره نه دې. ځکه چې دومره په وخت کې تنګي راځي. نودا د ده د کوتاهئ دوجې راغلے ده. نو چې اوبۀ نزدے وي. په دے صورت کې به معذور نه وي.

### د مرض د وجې د تيمم اباحت

| |
|---|
| **وَلَوْ كَانَ يَجِدُ الْمَاءَ** اوکه ده سره اوبه وي **إِلَّا أَنَّهُ مَرِيضٌ** ليکن بيمار وي **يَخَافُ** او ده سره ويره وي **إِنِ اسْتَعْمَلَ الْمَاءَ** که اوبه استعمال کړي **اشْتَدَّ مَرَضُهُ** نومرض ئې زياتيږي **يَتَيَمَّمُ** نوهغه دے تيمم کوي |

**حل اللغة** ① **يجد، وجد وجدانًا(ض)**: موندل ② **مريض**: ناجوړه ③ **فخاف، خاف خوفًا(س)**: ويريدل ④ **اسعمل استعمالاً**: استعمالول

**تشريح:- جواز التيمم عند خوف المرض** ۞ مسئله دا ده. که د يو کس سره اوبه موجود وي. ليکن هغه ناجوړه وي. او د اوبو په استعمال د مرض زياتيدو ويره وي. يا د شفا په حاصليدو کې د تاخير امکان وي. نو په داسې صورت کې د داسې کس لپاره تيمم کول جائز دې.

| |
|---|
| **لِمَا تَلَوْنَا** دهغه دليل دوجې کوم چې موږ اولوستلو **وَلِأَنَّ الضَّرَرَ فِي زِيَادَةِ الْمَرَضِ فَوْقَ الضَّرَرِ** اوځکه چې د بيمارئ د زياتيدو ضرر زيات دے **فِي زِيَادَةِ ثَمَنِ الْمَاءِ** اوبو د قيمت د زياتوالي دضرر نه **وَذَلِكَ يُبِيحُ التَّيَمُّمَ** اوهغه تيمم مباح کوي **فَهَذَا أَوْلَى** نودا خوبه ئې په طريقه اولی سره مباح کوي |

**حل اللغة** ① **ضرر**: نقصان ② **ثمن**: قيمت

**تشريح:- دليله الاول** ۞ دليل دالله ﷻ قول دې. ﴿وإن كنتم مرضى أو على سفر الآية﴾

**دليله الثاني العقلي القياسي** ۞ دوهم دليل دا دې. که يو کس ناجوړه خونه وي. ليکن اوبه په پيسو خرڅيږي. اود داوبو خرڅونکې د ثمن مثل نه زياتې پيسے غواړي. نوپه داسې صورت کې د زياتي يسود ضرر لرې کاوه لپاره ده لپاره تيمم جائز دې. اود بيمارئ د زيادت نقصان د قيمت د زيادت د نقصان نه زيات

[1]) كذا فى تحقيق اعلاء السنن ﴿موطاء مالک رحمه الله فى الطهارة باب العمل فى الطهارة رقم ١١١ رجاله ثقات﴾ (سنن الصلاة كتاب التيمم رقم الحديث ١٥٩)

دي.نوهر کله چې د معمولی نقصان لرې کاوه لپاره د تیمم اجازت ورکړې شوې دي.نود زیات نقصان لرې کاوه لپاره به په طریق اولی سره تیمم جائز وی

وَلَافَرْقَ اوڅه توپیر نشته بَیْنَ أَنْ یَشْتَدَّ مَرَضُهُ بِالتَّحَرُّكِ چې دهغه مرض په خوزیدو سره زیاتیږی أَوْبِالْإِسْتِعْمَالِ اوکه داوبو په استعمال سره

**تشریح:-** صاحب دهدایه فرمائی.چې په مرض کي زیادت که د بدن په حرکت سره وی. اوکه د اوبو په استعمال سره وی.دواړه صورتونه برابر دی.یعنی په دواړو صورتونو کي تیمم جائز دي.

وَاعْتَبَرَ الشَّافِعِيُّ ؒ خَوْفَ التَّلَفِ او امام شافعی ؒ د هلاکت د ویرے اعتبار کړې دي

**تشریح:- خلاف الشافعی ؒ** ۞ حضرت امام شافعی ؒ فرمائی.چې تیمم په هغه وخت کي جائز دي.چې داوبو په استعمال سره د نفس یا د یو اندام د ضائع کیدو غالب گمان وی.

وَهُوَمَرْدُوْدٌبِظَاهِرِالنَّصِّ او دا د نص د ظاهر د وجې مردود دي

**تشریح:- تضعیف موقف الشافعی ؒ** ۞ لیکن د امام شافعی ؒ مذهب د نص د ظاهرنه په ﴿وإن كنتم مرضى أو على سفر الآية﴾ د وجې مردود دي.ځکه چې اطلاق دآیت د هر مریض لپاره د تیمم په اباحت باندې دلالت کوی .نو د نفس یا د اندام د ضائع کیدو قید په کتاب الله باندې زیادت دي.او دا جائز نه دي.

**السوال** ۞ لیکن که دا اوویلی شی.چې احنافو ؒ هم د مرض د زیاتیدو قید اعتبار کړې دي.حالانکه په آیت کي دا قید نشته.

**الجواب** ۞ نوددے ځواب دا دي.چې د آیت سیاق په دے دلالت کوی.چې دلته د مرض زیاتیدل ملحوظ دی.ځکه چې الله ﷻ فرمائیلی دی.﴿ما يريد الله ليجعل عليكم من حرج﴾ یعنی الله ﷻ تاسو په تکلیف کښے اچول نه غواړی.اوښکاره خبره ده.چې حرج په هغه وخت کي راځی.چې د مرض زیاتیدو ویره وی.

**د یخنۍ د وجې د تیمم جواز**

وَلَوْخَافَ الْجُنُبُ اوکه جنب سره دا ویره وی إِنْ اغْتَسَلَ که غسل مے اوکړلو أَنْ يَقْتُلَهُ الْبَرْدُ نود دیخنۍ څخه به مړ شی أَوْيُمْرِضَهُ یا به ناجوړه شی يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيْدِ نو دے د په پاکه خاوره تیمم اوکړی وَهَذَا إِذَاكَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ اودا (حکم) په هغه وخت کي دي چې دے د ښار نه بهر وی . لِمَابَيَّنَّا د بیان شوی دلیل د امله

**حل اللغة:** ① **جنب:** جنبی ② **یقتله، قتل قتلاً** (ن) قتل کول، وژل ③ **یمرض، مرض تمریضاً:** ناجوړه کول ④ **مصر، جمع امصار:** ښار

**تشریح:- جوازالتیمم للجنب عند خوف الهلاک خارج المصر** ۞ مسئله دا ده.که جنب ته دا ویره وی.که دے غسل اوکړی .نو دیخنۍ د وجې هلاکیږی.یا ناجوړه کیږی. نو ده لپاره تیمم جائز دي. علامه مرغینانی فرمائی.که دا واقعه د ښار نه بهر پیښه شوې وی.نوپه اتفاق سره د تیمم اجازت دي.دلیل وړاندې تیر شوې دي.چې ښارته په واروسته تلوکي حرج دي.

وَلَوْكَانَ فِي الْمِصْرِ اوکه په ښار کښے وی فَكَذٰلِكَ عِنْدَأَبِي حَنِيْفَةَ ؒ نو بیا هم د امام ابوحنیفه ؒ په نیز هم دا حکم دي

**تشریح:- المذهبان في جوازالتیمم عند خوف الهلاک في المصر** ۞ ① اوکه جنب ته په ښار کي دننه دا ویره پیدا شی .نوبیاهم د امام ابوحنیفه ؒ په نیز دا حکم دي.یعنی دهغه لپاره تیمم جائز دي.

خِلَافًالَهُمَا[1] دصاحبین ؒ اختلاف دے هُمَا يَقُوْلَانِ صاحبین ؒ فرمایي إِنْ تَحَقُّقَ هَذِهِ الْحَالَةِ نَادِرٌ فِي الْمِصْرِ چې

[1]) القول الراجح هو قولهما كذا في الهندية(۲۸\۱) والدرالمختار(۱۷۲\۱) فتح القدير(۱۰۹\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۲۶)_



په ښار کي دداسے حالت پیښیدل نادر دی فَلَايُعْتَبَرُ نوددے څه اعتبار نشته او دامام ابوحنیفه ؒ دلیل دا دي

**تشریح:-** صاحبین ؒ فرمائی.که په ښار کي دا صورت پیښ شی.نو تیمم جائز نه دي.

**دلیلهما** ۞ دصاحبینو ؒ دلیل دا دي.چې په ښار کي د داسې صورت پیښیدل شاذ دی.نود دے به څه اعتبار نه وی.یعنی په ښار کي گرمے اوبه اود یخنۍ ساتنه ممکن دي.نوځکه د هلاکت یا د ناجوړه کیدو ویره غیرمعتبره ده.که په ښار کي د تیمم اجازت ورکړې شی.نوعوام به په لږه غوندې یخنۍ کي دا بهانه جوړوی.

وَلَهُ أَنَّ الْعَجْزَ ثَابِتٌ حَقِيْقَةً چې عجزیه حقیقت کي ثابت دے فَلَابُدَّ مِنْ اعْتِبَارِهِ .نو ددے اعتبار به هم ضروری وی.

**حل اللغة:** ① **فلابد:** ضروری، د څه چې علاوه بله لار نه وی

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة ؒ** ۞ اود امام ابوحنیفه ؒ دلیل دا دي.چې د داسې ویریدونکی په حق کي چې د غسل نه ویریږی.عجز ثابت شوې دي.نوځکه به ددے عجز اعتبار کولې شی.

**دتیمم طریقه**

وَالتَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ اوتیمم دوې (دوه) ضربه دي يَمْسَحُ بِإِحْدَاهُمَا وَجْهَهُ.مسح به کوی په یو ضرب په مخ باندې وَبِالْأُخْرَى يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ اوپه دوهم ضرب دخپلو دواړو لاسونود څنگلو سره

**حل اللغة:** ① **یمسح، مسح مسحاً** (ف): راښکل، گرخول ② **مرفقین:** کونډۍ

**تشریح:- محل المسح** ۞ په دےعبارت کي دتیمم دکیفیت بیان دے فرمایي .چې تیمم دوې (دوه) ضربه دي.① په یو ضرب به د مخ مسح اوکړی.اوپه بل ضرب په د دواړو لاسونو ترڅنگلو پورې مسح اوکړی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی التَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ چې تیمم دوې (دوه) ضربه دي ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ یوضرب د مخ لپاره وَضَرْبَةٌ لِلْيَدَيْنِ [1] او بل ضرب د دواړو لاسونو لپاره

**حل اللغة:** ① **ضربة:** فعلة په وزن باندې اسم مرة په معنی یوځل وهل

**تشریح:- تناثرالتراب وعلته** ۞ صاحب دهدایه فرمائی.چې په مځکه به دواړه لاسونه راپریږدی .اودومره به ئې اوسنډی. چې د هغے نه خاوره لرې شی.چې مثله (یعنی بدشکله) نشی.یعنی لکه څنگه چې په مثله سره سړې بد صورته کیږی . دغه ډول په خاورے سره هم مخ ککړیږی.

وَيَنْفُضُ يَدَيْهِ بِقَدْرِ مَا يَتَنَاثَرُ التُّرَابُ او اودے سنډی خپل دواړه لاسونه دومره چې خاورے لاړے شی کَی لَايَصِيْرَ مُثْلَةً ددے لپاره چې ئې مثله نشی

**حل اللغة:** ① **ینفض، نفض نفضاً** (ن) څنډل ⑤ **یتناثر، تناثر تناثراً:** شیندل، راشوکول

**تشریح:- الدلیل للضربتین** ۞ اودعمار بن یاسر ؓ نه روایت دي.چې «أن النبي ﷺ ضرب بكفيه الأرض ونفخ فيهما ثم مسح بهما وجهه وكفيه» یعنی نبی ﷺ خپل دواړه لاسونه مځکې ته راپریخودل.او په هغے کي ئې پوك اووهلو.او بیا ئې په هغے باندې خپل مخ مسح کړلو.

**کیفیة تیمم النبوی ﷺ** ۞ او د ابن عمر ؓ اوجابر ؓ دنبی ﷺ تیمم نقل کړې دي.او فرمائی.د دے طریقه دا ده. چې دواړه لاسونه به مځکې ته راپریږدی.بیا به دا دومره اوسنډی.چې خاوره ترے لرې شی.بیا دے په هغے باندې مخ مسح کړی.بیا دے په دوهم ځل مځکه اووهی.او دا دے اوسنډی.اودخپل چپه لاس د څلورو گوتو په باطن دے دخپل ښی لاس ظاهر په دے طریقه مسح کړی.چې د گوتو د سوکو څخه به پیل اوکړی.او ترڅنگلو پورې به اورسی.او بیا دے د خپل چپه تلی په باطن باندې دخپل ښی لاس باطن د مړونده پورې مسح کړی . اودخپل چپه لاس د گوتے په باطن دے دخپل ښی لاس د گوتے په ظاهر باندې راکاږی.اوبیا دے

[1]) من حدیث حدیث ابن عمر ؓ اخرجه الحاکم فی المستدرک (۱۷۹\۱)_

دغه ډول د چپه لاس مسح اوكړى.

## په تيمم كي د استيعاب حكم

وَلَابُدَّ مِنَ الْاِسْتِيعَابِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او دظاهر روايت مطابق دواړه محل مسح كول ضروري ده

**حل اللغة:** ① **استيعاب:** راګيرول

**تشريح:- الروايتان في استيعاب المحل ۞** ① په تيمم كي استيعاب شرط دي.كه څه هم بغير د مسح نه پاتې شو .نوتيمم نه كيږي.لكه چې په اودس كي دي.دا حكم دظاهرروايت مطابق دي. ② اوحسن بن زياد رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دي.چې اكثر دكل قائم مقام دي.او دليل دا دي.چې په ممسوحاتو كي استيعاب شرط نه وي.لكه چې د موزے او سر په مسح كي استيعاب شرط نه دي.

لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْوُضُوءِ څكه چې تيمم د اودس قائم مقام دي وَلِهٰذَا قَالُوا اوددے وجې فقهاؤ فرمائيلي دي يُخَلِّلُ الْأَصَابِعَ چې په گوتوكي به خلال كوى وَيَنْزِعُ الْخَاتَمَ لِيُتِمَّ الْمَسْحَ او انگشترى (گوتمه) به اوباسي.چې مسح پوره اوشي.

**حل اللغة:** ① **يخلل، خلل تخليلاً:** خلال كول ② **ينزع، نزع نزعاً(ف):** راويستل

**تشريح:- دليل شرطية الاستيعاب ۞** اود ظاهر روايت وجه دا ده.چې تيمم د اودس قائم مقام دي.هم دا وجه ده.چې فقهاؤ رحمهم الله فرمائيلي دي.چې په تيمم كي به خلال كوى.اوكه انگشترى (گوتمه) ئې اچولې وى.هغه به اوباسي.چې مسح پوره اوشي.اوپه اودس كي استيعاب شرط دي.نو چې كوم شى ددے قائم مقام وى.هغے كي به هم استيعاب شرط وى.يعنى تيمم.كه تيمم د اودس خليفه نه وو.نو مسح به تر اوږو پورې وه.څكه چې الله تعالى د تيمم په آيت كي فرمائيلي دي.﴿فامسحوا بوجوهكم وايديكم منه﴾ دا ئې بغير دغايت نه ذكر كړے دي.

## په تيمم كي دحدث اصغر او اكبر برابري

وَالْحَدَثُ وَالْجَنَابَةُ فِيهِ سَوَاءٌ په تيمم كي حدث او جنابت برابر دى وَكَذَا الْحَيْضُ وَالنِّفَاسُ اوهم دا حكم د حيض او نفاس دي

**تشريح:- جوازالتيمم في الحدث الاكبر ۞** امام قدورى رحمه الله فرمائى. ① چې دتيمم په جواز او كيفيت اوآله كي حدث (بے اودسى) او جنابت دواړه برابر دى .يعنى لكه څنګه چې په حدث اصغر كي تيمم مشروع دي.دغه ډول په حدث اكبر كي هم مشروع دي.اوكومه طريقه چې د حدث اصغر دتيمم ده. هم هغه طريقه دحدث اكبر د تيمم ده.او هم دا حكم د حائضې او نفاسې ښځے دي.

لِمَا رُوِيَ څكه چې روايت شوې دي أَنَّ قَوْمًا جَاءُوا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې يو قوم رسول الله ﷺ ته راغلو وَقَالُوا اوعرض ئې اوكړلو إِنَّا قَوْمٌ نَسْكُنُ هٰذِهِ الرِّمَالَ چې موږ داسې قوم يو.چې په دے شګلنه مځكه كي اوسيږو وَلَا نَجِدُ الْمَاءَ شَهْرًا أَوْ شَهْرَيْنِ او يو او دوې (دوه) مياشتے اوبه نه مومو وَفِينَا الْجُنُبُ وَالْحَائِضُ وَالنُّفَسَاءُ حالانكه په موږ كي جنب او حائضه او نفاسه ښځے هم وى؟ فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو نبى ﷺ ورته اوفرمائيل عَلَيْكُمْ بِأَرْضِكُمْ[1] په تاسو باندې خپله مځكه نيول ضروري دى.

**حل اللغة:** ① **جاءوا، جاء مجيئاً (ض):** راتګ ② **نسكن، سكن سكوناً (ن):** اوسيدل ③ **شهر جمع اشهر:** مياشت

**تشريح:- دليله ۞** دالله تعالى رسول ﷺ د جنب لپاره هم مشروع كړې دى. روايت دي.چې د نبى ﷺ په خدمت كي څه خلګ حاضر شو.او عرض ئې اوكړلو.چې موږ په دے شګلنه مځكه كي اوسيږو.او د يوے او دوو مياشتو پورې اوبه نه مومو.حالانكه په مونږكي جنب هم وى.او حائضه اونفاسه ښځے هم وى.چې دا ئې واوريدلو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل: ﴿عليكم بالأرض﴾ يعنى په تاسو ستاسو مځكه لازم ده.يعنى تاسوپه خاوره باندې تيمم كوئ.ددے حديث نه معلومه شوه.چې د حدث اكبر لپاره هم تيمم جائز دي.



## په كومو څيزونو تيمم جائز دي؟

فَيَجُوزُ التَّيَمُّمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (1) اود امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز تيمم جائزدي بِكُلِّ مَا كَانَ مِنْ جِنْسِ الْأَرْضِ په هر هغه شى چې د مځكې دجنس څخه وى كَالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ لكه خاوره ،شګه وَالْحَجَرِ وَالْجِصِّ كانړے ، دآبادئ چونه وَالنُّورَةِ وَالْكُحْلِ سپينه چونه ،رانجه، وَالزَّرْنِيخِ او هړتال

**حل اللغة:** ① **الارض:** مځكه ② **تراب:** خاوره ③ **رمل:** شګه ④ **حجر جمع احجار:** كانړې ⑤ **جص:** سيمنټ ⑥ **نورة:** چونه ⑦ **كحل:** رانجه ⑧ **زرنيخ:** ګوګړ

**تشريح:- مذهب الطرفين رحمهما الله ۞** د دے ځائې نه د هغه څيزونوبيان كوى.په كوموچې تيمم جائز دي.نوفرمائى.چې هرهغه څيزچې د مځكې د جنس څخه وى.په هغے باندې تيمم جائز دي.اوچې د مځكې د جنس څخه وى.نوددے شناخت دا دي.چې كوم شى په سوزيدو سره هيره كيږى.لكه اونه اوچې كوم شى ويلي شى او نرم شى.اود بدلوقابل شى.لكه اوسپنه.نودا د مځكې د جنس څخه نه دى.او ددے نه علاوه چې كوم شيان (څيزونه ) د مځكې د جنس څښه دى.لكه خاوره، شګه ، كانړے ، د تعمير چونه ، سپينه چونه ، رانجه هړتال ، د غريزه مالګه ، ياقوت ،زمرد ، زبرجد ، وغيره دا د طرفينو رحمهما الله مذهب دي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ اوامام ابويوسف رحمه الله فرمايي لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ چې تيمم صرف په خاوره او شګه جائز دي

**تشريح:- مذهب ابي يوسف رحمه الله ۞** اوحضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائى چې صرف په خاوره او په شګه باندې تيمم جائز دي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمايي لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالتُّرَابِ الْمُنْبِتِ چې په زرخيزه خاوره جائز دي. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او دا يو روايت دابو يوسف رحمه الله نه هم دي لِقَوْلِهِ تَعَالَى څكه چې الله ﷻ فرمائيلي دى. فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا أَيْ تُرَابًا مُنْبِتًا چې په راټوكونكې خاوره باندې تيمم كوئ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دابن عباس ؓ هم دا قول دي.

**حل اللغة:** ① **منبت:** راټوكيدونكې ⑨ **صعود:** راښتل ⑩ **اليق:** ډير مناسب

**تشريح:- مذهب الشافعي رحمه الله ۞** اوامام شافعى رحمه الله فرمائى.چې صرف په هغه خاوره باندې كيږى.چې فصل رازرغونوى. او دا د امام ابويوسف رحمه الله مرجوع اليه قول دي.

**دليله ۞** دامام شافعى رحمه الله دليل دالله ﷻ قول چې ( صعيدا طيبا) دي.استدلال په دے طريقه دي.چې دصعيد معنى خاوره ده.او د طيب معنى منبت (راټوكونكے) ده.هم دا تفسير دابن عباس ؓ نه مروى دي.نو دا تفسير ددے خبرے مقتضى دي.چې تيمم به صرف په خاوره باندې جائزوى.

غَيْرَ أَنَّ أَبَا يُوسُفَ زَادَ عَلَيْهِ الرَّمْلَ ليكن ابويوسف رحمه الله په دے باندې شګه زياتى كړې ده بِالْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ په هغه حديث كوم چې موږ پورته بيان كړلو

**تشريح:-** ليكن امام ابويوسف رحمه الله په دے باندې د شګے اضافه كړې ده.دهغه حديث د وجې كوم چې موږ پورته بيان كړلو.يعنى ﴿عليكم بالأرض﴾

وَلَهُمَا اود طرفينو رحمهما الله دليل دا دي أَنَّ الصَّعِيدَ اسْمٌ لِوَجْهِ الْأَرْضِ چې صعيد نوم دي.د مځكې د مخ سُمِّيَ بِهِ..او صعيد نوم ورته څكه كيخودے شو لِصُعُودِهِ چې دا اوچته وى

**تشريح:- دليل الطرفين رحمهما الله ۞** د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي.چې صعيد دمخ د مځكې نوم دي. يعنى د مځكې د

---

1) القول الراجح هو قولهما كذا فى فتح القدير(۱۱۲\۱) والخانية (۶۱\۱) والهندية (۲۶\۱) نقلا عن القول الراجح (۲۷\۱)

پورتنۍ حصې. اوچونكه اوچته برخه پورته او پاكه وي. نو ځكه ددې نوم صعيد كيخودې شو. حاصل دا چې هرهغه څيزچې صعيد وي. يعنې د مځكې د جنس څنې وي. نوپه هغې تيمم جائز دې. ① د صعيد دا معنى د نحو د امام خليل نه مروى ده. ② اوزمحشرى د زجاج امام لغت نه روايت كړې دې. چې صعيد د مځكې د مخ نوم دې. ③ او په معاني القرآن كې امام زجاج ليكلى دى. چې زما د علم مطابق په دې معنى كې د اختلاف نشته. ④ او صحاح د لغت په كتاب كې هم دا معنى ذكر شوې ده.

| |
|---|
| وَالطَّيِّبُ يَحْتَمِلُ الطَّاهِرَ اود پاكۍ احتمال لرى فَحُمِلَ عَلَيْهِ نوهم په دې به حمل كولې شى لِأَنَّهُ أَلْيَقُ بِمَوْضِعِ الطَّهَارَةِ ځكه چې دا مقام د طهارت سره زيات مناسب دې. |

**تشريح:- الجواب الاول عن دليل الشافعي رحمه الله** ۞ اوپاته شوه داخبره چې د صعيد معنى ده. زرخيزه خاوره. نوموږ دا وايو. چې د طيب د پاك احتمال هم لرى. د الله تعالى په قول (حـلالا طيـبا) كې طيب د پاك په معنى دې. نودلته به هم طيب په معنى د طهارت باندې حمل وي. ځكه چې دا مقام، مقام د طهارت دې. او دا معنى د مقام طهارت سره زياته مناسب ده.

| |
|---|
| أَوْهُوَمُرَادُ الْإِجْمَاعِ يا دا چې دا معنى په اجماع سره مراد ده |

**تشريح:- الجواب الثانى عن دليل الشافعي** ۞ دوهم دليل دا دې. چې لفظ د طيب د طاهر اومنبت دواړو په معانيو كې مشترك دې. او طاهر په اجماع سره مراد دې. نو ځكه د منبت معنى مراد نه ده. ځكه چې زموږ په نيز عموم مشترك جائز نه دې. (يعنى چې يو شى عام هم وي. او مشترك هم وي.

## په تيمم كې د ګرد حيثيت

| |
|---|
| ثُمَّ لَا يُشْتَرَطُ بيا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا شرط نه دې أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ غُبَارٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] چې په دغه مځكه دې ګرځ (ګرد) وي لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا دې آيت د اطلاق د وجې كوم چې موږ تلاوت كړلو |

**حل اللغة:** ① **لايشترط، اشترط اشراطاً:** شرط لګول

**تشريح:- المذهبان في جوازالتيمم بالارض من غيرغبار** ۞ فرمائي. ① چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په مځكه باندې د ګرځ (ګرد) وجود شرط نه دې. ځكه چې په قرآن پاك كې «صعيدا طيبا» مطلق دې. د ګرځ د وجود او عدم وجود په كې څه تفصيل نشته. نو په مطلق خاوره به تيمم كول جائز وي. كه په هغې باندې ګرځ وي اوكه نه وي. ② او داامام محمد رحمه الله په نيز د ګرځ وجود شرط دې. اودا قول امام ابويوسف اود امام شافعي رحمه الله هم دې. اوهم د دې قول قائل امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دى.

**دليل الايمة** ۞ ددې حضراتو دليل د الله جل جلاله ارشاد چې «فامسحوا بوجوهكم وأيديكم منه» أى من التراب دې. يعنى دخپلو مخونو او لاسونو مسح اوكړئ په خاوره باندې. حاصل دا چې په "منه" كې كلمه د "من" تبعيضيه ده. اوپه دې باندې عمل په هغه وخت كې ممكن دې. چې په خاوره باندې ګرځ وي.

**الجواب من دليل الايمة رحمهم الله** ۞ ليكن ددې ځواب دا دې. چې كيدې شى. چې د "منه" ضمير حدث ارخ ته راجع وي. او "تراب" ته راجع نه وي. نو ژباړه به دا شى. چې دخپلو مخونو او لاسونو مسح اوكړئ د حدث د وجې. اودا هم احتمال شته. چې كلمه د "من" ابتدائيه شى. يعنى دتيمم پيل د خاورې نه كوئ.

| |
|---|
| وَكَذَا يَجُوزُ اودغه ډول تيمم جائز دې بِالْغُبَارِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الصَّعِيدِ په ګرځ باندې سره دقدرت نه په خاوره |

[1]) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (٦١١١) ورد المحتار (٦١١١) وتبيين الحقائق (٣٩١١) والهندية (٢٧١١) ونقلا عن القول الراجح (٢٨١١)-



| |
|---|
| باندې عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله [1] او داامام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز لِأَنَّهُ تُرَابٌ رَقِيقٌ ځكه چې ګرځ نرۍ خاوره ده |

**حل اللغة:** ① **رقيق:** نرې

**تشريح:- صورة المسئلة** ۞ دا حكم د طرفينو رحمهما الله په نيز په هغه وخت كې هم دې. چې په خاوره باندې قادر وي. اوبيا هم په ګرځ باندې تيمم اوكړي. ددې صورت به دا وي. چې يوكس خپلې د ګرځ جامې اوسنډلې. او ګرځ اوغبار دهغه په مخ اولاسونو باندې اولګى. او بيا په دې باندې يې د تيمم په نيت لاس راښكلو. نود ده تيمم اوشو. ځكه چې ګرځ هم نرۍ خاوره ده. نولكه څنګه چې په كثيف خاوره باندې تيمم جائزدې. دغه ډول په رقيق باندې هم جائز دې.

**عدم جوازالتيمم بالغبار مع القدرة على التراب عند ابى يوسف رحمه الله** ۞ امام ابويوسف رحمه الله په خاوره باندې د قدرت په صورت كې په ګرځ باندې د تيمم كاوه اجازت نه وركوى. اودليل دا بيانوى. چې ګرځ خالصه خاوره نه ده. بلكه من وجه خاوره ده. او مامور به تيمم په پاكه خاوره دې. نوچې قدرت على الصعيد وي. د هغې نه عدول جائز نه دې. البته چې عجزعن الصعيد وي. نو په دغه صورت كې تيمم جائزدې. لكه د عجزعن الركوع والسجود په وخت كې په اشاره سره لمونځ جائز دې.

## د تيمم لپاره د نيت شرطيت

| |
|---|
| وَالنِّيَّةُ فَرْضٌ فِي التَّيَمُّمِ اوپه تيمم كې نيت فرض دې |

**تشريح:- فرضية النية عند زفر** ۞ زموږ رحمهم الله په نيز په تيمم كې نيت فرض دې.

| |
|---|
| وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله [2] اوامام زفر رحمه الله فرمائيلي دى لَيْسَتْ بِفَرْضٍ چې فرض نه دې. لِأَنَّهُ خَلَفٌ عَنِ الْوُضُوءِ ځكه چې تيمم داودس خليفه دې فَلَا يُخَالِفُهُ فِي وَصْفِهِ نود صحت په وصف كې به تيمم داودس نه خلاف نه وي |

**حل اللغة:** ① **خلف:** قائم مقام، شاته ② **فلايخالفه، خالف مخالفة:** مخالفت كول

**تشريح:-** او د امام زفر رحمه الله په نيز په تيمم كې نيت فرض نه دې.

**دليله** ۞ دامام زفر رحمه الله دليل دا دې. چې تيمم د اودس خليفه دې. اوخليفه دصحت په وصف كې د اصل نه مخالف نه وي. نوچې اودس بغير د نيت نه صحيح دې. دغه ډول تيمم هم بغير دنيت نه صحيح دې. ځكه كه تيمم بغير د نيت نه صحيح نشي. نومخالفت د خليفه به راشى دخپل اصل نه. اودا ناجائزده.

| |
|---|
| وَلَنَا اوزموږ دليل دا دې أَنَّهُ يُنْبِئُ عَنِ الْقَصْدِ چې د تيمم په معنى كې قصد پروت دې فَلَا يَتَحَقَّقُ دُونَهُ نوبغير دقصد نه تيمم نه متحقق كيږى |

**حل اللغة:** ① **ينبئ، انبا انباءً:** خبر وركول ② **قصد:** اراده

**تشريح:- الدليل الاول لجمهورالاحناف رحمهم الله** ۞ اوزموږ دليل دا دې. چې د تيمم معنى په لغت كې د قصد او ارادې راځى. اوقصد نوم دې د ارادې. اودا قاعده ده. چې په اسماء شرعيه كې د لغوى معانيو اعتبار كولې شى. نوځكه موږ ددې قائل شو. چې په تيمم كې نيت ضرورى دې. اوپه تيمم كې د نيت تفسير دا دې. چې د طهارت نيت اوكړي. يا دجنابت لرې كاوه اويا د لمونځ د اباحت نيت اوكړي. (يعنى چې په دې تيمم راته

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الكفاية (١١٤١١) وردالمحتار (١٧٦١١) وتبيين الحقائق (٣٩١١) نقلا عن القول الراجح (٢٩١١)-

[2]) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا فى فتح القدير (١١٤١١) والعناية (١١٤١١) نقلا عن القول الراجح (٣٠١١)_

لمونځ کول جائز او مباح شي.)

**أَوْجُعِلَ طَهُوْرًا فِيْ حَالَةٍ مَخْصُوْصَةٍ** يا داچې خاوره په خاص حالت کي پاکونکې ګرځولې شوې ده (نو ددې لپاره نيت ځکه ضروری دي. چې د دغه عام حالت نه ئې امتياز پيدا شي. ځکه چې په عامو حالاتو کي په خاوره باندې طهارت نه حاصليږي.)

**تشريح:- الدليل الثاني لجمهور الاحناف** رحمهم الله ۞ دوهم دليل دا دي. چې خاوره په شرطونو سره پاکونکې ده. يو شرط دا چې اوبه نه وي. او دوهم شرط دا چې تيمم د لمانځه د اباحت لپاره وي. ځکه چې الله ﷻ فرمائيلی دي. چې ﴿فتيمموا﴾ اودا قول مبنی دے دالله ﷻ په قول چې ﴿إذا قمتم إلى الصلاة فاغسلوا وجوهكم﴾ او ددے نه مراد ﴿فاغسلوا للصلاة﴾ دي. نو دلته به هم ﴿فتيمموا للصلاة﴾ مراد وي. نو لکه څنګه چې د اوبو د وجود په وخت کي تيمم مفيد د طهارت نه دي. دغه ډول به د عدم نيت په صورت کي هم مفيد د طهارت نه وي.

**وَالْمَاءُ طَهُوْرٌ بِنَفْسِهِ عَلٰى مَا مَرَّ** او اوبه خود خپل ذات په اعتبار سره پاکونکې دی. (که چا په کي د پاکاوه نيت کړې وي او که نه وي.) لکه چې وړاندې تير شو

**تشريح:- الاعترض التقديري** ۞ اوبه ﴿والماء طهور﴾ کي د سوال ځواب دي. سوال دا دي. چې په آيت کي اوبه هم په مخصوص حالت کي پاکونکې ګرځولې شوي دی. (چې کله اراده د لمانځه کوی.) نو په اودس کي هم نيت شرط ګرځول پکار دی.

**الجواب** ۞ ددے نه ځواب دا دي. چې اوبه دخپل ذات په اعتبار سره پاکونکې دی. يعنی ددے په طبيعت کي د پاکاوه عمل شته. نو ځکه نيت ته محتاجه نه دی. لکه چې کوم نجاست عينی وي. (يعنی په سترګو ښکاری.) نو دهغې په لرې کاوه کښې د نيت اړتيا نشته. (يعنی چې کوم نجاست په نظر راځی. لکه لونې بول راواخله. او دا په اوبو باندې اووينځلی شی. نو هغه محل پاکيږی. اګرچې د پاکاوه نيت په کي نه وي. نو دغه ډول حکم به په حکمي مرداري کي وي. چې اودس دي.)

### په تيمم د طهارت يا اباحة الصلاة د نيت کفايت

**ثُمَّ اِذَا نَوَى الطَّهَارَةَ** بيا چې کله ئې د طهارت نيت اوکړلو **أَوِاسْتِبَاحَةَ الصَّلَاةِ** يا د لمانځه د اباحت **أَجْزَأَهُ** نو دا به کافی وی **وَلَا يُشْتَرَطُ نِيَّةُ التَّيَمُّمِ لِلْحَدَثِ أَوْ لِلْجَنَابَةِ** و دحدث يا جنابت لپاره نيت شرط نه دي. **هُوَ الصَّحِيْحُ مِنَ الْمَذْهَبِ** هم دا صحيح مذهب دي.

**حل اللغة** ① **نوی، نية** (ض): نيت کول ② **اجزاه، اجز جزاء**: کافی کيدل

**تشريح:- القولان في تعين منويله** ۞ ① مسئله دا ده. که يو کس د طهارت حاصلولو نيت اوکړلو. يا ئې د لمانځه د اباحت نيت اوکړلو. نو دا به کافی وی. او د حدث او جنابت د لرې کاوه نيت کول د تيمم لپاره شرط نه دي. هم دا صحيح مذهب دي. ② او امام ابوبکر رازی رحمه الله فرمانی. چې د حدث يا جنابت لرې کاوه نيت د تيمم لپاره شرط دي. ځکه چې ددے دواړو لپاره هم په يوه طريقه تيمم کولې شی. نو په دواړو کي به امتياز بغير د نيت نه نه راځی. لکه څنګه چې فرض د نفلو نه ممتاز کاوه لپاره نيت کولې شی.

**دليل القول الاول الصحيح** ۞ او دصحيح مذهب دليل دا دي. چې تيمم يو طهارت دي. نو ددے داسبابو نيت کول به لازم نه وی. لکه د اودس پشان.

### د اسلام نه وړاندې د نصرانی د تيمم حکم

**فَإِنْ تَيَمَّمَ نَصْرَانِيٌّ يُرِيْدُ بِهِ الْإِسْلَامَ** که نصرانی د اسلام راوړلو په اراده باندې تيمم اوکړلو **ثُمَّ أَسْلَمَ** او بيا ئې اسلام قبول کړلو **لَمْ يَكُنْ مُتَيَمِّمًا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله نو طرفين رحمهما الله فرمانی. چې دے متيمم نه شو

**حل اللغة** ① **اسلم: اسلاماً**: اسلام راوړل



**تشريح:- المذهبان في صحة تيمم الكافر وعدمها** ۞ مسئله دا ده. ① چې نصرانی د اسلام راوړلو په اراده تيمم اوکړلو. او بيا مسلمان شو. دطرفينو رحمهما الله په نيز د ده دا تيمم معتبر نه دي.

**وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ** رحمه الله ([1]) او ابويوسف رحمه الله فرمايي **هُوَ مُتَيَمِّمٌ** چې دے متيمم شو **لِأَنَّهُ نَوَى قُرْبَةً مَقْصُوْدَةً** ځکه چې ده د قربت مقصوده نيت کړې دي

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمانی. چې معتبر دي.

**علة ابی يوسف** رحمه الله **في الجواز** ۞ دابويوسف رحمه الله دليل دا دي. چې ده د قربت مقصوده نيت اوکړلو. ځکه چې اسلام د ټولو نه لوئې قربت مقصوده دي. او مقصوده ځکه دي. چې د بل شی په ضمن کي نه دي. او د قربت مقصوده په نيت چې کوم تيمم اوکړې شی. نو هغه په شريعت کي معتبر وی. نو د اسلام راوړلو په اراده چې ئې کوم تيمم کړې وی. هغه معتبر دي. او که د اسلام راوړلو نه روسته ئې په دے باندې لمونځ کول اوغوښتل. نو لمونځ ئې صحيح دي.

**بِخِلَافِ التَّيَمُّمِ لِدُخُوْلِ الْمَسْجِدِ** په خلاف د هغه تيمم چې جمات ته د داخليدو **وَمَسِّ الْمُصْحَفِ** يا د مصحف د مسح کولو په نيت شوې وی. **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقُرْبَةٍ مَقْصُوْدَةٍ** ځکه چې هغه قربت مقصوده نه دي

**حل اللغة** ① **دخول**: اخليدل ② **مس**: لاس لګول ③ **مصحف**: قرآن پاك

**تشريح:- تائيد مذهب ابي يوسف** رحمه الله ۞ ددے په خلاف مسلمان جمات ته دداخليدو په اراده سره يا مصحف ته د ګوتو وراوړولو په اراده سره تيمم اوکړلو. نو دا شرعاً معتبر نه دي. که په دے تيمم باندې لمونځ کول غواړی. نو نشی کولې. ځکه چې جمات ته داخليدل او دمصحف مسح کول قربت مقصوده نه دي.

**وَلَهُمَا** او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي **أَنَّ التُّرَابَ مَا جُعِلَ طَهُوْرًا** چې خاوره پاکونکې نه ده ګرځولې شوې **إِلَّا فِيْ حَالِ إِرَادَةِ قُرْبَةٍ مَقْصُوْدَةٍ** مګر په داسې قربت مقصوده د ارادے په وخت کي **لَا تَصِحُّ بِدُوْنِ الطَّهَارَةِ** چې هغه بغير د طهارت نه نۀ صحيح کيږی **وَالْإِسْلَامُ قُرْبَةٌ مَقْصُوْدَةٌ** او اسلام داسې قربت مقصوده دي **تَصِحُّ بِدُوْنِهَا** چې بغير دطهارت نه هم صحيح کيږی

**حل اللغة** ① **تراب**: خاوره ② **لاتصح، صح صحيحاً** (ض): درست کيدل

**تشريح:- علة الطرفين** رحمهما الله **في عدم الجواز** ۞ دطرفين رحمهما الله دليل دا دي. چې خاوره دخپل ذات په اعتبار سره پاکونکې نه ده. بلکه په داسې وخت کي پاکونکې ګرځی. چې د هغه قربت مقصوده نيت پرے اوکړې شی. چې بغير دطهارت نه نۀ صحيح کيږی. او اسلام داسې نه دي. ځکه چې دا بغير دطهارت نه صحيح کيږی.

**بِخِلَافِ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ** په خلاف دسجدې دتلاوت **لِأَنَّهَا قُرْبَةٌ مَقْصُوْدَةٌ** ځکه چې هغه داسې قربت مقصوده دي **لَا تَصِحُّ بِدُوْنِ الطَّهَارَةِ** چې بغير دطهارت نه نۀ صحيح کيږی.

**تشريح:- تائيد مذهب الطرفين** رحمهما الله ۞ ددے په خلاف سجده د تلاوت ده. ځکه چې دا داسې قربت مقصوده دي. چې بغير د طهارت نه نه صحيح کيږی. نو که د سجدې د تلاوت په نيت تيمم اوکړې شی. په هغے باندې لمونځ صحيح کيږی.

**السوال على الطرفين** ۞ صاحب دنهايه رحمه الله په هغه دليل چې علامه مرغينانی د طرفينو رحمهما الله د اړخه بيان کړې دي. نقض وارد کړې دي. حاصل ددغه نقض دا دي. که کافر د لمانځه په اراده باندې تيمم اوکړلو. او بيا ئې اسلام قبول کړلو. نو بايد ده چې په دغه تيمم باندې لمونځ صحيح شی. ځکه چې لمونځ قربت مقصوده

---

[1]) القول الراجح هو قولهما كذا فی فتح القدير(۱۱۶\۱) والعناية (۱۱۶\۱) والخانية (۵۴\۱) وردالمحتار(۱۸۰\۱) نقلا عن القول الراجح(۳۱\۱)-

دي. ځکه چې بغير د طهارت نه نۀ صحيح کيږي. حالانکه د طرفينو رحمهما الله په نيز په دے تيمم باندې لمونځ صحيح نه دی. نود طرفينو رحمهما الله دا دعوی چې خاوره په هغه وخت کي پاکونکي ګرځي. چې په هغے باندې د داسې قربت مقصوده د ادا کاوه اراده کړې شوې وي. چې هغه بغير د طهارت نه نۀ صحيح کيږي. دا دعوی صحيح نه ده. غلطه ده.

**الدليل المناسب** ۞ زيات بهتر دليل دا دې. چې داسې اووئيلې شي. چې کافر دنيت اهل نه دې. ځکه چې نيت عبادت دې. اوتيمم بغير د نيت نه نۀ صحيح کيږي. نوځکه دکافر تيمم نه صحيح کيږي.

اګرچې دا ځواب داولنې نه غوره دې. ليکن زما په نزد په دے باندې دا اعتراض وارديږي. چې په دے صورت کي خو د کافر د تيمم هيڅ حيثيت پاتے نشو. حالانکه فقهاء ليکي. چې د اسلام راوړلو لپاره اودس کول مستحب دې. او تيمم د اودس خليفه دې. نوبايد ده چې تيمم هم مستحب شي. اوچې مستحب شو. نو بيا به په کي ثواب هم وي. حالانکه کافر ته په مستحب عمل باندې ثواب نه ملاويږي. شاه فيصل عفی عنه

## په حالت دكفر كي د اودس حكم

| |
|---|
| **وَإِنْ تَوَضَّأَ** اوکه ده اودس اوکړلو **لَا يُرِيدُ بِهِ الْإِسْلَامَ** او اراده ئې اسلام راوړل نه وي **ثُمَّ أَسْلَمَ** اوبيا ئې اسلام قبول کړلو **فَهُوَ مُتَوَضِّئٌ** نو دے متوضی دې **خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ** رحمه الله دامام شافعي رحمه الله اختلاف دې **بِنَاءً عَلَى اشْتِرَاطِ النِّيَّةِ**. (اوددے اختلاف بنا (بنياد) ) د نيت د شرطيت د وجې دې. |

**تشريح:- حكم وضوء الكافر** ۞ که نصراني اودس اوکړلو. حالانکه په دے اودس باندې د هغه اراده داسلام راوړلونه وه. او بيا مسلمان شو. نو زموږ په نيز دا سړې متوضی دې. که په دے اودس باندې لمونځ کول غواړي. نوکولې شي. ځکه چې زموږ په نيز په اودس کي نيت کول شرط نه دې. نودا چې کافرد نيت اهل نه دې. دا څه نقصان نه کوي. او دامام شافعي رحمه الله په نيز دده اودس معتبر نه دې. ځکه چې د هغوی په نيز په اودس کي نيت شرط دې. او کافر د نيت اهل نه دې. او علامه مرغيناني رحمه الله د "بناء" په لفظ سره د امام شافعي رحمه الله دليل بيان کړلو. خو زموږ دليل هم ددے نه معلوميږي.

## په حالت د كفر كي د تيمم كولو حكم

| |
|---|
| **فَإِنْ تَيَمَّمَ مُسْلِمٌ** که مسلمان تيمم اوکړلو **ثُمَّ ارْتَدَّ الْعِيَاذُ بِاللهِ** او بيا هغه (والعياذ بالله) مرتد شو **ثُمَّ أَسْلَمَ** او بيا مسلمان شو. **فَهُوَ عَلَى تَيَمُّمِهِ** نوهغه په خپل تيمم باندې پاته دې |

**حل اللغة** ① **ارتد، ارتداداً:** واروسته کيدل، مرتد کيدل

**تشريح:- المذهبان في بقاء تيمم المسلم بعدالارتداد** ۞ مسئله دا ده. ① چې يو سړی د اسلام په حالت کي تيمم اوکړلو. بيا هغه مرتد شو. اوبيا په اسلام کي داخل شو. نودا سړې په خپل تيمم باندې پاته دې. د کفر د وجې دده تيمم نه باطليږي.

| |
|---|
| **وَقَالَ زُفَرُ** رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمايي **بَطَلَ تَيَمُّمُهُ** چې دهغه تيمم باطل شو **لِأَنَّ الْكُفْرَ يُنَافِيهِ** ځکه چې کفر د تيمم سره منافي دې **فَيَسْتَوِي فِيهِ الْإِبْتِدَاءُ وَالْبَقَاءُ** نوپه دے کي به اول اوآخر برابر وي |

**حل اللغة** ① **فيستوی، استوی استواءً:** برابر کيدل

**تشريح:-** حضرت امام زفر رحمه الله فرمائي. چې دده تيمم باطل شو.

**دليله** ۞ د غوی دليل دا دې. چې کفر دتيمم منافي دې. نوپه دے کي به اول او آخر دواړه برابر وي. يعنی لکه څنګه چې په اول کي کفر د تيمم منافي دې. نودغه ډول به په آخر کي او پاته کيدو کي هم منافي وي. نوکله چې د اول نه د کافر تيمم معتبر نه دې. نودغه ډول به بقاء کي هم معتبر نه وي.

| |
|---|
| **كَالْمَحْرَمِيَّةِ فِي النِّكَاحِ** لکه په نکاح کي چې حرمت دې |



**تشريح:- النظير الاول لقول زفر** رحمه الله ۞ دا داسې دې. لکه په نکاح کي حرمت يعنی که په ښځه او سړي کي د وړاندې نه ابدی حرمت وو. نودهغوی نکاح صحيح نه ده. نودغه ډول که د نکاح نه روسته حرمت پيدا شو. نو نکاح پاته نه پاتې کيږي. مثلاً د دوو تي رودونکو ماشومانونکاح د هغوی پلارد ولي په حيثيت سره اوکړله. او بيا يوے ښځے دواړو ته شيدې ورکړل. نودا نکاح باطله شوه. ځکه چې په پاته کيدو کي محرميت موجود شو. اګرچې په اول کي محرميت نه وو.

**النظير الثاني لقول زفر** رحمه الله ۞ يا مثلاً زوجين بالغان وو. او بيا ښځے د خاوند ځوی ته په خپل ځان باندې قدرت ورکړلو. نود دوی نکاح باطله شوه. ځکه چې بقاء محرميت موجود شو.

**السوال على موقف زفر** رحمه الله ۞ دامام زفر رحمه الله په مذهب باندې يو سوال کيدې شي. هغه دا چې کفر دتيمم منافي ځکه دې. چې دا عبادت دې. او عبادت بغير د نيت نه نۀ صحيح کيږي. حالانکه دامام زفر رحمه الله په نيز د تيمم لپاره نيت شرط نه دې. نو د کفر په تيمم باندې طاری کيدل داسې دی. لکه کفرچې په اودس باندې راشي. نولکه څنګه چې د کفر راتلو په وجه اودس نه باطليږي. دغه شان چې کفر په تيمم راشي. نو هم دے تيمم نه باطل نشي.

**الجواب الاول** ۞ د مختار مذهب په بناء ځواب دا دې. چې په تيمم کي نيت د امام زفر رحمه الله په نيز هم شرط دې.

**الجواب الثاني** ۞ دوهم ځواب دا دې. چې دکفراو تيمم په مينځ کي منافات ددے وجې دې. چې په کافر کي اهليت معدوم دې. ځکه چې د تيمم مشروعيت د لمانځه لپاره دې. او کافر د لمونځ اهل نه دې. نو د کافر تيمم باطل شو. که نيت ئې اوکړی. اوکه نه. او په دے کي ابتداء او بقاء دواړه برابر دی.

| |
|---|
| **وَلَنَا** اوزموږ دليل دا دې **أَنَّ الْبَاقِيَ بَعْدَ التَّيَمُّمِ صِفَةٌ** چې د تيمم نه روسته د هغے صفت پاته دې **كَوْنِهِ طَاهِرًا** چې دا پاکونکي دې **فَاعْتِرَاضُ الْكُفْرِ عَلَيْهِ** نو چې په دے کفر راغلو **لَا يُنَافِيهِ** دا ددے منافي نه دې **كَمَا لَوِ اعْتَرَضَ عَلَى الْوُضُوءِ** لکه چې کفر په اودس باندې راشي |

**تشريح:- دليل جمهورالاحناف** رحمهم الله ۞ اوزموږ دليل دا دې. چې د تيمم کاوه نه روسته تيمم پاته نه دې. بلکه هغه طهارت پاته دې. کوم چې دتيمم په ذريعه حاصل شوې دې. اود کفرپه طهارت باندې راتګ ددے منافي نه دی. لکه داوس کاوه نه روسته که دا سړې کافر شوې وي. نود ده اودس پاته کيږي.

**السوال على الاحناف** رحمهم الله **والجواب** ۞ پاته شوه دا خبره چې ابتداء د کافر تيمم ولے معتبر نه دې. نود دے ځواب دا دې. چې چونکه کافر دنيت اهل نه دې. او د تيمم لپاره نيت شرط دې. نوځکه په شريعت کي دکافر تيمم ابتداءً معتبر نه دې.

**السوال** ۞ ليکن که دا اعتراض اوشی. چې ارتداد خو اعمال بيکاره کوی او ضائع کوی. لکه چې دالله ﷻ قول دې. ﴿ لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ ﴾ او ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ ﴾ او اودس او تيمم هم من جمله د اعمالو څخه دی. نود ارتداد دو وجے به دا هم باطليږي.

| |
|---|
| **وَإِنَّمَا لَا يَصِحُّ مِنَ الْكَافِرِ ابْتِدَاءً** اودکافرنه ابتداءً صحيح نه وو **لِعَدَمِ النِّيَّةِ مِنْهُ** ځکه چې دهغه نيت نه کيږي. |

**تشريح:- الجواب** ۞ ځواب دا دې. چې د ارتداد په وجه د اعمالو ثواب باطليږي. نفس اعمال نه باطليږي. لکه چې يو کس د رياکارئ لپاره اودس اوکړی. نوپه دے باندې حدث زائله کيږي. اګرچې په دے اودس باندې ثواب نه ملاويږي.

## تيمم ماتونكي څيزونه

| |
|---|
| **وَيَنْقُضُ التَّيَمُّمَ كُلُّ شَيْءٍ** اوتيمم په هرهغه څيزماتيږي **يَنْقُضُ الْوُضُوءَ** چې اودس پرے ماتيږي **لِأَنَّهُ خَلَفٌ عَنْهُ** ځکه چې دا د اودس خليفه دے **فَأَخَذَ حُكْمَهُ** نوځکه ورته د تيمم حکم ورکړې شو |

**حل اللغة:** ① **ينقض، نقض نقضاً** (ن): ماتول ② **خلف:** قائم مقام، جانشين ③ **فاخذ، اخذ اخذاً** (ن) اخستل نيول

**تشريح:- وجه الاشتراک بين ناقض الوضوء والتيمم**⊛ شيخ قدوري فرمائيلي دی.چې کوم شيان (څيزونه) ناقض د اودس دی . هغه ناقض د تيمم هم دی.دليل دا دې.چې تيمم داودس خليفه دې.اوپه دے کښې څه شک نشته.چې اصل د خليفه په نسبت اقوی وی.نوکوم شی چې د اقوی لپاره ناقض وی.هغه به د اضعف لپاره په طريقه اولی سره ناقض وی.نوهرهغه څيزچې ناقض د اودس وی.هغه به ناقض د تيمم ضرور وی.

**وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا رُؤْيَةُ الْمَاءِ** اوماتوی تيمم لره د اوبو ليدل **إِذَا قَدَرَ عَلَى اسْتِعْمَالِهِ** خوپه دے شرط چې دے د اوبو په استعمال قادر وی **لِأَنَّ الْقُدْرَةَ هِيَ الْمُرَادُ بِالْوُجُودِ** او ددے د وجود نه قدرت مراد دې. **الَّذِي هُوَ غَايَةٌ لِطَهُورِيَّةِ التُّرَابِ** کوم چې د خاورے د پاکاوه غايت دې

**تشريح:- نقض التيمم بالقدرة على استعمال الماء**⊛ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چې څيني شيان (څيزونه) داسې دی.چې په هغے باندې اودس خو نه ماتيږی.ليکن تيمم ماتيږی.نوکه متيمم اوبه اوليدلے او دے دهغے په استعمال قادر هم وو.نود اوبو ليدل دهغه د تيمم لپاره ناقض دی.اواستعمال سره د قدرت شرط څکه اولګولې شو.چې آيت ﴿أولامستم النساء فلم تجدوا ماء﴾ اوحديث ﴿التراب طهورالمسلم ولوالی عشر حجج مالم يجدالماء﴾ په دے کښې د وجود داوبو نه مراد قدرت على استعمال الماء دی.

**وَخَائِفُ السَّبُعِ وَالْعَدُوِّ وَالْعَطَشِ عَاجِزٌ حُكْمًا** اود درنده او دښمن اود تندے نه ويريدونکې حکماً عاجز دې

**تشريح:- صورفقدالماء حکماً**⊛ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.① که اوبه موجود وی.ليکن د درنده ويره وی.يعنی دا ويره وی که اوبوته ورشم.نو درنده به مے هلاک کړی.② يا د دښمن ويره وی.که اوبو ته ورشی.نودښمن به ئې هلاک کړی.اويا به دده مال هلاک کړی.③ يا دا چې اوبه دومره کمے دی.که دے پرےاودس اوکړلو.نوتږے پاتې کيږی.نوپه دے ټولو صورتونوکې دا کس د اوبو د استعمال نه عاجز ګرځولې شی.اود ده لپاره تيمم جائز دې.

**وَالنَّائِمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله **قَادِرٌ تَقْدِيرًا**[1] او اوده سړې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز حکماً قادر دې **حَتَّى لَوْمَرَّ النَّائِمُ الْمُتَيَمِّمُ عَلَى الْمَاءِ** تردې که ويده (اوده) سړې په حالت د خوب کې په اوبو باندې تير شی **بَطَلَ تَيَمُّمُهُ عِنْدَهُ** نو د امام صاحب په نيز دهغه تيمم باطل شو

**تشريح:- النوم ليس بعذر**⊛ علامه مرغينانی فرمائی.چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چې کوم سړې ويده (اوده) وی.دے په اوبوباندې قادر شمارلے شی.نوکه په اوبو باندې په حالت د خوب کې تير شو.تيمم ئې مات شو.څکه چې دا سړې د اوبو داستعمال نه د داسې عذر د وجې پاتې شو.چې هغه عذر دده د اړخه پيدا شوې وو.چې خوب دې.نوځکه دے معذور نشی ګڼړلې.

**وَالْمُرَادُ** او د اوبو دوجود نه مراد دا دې **مَا يَكْفِي لِلْوُضُوءِ** چې هغه د اودس لپاره کافی وی **لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِمَا دُونَهُ ابْتِدَاءً** څکه چې ددے نه کمے ابتداءً معتبر نه دی **فَكَذَا انْتِهَاءً** نو انتهاءً به هم معتبر نه وی.

**تشريح:- القدر المعتبر في وجود الماء**⊛صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چې دکومو اوبو په ليدلوچې تيمم ماتيږی.د هغے نه د اوبو هغه هومره مقدار مراد دې.چې هغه داودس لپاره کافی وی.څکه چې کله په اول کې ددے نه د قليل اوبو اعتبار نشته.نو دغه ډول به انتهاءً او بقاءً هم ددے نه د کم مقدار اوبو اعتبار نه وی.(يعنی لکه څنګه چې اول کې سړې اودس کوی.اودومره اوبه نه وی.چې دے پرے صرف فرض اندامونه يويو ځل

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۱۱۹/۱) وردالمحتار(۱۸۸/۱) والدرالمختار(۱۸۸/۱) نقلا عن القول الراجح (۳۲/۱)_



اووينځی.نودده لپاره تيمم جائز دې.څکه چې دا دومره مقدار حکماً داسې دې.لکه چې هډو اوبه شته نه.نودغه ډول که په حالت د تيمم کې دے اوبه اووينی.اود اودس کاوه لپاره کافی نه وی.نودا اوبه حکماً معدومے دی.ددے په وجود تيمم نه ماتيږی.لکه څنګه چې دا مقدار په اول کې د تيمم د جواز لپاره سبب ګرځيدلے وو.

## د تيمم لپاره د متيمم په د طهارت شرط

**وَلَا يَتَيَمَّمُ** وتيمم به نه کوی **إِلَّا بِصَعِيدٍ طَاهِرٍ** مګرپه پاکه مځکه **لِأَنَّ الطَّيِّبَ أُرِيدَ بِهِ الطَّاهِرُ** څکه چې د طيب نه مراد طاهر دې **وَلِأَنَّهُ آلَةُ التَّطْهِيرِ** او څکه چې صعيد د پاکولوآله ده **فَلَا بُدَّ مِنْ طَهَارَتِهِ فِي نَفْسِهِ** نودا ضروری ده.چې دے به پخپله پاک وی **كَالْمَاءِ** لکه چې په اوبو کې دې.

**حل اللغة:** ① **أريد، ارادة:** اراده کول ② **آلة:** ذريعه ③ **تطهير:** پاکيدل

**تشريح:- شرط طهارة المتيمم به**⊛ تيمم به صرف په پاکه خاوره باندې کوی.

**دليله الاول**⊛څکه چې په آيت د تيمم کې د ﴿فتيمموا صعيدا طيبا﴾ نه په اجماع سره مراد طاهردې.

**دليله الثانی**⊛بل دليل دا دې.چې خاوره د پاکاوه آله ده.نوځکه ددے په خپله پاکوالے ضروری دې.لکه څنګه چې د اوبو طهارت ضروری دې.

## داوبو موندلو په صورت کې دتيمم حکم

**وَيُسْتَحَبُّ لِعَادِمِ الْمَاءِ** اوچې اوبه نه مومی.نوهغه لپاره مستحب دی **وَهُوَ يَرْجُوهُ** په داسې حالت کې چې هغه د اوبو اميد ساتی **أَنْ يُؤَخِّرَ الصَّلَاةَ إِلَى آخِرِ الْوَقْتِ** چې لمونځ آخر وخت ته روستو کړی **فَإِنْ وَجَدَ الْمَاءَ** نوکه اوبه ئې اوموندے **تَوَضَّأَ** نواودس دے اوکړی **وَإِلَّا تَيَمَّمَ** کنی تيمم دے اوکړی **وَصَلَّى** او لمونځ دے اوکړی **لِيَقَعَ الْأَدَاءُ بِأَكْمَلِ الطَّهَارَتَيْنِ** ددے لپاره چې ادا په دواړو طهارتينوکې په اکمل باندې اوشی **فَصَارَ** نودا داسې شوه **كَالطَّامِعِ فِي الْجَمَاعَةِ** لکه چې د جمعے د لمونځ انتظار کوی

**حل اللغة:** ① **يرجوه، رجايرجو رجاءً** (ن) اميد کيدل ② **ان يوخر، اخر تاخيراً** روستوکول ③ **وجد وجداناً** (ض) موندل ④ **ليقع، وقع وقوعاً** (ن): واقع کيدل

**تشريح:- الروايتان في تاخير الصلاة عند رجاء الماء**⊛ ①مسئله دا ده.که اوبه موجود نه وی.او سړې دا اميد کوی.چې په آخروخت کې به اوبه اومومی.نولمونځ آخری وخت ته روستو کول مستحب دې.اوکه دا اميد ئې نه وی.نوخامخا دے لمونځ نه روستو کوی.که ده ته اوبه ملاو شی.نواودس دے اوکړی.او لمونځ دے اوکړی.اوکه ملاو ورته نشوې.نوتيمم دے اوکړی.او لمونځ دے اوکړی.او داوبو ملاويدو داميد په صورت کې لمونځ روستوکول څکه مستحب دی.چې دا په دوو طهارتينو کې په اکمل طهارت چې اودس دے په هغے باندې ادا شی .نودا داسې ده.لکه چې د جمعے لمونځ کاوه لپاره انتظار کولې شی.اوانتظار کول مستحب دې. **فَلَا يَزُولُ**

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله **فِي غَيْرِ رِوَايَةِ الْأُصُولِ** او دشيخينو رحمهما الله نه د اصولود کتابونو نه علاوه دا روايت نقل دې **أَنَّ التَّأْخِيرَ حَتْمٌ** چې روستوکول لازم دی **لِأَنَّ غَالِبَ الرَّأْيِ كَالْمُتَحَقِّقِ** څکه چې غالب ګمان په څير د متحقق دې

**تشريح:-** داصولود کتابونونه علاوه په نورو کتابونو کې د شيخينو رحمهما الله نه دا نقل دی.چې د اوبو د ملاويدواميد وی. نو روستو کول لازم دی.

**دليل غير ظاهرالرواية**⊛ څکه چې غالب ګمان په څير د متحقق دې.نولکه څنګه چې د اوبو د وجود په وخت کې تيمم جائز نه دې.دغه شان چې داوبو ملاويدو غالب ګمان وی.نوهم به تيمم نه کوی.بلکه لمونځ به آخر

وخت ته روستو كوى. كه په وخت كي دننه دننه اوبه ملاو شوې. نو ډيره ښه ده. ګني تيمم دے اوكړى. او لمونځ دے اوكړى.

**وَجْهُ الظَّاهِرِ** او د ظاهر روايت وجه دا ده **أَنَّ الْعَجْزَ ثَابِتٌ حَقِيقَةً** چې عجز په حقيقت كي ثابت دي **فَلَا يَزُولُ حُكْمُهُ** نو ددے حكم نشى زائله كيداې **إِلَّا بِيَقِينٍ مِثْلِهِ** مګر په دغه ډول يقين سره.

**حل اللغة:** ① **عجز:** عاجزى ② **فلايزول، زال زوالاً** (ن): زائل كيدل ختميدل

**تشريح:- دليل ظاهر الرواية** ۞ اوظاهر روايت دليل دا دې. چې چونكه اوبه موجود نه دى. نوحقيقتاً عجز ثابت شو. او ددے عجز حكم تيمم دې. نو ددے عجز حكم يعني جواز تيمم به په هغه وخت كي زائله كيږى. چې د اوبو د وجود يقين وى. او چونكه د اوبو د وجود يقين نشته. نو ځكه د لمونځ روستو كول هم واجب نه دى.

## په يو تيمم باندې ډيرو مونځونو ادا كولو حكم

**وَيُصَلِّي بِتَيَمُّمِهِ مَا شَاءَ** او په خپل تيمم چې ئې كوم لمونځ خوښ وى كوى دې **مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ** (برابره ده) كه فرض وى او كه نفل وى

**حل اللغة:** ① **يصلى، صلى تصلية:** لمونځ كول

**تشريح:- المذهبان في اداء الفرائض بتيمم واحد** ① مسئله دا ده. چې زموږ په نيز په يو تيمم باندې د يو نه زيات مونځونه ادا كولى شى. كه هغه فرض مونځونه وى او كه نفلى وى. كه په يو وخت كي ئې ادا كوى او كه په مختلفو وختونو كي ترڅوچې د تيمم ناقض موجود شوې نه وى.

**وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ** رحمه الله او د امام شافعى رحمه الله په نيز **يَتَيَمَّمُ لِكُلِّ فَرْضٍ** به دهر فرض لمونځ لپاره تيمم كوى **لِأَنَّهُ طَهَارَةٌ ضَرُورِيَّةٌ** ځكه چې تيمم طهارت ضرورى دې

**تشريح:-** د امام شافعى رحمه الله په نيز په يو تيمم صرف يو فرض كولې شى. او د بل فرض لپاره به دوباره تيمم كول ضرورى وى. البته په يو تيمم باندې ګڼ نوافل ادا كولې شى.

**دليله** ۞ د امام شافعى رحمه الله دليل دا دې. چې تيمم طهارت ضرورى دې. ځكه چې خاوره في نفسه ككړ كونكې ده. پاكونكے نه ده. ليكن د تيمم په صورت كي پرے د اړتيا دوجې لمونځ مباح ګرځى. نو چې يو فرض اوكړى. نو اړتيا پوره شو. او دوباره به دا اړتيا د بل لمونځ د وخت په داخليدو باندې راځى.

**وَلَنَا** او زموږ دليل دا دې **أَنَّهُ طَهُورٌ حَالَ عَدَمِ الْمَاءِ** چې خاوره پاكونكې ده. په داسې حال كي چې اوبه نه وى **فَيَعْمَلُ عَمَلَهُ** نو دا به خپل كار كوى **مَا بَقِيَ شَرْطُهُ** ترڅوچې د دے شرط موجود وى.

**حل اللغة:** ① **فيعمل، عمل عملاً** (س) عمل كول ② **بقى بقاءً** (س): پاته كيدل

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ او زموږ دليل دا دې. چې خاوره د اوبو د نشوېلى په وخت كي په نص سره مطهر ثابته شوې ده. نبى ﷺ فرمائيلى دى. «التراب طهور المسلم» او فرمائيلى ئې دى. «جعلت لي الأرض مسجدا وطهورا» او كوم څيزچې د شرط سره پاكونكې وى. هغه به ترهغه وخته پورې خپل كار جارى ساتى. ترڅوچې شرط پاته وى. نو ترڅوچې د عدم وجدان الماء شرط پاته وى. خاوره به پاكونكې پاته وى.

## د جنازې فوت كيدو په وخت د تيمم حكم

**وَيَتَيَمَّمُ الصَّحِيحُ فِي الْمِصْرِ** او صحيح سړې به په ښار كي تيمم كوى **إِذَا حَضَرَتْ جَنَازَةٌ** چې جنازه حاضره شى **وَالْوَلِيُّ غَيْرُهُ** او ولى ددے كس نه علاوه (بل څوك) وى **فَخَافَ** نو دا اجنبى ويريږى **إِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ** كه په اودس كي بوخت شى **أَنْ تَفُوتَهُ الصَّلَاةُ** نو جنازه ترے فوت كيږى **لِأَنَّهَا لَا تُقْضَى** ځكه چې د جنازې قضاء نشى راوړې **فَيَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ** نو عجز متحقق شو



**حل اللغة:** ① **صحيح:** تندرست ② **مصر جمع امصار:** ښار ③ **حضرت، حضر حضوراً** (ن): حاضريدل ④ **اشتغل، اشتغالاً:** بوخت كيدل ⑤ **تفوته، فات فوتاً** (ن): فوت كيدل

**تشريح:- العبادة التى تجوز بالتيمم مع وجود الماء** ۞ مسئله دا ده. چې يو صحيح سړې په ښار كي تيمم كولې شى. چې جنازه حاضره شى. او ولى دده نه سوا بل كس وى. اوده سره دا ويره وى. كه په اودس كاوه كي بوخت شى. نو د جنازې لمونځ به ترے فوت شى.

**فائدة قيد الصحيح** ۞ علامه مرغينانى د صحيح قيد اولګولو. په دے سره ئې د مريض نه احتراز اوكړلو ځكه چې د مريض لپاره تيمم جائز دے كه په ښار كي وى او كه د ښار نه بهر وى. كه ولى وى او كه غير د ولى نه بل څوك وى. كه د فوت كيدو ويره ور سره وى او كه نه وى.

**فائدة قيد المصر** ۞ او د ښار په قيد سره ځنګل اووتلو. ځكه چې په ځنګل كي تيمم جائز دې. كه ولى وى او كه غير د ولى نه بل څوك وى. ځكه چې په عامه توګه په ځنګل كي اوبه نه وى.

**وَكَذَا مَنْ حَضَرَ الْعِيدَ** او دغه ډول هغه كس چې د اختر لمانځه ته حاضر شى **فَخَافَ إِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ** نو ويره شى ور سره كه په اودس كي بوخت شى **أَنْ يَفُوتَهُ الْعِيدُ** نو د اختر لمونځ به فوت شى **يَتَيَمَّمُ** نو دا كس به تيمم اوكړى **لِأَنَّهَا لَا تُعَادُ** ځكه چې د اختر د لمونځ راګرځول نشى كولې **وَقَوْلُهُ وَالْوَلِيُّ غَيْرُهُ إِشَارَةٌ** او په دے قول كي چې «الولى غيره» كي دے اړخ ته اشاره ده **إِلَى أَنَّهُ لَا يَجُوزُ لِلْوَلِيِّ** چې د ولى لپاره جائز نه دى **وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله روايت دې **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا صحيح دې **لِأَنَّ لِلْوَلِيِّ حَقَّ الْإِعَادَةِ** ځكه چې ولى ته د اعادے حق حاصل دې **فَلَا فَوَاتَ فِي حَقِّهِ** نو ځكه د هغه په حق كي فوت كيدل نه موجوديږى

**حل اللغة:** **اعادة:** راګرځول

**تشريح:-** او دغه ډول د اختر د لمانځه لپاره راغلو. او ويره وه كه په اودس كي بوخت شى. نو د اختر لمونځ به ترے فوت شى. نو دا كس دے تيمم اوكړى. او په جماعت كي دے شريك شى.

**جواز التيمم عند فوت خوف ما لا خليفة له** ۞ صاحب د عنايه ليكلى دى. چې ضابطه دا ده. چې كوم شى بدل ته نه فوت كيږى. نو د اوبو د وجود په صورت كي هم په تيمم باندې هغه ادا كول جائز دى. (نو كه په اودس كي مشغوله كيدو سره ورته د دغه عبادت د فوت كيدو ويره وى. چې بدل ته نه منتقل كيږى. په تيمم كول جائز دې.) او زموږ په نيز د جنازې لمونځ هم داسې دې. ځكه چې ددے قضاء نشته. او دغه ډول د اختر د لمونځ قضاء هم نشته.

## د اختر په مونځ كي د حدث نه روسته د تيمم حكم

**وَإِنْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ أَوِ الْمُقْتَدِي فِي صَلَاةِ الْعِيدِ** مسئله دا ده. كه د اختر په لمونځ كي امام يا مقتدى بے اودسه شو **تَيَمَّمَ** نو تيمم دے اوكړى **وَبَنَى** و بناء دے اوكړى **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (١) دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ده

**حل اللغة:** ① **احدث، احداثاً:** بې اودس كيدل

**تشريح:- المذهبان في التيمم بعد الحدث في العيد** ۞ مسئله دا ده. ① كه د اختر په لمانځه كي امام يا مقتدى بے اودسه شو. او دوى پيل په اودس باندې كړې وه. نو په داسې صورت كي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به تيمم

---

(١) القول الراجح ما حاصله ان كانت الجبانة بعيدة لا يقدر على ادراک الامام بما بقى من الصلاة فيفتى بقول ابى حنيفة رحمه الله يعنى يتمم ويبنى وان كانت الجبانة قريبة يقدر على ادراک الامام بعد اتمام الوضوء فيفتى بقول الصاحبين اى يتوضا ويتمم كذا فى الكفاية (١٢٣\١) والهندية (٣١\١) نقلا عن القول الراجح (٣٣\١)_

اوکړي.اوبناء به اوکړي

وَقَالَا وصاحبین رحمهما الله فرمائي.لَايَتَيَمَّمُ چې تیمم به نه کوي لِأَنَّ اللَّاحِقَ يُصَلِّي بَعْدَ فَرَاغِ الْإِمَامِ ځکه چې لاحق دامام د فراغت نه روسته هم لمونځ پوره کولې شي فَلَا يَخَافُ الْفَوْتَ نود فوت کیدو ویره پاتې نشوه

حل اللغة ① فراغ: اوزګاریدل ② خوف: ویره

تشريح:- صاحبین رحمهما الله فرمائي.چې تیمم به نه کوي.بلکه اودس به کوي.او بنا به کوي.

دليلهما◉ دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چې دا کس لاحق دې.او د لاحق په حق کې د لمونځ فوت کیدو ویره نه وي.ځکه چې هغه د امام دفراغت نه روسته هم خپل لمونځ پوره کولې شي.اود کوم کس په لمونځ کې چې د «فوت لا الی بدل» ویره نه وي.نودهغه لپاره د اوبو د موجودوالي په وخت کې دتیمم اجازت نشته.

وَلَهُ او دامام صاحب دلیل دا دې أَنَّ الْخَوْفَ بَاقٍ چې ویره لا پاتې ده لِأَنَّهُ يَوْمُ زَحْمَةٍ ځکه چې دا ورځ د ګڼړې ده فَيَعْتَرِيهِ عَارِضٌ يُفْسِدُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ کیدې شي چې څه داسې شي عارض شي.چې په هغې سره لمونځ مات شي

حل اللغة ① زحمة: ګڼړه تنګي

تشريح:- دليل ابى حنيفة ◉ اودامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چې د فوت کیدو ویره اوس هم پاتې ده.ځکه چې داختر ورځ د ګڼړې ورځ وي.کیدې شي.چې داسې شي پیښ شي.چې لمونځ پرې فاسد شي.مثلا څوك ورته سلام اوکړي.او دے د سلام ځواب ورکړي.یا ورته څوك مبارکي ورکړي.او دے هغه قبوله کړي.نود ده لمونځ به مات شي.اود اختر د لمونځ قضاء هم نشته.ځکه چې د اختر لمونځ په جمعې سره مشروع شوي دي.نود فوت کیدو ویره پاتې ده.د دے وجې ورته تیمم جائز دي.

وَالْخِلَافُ فِيمَا او اختلاف په هغه صورت کې دې إِذَا شَرَعَ بِالْوُضُوءِ چې لمونځ ئې په اودس باندې پیل کړې وي وَلَوْ شَرَعَ بِالتَّيَمُّمِ اوکه په تیمم ئې پیل کړې وي تَيَمَّمَ نو تیمم دے اوکړي وَبَنَى اوبنا دے اوکړي بِالِاتِّفَاقِ (اودا حکم اتفاقي دې. لِأَنَّا لَوْ أَوْجَبْنَا الْوُضُوءَ ځکه که موږ اودس واجب کړو يَكُونُ وَاجِدًا لِلْمَاءِ فِي صَلَاتِهِ نو په لمونځ کې به د اوبو موندونکې شي فَيَفْسُدُ اولمونځ به ئې فاسد شي.

حل اللغة ① شرع، شروعًا (ف) پیل کول

تشريح:- صورة الخلاف◉ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي.چې دا امام صاحب او صاحبین رحمهم الله په مینځ کښې اختلاف په هغه صورت کې دې.چې لمونځ په اودس باندې پیل شوې وي.اوکه لمونځ په تیمم باندې پیل شوې وي.نو په دے صورت کې به په اتفاق سره تیمم اوکړي.اوبناء به اوکړي.ځکه که موږ په ده باندې اودس واجب کړو.نود دے خودا مطلب شو.چې ده په لمانځه کې اوبه بیا موندلې.او چې متیمم په حالت د لمانځه کې اوبه اووینی.نو لمونځ ئې ماتیږي. (نو ځکه مسئله دا ده.چې که په تیمم ئې پیل کړې وي.نوتیمم دے اوکړي.او بناء دے کوي.)

## دجمعې د فوت کیدوپه وخت د تیمم حکم

وَلَا يَتَيَمَّمُ لِلْجُمُعَةِ او دجمعې دلمونځ لپاره تیمم نشته وَإِنْ خَافَ الْفَوْتَ اګرچې د جمعې دفوت کیدو نه ویریږي لَوْ تَوَضَّأَ که اودس اوکړي فَإِنْ أَدْرَكَ الْجُمُعَةَ که جمعه ئې رالاندې کړه صَلَّاهَا نوادودے کړي وَإِلَّا صَلَّى الظُّهْرَ أَرْبَعًا اوکه نه نو څلور رکعته دے د ماپښین اوکړي لِأَنَّهَا تَفُوتُ إِلَى خَلَفٍ ځکه چې دا خلیفه ته فوت کیږي وَهُوَ الظُّهْرُ چې د ماپښین لمونځ دې بِخِلَافِ الْعِيدِ په خلاف د اختر د مانځه.

حل اللغة ① خاف خوفًا (س): ویریدل ② ادرک ادراکًا: موندل، پوهیدل ③ تفوت، فات فوتًا (ن) فوت کیدل

تشريح:- عدم جواز التيمم عند فوت الجمعة ◉ مسئله دا ده.که په اودس کې بوخت کیدو باندې د جمعې دفوت کیدو ویره وي.نوبیا هم د تیمم کولواجازت نشته. بلکه اودس ضروري دې.نوکه ده اودس



اوکړلو.اودجمعې لمونځ ئې رالاندې کړلو.ډیره ښه ده.اوکه دجمعې لمونځ ئې رالاندې نکړلو.نود ماپښین لمونځ چې خلیفه دې.هغه دې ادا کړي.

دليله◉دلیل دا دې.اګرچې جمعه ترے فوت شوه.لیکن ددے خلیفه چې د ماپښین لمونځ دې.هغه موجود دې. نوچې اوبه موجود وي.نوهغې په وجود کې صرف د فوت کیدو د ویرے د وجې تیمم جائز نه دې.

وجه جوازالتيمم في العيد◉ ددے په خلاف داختر لمونځ دې.که ددے د فوت کیدوویره ور سره وي.نو تیمم دے اوکړي.اوداختر لمونځ دے اوکړي.ځکه چې داختر لمونځ خلیفه ته نه منتقل کیږي.هم دا وجه ده چې د اختر دلمونځ خلیفه نشته.نوداختر د لمونځ قضاء هم نشته.

صاحب دهدایه صرف عقلي دلیل ذکر کړې دې.مناسب ګڼړم.چې دخپلې شرح مفتاح الفلاح نه نقلي دلیل نقل کړم.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه چا پوښتنه اوکړه.که یوسړي ته ناڅاپه جنازه حاضره شي. او دے بے اودسه وي؟نو هغوی اوفرمائیل:تیمم دے اوکړي. او د جنازې لمونځ دے اوکړي.

«شرح معانى الاثار فى الطهارة باب ذكر الجنب والحائض والذى ليس على وضوء و قرائهم القرآن ۱/۸٦ اثر ضعيف لكن لـه شـواهد وان كان فى كلها كلام لكن كثرة الطرق يقوى ضعف الحديث كما ذكره الزيلعى فى تحقيق هذا الاثر»

الاستدلال: د جنازې په لمانځه کې خو دا اثر نص دې.چې تیمم به کوي.اوس چې موږ نظر اوکړلو.نو د جنازې د لمانځه په موقع د تیمم جواز ځکه دې.چې دهغې نائب اوخلیفه نشته.اوهم دا علت داختر په لمانځه کې هم دې.یعني داختر د لمانځه نائب اوخلیفه هم نشته.نودعلت مشترکه د وجه مو داختر لمونځ د جنازې په لمونځ قیاس کړلو.اودا نتیجه راووتله.چې داختر په لمانځه کې هم که دغه صورت پیښ شي.نو تیمم به کوي.اودس دے نه کوي.شاه فیصل عفی عنه

السوال ◉ صاحب دهدایه د ماپښین لمونځ ته د جمعې خلیفه اووئیل:حالانکه دشیخینو رحمهما الله په نیز د وخت فرض د ماپښین لمونځ دې.او جمعه دهغې خلیفه ده.

الجواب الاول◉ځواب دا دې.چې علامه مرغیناني رحمه الله دے اړخ ته اشاره اوکړله.چې د امام محمد رحمه الله مذهب مختار دې.ځکه چې د هغوی په نیز د جمعې په ورځ کې جمعه اصل دې.او ماپښین دهغې خلیفه دې

الجواب الثاني◉ دوهم ځواب دا دې.چې د جمعې په ورځ د ماپښین لمونځ په حکم د خلیفه کې دې.ځکه چې کله جمعه فوت شي.نو ماپښین کولې شي.او د دے په عکس نشي کولې.(چې ماپښین فوت شي.نو جمعه دےکولې شي نود دے وجې صاحب دهدایه رحمه الله ماپښین ته د جمعې خلیفه اووئیل:والله اعلم (عنایه)

## د وختي مونځ د فوت کیدو په وخت کې د تیمم حکم

وَكَذَا إِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ اوهم دغه ډول که د وختي لمونځ د فوت کیدو ویره وي. لَوْ تَوَضَّأَ که چرته اودس کوي نووختي لمونځ ترے قضاء کیږي لَمْ يَتَيَمَّمْ تیمم دے نه کوي وَيَتَوَضَّأُ بلکه اودس دے اوکړي وَيَقْضِي مَا فَاتَهُ اود قضاء شوی لمونځ قضاء دے راوړي لِأَنَّ الْفَوَاتَ إِلَى خَلَفٍ ځکه چې دا خلیفه ته فوت کیږي. وَهُوَ الْقَضَاءُ او هغه وختي لمونځ دې.

حل اللغة ① خاف خوفًا (س) ویریدل ② توضا توضیًا: اودس کول ③ یقضی، قضی قضاءً (ض) قضاکول

تشريح:- حكم التيمم عند خوف فوت الصلاة الوقتية ◉مسئله دا ده.که په اودس کې بوخت کیدو کې د وختي لمونځ د فوت کیدو ویره وي.بیا به هم تیمم نه کوي. بلکه اودس به کوي.اود فوت شوي لمونځ به قضاء راوړي.ځکه چې د وختي لمونځ فوت کیدل فوت الی خلف دې.اووراندې تیر شوی دی.چې کوم شی خلیفه ته منتقل کیږي.نودهغے د فوت کیدو د وجې په تیمم باندې دهغے ادا کول جائزنه دی. (بلکه اودس به کوی.اوچې کوم شی ته هغه منتقل شوې وي.هغه به کوی)

السوال والجواب◉ شارحینو رحمهم الله په دے عبارت باندې د تکرار اعتراض کړې دې.یعني دا حکم د باب په اول کې په دے الفاظو سره تیر شوې دې.چې «والمعتبر المسافة دون خوف الوقت» ددے ځواب دا دې.چې د باب

په اول کي د صاحب هدايه قول دی.او په دے مقام کي د صاحب قدوری قول دی.نوتکرار پاتې نشو.

## د مسافرتيمم کول او په کجاوه کې د اوبو هيريدوحکم

وَالْمُسَافِرُ اِذَانَسِيَ الْمَاءَ فِي رَحْلِهٖ اودمسافر نه چي کله په خپله کيجاوه کښے اوبه هيرے شي فَتَيَمَّمَ وتيمم ئې اوکړلو وَصَلّٰى او لمونځ ئې اوکړلو ثُمَّ ذَكَرَالْمَاءَ بيا ورته اوبه وريادے شوې لَمْ يُعِدْهَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ نود طرفينو رحمهما الله په نيز به لمونځ نه راګرځوی وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله فرمايي يُعِيْدُهَا[1] چې اعاده به کوی

حل اللغة:① نسی، نسيانًا (س): هيرول ② رحل: کجاوه ③لم يعدها، اعاد اعادة: واروسته کول

تشريح:- نسيان الماء في الرحل: مسئله دا ده.که مسافر په تيمم باندې لمونځ اوکړلو.حالانکه دهغه په کجاوه کي اوبه موجود وې. نو په دے صورت کي د طرفينو رحمهما الله په نيز په ده باندې د لمانځه اعاده واجب نه ده.د ابويوسف رحمه الله په نيز پرے د لمانځه اعاده واجب ده.که او به ورته په وخت کي وريادے شوې وی اوکه د وخت نه پس.اودا دامام شافعي رحمه الله قول هم دی.

وَالْخِلَافُ فِيْمَا اواختلاف په هغه صورت کي دی اِذَا وَضَعَهٗ بِنَفْسِهٖ چې اوبه ده خپله ايخودے وی اَوْوَضَعَهٗ غَيْرُهٗ بِاَمْرِهٖ يا دده په حکم ايخودے شوې وی وَذَكَرَهٗ فِي الْوَقْتِ وَبَعْدَهٗ سَوَاءٌ اودے په وخت کي دننه يادېدل اود وخت نه روسته يادېدل برابر دی

حل اللغة:① وضعه، وضع وضعًا(ف) ساتل ② ستر: پواړه

تشريح:- علامه مرغيناني رحمه الله فرمايي چې دا مذکور اختلاف په هغه وخت کي دی چې په کجاوه کي ده په خپله اوبه کيخودې وی يا بل چا د ده په حکم باندې کيخودې وی او ده ته په وخت کي وريادې شوې يا د وخت تيرو نه روسته په ټولو صورتونوکي دواړه صورتونه برابر دی يعنی اختلاف په کي موجود دی اوکه دده په خپله نه وی کيخودې نو بيا په ده باندې د لمانځه اعاده واجب نه ده ځکه چې ده ته علم نشته.

لَهٗ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دی اَنَّهٗ وَاجِدٌ لِلْمَاءِ چې دا کس داوبو موندونکې دی فَصَارَ كَمَا اِذَا كَانَ فِيْ رَحْلِهٖ ثَوْبٌ نو دهغه کس په شير دی.چې په کجاوه کي ئې جامے ايخودے وی فَنَسِيَهٗ او هيرے شوې وی ترې

تشريح:- دليله: دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دی.چې دا کس د اوبو موندونکې دی.اوتيمم دهغه کس لپاره مشروع شوې دی.چې هغه سره اوبه نه وی.نود ده تيمم جائز نه دی.اودا داسې ده. لکه يوسړی سره په کجاوه جامے وی. او دده نه هيرے شی.اولمونځ ئې په برېنډه اوکړلو.يا ئې په پليتوجاموکي اوکړلو . نو چې پاک کالی ورته وریاد شی.(چې ما خو په کجاوه کي جامے اويخودے دی.)نو په ده باندې د لمانځه دوباره کول واجب دی.

وَلِاَنَّ رَحْلَ الْمُسَافِرِ مَعْدِنٌ لِلْمَاءِ عَادَةً اوځکه چې دمسافر کجاوه په عادت کي داوبو لپاره معدن وی فَيُفْتَرَضُ الطَّلَبُ عَلَيْهِ نوطلب کول به فرض وی

تشريح:- دليله الثاني: دوهم دليل دا دی.چې په عادت کي دا معمول دے چې دمسافر کجاوه داوبو لپاره معدن او خانې وی.نوځکه په ده باندې په کجاوه کي د اوبو لواړه واجب وی.نوچې ده لټون اونکړلو.نومعذور نشو.اوپه ده باندې اعاده واجب شوه.

وَلَهُمَا اود طرفينو رحمهما الله دليل دا دی اَنَّهٗ لَاقُدْرَةَ بِدُوْنِ الْعِلْمِ چې د علم نه بغير قدرت حاصل نه دی وَهُوَالْمُرَادُ بِالْوُجُوْدِ

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی شرح عقود رسم المفتی ،ص،۷۰، والخانية (علی هامش الهندية (۶۳\۱) والدرالمختار(۱۸۳\۱) نقلا عن القول الراجح (۳٤\۱)-



او د موندلونه مراد هم قدرت دی

تشريح:- دليل الطرفين: او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دی.چې په اوبوباندې قدرت بغير دعلم نه نه راځی.اود اوبو د موجودوالی نه هم دا مراد دی.چې داوبوپه استعمال دده قدرت وی.نوچې ده ته علم نشته.نوقدرت هم رانغلو.اوچې قدرت رانغلو.نو اوبه ورته حاصلے نشوې.اوچې اوبه ورته حاصلے نه وی.نو په دے صورت کي تيمم جائزدی.

وَمَاءُ الرَّحْلِ مُعَدٌّ لِلشُّرْبِ اوپه کجاوه کي اوبه دڅښلو لپاره کيخودے شی لَا لِلْاِسْتِعْمَالِ د اودس لپاره نشی

تشريح:- الجواب من كون الرحل معدنًا: اوپاته شوه دا خبره چې دمسافر کجاوه معدن وی.نو ددے ځواب دا دی.چې په کجاوه کي په عامه توګه د څښلو اوبه کيخودے شی.داودس اوغسل اوبه نشی کيخودې.

وَمَسْاَلَةُ الثَّوْبِ عَلَى الْاِخْتِلَافِ اودجامو مسئله هم مختلف فيه ده

تشريح:- الجواب الانكاری عن قياس ابی يوسف: اوپه «مسئلة الثوب» سره د امام ابويوسف رحمه الله دقياس ځواب دا دی.چې دجامے مسئله هم مختلف فيه ده.د طرفينو رحمهما الله په نيز که په کجاوه کي جامے هيرے کړی.او په برېنډه يا په پليتوجامو کي لمونځ اوکړی.اوبيا ورته پاکې جامے وريادے شی.نولمونځ راګرځول پرے نشته.

وَلَوْكَانَ عَلَى الْاِتِّفَاقِ اوکه متفق عليه وی. فَفَرْضُ السَّتْرِ يَفُوْتُ لَا اِلٰى خَلَفٍ نو دستر پواړه خليفه ته نه منتقل کيږی وَالطَّهَارَةُ بِالْمَاءِ تَفُوْتُ اِلٰى خَلَفٍ اوپه اوبو سره طهارت حاصلول خليفه ته منتقل کيږی وَهُوَالتَّيَمُّمُ چې تيمم دی

تشريح:- الجواب التسليمی عن قياس ابي يوسف رحمه الله: اوکه دا اومنلے شی.چې د جامو مسئله هم متفق عليه ده.نوبيا هم دا داوبو مسئله د جامو په مسئله قياس کول ټيک نه دی.ځکه چې د دے دواړو په مينځ کي توپير دی.فرق دا دی.چې د بدن پواړه فرض دی.نوکه دا فرض فوت شی.ددے څه خليفه نشته.اوکه د اوبو په ذريعه دطهارت حاصلول فوت شی.نوددے خليفه شته چې تيمم دی.(نودا قياس،قياس مع الفارق شو.اودا ناجائزدی.)

## د متيمم لپاره داوبود لټون حکم

وَلَيْسَ عَلَى الْمُتَيَمِّمِ او په متيمم باندې واجب نه دی طَلَبُ الْمَاءِ اِذَا لَمْ يَغْلِبْ عَلٰى ظَنِّهٖ لټون د اوبو ترڅوچې د ده غالب ګمان نه وی اَنَّ بِقُرْبِهٖ مَاءً چې ده سره نزدے اوبه دی

حل اللغة:① متيمم: تيمم کونکې ② طلب: لټون، غوښتل ③ظن: ګمان

تشريح:- المذهبان في طلب الماء عند غلبة الظن: ① زمونږ په نيز چې اوبه نه مومی.نوپه هغه باندې د اوبو لټون واجب نه دی.ترڅوچې هغه ته داوبو دنزيکت غالب ګمان نه وی.② اود امام شافعي رحمه الله په نيز بنی او چپه اړخ ته داوبو لټون شرط دی.ځکه چې په (( فلم تجدوا ماء)) کي د تيمم د عدم وجدان په وخت کي دی. او عدم وجدان خو د لټون نه روسته متحقق کيږی.نوځکه دتيمم نه وړاندې داوبو لټون ضروری دی.

لِاَنَّ الْغَالِبَ عَدَمُ الْمَاءِ فِي الْفَلَوَاتِ ځکه چې په دشتو(بيابانونو) کي غالب دا وی چې اوبه نه وی

حل اللغة:① فلوات: ځنګل صحرا

تشريح:- دليلنا: زمونږ دليل دا دی.چې په آيت کي عدم وجدان مطلق دی.د طلب يا دغير دقيد نه معری اوخالی دی.نوددے وجه به د «المطلق يجری علی إطلاقه» قاعده باندې عمل کولې شوې شی.او آيت به د طلب وغيره په قيد سره نشی مقيد کولې. او چونکه په عامه توګه باندې په بيابانونو کي اوبه نه وی.او د اوبو په وجود باندې څه دليل هم نشته.نوځکه به دا وئيلی شی.چې دا کس داوبو موندونکې نه دی.اوپه دے صورت

كي به تيمم كول جائز وي.نوځكه بغير د اوبو د لټون نه تيمم جائز اوګرځولې شو.

**وَلَادَلِيلَ عَلَى الْوُجُودِ** اوپه وجود باندې څه دليل نشته **فَلَمْ يَكُنْ وَاجِدًا لِلْمَاءِ** نودے د اوبو موندونكې نه شو

**تشريح:- الجواب من دليل الشافعي** ۞ اودامام شافعي رحمه الله دا قول چې عدم وجدان بغير د طلب نه نه راځي .دا قول صحيح نه دې.يعنې چې د وجود د اوبو لپاره طلب ضروري دې.دا خبره ټيك نه ده.بلكه بغير د طلب نه هم وجود متحقق كيدې شي.لكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. «من وجد لقطة فليعرفها» يعني كوم كس چې څه ورك شوې شي بياموندلو.نودهغے تشهير دے كوي.په حديث كي دغه كس ته واجد يعني موندونكې ونيلې شوې دي.اګرچې دهغه د اړخه طلب نه وي شوې.بلكه بغير د طلب نه ئې دغه شي موندے وي.

**وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ** اوكه دده غالب ګمان دا وي **أَنَّ هُنَاكَ مَاءً** چې هلته كي اوبه دي **لَمْ يُجْزِلَهُ أَنْ يَتَيَمَّمَ** نودده لپاره تيمم جائزنه دے **حَتّٰى يَطْلُبَهُ** ترڅوچې داوبولټون اونكړي

**تشريح:- حكم التيمم في صورة غالب الظن** ۞ اوكه غالب ګمان دا وي.چې دلته كي اوبه دي.نو په دے صورت كي ورته تيمم كول جائزنه دي.ترڅوچې ئې اوبه لټولې نه وي.

**لِأَنَّهُ وَاجِدٌ لِلْمَاءِ نَظَرًا إِلَى الدَّلِيلِ** ځكه چې دے دليل اړخ ته نظر كونكې دې. نو د اوبو موندونكې شو

**تشريح:-** ځكه چې دليل ته په نظر كاوه سره دے د اوبوموندونكې دې.اودليل غلبه دظن ده.او په عباداتوكي غالب ګمان قائم مقام د علم دې.نوكه نزدے ورته د اوبو د وجود علم وو.نو تيمم به جائزنه وو.نودغه شان چې د اوبود نزديكت ورته غالب ګمان وي.نوهم به تيمم جائزنه وي.

**ثُمَّ يَطْلُبُ مِقْدَارَ الْغَلْوَةِ** بيا به د يوغشي په اندازه لټون كوي **ولايبلغ ميلاً** **وَلَا يَبْلُغُ مِيلًا** او يوميله پورې به نه ځي ګي **لَا يَنْقَطِعَ عَنْ رُفْقَتِهِ** چې د خپل ملګرو نه پاتې نشي

**حل اللغة**① **ينقطع، انقطع انقطاعاً**: واروسته كيدل، وركيدل، جداكيدل ② **رفقته**: انډيوال

**تشريح:- تعريف الغلوة** ۞ پاته شوه دا خبره چې دا كس به څومره لرې پورې د اوبولټون كوي.نوپه دے اړه كې د صاحب هدايه رحمه الله تحقيق دا دې.د يوغشي په مقدار دے لاړ شي.اود يوميل په اندازه دے لرې نه ځي.ځكه چې دخپلو ملګرو څخه به پاتې شي. غلوة دلام په زور سره دا دې.چې تيرانداز د خپل كمان نه غشے اولي.نود تير ويشتلو دځائې نه ترغشي غورځيدلوځائې پورې چې كومه فاصله ده.دا غلـوة" ده.او ځينې حضراتو فرمائيلي دي.چې د درے سوو ګزونو نه تر څلورو سوو ګزونو پورې فاصله غلـوة" ده. (يعني چې دے په لينده كي غشي كيدې.اوهغه اولي.نوچې تركومے پورې هغه رسيدے شي.د هغه هومره مسافه په اندازه په ده د اوبو لټون لازم دې.)

### دملګرې نه د اوبو غوښتلوپه صورت كې دتيمم حكم

**وَإِنْ كَانَ مَعَ رَفِيقِهِ مَاءٌ** كه دده دسفر انډيوالان سره اوبه وي **طَلَبَ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَتَيَمَّمَ** نودتيمم كاوه نه وړاندې دے دهغه نه اوغواړي **لِعَدَمِ الْمَنْعِ غَالِبًا** ځكه چې په عامه توګه داوبو نه منع نه كيږي **فَإِنْ مَنَعَهُ مِنْهُ** كه هغه ترے منع كړې **تَيَمَّمَ** نو تيمم دې اوكړي **لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ** املہ د متحقق كيدو د عجز نه

**حل اللغة**① **رفيق**: انډيوال ② **طلب، طلباً**: لواړه غوښتل ③ **تحقق**: ثابتيدل

**تشريح:- طلب الماء من الرفيق قبل التيمم** ۞ مسئله دا ده.كه د سفر د انډيوالان سره اوبه وي.نوحكم دا دې. چې د تيمم كاوه نه وړاندې دے دهغه نه اوبه اوغواړي. كه هغه اوبه وركړې.نواودس دے اوكړي.او لمونځ دے اوكړي .ګنې تيمم دے اوكړي.

**دليله** ۞ دليل دا دې.چې عام طورباندې د اوبو نه منع نشي كولې.او په غوښتلو سره وركولې شي.نوځكه د



تيمم كاوه نه وړاندې غوښتل پكار دي.اوچونكه چې انكار اوكړي.نوعجزمتحقق شو.نوځكه به په دے صورت كي تيمم كوي.

**صورة وجوب طلب الماء** ۞ دبعضے عالمانو رحمهم الله دا رائې ده.كه ده ته دا غالب ګمان وي.چې په غوښتلو به ده ته اوبه وركړي.نوپه ده باندې طلب كول واجب دي.اوكه غالب ګمان نه وي.نو واجب نه دي.(كفايه)

**وَلَوْ تَيَمَّمَ قَبْلَ الطَّلَبِ** اوكه د غوښتلو نه وړاندې ئې تيمم اوكړلو **أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائزدې **لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ الطَّلَبُ مِنْ مِلْكِ الْغَيْرِ** ځكه چې د غير دملك نه غوښتل واجب نه دي

**حل اللغة**① **لايلزم، لزم لزوماً (س)**: ضروري كيدل

**تشريح:- المذهبان في حكم الصلاة بالتيمم قبل الطلب من الرفيق** ۞ ① اوكه دخپل انډيوالان نه د اوبو د غوښتلونه وړاندې ئې تيمم اوكړلو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا كافي كيږي.

**دليله** ۞ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې د بل په ملك كي د يو څيزغوښتل لازم نه دي.بلكه دا چې په سوال كاوه كي ذلت هم شته. نو د دے وجې هم دده لپاره د انډيوالان نه اوبه غوښتل لازم نه دي.

**وَقَالَا** او صاحبين رحمهما الله فرمايي **لَا يُجْزِيهِ**[1] چې نه كافي كيږي **لِأَنَّ الْمَاءَ مَبْذُولٌ عَادَةً** ځكه چې په عامه توګه اوبه وركولې شي

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چې نه كافي كيږي.

**دليلهما** ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چې اوبه داسې شي دي.چې په عامه توګه دا نشي منع كولې. نو چې دده انډيوالان سره وي. نودے به هم قادر ګڼړلې شي.

**وَلَوْ أَبَى أَنْ يُعْطِيَهُ** اوكه د اوبو ور كاوه نه ئې انكار اوكړلو **إِلَّا بِثَمَنِ الْمِثْلِ** ګڼرخ ثمن مثل په عوض **وَعِنْدَهُ ثَمَنُهُ** او دے د ثمن مثل مالك هم وي **لَا يُجْزِئُهُ التَّيَمُّمُ** نودده لپاره تيمم كول جائز نه دي **لِتَحَقُّقِ الْقُدْرَةِ** ځكه چې قدرت متحقق شو **وَلَا يَلْزَمُهُ تَحَمُّلُ الْغَبْنِ الْفَاحِشِ** اود غبن فاحش برداشت كول لازم نه دي. **لِأَنَّ الضَّرَرَ مُسْقِطٌ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** ځكه چې تكليف ساقط كړې شوې دي.

**حل اللغة**① **ان يعطيه، اعطى اعطاءً**: وركول ② **ثمن**: قيمت ③ **فاحش**: ډير

**تشريح:- الصور الثلاث في اخذ الماء بالقيمة** ۞ اوكه دده انډيوالان په قيمت باندې اوبه وركوي. اودے په قيمت باندې داوبو اخستلو قدرت هم لري.نود دے درے صورتونه دي.① يودا چې هغه ئې د مثل قيمت په عوض خرڅوي.(يعنې چې په دغه ځائے كې داوبو څه قيمت وي) ② دوهم دا چې په غبن يسير ئے خرڅوي .(يعنې چې دهغے څه قيمت وي.د هغے نه لږے غوندې زياتې پيسے اخلي. ③ دريم دا چې په غبن فاحش باندې ئې خرڅوي.(يعنې چې دهغه په بازار كي څه قيمت وي.دهغے نه ئې په ډير زيات قيمت خرڅوي)

**حكم الصور الثلاث** ۞ په اول او دوهم صورت كي تيمم جائزنه دې.ځكه چې دے دواړو صورتونو كي په اوبو باندې قدرت موجود دې.ځكه چې د اوبو په قيمت باندې قدرت په اوبو باندې قدرت دې.نوځكه د تيمم جواز منع دې.اوپه دريم صورت كي ځكه تيمم جائز دې.چې په غبن فاحش برداشت كاوه كي ده ته ضرر دې. حالانكه په شريعت كي ضرر ساقط دې.ځكه چې دمسلمان مال داسې قابل احترام دې.لكه څنګه چې دده جان قابل احترام دې.اودجان په سلسله كي ضرر ساقط دې.دغه ډول به د مال په اړه كي هم ساقط وي.

## باب المسح على الخفين

[1]) القول الراجح هو قول ظاهر الرواية اى وجوب السوال من الرفيق كذا فى العناية (١٢٥\١) والدرالمختار(١٨٣\١) وردالمحتار (١٨٣\١) نقلا عن القول الراجح (٣٦\١)-

ژباړه:- (دا) باب په موزو باندې د مسح کاوه (داحکامو په بیان کې) دې.

**تشریح:- وجوه ایراد المسح بعد التیمم**۞ مصنف رحمه الله دتیمم نه روسته متصل د مسح علی الخفین احکام دیو څو وجوهاتو له کبله ذکر کړل. ① تیم اومسح دواړه رخصت موقته دی ② په دے دواړو کې هر یو طهارت عارض دې. ځکه چې اصل پریمنځل دی. ③ په دے دواړو کې هر یو طهارت مسح دې. تیمم داودس بدل دې. او مسح علی الخفین د غسل الرجلین بدل دې. ④ په دے دواړو کې هر یو بدل اودس په بعضے اندامونو باندې اکتفی کولې شی. ⑤ په تیمم او مسح دواړو کې د

**دمسح ثبوت په سنت باندې**

**اَلْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ** په دواړو موزو باندې مسح په سنت سره (ثابته) ده **وَالْأَخْبَارُ فِيهِ مُسْتَفِيضَةٌ** او اخبار په دے اړه کې ډیر دی **حَتّٰى قِيلَ** تردې چې وئیلې شوی دی **إِنَّ مَنْ لَمْ يَرَهُ** چې څوك مسح علی الخفین جائز نه ګڼړی **كَانَ مُبْتَدِعًا** هغه په دین کې بدعتی دې **لٰكِنْ مَنْ رَآهُ** لیکن چاچې جائزاوګڼړله **ثُمَّ لَمْ يَمْسَحْ آخِذًا بِالْعَزِيمَةِ** اوبیا ئې عزیمت اختیار کړلو **كَانَ مَأْجُورًا** نو هغه ته به ثواب ملاویږی.

**حل اللغة**① **خفین**، دَ خف تثنیه، موزې ② **اخبار**: احادیث روایات ③ **مستفیضة**: معنی خوریدل خودلته معنی مشهور ④ **مبتدعًا**: ایجادکونکې، بدعتی ⑥ **لم یمسح، مسح مسحًا** (ف) لاس لګول

**تشریح:- ثبوت المسح من السنة**۞ شیخ قدوری رحمه الله فرمائی. چې د مسح علی الخفین ثبوت د قرآن نه شوې دې. او په دے اړه کې ډیر قولی اوفعلی احادیث مشهور دی. تردے که یوکس مسح علی الخفین جائزنه ګڼړی. نودا کس بدعتی دې. اوکه یوکس ئې جائزګڼړی. لیکن په عزیمت عمل کوی. یعنی پښے وینځی. نودا کس عندالله ماجور دې. اوده ته به ثواب ملاویږی. په عین الهدایه کې دی. که په مسح نه کاوه کې په ده باندې د خارجی یا رافضی شك راځی. نوبیا مسح کول افضل ده.

**د مسح علی الخفین دجواز شرطونه**

**وَيَجُوزُ مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوءِ** او جائزده دهر حدث نه چې موجب د اودس وی **إِذَا لَبِسَهُمَا عَلَى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ** خوچې دواړه ئې په کامل طهارت باندې اغوستے وی **ثُمَّ أَحْدَثَ** او بیا بے اودسه شوې وی

**حل اللغة**① **یجوز، جاز جوازًا** (ن) روا کیدل ② **موجب**: واجب کونکې ③ **لبسهما، لبس لبسًا** (س): اغوستل

**تشریح:- جوازالمسح في الحدث الاصغردون الاکبر**۞ مسئله دا ده. چې دمحدث لپاره مسح کول جائزده. که محدث سړې وی اوکه ښځه وی. خوچې دواړه ئې په کامل طهارت باندې اچولې وی. اوکوم کس باندې چې غسل واجب شوې وی. دهغه لپاره په موزو باندې مسح کول جائز نه ده.

**خَصَّهُ** خاص ئې کړلو **بِحَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوءِ** دا په داسې حدث چې په هغے باندې صرف اودس واجبیږی **لِأَنَّهُ لَا مَسْحَ مِنَ الْجَنَابَةِ** ځکه چې د جنابت (په صورت کې) مسح جائز نه ده **عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى** انشاء الله دابه موږ بیان کړو

**حل اللغة**① **جنابة**: ناپاکی ⑤ **نبین، بین تبیینًا**: بیانول

**تشریح:-** صاحب دقدوری رحمه الله مسح علی الخفین په دوو خبرو پورې خاص کړله. یودا چې حدث موجب د اودس وی. ځکه که په طهارت کامله ئې موزے واچولې. اوبیا داسې حدث راغلو. چې په هغے باندې غسل واجبیږی. نوپه دے صورت کې مسح علی الخفین جائز نه ده.

**وَبِحَدَثٍ** او د داسې حدث پورې ئې خاص کړلو **مُتَأَخِّرٍ** چې هغه (په طهارت کامله باندې د اچولو) نه روسته واقع شوې وی. **لِأَنَّ الْخُفَّ عُهِدَ مَانِعًا** ځکه چې موزه مانع ثابته شوې ده **وَلَوْ جَوَّزْنَاهُ بِحَدَثٍ سَابِقٍ** اوکه موږ دا په



حدث سابق باندې جائز کړې وه **كَالْمُسْتَحَاضَةِ إِذَا لَبِسَتْ عَلَى السَّيَلَانِ** لکه څنګه چې مستحاضه ښځې موزه اغوستے وی **ثُمَّ خَرَجَ الْوَقْتُ** او بیا وخت اوځی **وَالْمُتَيَمِّمِ** اومتیمم **إِذَا لَبِسَ** کله چې ده (موزه) اچولې وی **ثُمَّ رَأَى الْمَاءَ** او بیا ئې اوبه اوموندلې **كَانَ رَافِعًا** نو موزه به رافع دحدث وی

**تشریح:-** دویمه خبره دا ده. چې حدث د اودس کولونه روسته راغلی وی. ځکه چې موزه حدث د سرایت نه منع کوی. (یعنی کله چې یو سړی موزے اچولې وی. نوکه ده ته حدث پیښ شی. نودغه حدث نورو اندامونو ته ورشی. اوهغه په حکمي مرداري سره پلیت کړی. لیکن چې کله پښو ته اورسی. نودلته ورته رکاوټ اوحائل مخکی شی. چې موزے دی. نو دغه حدث قدمونو ته نشی ورتلې. ازمترجم) اوکه په حدث سابق باندې مسح کول جائز ګرځولې شوې وه. نوچې مستحاضه ښځے موزے اچولې دی. اوبیا وخت اوځی. اومتیمم چې موزے ئې په پښو کړی وی. او بیا اوبه اومومی. نوموزے به رافع د حدث شی. حالانکه موزے رافع د حدث نه دی. بلکه مانع دی.

**وَقَوْلُهُ** اودا چې ئې اووئیل **إِذَا لَبِسَهُمَا عَلَى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ** چې دواړه موزے ئې په طهارت کامله باندې اچولې وی **لَا يُفِيدُ اشْتِرَاطَ الْكَمَالِ وَقْتَ اللُّبْسِ** نو (دا قول) د اچولو په وخت کې دکمال طهارت د شرطیت فائده نه ورکوی **بَلْ وَقْتَ الْحَدَثِ** بلکه د حدث په وخت **وَهُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَنَا** اوهم دا زموږ مذهب دې **حَتّٰى لَوْ غَسَلَ رِجْلَيْهِ** تردې که ده وراندې دواړه پښے اووینځلې **وَلَبِسَ خُفَّيْهِ** اوبیائې دواړه موزے واچولې **ثُمَّ أَكْمَلَ الطَّهَارَةَ** اوبیا ئې پاته اودس اوکړلو **ثُمَّ أَحْدَثَ** او بیا بے اودسه شو **يُجْزِئُهُ الْمَسْحُ** نوده لپاره په موزو باندې مسح کول جائزده

**حل اللغة**① **غسل غسلاً** (ض): پریمنځل ② **رجل**: پښه ③ **خف**: موزه

**تشریح:- کون لبس الخفین علیطهارة کاملة**۞ اودامام قدوری رحمه الله دا قول چې «اذا لبسهما علی طهارة کاملة» دا قول دا فائده نه ورکوی. چې د موزے اچولو په وخت کې طهارت کامله شرط دې. بلکه د حدث په وخت کې طهارت کامله ضروری دے. هم دا زموږ مذهب دې. نوکه یوکس اول خپلے پښے اووینځلې. او موزے ئې واچولې. او بیا ئې پاته اودس پوره کړلو. او بیا بے اودسه شو. نود هغه لپاره په موزو باندې مسح کول جائز ده. ځکه چې د موزو د اچولو په وخت کې اګرچې طهارت کامله نه وو موجود. لیکن د طهارت په وخت کې طهارت کامله موجود وو.

**وَهٰذَا لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ حُلُولَ الْحَدَثِ بِالْقَدَمِ** اودا ددے وجې چې موزه قدم ته د حدث ورتلو نه مانع ده **فَيُرَاعَى كَمَالُ الطَّهَارَةِ وَقْتَ الْمَنْعِ** نود منع په وخت کې به د طهارت کامله خیال ساتلے شی **حَتّٰى لَوْ كَانَتْ نَاقِصَةً عِنْدَ ذٰلِكَ** تردې که په هغه وخت کې طهارت ناقص وی **كَانَ الْخُفُّ رَافِعًا** نو موزه به رافع د حدث نه وی.

**تشریح:- دلیله**۞ دلیل دا دې. چې موزه قدم ته د حدث سرایت نه پریږدی. نود منع په وخت کې به د طهارت کامله رعایت کولې شی. تردې که په دغه وخت کې طهارت ناقص وو. نو موزه رافع د حدث نه ده.

**دمسحې موده**

**وَيَجُوزُ لِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً** او جائزده مسح دمقیم لپاره یوه ورځ او شپه **وَلِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا** اود مسافر لپاره درے ورځې او شپې **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی **يَمْسَحُ الْمُقِيمُ يَوْمًا وَلَيْلَةً** مقیم به یوه ورځ او یوه شپه مسح کوی **وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا**([1]) اومسافر به درے ورځې او درے شپې مسح کوی.

**حل اللغة**① **مقیم**: اقامت کونکې.

**تشریح:- مدة مسح المقیم والمسافر**۞ په دے عبارت کې د مسح د مودے بیان دې. فرمائی چې مسح د مقیم په حق کې یوه ورځ اویوه شپه ده. او د مسافر په حق کې درے ورځې او درے شپې دی.

[1] **دلیله**۞ اوزموږ دلیل مشهور حدیث دې. یعنی د نبی ﷺ قول چې «یمسح المقیم یوما ولیلة والمسافرثلاثة أیام

ولياليها﴾ او عامو عالمانو ﷺ د دے حديث نه استدلال کړي دےکوم چي د حضرت صفوان بن عسال ﷺ نه مروی دي. ﴿قال أتيت رسول الله ﷺ فقال لى ما جاء بك فقلت طلب العلم فقال ﷺ إن الملائكة لتضع أجنحتها لطالب العلم رضا بما يصنع فما ذا جنت فسل،قال فسألته عن المسح على الخفين فقال ﷺ للمقيم يوما وليلة وللمسافر ثلاثة أيام ولياليها(كفايه)

حضرت صفوان بن عسال ﷺ فرمائی.چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر شوم.نونبی ﷺ رانه پوښتنه اوکړه.څه خيزراوستے ئي.ماورته عرض اوکړلو.د علم طلب.نونبی ﷺ اوفرمائيل: فرښتے خپلے وزرے دعلم دين طالب ته خوره وی.دده په عمل د خوشحالئ د وجي.بيا راته نبی ﷺ اوفرمائيل:دڅه لپاره چي راغلے ئي.دهغے پوښتنه اوکړه.فرمائی.ما ترے په موزو باندي د مسحي کولو پوښتنه کوله.نونبی ﷺ اوفرمائيل: مقيم به يوه ورځ او يوه شپه مسح کوی.اومسافر به درے ورځي او درے شپي مسح کوی.

**د مسحي د موده پيل به د کوم وخت نه کيږي؟**

**قَالَ وَابْتِدَاؤُهَا عَقِيبَ الْحَدَثِ** اود مسح ابتداء دحدث نه روسته ده **لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ سِرَايَةَ الْحَدَثِ** ځکه چي موزه خود سرايت د حدث مانع ده **فَتُعْتَبَرُ الْمُدَّةُ مِنْ وَقْتِ الْمَنْعِ** نوموده به د منعے د وخت نه معتبر وی

**حل اللغة:** ① **خف**: موزه ② **فتعتبر، اعتبر اعتباراً**: باور كول

**تشريح:- المذاهب الثلاثة في ابتداء مدة المسح** دمسحي د مودے وخت به د کله نه وی. په دے باره کي هم اختلاف دي. ① عام مشائخ ﷺ فرمائی.چي د مسحي موده به د حدث د وخت نه پيل کيږی. ② او د ځيني قائلينو مذهب دا دي.چي مسح به د موزو اچولو د وخت نه پيل کيږی.ددے قائل حضرت حسن بصری رحمه الله دي. ③ اود بعضو په نيز به د مسح کولود وخت نه پيل کيږی.دا مذهب د امام اوزاعی ابوثور او امام احمد بن حنبل رحمه الله دي

**ثمرة الاختلاف** ددے اختلاف فائده به په دے مثال کي ښکاره کيږی.چي يو کس د صبا د راختو په وخت کي اودس اوکړلو.او موزے ئي واچولي.او د طلوع الشمس په وخت کي بے اودسه شو.او بيا ئي د نمر د زوال نه روسته په موزے باندي مسح اوکړله.نودعامومشائخو ﷺ په نيز به مقيم د راروانے ورځ د طلوع الشمس پورې مسح کوی.او دحسن بصری رحمه الله په نيز به د راروانے ورځ د طلوع الفجر دوخته پورې مسح کوی.او د امام اوزاعی رحمه الله په نيز به د راروانے ورځي د زوال نه روسته پورې مسح کوی.

**د مسح مسنون طريقه**

**وَالْمَسْحُ عَلَى ظَاهِرِهِمَا** اومسح د دواړو موزو په ظاهری برخه ده **خُطُوطًا بِالْأَصَابِعِ** په داسي حال کي چي دا په ګوتو باندي کرښے راښکل دی **يَبْدَأُ مِنْ قِبَلِ الْأَصَابِعِ** داسي چي) پيل به کوی.د (پښو د) ګوتو نه **إِلَى السَّاقِ** ( د پنډو طرف ته.(چي راښکلي شی)

**حل اللغة:** ① **اصابع واحد اصبع**: ګوتي ② **يبدأ، بدا بدءاً**: پيل كول

**تشريح:- المذهبان في كيفية المسح** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. ① چي زموږ په نيز د موزو په ښکاره اړخ مسح کول ضروری ده.صورت دا دي.چي د ښی لاس ګوتے دے د ښیٔ موزے په مخکنئ او د چپه لاس ګوتے دے د ګسے موزے په مخکنئ برخه کيږدی.او بيا دے دواړه پنډئ اړخ ته د ګيټو سربيره راکاږی.او ګوتے دے پرانستے ساتی.په موزو باندي د مسحي کاوه دا طريقه مسنون ده.اوکه په يوه ګوته درے ځله مسح اوکړی.اوپه هر ځل نوے اوبه راخلی.نوجائز ده ګنی نه ده جائز

**لِحَدِيثِ الْمُغِيرَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ** دحديث مغيره ﷺ د وجے **أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى خُفَّيْهِ** چي نبی ﷺ خپل دواړه لاسونه په خپلودواړو موزو باندي کيخودل **وَمَدَّهُمَا مِنَ الْأَصَابِعِ إِلَى أَعْلَاهُمَا** اود هغے د ګوتو نه ئي



پورته طرف ته راښکل **مَسْحَةً وَاحِدَةً** اويو ځل ئي مسح اوکړله **وَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى أَثَرِ الْمَسْحِ عَلَى خُفِّ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ** لکه چي زه د مسحي اثر د رسول الله ﷺ په موزو باندي وينم **خُطُوطًا بِالْأَصَابِعِ** (¹) دګوتو د کرښو سره.

**حل اللغة:** ① **مد**: راښکل

**تشريح:- دليله** دليل د حضرت مغيره بن شعبه ﷺ حديث دي.چي رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو موزو باندي کيخودل.اوپورته اړخ ته ئي راښکل.مغيره ﷺ فرمائی.چي لکه زه د رسول الله ﷺ په موزو باندي هغه نښے وينم.کومے چي د ګوتو دوجي پيدا شوی وي.په دے حديث کي دا هم ذکر دی.چي نبی ﷺ يوځل مسح اوکړله.د دے وجي عالمانو ﷺ فرمائيلي دی.چي په مسح کي تکرار کول غير مشروع دي.په ترمذی کي دا حديث په دے الفاظو مروی دي. ﴿قال رأيت النبي ﷺ يمسح على الخفين على ظاهرهما﴾ مغيره ﷺ فرمائی.چي ما نبی ﷺ ليدلے وو.چي د موزو په ظاهر باندي ئي مسح کوله.صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.چي د مسحي محل دموزو ظاهر دي.باطن نه دي.نوځکه به د موزو په ظاهر باندي مسح کول واجب وی.

**ثُمَّ الْمَسْحُ عَلَى الظَّاهِرِ حَتْمٌ** او بيا په ظاهرد موزے باندي مسح کول ضروری ده. **حَتَّى لَا يَجُوزَ عَلَى بَاطِنِ الْخُفِّ وَعَقِبِهِ وَسَاقِهِ** اوپه باطن د موزے او په پونده د موزے جائز نه ده **لِأَنَّهُ مَعْدُولٌ بِهِ عَنِ الْقِيَاسِ** ځکه چي دا معدول عن القياس ده **فَيُرَاعَى فِيهِ جَمِيعُ مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ** نو چي په کوم باندي شريعت وارد شوي وی د هغے به پوره په پوره خيال ساتلے شی

**تشريح:- المسح على ظاهر الخف** اوکه دموزو په باطن ئي مسح اوکړله.يا په پونده باندي يا ددے په پنډئ.نومسح جائز نه ده.ځکه چي په موزو باندي مسح خلاف قياس ثابته ده.نوچي په کوم شی باندي نص وارد شوي وی.دهغے به پوره پوره خيال ساتلے شی.اوچونکه دنص ورود د موزے په ظاهرباندي شوي دي. نو ځکه به مسح دموزو په ظاهر باندي مشروع وی په باطن نه.

**دليله** دے طرف ته د حضرت علی ﷺ په قول کي اشاره ده. ﴿لوكان الدين بالرأى لكان أسفل الخف أولى بالمسح من ظاهره ولكنى رأيت رسول الله ﷺ يمسح على ظاهرالخفين دون باطنهما﴾ حضرت علی ﷺ فرمائی.که چرته دين دعقل تابع وي. نو دموزے باطن به د ظاهرنه د مسحي کولو لپاره زيات مناسب وو.ليکن ما رسول الله ﷺ ليدلے وو.چي ددے په ظاهر به ئي مسح کوله په باطن به ئي نه کوله.

**وَالْبُدَاءَةُ مِنَ الْأَصَابِعِ اسْتِحْبَابٌ** او د ګوتونه پيل کول مستحب دی **اعْتِبَارًا بِالْأَصْلِ** په اصل باندي د قياس کولو د وجي **وَهُوَ الْغَسْلُ** اوهغه وينځل دی

**تشريح:- ابتداء المسح من الاصابع** او د ګوتو نه د مسح پيل کول مستحب ده.نوکه د لينګئ نه ئي پيل اوکړله.نوهم جائزده.وجه داستحباب په وينځلو باندي قياس دي.يعنی لکه څنګه چي د پښو په وينځلو کي دګوتو نه پيل کول مستحب ده. دغه ډول د موزو په مسح کي هم د ګوتو نه پيل کول مستحب دی.

**وَفَرْضُ ذَلِكَ مِقْدَارُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ** او ددے فرض د لاس په ګوتو کي د درے ګوتو په اندازه دی **وَقَالَ الْكَرْخِيُّ رحمه الله** او امام کرخی رحمه الله فرمايي **مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ** چي د پښو د ګوتو نه (د درے ګوتو په اندزه دے)

**تشريح:- القولان في قدر المفروض** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. ① چي د درے ګوتو په مقدار باندي مسح کول فرض ده.خو په دے کي اختلاف دي.چي د پښو ګوتے معتبرے دی اوکه د لاسونو.نو د عامو عالمانو مذهب دا دي.چي د لاسونو ګوتے معتبرے دی. ② خوامام کرخی رحمه الله فرمائی.چي د پښو ګوتے معتبر دی.ځکه چي مسح په پښوکولي شی.اودرے ګوتے د ممسوح اکثره برخه ده.اودا قاعده ده .چي اکثر لره حکم د کل وی.نود پښے د درے ګوتو مسح به د ټولے پښے قائم مقام وی.لکه څنګه چي د موزو د شليدو په صورت کي د پښو د ګوتواعتبار شوي دي.

**وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ** او لومړي قول اصح دي **اعْتِبَارًا لِآلَةِ الْمَسْحِ** آله مسحي د اعتبار د وجې.

**تشريح:- ترجيح القول الاول** ۞ مصنف دهدايه رحمه الله فرمائي. چې د عامو مشائخو رحمهم الله قول زيات صحيح دې. اودا حضرت د مسحي آله يعني د لاس ګوتې معتبر کوي. دا خبره ياده ساتل پکار دي. چې په هره موزه کې د درې ګوتوپه مقدار باندې مسح کول فرض ده. نوکه يوکس په يوه موزه د دوو ګوتو په مقدار مسح اوکړله. اوپه بله ئې د پنځو ګوتو په مقدار مسح اوکړله. نوجائز نه ده.

## د موزې د ځيريوالي په صورت کې د مسح حکم

**وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ** اوجائزنه دی مسح کول **عَلَى خُفٍّ فِيهِ خَرْقٌ كَبِيرٌ** په داسې موزو باندې چې په هغې کې زيات ځيرې والې وی **يَبِينُ مِنْهُ قَدْرُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ** چې په هغې کې د پښو په ګوتوکې درې ګوتې ښکاری **فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ** اوکه ددې نه کم وی **جَازَ** نوجائز ده

**حل اللغة** ① **لايجوز، جاز جوازاً** (ن): روا کيدل ② **خف**: موزه ③ **خرق**: شليدلې ④ **كبير**: ډير ⑤ **اصابع**: ګوتې ⑥ **رجل**: پښې

**تشريح:- الاختلاف في جواز المسح عند الخرق** ۞ که په موزه کې ځيرې والې وی. نو په دې باندې د مسحې کاوه په جواز او عدم جواز کې څلور مذاهب دی. ① زموږ د ځيرې والی په قليل او کثير کې توپير دې. که کم وی. نومسح جائز ده. اوکه زيات وی. نومسح جائز نه ده

**وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ** رحمهما الله اوامام زفر اوامام شافعی رحمه الله فرمايي **لَا يَجُوزُ** چې جائزنه ده **وَإِنْ قَلَّ** اګرچې کم وی **لِأَنَّهُ لَمَّا وَجَبَ غَسْلُ الْبَادِي** ځکه چې هرکله د ظاهرپرېمنځل واجب شو **وَجَبَ غَسْلُ الْبَاقِي** نو د پاته به هم واجب وی

**تشريح:-** دامام شافعی او امام زفر رحمهما الله په نيز د مسح په عدم جواز کې قليل او کثير دواړه برابر دی. يعنی که ځيرې والی قليل وی اوکه کثير په دواړو صورتونوکې مسح جائز نه ده. او دا قياس هم دې.

**② دليلهما** ۞ دامام زفر او امام شافعی رحمهما الله دليل دا دې. چې په پښه کې کومه برخه ښکاری. نودهغې پرېمنځل واجب دی. اوچونکه په يو اندام کې پرېمنځل او مسح نشی جمع کيدې. نوځکه به موزه اوباسی. اودپاته وينځل به کوی. صاحب دعنايه فرمائيلی دی. چې ددې دواړو دليل قياس دې. يعنی هرکله چې خرق کثير مانع د مسحې دې. نوخرق قليل به هم مانع وی. لکه څنګه چې حدث مطلقاً ناقض د اودس دې. که قليل وی اوکه کثير وی.

**وَلَنَا** اوزموږ دليل دا دې **أَنَّ الْخِفَافَ لَا تَخْلُو عَنْ قَلِيلِ خَرْقٍ عَادَةً** چې موزې په عامه توګه د معمولی شليدونه خالی نه وی **فَيَلْحَقُهُمُ الْحَرَجُ فِي النَّزْعِ** نوځکه به په ويستلوکې خلګو ته تکليف وی **وَتَخْلُو عَنِ الْكَبِيرِ** اود زياتو شليدونه خالی وی **فَلَا حَرَجَ** نوځه حرج په کې هم نشته.

**حل اللغة** ① **فيلحقهم، لحق لحوقاً** (س): لاحق کيدل، ملاويدل ② **حرج**: تنګی سختی

**تشريح:- دليل جمهورالاحناف** رحمهم الله ۞ اوزموږدليل دادې. چې موزه په عامه توګه د لږ ځيريوالی نه خالی نه وی. نوکه د لږ ځيريوالی په صورت کې د وينځلوحکم ورکړو. خلګ به په مشقت کې واقع شی. نوکه په دې کې معمولی ځيريوالې وی. نوهغه به معاف وی. اود خرق کثيرنه په عامه توګه موزې خالی وی. نوپه دې صورت کې د موزو په ويستلوکې حرج نشته. نوځکه دا خرق کثير معاف نه دې.

## د خرق قليل او کثير معيار

**وَالْكَبِيرُ** اود زيات مقدار اندازه دا ده **أَنْ يَنْكَشِفَ قَدْرُ ثَلَاثَةِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ أَصْغَرُهَا** چې د پښو په ورو



ګوتوکې د دريو ګوتو په اندازه په کې (پښه) ښکاری **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا قول صحيح دې

**حل اللغة** ① **ان ينكشف، انكشف انكشافاً**: ښکاره کيدل

**تشريح:- الاقوال الثلاثة في معيارخرق القليل والكثير** ۞ پاته شوه دا خبره چې د خرق قليل اوکثير معيار څه دې. نو په دې اړه کې صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي. ① که د پښو د درې وړوګوتوپه مقدار موزه کھولاو شوه. يا ددې نه زياته نو دا خرق کثير دې. اوکه ددې نه کمه وی. نو دا خرق قليل دې. او دا قول زيات صحيح دې. ② اوحسن بن زياد د امام اعظم رحمه الله نه روايت کړې دې. چې د لاس ګوتې معتبر دی. ③ اوامام شمس الائمه حلوانی رحمه الله فرمائي. که ځيريوالې په غټو ګوتو وو. نوغټې ګوتې معتبر دی. اوکه په وړو ګوتو وو. نو وړې ګوتې معتبردی.

**لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْقَدَمِ هُوَ الْأَصَابِعُ** ځکه چې په قدم کې هم دا ګوتې وی **وَالثَّلَاثُ أَكْثَرُهَا** او درې ګوتې په دې کې اکثرې دی **فَيُقَامُ مَقَامَ الْكُلِّ** نو درې ګوتې به د کل قائم مقام شی **وَاعْتِبَارُ الْأَصْغَرِ لِلِاحْتِيَاطِ** اود وړو ګوتو اعتبار داحتياط د وجې دې **وَلَا مُعْتَبَرَ بِدُخُولِ الْأَنَامِلِ** اود ګوتو د سرونو د داخليدو څه اعتبار نشته **إِذَا كَانَ لَا يَنْفَرِجُ عِنْدَ الْمَشْيِ** خوچې د تګ په وخت کې نه کھولاويږی

**حل اللغة** ① **لاينفرج، انفرج انفراجاً**: کولاويدل

**تشريح:- دليل القول الاصح** ۞ دقول اصح دليل دا دې. چې په پښوکې اصل ګوتې دی. که يوکس د بل کس د پښوګوتې کټ کړلې. نوپه هغه باندې پوره ديت واجبيږی. نو په پښه کې اصل ګوتې دی. او په پنځو کې درې اکثرې دی. اود اکثر لپاره حکم د کل دې. نودرې ګوتې به د کل قائم مقام شی. نوچې درې ګوتې ښکاره شی. دا داسې شوه. لکه چې ټوله پښه ښکاره شوه. او په ګوتو کې د وړو اعتبار داحتياط د وجې شوې دې. يعنی په دې کې د غټو ګوتو په نسبت احتياط زيات دې. اوکه په موزه کې داسې سورې وی. چې په هغې کې درې ګوتې ننوځی. ليکن د مزل په وخت کې پښه نه ښکاری. نوددې څه اعتبار نشته. يعنی په داسې موزه باندې مسح کول جائز ده.

**وَيُعْتَبَرُ هَذَا الْمِقْدَارُ فِي كُلِّ خُفٍّ عَلَى حِدَةٍ** اود دې مقدار اعتبار به په هره موزه کې جلا جلا کولې شی **فَيُجْمَعُ الْخَرْقُ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ** نوپه يوه موزه کې به ځيرې والې جمع کولې شی **وَلَا يُجْمَعُ فِي خُفَّيْنِ** او په دوو کې به نشی جمع کولې **لِأَنَّ الْخَرْقَ فِي أَحَدِهِمَا لَا يَمْنَعُ قَطْعَ السَّفَرِ بِالْآخَرِ** ځکه چې په يوه کې ځيرې والې په بله کې د مزل کاوه نه مانع نه دې

**تشريح:- اعتبار الخرق في خف واحد** ۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي. چې مقدار به په هره موزه کې جلا جلا معتبر وی. که په يوه موزه کې ګنړ واړه واړه سوری راجمع کړې شی. اوهغه د درې ګوتو مقدار ته رسی. نو مسح پرې جائز نه ده. اوکه په دوو موزو کې واړه واړه سوری اوشی. نودهغې اعتبار نشته. يعنی د دوو موزو سوری که د درې ګوتو مقدار ته اورسی. نومسح پرې بياهم جائز ده. ځکه چې په يوه موزه کې سورې په بله موزه کې د سفر کاوه نه مانع نه دې.

**بِخِلَافِ النَّجَاسَةِ الْمُتَفَرِّقَةِ لِأَنَّهُ حَامِلٌ لِلْكُلِّ** په خلاف دنجاست ځکه چې دا سړې د واړه نجاست پورته کونکې دې

**تشريح:- خلاف هذه المسئلة عن مسئلة الثوب وعلته** ۞ متفرق نجاست ددې په خلاف دې. يعنی که په دواړو موزو باندې لږ لږ نجاست وی. اوپه هره موزه کې نجاست د يو درهم نه کم وی. اوکه دواړه جمع شی. نو يو درهم ته رسی. نو په دې صورت کې لمونځ نه کيږی. ځکه چې دا سړې د واړه نجاست پورته کونکې دې. اوکوم کس چې د يودرهم يا ددې نه د زيات نجاست اوچتونکې وی. برابره ده که دغه نجاست يوځائې وی او که جلا جلا وی. نوپه ده باندې طهارت واجب دې. بغير د طهارت نه لمونځ نه کيږی.

**وَانْكِشَافُ الْعَوْرَةِ نَظِيرُ النَّجَاسَةِ** او د عورت ښکاره کيدل د نجاست نظير دې.

**تشريح:- خلاف هذه المسئلة عن مسئلة سترالعورة وعلته** ◉ او د عورت هغه برخه چې دهغې پواره فرض وی.دهغې ښکاره کیدل د نجاست نظیر دي.که د ښځې د شرمګاه نه څه ښکاره شوه.او څه د شاه نه او څه لینګئ نه او څه د ویختو نه، نوکه دا واړه راجمع شي.او د یو اندام څلورمې حصې ته رسي.نو لمونځ نه کیږي.

**دجنب لپاره دمسح عدم جواز**

| |
|---|
| وَلَايَجُوزُالْمَسْحُ ومسح جائز نه ده. لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ دهغه کس لپاره چې غسل پرے واجب وی |
| **حل اللغة°** ① **وجب وجوباً (ض)** واجب کیدل |

**تشريح:- عدم جوازالمسح للجنب** ◉ مسئله دا ده.چې په کوم کس غسل واجب وی.نو د هغه لپاره په موزو باندې مسح کول جائز نه ده.صورت دمسئلې دا دي.چې یوکس اودس اوکړلو.اولمونځ ئې اوکړلو.بیا دے جنب شو.خو ده ته دومره اوبه ملاویدے.چې ده پرے اودس کولې شو.خو غسل ئې نشو کولې.نودے به د غسل لپاره تیمم اوکړی.او د اودس لپاره به دغه اوبه استعمال کړی.او پښے به اووینځی.مسح کول ورته جائز نه دی.

| |
|---|
| لِحَدِيثِ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دصفوان بن عسال ﷛ دحدیث د امله أَنَّهُ قَالَ فرمایی كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا رسول الله ﷺ به موږ خلګو ته حکم کولو إِذَا كُنَّا سَفَرًا چې کله موږ په سفر یو أَنْ لَانَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهَا نو موزے نه اوباسو.تر درے ورځو او درے شپوپورې إِلَّاعَنْ جَنَابَةٍ مګر د جنابت نه وَلَكِنْ مِنْ بَوْلٍ أَوْغَائِطٍ أَوْنَوْمٍ (¹) مګر د متیازو یا خوب نه (به ئې نه اوباسو) |
| **حل اللغة°** ① **لا ننزع، نزع نزعاً (ض)**: کوزول، ویستل ② **خفاف**: موزې ③ **بول**: بولې ⑤ **غائط**: ډکې بولې |

**تشريح:- الدليل الاول النقلی** ◉ دلیل د حضرت صفوان بن عسال ﷛ حدیث دې.په هغې کې ذکر دی.چې د جنابت په حالت کې د دواړو موزو ویستل او دهغې پریمنځل ضروری دی.خوکه اودس د متیازو یا خوب د وجې مات شوې وی.نو په دے صورت کې د موزو ویستلو اړتیا نشته.بلکه مسح پرے جائز ده.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ الْجَنَابَةَ لَاتَتَكَرَّرُ خکه چې جنابت عادتاً مکرر نه وی عَادَةً فَلَاحَرَجَ فِي النَّزْعِ نوپه موزه ویستلو کې څه حرج نه وی بِخِلَافِ الْحَدَثِ په خلاف دحدث لِأَنَّهُ يَتَكَرَّرُ خکه چې دا مکرر وی. |
| **حل اللغة°** ① **حرج**: تنګی سختی |

**تشريح:- الدليل الثانی العقلی** ◉ دوهم دلیل دا دې.چې په عامه توګه جنابت مکرر نه وی.بلکه کله کله دجنابت موقع پیښیږی.او حدث باربار پیښیږی.نو د جنابت په صورت کې په موزو ویستلو کې حرج نشته.نومسح جائز نشوه.اود حدث په صورت کې په بار بار موزو ویستلو کې حرج شته.اودا خبره معلومه ده.چې مسح علی الخفین د حرج د دفع کاوه لپاره مشروع شوې ده.نوچې په کوم ځائې کې په موزو ویستلو کې حرج نه وی. هلته به موزے ویستل او د پښوپریمنځل فرض وی.مسح به جائز نه وی.

**د مسح نواقض**

| |
|---|
| وَيَنْقُضُ الْمَسْحَ او مسح ماتوی كُلُّ شَيْءٍ يَنْقُضُ الْوُضُوءَ هرهغه شی چې اودس ماتوی لِأَنَّهُ بَعْضُ الْوُضُوءِ خکه چې مسح علی الخف د اودس جزء دې |
| **حل اللغة°** ① **ينقض، نقض نقضاً (ن)**، ماتول |

(¹) من حديث صفوان ﷛ اخرجه الترمذی فی الطهارة باب ۷۱ رقم ۹۶ والنسائی فی الطهارة باب ۹۷ وابن ماجه فی الطهارة باب ۶۲ رقم ٤۷۸)_



**تشريح:- ورود ناقض الوضوء** ◉ امام قدوری ﷫ فرمائی.① چې کوم شی اودس ماتوی.هغه مسح هم ماتوی.

**دليله** ◉ خکه چې مسح علی الخف د اودس جزء دې.اوکوم شی چې دکل لپاره ناقض وی.د جزء لپاره به په طریقه اولی سره ناقض وی.

| |
|---|
| وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا نَزْعُ الْخُفِّ اود موزے ویستل هم مسح ماتوی لِسِرَايَةِ الْحَدَثِ إِلَى الْقَدَمِ قدم ته د حدث د سرایت د وجې حَيْثُ زَالَ الْمَانِعُ خکه چې مانع زائله شو |
| **حل اللغة°** ① **نزع**: ویستل |

**تشريح:- خروج الخفين** ◉ او د موزے ویستل هم ناقض دی.خکه چې موزه د حدث لپاره مانع وه.اوچې موزه اووتله.نو مانع ختم شو.او حدث سرایت اوکړلو. او مسح ماته شوه.

② **دليله** ◉ دحضرت عبدالله بن عمر ﷛ نه روایت دې.چې دوی په یوغزا کې وو.نبی ﷺ موزے اوویستلې.اوپښے ئې اووینځلې.اود پاته اودس اعاده ئې اونکړله .دغه ډول د نورو صحابه کرامو ﷺ نه هم منقول دی.

| |
|---|
| وَكَذَا نَزْعُ اودغه ډول په دے دواړو موزو کې د یوے ویستل أَحَدِهِمَا لِتَعَذُّرِالْجَمْعِ بَيْنَ الْغُسْلِ وَالْمَسْحِ فِي وَظِيفَةٍ وَاحِدَةٍ خکه چې په یو عبادت کې غسل او مسح کول متعذر دی. |
| **حل اللغة°** ① **تعذر**: سختی |

**تشريح:- خروج احد الخفين** ◉ دغه ډول که په دواړو موزو کې یوه اووتله.نودواړه موزے به اوباسی.او پښے به اووینځی.او لمونځ به اوکړی.

② **دليله** ◉ دلیل دا دې.چې د غسل او مسحې دواړو په یو عبادت کې جمع کول متعذر دی.نو بله موزه به هم اوباسی.اودواړه پښے به اووینځی.

**دموده تیریدل اوموزې ویستل**

| |
|---|
| وَكَذَا مُضِيُّ الْمُدَّةِ اودغه ډول د مسحې د مودے تیریدل لِمَا رَوَيْنَا دهغه حدیث د وجې کوم چې موږ روایت کړې دې |
| **حل اللغة°** ① **مضى**: تیریدل |

**تشريح:- القولان في مشاراليه في المتن** ◉ مسئله دا ده.چې د مسح د موده په تیریدو باندې هم مسح ماتیږی.
① دلیل حدیث سابق دې.یعنی د نبی ﷺ قول «يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها» ② اود ځینې عالمانو ﷭ رائې ده.چې د «ما رويناه» نه مراد د صفوان بن عسال حدیث مراد دې.چې «أن لا ننزع خفافنا ثلاثة أيام»

| |
|---|
| وَإِذَا تَمَّتِ الْمُدَّةُ اوکله چې موده پوره شی نَزَعَ خُفَّيْهِ نو دواړه موزے به اوباسی وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ او دواړه پښے به اووینځی وَصَلَّى او لمونځ به اوکړی وَلَيْسَ عَلَيْهِ إِعَادَةُ بَقِيَّةِ الْوُضُوءِ او په ده باندې د پاته اودس راګرځول نشته |
| **حل اللغة°** ① **تمت، تم تماماً (ض)**: پوره کیدل ② **اعادة**: واروسته کول |

**تشريح:-** کله چې موده د مسحې پوره شی.نو موزے به اوباسی.اوپښے به اووینځی.اود پاته اودس راګرځول واجب نه دی.خوپه دے شرط چې بل ناقض موجود شوې نه وی.

① **دليله الاول** ◉ زموږ دلیل دا دې.چې حدث نوم دے د نجاست د وتلو او دمسحې موده تیریدل داسې نه دی.نویوپه بل باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.

② **دليله الثانی** ◉ زموږ د مذهب تائید دحضرت عبدالله بن عمر ﷛ په اثر سره هم کیږی.چې دوی په یوه غزا کې وو.دوی موزے اوویستلې.او صرف پښے ئې اووینځلې.او پاته اودس ئې اونکړلو.

وَكَذَا إِذَا نَزَعَ قَبْلَ الْمُدَّةِ او دغه شان چې د د مودې پوره كيدو نه وړاندې موزه اوباسي لِأَنَّ عِنْدَ النَّزْعِ يَسْرِي الْحَدَثُ السَّابِقُ إِلَى الْقَدَمَيْنِ ځكه چې د (موزو ويستلو) په وخت كې سابقه حدث دواړو قدمونو ته سرايت كوي كَأَنَّهُ لَمْ يَغْسِلْهُمَا لكه چې ده دواړه قدمونه هډو وينځلې نه وو

**حل اللغة:** ① **سابق:** اولنې ② **لم يغسلها، غسل غسلاً** (ض) وينځل

**تشريح:- نقض المسح اخراج الخفين قبل المدة** اوهم دا حكم په هغه صورت كې دې. چې دمودې د ختميدو نه وړاندې ده په خپله موزې اوويستلې. يعنى په دې صورت كې به هم صرف پښې وينځې. د اودس راګرځولو حكم نشته.

**دليله** اودليل دا دې. چې د موزو ويستلو په وخت كې سابقه حدث قدمونو ته سرايت اوكړلو. نودا داسې شوه چې ده هډو دواړه پښې وينځلې نه وې.

وَحُكْمُ النَّزْعِ يَثْبُتُ اود نزع حكم ثابتيږي بِخُرُوجِ الْقَدَمِ إِلَى السَّاقِ چې قدم د موزې لينګۍ ته اورسي لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي حَقِّ الْمَسْحِ ځكه چې په مسح كې د موزې دلينګۍ اعتبار نشته. وَكَذَا بِأَكْثَرِ الْقَدَمِ هُوَ الصَّحِيحُ اودغه ډول په وتلو د اكثر قد باندې مسح ماتيږي هم دا قول صحيح دې

**تشريح:- الرواية الاولى في الخروج** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. ① چې د موزې د وتلو حكم به په هغه وخت كې ثابتيږي. چې قدم د موزې لينګۍ كې داخل شي. ځكه چې د مسحې په حق كې د موزې پنډې معتبره نه ده. ترديې كه يې لينګۍ موزې نې اچولې وې. نوپه هغې باندې هم مسح كيږي. خوچې ګيټې پټوي. اوپه كوم كې چې د مسحې اعتبار نه وي. چې موزه هغه ځائې ته اورسي. نومسح ماتيږي. اودغه ډول كه د موزې په لينګۍ كې د قدم زياته برخه داخله شوه. نو دصحيح قول مطابق دموزې وتلو حكم ثابت شو.

**الرواية الثانية فى الخروج** او دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دې. چې كله د پونډې اكثره برخه د خپل ځائې اووتله او دموزې په لينګۍ كې داخله شوه. نومسح به باطليږي. ددې روايت وجه دا ده. چې تر څو پورې د وينځلو محل په موزه كې پاته وي. نود مسحې حكم به پاته وي. نوچې پوره پونده يا د پونډې اكثره برخه چې دموزې په لينګۍ كې داخله شي. نود مسحې محل په موزه كې پاتې نشو. نومسح به هم صحيح نه وي.

**الرواية الثالث عن محمد رحمه الله** اودامام محمد رحمه الله نه روايت دې. چې كه د پښو دومره برخه په موزو كې پاته وه. چې په هغې باندې مسح جائز وي. يعنى د درې ګوتو مقدار نو په دې باندې مسح كول جائز ده. اوكه دومره مقدار هم په موزه كې پاته نه وو. نوپه دې باندې مسح كول جائز نه ده. دليل دا دې. چې د مايجوز عليه المسح د مقدار نه علاوه وتل داسې دى. لكه چې هډووتلې نه ده. نو ددې اعتبار به نشى كولې. (عنايه)

## مقيم چې مسافرشي نو د مسح حكم

وَمَنْ ابْتَدَأَ الْمَسْحَ وَهُوَ مُقِيمٌ اوكوم كس چې په حالت د اقامت كې مسح پيل كړله فَسَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اوبيا د يوې ورځې او شپې پوره كيدو نه وړاندې مسافر شو مَسَحَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهَا نو درې ورځې اودرې شپې به مسح كوي

**حل اللغة:** ① **ابتداء ابتداء:** پيل كول ② **تمام:** پوره كيدل

**تشريح:- الصور الثلاثة للمسئلة** ددې مسئلې درې صورتونه دى. ① يودا چې په كوم حالت كې نې موزې اچولې وې. دهغې د ماتيدو نه وړاندې نې سفر پيل كړلو. او بيا په حالت د سفر كې د څه ناقض د وجې د ده مسح ماته شوه. نو په دې صورت كې به په اتفاق سره موده د اقامت موده د سفر ته منتقله شى. يعنى درې ورځې او درې شپې به مسح كوى. ② چې دحدث نه روسته اود مسحې د مودې پوره كيدو نه روسته سفراوكړى. نو په دې صورت كې په اتفاق سره موده د اقامت مودې د سفر ته نه منتقل كيږي. يعنى په دې صورت كې به د



اقامت دمودې پوره كيدو نه وړاندې. يوې ورځې اويوې شپې پوره كيدو نه روسته موزې اوباسى. ③ چې سفرشروع كړى. د حدث نه روسته اود

**الصورة الثالثة** ① نو په دې صورت كې به زمونږ په نيز موده داقامت مودې د سفر ته منتقل كيږي. يعنى درې ورځې او درې شپې به مسح كوى.

عَمَلًا بِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حديث په اطلاق باندې دعمل كاوه دوجې وَلِأَنَّهُ حُكْمٌ مُتَعَلِّقٌ بِالْوَقْتِ او بله دا چې د مسح حكم د وخت سره متعلق دې فَيُعْتَبَرُ فِيهِ آخِرُهُ نو په دې كې به د آخر وخت اعتبار كولې شى

**حل اللغة:** ① **عملاً:** عمل كول

**تشريح:- دلائله** ① زمونږ دليل د رسول الله ﷺ د قول «يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيـام ولياليهـا» اطلاق دې. يعنى دهر مسافر لپاره درې ورځې او شپې د مسحې اجازت دې. اوچونكه دې هم مسافر شو. نوده ته به هم دمسحې كاوه اجازت وى. ② دوهم دليل دا دې. چې دمسحې حكم د وخت سره متعلق دې. او دكوم شى حكم چې دوخت سره متعلق وى. په هغې كې به د آخرى وخت اعتبار وى.

**النظيران لموقف الاحناف رحمهم الله** ① لكه حائضه چې په آخرى وخت كې پاكه شى. نو د دغه وخت قضاء به راوړى. اودغه ډول كه پاكه ښځه په آخرى وخت كې حائضه شى. نود دغه وخت لمونځ ساقط شو. ② دغه ډول كه مسافر په آخر وخت كې مقيم شو. نوپوره لمونځ به كوى. اوكه مقيم په آخرى وخت كې مسافر شو. نو قصر به كوى. نوهركله چې آخرى وخت معتبر شو. نومقيم چې د اقامت د مودې پوره كيدو نه وړاندې سفر پيل كړى. نو دسفر موده به پوره كوى.

بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَكْمَلَ الْمُدَّةَ لِلْإِقَامَةِ په خلاف د هغه صورت كې چې ده د اقامت موده پوره كړې وى ثُمَّ سَافَرَ او بيا سفر پيل كړى لِأَنَّ الْحَدَثَ قَدْ سَرَى إِلَى الْقَدَمِ ځكه چې حدث قدم ته سرايت كړې دې وَالْخُفُّ لَيْسَ بِرَافِعٍ او موزه رافع د حدث نه ده

**حل اللغة:** ① **استكمل، استكمالاً:** پوره كول ② **سافر، مسافرة:** سفركول ③ **خف:** موزه

**تشريح:-** ددې په خلاف چې ده د اقامت يوه ورځ او شپه د مسحې موده يوه ورځ اويوه شپه پوره كړې وى. اوبيا سفر پيل كړى. نودې به د سفر موده نه پوره كوى. ځكه حدث خو قدم ته سرايت كړې دې. او موزه خو رافع د حدث نه ده. نو د رفع د حدث لپاره به د پښوپريمنځل ضرورى وى.

وَلَوْ أَقَامَ وَهُوَ مُسَافِرٌ اوكه مسافر مقيم شو إِنِ اسْتَكْمَلَ مُدَّةَ الْإِقَامَةِ نوكه هغه د اقامت موده پوره كړې وه نَزَعَ نو موزې به اوباسى لِأَنَّ رُخْصَةَ السَّفَرِ لَا تَبْقَى بِدُونِهِ ځكه چې د سفر رخصت بغير د سفر نه پاته نشى پاتې كيداې وَإِنْ لَمْ يَسْتَكْمِلْ اوكه ده يوه ورځ او شپه نه وى پوره كړې أَتَمَّهَا نوهغه به پوره كړى لِأَنَّ هَذِهِ مُدَّةُ الْإِقَامَةِ ځكه چې دا حالت د اقامت دې وَهُوَ مُقِيمٌ اودا كس مقيم دې.

**تشريح:- حكم مسح المسافر اذا اقام** په دې عبارت كې چې «ولوأقام وهو مسافر إلخ» صورت د مسئلې او دليل ښكاره دې.

## په جرموقينو دمسحې حكم

قَالَ وَمَنْ لَبِسَ الْجُرْمُوقَ فَوْقَ الْخُفِّ اوچا چې په موزه باندې جرموق واچولې مَسَحَ عَلَيْهِ نوپه جرموق به مسح كوى

**حل اللغة:** ① **لبس لبساً** (س) اغوستل ② **جرموق:** ينځه ③ **خف:** موزه

**تشريح:- تعريف الجرموق** جرموق هغه موزه ده. چې په موزوې باندې سربيره اچولې شى. چې موزه دختمو نجاست وغيره نه بچ كوى. او دجرموق ساق د موزې دساق نه وركوټې وى.

**المذهبان في المسح على الجرموق** ۞ زموږ په نيز موزو سربيره په جرموق باندې مسح كول جائز ده.

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رحمه الله د امام شافعی رحمه الله خلاف دې فَإِنَّهُ يَقُولُ خكه چې امام شافعی فرمايي الْبَدَلُ لَا يَكُونُ لَهُ بَدَلٌ چې د بدل لپاره بدل نه وي

**تشريح:-** اودامام شافعی رحمه الله په نيز جائزنه ده.

**دليله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دليل دا دې چې موزې د پښو بدل دې .اود بدل لپاره بدل نه وي.او په مسح على الخفين باندې نص وارد شوې دې.خكه چې دا د پښو بدل دې.نوپه جرموق باندې مسح جائز كول به د موزې به بدل وي.حالانكه دا جائزنه ده.نوخكه په جرموق باندې مسح كول ناجائزه اوګرځولې شوه.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دې أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى الْجُرْمُوقَيْنِ (۱) چې نبی ﷺ په جرموق باندې مسح كړې وه

**تشريح:- دليل الاول النقلي** ۞ زموږدليل دحضرت ابن عمر رضي الله عنه حديث دې.فرمائي.«رايت رسول الله ﷺ يمسح على الجرموقين» يعنى ما رسول الله ﷺ ليدلے وو.چې په جرموقينو ئې مسح كوله.

وَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْخُفِّ اوبله دا چې جرموق د موزې تابع ده اسْتِعْمَالًا وَغَرَضًا داستعمال اوغرض په اعتبار سره فَصَارَا نو (په موزه باندې جرموق) داسې شو كَخُفٍّ ذِي طَاقَيْنِ لكه چې دوې (دوه) برغه موزه ئې اچولې وي وَهُوَ بَدَلٌ عَنِ الرِّجْلِ اوجرموق د پښې بدل دې. لَا عَنِ الْخُفِّ د موزې بدل نه دې

**حل اللغة** ① **تبع**: تابع ② **ذى طاقين**: ډل

**تشريح:- دليله العقلى** ۞ اوزموږ عقلي دليل دا دې.چې په استعمال او غرض كې جرموق د موزې تابع وي.په استعمال كې خوددے وجې چې جرموق د موزې سره وي.اوپه غرض كې دے وجې چې جرموق دموزې د ساتنه لپاره وي.لكه څنګه چې موزه دپښې د ساتنه لپاره وي . نو په موزه به جرموق داسې وي.لكه ډبله موزه شوه.اود ډبلې موزې په پورتنی اړخ باندې مسح كول په اتفاق سره جائز ده.نودموزو سربيره چې كومې جرموقين وي.په هغې به هم مسح جائزوي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا لَبِسَ الْجُرْمُوقَ بَعْدَمَا أَحْدَثَ.په خلاف ددے چې جرموق ئې د حدث نه روسته اچولې وي لِأَنَّ الْحَدَثَ حَلَّ بِالْخُفِّ خكه چې حدث په موزه كې حلول كړې دې فَلَا يَتَحَوَّلُ إِلَى غَيْرِهِ نوبل ته به انتقال نه كوي

**تشريح:- الجواب عن دليل الشافعي رحمه الله** ۞ اوپاته شوه دا خبره چې جرموق د بدل بدل دې.نودا خبره غلطه ده.خكه چې جرموق د موزې بدل نه دې.بلكه د پښې بدل دې.ددے په خلاف كه د حدث نه روسته ئې جرموق واچوله.نوپه دے باندې مسح جائزنه ده.خكه چې حدث په موزه كې حلول كړې دې.نواوس ددے نه نشي منتقل كيدې.چې جرموق ته راشي.

وَلَوْ كَانَ الْجُرْمُوقُ مِنْ كِرْبَاسٍ اوكه جرموق د سوتی كپړې وي لَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِ نو په هغې باندې مسح جائز نه ده لِأَنَّهُ لَا يَصْلُحُ بَدَلًا عَنِ الرِّجْلِ خكه چې دا د پښې د بدل كيدو صلاحيت نه لري

**تشريح:- الصورتان في المسح على جرموق الكرباس** ۞ ① اوكه جرموق د سوتی كپړې وي.نوپه دے باندې مسح كول جائزنه ده.خكه چې د سوتی كپړې جرموق د پښې بدل نشي كيدې. خكه چې په دے كې بلا ناغه مزل ممكن نه وي.

إِلَّا أَنْ تَنْفُذَ الْبِلَّةُ إِلَى الْخُفِّ مګر دا كه لوندوالے موزې ته رسي

**تشريح:-** البته كه سوتی كپړه دومره نرۍ وي.چې دهغې نه اوبه چنړيږي.اوموزه پرے لونديږي.نو په دے باندې

۱) من حديث عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۶۰ رقم ۱۵۳)_



مسح جائزده.ليكن ددے وجې نه چې دا مسح په جرموق اوشوه.بلكه ددے وجې چې دا مسح په موزه اوشوه.اوچې جرموق نرۍ وي.نوددے وجې موزې ته د لوندوالی رسولو نه مانع نه ده.

### په جورابوباندې د مسح حكم

وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په جوربينوباندې مسح كول جائز نه ده إِلَّا أَنْ يَكُونَا مُجَلَّدَيْنِ أَوْ مُنَعَّلَيْنِ مګردا چې هغه مجلدے يا منعلے وي

**حل اللغة** ① **جوربين**: جورابې

**تشريح:- قسمي الجورب** ۞ مجلده هغه ده.چې دهغې لاندې اوپورته چمړه لګيدلے وي. اومنعله هغه ده.چې دهغې لاندې چمړه لګيدلے وي.د مسح على الجوربين درے صورتونه دي.

**الصورالثلاثة للمسح على الجوربين** ۞ ① چې هغه د ډبلې كپړې وي.اومنعله او يا مجلده وي.په دے صورت كې په اتفاق سره په جوربينو مسح جائزده.② چې نه د ډبلې كپړې وي.اونه منعله وي.نوپه دے صورت كې په اتفاق سره پرے مسح جائز نه ده.③ چې د ډبلې كپړې وي.خومنعله نه وي.نوپه دے صورت كې پرے د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مسح جائزنه ده

وَقَالَا اوصاحبين رحمهما الله فرمايي چې جائز ده يَجُوزُ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ خوپه دے شرط چې د ډبلې كپړې وي لَا يَشِفَّانِ (۱) چې ښكاره كيږي نه لِمَا رُوِيَ خكه چې روايت شوې دې. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى جَوْرَبَيْهِ (۲) چې نبی ﷺ په جوربينو مسح كړې ده

**حل اللغة** ① **تخنين**: ټينګه

**تشريح:-** دصاحبينو رحمهما الله په نيز جائزده.

**دليلهما الاول** ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه حديث «ان النبي ﷺ مسح على الجوربين» دې.چونكه حديث مطلق دې.نوپه مطلق جورب باندې به مسح جائزوي.كه منعله وي اوكه غير منعله وي.

وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْمَشْيُ فِيهِ اوددے وجې چې په داسې جورابوكې (چې وانې چوی) مزل كول ممكن دې إِذَا كَانَ ثَخِينًا چې د غټې كپړې وي وَهُوَ أَنْ يَسْتَمْسِكَ عَلَى السَّاقِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُرْبَطَ بِشَيْءٍ اوهغه داسې چې په څه څيزباندې د ترلونه بغيرپه لينګۍ باندې ايساريږي فَأَشْبَهَ الْخُفَّ نود موزې سره مشابه شوه

**حل اللغة** ① **ساق**: پنډۍ ② **يربط، ربط ربطًا** (ض): تړل

**تشريح:- دليلهما الثانى العقلى** ۞ اوعقلي دليل دا دې.كه جوربين د داسې ډبلې كپړې وي.چې بغير د تړلو نه په لينګۍ باندې ايساريږي.اوپه هغې كې مزل كول اوسفر كول ممكن وي.نودا جوربين د موزو مشابه شوې.نولكه څنګه چې په موزو مسح جائزده.دغه ډول به په دے هم جائزوي.

وَلَهُ اودامام صاحب دليل دا دې أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الْخُفِّ چې جورب د موزو په معنى كې نه دی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ مُوَاظَبَةُ الْمَشْيِ فِيهِ خكه چې دے كې بلا ناغه مزل كول ممكن نه دی إِلَّا إِذَا كَانَ مُنَعَّلًا مګر چې منعلے وي

**حل اللغة** ① **مواظبت**: هميشوالې ② **مشى**: تلل

۱) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۱۱/۱۳۹) والعناية (۱۱/۱۳۹) والكفاية (۱۱/۱۳۹) نقلا عن القول الراجح (۱۱/۳۶)_

۱) من حديث مغيرة بن شعبة رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۶۲ رقم ۱۵۹ والترمذى فى الطهارة باب ۷۴ وابن ماجه فى الطهارة باب ۸۸ رقم ۵۵۹)_

**تشريح:- دليل ابيحنيفة** ﴿اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې جورب په موزے پورې ملحق كول په هغه وخت كي ټيك دى.چې جورب من كل الوجوه د موزے په معنى كي وى.حالانكه جورب د موزے په معنى كي نه دى.ځكه چې موزے واچوى.نو پيوسته تګ په كي ممكن دې.او په جورابوكي پيوسته تګ كول ممكن نه دې.البته كه جوراب منعلے وى.نوچونكه په هغے كي پيوسته تګ كول ممكن دې.نوځكه پرے مسح جائزده.

| |
|---|
| **وَهُوَمَحْمَلُ الْحَدِيثِ** اودا معنى دحديث محمل دې |

**تشريح:- الجواب من الحديث** ﴿اود ابوموسى اشعرى رضي الله عنه دحديث محمل هم دا دې.چې هغه جوراب منعلے وى.

| |
|---|
| **وَعَنْهُ** اود امام صاحب نه روايت دې **أَنَّهُ رَجَعَ إِلَى قَوْلِهِمَا** چې دوى د صاحبينو رحمهما الله قول ارخ ته رجوع كړې ده **وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى** او هم په دے باندې فتوى ده. |

**تشريح:- رجوع ابى حنيفة الى قول الصاحبين** رحمهما الله ﴿اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چې دوى د مرض الوفات نه اووه ورځي يا درے ورځي وړاندې په جوربين غير منعلين باندې مسح كړې ده.اوچې كوم حضرات د بيمارپرسئ لپاره ورغلى وو.هغوى ته ئي اوفرمائيل: ﴿فعلت ما كنت أمنع الناس عنه﴾ ما چې به خلګ د كوم كار نه منع كولو.هغه كار مے په خپله اوكړلو.ددے نه معلومه شوه.چې امام ابوحنيفه رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله قول ته رجوع كړې ده.فاضل مصنف رحمه الله فرمائى.چې فتوى په دے مرجوع اليه قول باندې ده.

**په څه باندې مسح جائز نه ده**

| |
|---|
| **وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ** اومسح جائزنه ده **عَلَى الْعِمَامَةِ** په لنګوټې باندې **وَالْقَلَنْسُوَةِ** په ټوپۍ باندې **وَالْبُرْقُعِ** په بورقه باندې **وَالْقُفَّازَيْنِ** او په دستانو باندې |

**حل اللغة**: ① **عماة**: لنګوټه (پټكي) ② **قلنسوة**: ټوپۍ ③ **برقع**: برقعه ④ **قفازين**: دستاني

**تشريح:- الخلاف في المسح على العمامة** ﴿ ① داحنافوعالمانو رحمهم الله په نيز په لنګوټې په ټوپۍ په بورقه او په دستانو باندې مسح كول جائزنه ده.② امام اوزاعى رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى.چې په لنګوټې باندې مسح جائزده.

**دليل الامامين** رحمهما الله ﴿ دليل دا دې.چې د نبى ﷺ نه په موزو او په لنګوټې باندې مسح كول ثابت ده.(لكه د حضرت امام ترمذى چې په باب ما جآء في المسح على الجوربين والعمامة﴾ كي دحضرت بلال رضي الله عنه اوامام ابوداود په ﴿باب المسح على العمامة﴾ كي دحضرت ثوبان رضي الله عنه نه د ﴿مسح على العمامة﴾ د جواز روايات نقل كړى دى.ازمترجم)

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ لَا حَرَجَ فِي نَزْعِ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ** ځكه چې ددے څيزونو په ويستلوكي څه حرج نشته **وَالرُّخْصَةُ لِدَفْعِ الْحَرَجِ** حالانكه رخصت خود حرج لرې كاوه لپاره دې. |

**حل اللغة**: ① **حرج**: تنګى سختى ② **رخصة**: آسانى

**تشريح:- دليل الاحناف** ﴿زمونږ دليل دا دې.چې په موزو باندې د مسحې كاوه رخصت د حرج لرې كاوه لپاره ثابت دې.اود دے څيزونو په لرې كاوه كي څه حرج نشته.نوځكه په دے څيزونو مسح كول جائز نه ده.
ليكن د احنافو دا دليل عقلى په مقابله د دليل نقلى كي حجت نشي جوړيدے . اوبيا دا هم په داسې صورت كي چې د ﴿مسح على العمامة﴾ په اړه كي ګڼ روايات نقل شوى دى.ليكن په دے ځائې كي د هغه نقلى دليل نه څه معتبر ځواب نه دے وركړې شوې.ځكه دا مناسب ګڼړم.چې ددے په مختصرو الفاظو كي ځواب وركړم.احناف علماء كرام په آيت قرآنى باندې استدلال كوى.چې (وامسحوا برءوسكم) دا قعطى دې.او د لنګوټې دمسحې احاديث اخبار احاد دى.اوپه هغے باندې په كتاب الله زيادت ممكن نه دې.په خلاف د مسح على الخفين ځكه چې اول خود قرآن كريم د جر په قرات كي دے اړخ ته اشاره ملاويږى.يعنى وارجلكم چې په



وامسحوا باندې عطف شى.اومجرور اووئيلي شى.نومعنى به دا شى .چې په پښو باندے مسح كوئ.اودا خبره معلومه ده.چې بغير د موزو نه په پښو مسح كول جائز نه دى.نوپه قرات دجر باندې د عمل كاوه لپاره داونيلي شى.چې دا قرات د موزو په صورت باندې محمول دې.يعنى كله چې تاسو موزے په پښوكړى وى.نو مسح كوئ.اوبله دا چې د مسح على الخفين احاديث متواتر دى.نو په دے سره په كتاب الله باندې زيادت جائز دې.

**الجواب من احاديث المسح على العمامة** ﴿اوتركومے پورې چې په لنګوټې د مسح د جوازاحاديث دى.نود جمهورو د اړخ نه ددے ډير ځوابونه وركړې شوى دى.او توجيهات ئې شوى دى. اول دا چې دمسح على العمامة احاديث محتمل التاويل دى.دحافظ زيلعى رحمه الله د قول مطابق چې په كومو رواياتوكي د مسح على العمامة ذكر راغلے دې.نوهغه مختصر دى.په اصل كي رويات داسې دى.چې ﴿مسح على ناصيته وعمامته﴾ دهغے مختصر صورت ﴿عمامته﴾ جوړ شو.په څينې رواياتوكي د ﴿ناصيته﴾ تصريح موجود ده. ددے توجيه تائيد دحضرت امام ترمذى په نقل كړى حديث سره كيږى.حضرت عماربن ياسر رضي الله عنه فرمائى.چې ما د حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه نه په لنګوټې باندې دمسح كاوه په اړه كي پوښتنه اوكړه. نوهغه راته اوفرمائيل: چې ﴿مس الشعر﴾ يعنى په لنګوټې باندې د مسح كاوه نه مراد د ويختو مسح كول دى.درس ترمذى ټوك اول صفحه ۳۳۷)

**په پټو باندې د مسحې كولو حكم**

| |
|---|
| **وَيَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَبَائِرِ** اومسح جائزده په پټو باندې **وَإِنْ شَدَّهَا عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ** اګركه هغه ئې بغير د اودس نه تړلے وى |

**حل اللغة**: ① **جبائر واحد جبيرة**: پټۍ ② **شد** شدة (ض) سختيدل، تړل

**تشريح:- تعريف الجبيرة** ﴿ جبائر د جبيرة جمع ده.او جبيره هغه لرګى ته وائى.چې په مات شوى هډوكى پورې تړلے شى.

**جوازالمسح على الجبيرة** ﴿ قاضى خان فرمائى.چې په جبيره باندې به د مسحې كاوه اجازت په هغه وخت كي وى.چې په زخم باندې مسح كول تكليف وركوى. اوكه په زخم باندې مسح كول تكليف نه وركوى.نوپه جبيره به مسح نه كوى. حاصل دا چې په جبائر به مسح كوى.اګرچې بغير د اودس نه ئې تړلے وى.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَعَلَهُ ذلك** ځكه چې نبى ﷺ داسې كړى وو |

**تشريح:- الدليل الاول النقلى لجوازالمسح** ﴿ دليل دا دې.چې جبيره تړلے شى.په وخت د ضرورت.اوپه هغه وخت كي د طهارت شرط لګول مفضى الى الحرج دې.نوځكه د طهارت شرط اونه لګيدلو.او په دے اړه كي اصل دا دې. چې نبى ﷺ په خپله هم په جبيره باندې مسح كړې ده.

| |
|---|
| **وَأَمَرَ عَلِيًّا رضى الله عنه بِهِ** (١) اوعلى رضي الله عنه ته ئې د دے حكم كړې وو |

**تشريح:- الدليل الثانى النقلى لجوازالمسح** ﴿او داحد په ورځ چې كله د حضرت على رضي الله عنه د لاس مړوند مات شو.نونبى ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته په جبيره باندې د مسحې كولوحكم كړې وو.صاحب د عنايه پوره واقعه داسې ليكلے ده.چې حضرت على رضي الله عنه د نبى ﷺ جنډه په لاس كي نيولے وه.چې كله دحضرت على رضي الله عنه لاس مات شو.او جنډه اوغورځيدله.نونبى ﷺ اوفرمائيل.جنډه په چپه لاس اونيسه.ځكه چې على په دنيا او آخرت كي زما د بيرغ مالك دې.حضرت على رضي الله عنه عرض اوكړلو. ﴿ما أصنع بالجبائر﴾ په پټو باندې څه اوكړم.نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل: ﴿امسح عليها﴾ په پټو مسح كوه.په دے حديث كي ددے څه تفصيل نشته.چې پټئ

(١) حديث على رضي الله عنه اخرجه الدارقطنى فى سننه (١\٢٢٦)_

نې په طهارت تړلې وه اوکه بغير د طهارت نه.نومعلومه شوه.چې په مطلق جبيره باندې مسح كول جائز ده.كه په طهارت نې تړلې وي.اوكه بغير دطهارت نه.

**وَلِأَنَّ الْحَرَجَ فِيهِ** اود دے وجې چې د جبيرے په لرې كاوه كې كوم حرج دې **فَوْقَ الْحَرَجِ فِي نَزْعِ الْخُفِّ** دا د هغه حرج نه زيات دې.كوم چې د موزے په ويستلوكي دې **فَكَانَ أَوْلَى بِشَرْعِ الْمَسْحِ** نوجبيره د مسحې په مشروعيت كې زياته مستحقه ده

**تشريح:- الدليل الثالث العقلى لجواز المسح ۞** عقلى دليل دا دې.چې د موزے په ويستلو كې چې څومره حرج وي.نو د جبيره په لرې كولوكې دهغې نه زيات حرج وي. نو هركله چې د حرج لرې كاوه د وجې په موزو مسح جائزشوه.نو په جبائرو خوبه په طريق اولى سره جائزوي.

**وَيَكْتَفِي بِالْمَسْحِ عَلَى أَكْثَرِهَا** او په مسح كې به په اكثره جبيره باندې اكتفاء كولې شى **ذَكَرَهُ الْحَسَنُ** رحمه الله دا حسن رحمه الله ذكر كړې دى

**تشريح:- حكم المسح على بعض الجبيرة وغسلها ۞** پاته شو ددے حكم كه په څينې جبيره باندې ئې مسح كړې وي اوپه څينې نه وى كړې.نودا به كافى كيږى كه نه ؟ نو په دے اړه كې ظاهر روايت كې څه ذكر نشته.البته د حسن رحمه الله په امالى كې دى.چې په اكثره جبيره ئې مسح اوكړله.نوجائز به شى.اوكه د نصف يا ددے نه په كمه ئې مسح اوكړله.نوكافى به نه وى

**وَلَا يَتَوَقَّتُ** اوپه جبيرو باندې مسح په څه وخت پورې موقته نه ده **لِعَدَمِ التَّوْقِيتِ بِالتَّوْقِيفِ** ځكه چې د توقيت سره توقيف نه وى

**تشريح:- عدم التوقيت للمسح على الجبيرة ۞ فرمايي** په جبيره باندې د مسحې كاوه لپاره څه موده مقرر نه ده.بلكه د زخم د ښه كيدو پورې به په دے مسح كوى.ځكه چې د مسح على الجبيره د تحديد په اړه كې څه حديث وارد نه دې.

**وَإِنْ سَقَطَتِ الْجَبِيرَةُ عَنْ غَيْرِ بُرْءٍ** اوكه جبيره د ښه كيدو نه بغير پريوتله **لَا يَبْطُلُ الْمَسْحُ** نومسح نه باطليږى **لِأَنَّ الْعُذْرَ قَائِمٌ** ځكه چې عذر موجود دې **وَالْمَسْحُ عَلَيْهَا كَالْغَسْلِ لِمَا تَحْتَهَا مَا دَامَ الْعُذْرُ بَاقِيًا** او چې ترڅو پورې عذر پاته وى نوپه دے باندې مسح كول داسې دى لكه ددے د لاندې وينځل **وَإِنْ سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ** اوكه په ښه كيدو سره اوغورځيدله **بَطَلَ** نو مسح باطله شوه **لِزَوَالِ الْعُذْرِ** ځكه چې عذر زائله شو

**حل اللغة:** ① **سقنت، سقط سقوطاً(ن):** پريوتل ② **برء:** تيك كيدل

**تشريح:-** په دے عبارت سره په مسح على الجبيره او مسح على الخفين په مينځ كې توپير كاوه ته هم اشاره اوشوه.

**الفرق بين المسح على الجبيرة والمسح على الخفين ۞** ① ځكه چې په مسح على الخف كې وخت مقرر دې.او په مسح على الجبيره كې وخت مقرر نه دې. ② دوهم فرق دا دې.چې مسح على الجبيره بغير دطهارت نه هم جائز ده.ليكن مسح على الخف بغير د طهارت نه جائز نه ده. ③ دريم توپير دا دې.كه جبيره د زخم د تيك كيدو نه بغير پريوتله.نومسح نه باطليږى.په خلاف د موزے د مسحې ځكه كه هغه د پښے نه اووتله.نومسح به باطله شى.

**دليله ۞** دليل دا دې.چې عذر پاته دې.اوچې تركومے پورې عذر پاته وى.نوپه جبيره باندې مسح كول داسې دى.لكه ددے د لاندې حصې وينځل.تردې كه په يوه پښه باندې جبيره وى.اوپه هغې ئې مسح كړې وى.نوچې بلې پښے ته موزه واچوى.نوپه هغه موزه باندې مسح كول جائز نه ده.ددے لپاره چې په غسل او مسح كې جمع لازم نشى.اوكه جبيره پريوتله د زخم ښه كيدو په وجه نو مسح على الجبيره به باطله وى.ځكه چې د كوم عذر



د وجې مسح على الخفين جائز وه.هغه عذر زائله شو.

**وَإِنْ كَانَ فِي الصَّلَاةِ** اوكه په لمانځه كې پريوتله **اسْتَقْبَلَ** نولمونځ به د سر نه پيل كوى **لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْبَدَلِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ** ځكه په بدل باندې د مقصود حاصليدونه وړاندې دے په اصل قادر شو.

**تشريح:- فساد الصلاة بسقوط الجبيرة فيها ۞** اوكه جبيره د لمونځ په مينځ كې اوغورځيدله .په داسې حال كې چې زخم ښه شوې وى.نود اول څخه به لمونځ پيل كړى.ځكه چې دا كس په بدل باندې د مقصود حاصلولو نه وړاندې په اصل قادر شو.لكه څنګه چې متيمم د لمانځه په مهال كې په اودس قادر شى.نود اول څخه به لمونځ كوى.

## بَابُ الْحَيْضِ وَالْاِسْتِحَاضَةِ

ژباړه:- (دا) باب د حيض او استحاضه (په بيان كې) دې.

**تشريح:- ربط الباب بما قبله ۞** اوس ددے باب د ماقبل سره مناسبت دا دې.چې په ماقبل كې د هغه احداثو بيان وو.چې هغه كثير الوقوع وو.او په دے باب كې دهغه احداثوبيان دې.چې قليل الوقوع دى.

**هما من الاحداث او الانجاس؟ ۞** په دے اړه كې اختلاف دې.چې حيض او نفاس د احداثو نه دى اوكه د انجاسو نه دى.دبعضورائې دا ده.چې دواړه د انجاسونه دى.اود بعضورائې دا ده.چې دواړه د احداثو نه دى. دوهم زيات مناسب دې.ځكه چې مصنف رحمه الله ددے نه روسته باب الانجاس ذكر كړې دې.نوكه دا دواړه د انجاسو د قبيلے نه اومنلے شى.نودا به صرف تكرار شى.

**السوال والجواب ۞** ليكن دلته سوال دا دې.چې هركله دواړه په معنى كې يو دى.نوبيا به ئې په باب د نفاس ذكركړې وو.اود حيض به ئې نه كولو.داسې ئې ولے اونكړلو.ددے ځواب دا دې.چې د حيض وقوع زياته ده په نسبت سره نفاس ته. نو ځكه ئې د حيض ذكر اوكړلو.

**تعريف الحيض وسببه ۞** حيض په لغت كې وتونكې وينے ته وائى.او د فقهاؤ په نيزحيض هغه وينه ده.چې د داسې ښځې د رحم نه څى.چې هغه د بيمارئ او وړكوتوالى نه خالى وى.(عنايه فتح القدير)

**سبب بدا الحيض ۞** په اول كې دحيض جارى كيدوسبب دا وو.چې حضرت حواء بى بى د منع شوې ونے نه خوراك اوكړلو.نودهغے نه دا وينه روانه شوه. او تراوسه پورې دا امتحان د هغے په لونړو جارى دې.او ترقيامته پورې به جارى وى.

**وجه عدم ذكر النفاس في الباب ۞** اوپاته شوه دا خبره چې په دے باب كې ئې د نفاس ذكر ولے اونكړلو.حالانكه د نفاس حكم په دے باب كې مذكور دې. ځواب دا دې.چې نفاس د حيض په معنى كې دې.ځكه چې دحيض ذكر په حقيقت كې د نفاس ذكر دې.نوچې حيض ئې ذكر كړلو.د نفاس نه مستغنى شو.

### دحيض په كمه موده كې اختلاف

**أَقَلُّ الْحَيْضِ** دحيض كمه موده **ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا** درے ورځې او درے شپې دى **وَمَا نَقَصَ مِنْ ذَلِكَ** اوكوم چې د دے نه كم وى **فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ** نوهغه به استحاضه وى

**حل اللغة:** ① **حيض:** ماهوارى وينه

**تشريح:- اقل مدة الحيض ۞** ① زمونږ په نيز دحيض كمه موده درے ورځې او درے شپې دى.اوكومه وينه چې ددے مودے نه كمه وى.هغه استحاضه ده.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دي أَقَلُّ الْحَيْضِ لِلْجَارِيَةِ الْبِكْرِ وَالثَّيِّبِ چې د جاریه باکره او ثیبه کم نه کم حیض به ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةُ أَيَّامٍ[1] اوددے زیاته موده لس ورځې اولس شپې دی

حل اللغة: ① جاریه: جینئی ② بکر: پیغله ③ ثیب: واده کړې سړې یا ښځه ④ ایام واحد یوم: ورځې

تشریح:- دلیله ﴿﴾ ① زمونږ دلیل هغه حدیث دي.کوم چې ابوامامه باهلی، ؓ عائشے ؓ، عاتکے ؓ،انس ؓ او ابن عمر ؓ روایت کړې دے «انه ﷺ قال أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة أيام ولياليها وأكثره عشرة أيام» هم دا مدت د حضرت عمر، علی، ابن مسعود، ابن عباس ، عثمان، ابن ابی العاص،اوانس بن مالك ؓ نه منقول ده.او ددے حضراتوروایت داسې دي.لکه چې د نبی ﷺ نه روایت دي.ځکه چې په مقادیرو کې د قیاس څه دخله نه وی.نو دے حضراتوبه د نبی ﷺ نه اوریدلے وی. او د حضرت معاذبن جبل ؓ د حدیث الفاظ دا دی «لاحيض دون ثلاثة أيام ولا فوق عشرة أيام»

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دي فِي التَّقْدِيرِ بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ په یوه ورځ او شپه باندې اندازه لګولو کې درے ورځې او درے شپې وی

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي چې زمونږ مستدل حدیث د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دیګ ځکه چې د هغوی په نیز یوه ورځ او یوه شپه اقله موده د حیض ده..

دلیله ﴿﴾ امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې سیلان دم کله د شپې ورځې واړه وختونه راګیر کړل.نومعلومه شوه.چې دا وینه د رحم نه ده.نود حیض دوینې معلومولو لپاره د نور وخت اړتیا نشته.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود امام ابویوسف رحمه الله نه روایت دي أَنَّهُ يَوْمَانِ وَالْأَكْثَرُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّالِثِ[2] اقَامَةٌ چې دوې (دوه) ورځې اود دریمے اکثره برخه لِلْأَكْثَرِ مَقَامَ الْكُلِّ ځکه چې ) اکثر قائم مقام د کل دي

تشریح:- علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي چې زمونږ مستدل حدیث د امام ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دي ځکه چې د هغوی فرمائی.چې دوې (دوه) ورځې د دریمې ورځې اکثره برخه موده د حیض ده ځکه چې اکثر قائم مقام د ا کل ده اوپه دې قاعده باندې عمل کوی چې «للأكثر حكم الكل»

قُلْنَا مونږ دا وایو هَذَا نَقْصٌ عَنْ تَقْدِيرِ الشَّرْعِ چې دا تقدیر په شریعت کې کمے دي.

تشریح:- الجواب ﴿﴾ دامام ابوحنیفه رحمه الله د اړخه ددے ټولودلائلو ځواب دا دي.چې شریعت د حیض اقل موده درے ورځې مقرر کړی دی.که د دے حضراتوپه نیز که د دے نه په کمه موده اکتفاء اوکړې شی.نواقل موده درے ورځې نه پاتې کیږی.اودا ښکاره خبره ده.چې دا د شریعت په تقدیر کښے کمے دي.حالانکه په شرعی تقدیر کې کمے جائز نه دي.

### دحیض اکثره موده

وَأَكْثَرُهُ اود حیض اکثره موده عَشَرَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا لس ورځې اوشپې دی وَالزَّائِدُ اوکومه چې زیاته وی اسْتِحَاضَةٌ هغه به استحاضه وی لِمَا رَوَيْنَا دهغه حدیث دوجې کوم چې مونږ روایت کړې دي

حل اللغة: ① زائد: زیاتی ② روینا، روی روایة: نقل کول بیانول

[1] ) من حديث ابی امامة ؓ اخرجه الطبرانی فی معجمه الاوسط والكبير قاله الهيثمی رحمه الله (مجمع الزوائد(۲۸۰\۱) والدارقطنی فی سننه (۲۱۸\۱)_

[2] ) القول الراجح هوظاهر الرواية كذا فی بدائع الصنائع (۴۰\۱) وتبيين الحقائق (۵۵\۱) والهندية (۳۶\۱) نقلا عن القول الراجح (۳۷\۱)-



تشریح:- المذهبان في اكثرمدة الحيض ﴿﴾ زمونږ په نیز دحیض اکثره موده لس ورځې دی.

دلیلنا ﴿﴾ اوزمونږ دلیل هغه حدیث دي.کوم چې په مخکنۍ مسئله کې تیر شوې دي.یعنی «أكثره عشرة أيام»

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا حدیث دامام شافعی رحمه الله خلاف حجت دي فِي التَّقْدِيرِ بِخَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا په پنځلس ورځو پورې اندازه لګولو کښې

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله په نیز پنځلس ورځې دی.دابوحنیفه رحمه الله اول قول هم دا وو.

دلیله ﴿﴾ دامام شافعی رحمه الله دلیل د ښځو د دین دکمی په اړه کې د نبی ﷺ ارشاد دي.چې «تقعد إحداهن شطرعمرها لا تصوم ولا تصلي» یعنی ښځه د خپل عمر په نیمه کې ناسته وی.چې نه روژه نیسی او نه لمونځ کوی .په حدیث کې د "شطر" نه مراد نیمه ده.او د دے نه مراد حیض دي.

وجه الاستدلال ﴿﴾ وجه داستدلال دا ده.چې دعمر اندازه لګی.په کلونو سره.اودکلونو اندزه په میاشتو سره اود یوے میاشتے نیمه برخه پنځلس ورځې دی.نومعلومه شوه.چې ښځه د حیض دوجې پنځلس ورځې نه لمونځ کولی شی اونه روژه نیولے شی.

ثُمَّ الزَّائِدُ وَالنَّاقِصُ بیاچې کومه زیاته یا کمه وی اسْتِحَاضَةٌ هغه به استحاضه وی لِأَنَّ تَقْدِيرَ الشَّرْعِ يَمْنَعُ ځکه چې تقدیر د شریعت منع کوی إِلْحَاقَ غَيْرِهِ بِهِ چې ددے سره بل څیزلاحق شی.

حل اللغة: ① ناقص: کم ② الحاق: ملاوول

تشریح:- دا خبره دے یا ده وی.چې کومه وینه د درے ورځو نه کمه او د لسو نه زیاته وی.هغه به استحاضه وی. ځکه چې شریعت یوڅیز مقرر کړی.نودا ددے خبرے نه مانع دي.چې هغے سره بل شی لاحق کړې شی.نوکومه وینه چې د شرعی تقدیر نه کمه یا زیاته وی.هغه به حیض نه وی.بلکه استحاضه به وی.

تضعیف مستدل الشافعی رحمه الله ﴿﴾ صاحب دهدایه د امام شافعی رحمه الله د دلیل نه ځواب نه دے کړې.مناسب ګنړم چې ددے ځواب د درس ترمذی نه ذکر کړم.ځواب دا دي.چې دا حدیث قابل استدلال نه دي.① ځکه چې ابن جوزی رحمه الله ددے حدیث په اړه کې فرمائی. «هذا حديث لا يعرف» ② امام بیهقی فرمائی. «لم نجده» ③ اوپه خپله امام نووی شافعی المسلك په "المجموع" کې فرمائی. «حديث باطل لا يعرف»

تضعیف الاستدلال بالحدیث ﴿﴾ اوکه بالفرض دا حدیث صحیح هم شی.نو د شطر اطلاق لکه څنګه چې په نصف باندې کیږی.دغه ډول په مطلق برخه باندې هم کیږی.اګرکه هغه دنصف نه کمه وی.دلته کې د دے معنی اختستلو نه مخلص نشته.ځکه که دامام شافعی رحمه الله دمسلك مطابق پنځلس ورځې شمار کړې شی.نوبیا هم په مجموعی عمر کې د حیض موده نیمه نه راځی.ځکه چې قبل البلوغ او بعد الایاس ټوله زمانه بغیر دحیض نه ده.ددے وجې امام شافعی رحمه الله دخپل مسلك لپاره په حدیث باندې استدلال پریښے دي.او په قیاس باندې ئې استدلال کړې دي.(كذا في درس ترمذی ټوك ۱ صفحه ۳۶۱)

### دحیض دوینې رنګونه

وَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ اوهغه چې ښځه ئې وینی مِنَ الْحُمْرَةِ یعنی سرخی، وَالصُّفْرَةِ زیړوالے وَالْكُدْرَةِ او خړوالے، فِي أَيَّامِ الْحَيْضِ په ورځو د حیض کې حَيْضٌ هغه حیض دي. حَتَّى تَرَى الْبَيَاضَ خَالِصًا تر دے چې خالص سپین والے اووینی

حل اللغة: ① تراه، رای رؤية (ف): لیدل ② حمرة: سرخی ③ صفرة: زیړوالې ④ كدرة: خړوالې ⑤ بیاض: سپینوالې.

تشریح:- الوان الحیض ﴿﴾ دحیض رنګونه شپې دی.① تور ② سور ③ زیړ ④ خړ ⑤ شین ⑥ خاکی. مصنف رحمه الله د تور رنګ ذکر ځکه اونکړلو.چې په دے کې څه اشکال نشته.چې دا د حیض وینه ده.ځکه چې د نبی ﷺ ارشاد دي. «دم الحيض اسود غبيط محتدم» یعنی د حیض وینه توره تازه او ټکه سره وی.په حدیث کې د غبیط

معنی د تازه ده.او د محتدم معنی ده تکه سره.سور رنګ چې کله ډیر سور شي.نو هغه توروالی ته مائل شي.اود خاکي رنګ ذکر ئې ځکه اونکړلو.چې دا خړ رنګ ته نیږدے دے.نود خړ رنګ سره د خاکي رنګ ذکر هم اوشو .حاصل دا چې تور او سور رنګ په اجماع سره د حیض وینه ده.او تک شین رنګ په اصح قول سره حیض دے.

**۴ الخلاف في اللون المكدر:** اوپاته شو.د خړ رنګ وینه.① نوهغه د طرفینو رحمهما الله په نیز حیض دے.که دحیض په اولوورځو کې وی اوکه په آخري ورځو کې وی.

**وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ** رحمه الله[1] اوابویوسف رحمه الله فرمایي **لَاتَكُوْنُ الْكُدْرَةُ حَيْضًا** چې خړوالے حیض نه دے **إِلَّابَعْدَ الدَّمِ** مګرچې د وینې نه روسته راشي **لِأَنَّهُ لَوْكَانَ مِنَ الرَّحِمِ** ځکه که دا د رحم نه وه **لَتَأَخَّرَخُرُوْجُ الْكَدِرِعَنِ الصَّافِي** نود صفا نه روسته به راخي

**حل اللغة:** ① خروج: راوتل

**تشریح:-** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چې خړه وینه حیض نه دے.مګر چې دا د سرے وینې نه روسته وتلے وی.

**۴ دلیل ابی یوسف علی طرفیین:** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دے.① چې دحیض په وینه کې قانون دا دے.چې اول صفا سره وینه راوځي.او بیا وریسې خړه وینه. نوکله چې خړه وینه وړاندې راووتله.نومعلومه شوه.چې دا د حیض وینه نه ده. بلکه د رنګ یا بل څه وینه ده.اوکومه وینه چې د رحم نه علاوه وی.نوهغے وینے ته د حیض وینه نشي وئیلي.نود خړ رنګ وینه د حیض وینه نه ده.② صاحب دعنایه رحمه الله د امام ابویوسف رحمه الله دلیل داسې بیان کړے دے.چې د هر شي خړرنګ دهغے د صفا رنګ تابع وی.نوکه خړه وینه حیض اوګرځولې شي.حالانکه دا دے نه وړاندې صفا وینه نه وی راغلي.نوخړ رنګ به مقصود شي.تابع به نشي.حالانکه دهر رنګ خړوالے د هغې د صفا رنګ تابع وی.(نودا قلب موضوع شوه.اوقلب موضوع جائز نه ده. ازمترجم)

**وَلَهُمَا** اود طرفینو رحمهما الله دلیل دا دے **مَارُوِيَ أَنَّ عَائِشَةَ** رضي الله عنها **جَعَلَتْ مَاسِوَى الْبَيَاضِ الْخَالِصِ حَيْضًا** چې عائشې رضي الله عنها د خالص سپینوالی نه بغیر ټولو ته حیض وئیلې دے **وَهٰذَا لَايُعْرَفُ إِلَّا سَمَاعًا** اودا خبره په اوریدلو سره معلومیدے شي

**تشریح:- دلیل الطرفین** رحمهما الله: اودطرفینو رحمهما الله دلیل دا دے.چې حضرت عائشې رضي الله عنها د خالص سپینوالی نه علاوه نورواړه رنګونه حیض ګرځولي دي.امام مالک رحمه الله په خپل موطا کې حدیث بیان کړے دے.« عن علقمة بن ابی علقمة عن أمه مولاة عائشة ام المومنين أنها قالت كان النساء يبعثن إلى عائشة بالدرجة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض ليسألنها عن الصلاة فتقول لهن لا تعجلن حتى ترى القصة البيضاء» حضرت علقمه بن ابی علقمه رحمه الله دخپلې مور نه چې هغه د ام المومنین حضرت عائشې رضي الله عنها آزاده شوې وینزه وه.روایت کوی.چې ښځوبه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ډبی رالیږل.په هغې کې به د حیض په وینه باندې رنګ شوې کپړه وه.دغه ښځو به د لمونځ په اره کې پوښتنه کوله.نوحضرت عائشې رضي الله عنها به ورته فرمائیل: تاسو جلتي مه کوئ.ترڅوچې مو خالص سپینوالے نه وی لیدلي.ددے حدیث نه هم ثابته شوه.چې د سپین رنګ نه علاوه پاته نور واړه رنګونه د حیض دی.اوښکاره ده.چې حضرت عائشې رضي الله عنها چې څه کولو.اوځه ئې فرمائیل:هغه به ئې د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وی

**السوال والجواب:** ځوکه دا اعتراض اوشي.چې د نبی ﷺ قول چه«دم الحيض أسود غبيط محتدم» په دے دلالت کوی.چې دتور نه علاوه هیڅ یو رنګ د حیض رنګ نه دے.نوددے ځواب دا دے.چې دا د «تخصيص الشي بالذكر» د قبیلے نه دے.اود «تخصيص الشئ بالذكر» د ما عدا نفی نه کوی.

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (٢١١/١) وتبيين الحقائق (٥٥/١) وبدائع الصنائع (٣٩/١)نقلا عن القول الراجح (٣٨/١)_



**وَفَمُ الرَّحِمِ مَنْكُوْسٌ** اوچې د رحم خوله الټه وی **فَيَخْرُجُ الْكَدِرُ أَوَّلًا** نو خړه وینه وړاندې راوځي **كَالْجَرَّةِ** لکه منګې **إِذَا ثُقِبَ أَسْفَلُهَا** چې ددے په ویخ کې سورے اوشي

**حل اللغة:** ① جرة: منګې

**تشریح:- الجواب من دلیل ابی یوسف** رحمه الله: اود «فم الرحم منکوس» په دے سره د امام ابویوسف رحمه الله د دلیل نه ځواب دے.حاصل د ځواب دا دے.چې ستاسو دا وینا چې خړ رنګ د صفا رنګ نه روسته راځي.نومونږدا خبره منو.خو په هغه وخت کې چې د لوښي په ویخ کې سورے نه وی.اوکه د لوښي په ویخ کې سورے وی نواول به خړ رنګ راوځي.او بیا به صفا ښکاره کیږي.نودلته کې هم دا صورت دے.چې د رحم خوله کښته ده.اودے الټه وی.اود حیض د ورځو نه علاوه د رحم خوله بنده وی.نوکله چې د حیض په ورځو کې د رحم خوله کهولاوشي.نو د ټولونه وړاندې ترے خړه وینه راوځي.نودا خبره چې خړه وینه د رحم نه ده.ټیک نه ده.

**وَأَمَّا الْخُضْرَةُ** او پاته شو شینوالے **فَالصَّحِيْحُ** نو صحیح قول دا دے.**أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا كَانَتْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَقْرَاءِ** که ښځه د ذوات الحیض نه وی **تَكُوْنُ حَيْضًا** نو هغه به حیض وی **وَيُحْمَلُ عَلٰى فَسَادِ الْغِذَاءِ** اوحمل کولې به شی په فساد د خوراک باندې

**حل اللغة:** ① خضرة: شینوالے ② ذوات الاقراء: حائضې ښځې

**تشریح:- کون اللون الاخضر من الحیض:** اوپاته شوه د شین رنګ وینه نو په دے اره کې صحیح قول دا دے.که ښځه د ذوات الحیض نه وی.یعنی د داسې عمر وی.چې حیض ئې راځي.نوددے د وینې شین رنګ به حیض وی.او په دے به حمل کولې شی.چې ددے خوراک په هضم کې څه خرابي ده.چې په هغې سره ددے د وینې رنګ شین شوے دے.(لکه څنګه چې په ځینې وخت کې نس خرابه شی.او د غټو بولو رنګ بل شان شی.)

**وَإِنْ كَانَتْ كَبِيْرَةً** اوکه ښځه بوډۍ وی **لَاتَرٰى غَيْرَالْخُضْرَةِ** چې د شین رنګ نه بغیر بل نه وینې **تُحْمَلُ عَلٰى فَسَادِ الْمَنْبَتِ** نود رحم په فساد به حمل کولې شی **فَلَا تَكُوْنُ حَيْضًا** اودا به حیض نه وی.

**تشریح:-** که ښځه بوډۍ وی.اود شین رنګ نه علاوه بل رنګ نه وینې.نودا د حیض وینه نه وی.بلکه وئیلې به شي.چې دا وینه د رحم د خرابۍ د وجې راځي.ځکه چې حقیقت کې د وینې رنګ شین نه وی.

## په حیض باندې د روژې اومونځ ساقط کیدل

**وَالْحَيْضُ يُسْقِطُ** اوحیض ساقطوی **عَنِ الْحَائِضِ الصَّلَاةَ** دحائضې نه لمونځ کول **وَيُحَرِّمُ عَلَيْهَا الصَّوْمَ** اوپه دے باندې روژه نیول حراموی **وَتَقْضِي الصَّوْمَ** اوحائضه ښځه به د روژوقضاء راوړی **وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ** اود مونځونو قضاء به نه راوړی

**حل اللغة:** ① یسقط، اسقط اسقاطا: غورزول ② یحرم، حرم تحریما: حرام کول ③ تقضی قضی یقضی قضاء: قضا کول

**تشریح:- سقوط الصوم والصلاة:** ددے ځائي نه د حیض د احکامو بیان دے. په نهایه کې لیکلي.چې دحیض په اره کې دولس احکام دی.اته خوداسې دی.چې په هغې کې حیض اونفاس مشترک دی.اوڅلور داسې دی.چې په هغې کې حیض خاص دے.په دغه اتوکې یو لمونځ پریښول او قضاء ئې نه راوړل دی.بل دروژے پریښول اوبیا قضاء راوړل دی.یعنی دحائضه ښځے نه لمونځ ساقطیږي. او ددے قضاء پرے نشته.او روژه ترے ساقطیږي.خودهغې قضاء پرے شته.

**لِقَوْلِ عَائِشَةَ** رضي الله عنها ځکه چې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي **كَانَتْ إِحْدَانَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا**

طَهُرَتْ مِنْ حَيْضِهَا چې په موږ كي به څوك د نبي ﷺ په زمانه كي حائضه شوه تَقْضِي الصِّيَامَ نوهغې به د روژې قضاء راوړله وَلَاتَقْضِي الصَّلَاةَ(١) اود مونځونو قضاء به ئې نه راوړله

**حل اللغة*** ① **طهرت، طهر طهوراً** (ك) پاكيدل

**تشريح:- الدليل النقلي للمسئلة** ۞ دليل دا دې چې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. چې په موږ زنانو كي به څوك د رسول الله ﷺ په زمانه كي پاكه شوه. نود مونځونو قضاء به ئې نه راوړله. اود روژو قضاء به ئې راوړله.

وَلِأَنَّ فِي قَضَاءِ الصَّلَاةِ حَرَجًا اوبله دا چې د مونځونو په قضاء راوړلو كي حرج دې لِتَضَاعُفِهَا ځكه چې هغه دوچنده كيږي وَلَاحَرَجَ فِي قَضَاءِ الصَّوْمِ اود روژو په قضاء كي حرج نه وي.

**حل اللغة*** ① **تضاعف**: ډبل كول ⑥ **حرج**: تكليف سختي

**تشريح:- الدليل العقلي للمسئلة** ۞ اوعقلي دليل دا دې. چې د مونځونوپه قضاء كي حرج دې. ځكه چې هغه دوچنده كيږي. اود روژو په قضاء كي حرج نشته. يعنى كه په واړه كال كي د يوې ښځې نه دحيض د وجې مثلا لس روژې پاتې شي. نوپه پاته يوولسو مياشتوكي به د هغې قضاء راوړي. اولمونځ داسې نه دې. ځكه روزانه پنځه مونځونه فرض دي. نوچې د پاكۍ راتلو نه روسته دا روزانه د پنځو وختونو مونځونو قضاء راوړي. نو روزانه لس مونځونه شو. پنځه قضاء او پنځه ادې. نوداسې په دې باندې دوچنده مونځونه شو. اوحيض خوپه هره مياشت كي راځي. نوښكاره خبره ده. چې په دې كي حرج اوتكليف دې. اوالله تعالى د خپلوبندګانو نه تكليف لرې كړې دې. فرمائى. ﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ﴾ نوځكه په حائضه ښځه باندې د مونځونو قضاء نشته.

**السوال والجواب** ۞ دلته كي يواشكال راځي. چې وجوب قضاء موقوفه ده په وجوب ادا باندې. ځكه چې قضاء خليفه دې د ادې. اوخليفه په هغه سبب باندې واجبيږي. په كوم سبب چې اصل واجب شوې وي. نوهركله چې په حائضه باندې د روژې نيول واجب نه دي. نودغه ډول پرې د روژې قضاء هم بايد ده چې واجب نه وي. د دې ځواب دا دې. چې قاعده خوهم دا ده. ليكن د روژې قضاء خلاف القياس په نص سره ثابته شوې ده. نوځكه روژې قضاء راوړلې شي.

## جمات ته د داخليدوممانعت

وَلَاتَدْخُلُ الْمَسْجِدَ اوحائضه به جمات ته نه داخليږي وَكَذَا الْجُنُبُ اودغه ډول جنب هم

**حل اللغة*** ① **لاتدخل، دخل دخولاً** (ن): داخل كيدل ② **جنب**: جنبي

**تشريح:- المذهبان في دخول المسجد بطريق المرور** ۞ دريم حكم دا دې. چې حائضه به جمات ته نه داخليږي. او دغه ډول حكم د جنب هم دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې د نبي ﷺ قول دې فَإِنِّي لَاأُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ چې زه د حائضې لپاره جمات نه حلالوم وَلَاجُنُبٍ(٢) اونه د جنب لپاره

**حل اللغة*** ① **لااحل احلالاً**: حلال كيدل

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ زموږ دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث دې. چې «أن النبى ﷺ قال وجهوا هذه البيوت عن المسجد فإنى لا أحل المسجد لحائض ولا جنب» چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. د كورونو دروازې دجمات نه

(١) اخرجه البخارى فى الحيض باب ٢٠ ومسلم فى الحيض رقم ٦٨ وابوداود فى الطهارة باب ١٠٤ والنسائى فى الحيض باب ١٧ والترمذى فى الطهارة باب ٩٧ وابن ماجه فى الطهارة باب ١١٩)_

(٢) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ٩٢)_



واړوئ. ځكه چې زه جمات د حائضې او جنب لپاره نه جائزكوم. يعنى چې ستاسو د كورونو دروازې جمات اړخ ته وي. نوښكاره خبره ده. په څينې وخت كي سړې جنب وي. يا دغه ډول ښځه حائضه وي. چونكه چې دروازه جمات اړخ ته وي. نوتګ راتګ به هم په جمات وي. چونكه جمات دالله تعالى كور دې. اومقدس مقام دې. نوتاسو ځكه منع كوم. چې دا دروازې د جمات نه واړوئ. ځكه چې په حالت د جنابت اوحيض كي ستاسو تيريدل هم جائزنه دي.

وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا حديث د خپل اطلاق دوجې د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت دې فِي إِبَاحَةِ الدُّخُولِ عَلَى وَجْهِ الْعُبُورِ وَالْمُرُورِ تيريدو په طريقه د داخليدو په مباح ګرځولو كي.

**حل اللغة*** ① **عبور**: پورې وتل ② **مرور**: تيريدل

**تشريح:-** علامه مرغيناني رحمه الله فرمايي چې زموږ مستدل د امام شافعي رحمه الله خلاف حجت دي ځكه چې هغوى فرمايي. چې د حائضې اوجنب لپاره په جمات كي ډير كښينستل حرام دي. ليكن د تيريدوپه طريقه ورته داخليدل مباح دي.

**دليله** ۞ دامام شافعي رحمه الله دليل د الله تعالى ارشاد دې. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّى تَغْتَسِلُوا﴾ يعنى تاسولمونځ ته په داسې حالت كي مه نزدې كيږئ. چې تاسو نشه ئې. ترڅو چې تاسو پوهه شئ. چې (په خوله) څه وايې. اود جنابت په حالت كي هم مګردا چې تاسو تيريدونكي ئې. ترڅو چې غسل اوكړئ. په آيت باندې استدلال دا دې. چې دلته د صلاة نه د لمونځ ځائې مراد دې. يعنى جمات. اوغابرى سبيل معنى ده تيريدونكې. نواوس به ددې مطلب دا وي. چې دجنب لپاره جمات ته داخليدل جائز نه دي. مګردا چې تيريږي پرې او ايساريږي په كي نه. نو په دې كي څه ګناه نشته.

**الجوابان عنه** ۞ ① زموږ د اړخ نه د امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب دا دې. چې مفسرين حضرات فرمايي. چې دلته كلمه د "إلا" په معنى د "لا" ده. يعنى جمات ته دې جنب نه نزدې ورځي. اونه دې د تيريدو په طريقه ورداخليږي. ② دوهم ځواب دا دې. چې د صلاة نه مراد حقيقةً لمونځ مراد دې. او د عابرى سبيل نه مراد مسافر دى. نو اوس مطلب دا شو. چې لمونځ نه په حالت د نشه كي كوئ. او نه په حالت دجنابت كي. ليكن كه مسافر وي. نوهغه چې د غسل كاوه نه وړاندې تيمم اوكړي. نولمونځ كولې شي.

## د طواف او وطي كولو حرمت

وَلَاتَطُوفُ بِالْبَيْتِ اودخانه كعبې څخه به طواف نه كوي لِأَنَّ الطَّوَافَ فِي الْمَسْجِدِ ځكه چې طواف په مسجد حرام كي وي

**حل اللغة*** ① **لاتطوف، طاف طوافاً** (ن): طواف كول، راتاويدل

**تشريح:- حرمة الطواف وعلتها** ۞ څلورم حكم دا دې. چې حائضه به د بيت الله نه طواف نه كوي. دليل دا دې. چې خانه كعبه په مسجد حرام كي ده. او د حائضې لپاره جمات ته داخليدل جائز نه دې. نوطواف هم جائز نشو.

**تضعيف العلة** ۞ علامه نجم الدين زاهدى رحمه الله فرمائي. چې دحرمت طواف لپاره په دې علت كي ضعف دې. ځكه چې ددې تقاضا دا ده. چې دحائضې لپاره طواف ځكه ممنوع دې. چې د خانه كعبه په جمات كي ده. اود حائضې لپاره جمات ته داخليدل ناجائزدى. نوطواف هم ناجائزشو. كه دا علت وي. نوپكار دا وه. كه حائضه د جمات نه بهر وي. او خانه كعبې نه طواف كوي. چې دا طواف صحيح وي. ليكن د دې لپاره طواف مطلقاً ناجائزدې. كه د مسجد حرام نه بهر وي اوكه دننه. حالانكه د پاكې ښځې لپاره د مسجد نه بهر طواف كول جائز دي.

**العلة الصحيحة** ۞ نوځكه زيات مناسب دا وه. چې د حرمت طواف لپاره علت دا ګرځولې شوې وو. چې طواف د لمونځ په څير دې. او نبي ﷺ فرمائيلي دي. «الطواف بالبيت صلاة» يعنى دبيت الله نه طواف كول لمونځ

دي.نولکه څنګه چې د حائضې لپاره لمونځ ممنوع دې.دغه ډول طواف هم ممنوع شو.څکه چې طواف هم حکماً لمونځ دې.

وَلَا يَأْتِيهَا زَوْجُهَا اودې ته به ددې خاوند نه ورځي لِقَوْلِهِ تَعَالَى څکه چې الله ﷻ فرمائيلى دى وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ نزيکت مه کوئ.حائضو ته حَتَّى يَطْهُرْنَ تردې چې دوى پاکې شي

**تشريح:- حرمة الوطئ** ۞ اوپنځم حکم دا دې.چې حائضې ښځې سره جماع کول حرام ده. .دليل دالله ﷻ قول دې.﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ نوکه خاوند په حالت د حيض کې بى بى سره وطى کول حلال اوګڼړلو . نو دې کافر کيږي.اوکه حرام ئې ګڼړي. نوفاسق شو.او دګناه کبيره مرتکب شو.

**حكم الصدقة عند الوطى في حالة الحيض** ۞ اوکه په حالت دحيض کې ئې وطى اوکړله.① نوتوبه پرې واجب ده.او يودينار يا نيم دينار به صدقه کوى.② اوبعضو فرمائيلى دى.که د حيض په اول کې ئې وطى اوکړله.نو يو دينار به ورکوى.اوکه په آخر دحيض کې ئې وطى کړې وى.نونيم دينار به ورکوى.

**الخلاف في الاستمتاع بما دون ا لفرج** ۞ پاته شوه دا خبره چې دجماع نه سوا دې د ښځې نه مزه اخستې شى که نه؟ ①نو په دې اړه کې د امام ابوحنيفه ،امام ابويوسف،امام شافعى او امام مالك ﷺ مذهب دا دې.چې د نوم نه لاندې تر پنډو پورې نفع اخستل حرام دى.② او امام محمد اوامام احمد ﷺ فرمائى.چې د فرج نه علاوه د بدن هيڅ يوه برخه هم حرامه نه ده.

**دليل محمد واحمد** ﷺ ۞ دامام محمد اوامام احمد ﷺ دليل دا دې.چې د يهودو دا عادت وو.چې د ښځو سره به ئې په حالت د حيض کې ترك تعلق کولو.تردې چې دوډۍ خوړل به ئې هم ور سره پريښولو .نوصحابه کرامو﷽ په دې اړه کې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه.نو الله تعالى دا آيت ﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ﴾نازل کړلو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.﴿اصنعوا كل شئ إلا النكاح﴾او په يو روايت کې دى.﴿إلا الجماع﴾ يعنى هرکار کوئ.مګرجماع مه کوئ.

**دليل الشيخين** ﷺ ۞ دشيخينو ﷺ دليل دا دې.﴿عن عبدالله بن سعد قال سألت رسول الله ﷺ ما يحلى لى من إمرأتى وهى حائض فقال ﷺ لك ما فوق الإزار﴾ دحضرت عبدالله بن سعد﷛ نه روايت دې.فرمائى ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه.زما لپاره دخپلې ښځې نه څه فائده اخستل جائزدى.چې هغه حائضه وى.نونبى عليه السلام اوفرمائيل:ستا لپاره د لنګ نه پورته برخه جائزده.

## دحائضې اوجنب لپاره د قران د تلاوت حرمت

وَلَيْسَ لِلْحَائِضِ وَالْجُنُبِ وَالنُّفَسَاءِ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ اوجائزنه دى د حائضې جنب او نفاسې لپاره د قرآن پاك لوستل

**حل اللغة:** ① **نفساء:** دَ نفاس والا ښځه

**تشريح:- الاختلاف في حكم قراءة القران** ۞شپږم حکم دا دې.① چې د قرآن پاك لوستل جائزنه دى.د حائضې لپاره او د جنب لپاره که ښځه وى اوکه سړې وى.اود ماشوم لپاره هم جائزنه دې.نه د يو آيت لوستل جائز دى.اونه ددې نه کم.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څکه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ[1] حائضه او جنب به قرآن نه لولى

**حل اللغة:** ① **لاتقرأ، قرا قراءة (ف)** لوستل ② **شيئاً:** څه شى

**تشريح:- دليلنا** ۞زموږ دليل د نبى ﷺ ارشاد دې.چې ﴿لا تقرأ الحائض ولاالجنب شيامن القرآن﴾ دا حديث د امام مالك ﷺ خلاف حجت دې.څکه چې دا حديث ښکاره د حائضې لپاره د قرآن پاك دتلاوت ممانعت

[1] من حديث ابن عمر ﷠ اخرجه الترمذى فى الطهارة باب ۱۲۶ رقم ۶۴۵)_



کوى.نودامام مالك ﷺ عقلى دليل ددې مقابله نشى کولې.اوچونکه حديث مطلق دې.نو د ايت او د ايت نه کم دواړو ته ګډ دې.نو دامام طحاوى ﷺ داخبره چې يو آيت ناجائزاود يوآيت نه کم جائز دې.دا صحيح نه ده.بلکه د حائضې لپاره مطلقاً د قرآن قرات جائزنه دى.

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ ﷺ فِي الْحَائِضِ اودا حديث د حائضې په اړه کې دامام مالك ﷺ خلاف حجت دې

**تشريح:-** علامه مرغينانى ﷺ فرمايي چې زموږ مستدل د خپل اطلاق په وجه دامام مالك ﷺ خلاف حجت دې.څکه چې د هغوى په نيز د حائضې لپاره دقرآن پاك لوستل جائز دې.

**دليله** ۞ دامام مالك ﷺ دليل دا دې.چې حائضه ښځه معذوره ده. اود قرآن پاك د تلاوت محتاجه ده.اود طهارت په حاصلولو هم قدرت نه لرى.نود اړتيا دوجې دحائضې لپاره دقرآن لوستل جائز دى.ددې په خلاف جنب دې. چونکه هغه د غسل يا تيمم په ذريعه پاکى حاصلولې شى.(نودهغه لپاره قرات دقرآن جائزنه دې.ازمترجم)او نفاس چونکه کم واقع کيږى.نوڅکه د نفاسې په حق کې د دې اړتيا اعتبار نشى کولې.

وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ يَتَنَاوَلُ مَا دُونَ الْآيَةِ اودا آيث د خپل اطلاق په وجه دآيت نه کم ته هم ګډ دې فَيَكُونُ حُجَّةً نودا نص به حجت وى عَلَى الطَّحَاوِيِّ فِي إِبَاحَتِهِ په امام طحاوى د مادون الاية لوستلو په مباح ګرځولو کښې

**حل اللغة:** ① **يتناول:** ګډ کيدل ② **حجة** : دليل

**تشريح:-** علامه مرغينانى ﷺ فرمايي چې زموږ مستدل د خپل اطلاق دامام طحاوى ﷺ خلاف حجت دې څکه چې د هغوى په نيز د آيت نه د کمې حصې تلاوت جائز دې.

**دليله** ۞دامام طحاوى ﷺ دليل دا دې.چې دقرآن سره دوې (دوه) حکمونه متعلق دى.يو قراءت دقرآن يعنى په قرات باندې د لمونځ جواز. دوهم د حائضې وغيره لپاره د قرآن د لوستلو حرمت.بيا په حکم کې يعنى د لمونځ په جواز کې په آيت اود آيت نه په کم کې فصل دې.د يوآيت په مقدار باندې قرات کاوه سره لمونځ جائز کيږى.اود يو آيت د مقدار نه په کم سره نه جائزکيږى.نودغه ډول په دوهم حکم کې هم توپير کول پکار دى.چې دحائضې ښځې لپاره دې يوآيت لوستل ناجائزوى.او د يو آيت نه کم جائز شى.

## دقرآن پاك د مسه کولو حکم

وَلَيْسَ لَهُمْ مَسُّ الْمُصْحَفِ اود دوى لپاره د قرآن پاك مسه کول جائز نه دى إِلَّا بِغِلَافِهِ مګر دهغې په پوښ سره وَلَا أَخْذُ دِرْهَمٍ فِيهِ سُورَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ اونه د داسې روپۍ چې په هغې کې د قرآن سورت وى إِلَّا بِصُرَّتِهِ مګر په هميانۍ سره وَكَذَا الْمُحْدِثُ لَا يَمَسُّ الْمُصْحَفَ إِلَّا بِغِلَافِهِ اودغه ډول به بغير د پوښ نه بې اودسه هم قرآن نه مسه کوى

**حل اللغة:** ① **مس:** لاس لګول ② **پوښ** : استر ③ **صبرة:** تهيلنى

**تشريح:- مس القران للحائض والنفساء والجنب** ۞ اووم حکم دا دې.چې دحائضې نفاسې او جنب لپاره د قرآن پاك مسه کول جائز نه دى.اوهغه روپۍ چې په هغې کې د قرآن پاك يو آيت وى.د هغې مسه کول هم جائز نه دى.مګرپه هميانۍ يعنى تيلۍ سره ددې مسه کول جائز دې.اودا حکم د بې اودسه سړې هم دې.

لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څکه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى لَا يَمَسُّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ[1] دا قرآن به صرف پاك مسه کوى

**تشريح:- دليل حرمة جواز مس القران** ۞ دليل د نبى ﷺ ارشاد دې. چې ﴿لايمس القرآن إلا طاهر﴾ يعنى قرآن به صرف پاك سړې مسه کوى.

[1] من حديث عمروبن حزم﷛ اخرجه الحاكم فى المستدرک (۱\۳۹۵) والدارقطنى فى سننه (۱\۱۲۱) والبيقهى فى السنن الكبرى (۱\۱۴۱)ومعرفة السنن والاثاررقم ۱۰۶)_

**السوال على صاحب الهداية** ۞ خيني حضراتو په مصنف رحمه الله باندې اعتراض کړی دی. چې دوی په آيت (لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ) باندې استدلال ولې اونکړلو. د دې باوجودچې دا آيت په حالت د عدم طهارت کي د قرآن په مسه کاوه کي په نهی کي ظاهر دې.

**الجواب** ۞ ځواب دا دی. چې د خيني عالمانو رحمهم الله په نيز دلته کي د مطهرون نه مراد فرښتې دي. (چې صرف فرښتې دا قرآن مسه کوی. يعنی دا خبر دی نهی نه ده. نو ځکه د دې نه عدم جواز نه ثابتيږی. ازمترجم) نو ددې احتمال د وجې صاحب د هدايه په دې آيت استدلال اونکړلو.

ثُمَّ الْحَدَثُ وَالْجَنَابَةُ حَلَّا الْيَدَ بيا حدث او جنابت دواړو په لاس کي حلول کړی دی فَيَسْتَوِيَانِ فِي حُكْمِ الْمَسِّ نو
مسه کاوه په حکم کي به دواړه برابر وی وَالْجَنَابَةُ حَلَّتِ الْفَمَ او جنابت په خوله کي هم حلول کړی دی دُونَ الْحَدَثِ
او حدث نه دی کړی فَيَفْتَرِقَانِ فِي حُكْمِ الْقِرَاءَةِ نود قرآن د لوستلو په حکم کي به دواړه جلا جلا وی

**حل اللغة:** ① **فم:** خُله ② **فيفترقان، افترق افتراقًا:** جدا کيدل بل شان کيدل

**تشريح:- وجه الفرق بين المحدث والجنب في حكم القراءة** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمايي. چې حدث او جنابت دواړه د مصحف د مسه کاوه په حکم کي برابر دی. خو د قرآن د تلاوت په حکم کي دواړه جلا جلا دی. نو بې اودسه لپاره د قرآن تلاوت جائز دی. او د جنب لپاره جائز نه دی. وجه دا ده. چې حدث او جنابت دواړه په لاس کي حلول کوی. نو ځکه مصحف ته لاس اوړل جائز نه دی. او حدث په خوله کي دننه سرايت نه کوی. هم دا وجه ده. چې په اودس کي خوله کي اوبه اچول فرض نه دی. او جنابت په خوله کي حلول کوی. (ځکه خو په غسل کي د خولې پريمنځل فرض دی) نود بې اودسه لپاره تلاوت جائز او د جنب لپاره ناجائز شو.

وَغِلَافُهُ او ددې پوښ هغه دی مَا يَكُونُ مُتَجَافِيًا عَنْهُ چې د مصحف نه جلا کيږی نه دُونَ مَا هُوَ مُتَّصِلٌ بِهِ د هغې
سره مولښتی وی كَالْجِلْدِ الْمُشَرَّزِ لکه ټوك مشرز هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده وَيُكْرَهُ مَسُّهُ بِالْكُمِّ او په لستوڼي
سره د مصحف مسه کول مکروه دی هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده لِأَنَّهُ تَابِعٌ لَهُ ځکه چې لستوڼی دده تابع دی

**تشريح:- حكم المس بغلاف** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې پوښ هغه دی. چې د مصحف سره لګيدلې نه وی. يعنی د ماس (ګوتې اوړونکی) او ممسوس (چې څه ته ګوتې وراوړی) په مينځ کي واسطه وی. او مصحف سره متصل نه وی. لکه مشر (چې په شريشو لګيدلې) وی. حاصل دا چې د پوښ نه د قرآن پاك تيلی مراد ده.

**المراد من الغلاف** ۞ صاحب نقايه فرمائی. چې د پوښ په مصداق کي عالمانو اختلاف کړی دی. ① بعضو فرمائيلی دی. چې پوښ هغه دی. چې مصحف سره متصل وی. يعنی شريش شوی وی. (دغه شان چې ګنډلی شوی وی. يا په پڼ سره لګيدلې وی. هغه هم د مشرز په حکم کي دی. ازمترجم) ② او خيني عالمان فرمايي. چې لستوڼی مراد دی. ③ او بعضو فرمائيلی دی. چې د پوښ نه مراد هغه تيله ده. چې قرآن په کي کيخودلی شی. دا قول زيات صحيح دی. ځکه چې شريش شوی خو د قرآن تابع دی. او لستوڼی د مسه کونکی تابع دی. او تيله په دې دواړو کي د يو تابع هم نه ده.

بِخِلَافِ كُتُبِ الشَّرِيعَةِ په خلاف د شرعی کتابونو لِأَهْلِهَا چې هغه د خپل اهل سره وی حَيْثُ يُرَخَّصُ فِي مَسِّهَا بِالْكُمِّ
ځکه چې دوی لپاره په لستوڼی سره ددې مسه کول جائز دی لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً ځکه چې په دې کي اړتيا دی

**تشريح:- حكم الكتب الشريعة** ۞ او شرعی کتابونه د دې په خلاف دی. ځکه چې د اهل علم لپاره په لستوڼی سره ددې د مسه کاوه اجازت شته. ځکه چې د هغوی اړتيا دی. او دعامو مشائخو رحمهم الله هم دا رائې ده.

وَلَا بَأْسَ بِدَفْعِ الْمُصْحَفِ إِلَى الصِّبْيَانِ او ماشوماتونه په مصحف ور کاوه کي څه باك نشته لِأَنَّ فِي الْمَنْعِ تَضْيِيعَ
حِفْظِ الْقُرْآنِ ځکه چې په منع کولو کي د قرآن د ساتنه ضائع کيدل دی وَفِي الْأَمْرِ بِالتَّطْهِيرِ حَرَجًا بِهِمْ او بچو ته (په



هروخت کي) د طهارت حکم ورکول ددوی په حق کي حرج دی وَهٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ او د ماشومانو په حق کي هم دا حکم صحيح دی.

**حل اللغة:** ① **دفع:** ورکول ② **تضييع:** ضائع کول

**تشريح:- حكم مس الصبيان** ۞ او بې اودسه ماشومانو ته د قرآن پاك په ورکولو کي څه باك نشته. ځکه که دا اجازت ورنکړی شی. نو دوې (دوه) صورتونه دی. يا خو به دوی د قرآن د مسه کاوه نه منع کولای شی. او يا به ورته د طهارت حاصلولو حکم ور کولای شی. په اول کي د قرآن پاك ضائع کيدل لازمی دی. او په دوهم صورت کي ماشومان په مشقت او حرج کي اچول دی. (او حرج د لويو په حق کي مرفوع دے نو د ماشومانو په حق کي خو به په طريق اولی سره مرفوع وی.

## دلسو ورځونه وړاندې د وينې ودريدل

قَالَ وَإِذَا انْقَطَعَ دَمُ الْحَيْضِ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ او کله چې د حيض وينه د لس ورځو نه په کمه موده باندې
اودريږی لَمْ يَحِلَّ وَطْؤُهَا نو د دغه ښځې سره وطی کول جائز نه دی حَتّٰى تَغْتَسِلَ تر دې چې غسل اوکړی لِأَنَّ
الدَّمَ يَدِرُّ تَارَةً ځکه چې وينه کله روانيږی وَيَنْقَطِعُ أُخْرٰى او کله بنديږی فَلَا بُدَّ مِنَ الْاِغْتِسَالِ نو غسل کول ضروری ده
لِيَتَرَجَّحَ جَانِبُ الْاِنْقِطَاعِ چې د انقطاع اړخ راجح شی

**حل اللغة:** ① **انقطع:** بنديدل ② **دم:** وينه ③ **يدر، در، دريرًا (ض):** روانيدل

**تشريح:- صورتي جواز الوطئ؟** ۞ اتم حکم دا دی. ① که دعادت مطابق د لسو ورځو نه په کمه موده باندې وينه ودريدله. نو وطی کول جائز نه دی. تر دې چې دغه ښځه غسل اوکړی. دليل دا دی. چې وينه کله جاری کيږی او کله اودريږی. نو د اودريدو جانب ته ترجيح ور کاوه لپاره غسل کول ضروری دی.

وَلَوْ لَمْ تَغْتَسِلْ او که ښځې غسل اونکړلو وَمَضٰى عَلَيْهَا أَدْنٰى وَقْتِ الصَّلَاةِ او په دې باندې دلمانځه کم وخت تير شو
بِقَدْرِ أَنْ تَقْدِرَ عَلَى الْاِغْتِسَالِ چې دې په کي غسل کولای شو وَالتَّحْرِيمَةِ او تکبير تحريمه ئې وئيلی شوه حَلَّ
وَطْؤُهَا نو دې سره وطی کول جائز شو لِأَنَّ الصَّلَاةَ صَارَتْ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهَا ځکه لمونځ ددې په ذمه فرض شو
فَطَهُرَتْ حُكْمًا نو دا حکماً پاکه شوه.

**حل اللغة:** ① **مضى مضيًا (ض):** تيريدل ② **انتقدر، قدر قدرة (ض):** قادر کيدل

**تشريح:-** که ښځې د انقطاع نه روسته غسل اونکړلو. او دومره وخت تير شو. چې دې په کي غسل کولای شو او تکبير تحريمه ئې ترلې شوه. نو اوس ور سره وطی کول حلال دی. ځکه چې لمونځ ددې په ذمه پور شو نو حکما دا پاکه شوه. ځکه چې کله شريعت ددې په ذمه لمونځ فرض کړلو. نو ګوياچې شريعت ددې د طهارت حکم ورکړلو. ځکه چې په حالت دحيض کي خو لمونځ صحيح نه دی.

## دعادت نه په کمه موده دوينې ودريدل

وَلَوْ كَانَ انْقَطَعَ الدَّمُ دُوْنَ عَادَتِهَا او که وينه ددې د عادت (د ورځو) نه په کمه کي منقطع شوه فَوْقَ الثَّلَاثِ او د
درې ورځو نه په زياتو کي لَمْ يَقْرَبْهَا نو ښځې سره به قربت نه کوی حَتّٰى تَمْضِيَ عَادَتُهَا تر دې چې عادت ئې پوره
شی وَإِنِ اغْتَسَلَتْ اګرچې غسل اوکړی لِأَنَّ الْعَوْدَ فِي الْعَادَةِ غَالِبٌ ځکه چې په عادت کي امکان د دِ اروسته کيدو
زيات وی فَكَانَ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْاِجْتِنَابِ نو ځکه احتياط په اجتناب کي دی

**حل اللغة:** ① **انقطع:** بنديدل ② **اغتسلت، اغتسل اغتسالاً:** غسل کول

**تشريح:- حكم الانقطاع فوق الثلاثة وقبل العادة** ۞ صورت دمسئلې دا دی. که وينه د درې ورځو نه په زياته موده او د عادت نه په کمه موده ودريدله. مثلاً عادت ئې اووه ورځې وو. او وينه په پنځمه اودريده. نو په دا سې صورت کي د دا سې ښځې سره وطی کول جائز نه دی. تر دې چې عادت ئې پوره شی. اګرچې غسل

اوکړي.خکه چې په عادت کي اکثر وينه بيا راځي.نواحتياط هم په دې کي دې.چې د وطی نه اجتناب اوکړي.

وَاِنْ انْقَطَعَ الدَّمُ اوکه وينه اودريده لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ په لسمه ورځ حَلَّ وَطْؤُهَا نو دې سره وطی کول جائز ده قَبْلَ الْغُسْلِ وړاندې د غسل نه لِأَنَّ الْحَيْضَ لَا مَزِيدَ لَهُ عَلَى الْعَشَرَةِ خکه چې په لسو ورځو باندې حيض نه زياتيږي اِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْتَحَبُّ قَبْلَ الْاِغْتِسَالِ مګر دومره ده چې د غسل نه وړاندې وطی مستحب نه ده. لِلنَّهْيِ فِي الْقِرَاءَةِ بِالتَّشْدِيدِ د هغه ممانعت دوجې کوم چې په قراءت بالتشديد کي وارد دې.

تشريح:- حکم انقطاع الدم بالعشرة ۞ اوکه په لسمه ورځ وينه ودريدله.نو دې سره د غسل نه وړاندې وطی کول جائزدی.خکه چې د حيض وينه د لسو ورځو نه زياته نه وي.نو معلومه شوه.چې حيض ختم شوې دې.البته دومره ده.چې دغسل نه وړاندې وطی کول مستحب نه دی.دهغه ممانعت دوجې کوم چې په قراءت د تشديد کي راغلې دې.په قراءت د تشديد کي يعنی ﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ﴾ (دطاء او هاء په شد سره) په دې قراءت کي مبالغه مطلوب ده.(چې دوی ښه پاکي شی.ازمترجم) او مبالغه (يعنی ښه پاکي.ازمترجم) به هله راشی.چې د وينې بنديدونه روسته غسل هم اوکړي.دا قراءت اګرچې دواړو صورتونو ته ګډ دې.که لس ورځې وي اوکه د لسو نه کمې وي.ليکن توپير به دا وي.که د لسو نه کمه موده باندې وينه ودريدله .غسل به ضروری وي.دغسل نه وړاندې ور سره وطی کول جائز نه ده.اوکه په لسمه ورځ ودريدله.نو دغسل نه وړاندې هم وطی جائزده.ليکن مستحب دا ده.چې غسل اوکړي.

## د طهرفاصل او غير فاصل بيان

قَالَ وَالطُّهْرُ اِذَا تَخَلَّلَ بَيْنَ الدَّمَيْنِ اوطهر کله چې د دوو وينو په مينځ کي واقع شی فِي مُدَّةِ الْحَيْضِ په موده د حيض کي فَهُوَ كَالدَّمِ الْمُتَوَالِي نودا د بلا ناغه وينې په څير دې. قَالَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ مصنف رحمه الله فرمايي وَهٰذِهِ اِحْدَى الرِّوَايَاتِ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله چې دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه په مروی رواياتوکي يوروايت دې

حل اللغة: ① طهر: پاکی ② تخلل تخللاً: په مينځ کيدل ③ متوالی: يوبل پسې

تشريح:- اقسام الطهر ۞ طهر(د طاء په پيښ سره) د دوو حيضو په مينځ کي هغه وخت ته وائی.چې جداوالې ئې راوستې وی.بيا طهر په دوې (دوه) قسمه دې.طهرفاسد (ناقص) اوطهر کامل.طهر کامل په اتفاق سره فاصل وی.علامه مرغينانی رحمه الله په طهر فاسد کي دامام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه ذکر کړی دی

تشريح الرواية الاولى ۞ طهرناقص که په پنځلس ورځو کي د دوو وينو په مينځ کي دحيض په موده کي واقع شو.نودا طهر به فاصل نه وی.بلکه دا ټوله موده به حيض ګنړلې شی.مثلاً يوه داسې ښځه چې په اول خل پرې حيض راشی.يوه ورځ وينه جاری وی.بيا اته ورځې بنده وی.بيائې يوه ورځ وينه اوليدله.نو دا لس واړه ورځې به حيض وی.دا روايت امام محمد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه کړې دی.

وَوَجْهُهُ اوددې وجه دا ده أَنَّ اسْتِيعَابَ الدَّمِ مُدَّةَ الْحَيْضِ چې وينه د حيض موده راګيره کړی لَيْسَ بِشَرْطٍ بِالْاِجْمَاعِ په اجماع سره دا شرط نه دې فَيُعْتَبَرُ أَوَّلُهُ وَآخِرُهُ نوددې اول اوآخر به معتبر وی كَالنِّصَابِ فِي بَابِ الزَّكَاةِ لکه په باب د زکاة کي نصاب شو

حل اللغة: ① استعاب: راګيرول

تشريح:- د دې دليل دا دې.چې دحيض په موده کي پيوسته وينه راتګ د چا په نيز باندې شرط نه دې.نود وينې په راتلوکي به اول او آخر معتبر وی.لکه څنګه چې د زکاة په وجوب کي د کال اول او آخر معتبر وی.(چې دکال په اول او آخر کي ور سره نصاب برابر وی.نوکه مينځ کي د نصاب نه مال کم شوې وی.بيا هم زکاة واجب دې.ازمترجم) د واړه کال راګيرول شرط نه دې.



وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله (۱) اود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې وَهُوَ رِوَايَتُهُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اوونيلی شوی دی.چې دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت هم دې وَقِيلَ او ونيلی شوی دی هُوَ آخِرُ أَقْوَالِهِ چې دا دامام ابوحنيفه رحمه الله آخری قول دې أَنَّ الطُّهْرَ اِذَا كَانَ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا که طهر د پنځلس ورځو نه کم وی لَا يَفْصِلُ نوفاصل به نه وی وَهُوَ كُلُّهُ كَالدَّمِ الْمُتَوَالِي او دا واړه به د بلا ناغه وينې په څير وی لِأَنَّهُ طُهْرٌ فَاسِدٌ خکه چې دا طهر فاسد دې فَيَكُونُ بِمَنْزِلَةِ الدَّمِ نود وينې په حکم کي به وی وَالْأَخْذُ بِهٰذَا الْقَوْلِ أَيْسَرُ او د دې قول اختيارول ډير آسان دی وَتَمَامُهُ اوددې پوره تفصيل يُعْرَفُ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ د امام محمد رحمه الله دکتاب په کتاب الحيض کي ذکر دې.

تشريح:- تشريح الرواية الثانية ۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوهم روايت دا منقول دی چې طهرناقص مطلقاً فاصل نه دې.اګرچې دا طهر د لسو ورځو نه زيات ولې نه وي.دا قول دامام ابويوسف رحمه الله دې.اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله آخری قول دې. د دې قول په بناء د حيض اول اوآخر دواړه طهر کيداې شی.ددې صورت دا دې. چې د يوې ښځې عادت دا وی.چې دهرې مياشتې د اول تاريخ نه تر لسم تاريخ پورې وينه وينی.نودې د خپل عادت نه يوه ورځ وړاندې وينه اوليدله.او بيا لس ورځې پاکه وه.نواوس دا لس ورځې به حيض وی.چې په دغه کي ئې هډو وينې ليدلې نه ده.اود عادت نه يو ورځ وړاندې وينه اود لسو ورځو نه روسته يوه ورځ وينه دا دواړه به استحاضه وی.په مفتی اومستفتی دواړو باندې د آسانتيا دوجې دا قول مفتی به دې.

الرواية الثالثة ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله نه په دې مسئله کي څلور روايات نور هم منقول دی د هغې تفصيل دا دې چې عبدالله بن مبارک رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کوی.که وينې په موده د حيض کي د دواړو طرفونواحاطه کړې وی.او دواړه وينې چې جمع کړې شی.نو نصاب (چې اقله موده د حيض ده) ته رسی.نودا طهر هم فاصل نه دې.مثلا يوه ښځه دوې (دوه) ورځې وينه اووينی.اوبيا اووه ورځې پاکه وی.او بيا دوې (دوه) ورځې وينه اووينی.نودا لس واړه ورځې به په حيض کي شمارلې شی.

الرواية الرابعة ۞ د امام محمد رحمه الله مذهب دا دې.چې په پورتنی قول کي کوم شرطونه دی.د هغې سره دا ضروری ده.چې طهر د دواړو وينو برابر يا دهغې نه کم وی.اوامام محمد رحمه الله حکمی وينه هم وينه شماری. مثلايوې ښځې په اول کي دوې (دوه) ورځې وينه اوليدله.بيا درې ورځې پاکه وی.بيا يوه ورځ وينه راغله.بيا درې ورځې پاکه وه. او بيا يوه ورځ وينه راغله.امام محمد رحمه الله فرمائی.چې په دې لسو ورځو کي دوې (دوه) طهرونه واقع شو.ليکن اول طهر د طرفينود دواړو وينو سره د برابری دوجې حکماً وينه شوه.او اوس حقيقی او حکمی دواړه وينې چې جمع شوې.نو اووه ورځې ترې جوړې شوې. او دا د طهرثانی نه زياتې دی.نوطهرثانی به هم وينه شمارلې شی. نو دغه ډول دا لس واړه ورځې دامام محمد رحمه الله په نيز حيض شو

الرواية الخامسة ۞ د ابوسهيل رحمه الله هم دا قول دې.ليکن ابوسهيل حکمی وينې ته حيض نه وائی.بلکه د هغه په نيز دا ضروری ده.چې طهر د دووحقيقی وينو سره برابر يا ددې نه کم وی.نوپه مذکوره صورت کي به شپې ورځې حيض او پاتې څلور ورځې طهر وی.

الرواية السادسة ۞ حسن بن زياد رحمه الله وائی.که طهردرې ورځې يا ددې نه زيات وی.نودا به فاصل وی.اوکه د درې ورځو نه کم وی.نوهغه به فاصل نه وی.(والعلم عندالله جميل)

## د طهر موده

وَأَقَلُّ الطُّهْرِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا او د طهر ادنی موده پنځلس ورځې دی

(۱) القول الراجح هو رواية ابی يوسف رحمه الله كذا فی فتح القدير(۱۵۳/۱) والكفاية (۱۵۳/۱) والعناية (۱۵۳/۱) وردالمحتار(۲۱۲/۱) والهندية (۳۷/۱) وتبيين الحقائق (۶۰/۱) نقلا عن القول الراجح (۳۹/۱)_

**حل اللغة*** ① **اقل**: کم

**تشريح:- اقل مدة الطهر** ۞ فرمائي. چې کمه موده د طهر پنځلس ورځې دی. اودا قول د ابراهیم نخعی تابعی رحمه الله نه هم منقول دي.

**هَكَذَا نُقِلَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ** اودا د ابراهیم نخعی رحمه الله نه منقول دی **وَأَنَّهُ لَا يُعْرَفُ إِلَّا تَوْقِيفًا** اودا خبره د توقیف نه سوا نشی معلومیدي

**حل اللغة*** ① **نقل نقلاً** (ن): نقل کول

**تشريح:- الدليل الاول** ۞ اودا ښکاره ده. چې ابراهیم نخعی رحمه الله به د صحابی نه اوریدلی وی. او صحابی به د نبی ﷺ نه اوریدلی وی. ځکه چې دا مقدار دې. اوپه شریعت کي مقدار په سماع سره ثابتیږی. په قیاس سره د مقادیرو اندازه نشی کولې.

**الدليل الثانی** ۞ شیخ ابومنصور ماتریدی رحمه الله ددې لپاره استدلال کړې دې. چې د طهر کمه موده پنځلس ورځې دی. چې الله تعالی د صغیرې اوائیسې په حق کي یوه میاشت د طهر او حیض دواړو قائم مقام ګرځولی دی. اوقاعده دا ده. چې کوم شی دوو ځیزونوته منسوب وی. نو هغه ځیزبه په دواړو برابر برابر تقسیمولې شی. نومناسب خودا وه. چې نیمه میاشت دحیض وه اونیمه د طهر. لیکن په دې باندې نص موجود دې. چې حیض د نیمې میاشتې نه کم وی. نوحیض دپنځلسو ورځو نه کم شو. اوطهر په خپل تقسیمی موده باندې پاته شو.

**الدليل الثالث** ۞ اوپه مبسوط کي دی. چې موده د طهرد اقامت د مودې نظیر دې. نولکه ځنګه چې په حالت داقامت کي کم شوې مونځونه واروسته پوره کیږی. اودغه ډول روژه چې په حالت د سفر کي ئې نیول معاف وی. نوپه حالت د اقامت کي دهغې راګرځول فرض کیږی. اود احادیثونه دا خبره ثابته ده. چې کمه موده د اقامت پنځلس ورځې ده. نودغه ډول به کمه موده د طهر هم پنځلس ورځې وی. اوهم د دې وجې د سفر په کمه موده چې درې ورځې دی. کمه موده د حیض مقدرکړې شوې ده. چې درې ورځې دی. ځکه چې دواړوکي هر یوپه لمونځ او روژې کي تاثیر کوی. (ځکه چې د درې ورځو سفر په لمانځه کي قصر پیدا کوی. او په روژه کي افطار جائز کوی. اودغه ډول حیض لمونځ او روژه ساقط کوی. ازمترجم)

**وَلَا غَايَةَ لِأَكْثَرِهِ** او د زیات طهر څه اندازه نشته **لِأَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلَى سَنَةٍ وَسَنَتَيْنِ** ځکه چې طهر د یو کال اود دوو کالو پورې اوږد کیدای شی **فَلَا يَتَقَدَّرُ بِتَقْدِيرٍ** نونه بدلیږی په بدلیدو سره

**حل اللغة*** ① **يمتد، امتدا امتداداً**: اوږدیدل

**تشريح:- اكثر مدة الطهر** ۞ اود اکثر طهرڅه اندازه مقرر نه ده. نوترڅو پورې چې دا طهر ګوری. نو مونځونه او روژې دې نیسی. اګرچې دا طهر ددې واړه ژوند راګیر کړی. ځکه چې ځینې وخت طهر یویو کال دوې (دوه) دوې (دوه) کاله جاری وی. بلکه ددې نه هم زیات وی. ددې وجې د طهر د زیاتې مودې څه حد نشی مقرر کولې.

**إِلَّا إِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ** خوچې کله جاری پاتې شی ددې وینه **وَيُعْرَفُ ذَلِكَ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ** داخبره دکتاب الحیض نه معلومیږی

**حل اللغة*** ① **استمر استمراراً**: تیریدل په یوحالت باندې پاتې کیدل

**تشريح:- ايام طهر المبتدء ة المستحاضة** ۞ البته که د ښځې وینه همیشه لپاره جاری شی. نوپه دې صورت کي دعامو عالمانو رحمهم الله په نیز خامخا څه مقدار مقرر کول ضروری دی. نوکه یوه ښځه په اول ځل حائضه شی. او میاشت د دیرشو ورځو وی. اوپاته ورځې به طهر شمارلې شی. نوکه میاشت د دیرشو ورځو وی. نوطهر به شل ورځې وی. اوکه میاشت د یوکم دیرش ورځو وی. نو طهربه نورلس



ورځې وی.

## استحاضه څه نه منع کوی

**وَدَمُ الْإِسْتِحَاضَةِ** او داستحاضه وینه **كَالرُّعَافِ** د پوزې دوینې په څیر **الدَّائِمِ لَا يَمْنَعُ الصَّوْمَ وَلَا الصَّلَاةَ وَلَا الْوَطْءَ** نه روژه منع کوی اونه لمونځ اونه وطی

**حل اللغة*** ① **رعاف**: نکسیر ② **لايمنع، منع منعاً** (ف): منع کیدل

**تشريح:- وجه المشابهة مع الرعاف** ۞ داستحاضه وینه د پوزې د وینې په څیر ده. یعنی ځنګه چې د پوزې وینه د رګ نه راځی. دغه ډول د استحاضه وینه هم د رګ نه راځی. نولکه ځنګه چې د پوزې وینه روژه لمونځ او وطی نه منع کوی. دغه ډول د استحاضه وینه هم دا شیان (ځیزونه) نه منع کوی.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی ته اودس کوه **تَوَضَّئِي وَصَلِّي** اولمونځ کوه **وَإِنْ قَطَرَ الدَّمُ عَلَى الْحَصِيرِ**[1] اګرچې وینه په پوزی پریوځی

**حل اللغة*** ① **حصير**: پوزکې

**تشريح:- دليله** ۞ دلیل هغه حدیث دې. کوم چې ابن ماجه دام المومنین رضی الله عنها نه نقل کړې دې. پوره حدیث دا دې. «عن عائشة قالت جاءت فاطمة بن أبي حبيش إلى النبي ﷺ فقالت إني إمرأة أستحيض فلا أطهر أبداً أفأدع الصلاة فقال ﷺ لا إجتني الصلاة أيام محيضك ثم اغتسلي وتوضي لكل صلاة ثم صلي وإن قطر الدم على الحصير» ام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي. چې فاطمه بنت ابی حبیش نبی ﷺ ته راغله. او عرض ئې اوکړلو. چې زه استحاضه ښځه یم. همیشه لپاره رانه وینه روانه وی. آیا زه لمونځ پریږدم؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: نه بلکه د حیض په ورځو کي لمونځ پریږده. اوبیا غسله کوه. اودهر لمانځه لپاره اودس کوه. اولمونځ کوه. اګرچې په پوزی باندې وینه ځاځی.

**وَإِذَا عُرِفَ حُكْمُ الصَّلَاةِ** اوکله چې د لمونځ حکم معلوم شو **ثَبَتَ حُكْمُ الصَّوْمِ وَالْوَطْءِ بِنَتِيجَةِ الْإِجْمَاعِ** نود روژې او د وطی حکم په نتیجه د اجماع ثابت شو.

**تشريح:- جواز الصوم والوطئ عندالاستحاضة** ۞ صاحب هدایه رحمه الله فرمائي. چې هرکله د لمونځ جواز د حدیث نه ثابت شو. نو د روژې اووطی جوازپه نتیجه د اجماع سره ثابت دې. یعنی وینه راتګ د لمونځ سره منافی ده. خوچې کله دا ثابته شوه. چې استحاضه د لمونځ مانع نه ده. نود روژې او وطی نه خو به په طریقه اولی سره مانع نه وی.

ځکه چې د لمانځه لپاره د حدث او جنابت دواړو نه طهارت شرط دې. اود روژې او وطی لپاره دحدث او جنابت نه طهارت شرط نه دې. ځکه چې حالت د بې اودسۍ اوجنابت کي روژه نیولې شی. اودغه ډول په حالت د حدث او جنابت کي وطی کولای شی. نوچې لمونځ په کي جائز شو. چې د حدث او جنابت نه طهارت ورله شرط دې. نوروژه اووطی خو به په طریقه اولی سره جائز وی.

## په عادت د زیاتی وینې حکم

**وَلَوْ زَادَ الدَّمُ عَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** اوکه وینه لسو ورځوته اورسیدله **وَلَهَا عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ دُونَهَا** حالانکه د ښځې معلوم عادت دلسونه کم وو **رُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا** نوهغه به دخپل عادت ورځو ته واروسته کولای شی **وَالَّذِي زَادَ** اوچې کومې ورځې د هغې دعادت نه زیاتې وی **اِسْتِحَاضَةٌ** هغه به استحاضه وی

[1] من حدیث عائشة رضی الله عنها قالت جاءت فاطمة بنت ابی حبیش الی النبی ﷺ الحدیث اخرجه ابن ماجة فی الطهارة باب ۱۱۵ والنسائی فی الطهارة باب ۱۲۰ والدارمی فی الوضوء باب ۸۶ واحمد فی المسند (۴۲/۶)-

**حل اللغة:** ① **اقل:** كم

**تشريح:- اقل مدة الطهر** ⊛ فرمائي. چې كمه موده د طهر پنځلس ورځې دی. اودا قول د ابراهيم نخعي تابعي رحمه الله نه هم منقول دی.

| |
|---|
| **هَكَذَا نُقِلَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ** اودا د ابراهيم نخعي رحمه الله نه منقول دی **وَأَنَّهُ لَا يُعْرَفُ إِلَّا تَوْقِيفًا** اودا خبره د توقيف نه سوا نشي معلوميدي |

**حل اللغة:** ① **نقل نقلاً (ن):** نقل كول

**تشريح:- الدليل الاول** ⊛ اودا ښكاره ده. چې ابراهيم نخعي رحمه الله به د صحابي نه اوريدلي وی. او صحابي به دنبي ﷺ نه اوريدلي وی. ځكه چې دا مقدار دی. اوپه شريعت كې مقدار په سماع سره ثابتيږي. په قياس سره د مقاديرو اندازه نشي كولې.

**الدليل الثاني** ⊛ شيخ ابومنصور ماتريدي رحمه الله ددې لپاره استدلال كړې دی. چې د طهر كمه موده پنځلس ورځې دی. چې الله تعالى د صغيرې اوآئيسې په حق كې يوه مياشت د طهر او حيض دواړو قائم مقام ګرځولې دی. اوقاعده دا ده. چې كوم شی دوو څيزونوته منسوب وی. نو هغه څيزبه په دواړو برابر تقسيمولې شی. نومناسب خودا وه. چې نيمه مياشت دحيض وه اونيمه د طهر. ليكن په دې باندې نص موجود دی. چې حيض د نيمې مياشتې نه كم وی. نوحيض دپنځلسو ورځو نه كم شو. اوطهر په خپل تقسيمی موده باندې پاته شو.

**الدليل الثالث** ⊛ اوپه مبسوط كې دی. چې موده د طهرد اقامت د مودې نظير دی. نولكه څنګه چې په حالت داقامت كې كم شوې مونځونه وآروسته پوره كيږي. اودغه ډول روژه چې په حالت د سفر كې ئې نيول معاف وی. نوپه حالت د اقامت كې دهغې راګرځول فرض كيږي. اود احاديثونه دا خبره ثابته ده. چې كمه موده د اقامت پنځلس ورځې ده. نودغه ډول به كمه موده د طهر هم پنځلس ورځې وی. اوهم د دې وجې د سفر په كمه موده چې درې ورځې دی. كمه موده د حيض مقدركړې شوې ده. چې درې ورځې دی. ځكه چې دواړو كې هر يوپه لمونځ او روژې كې تاثير كوی. (ځكه چې د درې ورځو سفر په لمانځه كې قصر پيدا كوی. او په روژه كې افطار جائز كوی. اودغه ډول حيض لمونځ او روژه ساقط كوی. ازمترجم)

| |
|---|
| **وَلَا غَايَةَ لِأَكْثَرِهِ** او د زيات طهر څه اندازه نشته **لِأَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلَى سَنَةٍ وَسَنَتَيْنِ** ځكه چې طهر د يو كال اود دوو كالو پورې اوږد كيداې شی **فَلَا يَتَقَدَّرُ بِتَقْدِيرٍ** نونه بدليږي په بدليدو سره |

**حل اللغة:** ① **يمتد، امتدا امتداداً:** اوږديدل

**تشريح:- اكثر مدة الطهر** ⊛ اود اكثر طهرڅه اندازه مقرر نه ده. نوترڅو پورې چې دا طهر ګوری. نو مونځونه او روژې دې نيسی. اګرچې دا طهر ددې واړه ژوند راګير كړی. ځكه چې ځينې وخت طهر يويو كال دوې (دوه) كاله جاری وی. بلكه ددې نه هم زيات وی. ددې وجې د طهر د زياتې مودې څه حد نشي مقرر كولې.

| |
|---|
| **إِلَّا إِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ** خوچې كله جاری پاتې شی ددې وينه **وَيُعْرَفُ ذَلِكَ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ** داخبره دكتاب الحيض نه معلوميږي |

**حل اللغة:** ① **استمر استمراراً:** تيريدل په يوحالت باندې پاتې كيدل

**تشريح:- ايام طهر المبتدء ة المستحاضة** ⊛ البته كه د ښځې وينه هميشه لپاره جاری شی. نوپه دې صورت كې دعامو عالمانو رحمهم الله په نيز خامخا څه مقدار مقرر كول ضروری دی. نوكه يوه ښځه په اول ځل حائضه شی. او ددې وينه بنده نشوه. نوپه هره مياشت كې به لس ورځې د حيض وی. اوپاته ورځې به طهر شمارلې شی. نوكه مياشت د ديرشو ورځو وی. نوطهر به شل ورځې وی. اوكه مياشت د يوكم ديرش ورځو وی. نو طهربه نورلس



ورځې وی.

## استحاضه څه نه منع كوی

| |
|---|
| **وَدَمُ الْاِسْتِحَاضَةِ** او داستحاضه وينه **كَالرُّعَافِ** د پوزې دوينې په څير **الدَّائِمِ لَا يَمْنَعُ الصَّوْمَ وَلَا الصَّلَاةَ وَلَا الْوَطْءَ** نه روژه منع كوی اونه لمونځ اونه وطی |

**حل اللغة:** ① **رعاف:** نكسير ② **لايمنع، منع منعاً(ف):** منع كيدل

**تشريح:- وجه المشابهة مع الرعاف** ⊛ داستحاضه وينه د پوزې د وينې په څير ده. يعنی څنګه چې د پوزې وينه د رګ نه راځی. دغه ډول د استحاضه وينه هم د رګ نه راځی. نولكه څنګه چې د پوزې وينه روژه لمونځ او وطی نه منع كوی. دغه ډول د استحاضه وينه هم دا شيان (څيزونه) نه منع كوی.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی ته اودس كوه **تَوَضَّئِي وَصَلِّي** اولمونځ كوه **وَإِنْ قَطَرَ الدَّمُ عَلَى الْحَصِيرِ**(1) اګرچې وينه په پوزی پريوځی |

**حل اللغة:** ① **حصير:** پوزكې

**تشريح:- دليله** ⊛ دليل هغه حديث دی. كوم چې ابن ماجه دام المومنين رضي الله عنها نه نقل كړې دی. پوره حديث دا دی. «عن عائشة قالت جاءت فاطمة بن أبي حبيش إلى النبي ﷺ فقالت إني إمرأة أستحيض فلا أطهر أبداً أفأدعو الصلاة فقال ﷺ لا إجتنبي الصلاة أيام محيضك ثم اغتسلي وتوضي لكل صلاة ثم صلي وإن قطر الدم على الحصير» ام المومنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. چې فاطمه بنت ابی حبيش نبی ﷺ ته راغله. او عرض ئې اوكړلو. چې زه استحاضه ښځه يم. هميشه لپاره رانه وينه روانه وی. آيا زه لمونځ پريږدم؟ نبی ﷺ ورته اوفرمائيل: نه بلكه د حيض په ورځو كې لمونځ پريږده. اوبيا غسله كوه. اودهر لمانځه لپاره اودس كوه. اولمونځ كوه. اګرچې په پوزی باندې وينه څاځی.

| |
|---|
| **وَإِذَا عُرِفَ حُكْمُ الصَّلَاةِ** اوكله چې د لمونځ حكم معلوم شو **ثَبَتَ حُكْمُ الصَّوْمِ وَالْوَطْءِ بِنَتِيجَةِ الْإِجْمَاعِ** نود روژې او د وطی حكم په نتيجه د اجماع ثابت شو. |

**تشريح:- جواز الصوم والوطئ عندالاستحاضة** ⊛ صاحب هدايه رحمه الله فرمائي. چې هركله د لمونځ جواز د حديث نه ثابت شو. نو د روژې اووطی جوازپه نتيجه د اجماع سره ثابت دی. يعنی وينه راتګ د لمونځ سره منافی ده. خوچې كله دا ثابته شوه. چې استحاضه د لمونځ مانع نه ده. نود روژې او وطی نه خو به په طريقه اولی سره مانع نه وی.

ځكه چې د لمانځه لپاره د حدث او جنابت دواړو نه طهارت شرط دی. اود روژې او وطی لپاره دحدث او جنابت نه طهارت شرط نه دی. ځكه چې حالت د بې اودسئ اوجنابت كې روژه نيولې شی. اودغه ډول په حالت د حدث او جنابت كې وطی كولاې شی. نوچې لمونځ په كې جائز شو. چې د حدث او جنابت نه طهارت ورله شرط دی. نوروژه اووطی خو به په طريقه اولی سره جائز وی.

## په عادت د زياتې وينې حكم

| |
|---|
| **وَلَوْ زَادَ الدَّمُ عَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** اوكه وينه لسو ورځوته اورسيدله **وَلَهَا عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ دُونَهَا** حالانكه د ښځې معلوم عادت دلسونه كم وو **رُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا** نوهغه به دخپل عادت ورځو ته واروسته كولاې شی **وَالَّذِي زَادَ** وچې كومې ورځې د هغې دعادت نه زياتې وی **اِسْتِحَاضَةٌ** هغه به استحاضه وی |

(1) من حديث عائشة رضي الله عنها قالت جاءت فاطمة بنت ابی حبيش الى النبی ﷺ الحديث اخرجه ابن ماجة فی الطهارة باب ۱۱۵ والنسائی فی الطهارة باب ۱۲۰ والدارمی فی الوضوء باب ۸۶ واحمد فی المسند (۴۲/۶)-

**حل اللغة**① **اقل**: کم

**تشريح:- اقل مدة الطهر**◉ فرمائي چې کمه موده د طهر پنځلس ورځې دي. اودا قول د ابراهيم نخعي تابعي رحمه الله نه هم منقول دې.

| |
|---|
| **هَكَذَا نُقِلَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ** اودا د ابراهيم نخعي رحمه الله نه منقول دی **وَأَنَّهُ لَا يُعْرَفُ إِلَّا تَوْقِيفًا** اودا خبره د توقيف نه سوا نشي معلوميدې |

**حل اللغة**① **نقل نقلاً (ن)**: نقل کول

**تشريح:- الدليل الاول**◉ اودا ښکاره ده. چې ابراهيم نخعي رحمه الله به د صحابي نه اوريدلي وي. او صحابي به د نبي ﷺ نه اوريدلي وي. ځکه چې دا مقدار دې. اوپه شريعت کې مقدار په سماع سره ثابتيږي. په قياس سره د مقاديرو اندازه نشي کولې.

**الدليل الثاني**◉ شيخ ابومنصور ماتريدي رحمه الله ددې لپاره استدلال کړې دې. چې د طهر کمه موده پنځلس ورځې دي. چې الله تعالى د صغيرې اوآئيسې په حق کې يوه مياشت د طهر او حيض دواړو قائم مقام ګرځولې دی. اوقاعده دا ده. چې کوم شی دوو څيزونوته منسوب وی. نو هغه څيزبه په دواړو برابر برابر تقسيمولې شي. نومناسب خودا وه. چې نيمه مياشت دحيض وه اونيمه د طهر. ليکن په دې باندې نص موجود دې. چې حيض د نيمې مياشتې نه کم وی. نوحيض دپنځلسو ورځو نه کم شو. اوطهر په خپل تقسيمي موده باندې پاته شو.

**الدليل الثالث**◉ اوپه مبسوط کې دی. چې موده د طهرد اقامت د مودې نظير دې. نولکه څنګه چې په حالت داقامت کې کم شوې مونځونه واروسته پوره کيږي. اودغه ډول روژه چې په حالت د سفر کې ئې نيول معاف وی. نوپه حالت د اقامت کې دهغې راګرځول فرض کيږي. اود احاديثونه دا خبره ثابته ده. چې کمه موده د اقامت پنځلس ورځې ده. نودغه ډول به کمه موده د طهر هم پنځلس ورځې وی. اوهم د دې وجې د سفر په کمه موده چې درې ورځې دی. کمه موده د حيض مقدر کړې شوې ده. چې درې ورځې دی. ځکه چې دواړو کې هر يوپه لمونځ او روژې کې تاثير کوی. (ځکه چې د درې ورځو سفر په لمانځه کې قصر پيدا کوی. او په روژه کې افطار جائز کوی. اودغه ډول حيض لمونځ او روژه ساقط کوی. ازمترجم)

| |
|---|
| **وَلَا غَايَةَ لِأَكْثَرِهِ** او د زيات طهر څه اندازه نشته **لِأَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلَى سَنَةٍ وَسَنَتَيْنِ** ځکه چې طهر د يو کال اود دوو کالو پورې اوږد کيداې شي **فَلَا يَتَقَدَّرُ بِتَقْدِيرٍ** نونه بدليږی په بدليدو سره |

**حل اللغة**① **يمتد، امتدا امتداداً**: اوږديدل

**تشريح:- اكثر مدة الطهر**◉ اود اکثر طهرڅه اندازه مقرر نه ده. نوترڅو پورې چې دا طهر ګوری. نو مونځونه او روژې دې نيسي. اګرچې دا طهر ددې واړه ژوند راګير کړی. ځکه چې څينې وخت طهر يويو کال دوې (دوه) کاله جاري وی. بلکه ددې نه هم زيات وی. ددې وجې د طهر د زياتې مودې څه حد نشي مقرر کولې.

| |
|---|
| **إِلَّا إِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ** خوچې کله جاري پاتې شی ددې وينه **وَيُعْرَفُ ذَٰلِكَ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ** داخبره دکتاب الحيض نه معلوميږی |

**حل اللغة**① **استمر استمراراً**: تيريدل په يوحالت باندې پاتې کيدل

**تشريح:- ايام طهر المبتدءة المستحاضة**◉ البته که د ښځې وينه هميشه لپاره جاري شي. نوپه دې صورت کې دعامو عالمانو رحمهم الله په نيز خامخا څه مقدار مقرر کول ضروري دی. نوکه يوه ښځه په اول ځل حائضه شي. او ددې وينه بنده نشوه. نوپه هره مياشت کې به لس ورځې د حيض وی. اوپاته ورځې به طهر شمارلې شی. نوکه مياشت د ديرشو ورځو وی. نوطهر به شل ورځې وی. اوکه مياشت د يوکم ديرش ورځو وی. نو طهربه نورلس



ورځې وی.

## استحاضه څه نه منع کوی

| |
|---|
| **وَدَمُ الْاِسْتِحَاضَةِ** او داستحاضه وينه **كَالرُّعَافِ** د پوزې دوينې په څير **الدَّائِمِ لَا يَمْنَعُ الصَّوْمَ وَلَا الصَّلَاةَ وَلَا الْوَطْءَ** نه روژه منع کوی اونه لمونځ اونه وطی |

**حل اللغة**① **رعاف**: نکسير ② **لايمنع، منع منعاً (ف)**: منع کيدل

**تشريح:- وجه المشابهة مع الرعاف**◉ داستحاضه وينه د پوزې د وينې په څير ده. يعنى څنګه چې د پوزې وينه د رګ نه راځي. دغه ډول د استحاضه وينه هم د رګ نه راځي. نولکه څنګه چې د پوزې وينه روژه لمونځ او وطی نه منع کوی. دغه ډول د استحاضه وينه هم دا شيان (څيزونه) نه منع کوی.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلی دی ته اودس کوه **تَوَضَّئِي وَصَلِّي** اولمونځ کوه **وَإِنْ قَطَرَ الدَّمُ عَلَى الْحَصِيرِ**[1] اګرچې وينه په پوزی پريوځی |

**حل اللغة**① **حصير**: پوزکې

**تشريح:- دليله**◉ دليل هغه حديث دې. کوم چې ابن ماجه دام المومنين رضی الله عنها نه نقل کړې دې. پوره حديث دا دې. «عن عائشة قالت جاءت فاطمة بن أبي حبيش إلى النبي ﷺ فقالت إني إمرأة أستحيض فلا أطهر أبداً أفأدعو الصلاة فقال ﷺ لا إجتني الصلاة أيام محيضك ثم اغتسلي وتوضي لكل صلاة ثم صلي وإن قطر الدم على الحصير» ام المومنين حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي. چې فاطمه بنت ابي حبيش نبي ﷺ ته راغلـه. او عرض ئې اوکړلو. چې زه استحاضه ښځه يم. هميشه لپاره رانه وينه روانه وی. آيا زه لمونځ پريږدم؟ نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: نه بلکه د حيض په ورځو کې لمونځ پريږده. اوبيا غسله کوه. اودهر لمانځه لپاره اودس کوه. اولمونځ کوه. اګرچې په پوزی باندې وينه څاځي.

| |
|---|
| **وَإِذَا عُرِفَ حُكْمُ الصَّلَاةِ** اوکله چې د لمونځ حکم معلوم شو **ثَبَتَ حُكْمُ الصَّوْمِ وَالْوَطْءِ بِنَتِيجَةِ الْإِجْمَاعِ** نود روژې او د وطی حکم په نتيجه د اجماع ثابت شو. |

**تشريح:- جواز الصوم والوطئ عندالاستحاضة**◉ صاحب هدايه رحمه الله فرمائي. چې هرکله د لمونځ جواز د حديث نه ثابت شو. نو د روژې اووطی جوازپه نتيجه د اجماع سره ثابت دې. يعنى وينه راتګ د لمونځ سره منافي ده. خوچې کله دا ثابته شوه. چې استحاضه د لمونځ مانع نه ده. نود روژې او وطی نه خو به په طريقه اولی سره مانع نه وی.

ځکه چې د لمانځه لپاره د حدث او جنابت دواړو نه طهارت شرط دې. اود روژې او وطی لپاره دحدث او جنابت نه طهارت شرط نه دې. ځکه چې حالت د بې اودسۍ اوجنابت کې روژه نيولې شي. اودغه ډول په حالت د حدث او جنابت کې وطی کولاې شی. نوچې لمونځ په کې جائز شو. چې د حدث او جنابت نه طهارت ورله شرط دې. نوروژه اووطی خو به په طريقه اولی سره جائز وی.

## په عادت د زياتې وينې حکم

| |
|---|
| **وَلَوْ زَادَ الدَّمُ عَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** اوکه وينه لسو ورځوته اورسيدله **وَلَهَا عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ دُونَهَا** حالانکه د ښځې معلوم عادت دلسونه کم وو **رُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا** نوهغه به دخپل عادت ورځو ته واروسته کولاې شی **وَالَّذِي زَادَ** اوچې کومې ورځې د هغې دعادت نه زياتې وی **اِسْتِحَاضَةٌ** هغه به استحاضه وی |

[1] من حديث عائشة رضي الله عنها قالت جاءت فاطمة بنت ابی حبيش الى النبی ﷺ الحديث اخرجه ابن ماجة فی الطهارة باب ١١٥ والنسائی فی الطهارة باب ١٢٠ والدارمی فی الوضوء باب ٨٦ واحمد فی المسند (٦/٤٢)-

**حل اللغة**: ① **زاد**: زيادة(ض): زياتيدل ② **معروفة**: پيژندونكي

**تشريح:- الزيادة على العادة التى تكون اقل من عشرة ايام**◉ داحنافوعالمانو رحمهم الله په نيز چې كوم حكم متفق عليه وو .صاحب د هدايه رحمه الله هغه حكم بيان كړلو.اود مختلف فيه ذكرئي اونكړلو . نو اول مختلف فيه اوګورئ.مسئله دا ده.چې د وينې راتلوعادت ئې معلوم وو.خود لسو ورځو نه كم وو.مثلا دحيض عادت ئې هميشه لپاره پنځه ورځې وو.اويوځل اته ورځې وينه راغلله.نواوس په دې كې اختلاف دې.چې دا به پنځه ورځې حيض شمارلې شي اوكه اته ورځې.

**لاتدع الصلاة عند مشائخ البلخ** ◉ دبلخ مشائخ فرمائي.چې د عادت د ورځو تيريدونه روسته به دې ښځې ته حكم ور كولاې شي.چې غسل اوكړي.او مونځونه پيل كړي.ځكه چې د پنځو ورځو نه د زياتي ورځو حال د حيض او استحاضه په مينځ كې متردد دې. ځكه چې كله ددې وينه د لسو ورځو نه كمه جاري وه.مثلا اته ورځې.نواوس د عادت نه زياتي ورځې به حيض ګڼرلې شي.اودا به وئيلې شي.چې دحيض په اړه كې د دې ښځې عادت بدل شو.چې اول پنځه ورځې وې.اواوس اته ورځې شوې.اوكه ددې وينه دلسو ورځو نه زياته شوه.نود عادت د ورځو نه زياتي ورځې به استحاضه وي.(نودا يو شكې او متردد صورت شو.چې د پنځو ورځو نه زياتي ورځې د حيض دي اوكه د استحاضه .دحيض احتمال خو په كې په دې شته.چې د پنځو نه كمې يعنى اته ورځې دي.اود حيض اكثره موده لس ورځې دي.اود استحاضه احتمال په كې په دې شته.چې كيداې شي.دا وينه د لسوورځو نه تجاوز اوكړي.نوبيا به معلومه شي.چې واقعي د پنځو ورځو نه زياتي ورځې استحاضه وه.نوپه حيض او استحاضه كې تردد راغلو.ازمترجم) اود تردد د وجې به لمونځ نشي پرېښولې (پريخودې).

**تدع الصلاة عند مشائخ بخارا** رحمهم الله ◉ اود بخارا مشائخ فرمائي.چې دعادت د ورځو نه د وينې د زيادت په صورت كې به دې ته د لمونځ حكم نشي وركولې. ځكه چې مور ته خو دا خبره په يقين سره معلومه ده.چې دا ښځه حائضه ده.(ځكه چې دحيض اكثره موده لس ورځې دي.اولس ورځې لا پوره شوې نه دي.ازمترجم) او د دې د مستحاضه كيدو علم به راته هله كيږي.چې دا وينه د لسو نه زياته شي.نوچونكه د لسو ورځو د پوره كيدو نه وړاندې ددې په مستحاضه كيدو باندې څه دليل نشته.نوځكه به دې ته د لمونځ د اود روژې حكم نشي وركولې.او ټيك ده كه وينه د لسو ورځو نه زياته شوه.نو په دې صورت كې معلومه شوه.چې دا ښځه مستحاضه شوه.نو اوس به ورته د پنځو ورځو د مونځونواو روژو د قضاء حكم كولاې شي.

**الزيادة على العادة وعلى عشرة ايام**◉ اومتفق عليه مسئله كومه چې مصنف رحمه الله ذكر كړې ده.هغه دا چې د يوې ښځې عادت د لسو ورځو نه كم وي.ليكن دا ځل ئې وينه د لسو ورځو نه زياته شوه.نوپه دې صورت كې حكم دا دې.چې كومه وينه د عادت په ورځو كې راغلې وي.نوهغه به حيض وي.اوچې كومه وينه په زياتي ورځو كې راغلې وي. هغه به استحاضه وي.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي **اَلْمُسْتَحَاضَةُ تَدَعُ الصَّلَاةَ** مستحاضه به لمونځ پرېږدي **أَيَّامَ أَقْرَائِهَا**[1] په ورځو د عادت كې |

**حل اللغة**: ① **اقراء**: حيض

**تشريح:- الدليل الاول النقلى**◉ دليل د نبى ﷺ دا ارشاد دې.چې «تدع المستحاضة الصلاة أيام اقرائها» په حديث

[1]) من حديث جدعدى بن ثابت رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۱۱۲ رقم ۲۹۷ والترمذى فى الطهارة باب ۹۴ وابن ماجه فى الطهارة باب ۱۱۵ والبيهقى فى السنن الكبرى (۵۱۱\۱) رقم ۱۶۳۳)_

من حديث جدعدى بن ثابت رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ۱۱۲ رقم ۲۹۷ والترمذى فى الطهارة باب ۹۴ وابن ماجه فى ...رة باب ۱۱۵ والبيهقى فى السنن الكبرى (۵۱۱\۱) رقم ۱۶۳۳)_



كې د «ايام اقرائها» نه مراد دعادت ورځې دي.نود حديث مطلب دا شو.چې مستحاضه ښځه به د خپل عادت په ورځو كې لمونځ پرېږدي .او د عادت د ورځو نه په زياتي ورځو كې به لمونځ نه پرېږدي.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ الزَّائِدَ عَلَى الْعَادَةِ** اوځكه چې كومې په عادت باندې زياتي وي **يُجَانِسُ مَا** هغه د هغه هم جنس دي **زَادَ عَلَى الْعَشَرَةِ** كومې چې دلسونه زياتي وي. **فَيُلْحَقُ بِهِ** نوهغې سره به ملحق كيږي |

**تشريح:- الدليل الثانى العقلى**◉ دوهم عقلي دليل دا دې.چې د عادت د ورځونه زياتي وينه د لسوورځو نه د زياتي وينې په څير ده.اوكومه وينه چې دلسو ورځونه زياته وي.هغه په اتفاق سره استحاضه ده.نودغه شان چې كومه وينه په عادت باندې زياتي وي.هغه به هم استحاضه وي.

| |
|---|
| **وَإِنِ ابْتَدَأَتْ مَعَ الْبُلُوغِ مُسْتَحَاضَةً** او كه په بلوغت سره مستحاضه شوه **فَحَيْضُهَا عَشَرَةُ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ** نودهغې حيض به په هره مياشت كې لس ورځې وي **وَالْبَاقِي اسْتِحَاضَةٌ** اوپاته به استحاضه وي **لِأَنَّا عَرَفْنَاهُ حَيْضًا** ځكه چې موږ دا (لس ورځې ) حيض پيژندلے دې **فَلَا يُخْرَجُ عَنْهُ بِالشَّكِّ وَاللهُ أَعْلَمُ** نوپه شك سره به د دے (لسو) نه نشي ويستلې.والله اعلم |

**حل اللغة**: ① **بلوغ**: بالغ كيدل خوانيدل ② **عرفناه، عرف معرفة** (ض): پيژندل

**تشريح:- طهر من ابتدات مستحاضة**◉ اوكه داسې ښځه وي.چې وړاندې پرے حيض نه وي راغلې.بلكه په اول ځل حائضه شي.اوهم ددے حيض نه مستحاضه شي.نوپه هره مياشت كې به لس ورځې د حيض وي.او پاته به استحاضه وي.ځكه كه په لسمه ورځ د دے وينه ودريدله.نودا لس ورځې به ټولے دحيض وې.خو هركله چې وينه د لسونه زياته شوه.نوپه دے كې شك راغلو.چې د درے ورځو نه زياتي حيض دے كه استحاضه؟ نو يقيني شى به ددې شكى شى د وجې نشي زائله كيدې.يعنى دا يقيني خبره ده.چې د حيض لس ورځې اكثره موده د حيض ده.او دا احتمالي خبره ده.چې كيداې شي.ددې حيض د لسو ورځو نه كم وي.نويقني چې لس ورځې دى د شكى چې د لسو نه كمې دى.د وجې نشي زائله كيدې.

**د هرمانځه د وخت لپاره د مستحاضه اودس**

| |
|---|
| **فصل: وَالْمُسْتَحَاضَةُ** مستحاضه **وَمَنْ بِهِ سَلَسُ الْبَوْلِ** اوكوم سړي باندې چې د متيازو ناروغى (ناروغى (بيمارى)) وى **وَالرُّعَافُ الدَّائِمُ** اودچا چې هميشه لپاره د پوزې نه وينه روانه وى **وَالْجُرْحُ الَّذِي لَا يَرْقَأُ** او هغه زخم چې جوړيږي نه **يَتَوَضَّئُونَ لِوَقْتِ كُلِّ صَلَاةٍ** نودا خلګ به اودس كوى دهرلمانځه د وخت لپاره **فَيُصَلُّونَ بِذَلِكَ الْوُضُوءِ فِي الْوَقْتِ مَا شَاءُوا** اوپه دغه اودس چې په وخت كې دننه ئې څومره خوښ وى كوى **مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ** فرض او نفل |

**حل اللغة**: ① **سلسل البول**: دَ متيازو نه بنديدل ② **رعاف**: نكسير دَ پوزې نه وينه راتګ ③ **لايرقا، رقاً**: اوچيدل

**تشريح:- وجه تاخير الاستحاضة عن الحيض وتقديمها عليالنفاس**◉ حيض چونكه د نفاس او استحاضه په نسبت كثير الوقوع وو.ځكه ئې هغه وړاندې بيان كړلو.اودې پسې ئې د استحاضه حكم بيان كړلو.ځكه چې د نفاس نه روسته د زياتو اسبابودوجې استحاضه كثيرالوقوع دې.

**اسباب الاستحاضة**◉ ① ځكه چې ښځه كله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چې د نفاس د عدت نه زياته وينه اووينى. ② اوكله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چې دحيض وينه د لسوورځونه زياته اووينى. ③ اوكله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چې دخپل عادت نه وينه زياتي شي. او دلسوورځو نه تيره شي. ④ اوكله ددې وجې مستحاضه شي.چې د طهرد مودې پوره كيدونه وړاندې وينه راشي. ⑤ يادې وجې مستحاضه شي.چې د درې ورځو نه كمه وينه اووينى. ⑥ يا دعاموعالمانوپه نيز د نهوكالونه وړاندې وينه راشي.نودا هم مستحاضه ګرځي.ددې په خلاف د نفاس صرف يو سبب دې.چې ولادت د ماشوم دې.

**المذهبان في اداء الصلاة بوضوء المعذور**۞مسئله دا ده.① چې څوك مسحاضه وي.يا د چا متيازې نه اودريږي.يا دچا د پوزې نه وينه روانه وي.يادچا داسې زخم وي .چې د هغې وينه نه اودريږي.نومسئله دا ده.چې د داسې معذورينو لپاره زموږ په نيز په وخت کې دننه دننه په يو اودس باندې چې څومره نې خوښه وي.مونځونه کولی شي.که فرض وي اوکه نفل که واجب وي اوکه نذر.

**وَقَالَ الشَّافِعِي** رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله فرمايي **تَتَوَضَّأُ الْمُسْتَحَاضَةُ لِكُلِّ مَكْتُوبَةٍ** چې مستحاضه به دهرلمانځه لپاره اودس کوی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی **الْمُسْتَحَاضَةُ تَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ**(۱)چې مستحاضه به د هرلمانځه لپاره اودس کوی

**تشريح:-** دامام شافعي رحمه الله په نيز معذور په يو اودس باندې صرف يو فرض لمونځ کولای شي.ګنړ مونځونه نشي کولی.

**الدليل الاول النقلي للشافعي** رحمه الله ۞دامام شافعي رحمه الله دليل دا حديث دی.چې ﴿المستحاضة توضا لكل صلاة﴾چې مستحاضه به دهرلمانځه لپاره اودس کوی.

**السوال على الشافعي** رحمه الله ۞په امام شافعي رحمه الله باندې اعتراض کيدای شي. چې په حديث کې ﴿صلاة﴾عام دی. فرض اونفل دواړو ته ورغلی دی.نود فرض سره مقيد کول څنګه ټيك کيدای شي.

**الجواب**۞خواب په ﴿لكل صلاة﴾کې لفظ د ﴿صلاة﴾مطلق دی.اوقاعده دا ده.چې ﴿المطلق ينصرف إلى الفرد الكامل﴾اود لمونځ فردکامل فرض دی.نه چې بل مونځ.نوځکه به د ﴿صلاة﴾نه هم فرض مراد اخستې شي.مطلق لمونځ ترې نشي اخستې.

**وَلِأَنَّ اعْتِبَارَ طَهَارَتِهَا ضَرُورَةُ أَدَاءِ الْمَكْتُوبَةِ** اوبل د دې وجې چې دمستحاضې د طهارت اعتبار د فرض د ادا کولود اړتيا دوجې دی **فَلَا تَبْقَى بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنْهَا** نود فرض ادا کولونه روسته به طهارت پاته نه پاتې کيږی

**حل اللغة** ① **فراغ:** اوزګاريدل

**تشريح:- الدليل الثاني العقلي للشافعي** رحمه الله ۞ دوهم دليل دا دی.چې د معذور د اودس اعتبار د فرض د ادا کاوه د اړتيا دوجې دی.او چې فرض ادا شو.نوطهارت به پاته نه پاتې کيږی.

**وَلَنَا** اوزمونږ دليل دا دی **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. **الْمُسْتَحَاضَةُ تَتَوَضَّأُ لِوَقْتِ كُلِّ صَلَاةٍ**(۲)مستحاضه به د هرلمانځه د وخت لپاره اودس کوی

**تشريح:- الدليل الاول النقلي للاحناف** رحمهم الله ۞اوزموږ دليل دنبی ﷺ ارشاد دی.چې ﴿المستحاضة توضا لوقت كل

(۱): من حديث جد عدى بن ثابت رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه فى الطهارة باب ۱۵۵ رقم ۶۲۵).-

(۲) قال الزيلعى رحمه الله غريب جدا ثم نقل قول الطحاوى (رح فقال قال الطحاوى رحمه الله فى شرح الاثار ومذهبنا قوى من جهة النظر و ذلک انا عهدنا الاحداث اما خروج خارج او خروج وقت فخروج الخارج معروف و خروج الوقت حدث فى المسح على الخفين فرجعنا فى هذا الحديث المختلف فيه فجعلناه كالحدث الذى اجمع عليه ووجد له اصل ولم نجعله كما لم يجمع عليه و لم نجد له اصلا لانا لم نعهد الفراغ من الصلوة حدثا قط. (نصب: ۱۱\۲۶۸).

(۲) قال الزيلعى رحمه الله غريب جدا ثم نقل قول الطحاوى (رح فقال قال الطحاوى رحمه الله فى شرح الاثار ومذهبنا قوى من جهة النظر و ذلک انا عهدنا الاحداث اما خروج خارج او خروج وقت فخروج الخارج معروف و خروج الوقت حدث فى المسح على الخفين فرجعنا فى هذا الحديث المختلف فيه فجعلناه كالحدث الذى اجمع عليه ووجد له اصل ولم نجعله كما لم يجمع عليه و لم نجد له اصلا لانا لم نعهد الفراغ من الصلوة حدثا قط. (نصب: ۱۱\۲۶۸).



صلاة﴾

**وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْأَوَّلِ** اوپه اول روايت کې هم دا مطلب مراد دی **لِأَنَّ اللَّامَ تُسْتَعَارُ لِلْوَقْتِ** ځکه چې لام د وخت لپاره مستعار اخستې شی

**تشريح:- الجواب من دليل الشافعي** رحمه الله ۞ اوامام شافعي رحمه الله چې کوم دليل ذکرکړی دی د هغې نه ځواب دا دی.چې په ﴿لكل صلاة﴾کې لام لپاره دوخت دی.

**يُقَالُ** ونيلی شی **آتِيكَ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ** ﴿آتيك لصلاة الظهر يعنى لوقتها﴾ **أَيْ وَقْتِهَا** يعنی زه به تاته د ماپښين دلمانځه په وخت کې راځم

**تشريح:- نظائركون اللام للوقت**۞ ①لکه څنګه چې دالله تعالى په دې قول ( أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ ) کې چې لام لپاره د وخت دی.② اولکه څنګه چې د نبی ﷺ په قول کې چې ﴿إن للصلاة أولاً وآخراً﴾کې دی.ځکه چې په دې کې هم لام لپاره د وخت دی.يعنی دهر لمانځه د وخت لپاره اول اوآخر وی.③ اولکه څنګه چې ونيلی شی.﴿ آتيك لصلاة الظهر﴾زه به تاته د ماپښين دلمانځه په وخت کې درځم.حاصل د ځواب دا دی.چې امام شافعي رحمه الله چې کوم دليل پيش کړی دی. هغه دقبيلې د نص نه دی.اوموږ چې کوم دليل پيش کوو.هغه مفسر دی.اود نص او مفسر د تعارض په صورت کې به ترجيح مفسر ته وی.

**وَلِأَنَّ الْوَقْتَ أُقِيمَ مَقَامَ الْأَدَاءِ تَيْسِيرًا** اوځکه چې وخت د آسانۍ لپاره د ادا کولوقائم مقام دی **فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَيْهِ** نودحکم دارومدار به په وخت وی

**حل اللغة** ① **تيسير:** آسانی

**تشريح:- الدليل الثالث العقلي للاحناف**۞اوزموږ د اړخه عقلی دليل دا دی.چې دآسانتيا لپاره وخت د لمونځ قائم مقام ګرځولی شوی دی.نود حکم مدار به په وخت وی.په ادا کولوبه نه وی.ځکه چې کله يوځيز د بل شی قائم مقام وی. نو مقصود به هم هغه وی.

يعنی چې د معذور د اودس اعتبار د ادا کولود لمانځه پورې اوکړې شي.چې بس صرف لمونځ پرې ادا کولای شی.لکه څنګه چې د امام شافعي رحمه الله مذهب دی.او که په وخت پورې اوکړې شي.چې په وخت کې پرې څومره مونځونه کوی.نوکولی شی.لکه څنګه چې داحنافو مسلك دی.دوی فرمائی.چې قابل د ادا کاوه ډير شيان (ځيزونه) دی.فرض، نفل ،واجب اونذر مونځونه.نوکه موږ دا اووايو.چې معذور به په دې اودس باندې فرض کوی.نودا معلومه نه ده.چې څورکعته فرض کولای شی.دغه ډول که دا اووايو.چې واجب پرې هم کولای شی.نودا معلومه نه ده.چې کوم کوم واجبات پرې کولی شی.دغه ډول که اووايو.چې نفل پرې کولی شی.نودا معلومه نه ده.چې کوم کوم نوافل اوڅومره نوافل پرې کولی شی.نوددې ټولوقسمه مونځونو د ادا کاوه اوددې د شماراوتعداد نه د استغنی لپاره موږ وخت قائم مقام د ادا اوګرځولو.چې معذور په يووخت کې چې څومره نې خوښ وی.مونځونه دې کوی.که فرض وی که نفل او که واجب دغه ډول که دوې (دوه) رکعته وی اوکه څلور وی اوکه زيات وی.خوچې په وخت کې وی.اوپه دې کې اسانتيا ده.ځکه چې وخت يو دی.او انواع دمونځونو ګنړ دی.

**د معذورينو اودس په ناقض کې مذاهب**

**وَإِذَا خَرَجَ الْوَقْتُ** اوکله چې وخت اووتل **بَطَلَ وُضُوءُهُمْ** نود دې معذورينو اودس باطل شو **وَاسْتَأْنَفُوا الْوُضُوءَ لِصَلَاةٍ أُخْرَى** اودبل لمونځ لپاره به بل اودس کوی **وَهَذَا عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ** رحمهم الله (۱) اودا حکم زموږ د درې واړه امامانو په

(۱) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الدرالمختار(۱\۲۲٤) وردالمحتار(۱\۲۲٤)والهندية (۱\٤۱) نقلا عن القول الراجح (۱\٤۱)_

نيز دي

**حل اللغة:** ① **خرج خروج:** راوتل ② **بطل بطلانًا:** باطل كيدل ③ **استانفوا، استانف استينافًا:** دَ نوې سر نه پيل ④ **دخل دخولاً** (ن) داخل كيدل

**تشريح:- المذهبان في نقض وضوء المعذورين بخروج الوقت:** صورت دمسئلې دا دي. ① چې كله د فرض لمونځ وخت اووتلو. نو د دې معذورينواودس مات شو. كه څوك بل فرض لمونځ كول غواړي. نو دهغې لپاره به بل اودس كوي. دا حكم زمونږ د درې واړه امامانو رحمهم الله په نيز دي.

**وَقَالَ زُفَرُ** رحمه الله اوامام زفر رحمه الله فرمايي **اسْتَأْنَفُوا إِذَا دَخَلَ الْوَقْتُ** چې كله وخت داخل شي. نونوې اودس به كوي

**تشريح:-** دامام زفر رحمه الله په نيز چې كله د دوهم لمونځ وخت داخل شي. نونوې اودس به كوي. نود امام زفر په نيز د دوهم لمونځ وخت داخليدل د اودس لپاره ناقض دي. د اول لمونځ د وخت وتل ناقض نه دي.

**فَإِنْ تَوَضَّئُوا حِينَ تَطْلُعَ الشَّمْسُ** نوكه دې معذورينو د لمر راختلوپه وخت كې اودس اوكړلو **أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ** نودا اودس به ورته كافي وي **حَتَّى يَذْهَبَ وَقْتُ الظُّهْرِ** تردې چې د ماپښين دلمونځ وخت لاړ شي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله اودا حكم دامام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهما الله په نيز دي

**تشريح:- صورة المسئلة:** كه يومعذور د لمر راختلو په وخت كې اودس اوكړلو. ① نود طرفينو رحمهما الله په نزد په دغه اودس باندې لمونځ كولاې شي. تردې چې د ماپښين وخت خارج شي. ځكه چې د طرفينو رحمهما الله په نيز خروج دوخت ناقض دي. اوپه دې صورت كې د ماپښين دوخت دخول خوموجود شو. ليكن خروج د وخت نه دي موجود شوي. ځكه چې هغه خو د لمر راختونه روسته اودس كړي دي

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَزُفَرُ** رحمهما الله [1] اوامام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله فرمايي **أَجْزَأَهُمْ** چې دوی لپاره كافي دي **حَتَّى يَدْخُلَ وَقْتُ الظُّهْرِ** تردې چې د ماپښين وخت داخل شي

**تشريح:-** امام ابويوسف اوامام زفر رحمهما الله فرمائي. چې دا اودس به د ماپښين د وخت داخليدو پورې كافي وي. يعنې دا اودس د ماپښين د وخت داخليدو نه وړاندې وړاندې كافي كيږي. خوچې كله د ماپښين وخت داخل شو. نو نوې اودس كول ضروري دی.

**وَحَاصِلُهُ** اوحاصل دا **أَنَّ طَهَارَةَ الْمَعْذُورِ تَنْتَقِضُ أَيْ عِنْدَهُ بِالْحَدَثِ السَّابِقِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله چې د طرفينو په نيز دمعذور طهارت د حدث سابق په وجه د وخت په وتلو سره ماتيږي **وَبِدُخُولِهِ فَقَطْ عِنْدَ زُفَرَ** او دامام زفر رحمه الله په نيز په خروج د وخت سره **وَبِأَيِّهِمَا كَانَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز په دې دواړو كې چې كومه يوه خبره وي. (نواودس ماتيږي. ازمترجم)

**تشريح:- خلاصة المذاهب:** حاصل د دې صورت دا دي. ① چې د طرفينو رحمهما الله په نيز خروج د وخت ناقض دي. دخول ناقض نه دي. ② اودامام زفر رحمه الله په نيز دخول دوخت ناقض دي. خروج ناقض نه دي. ③ اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز خروج او دخول دواړه ناقض دی. په دواړو صورتونو كې دمعذور اودس ماتيږي.

**حقيقة نسبة النقض الى الوقت:** داخبره يادساتئ چې په حقيقت كې نه دخول د وخت ناقض دي. اونه خروج دوخت. بلكه په حقيقت كې حدث سابق ناقض دي. ليكن چونكه د حدث د ظهور نه وخت مانع وو. كله چې وخت ختم شو. نو حدث ښكاره شو. نوځكه د نقض نسبت مجازى طور دخول د وخت اوخروج د وخت ته شوې دي.

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۱/۲۲٤)وتبيين الحقائق (ص،٦٥) والهندية (۱/٤۱) نقلا عن القول الراجح (۱/٤٠)_



## فائده د اختلاف اودلائل

**وَفَائِدَةُ الْإِخْتِلَافِ لَا تَظْهَرُ** اوداختلاف فائده نه ښكاره كيږي **إِلَّا فِيمَنْ تَوَضَّأَ قَبْلَ الزَّوَالِ** مگر د داسې معذور په حق كې چې د زوال نه وړاندې اودس اوكړي **كَمَا ذَكَرْنَا** لكه څنگه چې مونږ ذكر كړلو

**تشريح:- الصورة الاولى لظهور ثمرة الخلاف:** صاحب دهدايه فرمائي. چې ددې اختلاف فائده په دوو صورتونو كې څرگنديږي. چې معذور د لمر راختلو نه روسته اودس اوكړي. او د ماپښين د لمونځ وخت داخل شو. اودفرض لمونځ وخت خارج شوې نه وي. ① نو د طرفينو رحمهما الله په نيز چونكه خروج د وخت ناقض دي. ځكه په دخول د ماپښين دوخت اودس نه ماتيږي. بلكه په دغه اودس د ماپښين لمونځ كولاې شي. ② اودامام زفراوامام ابويوسف رحمه الله په نيز چونكه دخول دوخت ناقض دي. نو د ماپښين د وخت په داخليدو نې اودس مات شو. نوې اودس به كوي.

**أَوْ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ** يا ( د هغه معذور په حق كې چې هغه ) د لمر راختلو نه وړاندې (اودس) كړې وي

**تشريح:- الصورة الثانية لظهور ثمرة الخلاف:** كه يومعذور د نمرراختلو نه وړاندې اودس اوكړلو. نودنمر راختلونه روسته چونكه وخت خارج شو. نو د طرفينو رحمهما الله په نيز اودس مات شو. اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز هم اودس ماتيږي. (ځكه چې دهغوی په نيز لكه څنگه چې دخول ناقض دي. دغه ډول خروج هم ناقض دي. ازمترجم) او د امام زفر رحمه الله په نيز اودس نه ماتيږي. ځكه چې دفرض لمونځ د وخت دخول نه دي راغلي.

**لِزُفَرَ** (رح دامام زفر رحمه الله دليل دا دي) **أَنَّ اعْتِبَارَ الطَّهَارَةِ مَعَ الْمُنَافِي لِلْحَاجَةِ إِلَى الْأَدَاءِ** چې د منافي د وجود سره د طهارت اعتبار د فرض ادا كولود حاجت د وجې دې **وَلَا حَاجَةَ قَبْلَ الْوَقْتِ** اود وخت نه وړاندې څه حاجت نشته **فَلَا تُعْتَبَرُ** نو (ځكه د وخت نه وړاندې ) طهارت معتبر نه دي

**تشريح:- دليل زفر** رحمه الله: دامام زفر رحمه الله دليل دا دي. چې داسې څيزموجود وي. چې هغه د اودس سره منافي وي. نو د طهارت اعتبار به صرف د فرض ادا كاوه دحاجت پورې وي. نوچې كله د فرض لمونځ وخت داخل شي. نوطهارت حاصلول به ضروري وي. نومعلومه شوه. چې د وخت په داخليدو سره به اودس ماتيږي.

**وَلِأَبِي يُوسُفَ** اودامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دي **أَنَّ الْحَاجَةَ مَقْصُورَةٌ عَلَى الْوَقْتِ** چې حاجت دطهارت په وخت پورې منحصر دي **فَلَا تُعْتَبَرُ قَبْلَهُ** نو د وخت نه وړاندې به معتبر نه وي **وَلَا بَعْدَهُ** اونه د وخت نه روستو

**تشريح:- دليل ابي يوسف** رحمه الله: دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دي. چې د طهارت حاجت منحصر دې په وخت پورې. ځكه چې د فرض لمونځ وخت د ادا قائم مقام دي. نوځكه به طهارت نه د وخت نه وړاندې معتبر وي. اونه به روستو. نومعلومه شوه. چې د معذور د اودس لپاره خروج د وخت هم ناقض دي او دخول هم ناقض دي.

**وَلَهُمَا** او دطرفينو رحمهما الله دليل دا دي **أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيمِ الطَّهَارَةِ عَلَى الْوَقْتِ لِيَتَمَكَّنَ مِنَ الْأَدَاءِ** چې د وخت د داخليدو نه وړاندې دطهارت مقدم كول ضروري دی چې په ادا كاوه قادر وي. **كَمَا دَخَلَ الْوَقْتُ** چې وخت څنگه داخل شي **وَخُرُوجُ الْوَقْتِ دَلِيلُ زَوَالِ الْحَاجَةِ** او دوخت وتل د حاجت د زوال دليل دي **فَظَهَرَ اعْتِبَارُ الْحَدَثِ عِنْدَهُ** نو په دغه وخت كې به دحدث دښكاره كيدو اعتبار وي

**حل اللغة:** ① **لابد:** ضروري دَ څه بغيرچې بله لار نه وي. ② **زوال:** ختميدل

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله: اود طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. چې دوخت نه وړاندې طهارت حاصلول ضروري دي. چې څنگه وخت داخل شي. نود لمونځ په ادا كاوه باندې قادر وي. حاصل دا دي. چې وخت د ادا قائم مقام دي. او د فرض په ادا كولو باندې د طهارت تقديم واجب دي. نود قياس تقاضا دا وه. چې د ادا په خليفه يعنې وخت باندې دې هم د طهارت وړاندې والې واجب وي. ليكن د خليفه مرتبه د اصل دمرتبې نه د كمولو لپاره په خليفه باندې د طهارت

تقديم جائز اوګرځولي شو.نوهر کله چي په وخت باندي د طهارت تقديم جائز شو. نو دخول د وخت ناقض جوړيدي.ځکه که دخول د وخت دطهارت لپاره ناقض اوګرځولي شي.نوتقديم د طهارت به ناممکن شي.اوخروج دوخت چونکه د حاجت د زوال دليل دي.نوپه هغه وخت کي به د حدث سابق ظهورمعتبروی.نوچي ځنګه وخت خارج شي.اودس به ماتيږي.

**دوخت نه مراد د فرضي مونځ وخت دي**

وَالْمُرَادُ بِالْوَقْتِ وَقْتُ الْمَفْرُوضَةِ اودوخت نه مراد د فرض لمونځ وخت دي حَتّٰى لَوْ تَوَضَّأَ الْمَعْذُوْرُ لِصَلَاةِ الْعِيْدِ تردي که معذور د اختر دلمانځه لپاره اودس اوکړلو لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الظُّهْرَ بِهِ عِنْدَهُمَا نود صاحبينو رحمهما الله په نيز ورته اختيار دي که په دي اودس د ماپښين لمونځ کوي وَهُوَ الصَّحِيْحُ اوهم دا قول صحيح دي لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَةِ صَلَاةِ الضُّحٰى ځکه چي داختر لمونځ د څاښت دلمانځه په څير دي

**تشريح:- الوقت المعتبرفي الخروج والدخول**⊛ ①صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چي دکوم وخت د دخول او خروج اعتبار کړي شوي دي.دهغي نه د فرضي لمونځ وخت دي.د نفل او واجب لمونځ وخت نه دي.تردي که معذور د اختر دلمانځه لپاره اودس اوکړلو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز په دي اودس باندي د ماپښين د لمونځ کولو اجازت شته.او هم دا صحيح قول دي.ځکه چي داختر لمونځ د څاښت د لمونځ په څير دي.يعني چي فرض نه دي.نو دا اود څاښت لمونځ دواړه په يومرتبه کي دی. اګر چي داختر لمونځ واجب دي.نود فرض لمونځ وخت د عدم خروج د وجي دده اودس نه ماتيږي.نوځکه ورته په دغه اودس باندي د ماپښين د لمونځ کولو اجازت شته.② اود ځيني فقهاؤ دا رائي ده.چي په دغه اودس باندي ده ته د ماپښين د لمونځ کولو اختيار نشته.ځکه چي د واجب لمونځ وخت اووتلو.ځکه چي د اختر لمونځ واجب دي.اوواجب په منزله د فرض وی.

وَلَوْ تَوَضَّأَ مَرَّةً لِلظُّهْرِ فِيْ وَقْتِهِ اوکه معذور د ماپښين په وخت کي يو ځل د ماپښين دلمانځه لپاره اودس اوکړلو وَأُخْرٰى فِيْهِ لِلْعَصْرِ اوبيا ئي د ماپښين په وخت کي د مازيګر د لمانځه لپاره اودس اوړلو فَعِنْدَهُمَا نود طرفينو رحمهما الله په نيز لَيْسَ لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْعَصْرَ بِهِ ده ته په دغه اودس باندي د مازيګر د لمونځ ادا کولو اختيار نشته لِانْتِقَاضِهِ بِخُرُوْجِ وَقْتِ الْمَفْرُوْضَةِ ځکه چي د فرض لمونځ وخت تيريدو سره اودس مات شو .

**تشريح:- حکم وضوء المعذورللعصر في الظهر**⊛ اوکه معذور يو ځل د ماپښين په وخت کي د ماپښين د لمانځه لپاره اودس اوکړلو.اوبيا ئي دوباره د ماپښين په وخت کي د مازيګر دلمانځه لپاره اودس اوکړلو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز په دي باندي ده ته اختيار نشته.چي په دغه اودس باندي دمازيګر لمونځ اوکړي.ځکه چي د ماپښين د وخت په خروج سره دده اودس مات شو.دا حکم د ټولو امامانو په نيز دي.ځکه چي په دي صورت کي د ماپښين د وخت وتلو سره سره د مازيګر وخت هم داخل شو.او ددي وجه دا ده.چي د ماپښين او د مازيګر د وختونو په مينځ کي مهمل وخت نشته.بلکه څنګه چي د ماپښين وخت خارج شي.نود مازيګر وخت داخليږي.

وَالْمُسْتَحَاضَةُ هِيَ اومستحاضه ښځه هغه ده الَّتِيْ لَا يَمْضِيْ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ چي په هغي باندي د فرض لمونځ وخت نه تيريږي إِلَّا وَالْحَدَثُ الَّذِيْ ابْتُلِيَتْ بِهِ مګرپه داسي حالت کي چي په کومه بي اودسئ کي دا اخته وی يُوْجَدُ فِيْهِ هغه موجوديږي وَكَذَا كُلُّ مَنْ اوهم دا حکم د هرهغه معذور دي هُوَ فِيْ مَعْنَاهَا چي هغه د مستحاضه په معنی کي وی وَهُوَ مَنْ ذَكَرْنَاهُ اودا هغه دی.کوم چي مونږ ذکر کړل وَمَنْ بِهِ اسْتِطْلَاقُ بَطْنٍ اوهغه هم چي د دستونو ناروغی (ناروغی (بيماری)) ئي وی وَانْفِلَاتُ رِيْحٍ اوچي بي اختياره ئي باد اوځی لِأَنَّ الضَّرُوْرَةَ بِهٰذَا تَتَحَقَّقُ ځکه چي اړتيا ددي عذر سره هم متحقق کيږي وَهِيَ تَعُمُّ الْكُلَّ او اړتيا ټولو ته عام دي

**تشريح:- تعريف المستحاضة ومن هم في حکمها**⊛ **والمستحاضة هي التي الخ** په دي عبارت کي د مستحاضه تعريف کوی .نو فرمائي.چي مستحاضه هغه ښځه ده.چي د فرض لمونځ يووخت پري داسي نه تيريږي.مګرچي په کوم عذر کي دا اخته وی.هغه په کي موجوديږي.اوداحکم دهغه چاهم دي.چي هغه د مستحاضه په معنی کي



وی .لکه کوم کس چي دهغه متيازي نه اودريږي.اوهغه څوک چي د پوزي وينه ئي نه اودريږي.اوهغه زخم چي وينه ئي نه اودريږي.او هغه څوک هم معذور دي.چي د اسهال ناروغی (ناروغی (بيماری)) ئي وی.او نس ئي نه اودريږي.بلکه باربار اودس ماتی ته کيني.اوچي بي اختيار د باد وتلوناروغی (ناروغی (بيماری)) ئي وی.ځکه چي اړتيا د دي عذرونو سره متحقق کيږي.او اړتيا ټولو ته ګډ دي.نوپه دوی کي به هريو کس دمعذور په حکم کي وی.

فصل في النفاس دا) فصل د نفاس (داحکامو په بيان کي) دي:. وَالنِّفَاسُ هُوَ الدَّمُ ونفاس هغه وينه ده الْخَارِجُ عَقِيْبَ الْوِلَادَةِ چي د ولادت نه روسته راوځي لِأَنَّهُ مَأْخُوْذٌ مِنْ تَنَفُّسِ الرَّحِمِ بِالدَّمِ ځکه چي نفاس د «تنفس الرحم» نه ماخوذ دي يعني رحم وينه اوشندله أَوْ مِنْ خُرُوْجِ النَّفْسِ اويا نفاس ماخوذ دي د خروج نفس په سکون د فاء سره نه بِمَعْنَى الْوَلَدِ که د نفس ماشوم په معنی کي وی أَوْ بِمَعْنَى الدَّمِ اوکه د ويني په معنی کي وی.

**حل اللغة:** ①**دم**: وينه ②**عقيب**: روسته ③**ولد**: بچي

**تشريح:- تعريف النفاس**⊛ نفاس دنون په زور او زير سره لوستلي شوي دي.کومه وينه چي د ښځي سره خاص ده.هغه دري قسمه ده.①حيض ② استحاضه ③ نفاس دحيض او داستحاضه د احکامو دفراغت نه روسته په دي فصل کي د نفاس بيان کوی.نفاس مصدر دي د «نفسة المرأة» نه (دنون په ضمه او فتحه سره) اوکله نفاس د نفساء دجمعي لپاره استعماليږي.د فقهاؤ په اصطلاح کي نفاس هغه ويني ته وائي.چي دولادت نه روسته راځي.

**حکم وجوب الغسل بالولادة من غير رؤية دم**①علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائي.د صاحب قدوری رحمه الله د عبارت نه دا معلوميږي.که د ښځي ولادت اوشي.اووينه اونه ويني.نودا نفاسه نه ګرځی.اوپه دي باندي به غسل واجب نه وی.دا دصاحبينو رحمهما الله نه نقل دی.② خو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دي باندي د احتياط په طور غسل واجب دي.ځکه چي کيداي شي لږه ډيره وينه وتلي وی.خو دي ته په نظر نه وی راغلي.اوښکاره خبره ده چي د غسل د وجوب تعلق د ويني سره دي په نظر راتلو سره نه دي.علامه عينی رحمه الله ليکلی دی.چي دا د امام مالك او امام شافعی رحمه الله په نيز اصح قول دي.

**دولادت نه وړاندي د ويني حکم**

وَالدَّمُ الَّذِيْ تَرَاهُ الْحَامِلُ وهغه وينه چي حامله ښځه ئي اووينی اِبْتِدَاءً که په اول کي وی أَوْ حَالَ وِلَادَتِهَا يا د ولادت په مهال کي وی قَبْلَ خُرُوْجِ الْوَلَدِ د ماشوم د پيدا کيدونه وړاندي وی اِسْتِحَاضَةٌ نوهغه استحاضه ده وَإِنْ كَانَ مُمْتَدًّا اګرچي هغه وينه ممتد وی

**حل اللغة:** ① **دم جمع دماء**: وينه ② **تراه، رای رؤية (ف)**: کتل ③ **حامل**: حامله ښځه ④ **خروج**: راوتل ⑤**ممتد**: اوږديدل ⑥ **رحم**: بچي دانئی ⑦**ينسد، انسد انسداداً**: بنديدل ⑧ **ينفتح، انفتح انفتاحاً**: کولاويدل

**تشريح:- حکم الدم الذی يکون فی حالة الحمل او قبل الولادة**⊛مسئله دا ده.که حامله ښځي د حمل په حالت کي وينه اوليدله.يا ئي دماشوم پيدا کيدو نه وړاندي دولادت په حالت کي .نودا وينه زمونږ په نيز د استحاضه ده.اګرچي د حيض مودي ته اورسی

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمايي حَيْضٌ اِعْتِبَارًا بِالنِّفَاسِ چي دا حيض دي په نفاس باندي قياس کوی إِذْ هُمَا جَمِيْعًا مِنَ الرَّحِمِ ځکه چي دا دواړه د رحم نه راځی

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائي.چي دا حيض دي.

**دليله**⊛ د امام شافعی رحمه الله دليل قياس دي.يعني که د يوي ښځي په يوه نس دوي (دوه) ماشومان پيدا شول.بيا هغي د دوهم ماشوم پيدا کيدو نه وړاندي وينه اوليدله.نو دا ښځه به په دوهم ماشوم حامله وی.

وَلَنَا اوزمونږ دليل دا دي أَنَّ بِالْحَبَلِ يَنْسَدُّ فَمُ الرَّحِمِ چي د حمل دوجي د رحم خوله بنده وی كَذَا الْعَادَةُ عادت هم دا دي

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله⊛زمونږ دليل دا دي.چي حيض د رحم وينه وی.او د رحم وينه راتګ د حاملي نه

ممكن نه دی.ځكه چې دالله تعالی عادت په دې جاري دې.چې د حمل دوجې د رحم خوله بنده شي.چې په رحم كي دننه شی رابهر نشي.نوكله چې د حاملې د رحم خوله بنده وي.نو دحمل په حالت كي چې كومه وينه راوځي.هغه به د رحم نه علاوه د بل ځاې نه وي.او د رحم نه سوا چې كومه وينه راځي.هغه د استحاضه وينه وي.نوځكه به دا وينه د استحاضه وي.

| |
|---|
| وَالنِّفَاسُ بَعْدَ انْفِتَاحِهِ بِخُرُوجِ الْوَلَدِ او د ماشوم د خروج نه روسته د رحم خوله ايله شي اوهغه وينه د نفاس وي وَلِهٰذَا كَانَ نِفَاسًا بَعْدَ خُرُوجِ بَعْضِ الْوَلَدِ اوددې وجې د ماشوم د يوې حصې د راوتلو نه روسته هغه وينه د نفاس وي .فِيمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (١) په هغه روايت كي كوم چې دامام ابوحنيفه او امام محمد رحمه الله نه نقل دي لِأَنَّهُ يَنْفَتِحُ ځكه چې د رحم خوله كهولاو شي فَيَتَنَفَّسُ بِهِ نودهغي د وجې نفاس وي. |

تشريح:- الجواب عن قياس الشافعي رحمه الله ◉او دا وينه په نفاس باندې قياس كول فاسد دی.ځكه چې د ماشوم پيدا كيدو په وجه د رحم خوله پرانستې شوه.او د رحم د خولې كهولاويدو نه روسته چې كومه وينه راځي هغه بيشكه د نفاس وي.نود اول ماشوم پيدا كيدو نه روسته او د دوهم ماشوم پيدا كيدو نه وړاندې چې كومه وينه ليدې شي.هغه به د نفاس وي.ځكه چې اكثر داسې وي.چې د ماشوم پيدا كيدو نه روسته د رحم خوله كهولاو شي.او د نفاس وينه راتګ پيل شي.

## د نامكمل ماشوم د ولادت حكم

| |
|---|
| وَالسِّقْطُ اوناقص ماشوم الَّذِي اسْتَبَانَ بَعْضُ خَلْقِهِ چې ځيني اندامونه ئې جوړ شوي وي وَلَدٌ هغه ولد دې حَتَّى تَصِيرَ الْمَرْأَةُ بِهِ نُفَسَاءَ تردې چې ښځه پرې نفاسه ګرځي وَتَصِيرَ الْأَمَةُ أُمَّ وَلَدٍ بِهِ اووينزه ددې په وجه ام ولد ګرځي وَكَذَا الْعِدَّةُ تَنْقَضِي بِهِ اودغه ډول ددې په وجه به د حمل عدت پوره كولاې شي. |

حل اللغة:① سقط: نامكمل ماشوم ② اتبان استبانة: ښكاره كيدل ③ تنقضی انقضی انقضاء: پوره كيدل

تشريح:- حكم ولادة السقط◉ مسئله: ناقص ماشوم چې ځيني اندامونه ئې جوړ شوي وي.مثلاً ګوتې،نوكونه،ويخته وغيره.نودا دكامل ماشوم په حكم كي دې.① يعنی ښځه په دې باندې نفاسه ګرځي. ②اوكه دا د چا وينزه وي.نوام ولد ګرځي.③ او كه مطلقه ښځه وي.نوعدت ئې پوره كيږي.ځكه چې د حاملې عدت وضع د حمل وي. اوكه صرف چيمړه وي.څه اندامونه په كي جوړ شوي نه وي.نو دداسې ښځې په حق كي دنفاس حكم نشي وركولې.نوكه دې ښځې وينه اوليدله.اوهغه وينه د حيض وينه ګرځول ممكن وي.چې كمې مودې د حيض ته رسيدله.نودا به حيض ګرځولې شي.او كه حيض ګرځول ئې ممكن نه وي.نواستحاضه به وي

## دنفاس د كمې اوزياتې مودې بيان

| |
|---|
| وَأَقَلُّ النِّفَاسِ لَا حَدَّ لَهُ اودكمې مودې دنفاس څه حد نشته |

حل اللغة:① اقل: كم

تشريح:- لاحد لاقل مدة النفاس◉زموږ دعالمانو رحمهم الله په دې باندې اتفاق دې.چې د نفاس د كمې مودې لپاره څه حد نشته.كه د ښځې ولادت اوشو.اولږ وخت روسته ئې وينه بنده شوه.نودا پاكه شوه.نواوس به روژه نيسي اومونځونه به كوي.

(١) لكن القول الراجح هو قول ابی يوسف رحمه الله حيث قال ان الدم الذی تراه الحامل بعد خروج اكثر الولد نفاس كذا فی الدرالمختار(٢١٩\١) وتبيين الحقائق (٦٧\١) والهندية (٣٧\١) نقلا عن القول الراجح (٤٣\١)_



| |
|---|
| لِأَنَّ تَقَدُّمَ الْوَلَدِ عَلَمُ الْخُرُوجِ ځكه چې دماشوم (د وينې نه) وړاندې راتګ نښانه ده مِنَ الرَّحِمِ رحم نه د وتلو. فَأَغْنَى عَنْ امْتِدَادِ اونو دداسې اوږدوالی نه استغنا راغله جُعِلَ عَلَمًا عَلَيْهِ چې هغه ورته نښانه اوګرځولې شي كَمَا فِي الْحَيْضِ لكه څنګه چې په حيض كي وي |

حل اللغة:① خروج: راوتل ② امتداد: اوږديدل

تشريح:- دليل ان لاحد لاقل مدة النفاس◉دنفاس دكمې مودې د څه حد نه مقررتيا دليل دا دې.چې د ماشوم زيږيدل ددې خبرې علامه ده.چې دا وينه د رحم نه راغلې ده. او د ماشوم د زيږيدل نه روسته چې كومه وينه راځي.هغه نفاس دې.نواوس د څه اضافی نښې اړتيا نشته.اوحيض ددې په خلاف دې.ځكه چې په هغې كي كم ازكم درې ورځې شرط دی.چې ددې وينې د رحم نه راتګ معلوم شي.ځكه چې د دې په حيض كيدو باندې بله څه علامت نشته. سوا ددې نه چې درې ورځو ته دا وينه اورسي

| |
|---|
| وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا اوزياته موده دنفاس څلويښت ورځې دی.. وَالزَّائِدُ عَلَيْهِ اسْتِحَاضَةٌ اوپه دې باندې زيادت استحاضه ده |

تشريح:- اكثر مدة النفاس◉ ①اود نفاس په اكثره موده زموږ په نيز څلويښت ورځې دی

| |
|---|
| لِحَدِيثِ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها ځكه چې دام سلمې رضي الله عنها حديث دې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَّتَ لِلنُّفَسَاءِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا(١) چې نبی ﷺ د نفاسې ښځې لپاره څلويښت ورځې مقرر كړې دی |

حل اللغة:① وقت توقيتاً: مقررول

تشريح:- الدليل الاول النقلی للاحناف◉ اوزموږ دليل دحضرت ام سلمې رضي الله عنها حديث دې. چه «ان النبی ﷺ وقت للنفساء اربعين يوما» اوپه ابوداود او ترمذی كي دا حديث په دې الفاظومروی دې.« قالت كانت النساء تقعد علی عهد رسول الله اربعين يوما» ام سلمه رضي الله عنها فرمائی.چې د نفاس زنانه به د نبی ﷺ په زمانه كي څلويښت ورځې كيناستلې.زموږ دا مذهب د ام سلمې رضي الله عنها نه علاوه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه، عائشه رضي الله عنها، ام حبيبه رضي الله عنها او ابوهريره رضي الله عنه نه هم نقل دې.اوښكاره خبره ده.چې دا حديث به دې حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم د نبی ﷺ نه وريدلی وي.

② الدليل الثانی العقلی للاحناف◉اوعقلی دليل دا دې.چې اكثره موده د نفاس د حيض د اكثرې مودې په څلورچنده ده.او په باب الحيض كي دا خبره تحقيق ته رسيدلې ده.چې زموږ په نيز اكثره موده د حيض لس ورځې دی.نوددې څلورچنده څلويښت ورځې شوې.اوچونكه د امام شافعی رحمه الله په نيز اكثره موده د حيض پنځلس ورځې دی.نوځكه دهغه په نيز د نفاس اكثره موده شپيته ورځې دی.چې د حيض څلورچنده دی.

| |
|---|
| وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا حديث د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دې فِي اعْتِبَارِ السِّتِّينَ د شپيتو ورځو په اعتبار كاوه سره |

تشريح:- نو دا حديث د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت شو.ځكه چې د هغوی په نيز شپيته ورځې دی. اودامام شافعی رحمه الله مذهب نه د حديث نه ثابت دې. اونه د يو صحابی رحمه الله د قول نه بلكه د ځيني تابعينو د قول نه ثابت دې.اود تابعی قول د حديث او آثارو په مقابله كي حجت نشي جوړيدې.

② دليله ◉ ①امام شافعی رحمه الله د امام اوزاعی رحمه الله په قول باندې استدلال كوی.فرمائی.چې زموږ په زمانه كي به د ښځو دوې (دوه) مياشتې نفاس راتلو.② اود ربيعه رحمه الله نه روايت دې.هغوی فرمائيلی دی.چې ما د

(١) من حديث ام سلمة (رضی الله عنها) اخرجه ابوداؤد فی الطهارة باب ١١٩ رقم ٣ و الترمذی فی الطهارة باب ٥٠ و ابن ماجه فی الطهارة باب ٢٨ رقم ٦٤٨ و الدارمی فی الوضوء باب ٩٩).

خلګو نه اوریدلی دی. چې ونیل ئې. چې دښځې د زیات نه زیات شپیته ورځې نفاس راځي

**په نفاس کې د څلویښتو ورځونه د وینې زیادت**

وَإِنْ جَاوَزَ الدَّمُ الْأَرْبَعِينَ او که وینې د څلویښتو ورځو نه تجاوز اوکړلو وَكَانَتْ وَلَدَتْ قَبْلَ ذَٰلِكَ او حال دا وو چې ددې ښځې وړاندې هم ولادت شوې وو وَلَهَا عَادَةٌ فِي النِّفَاسِ او دهغې په نفاس کې خپل عادت وو رُدَّتْ إِلَىٰ أَيَّامِ عَادَتِهَا نو هغه به خپل عادت اړخ ته واروسته کولای شی لِمَا بَيَّنَّا فِي الْحَيْضِ دهغه دلیل د وجې کوم چې موږ په حیض کې بیان کړلو

**حل اللغة:** ① جاوز مجاوزة: زیاتیدل، تیریدل ② ولدت، ولد ولادة (ض) ماشوم پیداکیدل ③ ردت، رد رداً (ن) واروسته کول

**تشریح:- استحاضة النفساء** ❁ صورت د مسئلې دا دې. چې د یوې ښځې د ولادت نه روسته د څلویښتو ورځو نه زیاته وینه راغله. نو اوس به کتلی شی. چې ددې ښځې په نفاس کې وړاندې څه عادت وو او که نه. که عادت ئې وو. نو دعادت ورځې به نفاس شمارلې شی. او پاته استحاضه. دلیل هغه دې کوم چې په باب النفاس کې تیرشوې دې. (که د حائضې په عادت باندې وینه زیاتی شوه. او هغه وینه د لسو ورځونه زیاته وه. هغه به استحاضه وی. ازمترجم)

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهَا عَادَةٌ او که ددې ښځې څه عادت معروفه نه وو فَابْتِدَاءُ نِفَاسِهَا أَرْبَعُونَ يَوْمًا نو ددې پیل به دڅلویښتو ورځو نه کیږی لِأَنَّهُ أَمْكَنَ جَعْلُهُ نِفَاسًا ځکه چې څلویښت ورځې نفاس ګرځول ممکن دی.

**تشریح:-** او که ددې څه معلوم عادت نه وو. نو په دې صورت کې به څلویښت ورځې د نفاس وی. او پاته به استحاضه وی. ځکه چې څلویښت ورځې د نفاس موده ګرځول ممکن هم دی. او ددې نه ګرځولو کې شك دې. (ځکه چې کیدای شی. ددې د نفاس وینه څلویښت ورځې راځی. ازمترجم) نو ځکه به موده د نفاس څلویښت ورځې وی.

**د یوې خیټې د ماشومانو حکم**

فَإِنْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِي بَطْنٍ وَاحِدٍ که ښځې په یوه نس دوې (دوه) ماشومان اوځیږول فَنِفَاسُهَا مِنَ الْوَلَدِ الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله [1] نو ددې نفاس د شیخینو رحمهما الله په نیز د اول نه پیل کیږی وَإِنْ كَانَ بَيْنَ الْوَلَدَيْنِ أَرْبَعُونَ يَوْمًا اګرچې د دواړو ماشومانو په مینځ کې د څلویښتو ورځو فاصله وی

**تشریح:- الاختلاف في بدء العدة في تولد التوامين** ❁ صورت د مسئلې دا دې. که دیوې ښځې دوې (دوه) بچی د یوې خیټې نه پیدا شو. نو دهغې دنفاس پیل د شیخینو رحمهما الله په نیز د اول ماشوم نه کیږی. اګرچې د دواړو په مینځ کې څلویښت ورځې وی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمایي مِنَ الْوَلَدِ الْأَخِيرِ چې د دوهم ماشوم نه نفاس پیل کیږی. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رحمه الله او دا د امام زفر رحمه الله قول هم دې لِأَنَّهَا حَامِلٌ بَعْدَ وَضْعِ الْأَوَّلِ ځکه چې د اول ماشوم د زیږیدل نه روسته هغه حامله ده فَلَا تَصِيرُ نُفَسَاءَ نو نفاسه به نه وی کیږی كَمَا أَنَّهَا لَا تَحِيضُ لکه ځنګه چې حائضه نه ده وَلِهَٰذَا تَنْقَضِي الْعِدَّةُ بِالْوَلَدِ الْأَخِيرِ بِالْإِجْمَاعِ او ددې وجې (د) عدت په اجماع سره په دوهم باندې پوره کیږی

**حل اللغة:** ① تنقضی، انقضی انقضاءً: پوره کیدل

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في الكفاية (١٦٧/١) والعناية (١٦٧/١) ورد المحتار (٢٢١/١) نقلا عن القول الراجح (٤٣/١)-



امام محمد رحمه الله فرمائی. چې د دوهم ماشوم څخه به کیږی. او دا قول د امام زفر رحمه الله هم دې.

**تشریح:- دليله** ❁ د (یوې) خیټې نه مراد دا دې. چې د دواړو ماشومانو په ولادت کې د شپږو میاشتو نه کمه موده وی. دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې. چې د اول ماشوم پیدا کیدو نه روسته هم دا ښځه حامله ده. او حاملې ته ځکه حیض نه راځی. دغه ډول هغه نفاسه هم نشی جوړیدې. او هم دا وجه ده. که ښځه مطلقه وی. نو دهغې عدت به په اتفاق سره د دوهم نه حسابیږی. نو هم ددې څخه به نفاس هم پیل کیږی

وَلَهُمَا او د شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې أَنَّ الْحَامِلَ إِنَّمَا لَا تَحِيضُ لِانْسِدَادِ فَمِ الرَّحِمِ چې حاملې ته د رحم د خولې د بندیز د وجې حیض نه راځی عَلَىٰ مَا ذَكَرْنَا لکه ځنګه چې موږ ذکر کړی دی وَقَدِ انْفَتَحَ بِخُرُوجِ الْأَوَّلِ وَتَنَفَّسَ بِالدَّمِ او دلته د اول ماشوم د زیږیدل نه روسته د رحم خوله کهولاو شوه فَكَانَ نِفَاسًا نو دا به ضرور نفاس وی

**حل اللغة:** ① انسداد: بندیدل ② انفتح انفتاحاً: کولاویدل ③ خروج: وتل

**تشریح:- دلیل الشیخین** ❁ دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې. چې دحمل په مهال کې د حیض وینه ځکه نه راځی. چې د رحم خوله په ماشوم باندې بنده وی. خوچې کله ماشوم پیدا شو. نو د رحم خوله کهولاو شوه. نو دهغې نه روسته چې کومه وینه راځی. هغه به خامخا د نفاس وی. ځکه چې د ولادت نه روسته چې د رحم نه کومه وینه راځی. هغه به د نفاس وی.

وَالْعِدَّةُ تَعَلَّقَتْ بِوَضْعِ حَمْلٍ او د عدت تعلق د داسې حمل زیږیدل سره دې مُضَافٍ إِلَيْهَا چې هغه ښځې اړخ ته مضاف وی فَيَتَنَاوَلُ الْجَمِيعَ نو هغه به کل ته ګډ وی.

**حل اللغة:** ① فيتناول، تناول تناولاً: شاملیدل

**تشریح:- الجواب** ❁ او د امام محمد رحمه الله دقیاس نه ځواب دا دې. چې دعدت پوره کیدل د داسې حمل وضع سره متعلق دې. چې دهغې نسبت ښځې ته کیږی. الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿ وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ﴾ او حمل وئیلی شی ❁ كل ما في البطن ❁ ته یعنی څه چې په نس کې وی. نو د اول ماشوم په زیږیدل باندې پوره وضع د حمل اونشوه. بلکه د ځینې حمل وضع اوشوه. او د حاملې عدت پوره کیږی. په پوره وضع دحمل سره. نو ځکه به عدت د دوهم ماشوم په پیدا کیدو پوره کیږی په اول به نه پوره کیږی.

# باب الأنجاس وتطهيرها

ژباړه:- (دا) باب د پلیتو او ددې د پاکاوه (په بیان کې) دې.

**تشریح:- وجه تقديم النجاسة الحكمية** ❁ چونکه حکمي مرداري قوی دې په نسبت سره حقیقي مرداري ته. نو ځکه ئې د حکمي مرداري احکام وړاندې ذکر کړل. پاته شوه دا خبره چې حکمي مرداري ځنګه اقوی دې. ددې وجه دا ده. چې حکمي مرداري که کم هم وی. خو هغه د لمونځ د جواز نه مانع دې. او ددې په خلاف حقیقي مرداري که کم وی. نو د لمونځ د جواز نه مانع نه دې.

**معنی النجاسة لغةً** ❁ نجاست (بفتح الجیم) ذات دنجاست او بسکر الجیم هغه شی چې پلیت وی. وړاندې مصنف رحمه الله د حکمي مرداري او د هغې د پاکاوه بیان اوکړلو. او ددې ځائې نه د حقیقي مرداري او د هغې د پاکاوه بیان پیل کوی.

**دنجاست نه د پاکئ ضرورت**

تَطْهِيرُ النَّجَاسَةِ دنجاست پاکول واجب دی وَاجِبٌ مِنْ بَدَنِ الْمُصَلِّي د لمونځ ګذار دبدن نه وَثَوْبِهِ او د هغه د جامونه وَالْمَكَانِ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْهِ او د هغه ځائې نه چې کوم کې لمونځ کوی

**حل اللغة:** ① تطهیر: پاکول ② بدن: وجود ③ مکان: ځائی

**تشریح:- طریقی التطهیر** ❁ په عبارت کې د واجب نه مراد فرض دې. او د تطهیر دوې (دوه) طریقې دی. یو د

طهارت ثابتول او بل د نجاست زائله كول. په اول صورت كي به ژباړه دا وي.محل دنجاست پاكول، كي طهارت ثابت كول،اوپه دوهم صورت كي به ژباړه دا وي.د نجاست زائل كول فرض دى.اوپه دي مونځگذار د بدن اوجامو او هغه ځائي نه چي په كوم كي لمونځ كوى نجاست لري كول فرض دى.بهرحال د

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ځكه چي الله ﷻ فرمائيلى دى **وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ** خپلي جامي پاكي كړه

**حل اللغة**° ① ثياب: كپړي

**تشريح:- الدليل النقلى لطهارة الثوب** ۞ دجامو په پاكاوه باندي دليل دالله ﷻ ارشاد دي ﴿وثيابك فطهر﴾ په دي طريقه چي صيغه د طهر، امر دي.او امرد وجوب لپاره راځي.نود جامو پاكوالي په عبارت النص سره ثابت شو.

**وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ** او نبي ﷺ فرمائيلى دى دا **حُتِّيهِ** او مږه **ثُمَّ اقْرُصِيهِ** بيا ئي اوګروه **ثُمَّ اغْسِلِيهِ بِالْمَاءِ** او بيا ئي په اوبو باندي اووينځه **وَلَا يَضُرُّكِ أَثَرُهُ** (١) اوتاته ددي داغ څه ضرر نه رسوى

**حل اللغة**° ① اقرصيه، قرص قرصاً: رجڅول ② اثر: نښانه

**تشريح:- الدليل الثانى النقلى طهارة الثوب** ۞ دوهم دليل دنبى ﷺ حديث دي.دوى فرمائيلى دى.دا (جامي) اومږه.او بيا ئي اوګروه.او بيا ئي په اوبو سره اووينځه.علامه ابن همام رحمه الله دا حديث داسي نقل كړي دي. «عن أسماء بنت أبي بكرالصديق رضي الله عنهما قالت جاءت إمرأة إلى النبى ﷺ فقالت إحدانا يصيب ثوبها من دم الحيض كيف تصنع به،قال ﷺ تحته ثم تقرصه بالماء ثم تنضحه ثم تصلى فيه» (متفق عليه) حضرت اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنهما فرمائى.يوه ښځه رسول الله ﷺ ته راغله.او عرض ئي اوكړلو.چي په موږ كي ديوي ښځي جامو ته د حيض وينه اورسى.نوهغه څه اوكړي.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل: هغه په لرګى يا بل څه اوګروه.بيا ئي په اوبو باندي اووينځه.او بيا پرې اوبه تيري كړه.اوبيا په كي لمونځ كوه.صاحب دهِدايه رحمه الله فرمائى.كه د وينځلو نه روسته په كالى باندي داغ پاتي شي.نوهغه نقصانى نه دي.يعنى د لمونځ د جواز نه مانع نه دي.

**وَإِذَا وَجَبَ التَّطْهِيرُ بِمَا ذَكَرْنَا فِي الثَّوْبِ** اوچي د جامي په حق كي پاكول واجب شو **وَجَبَ فِي الْبَدَنِ وَالْمَكَانِ** نود بدن او ځائي په حق كي به هم واجب وى **فَإِنَّ الِاسْتِعْمَالَ فِي حَالَةِ الصَّلَاةِ يَشْمَلُ الْكُلَّ** ځكه چي په حالت د لمونځ كي واړه شريك دى.

**تشريح:- الدليل العقلى لطهارة البدن والمكان** ۞ او د بدن اوځائي پاكوالي په دلالت النص سره ثابت شو.اودا په دي طريقه چي لمونځ د خپل مالك سره مناجات دي.نوپكار دا ده.چي مونځګذار په ښه حالت كي وى.اود مونځګذار لپاره به ښه حالت په هغه وخت كي ثابتيږى.چي دي په خپله هم پاك وى.او چي كوم شيان (ځيزونه) ده سره يوځائي وى. هغه هم پاك وى.نوهركله چي د جامي پاكوالي فرض دي.حالانكه دا د مونځګذار سره متصل نه دى.(بلكه بغير دجامونه هم پاتي كيداي شى. نود بدن او ځائي پاكوالي خويه خامخا فرض وى.ځكه چي دا جلا كيداي نشى.اوكامل اتصال ئي دي ورسره

۩ **شرطية طهارة موضع القدم** ۞ داخبره دي ياده وى.چي د ځائي په پاكوالى كي د قدم د ځائي پاكوالي معتبر دي.يعنى د اودريدو د ځائي پاكوالي ضرورى دي.نوكه د قيام په ځائي كي د يو درهم نه زياته اندازه باندي مردارى وى.نولمونځ به فاسد وى.پاته شوه دا خبره چي د سجدي د ځائي پاكوالي هم ضرورى دي اوكه نه.نو په دي كي اختلاف دي.

۩ **الروايتان في طهارة موضع السجود** ۞ ① امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت نقل كړي دي.چي د

---

١) من حديث اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنهما اخرجه البخارى فى الوضوء با ٦٣ ومسلم فى الطهارة رقم ١١٠ وابوداود فى الطهارة باب ١٣٠ والترمذى فى الطهارة باب ١٠٤ والنسائى فى الطهارة باب ١٨٤ وابن ماجه فى الطهارة باب ٨٢ والدارمى فى الوضوء باب ١٠٥)_



سجدي د ځائي طهارت هم لكه د قيام د ځائي د طهارت په څير ضرورى دي.ځكه چي لكه ځنګه قيام ركن دي.دغه ډول سجده هم ركن دي.نولكه ځنګه چي د قيام لپاره طهارت شرط دي.دغه ډول به د سجدي لپاره هم شرط وى. ② اوامام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړي دي.چي د سجدي د ځائي پاكوالي شرط نه دي.ځكه چي سجده په پزه باندي كيږى.اوپزه د يو درهم نه كمه ده.او ديو درهم نه كم نجاست د لمونځ د جواز نه مانع نه دي.نوځكه د سجدي د ځائي طهارت شرط نشو.اودطرفينو رحمهما الله په نيز د سجدي د ځائي طهارت شرط دي.ځكه چي سجده كيږى په تندى باندي.اود تندى ځائي د يو درهم دمقدار نه زيات دي.نوځكه ددي پاكوالي ضرورى دي.

**په كومو ځيزونو چي نجاست زائله كيږى**

**يَجُوزُ** اوجائزدي **تَطْهِيرُهَا بِالْمَاءِ** د پليتو لري كول په اوبو باندي **وَبِكُلِّ مَائِعٍ** اوپه هر هغه شى باندي چي بهيدونكي وى. **طَاهِرٍ** وپاك وى **يُمْكِنُ إِزَالَتُهَا بِهِ** اوپه هغې باندي د نجاست لري كول ممكن وى **كَالْخَلِّ** لكه سركه **وَمَاءِ الْوَرْدِ** اود ګلابو اوبه **وَنَحْوِهِ ذَالِكَ مِمَّا** او ددي په څير چي د داسي ځيزونو څخه وى **إِذَا عُصِرَ** چي نچوړ كړي شى **انْعَصَرَ** نو نچوړيدي شى **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله (١) اودا حكم دامام ابويوسف او امام ابوحنيفه رحمهما الله په نيز دي

**حل اللغة**° ① يجوز: رواكيدل ② مائع: بهيدونكي ③ يمكن، امكن امكاناً: ممكن كيدل ④ ازالة: زائل كول ⑤ خل: سركه ⑥ ماء الورد: عرق ګلاب

**تشريح:- المذهبان في ازالة النجاسة الحقيقية بالمائع الطاهر** ۞ په دي اړه كي اختلاف دي.چي په كوم ځيزونو نجاست زائله كيږى او په كومو ځيزونونه زائله كيږى. ① دامام ابويوسف اوامام ابوحينفه رحمهما الله په نيز په هر بهيدونكى ځيزباندي نجاست زائله كيږى.چي پاك وى.اود نجاست زائله كول پرې ممكن وى.لكه سركه او د ګلاب اوبه اوداسي ځيزچي په نچوړولو سره نچوړ كيږى.نود ماكول اللحم ځناورو متيازو باندي نجاست نه پاكيږى.ځكه چي متيازي پليتي دى.او په تيلو باندي هم نجاست نه پاكيږى.اګرچي تيل پاك دى.ليكن په نچوړولو سره نه نچوړ كيږى.بلكه په كپړه كي جزب كيږى

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ** رحمهم الله اوامام محمد او امام زفر او امام شافعى رحمهم الله فرمائيلى دى **لَا يَجُوزُ** چي جائز نه دي **إِلَّا بِالْمَاءِ** مګر صرف په اوبو سره

**تشريح:-** دامام محمد ،امام زفر،امام شافعى ،امام مالك او عامو فقهاؤ رحمهم الله په نيز د اوبو نه سوا په بل ځيزپاكي نه حاصليږى.

**لِأَنَّهُ يَتَنَجَّسُ بِأَوَّلِ الْمُلَاقَاةِ** ځكه چي پاكونكي ځيزخو په اول ملاقات سره پليتيږى **وَالنَّجِسُ لَا يُفِيدُ الطَّهَارَةَ** اوپليت ځيزپاكول نشى كولي **إِلَّا أَنَّ هٰذَا الْقِيَاسَ تُرِكَ فِي الْمَاءِ لِلضَّرُورَةِ** ليكن دا قياس د اوبو په حق كي د اړتيا د وجي پريښولي (پريخودي) شو

۩ **دليلهم** ۞ ددي حضراتو دليل دا دي.چي پاكونكي شى نجاست سره ملاو شى.نوپه اول ملاقات سره پليت شى.يعنى اوبه يا پاكونكي شى چي په نجاست باندي واچوي.اود نجاست څه اجزاء دي سره شامل شى.نو دا

---

١) القول الراجح هو هدا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(١\٢٢٦)وحاشية الطحطاوى على مراقى الفلاح (ص،٨٧ قديمى كتب خانه ) نقلا عن القول الراجح (١\٤٤)-

په خپله پليت شي.اوكوم شي چې په خپله پليت وي.هغه بل شي نشي پاكولې.نوځكه د قياس تقاضا خودا وه.چې نه په اوبو باندې مرداري پاكيدله اونه په بل پاكونكي شي باندې .ليكن د اړتيا دوجې په اوبو كي دا قياس متروك شو.نواوبه مفيد د طهارت اوګرځولې شوې.اود اوبو نه علاوه نور شيان (څيزونه) مفيد د طهارت نشو.

13

وَلَهُمَا د شيخينو رحمهما الله دليل دا دي أَنَّ الْمَائِعَ قَالِعٌ چې بهيدونكې شي زائله كونكې دې وَالطَّهُورِيَّةُ بِعِلَّةِ الْقَلْعِ وَالْإِزَالَةِ او د پا كاوه صفت خو د زائله كاوه او ختمولو په وجه دي

**حل اللغة:** ① علة: وجه، سبب

**تشريح:- دليل الشيخين** رحمهما الله ۞ دشيخينو رحمهما الله دليل دا دي.چې داوبو نه علاوه بل مائع شي ځكه پاكونكې دې چې په دې باندې نجاست زائله كيږي.او اوبه ځكه پاكونكې دي.چې په دې كي د نجاست لرې كاوه معنى پرته ده. نو كه دغه معنى د نجاست زائله كاوه په بل شي كي موجود شي.نوبايد ده چې هغه هم پاكونكې وي.بلكه اوبه خو د خيني ږنګدار نجاست رنګ نه زائله كوي.او سركه دغه رنګ زائله كوي

وَالنَّجَاسَةُ لِلْمُجَاوَرَةِ اوپليتيدل د مجاورت د وجې دی فَإِذَا انْتَهَتْ أَجْزَاءُ النَّجَاسَةِ نوهر كله چې د نجاست اجزاء ختم شو.يَبْقَى طَاهِرًا نوهغه شي پاك شو

**تشريح:- وجه عدم نجاسة الماء بلقاء النجاسة** ۞پاته دا خبره چې د نجاست سره په اول ملاقات باندې اوبه پليتيږي.نوددې ځواب دا دې.چې اوبه په هغه وخت كي پليتيږي.چې د اوبو سره د نجاست اجزاء ګډ شي .اوچې كله په اوبو باندې د نجاست اجزاء د محل نه لرې شي.نوپاته محل پاك پاتې شي.يعنى كپړه هم پاكه شي .

وَجَوَابُ الْكِتَابِ اوپه كتاب كي چې كوم حكم ذكر دي لَا يُفَرِّقُ بَيْنَ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ هغه په جامو او بدن كي توپير نه كوی وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) (او هم دا قول د ابوحنيفه رحمه الله دي) وَإِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اويو روايت د ابويوسف رحمه الله نه هم دي

**تشريح:- الروايتان في تطهيرالبدن بالمائع** ۞ صاحب دهدايه فرمائی.① چې په قدوری كي كوم حكم ذكر دې.په كي د جامې او بدن په مينځ كي څه توپير نشته.يعنى لكه څنګه چې په اوبو اوبهيدونكى شي باندې كالى پاكيږي.دغه ډول بدن هم په دواړو باندې پاكيږي.اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت هم دې.او د امام ابويوسف نه په دوو روايتونو كي يو روايت هم دې.

وَعَنْهُ اودامام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دا هم دې أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا چې هغوی په بدن او جاموكي توپير كړې دې فَلَمْ يُجَوِّزْ فِي الْبَدَنِ بِغَيْرِ الْمَاءِ نود بدن په حق كي د اوبونه علاوه په بل شي پاكوالې جائزنه دې.

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت دا دې.چې هغوی په جامواو بدن كي توپير كړې دې.چې بدن صرف په اوبو باندې پاكيږي.اوجامه په اوبو او بهيدونكى پاك شي باندې هم پاكيږي.

## د جوته دار نجاست نه د موزې پاكول

وَإِذَا أَصَابَ الْخُفَّ وكله چې اولګی موزې سره نَجَاسَةٌ لَهَا جِرْمٌ داسې نجاست چې دهغې جوثه وی كَالرَّوْثِ لكه

(١) القول الراجح هوهذا قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١٧١\١) والعناية (١٧١\١)والخانية (١\١١) نقلا عن القول الراجح (٤٥\١)-





خاشنړه، وَالْعَذِرَةِ د بنيادم غټ بول وَالدَّمِ وينه وَالْمَنِيِّ و منى فَجَفَّتْ و بيا دا نجاست اوچ شی فَدَلَكَهُ بِالْأَرْضِ اوبيا ئې په مځكه باندې اومګی جَازَ (١) نو جائز ده وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ اودا استحسان دې

**حل اللغة:** ① اصاب اصابة: رسيدل ② خف جمع خفاف: موزه ③ جرم:بدن يعنى كوم چې په ظاهره ښكارى ④ روث: سوړه ⑤ عذرة: دَ سړي ډكي بولې ⑥ فجفت، جف جفافا(ض): اوچيدلې ⑦ فدلكه، دلک دلكا (ن) يوځاى كيدل، مږل

**تشريح:- المذهبان في تطهير الخف من النجاسة العينية** ۞مسئله دا ده.① كه موزې سره داسې پليتې اولګيدله.چې هغه جوثه داره وی.لكه خاشنړه، غټ بول، وينه او منى، او اوچې شي.او په مځكه پورې ئې اومګی.يا ئې په لرګی يا بل څه اوګروی.اوصفا ئې كړی. نوهغه موزه پاكه شوه.چې هغه واچوی.اولمونځ كوی.نوجائزده.دا حكم استحسانى دې.يعنى د قياس جلى خلاف دې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائيلي دی لَا يَجُوزُ چې جائز نه ده وَهُوَ الْقِيَاسُ اودا قياس دې إِلَّا فِي الْمَنِيِّ خَاصَّةً مګر صرف په منىٔ كي. لِأَنَّ الْمُتَدَاخِلَ فِي الْخُفِّ ځكه چې كوم شی په موزه كي داخل شی لَا يُزِيلُهُ الْجَفَافُ وَالدَّلْكُ نوهغه په اوچيدواو په مګولو سره نه زائله كيږی بِخِلَافِ الْمَنِيِّ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ په خلاف د منىٔ هغه ددې وجې چې موږ به ئې ذكر كړو

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله فرمائی.چې داسې جائز نه ده.يعنى په داسې كاوه باندې موزه نه پاكيږي.بلكه د دې پرېمنځل په اوبو سره ضروری دی.سواء د منىٔ نه.د منىٔ په اړه كي به وړاندې بيان راشي.

**دليله** ۞ صاحب د هدايه فرمائی.چې د امام محمد رحمه الله قول د قياس مطابق دې.او دامام محمد رحمه الله دليل دا دې.چې كله د نجاست اجزاء موزې ته اورسی.نوهغه د موزې سره مولښتى شي.په اوچيدلو او ګرولو سره هغه نه زائله كيږي.ترديې چې د اوچيدو نه روسته هم نجاست پاته وی.پاته شوه منى.نوددې ذكر به په روستو صفحو كي راشي.انتظار كوئ

وَلَهُمَا اود شيخينو رحمهما الله دليل دا دې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دی فَإِنْ كَانَ بِهِمَا أَذًى كه په دې دواړو كي نجاست وی فَلْيَمْسَحْهُمَا بِالْأَرْضِ نودا په مځكه پورې اومګه فَإِنَّ الْأَرْضَ لَهُمَا طَهُورٌ (٢) ځكه چې مځكه ددې لپاره پاكې دې

**تشريح:- الدليل الاول النقلى للشيخين** ۞ دشيخينو رحمهما الله دليل دحضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه حديث دې.چې «أن النبي ﷺ كان يصلي فخلع نعليه فخلع القوم نعالهم فقال ﷺ لهم بعد الصلاة لما خلعتم نعالكم؟ قالوا رأيناك خلعت نعليك فخلعنا فقال ﷺ أخبرني جبرئل ① إن فيهما قذر إذا أتى أحدكم باب المسجد فليقلب نعليه فإن رأى فيها قذرا فليمسحهما بالأرض» يعنى نبى ﷺ لمونځ كولو.نوخپلې پڼړې ئې اوويستلې.نوصحابه كرامو رضي الله عنهم هم خپلې پڼړې اوويستلې.كله چې نبی ﷺ د لمانځه نه فارغ شو.نو صحابه كرامو ته ئې اوفرمائيل: تاسو ولې پڼړې اوويستلې؟هغوی ورته عرض اوكړلو.يارسول الله موږ اوكتل.چې تاسو خپلې پڼړې اوويستلې.نوموږ هم پڼړې اوويستلې.نبی ﷺ اوفرمائيل: ماخو ځكه پڼړې اوويستلې.چې حضرت جبرئيل ① راته خبر راكړلو.چې ستا په پڼړوكي چټلې ده.كله چې په تاسوكي څوك د جمات دروازې ته راشي.نو پڼړې دې راواړوی.او اودې ګوری.كه څه چټلې پرې اووينی.هغه دې په مځكه باندې اومګی.او په يوروايت كي داسې الفاظ راغلی دی.چې «فإن الأرض لهما طهور» يعنى مځكه ددې لپاره مطهريعنى پاكونكې ده.ددې حديث نه معلومه شوه.كه موزې

(١) القول الراجح هو قول الشخين كذا فى الخانية (١٣\١) والبحرالرائق (٣٨٧\١) والهندية (٤٤\١) نقلا عن القول الراجح (٤٦\١)_

(٢) من حديث ابى هريرة رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى الطهارة باب ١٣٧ رقم ٣٨٦)_

پورې نجاست لګیدلی وی.نو هغه دې په مځکه باندې اومګی.د وینځلو اړتیا نشته.

وَلِأَنَّ الْجِلْدَ لِصَلَابَتِهِ لَا تَتَدَاخَلُهُ أَجْزَاءُ النَّجَاسَةِ او د دې وجې چې په څرمن کې د هغې د سخت والی د وجې دنجاست اجزاء نه داخلیږي إِلَّا قَلِيلًا مګر ډیر کم ثُمَّ يَجْتَذِبُهُ الْجِرْمُ إِذَا جَفَّ بیا چې کله اوچ شی نو د هغې جوثه وینه جذب کړی فَإِذَا زَالَ اوکله چې جوثه زائله شی زَالَ مَا قَامَ بِهِ نوکوم اجزاء چې دهغې سره قائم وو.هغه هم زائل شو.

حل اللغة* ① صلابت: اوچ، کلك

تشریح:- الدلیل الثانی العقلی للشیخین رحمهما الله:- هم عقلی دلیل دا هم دې چې موزه چونکه د څرمن نه جوړه شوې وی.نو په دې کې د نجاست اجزاء نه جذب کیږی.مګر ډیر لږ غوندې.بیا چې دا لږ هم اوچ شی.نود دې جوثه نجاست جذب کړی.او چې کله جوثه زائله شی.نود هغې د زائله کیدو سره د نجاست اجزاء هم زائله شی.

### د موزې نه د لوند نجاست پاکولو طریقه

وَفِي الرَّطْبِ لَا يَجُوزُ اوپه لوند نجاست کې جائز نه دې حَتَّى يَغْسِلَهُ (۱) تردې چې هغه اووینځی لِأَنَّ الْمَسْحَ بِالْأَرْضِ يُكَثِّرُهُ خکه چې لوند نجاست په مځکه باندې راښکلو سره نور هم زیاتیږی وَلَا يُطَهِّرُهُ او پاکوی ئې نه

حل اللغة* ① رطب: لوند ② یغسله، غسل غسلا(ض): پریمنځل

تشریح:- الروایتان في طهارة النجاسة الرطبة من الخف ◉ مسئله دا ده.① که موزې ته لوند نجاست اورسی.لکه خاشنړه ،غټ بول، وینه وغیره .او تراوسه پورې اوچ شوې نه وی.نو په مځکه پورې مګولو سره دا نه پاکیږی.بلکه ددې پاکول ضروری دی. خکه چې لوند نجاست په مځکه باندې اومګولی شی.نوهغه نور هم خوریږی.اوښکاره خبره ده.چې په دې باندې به موزه نوره هم پلیته شی.پاکیږی پرې نه

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اودامام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ إِذَا مَسَحَهُ بِالْأَرْضِ چې دا په مځکه باندې اومګی حَتَّى لَمْ يَبْقَ أَثَرُ النَّجَاسَةِ تردې چې دنجاست اثر پاتې نشی يَطْهُرُ نو پاکیږی

حل اللغة* ① لم یبق، بقی یبقی بقاءً(ض): پاته کیدل

تشریح:- دامام ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.چې د لوند نجاست په صورت کې چې هغه مځکه باندې اومګی.اواثر دنجاست زائله شی. نو موزه پاکیږی.ددې د وینځلو اړتیا نشته.

لِعُمُومِ الْبَلْوَى وَإِطْلَاقِ مَا يُرْوَى.دعموم بلوی او د حدیث داطلاق د امله وَعَلَيْهِ مَشَايِخُنَا رحمهم الله اوزموږ مشائخ رحمهم الله په دې قول باندې دی.

تشریح:- دلیله الاول ◉ خکه په دې کې عموم بلوی ده.یعنی په عامه توګه خلګ په دې کې اخته دې.کمپریمنځل ضروری اوګرخولې شی.نو په دې کې حرج دې.(اوحرج په دین کې مرفوع دې.ازمترجم)

دلیله الثانی ◉ دویمه خبر دا ده.چې حدیث «فليمسحهما بالأرض» مطلق دې.په دې کې د اوچ او لوند نجاست څه توپیر نشته.نوموزه به په مځکه باندې مګولو سره پاکیږی.که په هغې باندې لوند نجاست وی اوکه اوچ.زموږ د مشائخو هم دا قول دې.او په دې باندې فتوی ده.

### د موزې نه د لوند جوثه دار نجاست پاکولو طریقه

فَإِنْ أَصَابَهُ بَوْلٌ که موزې ته متیازې اورسیدلې فَيَبِسَ اواوچې شوې لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دی حَتَّى يَغْسِلَهُ تردې چې هغه اووینځی وَكَذَا كُلُّ اودا حکم دهر هغه شی دې مَا لَا جِرْمَ لَهُ چې دهغې جوثه نه وی كَالْخَمْرِ لکه

۱) القول الراجح هوهذا قول ابی حنیفة رحمه الله كذا فی فتح القدیر(۱\۱۷۲) والعنایة علی هامش الفتح (۱\۱۷۲) ومجمع الانهر(۱\٥۹) والخانیة (۱\۱۳) نقلا عن القول الراجح (۱\٤۷)۔



شراب لِأَنَّ الْأَجْزَاءَ تَتَشَرَّبُ فِيهِ خکه چې د نجاست اجزاء په هغې کې جذب شی وَلَا جَاذِبَ يَجْذِبُهَا اوڅه شی جذب کونکې نشته چې دغه اجزاء جذب کړی

حل اللغة* ① بول: متیازو ② یبس، یبسا(س): اوچیدل

تشریح:- الروایتان في طهارة النجاسة الرطبة العینیة من الخف ◉ مسئله دا ده.① که داسې نجاست موزې ته اورسی.چې د هغې جوثه نه وی.لکه متیازې اوشراب شو.نو په دې صورت کې ددې پاکې صرف په وینځلو سره حاصلیږی.د اوچید نه روسته په زمکې باندې مګولو سره نه حاصلیږی.خکه چې د نجاست اجزاء په موزه کې دننه جذب کیږی.اودلته داسې څه جوثه نشته.چې په اوچیدو باندې هغه د نجاست اجزاء جذب کړی.(اوبیا ددغه جوثې په لرې کاوه سره د نجاست اجزاء هم ختم شی.) بلکه د دغه جذب شوی اجزاؤ د لرې کاوه لپاره د موزې پریمنځل ضروری دی.

وَقِيلَ اوونیلی شوی دی مَا يَتَّصِلُ بِهِ مِنَ الرَّمْلِ وَالرَّمَادِ چې کومه شګه وغیره هغې سره اولګی جِرْمٌ لَهُ نوهم هغه ددې جوثه ده.

حل اللغة* ① یتصل، اتصل اتصالاً: ملاویدل ② رماد: ایره ③ رمل: ښګه

تشریح:- دامام ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.که موزې پورې متیازې اولګیدلې. اوبیا په دغې پورې شګه یابل داسې څه جوثه دار څیزاولګیدلو.اوبیا هغه اوچ شی.او په مځکه ئې اومګی.نو په دې سره موزه پاکیږی.په اوبو سره د وینځلو اړتیا نشته.شمس الائمه امام سرخسی رحمه الله فرمائیلی دی.چې هم دا قول صحیح دې.

### د نجاست نه د جامې پاکولو طریقه

وَالثَّوْبُ لَا يُجْزِي فِيهِ اود جامې په حق کې جائز نه دی إِلَّا الْغَسْلُ سوا د وینځلونه بل څه وَإِنْ يَبِسَ اګرچې نجاست اوچ وی لِأَنَّ الثَّوْبَ لِتَخَلْخُلِهِ خکه چې کالی کلك نه دی يَتَدَاخَلُهُ كَثِيرٌ مِنْ أَجْزَاءِ النَّجَاسَةِ نو ددې وجې د نجاست زیات اجزاء په هغې کې داخلیږی فَلَا يُخْرِجُهَا إِلَّا الْغَسْلُ اوهغه بغیر د وینځلو نه نه خارجیږی.

حل اللغة* ① یتداخله، تداخل تداخلاً: داخلیدل ② فلا یخرجها، اخراج، اخراجاً: راویستل

تشریح:- تطهیر الثوب من النجاسة بالغسل ◉ مسئله دا ده.که جامې ته نجاست اورسی .اګرچې هغه اوچ وی.نوبغیر دوینځلو نه‌کالی نه پاکیږی.دلیل دا دې.چې په‌کالی کې کلك والې نه وی.بلکه هغه راانغښتلې شی.نوخکه د نجاست زیات اجزاء په‌کالی کې داخلیږی.اود هغې د اجزاؤ د راویستلو لپاره په اوبو یا بل څه سره وینځل ضروری دی.په مځکه باندې مګل کافی نه دی.

### د منئ د محل د پاکولو طریقه

وَالْمَنِيُّ نَجِسٌ منی پلیته ده يَجِبُ غَسْلُهُ إِنْ كَانَ رَطْبًا چې لنده وی نو ددهپریمنځل ضرروری دی فَإِذَا جَفَّ عَلَى الثَّوْبِ او چې په‌کالی باندې اوچې شی أَجْزَأَ فِيهِ الْفَرْكُ نو په دې کې ګرول کافی دی

حل اللغة* ① نجس: ناکاك ② رطبا: لمده ③ جف جفافاً(ض) اوچیدل ④ فرک: رژول

تشریح:- نجاسة المنی عندالاحناف رحمهم الله ◉ د منیٔ په طهارت اونجاست کې اختلاف دې.① احناف عالمان رحمهم الله فرمائی.چې د سړی منی پلیته ده.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبی ﷺ لِعَائِشَةَ رضي الله عنها حضرت عائشې رضي الله عنها ته فرمائیلی وو فَاغْسِلِيهِ إِنْ كَانَ رَطْبًا که لنده وی.نودا اووینځه وَافْرُكِيهِ إِنْ كَانَ يَابِسًا (۱) اوکه اوچې وی.نودا اوګروه

۱) قال الزیلعی رحمه الله غریب وروی الطبرانی فی سننه (ای فی۱\۱۲٥) من حدیث ...عائشة رضي الله عنها قال کنت افرک المنی من ثوب رسول الله ﷺ اذا کان یابسا واغسله اذا کان رطبا (نصب:۲۷٤)۔

**تشريح: الدليل الاول للاحناف** ﷺ زموږ دليل دا دي چې رسول الله ﷺ حضرت عائشي ؓ ته فرمائيلي وو. «فاغسليه إن كان رطبا وافركيه إن كان يابسا» اودارقطني او مسند بزار داحديث داسي نقل كړي دي. «عن عائشة ؓ قالت كنت أفرك المنى من ثوب رسول الله ﷺ إن كان يابسا وأغسله إذا كان رطبا» حضرت عائشه ؓ فرمائي.ما به د رسول الله ﷺ د جامو نه منى ګروله.كه هغه به اوچې وه.او وينځله به مې كله چې به لنده وه.

**الدليل الثاني للاحناف** ﷺ زموږ د مذهب تائيد د حضرت عماربن ياسر ؓ د حديث نه هم كيږي. «ان النبي ﷺ مر على عماربن ياسر ؓ وهو يغسل ثوبه من النخامة فقال ﷺ ما نخامتك و دموع عينيك ، والماء الذى في ركوتك إلا سواء وإنما يغسل الثوب من خمس من البول والغائط والدم والمنى والقيء» يعني نبي ﷺ په حضرت عماربن ياسر ؓ باندي تيرشو.اوهغه ګرنګ وينځلو.نونبي ﷺ ورته اوفرمائيل:ستا ګرنګ، او ستا د سترګو اوښكي،او هغه اوبه چې ستا په لوټه كي دي.برابر دي. اوكالي خو د پنځو څيزونو نه وينځلي شي.دمتيازو او د غټو بولو او د وينې او د منۍ او د قى نه.په يو روايت كي د قى په ځائې د شرابو ذكر راغلي دي. بهرحال دا احاديث د منۍ په نجاست باندي دلالت كوي.

| |
|---|
| **وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ الله** اوامام شافعي رحمه الله فرمائي. **الْمَنِيُّ طَاهِرٌ** چې منى پاكه ده **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ** او دهغوى خلاف هغه روايت حجت دي **مَارَوَيْنَاهُ** كوم چې موږ روايت كړلو |

**طهارة منى الادمى ونجاسة منى الخنزيرعندالشافعي** رحمه الله ﷺ او امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د بنيادم منى پاكه ده. خود دوى خلاف هغه حديث حجت دي كوم چې موږ روايت كړي دي يعني د حضرت عائشي ؓ حديث مبارك كوم چې تير.

**الدليل الاول لطهارة المنى** ﷺ د منۍ د پاكوالى لپاره دامام شافعي رحمه الله دليل د حضرت ابن عباس ؓ حديث دي.چې «عن ابن عباس ؓ عن النبي ﷺ أنه سال عن المنى يصيب الثوب فقال ﷺ إنما هو بمنزلة النخاط أو البزاق وقال إنما يكفيك أن تمسحه بخرقة أو أذخرة» دحضرت ابن عباس ؓ نه روايت دي.چې دنبي ﷺ نه د منۍ په اړه كي پوښتنه اوشوه.(چې دا پاكه ده كه پليته؟ نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل: دا د ګرنګ (د پوزې ګندګي) يا د لاړو په څير ده.(نولكه څنګه چې كنرنګ او ناړې (لياړې) پاكې دي.داسې منى هم پاكه ده.ازمترجم) او ستا لپاره دومره كافي ده.چې دا په كپړه يا په وښو باندي اومګې.په دې حديث كي د منۍ تشبيه د ګرنګ سره وركړې شوېده.او ګرنګ پاك دي.نو منى به هم پاكه وي.

**الجوابان منه** ﷺ د دې نه ځواب دا دې.① چې هغه حديث موقوف دې.اودا قانون دې.چې حديث موقوف د حديث مرفوع كوم چې د حضرت عائشي ؓ او عماربن ياسر ؓ حديثونه دي.دهغې مقابله نشي كولې.② دوهم ځواب دا دې چې صاحب د عنايه ليكلي دي.چې په حديث دابن عباس ؓ كي د منۍ تشبيه د ګرنګ او لاړو سره د نجاست د وجې نه ده وركړې شوې.بلكه د ټينګ والى او قلت تداخل د وجې تشبيه وركړې شوې ده. يعني لكه څنګه چې په ګرنګ كي ځليښت والى وي.دغه ډول په منۍ كي هم وي.اولكه څنګه چې ګرنګ په كالى كي ډير كم نفوذ كوي.دغه ډول منى هم كم نفوذ كوي.نود دې احتمال په وجه ترې د منۍ طهارت نه ثابتيږي.

**الدليل الثاني لطهارة المنى** ﷺ دغه ډول د حضرت عائشې ؓ نه روايت دې.فرمائي. «كنت أفرك المنى من ثوب رسول الله ﷺ وهو يصلى» يعني ما به د نبي ﷺ د جامو نه منى ګروله.اونبي ﷺ به په لمانځه كي بوخت وو. د دې حديث نه هم معلومه شوه.چې منى پاكه ده.ګني چې د منۍ جامې نې اغوستې وې.نوپه لمانځه پيل كول جائز نه وو.

**الجواب منه** ﷺ د دې نه ځواب دا دې.چې په حديث كي د «وهو يصلى» په ځائې د «فيصلى» لفظ دې. نو اوس معنى دا شوه.چې حضرت عائشه ؓ فرمائي.مابه د نبي ﷺ د جامې نه منى اوګروله.نونبي ﷺ به په هغې كي لمونځ كولو.نواوس د دې حديث نه دا نه لازميږي.چې نبي ﷺ به په دغه جامو كي لمونځ كولو.كومې چې



به په منۍ ګنده وې.

**الدليل الثالث العقلى لطهارة المنى** ﷺ عقلي دليل دا دې.چې منى د انسان د زيږيدل مبدا ده.نودا به د خاورې په څير پاكه وي.ځكه چې انسانانو كي پيغمبران عليهم السلام هم دي.اود پيغمبرانو د پليت شي نه پيدا كيدل محال دي.

**الجواب منه** ﷺ دامام شافعي رحمه الله د عقلي دليل نه ځواب دا دې.چې موږ دا نه منو.چې انسان براه راست د منۍ نه پيدا شوې دې.بلكه د منۍ نه روسته په ده باندې مختلف ادوار تيريږي.لكه اول منى ذخ بيا چكه وينه شي.بيا د غوښې بوټۍ شي.نو هله ترې مكرم او مشرف انسان جوړ شي.

| |
|---|
| **وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او نبي ﷺ فرمائيلي دي **إِنَّمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ مِنْ خَمْسٍ** كالى به د پنځو څيزونو نه وينځلي شي **وَذَكَرَ مِنْهَا الْمَنِيَّ**(1) او په هغې كي ئې منى هم ذكر كړې ده |

**تشريح:- الدليل الثاني للاحناف** ﷺ زموږ د مذهب تائيد د حضرت عماربن ياسر ؓ د حديث نه هم كيږي. «ان النبي ﷺ مر على عماربن ياسر ؓ وهو يغسل ثوبه من النخامة فقال ﷺ ما نخامتك و دموع عينيك ، والماء الذى في ركوتك إلا سواء وإنما يغسل الثوب من خمس من البول والغائط والدم والمنى والقيء» يعني نبي ﷺ په حضرت عماربن ياسر ؓ باندې تيرشو.اوهغه ګرنګ وينځلو.نونبي ﷺ ورته اوفرمائيل:ستا ګرنګ، او ستا د سترګو اوښكې،او هغه اوبه چې ستا په لوټه كي دي.برابر دي. اوكالي خو د پنځو څيزونو نه وينځلي شي.دمتيازو او د غټو بولواو د وينې او د منۍ او د قى نه.په يو روايت كي د قى په ځائې د شرابو ذكر راغلي دي. بهرحال دا احاديث د منۍ په نجاست باندې دلالت كوي.

| |
|---|
| **وَلَوْ أَصَابَ الْبَدَنَ** اوكه منى بدن پورې اولګى **قَالَ مَشَايِخُنَا** ﷺ **يَطْهُرُ بِالْفَرْكِ**(2) نو زموږ د مشائخو ﷺ په نيز هغه هم په ګرولو سره پاكيږي **لِأَنَّ الْبَلْوَى فِيهِ أَشَدُّ** ځكه چې په دې كي اخته كيدل زيات دي |

**حل اللغة:** ① اصاب اصابة: رسيدل ② اشد: زيات سخت

**تشريح:- الروايتان في تطهير البدن من المنى** ﷺ صاحب دهدايه فرمائي.① كه منى په بدن باندې اولګى.نوپه دې صورت كي هم د ماوراء النهر دعالمانو ﷺ په نيز منى په ګرولو پاكيږي.ځكه چې منى خو د جامې نه جلا كيداې شي.او د بدن نه جلا كيږي نه

| |
|---|
| **وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې **أَنَّهُ لَا يَطْهُرُ** چې نه پاكيږي **إِلَّا بِالْغَسْلِ** مګر په وينځلو سره **لِأَنَّ حَرَارَةَ الْبَدَنِ جَاذِبَةٌ** ځكه چې د بدن ګرموالي جاذب وى **فَلَا يَعُودُ إِلَى الْجِرْمِ** نوهغه جوثې ارخ ته واروسته نه راوځي **وَالْبَدَنُ لَا يُمْكِنُ فَرْكُهُ** او د بدن ګرول ممكن نه دي. |

**تشريح:-** او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا هم دې.چې منى په بدن پورې اوچې شي.نو په ګرولو باندې نه پاكيږي.بلكه دهغې پريمنځل ضروري دي.اودليل دا وائي. چې د بدن ګرمي منى جذب كوي.او د جذب كاوه نه روسته د منۍ اثر د منۍ جوثې ته نه واروسته كيږي.يعني يو ځل چې بدن دغه نجاست جذب كړي.نود بدن د حرارت د وجې هغه منى بيا نه رابهرته كيږي.چې د منۍ جوثه ئې جذب كړي.او په ګرولو سره د جوثې د زوال سره اثر د نجاست هم زائل شي.داسې نه ده. او دبدن ګرول هم ممكن نه دي.نوپريمنځل ئې ضروري

(1) من حديث عمار ؓ اخرجه الدارقطني في سننه (۱۲۷\۱) والبيهقي في السنن الكبرى معلقا(۲۲\۱)_

(2) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا في الدرالمختار(۲۹\۱) والبحرالرائق (۳۸۹\۱) وطحطاوى (۸۹\۱) والهندية (۴۴\۱) نقلا عن القول الراجح (۴۹\۱)-ثم قال بعنوان ،،القول المتوسط،، قال ابن الهمام رحمه الله انه كان المنى غليظا فجف يطهر بالفرك وان كان رقيقا لا يطهر پالفرک ثم قال المفتى غلام قادر مدظله ،،وقول محمد رحمه الله اليق بهذا الزمان لان المنى فى الزمان يكون رقيقا لا يزيل الا بالغسل واما الفرک فانما يفيد فى شئ غليظ لا رقيق )-

شو.

## د توري وغيره د پاكولو طريقه

وَالنَّجَاسَةُ إِذَا أَصَابَتْ اونجاست چي كله اولګی الْمِرْآةَ شيشي پوري أَوِ السَّيْفَ او په توري پوري اكْتُفِيَ بِمَسْحِهِمَا نو ددې په مسح به اكتفا كولاې شی لِأَنَّهُ لَا تَتَدَاخَلُهُ النَّجَاسَةُ ځكه چي نجاست په دې ځيزونوكي دننه نه ورځی وَمَا عَلَى ظَاهِرِهِ اوچي څه د هغي سربيره وی يَزُولُ بِالْمَسْحِ هغه په مسح سره زائله كيږي

**حل اللغة**① مراة: هنداره (شيشه) ② سيف جمع سيوف: توره ③ يزول، زال زوالاً (ن): زائل كيدل

**تشريح:- تطهير السيف وغيره** مسئله دا ده.كه نجاست شيشي يا تيرة توره پوري يا په چاره پوري اولګی.نودا شيان (ځيزونه ) په مځكه پوري راښكلو سره پاكيږي.په اوبو وغيره پريمنځل شرط نه دې.امام مالك ددې قائل دې.دليل دا دې.چي دا شيان (ځيزونه ) دننه نه ورځی.نود دې د دننه نه د راويستلو څه ارتيا نشته.اوكه پاته شو هغه نجاست كوم چي سربيره وی.نوهغه په مګلو سره زائله كيږي.نوپه اوبوباندې دهغې د وينځلو ارتيا نشته.البته كه توره وغيره نقش داره وی.يا زيږه وی.يا په هغې پوري څه خيرې وی.اونجاست ورپوري اولګی.نو د وينځلو نه بغير نه پاكيږي.

## د زمكي دطهارت طريقه

وَإِنْ أَصَابَتِ الْأَرْضَ نَجَاسَةٌ اوكه نجاست په مځكه پوري اولګيدلو فَجَفَّتْ بِالشَّمْسِ او بيا په نمرباندې اوچ شو وَذَهَبَ أَثَرُهَا واثر ئې هم ختم شو جَازَتِ الصَّلَاةُ عَلَى مَكَانِهَا نو د دغه نجاست په ځائې لمونځ كول جائز دي

**حل اللغة**① ذهب ذهاباً(ف): تلل ② اثر: نښانه ③ مكان: ځاى

**تشريح:- الاختلاف في جواز الصلاة بالارض الجافة من النجاسة** ① كه په مځكه پوري نجاست اولګی.اوبيا هغه اوچې شي.په لمر يا په اور يا په هوا يا په بل ځيز.اود پليتئ اثر رنګ بوئ وغيره هم ختم شي.نوپه دغه ځائې باندې لمونځ جائز دي.البته تيمم پرې جائزنه دې.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ اوامام زفر او امام شافعی فرمايي لَا تَجُوزُ چي جائز نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الْمُزِيلُ ځكه چي څه زائل كونكې شی نه دې موجود شوې

**حل اللغة**① مزيل: زائل كونكې

**تشريح:-** امام زفر اوامام شافعی فرمائی.چي په دې مځكه لمونځ هم جائزنه دې.

**دليلهما** دامام زفر اوامام شافعی دليل دا دې.چي دا مځكه يقينی طور پليته شوې ده.او د پليتئ لرې كونكې څه شی موجود شوې نه دې. نو ځكه دا مځكه پليته ده.او په دې باندې لمونځ جائزنه دې.هم دا وجه ده.چي په دې باندې تيمم په اتفاق سره جائزنه دې.

وَهَذَا لَا يَجُوزُ التَّيَمُّمُ بِهِ.او ددې وجي ترې تيمم جائزنه دي

**تشريح:- دليل جمهورالاحناف** اوزموږ دليل د رسول الله قول دې.چي «ذكاة الأرض يبسها» يعنی د زمكي پاكوالې د دې اوچوالې دې.او ددې هم معنی حديث داهم دې.چي «أيما الأرض جفت فقد طهرت» يعنی كومه مځكه چي اوچې شوه. نو هغه پاكه شوه.



وَلَنَا اوزموږ دليل دا دې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چي نبی فرمائيلی دی ذَكَاةُ الْأَرْضِ يُبْسُهَا(۱) د زمكي پاكوالې ددې وچوالې دې

**حل اللغة**① ذكاة: پاكی

**تشريح:- الجواب من دليل زفروالشافعی** دامام زفر اوامام شافعی د دليل نه ځواب دا دې.چي دا خبره غلطه ده.چي د نجاست زائل كونكې نه دې موجود شوې.بلكه د نجاست زائله كونكې موجود دې.يعنی حرارت اوګرموالې.لكه څنګه چي په اور باندې پاكوالې راځی.دغه ډول په حرارت باندې هم راځی.كه حرارت كم وی اوكه زيات وی.(بلكه په موجوده وخت كي خو سائنس دا خبره ثابته كړې ده.كه دنمر دا تپتش او ګرموالې نه وو.نو په مخ د زمكي به انسان د ډيرې بدبوئی د وجې ژوندې نشو پاتې كيدې.دا خو په لمر كي د نجاست زائله كاوه قوت الله تعالی ايښودې دې.)

وَأَمَّا لَا يَجُوزُ التَّيَمُّمُ بِهِ اوتيمم ځكه جائز نه دي لِأَنَّ طَهَارَةَ الصَّعِيدِ ثَبَتَتْ شَرْطًا بِنَصِّ الْكِتَابِ چي د خاورې دطهارت شرط د نص د كتاب سره ثابت دي فَلَا تَتَأَدَّى نو نه به ادا كيږی بِمَا ثَبَتَ بِالْحَدِيثِ په هغه سره چي په حديث سره ثابت شوې وی

**تشريح:- الجواب من قياس زفر** اوپه «انما لا يجوز التيمم» سره د امام زفر د قياس نه ځواب كوی.حاصل د ځواب دا دې.چي د تيمم لپاره د خاورې پاكوالې د قرآن پاك په نص سره ثابت دې.چي ﴿فتيمموا صعيدا طيبا﴾ او كوم شی چي په نص سره ثابت وی.هغه قطعی الثبوت وی.نودا ضروری ده.چي د تيمم لپاره دې خاوره پاكه وی.اودلته كي د زمكي طهارت ثابت شوې دې.په خبر واحد سره چي «ذكاة الأرض يبسها» دې.اوكوم حكم چي په خبر واحد سره ثابت شی.نو هغه غير قطعی يعنی ظنی وی.نو تيمم چي دهغې لپاره دخاورې طهارت قطعی الثبوت دې.په هغه خاورې سره نه ثابتيږی.چي د هغې طهارت ظنی الثبوت وی.(اوپاته لمونځ خو پرې ځكه جائز دې.چي د لمانځه لپاره د ځائې طهارت اګرچي د قرآن پاك ددې آيت نه ثابت دې.چي ،،وثيابك فطهر،، ليكن په دلالة النص سره .لكه وړاندې چي تير شوی دی.او د تيمم لپاره د زمكي طهارت په عبارت النص سره ثابت دې.او دلالة النص د عبارت النص په ځير نشی كيدې.)

## په نجاست غليظه كي د معاف شوی مقدار حد

وَقَدْرُ الدِّرْهَمِ وَمَا دُونَهُ مِنَ النَّجِسِ الْمُغَلَّظِ كَالدَّمِ وَالْبَوْلِ وَالْخَمْرِ وَخُرْءِ الدَّجَاجِ وَبَوْلِ الْحِمَارِ نجاست غليظه لكه متيازې وينه شراب ، دچركې چتلی او د خر متيازې د يو درهم په مقدار يا ددې نه كم (معاف دی) جَازَتِ الصَّلَاةُ مَعَهُ دې سره لمونځ جائز دې وَإِنْ زَادَ اوكه ددې نه زيات وی لَمْ تَجُزْ نو جائزنه دې

**حل اللغة**① قدر: اندازه مقدار ② دون: كم ③ بول: بولې ④ خمر: شراب ⑤ خرء: چتلې ⑥ دجاج: چركه

**تشريح:- الخلاف في تعريف النجاسة الغليظة والخفيفة** د نجاست دوې (دوه) قسمونه دی.نجاست غليظه او نجاست خفيفه .ددی په تعريف كي د امام ابوحنيفه او صاحبينو اختلاف دې.① دامام ابوحنيفه په نيز نجاست غليظه هغه دې.چي دهغې ثبوت په داسې قطعی نص سره شوې وی.چي دهغې معارض بل نص دطهارت ثابتونكې نه وی.اوكه دوې (دوه) نصين په خپل مينځ كي متعارض وی.ديو نه طهارت

۱) قال الزيلعی غريب واخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه (ای فی ۱۱\۴) عن ابی جعفرمحمد بن علی قال زكاة الارض يبسها (نصب:۱\۲۷۷) وخرجت لاثبات هذه المسئلة فی تاليفی سنن الصلاة فی فقه الاحناف حديث ابن عمر كانت الكلاب تبول وتقبل وتدبرفی المسجد فلم يكونوا يرشون شيا من ذلک وعزوته الی ابی داود فی الطهارة باب طهورالارض اذا يبست رقم ۳۲۵)_

ثابتيږي.او دبل نه نجاست.نودا به نجاست خفيفه وی.② اود صاحبينو رحمهما الله په نيز نجاست غليظه هغه دي.چې د هغې په نجاست باندې اجماع واقع شوې وی. او نجاست خفيفه هغه دي.چې په هغې کې عالمانو رحمهم الله اختلاف کړې وی.

**ثمرة الاختلاف**⊛ثمره د اختلاف په خاشنړو کې څرګنديږي.څکه چې خاشنړه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نجاست غليظه دي.څکه چې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي.چې ليلة الجن کې دوی نبی ﷺ ته د قضاء حاجت لپاره دوې (دوه) کاڼړی اوخاشنړه راوړل.نو نبی ﷺ ترې کاڼړی واخستل.او خاشنړه ئې واروسته کړلو .اوددې سره بل داسې معارض نص نشته.چې دهغې نه د خاشنړو طهارت ثابتيږی.② اود صاحبينو رحمهما الله په نيز خاشنړه نجاست خفيفه دي.څکه چې دامام مالك رحمه الله په نيز خاشنړه پاك دی.

**القدر المعفو في النجاسة الغليظة**⊛ د دې تمهيد نه روسته د متن وضاحت ته راشه چې د مصنف رحمه الله ددې عبارت نه مقصد دا دې.چې د نجاست څومره مقدار معاف دې.او څومره معاف نه دې.نوفرمائی.چې نجاست غليظه (لکه بهيدونکې وينه متيازې، شراب، د چرګې چټلې او د خر متيازې) په صورت کې د يودرهم هومره مقدار معاف دې.يا ددې نه کم.که د دومره مقدار نجاست سره ئې لمونځ اوکړلو.نولمونځ ئې جائز دې.(خودا جواز په هغه صورت کې دې.چې د اول نه ده ته پته نه وی.دلمانځه نه روسته ورته معلومه شی.چې زما په کالی کې خو دومره ځائې نجس وو.اوکه د اول نه کالی کې نجاست وينی.نو هغه به اول وينځی.او بيا به لمونځ کوی) برابره ده که دا مقدار مرداری په جامې پورې لګيدلې وی.اوکه په بدن پورې.اوکه د يودرهم نه زياته وی.نوهغه معاف نه ده.اودهغې سره لمونځ جائزنه دی.

**وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِي** رحمهما الله او امام زفر رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمايي **قَلِيلُ النَّجَاسَةِ وَكَثِيرُهَا سَوَاءٌ** چې د نجاست کموالې او زياتوالې دواړه يو شان دی

**تشريح:- خلاف زفر والشافعي** رحمهما الله⊛اودامام زفر او امام شافعی رحمهما الله په نيز په قليل او کثير کې څه توپير نشته.دواړه برابر دی.که لږ وی اوکه ډير وی.لمونځ ور سره جائز نه دې.

**لِأَنَّ النَّصَّ الْمُوجِبَ لِلتَّطْهِيرِ** څکه چې نص کوم چې پاکونکې دې. **لَمْ يُفَصِّلْ** هغې (په قليل او کثير کې څه تفصيل نه دې کړې

**تشريح:-** د امام زفر اوامام شافعی رحمهما الله دليل دا دې.چې نص قرآنی چې دالله تعالی دا قول دې.﴿وثيابك فطهر﴾ په دې کې د لږ او ډير تفصيل نشته.بلکه د طهارت حاصولو حکم ئې ورکړې دې.نود کم او زيات پاکول به ضروری وی.

**وَلَنَا** اوزموږ دليل دا دې **أَنَّ الْقَلِيلَ** چې کم نجاست داسې شی دې **لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ** چې ددې نه ځان ژغورل (ځان ساتل) ګران دی **فَيُجْعَلُ عَفْوًا** نودا معاف کول پکار دی

**حل اللغة**° ① عفواً: معافی

**تشريح:- دليل جمهور الاحناف** ⊛ اوزموږ دليل دا دې.چې لږ نجاست داسې شی دې.چې ددې نه بچ کيدل ممکن نه دی.ګورئ نه چې مچان په ګندګئ باندې کينی.او بيا زموږ په جامو باندې کينی.دغه ډول د مچانو د وينې نه ځان ژغورل (ځان ساتل) هم ګران دی. نوهرکله چې د لږ مقدار نه ځان بچ کول ممکن نه دی.نودا معاف شو.څکه دا اړتيا دې.اوپه دلائلو د شريعت کې د اړتيا ځايونه مستثنی دی.

**وَقَدَّرْنَاهُ بِقَدْرِ الدِّرْهَمِ** او موږ په يو درهم پورې ددې اندازه اوکړله **أَخْذًا عَنْ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَاءِ** د استنجاء دځائې نه په اخستلو سره.

**حل اللغة**° ① قدرناه، قدر تقديراً: مقررول اندازه لګول

**تشريح:- تقدير الكثير بالدرهم ووجهه**⊛پاته شوه دا خبره چې د کم او زيات مقدار معيار څه څيزدې.نوزموږ د



عالمانو په نيز د يو درهم په مقدار باندې کم دې.او ددې نه زيات مقدر زيات دې.اودا اندازه موږ د استنجاء په ځائې باندې قياس کړې دې. څکه چې د استنجاء ځائې په اجماع سره معاف دې.(يعنی که سړې په لوټه باندې استنجاء اوکړی.نوپه لوټه باندې مخرج بيخی نه پاکيږی.ليکن ددې باوجود که سړې په اوبو استنجاء اونکړی.او لمونځ اوکړی.نو لمونځ جائز دې. حالانکه په مخرج کې به خامخا څه چټلې وی .نومعلومه شوه.چې دومره کم مقدار معاف دې.) يعنی ځائې د استنجاء معاف دې.نو موږ په دې باندې قياس اوکړلو.اوپه دومره مقدار کې مو نجاست معاف اوګرځولو.

**ثُمَّ يُرْوَى اعْتِبَارُ الدِّرْهَمِ مِنْ حَيْثُ الْمِسَاحَةِ** او بيا د درهم مقدار د مساحت په اعتبار سره مروی دې **وَهُوَ قَدْرُ عَرْضِ الْكَفِّ فِي الصَّحِيحِ** اودا د صحيح قول په اعتبار سره د تلی د پلنوالی د مقدار په برابری دې

**حل اللغة**° ① عرض: پلنوالې ② كف: تلې

**تشريح:- الروايتان في نوعية قدر الدرهم**⊛بيا د امام محمد رحمه الله نه د يو درهم په تقدير کې دوې (دوه) روايتونه دی. يو روايت د مساحت دې.يعنی چې دلاس د تلی په پلنوالی باندې يعنی کله چې سړې لاس نيغ اونيسی.او په تلی کې څومره اوبه اودريږی.نو دغه مقدار معاف دې.

**وَيُرْوَى مِنْ حَيْثُ الْوَزْنِ** اود وزن په اعتبار سره روايت کړې شوې دې **وَهُوَ الدِّرْهَمُ الْكَبِيرُ الْمِثْقَالُ** اوهغه درهم غټ مثقال دې **وَهُوَ مَا يَبْلُغُ وَزْنُهُ مِثْقَالًا** اوهغه دا چې دهغې وزن يو مثقال ته اورسی

**تشريح:-** بل روايت دا دې.چې د درهم مقدار د وزن په اعتبار سره دې.يعنی د درهم نه مراد دا دې.چې د هغې وزن د يو درهم د وزن برابر وی.

**وَقِيلَ فِي التَّوْفِيقِ بَيْنَهُمَا** اوپه دې دواړو رواياتوکې تطبيق داسې کړې شوې دې **إِنَّ الْأُولَى فِي الرَّقِيقِ** چې اول په نری نجاست کې دې **وَالثَّانِيَةَ فِي الْكَثِيفِ** او دوهم په تينګ نجاست کې دې

**تشريح:- وجه التوفيق بين الروايتين**⊛فقيه ابوجعفر رحمه الله فرمانيلی دی.چې په دواړو قولينو کې تطبيق داسې کيدائې شی.چې د مساحت اعتبار يعنی د يو درهم په مساحت باندې چې مرداری وی.نودا به د نرمې پليتئ سره اولګوی.(لکه متيازې شوې.) اود وزن د اعتبار روايت به د هغه نجاست سره اولګوی.چې هغه تينګ وی.(لکه غټ بول شو.) نوکه د سړی متيازې وی.نوهغه به د مساحت په اعتبار سره د يو درهم په اندازه معاف وی.اوددې نه زياتی به معاف نه وی.اوکه غټ بول وی.نود وزن په اعتبار سره چې د يو درهم برابر وی.نوهغه معاف دی. او د دې نه زياتی معاف نه دی.

**وَإِنَّمَا كَانَتْ نَجَاسَةُ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ مُغَلَّظَةً** اوددې څيزونو نجاست غليظه ددې وجې دې **لِأَنَّهَا ثَبَتَتْ بِدَلِيلٍ مَقْطُوعٍ بِهِ** چې ددې نجاست په دليل قطعی سره ثابت دې.

**تشريح:- تغليظ النجاسات المذكورة في المتن**⊛صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چې په متن کې چې څومره شيان (څيزونه ) ذکر شوی دی.دا واړه نجاست غليظه دی.څکه چې ددې څيزونو نجاست په دليل قطعی سره ثابت دې.اود طهارت معارض نص ور سره هم نشته.

**د نجاست خفيفه د معاف شوی مقدار بيان**

**وَإِنْ كَانَتْ مُخَفَّفَةً** اوکه نجاست خيفيفه وی **كَبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ** لکه د ماکول اللحم ځناورو متيازې شوې **جَازَتِ الصَّلَاةُ مَعَهُ** نودې سره لمونځ جائزدې **حَتَّى يَبْلُغَ رُبُعَ الثَّوْبِ** تردې چې څلورمې حصې ته اورسی **يُرْوَى ذَلِكَ عَنْ**

أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) دا دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت شوې دي

**حل اللغة:** ① **مخففة**: سپك ② **يوكل**، اكل اكلاً (ن) خوراك ③ **لحم**: غوښه ④ **يبلغ**، بلغ بلوغاً (ن): رسيدل ⑤ **ربع**: څلورمه

**تشريح:- الربع في النجاسة الخفيفة غيرمعفو عنه**۞ په دې عبارت كې د نجاست خفيفه دهغه مقدار بيان دې چې معاف وي.نوفرمائي.چې نجاست خفيفه د جامې د څلورمې نه كمې حصې پورې معاف دې.لكه د ماكول اللحم څناور متيازې شوې . او د څلورمې حصې د مقدارپه برابرى معاف نه دې.يعنى كه په كرم باندې نجاست خفيفه د جامې د څلورمې حصې نه كم لګيدلې وي.نود هغې سره لمونځ جائز دې.او كه ددې برابر يا ددې نه زيات لګيدلې وي.نو دهغې سره لمونځ جائز نه دې.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.

لِأَنَّ التَّقْدِيرَ فِيهِ بِالْكَثِيرِ الْفَاحِشِ ځكه چې د نجاست خفيفه په اره كې تقدير دكثيرفاحش پورې دې

**تشريح:- دليله**۞دليل دا دې.چې د نجاست خفيفه په اره كې د كثيرفاحش سره اندازه كړې شوې ده.يعنى كه نجاست خفيفه زيات اولګى.نولمونځ ور سره جائز نه دې. او په ډيرو احكامو كې څلورمه برخه د كل برابر ده.لكه د سر څلورمه برخه مسح د واړه سر دمسح برابر ده.او كه په عورت كې د څلورمې حصې ښكاره كيدل د كل عورت د ښكاره كيدو برابر دى.اودغه ډول په حالت د احرام كې د څلورمې حصې سر خرئيل د واړه سره برابر ګرځولې شوې دى.حاصل دا دې.چې څلورمه برخه دكل قائم مقام ده.او د كل نجاست خفيفه نه فاحش كثير ثابتيږى.(يعنى چې څلورمه برخه پليته وي.نودا داسې ده.لكه چې توله پليته ده.) اوچونكه فاحش كثير په نجاست خفيفه كې معاف نه دې.نوځكه موږ وايو.كه څلورمې حصې ته نجاست اورسيدلو.نوددې سره لمونځ جائزنه دې.

وَالرُّبُعُ مُلْحَقٌ بِالْكُلِّ فِي حَقِّ بَعْضِ الْأَحْكَامِ او په ځينې احكامو كې څلورمه برخه د كل سره ملحقه كولاې شى وَعَنْهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا روايت هم شوې دې رُبُعُ أَدْنَى ثَوْبٍ تَجُوزُ فِيهِ الصَّلَاةُ چې معمولى كالى چې لمونځ په كې جائز كيږى د هغې څلورمه برخه (مراد ده) كَالْمِئْزَرِ لكه لنګ شو وَقِيلَ اووئيلى شوى دى رُبُعُ الْمَوْضِعِ چې دهغه ځائې څلورمه برخه مراد ده الَّذِي أَصَابَهُ چې نجاست ورپورې لګيدلې وي كَالذَّيْلِ لكه لمن وَالدِّخْرِيصِ او كالر وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او دامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې شِبْرٌ فِي شِبْرٍ چې يو لويشت اوږد او يولويشت پلن

**تشريح:- الاقوال الاربعة في المراد من الربع** ۞پاته شوه دا خبره چې څلورمه برخه د څه مراد ده.نوپه دې اړه كې د فقهاؤ اختلاف دې.① دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا نقل دې.چې د واړه بدن څلورمه برخه مراد ده.اګرچه كالى لوې وى.امام ابن الهمام رحمه الله فرمائيلى دى.چې دا قول احسن دې.② اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم نقل دى.چې د ادنى مايجوزبه الصلاة څلورمه برخه مراد ده.يعنى چې كم ازكم دومره كالى وى.چې په هغې كې لمونځ جائز كيږى.نو دهغې څلورمه برخه مراد ده.لكه لنګ. ③اوځينې عالمان فرمائى.چې د جامې په كومه برخه پورې نجاست لګيدلې وى.دهغې څلورمه برخه مراد ده.لكه لمن يا كالر،نوكه د لمن څلورمې حصې پورې نجاست اولګى.نودهغې سره لمونځ جائز نه دې.④ اود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.كه نجاست يو لويشت اوږد او يو لويشت پلن وى.نودا كثير فاحش دې.د دې مقدار سره لمونځ جائز نه دې.اوكه ددې نه كم وى.نوجائز دې.هغه معاف دې.

(١) القول الراجح هو رواية ربع العضو المصاب ان كان بدنا وربع الطرف المصاب ان كان ثوبا كذا فى ردالمحتار والدرالمختار(٢٣٥\١) (٢٣٥\١) وبدائع الصنائع (٨٠\١) والهندية (٤٦\١) نقلا عن القول الراجح (٥٠\١)-



وَأَمَّا كَانَتْ مُخَفَّفَةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمه الله اود ماكول اللحم متيازې.د شيخينو رحمهما الله په نيز خفيفه دى لِمَكَانِ الْإِخْتِلَافِ فِي نَجَاسَتِهِ ددې په نجاست كې د اختلاف د امله

**تشريح:- كون ماكول اللحم نجاسة خفيفة على اختلاف الاصلين**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.دماكول اللحم څناورو متيازې د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمه الله دواړو په نيز نجاست خفيفه دې.دامام صاحب په نيز خو ددې وجې چې د ماكول اللحم څناورو د متيازو په حكم كې نصوص متعارض دى.حديث د عرنيينو دلالت كوى.ددې په طهارت باندې (ځكه چې په هغې كې نبى ﷺ دغه عرنيينو خلګو ته د اوښانود متيازو څښلو حكم كړې وو.او دكوم شى څښل چې جائز وى.هغه پاك وى.) او حديث چې «استنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه» يعنى د متازونه ځان بچ ساتى؛ځكه چې اكثر عذاب قبر ددې د وجې وى.دا حديث دلالت كوى.چې مطلقا متيازې پليتې.دى.(كه دماكول اللحم څناور وى اوكه د غيرماكول اللحم څناور وى.)

أَوْ لِتَعَارُضِ النَّصَّيْنِ يا په دوو نصينو كې د تعارض د وجه عَلَى اخْتِلَافِ الْأَصْلَيْنِ د دواړو اصلونو د اختلاف په وجه.

**تشريح:-** دامام ابويوسف رحمه الله (اودغه ډول د امام محمد رحمه الله په نيز هم لكه چې وړاندې تير شوى دى) چې د ماكول اللحم د متيازو په اړه كې مجتهدين مختلف دى.امام محمد رحمه الله (دغه ډول امام مالك رحمه الله) د طهارت قائل دى.اونور حضرات د نجاست قائلين دى.ځكه د دوى متيازې نجاست خفيفه دې.(يعنى بول د مايوكل لحمه نجاست خفيفه دې.ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دنجاست خفيفه د ثبوت علت دا دې.چې په هغې كې نصين متعارضين دى.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز دنجاست خفيفه لپاره علت دا دې.چې په هغې كې د مجتهدينو په مينځ كې اختلاف وى.نودا به خفيفه وى.اودا دواړه اصول په بول د مايوكل لحمه كې موجود دى.نوځكه د ابوحنيفه او صاحبينو رحمهما الله په نيز بول د مايوكل لحمه نجاست خفيفه دې.

**دخاشنړو حكم**

وَإِذَا أَصَابَ الثَّوْبَ مِنَ الرَّوْثِ اوكله چې اورسى جامې ته خاشنړه أَوْ مِنْ أَخْثَاءِ الْبَقَرِ يا د غوا سوتې أَكْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ د يودرهم د مقدار نه زيات لَمْ تَجُزِ الصَّلَاةُ فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې كې لمونځ جائز نه دي

**حل اللغة:** ① **اصاب اصابة**: رسيدل ② **روث**: خړانشه ③ **اخثاء**: سوته

**تشريح:- خفة الروث وغلظته**۞ مسئله دا ده.كه جامې پورې خاشنړه يا د غوا سوتې د يودرهم نه زيات مقدار باندې اولګى.① نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دغه كالى كې لمونځ جائز نه دې.

لِأَنَّ النَّصَّ الْوَارِدَ فِي نَجَاسَتِهِ ځكه چې د خاشنړو په نجاست كې چې كوم نص راغلې دې وَهُوَ هغه دا دې مَا رُوِيَ چې روايت شوې دې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَمَى بِالرَّوْثَةِ چې نبى ﷺ خاشنړه اوغورځولو وَقَالَ او وې فرمائيل هَذَا رِجْسٌ أَوْ رِكْسٌ چې دا رجس يا ركس يعنى پليت دى لَمْ يُعَارِضْهُ غَيْرُهُ اوددې معارض څه بل نص نشته وَبِهَذَا يَثْبُتُ التَّغْلِيظُ عِنْدَهُ او په دې سره د امام ابوحنيفه په نيز نجاست غليظه ثابتيږى

**تشريح:- دليله**۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې خاشنړه نجاست غليظه دې.ځكه چې ددې په نجاست باندې حديث موجود دې.دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې.چې نبى ﷺ راته اوفرمائيل چې درې كانړى راوړه.ما كانړى اوكتل.ليكن دوې (دوه) كانړى راته ملاو شو.نو دريم مې دخاشنړو يوه ټكړه راوړله.نو نبى ﷺ دوې (دوه) كانړى واخستل.او خاشنړه ئې اوغورځولو.اودا ئې ووېل : چې دا پليت دى.نوددې حديث نه د خاشنړو نجاست ثابت شوې. او چونكه بل نص داسې نشته.چې دهغې نه ددې طهارت ثابت شى.نودا

نجاست غليظه شو.ځکه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د عدم تعارض د نصينو نه نجاست غليظه ثابتيږي . نو دا دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نجاست غليظه دې.اوپه نجاست کي غليظه کي د يودرهم نه زيات مقدار معاف نه دي.نوځکه ور سره لمونځ جائز نه دي

| |
|---|
| وَالتَّخْفِيفُ بِالتَّعَارُضِ اود خفيفه ثبوت په تعارض سره راځي وَقَالَا اوصاحبين رحمهما الله فرمايي يُجْزِئُهُ[1] حَتَّى يَفْحُشَ چې جائز دې تردې چې فاحش شي لِأَنَّ لِلِاجْتِهَادِ فِيهِ مَسَاغًا ځکه چې په دې کي د اجتهاد ګنجائش شته وَهٰذَا يَثْبُتُ التَّخْفِيفُ عِنْدَهُمَا اوپه دې سره د صاحبينو رحمهما الله په نيز تخفيف ثابتيږي |

**حل اللغة**: ① **يفحش، فحش فحشًا** (ك) زياتيدل

**تشريح:-** په زير بحث مسئله کي د صاحبينو رحمهما الله په نيز په دغه‌کالی کي لمونځ جائز دې.

**دليلهما الاول**⊛اود صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چې پچې، خاشنړه او سوتې دا شيان (څيزونه) نجاست خفيفه دی.ځکه چې ددې څيزونو په طهارت اونجاست کي دعالمانو اختلاف دې.امام مالك رحمه الله فرمائی.چې دا شيان (څيزونه) پاك دی.اود نورو عالمانوپه نزد پليت دی.او وړاندې تيرشوی دی.چې د صاحبينو په نيز په يوڅيز کي د مجتهدينو اختلاف موجب د خفت دې.يعنی چې مجتهدين د يو شي په نجاست او طهارت کي اختلاف اوکړی.نودا ددې شي د نجاست خفيفه لپاره دليل دې.اوچې نجاست خفيفه د جامې د څلورمې حصې نه کم وی.اود يو درهم نه زيات وی.نوپه هغې کي لمونځ جائز دې.اود جواز د لمونځ نه مانع نه دې.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً اود دې وجې چې په دې کي تخفيف دې. لِامْتِلَاءِ الطُّرُقِ بِهَا چې لارې ددې نه ډکې وی وَهِيَ مُؤَثِّرَةٌ فِي التَّخْفِيفِ اودا خبره په تخفيف کي موثره ده. |

**تشريح:- دليلهما الثانی** ⊛ دصاحبينو رحمهما الله د اړخه د خاشنړو وغيره په نجاست خفيفه باندې دوهم دليل دا دې.چې په خاشنړو او سوتو کي اړتيا متحقق دې.او عموم بلوی موجوده ده.ځکه چې په عامه توګه په لار کوڅيو (کوڅو) کي پرتې وی.او ځان ژغورل (ځان ساتل) ترې ګران وی.او اړتيا موجب د تخفيف دې.نو په خاشنړو او سوتو کي د عموم بلوی د وجې تخفيف پيدا شو.

### دماكول اللحم د متيازو د حكم دوهم عبارت

| |
|---|
| بِخِلَافِ بَوْلِ الْحِمَارِ په خلاف د خر د متيازو لِأَنَّ الْأَرْضَ تُنَشِّفُهُ ځکه چې مځکه هغه جذب کوی قُلْنَا مونږوايو الضَّرُورَةُ فِي النِّعَالِ چې اړتيا صرف په څپلو کي دې وَقَدْ أَثَّرَتْ فِي التَّخْفِيفِ مَرَّةً اودا يوځل موثر ګرځولې شوې دې حَتَّى تَطْهُرَ بِالْمَسْحِ تردې چې چمپلان په ګرولو سره پاکيږی فَتَكْفِي مُؤْنَتُهَا نود اړتيا په صورت کي به کفايت کوی |

**حل اللغة**: ① **تنشفه، تنشف تنشيفًا**: جذب كول، رابنكل

**تشريح:- السوال التقديری**⊛په خلاف دخر د متيازو.په دې کي د سوال ځواب دې. سوال دا دې.چې لکه څنګه په خاشنړو کي اړتيا دې. نو دغه ډول د خر په متيازو کي هم اړتيا او عموم بلوی ده. نولکه څنګه چې ته خاشنړو ته نجاست خفيفه وائې.دغه ډول پکارده چې د خرمتيازو ته هم نجاست خفيفه اووائې.حالانکه ته دخر متيازو ته نجاست غليظه وائې.

**الجواب**⊛ځواب دا دې.چې دخر په متيازوکي اړتيا اوعموم بلوی نشته. ځکه چې مځکه متيازې جذب کوی.اوپه مځکه باندې ميتازې نه ښکاری.او د تيريدونکو په جامو وغيره پورې نه لګی.په خلاف د خاشنړو ځکه چې مځکه خاشنړه نه جذب کوی.اود تيريدونکو د جامو وغيره پليتيدو ويره په کي وی.

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فی الدرالمختار(۱\۲۳٤) والحلبی الكبير(۱٤۸) وحاشية الطحطاوی (۱\۸٤) والبحرالرائق (۱\٤٠) نقلا عن القول الراجح (۱\۵۲)-



**السوال على دليل الصاحبين** رحمهما الله ⊛دصاحبينو رحمهما الله په دليل باندې دا اعتراض کيدای شي.چې د اړتيا او دعموم بلوی د وجې خو نجاست ساقط کيږی.په هغې کي تخفيف نه راځی.لکه د پيشي چې جوټه پليته نه ده .حالانکه پکار وه.چې پليته وه.ځکه چې د پيشي غوښه حرامه او پليته ده.خو د اړتيا او عموم بلوی د وجې نجاست ساقط شو.(ځکه چې جوټه راځی په لاړو باندې او ناړې (لياړې) پيدا کيږی د غوښې نه.نوچې غوښه پليته وی . ناړې (لياړې) به هم پليتې وی.اوچې ناړې (لياړې) پليتې وی.نو جوټه څيزبه هم پليت وی.)

**الجواب**⊛ځواب دا دې.چې په خاشنړواو سوتوکي اړتيا او عموم بلوی کمه ده.په نسبت سره د پيشوجوټې نه.ځکه د پيشي په جوټه کي نجاست ساقط شو.او په خاشنړو اوسوتو کي په کي صرف تخفيف پيدا شو.

**الجواب من دليل الصاحبين** رحمهما الله ⊛صاحب دهدايه رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله داړخه دصاحبينو رحمهما الله د دليل دا ځواب ورکړې دې.چې دا مونږ منو.چې په خاشنړو اوسوتو کي اړتيا شته.ليکن دا اړتيا يو ځل د موزو په اړه کي موثر ثابت شوې دې.يعنی که په موزو پورې خاشنړه اولګی.نوپه زمکې پورې سوليدو سره هغه پاکيږی.نود اړتيا مشقت به دې تخفيف پورې کافي وی.اوپه دوهم ځل به ددې په نجاست کي تخفيف نشي کولې.ځکه چې په اړتيا سره يو ځل تخفيف کيږی.باربار تخفيف نه کيږی.(چې هم دې د موزې په حق کي تخفيف ثابت شی.او بيا دې د جاموپه حق کي تخفيف ثابت شی.بله ورځ به د عامو څيزونو په حق کي تخفيف ثابت شی.نودا سلسله به داسې روانه شی)

| |
|---|
| وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَأْكُولِ اللَّحْمِ وَغَيْرِ مَأْكُولِ اللَّحْمِ اود ماكول اللحم او غير ماكول اللحم په متيازو کي څه توپير نشته |

**تشريح:- الخلاف في اوراث ماكول اللحم وغيرماكوله** ⊛صاحب دهدايه فرمائی.① چې زمونږ د درې واړه امامانو رحمهم الله په نيز د ماكول اللحم او غير ماكول اللحم د خاشنړو اوسوتو په اړه کي څه توپير نشته.بلکه لکه څنګه چې د غيرماكول اللحم څناورو خاشنړه او سوتې پليتې دی.دغه ډول د ماكول اللحم خاشنړه هم پليت دې.البته توپير صرف په نجاست خفيفه او غليظه کي دې.لکه چې وړاندې تير شو.

| |
|---|
| وَزُفَرُ رحمه الله فَرَّقَ بَيْنَهُمَا او امام زفر رحمه الله په دواړو کي توپير کړې دې. فَوَافَقَ أَبَا حَنِيفَةَ رحمه الله فِي غَيْرِ مَأْكُولِ اللَّحْمِ نوپه غير ماكول اللحم کي نې د امام ابوحنيفه رحمه الله سره موافقت کړې دې. وَوَافَقَهُمَا فِي الْمَأْكُولِ اوپه ماكول اللحم کي نې د صاحبينو رحمهما الله سره موافقت کړې دې |

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله په نيز د ماكول اللحم اوغير ماكول اللحم په خاشنړو او سوتو کي توپير شته.د غير ماكول اللحم څناورو په خاشنړو او سوتو کي هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دې.اود ماكول اللحم څناورو په خاشنړو او سوتو کي د صاحبينو رحمهما الله سره دې.يعنی دا فرمائی.چې د غيرماكول اللحم څناور خاشنړه او سوتې نجاست غليظه دی.او د ماكول اللحم څناورو خاشنړه او سوتې نجاست خفيفه دې.

| |
|---|
| وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې أَنَّهُ لَمَّا دَخَلَ الرَّيَّ چې کله رئی ښار ته داخل شو وَرَأَى الْبَلْوَى او خلګ نې په عامه توګه په دې کي اخته اوليدل أَفْتَى بِأَنَّ الْكَثِيرَ الْفَاحِشَ نوامام محمد رحمه الله فتوی ورکړله که دا کثير فاحش وی لَا يَمْنَعُ أَيْضًا نوهم لمونځ نه منع وی وَقَاسُوا عَلَيْهِ طِينَ بُخَارَى اوهم په دې باندې مشائخو د بخارا خته قياس کړې ده وَعِنْدَ ذٰلِكَ رُجُوعُهُ فِي الْخُفِّ يُرْوَى اوهم په دې وخت کي د امام محمد رحمه الله نه د موزې په مسئله کي رجوع روايت کړې شوې دې. |

**حل اللغة**: ① **بلوی**: اخته ② **قاسوا، قاس قياسًا** (ض): خيال كول، اندازه لګول ③ **رجوع**: واروسته كيدل ④ **خف**: موزه

**تشريح:- دخول محمد على مدينة رئی وفتواه في الروث** ⊛دحضرت امام محمد رحمه الله نه روايت دې.چې کله هغوی رئی ښار ته داخل شو.نو وې ليدل چې په لاړو کوڅيو (کوڅو) کي خاشنړه پراته دی.اودهغې نه ځان بچ کول

ګران دی .نو دا فتوی ئې ورکړه.که دا په جام پورې د څلورمې حصې نه زيات هم اولګی.نو د لمونځ د جواز نه مانع نه دی .بلکه دې سره لمونځ کيږی.ځکه چې عموم بلوی ئې په کې اوليدله.او په دې باندې د بخارا عالمانو رحمهم الله د بخارا ښار ختهٔ قياس کړې دې.ځکه د ختې نه لارې کوڅګې ډکې دی.اوچې دا خته د خاشنړو او سوتو سره ګډه شی .نو ددې نه په ځان ساتلو کې حرج دې.او هم په دې موقع د امام محمد نه د مسح په اړه کې د رجوع روايت شوې دې.يعنی ددې نه وړاندې د امام محمد ﵀ دا مسلك وو.چې موزې پورې کومه چټلې انختی وی.هغه د زمکې په راښکلو سره نه پاکيږی خوچې کله ئې په ری ښار کې دا موقع اوليدله.نو دخپل سابقه قول نه ئې د شيخينو رحمهما الله قول ته رجوع اوکړله.او دا فتوی ئې ورکړه.چې د موزې چټلې د زمکې په راښکلو پاکيږی.

## د اس د متيازو حکم

> وَإِنْ أَصَابَهُ بَوْلُ الْفَرَسِ اوکه ده پورې د اس متيازې اولګيدلې لَمْ يُفْسِدْهُ نونه فاسديږی حَتَّى يَفْحُشَ ترډې چې حد فاحش ته اورسی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) دا حکم) د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز دې

حل اللغة:① بول جمع ابوال: بولې ② لم يفسده، افسد افساداً: خرابول فاسد کول③ يفحش، فحش فحشاً(ک): زياتيدل

تشريح:- الاختلاف فی بول الفرس ومايؤکل لحم ۞د اس او ماکول اللحم ځناورو په متيازوکې داحنافوعالمانو رحمهم الله اختلاف دې.① شيخينو رحمهما الله فرمائيلی دی.چې د اس او ماکول اللحم ځناورو متيازې نجاست خفيفه دی.که کثير فاحش يعنی د جامو څلورمې حصې ته اورسی.نوهغه کالی به پليت او مانع د لمونځ وی.

> وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ﵀ لَا يَمْنَعُ (.او دامام محمد ﵀ په نيز مانع نه دې وَإِنْ فَحُشَ اګرچې حد فاحش ته اورسی لِأَنَّ بَوْلَ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ عِنْدَهُ (٢) ځکه چې د امام محمد ﵀ په نيز بول د ماکول اللحم پاك دی

حل اللغة:① لاتمنع، منع منعاً(ف): منع کول

تشريح:- او دامام محمد په نيز د اس او ماکول اللحم متيازې مطلقاً مانع د لمونځ نه دی.که کثير فاحش وی.اوکه ددې نه کم وی.

دليله۞ ځکه چې د هغوی په نيز ددې متيازې پاکې دی.اوپاك شی که څومره ډير وی.دهغې سره لمونځ کيږی . نوځکه د ماکول اللحم ځناورو متيازې د لمونځ د جواز نه مانع نه دې.اګرچې حد فاحش ته اورسی.

> وَيُخَفَّفُ نَجَاسَتُهُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ ﵀ اود ابويوسف ﵀ په نيز ددې نجاست خفيفه دې وَلَحْمُهُ مَأْكُولٌ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ددې غوښه خوړلې شی وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ﵀ فَالتَّخْفِيفُ لِتَعَارُضِ الْآثَارِ اودامام ابوحنيفه ﵀ په نيز تخفيف د تعارض د آثارو د وجې دې.

حل اللغة:① آثار واحد اثر: معنی احاديث روايات

تشريح:- دليل الشيخين رحمهما الله ۞ اود شيخينو رحمهما الله دليل دا دې.چې بول مايوکل لحمه نجاست خفيفه ده.که جامې ته اورسی .اوحد فاحش نه وی.يعنی د جامې د څلورمې حصې نه کم وی.نوهغه د لمونځ د جواز لپاره مانع

---

(١) القول الراجح هو قولهما كذا فی الدرالمختار(١\٢٣٥) وتبيين الحقائق (١\٧٣) وحاشية الطحطاوی (١\٨٣) والهندية (١\٤٧) نقلا عن القول الراجح (١\٥٢)-

(٢) لكن القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله من عدم طهارة بول ماكول اللحم كذا فی طحطاوی (١\٨٣) وبدائع (١\٨٠) والبحرالرائق(١\٤٠٥) والهندية (١\٤٦) نقلا عن القول الراجح (١\٥٤)_



نه دې .بلکه معاف دې.اوکه څلورمې حصې ته رسی.نومانع دې.

وجه تخفيف بول ماکول اللحم عندالشيخين رحمهما الله ۞ ليکن وجه د تخفيف جلا جلا ده.د امام ابويوسف ﵀ په نيز بول د ماکول اللحم ځکه نجاست خفيفه دې.چې د دې په طهارت او نجاست کې د مجتهدينو اختلاف دې.او دامام ابوحنيفه ﵀ په نيز وجه د تخفيف تعارض د دلائلو دې.ځکه چې حديث د عرنيينونه ددې طهارت ثابتيږی.اود حديث «استنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه»نه ددې نجاست ثابتيږی.

الخلاف في حکم لحم الفرس۞ صاحب دهدايه فرمائی.① چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د اس غوښه حلاله ده. ② اود امام ابوحنيفه ﵀ په نيز حرامه ده.ليکن وجه دحرمت نجاست نه دې.بلکه ځکه چې دا آله د جهاد ده.(نوکه ددې د حلال والی حکم ورکړې شی.نو آله د جهاد به ختمه شی.)

## د مرغانود ګندګۍ حکم

> وَإِنْ أَصَابَهُ خُرْءُ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الطُّيُورِ أَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ اوکه جامې پورې د غير ماکول اللحم مارغه چټلې د يودرهم نه زياته اولګی. جَازَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (١) نود امام ابوحنيفه ﵀ اوامام ابويوسف ﵀ په نيز په دې کې لمونځ جائز دې. وَقَالَ مُحَمَّدٌ ﵀ اوامام محمد ﵀ فرمايي لَا يَجُوزُ چې جائز نه دې

حل اللغة:① خرء: چټلې ② لحم: غوښه ③ طيور: مرغئی ④ قدر: اندازه

سهيل:المذهبان في خرء الطيرغيرماکول اللحم۞ مسئله دا ده.① که دغيرماکول اللحم مارغهٔ چټلې په کالی يا بدن پورې د يو درهم د اندازې نه په زيات مقدار کې اولګی.نود شيخينو رحمهما الله په نيز دې سره لمونځ جائز دې.
② او د امام محمد ﵀ په نيز لمونځ جائز نه دې.

> فَقَدْ قِيلَ نوونيلی شوی دی إِنَّ الْاِخْتِلَافَ فِي النَّجَاسَةِ چې اختلاف ددې په نجاست کې دې وَقَدْ قِيلَ اوونيلی شوی دی فِي الْمِقْدَارِ چې اختلاف ددې په مقدار کې دې وَهُوَ الْأَصَحُّ اوهم دا اصح قول دې

تشريح:- نوعية محل الاختلاف۞ پاته شوه دا خبره چې د شخينو رحمهما الله اوامام محمد ﵀ په نيز اختلاف ددې په طهارت اونجاست کې دې.اوکه ددې په مقدار کې دې.① نوامام کرخی ﵀ فرمائی.چې اختلاف په نجاست اوطهارت کې دې. يعنی د غيرماکول اللحم مارغانو چټلې د شيخينو رحمهما الله په نيز پاکه ده.اود امام محمد ﵀ په نيز پليته ده.② اوفقيه ابوجعفر ﵀ فرمائی.چې اختلاف په مقدار کې دې.يعنی د غيرماکول اللحم مارغانو دچټلې په نجاست خو واړه متفق دی. البته امام ابوحنيفه ﵀ ورته نجاست خفيفه وائی.اوصاحبين رحمهما الله ورته نجاست غليظه وائی

ملحوظة۞دا خبره ياد ساته.چې دصاحب هدايه ﵀ د عبارت نه دا معلوميږی .چې امام ابويوسف ﵀ په دواړو روايتونوکې د امام ابوحنيفه ﵀ سره دې.حالانکه داسې نه ده.بلکه د امام کرخی ﵀ په روايت کې د امام ابوحنيفه ﵀ سره دې.او د امام ابوجعفر ﵀ په روايت کې دامام محمد ﵀ سره دې.لکه خادم (يعنی جميل احمدصاحب) چې وړاندې ذکر کړی دی.صاحب د هدايه ذکر کړی دی.چې دا اصح قول دې.چې اختلاف په مقدار د نجاست کې دې.(عنايه)

> هُوَ يَقُولُ امام محمد ﵀ فرمايي إِنَّ التَّخْفِيفَ لِلضَّرُورَةِ چې تخفيف د اړتيا د وجې وی وَلَا ضَرُورَةَ لِعَدَمِ الْمُخَالَطَةِ اودلته کې څه اړتيا نشته ځکه چې مخالطت نشته فَلَا يُخَفَّفُ نو تخفيف به هم نه وی

---

(١) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(١\١٨٢) والكفاية(١\١٨٢) وردالمحتار(١\٢٣٤) وطحطاوی (ص،٨٤) نقلا عن القول الراجح (١\٥٥)-

**حل اللغة:** ① **مخالطة:** یوځای کېدل

**تشریح:- دلیل محمد رحمه الله ❁** دصاحب هدایه د بیان مطابق د امام محمد رحمه الله دلیل دا دی چې په نجاست کې تخفیف د اړتیا د وجې راځي. اودلته کې د مارغانود انسانانو سره د ګډون د نشتوالی د وجې اړتیا نشته. نوځکه به تخفیف هم نه وي.

**وَلَهُمَا** اود شخینو رحمهما الله دلیل دا دی **أَنَّهَا تُذَرِّقُ مِنَ الْهَوَاءِ** چې ماغه په هوا کې چټلې کوي **وَالتَّحَامِي عَنْهُ مُتَعَذِّرٌ** اودهغې نه پرهیزکول متعذر دی **فَتَحَقَّقَتِ الضَّرُورَةُ** نو تخفیف ثابت شو

**حل اللغة:** ① **فتحققت، تحقق تحققاً:** ثابتېدل

**تشریح:- دلیل الشیخین رحمهما الله ❁** اودشیخینو رحمهما الله دلیل دا دی. چې مارغان په هواکې چټلې کوي. اودهغې نه بچ کېدل ګران دی. نو اړتیا متحقق شو.

**السوال والجواب ❁** مولانا عبدالحی رحمه الله فرمائي. چې دامام اعظم رحمه الله په نیز مدار د تخفیف نجاست په تعارض د نصینودی. اوهغه دلته کې موجود شوی نه دی. نود اړتیا وجود د تخفیف لپاره ځنګه دلیل کېدای شي. ددې ځواب دا کېدای شي. چې دلته کې دلیل د وجود د تخفیف دلیل نه دی. بلکه دا د امام محمد رحمه الله د دلیل ځواب دی.

**وَلَوْ وَقَعَ فِي الْإِنَاءِ** اوکه په لوښي کې پریوځي **قِيلَ** نو وئیلی شوی دی. چې دا خرابوی **يُفْسِدُهُ وَقِيلَ لَا يُفْسِدُهُ** اووئیلی شوی دی. چې نه ئې خرابوی **لِتَعَذُّرِ صَوْنِ الْأَوَانِي عَنْهُ** ځکه چې د لوښود دې نه بچ کول متعذر دی.

**حل اللغة:** ① **صون:** ساتنه کول بچ کول ② **اوانی:** لوښي

**تشریح:- الروایتان في الاواني التي وقع فیها خرء الطیور غیرالماکول ❁** اوکه د مارغه چټلې په لوښي کې پریوځي. نو په دے کې دوې (دوه) اقوال دی. ① یودا چې دا چټلې دغه لوښي پلیتوی. دا روایت ابوبکر اعمش رحمه الله غوره کړی دی. ② دوهم دا چې لوښي نه پلیتیږي. دا قول امام کرخي اختیار کړی دی.

**دلیلهما ❁** امام اعمش رحمه الله فرمائي. چې د دې نه د لوښو محفوظ ساتل متعذر نه دی. نو اړتیا نشو. ځکه پلتیږي. اوامام کرخي رحمه الله فرمائي. چې ددې نه د لوښو محفوظ ساتل هم متعذر دی. ځکه د لوښو په حق کې اړتیا متحقق دې

### د کب د وینې او د خر او قچر د لاړو حکم

**وَإِنْ أَصَابَهُ مِنْ دَمِ السَّمَكِ أَوْ لُعَابِ الْبَغْلِ أَوِ الْحِمَارِ** په کالي پورې که د کب وینه یا د قچر یا خر ناړې اولګېدلې **أَكْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ** د یو درهم د مقدار نه زیات **أَجْزَأَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ** په دې کې لمونځ جائز دی **أَمَّا دَمُ السَّمَكِ** د کب وینه **فَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِدَمٍ عَلَى التَّحْقِيقِ** خو ددې وجې چې هغه په حقیقت کې وینه نه ده **فَلَا يَكُونُ نَجِسًا**[1] نو پلیته هم نه ده

**تشریح:- جواز الصلاة في ثوب اصابه دم السمک ❁** مسئله دا ده. که جامې ته د کب د وینې یا د خر یا قچر د لاړو د یو درهم نه زیات مقدار اورسېدلو. نو په دې کې لمونځ جائز دی. د کب وینه د لمونځ د جواز نه ځکه مانع نه ده. چې دا په حقیقت کې وینه نه ده. ځکه چې دا په لمر کې سپینیږي. حالانکه وینه په لمر سره توریږي. نوچې وینه نشوه. نو پلیته به هم نه وي. اوچې پلیته نه ده. نو د لمونځ د جواز ځخه به مانع هم نه وي.

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار (۱\۲۳۶) والبحر الرائق (۱\۴۰۸) والدر المختار (۱\۲۳۶) والهندیة (۱\۴۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۵۶)-





**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله** اود امام ابویوسف رحمه الله نه روایت دی **أَنَّهُ اعْتَبَرَ فِيهِ الْكَثِيرَ الْفَاحِشَ** چې هغوی د کب په وینه کې د کثیر فاحش اعتبار کړی دی **فَاعْتَبَرَهُ نَجِسًا** نو ابویوسف رحمه الله دا پلیته ګرځولې ده

**تشریح:-** دامام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت نقل دی. چې د کب وینه نجاست خفیفه دی. نوکه جامې ته دمقدار فاحش په اندازه اورسي. نو لمونځ په کې نه کیږي.

**وَأَمَّا لُعَابُ الْبَغْلِ وَالْحِمَارِ** اوپاته شوې. د قچر اوخر ناړې **فَلِأَنَّهُ مَشْكُوكٌ فِيهِ** نوددې وجې چې ددې په لاړو کې شک دی **فَلَا يَتَنَجَّسُ بِهِ الطَّاهِرُ** نو پاک څیز به ددې د وجې نه پلیتیږي **فَإِنِ انْتَضَحَ عَلَيْهِ الْبَوْلُ مِثْلَ رُءُوسِ الْإِبَرِ** که په سرې د متیازو څاڅکی د ستنو د سرونو په څیر پریوځي **فَذَلِكَ لَيْسَ بِشَيْءٍ** نودا څه باك نه کوي **لِأَنَّهُ لَا يُسْتَطَاعُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ** ځکه چې ددې نه د بچ کېدو توان نشي لرې

**تشریح:- جوازالصلاة مع لعاب الحماروالبغل ❁** پاته شوه د خر اوقچر د لاړو سره د لمونځ جواز. نوداځکه چې ددې د لعابو په نجاست کې شك دی. نوکوم څیزچې په یقین سره پاك وي. په شك سره هغه نشي پلیتیدې.

### د نجاست مرئي د طهارت طریقه

**قَالَ** فرمایي **وَالنَّجَاسَةُ ضَرْبَانِ** اود نجاست دوې (دوه) قسمونه دی **مَرْئِيَّةٌ** نجاست مرئي **وَغَيْرُ مَرْئِيَّةٍ** او غیرمرئي **فَمَا كَانَ مِنْهَا مَرْئِيًّا** نوکوم چې مرئي وي **فَطَهَارَتُهُ زَوَالُ عَيْنِهَا** دهغې طهارت دهغې د ذات په زائله کاوه سره راځي

**تشریح:- طریقة تطهیر النجاسة المرئیة ❁** شیخ قدوری فرمائي. چې د نجاست دوې (دوه) قسمونه دی. نجاست مرئي او غیر مرئي. ځکه چې د نجاست د اوچوالی نه روسته به نجاست یا په نظر راځي او یا به نه راځي. نوکه اول وي. دا مرئي دی. او که دوهم صورت وي. نودا غیرمرئي دی. د نجاست مرئي پاکولو طریقه دا ده. چې دهغې ذات زائل شي. اګر چې دهغې د اثر څنې څینېپاته وي. لکه رنګ او بوئي وغیره

**لِأَنَّ النَّجَاسَةَ حَلَّتِ الْمَحَلَّ بِاعْتِبَارِ الْعَيْنِ** ځکه چې نجاست په محل کې په اعتبار دخپل ذات سره حلول کړی دی **فَتَزُولُ بِزَوَالِهَا** نود ذات په زوال سره به د نجاست زوال راشي

**تشریح:- دلیله ❁** دلیل دا دی. چې نجاست په اعتبارد خپل ذات سره په محل کې حلول کړی دی. نوچې د نجاست ذات او عین زائله شي. نودې سره نجاست هم زائله شو.

**إِلَّا أَنْ يَبْقَى مِنْ أَثَرِهَا** مګر دا که د نجاست داثرنه څه شي پاته شي **مَا تَشُقُّ إِزَالَتُهُ** چې دهغې لرې کول ګران وي **لِأَنَّ الْحَرَجَ مَدْفُوعٌ** ځکه چې په شریعت کې حرج لرې کړې شوې دی

**تشریح:- عفو أثر النجاسة ❁** البته دومره ده چې د نجاست کوم اثر پاته وي . چې دهغې لرې کول ګران وي. نوهغه پاته شي. نوددې ځواب دا دی. چې چونکه ددې په لرې کاوه کې حرج دی. او په شریعت کې حرج لرې کړې شوې دی. نو ددې وجود څه نقصان نه رسوي.

**الدلیل الثاني لعفو اثرالنجاسة ❁** اوددې تائید دحضرت خوله بن یسار رضي الله عنها په حدیث سره هم کیږي. « أنها قالت یارسول الله إن لی ثوبا واحدا وإنی أحیض فیه فقال ﷺ رشیه واقرصیه ثم اغسلیه بالماء فقالت یارسول الله یبقی له أثره فقال رسول الله ﷺ یکفیك الماء فلا یضرك أثره » یعنې خوله بنت یسار رضي الله عنها فرمائي. چې ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړلو. چې زما یوکالی دی. اوزه په هغې کې حائضه کیږم. نونبي ﷺ ورته اوفرمائیل: په هغې باندې اوبه واچوی. اوبیائې په اوبو اووینځه. هغې پوښتنه اوکړه. که دهغې اثر پاته شي. نونبي ﷺ ورته اوفرمائیل: ستا لپاره په اوبو باندې پریمنځل کافي دی. داثرپاته کېدل تاته څه نقصان نه رسوي. اودلته دمشقت تفسیر دا دی. چې ددې لرې کاوه کې د اوبونه علاوه د بل شي لکه صابون وغیره ته حاجت پېښیږي

وَهَذَا يُشِيرُ إِلَى اودا کلام اشاره کوی أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ الْغَسْلُ بَعْدَ زَوَالِ الْعَيْنِ چې د نجاست دذات لرې کاوه نه روسته پرېمنځل شرط نه دې

**تشریح:- ما یفهم من عبارة القدوری؟** ۞صاحب د هدایه فرمائی. چې دامام قدوری عبارت دې اړخ ته اشاره کوی. چې د نجاست د ذات لرې کېدو نه روسته د ځائې پرېمنځل شرط نه دې. اګرچې د نجاست ذات په یوځل وینځلو سره لرې شی. یعنی که د نجاست ذات په یوځل وینځلو سره لرې شی. دا کافی دې. اوکه د نجاست ذات په درې ځله وینځلو سره هم لرې نشی. نوترهغه وخته پورې به ئې وینځی. چې د نجاست ذات لرې شوې نه وی.

وَإِنْ زَالَ بِالْغَسْلِ مَرَّةً وَاحِدَةً اګرچې په یوځل وینځلو سره زائل شی وَفِيهِ كَلَامٌ اوپه دې کې د مشائخو کلام دې.

**تشریح:- القول الراجح في عدد غسل محل النجاسة المرئية اذا زال بدون ثلاث مرات**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې په یوځل ذات د نجاست لرې شی. نوپه دې کې عالمانو خبرې کړې دی. څوك وائی. که په یوځل هم لرې شی. نو درې ځله به ئې وینځی. ځکه چې ذات د نجاست لرې شو. نوددې نه روسته دغه محل دنجاست غیر مرئی په څیر شو. اوپه نجاست غیرمرئی کې درې ځله پرېمنځل ضروری دی. نوددې پرېمنځل هم ضروری دی. فقیه ابوجعفر رحمه الله فرمائی. چې یو ځل خونې وینځلې دې. نو دوې (دوه) ځله دې نورهم اووینځی. چې د دریو عدد متحقق شی. لیکن تحقیقی خبره هم هغه ده. کومه چې فاضل مصنف رحمه الله ذکر دې.

### دنجاست غیر مرئی د طهارت طریقه

وَمَا لَيْسَ بِمَرْئِيٍّ اوکوم نجاست چې غیرمرئی وی فَطَهَارَتُهُ نودهغې طهارت دا دې أَنْ يُغْسَلَ چې هغه وینځلې شی حَتَّى يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّ الْغَاسِلِ تردې چې د وینځونکی په ګمان باندې غالب شی أَنَّهُ قَدْ طَهُرَ چې دا پاك شو

**حل اللغة**①ان یغسل، غسل غسلاً(ض)پرېمنځل

**تشریح:- حکم تطهیرالنجاسة غیر المرئیة**۞په دې عبارت کې د نجاست د دوهم قسم یعنی نجاست غیرمرئی بیان دې. لکه متیازې شراب وغیره. ددې حکم دا دې. چه کالی به دومره وینځی. چې د وینځونکی دا غالب ګمان پیدا شی. چه کالی پاك شو.

لِأَنَّ التَّكْرَارَ لَا بُدَّ مِنْهُ لِلِاسْتِخْرَاجِ ځکه چې د نجاست د وتلو لپاره تکرار ضروری دې وَلَا يُقْطَعُ بِزَوَالِهِ اوددې نجاست د زوال یقین نشی کیدې. فَاعْتُبِرَ غَالِبُ الظَّنِّ نود غالب ګمان یقین ئې اوکړلو كَمَا فِي أَمْرِ الْقِبْلَةِ لکه چې څنګه د جهت دقبلې په مسئله کې دې

**حل اللغة**①استخراج: راویستل

**تشریح:- دلیل العمل بغالب الظن**۞دلیل دا دې. چې د نجاست د ویستلو لپاره تکرار ضروری دې. اوچونکه نجاست غیرمرئی دې. نود زوال علم ئې په یقین سره نشی راتلې. نوځکه په کې د غالب ګمان اعتبار اوکړې شو. لکه څنګه چې د جهت د قبلې په مسئله کې دا خبره ده. یعنی چې یوکس باندې قبله مشتبه (ګډه وډه) شی. او خبرورنکې هم څوك نه وی. نودې به تحری (سوچ اوفکر) اوکړی. اود تحری نه روسته چې کوم اړخ ته ئې غالب ګمان پیدا شو. چې دې اړخ ته قبله ده. هغه اړخ ته دې لمونځ اوکړی. هم هغه اړخ معتبر دې. تردےکه د لمونځ نه روسته ورته خپله غلطی ښکاره شی. نو هم پرې د لمونځ دوباره راګرځول نشته. (ځکه چې ده په غالب ګمان باندې عمل کړې وو. اوغالب ګمان قائم مقام د یقین دې.)

وَإِنَّمَا قَدَّرُوا بِالثَّلَاثِ اوفقهاؤ د دریوعدد مقرر کړې دې لِأَنَّ غَالِبَ الظَّنِّ يَحْصُلُ عِنْدَهُ ځکه چې غالب ګمان په دې شمار باندې حاصلیږی فَأُقِيمَ السَّبَبُ الظَّاهِرُ مَقَامَهُ تَيْسِيرًا نود آسانتیا لپاره ظاهری سبب د غالب ګمان قائم مقام



شو

**حل اللغة**①قدروا، قدر تقدیراً: اندازه لګول ② تیسیراً آسانی

**تشریح:- الغسل ثلاثاً مفیدا لغالب العلم** ۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې فقهاؤ درې ځله پرېمنځل د غالب ګمان لپاره معیار ګرځولې دې. ځکه چې په دې تعداد باندې غالب ګمان پیدا کیږی. نود آسانتیا لپاره دا ظاهری سبب چې درې ځله دی. قائم مقام د غالب ګمان اوګرځولې شو. یعنی په درې ځله وینځلو به د پاکۍ حکم لګولې شی.

وَيَتَأَيَّدُ ذَلِكَ بِحَدِيثِ الْمُسْتَيْقِظِ مِنْ مَنَامِهِ اوددې تائید په حدیث د «مستیقظ من منامه» سره هم کیږی

**تشریح:-** د دې تائید په هغه حدیث سره کیږی. چې په هغې کې دخوب نه رابیداریدونکی سړی لپاره تعلیم موجود دې. «إذا إستيقظ أحدكم من منامه فلا يغمسن يده في الإناء حتى يغسلها ثلاثا فإنه لا يدرى أين باتت يده» یعنی کله په تاسو کې څوك د خوب نه رابیدارشی. نوخپل لاس دې په لوښی کې نه ورننه کوی. تردې چې درې ځله ئې اووینځی. ځکه چې ده ته پته نه لګی. چې دده لاس په کوم ځائې کې شپه تیره کړې ده. (یعنی دده په بدن کې په شرمګاه پروت وو اوکه په بل پاك ځائې .) په دې حدیث کې د یو وهمی نجاست د وجې درې ځله د وینځلوحکم کړې شوې دې. (یعنی دا په یقین سره معلومه نه ده. چې دده لاس به د شپې په خوب کې د نجاست سره لګیدلې وی. صرف یواحتمال قدر وو. خونبی ﷺ اوفرمائیل: چې په اوبو کې دې لاس نه درداخلوی. ځکه چې اوبه به پرې پلیتې شی .) نو کوم نجاست چې متحقق وی. نوده هغې د وینځلو حکم خو به خامخا درې ځله وی.

ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْعَصْرِ فِي كُلِّ مَرَّةٍ نوهرځل نښتیزل (نچوړول) ضروری دی فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ د ظاهر روایت مطابق. لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسْتَخْرِجُ ځکه چې نښتیزل (نچوړول) د نجاست غیر مرئی راویستونکې دې

**حل اللغة**①لابد: ضروری د څه نه بغیرچې بله لار نه وی

**تشریح:- حکم التعصیر في النجاسة غیر المرئیة** ۞اوبیا په ظاهر روایت کې دهرځل وینځلو نه روسته نښتیزل (نچوړول) ضروری دی. ځکه چې په نچوړولو سره نجاست خارجیږی . اوپه غیر ظاهر روایت کې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی. چې په دریم ځل نښتیزل کافی دی. هرځل نچوړولو ته اړتیا نشته.

### په استنجاء کې د کاڼو د عدد حکم

فَصْلٌ فِي الِاسْتِنْجَاءِ (دا) فصل د استنجاء په بیان کې دې الاستنجاء سنة استنجاء سنت ده

**تشریح:- وجه ذکرالإستنجاء في باب الانجاس**۞امام قدوری رحمه الله په دې فصل کې د استنجاء بیان کوی. د ځینې عالمانو رحمهم الله خیال دې. چې دا استنجاء د اودس په سنتو کې ده. نودا د اودس په بیان کې ذکر کول مناسب وو. خواب چونکه د سبیلینو نه د حقیقي مرداري لرې کاوه نوم استنجاء ده. نوځکه ئې دا په «باب الانجاس وتطهیرها» کې ذکر کړله.

**حکم الاستنجاء**۞ ①استنجاء زمونږ په نیز سنت موکده ده. اوامام مالك رحمه الله او امام مزنی رحمه الله هم ددې قائل دی.

لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهِ [1] ځکه چې رسول الله ﷺ په د ې باندې همیشوالې کړې دې

**حل اللغة**①واظب، مواظبة: همیشوالې

---

[1] ) فيه احاديث منها حديث انس رضي الله عنه قال كان النبي ﷺ يدخل الخلاء فاحمل انا وغلام نحوى اداوة من ماء وعنزة فيستنجى بالماء اخرجه البخارى فى الوضوء باب ١٧ ومسلم فى الطهارة رقم ٧٠)۔

**تسهيل*دليل سنيته**◉ د استنجاء د مسنونيت دليل د نبی ﷺ هميشوالي دي.د بخاری او مسلم حديث دي. «عن أنس ﷺ قال كان رسول الله ﷺ يدخل الخلاء فأحمل أنا وغلام نحوی إداوة من ماء وعنزة فيستنجی بالماء» حضرت انس ﷺ فرمائی. چې کله به نبی ﷺ بيت الخلاء ته داخليدلو. نو ما او زما په څير يو هلك به د اوبو يوه لوټه اوړله.نو نبی ﷺ به په اوبو باندې استنجاء کوله.② اوپه ابن ماجه کې دحضرت عائشې رضی الله عنها نه روايت دي.« قالت ما رأيت رسول الله ﷺ خرج من غائط قط إلا مس ماء» يعنی ما رسول الله ﷺ کله هم نه دي ليدلي.چې د لوئی اودس ماتی څخه به فارغ شو. نو خامخا به ئې اوبه استعمالولې.ددې دواړو احاديثو نه ثابته شوه.چې نبی ﷺ په استنجاء باندې هميشوالي کړې دي.

**السوال والجواب**◉ دلته کې صاحب د هدايه رحمه الله د استنجاء د مسنونيت لپاره د نبی ﷺ هميشوالي دليل ګرځوی.حالانکه د نورو دلائلونه ثابته شوې ده.چې مواظبت دليل د وجوب دې.نه د سنتيت او دې.پکار دا وه.چې شارح ددې وضاحت کړې وې.په امداد الفتاح شرح نور الايضاح کې علامه شرنبلالی رحمه الله فرمائی.چې واجب ځکه نه ده.چې نبی ﷺ کله کله پرېښولې (پرېخودې) ده. ددې نه معلومه شوه.چې استنجاء سنت ده.فرض نه ده.لکه څنګه چې امام شافعی رحمه الله فرمائی.

**وَيَجُوزُ فِيهِ الْحَجَرُ** او استنجاء جائز ده په کاڼي **وَمَا قَامَ مَقَامَهُ** او څه چې د کاڼي قائم مقام وی **يَمْسَحُهُ** مسح کوی به ئې **حَتَّى يُنَقِّيَهُ** ترڅو چې پاك صفا شی **لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْإِنْقَاءُ** ځکه چې مقصود پاکوالې دې **فيعتبر مَا هُوَ الْمَقْصُودُ** نو چې څه مقصود وی.هم هغه به معتبر وی

**تشريح:- مايجوز به الاستنجاء؟**◉ په استنجاء کې د کاڼي او څه چې ددې قائم مقام دې.دهغې استعمال جائز دې.اوددې طريقه دا ده.چې د استنجاء محل به دومره مسح کوی.چې هغه پاك شی.ځکه چې پاکول مقصود دی.نو چې کوم شی مقصود وی.دهغې خيال به ساتلی شی.

**وَلَيْسَ فِيهِ عَدَدٌ مَسْنُونٌ** اوپه دې کې څه مسنون شمار نشته

**تشريح:- المذهبان في عدد الاحجار في الاستنجاء**◉ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چې په استنجاء کې د کاڼو مسنون شمار نشته.بلکه چې په څومره باندې پاکې حاصليږی .که درې وی.اوکه د دريو نه کم وی اوکه زيات وی.ځکه چې مقصود پاکې حاصلول دی.چې په هرڅومره کاڼو وی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمايي **لَابُدَّ مِنَ الثَّلَاثِ** چې درې کاڼي ضروری دی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. **وَلْيَسْتَنْجِ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ**[1] په تاسو کښې دې يوکس په درې کاڼو استنجاء کوی

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چې د درې کاڼو استعمال ضروری دې.

**دليله**◉ دامام شافعی رحمه الله دليل دحضرت ابوهريره ﷺ حديث دې. چې «أن النبی ﷺ قال إنما أنا لكم مثل الوالد إذا ذهب أحدكم إلی الغائط فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها بغائط ولابول وليستنج بثلاثة أحجار» يعنی نبی ﷺ فرمائيلی دی . چې زه ستاسو لپاره په څير دپلار يم.نوچې څوك په تاسو کې غټ اودس ماتی ته ځی. قبلې ته دې نه مخ کوی اونه دې ورته شاه کوی.او په درې کاڼو دې استنجاء کوی. اوامر د وجوب لپاره وی.نودا حديث د استنجاء په وجوب باندې دليل شو. او په کاڼو کې د درې کاڼوشمار ثابت شو.

**وَلَنَا** اوزموږ دليل دا دې **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی **مَنِ اسْتَجْمَرَ** څوك چې استنجاء

[1]) من حديث ابی هريرة ﷺ اخرجه البيهقی فی سننه الكبری (۱٤۸۱۱) وفی معرفة السنن والاثاررقم ۱۳٤)_



**فَلْيُوتِرْ** نو په طاق (ناتکي) کاڼو دې کوی **فَمَنْ فَعَلَ** چې وې کړله **فَحَسَنٌ** نوښه ده **وَمَنْ لَا** اوکه وې نکړله کوی **فَلَا حَرَجَ**[1] نوڅه نقصان نشته

**تشريح:- دليل عدم وجوب الايتار**◉ اوزموږ دليل دا دې. «عن ابی هريرة قال قال رسول الله ﷺ من إكتحل فليوتر من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج، ومن إستجمر فليوتر فمن فعل فقد احسن ومن لا فلاحرج، ومن أكل فما تخلل فليلفظ ومالاك بلسانه فليبتلع من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج ،ومن أتی الغائط فليستتر فإن لم يجد إلا أن يجمع كثيباً من رمل فليستدبره فإن الشيطان يلعب بمقاعد بنی آدم من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج» ابوداود ) حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی.چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.څوك چې رانجه اچوی.نوناتکی دې اچوی.چاچې داسې اوکړلو.نو ښه ده.اوچا چې اونکړلو.نوڅه ګناه په کې نشته.اوڅوك چې استنجاء کوی.نوناتکی کاڼي دې استعمالوی. چاچې داسې اوکړلو.نو ښه ده.اوچې چې اونکړلو.نوڅه ګناه په کې نشته.اوڅوك چې خوراك کوی.نوچې څه په خلال سره راوباسی.هغه دې اوغورځوی.اوکوم چې په ژبه باندې راوباسی.هغه دې تير کړی. چا چې داسې اوکړلو .نو ښه ده.اوچا چې اونکړلو.نوڅه ګناه په کې نشته.اوڅوك چې غټ اودس ماتی ته لاړ شی .نوځان دې پټ کړی. چاچې داسې اوکړلو.نه ښه ده.اوچا چې اونکړلو . نو څه ګناه په کې نشته. خوکه د شګو يوډيرې راجمع کړی.نوهغې ته دې شاه کړی .ځکه چې شيطان د بنی آدم په مقعد باندې لوبې کوی. چاچې داسې اوکړلو. نو ښه ده.اوچا چې اونکړلو.نوڅه ګناه په کې نشته.

**وجه الاستدلال**◉ علامه ابن همام رحمه الله فرمائيلی دی.چې ايتار په يوباندې هم واقع کيږی.او په حديث کې فرمائيلی شوی دی.چې دايتار په پرېخودوکې څه ګناه نشته .ددې حاصل دا دې.چې د استنجاء په پرېخود کې څه ګناه نشته.اودکوم څيزپه پرېخود کې چې ګناه نه وی.هغه فرض يا واجب نه وی.نومعلومه شوه.چې استنجاء فرض نه ده.بلکه سنت ده.او ايتار لکه څنګه چې د دريو په شمار سره راځی.دغه ډول د يو په شمار سره هم راځی.نوځکه د دريو شمار هم ضروری نشو.

دحديث نه په عدم وجوب د استنجاء باندې استدلال ټيك نه دې.ځکه چې په دې کې داسې الفاظ راغلی دی. «من إستجمر فليوتر،من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج» يعنی په دے کې نفی د استنجاء کاوه نه نه ده راغلې.بلکه نفی د ايتار نه راغلې ده.يعنی چاچې په استنجاء کې ايتار اونکړلو.نوګناه نشته.دا مطلب نه دې.چې چا استنجاء اونکړله.نو ګناه په کې نشته.ځکه چې د «من استجمر» کلمه خو حکايت د واقعه ده.ددې د حکم سره څه تعلق نشته.نوزما په نزد د استنجاء د عدم فرضيت لپاره دليل هغه دې.کوم چې ما په خپله ښتو شرح مفتاح الفلاح شرح نورالايضاح کې د شرنبلالی رحمه الله د شرح امدادالفتاح نه نقل کړې دې.چې بعضګې وختونوکې نبی ﷺ استنجاء پرېښولې (پرېخودې) هم ده.او ترك دليل د عدم وجوب او عدم فرضيت دې.البته دلته کې دا خبره دتحقيق محتاجه ده.چې هغه کوم مواقع دی.چې نبی ﷺ په کې استنجاء نه ده کړې.شرنبلالی هم په څه حديث سره دهغې اثبات نه دې کړې.شاه فيصل عفی عنه.

**وَمَا رَوَاهُ** او امام شافعی رحمه الله چې کوم روايت کړې دې **مَتْرُوكُ الظَّاهِرِ** هغه متروك الظاهر دې **فَإِنَّهُ لَوِ اسْتَنْجَى بِحَجَرٍ لَهُ ثَلَاثَةُ أَحْرُفٍ** ځکه که په يو کاڼي چې درې طرفونه ئې وی استنجاء اوکړی **جَازَ بِالْإِجْمَاعِ** نوپه اجماع سره جائزده.

**حل اللغة*** ① **احرف**: ګوټ ② **ظن**: ګمان ③ **استنجاء ،استطابه او استنجمار** درې واړه الفاظ هم معنی دی.خو استنجاء او استطابه عامه ده.که په اوبو سره وی اوکه په بل پاکونکی شی سره وی.اواستجمار د لوټو او کاڼو سره خاص دې.داستنقاء معنی هم په کاڼي وغيره سره پاکول دی .اواستبراء په مځکه باندې پښه وهلو ته وائی.اواستنزاه د متيازو نه ځان ساتلو ته وائی. استنجاء ماخوذ ده.د "نجو" نه او "نجو" وائی.هغه شی ته چې د خيټې نه راوځی.اواوچت ځائې ته هم "نجو" وائی.

[1]) من حديث ابی هريرة ﷺ اخرجه ابوداود فی الطهارة باب ۱۹ وابن ماجه فی الطهارة باب ۲۳ رقم ۳۳۷)-

**تشريح:- الاجوبة من مستدل الشافعي**۞ ①اوپاته شوهغه حديث كوم چې امام شافعي رحمه الله په استدلال كې پیش كړې دې. نوهغه متروك الظاهر دې.ځكه كه په داسې كاڼي باندې استنجاء اوكړي.چې د هغې درې طرفونه وي.نوپه اتفاق سره جائز ده.ددې نه معلومه شوه.چې د دريو شمار شرط نه دې. ② دوهم ځواب دا دې چې امر صيغه په استحباب باندې حمل كړې شي. ③ دريم ځواب دا دې.چې كله حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نبي ﷺ ته دوې (دوه) كاڼي راوړلو.او يو ئې خاشنړه راوړلو.نونبي ﷺ ترې دواړه كاڼي واخستل.او خاشنړه ئې اوغورځولو.اووې فرمائيل:چې دا پليت دی.اود دريم كاڼي مطالبه ئې اونكړله.كه چرې دريم كاڼي ضروري وو.نونبي ﷺ به خامخا دريم كاڼې غوستې وو.لكه چې په بخاري كې دی.ددې واقعه نه هم دا معلومه شوه.چې د دريو عدد شرط نه دې

## په اوبو باندې د استنجاء كولو حكم

| |
|---|
| وَغَسْلُهُ بِالْمَاءِ أَفْضَلُ اوپه اوبو سره استنجاء كول غوره ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځكه چې الله تعالى فرمائيلي دي فِيهِ رِجَالٌ په دې جمات كې څه خلگ دی يُحِبُّونَ چې خوښوی أَنْ يَتَطَهَّرُوا چې ښه پاكې حاصل كړي نَزَلَتْ فِي أَقْوَامٍ دا آيت د داسې خلكو په اړه كې نازل شوې دې كَانُوا يَتْبَعُونَ الْحِجَارَةَ الْمَاءَ(١) چې هغوی به د كاڼي نه روسته د اوبو استعمال كولو ثُمَّ هُوَ أَدَبٌ بيا په اوبو باندې استنجاء كول مستحب ده |

**تشريح:- فضل الاستنجاء بالماء**۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دی.چې په لوټو سره د اوچولو نه روسته په اوبو باندې پرېمنځل افضل دی.ځكه چې دالله تعالى قول دې.﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا﴾ دا آيت د اهل قبا په اړه كې نازل شوې دې.اود اهل قبا دا عادت وو.چې هغوی به په كاڼو باندې د استنجاء نه روسته په اوبو استنجاء كوله.

**استحباب الاستنجاء بالماء**۞داخبره دې واضحه وی.چې په كاڼوباندې د استنجاء كولونه روسته په اوبو باندې استنجاء كول ادب او مستحب دې.ځكه چې نبي ﷺ به كله په اوبو باندې استنجاء كوله.اوكله به ئې پرېخودله.اوښكاره خبره ده.چې دا د استحباب خبره ده

| |
|---|
| وَقِيلَ او وئيلی شوی دی هُوَ سُنَّةٌ فِي زَمَانِنَا چې زموږ په زمانه كې سنت ده وَيَسْتَعْمِلُ الْمَاءَ اواوبه به استعمالوی إِلَى أَنْ يَقَعَ فِي غَالِبِ ظَنِّهِ تردې چې دده غالب ګمان راشي أَنَّهُ قَدْ طَهُرَ چې پاك شو وَلَا يُقَدَّرُ بِالْمَرَّاتِ اوپه شمار سره به اندازه نشی لګولې |

**تشريح:- سنية الاستنجاء في زماننا**۞ځينې حضراتوفرمائيلي دی.چې زموږ په زمانه كې په اوبو باندې استنجاء كول مسنون ده.اودا قول د حسن بصري رحمه الله نه منقول دې.دليل دحضرت علي رضي الله عنه اثر دې.﴿ قال إن من كان قبلكم كانوا يبعرون بعرا وانتم تثلطون ثلطا فاتبعوا الحجارة الماء﴾حضرت علي رضي الله عنه فرمائيل:چې ستاسونه وړاندې خلګو به پچې كولې.او تاسو خو غټ بول كوئ.

| |
|---|
| إِلَّا إِذَا كَانَ مُوَسْوِسًا مګرچې يوكس وسواسي وی فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ فِي حَقِّهِ نو د هغه په حق كې په دريو سره اندازه كړې شوې ده وَقِيلَ بِالسَّبْعِ اووئيلی شوی دی.چې په اووه سره |

**تشريح:- الروايتان في عدد الغسلات للوسواس**۞صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چې د استنجاء په ځائې به اوبه ترهغه وخته پورې بيوی.چې ترخوئې دنجاست په لرې كيدو غالب ګمان نه وی پيدا شوې.اود درې يا پنځه كرته څه حد نشته.① خوكه يو كس وسواسي وی.نودهغه لپاره درې خله مقررولې شی.لكه چې څنګه په نجاست غيرمرئی كې دی.اوغټ بول اګرچې مرئی دی.ليكن دا چونكه ليدلې نشي.نوهغه هم د ده په حق كې

---

٢) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البزارفي مسنده كذا قال الهيثمي رحمه الله في مجمع الزوائد(٢١٢١١)_



د متيازو يعنی نجاست غيرمرئی په څير دی.② اوځينې عالمانو په اووه ځله مقرر كړی دی.په هغه حديث باندې عمل كاوه د وجې كوم چې د سپي جوټه شوی لوښي اووه ځله وينځلو په اړه كې وارد شوې دې.

## دمحل نه د نجاست د تجاوز په صورت كې د استنجاء حكم

| |
|---|
| وَلَوْ جَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا اوكه نجاست د مخرج نه تجاوز اوكړلو لَمْ يَجُزْ فِيهِ إِلَّا الْمَاءُ نود اوبونه سوا بل څيزجائزنه دې وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: إِلَّا الْمَائِعُ او په ځينې نسخوكې د ﴿الا المائع﴾ (بهيدونكې څيز) راغلې دی وَهَذَا يُحَقِّقُ اخْتِلَافَ الرِّوَايَتَيْنِ فِي تَطْهِيرِ الْعُضْوِ لِغَيْرِ الْمَاءِ اودا ثابتوی اختلاف د روايتينو د اوبو نه علاوه په بل شی داندام پاكولو كې عَلَى مَا بَيَّنَّا لكه چې موږ بيان كړی دی |

**حل اللغة**:①جاوزت، جاوز مجاوزة: زياتې كول ② لم يجز، جاز جوازاً (ن): نه رواكيدل ③ مائع: بهيدونكې

**تشريح:- اختلاف النسختين**۞ مسئله دا ده.چې كله نجاست د محل د استنجاء نه تجاوز اوكړي.نودا صرف په اوبو باندې پاكيږی.او په بعضې نسخو كې د ﴿الا المائع﴾لفظ راغلې دې.يعنی چې كله نجاست د محل د استنجاء نه تجاوز اوكړي.نودا صرف په بهيدونكی څيزباندې پاكيږی.كه دغه بهيدونكې شی اوبه وی او كه د اوبونه علاوه بل څه څيزوی لكه سركه وغيره شوه.اوددې ﴿الا الماء﴾اود ﴿الا المائع﴾د اختلاف نه دا خبره معلوميږی.چې داوبونه علاوه بل شی چې پاك وی او بدن پرې پاكيږی.دهغې په پا كاوه اونه پا كاوه كې دوې (دوه) مختلف ډول روايتونه دی. لكه څنګه چې موږ د باب الانجاس په اول كې ددې تفصيل ليكلې دې.يعنی د ﴿الا الماء﴾د نسخې نه دا معلوميږی.چې حقيقي مرداري د اوبو نه علاوه په بل شی نه پاكيږی.اوكه د ﴿الا المائع﴾نسخې نه دا معلوميږی.چې حقيقي مرداري چې په كوم شی باندې زائله كيږی.نوپه هغې باندې ئې زائله كول جائزدی.كه اوبه وی اوكه د اوبو نه علاوه بل شی وی.

| |
|---|
| وَهَذَا لِأَنَّ الْمَسْحَ غَيْرُ مُزِيلٍ اود دې وجې چې مسح زائلونكې نه ده إِلَّا أَنَّهُ اكْتُفِيَ بِهِ فِي مَوْضِعِ الِاسْتِنْجَاءِ ليكن په ځائې د استنجاء كې په دې باندې اكتفا اوشوه فَلَا يَتَعَدَّاهُ نوددې څخه به متجاوز نه وی |

**حل اللغة**:①مزيل: زائل كونكې ② موضع جمع مواضع: مقام ځائې

**تشريح:- دليل فرضية الغسل عند تجاوز النجاسة من المحل**۞پاته شود دې خبرې دليل چې نجاست كله د مخرج نه تجاوزاوكړي.نودهغېپرېمنځل فرض دی.هغه دا دې.چې په كاڼي وغيره اوچولو سره نجاست زائله كيږی نه.بلكه نور هم خوريږی . ليكن د اړتيا د وجې په باب د استنجاء كې خلاف قياس په كاڼي وغيره سره د دې پاكول طهارت شمار كړې شو.اودا قاعده ده.چې كله يو شی د څه اړتيا د وجې خلاف قياس ثابت شی.نوهغه به خاص وی په دغه محل د ضرورته پورې.بل شی ته به دغه حكم تجاوز نه كوی.نوپه دليل سره ثابته شوه.كه نجاست تجاوز كړې وی .نوپه اوبو وغيره سره د وينځلو نه بغير دهغې طهارت نشی راتلې.

| |
|---|
| ثُمَّ يُعْتَبَرُ الْمِقْدَارُ الْمَانِعُ بيا هغه مقدار چې مانع د لمانځه دې وَرَاءَ مَوْضِعِ الِاسْتِنْجَاءِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله د شيخينو رحمهما الله په نيز د استنجاء د محل نه علاوه دې لِسُقُوطِ اعْتِبَارِ ذَلِكَ الْمَوْضِعِ ځكه چې ددې مقام اعتبار ساقط دې |

**تشريح:- الخلاف في محل قدرالدرهم المعفوعنه** ۞داخبره ياده ساتئ:چې هغه مقدار چې دلمانځه د جواز لپاره مانع دې.① د شيخينو رحمهما الله په نيز د استنجاء نه علاوه ځائې دې.يعنی د استنجاء ځائې په كې حساب نه دې.ځكه چې هغه يوځل معاف شوې دې.(نودوباره په كې هغه حسابول ټيك نه دی) نوچې د يو درهم نه زيات وی .نو په اوبو سره د هغېپرېمنځل فرض دی.

**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله ([1]) اود امام محمد رحمه الله په نيز **مَعَ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَاءِ** د استنجاء د محل سره دي **اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْمَوَاضِعِ** په ټولو ځايونو باندې قياس كوي.

**تشريح:-** د امام محمد رحمه الله په نيز چې د استنجاء ځائې سره ملاؤ شي. او د يو درهم نه زيات شي. نو مانع د لمانځه دې. په نورو ځايونو باندې قياس كوي. يعني لكه څنګه چې په نورو ځايونو كې د يو درهم په برابرې باندې نجاست معاف دې. د دې نه زياتي معاف نه دې. نو دغه ډول د استنجاء په باب كې هم د يوې روپۍ مقدار معاف دې. او ددې نه زياتي معاف نه دې.

## په كومو څيزونو استنجاء مكروه ده؟

**وَلَا يَسْتَنْجِي بِعَظْمٍ وَلَا بِرَوْثٍ** او په كانړي او خاشنړو دې استنجاء نه كوي

**حل اللغة**: ① **لايستنجي، استنجيا ستنجاء**: استنجاء كول ② **عظم**: هډوكې ③ **روث**: سوټه

**تشريح:- كراهية الاستنجاء بالعظم والروثة** ◉ مسئله: په خاشنړو او هډوكي باندې استنجاء كول مكروه ده.

**لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ذَلِكَ** ([2]) ځكه چې نبي ﷺ په دې څيزونو د استنجاء كاوه نه منع فرمائيلې ده **وَلَوْ فَعَلَ** او كه په دې څيزونو يې استنجاء او كړله. **يُجْزِيهِ** نو كافي كيږي **لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ** ځكه چې مقصود حاصل شو **وَمَعْنَى النَّهْيِ فِي الرَّوْثِ لِلنَّجَاسَةِ** او په خاشنړو كې د ممانعت وجه نجاست دې **وَفِي الْعَظْمِ كَوْنُهُ زَادَ الْجِنِّ** او په هډوكي كې د ممانعت وجه د پيريانو خوراك دې

**حل اللغة**: ① **نهيا(ف)**: بندول منع كول ⑤ **زاد**: توښه خوراك

**الدليل الاول** ◉ ځكه چې په صحيح بخاري كې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دې. چې «قال له النبي ﷺ إبغني أحجارا أستنفض بها ولا تأتني بعظم ولا بروثة قلت ما بال العظام والروثة؟ قال ﷺ هما من طعام الجن» نبي ﷺ حضرت ابوهريره رضي الله عنه ته وويل: زما لپاره كانړي راوګوره. چې زه پرې استنجاء او كړم. خو هډوكي او د خوراك شي راته مه راوړه. حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي. ما عرض او كړو. په هډوكي او خشنړو كې څه وجه ده؟ نبي وويل دا دواړه د پيريانو خوراك دي.

**علة الكراهة في العظم والروثة** ◉ او كه د ممانعت باوجود يې په دې څيزونو استنجاء او كړله. نو استنجاء اوشوه. ځكه چې مقصود حاصل شو. چې د نجاست لرې كول وو. خو سنت ادا نشو. او په خاشنړو كې د ممانعت وجه ددې نجاست دې. او په هډوكي كې د ممانعت وجه دا ده. چې دا د پيريانو خوراك دې.

**ثبوت طهارة الروثة عند مالك** رحمه الله ◉ ذكر شوي دواړو حديثونو باندې د خاشنړو په طهارت استدلال كيداې شي. لكه چې د امام مالك رحمه الله قول دې. ځكه كه چرته خاشنړه نجس وې. نو د پيريانو لپاره به دا حلال نه وې. ځكه چې شريعت د دواړو مكلفينو لپاره كه انسانان دي او كه پيريان برابر دې. مګر دا چې څه دليل موجود شي. (او دغې نه دا معلوميږي. چې دا حكم د پيريانو پورې خاص دې. يا د انسانانو پورې خاص دې.)

**تشريح:- دليل نجاسة الروثة** ◉ علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائي. چې د خاشنړو په نجاست باندې حديث موجود دې. ځكه چې نبي ﷺ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه خاشنړه اوغورځولو. او دا يې او فرمائيل: «هذا ركس» يعني دا پليت دې.

**وَلَا بِطَعَامٍ** او استنجاء به نه كوي په طعام باندې **لِأَنَّهُ إِضَاعَةٌ وَإِسْرَافٌ** ځكه چې دا ضائع كول او اسراف دې

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير (١٩٠\١) وردالمحتار (٢٤٩\١) والخلاصة (٢٤\١) والهندية (٤٩\١) نقلا عن القول الراجح (٥٧\١)-

[2]) من حديث ابي هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاري في الوضوء باب ٢٠ ومناقب الانصار باب ٣٢)_



**تشريح:- دليل كراهة الاستنجاء بالطعام** ◉ او د خوراك په څيز هم استنجاء كول جائز نه ده. ځكه چې دا ضائع كول او اسراف دې. او دا دواړه خبرې حرامې دي.

**وَلَا بِيَمِينِهِ** او استنجاء دې نه كوي په ښي لاس **لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الْاِسْتِنْجَاءِ بِالْيَمِينِ** ([1]) ځكه چې نبي ﷺ په ښي لاس باندې د استنجاء كاوه نه منع فرمائيلې ده.

**دليل كراهة الاستنجاء باليمين** ◉ او په خپل ښي لاس باندې استنجاء نه كوي. ځكه چې نبي ﷺ په ښي لاس باندې داستنجاء كولو نه منع فرمائيلې ده. د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دې. «قال إذا بال احدكم فلا يأخذن ذكره بيمينه، ولا يستنجي بيمينه ولا يتنفس في الإناء» بخاري ومسلم) يعني فرمائيلي يې دي. كله چې په تاسو كې څوك متيازې كوي. نو خپل خاص اندام دې په ښي لاس نه نيسي. او په ښي لاس دې استنجاء نه كوي. او په لوښي كې دې ساه نه اخلي. په دې حديث كې ښكاره په ښي لاس داستنجاء كاوه نه منع راغلې ده.

# كِتَابُ الصَّلَاةِ

ژباړه:- (دا) كتاب د لمونځ (داحكامو په بيان كې) دې.

**تشريح:- وجه تقديم الطهارة على الصلاة** ◉ لمونځ د عباداتو اصل او د طاعاتو بنا (بنياد) دې. نو ځكه دا په ټولو مشروعاتو باندې مقدم كړې شو. او طهارت دلمانځه شرط دې. او شرط مقدم وي په مشروط باندې. نو ځكه كتاب الطهارة په كتاب الصلاة باندې مقدم كړې شو.

**معنى الصلاة لغةً** ◉ صلاة په لغت كې د دعا په معنى كې راځي. لكه ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَهُمْ ﴾ يعني ته د دوی لپاره دعا غواړه. بيشكه ستا دعا د دوی لپاره سبب د اطمينان دې. او د نبي ﷺ قول دې. « وصلت عليكم الملائكة) يعني فرښتې تاسو ته دعاګانې كوي. او د نبي ﷺ قول «إذا دعى أحدكم إلى الطعام فليجب فإن كان مفطراً فلياكل وإن كان صائماً فليصل» يعني كله چې چا ته دعوت ملاؤ شي. نو هغه قبلول پكار دی. كه روژه دار نه وي. خوراك دې اوكړي. او كه روژه داروی. نو هغه لپاره دې د خير او بركت دعا اوكړي.

**معنى الصلاة شرعاً** ◉ او د شريعت په اصطلاح كې د افعال معلومه ؤ او اركان مخصوصه ؤ نوم دې. او دې افعال معلومه ؤ او اركان مخصوصه ؤ ته صلاة ځكه وائي. چې دا د دعا په معنى مشتمل دې. د وجوب صلاة سبب ددې وخت دې. او د لمونځ ادا كاوه سبب دالله تعالى امر تقديري دې.

**شروط الصلاة واركانها** ◉ د لمونځ شرطونه طهارت، سترعورت، استقبال دقبلې، وخت، نيت، او تكبير تحريمه دی. په دې موقع كه څوك دا اعتراض اوكړي. چې وخت سبب دې. نو شرط څنګه شو. نو ځواب دا دې. چې وخت سبب د وجوب دې. او شرط لپاره د ادا دې. نو څه اشكال پاته نشو.

**اركان الصلاة** ◉ او دلمونځ اركان قيام، قرات، ركوع، سجده، او دتشهد په اندازه آخري قعده.

**حكم الصلاة** ◉ او ددې حكم په دنيا كې د ذمه نه د واجب سقوط دې. او په آخرت كې دهغه ثواب حاصليدل دی. چې وعده يې شوې ده.

**دلائل فرضية الصلاة** ◉ دلمونځ فرضيت په كتاب، سنت او اجماع درې واړو باندې ثابت دې. ① كتاب الله مثلاً ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ﴾ او ﴿ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا ﴾ دې. ② او سنت د رسول الله ﷺ لكه رسول الله ﷺ فرمايي. « إن الله تعالى فرض على كل مسلم ومسلمة في كل يوم وليلة خمس صلوات» ③ او اجماع دا ده. چې د نبي ﷺ د زمانې نه واخله تر اوسه پورې د لمونځ په فرضيت باندې د واړه امت اجماع ده.

**اثبات الصلوات الخمس من سورة البقرة** ◉ دا خبره چې مونځونه پنځه دی. دا هم دكتاب الله نه ثابته ده. الله تعالى

[1]) من حديث ابي قتادة رضي الله عنه اخرجه البخاري في الوضوء باب ١٨ رقم ١٥٣ ومسلم في الطهارة رقم ٦٣ وابوداو في الطهارة باب ١٨ والترمذي في الطهارة باب ١١ والنسائي في الطهارة باب ٤١ وابن ماجه في الطهارة باب ١٥)_

فرمائي.﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى﴾ دا آيت د لمونځ په فرضيت هم دلالت كوي. دی.دا په دي طريقه چې الله تعالى د ټولو مونځونو د محافظت حكم كړي دي.او په دي باندي ني د،،صلاة وسطى،،عطف كړي دي.اواقل د جمعي چې وسط په كي متحقق وي. څلور دی. نو په ،،على الصلوات،، كي د څلورو مونځونو ذكر دي.او په صلاة وسطى كي د يوبل مونځ.نوداسي دا پنځه مونځونه شو.

**تاريخ فرضية الصلاة**◉پاته شوه داخبره.چې لمونځ كله فرض شوي وو.او د لمونځ دفرضيت نه وړاندي د نبى ﷺ دعبادت طريقه څه وه؟نو په دي باندي خو د تاريخ او سيرت د ټولو عالمانو اتفاق دي.چې لمونځ د معراج په شپه باندي فرض شوي دي.خو بيا دمؤرخينو د معراج د شپې په اړه كي اختلاف دي.چې دا په كوم كال كي واقع شوي وه.نو د نبوت د پنځم كال نه تر لسمه پوري په كي مختلف اقوال منقول دی.جمهور عالمان د پنځم كال قائل دی.

**الخلاف في فرضية الصلاة قبل الخمس**◉بيا په دي كي اختلاف دي.چې د معراج د شپې نه وړاندي څه لمونځ فرض وواوكه نه؟① دزياتو عالمانو هم دا خيال دي.چې د پنځو مونځونو نه وړاندي څه لمونځ فرض نه وو. ②خو د امام شافعي رحمه الله قول دي.چې د معراج نه وړاندي د تهجدو لمونځ فرض وو.ددي دليل د سورت مزمل اولنی آياتونه ﴿قم الليل إلا قليلا﴾ دي.دا سورت په مكه كي بالكل په لومړنی زمانه كي نازل شوي وو.

**الجواب عن استدلال الشافعي رحمه الله وضعفه**◉ ځيني حضراتوځواب وركړي دي.چې په سورت مزمل كي د لمونځ حكم مدنی دي.ځكه چې ددي سورت په آخر كي ﴿ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّـهِ﴾مزمل:۲۰﴾راغلی دی. او قتال په مدينه منوره كي پيل شوي وو.خو دا خبره صحيح نه ده.ځكه چې د قتال ذكر په دي سياق كي دي.﴿ عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّـهِ ﴾ په دي آيت كي صيغه د مستقبل ده.دا په دي باندي دلالت كوي.چې دا حكم به روستو ور كولاي شي.اود آيت د نزول په وخت كي قتال نه وو.نوكه دا سورت مكی اوګنړلي شي .په دي كي څه قباحت نشته.نو دامام شافعي رحمه الله استدلال ټيك دي.خو د ځيني عالمانو قول دي.چې د تهجدو لمونځ صرف په نبى ﷺ باندي فرض وو.په پاته امت باندي فرض نه وو.

**هل فرض على المسلمين صلاة قبل الاسراء**◉ بيا په دي كي اختلاف دي. چې عامو مسلمانانوبه هم د پنځه مونځونو نه وړاندي څه لمونځ كولوكه نه؟د ځيني عالمانو رحمهم الله دا خيال دي.چې د سهار او ماښام لمونځ د معراج دشپې نه وړاندي فرض شوی وو.ددي دليل دا آيت دي ﴿وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ﴾ آل عمران:۴۱﴾دا آيت د معراج نه وړاندي نازل شوي دي.او په دي كي هم ددي دوو مونځونو ذكر دي.

**القول المحقق**◉ په دي اړه كي تحقيقي خبره دا ده.چې دومره خبره خو د رواياتو نه ثابته ده.چې نبى ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم به د معراج نه وړاندي د سهار او ماښام مونځونه كول.په سورت جن كي چې د جناتو د قرآن اوريدو كومه واقعه راغلي ده.هغه د سهار په لمانځه كي پيښه شوي وه.اوغالباً دا د معراج نه وړاندي وه.خودا دواړه مونځونه په نبى ﷺ فرض وو.كه دوی به دا نفلي كول.نوددي څه دليل او صراحت په رواياتو كي نشته.

## بَابُ الْمَوَاقِيتِ

ژباړه:- (دا) باب د (مونځ د) وختونو(په بيان كښې) دي.

**تشريح:- وجه تقديم باب المواقيت على الصلاة**◉د لمونځ وختونه د لمونځ د وجوب لپاره اسباب دی.او سبب مقدم وی په مسبب باندي.نوځكه ني د لمونځ د وختونو بيان مقدم كړۀ.مواقيت جمع د ميقات ده.ميقات هغه زمانه يا مكان دي.چې حد ترې مقرر كولاي شي.لكه مواقيت صلاة او مواقيت احرام.

**دصبا د مونځ اول او آخر وخت**



**أَوَّلُ وَقْتِ الْفَجْرِ** د سهار لومړي وخت **إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ الثَّانِي** كله چې فجرثانی راوڅيږی **وَهُوَ** او فجر ثانی هغه دي **الْمُعْتَرِضُ فِي الْأُفُقِ** چې په افق كي په پلنوالی پرخپاره شوي (خور شوي)وی **وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ** اود سهار آخري وخت ترڅو چې نمر نه وی راختلي

**حل اللغة**:①**طلع طلوعاً(ف)**: راوتل، ښكاره كيدل ②**معترض**: خوريدونكي

**تشريح:- جوه تقديم الفجرعلى غيرها**◉ په حديث كي اګرچې د ماپښين وخت مقدم دي.خو دلته د څو وجوهاتو نه د سهار وخت مقدم شو.① اوله وجه دا چې د سهار اول او آخر وخت اتفاقی دي. نو ځكه دا مقدم كړي شو.ددي په خلاف د نورو مونځونو په وختونو كي لږ غوندي اختلاف شته.② دويمه وجه دا ده.چې د صبالمونځ د ټولو نه اولنی انسان حضرت آدم عليه السلام كړي وو.③ دريمه د سهار لمونځ په ورځ كي لومړي لمونځ دي. ځكه ني په ذكر كي هم مقدم كړۀ.④ څلورمه وجه دا ده.چې اوده سړي چې د مړی په څير وی.په هغه د ټولو نه لومړي لمونځ چې واجبيږی.هغه د سهار لمونځ دي.نو ځكه د سهار وخت وړاندي ذكر كړي شو.(حاشيه ملاعبدالغفور عنايه)

**تعريف الفجرالصادق والكاذب**◉ نو د سهار د لمونځ وخت د سهار صادق په راختو پيل كيږی.او په نمرراختو ختميږی.اوصباصادق هغه رڼائی ده.چې په پلنوالی په آسمان كي خوره شي.او سهار كاذب هغه رڼائی ده.چې په اوږد والی په آسمان باندي ښكاره شي.اودهغې نه روسته بيا چاغه شي.عربيانو به سهار كاذب ته،،ذنب السرطان،، (د شرموښ لكۍ) وئيله.

**حَدِيثِ {إِمَامَةِ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ** . ځكه چې په حديث د امامة جبرئيل عليه السلام كي **فَإِنَّهُ أَمَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ** چې دوی نبى ﷺ ته په اوله ورځ لمونځ په هغه وخت كي اوكړلو **حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ** چې سهار راوختلو **وَفِي الْيَوْمِ الثَّانِي حِينَ أَسْفَرَ جِدًّا** او په بله ورځ چې ښه رڼا شوه **وَكَادَتِ الشَّمْسُ تَطْلُعُ** او لمر راختو ته نزدي شو **ثُمَّ قَالَ فِي آخِرِ الْحَدِيثِ** بيا ني دحديث په آخر كي اووئيل.**مَا بَيْنَ هَذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ وَقْتٌ لَكَ وَلِأُمَّتِكَ**[1] چې ددي دواړو په مينځ كي وخت دي ستا لپاره او ستا د امت لپاره

**تشريح:- دليل وقت الفجر**◉د سهار د اول اوآخر وخت دليل په امامت جبرئيل عليه السلام حديث دي.صاحب د عنايه پوره حديث داسي بيان كړي دي

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي.چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل.حضرت جبرئيل عليه السلام ماته د خانه كعبې سره دوي (دوه) ځله امامتی راكړي وه.په لومړنی ورځ ني راته د ماپښين لمونځ اوكړۀ.چې لمر زائله وو.او سوري د شراك (د پڼې د تسمې) په څير وو.او د مازيګر لمونځ ني راته اوكړۀ.په داسې وخت كي چې دهر شی سورې دهغې په دوچنده شو. اود ماښام لمونځ ني راته په هغه وخت كي اوكړۀ.چې لمر پريوتي وو.اود ماسخوتن لمونځ راته راكړۀ.په هغه وخت كي چې شفق غائب شو.او د سحر لمونځ ني راته راكړوكله چې سهار راوختلو.او لمونځ ني راته راكړه د ماپښين د لمانځه په دويمه ورځ كله چې نمر زائله شو.او دهر شی سوري دو چنده شو.او لمونځ ني راته راكړلو د مازيګر كله چې دهرڅيز سورې د هغې په يوچند شو.او د ماښام لمونځ ني راته راكړلو.چې لمر پريوتلو .هم په هغه وخت كي چې پرون ني راته په كي (د ماښام مونځ) كړي وو . او دماسخوتن لمونځ ني راته اوكړۀ.چې د شپې دريمه برخه تيره شوې وه. يا نبى ﷺ ووېل . چې نيمه شپه تيره شوي وه.او د سهار لمونځ ني راته اوكړه.په هغه وخت كي چې رڼا شوې وه.او لمر راختو ته نزدې وو.بيا حضرت جبرئيل عليه السلام ووېل .اې محمده! دا ستا وخت دي.او ستا نه وړاندي د پيغمبرانو عليهم

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه ابوداود فى الصلاة باب ٢ والترمذى فى المواقيت باب ١ واحمد فى المسند(٣٣٣\١) والبيهقى فى السنن الكبرى (٥٣٥\١) رقم ١٧٠٢)_

السلام وخت وو.

**وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْفَجْرِ الْكَاذِبِ** او د سهار کاذب څه اعتبار نشته **وَهُوَ الْبَيَاضُ الَّذِي يَبْدُو طُولًا** او دا هغه رڼرا ده. چې په پلنوالی سره څرګندیږی **ثُمَّ يَعْقُبُهُ الظَّلَامُ** او بیا چاغه شی. **لقوله عليه الصلاة والسلام** څکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی **لا يغرنكم أذان بلال** د بلال ؓ اذان دې تاسو دهوکه نکړی **ولا الفجر المستطيل** او نهٔ فجر مستطیل **وانما الفجر المستطير في الأفق** (۱) او سهار خو هغه دې. چې په افق مستطیر وی **أي المنتشر فيه** یعنی په دې کې خور وی.

**حل اللغة:** ① **بياض:** سپینوالې ② **طولاً:** اوږدوالې ③ **ظلام:** چاغې (تیاره) ④ **منتشر:** خوریدونکې

**تشريح:- توضيح اذان بلال ؓ** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې د سهار په لمانځه کې سهار صادق معتبر دې. سهار کاذب معتبر نه دې. دلیل هغه حدیث دې. کوم چې په صحیح مسلم ترمذی وغیره کې دې. واقعه داسې وه. چې حضرت بلال ؓ به د سهار صادق راختلو نه وړاندې د تهجدو یا پیشلمی (پیشمنې) لپاره اذان کولو. او عبدالله بن ام مکتوم ؓ به د سهار راختونه روسته اذان کولو. په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. «لا يغرنكم أذان بلال ولا الفجر المستطيل» یعنی د بلال اذان دې تاسو دهوکه نکړی. یعنی د بلال په اذان باندې دا ګمان مکوئ. چې د سهار د لمونځ وخت داخل شو. څکه چې دا د سهار لپاره نه دې. بلکه د تهجدو یا پیشلمی (پیشمنې) لپاره دې. او نه دې تاسو فجر مستطیل دهوکه کړی. فجر مستطیل یعنی سهار کاذب هغه پلنه رڼرا ده. چې په آسمان کې خوره شی.

## د ماپښین اول او آخری وخت

**وَأَوَّلُ وَقْتِ الظُّهْرِ** او د ماپښین اول وخت **إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ** کله چې نمر زائله شی **لِإِمَامَةِ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ** څکه چې جبرئیل ؑ په اوله ورځ هم په دې وخت کې امامت کړې وو **حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ** (۲) چې نمر زائله شوې وو

**حل اللغة:** ① **زالت، زال زوالاً (ن)**، زائل کیدل ② **شمس:** لمر

**تشريح:- اول وقت الظهر** بهرحال د ماپښین اول وخت د زوال نه روسته پیل کیږی. او د دے دلیل دا دې. چې حضرت جبرئیل ؑ په اوله ورځ د ماپښین لمونځ هم په دې وخت کې کړې وو.

**وَآخِرُ وَقْتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** (او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ماپښین آخری وخت) **إِذَا صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ** کله چې د هر شی سورې دهغه په دوچنده شی **سِوَى فَيْءِ الزَّوَالِ** (۲) علاوه د سوری د زوال (اصلی نه

**حل اللغة:** ① **ظل جمع ظلل:** سورې ② **فئ:** سورې

**تشريح:- الروايتان في اخروقت الظهر عن ابي حنيفة رحمه الله** د ماپښین په آخری وخت کې احناف عالمان په خپلو کې مختلف دی. دامام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت هغه دې کوم چې امام محمد رحمه الله نقل کړې دې. چې کله د اصلی سوری نه علاوه دهر شی سورې دوچنده شی. نود ماپښین وخت ختمیږی. اود مازیګر وخت داخلیږی. دا روایت د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې.

---

(۱) من حديث سمرة بن جندب ؓ اخرجه مسلم في الصيام رقم ٤٣ وابوداود في الصوم باب ١٧ والترمذي في الصوم باب ١٥ وابن ماجه في الصيام باب ٢٣ واحمد في المسند(٤\٢٣)_

(۲) القول الراجح هوهذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(١\٢٦٤) والبحرالرائق (١\٤٢٥) والدرالمختار(١\٢٦٤) وقال المفتي غلام قادر مدظله الاحوط ان يصلي الظهر في المثل الاول لكن اذا تاخر عن المثل الاول فجاز اداءها في المثل الثاني لان الاداء في الوقت المختلف فيه اولى من التفويت راسا ، نقلا عن القول الراجح (١\٥٨)-



**وَقَالَا** او صاحبین رحمهما الله فرمایي **إِذَا صَارَ الظِّلُّ مِثْلَهُ** چې کله د هر شی سورې دهغې برابر شی **وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** اودا دې یو روایت دابوحنیفه رحمه الله نه

**تشريح:-** دوهم روایت کوم چې حسن بن زیاد نقل کړې دې. چې کله دهرڅیز سورې د هغې داصلی سوری نه علاوه دهغې په یو مثل یعنی دهغې شی برابر شی. نود ماپښین وخت اووتلو. اود مازیګر وخت داخل شو. هم دا د صاحبینو، امام زفر او امام شافعی رحمهم الله مذهب دی.

**التسامح من صاحب القدوری** دلته کې د امام قدوری رحمه الله په عبارت کې لږ غوندې تسامخ دې. هغه دا چې امام قدوری رحمه الله فرمائی. چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ماپښین آخر وخت دا دې. چې دهر شی سورې دهغې دوچنده شی. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز چې یوچند شی. حالانکه په هغه وخت کې خو د ماپښین وخت خارج شوې وی. (یعنی چې سورې یوچند او دوچنده شی. نوپه دې خو د ماپښین وخت ختم شو. (دا خوئې آخری وخت نه دې.) نو د دې د آخری وخت څه مطلب شو. ددې ځواب دا دې. چې د آخر نه مراد هغه وخت دې چې په هغې سره د ماپښین د وخت وتل متحقق کیږی.

**وَفَيْءُ الزَّوَالِ** او فئ زوال هغه سورې دې **هُوَ الْفَيْءُ الَّذِي يَكُونُ لِلْأَشْيَاءِ وَقْتَ الزَّوَالِ** کوم چې د زوال په وخت کې د څیزونو وی.

**تشريح:- طريق معرفة زوال الشمس** صاحب د عنایه د محمد بن شجاع په حواله سره د فئ زوال معلومولو طریقه بیان کړې ده. چې اول دې مځکه داسې هموار کړې شی. چې په دې کې د ویخته برابر اوچتوالې او کښته والې پاتې نشی. بیا دې په دې کې یو لرګې ښخ کړې شی. اوچې تر کوم ځائې پورې دهغې سورې رسی. هلته دې یوه نښانه اوکړې شی. نوچې ترڅو دغه سورې کمیږی. نودا د زوال نه وړاندې وخت دې. نو په دغه وخت کې چې کوم سورې وی. هغې ته فئ زوال او اصلی سورې وئیلې شی. اوکله چې سورې په اوږدیدو شی. نوپوهه شه. چې لمر زائله شو. او د ماپښین د لمانځه وخت داخل شو.

**لَهُمَا** دصاحبینو رحمهما الله دلیل **إِمَامَةُ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ فِي هَذَا الْوَقْتِ** د حضرت جبرئیل ؑ په لومړنۍ ورځ کې هم په دې وخت کې امامت ورکول دی

**تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله** دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چې حضرت جبرئیل ؑ په اوله ورځ د مازیګر لمونځ هم په هغه وخت کې کړې وو. چې دهر شی سورې د هغې برابر وو. نومعلومه شوه. چې په دغه وخت د مازیګر وخت پیل کیږی. او د ماپښین وخت خارجیږی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** او دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دی **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې نبی ﷺ فرمائیلی دی **{أَبْرِدُوا بِالظُّهْرِ}** چې د ماپښین لمونځ په یخنۍ کې کوئ **فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ}** (۱) څکه چې سخته ګرمی د جهنم د ګرمۍ نه وی **وَأَشَدُّ الْحَرِّ فِي دِيَارِهِمْ فِي هَذَا الْوَقْتِ** او دګرمۍ زور به د صحابؤ ؓ په کورنو کې په دې وخت کې وو

**حل اللغة:** ① **ابردوا، ابرد ابراداً:** یخول ② **اشد:** ډیر سخت ③ **حر:** ګرمی

**تشريح:- دليل ابی حنيفة** دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دحضرت ابوسعید خدری ؓ حدیث دې. یعنی «ابردوا بالظهر فإن شدة الحر من فيح جهنم» په دې حدیث باندې استدلال داسې کیږی. چې نبی ﷺ د ماپښین لمونځ د یخنۍ په وخت کې د کاوه حکم کړې دې. او په عرب ملکونو کې سخته ګرمی هم په دې وخت کې وی. (چې کله دهر شی سورې دهغې برابر شی.) نومعلومه شوه. چې نبی ﷺ د یو مثل نه روسته د ماپښین دلمونځ کاوه

---

(۱) من حديث ابي سعيدالخدري اخرجه البخاري في المواقيت باب ٩ رقم ٥٣٦ ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ١٨٠ وابوداود في الصلاة باب ٤ والترمذي في المواقيت باب ٥ والنسائي في المواقيت باب ٥ وابن ماجه في الصلاة باب ٤)_

حکم کړی دی.اوکله چې د یومثل نه روسته د ماپښین وخت پاته وی.نود یومثل نه روسته د مازیګر وخت څنګه پیل کیدای شي؟

**وَإِذَا تَعَارَضَتِ الْآثَارُ** اوکله چې آثار متعارض شو **لَا يَنْقَضِي الْوَقْتُ بِالشَّكِّ** نو په شك سره نه خارجیږي.

**تشریح:- جواب صاحب الهدایة من حدیث جبریل ﷺ** صاحب دهدایه رحمه الله داسې استدلال کوی.چې حدیث دامامت جبرئیل علیه السلام په دې دلالت کوی.چې په یومثل سره د ماپښین وخت ختمیږی.اوحدیث «اسردوا بالظهر» نه معلومیږي.چې په یو مثل باندې د ماپښین وخت نه ختمیږی.بلکه پاته وی.نوپه یو مثل باندې د ماپښین د وخت وتل مشکوك شو.حالانکه د یو مثل نه وړاندې د ماپښین د وخت وجود یقیني وو.او دا قاعده ده.چې یو شی په یقین سره ثابت وی.نوپه شك سره نه ختمیږی.(لکه چې یو سړی ته خپل اودس په یقین سره یاد وی.خو په اودس ماتی کې ئې شك شی.چې ما اودس مات کړې دی که نه؟نو فقهاء لیکې چې اودس کول پرې نشته.) نو چې دهر شي سوري دهغې په مثل شي.په دې باندې د ماپښین د وخت وتل مشکوك شو.نو نهٔ خارجیږي.

**جواب ابن همام من حدیث جبریل ﷺ** اودامامت دجبرئیل علیه السلام دحدیث نه علامه ابن همام رحمه الله دا خواب کړي دی.چې دلمونځ دوختونو په اره کې دا حدیث دټولو نه وړاندې دی.اوکوم حدیثونه چې ددې نه مخالف دی.نوهغه واړه روستني دی.او مؤخر د مقدم لپاره ناسخ وی.نومعلومه شوه.چې حدیث جبرئیل علیه السلام منسوخ دی .نوقابل استدلال پاتې نشو.

## د مازیګر اول او آخر وخت

**وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعَصْرِ إِذَا خَرَجَ وَقْتُ الظُّهْرِ** او دمازیګر اول وخت چې کله د ماپښین وخت اوځی **عَلَى الْقَوْلَيْنِ** په دواړو قولونو باندې **وَآخِرُ وَقْتِهَا** اود مازیګر آخر وخت **مَا لَمْ تَغْرُبِ الشَّمْسُ** ترڅو پورې چې نمر نه وی ډوب شوی

**حل اللغة:** ① لم تغرب، غرب غروباً (ن): ډوبیدل

**تشریح:- اول وقت العصر واخره ﷺ** د مازیګراول وخت هله پیل کیږي.چې د ماپښین وخت ختم شی.برابره ده.که د ماپښین وخت په دوچنده باندې ختم شی.لکه چې دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دی.اوکه په یوچند باندې ختم شی لکه چې د صاحبینو رحمهما الله مذهب دی.او د مازیګر وخت د لمر ډوبیدو نه وړاندې پورې دی.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {**مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ** چاچې د لمر ډوبیدو نه وړاندې یو رکعت اوکړهٔ **فَقَدْ أَدْرَكَهَا**} (۱) نوده مازیګر رالاندې کړه.

**حل اللغة:** ① ادرک ادراکًا: موندل

**تشریح:- دلیله ﷺ** دلیل دحضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث دی. «قال قال رسول الله ﷺ من أدرك من الصبح ركعة قبل أن تطلع الشمس فقد أدرك الصبح ومن أدرك ركعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرك العصر» (صحيحين) حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی . چا چې د لمر راختلو نه وړاندې د سهار یو رکعت رالاندې کړهٔ.نوهغه سهار رالاندې کړه.اوچاچې د لمر پریوتو نه وړاندې د مازیګر یو رکعت رالاندې کړهٔ.نوده مازیګر رالاندې کړهٔ.ددې حدیث نه معلومه شوه.چې د مازیګر وخت د لمر ډوبیدو نه وړاندې پورې پاته وی.

**الاختلاف في فساد الصلاة بطلوع الفجر ﷺ** اوکه د سهار په لمونځ کې د یو رکعت نه روسته لمر راوختلهٔ.① نود

۱) من حدیث ابی هریرة رضي الله عنه اخرجه البخاري فی مواقیت الصلاة باب ۲۸ رقم ۵۷۹ ومسلم فی المساجد رقم ۱۶۳ والترمذی فی الصلاة باب ۲۳ رقم ۱۸۶ والنسائی فی المواقیت باب ۱۱ وابن ماجه فی الاقامة باب ۹۱ ومالک فی الموطاء فی کتاب وقوت الصلاة باب ۳ رقم ۱۵)_



امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز لمونځ باطل شو.یعنی چې نمر راوُ خیژی.قضاء به راوری.② او دامام مالك امام شافعي او امام احمد رحمهم الله په نیز نه باطلیږي.بلکه هم هغه دې پوره کړی ددې حضراتودلیل هم دا د ابوهریره رضي الله عنه حدیث دی.

**المراد ادراک الوقت ﷺ** زموږ د ارخه ددې حدیث خواب شیخ الادب دا لیکلي دي.چې د «فقد ادرك الصبح» معنی ده. «فقد أدرك وقت الصبح» یعنی که یو کس د لمونځ اهل نه وی.اوبیا په داسې وخت کې د لمونځ اهل شی.چې د یو رکعت په اندازه وخت پاته وی.نو په ده به لمونځ واجب وی.لکه کافر مسلمان شو.یا ماشوم بالغ شویا حائضه پاکه شوه.دا خبره یاد ساتل پکار دی.چې د یو رکعت اندازه صرف د پوهولو لپاره ده.ځکه که د یو رکعت وخت اوموموي. یا ددې نه کم.په دواړو صورتونو کې په ده باندې لمونځ لازمیږي.

## دماښام اول او آخر وخت

**وَأَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ** اود ماښام اول وخت **إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ** چې کله لمر ډوب شی **وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ** اود ماښام آخری وخت چې ترڅوپورې شفق ختم شوې نه وی

**حل اللغة:** ① لم یغب، غاب غیبة: غائبیدل

**تشریح:- الاختلاف في وقت المغرب ﷺ** دماښام اول وخت د لمر ډوبیدو نه پیل کیږي.او د شفق ختمیدو پورې پاته وی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله فرمایي **مِقْدَارُ مَا يُصَلِّي فِيهِ ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ** دومره مقدارچې په کې درې رکعته کیدای شي

**تشریح:-** دامام شافعي رحمه الله مذهب دا دی.چې دماښام وخت صرف د درې رکعته لمونځ کاوه په اندازه باندې پاته وی.اودا د امام شافعي رحمه الله په دوو قولونو کې یو قول دی.امام غزالی رحمه الله فرمائی.دامام شافعي رحمه الله نه د ماښام د وخت په اره کې دوې (دوه) اقوال منقول دی.① یو دا چې د ماښام وخت د غروب شفق پورې اوږد دی.اوهم دا قول دامام احمد بن حنبل رحمه الله دی.② دوهم قول دا دی.که د غروب نه روسته د اودس اذان، اقامت او پنځو رکعتو وخت تیر شو.نوداسې اوګنړه.چې د ماښام وخت ختم شو. یعنی د ماښام وخت صرف دومره دی.چې په کې اودس، اذان، اقامت او پنځه رکعته کیدای شی. او په حلیه کې دی.چې صرف دومره دی. چې درې رکعته په کې کیدای شی.

**لِأَنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَمَّ فِي الْيَوْمَيْنِ فِي وَقْتٍ وَاحِدٍ.** (۱) ځکه چې جبرئیل علیه السلام په یو وخت کې د دواړو ورځو امامتی ورکړي وه

**تشریح:- دلیله ﷺ** دامام شافعي رحمه الله دلیل د امامت جبرئیل علیه السلام حدیث دی.په دې کې جبرئیل علیه السلام د ماښام لمونځ په دواړو ورځو کې په یو وخت کې کړې وو.که چرته دماښام وخت اوږد وي.نو حضرت جبرئیل علیه السلام به دواړه ورځې په یو وخت کې نه وو کړې.

**وَلَنَا** او زموږ دلیل دا دی **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {**أَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ** د ماښام اول وخت چې کله لمر ډوب شی **وَآخِرُ وَقْتِهَا حِينَ يَغِيبُ الشَّفَقُ**} (۲) او آخری وخت چې شفق غائب

۱) کما تقدم فی حدیث ابن عباس رضي الله عنهما)-
۲) قال الزیلعی رحمه الله غریب وبمعناه ا رواه مسلم (ای فی المساجد ومواضع الصلاة رقم ۱۷۴) من حدیث عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما قال سئل رسول الله ﷺ عن وقت الصلوات فقال ﷺ..... ووقت صلاة المغرب اذا غابت الشمس مالم یسقط الشفق(نصب:۱/۲۹۹)

| |
|---|
| شي |

**حل اللغة:** ① **شفق:** سرخی

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ زمونږ دليل د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث «اول وقت المغرب حين تغرب الشمس وآخره حين يغيب الشفق» دي.

| |
|---|
| **وَمَا رَوَاهُ** او كوم حديث چې امام شافعی رحمه الله روايت كړي دي. **كَانَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْكَرَاهَةِ** هغه د كراهت نه د بچ كيدو لپاره وو |

**تشريح:- الجواب عن دليل الشافعی** رحمه الله ۞ اوپاته شو حضرت جبرئيل عليه السلام په دواړو ورځو كې په يو وخت كې د ماښام مونځ. نوهغه د كراهت نه د ځان بچ كاوه لپاره وو. ځكه چې ماښام آخری وخت ته روستو كول مكروه دی.

| |
|---|
| **(ثُمَّ الشَّفَقُ هُوَ الْبَيَاضُ الَّذِي** بيا شفق هغه سپينوالې دې **فِي الْأُفُقِ بَعْدَ الْحُمْرَةِ** چې په افق د سرخۍ خوريدو نه روسته وی **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (١) دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دي |

**حل اللغة:** ① **بياض:** سپينوالې ② **حمرة:** سرخی

**تشريح:- الخلاف في تعين الشفق** ۞ دا خبره دې ياده وی. چې د شفق په تعين كې د عالمانو اختلاف دې.

① حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی. شفق هغه سپين والې دې. چې د سوروالی نه روسته په افق خور شی. اودا قول د صديق اكبر، معاذ، انس، ابن زبير رضي الله عنهم دې

| |
|---|
| **وعندهما هُوَ الْحُمْرَةُ.** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز شفق سرخی ده **وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله دا روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دې **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِي** اويو قول دې د امام شافعی رحمه الله **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** "{الشَّفَقُ الْحُمْرَةُ} (٢) ځكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. «الشفق الحمرة» |

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی. چې دسرخۍ نوم شفق دې. اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم يو روايت دې. اودا د امام شافعی رحمه الله قول دې.

**دليل الصاحبين** رحمهما الله ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل د نبی ﷺ قول «الشفق الحمرة» دې.

| |
|---|
| **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** چې نبی ﷺ فرمائيلی دی {**وَآخِرُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ إِذَا اسْوَدَّ الْأُفُقُ**} (٣) د ماښام آخر وخت چې كله توروالې خور شی |

**تشريح:- دليل ابی حنيفة** رحمه الله ۞ اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه دې. كوم چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كړې. «ان النبي ﷺ قال وآخروقت المغرب إذا اسود الأفق» چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. د ماښام آخری وخت چې كله افق تور شی. او معلومه ده. چې په افق باندې توروالې د سوروالی نه روسته خوريږی. نومعلومه شوه. چې د سپين والی پورې وخت پاته وی. نوپه حديث كې د شفق نه مراد سپين والې شو.

(١) القول الراجح هو قول الامام ابی حنيفة رحمه الله لكن الفتوی علی قولهما كذا فی الكفاية (١٩٦\١) وردالمحتار (٢٦٥\١) وتبيين الحقائق (٨٠\١) نقلا عن القول الراجح (٦٠\١)-

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه الدارقطنی فی سننه (٢٦٩\١)_

(٣) قال الزيلعی رحمه الله غريب وروی ابوداودفی سننه (ای فی كتاب الصلاة باب ٢) من حديث ...ابی مسعودالانصاری رضي الله عنه اخرجه النبی ﷺ قال نزل جبرنيل فاخبرنی بوقت الصلاة فصليت معه .....ويصلی المغرب حين يسقط قرص الشمس ويصلی العشاء حين يسود الافق الحديث (نصب: ٣٠٢\١)_



| |
|---|
| **وَمَا رَوَاهُ** او هغوی چې كوم روايت كړي دي **مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عُمَرَ** رضي الله عنهما نو په ابن عمر رضي الله عنه باندې موقوف دې **ذَكَرَهُ مَالِكٌ** رحمه الله **فِي الْمُوَطَّا** امام مالك رحمه الله دا په مؤطا كې ذكر كړې دې |

**تشريح:- الجواب من دليل الصاحبين** ۞ اوحديث «الشفق الحمرة» په حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه باندې موقوف دې. او امام مالك رحمه الله په موطا كې موقوف ذكر كړې دې. اوحديث موقوف حجت نه وی. نوځكه دا حديث قابل استدلال پاتې نشو.

| |
|---|
| **وَفِيهِ اخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ.** رضی الله عنهم او په دې كې د صحابه كرامو رضي الله عنهم اختلاف دې. |

**تشريح:- الجواب التسليمی** ۞ اوكه دا اومنلې شی. چې دا حديث مرفوع دې. نوموږ ځواب وركوو. چې ددې حديث په مراد كې دصحابه كرامو رضي الله عنهم اختلاف دې. د بعضو په نيز شفق نه مراد سپيوالې دې. او د بعضو په نيز سوروالې دې. اوپه حديث مرفوع كې هم كه د صحابوّ رضي الله عنهم اختلاف وی. نوهغه قابل استدلال نه وی.

## د ماسخوتن اول اوآخر وخت

| |
|---|
| **(وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعِشَاءِ** او د ماسخوتن اول وخت **إِذَا غَابَ الشَّفَقُ** چې كله شفق غائب شی **وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ)** او آخر وخت چې تر څو سهار شوې نه وی راختلې |

**حل اللغة:** ① **غاب، غيبة (ض)** غائبيدل ② **لم يطلع، طلع طلوعًا(ف):** راختل

**تشريح:- الاختلاف في وقت العشاء** ۞ دماسخوتن وخت د شفق د ختميدو نه پيل كيږی. او د سهار راختونه وړاندې پورې وی.

| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی {**وَآخِرُ وَقْتِ الْعِشَاءِ حِينَ يَطْلُعُ الْفَجْرُ**}. (١) د ماسخوتن آخری وخت چې ترڅو پورې سهار نه وی |

**تشريح:- دليلهم** ۞ زمونږ دليل دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث «أنه ﷺ قال وآخروقت العشاء حين يطلع الفجر» دې. دا حديث په دې خبره دلالت كوی. چې د ماسخوتن وخت تر سهار راختو پورې پاته وی.

| |
|---|
| **وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِي** رحمه الله اودا حديث د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دې **فِي تَقْدِيرِهِ بِذَهَابِ ثُلُثِ اللَّيْلِ** د دريمې حصې په تيريدو سره په اندازه لګولو كې |

**حل اللغة:** ① **ذهاب:** تلل ② **ثلث:** دريمه حصه

**تشريح:-** ذكر شوې حديث د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دې ځكه چې هغوی فرمائی. چې د دريمې حصې د شپې پورې دماسخوتن وخت پاته وی.

**دليله والجواب عنه** ۞ دامام شافعی رحمه الله مستدل د امامت جبرئيل حديث دې. ځكه چې دا حديث په دے دلالت كوی. چې د ماسخوتن وخت د شپې د دريمې حصې پورې پاته وی. خو زمونږ د اړخه ددې ځواب د ماپښين د وخت په ضمن كې تير شوې دې. هلته ئې اوګورئ.

## د وترو اول او آخر وخت

| |
|---|
| **(وَأَوَّلُ وَقْتِ الْوِتْرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ** اود وترو اول وخت دماسخوتن نه روسته دې **وَآخِرُهُ مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ)** او آخر وخت چې ترڅو سهار شوې نه وی |

(١) قال الزيلعی رحمه الله غريب ثم نقل قول الطحاوی رحمه الله وحسنه انه يثبت من مجموعة الروايات فی وقت صلاة العشاء ان الليل كله وقت لها الا ان افضل وقتها الاول ثم نصف الليل ثم بعدنصف الليل (نصب: ٣٠٣\١)_

**تشريح:- الاختلاف في اول وقت الوتر**۞ دوترو په اول وخت كي اختلاف دې. د صاحبينو رحمهما الله په نيز د ماسخوتن د لمونځ كاوه نه روسته د وترو وخت پيل كيږي .اوتر سهار راختو پورې پاته وي.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي الْوَتْرِ** خكه چې د وترو په اړه كي د نبی ﷺ ارشاد دې {**فَصَلُّوهَا مَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ**}(١) «دا د ماسخوتن او سهار صادق په مينځ كي كوئ» **قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:** مصنف رحمه الله فرمايي **هَذَا عِنْدَهُمَا** دا د صاحبينو رحمهما الله په نيز دې

**تشريح:- دليلهما**۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل د حضرت خارجه بن حذافه رضي الله عنه حديث دې. «قال خرج علينا رسول الله ﷺ فقال إن الله زادكم بصلاة هي خير لكم من حمر النعم وهي الوتر فجعلها لكم فيما بين العشاء إلى طلوع الفجر» حضرت خارجه بن حذيفه رضي الله عنه فرمائی.رسول الله ﷺ موږ ته تشريف راوړلو.او بيا ئې اوفرمائيل.الله تعالی ستاسو لپاره د يو لمونځ زيادت اوكړلو.چې هغه ستاسو لپاره د سور رنګ اوښانو نه زيات بهتر دې.او هغه د وترو لمونځ دې.دا د ماسخوتن او سهار په مينځ كي كوئ.(فتح القدير) صاحب دهدايه فرمائی.چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی . «فصلوها ما بين العشاء إلى طلوع الفجر» دا د ماسخوتن او سهار صادق په مينځ كي كوئ.

**وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز **وَقْتُهُ وَقْتُ الْعِشَاءِ**(٢) د وترو وخت د ماسخوتن وخت دې.

**تشريح:-** د ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم د ماسخوتن وخت د وترو وخت دې.

**دليله**۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې وتر عملاً فرض دی.اوكه په وخت كي دوې (دوه) واجب مونځونه جمع شی.نودهغه دواړو مونځونو يو وخت وی.لكه فوتی او وختی مونځ.

**إِلَّا أَنَّهُ لَا يُقَدَّمُ عَلَيْهِ** خو دومره ده چې وتر به په ماسخوتن باندې نشی وړاندې كولې **عِنْدَ التَّذَكُّرِ** يادوالی په حالت كي **لِلتَّرْتِيبِ** خكه چې ترتيب (واجب) دې.

**حل اللغة:** ① **لايقدم، دم تقديماً:** وړاندې كول، مخكې كول

**تشريح:- السوال على ابى حنيفة** رحمه الله۞ په حضرت امام صاحب باندې دا اعتراض كيداې شی.كه د دواړو يو وخت وو.نو بيا پكار دا وه.چې د وتر په ماسخوتن باندې وړاندې كول جائز وو.حالانكه داسې نه ده.

**الجواب**۞ خواب د يادوالی په حالت كي خكه تقديم د وترو په ماسخوتن جائز نه دې.چې د ماسخوتن او وترو په مينځ كي ترتيب واجب دې.نوكه قصداً وتر په ماسخوتن باندې وړاندې كړې شی .نو په اتفاق سره ددې راګرخول ضروری دی.اوكه د ماسخوتن لمونځ ترې هير شو.او وتر ئې اوكړلو.او بيا ورته د ماسخوتن لمونځ ورياد شو.نوداامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز باندې د وترو اعاده واجب نه ده.خكه چې په هيره سره ترتيب ساقط شو.

**مذهب الصاحبين** رحمهما الله **في تقديم الوتر على العشاء**۞ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به اعاده كوی.خكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز وتر د ماسخوتن سنت دی. لكه څنګه چې د ماسخوتن نه روسته دوې (دوه) ركعته سنت دی.نوكه دوې (دوه) ركعته په ماسخوتن مقدم كړی.جائز نه دی.كه په قصد وی اوكه په هيره.نودغه ډول وتر هم په ماسخوتن باندې وړاندې كول جائز نه دی.نه په قصد او نۀ په هيره.

## د صبا افضل وخت

---

١) من حديث خارجه بن حذافه رضي الله عنه اخرجه ابوداود فی الوترباب ١و الترمذی فی الوتر باب ١ وابن ماجه فی الاقامة باب ١١٤

٢) القول الراجح هو قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی العناية (١\١٩٧) والدرالمختار(١\٢٦٦) والبحرالرائق (١\٤٢٨) والحلبی الكبير (ص،٢٩٠) وحاشية الطحطاوی(ص،٩٥) نقلا عن القول الراجح (١\٦٢)_



**(فَصْلٌ)** : (دا) فصل (د مستحب وختونو په بيان كي) دې **(وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْفَارُ بِالْفَجْرِ)** او د سهار په لمونځ كي اسفار كول افضل دی

**حل اللغة:** ① **اسفار:** روښانه

**تشريح:- الربط بما قبله ومابعده**۞ په تيرو شوو صفحاتو كي د مونځونو د مطلقو وختونو بيان وو.اوس ددې خائې نه د كامل اوناقص وختونو ذكر كوی.نود دواړو لپاره ئې جلا جلا فصل راوړلو.په اولنی فصل كي ئې د اوقات كامله يعنی مستحب وختونو بيان كړې دې.اوپه دوهم فصل كي ئې د اوقات ناقصه يعنی مكروه وختونو بيان كړې دې.

**فضل الاسفار عندالاحناف**۞ د احنافو په نيز د سهار اسفار (رڼرائې ) كي كول مستحب دی.اود اسفار اندازه دا ده.چې رڼرا خوره شی.ددې نه روسته په مسنون قراءت سره لمونځ پيل كړی.ددې نه روسته كه د اودس وغيره اړتيا پيښ شی. (يعنی كه په څه وجه ئې لمونځ مات شی.نو چې دومره پاته وی.) چې د لمر ختلو نه وړاندې د هغې لپاره اودس كول اودهغې راګرخول ممكن وی. لنډيز دا چې لمونځ دې په اسفار كي پيل كولاې شی.او په اسفار كي دې ختمولې شی.نو دا په استحباب باندې عمل دې.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** خكه چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی {**أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ** د سهار لمونځ په رڼرائی كي كوئ **فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ**}(١) خكه چې په دې كي ثواب زيات دې

**حل اللغة:** ① **اعظم:** بزرګ، لوئ، زيات ② **اجر:** ثواب

**تشريح:- دليلهم**۞ داحنافوفقهاؤ دليل د رافع بن خديج رضي الله عنه چې «اسفروا بالفجر فإنه أعظم للأجر» حديث دې.طريقه د استدلال دا ده.چې په حديث كي په اسفار باندې امر شوې دې.او دامر ادنی درجه ندب او استحباب وی.نوخكه اووئيلې شو.چې د سهار په لمانځه باندې اسفار كول مستحب دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ** (رح او امام شافعی رحمه الله فرمائی) **يُسْتَحَبُّ التَّعْجِيلُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ** چې په هرلمونځ كي جلتی كول مستحب دی **وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ** اود امام شافعی رحمه الله خلاف هغه حديث حجت دې **مَا رَوَيْنَاهُ** كوم چې موږ نقل كړې دې **وَمَا نَرْوِيهِ** اوكوم چې به موږ وړاندې ذكر كوو

**حل اللغة:** ① **تعجيل:** تندی كول ② **حجة:** دليل ③ **نرويه، روی رواية(ض):** روايت كول

**تشريح:- عندالشافعی ومالك** رحمهما الله۞ امام شافعی او امام مالك رحمهما الله فرمايي .جلتی كول افضل دی. او جلتی دا ده.چې د وخت په نصف اول كي لمونځ اوكړی.

**الدليل الاول**۞ امام شافعی رحمه الله دحضرت عائشې رضي الله عنها په حديث باندې استدلال كوی «قالت إن كان رسول الله ﷺ يصلی الصبح فينصرف النساء متلفعات بمروطهن ما يعرفن من الغلس» (بخاری ومسلم) ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چې رسول الله ﷺ به د سهار د لمونځ نه فارغ شو. نو ښځې به په خپلو پړونو كي كور ته واروسته كيدې.او د چاغه د وجې به پيژندې نشوې.دا حديث په دې خبره شاهد دې.چې رسول الله ﷺ به په چاغه كي د لمونځ نه فارغ كيدو.

**الجواب منه**۞ پاته شود حضرت عائشې رضي الله عنها حديث كوم چې امام شافعی رحمه الله روايت كړې دې.نوددې نه خواب دادې.چې هغه حديث فعلی دې.او «اسفروا بالفجر» دا حديث قولی دې.اوكله چې تعارض په مينځ د

---

١):من حديث رافع بن خديج رضي الله عنه اخرجه ابوداؤد فی الصلوة باب ٨ والترمذی فی الصلوة باب ٣ والنسائی فی المواقيت باب ٢٧ وابن ماجه فی الصلوة باب ٢)-

قولي اوفعلي كي راشي. نوترجيح به قولي ته وي. فعلي ته به نه وي. (ځکه چې په فعلي کي احتمال د تخصيص شته. اوپه قولي کي دا احتمال نشته.)

**الدليل الثاني** ◉ دوهم دليل د نبی کريم ﷺ قول دی. چې ﴿أول الوقت رضوان الله وآخره عفو الله﴾ او عفو تقاضا کوی. چې د تقصير اوکوتاهی. نوددی نه هم ثابته شوه. چې په لمانځه کي جلتی کول مستحب دی.

علامه مرغيناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله دا دليل ذکر کړی دی. خو ددی نه ئې ځواب نه دی کړی. ① ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کي فرمائيلی دی. چې د اول وخت نه د مطلق وخت اول مراد نه دی. بلکه د مستحب او افضل وخت اوله برخه مراد ده. ② دوهم ځواب دا دی. چې دا حديث عام دی. او ﴿اسفروا بالفجر﴾ حديث خاص دی. نو دغه حديث عام مخصوص منه البعض شو. ③ ددی حديث په سند کي وليد راوی متکلم فيه دی. نودا حديث ضعيف شو. او ضعيف حديث د صحيح په مقابله کي قابل استدلال نه دی. کذا في تنظيم الاشتات لحل عويصات المشكواة. (۲۲۹/۱)

**الدليل الثالث** ◉ دغه ډول کله چې د نبی ﷺ نه پوښتنه اوشوه. چه ﴿أی العمل أفضل؟﴾ نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل. ﴿الصلاة لأول وقتها﴾

ددی حديث نه خو دوی (دوه) ځوابونه هغه شو. کوم چې د امام شافعي رحمه الله د دوهم دليل نه په اتلسمه حاشيه کي اوشو. او دريم ځواب دا دی. چې ددی په سند کي عبدالله بن عمر العمری دی. امام ترمذی رحمه الله فرمائی. ليس بالقوى عند اهل الحديث واضطربوا في هذا الحديث صاحب دتنظيم الاشتات د امام ترمذی ددی تضعيف لپاره د جامع ترمذی حواله ورکړی ده. خو چې ما جامع ترمذی ته مراجعت اوکړلو. نوهلته په رقم (۱۵۵) باب ما جاء في الوقت الأول من الفضل دا حديث مذکور وو. خو د تعضيف قول نه وو. بيا ما احقر شاه فيصل په دی راوی پسې د کمپيوټر په ذريعه د اصحاب الجرح والتعديل اقوال اولټول. نو په هغې کي راته د مضعفينو دا اقوال ملاؤ شو. قال احمد بن حنبل يزيد في الأحاديث ويخالف وقال يعقوب بن ابي شيبة في حديثه اضطراب وقال على بن مدينى ضعيف. شاه فيصل عفى عنه

## په ګرمئ کي د ماپښين مستحب وخت

**والإبراد بالظهر في الصيف** اود ګرمئ په موسم کي د ماپښين لمونځ په يخنئ کي کول (مستحب دی) **وتقديمه في الشتاء** او په يخنئ کي ددی وړاندی کول.

**حل اللغة** ① شتاء: يخنی ⑧ صيف: ګرمی

**تشريح:- دلائل فضل الابراد بالظهر في الحر** ◉ او د ګرمئ په موسم کي د ماپښين لمونځ په يخنئ کي کول او د يخنئ په موسم کي زر کول مستحب دی.

**لِمَا رَوَيْنَا** د هغه حديث د وجې کوم چې موږ روايت کړی دی

**تشريح:-** دليل هغه حديث دی. کوم چې موږ وړاندی ذکر کړی دی. يعنی ﴿ابردوا بالظهر﴾

**وَلِرِوَايَةِ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** او د حضرت انس رضي الله عنه د حديث د وجې **قَالَ {كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي الشِّتَاءِ** چې رسول الله ﷺ به چې کله د يخنئ موسم وو **بَكَّرَ بِالظُّهْرِ** په ماپښين کي به ئې جلتی کوله **وَإِذَا كَانَ فِي الصَّيْفِ** اوچې کله به ګرمی وه **أَبْرَدَ بِهَا}**[1] نو د ماپښين لمونځ به ئې په يخنئ کي کولو. (يعنی چې هوا به يخه شوه.)

**تشريح:-** د حضرت انس رضي الله عنه حديث هم مستدل دی. په بخاری کي پوره حديث داسې دی. خالد بن دينار رحمه الله

1) من حديث انس رضي الله عنه اخرجه البخاری فی الجمعة باب ۱۷)_



فرمائی. چې زموږ امير موږ ته د جمعې لمونځ اوکړلو. بيا ئې حضرت انس رضي الله عنه ته اووئيل. ﴿كيف كان رسول الله ﷺ يصلى الظهر قال كان رسول الله ﷺ إذا اشتد البرد بكر بالصلاة وإذا اشتد الحر ابرد بالصلاة﴾ يعنی د حضرت انس رضي الله عنه نه ئې پوښتنه اوکړه. چې رسول الله ﷺ به څنګه د ماپښين لمونځ کولو؟ نوحضرت انس رضي الله عنه ځواب ورکړلو چې کله به د يخنئ موسم وو. نورسول الله ﷺ به د ماپښين لمونځ وختی کولو. اوچې کله به ګرمی زياته وه. نود ماپښين لمونځ به ئې په يخنئ کي کاوه

## د ماښکر د مونځ د روستوالي استحباب

**وَتَأْخِيرُ الْعَصْرِ** او (مستحب دی) د ماښکر لمونځ روستو کول **مَا لَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ** ترڅو چې نمر متغير شوی نه وی **فِي الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ** په اوړی او ژمی کي

**تشريح:- استحباب تاخير العصر عند الاحناف** رحمهم الله ◉ اود ماښکر لمونځ په هر موسم کي روسته کول مستحب دی. خو په دې شرط چې نمر متغير نشی.

**لِمَا فِيهِ مِنْ تَكْثِيرِ النَّوَافِلِ** ځکه چې په دې کي زياتوالي د نفلونو دی **لِكَرَاهَتِهَا بَعْدَهُ** ځکه چې مکروه دی دا نفلونه روسته د ماښکر د لمانځه نه

**تشريح:- دليله** ◉ دليل دا دی. چې د ماښکر په روستو کاوه کي نوافلو ته زياته موقع ملاويږی. ځکه چې د ماښکر نه روسته نفل کول مکروه دی. نودماښکر لمونځ دې روستو کوی. چې د ماښکر نه وړاندې به ورته د زياتو نفلونو کاوه موقع پاته وی.

**تقديم العصر عند الامامين** رحمهما الله ◉ اوامام مالك او امام شافعي رحمهما الله فرمائی. چې د ماښکر لمونځ وړاندې کول مستحب دی.

**دليلهما** ◉ او دليل د حضرت انس رضي الله عنه قول دی. چې ﴿أن رسول الله ﷺ كان يصلى العصر فيذهب الذاهب إلى العوالى والشمس مرتفعة﴾ يعنی حضرت انس رضي الله عنه فرمائی. چې رسول الله ﷺ به د ماښکر لمونځ اوکړلو. اويو تلونکی به د مديني عوالی ته لاړلو. او لمر به لا اوچت ولاړ وو. او دا هله کيدای شی. چې د ماښکر لمونځ ئې زر ادا کړی وی. (ځکه که دماښکر لمونځ ئې په آخر وخت کي ادا کولو. نو يو کس به عوالی مديني ته د لمر ډوبيدو نه روسته رسيدلو.)

**الجواب من دليل الامامين** رحمهما الله ◉ خو زموږ د اړخ نه ځواب دا دی. چې عوالی د مديني د دوو دريو ميلو لرې والی ته وائی. اود ميل څخه به هغه ميل مراد وی. کوم چې د تيمم په باب کي ذکر شوی دی. او دا څه دومره لرې فاصله نه ده. بلکه که د ماښکر لمونځ په آخر وخت کي اوکړی. نو هم دومره مزل کيدای شی. نودا حديث زموږ خلاف حجت نشی جوړيدی.

**وَالْمُعْتَبَرُ تَغَيُّرُ الْقُرْصِ** اومعتبر په (مکروه وخت کي) بدليدل د ککوړی (د نمر) دی **وَهُوَ أَنْ يَصِيرَ بِحَالٍ** اوهغه داسې چې په داسې وخت کي لمونځ اوکړی شی **لَا تَحَارُ فِيهِ الْأَعْيُنُ** چې نمر سترګې نه بريخوی **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا صحيح ده

**تشريح:- الاقوال الثلاثة في تغير الشمس** ◉ ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې د لمر د ککوړی د متغير کيدو نه مراد دا دی. چې لمر په داسې حالت کي وی. چې دې ته د کتونکی سترګې نه بريښی. بلکه سترګې ورته نيولې شی. ② ابراهيم نخعی رحمه الله فرمائی. چې د لمر متغير کيدو نه مراد ددې د رڼا بدليدل دی. کومه چې په ديوالونو باندې پريځوی. خو دا صحيح قول نه دی. (ځکه چې د رڼا بدليدل خو د زوال نه روسته پيل کيږی.) ③ صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی. چې د لمر د ککوړی متغير کيدل دا دی. چې دا د يوې نيزې د مقدار نه کمه شی. اوکه د يوې نيزې د مقدار نه کمه نه وی. نو د ککوړی متغير کيدل نه دی واقع شوی.

وَالتَّاخِيرُ اِلَيْهِ مَكْرُوهٌ او ددې نه روستو کول مکروه دی.

**تشریح:- حکم تاخیر العصر الی الاصفرار** ۞ صاحب دهدایه فرمائی. چې د لمر تغیر کیدو پورې د لمونځ روستو کول مکروه دی. نوځکه ئې وړاندې ادا کول مستحب دی.

## دماښام مستحب وخت

وَيُسْتَحَبُّ تَعْجِيلُ الْمَغْرِبِ او دماښام په لمونځ کې جلتی کول مستحب دی لِأَنَّ تَأْخِيرَهَا مَكْرُوهٌ ځکه چې په دې لمونځ کې تاخیر روستو والې مکروه دې

**حل اللغة** ① **تعجیل**: تندی کول ② **تاخیر**: روستوالې کول

**تشریح:- کراهة تاخیرالمغرب** ۞ مسئله، د ماښام په لمونځ کې جلتی کول مستحب دی. یعنی د اذان او اقامت په مینځ کې دې څه فصل نه کوی. سوا د لړې غوندې ناستې نهٔ.

لِمَا فِيهِ مِنَ التَّشَبُّهِ بِالْيَهُودِ ځکه چې په دې کې د یهودیانو سره مشابهت دې

**حل اللغة** ① **تشبه**: یوشان والې کول

**تشریح:- الدلیل الاول** ۞ دلیل دا دې. چې د ماښام لمونځ روستو کول مکروه دی. او تاخیر ددې وجې مکروه دې. چې په دې کې یهودیانو سره مشابهت لازمیږی. ځکه چې یهودو به د ماښام په لمونځ کې تاخیر کولو.

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {لَا يَزَالُ أُمَّتِي بِخَيْرٍ زما امت به همیشه لپاره په خیر باندې وی مَا عَجَّلُوا الْمَغْرِبَ ترڅو چې د ماښام لمونځ جلتئ سره کوی وَأَخَّرُوا الْعِشَاءَ}[1] او دماسخوتن لمونځ روستو کوی.

**تشریح:- الدلیل الثانی** ۞ دوهم دلیل د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. چې ﴿لا یزال أمتی بخیر ما علجوا المغرب وأخروا ا لعشاء

## دماسخوتن مستحب وخت

(وَتَأْخِيرُ الْعِشَاءِ او (مستحب دی) د ماسخوتن روستو کول إِلَى مَا قَبْلَ ثُلُثِ اللَّيْلِ) تر لږ غوندې وړاندې د دریمې حصې د شپې پورې

**حل اللغة** ① **ثلث**: دریمه برخه

**تشریح:- استحباب تاخیر العشاء الی ثلث اللیل** ۞ دماسخوتن لمونځ د شپې د دریمې حصې نه لږ غوندې وړاندې چورې روستو کول مستحب دی. او په شرح وقایه کې دی. چې تر دریمې حصې د شپې پورې روستو کول مستحب دی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی {لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي که زما په امت ګرانه نه وه. لَأَخَّرْتُ الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ} (۲) نو ما به ورته د ماسخوتن لمونځ تر دریمې حصې د شپې پورې د روستو کاوه حکم کړې وو

**حل اللغة** ① **اشق، شق مشقة(ن)**: سختیدل

**تشریح:- الدلیل الاول لاستحباب تاخیر العشاء** ۞ دلیل دنبی ﷺ ارشاد دې. ﴿ لولا أن أشق علی أمتی لأخرت العشاء إلی

---

[1] ) قال الزیلعی رحمه الله غریب رووی ابوداود فی سننه (ای فی الصلاة باب ۵ رقم ۴۰۴) ...عن ابی ایوب رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا تزال امتی بخیراوقال علی الفطرة مالم یؤخروالمغرب الی ان تشتبک النجوم (نصب:۳۱۷\۱)

[2] ) من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه الترمذی فی الصلاة باب ۱۰ رقم ۱۶۷ وابن ماجه فی الصلاة باب ۸ رقم ۶۹۰ واحمد فی المسند (۲۵۰\۲)_



ثلث اللیل

وَلِأَنَّ فِيهِ قَطْعَ السَّمَرِ او بله دا چې په دې کې دهغه قصو ختمیدل دی الْمَنْهِيِّ عَنْهُ بَعْدَهُ، (۱) د کومو د کاوه نه چې د ماسخوتن نه روسته منع شوې ده

**تشریح:- الدلیل الثانی لاستحباب تاخیر العشاء** ۞ او دوهم دلیل د ماسخوتن د لمانځه نه روسته قصې کول شرعاً ممنوع دی. ارشاد دې. ﴿ لا سمر بعدالعشاء﴾ یعنی نبی ﷺ فرمائیلی دی .د ماسخوتن نه روسته قصې بیانول نشته.

وَقِيلَ او ونیلی شوی دی فِي الصَّيْفِ تُعَجَّلُ چې په ګرمئ کې دې جلتی کوی ګی لَا تَتَقَلَّلَ الْجَمَاعَةُ چې جماعت کم نشی

**تشریح:- استحباب التعجیل في الشتاء عندالبعض** ۞ خینې فقهاؤ لیکلی دی. چې د ګرمئ په موسم کې د ماسخوتن لمونځ په جلتئ سره کول پکار دی. ځکه چې د ګرمئ په موسم کې شپې وړې وی. (د خلګو خوب نه پوره کیږی.) نو خلګ زر ویده (اوده) کیږی

وَالتَّأْخِيرُ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ مُبَاحٌ او ترنیمې شپې پورې دماسخوتن لمونځ روستو کول مباح دی لِأَنَّ دَلِيلَ الْكَرَاهَةِ وَهُوَ تَقْلِيلُ الْجَمَاعَةِ ځکه چې دلیل د کراهت سره چې تقلیل د جماعت دې عَارَضَهُ دَلِيلُ النَّدْبِ دلیل د استحباب معارض شو وَهُوَ قَطْعُ السَّمَرِ بِوَاحِدَةٍ چې چا سره د خبرو کاوه انقطاع ده فَتَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ نوتر نیمې شپې پورې اباحت ثابت شو

**حل اللغة** ① **ندب**: مستحب کیدل

**تشریح:- اباحة تاخیر العشاء الی نصف اللیل ودلیله** ۞ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې د ماسخوتن لمونځ ترنیمې شپې پورې روستو کول مباح دی. دلیل دا دې. چې په تاخیر کې ددې وجې کراهت دې. چې تقلیل د جماعت په کې راځی. اوپه دې وجه مندوب دې. چې د قصو بیانول په کې بیخی ختمیږی. (ځکه چې هرسړې زر ویده (اوده) کیږی. چې په وخت لمانځه ته پاسی.) نوهرکله چې په دلیل د استحباب او دلیل د کراهت کې تعارض راغلو. نودواړه دلائل ساقط شو. او اباحت پاته شو.

وَإِلَى النِّصْفِ الْأَخِيرِ مَكْرُوهٌ او نصف اخیر پورې روستو کول مکروه دی لِمَا فِيهِ مِنْ تَقْلِيلِ الْجَمَاعَةِ ځکه چې په دې کې دجماعت تقلیل دې وَقَدِ انْقَطَعَ السَّمَرُ قَبْلَهُ حالانکه د قصو وئیل د دې نه وړاندې ختم شوی وی.

**تشریح:- کراهة التاخیر الی نصف الاخیرودلیله** ۞ او د نصف اخیر پورې روستو کول مکروه دی. ځکه چې دلیل د کراهت او دلیل د تقلیل جماعت دواړه موجود دی. او دلیل داستحباب ور سره معارض نه دې. ځکه چې د قصو بیانول خو ددې نه وړاندې ختم شوی وی. نو دلیل د استحباب پاته نشو. چې دلیل داستحباب نشته. نو اباحت هم نه پیدا کیږی. لکه څنګه چې په وړاندینی صورت کې اباحت پیدا شوې وو.

## د وترو مستحب وخت

(وَيُسْتَحَبُّ فِي الْوِتْرِ لِمَنْ يَأْلَفُ الصَّلَاةَ آخِرَ اللَّيْلِ او د هغه کس لپاره چې د شپې لمونځ خوښوی. په وترو کې دده لپاره آخری شپه مستحب ده. فَإِنْ لَمْ يَثِقْ بِالِانْتِبَاهِ نوکه په بیداریدو باندې ئې بهروسه نه وی أَوْتَرَ قَبْلَ النَّوْمِ نود ویده (اوده) کیدو نه وړاندې دې وتر کوی

---

۱) فیه اشارة الی حدیث ابی برزة رضی الله عنه عن النبی ﷺ انه کان یکره النوم قبلها یعنی العشاء والحدیث بعدها اخرجه البخاری فی المواقیت باب ۱۳ ومسلم فی المساجد رقم ۲۳۵ وابوداود فی الادب باب ۲۳ رقم ۴۸۴۹ والترمذی فی الصلاة باب ۱۱ رقم ۱۶۸ والنسائی فی المواقیت باب ۲ وابن ماجه فی الصلاة باب ۱۲ رقم ۷۰۱)_

**حل اللغة:** ① **بالف، الف الفًا** (س): مينه كول ② **لم يثق، وثق وثوقًا** (ض): يقين اوباور كول ③ **انتباه**: بيداركيدل هوښياريدل

**تشريح:- تاخير الوتر الى حكمين باعتبار الاشخاص** ① مسئله دا ده. چې څوك د تهجدو د لمانځه عادي وي. او هغه په پاسيدو بهروسه هم وي. نو دهغه لپاره مستحب دی. چې وتر د تهجدو نه روسته د شپې جاری په آخره برخه كې اوكړي. ② اوكه په پاسيدو ئې بهروسه نه وي. يا په شپه كې د تهجدو دلمونځ عادی نه وي. نو داسې كس دې د ويده (اوده) كيدو نه وړاندې وتر كوی.

لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خكه چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی {مَنْ خَافَ أَنْ لَا يَقُوْمَ آخِرَ اللَّيْلِ چا سره چې ويره وي چې په آخر د شپه كښې به بيدار نشي فَلْيُوتِرْ أَوَّلَهُ نو په اول د شپه كې دې وتر اوكړي وَمَنْ طَمِعَ اوچې اميد ئې وي أَنْ يَقُوْمَ آخِرَ اللَّيْلِ چې په آخر د شپه كې پاسم فَلْيُوتِرْ آخِرَهُ} "(۱) نو هغه دې وتر روستو كوی.

**حل اللغة:** ① **خاف خوفا** (س): ويريدل

**تشريح:- دليله** صاحب دهدايه رحمه الله د رسول الله ﷺ په حديث باندې استدلال كړې دې. دحديث الفاظ دا دی. «من خاف أن لا يقوم آخر الليل فليوتر أوله ومن طمع أن يقوم آخر الليل فليوتر آخره»

### په وريځ كې د مونځونو مستحب وختونه

(وَإِذَا كَانَ يَوْمُ غَيْمٍ اوچې د وريځ ورځ وي فَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ وَالْمَغْرِبِ نو مستحب دې په صبا، ماپښين، او ماښام كې تَأْخِيرُهَا تاخيرد لمونځ وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ او په مازيګراو ماسخوتن كې تَعْجِيلُهُمَا) تعجيل د مونځ. (مستحب دے)

**حل اللغة:** ① **غيم**: اوريځ

**تشريح:- ضابطة تاخير الصلاة وتعجيلها في الغيم** وړاندې د هغه پنځو مستحب وختونو بيان وو. چې آسمان شين وي. اوكه آسمان شين نه وي. بلكه وريځ وي. نو په دې صورت كې صاحب دعنايه ضابطه بيان كړې ده. ،،العين مع العين،، يعنى هر هغه لمونځ چې په هغې كې ،،عين،، وي. يعنى ماسخوتن او مازيګر، نوهغه به د وريځ په ورځ رواندې كولې شي. اوددې دواړو نه علاوه په نورو مونځونو كې تاخير مستحب دې.

لِأَنَّ فِي تَأْخِيرِ الْعِشَاءِ تَقْلِيلَ الْجَمَاعَةِ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَطَرِ څكه چې د ماسخوتن په روستو كاوه كې د باران احتمال وي نو په جماعت كې به كمي

**حل اللغة:** ① **تقليل**: كمول ③ **مطر**: باران

**تشريح:- وجه تعجيل العشاء في الغيم** د وريځ په ورځ د ماسخوتن په لمونځ كې د عجلت وجه دا ده. كه په داسې حالت كې د ماسخوتن جماعت روستو كړې شي. نود باران احتمال په كې وي. او خلګ په كې سستی كوی. اوپه رخصت به عمل كوی. څكه چې د باران ورځ به وه. نو نبی ﷺ به د اذان نه روسته دا اعلان كولو. «الا صلوا في رحالكم» خبردار! په خپلو خپلو كورونو كې لمونځ اوكړئ.

وَفِي تَأْخِيرِ الْعَصْرِ تَوَهُّمُ الْوُقُوعِ فِي الْوَقْتِ الْمَكْرُوهِ او د مازيګر په تاخير كې په مكروه وخت كې د واقع كيدو وهم وی

**تشريح:-** وجه تعجيل العصر في الغيم اوپه مازيګر كې د تعجيل داستحباب وجه دا ده. چې د وريځ په ورځ د مازيګر دلمونځ په مكروه وخت كې د واقع كيدو احتمال وی. نوځكه دمازيګر په لمونځ كې تعجيل مستحب دې.

۱) من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه مسلم فى صلاة المسافرين وقصرها رقم ۱۶۲ والترمذى فى الوتر باب ۳ وابن ماجه فى الاقامة باب ۱۲۱)_



وَلَا تَوَهُّمَ فِي الْفَجْرِ او په سهار كې خو څه وهم نشته لِأَنَّ تِلْكَ الْمُدَّةَ مَدِيدَةٌ څكه چې دا وخت اوكود وی

**حل اللغة:** ① **مديدة**: اوږد

**تشريح:- وجه تاخير الفجر في الغيم** ددے په خلاف د سهار په لمانځه كې دا ګمان نه وي. څكه چې د سهار د لمانځه وخت (د سهار راختو نه واخله تر لمر راختو پورې) اوږد وی. نوكه د سهار لمونځ روستو هم كړی. نو په دے كې د لمر راختو په وخت كې د لمونځ واقع كيدو دګمان ويره نشته. نوځكه د وريځ په ورځ د سهار په لمونځ كې تاخير مستحب دې.

**تشريح:- وجه تاخير الظهر والمغرب في الغيم** اوپه ماپښين او ماښام كې تاخير څكه مستحب دې. كه د وريځ په ورځ دا وړاندې اوكړې شی. نود وخت نه وړاندې د ادا كاوه احتمال په كې شته. او د وخت نه وړاندې لمونځ كول جائز نه دی. نوځكه په دے كې تاخير مستحب دې.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله التَّأْخِيرُ فِي الْكُلِّ لِلِاحْتِيَاطِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د احتياط د وجې په ټولو مونځونو كې تاخير نقل دے أَلَا تَرَى ولے كتے نشی؟ أَنَّهُ يَجُوزُ الْأَدَاءُ بَعْدَ الْوَقْتِ چې د وخت نه روسته قضاء جائز ده لَا قَبْلَهُ نه چې د وخت نه وړاندې.

**تشريح:- رواية التاخير في جميع الصلوات** حسن بن زياد د ابوحنيفه رحمه الله نه نقل كړی دی. چې د وريځ په ورځ احتياط په دے كې دې. چې په ټولو مونځونو كې تاخير اوكړې شی. څكه چې تعجيل كې د وخت نه وړاندې ادا كاوه احتمال شته. او په تاخير كې د وخت نه روستو د ادا كاوه احتمال شته. اودا خبره منلې شوې ده. چې د وخت نه روسته لمونځ كول جائز دې. اګركه قضاء وی. خو د وخت نه وړاندې كول جائز نه دې. نه ادا او نه قضاء.

### هغه درې وختونه چې مونځ په كې مكروه دې

(فَصْلٌ فِي الْأَوْقَاتِ دا فصل دهغه وختونو په بيان كې دې الَّتِي تُكْرَهُ فِيهَا الصَّلَاةُ) چې په كومو كې لمونځ مكروه دې (لَا تَجُوزُ الصَّلَاةُ لمونځ جائزنه دی عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ د لمر راختو په وخت وَلَا عِنْدَ قِيَامِهَا فِي الظَّهِيرَةِ اونه په غرمه كې د لمر د قيام په وخت وَلَا عِنْدَ غُرُوبِهَا) اونه د پريوتو په وخت

**حل اللغة:** ① **ظهيرة**: غرمه ② **ترتفع، ارتفع ارتفاعًا**: اوچتيدل ③ **اطلاق**: مطلق كيدل ④ **حجة**: دليل ⑤ **تخصيص**: خاص كيدل

**تشريح:- المذاهب في اداء الفرائض وفي مكة** په ماقبل كښے د وخت په دوو قسمونو كې د يو بيان وو يعنى اوقات مستحبه، اوپه دے فصل كې د دوهم قسم يعنى د مكروه وختونو بيان دې. دلته كې كراهت عام دې. چې جوازمع الكراهة اوعدم جواز مع الكراهة دواړو ته ګډ دې. حاصل د مسئلې دا دې. ① چې زموږ په نيز دنمر راختو، نصف النهار او غروب په وخت كې نه فرض لمونځ جائز دې. اونه نفل.

لِحَدِيثِ {عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څكه چې دعقبه بن عامر رضي الله عنه حديث كې دی قَالَ فرمايي ثَلَاثَةُ أَوْقَاتٍ درے وختونه دی نَهَانَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُصَلِّيَ فِيهَا وَأَنْ نَقْبُرَ فِيهَا مَوْتَانَا چې موږ په كې د لمونځ كاوه نه اودخپلو مړو ښخولو نه رسول الله ﷺ منع كړی يو عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ د لمر راختو په وخت حَتَّى تَرْتَفِعَ تردې چې اوچت شی وَعِنْدَ زَوَالِهَا. او د زوال په وخت كې حَتَّى تَزُولَ تردې چې زائله شی وَحِينَ تَضَيَّفُ لِلْغُرُوبِ، اوپه كوم وخت كښے چې ډوبيږی حَتَّى تَغْرُبَ} (۱) تردې چې ډوب شی

۱) من حديث عقبة بن عامر الجهنى رضي الله عنه اخرجه مسلم فى صلاة المسافرين رقم ۲۹۳ وابوداود فى الجنائز باب ۵۱ والترمذى فى الجنائز باب ۸۹ وابن ماجه فى الجنائز باب ۳۰)_

**تشریح:- دلیلنا** ◉ زموږ دلیل د حضرت عقبه بن عامر رض حدیث دی. ﴿قال ثلاثا رسول الله ﷺ أن نصلي وأن نقبر فيها موتانا عند طلوع الشمس حتى ترتفع وعند زوالها حتى تزول وحين تضيف للغروب حتى تغرب﴾ په حدیث د عقبه بن عامر رض کي ،،صلاة،، عام دی. که فرض وی او که نفل وی.

وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ وَأَنْ نَقْبُرَ صَلَاةُ الْجِنَازَةِ او د مصنف قول چې ،، ان نقبر،، نه مراد د جنازې لمونځ دی لِأَنَّ الدَّفْنَ غَيْرُ مَكْرُوهٍ ځکه چې دفن کول مکروه نه دی

**تشریح:-** او د ،،ان نقبر،، نه مراد د جنازې لمونځ دی. ځکه چې په دے وختونو کي د مړی ښخول مکروه نه دی. نو د اوس مطلب دا شو. چې نبی ﷺ په دے وختونو کي د مطلق لمونځ کاوه نه منع کړې ده. که فرض وی او که نفل وی او که د جنازې لمونځ وی. نو دا حدیث د اطلاق د وجې د امام شافعی رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دی.

وَالْحَدِيثُ بِإِطْلَاقِهِ او حدیث د خپل اطلاق په وجه حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله په امام شافعی رحمه الله حجت دی فِي تَخْصِيصِ الْفَرَائِضِ وَبِمَكَّةَ فِي حَقِّ النَّوَافِلِ د فرائضو او مکې په خاص کولو کي

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمايي چې زموږ مستدل دا امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دی ځکه چې هغوی فرمائی. په دے وختونو کي په ټولو ښارونو او ټولو ځایونو کي فرض لمونځ جائز دی. او په مکه مکرمه کښے په دے وختونو کي د نفلو اجازت شته. (عنایه)

صاحب د فتح القدیر فرمائی. په دے وختونو کي د امام شافعی رحمه الله په نیز په مکه مکرمه کي مطلقاً لمونځ جائز دی. که فرض وی او که نفل.

**دليله الاول** ◉ دا امام شافعی رحمه الله دلیل د نبی ﷺ دا قول دی. چې ﴿من نام عن صلاة أو نسيها فليصلها إذا ذكرها فإن ذالك وقتها﴾ یعنی کوم کس چې د لمانځه نه ویده (اوده) شو. یا ترے هیر شو. نو دا دے کوی. کله چې ورته وریاد شی. ځکه چې هم دغه د دے وخت دی.

**الجواب عنه** ◉ او امام شافعی رحمه الله چې کوم حدیث ذکر کړې دی. د هغے نه ځواب دا دی. چې د دے حدیث نه په اوقات ثلاثه کي د لمونځ کاوه اباحت ثابتیږی. او د عقبه بن عامر رض د حدیث نه حرمت ثابتیږی. د اصول فقه په کتابونو کي ذکر دی. چې د حرمت او اباحت په مینځ کي تعارض راشی. نو ترجیح به حرمت ته وی. نو د دے وجې دلته د عقبه رض حدیث راجح دی.

**دليله الثاني** ◉ او په یو حدیث کي دی. چې نبی ﷺ او فرمائیل. ﴿يا بني عبدمناف لا تمنعوا أحدا طاف بهذا البيت وصلى في أية ساعة شاء من ليل او نهار﴾ اے بنی عبدمناف! تاسو څوك مه منع کوئ. چې د دے بیت نه طواف کوی. یا لمونځ کوی. په کوم وخت کي چې ئې خوښه وی. که د شپې وی او که د ورځې. د دے روایت نه هم معلومه شوه. چې په مکه مکرمه کي په هر وخت کي لمونځ کول جائز دی.

**الجواب عنه** ◉ د ابوذر رض د حدیث نه ځواب دا دے. چې ﴿إلا بمكة﴾ د دے معنی دا ده. چې ﴿ولا بمكة﴾ لکه چې د الله تعالی دا ارشاد چې دی. ﴿إلا خطأ﴾ معنی چې ﴿ولا خطأ﴾ ده. نو په دے صورت کښے دا حدیث د امام شافعی رحمه الله مستدل نشی جوړیدی. والله اعلم بالصواب

وَحُجَّةٌ عَلَى أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دی فِي إِبَاحَةِ النَّفْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقْتَ الزَّوَالِ د جمعے په ورځ د زوال په وخت کي د نفلو مباح ګرځولو کي

**تشریح:- خلاف ابی یوسف رحمه الله في جواز النفل عند الزوال يوم الجمعة** ◉ زموږ مستدل دا امام ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دی ځکه چې د هغوی په نیز د جمعے په ورځ د زوال په وخت کي نفل جائز دی.

**دليله** ◉ د امام ابویوسف رحمه الله دلیل هغه حدیث دی. کوم چې حضرت ابوهریره رض او ابوسعید خدری رض روایت کړې دی. چې ﴿أن رسول الله ﷺ نهى عن الصلاة نصف النهار حتى تزول الشمس إلا يوم الجمعة﴾ یعنی نبی ﷺ په



نصف النهار کي د لمونځ کاوه نه منع کړې ده. تردې چې نمر زائله شی. مګر د جمعے په ورځ.

**الجوابان عن دليله** ◉ او د امام ابویوسف رحمه الله د حدیث نه ځواب دا دی. ① چې ﴿إلا يوم الجمعة﴾ کي استثناء منقطع ده. ② دوهم ځواب دا دی. چې د ﴿إلا يوم الجمعة﴾ معنی ده. ﴿ولا يوم الجمعة﴾ نو اوس معنی دا شوه. چې نبی ﷺ په نصف النهار کښے د لمونځ کاوه نه منع کړې ده. او د جمعے په ورځ ئې هم په دے وخت کي د لمونځ نه منع کړې ده.

## په درې وختونو کي د جنازې او د تلاوت د سجدې حکم

قَالَ فرمايي (وَلَا صَلَاةُ جِنَازَةٍ) او د جنازې لمونځ به هم نه کوی لِمَا رَوَيْنَاهُ د هغه حدیث د وجې کوم چې موږ روایت کړې دی

**حل اللغة** ① رويناه، روى رواية (ض) روایت کول

**تشریح:- دليل كراهة الجنازة** ◉ مصنف رحمه الله فرمائی. چې په درے وختونو کي به نه د جنازې لمونځ کوی. او نه به سجده د تلاوت کوی. دلیل هغه حدیث دی. چې وړاندې تیر شو. یعنی ﴿أن نقبر فيها موتانا﴾

(وَلَا سَجْدَةُ تِلَاوَةٍ) او سجده د تلاوت هم جائز نه ده لِأَنَّهَا فِي مَعْنَى الصَّلَاةِ ځکه چې سجده د تلاوت هم د لمونځ په څیر ده

**تشریح:- دليل كراهة سجدة التلاوة** ◉ او د تلاوت د سجدې د عدم جواز لپاره دلیل دا دی. چې سجده د تلاوت هم د لمونځ په څیر ده. په دے طریقه چې کوم شرطونه چې په لمانځه کي دی. لکه طهارت، پټوالے د عورت، استقبال د قبلې وغیره نو دا په سجده د تلاوت کي هم شرطونه دی. نو هرکله چې سجده د تلاوت د لمونځ په څیر شوه. نو دا په درے وختونو کي د لمونځ نه کاوه په نهی کي ګډ شوه. حدیث مبارك دی. چې ﴿ثلاثة أوقات نهانا رسول الله ﷺ أن نصلي فيها﴾

**السؤال** ◉ خو دلته یو اشکال دی. چې هرکله سجده د تلاوت د لمانځه په څیر شوه. نو لکه څنګه چې په خندائې قهقهه باندې لمونځ ماتیږی. باید ده چې دغه ډول پرے سجده د تلاوت هم ماتیږی. خو په سجده د تلاوت کي په خندائې قهقهه باندې سجده نه ماتیږی.

**الجواب** ◉ ځواب دا دی. چې په حدیث کي کوم لمونځ په خندائې قهقهه باندې ماتیدونکي خودلے شوی دی. د هغه نه هغه لمونځ مراد دی. چې په هغے کي تکبیر تحریمه، رکوع او سجده وی. او سجده د تلاوت داسې نه ده. نو ځکه که په دے کي خندائې قهقهه او کړی. نو سجده پرے نه ماتیږی.

**حكمة النهي عن الصلاة في الاوقات الثلاثة** ◉ او په دے درے وختونو کي د لمونځ کاوه نه ځکه منع شوې ده. چې د نمر پرستو سره مشابهت رانشی. (یعنی په دے درے وختونو کي هغه نفر نمر ته سجده کوی. چې د وار عبادت کوی. نو که مسلمانان هم په دے درے وختونو کي الله تعالی سجده کوی. نو د هغوی سره مشابهت راتلو. ځکه نبی ﷺ په دے درے وختونو کي د لمونځ کاوه نه منع او کړله.)

(إِلَّا عَصْرَ يَوْمِهِ) مګر د مازیګر لمونځ هم په دغه ورځ کي (عِنْدَ الْغُرُوبِ) د غروب په وخت.

**تشریح:- استثناء عصر اليوم** ◉ شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی. چې په درے وختونو کي مطلقاً لمونځ مکروه دی. خو د دغه ورځ د مازیګر لمونځ د دے نه مستثنی دی. یعنی که په دغه ورځ د مازیګر لمونځ او نکړی. تردې چې د لمر پریوتو وخت شی. نو په دغه وخت کي هم صرف د دغه ورځ د مازیګر لمونځ کولې شی. نور مونځونه نشی کولې. دغه ډول د بلې ورځ د مازیګر قضاء شوې لمونځ هم نشی کولې.

لِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْجُزْءُ ځکه چې سبب د وخت هغه جزء دی الْقَائِمُ مِنَ الْوَقْتِ کوم چې قائم وی. لِأَنَّهُ لَوْ تَعَلَّقَ بِالْكُلِّ او که سبب د واړه وخت سره متعلق وو لَوَجَبَ الْأَدَاءُ بَعْدَهُ نو ادا کول به د وخت نه روسته واجب وو وَلَوْ تَعَلَّقَ بِالْجُزْءِ

اوکه سبب دهغه جزء سره متعلق وو **اَلْمَاضِي** کوم چې تیرشوې وی **فَالْمُؤَدِّي فِي آخِرِ الْوَقْتِ قَاضٍ** نو په آخر وخت کښې ادا کونکې به قضاء راوړونکې وی **وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ** او هرکله چې داسې ده **فَقَدْ أَدَّاهَا كَمَا وَجَبَتْ** نوده ادا کړل (دمازیګر مونځ) څنګه چې واجب شوې وو

**حل اللغة**: ① **مؤدی**: اداکړې شوې ② **وجبت، وجب وجوباً(ض)** واجب کیدل

**تشریح:- فهم الامور الاربعة** ◉ په دلیل کې یو څو خبرے په ذهن کې کینوئ. ① دلمونځ وختونه ددے د ادا سبب وی. ② سبب په مسبب باندې مقدم وی. ③ چې څنګه سبب وی. هغه شان به مسبب وی. یعنی که سبب کامل وی. نومسبب به هم کامل وی. اوکه سبب ناقص وی. نو مسبب به هم ناقص وی. ④ که لمونځ کامل واجب شوې وی. نو په کامله طریقه ادا کول ضروری دی. او که ناقص واجب شوې وی. نود نقصان د صفت سره هم ادا کیدې شی

**الاحتمالات الثلاثة في سبب الصلاة** ◉ اوس د دلیل لنډیز دا شوه. کوم کس چې د لمر ډوبیدو په وخت کې د مازیګر لمونځ کوی. نو ددے په سبب کې درے احتمالات دی. ① یوداچې پوره وخت سبب اوګرځولې شی. ② دوهم دا چې کوم وخت تیر شوې وی. هغه سبب اوګرځولے شی. ③ دریم دا چې د ادا کاوه سره متصل جزء سبب اوګرځولې شی.

**بطلان الاحتمال الاول** ◉ اولنی دوې (دوه) احتمالات باطل دی. ځکه که واړه وخت سبب اوګرځولې شی. نوپکارده چې د وخت نه روسته لمونځ واجبیږی. ځکه چې مسبب د سبب نه موخر وی. حالانکه لمونځ په وخت کې دننه واجب دې. د وخت نه روسته نه.

**بطلان الاحتمال الثانی** ◉ او دوهم احتمال ځکه باطل دې. که تیرشوې وخت سبب اوګرځولې شی. نوکوم کس چې په آخر وخت کې لمونځ کوی. پکارده چې هغه ته قضاء راوړونکې اووئیلې شی. حالانکه هغه قضاء راوړونکې نه دې.

**الجزء المتصل للاداء هو السبب** ◉ نومعلومه شوه. چې کوم جزء د ادا کاوه سره متصل وی. هغه د وجوب صلاة سبب دې. او په مذکوره مسئله کې ،،جزء متصله للداء،، ناقص وخت دې. او وړاندې تیر شو. که سبب (وخت) ناقص وی. نو مسبب (مونځ) به هم ناقص واجبیږی. نوبه دے کس چې په کوم صفت لمونځ واجب شوې وو. هغه شان ئې ادا کړلو. نوځکه موږ وایو. چې د نن ورځې د مازیګر لمونځ د لمر ډوبیدو په وخت کې هم جائز دے

**بِخِلَافِ غَيْرِهَا مِنَ الصَّلَوَاتِ** په خلاف د نورو مونځونو **لِأَنَّهَا وَجَبَتْ كَامِلَةً** ځکه چې هغه کامل واجب شوی دی **فَلَا تَتَأَدّٰى بِالنَّاقِصِ** نوپه ناقص (وخت) کې به نشی ادا کولې

**تشریح:- حکم الصلوات الاخری عندالغروب** ◉ ددے په خلاف هغه نور مونځونه چې ددے ورځې د مازیګر دلمونځ نه علاوه دی. هغه په دے وخت کې کول ځکه جائز نه دی. چې هغه په کامل صفت سره واجب شوی دی. نوپه ناقص وخت کې به نشی ادا کولې.

**قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** مصنف رحمه الله فرمایي **وَالْمُرَادُ بِالنَّفْيِ الْمَذْكُورِ فِي صَلَاةِ الْجَنَازَةِ وَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ الْكَرَاهَةُ** چې د جنازې په لمونځ اود تلاوت سجده کې د نفی مذکور نه مراد کراهت دې **حَتّٰى لَوْ صَلَّاهَا فِيهِ** نوکه په مکروه وخت کې ئې د جنازې لمونځ اوکړلو **أَوْ تَلَا سَجْدَةً فِيهِ** یا ئې په دے کې آیت د سجدې اولوستلو **وَسَجَدَهَا** اوسجده ئې اوکړله **جَازَ** نوجائز ده

**تشریح:- المراد من النفی في الحدیث** ◉ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې د جنازې د لمونځ او سجدې د تلاوت د جواز چې کومه نفی شوې ده. ددے نه کراهت مراد دی یعنی دا دواړه په دے وختونو کې مکروه دی. نوکه په مکروه وخت کې جنازه حاضره شوه. اوهم په دغه وخت کې ادا کړې شی. یا په مکروه وخت کې ئې د سجدې



ایت اولوستلو. اوهم په دغه وخت کې سجده اوکړی. نودا جائز دی.

**لِأَنَّهَا أُدِّيَتْ نَاقِصَةً** ځکه چې جنازه او د تلاوت سجده هغه شان ناقص ادا کړې شو **كَمَا وَجَبَتْ** څنګه چې واجب شوی وو **إِذِ الْوُجُوبُ بِحُضُورِ الْجَنَازَةِ وَالتِّلَاوَةِ** ځکه چې وجوب د جنازې په حاضریدو او د سجدې د تلاوت په کاوه سره راغلې وو.

**تشریح:- دلیل جواز الجنازة وسجدة التلاوة في الاوقات المکروهة** ◉ دلیل دا دې. چې دجنازې د وجوب سبب ددے حاضریدل دی. اود سجدې د تلاوت د وجوب سبب ددے تلاوت دې. اوچونکه دا دواړه په ناقص وخت کې راغلی دی. نوچې څنګه واجب شوی وو. هم هغه شان ادا شو. او ددے په خلاف نور فرائض په دے وختونو کې جائزنه دی. (ځکه چې هغه کامل واجب شوی دی. نو په کامل وخت کې به ادا کول ضروری وی.)

## دصبا اومازیګر نه روسته د نوافلو حکم

**وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ الْفَجْرِ** اود سهار د لمونځ نه روسته نفل مکروه دی **حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ** تردې چې نمر راوخیژی **وَبَعْدَ الْعَصْرِ** اود مازیګرنه روسته **حَتّٰى تَغْرُبَ** تردې چې نمر پریوځی

**حل اللغة**: ① **یتنفل، تنفل تنفلاً**: نفل کول

**تشریح:- کراهة النفل بعدالفجر والعصر** ◉ مسئله دا ده. چې د سهار نه روسته تر لمر راختو پورې اود مازیګر نه روسته تر لمر پریوتو پورې نفل کول مکروه دی

**لِمَا رُوِيَ** ځکه چې روایت شوې دې **أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ ذٰلِكَ.** (1) چې نبی ﷺ ددے نه منع کړې ده

**تشریح:- دلیل الکراهة** ◉ دلیل د ابن عباس رضی الله عنه حدیث دې. «شهد عندی رجال مرضیون وأرضاهم عندی عمر أن رسول الله ﷺ نهی عن الصلاة بعدالصبح حتی تشرق الشمس وبعدالعصر حتی تغرب» (متفق علیه) ابن عباس رضی الله عنه فرمائی. داسې کسانو ګواهی کړې ده. چې په هغوی کې ماته د ټولو نه زیات خوښ حضرت عمربن خطاب رضی الله عنه وو. چې رسول الله ﷺ د سهار نه روسته د لمانځه نه منع کړې ده. تردې چې نمر راوخیژی . اود مازیګرنه روسته تردې چې نمر پریوځی. (بخاری ومسلم)

**تعارض الروایتان في الرکعتین بعد العصر** ◉ ① خود عائشې رضی الله عنها حدیث چې صحیحینو نقل کړې دې. ددے سره معارض دې. حدیث دا دې. «رکعتان لم یکن رسول الله ﷺ یدعهما سرا ولاعلانیة رکعتان قبل صلاة الفجرورکعتان بعدالعصر» یعنی دوې (دوه) رکعته دی. چې رسول الله ﷺ به نه پریخودل. نه په پټه او نه په ښکاره. دوې (دوه) رکعته د سهار دلمانځه نه وړاندې اودوې (دوه) رکعته د مازیګر نه روسته ② اوپه یو بل روایت کې دی. چې «ما کان النبی ﷺ یاتینی في یوم بعد العصر إلا صلی رکعتین» یعنی کله هم داسې نه ده شوې. چې رسول الله ﷺ به ماته راغلو د مازیګر نه روسته خو دوې (دوه) رکعته به ئې کول. ددے دواړه احادیثو نه معلومیږی. چې دمازیګر نه روسته نبی ﷺ دوې (دوه) رکعته په پابندئ سره کړی دی.

**الجواب من التعارض** ◉ ځواب دا دې. چې د مازیګر نه روسته دوې (دوه) رکعته لمونځ د نبی ﷺ خصوصیت وو. نو دامت لپاره ددے اجازت نشته. اوددے دلیل دا دې. چې یوځل د ماپښین نه روسته د وفد عبدالقیس څه خلګ د نبی ﷺ خدمت کې حاضر شو. دهغوی د مشغولیت دوجې نبی ﷺ د ماپښین نه روسته دوې (دوه) رکعته اونکړې شو. نو نبی ﷺ د تدارك په طور د مازیګرنه روسته دوې (دوه) رکعته اوکړل. او عادت شریف

1) فی حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه البخاری فی المواقیت تب ۳۰ رقم ۵۸۱ ومسلم فی صلاة المسافرین رقم ۲۸۶ وابوداود فی التطوع باب ۱۰ رقم ۱۲۷۶ والترمذی فی الصلاة باب ۲۰رقم ۱۸۳ والنسائی فی المواقیت تب ۳۲ وابن ماجه فی الاقامة باب ۱۴۷ رقم ۱۲۵۰ )_

نے دا وو.چې کله به نبی ﷺ څه عمل کولو.نو په هغې به ئې مداومت کولو.نو ځکه نبی ﷺ د مازیګرنه روسته همیشه لپاره دوې (دوه) رکعت پیل کړل.او نور خلګ به ئې ددے دوو رکعتونو نه منع کول.

**واقعة اتيان وفد عبدالقيس**۞ علامه ابن الهمام د بخاری اومسلم په حواله سره پوره واقعه داسې لیکلے ده.

﴿عن كريب مولى ابن عباس ﷺ أن عبدالله بن عباس وعبدالرحمن بن ازهر ومسور بن مخرمة أرسلوه إلى عائشة ﷺ زوج النبي ﷺ فقالوا إقرأ عليها السلام منا جميعاً وسلها عن الركعتين بعدالعصر وقل بلغنا أنك تصلينهما وأن رسول الله ﷺ نهى عنهما قال كريب فدخلت على عائشة ﷺ فأخبرتها فقالت سل ام سلمة ﷺ فرجعت إليهم فأخبرتهم فردوني إلى ام سلمة ﷺ فقالت ام سلمة سمعت رسول الله ﷺ نها عنهما ثم رأيته يصليها فقيل له في ذلك فقال انه أتاني ناس من عبد القيس بالإسلام من قومهم فشغلوني عن الركعتين اللتين بعدالظهر وهما هاتان﴾ یعنی کریب آزاد کرده غلام د ابن عباس ﷺ روایت کوی.چې عبدالله بن عباس، عبدالرحمن بن ازهر ،او مسور بن مخرمه ﷺ زه ام المؤمنین عائشے ﷺ ته اولیږلم.چې زموږ د ټولو د اړخه ام المؤمنین ته سلام اووایه.اود مازیګر نه روسته د دوو رکعتونو حال ترے معلوم کړه.اوعرض ورته اوکړه .چې موږ ته دا خبر رارسیدلے دے.چې ته دا دوې (دوه) رکعتونه کوې.اورسول الله ﷺ د دے نه منع کړې ده.کریب وائی.زه د ام المؤمنین په خدمت کې حاضر شوم . او پیغام مے ورته اورسول.هغوی راته اوفرمائیل. ولاړ شه د حضرت ام سلمے ﷺ نه پوښتنه اوکړه.نوواروسته راغلم.اوهغوی ته مے واقعه بیان کړه.نوهغوی زه ام المؤمنین حضرت ام سلمے ﷺ ته اولیږم.نو ام سلمے ﷺ اوفرمائیل.چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وو.چې د مازیګر نه روسته ئې د دوو رکعتونو نه منع کوله.بیا ما اولیدلو.چې نبی ﷺ دوې (دوه) رکعته کول.نو په دے اړه کې ما د نبی ﷺ نه پوښتنه اوکړه.(چې تاسو خود مازیګر نه روسته د نفلو نه منع کړې وه. او اوس ئې پخپله کوئ.)نو نبی ﷺ اوفرمائیل: ماته د وفد عبدالقیس څه نفر راغلل.دخپل قوم د اړخ نه د اسلام قبلولو دپاره.نود ماپښین نه روسته دوو رکعتو نه بوخت شوم.نو دا هغه دوې (دوه) رکعته دی.(چې اوس ئې د مازیګر نه روسته کوم. (رواه البخاری في المغازی)

| |
|---|
| ﴿وَلَا بَأْسَ﴾ او څه حرج نشته ﴿بِأَنْ يُصَلِّيَ فِي هَذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ الْفَوَائِتَ﴾ که په دے دواړو وختونو کې قضاء مونځونه اوکړي ﴿وَيَسْجُدَ لِلتِّلَاوَةِ﴾ او د تلاوت سجده اوکړي |

**حل اللغة**° ① **يسجد سجد سجوداً** (ن): سجده کول

**تشریح:- جوازالفائتة والجنازة وسجدة التلاوة في هذين الوقتين**۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.په دے دوو وختونو کې یعنی د سهار دلمانځه نه روسته او د مازیګر د لمانځه نه روسته د قضاء مونځونو، اوتلاوت د سجدې او دجنازې په کاوه کې څه قباحت نشته.

**دليل الجوازمن مشغولية الوقت في حقيقة الفرض**۞ دلیل دا دے.چې د سهار اومازیګر نه روسته کراهت د سهار او مازیګر د لمونځ د وجې وو.چې واړه وخت د دغه وخت په فرض کې بوخت شی.نوچونکه کراهت د فرضو د حق د وجې وو.نوچې په حقیقت کې فرض وی.نو دهغے په حق کې به کراهت نه ښکاره کیږی.(ځکه که دیو فرض نه وخت خالی شو.نو په بل فرض ډک شو.) ځکه چې په حقیقی فرضو کې د وخت مشغوله کول بهتر دی.په نسبت سره دے ته چې د فرضود حق سره مشغوله شی.نوځکه د فرضو په حق کې او څه چې ددے په معنی کې وی.(یعنی واجب یا فرض وی) نو دهغے په حق کې کراهت نه ښکاره کیږی.(یعنی دلته کې دوې (دوه) شیان (څیزونه ) دی.یود فرضو حق دے.یعنی د فرضو حق دا دے.چې پوره وخت په فرضو کې بوخت شی.مثلاً چې د مازیګر وخت داخل شی. نوچې نیت اوتړی.نوترماښامه پورې د مازیګر په فرض کې بوخت وی.اوبل شی پخپله فرض دے.نوچې کله دوې (دوه) شیان (څیزونه ) په یو وخت کې جمع شی.یو د فرضو حق او بل حقیقی فرض نو په دے صورت کې به د حقیقی فرضو کول بهتر وی.لکه په ذیربحث مسئله کې چې سجده د تلاوت حقیقی فرض دی.) لکه سجده د تلاوت، ځکه چې سجده د تلاوت لذاته واجب ده.ځکه چې د تلاوت د سجدې وجوب د بنده په عمل باندې موقوف نه دے.او دلیل ددے دا دے.چې څنګه سجده د تلاوت



په تلاوت کاوه سره واجبیږی. نو دغه ډول د سجدې ایت اوریدو سره هم واجبیږی.اګرچې د اوریدو اراده ئې نه وی.نو سجده د تلاوت په واجب لذاته کې د فرضو په څیر شوه.

| |
|---|
| ﴿وَيُصَلِّي عَلَى الْجَنَازَةِ﴾ اود جنازې لمونځ اوکړی ﴿لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ كَانَتْ لِحَقِّ الْفَرْضِ﴾ ځکه چې کراهت خو د فرض د حق د وجې وو.﴿لِيَصِيرَ الْوَقْتُ كَالْمَشْغُولِ بِهِ﴾ بوخت په ګویا چې واړه وخت د دغه وخت په فرض کې بوخت شی ﴿لَا لِمَعْنًى فِي الْوَقْتِ﴾ د یوے داسې معنی د وجې چې هغه په وخت کې موجود شی ﴿فَلَمْ تَظْهَرْ فِي حَقِّ الْفَرَائِضِ﴾ نود فرضو په حق کې (دا کراهت نه) ښکاره کیږی ﴿وَفِيمَا وَجَبَ لِعَيْنِهِ﴾ او په هغه څیزونو کې چې لذاته مقصود وی ﴿كَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ﴾ لکه سجده د تلاوت |

**حل اللغة**° ① **فلم تظهر، ظهر ظهوراً** (ن): ښکاره کیدل

**تشریح:- حكم صلاة الجنازة في هذين الوقتين**۞ هم دا حال د جنازې د لمونځ هم دے .ځکه چې دجنازې د لمونځ وجوب هم د بنده په فعل پورې موقوف نه دے. (بلکه که بنده دا نه غواړی.چې فلانے دے مړ شی.خو بیا هم هغه مری.اوچې مړ شی.نو په ده جنازه کول واجب شو.چې حاضره شی.)

| |
|---|
| ﴿وَظَهَرَ﴾ او (کراهت به) ښکاره کیږی ﴿فِي حَقِّ الْمَنْذُورِ﴾ په نذر لمونځ کې ﴿لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ وُجُوبُهُ﴾ ځکه چې د نذر لمونځ وجوب متعلق دے ﴿بِسَبَبٍ مِنْ جِهَتِهِ﴾ د داسې سبب پورې چې هغه د نذرکونکی د اړخه وی |

**حل اللغة**° ① **جهت**: اړخ

**تشریح:- حكم المنذور في هذين الوقتين**۞ البته د سهار اومازیګر نه د نذر کړې شوی لمونځ په اړه کې کراهت ښکاره کیږی.ځکه چې نذر شوې لمونځ واجب لذاته نه دے.بلکه د نذر کونکی په نذر کاوه سره واجب شوې دے.

| |
|---|
| ﴿وَفِي حَقِّ رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ﴾ او (کراهت به ښکاره کیږی.د) طواف په دوو رکعتونو کې |

**تشریح:- حكم الطواف في هذين الوقت**۞ دغه ډول د طواف په دوو رکعتونو کې هم کراهت ښکاره کیږی.نود سهار اومازیګر نه روسته ددے دوو رکعتونو کول مکروه دی.ځکه چې ددے وجوب دطواف د وجې دے.او طواف کول د طائف فعل دے. نو د طواف دوې (دوه) رکعته هم واجب لذاته نه دی.

| |
|---|
| ﴿وَفِي الَّذِي﴾ او په داسې لمونځ کې (به ښکاره کیږی) ﴿شَرَعَ فِيهِ﴾ چې هغه ئې پیل کړی وی ﴿ثُمَّ أَفْسَدَهُ﴾ اوبیا ئې فاسد کړې وی ﴿لِأَنَّ الْوُجُوبَ لِغَيْرِهِ﴾ ځکه چې وجوب لغیره دے ﴿وَهُوَ خَتْمُ الطَّوَافِ﴾ چې د طواف ختمول دی ﴿وَصِيَانَةُ الْمُؤَدَّى عَنِ الْبُطْلَانِ﴾ اومودی د بطلان نه بچ کول دی |

**حل اللغة**° ① **صيانة**: بچ کول

**تشریح:- حكم الصلاة الفاسد بعدالشروع فيها**۞ اودغه ډول د هغه لمونځ په اړه کې هم کراهت ښکاره کیږی.چې په هغے کې پیل شوې وی.او بیا فاسد شوې وی.مثلاً چې په نفلی لمونځ کې پیل اوکړی.او بیا د سهار یا مازیګر نه روسته ددے قضاء راوړی.نو مکروه ده.ځکه چې دا لمونځ لذاته واجب نه دے.بلکه کوم لمونځ چې ئے د پیل نه روسته فاسد کړې وو. هغه د بطلان نه د بچ کاوه لپاره واجب شوې دے.

**دصباصادق نه روسته د دوې (دوه) رکعته سنتو نه د زیاتې نوافلو کراهت**

| |
|---|
| ﴿وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ﴾ او د سهار راختو نه روسته د سهار د دوو رکعتونو نه زیات نفل کول مکروه دی ﴿لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَزِدْ عَلَيْهِمَا مَعَ حِرْصِهِ عَلَى الصَّلَاةِ﴾ (۱) ځکه چې نبی ﷺ سره د |

۱) من حدیث حفصة ﷺ اخرجه البخاری فی التهجد باب ۲۹ رقم ۱۱۷۳ ومسلم فی صلاة المسافرین رقم ۸۸)_

لمانځه د حرص نه په دے دوو رکعتونو زیادت نه دے کړي.

**تشریح:-** صورت د مسئلې او ددے دلیل ښکاره دي.(نووضاحت ته اړتیا نشته)

**د ماښام نه روسته د فرضو نه وړاندې د نفلو حکم**

﴿وَلَا يُتَنَفَّلُ بَعْدَ الْغُرُوبِ قَبْلَ الْفَرْضِ﴾ او دغروب نه روسته د فرضو نه وړاندې به نفل نه کوی لِمَا فِيهِ مِنْ تَأْخِيرِ الْمَغْرِبِ ځکه چې په دے کې د فرضو تاخیر راځی

**تشریح:- حکم النفل قبل الفرض في المغرب** ۞ مسئله دا ده.چې لمر ډوب شی.نو د فرضو نه وړاندې د نفلو کول مکروه دی.دلیل دا دې.چې په داسې کاوه کې د ماښام دلمونځ تاخیر راځی.حالانکه په ماښام کې تعجیل مستحب دې.

**حکم الصلاة قبل المغرب**۞ د ماښام نه وړاندې دوو رکعتونو ته خو مصنف رحمه الله مکروه وئیلی دی.خو ځ احادیث ددے په مسنونیت کې وارد دی.

**دلیله**۞ دحضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه نه روایت دې.فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.دهر دوو اذانونو(یعنی اذان اواقامت ) په مینځ کې نفلی لمونځ شته. دهر دوو اذانونو (یعنی اذان او اقامت ) په مینځ کې نفلی لمونځ شته.او بیا ئې په دریم ځل اوفرمائیل.چې د چا خوښه وی.(نو د اذان اواقامت په مینځ کې دے لمونځ کوی. کذا في البخاری في الأذان باب بين كل أذانين صلاة لمن شاء ومسلم في الصلاة بـاب بين كل اذانين صلاة)

دحدیث د ظاهر نه دا معلومیږی.چې دماښام د اذان او اقامت په مینځ کې بل لمونځ شته.په دے اړه کې دفقهاء اختلاف دې. دامام شافعی او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په نزد د ماښام نه وړاندې دوې (دوه) رکعته نفل مستحب دی.او دامام اعظم او امام مالك رحمهما الله په نزدے د ماښام نه وړاندې نفل کول مکروه دی.د شوافع او حنابلوٴ دلیل دحضرت عبدالله بن مغفل دا حدیث دې.خو احناف ددے حدیث نه ځواب کوی.چې ددے نه د ماښام لمونځ مستثنا دې.او په دلیل کې ددارقطنی بیهقی او مسند بزار حدیث پیش کوی.د دوی په روایت کې د ماښام استثنا موجود ده.دحدیث الفاظ دا دی. «قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إن عند كل أذانين ركعتين ما خلا صـلاة المغـرب» دا حدیث د احنافو دلیل هم دې.او ځواب هم .دتفصیل لپاره درس ترمذی اوګورئ .(درس ترمذی ۱/ ۴۳۰. شاه فیصل عفی عنه)

**الانصاف في هذه المسئلة**۞ د شوېفعو سره په خپله مدعی باندې مضبوط دلائل موجود دی.لکه په بخاری کې دحضرت عبدالله مزنی او حضرت انس رضی الله عنهما دوې (دوه) روایتونه او په ابوداود کې د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه روایت شو.ددے روایاتونه د ماښام د لمانځه نه وړاندې دوې (دوه) رکعته کول ثابت دی.ددے وجه داحنافو په متاخرینو عالمانو رحمهم الله کې صاحب دفتح القدیر امام ابن الهمام رحمه الله ددے دجواز قول ته ترجیح ورکړې ده.چې د ماښام نه وړاندې دوې (دوه) رکعته نفل کول جائز دی.شاه انور شاه کشمیری رحمه الله هم د جواز قول ته ترجیح ورکړې ده.او فرمائی.د ماښام نه وړاندې د دوو رکعتو نفلو د استحباب نفی خو کیدی شی.چې یو سړې دا اووائی.دا مستحب نه دی.خو دے ته مکروه او بدعت نشی وئیلې.شیخ الاسلام علامه محمد تقی عثمانی مد ظله العالی په درس ترمذی کې فرمائیلی دی.دروایاتو په رڼا کې دماښام نه وړاندې دوې (دوه) رکعته جائزدی.البته ددے نه کول افضل معلومیږی.

① یو خو ددے وجه چې په احادیثو کې دماښام دلمانځه دتلوارے حکم راغلې.اوددے دوو رکعتونو د کاوه په صورت کې د ماښام لمونځ ورستو کیږی.

② دویمه دا چې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کې زیاتو صحابو به دا دوې (دوه) رکعته نه کول. اود حدیث صحیح مفهوم د صحابو رضی الله عنهم دعمل نه ثابتیږی.چونکه په عامه توګه صحابه کرامو رضی الله عنهم دا نه دی کړی.نو ددے نه نه کول افضل معلومیږی.(درس ترمذی ۱/ ۴۳۱)

داحقر شاه فیصل رائې دا ده.که حنفی په داسې جمات کې د ماښام لمونځ کوی. چې د هغے خلګ دماښام نه



وړاندې دوې (دوه) رکعته نفل کوی.نو دوې (دوه) رکعته نفل دے اوکړی .ځکه چې دامام نه خو وړاندې هسے هم لمونځ نشی کولې.چې په هغه احادیثو باندې هم عمل راشی. کوم چې ددے دوو رکعتونو په ثبوت کې راغلی دی.لکه سړې حرمینو شریفینو ته لاړشی.او هغوی هلته کې دا دوې (دوه) رکعته نفل کوی.نو ور سره دے اوکړی.

﴿وَلَا إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ لِلْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ﴾.اود جمعے په ورځ چې څه وخت امام د خطبے لپاره راوځی نو هم به نفل نه کوی ﴿إِلَى أَنْ يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ﴾ تر دے چې هغه د خطبے نه فارغ شی لِمَا فِيهِ مِنَ الِاشْتِغَالِ عَنِ اسْتِمَاعِ الْخُطْبَةِ ځکه چې په نفلو کې په مشغوله کیدو کې دخطبے د اوریدو نه اعراض دے

**حل اللغة:** ① **ان یفرغ، فرغ فراغاً(ف):** اوزګاریدل ② **اشتغال:** بوخت کیدل

**تشریح:- حکم النفل بعد خروج الخطیب یوم ا لجمعة** ۞ اودغه ډول په هغه وخت کې نفل کول مکروه دی.چې امام د خطبے لپاره راوځی.تردې چې د خطبے نه فارغ شی.دلیل دا دې.چې په داسې کاوه کې د خطبے اوریدو نه اعراض دې.حالانکه د خطبے اوریدل واجب دی.والله اعلم

## باب الأذان

ژباړه:- (دا) باب د اذان ( د احکامو په بیان کې ) دې.

**تشریح:- الربط بما قبله**۞چونکه اذان د مونځونو دوختونو اعلان دې.نوځکه ئې اول د وختونو بیان اوکړلو.او بیا ورپسې د اذان.

**الاذان لغة** ۞ اذان په لغت کې اعلان او اعلام ته وائی.اوبیا د مونځونو لپاره چې کوم خاص الفاظ وئیلی شی.د هغے لپاره مستعمل شو.نوکله چې هم د اذان لفظ ذکرشی.مراد به ترے دغه د لمانځه لپاره اعلان وی.دا لغوی معنی د الله تعالی په دے قول ﴿ وَأَذَانٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ ﴾او﴿ أَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا ﴾ مستعمل ده.

**الاذان شرعاً**۞اوپه شریعت کې داذان تعریف دا دې.په مخصوصو الفاظو کې په مخصوص طریقه د لمانځه د وخت داخلیدو خبر ورکول.

**اثبات الاذان من سورة المائدة** ۞د نفس اذان ثبوت خود آیتونواو احادیثو دواړو نه شوې دې.خو ددے تعین صرف د احادیثو نه دې.آیت خو دالله تعالی ارشاد دې.﴿ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ ﴾المائدة:۵۸﴾یعنی کله چې تاسو د لمانځه لپاره اذان کوئ.نودا خلګ خاندی اولوبے کوی.دا ددے وجې چې دا خلګ داسې دی.چې عقل نه لری.په دے آیت کې د ،، ندا الی الصلاة،، نه مراد اذان دې.

**نزول الاية في حق النصراني**۞ځکه چې ددے آیت په شان نزول کې حضرت تهانوی رحمه الله لیکلی دی.چې په مدینه کې یو نصرانی وو.چې کله به ئې په اذان کې ،، اشهد ان لا اله الا الله،، واوریدل.نو وئیل به ئې ،، قد حرق الکاذب،، یعنی دروغژن دے اوسوزی.یوځل داسې اتفاقی خبره وه.چې هغه او دهغه د کور واړه خلګ اوده شو.یو خادم اور راوړلو.دهغے نه یو څروټکه پریوتلهٔ.اوهغه او دهغه کور او د کور واړه خلګ اوسوزیدل.

**نزول الاية في حق اليهود**۞هم ددے آیت په شان نزول کې یوه واقعه دا هم ده.چې کله به اذان پیل شو.اومسلمانانو به لمونځ کولو.نویهودیانو به وئیل. ،،قاموا ولا قاموا صلوا ولا صلوا،، یعنی مسلمانان اودریږی.الله دے اوکړی.چې د اودریدو توفیق ورته نصیب نشی.اومسلمانان لمونځ کوی.الله دے اوکړی.چې د لمونځ توفیق ورته نصیب نشی.ددے دواړو واقعاتو نه معلومه شوه.چې په آیت کښے د ،،ندا الی الصلاة،، نه مراد اذان دې.

**اثبات الاذان من حم السجدة**۞ دوهم آیت ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِمَّنْ دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾حم السجدة:۳۳﴾دې.علامه بغوی رحمه الله فرمائی.چې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.زما خیال دې.چې دا آیت د

موذنینو په اړه کي نازل شوي دي.حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی.﴿ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ ﴾ نه مراد موذن دي.او ابوامامه باهلی رضی الله عنه فرمائیلی دی.چې په دے آیت کي ﴿ وَعَمِلَ صَالِحًا ﴾ نه مراد دا دي.چې د اذان او اقامت په مینځ کي دوې (دوه) رکعته اوکړی.

**اثبات الاذان من سورة الجمعة**۞دریم آیت ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ الجمعة:۹ دي.یعنی اے دایمان خاوندانو! کله چې د جمعے په ورځ (د جمعے) دلمانځه لپاره اعلان اوشي. نو تاسو دالله تعالی یاد (یعنی لمونځ اوخطبے) ارخ ته تلوار کوئ.او خرڅول او اخستل (اودغه ډول نور هغه کارونه چې په تګ کي رکاوټ وی.) پریږدئ.

اود کومو احادیثونه چې د اذان او اقامت تعین کیږی.هغه د مختلفو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه نقل دی.چې په راروانو کرښو کي به ئې تفصیل راشي.

**القولان في تاريخ مشروعية الاذان**۞ پاته شوه دا خبره.چې اذان کله مشروع شوي دي.ددے په اړه کي ملا علی قاری رحمه الله په شرح نقایه کي دوې (دوه) اقوال ذکر کړی دی.یودا چې اذان په اول کال د هجرت کي مشروع شوې وو. دوهم دا چې په دوهم کال دهجرت مشروع شوي وو.

**مشروعية الاذان في السنة الثانية من الهجرة**۞ د دوهم قول دلیل دا دي.چې ابن اسعدد نافع بن جبیر ،عروه بن زبیر، او سعید بن مسیب رضی الله عنه نه نقل کړی دی.چې «أنهم قالوا كان الناس في عهد رسول الله ﷺ قبل أن يـؤمر بـالأذان ينادى منادي رسول الله ﷺ ،،الصلاة جامعة،، فتجتمع الناس فلما صرفت القبلة أمر بـالأذان»یعنی دا درے واړه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم فرمائی.چې خلګ وبه دنبی ﷺ په زمانه کي د اذان د حکم راتلو نه وړاندې د ،،الصلاة جامعـة،، آواز کولو. خلګ وچې به دا آواز واوریدل.نو راجمع به شو.خوچې کله قبله بدلـه شوه.نو د اذان حکم اوشو.او دا خبره معلومه ده.چې تحویل د قبله په دوهم کال د هجرت کي شوي وو.نوثابته شوه.چې د اذان مشروعیت په دوهم کال د هجرت شوي دي.

**الرائی الراجح في تاريخ مشروعية الاذان**۞علامه عبدالشکور صاحب لکهنوی په ،،علم الفقه،، کي لیکلی دی.چې د اذان پیل په مدینه منوره کي د هجرت په اول کال شوي وه.ددے نه وړاندې به مونځونه بغیر د اذان نه کیدل.چونکه په هغه وخت کي د مسلمانانو شمار څه زیات نه وو.نوځکه د لمانځه لپاره د دوی راجمع کیدل هم څه ګران نه وو.بیا چې کله ورځ په ورځ اسلام ترقی کوله .او د مختلفو طبقو خلګ ډلے ډلے په اسلام کي داخلیدل.نو ددے خبرے اړتیا پیښ شو.چې دلمانځه د وخت په راتلو او د جماعت د اودریدو خبر دوی ته ورکولې شی.چې په دے سره دوی د نزدے او لرې خایونو نه جماعت ته راتلے شی.نو د اذان دا طریقه ددے مقصد لپاره مقرر کړې شوه.او اذان ددے امت خصوصیت دي.په پخوانو امتونو کي نه وو.

**مشاورة الصحابة رضی الله عنهم في امر الاذان**۞داذان دمشروعیت لنډه قصه دا ده.چې کله صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د لمونځ او د جماعت د وختونو خبر ورکاوه اړتیا محسوس شو.نو هغوی په خپلو کي مشوره اوکړلـه .بعضو مشوره ورکړه.چې د یهودیانو په څیر دے بنکر غږولے شی.څینې حضراتو اووئیل.چې اور دے بلولے شی. خو نبی ﷺ دا رائیګانے خوښے نکړې.حضرت عمر رضی الله عنه دا رائې ورکړه.چې د لمانځه په وخت کي دے ،،الصلاة جامعة،، وئیلې شی.

**رؤیا عبدالله بن زید وعمر**۞ رضی الله عنهما ددے نه روسته حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه خوبونه اولیدل.چې یوے فرښتے د اذان دا طریقه چې وړاندې بیانولے شی.اوخودلـه.چې په دے طریقـه د لمونځ د وختونو او د جماعت خبر مسلمانانو ته ورکوئ.په څینې روایاتو کي راځی.چې حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه اوفرمائیل.که په ما باندې د بدګمانئ ویره نه وه.نوما به دا وئیلی وو.چې زه بالکل ویده (اوده) نه وم.(بلکه ویخ وم) ددے وجې څینې عالمانو دا واقعه په حال او کشف باندې حمل کړې ده.چې ارباب باطن نه په حالت دبیدارئ کي نصیب کیږی.مختصر دا چې سهار ته حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه د نبی ﷺ په خدمت کي واقعه



بیان کړه.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.بیشکه دا خوب حق دي.او حضرت بلال رضی الله عنه ته ئې حکم اوکړلو.چې هم په دے طریقه اذان اوکړی.بیا حضرت عمرفاروق رضی الله عنه راغلو.او خپل خوب ئې بیان کړلو.

**تعليم الاذان بالوحی** ۞ په څینې روایاتو کي دی.چې ددے نه وړاندې نبی ﷺ باندې وحی نازل شوې وه. لکه څنګه چې عبدالرزاق په خپل مصنف او ابوداود په خپل مراسیل کي دا روایت نقل کړې دي.

**ضعف رواية تعليم جبريل الاذان ليلة الاسراء** ۞ په څینې احادیثو کښے دا هم راغلی دی.چې په شپه د معراج حضرت جبرئیل علیه السلام نبی ﷺ تـه د اذان تعلیم ورکړې وو .خو دا احادیث صحیح نه دی.اوکه بالفرض دا صحیح اوګنړلې شی. نو د دے نه هغه د معراج واقعه مراد نه ده.چې په مکه کي واقعه شوې وه.ځکه چې نبی ﷺ ته به روحانی معراج بیا بیا کیدلو.نو ددے ځخه به مراد هغه شپه وی.په کومه کي چې به نبی ﷺ دا خوب لیدلے وی.والله اعلم

## د اذان شرعي حيثيت

| |
|---|
| (الْأَذَانُ سُنَّةٌ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ وَالْجُمُعَةِ) اذان د پنځو مونځونو او جمعے لپاره سنت دي (لَاسِوَاهَا) نه چې د ما سوا لپاره لِلنَّقْلِ الْمُتَوَاتِرِ د نقل متواتر په وجه |

**حل اللغة**۞①**اذن تاذينا**: اذان ورکول

**تشريح:- الروايتان في حكم الاذان**۞①اذان د پنځو مونځونو او جمعے لپاره سنت مؤکده دي.② او څینې مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چې واجب دي.

**دليل الوجوب**۞ځکه چې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.که د یو کلی واړه خلګ په اتفاق سره اذان پریږدی.نوهغوی سره به جنګ کولې شی.اودا خبره معلومه ده.چې قتال د واجب په پریخودو کولې شی د سنتو په پریخود نشی.نومعلومه شوه.چې اذان واجب دي.

**الجواب من دليل الوجوب**۞ ددے ځواب دا دي.چې اذان کول خو سنت دي. خو د دے پریښول د دین سپکوالے اوتوهین دي.اوپه توهین د دین باندې قتال کولے شی.نوامام محمد رحمه الله ځکه هغوی سره د قتال کاوه حکم کړې دے

**دليل سنية الاذان**۞د اذان په مسنونیت باندې نقل متواتر دلیل دي.یعنی دا خبره په تواتر سره ثابته ده.چې نبی ﷺ د پنځو مونځونو او جمعے لپاره د اذان حکم کړې دے .او ددے نه علاوه د وترو، عیدینو، کسوف، خسوف، استسقاء، دجنازې لمونځ او د نفلونو لپاره ئې د اذان حکم نه دے کړې.

**دليل عدم الاذان للعيدين**۞ په مسلم کي د جابربن سمره رضی الله عنه نه روایت دے .چې «صليت مع رسـول الله ﷺ العيـد غير مرة ولا مرتين بغير أذان ولا إقامة»یعنی ما د رسول الله ﷺ سره د اخترونو لمونځ یو ځل دوې (دوه) ځله نه دے کړې. (بلکه ډیر ځله مے کړې دي.) بغیر د اذان او اقامت نه.

**دليل عدم الاذان للكسوف والخسوف**۞ دحضرت عائشے رضی الله عنها روایت دي.چې «خسفت الشمس على عهد رسـول الله ﷺ فبعث مناديا ينادى ب.الصلاة جامعة»یعنی د رسول الله ﷺ په زمانه کي به لمر تندر نیول.نو نبی ﷺ به یو آواز کونکې اولیږلو.هغه به د ،،الصلاة جامعة،، الفاظ وئیل.ددے دواړو احادیثو نه ثابته شوه.چې د عیدینو او کسوف او خسوف لپاره اذان نشته.

**دليل عدم الاذان للوتر، والسنن والنوافل**۞ او وتراګرچې واجب دی.خو د ماسخوتن اذان کافی دي.ځکه چې د وترو وخت هغه دي.کوم چې د ماسخوتن دي.اوپاتـه شوسنت او نوافل نودا د فرضو تابع دی.ددے لپاره د جلا اذان څه اړتیا نشته.

**دليل اثبات الاذان للجمعة**۞ او جمعے د اذان لپاره د سائب بن یزید رضی الله عنه حدیث دلیل دي. کوم چې په دې الفاظو سره مروی دي عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَكَثُرَ النَّاسُ زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ قَالَ أَبُو

عَبْد اللّٰهِ الزَّوْرَاءُ مَوْضِعٌ بِالسُّوق بِالْمَدِينَةِ﴾البخاری في الجمعة باب الأذان للجمعة رقم ٨٦١، شاه فيصل عفى عنه)

(وَصِفَةُ الْأَذَانِ مَعْرُوفَةٌ)او داذان طريقه خو مشهوره ده وَهُوَ كَمَا أَذَّنَ الْمَلَكُ النَّازِلُ مِنَ السَّمَاءِ. (١)اودا هغه شان ده.څنګه چې د آسمان نه راكوزے شوې فرښتے وركړې وو.

**حل اللغة**① **ملک**: فرښته ② **سماء جمع سموات**: آسمانونه

**تشريح:- الفاظ واقعة نزول الملك المؤذن**۞صاحب دهدايه فرمائی.چې د اذان كيفيت معلوم دې.اودا په هغه طريقه دې.څنګه چې د آسمان نه نازل شوې فرښتے كړې وو.ددے تفصيل د حضرت عبدالله بن زيد﷛ په حديث كي تفصيل سره تيرشوې دې.دحديث الفاظ دا دی.﴿عن معاذبن جبل قال قام رجل رجل من الأنصارعبدالله بن زيد يعني إلى النبي ﷺ فقال يا رسول الله ﷺ إني رايت في النوم كان رجلاً نزل من السماء عليه بردان اخضران أنزل على جزم حائط من المدينة فاذن مثنى مثنى ثم جلس قال أبوبكربن عياش على نحو من أذاننا اليوم قال علمها بلالاً فقال عمر﷛ ورأيت مثل الذي رأى ولكنه سبقني﴾

**؟من هو الملك المؤذن ؟**۞ پاته شوه دا خبره چې دا كومه فرښته وه.نو علامه بدرالدين عينی ﷫ فرمائيلی دی.چې دا جبرئيل امين ﵇ وو.او د ښيني حضراتو رائې ده.چې دا بله يوه فرښته وه.

## په اذان كې د ترجيع حكم

(وَلَا تَرْجِيعَ فِيهِ)او په اذان كي ترجيع نشته وَهُوَ اوترجيع دا ده أَنْ يُرَجِّعَ فَيَرْفَعَ صَوْتَهُ بِالشَّهَادَتَيْنِ چې دوباره كړی الفاظ د شهادتينو په خپل اوچت آواز سره بَعْدَمَا خَفَضَ بِهِمَا ددے په مزه وئيلو نه روسته

**حل اللغة**① **فيرفع، رفع رفعاً (ف)**: اوچتول ② **صوت جمع اصوات**: آواز ③ **خفض خفضاً (ض)** په مزه كول

**تشريح:- صورة الترجيع**۞په اذان كي د ترجيع صورت دا دې.چې ﴿اشهد أن لا إله إلا الله واشهد أن محمدا﴾الفاظ څلور خله وائی.دوې (دوه) خله په كښته آواز سره او دوې (دوه) خله په اوچت آواز سره.

**؟الاختلاف في الترجيع**۞ ①زموږ په نيز په اذان كښے ترجيع نشته.

(وَقَالَ الشَّافِعِيُّ ﷫ اوامام شافعی ﷫ فرمائيلي دی فِيهِ ذَلِكَ چې په اذان كي ترجيع شته لِحَدِيثِ أَبِي مَحْذُورَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ابومحذوره ﷛ د حديث د امله {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِالتَّرْجِيعِ}(٢) چې نبی ﷺ ابومحذوره ﷛ ته د ترجيع حكم كړې وو

**تشريح:-** د امام شافعی ﷫ په اذان كي د ترجيع قائل دي.

**؟دليله** ۞ امام شافعی ﷫ د ابومحذوره ﷛ په حديث استدلال كوی. ﴿أن النبي ﷺ علمه الأذان، الله أكبر، الله أكبر، أشهد أن لا إله إلا الله ، أشهد أن لا إله إلا الله ، أشهد أن محمدا رسول الله، أشهد أن محمدا رسول الله، ثم يعود فيقول ، أشهد أن لا إله إلا الله مرتين،، أشهد أن محمدا رسول الله،حي على ا لصلاة الحديث﴾رواه مسلم)

**؟الاستدلال والخلاف في عدد التكبير في اول الاذان**۞ ددے حديث نه د شهادتينو څلور خله وئيل ثابتيږی.ددے سره دا هم ثابتيږی.چې په اول كښے ،،الله اكبر،، دوې (دوه) خله وئيل دی.امام مالك ﷫ چې په اذان كي د دوې (دوه) خله تكبير وئيلو قائل دې.نوپه دے حديث استدلال كوی.خوابوداود او نسائی څلور خله ،،الله اكبر،، وئيل روايت كړی دی.هغه زمونږمستدل دې.

**؟الجواب من حديث مسلم** ۞ دمسلم د روايت نه ځواب دا دې.چې د الله اكبر كلمه په يوه ساه كي وئيل د يوے

١) من حديث عبدالله بن زيدبن عبدربه ﷛ اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ٢٨ رقم ٤٩٩)_
٢) اخرجه مسلم فی الصلاة رقم ٦ وابوداود فی الصلاة باب ٢٨ رقم ٥٠٥ والترمذی فی الصلاة باب ٢٦ رقم ١٩٢ والنسائی فی الاذان باب ٣ وابن ماجه فی الاذان باب ٢ رقم ٧٠٨)_



كلمے په ځير ده.ددے تاويل نه روسته په دواړو روايتونو كي څه اختلاف پاتې نشو.

(وَلَنَا او زموږ دليل دا دې أَنَّهُ لَا تَرْجِيعَ فِي الْمَشَاهِيرِ چې په مشهورو حديثونو كي ترجيع نشته

**حل اللغة**① **مشاهير**: مشهوراحاديث

**تشريح:- دليل الاحناف العقلی**۞ زموږ دليل دا دې.چې د اذان په اړه كي كوم احاديث راغلی دی.په هغے كي ترجيع نشته.من جمله د دغه احاديثو نه د حضرت عبدالله بن زيد بن عبد ربه ﷛ او عبدالله بن عمر ﷠ روايات دی.په دے كي ترجيع نشته.د ابن عمر﷛ د حديث الفاظ دا دی.﴿ قال إنما كان الأذان على عهد رسول الله ﷺ مرتين مرتين والإقامة مرة مرة﴾

**؟دليل الاحناف العقلی**۞ اوعقلی دليل دا دې.چې په اذان كي مقصود ،،حی على الصلاة او حي على الفلاح،، دې.اوپه دے كلماتو كي ترجيع نشته.نوددے نه په علاوه كلماتو كي خو به په طريقه اولی سره ترجيع نه وی.

(وَكَانَ مَا رَوَاهُ اوهغه حديث كوم چې ابومحذوره نقل كړې دې تَعْلِيمًا هغه د تعليم لپاره وو فَظَنَّهُ تَرْجِيعًا ابومحذوره ﷛ پرے د ترجيع خيال اوكړلو.

**تشريح:- جواب الطحاوی ﷫ من حديث ابی محذورة﷛** ۞ اود ابومحذوره ﷛ د حديث نه ځواب دا دې.چې دوی ته ددے كلماتو بار بار وئيل د ورزده كاوه لپاره وو.نوابومحذوره ﷛ پرے د ترجيع ګمان اوكړلو.يعنی ابومحذوره ﷛په شهادتينو باندې آواز دومره نه وو اوچت كړې.څومره چې دالله رسول غوښتل. نو ځكه پرے نبی ﷺ دوباره اوئيل.چې په اوچت آواز ئې اووائی.په دے باندې ابومحذوره ﷛ ګمان اوكړلو.چې ماته هميشه لپاره د كښته آواز نه روسته په اوچت آواز سره د شهادتينو حكم شوې دې.دا تاويل امام طحاوی ﷫ كړې دې.

**؟جواب صاحب العناية عن حديث ابومحذورة ﷛** ۞صاحب دعنايه ﷫ ليكلی دی.چې نبی ﷺ ابومحذوره ﷛ ته د يوحكمت د وجې د ترجيع حكم كړې وو .چې ابومحذوره مسلمان شو.نودالله تعالى ريښتينی پيغمبر ورته د اذان حكم اوكړلو . ابومحذوره ﷛ چې كله د شهادتينو كلماتو ته راورسيدل.نود خپل قوم نه د شرم او حيا د وجې ئې دا كلمات په كښته آواز اووئيل.نونبی ﷺ ابومحذوره﷛ راوغوښتلو .او دهغه غوږ ئې اونيولو.او ورته ئې اوفرمائيل.چې دا كلمات دوباره اووايه.اوپه دے باندې خپل آواز اوچت كړه.اوس په دے تكرار كي يا دا خبره مقصودی وه.چې د حق خبرے په وئيلو كي شرم او حيا نه دی كول پكار.اويا دا مقصود وو.چې په دے تكرار سره د ابومحذوره ﷛ د نبی ﷺ سره په محبت كي زيادت اوشي.

**؟جواب ابن الهمام عن حديث ابی محذورة﷛** ۞علامه بن الهمام ﷫ فرمائيلی دی.چې په طبرانی كي د ابومحذوره ﷛ نه يو روايت دې.په هغے كي ترجيع نشته .نو د ابومحذوره دواړه روايتونه متعارض شو.نو د تعارض د وجې دواړه ساقط شو .

**ضعف الجواب**۞ (خودا ځواب زما په نزد ځكه تسلی بخش نه دې.چې په اصول حديث كي دا قاعده ده.چې كله يو حديث په دوو سندونو سره نقل وی.اوپه يو كي زيادت وی.او دغه زيادت ثقه كړې وی.نو زيادت د ثقه معتبر دې.اوس په دے مقام كي صرف د طبرانی په روايت كي د ترجيع ذكر نشته.او په نورو ټولو روايتونوكي ترجيع شته.نومعلومه شوه.چې دا د طبرانی د راوی سهوه ده.ددے په نور واړه روايات د تعارض د وجې نشی ساقط كولې. احقر شاه فيصل چې كله په دے حاشيه باندې نظرثانی اوغورځولو.نو د عالمانو د تنقيد نه د ويرے د وجې مے اراده اوكړله.چې دا حاشيه حذف كړم.خو الحمد لله په يو موافقت باندې ډاډه شوم.هغه دا چې شيخ الاسلام مفتی محمد تقی عثمانی په درس ترمذی كي ددے بحث د لاندې د احنافو ﷭ د اړخه دا ځواب ذكر كړې دې.او بيا په دے ځواب باندې په دے الفاظو تبصره كوی.،،خودا ځواب هم شافی نه دې.ځكه چې د طبرانی وغيره روايت د هغه ډيرو رواياتو مقابله نشی كولې.كوم چې د ترجيح سره

مروی دی.چې دا الفاظ مې اولیدل.نو ډیر خوشحاله شوم.اودا حاشیه مې برقرار پریخودله.

په دې مقام کې د خپلې شرح مفتاح الفلاح شرح نورالایضاح عبارت نقل کول مناسب ګنړم.او هغه دا دې په اذان کې د ترجیع او عدم ترجیع په اړه کې دغه ډول په اقامت کې دایتار چې د ﴿قد قامت الصلاة﴾ نه علاوه نور کلمات به د اذان د کلماتو په نیمه باندې وائی.یعنی تکبیر دوې (دوه) خله اوشهادتین او حیعلتین یو یو خل وائی.او تشفیع یعنی چې اقامت د اذان په څیر وی.په دې اړه کې د تقی عثمانی رحمه الله وغیره تحقیق د زړه د تشفئ سبب ګرځی.فرمائی:په اذان کې ترجیع او عدم ترجیع دواړه جائز دی.او د دواړو په اړه کې احادیث نقل شوی دی.خو زموږ په نزد افضل عدم ترجیع ده.او بیا ئې دحضرت شاه ولی الله رحمه الله حواله ورکړې ده.چې هغوی فرمائیلی دی: د اذان او اقامت په کلماتو کې اختلاف دقرآن پاک د اووه قراتونو د اختلاف په څیر دې.چې په اووه قراتونو کې د هر قرات مطابق تلاوت کول جائزدې.دغه ډول په اذان او اقامت کې هم دواړه قسمه اذان او اقامت کول جائز دې. (کما في درس ترمذی باب ما جآء في الترجيع في الأذان ۱/۲۵۶م) شاه فیصل غفرله

**القول الراجح** ۞اود ابن عمر رضی الله عنه اوعبدالله بن زید رضی الله عنه حدیثونه کوم چې د تعارض نه سالم پاتې شو.هغه به د عمل وړ وی.بله دا چې د عدم ترجیع قول به ددې وجې هم راجح وی.چې د اذان په باب کې د حضرت عبدالله بن زید بن عبد ربه رضی الله عنه حدیث اصل دې.او په هغې کې ترجیع نشته.

**د صبا په مانځه کې د ،،الصلاة خیرمن النوم زیادت**

﴿وَيَزِيدُ فِي أَذَانِ الْفَجْرِ بَعْدَ الْفَلَاحِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ﴾ اود سهار په لمانځه کې دې د ،،حي على الفلاح،، نه روسته دوې (دوه) خله ،،الصلاة خيرمن النوم،، زیاتی کړی

**حل اللغة** ① **یزید، زاد زیادة (ض)**: زیاتول نوم خوب

**تشریح:- زیادة ،،الصلاة خیرمن النوم**۞فرمائی.چې د سهار په اذان کې دې د ،،حی علی الفلاح،، نه روسته د ،،الصلاة خير من النوم،، زيادت کوی.اودا زيادت مستحب دی.

{لِأَنَّ بِلَالًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ حِينَ وَجَدَ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَاقِدًا خکه چې بلال رضی الله عنه څه وخت نبی ﷺ ویده (اوده) اوموندلو.نو عرض ئې اوکړلو.،،الصلاة خیرمن النوم،، فقال عليه الصلاة والسلام نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَا أَحْسَنَ هَذَا يَا بِلَالُ بلالها دا ډیره ښه کلمه ده اجْعَلْهُ فِي أَذَانِكَ}(۱) دا په خپل اذان کې ګډ کړه

**حل اللغة** ① **راقد**: اوده کیدونکې

**تشریح:- دلیله**۞ دلیل دا دې.چې یوه ورځ حضرت بلال رضی الله عنه د سهار اذان اوکړلو.او بیا د حضرت عائشې رضی الله عنها د حجرې دروازې ته راغلو.اوعرض ئې اوکړلو .،،الصلاة یا رسول الله،، حضرت عائشې رضی الله عنها ورته اوفرمائیل: ،،الرسول نائم،، رسول الله ﷺ ویده (اوده) دې.نوبلال اوونیل:،،الصلاة خير من النوم،، نو نبی ﷺ بیدارشو.حضرت عائشې رضی الله عنها ورته خبر ورکړلو.نبی ﷺ دا کلمه خوښه کړه. اووې فرمائیل:بلالها دا په خپل اذان کې شامله کړه.

﴿وَخَصَّ الْفَجْرَ بِهِ﴾او سهار ددې سره مخصوص شو لِأَنَّهُ وَقْتُ نَوْمٍ وَغَفْلَةٍ خکه چې دا وخت د خوب او د غفلت دې

**تشریح:- وجه تخصیص الزیادة في الفجر**۞پاته شوه دا خبره چې دا زیادت د سهار د لمانځه سره ولې خاص شو.نو خواب دا دې.چې دا وخت د خوب او د غفلت وی. نوځکه دا زیادت د سهار اذان سره خاص شو.

۱) اخرجه الطبرانی فی معجمه الکبیررقم (۱۰۸۱)_



**اقامت د اذان په څیر دې**

﴿وَالْإِقَامَةُ مِثْلُ الْأَذَانِ﴾ اقامت د اذان په څیر دې ﴿إِلَّا أَنَّهُ يَزِيدُ فِيهَا بَعْدَ الْفَلَاحِ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ مَرَّتَيْنِ﴾ خو په اقامت کې به د ،،حی علی الفلاح،، نه روسته دوې (دوه) کرته ، ،قدقامت الصلاة،، زیاتوی

**تشریح:- الاختلاف في كلمات الاقامة** ۞ ①شیخ قدوری رحمه الله فرمائی.چې اقامت هم د اذان په څیر دې.صرف دومره توپیر دې.چې په اقامت کې دې د ،،حی علی الفلاح،، نه روسته د ،،قدقامت الصلاة،، زیادت کوی.

﴿هَكَذَا فَعَلَ الْمَلَكُ النَّازِلُ مِنَ السَّمَاءِ﴾(۱)داسې هغې فرښتې کړی وو.چې د آسمان نه راکوزه شوې وه وَهُوَ الْمَشْهُورُ اوهم دا مشهوره ده

**حل اللغة** ① **ملک جمع ملائک**: فرښته

**تشریح:- دلیل الاحناف** ۞ رحمهم الله اوزموږ دلیل دا دې.چې دآسمان نه کومه فرښته نازله شوې وه. هغې د اذان په څیر اقامت هم دوې (دوه) دوې (دوه) کلمې وئیلې وې.مصنف بن ابی شیبه د عثمان بن ابی لیلی نه روایت کړې دې.چې موږ ته د نبی ﷺ صحابو ددې بیان کړې دې.چې عبدالله بن زید انصاری رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته راغلو. او عرض ئې اوکړلو.چې یو ویونکې کس چې هغه دوې (دوه) شنې جامې اغوستې وې.په یو دیوال باندې ودریدلو.او هغه اذان دوې (دوه) دوې (دوه) خله او اقامت دوې (دوه) دوې (دوه) خله اوکړل.

﴿ثُمَّ هُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله﴾ بیا دا حجت دې.په امام شافعی رحمه الله باندې فِي قَوْلِهِ إِنَّهَا فُرَادَى فُرَادَى د هغه په دې قول کې چې اقامت یوه یوه کلمه ده إِلَّا قَوْلَهُ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ سوا د ،،قدقامت الصلاة،، نه.

**حل اللغة** ① **فرادی**: یوازې، یوخل

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي چې زموږ مستدل د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دې ځکه چې هغوی فرمائی.چې په اقامت کې به د ،،قدقامت الصلاة،،نه سوا پاته واړه کلمات یو یو خل وائی.او ،،قدقامت الصلاة،، به دوې (دوه) خله وائی.

**دلیله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دلیل دحضرت انس رضی الله عنه حدیث دې.چې نبی ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته اوفرمائیل: چې اقامت یو یوخل وایه. سوا د ،، قد قامت الصلاة،، نه.

**الجواب عن دلیل الشافعی رحمه الله** ۞ اود انس رضی الله عنه دحدیث مطلب دا دې.چې په اذان کې به دوې (دوه) کلمات په درو ساهګانو وئیلې شی.اوپه اقامت کې به په یوه ساه وئیلې شی.

**په اذان کې ترسیل او اقامت کې حدر کول**

﴿وَيَتَرَسَّلُ فِي الْأَذَانِ﴾ په اذان کې دې ترسیل کوی ﴿وَيَحْدُرُ فِي الْإِقَامَةِ﴾ اوپه اقامت کې حدر

**حل اللغة** ① **یترسل، ترسل ترسلاً**: نرمی کول په مزه کول

**تشریح:- الترسيل في الاذان والحدر في الاقامة** ۞ترسیل دا دې.چې د دوو کلماتو په مینځ کې په سکته سره فصل (جداوالې) اوکړی.او ،،حدر،، دا دې.چې فصل نه کوی . فرمائی.چې اذان کې ترسیل مستحب دې.اوپه اقامت کې حدر.

﴿لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِبِلَالٍ﴾ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {إِذَا أَذَّنْتَ کله چې ته اذان کوې فَتَرَسَّلْ نوترسیل

۱) من حدیث معاذبن جبل رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ۲۸ رقم ۵۰۰)_

كوه وَإِذَا أَقَمْتَ اوكله چې اقامت كوې فَاحْدُرْ [1] نو حدر كوه وَهَذَا بَيَانُ الِاسْتِحْبَابِ او دا د استحباب بيان دې

**تشريح:- دليله**◉ دليل دا دې.چې نبي ﷺ حضرت بلال ؓ ته هم دده حكم كړې وو.

**القولان في عكس هذا**◉ نوكه په اقامت كې ئې ترسيل اوكړلو.① نو د ځينې عالمانو رحمهم الله په نيز د دے وجې مكروه دې.چې خلاف سنت دې.② خو د هدايه د عبارت نه عدم كراهت معلوميږي.ځكه چې علامه مرغيناني فرمائي.،،وهذا بيان الاستحباب،، اوښكاره خبره ده.چې د مستحبو په پريخودو سره كراهت نه راځي.

**ترجيح القول الاول**◉ابن همام رحمه الله فرمائي.چې اول قول حق دې.يعني په اذان كې ترسيل او په اقامت كې د حدر مسنونيت ثابت دې.(نو په ترك سره ئې كراهت راځي.)

### په اذان او اقامت كې د استقبال قبلې حكم

(وَيَسْتَقْبِلُ بِهِمَا الْقِبْلَةَ) اوبه اذان او اقامت كې به قبلې ته مخ كوي لِأَنَّ الْمَلَكَ النَّازِلَ مِنَ السَّمَاءِ أَذَّنَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، [2] ځكه چې د آسمان نه راكوزے شوې فرښتے مخ په قبله اذان كړې وو وَلَوْ تَرَكَ الِاسْتِقْبَالَ اوكه استقبال ئې پريښولو جَازَ نو جائزدې لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځكه چې مقصود د اذان حاصل شو وَيُكْرَهُ خومكروه به وي لِمُخَالَفَتِهِ السُّنَّةَ د خلاف سنت د امله

**حل اللغة**° ①**ترك، تركًا** (ن): پريخودل ②**حصول**: حاصلول **تشريح:- استقبال القبلة في الاذان**◉صاحب دعنايه رحمه الله فرمائيلي دي.چې په اذان او اقامت كې به مخ په قبله اودريږي. يعني قبلې اړخ ته دے مخ كړي.سوا د ،،حي على الصلاة،، او ،،حي على الفلاح،، نه.

**دليله**◉ او دليل دا دې.چې دآسمان نه كومه فرښته راكوزه شوې وه. هغې داسې اذان كړې وو.اوكه په اذان كښے ئې استقبال د قبلې پريښولو . نو جائز دې.خو د سنت پريخودو د وجې مكروه تنزيهي دې.

(وَيُحَوِّلُ وَجْهَهُ بِالصَّلَاةِ وَالْفَلَاحِ يَمْنَةً وَيَسْرَةً) ........او د ،،حي على الصلاة،، او ،،حي على الفلاح،، په وخت دے خپل مخ ښي او چپه اړخ ته ګرځوي لِأَنَّهُ خِطَابٌ لِلْقَوْمِ ځكه چې دا قوم ته خطاب دې فَيُوَاجِهُهُمْ بِهِ نوهغه ته به مخكې وي

**حل اللغة**° ① **يمنة**: ښي اړخ ② **يسرة**: چپه اړخ

**تشريح:- وجه تحويل الوجه في الحيعلتين**◉او د ،،حي على الصلاة،، او حي على الفلاح ،، په وخت دے صرف خپل مخ ښي او چپه اړخ ته ګرځوي.ځكه چې په دے دواړو كلماتو كې قوم ته خطاب دې.نوخطاب به هغوي ته مخكې شي.چې لمانځه اړخ ته او د دواړو جهانونو كاميابۍ اړخ ته راشي.

**السوال** ◉دلته كې دا اعتراض كيدې شي.چې خلګ لكه څنګه ښي او چپه اړخ ته وي.نو دغه ډول شاه اړخ ته هم وي.نولكه څنګه چې ښي او چپه اړخ ته د مخ ګرځولو حكم دې.دغه ډول شاه اړخ ته هم د ګرځولو حكم پكار وو؟

**الجواب**◉ په دے صورت كې قبلې ته شاه راځي.حالانكه مؤذنين خلګو ته قبلې ته دمخ كاوه دعوت وركوي.نو دد دے وجې صرف په ښي او چپه اړخ اكتفاء اوكړې شوه.ځكه چې دے سره دآواز رسولو مقصود حاصليږي.

(وَإِنِ اسْتَدَارَ فِي صَوْمَعَتِهِ اوكه مؤذن په خپله صومعه كې تاوړاتاوړ شو فَحَسَنٌ) نو ښه خبره ده. مُرَادُهُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ

1) من حديث جابر ؓ اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ۲۹)_
2) تقدم تخريجه من حديث معاذبن جبل ؓ عندابى داود)_



تَحْوِيلَ الْوَجْهِ يَمِينًا وَشِمَالًا او مراد دده دا دې چې توان نه لري د اړولو د مخ ښي يا چپه اړخ ته (مَعَ ثَبَاتِ قَدَمَيْهِ مَكَانَهُمَا سره د ثابت ساتلو د دواړو قدمونو خپلو په خپل ځائې باندې كَمَا هُوَ السُّنَّةُ ([1]) ځكه چې دا طريقه سنت ده بِأَنْ كَانَتِ الصَّوْمَعَةُ مُتَّسِعَةً په داسې صورت كې چې صومعه كهولاؤ وي فَأَمَّا مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ فَلَا او بغير د اړتيا نه خو د خپل ځائې نه قدم اخوا كول ښه خبره نه ده.

**حل اللغة**° ① په بحرالرائق كې دي.چې ،،صومعه،، منارے ته وائي.اوعلامه بدرالدين عيني رحمه الله په شرح د هدايه كې ليكي.صومعه په جمات كې هغه اوچت ځائې دې.چې مؤذن په كښے اودريږي.او اذان كوي. لنډيز دا كه مؤذن په صومعه كښے تاؤ راتاؤ شو.نوښه خبره ده.خو په دے شرط چې صومعه كهولاؤ وي.نو ښي اړخ ته په سوري كښے دے سر راؤباسي.او دوې (دوه) خله دے ،،حي على الصلاة،، وائي.اود چپه اړخ سوري نه دے سر راؤباسي.او دوې (دوه) خله دے ،، حي على الفلاح،، اووائي.

**تشريح:- صورة جواز الاستدار**◉صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چې د امام محمد رحمه الله كلام كوم چې په متن كې مذكور دې.چې په صومعه كې ګرځيدل په هغه صورت كې دي.چې دے د دواړو قدمونو په خپل ځائې د قائم ساتلو ښي او چپه اړخ ته مخ تاوهل ممكن نه وي.كومه چې سنت طريقه ده.او دا په داسې صورت كې وي.چې صومعه كهولاؤ وي.حاصل دا چې كه په خپل ځائې باندې د قائم پاتې كيدو سره پوره اعلان كوم چې مقصود دې.نه حاصليږي.نو په دے صورت كې چونكه د صومعے سوري ته د تلو اړتيا وي.نوځه بده خبره نه ده.او بغير د ضرورته د خپل ځائې نه قدم اخواه كول ښه نه دي.

### داذان په وخت په غوږونو كې د ګوتو وركولو حكم

(وَالْأَفْضَلُ لِلْمُؤَذِّنِ او د مؤذن لپاره غوره ده أَنْ يَجْعَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ) چې خپلے ګوتے په غوږونو كې وركړي

**حل اللغة**° ①**ان يجعل، جعل جعلاً** (ف): كول جوړول ②**اذن**: غوږ

**تشريح:- ادخال الاصابع في الاذنين**◉ د اذان كاوه په وخت كې د مؤذن لپاره غوره ده. چې خپلے دواړه ګوتے په دواړو غوږونو كې داخلے كړي.

بِذَلِكَ أَمَرَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِلَالًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ([2]) بلال ؓ ته نبي ﷺ دده حكم كړې وو

**تشريح:- الدليل النقلي**◉دليل دا دې.چې نبي ﷺ بلال ؓ ته دده حكم كړې وو. امام حاكم په خپل مستدرك كې د سعد القرظ (چې په قبا كې د نبي ﷺ مؤذن وو)نه روايت كړې دے چه﴿ان رسول الله ﷺ امر بلالاً ان يجعل اصبعيه في اذنيه وقال انه ارفع لصوتك﴾يعني رسول الله ﷺ حضرت بلال ؓ ته حكم كړې وو .چې په خپلو غوږونو كې ګوتے داخلے كړه .ځكه چې دا طريقه ستا د آواز اوچتونكې ده. امام طبراني رحمه الله دا حديث په دے الفاظو سره نقل كړې دے . ﴿اذا اذنت فاجعل اصبعيك في اذنيك فانه ارفع لصوتك﴾يعني كله چې ته اذان كوې.نوخپلے ګوتے په غوږونو كې داخلے كړه.ځكه چې دا طريقه ستا د آواز اوچتونكې ده.

(وَإِنْ) وَلِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي الْإِعْلَامِ او د دے وجې چې اعلان (كوم چې د اذان مقصود دے) په دے طريقه ښه پوره كيږي

1) كما فى حديث ابى جحيفه ؓ انه راى بلالا ؓ قال فجعلت اتتبع فاه ههنا وههنا بالاذان يقول يمينا وشمالا حى على الصلاةحى على الفلاح اخرجه البخارى فى الاذان باب ۲۹ رقم ۶۳۴ ومسلم فى صلاة المسافرين رقم ۲۴۹ وابوداود فى الصلاة باب ۳۴ رقم ۵۲۰ وابن ماجه فى الاذان باب ۳ رقم ۷۱۱)_
2) من حديث جد سعد الموذن اخرجه ابن ماجه فى الاذان والسنة فيها باب ۳ رقم ۷۱۰)_

(لم يفعل) وكه ده (داسے) اونكړلو (فحسن) نو بيا هم حسن دي (لانها ليست بسنة اصلية) ځكه چي دا اصلي سنت نه دي.

**تشريح:- الدليل العقلي** ۞ عقلي دليل دا دي.چي اعلام او اعلان كوم چي د اذان اصلي مقصود دي.هغه په دے طريقه ښه حاصليږي.اوكه مؤذن داسي اونكړلو.نو بيا هم اذان حسن دي.ځكه چي دا عمل د سنن هدى (سنت مؤكده) څخه نه دي. بلكه سنت زوائد دي.

**تنبيه صاحب العناية** ۞صاحب د عنايه ليكلي دي.چي په دے طريقه اذان حسن دي.او ددے پريښنول حسن نه دي.ځكه چي په وخت د اذان د مؤذن په غوږونو كي ګوتے وركول اګرچي سنت اصلي نه دي.ځكه عبدالله بن زيد ؓ د هغوى حديث په اذان كي اصل ګڼرلي شي.په هغي كي دا نشته.خو ددے باوجود دا داسي حكم دي.چي د دے حكم نبي ﷺ حضرت بلال ؓ ته وركړي وو.نوځكه ددے فعل پريښنولو ته حسن وئيل مناسب نه دي. نوحاصل دا شو.چي اذان په دے طريقه احسن دي.اوبغير ددے نه حسن دي.

(۲۴) **توضيح مقصد صاحب العناية** ۞ يعني علامه مرغيناني دا فرمايي ،،وان لم يفعل فحسن،، نوچونكه په دے عبارت كي ددے عمل پريخودو ته هم په متن كي حسن وئيلي شوي دی.ځكه صاحب د عنايه ؒ په علامه مرغيناني ؒ باندي باريك غوندي اعتراض كوي.اوزه هم دالله شكر ادا كوم.چي كله ما ددے ژباړه ليكله.نوژباړه مے داسي اوليكله.، او كه وے نكړلو.نوجائز ده،، ځكه چي د سنت پريښنولو ته ښه وئيل مناسب نه وو.خوچي روستو مے د صاحب عنايه تنبيه اوليدله.نو ډير خوشحاله شوم.شاه فيصل غفرله

**عدد مؤذني رسول الله ﷺ** ۞د سعد اقرظ ؓ نه علاوه د نبي ﷺ درے مؤذنين وو.حضرت بلال ، عبدالله بن ام مكتوم، ابومحذوره ؓ قرظ د سلم پاڼرو ته وئيلي شي.په كومو چي دباغت وركولي شي. چونكه سعد ؓ ددے كاروبار كولو.نو ځكه ورته سعد القرظ وئيلي شي.

**د تثويب حكم**

(والتثويب في الفجر حي على الصلاة حي على الفلاح مرتين بين الأذان والإقامة حسن) اوپه سهار كي تثويب كول دوي (دوه) ځله د ،،حي على الصلاة،، او ،،حي على الفلاح،، سره د اذان او اقامت په مينځ كي بهتر دي (لانه وقت نوم وغفلة) ځكه چي دا دخوب او غفلت وخت وي

**تشريح:- التثويب القديم ومحله في الفجر** ۞د تثويب دوي (دوه) قسمونه دي.يو تثويب قديم ،،الصلاة خير من النوم،، د فخرالاسلام بزدوي ؒ په نيز صحيح دا ده.چي دا د اذان نه روسته وو.او په كتاب الآثار كي د امام محمد ؒ قول هم صراحةً په دے دلالت كوي.خو خلكو دا تثويب په اذان كي د ،،حي على الفلاح،، نه روسته داخل كړلو.خو صحيح خبره دا ده. چي دا د ،،حي على الفلاح،، نه روسته په اذان كي داخل وو.لكه ځنګه چي په متن كي مذكور دي.او معمول دي.او حديث چي ﴿يا بلال اجعله في اذانك﴾ اے بلاله! دا په اذان كي كړه. په دے باندي ښكاره دليل دي.

(وكره في سائر الصلوات) او په پاته مونځونو كي تثويب مكروه دي

**حل اللغة** ① سائر: واړه

**تشريح:- عدم التثويب في غيرالفجر** ۞پاته شوه دا خبره چي تثويب محدث صرف د سهار په اذان كي جائز دي.اوكه په ټولو مونځونوكي ؟نو په دے كي د متقدمينو فقهاؤ ؒ مسلك دا دي.چي صرف په سهار كښے جائز دي.په نورو اذانونوكي نه دي.ځكه چي د سهار وخت د خوب او د غفلت وي.

**دليله** ۞ اوددے تائيد د ترمذي اوابن ماجه د روايت نه هم كيږي.﴿عن بلال قال امرني رسول الله ﷺ ان لا اثوب في شئ من الصلاة إلا في الفجر﴾ بلال ؓ فرمائي. رسول الله ﷺ ماته حكم كړي وو.چي د سهار نه سوا په بل هيڅ لمونځ كي تثويب مه كوه.



(ومعناه) او د تثويب معنى ده (العود الى الاعلام) خبر وركاوه ته ګرځيدل (وهو على حسب ما تعارفوه) او دا د خلكو د عرف موافق وي

**حل اللغة** ① عود: واروسته كيدل ③ اعلام: خبرول

**توضيح التثويب لغة وشرعاً** ۞دتثويب لغوي معنى رجوع او واروسته كيدل دي.او ثواب هم ددے قبيلے نه دي.ځكه چي سړي ته د خپلو عملونه فائده واروسته كيږي. اوهم ددے قبيلے نه ،،مثابة،، دي.ځكه چي خلګ به هم هغه اړخ ته واروسته كيږي. او د شريعت په اصطلاح كي تثويب ،،الاعلام بعد الاعلام،، ته وائي.ملا علي قاري ؒ فرمائي.چي د اذان او اقامت په مينځ كي د اعلان نوم تثويب دي.

(وهذا التثويب) او دا تثويب داسي دي (احدثه علماء الكوفة بعد عهد الصحابة ؓ لتغير احوال الناس) چي دا د صحابه كرامو ؓ د زمانے نه روسته د خلګ ود حالت بدليدو په وجه د كوفے عالمانو ؒ ايجاد كړي وو (وخصوا الفجر به) او د كوفے عالمانو دا تثويب د سهار سره ددے وجي خاص كړي وو (لما ذكرنا) كومه چي موږ ذكر كړه.

**حل اللغة** ① احوال: حالات

**التثويب المحدث** ۞ دوهم قسم تثويب محدث دي.تثويب محدث دا دي. چي په اذان او اقامت كي دوي (دوه) ځله ،،حي على الصلاة حي على الفلاح،، يا ددے په ځير د خپل عرف مطابق الفاظ اووائي.په دے تثويب كي نه څه مخصوص الفاظ شته.او نه عربي ژبه.نوكه ،،الصلاة ،الصلاة،، اووائي.نودا هم تثويب دي. دغه ډول كه يو كس دا اووائي.چي ،، لمونځ تيار دے،، يا ،،لمونځ ودريدلو،، يا بل څه لفظ اووائي.نودا هم ټيك دي.اوكه صرف په ټوخي باندي خلګ پوهه شي.نودا هم تثويب دي.حاصل دا چي ځنګه په كوم ځائي كي رواج وي.د هغي مطابق دے هلته تثويب كولي شي.

**تشريح:- وجه تسمية التثويب محدثاً** ۞ دے تثويب ته محدث ددے وجي وائي.چي دا نۀ د نبي ﷺ په زمانه كي وو.اونۀ د صحابه كرامو ؓ په زمانه.بلكه د تابعينو ؒ په زمانه كي چي كله د خلګو حالات بدل شو.او خلګو په ديني كارونو كي سستي پيل كړه.نود كوفے عالمانو ؒ دا ايجاد كړلو.ګويا چي دا بدعت حسنه دي.

**تعريف البدعة الحسنة** ۞بدعت حسنه ددے وجه دي.چي متقدمينو او متاخرينو فقهاؤ دے ته مستحسن وئيلي دي.اومسلمانان چي كوم شي ته ښه اووائي.هغه د الله په نيز حسن وي.اود الله تعالى ربښتينے رسول ﷺ چي څه ته ښه اووائي.نوهغه د الله په نيز ښه وي.اوچي كوم شي قبيح اوګرځوي.هغه به دالله په نيز هم قبيح وي.لكه رسول الله ﷺ چي فرمائيلي دي.﴿ ما راه المسلمون حسناً فهو عندالله حسن وما راه المومنون قبيحاً فهو عندالله قبيح﴾

**تثويب د متأخرينو عالمانو ؒ په نيز**

(والمتاخرون استحسنوه في الصلوات كلها) او متاخرينو عالمانو ؒ په ټولو مونځونو كي تثويب ښه ګڼرلي دي

**تشريح:- جواز التثويب في غير الفجر عند المتاخرين** ۞ متاخرينو فقهاؤ فرمائيلي دي.چي تثويب محدث په ټولو مونځونو كي جائزدي. په عين الهدايه كي د شرح نقايه په حواله سره ليكلي دي.چي د متاخرينو ؒ په نيز د ماښام نه سوا په ټولو كي تثويب مستحب دي.

(لظهور التواني في الامور الدينية) ځكه چي په ديني امورو كي سستي او ناراستي شروع شوي ده

**حل اللغة** ① تواني: سستي

**تشريح:- دليله العقلي** ۞ دليل دا دي.چي خلګو په خپلو ديني امورو كي سستي پيل كړي ده.نوچي د سهار په لمونځ كي تصويب د خوب د غفلت دوجي جائز شو. نود سستي او په دنياوي كارونو كي د غفلت د وجي

خوبه خامخا جائز وی.

ضعف الدليل۞ خود متاخرينو رحمهم الله دا خيال ټيک نه دی. ځکه چې د خوب غفلت خو غير اختياری وی. په دې کې بې غوری (کوتاهی) او سرکشی نه وی. لکه د «ليلة التعريس»، په حديث کې دی. چې کله د سهار د لمانځه نه واړه ويده (اوده) شو. نوصحابه کرامو ؓ ته فکر شو. چې زموږ نه ډيره لويه بې غوری اوشوه. نو رسول الله ﷺ ووېل: «لا تفريط في النوم» په خوب کې دخپل اړخ نه بې غوری نشته. ځکه چې روحونه دالله په قدرت کې وی. چې کله ئې اوغواړی. راپرېږ ئې دی. تفريط اوکوتاهی صرف د بيدارئ په حالت کې وی. نو د سهار په لمانځه کې تثويب د غير تفريط په غيراختياری صورت کې وو. نواوس په سهار باندې د نورو وختونود مونځونو قياس کول قياس مع الفارق دی. ځکه چې په نورو مونځونو کې تفريط اختياری حالت دی. (نود سهار د خوب په غفلت باندې قياس ټيک نه دی.)

پوره واقعه داسې ده. «قال أبو قتادة أن النبي صلى الله عليه وسلم كان في سفر له فمال رسول الله صلى الله عليه وسلم وملت معه فقال انظر فقلت هذا راكب هذان راكبان هؤلاء ثلاثة حتى صرنا سبعة فقال احفظوا علينا صلاتنا يعني صلاة الفجر فضرب على آذانهم فما أيقظهم إلا حر الشمس فقاموا فساروا هنية ثم نزلوا فتوضئوا وأذن بلال فصلوا ركعتي الفجر ثم صلوا الفجر وركبوا فقال بعضهم لبعض قد فرطنا في صلاتنا فقال النبي صلى الله عليه وسلم إنه لا تفريط في النوم إنما التفريط في اليقظة فإذا سها أحدكم عن صلاة فليصلها حين يذكرها ومن الغد للوقت» ابوداود في الصلاة باب فيمن نام عن صلاة أونسيها رقم ۴۳۷) شاه فيصل غفرله

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله ابويوسف رحمه الله فرمائيلی دی لَا أَرَى بَأْسًا چې (زه په دې کې) څه قباحت نه ګڼړم أَنْ يَقُولَ الْمُؤَذِّنُ لِلْأَمِيرِ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا چې مؤذن په ټولو مونځونو کې امير ته وائی السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا الْأَمِيرُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ. «السلام عليك أيها الأمير ورحمة الله وبركاته»، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حي على الصلاة حي على الفلاح، الصَّلَاةَ يَرْحَمُكَ اللهُ الله يرحمك الله

تشريح: - جواز التثويب في غيرالفجر للامراء عند ابی يوسف۞ حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. زما په نيز د قاضيانو اوحاکمانو لپاره د سهار نه علاوه په نورو مونځونو کې هم تثويب جائز دی. نومؤذن دې د مسلمانانو حاکم ته په دې الفاظو سره تثويب کوی. «السلام عليك أيها الأمير ورحمة الله وبركاته حي على الصلاة حي على الفلاح الصلاة يرحمك الله»

وَاسْتَبْعَدَهُ مُحَمَّدٌ رحمه الله (۱) او امام محمد دا خبره (د شريعت د اصولو نه) لرې ګڼړلې ده لِأَنَّ النَّاسَ سَوَاسِيَةٌ فِي أَمْرِ الْجَمَاعَةِ ځکه چې د جماعت په اړه کې واړه برابر دی

حل اللغة: ① سواسية: دَ سواء جمع: خلاف قياس په معنی برابر

تشريح: - استبعاد محمد رحمه الله ۞ اوامام محمد رحمه الله دا مستبعد ګڼړلی دی. د استبعاد وجه دا ده. چې د شريعت په نظر کې واړه برابر دی. که اميروی اوکه د قوم خلګ وی. ددې وجې په کې د حاکم څه خصوصيت نشته.

وَأَبُو يُوسُفَ رحمه الله خَصَّهُمْ بِذَلِكَ او امام ابويوسف رحمه الله حاکمان ددې تثويب سره ځکه خاص کړی دی لِزِيَادَةِ اشْتِغَالِهِمْ بِأُمُورِ الْمُسْلِمِينَ چې د مسلمانانو په کارونو کې د هغوی مشغوليت زيات وی كَيْ لَا تَفُوتَهُمُ الْجَمَاعَةُ چې د هغوی نه جماعت فوت نشی وَعَلَى هَذَا الْقَاضِي وَالْمُفْتِي اودا حکم د قاضی او مفتی دی.

۱) القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فى العناية (۲۱۴|۱) والكفاية (۲۱۵|۱) وردالمحتار (۲۸۶|۱) ثم نقل المفتى غلام قادرمدظله العالى قول العلامة ابن نجيم رحمه الله فى التوفيق بين الروايات حيث قال ,,قال ابن نجيم رحمه الله ولكن ابايوسف انما خص امراء زمانه لانهم كانوا مشغولين بامور الرعية واما اذا كانوا مشغولين بالظلم والفسق فلا يجوز للمؤذن المرور على بابه ولا التثويب لهم الا على وجه الامر بالمعروف والنصيحة كما فى السراج الوهاج ) نقلا عن القول الراجح (۶۴|۱)-



حل اللغة: ① اشتغال: مشغولتيا

تشريح: - وجه قول ابی يوسف رحمه الله ۞ قاضی ابويوسف رحمه الله دمسلمانانو حاکمانو لپاره ددې تثويب تخصيص ځکه کړی دی. چې دا خلګ د مسلمانانو په کارونوکې زيات بوخت وی. نودوی ته دې اعلان کولې شی. چې د دوی نه جماعت فوت نشی. هم دا حکم د هغه ټولو حضراتو لپاره دی. چې د مسلمانانو په کارونو کې بوخت وی. لکه مفتی او قاضی.

## په اذان او اقامت کې دجلسې په اړه کې د فقهاؤ مختلف اقوال

وَيَجْلِسُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ اود اذان او اقامت په مينځ کښې به ناسته کوی إِلَّا فِي الْمَغْرِبِ سوا د ماښام نه وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی

حل اللغة: ① يجلس، جلس جلوساً (ض): کښيناستل

تشريح: - سنية الفصل بين الاذان والاقامة۞ په دې خبره د ټولو فقهاؤ اتفاق دی. چې په اذان او اقامت کې وصل مکروه دی

دليله۞ نبی ﷺ بلال ؓ ته فرمائيلی وو. «اجعل بين أذانك وإقامتك قدر ما يفرغ الآكل من أكله» يعنی اې بلاله! دخپل اذان او اقامت په مينځ کې دومره وقفه کوه. چې خوراک کونکې د خپل خوراک نه فارغه شی.

الفصل بالصلاة۞ نوکه لمونځ داسې وی. چې د هغې نه وړاندې نفل سنت يا مستحب څه لمونځ وی. نود اذان او اقامت په مينځ کې دې په لمونځ سره فصل اوکړی. مثلاً د سهار د لمونځ نه وړاندې دوې (دوه) رکعته، د ماپښين نه وړاندې څلور رکعته سنت دی. او د مازيګر نه وړاندې اود ماسخوتن نه وړاندې څلور رکعته د استحباب په درجه کې دی.

دليله۞ دليل دا دی. چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. «بين كل أذانين صلاة» يعنی د هراذان او اقامت په مينځ کې لمونځ شته. نبی ﷺ دا خبره درې ځله اوکړله. «لمن شاء فإن لم يصل يفصل بينهما بجلسة خفيفة» يعنی په دريم ځل ئې اوفرمائيل. چې دا حکم د هغه کس لپاره دی. که ده لمونځ نه وی کړې. نو د دواړو په مينځ کې دې په جلسه خفيفه باندې فصل اوکړی.

محل الفصل عند ابی حنيفة ۞ حاصل دا دی. چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ماښام نه سوا په پاته ټولو مونځونو کې به د اذان او اقامت په مينځ کې لږه غونډې ناسه کوی. او د مؤذن لپاره په دغه وخت کې سنت يا نفل کول بهتر دی.

الروايتان في المغرب عن ابی حنيفة رحمه الله ۞ اوپه ماښام کې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دی.

① يو دا چې په ماښام کې د اذان او اقامت په مينځ کښې په ولاړه ولاړه په دومره اندازه باندې فصل کول مستحب دی. چې په هغې کې درې واړه يا يو ورکوټې آيت لوستلې شی. ② دوهم روايت دا دی. چې دومره فصل دې کوی. چې درې قدمه په کې اخستلې شی.

وَقَالَا: اوصاحبين رحمهما الله فرمايي يَجْلِسُ فِي الْمَغْرِبِ أَيْضًا جَلْسَةً خَفِيفَةً چې په ماښام کې به هم لږه غونډې ناسته کوی لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْفَصْلِ ځکه چې فصل ضروری دی إِذِ الْوَصْلُ مَكْرُوهٌ ځکه چې وصل مکروه دی وَلَا يَقَعُ الْفَصْلُ

۱) القول الراجح الاختلاف فى الافضلية فالراجح قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى الهندية (۵۷|۱) وفتح القدير (۲۱۵|۱) والدرالمختار (۲۸۷|۱) ثم قال المتفى غلام قادر تحت عنوان ,,التوفيق بين كلام الاصحاب،، قال العلامة زين الدين ابن نجيم رحمه الله الاختلاف فى الافضلية وبما تقرر علم انه يستحب التحول للاقامة الى غير موضع الاذان وهو متفق عليه وعلم ان تاخير المغرب قدر اداء ركعتين مكروه وقدمنا عن القنية ان التاخير القليل لا يكره فيجب حمله على ما هو اقل من قدرهما اذا توسط فيهما ليتفق كلام الاصحاب كذا فى فتح القدير،، نقلا عن القول الراجح (۶۵|۱)_

بِالسَّكْتَةِ او فصل په خاموشۍ سره نه راځي. لِوُجُودِهِمَا بَيْنَ كَلِمَاتِ الأَذَانِ ځکه چې چوپوالي خو د اذان د کلماتو په مینځ کي هم راځي فَيَفْصِلُ بِالجَلْسَةِ نو به ناستے سره دے فصل کوی كَمَا بَيْنَ الخُطْبَتَيْنِ لکه چې د دوو خطبو په مینځ کي وی.

**تشریح:- مذهب الصاحبین في المغرب** ◉ صاحبین رحمهما الله فرمائی. چې په ماښام کي به هم فصل کوی. خو ډیر مختصر لکه چې د دوو خطبو په مینځ کي څومره وی.

**دلائلهما** ◉ ① د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چې دا خبره خو اتفاقی ده. چې په اذان اواقامت کښے وصل مکروه او فصل ضروری دې. لکه چې په اول کي بیان شو. ② اودا خبره هم تقریباً اتفاقی ده. چې په سکوت سره فصل نه واقع کیږی. ځکه چې سکوت خو د اذان د کلماتو په مینځ کي هم وی. نو ځکه باید ده. چې کښېني او په ناسته سره فصل اوکړی. اګرچې لږه غوندې وی. لکه چې د جمعے په دوو خطبو کي چې په ناستے سره فصل کوی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ التَّأْخِيرَ مَكْرُوهٌ چې (په ماښام کي) تاخیر مکروه دې فَيَكْتَفِي بِأَدْنَى الفَصْلِ احْتِرَازًا عَنْهُ نود تاخیر نه د پرهیز لپاره به په کم نه کم فصل باندې اکتفاء کوی

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة رحمه الله** ◉ دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چې په ماښام کي تاخیر کول مکروه دې. هم دا وجه ده. چې وړاندې موږ ذکر کړی وو. چې د ماښام نه روسته د فرضو نه وړاندې دے نفل نه کوی. بلکه په ادنی فصل یعنی سکته دے اکتفاء کوی. چې په دے طریقه د تاخیر نه هم احتراز اوشی. اود اذان او اقامت په مینځ کي فصل هم راشی.

وَالمَكَانُ فِي مَسْأَلَتِنَا مُخْتَلِفٌ او زمونږ په دے (مسئله) کي مکان مختلف دې وَكَذَا النَّغْمَةُ او ځانې هم مختلف دے فَيَقَعُ الفَصْلُ بِالسَّكْتَةِ نو په خاموشۍ سره فصل راځي وَلَا كَذَلِكَ الخُطْبَةُ او خطبه داسې نه ده.

**تشریح:- الجواب عن دلیل الصاحبین رحمهما الله** ◉ اود صاحبینو رحمهما الله ددلیل نه ځواب دا دے. چې د ماښام د اذان او اقامت په مینځ کي فصل د دوو خطبوپه مینځ کي فصل باندې قیاس کول ټیک نه دی. ځکه چې په دے دواړو کي د مځکي او آسمان توپیر دې.

**الکیفیات الثلاثة في الاذانین** ◉ هغه داسے چې ① د اذان او اقامت ځائې مختلف وی. ② اوپه دواړو کي آواز مختلف وی. هغه داسې چې په اذان کي ترسیل وی. او په اقامت کي حدر. ③ بله په دواړو کي د مؤذن هیئت مختلف وی. ځکه چې د اذان په وخت کي هغه خپلے ګوتے په غوږونو کي داخلوی اود اقامت په مینځ کي لاسونه زوړند وی.

**الکیفیات الثلاثة في الخطبة** ◉ ددے په خلاف ① په خطبه کي د دواړو خطبو ځائې یو وی. ② په دواړو خطبو کي نغمه او آواز په یو کیفیت وی. ③ او په دواړو خطبو کي د خطیب هیئت اوحالت یوشان وی. نه ددے توپیر باوجود ددے په خپل مینځ کي په یو بل باندې قیاس کول څنګه صحیح کیدې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی. يَفْصِلُ بِرَكْعَتَيْنِ چې په دوې (دوه) رکعته به فصل کوی اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الصَّلَوَاتِ په نورو مونځونو باندې قیاس کوی

**حل اللغة**◉ ① فیفصل، فصل فصلاً (ض): جلا کول ② سائر: واړه

**تشریح:- الفصل بالرکعتین في المغرب عندالشافعی** ◉ امام شافعی رحمه الله فرمائی. د ماښام په اذان او اقامت کي دے په دوې (دوه) رکعته نفلو فصل کوی.

**دلیله** ◉ اوپه دلیل کي فرمائی. چې ماښام به په پاتے مونځونو قیاس کولې شی. (نولکه څنګه چې په نورو مونځونو کي وقفه ده. دغه ډول به په ماښام کي هم وی.)



وَالفَرْقُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او فرق موږ ذکر کړې دې

**تشریح:- الجواب عن دلیل الشافعی رحمه الله** ◉ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې د ماښام اونورو مونځونو په مینځ کي توپیر ذکر شوې دې. یعنی د امام شافعی رحمه الله په نورو مونځونو باندې د ماښام د لمونځ قیاس، قیاس مع الفارق دې. نوځکه په ماښام کي تاخیر مکروه دې. او په نورو مونځونو کي تاخیر مکروه نه دې. نو د ماښام په نورو مونځونو باندې قیاس څنګه صحیح کیدې شی؟

**التنبیه علی خطا صاحب الهدایة رحمه الله** ◉ صاحب دهدایه رحمه الله غوندې فاضل ته تعجب دې. چې په باب المواقیت کي ئې د ماښام په بیان کښے د امام شافعی رحمه الله مذهب نقل کړې دې. نوفرمائی. چې د هغوی په نیز صرف دومره وخت دے چې د اودس، اذان او اقامت نه روسته صرف درے رکعته کولې شی. اودلته لیکی. چې د اذان او اقامت په مینځ کي به په دوې (دوه) رکعتونو سره فصل کوی. نودا دواړه مذاهب څنګه جمع کیدې شی؟

**الجواب عن التنبیه** ◉ خوددے ځواب دا دې. چې دا د امام شافعی رحمه الله د ماښام په وخت کي دوې (دوه) اقوال دی. لکه احقر شاه فیصل چې د امام غزالی رحمه الله په حوالے سره په باب المواقیت کي ذکر کړی دی. نومصنف رحمه الله په باب المواقیت کي د امام شافعی رحمه الله یوقول ذکر کړې دې. او دلته کي ئې دوهم ته ترجیح ورکړې ده. دوهم قول دا دې. چې د ماښام وخت دومره دې. چې اودس، اذان اواقامت نه علاوه په کي پنځه رکعته لمونځ کولې شی. یعنی درے رکعته فرض. اوپه اذان او اقامت کي په دوو رکعتونو سره فصل کوی.

(قَالَ يَعْقُوبُ: یعقوب (ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی رَأَيْتُ أَبَا حَنِيفَةَ رحمه الله يُؤَذِّنُ فِي المَغْرِبِ چې ما ابوحنیفه رحمه الله لیدل چې ماښام کي به ئې اذان کولو وَيُقِيمُ او اقامت به ئې کولو وَلَا يَجْلِسُ بَيْنَ الأَذَانِ وَالإِقَامَةِ) اود اذان او اقامت په مینځ کي به نه کیناستلو وَهَذَا يُفِيدُ اودا قول (د دوو خبرو) فائده ورکوی مَا قُلْنَا (یو) هغه چې موږ بیان کړه

**تشریح:- حکایة ابی یوسف عن عمل ابی حنیفة رحمه الله** ◉ امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چې ما ابوحنیفه رحمه الله لیدل. چې د ماښام په وخت کي به ئې اذان کولو. او اقامت به ئې کولو. اود اذان او اقامت په مینځ کي به نهٔ کیناستلو.

وَأَنَّ المُسْتَحَبَّ (اوبله) دا چې مستحب دا ده كَوْنُ المُؤَذِّنِ عَالِمًا بِالسُّنَّةِ چې مؤذن د سنتو عالم وی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. {وَيُؤَذِّنُ لَكُمْ خِيَارُكُمْ} (1) تاسو کي دے هغه کس اذان کوی. چې تاسو کي زیات پوهه وی.

**تشریح:- کون الموذن عالماً بالسنة** ◉ دامام ابویوسف رحمه الله ددے قول نه دوې (دوه) فائدے حاصلیږی. یوه خو هغه کومه چې مونږ ذکر کړې ده. یعنی د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به په ماښام کي د اذان او اقامت په مینځ کي جلسه نه کوی. دوهم دا چې مؤذن دے د شریعت د احکامو عالم وی. پاتے شوه دا خبره چې دا دکوم دلیل نه معلومه شوه.

**دلیله** ◉ نوځواب دا دے چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. «یؤذن لکم خیارکم ولیؤمکم أقرئکم» یعنی تاسو ته دے هغه کس اذان کوی. چې په تاسو کي غوره وی. اوتاسو ته دے هغه کس امامتی درکوی. چې اقرا وی. یعنی چې د الله تعالی کتاب ښه قرات کولې شی.

### دقضاء شوو مونځونو لپاره د اذان حکم

(وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ او دقضاء شوو مونځونو لپاره دے اذان کوی وَيُقِيمُ) او اقامت دے هم کوی.

**حل اللغة**◉ ① یؤذن، اذن تاذیناً: اذان ورکول ② یقیم، اقام اقامة: اقامت وئیل، ودریدل

(1) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ۶۰ وابن ماجه فی الاذان باب ۵ رقم ۷۶۶)_

**تشريح:- الاختلاف في الاذان للفائتة** ۞ ① مسئله دا ده.چې لمونځ قضاء شي.نود هغې لپاره دے اذان کوی. و اقامت دے کوی.که خان ته ئې قضاء راوړی اوکه په جماعت سره.

{لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ﷺ خکه چې نبی ﷺ قَضَى الْفَجْرَ غَدَاةَ لَيْلَةِ التَّعْرِيسِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ} (۱) د ليلة التعريس په شپه د نمرد راختو نه روسته د سهار لمونځ د اذان او اقامت دواړو سره کړې وو

**حل اللغة:** ① **قضى قضاء**(ض): قضاء کول ② **غداء**: ورخ

**تشريح:- دليلنا** ۞ زمونږ دليل د ليلة التعريس واقعه ده.تعريس وئيلی شی.د شپې په آخر کې په يو خائې کې د آرام کاوه لپاره ډيره اچول.دا واقعه د حديث په کتابونوکې په مختلفو الفاظو سره نقل ده.علامه ابن همام رحمه الله د ابوداود په حوالے سره دا الفاظ نقل کړی دی.« انه امر بلالاً بالأذان والإقامة حين ناموا عن الصبح وصلوها بعد ارتفاع الشمس» يعنی نبی ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته د اذان او اقامت کاوه حکم اوکړلو.څه وخت چې نبی ﷺ د سهار د لمانځه نه ويده (اوده) پاتې شوي وو.اود لمر راختلو نه روسته ئې لمونځ اوکړلو.

**الفاظ البخاري عن ليلة التعريس** ۞ شيخينودا واقعه داسې نقل کړې ده.« عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سِرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ لَوْ عَرَّسْتَ بِنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ أَخَافُ أَنْ تَنَامُوا عَنْ الصَّلَاةِ قَالَ بِلَالٌ أَنَا أُوقِظُكُمْ فَاضْطَجَعُوا وَأَسْنَدَ بِلَالٌ ظَهْرَهُ إِلَى رَاحِلَتِهِ فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ فَنَامَ فَاسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَقَالَ يَا بِلَالُ أَيْنَ مَا قُلْتَ قَالَ مَا أُلْقِيَتْ عَلَيَّ نَوْمَةٌ مِثْلُهَا قَطُّ قَالَ إِنَّ اللَّهَ قَبَضَ أَرْوَاحَكُمْ حِينَ شَاءَ وَرَدَّهَا عَلَيْكُمْ حِينَ شَاءَ يَا بِلَالُ قُمْ فَأَذِّنْ بِالنَّاسِ بِالصَّلَاةِ فَتَوَضَّأَ فَلَمَّا ارْتَفَعَتْ الشَّمْسُ وَابْيَاضَّتْ قَامَ فَصَلَّى» ددواړه روايتونو نه معلوميږی.چې نبی ﷺ په ليلة التعريس کې د لمر راختلو نه روسته د اذان او اقامت سره د سهار لمونځ اوکړلو.

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا حديث په امام شافعی رحمه الله حجت دې. فِي اكْتِفَائِهِ بِالْإِقَامَةِ چې هغوی صرف په اقامت باندې اکتفاء کوی.

**حل اللغة:** ① **حجة**: دليل

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې زمونږ مستدل د امام شافعی خلاف حجت دې خکه چې هغوی فرمائی. صرف په اقامت باندې اکتفاء کول کافی ده. د اذان اړتيا نشته.

**دليله** ۞ امام شافعی رحمه الله د مسلم په هغه روايت باندې استدلال کړې دې.کوم چې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه نقل دې.يعنی «امر بلالاً فاقام الصلاة فصلى بهم الصبح» يعنی نبی ﷺ بلال رضی الله عنه ته حکم اوکړلو.نو نبی ﷺ اقامت سره لمونځ اوکړلو.په دے حديث کې د اذان ذکر نشته. نومعلومه شوه.چې په قضاء لمونځ کې په اقامت باندې اکتفاء کول کافی دې.

**الخواب** ۞ ددے خواب دا دې.چې په نورو صحيح رواياتو کې د اذان ذکر شته.نو په زيادت باندې عمل کول زيات بهتر دی.

**توضيح قول الشافعي** رحمه الله ۞ (خوچې دا زيادت دغير ثقه نه وی. د امام شافعی رحمه الله د قول نه دا معلوميږی.چې د هغوی په نزد په اذان کاوه هم څه کراهت نشته.بلکه که اوکړې شی.نو بهتر دې.البته که اونکړې شی.نوکراهت په کې نشته.شاه فيصل عفی عنه

## د زياتو قضاء شوو مونځونو لپاره د اذان او اقامت حکم

(فَإِنْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ بياکه چرته دده نه څو مونځونه قضاءشو أَذَّنَ لِلْأُولَى .نو د اولنی لمونځ لپاره دے اذان اوکړی وَأَقَامَ واقامت دے اوکړی لِمَا رَوَيْنَا دهغه حديث د امله کوم چې مونږ روايت کړې دې (وَكَانَ مُخَيَّرًا فِي الْبَاقِي) ود پاته مونځونو په حق کې ورته اختيار دې إِنْ شَاءَ أَذَّنَ که غواړی. (دهريو لپاره دے) اذان

۱) من حديث ابی هريرة رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ۱۱ رقم ۴۳۶)_



اوکړی وَأَقَامَ واقامت دے اوکړی لِيَكُونَ الْقَضَاءُ عَلَى حَسَبِ الْأَدَاءِ چې قضاء د ادا موافق شی. (وَإِنْ شَاءَ اقْتَصَرَ عَلَى الْإِقَامَةِ) اوکه غواړی نو په اقامت دے اکتفاء اوکړی لِأَنَّ الْأَذَانَ لِلِاسْتِحْضَارِ خکه چې اذان خو د حاضرولو لپاره کولې شی وَهُمْ حُضُورٌ اودلته واړه حاضر دی قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مصنف رحمه الله فرمايي دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله چې دامام محمد رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يُقِيمُ لِمَا بَعْدَهَا وَلَا يُؤَذِّنُ چې داولنی نه روستو مونځونو لپاره دے اقامت کولې شی قَالُوا: مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی .يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ هَذَا قَوْلَهُمْ جَمِيعًا کيدې شی.چې دا د ټولو قول وی.

**حل اللغة:** ① **فاتت، فات فوتًا**(ن)، فوت کيدل ② **اقتصر، اقتصارا**: اکتفاء کول ③ **حضور**: حاضريدل

**تشريح:- الاذان والاقامة للاولى من الفائتة** ۞ مسئله دا ده که ديوکس نه څو مونځونه قضاء شی.نو داولنی لمونځ لپاره دے اذان اوکړی.اواقامت دے هم اوکړی.دليل حديث د ليلة التعريس دې.

**الاذان للفائتة الباقية** ۞ اود پاته مونځونو په حق کې ورته اختيار دې.که زړه ئې غواړی.نود هرلمانځه لپاره دے اذان هم کوی او اقامت هم.چې قضاء د ادا په څير شی

**دليله** ۞ ددے تائيد دهغه روايت نه هم کيږی.کوم چې علامه ابن الهمام رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله په واسطه بيان کړې دی.« انه حين شغلهم الكفار يوم الأحزاب عن أربع صلوات عن الظهر والعصروالمغرب والعشاء قضاهن على الولاء وأمر بلالاً أن يؤذن ويقيم لكل واحدة منهن» دغزوه احزاب په موقع چې کافرانو نبی ﷺ د څلورو مونځونو نه بند کړې وو.يعنی د ماپښين ،مازيگر، مابنام او ماسخوتن نه.نو نبی ﷺ په ترتيب سره د هغې قضاء راوړله.اوبلال رضی الله عنه ته ئې حکم اوکړلو.چې په دے کې دهر يو لپاره اذان او اقامت اوکړی.

**الاكتفاء على اذان الاولى ودليله العقلى** ۞ اوکه زړه ئې غواړی.نوپه اقامت دے اکتفاء اوکړی.دليل ئې دا دې.چې اذان کيږی.د حاضرولو لپاره اودلته کې واړه حاضر دی.

**رواية جواز الاكتفاء على الاقامة من محمد** رحمه الله ۞ په روايت د غير اصول کې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.که څو مونځونه قضاء شی.نود اولنی لمونځ قضاء دے قضاء د اذان او اقامت دواړو سره راوړی.اود پاته مونځونو قضاء دے صرف په اقامت سره راوړی.مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی.کيدے شی.چې داقول دامام محمد ، امام ابويوسف او امام ابوحنيفه رحمه الله ټولو وی.

**التطبيق بين الروايات** ۞ داحقر شاه فيصل په ذهن کې د رواياتو په مينځ کې د تطبيق يو صورت دا راغلو.که په سفر کې وی.نود اولنی قضاء شوی لمونځ لپاره دے اذان اواقامت کوی.اوپه نورو کې دے په اقامت اکتفاء کوی. اوکه په حضر کې ترے قضاء شوې وی.نود هرلمانځه لپاره دے اذان او اقامت کوی.لکه چې د غزوه خندق د واقعے نه معلوميږی.خکه چې دا پنځه مونځونه په حضر کې قضاء شوی وو.اونبی ﷺ دهريو لپاره اذان اواقامت حکم کړې وو.

## د اذان او اقامت لپاره دطهارت حکم

(وَيَنْبَغِي اومناسب دی أَنْ يُؤَذِّنَ چې اذان اوکړی وَيُقِيمَ و اقامت کوی عَلَى طُهْرٍ د اودس په حالت کې فَإِنْ أَذَّنَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ نوکه بغير اودسه ئې اذان اوکړلو جَازَ) جائز دې

**حل اللغة:** ① **ينبغى**: انبغاء: غوښتل ② **طهر**: پاکی

**تشريح:- استحباب الوضوء للاذان** ۞ مستحب ده.چې اذان او اقامت په اودس کې اوکړې شی.خو که بغير د اودسه ئې اذان اوکړلو.نو د ظاهر روايت مطابق بغيرد کراهت نه جائز دې.

لِأَنَّهُ ذِكْرٌ وَلَيْسَ بِصَلَاةٍ خکه چې اذان ذکر دې.لمونځ نه دې. فَكَانَ الْوُضُوءُ فِيهِ اسْتِحْبَابًا نو اودس کول په دے کې مستحب دې كَمَا فِي الْقِرَاءَةِ لکه د قرآن په لوستلو کې چې دې

**تشريح:- دليله**◉ دليل دا دې.چې اذان دالله تعالى ذكر دې.لمونځ نه دې.اود ذكر لپاره اودس مستحب دي.واجب نه دي.نوځکه د اذان کاوه لپاره اودس مستحب شو. لکه د قرآن لوستلو لپاره چې اودس کول مستحب دي.

**كراهة الاذان بغير وضوء عند الاوزاعي** ◉امام اوزاعي فرمائي.د اذان لپاره اودس كول شرط دي. ځکه چې امام ترمذي د ابوهريره نه نقل کړې دی.چې ﴿قال قال رسول الله ﷺ لا يؤذن إلا متوضي﴾ يعني ابوهريره فرمائي.چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دی.اذان دے هغه کس کوی.چې په اودس کې وی.خو موږ وايو.چې ددے نه هم استحباب مراد دې.

**رائ الاحقر**◉خو د بنده عاجز شاه فيصل په نزد دے ته مستحب وئيل اوبغيرد اودس نه اذان كول قابل غوردی. لړترلږ سنت ورته وئيل پکاردی.ځکه چې نبی عليه السلام د امر په صيغه ارشاد فرمائلے دې.او په طريقے د حصر سره ئې ذکر کړې دې.چې ﴿لا يتوضأ إلا متوضي﴾ يعني صرف متوضي په اذان کوی.نو يو ارخ ته امر شو.او بل په کښے حصر شو.دواړه مفيد د تاکيد دی.نوپکار ده.چې سنت ورته اووئيلي شی.او ترك ئې موجب د كراهت شی.دخپلے دے رائې د تائيد لپاره مے درس ترمذی باب ماجاء في كراهية الاذان بغير وضوء اوکتلو.نو د مفتی محمد تقی عثمانی مدظلهم العالی هم دا رائې ده.چې بغير د اودس نه اذان كول دكراهت نه خالي نه دی.فرمائي.،،ځينې خلګ د اذان لپاره اودس غيرضروری ګڼړی.او د حديث الباب (چې د اودس حکم په کې شوې دے) دا ځواب کوی.چې دا حديث په نهی تنزيهی باندې حمل دې.خو د دلائلو په رڼړا کې لومړې مسلك (يعنی بغيرد اودس نه د اذان د كراهت مسلك) راجح دې.ځکه چې د نهی حقيقت تحريم دې.او په كراهت تنزيهی باندې دحمل کاوه لپاره څه مستند دليل موجود نه دې.چې صرف متوضي به اذان کوی. معلومه شوه چې بے اودسه اذان كول دحديث د حکم نه خلاف دی.شاه فيصل غفرله

**بغيرد اودس نه د اقامت كراهت**

(وَيُكْرَهُ أَنْ يُقِيمَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ) اوبے اودسه اقامت کول مکروه دې لِمَا فِيهِ مِنَ الْفَصْلِ بَيْنَ الْإِقَامَةِ وَالصَّلَاةِ ځکه چې په دے کې د لمونځ او اقامت په مينځ کښے فصل راځي

**حل اللغة**①فصل: جلا كول

**تشريح:- كراهة الاقامة بغير طهارة** ◉مسئله بے اودسه اقامت کول مکروه دی.ځکه چې په دے صورت کې په اقامت او لمونځ کې فصل لازميږی .حالانکه اقامت د لمونځ سره متصل مشروع دې.

وَيُرْوَى اوروايت شوې دې أَنَّهُ لَا تُكْرَهُ الْإِقَامَةُ أَيْضًا چې اقامت هم مکروه نه دې لِأَنَّهَا أَحَدُ الْأَذَانَيْنِ ځکه چې دا هم په دوو اذانونو کې يو اذان دې

**تشريح:- رواية عدم كراهة الاقامة بغيرطهارة** ◉امام کرخی روايت کړې دے .چې اقامت هم بے اودسه مکروه نه دې.ځکه چې اقامت په دوو اذانونو کې يو اذان دې.اواذان بے اودسه مکروه نه دې.نواقامت به هم بے اودسه مکروه نه وی.

وَيُرْوَى او روايت شوې دې أَنَّهُ يُكْرَهُ الْأَذَانُ أَيْضًا.چې اذان هم مکروه دې لِأَنَّهُ يَصِيرُ دَاعِيًا إِلَى ځکه چې دے به داسې شی ارخ ته دعوت ورکونکې شی مَا لَا يُجِيبُ بِنَفْسِهِ چې په خپله ورته تيار نه وی.

**حل اللغة**① داعيا: رابلونکې ②يجيب اجابة: قبلول ځوابوركول

**تشريح:- رواية كراهة الاذان بغير طهارة**◉امام کرخی دا روايت هم کړې دې.چې بے اودسه اذان هم مکروه دې.ځکه چې مؤذن د اذان په ذريعه خلګو ته د لمانځه د تيارئ حکم ورکوی.اوبه خپله ورته دے تيار نه دې.نودے به د الله تعالى ددے قول ﴿ أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ ﴾ لاندې راځي.ځکه وئيلى شوى دي.چې اذان هم بے اودسه مکروه دې.



**په حالت د جنابت کې د اذان حکم**

(وَيُكْرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ وَهُوَ جُنُبٌ) د جنب اذان مکروه دې رِوَايَةً وَاحِدَةً په روايت واحده سره

**حل اللغة**①جنب: جنبی

**تشريح:- كراهة اقامة الجنب**◉مسئله دا ده.چې په حالت د جنابت کې اذان کول مکروه دې.اوپه دے کښے صرف يو روايت دې.يعنی د كراهت روايت دې.اود عدم كراهت روايت نشته.او وړاندې تير شو.چې د بے اودسه په اذان کې د كراهت او عدم كراهت دواړه روايتونه شته.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ اووجه د توپير په دوو روايتونو کې ديو دا ده أَنَّ لِلْأَذَانِ شَبَهًا بِالصَّلَاةِ چې اذان د لمونځ سره مشابهت لرى فَتُشْتَرَطُ الطَّهَارَةُ عَنْ أَغْلَظِ الْحَدَثَيْنِ نود اغلظ الحدثين نه ئې طهارت شرط دې دُونَ أَخَفِّهِمَا اود اخف الحدثين نه شرط نه دې عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ په دواړو مشابهتينو باندې دعمل کاوه لپاره

**حل اللغة**①شبها: مشابه ②اغلظ: ډيرسخت زيات خراب

**تشريح:- وجوه المشابهة بين الاذان والصلاة** ◉نود جنب د اذان په كراهت اود محدث د اذان په عدم كراهت کې توپير دا دې.چې اذان د لمونځ مشابه دې.هغه داسې ①چې دواړه د تکبير تحريمے نه پيل کيږی.② دواړه مخ په قبله ادا کولے شی.③ اود اذان کلمات داسې مرتب دی.لکه څنګه چې د لمونځ ارکان مرتب دی.دواړه د وخت سره خاص دی.④ او په دواړو کښے په مينځ کې خبرے کول ممنوع دی.نو په دے اعتبار سره اذان د لمونځ مشابه شو.خو اذان په حقيقت کې لمونځ نه دې. حاصل دا شو.چې اذان من وجه د لمونځ مشابه دے اومن وجه مشابه نه دې.نو که د مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوبايد ده چې اذان بے اودسه ناجائز شی.اود جنابت سره هم ناجائزشی.اوکه دعدم مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوبه دواړو صورتونو کې اذان بغير د كراهته پکار چې جائز شی.

**العمل على مقتضى المشابهة وعدمها**◉نوموږ په دواړو مشابهتينو باندې عمل اوکړلو.نود جنابت په صورت کې مو د لمونځ سره د مشابهت اعتبار اوکړلو. اوحکم مو اوکړلو.چې د اذان لپاره طهارت شرط دې.نو په حالت د جنابت کې اذان کول مکروه دې.اود بے اودسئ په صورت کې مو د عدم مشابهت اعتبار اوکړلو.او حکم مو اوکړلو.چې د اذان لپاره طهارت شرط نه دې.نو په حالت د بے اودسئ کې اذان کول مکروه نه دې.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ اوپه جامع الصغير کې دی إِذَا أَذَّنَ وَأَقَامَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ چې بے اودسه اذان اوکړی. او اقامت اوکړی لَا يُعِيدُ نو نه به ئې راګرځوی وَالْجُنُبُ اوکه جنب (داسې اوکړی) أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُعِيدَ نو زما په نيز دوباره راګرځول غوره دی

**حل اللغة**①احب: ډيرخوښ کړې شوې ②ان يعيد، اعاد اعادة: واروسته كول

**تشريح:- قول محمد في الجامع الصغير**◉امام محمد په جامع الصغير کې فرمائيلی دی.که بغير اودسه ئې اذان اوکړلو.او اقامت ئې اوکړلو.نو اذان اواقامت دے نه راګرځوی.اوکه جنب اذان اوکړلو.يا ئې اقامت اوکړلو.نو زما په نيز اعاده مستحب ده.

**مواقع استحباب الاعادة** ◉په شرح طحاوی کې ذکر دی.چې د څلورو کسانو د اذان اعاده مستحب ده.① د جنب ② د ښځے ③ د نشے په حالت کې ④ د ليونی.

(وَلَوْ لَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ) اوکه راؤ ئې نه ګرځولو.نو بيا هم کافی دې أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِخِفَّةِ الْحَدَثِ بهرحال اول خو د نجاست دخفت د وجې اوپاتې شو وَأَمَّا الثَّانِي فَفِي الْإِعَادَةِ بِسَبَبِ الْجَنَابَةِ رِوَايَتَانِ دوهم نو د جنابت د وجے ددے په اعاده کې دوې (دوه) روايتونه دی وَالْأَشْبَهُ اوفقه سره زيات مشابه دا دې أَنْ يُعَادَ الْأَذَانُ چې اذان دے راوګرځولې

شی دُونَ الْإِقَامَةِ اقامت نه لِأَنَّ تَكْرَارَ الْأَذَانِ مَشْرُوْعٌ ځکه چې د اذان تکرار مشروع دی دُونَ الْإِقَامَةِ ليکن د اقامت تکرار مشروع نه دی

**تشريح:- عدم اعادة الاذان والاقامة على الجنب**◉ خوکه جنب د اذان اواقامت اعاده اونکړله.نو بيا هم کافی دي.بهر حال د يے اودسه اذان او اقامت نه راګرځول ددے وجې دی.چې يے اودسی سپک نجاست دی.او پاته شو دوهم يعنی د جنب اذان او اقامت يعنی د جنب اذان او اقامت نو په دے کې دوې (دوه) روايتونه دی.يو دا چې واروسته دے راوګرځوی.او دوهم دا چې نه دے راګرځوی.فقه سره زيات مشابه دا ده.چې د جنب اذان اعاده دے اوکړې شی.او د اقامت دے نشی راګرځولې.ځکه په اذان کې في الجملة تکرار جائز دی.لکه په جمعه کې چې اذان دوې (دوه) خله کولې شی.خو په اقامت کې تکرار مشروع نه دی.

وَقَوْلُهُ او د امام محمد ؒ قول دی وَلَوْلَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ: يَعْنِي الصَّلَاةَ چې «ان لم يعد اجزاه» يعنی مونځ، (که نې راونه ګرځولو.نو جائز دے) لِأَنَّهَا جَائِزَةٌ بِدُونِ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ ځکه چې لمونځ بغير د اذان او اقامت نه جائز دی.

**تشريح:- مراد قول محمد ؒ**◉ صاحب دهدايه ؒ فرمائی.چې د امام محمد ؒ قول «ان لم يعد اجزاه» ددے مراد دا دی.چې لمونځ کافی دی.ځکه چې لمونځ خو بغير د اذان او اقامت نه هم جائز دی.نوبغير د اعاده ځخه به په درجه اولی سره جائز وی.

## دښځې داذان حکم

قَالَ مصنف ؒ فرمايي (وَكَذٰلِكَ الْمَرْأَةُ تُؤَذِّنُ) هم دا حکم دی.د ښځې د اذان مَعْنَاهُ ددے معنی دا ده.يُسْتَحَبُّ أَنْ يُعَادَ چې د ښځې د اذان دوباره کول مستحب دی لِيَقَعَ عَلٰى وَجْهِ السُّنَّةِ چې په سنت طريقه ادا شی

**حل اللغة**◦ ①ان يعاد، عاد اعادة : واروسته کول ②ليقع، وقع وقوعًا (ف): واقع کيدل

**تشريح:- اعادة اذان المراة**◉ مسئله دا ده.چې لکه څنګه دجنب د اذان اعاده مستحب ده. دغه ډول د ښځے د اذان اعاده مستحب ده.ددے لپاره چې په سنت طريقه اذان اوشی.اوسنت طريقه دا ده.چې اذان به سړی کوی.او د ښځے اذان سنت نه بلکه بدعت دی

**دليله**◉ ځکه که ښځے په اوچت آواز اذان اوکړلو.نودے د يو حرام کار ارتکاب اوکړلو.ځکه چې د ښځے آواز هم عورت دی.يعنی څنګه چې د ښځے پوا ړه واجب دی.دغه ډول ئې د آواز پوا ړه هم.اوکه دے په اوچت آواز سره نه وی کړې.نوبيا خو داذان مقصود فوت شو.(چې خلګو ته خبر ورکول دی.) ځکه مستحب دا دی.چې د اذان اعاده اوشی.

**عدم الاذان والاقامة على النساء**◉ دويمه خبره دا ده.چې په ښځو باندې نۀ اذان شته.اونه اقامت.ځکه چې دا دواړه د جماعت سنت دی.او د ښځو جماعت منسوخ شوې دی.البته که هغوی په جماعت سره لمونځ کول غواړی.نو بغير د اذان او بغيراو اقامته دے اوکړی.

**دليله**◉ حديث د رائطه دليل دی.«قالت كنا جماعة من النساء أمتنا عائشة ؓ بلا أذان ولا إقامة» رائطه فرمائی.چې موږ ښځو ته به حضرت عائشے ؓ بغيرد اذان او بغير داقامت نۀ لمونځ راکولو.

## دوخت نه وړاندې د اذان کولو په حکم کې د فقهاو اقوال

(وَلَا يُؤَذَّنُ لِصَلَاةٍ قَبْلَ دُخُولِ وَقْتِهَا) اواذان به نشی کولې د يو لمونځ لپاره د هغې د وخت داخليدو نه وړاندې (وَيُعَادُ فِي الْوَقْتِ[1]) او په وخت کښے به دوباره راګرځولې شی

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين ؒ كذا فی فتح القدير(۲۲۱\۱) والتاتر خانية (۵۲۲\۱) والهندية (۵۳\۱) وبدائع الصنائع (۱۵٤\۱) والبحرالرائق (٤۵٦\۱) والدرالمختار(۲۸٤\۱) نقلا عن القول الراجح (٦٦\۱)_



**حل اللغة**◦ ①دخول: داخليدل

**تشريح:- عدم جوازالاذان قبل الوقت**◉ مسئله دا ده.چې د وخت د داخليدو نه وړاندې اذان کول معتبر نه دی.نوکه چا د وخت نه وړاندې اذان کړې وی.نو په وخت کې به ئې اعاده کوی.

لِأَنَّ الْأَذَانَ لِلْإِعْلَامِ ځکه چې اذان خو د وخت داخليدو د خبر ورکاوه لپاره دی وَقَبْلَ الْوَقْتِ تَجْهِيلٌ اود وخت نه وړاندې خو خلګ په جهالت کښے اچول

**حل اللغة**◦ ①اعلام : خبرول ②تجهيل: جهالت کې اچول، جاهل جوړول

**تشريح:- دليله**◉ دليل دا دی.چې د اذان مقصود خلګو ته د وخت د داخليدوخبر ورکول دی.او د وخت نه وړاندې اذن کول خلګ په غلطئ کې اچول دی. نوځکه د وخت نه وړاندې اذان کول په شريعت کې معتبر نه دی.

(وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ) اوامام ابويوسف ؒ فرمائيلی دی وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِي ؒ اودا قول د امام شافعی ؒ هم دی (يَجُوْزُ لِلْفَجْرِ فِي النِّصْفِ الْأَخِيْرِ مِنَ اللَّيْلِ) چې د سهار لپاره دشپې په نيمه آخری برخه کې اذان جائز دی لِتَوَارُثِ أَهْلِ الْحَرَمَيْنِ ځکه چې د اهل حرمينو نه په توارث سره منقول دی

**تشريح:- جوازاذان الفجر قبل الوقت عندابی يوسف والشافعی** ؒ◉ امام ابويوسف ؒ فرمائی.اودا قول د امام شافعی ؒ هم دی.چې د سهار لپاره د شپې په آخری نيمه برخه کې اذان کول جائز دی.ددے حضراتو نه يو روايت دا هم دی.چې ټوله شپه د سهار د اذان لپاره وخت دی.

**دلائلهما**◉ د دے حضراتو دليل دا دی.① چې په اهل مکه او اهل مدينه کې دا خبره په توارث سره راروانه ده.چې د سهار لپاره اذان د شپې په آخری نيمه برخه کې کوی.② اونبی ﷺ فرمائيلی دی.«إن بلالاً يؤذن بليل فكلوا واشربوا حتى تسمعوا أذان ابن مكتوم» يعنی بلال ؓ د شپے اذان کوی.نو تاسو خوراك څکاك کوئ. ترڅو چې د ابن ام مکتوم ؓ اذان واورئ.ددے حديث نه معلوميږی.چې بلال ؓ به د سهار نه وړاندې په شپه کې اذان کولو.

**الجواب عن حديثهما**◉ خوکه غور اوکړې شی.نودا حديث زموږ لپاره حجت دی.د امام ابويوسف او امام شافعی ؒ لپاره حجت نه دی.ځکه چې د بلال ؓ دا اذان د تهجدو او پيشلمی لپاره وو.د سهار د لمانځه لپاره نه وو. بلکه د سهار د لمانځه لپاره به ابن ام مکتوم اذان کولو.اوهغه به د سهار راختو نه روسته وو.ګنی د «حتى تسمعوا أذان ابن مكتوم» به څه مطلب وی؟

وَالْحُجَّةُ عَلَى الْكُلِّ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِبِلَالٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.او د ټولو خلاف حجت بلال ؓ ته د نبی ﷺ دا حکم کول دی لَا تُؤَذِّنْ حَتّٰى يَسْتَبِيْنَ لَكَ الْفَجْرُ چې ته اذان مه کوه.ترڅو چې تاته سهار داسې ښکاره شی {هٰكَذَا وَمَدَّ يَدَهُ عَرْضًا} [1]اونبی ﷺ خپل دواړه لاسونه په پلنوالی خپاره کړل.

**حل اللغة**◦ ①حجة: دليل ②يستبين استبانة: ښکاره کيدل ③عرضًا: پلنوالې

**تشريح:- الدليل الثانی لجمهورالاحناف** ؒ◉ ددے حضراتو خلاف هغه حديث هم دليل دی.چې بلال ؓ ته نبی ﷺ فرمائيلی وو.چې ته اذان مۀ کوه.ترڅو چې سهار ښکاره شی.راوی فرمائی.چې نبی ﷺ خپل دواړه لاسونه په پلنوالی باندې خپاره کړل.او اشاره ئې اوکړلۀ.اوددے نه سهار صادق اړخ ته اشاره وه.

**الدليل الثالث لجمهورالاحناف** ؒ◉ اوابن عبدالبر ؒ دابراهيم ؒ نه روايت کړې دی.«قال كانوا إذا أذن المؤذن بليل قالوا له إتق الله واعد اذانك» ابراهيم تابعی ؒ فرمائی.چې د صحابه کرامو ؓ دا شان وو.چې کله به يو مؤذن په شپه کې اذان اوکړلو.نوهغه ته به ئې وئيل:دالله نه اوويريږه.اوخپل اذان راوګرځوه.

[1] من حديث بلال ؓ اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ٤۰)_

**السوال**۞خوكه اعتراض اوشي.چې په حديث كي راغلي دي.چې ﴿لا يغرنكم أذان بلال﴾د بلال اذان دې تاسو دهوكه نكړي.ددې نه معلوميږي .چې بلال ﷛ به د وخت نه وړاندې اذان كولو.

**الجواب**۞ ددې ځواب دا دې.چې دا هم زموږ لپاره حجت دې.ځكه چې نبي ﷺ د بلال ﷛ اذان ته څه اعتبار نه دې وركړې.بلكه په دې باندې د دهوكه كيدو او دې ته د څه مهميت وركاوه نه ئې منع كړې ده.

## دمسافر لپاره د اذان اواقامت حكم

﴿وَالْمُسَافِرُ يُؤَذِّنُ﴾ اومسافر دې اذان كوي ﴿وَيُقِيْمُ﴾ واقامت دې كوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنَي أَبِي مُلَيْكَةَ رضي الله عنهما ځكه چې نبي ﷺ دابومليكه دوو ځامنو ته فرمائيلي وو {إِذَا سَافَرْتُمَا چې دواړه كله سفر كوئ فَأَذِّنَا وَأَقِيْمَا} (۱) نواذان كوئ.اواقامت كوئ

**تشريح:- سنية الاذان والاقامة في السفر**۞مسئله دا ده.چې مسافر لپاره اذان اواقامت دواړه كول پكار دي.

**دليله**۞دليل دا دې.نبي ﷺ د ابومليكه دوو ځامنو ته فرمائيلي وو﴿إذا سافرتما فاذنا وأقيما﴾صاحب دنهايه رحمه الله ليكلي دي.چې په مبسوط كي دا حديث د ابومليكه د دوو ځامنو نه علاوه په خطاب سره هم موجود دې.﴿ وقال روى عن النبى ﷺ أنه قال لمالك ابن الحويرث وابن عم له رضي الله عنهما إذا سافرتما فاذنا وأقيما وليؤمكما أكثر قرانا.وروى فخرالاسلام وليؤمكما أكبركما سنا﴾د نبي ﷺ نه روايت دې.چې دوي مالك بن حويرث او دهغه د اكا (تره) خوى ته فرمائيلي وو. كله چې تاسو په سفر ئې.نواذان او اقامت كوئ.او په تاسو دواړو كي دې امامت هغه څوك كوي.چې قرآن ئې زيات وئيلې وي.او فخرالاسلام روايت كړې دې. چې امامت دې هغه څوك كوي.چې په تاسو كي مشر وي.

**مقصد الاذن سوى الاعلام**۞ددې احاديثو نه معلومه شوه.چې د اذان مقصد صرف دا نه دې.چې مؤذن خلګو ته د حاضرئ اعلان اوكړي.بلكه دا هم دې.چې دالله تعالى نوم او دهغه دين په مځكه كي اوچت شي.اوپه غرونو او بيابانونوكښې د هغه په بندګانو كي جناتو اوانسانانو وغيره ته دالله تعالى يادګيرنه اوكړي.چې مؤذن ئې په خپل نظر نه ويني.(فتح القدير)

﴿فَإِنْ تَرَكَهُمَا جَمِيْعًا﴾نو كه دواړه ئې پريخودل. ﴿يُكْرَهُ﴾ نودا مكروه ده وَلَوِ اكْتَفَى بِالْإِقَامَةِ اوكه په اقامت ئې اكتفاء اوكړه جَازَ نودا جائز ده.

**حل اللغة**①اكتفى، اكتفاءً: كفايت كول

**تشريح:- حكم الاذان والاقامة في السفر**۞مصنف رحمه الله فرمائي.چې مسافر اذان او اقامت دواړه پريخودل.نودا مكروه دي.ځكه چې د مالك بن حويرث ﷛ د حديث مخالفت دې.اوكه اقامت ئې اوكړلو.او اذان ئې پريښولو.نودا جائزده.

لِأَنَّ الْأَذَانَ لِاسْتِحْضَارِ الْغَائِبِيْنَ ځكه چې اذان خود غيرموجود خلګو د حاضرولو لپاره وي وَالرُّفْقَةُ حَاضِرُوْنَ او د سفر انډيوالان خو واړه حاضر وي وَالْإِقَامَةُ لِإِعْلَامِ الْإِفْتِتَاحِ اواقامت د لمونځ پيل كاوه خبر وركاوه لپاره كيږي وَهُمْ إِلَيْهِ مُحْتَاجُوْنَ او دوي واړه د دې محتاج دي

**حل اللغة**①رفقه: انډيوال

**تشريح:- دليله**۞دليل دا دې.چې د اذان مقصد غائبو خلګ وته د لمانځه د وخت داخليدو خبر وركول دي.چې هغوي تيارې اوكړي.اولمانځه ته راشي.اودلته حالت دا دې.چې انډيوالان واړه موجود دي.نوځكه په دې

۱) اخرجه البخارى فى الاذان باب ۱۸ رقم ۶۳۰ ومسلم فى المساجد رقم ۲۹۲ والترمذى فى الصلاة باب ۳۷ رقم ۲۰۵ النسائى فى الاذان باب ۷ وابن ماجه فى الاقامة باب ۴۶ )_



صورت كي داذان څه اړتيا پاتې نشو. او اقامت كولې شي.د لمانځه پيل كيدوخبر دپاره. اوښكاره خبره ده.چې دوي واړه ددې محتاج دي.(چې كله به جماعت اودريږي .)

﴿فَإِنْ صَلَّى فِي بَيْتِهِ فِي الْمِصْرِ﴾ اوكه ده په خپل كور كي دننه په ښار كښې لمونځ كولو ﴿يُصَلِّي بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ﴾نو هم دې په اذان او اقامت سره لمونځ كوي لِيَكُوْنَ الْأَدَاءُ عَلَى هَيْئَةِ الْجَمَاعَةِ چې لمونځ د جماعت په صورت شي

**حل اللغة**①مصر جمع امصار: ښار ②هياة: حالت

**تشريح:- حكم الاذان والاقامة في صلاة البيت**۞بياكه په ښار كښې په كور كي دننه لمونځ كوي.نو هم دې د اذان اواقامت سره كوي.كه ځان ته لمونځ كوي.اوكه جماعت سره كوي.ددې لپاره چې لمونځ په ښه شان سره اوكړي.

﴿وَإِنْ تَرَكَهُمَا﴾ اوكه ده اذان او اقامت دواړه پريښول ﴿جَازَ﴾ نوهم جائز ده لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ځكه چې د ابن مسعود ﷛ قول دې.أَذَانُ الْحَيِّ يَكْفِيْنَا. (۲)زموږ لپاره د محلې اذان كافي دې.

**تشريح:-** اوكه دواړه ئې پريښول . نو بيا هم جائز ده.

**دليله**۞ دليل دا دې.چې يو ځل عبدالله بن مسعود ﷛ علقمه او اسود ته بغير د اذان او اقامت نه لمونځ اوكړلو.چا عبدالله بن مسعود ﷛ ته اووئيل: تاسو خو نه اذان اوكړلو.اونه اقامت؟ نو هغوي ورته اوفرمائيل: ﴿أذان الحى يكفينا﴾د محلې اذان زموږ لپاره كافي دې.

**وجه الفرق في ترك الاذانين للمسافر والمقيم**۞ ددې وجه دا ده.چې مؤذن په اذان او اقامت كي د محلې د خلګو داړخه نائب وي.ځكه چې دمحلې خلګو دې ددې كار لپاره مقرر كړې وي.نوكوم كس چې حقيقةً په محله كي بغير داذان او اقامت نه لمونځ كوي.نوهغه حكماً د اذان او اقامت سره لمونځ كونكې دې. نوځكه په دې كي څه كراهت نشته.د دې په خلاف چې كله مسافر بغير د اذان او اقامت نه ځان ته لمونځ اوكړي.هغه په حقيقت كي دا دواړه (اذان او اقامت) پريخودل. نودې په حقيقت كي هم د جماعت پريخودنكې شو.اوتشبهاً هم.اوځنګه چې د جماعت لمونځ پريښول مكروه دي.نو دغه ډول تشابه بالجماعت پريښول هم مكروه ده.

## بَابُ شُرُوْطِ الصَّلَاةِ الَّتِي تَتَقَدَّمُهَا

ژباړه:- (دا) باب د مونځ دهغه شرطونو ( په بيان كې ) دې.چې په مونځ باندې وړاندې وي.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞ په تيرو صفحو كي د لمونځ د اسبابو يعنى وختونو ذكر اوشو .بيا د وختونو دعلاماتو يعنى د اذان ذكر اوشو.اوس په دې باب كي د لمونځ شرطونه ذكر كوي.كوم چې په لمانځه مقدم وي.

**االلفاظ الثلاثة في هذا المقام** ۞ ددې موقع لپاره درې الفاظ وئيلى شي.① شروط ② شرائط ③ اشراط په عامو كتابونو كي لومړي لفظ ذكر دې. شروط جمع د شرط (بسكون الراء) ده.لغوى معنى ئې نښانه ده.او اصطلاحى معنى ئې هغه څيزدې.چې په هغې باندې د بل شي وجود موقوف وي.اود دغه څيز(مشروط) په ماهيت كي داخل نه وي.

**اقسام الشروط**۞ دلمونځ شرطونه په درې قسمه دي.① اول شرط انعقاد لكه نيت ، تحريمه، وخت، د جمعې خطبه ② دوهم شرط دوام لكه طهارت، ستر عورت ، استقبال قبله ③ دريم شرط بقاء لكه قرات. (كفايه)

### د مونځګذار لپاره د بې اودسو او پليتو نه د طهارت وجوب

﴿يَجِبُ عَلَى الْمُصَلِّي﴾ په مونځګذار باندې واجب دي. ﴿أَنْ يُقَدِّمَ الطَّهَارَةَ﴾ چې پاكوالې مقدم كړي ﴿مِنَ الْأَحْدَاثِ﴾

۲) قال الزيلعى رحمه الله غريب وروى الطبرانى فى معجمه ...عن ابراهيم ان ابن مسعود ﷛ وعلقمة والاسود صلوا بغير اذان واقامة وقال اقامة المصر تكفينا (نصب:۱\۳۶۶)_

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْأَنْجَاسِ په احداثو او انجاسو باندې | عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ | د هغې مطابق څنګه چې مونږ بيان کړل | |

**حل اللغة**: ① يجب، وجب وجوبًا (ض) واجب كيدل ② ان يقدم، قدم تقديمًا: وړاندې کول

**تشريح:- تقديم الطهارة من الاحداث والانجاس**◉ دلته کې واجب په معنى د فرض دې. يعنى په مونځګذار باندې فرض دى.چې د هرقسم حدث نه پاکې وړاندې کړى. حدث که موجب د اودس وى.(لکه باد وتل وغيره) او که موجب د غسل وى.(لکه خروج د منئ وغيره شو) يعنى که بې اودسه وى.نواول دې اودس اوکړى.بيا دې په لمانځه اودريږى. اوکه په جنابت کې وى.يا حائضه د حيض نه پاکه شى.يا نفاسه دنفاس نه پاکه شى.نواول دې غسل اوکړى.بيا دې لمونځ پيل کړى.) اودغه ډول د انجاسو(يعنى حقيقى پليتئ چې په نظر راځى.) هغې څخه به هم طهارت وړاندې کړى.(يعنى حقيقې مردارې که په بدن ياکالى يا ځائې باندې وى.هغه به پاک کړى.) لکه مونږ چې وړاندې بيان اوکړو (په باب الانجاس کې)

قَالَ اللهُ تَعَالَى {وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ} الله تعالى فرمائى.﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ وَقَالَ تَعَالَى:او الله تعالى فرمائى{وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا} ﴿ وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾

**حل اللغة**: ① ثياب جمع اثواب: کپړې

**تشريح:- دلائل وجوب الطهارة**◉ دليل دالله تعالى ارشاد دې.﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ (دجامو د طهارت دپاره) او﴿ وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ دې.(د بدن د طهارت دپاره)

### د ستر عورت وجوب

| | |
|---|---|
| وَيَسْتُرُ عَوْرَتَهُ | او پټوى به خپل عورت |

**حل اللغة**: ① يستر، ستر سترًا (ن): پټول

**تشريح:- شرط ستر العورة**◉ او دوهم شرط د خپل ستر عورت پواړه دى.يعنى په دومره اندازه باندې د عورت پواړه واجب دى.چې د هغې ښکاره کول قبيح او بې حيائى ګنړلې شى.(زما په نيز دا تعريف قابل نظر ښکارى.څکه.چې په موجوده زمانه کې د پيشن دور دې.ښځو چې کوم قميصونه اغوستى وى.په هغې کې ئې متې هم ښکارى.حالانکه دا هغوى قبيح نه ګنړى.څکه چې پيشن ترې جوړ شوې دې. .نود پورتنى تعريف په بنا پکار دا ده.چې په دې قميصونو کې لمونځ جائز شى. حالانکه څوك هم ددې قائل نه دى.) دا زمونږ په نيز او دامام شافعى امام مالك او عامو فقهاؤ رحمهم الله په نيز دې.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى خکه چې الله تعالى فرمايي {خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ} ﴿ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ اونيسي خپل ښائست د هر جمات سره أَيْ مَا يُوَارِي عَوْرَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ يعنى هغه شى واخلئ چې پټوى عورت ستاسود هر لمانځه لپاره

**حل اللغة**: ① يوارى، وارى مواراة: پواړه

**تشريح:- الدليل الاول**◉ دليل دالله تعالى ارشاد دې. .﴿ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ يعنى واخلئ خپل زينت دهر جمات سره په آيت کې د زينت نه مراد هغه شى دې. چې عورت پټوى.او د جمات نه مراد لمونځ دې.اوس به ژباړه دا شى.چې کوم شى ستاسو عورتونه پټوى.هرلمانځه ته هغه شى ځان سره واخلئ.نود دې آيت نه د لمانځه په مهال کې د عورت د پټولو فرضيت ثابت شو

**السوال**◉خودابن عباس رضى الله عنه نه نقل دى.چې دا آيت په بربنډه دطواف کونکو په اړه کې نازل شوې دې.دلمانځه په حق کې نه دې.نو ددې آيت نه په لمانځه کې د عورت د پټولو فرضيت څنګه ثابتيږى.

**الجواب**◉ ددې ځواب دا دې.چې اعتبار عموم د لفظ لره وى.خصوص د سبب لره نه وى.او ﴿عند كل مسجد﴾عام دې.د مسجد حرام تخصيص په کې نشته.



وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبى کريم ﷺ فرمائيلى دى {لَا صَلَاةَ لِحَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ}(١) أَيْ لِبَالِغَةٍ لمونځ نه کيږى.د حائضې مګر په پټو (څادر) کې يعنى د بالغې

**حل اللغة**: ① خمار: لوپټه، پړونې

**تشريح:- الدليل الثانى**◉ دوهم دليل دا دې.چې نبى ﷺ فرمائيلى دى.﴿لا يقبل الله صلاة حائض إلا بخمار﴾الله تعالى نه قبلوى لمونځ د حائضې مګرپه پړونکې کې .دحائضې نه مراد بالغه ده.يعنى الله تعالى د بالغې لمونځ بغير د پړونى نه نۀ قبلوى.

**السوال على فرضية سترالعورة**◉دلته دا اشکال کيدې شى.د سترعورت د فرضيت لپاره چې صاحب دهدايه رحمه الله کوم آيت او حديث ذکر کړې دې.ددې نه د ستر عورت فرضيت نه ثابتيږى.څکه چې د ﴿ خُذُوا زِينَتَكُمْ ﴾ آيت د طواف په حق کې وجوب د ستر عورت ثابتوى.هم دا وجه ده.چې په بربنډه طواف کول په شريعت کې معتبر دې.اګرچې ګناهګار به ضرور وى.نوکه د لمونځ لپاره د فرضيت ثابتونکې شى.نولفظ د ،،خذوا،، د واجب او فرض دواړو په معنى کې مستعمل شو.اودا ناجائز ده.(چې يو ټکې دې په يووخت کې د فرضيت او وجوب دواړو ثابتونکې شى.) څکه چې په دې صورت کې د حقيقت او مجاز په مينځ کې جمع والې راغلو.(اوپه يو وخت د يو لفظ نه حقيقى او مجازى معنى اخستل ناروا ده.) اوپاته شو حديث.نوهغه خبر واحد دې.او په خبر واحد سره فرضيت نه ثابتيږى.نوځکه دا حديث د فرضيت ثابتونکې نه دې.

الځواب◉ ځواب دا دې.اګرچې آيت قطعى الدلالة نه دې.خو قطعى الثبوت ضرور دې.اوحديث اګرچې د خبر واحد د وجې ظنى الثبوت دې.خود اداة حصر د وجې قطعى الدلالة دې.نوددې دواړو د مجموعې نه فرضيت ثابت شو.

### دسړى عورت .او د نامه او پنډۍ په عورتيت کې اختلاف

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَعَوْرَةُ الرَّجُلِ او د سړى واجب الستر بدن | مَا تَحْتَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ | دده د نامه نه واخله تر پنډو پورې دې | |

**حل اللغة**: ① سرة: نوم ② ركبة: زنګون

**تشريح:- الاختلاف في حد عورة الرجل**◉په دې عبارت کې د سړى د بدن واجب الستر اندازې حد بندى شوې ده.① زمونږ د درې واړه امامانو په نيز د سړى عورت د نامه نه لاندې ترپنډو پورې دې.يعنى نوم عورت نه دې.او لينګۍ عورت ده.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى {عَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ إِلَى رُكْبَتِهِ} د سړى په بدن کې عورت د نامه او دواړو پنډو مينځ کې برخه ده وَيُرْوَى او روايت شوې دې. {مَا دُونَ سُرَّتِهِ حَتَّى تُجَاوِزَ رُكْبَتَهُ}(١) چې دده د نامه نه لاندې تردې چې د دواړو پنډو نه تيرشى وَبِهَذَا تَبَيَّنَ أَنَّ السُّرَّةَ لَيْسَتْ مِنَ الْعَوْرَةِ اوددې نه ښکاره شوه.چې نوم په عورت کې داخل نه دې

**حل اللغة**: ① تجاوز، تجاوز تجاوزًا:تيريدل، زياتې کول

١) من حدث عائشة رضى الله عنها اخرجه ابوداود فى الصلاة باب ٨٤ والترمذى ى الصلاة باب ١٦٠ رقم ٣٧٧ وابن ماجه فى الطهارة باب ١٣٢ )_

١) قال الزيلعى رحمه الله فيه احاديث وذكرمنها حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده رضى الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ....واذا زوج احدكم امته عبده او اجيره فلا ينظر الى ما دون السرة وفوق الركبة فان ماتحت السرة الى الركبة من العورة اخرجه ابوداود فى سننه (اى فى الصلاة باب ٢٦ رقم ٤٩٥) ولم يقل فيه :فان ماتحت السرة الى الركبة من العورة ورواه احمد(اى فى ١٨٧١٢)ولفظه فان ما اسفل من سرته الى ركبتيه من عورته(نصب:٣٧١١١)_

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله: زمونږ دليل د نبي ﷺ قول چې «عورة الرجل ما بين سرته الى ركبته» دی او په بل روايت کې دی. «ما دون سرة حتى تجاوز ركبة» يعنی د سړي عورت د نامه او د لينګئ په مينځ کې برخه دا او په بل روايت کې دی چې د نامه د لاندې نه تر دے چې د لينګئ نه تير شی. دے دواړو حديثونو نه ثابته شوه چې نوم په عورت کې داخل نه دی خو لينګئ په کې داخل ده.

**خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله په خلاف د قول د شافعی رحمه الله (وَالرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ) او لينګئ په عورت کې داخل ده **خِلَافًا لَهُ أَيْضًا** په خلاف د قول د شافعی رحمه الله

**تشريح:-** د امام شافعی رحمه الله په نيز خبره د دے په عکس ده. يعنی د امام شافعی رحمه الله په نيز پنډۍ د عورت ځنې ده او په دې باندې به عورت احکام جاری کيږی

**وَكَلِمَةُ إِلَى نَحْمِلُهَا عَلَى كَلِمَةِ مَعَ عَمَلًا** او کلمه د ،،الی،، مونږ حمل کوو په معنی د ،،مع،، باندې **بِكَلِمَةِ حَتَّى** په ،، حتی ،، باندې د عمل کاوه لپاره **أَوْ عَمَلًا بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ} (١)**. او د نبی ﷺ په قول «الركبة من العورة» باندې عمل کاوه دپاره.

**حل اللغة:** ①عملاً: عمل کول

**تشريح:- السوال** ۞: خوکه اعتراض اوشی چې په اولنی روايت کې کلمه د ،،الی،، د غايه لپاره ده. اوغايت په مغيا کې داخله نه وی. نو لينګئ د سړي په عورت کې داخله نشوه.

**الجواب** ۞: نوځواب دا دی چې مونږ کلمه د ،،الی،، د ،،مع،، په معنی حمل کوو. لکه د الله تعالی په قول کښے ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَى أَمْوَالِكُمْ﴾ چې ،،الی،، د ،،مع،، په معنی راغلے ده. اويه دے باندې قرينه يو خو هغه حديث دی چې په هغې کې «حتى تجاوز ركبة» دی. او بل د نبی ﷺ قول چې «الركبة من العورة» دی. حاصل دا دی چې په دے واړه رواياتو کې تطبيق هله کيدې شی. چې کلمه د ،،الی،، په ،،مع،، باندې حمل کړې شی.

## د اصيلي ښځې د عورت حکم

**(وَبَدَنُ الْحُرَّةِ كُلُّهَا عَوْرَةٌ)** او د اصيلے ښځے واړه بدن عورت دی **(إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا)** سوا د دے د مخ او د دواړو تلو ورغوو نه

**حل اللغة:** ①بدن جمع ابدان: جوسه ②حره: آزاده ښځه ③وجه جمع وجوه: مخ ④كف: تلي

**تشريح:- حد عورة المراة الحرة** ۞: د آزادے ښځه د مخ او دواړو ورغوو نه علاوه پاته واړه بدن عورت دی. **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ مَسْتُورَةٌ} (٢)** ځکه چې د رسول الله ﷺ قول دی. «المراة عورة مستورة»

**تشريح:- دليله** ۞: دليل دا د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ روايت دی. چې «انه ﷺ قال المراة عورة فاذا خرجت استشرفها الشيطان» ښځه عورت دی. يعنی واجب الستر ده. کله چې دا (د کور نه) راوځی. نوشيطان دا په کتلو کې ښائسته کوی.

**عدم وجدان لفظ المستورة** ۞: صاحب دهدايه دا حديث په دے الفاظو ذکر کړې دی. «المراة عورة مستورة» علامه عبدالحی رحمه الله فرمائيلی دی. چې د ،،مستورة،، لفظ ما په هيڅ يو روايت کې اونه موندلو. ځينې حضراتو فرمائيلی دی. د دے معنی دا ده. چې د عورت حق دا دی. چې خپل ځان پټ کړی.

٢) من حديث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه الدارقطنی فی سننه (١١/٢٣١)_

١) من حديث عبدالله بن مسعود ؓ اخرجه الترمذی فی الرضاع باب ١٨)_



**وَاسْتِثْنَاءُ الْعُضْوَيْنِ لِلِابْتِلَاءِ بِإِبْدَائِهِمَا** او د دواړو اندامونو استثناء د دے دواړو ښکاره کيدو د ابتلاء د وجې ده

**تشريح:- علة استثناء الوجه والكفين** ۞: اود مخ او ورغوو استثناء ئې د دے وجې اوکړله. چې د دے دواړو اندامونو ښکاره کولوته ارتيا دی. ځکه چې په کار کولواو ورکړه راکړه کې د دے نه بغير ګزاره نه کيږی. د دے تائيد د ابوداود د يو مرسل حديث نه هم کيږی. «ان الجارية اذا حاضت لم يصلح ان يرى منها الا وجهها ويداها الى المفصل» يعنی انجلۍ (جينئ) چې کله بالغه شی. نومناسب نه دی چې اوليدے شی. سوا د دے د مخ او دواړو لاسونو نه تر جوړونو پورې.

**قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:** مصنف رحمه الله فرمايي **وَهٰذَا تَنْصِيصٌ عَلَى** چې (دمتن دا قول) په دے خبره نص دی **أَنَّ الْقَدَمَ عَوْرَةٌ** چې د ښځے قدم هم عورت دی

**تشريح:- دخول القدمين في العورة** ۞: صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې د متن دا قول په دے خبره ښکاره دلالت کوی. چې د ښځے قدم هم عورت دی. ځکه چې د واړه بدن نه صرف د مخ او

**وَيُرْوَى أَنَّهَا لَيْسَتْ بِعَوْرَةٍ** اوروايت کولې شی. چې قدم عورت نه دی **وَهُوَ الْأَصَحُّ** او دا اصح روايت دے ورغوو استثناء شوی ده.

**تشريح:- عدم دخول القدمين في العورة** ۞: اوامام حسن د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دی. چې دواړه قدمونه هم عورت نه دی. اودا اصح روايت دی. امام کرخی رحمه الله هم د دے قائل دی.

**دليل عدم عورة القدمين** ۞: د قول اصح دليل دا دی. چې د ښځے د قدم په کتلو باندې دومره شهوت نه پيدا کيږی. لکه څنګه چې د دے د مخ په کتلو سره پيدا کيږی. نو چې د کثرت شهوت باوجود مخ عورت نه دی. نوپکار ده. چې قدمونه خو په طريق اولی سره عورت نشی

**فائدة** ۞: خيال ساتل پکار دی. چې مخ عورت نه دی. نو د دے نه دا نه لازميږی. چې د دے ته په کتلو کې هم حرمت نشته. ځکه کتل په هغه وخت کې حلال دی. چې د شهوت ويره نه وی. هم دا وجه ده. چې د ښځے او آمرد (بے ږيرے هلك) مخ ته کتل حرام دی. حالانکه دا عورت نه دی. ځکه چې د شهوت احتمال په کې قوی دی.

## د پنډۍ څلورمه يا دريمه برخه ښکاره کيدو په حالت کې د ښځې مونځ

**(فَإِنْ صَلَّتْ)** که اصيلی ښځے لمونځ اوکړلو **(وَرُبُعُ سَاقِهَا مَكْشُوفٌ)** په داسې حالت کښے چې د لينګئ څلورمه برخه ئې ښکاره وی **(أَوْ ثُلُثُهَا)** يا دريمه حصه. (ئې ښکاره وه). **(تُعِيدُ الصَّلَاةَ)** نود لمونځ اعاده به کوی **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله (١) د امام ابوحنيفه رحمه الله او محمد رحمه الله په نيز **وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ** اوکه د څلورمې حصے نه کمه ښکاريده **لَا تُعِيدُ** نو اعاده به نه کوی

**حل اللغة:** ①صلت، صلى تصلية: لمونځ کول ②ربع: څلورمه برخه

**تشريح:- السوال** ۞: په عبارت کې د ربع د ذکر نه روسته د ،،ثلث،، ذکر بے فائدے دی. ځکه چې د ربع د ذکر نه روسته د ،،ثلث،، څه ارتيا پاتې نشو.

**الجوابان** ۞: ①د دے يوځواب خو دا دی. چې د امام محمد رحمه الله په کتاب کې د ،،ثلث،، ذکرد کاتب سهوه ده. ځکه علامه شمس الاسلام او عامو فقهاؤ دا نه دے نقل کړې ②دوهم ځواب دا دی. چې د امام محمد رحمه الله په شاګردانو کې يو راوی ته دا شك راغلے وو. چې ،،ربع،، ئې وئيلی ده اوکه ،،ثلث،،

**حكم المسئلة عندالطرفين** رحمهما الله ۞: بهرحال مسئله دا ده. که آزادے ښځے لمونځ اوکړلو. په داسې حالت کې چې د

١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی الدرالمختار(١١/٣٠٠) ومجمع الانهر(١١/٨١) والخانية (١١/١٣٤) والخلاصة (١١/٧٤) نقلا عن القول الراجح (١١/٦٧)_

هغې ځلورمه برخه د لینګۍ ښکاریدله.نوپه هغې باندې د لمونځ اعاده واجب ده.ا اوکه د ځلورمے حصې نه کمه وه.نو اعاده پرے واجب نه ده.داحکم د طرفینو رحمهما الله د مذهب مطابق دی.

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رحمه الله اوامام ابویوسف رحمه الله فرمایي لَا تُعِيدُ چې د لمونځ اعاده به نه کوی إِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ النِّصْفِ)که د نیمي نه کمه برخه ښکاریده

تشریح:- حکم المسئلة عند ابی یوسف رحمه الله ۞ امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.که د نصف نه کمه برخه ښکاره وی.نو د لمونځ اعاده واجب نه ده.اوکه نیمه برخه ښکاره وه.نو په دے اړه کي دامام ابویوسف رحمه الله نه دوې (دوه) روایتونه دی.① یو دا چې په دے صورت کي هم اعاده واجب نه ده.② اوبل دا چې اعاده پرے واجب ده.

لِأَنَّ الشَّيْءَ إِنَّمَا يُوصَفُ بِالْكَثْرَةِ خکه چې یو شی په کثرت سره هله موصوف کیدې شی. إِذَا كَانَ مَا يُقَابِلُهُ أَقَلَّ مِنْهُ چې د هغه مقابل دده نه کم وی إِذْ هُمَا مِنْ أَسْمَاءِ الْمُقَابَلَةِ خکه چې دا دواړه داسماء مقابلة نه دی

تشریح:- الخلاف في حدالقليل والكثير۞ لنډیز دا چې زمونږ د عالمانو په دے باندې اتفاق دې.چې د بدن لګه برخه ښکاره کیدل معاف دی.اود زیات ښکاره کیدل معاف نه دی.خو دقلیل او کثیر په حد فاصل کي اختلاف دې.① طرفینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چې ځلورمه برخه کثیر ده.اوددے نه کمه قلیل ده.② او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چې د نیم نه کم قلیل ده.

(وَفِي النِّصْفِ عَنْهُ رِوَايَتَانِ)او د نصف په صورت کښے دامام ابویوسف رحمه الله نه دوې (دوه) اقوال دی فَاعْتَبَرَ الْخُرُوجَ عَنْ حَدِّ الْقِلَّةِ نواعتبار ئې کړې دې.د حد د قلت نه د وتلو أَوْ عَدَمَ الدُّخُوْلِ فِي ضِدِّهِ یا ددے په ضد کي د نه داخلیدو

تشریح:- دلیل ابی یوسف رحمه الله ۞ دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چې یو شی په کثرت باندې په هغه وخت کي موصوف کیږی.چې دهغه مقابل دده نه کم وی.خکه چې د قلیل او کثیر په مینځ کي د تقابل تضایف دې.حاصل دا چې د نیم نه کم شی کثیر نه بلکه قلیل دې.اود کم مقدار په ښکاره کیدو باندې د لمونځ اعاده واجب نه ده.خکه خو وئیلی شوی دی.که د نیمې لینګۍ نه کمه برخه ښکاره وی.نو د لمونځ اعاده واجب نه ده.

وَلَهُمَا اود طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې أَنَّ الرُّبُعَ يَحْكِي حِكَايَةَ الْكَمَالِ چې ځلورمه برخه هم د واړه حکایت کوی كَمَا فِي مَسْحِ الرَّأْسِ لکه د سر په مسح کښے وَالْحَلْقِ فِي الْإِحْرَامِ اود احرام په حالت کي ځلورمه برخه سر خریلو کي وَمَنْ رَأَى وَجْهَ غَيْرِهِ اوچاچې د بل مخ اړخ ته اوکتلو يُخْبِرُ عَنْ رُؤْيَتِهِ نوهغه د دے نه د هغه په کتلو سره تعبیر کوی وَإِنْ لَمْ يَرَ إِلَّا أَحَدَ جَوَانِبِهِ الْأَرْبَعَةِ اګرچې هغه دده د یو اړخ نه علاوه نور طرفونه نه وی لیدلی

تشریح:- دلیل الروایتین في صورة النصف۞ ① او دنصف په صورت کي د دواړو روایتونو دلیل دا دې.چې نصف کله د قلت د حد نه اووتل.خکه چې ددے په مقابله کي ددے نه زیات نشته.نودا په حد د کثرت کي داخل شو.اوچونکه د زیات مقدار په اندازه ښکاره کیدو باندې د لمونځ اعاده واجب ده.نوخکه په دے صورت کي د لمونځ اعاده واجب ده.② اوکه دا اووئیلی شی.چې نصف د قلیل په ضد یعنی کثیر کي نه دے داخل شوې.خکه چې ددے په مقابله کښے نصف آخر دے.چې هغه هم ددے نه کم نه دې.نو نصف د کثرت په حد کي داخل نشو. نونصف مقدار به کم وی.اوچې کم مقدار ښکاره شی.نولمونځ واجب الاعاده نه دې.نوخکه په دے صورت کي لمونځ واجب الاعاده نه دی.

امثاله۞د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چې ډیر احکام او د کلام د استعمال په مواقعو کي ځلورمه برخه د کل قائم مقام ده.① مثلاً د سر په مسح کي ځلورمه برخه د واړه سر قائم مقام ده.② دغه ډول که محرم په حالت احرام کي سر اوخریولو. نوقربانی واجب ده.اوکه ځلورمه برخه ئې خریلے وی.نو بیا هم قربانی واجب



ده.نومعلومه شوه.چې ځلورمه برخه د واړه سر قائم مقام ده.③ په محاوراتو کي هم دا حال دې.که یو کس د بل کس په ځلورو طرفونو کي صرف یو اړخ اولیدلو.او اووائی.چې ما هغه لیدلے دې.نو خبره ئې صحیح ده. نوهرکله چې ځلورمے حصې ته د کل حکم حاصل دې.نوچې ځلورمه برخه پنډۍ ښکاره شی.دا به وئیلی شی.چې ټوله لینګۍ ئې ښکاره شوې ده.اوچې ټوله لینګۍ ښکاره شی.نوپه دے صورت کي د لمونځ اعاده واجب ده.نو د ځلورمے حصې په ښکاره کیدو سره د لمونځ اعاده هم واجب ده.

## ویخته ،ځیټه او ورون عورت دې

(وَالشَّعْرُ وَالْبَطْنُ وَالْفَخِذُ كَذَلِكَ) اوویخته، نس اود ورون هم دا حکم دې يَعْنِي عَلَى هَذَا الْخِلَافِ یعنی په دے کي اختلاف دے

حل اللغة:① شعر جمع شعور: ویښته ② بطن جمع بطون: نس ③ فخذ جمع افخذ: ورون

تشریح:- جریان الاختلاف في الشعر والبطن والفخذ۞ مسئله:د ویخته ، نس او ورون هم دا حکم دې.یعنی په هغې کي هم دا اختلاف دې.کوم چې تیر شو.① یعنی د طرفینو رحمهما الله په نیز چې په دے کښے د یو اندام ځلورمه برخه ښکاره شی.نو جوازد صلاة لپاره مانع دې.② اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز په یوروایت کي نیمه برخه ښکاره کیدل مانع د صلاة ده.او د نصف نه زیاته برخه په ټولو روایاتو کي مانع د صلاة ده.

لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ عُضْوٌ عَلَى حِدَةٍ خکه چې هر یو جلا اندام دې وَالْمُرَادُ بِهِ النَّازِلُ مِنَ الرَّأْسِ اود ویختونه هغه مراد دی.چې د سر نه زوړند وی هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحیح قول دې

تشریح:- دلیله۞ دلیل دا دې.چې په دے کي هر یو جلا جلا اندام دې.نو د لینګۍ په څیر اختلاف به په دے کي هم جاري کیږی.او دلته کي د ویختو نه مراد هغه دی.کوم چې د سر نه زوړند وی.هم دا صحیح قول دې.هغه مراد نه دی.کوم چې د سر سره مولښتی وی.خکه چې هغه په اتفاق سره عورت دې.

وَإِنَّمَا وَضَعَ غَسْلَهُ فِي الْجَنَابَةِ لِمَكَانِ الْحَرَجِ او دجنابت په غسل کي ددے پریمنځل د حرج د وجې ساقط شوی دی

حل اللغة:① جنابت: ناپاکی

تشریح:- السوال ۞وانما وضع غسله الخ په دے عبارت سره د یو سوال مقدر ځواب ورکول دی.هغه دا که چرته د سر نه زوړند ویخته عورت وی.نودا د دے وجې عورت دې.چې د بدن برخه ده.حالانکه داسې نه ده.خکه چې په غسل د جنابت کي د دے پریمنځل ضروری نه دی.حالانکه د بدن یوه (ظاهری) برخه هم داسې نه ده.چې د هغې په غسل د جنابت کي پریمنځل ضروری نه وی. نو معلومه شوه. چې د سر نه زوړند ویخته د ښځے بدن نه دې.اوچې بدن نشو.نو عورت نشو.

الجواب۞ددے ځواب دا دی.چې په غسل دجنابت کي د ویختود نه وینځلو اجازت ددے وجې نه نه دی.چې ویخته عورت نه دې.بلکه په زیږیدل کي د هغې د بدن برخه ده.خکه چې د هغې د بدن سره متصل دی.خو دومره ده.چې د تکلیف د وجې د هغې پریمنځل ساقط شوی دی.(یعنی که ښځے ته حکم اوشی.چې کوڅیو دے وینځی.نوچونکه په ژمی کي د ویختو اوچیدل ګران وی.او د هغې د یخنۍ نه ښځے ته تکلیف دی.خکه شریعت دے ته دا رخصت ورکړلو.که ویخته کوڅیو وی.نود هغې سپړدل اوپریمنځل ورته معاف شو.)

وَالْعَوْرَةُ الْغَلِيظَةُ عَلَى هَذَا الِاخْتِلَافِ اوپه عورت غلیظه کښے هم دا اختلاف دې وَالذَّكَرُ يُعْتَبَرُ بِانْفِرَادِهِ وَكَذَا الْأُنْثَيَانِ اوذکر خان ته او دواړه خصیتین (اګی) جلا جلا (اندامونه شمارلے شی) وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ اودا صحیح ده دُوْنَ الضَّمِّ دا نه چې دواړه چې ملاؤ شی (نو یو اندام ترے جوړیږی)

حل اللغة:① انثیان: اګئي

**تشریح:- كون القبل والدبر والخصيتين عورة عليحدة** ۞ اوعورت غليظه يعنى قبل او دبر كي هم دا اختلاف دي.نو د څلورمې حصې ښكاره كيدل د طرفينو رحمهما الله په نيز موجب د اعاده د صلاة دي.او دامام ابويوسف رحمه الله په نيز موجب د اعاده نه دي. ① علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې ذكر ( دسړي د تناسل اندام) ځان ته يواندام دي.اودواړه خصيتين (اګې) ځان ته يو اندام دي.كه په دې كي د يو څلورمه برخه ښكاره شوه.نولمونځ واجب الاعاده دي.اوداسې نه ده.چې دواړه ملاؤ كړې نو يو اندام دي. ② اوبعضو ونيلي دي.چې د دواړو خصيتينو او ذكر مجموعه ځان ته يو اندام دي. ځكه چې خصيتين د ذكر تابع دي.نودمجموعې ربع به مانع د صلاة وي.

فائده ۞ دا تفصيل د احنافو په عالمانو په مينځ كي دي.او د امام شافعي رحمه الله په نيز د لمونځ دجواز لپاره چې كوم ښكاره والې سبب ګرځي.په هغې كي د قليل او كثير څه توپير نشته.بلكه واړه مانع د صلاة دي.

## د ښځې د عورت بيان

(وَمَا كَانَ عَوْرَةً مِنَ الرَّجُلِ اوڅومره بدن چې دسړي عورت دي فَهُوَ عَوْرَةٌ مِنَ الْأَمَةِ هغه هومره د ويڼزې عورت دي وَبَطْنُهَا وَظَهْرُهَا عَوْرَةٌ اود دې نس او ،ملا، هم عورت دي وَمَا سِوَى ذَلِكَ مِنْ بَدَنِهَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ) اود دې نه علاوه پاته واړه بدن عورت نه دې

**تشریح:- حد عورة الامة** ۞ په دې عبارت كي د ويڼزې عورت بيان شوي دي. فرمايي . چې د سړي په بدن كي څومره برخه عورت دي.يعنى د نامه نه لاندې تر پنډو پورې نوهم دغه برخه د ويڼزې په بدن كي عورت دي.ددې نه علاوه د ويڼزې نس او ملا هم عورت دي.ځكه چې دا دواړه د شهوت ځايونه دي.نو ددې پواړه هم فرض دي.خو ددې نه علاوه نور بدن ئې عورت نه دي.

لقول لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځكه چې د حضرت عمر رضي الله عنه قول دي أَلْقِي عَنْكِ الْخِمَارَ يوې ويڼزې ته) لرې كړه د ځان نه خپل پړونې يَا دَفَارِ (لې ګنده ښځې (.اې ويڼزې! أَتَتَشَبَّهِينَ بِالْحَرَائِرِ،([1]) آيا ته ځان د اصيليو ښځو سره يوشان كوې

**تشریح:- الدليل النقلی** ۞ دليل دا دي.چې يو ځل حضرت عمر رضي الله عنه يوه ويڼزه اوليدله.چې پړونې ئې په سر كړې وو.نوورته ئې اوفرمائيل:اې ويڼزې دځان نه پړونې لرې كړه .ته ځان د اصيلو ښځو سره يوشان كوې.او په يو روايت كي داسې الفاظ دي . «اكشفي عن رأسك ولاتشتبهي بالحرائر»خپل سر ښكاره كړه.د اصيلو ښځو مشابهت مه كوه.

وَلِأَنَّهَا تَخْرُجُ لِحَاجَةِ مَوْلَاهَا فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا عَادَةً اوددې وجې چې ويڼزه خو په عامه توګه د خپل مالك د اړتيا لپاره د خپل محنت په جامو كي بهر ته اوځي فَاعْتُبِرَ حَالُهَا بِذَوَاتِ الْمَحَارِمِ فِي حَقِّ جَمِيعِ الرِّجَالِ نو د ټولو سړو په حق كي د ويڼزو حالت په محرمو باندې قياس كړې شو. دَفْعًا لِلْحَرَجِ لپاره د لرې كاوه د تكليف

**تشریح:- الدليل العقلی** ۞ دوهم دليل دا دي.چې ويڼزه د خپل مالك د ضرورتونو پوره كاوه لپاره د خدمت په جامو كي د كور نه بهرته اوځي.نو د ټولو سړو په حق كي دا په ذوات المحارم باندې قياس كړې شوه.چې حرج لرې شي.يعنى ويڼزې د پردې په حكم كي د ټولو سړو لپاره د ذوات المحارمو په څير ګڼړلې شي.يعنى لكه څنګه چې د مور د خپل خوى نه او د خور د خپل ورور نه پرده واجب ده. نو هم په دغه اندازه په ويڼزه باندې د هر سړي نه پرده واجب ده

## د نجاست زائله كونكي څيز نه موندلو په وخت د مونځ حكم

قَالَ فرمايي (وَلَوْ لَمْ يَجِدْ اوكه مونځګذار داسې شى اونه موندلو مَا يُزِيلُ بِهِ النَّجَاسَةَ چې په هغې سره ئې

[1]) اخرجه عبدالرزاق فى مصنفه (۱۲۸\۱۳)_



نجاست لرې كړې وې صَلَّى مَعَهَا نوهم په دغه پليت كالى كي دې لمونځ اوكړې وَلَمْ يُعِدْ) او اعاده دې نه كوى

**حل اللغة:** ① لم يجد، وجد وجدانًا (ض): موندل

**تشریح:- حكم الصلاة في ثوب نجس** ۞ مسئله دا ده.كه د يوكس سره د پليتې جامې نه سوا بل كالى نه وي.او داسې شى ور سره هم نه وي.چې پليتې پرې لرې كړي. نوهم په دغه پليت كالى كښې دې لمونځ اوكړي.اوبيا دې د هغې اعاده هم نه كوي.

وَهَذَا عَلَى وَجْهَيْنِ او دا په دوو صورتونو ده. إِنْ كَانَ رُبْعُ الثَّوْبِ أَوْ أَكْثَرُ مِنْهُ طَاهِرًا كه څلورمه يا ددې نه زياته پاكه وي يُصَلِّي فِيهِ نوهم په هغې كي دې لمونځ اوكړي وَلَوْ صَلَّى عُرْيَانًا اوكه په بربنډه ئې اوكړلو لَا يُجْزِئُهُ نوجائز نه دي لِأَنَّ رُبْعَ الشَّيْءِ يَقُومُ مَقَامَ كُلِّهِ ځكه چې د شي څلورمه برخه د واړه قائم مقام وي

**حل اللغة:** ① ربع: څلورمه برخه ② عريانًا: بربنډول

**تشریح:- حكم الصلاة عند طهارة الربع اوالاكثر** ۞ په دې مسئله كي دوې (دوه) صورتونه دي. يو دا كه څلورمه يا ددې نه زياته برخه پاكه وي.نو لازمى به هم په دغه كالى كي لمونځ كوي.اوكه په بربنډه ئې اوكړلو.نوجائز نه دي.ځكه چې څلورمه برخه د واړه په څير ده.نود څلورمې حصې پاكوالې لكه د ټولې پاكوالې دې.اوچې پاك كالى پريږدي.اوپه بربنډه لمونځ كوي. نودا جائز نه ده.نوځكه دې هم په دغه كالى كي لمونځ اوكړي.

وَإِنْ كَانَ الطَّاهِرُ أَقَلَّ مِنَ الرُّبْعِ اوكه د څلورمې نه كمه پاكه وه فَكَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله نود امام محمد رحمه الله په نيز هم دا حكم دي وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اودا د امام شافعي رحمه الله په دوو قولونو كي يو قول دي

**تشریح:- الصلاة في الثوب اكثره نجس عند محمد** رحمه الله ۞ دوهم صورت دا دي.كه د څلورمې حصې نه كمه پاكه وي.نو په دې كي اختلاف دي. ① دامام محمد رحمه الله په نيز هم په دغه پليت كالى كي لمونځ كول واجب دي.اوپه بربنډه لمونځ جائز نه دي.اوهم دا د امام مالك رحمه الله قول دي. او د امام شافعي رحمه الله په دوو قولونو كي يوقول دي.دامام شافعي رحمه الله دوهم قول دا دي.چې په بربنډه دې اوكړي.

لِأَنَّ فِي الصَّلَاةِ فِيهِ تَرْكَ فَرْضٍ وَاحِدٍ ځكه چې په پليت كالى كي لمونځ كاوه كښې د يو فرض پريښول دي وَفِي الصَّلَاةِ عُرْيَانًا تَرْكَ الْفُرُوضِ او په بربنډه باندې لمونځ كاوه كي د څو فرضونو پريښول لازميږي

**حل اللغة:** ① ترک: پريښول

**تشریح:- دليلهما** ۞ دامام محمد رحمه الله د قول وجه دا ده.چې په پليت كالى كي په لمونځ كاوه كي صرف يو فرض پاتې كيدل لازميږي.يعنى د جامې پاكوالې پاتې كيږي. اوكه په بربنډه لمونځ اوكړي.نوڅو فرضونه پاتې كيدل لازميږي.مثلاً پواړه دعورت، قيام ، ركوع، او سجدې. ځكه چې بربنډ سړې به ناسته په اشاره لمونځ كوى. اودا خبره ښكاره ده.چې يو فرض پريښول بهتر دي.په نسبت سره ډيرو فرضونو پريښولو ته. نوځكه هم په دغه پليت كالى كي لمونځ كول واجب دي.

وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله او د ابوحنيفه رحمه الله او ابويوسف رحمه الله په نيز يَتَخَيَّرُ ده ته اختيار دي بَيْنَ أَنْ يُصَلِّيَ عُرْيَانًا كه غواړي.نوپه بربنډه دې لمونځ اوكړي وَبَيْنَ أَنْ يُصَلِّيَ فِيهِ([1]) اوكه غواړي نو په پليت كالى (جامه) كي دې لمونځ اوكړي وَهُوَ الْأَفْضَلُ اودا غوره ده لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَانِعٌ جَوَازَ الصَّلَاةِ حَالَةَ الِاخْتِيَارِ ځكه چې په دې

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى بدائع الصنائع (۱۱۷\۱) وتبيين الحقائق (۹۸\۱) والدر المختار (۳۰۳\۱) والهندية (۶۰\۱) نقلا عن القول الراجح (۶۸\۱)_

دوارو كي هريو د لمونځ دجواز لپاره مانع دي **وَيَسْتَوِيَانِ فِي حَقِّ الْمِقْدَارِ** اود مقدار په حق كي دواړه برابر دي **فَيَسْتَوِيَانِ فِي حُكْمِ الصَّلَاةِ** نو دواړه به برابر وي په حكم د لمانځه كي

**تشريح:- الصلاة في الثوب اكثره نجس عندالشيخين** ﷺ اود شيخينو ﷺ په نيز ده ته اختيار دي.كه غواړي په برېنډه دے لمونځ اوكړي.اوكه غواړي نوهم په دغه كالي كي دے اوكړي.خودومره ده.چې په دغه پليت كالي (جامه) كي لمونځ كول غوره دي.

**دليله**۞دليل دا دي.چې ښكاره كيدل دعورت او نجاست په دے دواړو كي هر يو په حالت داختيار كي مانع د لمونځ د جواز دي.يعني كه دبدن پواړه ممكن نه وي. اود نجاست پرېمنځل ممكن نه وي.نود بدن عورت ښكاره كيدل او د جامے نجاست په دواړو كي هر يو مانع د لمونځ د جواز دي.اود مقدار په حق كي دواړه برابر دي.يعني په دواړو كي هر يو كي قليل معاف دي.او كثير معاف نه دي.نوهركله چې دواړه د مقدار په حق كي برابر دي.نودلمانځه په حق كي به هم برابر وي.يعني ځنګه چې په دغه پليت كالي (جامه) كي لمونځ كول جائز دي.دغه ډول به په برېنډه لمونځ كول هم جائز وي.

**وَتَرْكُ الشَّيْءِ إِلَى خَلَفٍ** اود يو شي پرېښول (په داسې طريقه) چې خليفه موجود پاتې شي. **لَا يَكُونُ تَرْكًا** پرېښول نه دي **وَالْأَفْضَلِيَّةُ** اوفضيلت ددے وجي دي **لِعَدَمِ اخْتِصَاصِ السَّتْرِ بِالصَّلَاةِ** چې پواړه د عورت د لمونځ سره خاص نه دي **وَاخْتِصَاصِ الطَّهَارَةِ بِهَا** او طهارت لمانځه سره مخصوص دي.

**تشريح:- الجواب عن دليل محمد** رحمه الله ۞پاته شوه د امام محمد رحمه الله دا خبره چې په برېنډه لمونځ پرېښولو كي د ځو فرائضو پرېښول لازميږي.نو ددے ځواب دا دي.چې ديوځيز په داسې طريقه پرېښول چې د هغې خليفه موجود وي. پرېښول نه دي.اودلته كي هم دا خبره ده.اوكه اووئيلې شي.چې د برېنډه لمونځ كاوه په مقابله كي هم په دغه پليت كالي (جامه) كي لمونځ كول ولے افضل دے؟ نو ځواب دا دي.چې ستر يعني عورت پواړه د لمونځ سره مخصوص نه دي.بلكه د لمانځه او غيرلمانځه دواړو حالتونو كي واجب دي.او طهارت دلمانځه د حالت پورې خاص دي.حاصل دا چې د عورت د پټولو فرض زيات قوي دي.په نسبت سره فرضيت د طهارت ته.نوځكه موږ اووئيل:چې په برېنډه لمونځ كاوه نه په پليت كالي (جامه) كي لمونځ كول افضل دي.

### په لڅه (برېنډه) دمونځ كولو حكم

(**وَمَنْ لَمْ يَجِدْ ثَوْبًا**) اوچا چې كالي اونه موندله **صَلَّى عُرْيَانًا** نولمونځ دے كوي په برېنډه **قَاعِدًا** په ناسته **يُومِئُ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ**) په داسې حالت كي چې ركوع اوسجده په اشاره كوي

**حل اللغة**° ①**لم يجد وجد وجدانا** (ض): موندل ②**عريانًا**: برېنډول

**تشريح:- كيفية صلاة العاري** ۞ مسئله دا ده.كه د يو كس سره كالي نه وي.كه پاكه وي او كه پليته وي.نودا كس دے په ناسته باندې لمونځ كوي.ركوع او سجده دے په اشاره كوي.

**هَكَذَا فَعَلَهُ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**(1) دغه ډول د رسول الله ﷺ صحابوٴ كړي وو

**حل اللغة**° ①**فعله فعل فعلاً** (ف): كول

**تشريح:- الدليل الاول**۞ دليل دا دي.چې د نبي ﷺ صحابوٴ ؓ هم داسې كړي وو. د انس بن مالك ؓ نه روايت دي.﴿ انه قال أن أصحاب رسول الله ﷺ ركبوا في سفينة فانكسرت بهم السفينة فخرجوا من البحر عراة فصلوا قعودا﴾دانس بن مالك ؓ نه روايت دي.چې د نبي ﷺ څه صحابهٔ ؓ په يوه كښتۍ كي سوارهٔ وو.نو كښتۍ ماته

(1) قال الزيلعى(رح) غريب وروى عبدالرزاق فى مصنفه (اى فى ۵۸۱۱\۲) عن ابن عباس رضي الله عنهما قال الذى يصلى فى السفينة [illegible]ى يصلى عريانا يصلى جالسا)_



شوه.او هغوی د درياب نه برېنډ راووتل.نوپه ناسته ئې لمونځ اوكړلو.

(**فَإِنْ صَلَّى قَائِمًا**) بيا كه برېنډ په ولاړه لمونځ اوكړي **أَجْزَأَهُ**) نوجائز ده ورله **لِأَنَّ فِي الْقُعُودِ سَتْرَ الْعَوْرَةِ الْغَلِيظَةِ** ځكه چې په ناسته لمونځ كي د عورت غليظه (شرمګاه) پرده ده **وَفِي الْقِيَامِ أَدَاءُ هَذِهِ الْأَرْكَانِ** اوپه ولاړه لمونځ كاوه كي ددے د اركانو ادا كول دی **فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّهِمَا شَاءَ** نوچې كوم اړخ ته ئې خوښه وي.مائل دے شي

**حل اللغة**° ① **قعود**: كښېنستل ⑤**فيميل مالميلانًا**(ض): مائل كيدل، ټيټيدل

**السوال** ۞دلته كي يو اعتراض كيدې شي.هغه دا چې نبي ﷺ عمران بن حصين ؓ ته فرمائيلي وو.﴿ صل قائما فان لم تستطع فقاعدا﴾يعني لمونځ په ولاړه كوه.اوكه د ولاړے نه عاجزه شوې.نوپه ناسته كوه.دا حديث ددے خبرے تقاضا كوي.چې د برېنډ لپاره په ناسته لمونځ كول جائز نه دي.

**الځواب**۞د دے ځواب دا دي.چې دا كس حكماً د قيام نه عاجز دي.ځكه چې دے د عورت (عورت غليظه) په پټولو بغيرد قيام او ركوع پرېښولو نه قادر نه دي. (يعني چې عورت غليظه پټوي.نوقيام او ركوع به پرېږدي.هله به ئې عورت غليظه پټ وي) اوچې د قيام نه عاجز شو.نو په ناسته ئې لمونځ كول صحيح شو.

اوكه په ولاړه ئې لمونځ اوكړلو.نودا هم جائز دي.ځكه چې په ناسته لمونځ كاوه كي د عورت غليظه پواړه دي.او په ولاړه لمونځ كاوه كي د قيام ركوع او سجدې ادا كول دي.نوپه دواړو صورتونو كي چې كوم غواړي.هغه دے اوكړي

(**وَالْأَوَّلُ أَفْضَلُ**) خو لومړې حالت افضل دي **لِأَنَّ السَّتْرَ وَجَبَ لِحَقِّ الصَّلَاةِ وَحَقِّ النَّاسِ** ځكه چې پواړه عورت د لمانځه او د خلګو دواړو د حقونو د وجې واجب دي

**تشريح:- الدليل الاول النقلي لفضل صلاة العاري قاعداً**۞خو اول صورت يعني په ناسته لمونځ كول غوره دي.ځكه چې پرده كول د لمونځ او خلګو د حق د وجې واجب ده. او طهارت صرف دلمانځه لپاره واجب دي.

**الدليل الثانى العقلى**۞ بله دا چې د عورت پټولو فرضيت د ركوع او سجدې كاوه په نسبت زيات مؤكد دي.دليل دا دي.چې نفلي لمونځ سره د قدرت نه په سپرلۍ بغير د ركوع او سجدې نه په اشاره سره جائز دي.اوپه حالت د قدرت كي په هيڅ صورت كي په برېنډه لمونځ نه دے جائز.اودبرېنډ سړي لپاره په ناسته لمونځ كاوه كي د قيام په نسبت پرده زياته ده.نوځكه موږ اووئيل.چې د برېنډ لپاره په ناسته لمونځ كول غوره دي.

**وَلِأَنَّهُ لَا خَلَفَ لَهُ** اوددے وجے چې د عورت پټولو څه خليفه نشته **وَالْإِيمَاءُ خَلَفٌ عَنِ الْأَرْكَانِ** او اشاره د اركانو خليفه دي.

**حل اللغة**° ① **خلف**: خليفه، روستو

**تشريح:- الدليل الثالث العقلى**۞ دوهم دليل دا دي.چې د عورت پټولو خليفه نشته.اود اركانو يعني ركوع او سجدې خليفه اشاره كول دي.اوقاعده دا ده.چې ،،ترك الى خلف غوره دے په نسبت سره ترك لا الى خلف ته،، نو كه برېنډ په ناسته لمونځ اوكړلو.نود ركوع او سجدې پرېښول به خليفه ته پاتې شي.چې اشاره ده.اوكه په ولاړه ئې لمونځ اوكړلو.نودعورت پټولو لپاره بل څه خليفه نشته.چې هغې ته پاتې شي . او اوس بيان اوشو.چې يو شي پرېښولې (پريخودې) شي.او خليفه ئې وي.دا غوره ده. په نسبت سره دے ته چې پرېښولې (پريخودې) شي.او خليفه ئې نه وي.نوځكه د برېنډ لپاره په ناسته لمونځ كول د ولاړے په نسبت غوره دي.

### په نيت اوتكبيرتحريمه كې په بل عمل سره د فصل كولوحكم

| |
|---|
| قَالَ فرمايي ﴿وَيَنْوِي الصَّلَاةَ الَّتِي يَدْخُلُ فِيهَا بِنِيَّةٍ﴾ اونيت دے کوی دهغه لمونځ چې په کي پيل کوی ﴿لَا يَفْصِلُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ التَّحْرِيمَةِ بِعَمَلٍ﴾ په داسے نيت سره چې د دغه نيت او تکبير تحريمه په مينځ کي په بل کار سره فصل ونکړی |

حل اللغة ① ينوى، نوى نية (ض): نيت کول، اراده کول ② يدخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ③ لايفصل فصل فصولاً (ض): جدا کول

تشريح:- عدم الفصل بين النية والتكبير ◉ مسئله دا ده. چې په کوم لمونځ کي پيل کوی. نود هغې نيت به کوی. په دے شرط چې د نيت او تکبيرتحريمے په مينځ کي په څه داسے عمل سره فصل نه وی. چې هغه د لمونځ منافي وی. مثلاً د نيت نه روسته په خوراك څکاك يا خبرو کي بوخت شی. اوبيا تکريمه تحريمه اووائی. او لمونځ پيل کړی. نو دا نيت معتبر نه دي.

| |
|---|
| وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ} (1) او ددے اصل د نبی ﷺ قول ﴿الأعمال بالنيات﴾ دي وَلِأَنَّ ابْتِدَاءَ الصَّلَاةِ بِالْقِيَامِ اوبله ددے وجې چې د لمانځه پيل د قيام نه کيږی وَهُوَ مُتَرَدِّدٌ بَيْنَ الْعَادَةِ وَالْعِبَادَةِ اوقيام د عادت او عبادت په مينځ کي واقع دے وَلَا يَقَعُ التَّمْيِيزُ نوفرق نه راځی إِلَّا بِالنِّيَّةِ مگر په نيت سره |

حل اللغة ① لايقع، وقع وقوعاً (ف): واقع کيدل

تشريح:- الدليل الاول لشرطية النية ◉ فاضل مصنف رحمه الله اول دهغه اصل بيان کړې دې. د کوم د وجې چې نيت واجب دي. نوفرمائی. چې د نيت په شرطيت کي د نبی ﷺ قول ﴿الأعمال بالنيات﴾ اصل دې. ددے وضاحت داسې کيدې شی. چې لمونځ يو عمل دې. او د اعمالو تعلق د نيت سره وی. نو لمونځ به هم د نيت سره متعلق وی. اوکوم لمونځ چې بغير دنيته اوشی. هغه په حقيقت کي هډو لمونځ نه دې.

احتمال التقديرين قبل لفظ الاعمال ◉ دلته کي يو اعتراض دې. ① هغه دا چې په حديث کي د ،،اعمال،، نه وړاندې د حکم لفظ تقديری دې. اود حکم نه مراد د آخرت حکم يعنی ثواب دې. نو اوس مطلب دحديث دا شو. چې د اعمالو د آخرت حکم يعنی ثواب په نيتونو باندې موقوف دې. په نفس عمل باندې نه دے موقوف. نومفهوم داشو. چې بغير نيت نه خو نفس لمونځ صحيح کيږی. خو ثواب پرے نه ملاويږی. ② او د بعضو خيال دې. چې د ،،اعمال،، نه وړاندې د ثواب لفظ مقدر دې. يعنی ﴿ثواب الأعمال بالنيات﴾ د عملونو ثواب په نيت باندې موقوف دې.

الجواب ◉ ددے ځواب دا دې. چې د حکم نه مراد عام دې. که دنيوی وی او که اخروی وی. ځکه چې ددے نه موږ اخروی حکم واخلو. په دے څه دليل نشته. اوکه دا اومنلے شی. چې د حکم نه مراد اخروی حکم يعنی ثواب مراد دې. يا د ،،ثواب،، لفظ مقدر اومنلے شی. نوبيا هم بغير د نيت نه د عباداتو عدم صحت ثابتيږی. ځکه چې په عبادات محضه کي صرف ثواب مقصود وی. اودا قاعده ده. چې د يو شی مقصود باطل شی. نوهغه شی باطليږی. نوچې د نيت د نشتوالی د وجې ثواب نه ملاويږی. نولکه چې بيخی شته نهٔ. نو ددے وجې د لمونځ د صحت لپاره نيت شرط اوګرځولے شو.

| |
|---|
| وَالْمُتَقَدِّمُ عَلَى التَّكْبِيرِ كَالْقَائِمِ عِنْدَهُ اوکوم نيت چې ئې د تکبيرنه وړاندې کړې وی. نوهغه ګويا چې قائم دی إِذَا لَمْ يُوجَدْ خو په دے شرط چې داسې عمل په مينځ کي رانشی مَا يَقْطَعُهُ چې دا (اتصال) قطع کړی وَهُوَ عَمَلٌ لَا يَلِيقُ بِالصَّلَاةِ اودا به داسې عمل وی. چې د لمونځ مناسب نه وی |

1) اخرجه الخارى فى بدء الوحي رقم ۱ ومسلم فى الامارة رقم ۱۵۵ وابوداد فى الطلاق باب ۱۱ والترمذى فى فضائل الجهاد باب ۱۶ والنسائى فى الطهارة باب ۵۹ وابن ماجه فى الزهد باب ۲۶)_



تشريح:- كون النية مقدماً على التكبير ◉ والمتقدم على التكبيرالخ ددے ځائې نه د نيت د وخت په اړه کي کلام کوی. فرمائی. که د تکبير د وخت نه وړاندې ئې نيت اوکړلو. نو دا داسې ده. لکه چې د تکبير په وخت کي ئې نيت کړې وی. لنډيز دا ده. چې اصل خو دا دې. چې نيت د تکبير سره متصل او يوځائې وی. خوکه د تکبير نه وړاندې ئې نيت اوکړلو. او دنيت او تکبيرتحريمے په مينځ کي داسې عمل رانشی. چې د لمونځ سره منافي وی. اولمونځ پرے ماتيږی. نوهم صحيح دي.

صورة عدم المنافى ◉ مثلاً دامام محمد رحمه الله نه روايت دې. که د اودس په وخت کي دا نيت اوکړی. چې د ماپښين لمونځ به د جماعت سره کوم. اود اودس نه روسته په داسې عمل کښې بوخت نه شو. چې د لمانځه سره منافي وی. اوجمات ته لاړلو. اوڅه وخت چې په لمانځه پيل کوی. نو په هغه وخت کښې ورته نيت ياد نه وی. نوهم په دے نيت سره به دده لمونځ جائز شی. دغه ډول د شيخينو رحمهما الله نه هم نقل دی.

صورة المنافى ◉ اوکه د نيت او تکبيرتحريمے په مينځ کي عمل منافي يا داسې عمل چې لمونځ پرے ماتيږی. واقع شی. نودا نيت نه کافي کيږی. مثلا د اودس په وخت کي ئې د امام سره د ماپښين د لمونځ نيت اوکړلو. بيا په خوراك يا څکاك کي بوخت شو. نو اوس به دے دوباره نيت کوی. لومړي نيت کافي نه دي.

| |
|---|
| وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْمُتَأَخِّرَةِ مِنْهَا عَنْهُ اوکوم نيت چې د تکبير نه روستو وی هغه معتبر نه دې لِأَنَّ مَا مَضَى ځکه چې کومه برخه وړاندې اوشی لَا يَقَعُ عِبَادَةً لِعَدَمِ النِّيَّةِ نود نيت د نيشتوالی د وجې به هغه عبادت نه وی |

تشريح:- عدم اعتبار النية بعدالتكبير ◉ اوکه نيت ئې د تکبيرتحريمه نه روسته اوکړلو. نوپه شريعت کي دا معتبر نه دې.

دليله ◉ ځکه چې کومه برخه د تکبير نه روسته او د نيت نه وړاندې ده. هغه د نيت د نشتوالی د وجې عبادت نه شو. اوچونکه د لمانځه نورے حصې د لمانځه په اولنو برخو باندې موقوف وی. نوهغه هم عبادت نه شو. نوځکه موږ وايو. که د تکبير تحريمے نه روسته ئې نيت اوکړلو. نو هغه نه صحيح کيږی.

اعتبارالنية بعدالتكبير عندالكرخى رحمه الله ◉ امام کرخی رحمه الله فرمائی. چې د تکبير نه روسته هم نيت معتبر دې.

الاقوال الثلاثة في صحة النية بعدالتكبير ◉ پاته شوه دا خبره چې د تکبير نه روسته ترکومے پورې معتبر دې. نو په دے کي اختلاف دې. بعضو وئيلی دی. چې د ثناء د ختميدو پورې نيت کولې شی. ② اود بعضو رائې ده. چې تعوذ پورې نيت معتبر دې. اوبعضو وئيلی دی. چې درکوع نه سر پورته کاوه پورې نيت کولې شی

| |
|---|
| وَفِي الصَّوْمِ جُوِّزَتْ لِلضَّرُورَةِ او په روژه کي د اړتيا د وجې جائز اوګرځولې شو. |

تشريح:- وجه عدم ضرورة النية في اول جزءمن الصوم ◉ د روژے نيت د دے په خلاف دې. ځکه چې دا ضروری نه ده. چې نيت دے د هغې په اولنی جزء کي موجود وی. بلکه که د سهار صادق نه روسته ئې نيت اوکړلو. نوهم جائز دې. ځکه چې د سهار راختو وخت د خوب او د غفلت وخت دې. نوکه د روژے لپاره په اول جزء کي نيت شرط کړې شی. خلګ به په تکليف کي واقع شی. او په شريعت کي تنګی او حرج د خلګو نه لرې کړې شوې دې. نوځکه د روژے په اول جزء کي نيت شرط اونه ګرځيدلو. او پاته شو لمونځ نودا د بيدارئ په حالت کي پيل کيږی. نو په اول وخت يعنی د تکبير تحريمے په وخت کي د نيت په شرط ګرځولو کي څه حرج نه وو. (نوځکه نيت د لمانځه په پيل کي شرط اوګرځولې شو)

## د نيت تعريف اوپه نفلو او فرضو کي د نيت حکم

| |
|---|
| وَالنِّيَّةُ هِيَ الْإِرَادَةُ او نيت د ارادے نوم دې وَالشَّرْطُ او شرط د نيت دا دې أَنْ يَعْلَمَ بِقَلْبِهِ چې په خپل زړه کي ورته پته لګی أَيَّ صَلَاةٍ يُصَلِّي چې کوم لمونځ کوی؟ |

تشريح:- تعريف النية ◉ والنية هي الارادةالخ ددے ځائې نه د نفس نيت بيان دې. فرمائی. چې نيت دارادے نوم دې. يعنی د خاص ارادے نوم نيت دې. اوهغه په دے مقام کي دالله تعالی لپاره لمونځ کول دی.

**شرط النية** ۞ اود نيت لپاره شرط دا دي. چي په زړه كي پوهيږي. چې دا كوم لمونځ كوم. او ددے لپاره نښانه دا ده. چې كله دده نه پوښتنه اوشي. چې كوم لمونځ كوې. نو بغير سوچې ځواب وركولي شي. چې فلانے لمونځ كوم. اوكه ده په ځواب كي توقف اوكړلو. نو معلومه شوه. چې ده ته دا علم نشته. چې دا كوم لمونځ دي.

**أَمَّا الذِّكْرُ بِاللِّسَانِ** پاته شو په ژبه باندې نيت كول **فَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ** نو دے ته څه اعتبار نشته **وَيَحْسُنُ ذَلِكَ** اوښه خبره ده **لِاجْتِمَاعِ عَزِيمَتِهِ** ځكه چې د زړه د ارادے د جمع كاوه سبب دي

**تشريح:- حكم التلفظ بالنية** ۞ اوپه ژبه باندې د نيت تلفظ كول نو د لمانځه د جواز لپاره د دے څه حيثيت نشته. خو په ژبه باندې نيت ووئيل ښه خبره ده. ددے لپاره چې د زړه اراده جمع او مضبوطه شي.

**ثُمَّ إِنْ كَانَتِ الصَّلَاةُ نَفْلًا** بيا كه نفلي لمونځ وي **يَكْفِيهِ مُطْلَقُ النِّيَّةِ** نو مطلق نيت ورته كافي دي **وَكَذَا إِنْ كَانَتْ سُنَّةً فِي الصَّحِيحِ** اودغه ډول په صحيح قول كي كه سنت وي

**تشريح:- حكم مطلق النية في غير الفرض والقولان فيه** ۞ **ثم ان كانت الصلاة نفلاً الخ** ددے ځائې نه دنيت د كيفيت بيان كوى. لنډيز دا ده. چې په كوم لمونځ كي پيل كوى. هغه به يا فرض وي يا غيرفرض. كه غير فرض وي. نو په هغې كي مطلق نيت كافي دي. ① كه نفل وي اوكه سنت وي. صحيح قول هم دا دي. ځكه نيت په عادت او عبادت كي د امتياز لپاره وي. اودا مقصد په مطلق نيت سره حاصليږي. نو مطلق نيت كافي دي. ② او بعضو رائې ده. چې كه سنت كوى. نو د رسول الله ﷺ د سنتو نيت كول ضروري دى. ځكه چې سنت مطلق نيت باندې يو زياتي صفت دي. نو د دے زياتي صفت نيت كول ضروري دي. مطلق نيت به ورله كافي نه وي.

**وَإِنْ كَانَتْ فَرْضًا** اوكه فرض وي **فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْيِينِ الْفَرْضِ** نو د فرض معين كول ضروري دى **كَالظُّهْرِ مَثَلًا** لكه د ماپښين مثلاً **لِاخْتِلَافِ الْفُرُوضِ** ځكه چې فرائض مختلف دى

**تشريح:- حكم النية في الفرض للمنفرد** ۞ اوكه دغه لمونځ فرض وي. نو ددے هم دوې (دوه) صورتونه دى. يو دا چې منفرد ادا كوې. اوبل دا چې دامام په اقتداء كي ئې ادا كوى. نوكه دے منفرد وي. نود لمونځ متعين كول ضروري دى. مثلاً د ماپښين په لمانځه پيل كوى. نود ماپښين متعين كول ضروري دى. صرف دومره وئيل كافي نه دى. چې ما د فرضو نيت اوكړلو. ځكه چې فرض مختلف دى. نو په دے كي امتياز پكار دى.

**(وَإِنْ كَانَ مُقْتَدِيًا بِغَيْرِهِ** اوكه مونځګذار په بل پسې اقتداء كونكې وى **يَنْوِي الصَّلَاةَ وَمُتَابَعَتَهُ)** نوهغه به د لمانځه او د بل دتابعدارئ نيت هم كوى **لِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ فَسَادُ الصَّلَاةِ مِنْ جِهَتِهِ** ځكه چې په مقتدي باندې د امام د اړخه فساد راځى **فَلَا بُدَّ مِنَ الْتِزَامِهِ** نود متابعت التزام ضروري دي.

**تشريح:- شرط نية المأموم** ۞ په آخرى عبارت كي د دوهم صورت بيان دي. يعنى كه فرض لمونځ د بل چا په اقتداء كي كوى. نو د پورتنى نيت نه علاوه به د امام د تابعدارئ نيت هم كوى. ځكه چې په مقتدي باندې د امام د اړخه فساد راځى. يعنى كه د امام لمونځ فاسد شي. نو د مقتدي لمونځ به هم فاسديږي. نوځكه د متابعت نيت ضروري شو. ددے لپاره چې كوم فساد راځى. نو د هغې نقصان ده ته د دے وجې رسى. چې ده په خان متابعت لازم كړې وى.

## په مانځه كې قبلې ته د مخ كولو حكم

**قَالَ (وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ)** وقبلې اړخ ته به مخ كړى **لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ځكه چې الله تعالى فرمائيلى دى **{فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ}** تاسو واړوئ. خپل مخونه اړخ د مسجد حرام ته

**حل اللغة** ① **فولوا، وليتولية**: واروسته ګرځيدل ② **شطر، جهت**: اړخ

**تشريح:- شرطية استقبال القبلة ودليله** ۞ قبلې ته مخ كول هم د لمونځ په شرطونو كي يوشرط دي. دليل دالله تعالى



ارشاد دي. ﴿ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ﴾ وجه د استدلال دا ده. چې الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا ﴾ موږ به تا، ستا خوښے قبلې اړخ ته واړوو. او بيا ئے مسجد حرام ته د مخ اړولو حكم اوكړلو.

**ثُمَّ مَنْ كَانَ بِمَكَّةَ** نوكوم كس چې په مكه كې وى **فَفَرْضُهُ إِصَابَةُ عَيْنِهَا** نو د هغه فرض دا دى. چې عين كعبے ته مخ كړى

**تشريح:- صورة استقبال عين الكعبة** ۞ بيا دلمانځه دوې (دوه) صورتونه دى. يا خو به د؛ په مكه مكرمه كي ادا كوى. اويا به د مكې نه بهر په بل ځائې كي ادا كوى. نو په اول صورت كي عين كعبے ته مخ كول ضروري دى.

**دليله** ځكه چې نبى ﷺ به په مسجد حرام كي لمونځ كولو. نو عين كعبے ته به ئې مخ كولو. اوهم دا معمول د صحابه كرامو ﷺ او تابعينو ﷺ هم پاتې شوې دے. لكه چې په دے باندې اجماع ده.

**وَمَنْ كَانَ غَائِبًا** اوچې څوك د مكې نه بهر وى **فَفَرْضُهُ إِصَابَةُ جِهَتِهَا** نو دهغه فرض دا دى. چې اړخ د كعبے ته مخ كړى **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا قول صحيح دي. **لِأَنَّ التَّكْلِيفَ بِحَسَبِ الْوُسْعِ** ځكه چې تكليف په اندازه د توان وى

**حل اللغة** ① **وسع**: وسعت كولاووالې

**تشريح:- صورة استقبال جهة القبلة** ۞ او په دوهم صورت كي قبلې اړخ ته مخ كول فرض دى.

**دليله** ۞ دليل ئې دا دي. چې نبى ﷺ او مسلمانان په مدينه منوره كښے وو. نو الله تعالى هغوى ته مسجد حرام اړخ ته د مخ كاوه حكم كړې وو. كعبے اړخ ته دمخ كولوحكم ئې نه وو كړې. نومعلومه شوه. چې كوم سړې د مكې نه بهر وى. دهغه لپاره عين كعبے ته مخ كول فرض نه دى. ځكه چې الله تعالى بندګان د هغوى د توان مطابق مكلف كوى. دالله تعالى ارشاد دے ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾

## د ويريدونكي سړي د قبلې حكم

**(وَمَنْ كَانَ خَائِفًا** اوكوم سړې چې په ويره كي وى **يُصَلِّي إِلَى أَيِّ جِهَةٍ قَدَرَ)** نو چې كوم اړخ ته قادر وى. لمونځ دے كوى **لِتَحَقُّقِ الْعُذْرِ** ځكه چې عذر متحقق وى **فَأَشْبَهَ حَالَةَ الِاشْتِبَاهِ** نود اشتباه د حالت په څير شو.

**حل اللغة** ① **تحقق**: ثابت كيدل ② **عذر**: تنګى تكليف

**تشريح:- حكم استقبال القبلة للخائف** ۞ مسئله دا ده. كه يوكس د ويرے د وجې قبلې ته په مخ كاوه قادر نه وى. نو كوم اړخ ته چې قادر وى. هغه اړخ ته دے مخ كوى. ويره كه مالي وى يا جاني وى. كه د دشمن وى اوكه د ځناور وى. اوكه د ډاكو وى. مثلاً چې يو كس سره دا ويره وى. كه زه اوخوزيدم. او قبلې ته مے مخ كړلو. نو دشمن ته به پته اولګى. نو دهغه لپاره په ناسته يا په ملاسته چې څنګه ممكنه وى. هغې اړخ ته مخ كول جائزدى. لمونځ دے اوكړى.

**حكم استقبال ا لقبلة للمريض** ۞ هم دا حكم د هغه بيمار دي. چې قبلې اړخ ته په اوړيدو باندې قادر نه وى. او داسې څوك هم نه وى. چې دے قبلې ته واړوى. دغه ډول كه يو كس په كښتۍ كي ناست وى. او كښتۍ ماته شوه. اوهغه په يوه تخته پاتې شو. اوهغه سره ويره وى. كه قبلې ته مخ كوى. نو ډوبيږى. نودده لپاره جائز دى. چې كوم اړخ ته ممكن وى. هغه اړخ ته دے لمونځ كوى.

**دليلهما** ۞ دليل دا دي. چې د اشتباه دحالت په شان دده عذر هم متحقق دے. نو دده لپاره به حقيقةً استقبال د قبلې شرط نه وى.

## د مشتبه قبله . سړي د قبلې حكم

**(فَإِنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ** نوكه په مونځګذار قبله مشتبه شوه **وَلَيْسَ بِحَضْرَتِهِ** اوحال دا وو. چې څوك موجود هم نه وو **مَنْ يَسْأَلُهُ عَنْهَا** چې دهغه نه د قبلې پوښتنه اوكړى **اجْتَهَدَ** نواجتهاد دے كوى (اولمونځ دې كوى)

**حل اللغة** ① **اشتبهت، اشتبهاشتباهاً**: مشتبه كيدل، په شك كي پريوتل ② **اجتهدا اجتهاداً**: كوښښ كول ③

استخبار پوښتنه کول معلومول

**تشریح:- متى يجب الاستقبال بالتحرى؟** ﴿صورت د مسئلې دا دې. که په یوکس باندې د قبلې اړخ مشتبه شی. او ور سره داسې څوك هم نه وی. چې هغه د قبلې دجهت نه خبر وی. اودهغه نه پوښتنه اوکړی. نو ددے سړی لپاره تحری (اجتهاد) کول پکار (واجب) دی. نوچې کوم اړخ ته ئې غالب گمان راغلو. هغه اړخ ته دے لمونځ اوکړی.

**صورة عدم جواز التحرى** ﴿مصنف فرمائی. ﴿وليس بحضرته من يسأله عنها﴾ ددے نه معلومه شوه. که یو کس د قبلې خودونکې موجود وی. نودهغه نه دے پوښتنه اوکړی. په دے صورت کې به تحری جائز نه وی. او فرمائی. ﴿اجتهد﴾ ددے نه معلومه شوه. چې بغیر د تحری نه لمونځ نه کیږی. د تحری د جواز لپاره

﴿لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رِضْوَانُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ تَحَرَّوْا﴾ خکه چې صحابه کرامو تحری کړې وه ﴿وَصَلَّوْا﴾ اولمونځ ئې کړې وو ﴿وَلَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ﴾ (۱) او نبی ﷺ په هغوی باندې انکار نه وو کړې.

**تشریح:- دليله** ﴿دلیل دا دې. چې یوځل په صحابه کرامو باندې قبله مشتبه شوه. نو هغوی تحری اوکړله. اولمونځ ئې اوکړلو. بیائې دا واقعه رسول الله ﷺ ته ذکر کړله. نو نبی ﷺ پرے څه انکار اونکړلو.

﴿وَلِأَنَّ الْعَمَلَ بِالدَّلِيْلِ الظَّاهِرِ وَاجِبٌ﴾ او ددے وجې به په ظاهری دلیل باندې عمل کول واجب وی ﴿عِنْدَ انْعِدَامِ دَلِيْلٍ فَوْقَهُ﴾ چې د هغې نه قوی دلیل نه وی ﴿وَالْاِسْتِخْبَارُ فَوْقَ التَّحَرِّي﴾ او پوښتنه کول د تحری نه قوی دي.

**تشریح:- التحرى بعدالاستخبار** ﴿اول خو دا ضروری ده. چې د چانه پوښتنه اوکړی. اودا پوښتنه کول خکه ضروری دی.) چې پوښتنه کول د تحری نه قوی دی. نو چې ترکومے پورې پوښتنه کول ممکن وی. ترهغه وخته پورې تحری کول ناجائز ده. او که خبرورکونکې څوك موجود نه وی. اوپوښتنه کول د تحری نه اوچت دی. نو تر څو پورې چې پوښتنه کول ممکن وی. نوترهغه وخته پورې تحری کول جائزنه ده.

## د مونځ کولو نه روسته په استقبال د قبله کې د غلطئ علم

﴿فَإِنْ عَلِمَ أَنَّهُ أَخْطَأَ بَعْدَ مَا صَلّٰى﴾ اوکه بیا ورته دلمانځه نه روسته معلومه شوه. چې دے غلط شوې دې ﴿لَا يُعِيْدُهَا﴾ نو اعاده پرے نشته

**حل اللغة:** ① علم علماً(س): پیژندل ② اخطا اخطاءً: غلطی کول ③ يعيدها، اعاد اعادةً: واروسته کول

**تشریح:- ظهورالخطافي جهة القبلة** ﴿صورت د مسئلې دا دې. که یوکس باندې د قبلې اشتباه راغلے وه. او هغه د قبلې د اړخ معلومولو لپاره تحری اوکړه. اولمونځ ئې اوکړلو. د لمانځه نه روسته ورته معلومه شوه. چې د قبلې اړخ ترے خطا شوې وو. یعنی د قبلې نه علاوه بل اړخ ته ئې لمونځ کړې وو.

**عدم الاعادة عندالاحناف** رحمهم الله ﴿نو په دے صورت کې په ده باندې د لمونځ اعاده نشته. خکه چې داسې وخت کې شرعی قبله جهت د تحری وی. او هغه د شرعی حکم مطابق لمونځ اوکړلو.

﴿وَقَالَ الشَّافِعِيُّ﴾ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمایي ﴿يُعِيْدُهَا إِذَا اسْتَدْبَرَ﴾ که قبلې ته ئې شاه کړی وی. نو اعاده پرے شته ﴿لِتَيَقُّنِهِ بِالْخَطَاءِ﴾ خکه چې ده ته د غلطئ یقین اوشو.

**حل اللغة:** ① استدبر، استدباراً: شاکول

**تشریح:- الاعادة عندالشافعی** رحمه الله ﴿امام شافعی فرمائی. که په تحری سره ئې لمونځ کړې وی. اودا ورته معلومه شی. چې قبلې اړخ ته ئې شاه وه. نود لمونځ اعاده واجب ده. خکه چې په دے صورت کې غلطی په یقین سره ثابته شوه.

۱) من حديث عامربن ربيعة رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى تفسيرسورة البقرة باب ۳ رقم ۲۹۵۷ وابن ماجه فى الاقامة باب ۶۰)۔



﴿وَنَحْنُ نَقُوْلُ﴾ او موږ وایو ﴿لَيْسَ فِي وُسْعِهِ الَّا التَّوَجُّهُ إِلٰى جِهَةِ التَّحَرِّي﴾ چې دده په وس کې د جهت تحری نه سوا بل څه نه وو ﴿وَالتَّكْلِيْفُ مُقَيَّدٌ بِالْوُسْعِ﴾ او تکلیف په قدر د توان وی.

**حل اللغة:** ① وسع: وسعت کولاووالې ② جهت: اړخ

**تشریح:- الجواب من الاحناف** رحمهم الله ﴿خو زموږ د اړخه ځواب دا دې. چې دده په وس کې د دے نه سوا بل څه نه وو. چې د تحری اړخ ته ئې مخ کړې وې. او تکلیف په قدر د توان وی. نوځومره چې د ده په توان کې وه. هغه ئې اوکړله. نوخکه پرے اعاده د لمانځه نشته.

## د مانځه په مهال کې د قبلې په طرف پوهیدل

﴿فَإِنْ عَلِمَ ذٰلِكَ فِي الصَّلٰوةِ﴾ اوکه متحری ته په قبله کې د غلطئ پته د لمانځه په مهال کې اولگیدله ﴿اسْتَدَارَ إِلَى الْقِبْلَةِ﴾ نو قبلې اړخ ته دے اوگرځی (اوبناء دې کوی په هغې باندې)

**تشریح:- الانصراف الى جهة الكعبة لتغيرالتحرى** ﴿که یوکس په تحری سره لمونځ پیل کړی وی. اوهغه ته د لمانځه په مهال کې معلومه شوه. چې زه د قبلې په اړخ کې خطا شوې یم. نودا کس دے د لمانځه په مهال کې قبلې اړخ ته اوگرځی

﴿لِأَنَّ أَهْلَ قُبَاءٍ لَمَّا سَمِعُوْا بِتَحَوُّلِ الْقِبْلَةِ﴾ خکه چې اهل قبا کله د تحویل قبلې خبر واوریدلو ﴿اسْتَدَارُوْا كَهَيْئَتِهِمْ فِي الصَّلٰوةِ﴾ نو هغوی په لمانځه کې چې په کوم حالت باندې وو. اوگرځیدل ﴿وَاسْتَحْسَنَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ﴾ (۱) نبی ﷺ دا عمل ښه اوگڼړلو

**حل اللغة:** ① استحسن استحساناً: ښه گڼړل ② تحول، تحولاً: گرځیدل ③ مؤدى: اداکړې شوې

**تشریح:- دليله** ﴿دلیل دا دې. چې اهل قبا ته کله په لمانځه کې دا معلومه شوه. چې قبله بدله شوه. یعنی د بیت المقدس په ځائې خانه کعبې ته د مخ گرځولو حکم اوشو. نو په هم په لمانځه کې د رکوع په حالت کې قبلې اړخ ته اوگرځیدل. اوبیا چې کله نبی ﷺ ته ددے علم اوشو. نو هغوی د دوی تعریف اوکړلو. انکار ئې اونکړلو.

﴿وَكَذَا إِذَا تَحَوَّلَ رَأْيُهُ إِلٰى جِهَةٍ أُخْرٰى﴾ اودغه ډول که په لمانځه کې دده رائې بل اړخ ته واوریدله ﴿تَوَجَّهَ إِلَيْهَا﴾ نوهغه اړخ ته دے اوگرځی ﴿لِوُجُوْبِ الْعَمَلِ بِالْاِجْتِهَادِ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُ﴾ خکه چې په پاته لمونځ کې په ده باندې د اجتهاد مطابق لمونځ کول واجب دي ﴿مِنْ غَيْرِ نَقْضِ الْمُؤَدّٰى قَبْلَهُ﴾ بغیر د هغه حصې د ماتولو نه کومه چې ئې کړې وی.

**تشریح:- حكم تغيرجهة التحرى في الصلاة** ﴿او دا حکم په هغه صورت کې هم دے چې کله د لمانځه په مهال کې دده رائې بدله شی. یعنی کلکه شی. نوهغه اړخ ته دے اوگرځی. تردې که په گرځیدو کې ئې په قصد څه روستووالے اوکړلو. نو لمونځ ئې ماتیږی. خکه چې د لمانځه په پاته برخه کې په ده باندې د اجتهاد مطابق عمل کول واجب وو. بغیرد ماتولو د هغه برخې نه چې وړاندې ئې کړې وه

## په توره چاغه کې د امام او قوم مختلفو طرفونو ته دمونځ کولو حکم

﴿قَالَ﴾ فرمائی ﴿وَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فِي لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ﴾ اوکه یوکس په توره چاغه کې یو قوم ته امامتی اوکړله ﴿فَتَحَرَّى الْقِبْلَةَ﴾ نوامام دقبلې لپاره تحری اوکړله ﴿وَصَلّٰى إِلَى الْمَشْرِقِ﴾ اومشرق اړخ ته ئې لمونځ اوکړلو ﴿وَتَحَرّٰى مَنْ خَلْفَهُ﴾ او خلګو تحری اوکړله کوم چې د ذکرشوی امام شاه ته وو ﴿فَصَلّٰى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ إِلٰى جِهَةٍ﴾ نو په دوی کې هر یوکس یو اړخ ته لمونځ اوکړلو ﴿وَكُلُّهُمْ خَلْفَهُ﴾ وحال دا وو. چې دا واړه د امام شاه ته وو ﴿وَلَا يَعْلَمُوْنَ﴾ اودا ئې نه

۱)من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخارى فى الصلاة باب ۳۲ ومسلم فى المساجد رقم ۳ والنسائى فى الصلاة باب ۲۴ )

پيژندل **مَا صَنَعَ الإِمَامُ** چې امام څه اوکړلو **أَجْزَأَهُمْ** نود دوی لمونځ جائز دي

**حل اللغة** ① ام امامة: امامت کول ② مظلمة: چاغه ③ تحري‌تحريا: کوښښ کول ④ صنع صنعاً (ف): کول جوړول ⑤ خطا: غلطي ⑥ ترک: پريښول

**تشريح:- حكم الصلاة في الظلمة الى جهة التحری** صورت د مسئله دا دي. چې يو کس په توره چاغه کي يوقوم ته امامتي ورکړۀ. که په يوکور کي ئې ورکړې وی. يا په ځنګل کي يا ئې په داسې ځائې کي امامتي ورکړه. چې څوک موجود نه وو. چې د هغه نه ئې د قبلې د اړخ پوښتنه کړې وې. نوامام په خپلے تحری سره د قبلې اړخ مقرر کړلو. اومشرق اړخ ته ئې مخ کړې. او لمونځ ئې اوکړلو. اوکوم خلګ چې په امام پسې روستو ولاړ وو. هغوی هم تحری کړې وی. نو په دوی کي هر يو بيل بيل اړخ ته مخ کړلو. يعني چې کوم اړخ ته د هغه تحری واقع شوې وی. اوحال دا وی. چې دا واړه د امام شاه ته وی. يوهم په کښے د امام نه وړاندې نه وی. اودا ورته معلومه نه وی. چې امام څه اوکړلو. يعني کوم اړخ ته ئې مخ کړې دې

**السوال** که دلته دا اعتراض اوشی. چې لمونځ خو د شپې دې. نو د قراءت په جهر سره ولے دامام اړخ نه پيژني.

**الاجوبة** نوځواب دا دې. ① چې کيدې شی. قضاء لمونځ وی. ② يا ترے جهر هير شوې وی. ③ يا د آواز نه صرف دومره معلوميږی. چې امام وړاندې دې. او دا نه معلوميږی. چې مخ ئې کوم اړخ ته دې. ④ يا د دشمنانانو دويرے يا د ډاکوانو د ويرے امام جهر اونکړلو. اوټولو د اخفاء کوښښ اوکړلو. بهر حال په دے صورت کي د دوی لمونځ جائز دې. ځکه چې کوم اړخ ته دوی تحری کړې وه. هغه اړخ ته ددوی لمونځ شوې دې. اوهم دا ضروري وه.

**لِوُجُودِ التَّوَجُّهِ إِلَى جِهَةِ التَّحَرِّي** ځکه چې د تحری اړخ ته دوی د مخ وجود راغلے دې **وَهَذِهِ الْمُخَالَفَةُ غَيْرُ مَانِعَةٍ** او دا مخالفت مانع نه دې **كَمَا فِي جَوْفِ الْكَعْبَةِ** لکه په کعبه دننه مسئلي په څير

**تشريح:- عدم ضرر الاختلاف عن جهة الامام** او پاته شو دا مخالفت چې د امام مخ يو اړخ ته وی. او د قوم بل اړخ ته. نو دا د لمانځه د صحت لپاره مانع نه دې. لکه په کعبه کي دننه دلمونځ کاوه په مسئله کي چې دی. چې کله خلګ په کعبه کي دننه په جماعت سره لمونځ کوی. او دامام نه شاو خوا اقتداء اوکړی. ① نوکوم کس چې خپله شاه د امام د شاه اړخ ته کړه. ② يا ئې خپل مخ د امام شاه اړخ ته کړۀ. نود ده لمونځ جائز دې. ③ اوچاچې خپل مخ د امام د مخ اړخ ته کړۀ. نوبيا هم جائز دې. خو مکروه دې. چې د ده او د امام په مينځ کي ستره نه وی. ④ خوچا چې خپله شاه د امام د مخ اړخ ته کړه. نود ده لمونځ جائز نه دې. ⑤ اوڅوک چې د امام ښی يا چپه اړخ ته وی. دهغه لمونځ جائز دې. خو په دے شرط چې کوم ديوال اړخ ته دامام مخ وی. د هغه اړخ په صف کي څوک د امام په نسبت قبلې ته زيات نزدے نه وی.

**(وَمَنْ عَلِمَ مِنْهُمْ بِحَالِ إِمَامِهِ** اوپه دے مقتديانو کي چې چاته د خپل امام حال معلوم شو **تَفْسُدُ صَلَاتُهُ)** نود هغه لمونځ فاسد شو **لِأَنَّهُ اعْتَقَدَ أَنَّ إِمَامَهُ عَلَى الْخَطَإِ** ځکه چې ده د خپل امام د غلطۍ اعتقاد اوکړلو

**تشريح:- حكم صلاة من علم بحال الامام** اوپه دے مقتديانو کي چې چا ته د خپل امام د حالت پته اولګيدله. نود هغه لمونځ فاسد شو. ځکه چې هغه کوم اړخ ته تحری کړې وه. اومخ کړې ئې وو. نو ده دا يقين اوکړلو. چې زما اړخ صحيح دې. او د نورو غلط دې. (اوامام هم په خلګو کښے ګډ دې.) نوپه امام پسې ئې اقتداء صحيح نشوه. ځکه چې ده په خپل امام د غلطۍ يقين اوکړلو.

**(وَكَذَا لَوْ كَانَ مُتَقَدِّمًا عَلَيْهِ)** وهم دغه ډول که دے د امام نه مخکي شو نو هم به ئې لمونځ فاسديږی **لِتَرْكِهِ فَرْضَ الْمَقَامِ** ځکه چې ده د اودريدو د مقام فرض پريښولو.



**تشريح:- حكم الصلاة امام الامام** اودغه ډول که دے د امام نه وړاندې وی. نولمونځ ئې فاسد دې. ځکه چې ده د قيام فرض ځائې يعني په کوم ځائې کښے ده ته ودريدل فرض وو. هغه پريښولو.

## باب صفة الصلاة

ژباړه:- (دا باب) د مونځ د صفت (په بيان کې) دې.

**تشريح:- الربط بما قبلها** تراوسه پورې د لمونځ د وسائلو او مقدماتو بيان وو. اوس ددے ځائې نه د مقصود يعني لمونځ ذکر کوی.

**الفرق بين الوصف والصفة** داهل لغت په نيز وصف او صفت دواړه مترادف دی. او دواړه مصدر دی. لکه ،،وعد،، او ،،دعوة،، او په متکلمينو کي زموږ د عالمانو ﷭ په نيز وصف د واصف کلام دې. او صفت هغه معنی ده. کومه چې موصوف سره قائمه وی. نو ،،زيد عالم،، د زيد وصف دې. صفت ئې نه دې. او دده علم کوم چې ده سره قائم دې. صفت دې. وصف نه دې.

**المراد من الصفة** پاته شوه دا خبره چې دلته د ،،صفت،، نه څه مراد دی. نو په دے اړه کي اختلاف دې. ① او بعضو وئيلی دی. چې دلته مضاف محذوف دې. تقديری عبارت دا دې. «باب صفة أجزاء الصلاة» په دے صورت کي د صفت نه مراد کيفيت دې. يعني دا باب د لمونځ د اجزاؤ د کيفيت، وجوب، اوفرضيت وغيره په بيان کښے دې. ② اود بعضو خيال دا دې. چې د صفت نه مراد هغه امور دی. کوم چې په دے باب کي مذکور دی. يعني واجبات، فرائض، سنن او مندوبات نو په دے صورت کي د صفت اضافت ،،صلاة،، ته د ،،اضافت جزء الى الکل،، د قبيلے څخه دې. ځکه چې په صفات مذکوروؤ کي هر يوصفت د لمانځه جزء دې. ③ صاحب د ،،عنايه،، فرمائی. چې ظاهره دا ده. چې د صفت نه مراد د لمانځه هغه هيئت دې. کوم چې ددے د ارکانو او عوارضو نه حاصل وی

### د مونځ فرائض

**فَرَائِضُ الصَّلَاةِ سِتَّةٌ** دلمونځ فرائض شپږ دی

**حل اللغة** ① فرائض واحد فريضة: معنی فرض

**تشريح:- ايراد لفظ الفرائض دون الاركان** پاته شوه دا خبره چې مصنف رحمه الله ،،فرائض الصلاة،، ولے اووئيل. او ،،ارکان الصلاة،، ئې اونه وئيل. نو ددے ځواب دا دې. چې لفظ د ،،فرائض، عام دې. کوم چې ارکان او غير ارکان (شرائط) ټولو ته ګډ دې. او دلته تحريمه چې کومه مذکور ده. هغه د لمانځه رکن نه دې. بلکه د جواز صلاة شرط دې. او آخری قعده اګرچې فرض ده. خو رکن اصلی نه دې.

**دليله** او ددے دليل چې رکن اصلی نه دې. دا دې. چې آخری قعده په اولنی رکعت کي نه ده مشروع شوې بهر حال که مصنف رحمه الله د فرائض د لفظ په ځائې ،،ارکان،، ذکر کړې وې. نودا به تحريمے وغيره ته ګډ نه وو. نوځکه ئې داسې لفظ ذکر کړلو. کوم چې ټولو ته عام دې.

**تعريف الفرض والركن** فرض هغه دې. چې د هغې کول په دليل قطعی سره لازم وی. قطع نظر ددے نه چې هغه رکن وی يا شرط. او رکن هغه دې. کوم چې د لمانځه په ماهيت کي داخلی جزء وی. (بحرالرائق) اوکله هغې ته هم فرض وئيلی شی. کوم چې نه رکن وی اونه شرط.

**السوال على ايراد ،،ستة،،** دلته د قياس تقاضا دا وه. چې امام قدوری رحمه الله «فرائض الصلاة ست» فرمائيلی وې. ځکه چې د دريو نه واخله تر نهه پورې د اعدادو د استعمال قاعده دا ده. که معدود مذکر وی. نو عدد به مونث وی. اوکه معدود مونث وی. نوعدد به مذکر وی. او په دے ځائې کي (معدود) ،،فريضة،، جمع ده. او فريضة،، مونث دې. نوځکه عدد مذکر راوړل پکار وو.

**الجواب عنه** ځواب دلته فرائض د فروض په تاويل کي اخستلے شوی دی. او فروض جمع ده د فرض، او

فرض مذکر دي.نو ،،ستة،، مونث راوړل د قاعدے مطابق شو.صاحب د عنايه رحمه الله ليکلي دي.چې په خيني نسخو کي «فرائض الصلاة ست» دي.نو د دے نسخے په اعتبار سره هډو څه اشکال نه واقع کيږي.

(التَّحْرِيمَةُ) لِقَوْلِهِ تَعَالَى تحريمه خکه چې الله تعالى فرمائيلي دي( وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ .)اودخپل رب بزرګی بيان کړه. وَالْمُرَادُ تَكْبِيرَةُ الِافْتِتَاحِ او د تکبير نه مراد د لمونځ پيل کاوه نيت دي

حل اللغة* ① فکبر، کبر تکبيراً: لوئ بيانول

تشريح:- تعريف التحريمة۞ د لمانځه په فرائضو کي اول تحريمه ده.او په لغت کښے تحريمه وائی. « جعل الشئ محرما» يعني يو شی حرام ګرځول.دلته تحريمه د تکبير اولی نوم دي.خکه چې تکبير اولی هغه واړه شيان (خيزونه ) حراموی.کوم چې ددے نه وړاندې مباح وی.ددے په خلاف د نورو تکبيرونو دا حيثيت نه دي.

حيثية اطلاق التحريمة على التکبير۞ علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلي دي.چې تکبير ته تحريمه وئيل مجازی دی.خکه چې تحريم بذات خود تکبير نه دي.بلکه په دے سره تحريم ثابتيږی.او دے ته په دے حديث کي اشاره ده. « مفتاح الصلاة الطهور وتحريمها التکبير وتحليلها التسليم» (ابوداود ،ترمذی) د لمانځه کنجی خو طهور دي.او تحريم ئې تکبير دي.او ددے تحليل تسليم دي.

دلائل فرضية التحريمة۞ د تکبير تحريمے په فرضيت باندې څلور دلائل دی. ① اول په تکبير تحريمه باندې د نبی ﷺ هميشوالے کول.او بغير د ترک نه په يو شی باندې د نبی ﷺ هميشوالے کول د وجوب علامت دي. ② دويمه اجماع ده.خکه چې د نبی ﷺ د زمانے نه واخله ترنن ورځې پورې د تکبير اولی په وجوب کي د چا اختلاف منقول نه دي. ③ دريم دليل دالله تعالى قول دي.«وربك فكبر» په آيت کي ،،الله اکبر،، وئيل مراد دی.خکه چې روايت دي. « انه لما نزل قال رسول الله ﷺ الله اکبر فکبرت خديجة وفرحت وايقنت انه الوحی» يعنی کله چې دا آيت نازل شو.نو رسول الله ﷺ ،،الله اکبر،، اووئيل.حضرت خديجے رضي الله عنها هم تکبير اووئيل. او خوشحاله شوه.او يقين ئې اوکړلو.چې دا وحی ده.

طريقة الاستدلال۞ ① وجه د استدلال دا ده.چې د ټولو مفسرينو په دے اجماع ده.چې ددے نه مراد تکبير تحريمه ده. ② دغه ډول ،،کبر،، د امر صيغه ده.او د امر موجب وجوب وی.او دا خبره په اجماع سره ثابته ده.چې د لمانځه نه بهرهيڅ تکبير واجب نه دي.نو متعينه شوه.چې ددے نه د لمانځه تکبير مراد دي.

(وَالْقِيَامُ) لِقَوْلِهِ تَعَالَى. ② قيام: دالله تعالى ارشاد دي« وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ .او اودريږئ الله تعالى ته په حالت د خشوع کي»

حل اللغة* ① قيام: ودريدل

تشريح:- فرضية القيام ۞ دوهم فرض قيام دي.يعنی فرض لمونځ او وتر او کوم چې په فرضو پورې ملحق وی. مثلاً دنذر لمونځ ،په ولاړه کول فرض دی.خو په دے شرط چې په قيام او سجده کاوه باندې قادر وی.او که قيام کولې شی.خو سجده نشی کولې.نو دده لپاره په ناسته په اشاره لمونځ کول بهتر دي.

دليل فرضيته۞ د قيام د فرضيت دليل د الله تعالى ارشاد دي. قَانِتِينَ لِلَّهِ وَقُومُوا يعنی اوديږئ الله تعالى ته په حالت د خشوع يا خاموشئ کي.

معنی القنوت۞ ① د قنوت معنی اطاعت کول دی. ② او د بعضو په نيز خشوع ③ او د بعضو په نيز سکوت او خاموشی. ④ اود عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي.چې د قنوت معنی په لمانځه کي طول قيام دي.

وجه الاستدلال۞ په آيت به استدلال داسې وی.چې الله تعالى د قيام حکم کړې دي.او امرد وجوب لپاره وی.اوقيام د لمانځه نه بهر په اتفاق سره واجب نه دي.نو ثابته شوه.چې قيام په لمانځه کي واجب (فرض) دي.

(وَالْقِرَاءَةُ) لِقَوْلِهِ تَعَالَى قرات: خکه چې الله رب العزت فرمائيلي دی« فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ »..قرآن چې خومره



اسان وی.وائې

حل اللغة* ① فاقرءوا، قرء قراءةً (ف) لوستل ② تيسر تيسراً: آسانيدل

تشريح:- فرضية القراءة ودليلها۞ دريم فرض قرات دي.دليل د الله تعالى قول دي (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) وجه د استدلال دا ده.چې د قرات حکم د امر په صيغه دي.او امر دوجوب لپاره راځي.اود لمانځه نه بهر په اجماع سره قرات فرض نه دي.نو په لمانځه کي د قرات فرضيت ثابت شو.پاته شوه دا خبره چې څومره مقدار وئيل فرض دی.نو ددے په اړه کي به په ،،فصل القراة،، کي په تفصيل سره کلام راشي.

(وَالرُّكُوعُ وَالسُّجُودُ) لِقَوْلِهِ تَعَالَى او رکوع او سجود: خکه چې الله تعالى فرمائيلي دي (ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا) او رکوع کوئ.او سجده کوئ

حل اللغة* ① ارکعوا، رکع رکوعاً(ف): ټيټيدل ② اسجدوا، سجد سجوداً(ن): عاجزئ نه په مخکه ټيټيدل، دَ عبادت دَ پاره تندې په مخکه کيخودل

تشريح:- فرضية الرکوع والسجود۞ څلورم فرض رکوع او پنځم سجده ده.دليل د الله تعالى قول دي. (ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا) يعنی رکوع او سجده کوئ.

وجه الاستدلال۞ وجه داستدلال هم هغه ده.کومه چې وړاندې تيره شوه.چې د رکوع او سجود حکم د امر په صيغه دي.او امر موجب د وجوب وی.د بعضے حضراتو وينا ده.چې د اسلام په لومړنی زمانه کي به څه خلګو سجده کوله.خو رکوع به ئې نه کوله.او چا به رکوع کوله.خو سجده به ئې نه کوله.نو دوی ته حکم اوشو.چې د رکوع او سجدې سره لمونځ کوئ.

فائده* دلمونځ ارکان په کتاب الله کي متفرق مشروع کړې شوی دی.په يو آيت کي د رکوع او سجود بيان دي.او په بل کي د قرات او په بل کي د قيام وغيره

فرضية السجدة الثانية ۞ ① صاحب د ،،شرح نقايه،، ليکلي دی.ظاهره دا ده.چې دويمه سجده واجب يعنی فرض عملی دي.خکه چې د دے ثبوت په دليل قطعی سره نه دي. ② اود خينې فقهاؤ قول دي.چې د دويمې سجدې فرضيت په اجماع سره ثابت دي.ترديې که په دے دواړو کي ئې يوه پريخودله.نو لمونځ به فاسد شی.بيا فرمائی.چې په هررکعت کي تکرار د سجود امر تعبدی دي.يعنی خلاف قياس دي. ③ اوبعضو وئيلی دی.چې اوله سجده د (مالك) د حکم د تعميل لپاره ده.او دويمه سجده د ابليس د رسوا کاوه او ذليل کاوه لپاره ده.خکه چې هغه د الله تعالى د حکم باوجود د تکبر په وجه سجده نه وه کړې. ④ او د بعضو قول دي.چې اوله سجده للامر او دويمه سجده للشکر ده. ⑤ بعضو وئيلی دی.چې اوله سجده د ايمان د وجے ده.اودويمه سجده د بقائې ايمان لپاره ده. ⑥ او بعضو وئيلی دی.چې په اوله سجده د انسانی زيږيدل ابتداء اړخ ته اشاره ده.او په دويمه کي د ده حالت بقاء اړخ ته اشاره ده.لکه چې د الله تعالى قول (مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى) کي دے اړخ ته اشاره شوې ده.

(وَالْقَعْدَةُ فِي آخِرِ الصَّلَاةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ). د لمونځ په آخر کي د تشهد په مقدار قعده کول {لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حِينَ عَلَّمَهُ التَّشَهُّدَ.خکه چې نبی ﷺ کله حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته د تشهد تعليم ورکولو نو فرمائيلی ئې وو إِذَا قُلْتَ هَذَا چې کله تا دا اووئيل أَوْ فَعَلْتَ هَذَا اويا دے دا اوکړل فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ}[1] نو ستا لمونځ پوره شو.

حل اللغة* ① علمه، علم تعليما: خودل ② فعلت، فعل فعلاً (ف): کول ③ تمت، تم تماماً(ض): پوره کيدل

---

1) اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ١٧٨)_

**تشریح:- فرضية القعدة الاخيرة بقدر التشهد** ۞ شپږم فرض د تشهد په اندازه آخری قعده ده. یعنی دومره اندازه باندې کښېنستل فرض دی. چې په هغې کې د «التحيات نه عبده ورسوله» پورې وئیل ممکن وی

**الدليل الاول لفرضيتها** ۞ دلیل دا دې. چې امام احمد امام ابوداود او امام طحاوی رحمهم الله دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت کوی. چې «أن النبي ﷺ اخذه بيده وعلمه التشهد» بیا د حدیث په آخر کې دی. «إذا قلت هذا أو قضيت هذا فقد قضيت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم وإن تقعد فاقعد» علامه مرغینانی رحمه الله دا الفاظ نقل کوی. «إذا قلت هذا أو فعلت هـذا فقـد تمـت صـلاتك» یعنی نبی ﷺ ابن مسعود ﷺ د لاس نه اونیولو. او د تشهد تعلیم ئې ورته ورکړلو. او په آخر کې ئې ورته اوفرمائیل. کله چې تا دا اووئیل. یا دې دا اوکړل. نو ستا لمونځ پوره شو. که ودریدل غواړې. نو اودریږه. او که کښېنستل غواړې. نو کینه. هم ددې په معنی

عَلَّقَ التَّمَامَ بِالْفِعْلِ نبی ﷺ د لمونځ پوره کیدل د فعل سره معلق کړلو قَرَأَ أَوْلَمْ يَقْرَأْ (خواه) که لوستل ئې کړې وی. او که نه وی.

**تشریح:- وجه الاستدلال** ۞ په دې حدیث به استدلال داسې وی. چې د الله تعالی خوږ پیغمبر ﷺ د لمونځ پوره کیدل د «قعود مع قراءت التشهد او قعود بدون قـراءت الـتـشهد» پورې معلق کړې دې. ځکه چې د «إذا قلت هذا» معنی دا ده. که تا په قعده کې تشهد اووئیل. ځکه چې د تشهد لوستل د قعود نه بغیر معتبر نه دې. او د «او قضيت هذا» یا «او فعلت هذا» معنی ده. چې یا تا نفس قعود اوکړلو. یعنی کښېنستل موجود شو. خو تشهد موجود نشو. نو ستا لمونځ پوره شو. حاصل دا دې. چې دلمونځ پوره کیدل په قعود پورې موقوف دې. که څه ئې وئیلی وی او که نه، نو معلومه شوه. چې د تشهد په اندازه باندې کښېنستل فرض دی.

**الدليل الثانی لفرضيتها** ۞ دغه ډول عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما د نبی ﷺ نه روایت کوی. «أنه قـال إذا رفع رأسه من السجدة الأخيرة قعد قدر التشهد ثم أحدث فقد تمت صلاته» نبی ﷺ فرمائیلی دی. چې کله دې د آخری قعدې نه خپل سر اوچت کړی. او د تشهد په اندازه باندې کینی. او بیا دې بې اودسه شی. نو دده لمونځ پوره شو.

**وجه الاستدلال** ۞ په دې حدیث کې هم نبی ﷺ دلمونځ پوره کیدل د تشهد په اندازه باندې په کیناستلو پورې معلق کړې دې. نو ددې نه هم ثابته شوه. چې د تشهد په اندازه کښېنستل فرض دی. (حاشیه شرح نقایه از شیخ الادب)

## د مونځ واجبات

قَالَ فرمايي «وَمَا سِوَى ذَٰلِكَ» اوچې کوم افعال د دې نه سوا دی. «فَهُوَ سُنَّةٌ» هغه سنت دی أَطْلَقَ اسْمَ السُّنَّةِ قدوری رحمه الله سنت مطلق ذکر کړلو وَفِيهَا وَاجِبَاتٌ حالانکه په دې افعالو کې واجبات هم دی

**حل اللغة:** ① سوی: علاوه

**تشریح:- السوال علی القدوری رحمه الله** ۞ شیخ قدوری رحمه الله فرمائی. چې د ذکرشوو ځیزونو یعنی د فرائضو نه سوا واړه سنت دی. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چې قدوری رحمه الله د سنت لفظ استعمال کړې دی. حالانکه په دې افعالو کښې واجبات هم شته. نو دلته د ،،سنت،، د لفظ اطلاق صحیح نه دې.

كَقِرَاءَةِ الْفَاتِحَةِ لکه سورة فاتحه لوستل وَضَمِّ السُّورَةِ إِلَيْهَا، او ددې سره د سورة ملاوول

**حل اللغة:** ① ضم: ملاوول

**تشریح:- وجوب الفاتحة وضم السورة معها** ۞ مصنف د هدایه رحمه الله چې واجبات شماری. نو فرمائی. لکه د سورة فاتحه لوستل چې واجب دی. اود فاتحه سره د سورت ملاوول واجب دی.

وَمُرَاعَاةِ التَّرْتِيبِ او په هغه افعالو کې د ترتیب خیال ساتل فِيمَا شُرِعَ مُكَرَّرًا مِنَ الْأَفْعَالِ کوم چې مکرر مشروع شوی دی وَالْقَعْدَةِ الْأُولَى وَقِرَاءَةِ التَّشَهُّدِ فِي الْقَعْدَةِ الْأَخِيرَةِ او په لومړنی او آخرنی قعده کې تشهد وئیل وَالْقُنُوتِ فِي



الْوِتْرِ او په وترو کې قنوت وئیل. وَتَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ او په عیدینو کې تکبیرونه، وَالْجَهْرِ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ اوچې په کومو کې جهر واجب وی. په هغې کې جهر کول وَالْمُخَافَتَةِ فِيمَا يُخَافَتُ فِيهِ او چې په کومو کې اخفاء واجب وی. په هغې کښې اخفاء کول وَلِهَٰذَا تَجِبُ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ بِتَرْكِهَا او ددې وجې په لمونځ گذار باندې په دې کښې د یو په پرېښودلو سره د سهو دوې (دوه) سجدې واجبیږی. هَٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحیح ده.

**حل اللغة:** ① **مراعاة:** رعایت ساتل ② **قنوت:** تابعداری کول په لمانځه کې ودریدل، دَ الله تعالی په وړاندې عاجزی کول، دعائے قنوت ③ **مخافتة:** په مزه ④ **یوجب، وجب وجوبًا** (تض) واجب کیدل

**تشریح:- وجوب الترتيب في الاركان المكررة في ركعة واحدة** ۞ او کوم افعال چې په یو رکعت کې مکرر مشروع شوی وی. نو په هغې کې د ترتیب خیال ساتل هم واجب دی. که چا په هیره باندې د اولنی، رکعت دویمه سجده هیره کړله. او پاسیدلو لمونځ ئې پوره کړلو. بیا ورته وریاد شو. نو هغه به متروکه سجده ادا کوی. او د ترک ترتیب په وجه به سجده سهو کوی. که دا وریادیدل د سلام نه وړاندې وی. یا د سلام نه روسته خو په دې شرط چې لمونځ فاسدونکې څه کار نه وی پیښ شوې.

او په لومړنی قعده او آخرئ قعده کې د تشهد وئیل، په وترو کې دعاء قنوت وئیل، په عیدینو کې تکبیرونه وئیل، او په جهری مونځونو کې جهر کول او په سری مونځونو کې اخفاء کول هم واجب دی. هم دا وجه ده. که په دې کې یو هم پاتې شی. نو سجده سهو به واجب وی.

دلته د یوې خبرې وضاحت کول ضروری گڼړم. هغه دا چې په وترو کې یو نفس دعا ده. نو هغه واجب ده. که هغه هرڅنگه اخروی دعا وی. نو په هغې باندې وجوب پوره کیږی. اویو د خاص کر «اللـهم إنا نستعينك الخ» وئیل دی. نو دا لوستل سنت دی. واجب نهٔ دی. نو فائده دا راووتله. که یو کس ته دغه ماثوره دعاء قنوت نه ورځی. نو چې ترڅو ئې زده کړې نه وی. ترهغه وخته پورې ور سره دا آسانتیا کولې شی. چې نورې دعا گانې لولی. لکه «ربنا أتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار» وغیره. دا خبره ما دخپل محترم شیخ محمد حسن جان المدنی مدظله العالی نه په درس بخاری کې اوریدلې وه.

وَتَسْمِيَتُهَا سُنَّةً فِي الْكِتَابِ او په کتاب کې دې ته د سنت نوم کیخودل لِمَا أَنَّهُ ثَبَتَ وُجُوبُهَا بِالسُّنَّةِ د دې وجې دې. چې ددې وجوب په سنت سره ثابت شوې دې.

**حل اللغة:** ① **ثبت، ثبوتا** (ن) ثابت کیدل

**تشریح: جواب صاحب الهداية رحمه الله** ۞ علامه مرغینانی په دې عبارت د هغه سوال ځواب کوی کوم چې ئې د دې بحث په اول کې ذکر کړې وو دې ته ئې سنت ولې وئیلې دې نو ځواب ورکوی چې د سنت نه مراد «ما ثبت بالسنة» دې. اوچونکه واجب هم په سنت سره ثابت وی. نو ځکه په واجباتو د سنت اطلاق اوکړې شو.

**عدم صحة جواب صاحب الهداية** ۞ خو د صاحب هدایه رحمه الله دا ځواب صحیح نه دې. ځکه چې په دې صورت کې «جمع بين الحقيقة والمجاز» لازمیږی. هغه داسې چې د سنت نه سنن مراد اخستل په طریقه د حقیقت سره دی. او واجبات اخستل په طریقه د مجاز دی. نو دلته دواړه مراد دی. نوځکه حقیقت او مجاز جمع کیدل لازمیږی.

ځواب: د قدوری د مصنف رحمه الله د قول «فهو سنة» نه مراد «ثابت بالسنة» دې. او واجبات او سنن په دې باب کې مذکور دی. هغه ددې لفظ د لاندې په طریقه د حقیقت سره داخل دی. نو د «جمع بين الحقيقة والمجاز» اشکال واقع نشو.

## د مونځ طریقه اود تکبیر تحریمه حکم

قَالَ «وَإِذَا شَرَعَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ» فرمائی او کله چې لمونځ پیل کړی. نو تکبیر به وائی لِمَا تَلَوْنَا ددې آیت د وجې کوم چې موږ تلاوت کړلو وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبی ﷺ فرمائیلی دی {تَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ}. د لمونځ تحریم

تکبير دي

حل اللغة ① شرع، شروعاً (ف) پیل کول ② تلونا، تلا تلاوة (ن) لوستل تلاوت کول

تشریح:- التکبیر في حالة القیام والصور الثلاث لها ﴿ مسئله: کله چې د لمونځ پیل کاوه اراده اوکړی، که فرض لمونځ وی، او که نفل، نو تکبیر تحریمه به په ولاړه وائی. ① نو که یو کس په ناسته تکبیر تحریمه اوونیله بیا ودریدلو. نو هغه به د لمونځ پیل کونکې نه وی. ② او که یو سړې په لمونځ کې دشرکت په اراده راشی. او امام په رکوع کې وو. نو هغه خپله شاه کښته کړله. او تکبیر ئې اوونیل. نو په دے صورت کې که دا سړې د تکبیرد ونیلو په وخت کې قیام ته نزدے وو. نو جائز ده. ګنی نه ده. ③ اوکه یو کس امام په رکوع کې رالاندې کړلو. بیا هغه د رکوع د تکبیر په اراده په ولاړه تکبیر اوونیل. نو هم جائز دې. ځکه چې دده اراده لغو ده. او په حالت د قیام کې به دده تکبیر د تحریمے لپاره ګرځولې شی.

دلیل فرضیة التکبیر ﴿ دلیل هغه آیت دې. کوم چې وړاندې تیر شو. یعنی ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ او دوهم دلیل د نبی ﷺ قول دې. «تحریمها التکبیر» دې.

| |
|---|
| وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نیز شرط دې خِلَافًا لِلشَّافِعِي رحمه الله دامام شافعي رحمه الله خلاف دې. حَتَّى أَنَّ مَنْ تَحَرَّمَ لِلْفَرْضِ تردې که څوك د فرض تحریمه اوتړی كَانَ لَهُ أَنْ يُؤَدِّيَ بِهَا التَّطَوُّعَ عِنْدَنَا نو هغه لره جائز ده. چې په دغه تحریمه باندې نفل ادا کړی |

حل اللغة ① یؤدی، ادی نادیة: ادا کول ② تطوع: زیاتی، نفل

تشریح:- الاختلاف في حکم التکبیر ﴿ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چې تکبیر تحریمه زموږ په نیز شرط ده. او د امام شافعی رحمه الله په نیز رکن دې. ثمره د اختلاف به داسې ښکاره کیږی. چې زموږ په نیز چونکه تحریمه شرط ده. نود فرضو په تحریمه به نفل ادا کول جائز وی. او د امام شافعی رحمه الله په نیز چونکه رکن دې. نوځکه د فرضو په تحریمه باندې نفل ادا کول جائز نه دی. وجه دا ده. چې په یو شرط باندې ګڼړ مونځونه ادا کول جائز دی. خو په یو رکن جائز نه دی.

| |
|---|
| وَهُوَ يَقُولُ.. او امام شافعی رحمه الله فرمایي إِنَّهُ يُشْتَرَطُ لَهَا چې د تحریمې لپاره هر هغه شی شرط دې مَا يُشْتَرَطُ لِسَائِرِ الْأَرْكَانِ کوم چې د نورو ارکانو لپاره شرط دې وَهَذِهِ آيَةُ الرُّكْنِيَّةِ او دا خبره ددے د رکینت نښانه ده |

حل اللغة ① سائر: واړه ② اية: علامت، نښانه

تشریح:- دلیل الشافعی رحمه الله علی رکنیة التکبیر ﴿ بهرحال د تکبیر تحریمې په رکنیت باندې د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې. چې د تکبیر تحریمې لپاره هر هغه شی شرط دې. کوم چې د نورو ارکانو لپاره شرط وی. لکه طهارت، سترعورت، استقبال د قبلې، نیت او وخت، یعنی دا شیان (څیزونه) لکه څنګه چې د قیام، قرات، رکوع، او سجدې وغیره ارکانو لپاره شرطونه دی. نو دغه ډول د تکبیر تحریمې لپاره هم شرطونه دی. او د کوم شی لپاره چې هغه ټولے خبرے شرط وی. کوم چې د ټولو ارکانو لپاره شرط وی. نو دا ددے شی د رکنیت نښانه ده. یعنی په نورو ارکانو به قیاس کولې شی. اودا به هم رکن ګرځولې شی.

| |
|---|
| وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّهُ عَطَفَ الصَّلَاةَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ چې د الله تعالی په قول ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ کې تکبیر مذکور په ﴿فَصَلَّى﴾ باندې عطف دې. وَمُقْتَضَاهُ الْمُغَايَرَةُ او د عطف مقتضا مغایرت دې. |

حل اللغة ① فصلی، صلی صلاة، دعاکول، لمونځ کول ② مغیرة: بدلون کول مخالفت کول غیر کیدل

تشریح:- دلیل الاحناف ﴿ رحمهم الله زمونږ دلیل دا دې. چې د الله تعالی قول ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ کې د لمونځ عطف په ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى﴾ یعنی تکبیر تحریمه باندې دې. او عطف تقاضا کوی د مغایرت، یعنی په معطوف علیه او معطوف کې مغایرت ضروری دې. اوس که تکبیر رکن اومنلے شی. نو د ،کل، عطف په جزء باندې



لازمیږی. او چونکه کل هغه جزء ته هم ګډ دې. نوځکه عطف د شئ علی نفسه لازمیږی. اودا ناجائز ده. ددے وجې موږ وایو. چې تکبیر تحریمه رکن نه دې. بلکه شرط دې. اوچونکه شرط د شی د هغه شی نه خارج وی. نو ځکه به په تکبیر تحریمه او لمونځ کې تغایر وی. او عطف به صحیح وی. نو ثابته شوه. چې تکبیر تحریمه د لمانځه لپاره شرط دے رکن نه دې.

| |
|---|
| وَلِهَذَا لَا يَتَكَرَّرُ كَتَكَرُّرِ الْأَرْكَانِ او هم ددے وجې تکبیر مکرر نه وی. لکه څنګه چې نور ارکان مکرر وی |

تشریح:- الدلیل الثانی ﴿ دوهم دلیل دادې. چې لکه څنګه نور ارکان په لمانځه کې مکرر وی. تکبیر تحریمه مکرر نه وی. نو دا ددے خبرے نښانه ده. چې تکبیر تحریمه رکن نه دې. ګنی د نورو ارکانو په څیر به تکبیر تحریمه هم مکرر وه.

| |
|---|
| وَمُرَاعَاةُ الشَّرَائِطِ لِمَا يَتَّصِلُ بِهِ مِنَ الْقِيَامِ او د شرائطو خیال ساتل دهغه قیام د وجې دې. کوم چې دے سره متصل دې. |

حل اللغة ① مراعاة: رعایت ② یتصل، اتصل اتصالاً: ملاویدل

تشریح:- الجواب عن دلیل الشافعی رحمه الله ﴿ په «مراعاة الشرائط» سره د امام شافعی رحمه الله ددلیل ځواب دې. د ځواب حاصل دا دې. چې د ذکرشوی شرائطو (طهارت، پواړه دعورت، وغیره) خیال ساتل د نفس تحریمې لپاره نه دی. بلکه قیام کوم چې د تحریمه سره مشابه دې. د هغې لپاره دی. او هغه رکن دې. او ددے نه د تحریمې رکنیت نه ثابتیږی.

## لاسونه د تکبیر سره اوچتول

| |
|---|
| ﴿وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرِ﴾ او (سړې) به خپل دواړه لاسونه د تکبیر سره پورته کوی. ﴿وَهُوَ سُنَّةٌ﴾ اودا سنت دی. {لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاظَبَ عَلَيْهِ} ځکه چې نبی ﷺ په دے باندې مواظبت کړې دې. |

حل اللغة ① یرفع، رفع رفعاً (ف): اوچتول ② ید جمع ایدی: لاس ③ واظب، مواظبة: همیشوالې کول

تشریح:- حکم رفع الیدین في الابتداء ﴿ فرمائی. چې سړې دے خپل دواړه لاسونه د تکبیر سره سره اوچتوی. او د لمونځ په پیل کې د لاسونو اوچتول سنت دی. ځکه چې نبی ﷺ کله کله د پریخودو سره په دے باندې همیشوبلے کړې دې. او دا د مسنونیت نښانه ده.

| |
|---|
| وَهَذَا اللَّفْظُ يُشِيرُ إِلَى اشْتِرَاطِ الْمُقَارَنَةِ اودا لفظ د مقارنت شرطیت اړخ ته اشاره کوی. وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او هم دا د ابویوسف رحمه الله نه مروی دی. وَالْمَحْكِيُّ عَنِ الطَّحَاوِيِّ رحمه الله او هم دا د طحاوی رحمه الله نه نقل شوی دی. |

حل اللغة ① یشیر، اشار اشارة: اشاره کول ⑤ مقارنة: ملاویدل ⑥ محکی: حکایت کړې شوې، بیان کړې شوې

تشریح:- الروایتان في افضل وقت الرفع ﴿ بیا په دے اړه کې اختلاف دې. چې د لاس اوچتولو غوره وخت کوم دې. ① شیخ الاسلام او قاضی خان رحمهما الله فرمائیلی دی. چې لاسونه اوچتول او تکبیر وئیل دواړه دے یو ځائې وی. د قدوری رحمه الله عبارت هم دے اړخ ته اشاره کونکې دې. ځکه چې علامه قدوری رحمه الله فرمائی. «ویرفع یدیه مع التکبیر» او لفظ د ،،مع،، په مقارنت دلالت کوی. او هم دا د امام ابویوسف رحمه الله قول دې. او امام طحاوی رحمه الله هم په دے باندې عمل کړې دې.

| |
|---|
| وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ أَوَّلًا [1] او اصح دا دې. چې اول دے دواړه لاسونه اوچت کړی ثُمَّ يُكَبِّرُ او بیا دے تکبیر |

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفین رحمهما الله کذا فی فتح القدیر(۱\۲۴۴) والعنایة (۱\۲۴۴) و ردالمحتار(۱\۳۵۶) والتارخانیة (۱\۴۳۷) والهندیة (۱\۷۳) نقلا عن القول الراجح (۱\۶۹)_

اووائی. لِأَنَّ فِعْلَهُ نَفْيُ الْكِبْرِيَاءِ عَنْ غَيْرِ اللهِ ځکه چې دده فعل دالله تعالی نه سوا د نورو نه د لویوالی نفی ده. وَالنَّفْيُ مُقَدَّمٌ عَلَى الْإِثْبَاتِ او نفی مقدم وی.

**حل اللغة** ① **کبریاء**: لوئی بزرګی

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چې په مذهب کې دا اصح دی. چې اول دواړه لاسونه اوچت کړی.او بیا تکبیر اووائی. ددے قائلین عام مشائخ رحمهم الله دی.

**دلیل قول الثانی** ﴿ دلیل دا دی. چې دده په فعل کښې د نفی معنی او د ده په قول کې د اثبات معنی ده.په دے طریقه چې کله سړی لاس اوچتوی. نو دغیر الله نه د لویوالی نفی کوی. او کله چې «الله اکبر» وائی. نو دالله تعالی لپاره د لوئے اثبات کوی. او په نفی او اثبات کې نفی په اثبات مقدم وی. لکه په کلمه شهادت کې چې شهادت په نفی باندې مقدم دی. ددے وجې افضله دا ده. چې اول دواړه لاسونه پورته کړی. او بیا تکبیر اووائی.

## د لاسونو پورته کولو اندازه

(وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ او خپل دواړه لاسونه به پورته کوی. حَتَّى يُحَاذِيَ بِإِبْهَامَيْهِ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ) تردې چې خپلے دواړه ګوتے د خپلو دواړو غوږونو پوسکو سره برابر کړی.

**حل اللغة** ① **یحاذی، حاذی محاذاة**: برابریدل، مقابل کیدل ② **ابهام**: غټه ګوته ③ **شحمة**: نرمی ④ **اذان جمع اذن، أذن**: غوږ

**تشریح:- الاختلاف في حد رفع ا لیدین عندالتحریمة** ﴿ مسئله دا ده. چې د تکبیر تحریمې په وخت کښې به خپل دواړه لاسونه په دومره اندازه پورته کوی. چې دواړه ګوتے د دواړو غوږونو د پوسکو سره برابر شی.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رحمه الله يَرْفَعُ إِلَى مَنْكِبَيْهِ او د امام شافعی رحمه الله په نیز به ئې د خپلو دواړو اوږو پورې پورته کوی. وَعَلَى هَذَا تَكْبِيرَةُ الْقُنُوتِ وَالْأَعْيَادِ وَالْجِنَازَةِ او هم په دے اختلاف باندې د قنوت تکبیر، د عیدینو تکبیرات، اود جنازې تکبر دې.

**حل اللغة** ① **منکب**: اوږه ② **کبر تکبیراً**: لوئ بیانول ③ **اعیادواحد عید**: اخترونه **تشریح:-** امام شافعی او امام مالک رحمهما الله فرمائی. چې د اوږو پورې به اوچتوی. اوهم دا د امام احمد رحمه الله نه هم یو روایت دی. هم دا اختلاف په قنوت ، عیدینو اود جنازې د تکبیر وئیلو په وخت دلاسونوپه اوچتولو کې دې.

لَهُ حَدِيثُ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دامام شافعی رحمه الله دلیل د حضرت ابوحمید الساعدی رضی الله عنه حدیث دی. قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {إِذَا كَبَّرَ فرمائی. چې رسول الله ﷺ به کله تکبیر وئیل. رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَى مَنْكِبَيْهِ}[1] نو خپل دواړه لاسونه به ئې د اوږو پورې پورته کول.

**تشریح:- دلیل الشافعی رحمه الله** ﴿ د امام شافعی رحمه الله دلیل د ابی حمید رضی الله عنه حدیث دی. «عن محمد بن عمرو بن عطاء أنه كان جالساً مع نفر من أصحاب النبی ﷺ قال فذكرنا صلاة رسول الله ﷺ فقال ابوحميد الساعدی انا كنت أحفظكم لصلاة رسول الله ﷺ رأيته إذا كبر جعل يديه حذا منكبيه» (بخاری)

د محمد بن عمروبن عطاء رحمه الله نه روایت دی. چې دے د نبی ﷺ د صحابو رضی الله عنهم د یوے ډلے سره ناست وو. محمد بن عمرو فرمائی. چې موږ د رسول الله ﷺ د لمونځ ذکر اوکړلو. نو ابوحمید الساعدی رضی الله عنه اوفرمائیل. ما د رسول

[1] رواه البخاری فی الاذان باب ۱٤٥ (حدیث ۸۲۸) وابوداود فی الصلاة باب ۱۱٦، والترمذی فی الصلاة باب ۱۱۰، والنسائی فی السهو باب ۲۹ وابن ماجه فی الاقامة باب ۷۲، والدارمی فی الصلاة باب ۹۲، واحمد فی المسند (٥/٤۲٤)_



الله ﷺ لمونځ یاد کړی دی. ماهغوی لیدلی وو. چې کله به ئې تکبیر وئیل. نو خپل دواړه لاسونه به ئې خپلو اوږو ته مخکې کول.

**الفاظ صاحب الهداية للحديث** ﴿ صاحب دهدایه رحمه الله دا حدیث په دے الفاظو سره ذکر کړی دی. «كان النبی ﷺ رفع يديه الی منكبيه» ددے دواړو حدیثونو نه ثابته شوه. چې نبی ﷺ به د تکبیر تحریمې په وخت کې دواړه لاسونه اوږو پورې اوچتول.

وَلَنَا رِوَايَةُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ[1] وَالْبَرَاءِ[2] وَأَنَسٍ[3] رضی الله عنهم او زموږ دلیل د وائل بن حجر رضی الله عنه او انس رضی الله عنه حدیث دی. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ چې نبی ﷺ به کله تکبیر وئیل. رَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ} نو خپل لاسونه به ئې خپلو دواړو غوږونو ته مخکې کول.

**حل اللغة** ① **حذاء**: برابر ② **رفع**: اوچتول

**تشریح:- الدليل الاول للاحناف** ﴿ زموږ رحمهم الله دلیل هغه حدیث دی. کوم چې وائل بن جر ، براء بن عازب او حضرت انس رضی الله عنه روایت کړی دی. «أن النبی ﷺ كا إذا كبر رفع يديه حـذاء أذنيه» یعنی نبی ﷺ چې به کله تکبیر وئیل. نو خپل دواړه لاسونه به ئې غوږونو ته مخکې کول. (حاکم)

**الدليل الثانی للاحناف** رحمهم الله ﴿ او دارقطنی د حضرت انس رضی الله عنه نه دا حدیث په دے الفاظو سره نقل کړی دی. «قال كان رسول الله ﷺ إذا إفتتح الصلاة كبر ثم رفع يديه حتى يحاذی إبهاميه أذنيه» کله چې به رسول الله ﷺ لمونځ پیل کولو. نو تکبیر به ئې وئیل. بیا به ئې خپل دواړه لاسونه اوچتول. تردې چې خپلے دواړه ګوتے به ئې دواړو غوږونو ته مخکې کړې. ددے دواړو احادیثو نه ثابته شوه. چې د تکبیر تحریمې په وخت کې به نبی ﷺ دواړه لاسونه دومره اوچتول. چې غوږونو ته به برابر شول.

وَلِأَنَّ رَفْعَ الْيَدِ لِإِعْلَامِ الْأَصَمِّ او ددے وجې چې لاس اوچتول کونړ کس ته دخبر ورکاوه لپاره دی. وَهُوَ بِمَا قُلْنَاهُ او دا هم په دے طریقه کیږی. کومه چې موږ بیان کړله.

**تشریح:- الدليل العقلی للاحناف** رحمهم الله ﴿ زموږ د مذهب په تائید کې عقلی دلیل دا دی. چې د تکبیر تحریمې په وخت کښې لاس اوچتول کونړ سړی ته په لمانځه کې د پیل خبر ورکاوه لپاره دی. او دا خبر هم په دے طریقے سره ورکولې شی. کومه چې موږ بیان کړه. یعنی غوږونو پورې لاسونه اوچتولو کې ، ځکه چې کله امام ترغوږونو پورې لاسونه اوچت کړی. نو کونړ سړی به پوهه شی. چې تکبیر اووئیلې شو. نو هغه به هم تکبیراووائی. اولمونځ به پیل کړی.

**السوال علی ا لدليل العقلی** ﴿ که دا اعتراض اوکړې شی. چې د تکبیر په وخت کې لاسونه اوچتول کونړ سړی ته دخبر ورکاوه لپاره وی. نو منفرد به غوږونو پورې لاسونه نه پورته کول ځکه چې د هغه په حق کې دا علت نشته.

**الجواب** ﴿ نو ددے ځواب دا دی. چې اصل خو لمونځ په جماعت سره ادا کول دی. د الله تعالی ارشاد دی. (وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ) نو منفرداً لمونځ ادا کول نادر وی. او د نادرځیز اعتبار نه وی. ځکه چې قاعده ده. «النادر كالمعدوم»

**السوال الثانی** ﴿ خو بیا به اشکال کیږی. چې د مقتدی په حق کې د غوږونو پورې لاس پورته کاوه ته څه اړتیا دی.

[1] رواه مسلم فی الصلاة رقم الحدیث ٥٥) وابوداود فی الصلاة باب ۱۱٥ رقم الحدیث (۷۲۳)_

[2] رواه احمد فی المسند (٤/۳۰۳) والدارقطنی (۱/۲۹۳، ۲۹٤) وشرح الاثار (۱/۱۱٥، ۱۳۲)

[3] السنن الکبری للبیهقی (۲/۱٤۳، رقم الحدیث (۲٦۳۲) والمستدرک للحاکم (۱/۲۲٦) وسنن دارقطنی (۱/۲۹۰)_

الجواب عنه ❁ ددې ځواب ممکن دي. چې کوڼ سړي په اخرۍ صف کې وي. او هغه امام نهويني نو په داسې صورت کې به هغه دخپل ځان نه وړاندې مقتديان ويني او لمونځ به پيل کوي. نو ځکه د مقتديانو لپاره هم تر غوږونو پورې لاسونه پورته کول ضروري دي.

وَمَا رَوَاهُ او هغه حديث کوم چې ابوحميد ﷺ روايت کړې دي. يُحْمَلُ عَلَى حَالَةِ الْعُذْرِ هغه د عذر په حالت باندې حمل کولې شي.

تشريح:- الجواب عن حديث الشافعي ❁ رحمه الله صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چې د امام شافعي رحمه الله پيش کړې د ابوحميد ﷺ روايت په حالت د عذر باندې محمول دي. د وائل بن حجر ﷺ نه روايت دي. «أنه قال قدمت المدينة فوجدتهم يرفعون أيديهم إلى الأذنين ثم قدمت عليهم من قابل وعليهم الأكسية والبرانس من شدة البرد فوجدتهم يرفعون أيديهم إلى المناكب» وائل بن حجر ﷺ فرمائي. چې زه مديني ته راغلم د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر شوم. نو ما اوکتل چې خلګو (دتکبير په وخت کې) خپل لاسونه تر غوږونو پورې پورته کول. بيا په راروان کال د نبي ﷺ په خدمت کې حاضر شوم. او خلګو د سختې يخنۍ دوجې کمبلونه اغوستي وو. او داسې جامې ئې اغوستې. چې د هغې څه حصې به د ټوپۍ په ځائې کار ورکولو. نو ما هغوی اوکتل. چې اوږو پورې ئې لاسونه پورته کول.

الاستدلال ❁ وائل بن حجر ﷺ په دې حديث کې ښکاره کړل. چې ددې خلګو د اوږوپورې لاسونو پورته کاوه باندې اکتفاء کول د دوی د جامو دوجې وو. نو معلومه شوه. چې حديث «الى المناکب» په حالت د عذر باندې محمول دي.

التطبيق بين الروايتين ❁ صاحب د ،،شرح نقايه،، په دواړو احاديثو کې تطبيق کړې دي. په دې طريقه چې د دې (لاس) اطلاق په ورغوی او ددې نه په پورته برخه باندې کيږي. نو کيدې شي. چې د ورغوی اړخ اوچوړ اوږو ته مخکې وو. او نفس ورغوې دواړو غوږونو ته مخکې وو. نو اوس په دواړو روايتونو کې څه تعارض نه پاتې کيږي.

## د ښځې دلاسونو پورته کولو اندازه

وَالْمَرْأَةُ تَرْفَعُ يَدَيْهَا او ښځه به خپل دواړه لاسونه پورته کوي حِذَاءَ مَنْكِبَيْهَا خپلو اوږو ته مخکې هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده. لِأَنَّهُ أَسْتَرُ لَهَا ځکه چې دا طريقه د ښځې لپاره زياته د پردې ده.

حل اللغة: ① استر: ډير ستر کونکې، ډير پټ

تشريح:- الروايتان في رفع المراة اليدين ❁ ① د تکبير تحريمې په وخت به ښځه خپلو اوږو پورې لاسونه پورته کوي. صحيح قول هم دا دي. ② او حسن بن زياد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه روايت کړې. چې ښځه به خپل لاسونه تر غوږونو پورې پورته کوي. د حسن بن زياد رحمه الله د روايت وجه دا ده. چې د لاسونو پورته کول په ورغوو سره متحقق کيږي. او وړاندې تير شوي دي. چې د ښځې ورغوی عورت نه دي. نو ترغوږونو پورې په لاسونو پورته کاوه کې ښځه او سړې دواړه برابر دي.

وجه القول الصحيح ❁ او د صحيح قول وجه دا ده. چې اوږو پورې لاسونو پورته کاوه کې د ښځې لپاره زياته پرده ده. نو ځکه د ښځې لپاره د اوږو پورې لاسونه پورته کول مناسب دي.

په دې مسئله باندې څه دليل نقلی نه دې ذکر کړې. مناسب ګڼړم چې دخپل کتاب «سنن الصلاة في فقه الأحناف» نه دليل نقلی نقل کړم. «عن وائل بن حجر قال جئت النبي صلى الله عليه وسلم فقال هذا وائل بن حجر جاءكم لم يجئكم رغبة ولا رهبة جاء حبا لله ولرسوله وبسط له رداءه وأجلسه إلى جنبه وضمه إليه وأصعد به المنبر فخطب الناس فقال لأصحابه ارفقوا به فإنه حديث عهد بالملك فقلت إن أهلي قد غلبوني على الذي لي قال أنا أعطيكه وأعطيك ضعفه فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم يا وائل بن حجر إذا صليت فاجعل يديك حذاء أذنيك والمرأة تجعل يديها حذاء ثديها أخرجه



الطبراني في المعجم الكبير رقم ۲۸ (۱۹/۲۲) أيده العثماني بحديث في الحاشية تحت هذا الحديث من مجمع الزوائد إعلاء السنن في الصلاة باب إفتراض التحريمة وسننها رقم ۲۵۶» په دې اثر کې اګرچې ذکر د صدر دي. خومراد ترې منکبين دي. چې لاسونه صدر ته اوچت شي. نود اوږو برابر وي. شاه فيصل

## دالله اکبر په ځائې د نورو اسماء حسنی ويلو حکم

(فَإِنْ قَالَ بَدَلَ التَّكْبِيرِ بيا که ده د تکبير په بدله کښې اللَّهُ أَجَلُّ أَوْ أَعْظَمُ أَوِ الرَّحْمَنُ أَكْبَرُ أَوْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ أَوْ غَيْرَهُ مِنْ أَسْمَاءِ اللَّهِ تَعَالَى) «الله اكبر، الله أجل، يا ،الله أعظم، يا الرحمن اكبر، يا ،لاإله إلا الله» يا ددې نه علاوه دالله تعالى په اسماء حسنی کې (څه بل نوم اووئيل) أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ (١) رحمهما الله نو د طرفينو رحمهما الله په نيز کافي دي.

حل اللغة: ① اعظم: ډير بزرګ ② اکبر: ډير لوئ ③ اسماء واحداسم: نوم ④ اجزاء، اجزا اجزاءً: کافي کيدل

تشريح:- المذاهب الاربعة في ما يجوز به الشروع ❁ په دې عبارت کې د افتتاح دالفاظو بيان دي. ① د طرفينو رحمهما الله په نيز په هر هغه لفظ باندې لمونځ کښې پيل جائز ده. کوم چې د الله تعالى په تعظيم باندې دلالت کوي. که «الله اكبر» وي يا «الله الأكبر» يا «الله كبير» يا «الله الكبير» يا «الله اجل» يا «الله اعظم» يا «الرحمن اكبر» يا «لا إله إلا الله» يا «الحمد لله» يا «سبحان الله» يا د الله په اسماؤ کې په بل يونوم باندې بيل اوکړي، نو واړه جائز دي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او ابويوسف رحمه الله فرمائيلي دي. إِنْ كَانَ يُحْسِنُ التَّكْبِيرَ که تکبير ښه وئيلی شي. لَمْ يُجْزِئْهُ نو جائز نه دي. إِلَّا قَوْلُهُ اللَّهُ أَكْبَرُ أَوِ اللَّهُ الْأَكْبَرُ أَوِ اللَّهُ الْكَبِيرُ مګر د ده دا قول چې «الله اكبر، يا الله الأكبر، يا الله الكبير»

حل اللغة: ① لم يجز، جاز جوازًا(ن) روا کيدل

تشريح:- امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. که په ښه شان په تکبير وئيلو باندې قادر نه وي. نو صرف درې الفاظ «الله أكبر، يا ،الله الأكبر،، يا الله الكبير» کې په يو لفظ باندې په لمانځه کښې پيل کول جائز دي. ددې نه علاوه په بل هيڅ ډول سره جائز نه ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالْأَوَّلَيْنِ چې صرف اولنی دوې (دوه) کلماتو سره جائز دي.

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائي. چې صرف په «الله أكبر او الله الأكبر» باندې پيل جائز ده.

وَقَالَ مَالِكٌ رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائي. لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالْأَوَّلِ چې صرف په لومړنی کلمه باندې جائز دي. لِأَنَّهُ هُوَ الْمَنْقُولُ ځکه چې هم دا منقول دي. وَالْأَصْلُ فِيهِ التَّوْقِيفُ او اصل په دې کې توقيف دي.

تشريح:- اوامام مالك رحمه الله فرمائي. چې صرف په «الله اكبر» باندې جائز ده. هم دا د امام احمد بن حنبل رحمه الله قول دي.

دليله ❁ د امام مالك رحمه الله دليل دادي. چې د نبي ﷺ نه صرف ،،الله اكبر،، منقول دي. او اصل په دې کې توقيف دي. يعنی شارع ① واقف ګرځول، او د شارع ﷺ نه صرف الله اكبر منقول دې، نو ددې نه علاوه په نورو الفاظو سره پيل کول ټيک نه دي.

وَالشَّافِعِيُّ رحمه الله يَقُولُ او امام شافعي رحمه الله فرمائي. إِدْخَالُ الْأَلِفِ وَاللَّامِ فِيهِ أَبْلَغُ فِي الثَّنَاءِ چې د الف لام

١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الكفاية (١\٢٤٦) وردالمحتار (١\٣٥٧) والبحرالرائق (١\٥٣٤) والفقه الاسلامى (١\٦٣٣) نقلا عن القول الراجح (١\٧٠)-

داخلول په ثناء كي زياته مبالغه كول دي. **فَقَامَ مَقَامَهُ** نو د «الله الأكبر» قائم مقام شو.

**حل اللغة**: ① **ادخال**: داخلول

**تشريح:- دليل الشافعي** رحمه الله ﴿ دامام شافعي رحمه الله دليل دا دي. چي بيشكه د نبي ﷺ نه «الله اكبر» منقول دي. خو «الله الأكبر» د الف لام سره مفيد دحصر دي. ددے وجي دالله تعالى په ثناء كي ابلغ دي. نو خكه دا د الله اكبر قائم مقام دي.

**وَأَبُويُوسُفَ** رحمه الله **يَقُولُ** او ابويوسف رحمه الله فرمائي. **إنَّ أَفْعَلَ وَفَعِيلًا فِي صِفَاتِهِ تَعَالَى سَوَاءٌ** چي ،،افعل،، او ،،فعيل،، د الله تعالى په صفاتو كي برابر دي. **بِخِلَافِ مَا** په خلاف د هغه صورت **إِذَا كَانَ لَايُحْسِنُ** چي داكس ني صحيح نشي ونيلي. **لِأَنَّهُ لَايَقْدِرُ إِلَّا عَلَى الْمَعْنَى** خكه چي دے صرف په معنى باندي قادر دي

**حل اللغة**: ① **صفات واحد صفت**: خوبياني ښه والي ② **سواء جمع سواسية**: برابر خلاف قياس راخى ③ **لايقدر، قدر تقديرا(ض)**: قادر كيدل

**تشريح:- دليل ابى يوسف** رحمه الله ﴿ دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دي. چي دالله تعالى په صفاتو كي د ،،افعل،، په وزن اسم تفضيل او ،،فعيل،، په معنى د فاعل واړه برابر دي. خكه چي دالله تعالى په صفاتو كښے د زيادت مراد نه دے خكه چي په اصل لوئي كي دالله تعالى سره څوك برابر نه دي. تردي چي د ،،افعل،، صيغه د زيادت لپاره ګرځولے شي. لكه څنګه چي د بندګانو په اوصافو كښے وي. نو ،،افعل او ،،فعيل،، دواړه دالله تعالى په صفاتو كښے برابر دي. ددے په خلاف كه دغه كس په ښه شان تكبير نشي ونيلي. نو څنګه چي دده نه كيدي شي: د تعظيم معنى دے ادا كړي. خكه چي دا كس صرف په معنى باندي قادر دي. په الفاظود تكبير باندي قادر نه دي.

**وَلَهُمَا** اود طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. **أَنَّ التَّكْبِيرَ هُوَ التَّعْظِيمُ لُغَةً** چي تكبير په لغت كښے د تعظيم نوم دي. **وَهُوَ حَاصِلٌ** او دا تعظيم په دے نومونو سره حاصليږي.

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ﴿ د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. چي په لغت كي تكبير د تعظيم په معنى كي دي. دالله تعالى قول دي. ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ يعنى فعظم او ﴿فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ﴾ اودا تعظيم د دے ټولو الفاظو نه حاصليږي. كوم چي موږ ذكر كړل. نوخكه د لمونځ افتتاح په هر هغه لفظ باندي كيدي شي. كوم چي د الله تعالى په تعظيم باندي دلالت كوي.

## په غير عربۍ باندي د قرآت حكم

**فَإِنِ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ بِالْفَارِسِيَّةِ** اوكه لمونځ ني پيل كړو په فارسۍ ژبه كي **أَوْقَرَأَ فِيهَا بِالْفَارِسِيَّةِ** ياني دلمونځ قرات اوكړو. **أَوْذَبَحَ وَسَمَّى بِالْفَارِسِيَّةِ** يا ني څاروے ذبح كړو. او تسميه ني په فارسۍ كي اونيله. **وَهُوَ يُحْسِنُ الْعَرَبِيَّةَ** حالانكه دے كس عربي ونيلي شوه. **أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا كافي ده.

**حل اللغة**: ① **افتتح افتتاحا**: پيل كول ② **قرا قراءة (ف)**: لوستل ③ **ذبح، ذبحا (ف)**: حلالول ④ **سمى، تسمية**: نوم كيخودل كارشروع كونكى د الله تعالى نوم اخستل

**تشريح:- الروايتان في حكم القراءة وغيرها بغير العربية** ﴿ په فارسۍ ژبه كي لمونځ پيل كول او په لمانځه كي دننه په فارسۍ كي قرات كول، په ذبيحه باندي په فارسۍ ژبه كښے تسميه ونيل مثلاً په نوم د لوئي خدائي، ونيل د امام اعظيم رحمه الله په نيز جائز دي. كه په عربۍ ژبه باندي قدرت لري اوكه نه لري.



**وَقَالَا** او صاحبين رحمهما الله فرمائي،، **لَايُجْزِئُهُ** چي جائز نه ده. **إِلَّا فِي الذَّبِيحَةِ** مګر په ذبيحه كي، **وَإِنْ لَمْ يُحْسِنِ الْعَرَبِيَّةَ أَجْزَأَهُ** (1) اوكه عربۍ صحيح نشي ونيلي نو جائز دي ورله

**تشريح:-** او صاحبينو رحمه الله فرمائيلي دي. كه په عربۍ ژبه قادر وو. نو په فارسۍ كي ادا كول جائز نه دي. البته په ذبيحه باندي په فارسۍ ژبه كي بلكه په هره ژبه كي تسميه جائز ده. اوكه په عربۍ ژبه ني قدرت نه وي. نو په فارسۍ كي واړه جائز دي.

**أَمَّا الْكَلَامُ فِي الِافْتِتَاحِ** بهر حال په كلام د افتتاح كي **فَمُحَمَّدٌ** رحمه الله **مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله **فِي الْعَرَبِيَّةِ** خو په عربۍ ژبه كي امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي **وَمَعَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **فِي الْفَارِسِيَّةِ** اوپه فارسۍ ژبه كي د امام ابويوسف رحمه الله سره دي.

**تشريح:- اتفاق محمد** رحمه الله **مع ابى حنيفة** رحمه الله **في حكم التحريمة بغيرالعربية** ﴿ په تكبيرتحريمه كښے كلام دا دي. چي امام محمد رحمه الله په عربۍ ژبه كي ددے په ادا كاوه كي دامام ابوحنيفه رحمه الله سره دي. يعنى لكه څنګه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په هر هغه كلمه باندي په لمونځ كي پيل كول جائز دي. كومه چي د الله تعالى په تعظيم باندي دلالت كوي. نودغه ډول د امام محمد رحمه الله په نيز هم هره كلمه چي په تعظيم دلالت كوي. شروع پرے په لمانځه كي جائز ده. او په فارسۍ ژبه كي په ادا كاوه كي د امام ابويوسف رحمه الله سره دي. تردي چي د عربۍ نه سوا په بله ژبه كي تكبير ونيل د امام محمد رحمه الله په نيز هم جائز نه دي. حاصل دا دي. چي په عربۍ باندي د قدرت په صورت كي په غير عربۍ كي تكبير تحريمه ونيل د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه دي.

**لِأَنَّ لُغَةَ الْعَرَبِ لَهَا مِنَ الْمَزِيَّةِ** خكه چي عربۍ ژبي ته يو خاص فضيلت حاصل دي. **مَا لَيْسَ لِغَيْرِهَا** كوم چي بلے ژبي ته نه دے حاصل.

**حل اللغة**: ① **مزية**: فضيلت

**تشريح:- دليل الصاحبين** ﴿ او دليل د دوى دا دي. چي عربۍ ژبي ته يو خاص فضيلت حاصل دي. كوم چي بلے ژبي ته نه دے حاصل، دنبي ﷺ ارشاد دي. «تفضل لسان العربي على سائر الألسنة أنا عربي والقرآن عربي ولسان أهل الجنة عربي» عربۍ ژبي ته په ټولو ژبو باندي فضيلت حاصل دي. زه عربى يم. قرآن عربى دي. او د جنتيانو ژبه به عربى وي.

**وَأَمَّا الْكَلَامُ فِي الْقِرَاءَةِ** او پاته شو كلام په قرات كي **فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا** نو د صاحبينو رحمهما الله د قول دليل دا دي. **أَنَّ الْقُرْآنَ اسْمٌ لِمَنْظُومٍ عَرَبِيٍّ** چي قرآن نوم دے د كلام عربى، **كَمَا نَطَقَ بِهِ النَّصُّ** لكه چي په دے باندي نص ګويا دي. **إِلَّا أَنَّ عِنْدَ الْعَجْزِ يُكْتَفَى بِالْمَعْنَى** البته د عجز په وخت به په معنى باندي اكتفاء كولے شي. **كَالْإِيمَاءِ** لكه په اشاره چي اكتفاء كولي شي

**حل اللغة**: ① **عجز**: ناچارى عاجزى ② **يكتفى، اكتفى اكتفاءً**: كفايت كول، پوره كيدل

**تشريح:- دليل عدم جوازالقراءة بغيرالعربية** ﴿ پاته شو كلام په قرات كي نو د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دي. چي د كوم شي په لمانځه كي حكم وركړي شوي دي. هغه د قرآن قرات دي. او قرآن د هغه عربۍ نظم نوم دي. كوم چي په معنى باندي دلالت كوي. او په مصاحفو كي مكتوب دي. او موږ ته په نقل متواتر سره نقل شوي دے. الله تعالى فرمائي. ﴿إِنَّا جَعَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا﴾ اوفرمائي ﴿قُرْآنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِي عِوَجٍ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ﴾ اصل دا چي مامور به د

---

(1) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى العناية (۱\۲٤۹) وتبيين الحقائق (۱\۱۱۱) وردالمحتار (۱\۳۵۷) والهندية (۱\٦۹) نقلا عن القول الراجح (۱\۷۲)-

قران پاك قرات دي.او هغه په عربئ كي دي.نوكه په عربئ ژبه كي قرات كول فرض وى.ددے تقاضا خو دا ده.چې په حالت د عجز كي هم نظم دعربئ ترك نكړي شي.خو خبره داده.چې د عجز په وخت كي په معنى باندې اكتفا د دے وجې اوكړې شوه.چې تكليف ما لا يطاق لازم نه شي.لكه كه يو كس په ركوع او سجده باندې قادر نه وى.نو د هغه لپاره په ركوع او سجده كي اشاره كافي ده.عين ركوع او سجده ضروري نه ده.

**بِخِلَافِ التَّسْمِيَةِ** په خلاف د تسميه **لِأَنَّ الذِّكْرَ يَحْصُلُ بِكُلِّ لِسَانٍ** ځكه چې ذكر خو په هره ژبه كي حاصليږي.

**حل اللغة:** ① **يحصل، حصل حصولاً** (ن): حاصليدل

**تشريح:- وجه جواز الذبح بالتسمية بغيرالعربية** ﴿ په خلاف د ذبح په وخت د تسميه چې هغه په فارسئ كي جائز ده.اگرچې په عربئ باندې قدرت لرى.ځكه چې مقصود د تسميه نه ذكر دې.الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿**وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ**﴾ او ذكر په هره ژبه كي حاصليږي.كه په عربئ قادر وى او كه نه وى.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله **قَوْلُهُ تَعَالَى** اود ابوحنيفه رحمه الله دليل د الله تعالى قول دے ﴿**وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ**﴾ **وَلَمْ يَكُنْ فِيهَا بِهَذِهِ اللُّغَةِ** او په پخوانو كتابونو كي په دے ژبه كي قرآن نه وو. **وَلِهَذَا يَجُوزُ عِنْدَ الْعَجْزِ** او هم ددے وجې د عجز په وخت كي جائز دے. **إِلَّا أَنَّهُ يَصِيرُ مُسِيئًا لِمُخَالَفَتِهِ السُّنَّةَ الْمُتَوَارَثَةَ** البته د سنت متوارثه نه د مخالفت د وجې به گناهكار وى.

**حل اللغة:** ① **مسيئًا**: گناهگار

**تشريح:- دليل ابى حنيفة** رحمه الله ﴿ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿**وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ**﴾ يعنى قرآن په پخوانو كتابونو كي موجود دې.او دا خبره معلومه ده.چې قرآن په پخوانو كتابونو كي په عربئ نظم كي موجود نه وو.نو متعين شوه.چې په پخوانو كتابونو كي ددے معنى موجود وه.نو ثابته شوه.چې قرآن د معنىنوم دې.د نظم نوم نه دې.او كله چې قران على سبيل الڅباره په فارسئ كي اولوستے شي.نوچونكه دا د هغې په معنى مشتمل دې.دد وجې به جائز وى.ځكه چې قرات د قرآن موجود شو.اوچونكه قرآن په پخوانو كتابونو كښے په عربى نظم سره موجود نه وو.نو په عربئ نظم باندې د عدم قدرت په وخت كي په فارسئ ژبه كښے قرات كول جائز دې.البته گناهگار به وى.ځكه چې ده د سنت متوارثه مخالفت اوكړلو.

**وَيَجُوزُ بِأَيِّ لِسَانٍ كَانَ سِوَى الْفَارِسِيَّةِ** او د فارسئ نه علاوه هم په هره ژبه باندې جائز دې. **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا قول صحيح دې. **لِمَا تَلَوْنَا** ددے آيت د وجې كوم چې موږ تلاوت كړلو. **وَالْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ اللُّغَاتِ** او معنى د ژبې د اختلاف په وجه نه مختلف كيږي. **وَالْخِلَافُ فِي الِاعْتِدَادِ** او اختلاف ددے په معتبر كيدو كي دې.

**حل اللغة:** ① **لايختلف، اختلف اختلافًا**: مختلف كيدل

**تشريح:- الروايتان في حكم القراءة بغيرالفارسية** ﴿ ① علامه مرغينانى فرمائى.چې لكه څنگه په فارسئ ژبه په لمانځه كي قرات كول جائز دى.دغه ډول د فارسئ نه علاوه په هره ژبه كښ قرات جائز دې.هم دا صحيح قول دې. ② او دابوسعيد قول دې.چې امام ابوحنيفه رحمه الله صرف په فارسئ ژبه كيې قرات كول جائز گرخولي دې.د فارسئ نه سوا په نورو ژبو كښ ئې اجازت نه دے وركړې .وجه ددے دا ده.چې فارسى ژبه عربئ سره نزدے ده.نوځكه په فارسئ كي د قرات اجازت وركړې شوې دې.او نورو ژبو ته چونكه دا قرب حاصل نه دې.نو ځكه په هغې باندې قرات كول جائز نه دې.

**الدليلان لترجيح القول الاول** ﴿ ① اود قول صحيح دليل آيت ﴿**وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ**﴾ دې.ځكه چې قرآن په پخوانو كتابونو كي چې څنگه په عربئ ژبه كي نه وو.دغه ډول په فارسئ ژبه كښے هم نه وو. ② او دوهم دليل دا دې.چې قرآن بلے ژبې ته د منتقل كاوه په وخت كي اعتماد په معنى باندې وى.او معنى د ژبو په اختلاف سره



نه بدليږي.نو په تركي،هندي وغيره هره ژبه كښے جائز دي.

**وَلَا خِلَافَ فِي أَنَّهُ لَا فَسَادَ** او په عدم فساد كي څه اختلاف نشته.

**تشريح:- الروايتان في فساد الصلاة بالقراءة بغير العربية عندالصاحبين** رحمهما الله ﴿ ① مصنف د هدايه رحمه الله فرمائى.چې د امام صاحب او صاحبينو رحمهما الله په مينځ كي چې په غير عربئ باندې د قرات په جواز او عدم جواز كي كوم اختلاف دې.هغه په دے اړه كي دې.چې په غير عربئ كي به قرات معتبر وى كه نه ،تردې چې د امام صاحب رحمه الله په نيز كه په غير عربئ كي قرات اوكړى.نو قرات ادا شو.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز نه ادا كيږي.او په دے كي څه اختلاف نشته.چې په غير عربئ كي په قرات كاوه سره لمونځ نه فاسديږي.يعنى كه په غير عربئ كي ئې قرات اوكړلو.نو په اتفاق سره لمونځ نه فاسديږي. ② علامه ابن الهمام رحمه الله ليكلى دى.چې نجم الدين نسفي او قاضى خان رحمه الله ليكلى دى.چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز لمونځ فاسديږي.

**وَيُرْوَى رُجُوعُهُ فِي أَصْلِ الْمَسْأَلَةِ إِلَى قَوْلِهِمَا** او په اصل مسئله كي د امام صاحب رحمه الله نه د صاحبينو رحمهما الله قول اړخ ته رجوع روايت كړې شوې ده. **وَعَلَيْهِ الِاعْتِمَادُ** او هم په دے باندې اعتماد دې.

**تشريح:- رجوع الامام الى قول الصاحبين** ﴿ ابوبكر رازى رحمه الله روايت كړې دې.چې په اصل مسئله كي امام صاب رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله قول اړخ ته رجوع كړې ده.يعنى حضرت امام اعظم رحمه الله هم په آخر كي ددے قائل شوې وو.چې په لمانځه كي په غير عربئ باندې قرات كول جائز نه دي.او هم په دے باندې اعتماد دې.

**وَالْخُطْبَةُ وَالتَّشَهُّدُ عَلَى هَذَا الِاخْتِلَافِ** او په خطبه او تشهد كي هم دا اختلاف دې. **وَفِي الْأَذَانِ يُعْتَبَرُ التَّعَارُفُ** او په اذان كښے تعارف معتبر دې.

**تشريح:- حكم الخطبة و التحيات والاذان بغير العربية** ﴿ په خطبه او اتحيات كي هم دا اختلاف دې.يعنى د امام صاحب رحمه الله په نيز په غير عربئ كي جائز ده.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ناجائز دى.او په اذان كي تعارف معتبر دې.په ،،مبسوط،، كي دى.چې حسن بن زياد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دې.كه په فارسئ ژبه كي ئې اذان اوكړلو.او خلگو پيژندلو.چې دا اذان دې.نو جائز دې.اوكه خلگ ددے نه واقف نه وو.چې دا اذان دې.نوجائز نه دې.ځكه چې مقصود د اذان اعلام دې.او د خلگو د نه پيژندلو د وجې دا مقصود نه حاصليږي.

## په مختلفو الفاظوپه مانځه كي د پيل كولو حكم

**(وَلَوِ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ بِاللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي)** اوكه د «اللهم اغفرلى» نه لمونځ پيل كړى. **لَا يَجُوزُ** نوجائز نه ده. **لِأَنَّهُ مَشُوبٌ بِحَاجَتِهِ** ځكه چې دا دده د حاجت سره مخلوط دې. **فَلَمْ يَكُنْ تَعْظِيمًا خَالِصًا** خالص تعظيم نشو.

**حل اللغة:** ① **افتتح، افتتاحًا**: پيل كول ② **لاتجوز، جاز يجوز** (ن): رواكيدل ③ **مشوب**: ملاوشوې ④ **حاجت**: اړتيا

**تشريح:- مالايجوز به الشروع في الصلاة** ﴿ اوكه لمونځ ئې په «اللهم اغفرلى» سره پيل كړلو.نو جائز نه دې.ځكه چې دا د ده د حاجت سره مخلوط شو.نوچونكه دا كلمه خالص د تعظيم پاتې نشوه .نو ځكه په دے سره لمونځ پيل كول جائز نه دى.هم دا حال د هغه ټولو الفاظو دې.كوم چې خالص په تظيم باندې دلالت نه كوى.بلكه صراحةً يا معنىً د سوال معنى لره متضمن وى.لكه «استغفر الله، اعوذبالله، إنا لله، ما شاء الله ،لاحول ولا قوة إلا بالله او بسم الله»

**وَلَوِ افْتَتَحَ بِقَوْلِهِ اللَّهُمَّ** اوكه «اللهم» نه پيل اوكړى. **فَقَدْ قِيلَ يُجْزِئُهُ** نو وئيلې شوى دى.چې كافى دى. **لِأَنَّ مَعْنَاهُ يَا اللَّهُ** ځكه چې ددے معنى ده .يا الله

**تشريح:- اوكه صرف په «اللهم» سره ئې لمونځ پيل كړلو.نو په دے كي اختلاف دې.د يوے ډلے رائې دا ده.چې

جائز ده.ځكه چې د ﴿اللّٰهم﴾ معنى ده.يا الله او دا صرف ذكر الله دې.په دے كې د حاجت وغيره څه ګډون نشته.دا قول د بصريانو دې.

قِيلَ لَا يُجْزِئُهُ او ونيلى شوى دى.چې كافى نه دى. لِأَنَّ مَعْنَاهُ يَا اللّٰهُ أَمَّنَا بِخَيْرٍ ځكه چې ددے معنى ده.اے الله زموږ قصد اوكړه دخير سره. فَكَانَ سُؤَالًا نودا سوال شو

تشريح:- د يوے ډلے خيال دې.چې ﴿اللّٰهم﴾ سره لمونځ پيل كول جائز نه دى.ځكه چې ددے معنى ده.﴿يا الله آمنا بخير﴾ يعنى ﴿اقصدنا بخير﴾ اے الله زموږ سره د خيګړے اراده اوكړه.ښكاره ده.چې په دے صورت كے دا كلمه خالصه په تعظيم باندې دلالت كونكې پاتې نشوه.نوځكه په دے كلمه مونځ پيل كول جائز نه دى.دا قول د كوفيانو دې.(عنايه)

## په قيام كې دلاس كيخودو طريقه اومحل

قَالَ مصنف رحمه الله فرمائى.(وَيَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى تَحْتَ السُّرَّةِ) چې تكيه كوى به خپل ښي لاس په چپه لاس باندنې د نامه نه لاندې.

حل اللغة* ① يعتمد، اعتمد اعتماداً: يقين او باور كول ② يمنى: راسته ③ يسرى: چپه ④ سرة: نوم

تشريح:- دلته يوه مسئله دا ده چې په لمانځه كې ښي لاس په چپه باندې كيخودل مسنون دى.دويمه مسئله دا ده چې لاسونه د نامه نه لاندې كيخودل سنت دى.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى. {إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ وَضْعَ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ} [1] چې د نامه نه لاندې ښي لاس په چپه لاس باندې كيخودل سنت دى.

حل اللغة* ① وضع: ساتل

تشريح:- دلائل الاحناف رحمهم الله ۞ ① حضرت على ﷺ فرمائى.﴿من السنة أن يضع المصلي يمينه على شماله تحت السرة في الصلاة﴾ صاحب دهدايه دا اثر په دے الفاظو سره ذكر كړې دې.﴿إن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة﴾ د دواړو اصل دا ې.چې حضرت على ﷺ فرمائى چې په لمانځه كې ښي لاس په چپه باندې كيخودل مسنون دى.دلته دے دا خبره قابل ذكر وى.چې د هدايه په اصل نسخه كې دا عبارت داسې وو.﴿لقول على ﷺ إن من السنة الخ﴾ خو ناپوهه ليكونكو دا لقوله ﷺ كړلو.

وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رحمه الله اودا حديث د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دې. فِي الْإِرْسَالِ په لاسونو زوړندولو كې

حل اللغة* ① ارسال: پريخودل، ليږل

تشريح:- ددې حديث نه معلومه شوه چې راسته لاس په چپه باندې كيخودل مسنون دى حالانكه امام مالك رحمه الله فرمائى.چې ارسال به كوى.يعنى په لمونځ كې به لاسونه پريږدى.اوكه زړه ئې غواړى.نه اودے تړى.نو د امام مالك رحمه الله په نيز ارسال عزيمت او اعتماد (لاس كيخودل) رخصت دې. زموږ په نيز افضل دا دى.چې د نامه نه لاندې لاس كيږدى.ددې حديث نه معلومه شوه چې راسته لاس په چپه باندې كيخودل افضل اوغوره دى نودا حديث د امام مالك رحمه الله خلاف حجت شو.

وَعَلَى الشَّافِعِيِّ رحمه الله او دامام شافعى رحمه الله خلاف حجت دې. فِي الْوَضْعِ عَلَى الصَّدْرِ په سينه باندې لاس كيخودلو كې

حل اللغة* ① صدر جمع صدور: سينه

[1] من حديث على ﷺ اخرجه ابوداود فى الصلاة باب ۱۱۸ رقم ۷۵۶)



تشريح:- چونكه په دې حديث كې د ((تحت السرة)) لفظ راغلو د نامه نه لاندې لاسونه كيخودل سنت دى نو معلومه شوه چې لاسونه د نامه نه لاندې كيخودل افضل اوغوره دى نودا حديث د امام شافعى رحمه الله خلاف هم حجت شو.ځكه چې د هغوى په نيز افضل دا دى چې په سينه باندې لاسونه كيخودې شى.

الدليلان للشافعى رحمه الله ۞ ① امام شافعى رحمه الله د خپل مسلك لپاره استدلال د الله تعالى په دې قول باندې كوى (فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ) يعنى د خپل رب لپاره لمونځ كوه.او ښي لاس په چپه باندې كيږده.علامه ابن الهمام رحمه الله او صاحب د عنايه فرمائى.چې مفسرينونو فرمائيلى دى.د ،،وانحر،، نه مراد ښي لاس په سينه باندې كيخودل دى. ② دوهم دليل دا دې.چې سينه د نورايمانى ځائې دې.نو په لمانځه كښے دننه په خپل لاس سره ددے ساتنه كول بهتر دې.

الجواب من دليل الشافعى رحمه الله ۞ خو احناف د دې نه دا ځواب كوى چې په لفظ د ﴿وانحر﴾ سره استدلال ټيك نه دې.ځكه چې په آيت كې د ﴿وانحر﴾ نه مراد د اختر د لمانځه نه روسته د څاروى نحر(ذبح) كول دى.(كفايه)

وَلِأَنَّ الْوَضْعَ تَحْتَ السُّرَّةِ أَقْرَبُ إِلَى التَّعْظِيمِ اوځكه چې د نامه نه لاندې كيخودل تعظيم ته زيات نزدے دى. وَهُوَ الْمَقْصُودُ او هم تعظيم مقصود دې.

تشريح:- د احنافو دوهم عقلى دليل دا دې.چې د نامه نه لاندې لاس تړلو كې تعظيم دې.او په لمانځه كې هم تعظيم مقصود دې.نو ځكه د نامه نه لاندې لاس كيخودل افضل دى. ③ صاحب د كفايه ليكلى دى.دنامه نه لاندې لاس تړولو كې د اهل كتابو سره د مشابهت نه لرې والے دې.او ستر عورت ته نزديكت دې.ددے وجې هم د نامه نه لاندې لاس تړل غوره دى.

ثُمَّ الْاِعْتِمَادُ سُنَّةُ الْقِيَامِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله بيا اعتماد د شيخينو په نيز د قيام سنت دے. حَتَّى لَا يُرْسِلَ حَالَةَ الثَّنَاءِ [1] تردې چې د ثناء په حالت كښ به لاسونه نه پريږدى.

تشريح:- الروايتان في وقت وضع اليدين ۞ خلورمه مسئله دا ده.چې لمونځ ګذار به لاس كله تړى.نو په دے اړه كې دشيخينو رحمهما الله مذهب دا دې.چې لاس تړل د قيام سنت دې.او دامام محمد رحمه الله نه نقل دى.چې د قرات سنت دې.نو په ثنا كې د شيخينو رحمهما الله په نيز لاس تړل مسنون دى.او د امام محمد رحمه الله په نيز په حالت دثناء كې لاس زوړندل پريښول پكار دى.او د قرات په پيل كاوه به لاس تړي.

وَالْأَصْلُ او اصل دا دې. أَنَّ كُلَّ قِيَامٍ فِيهِ ذِكْرٌ مَسْنُونٌ چې هر هغه قيام چې په هغې كښے ذكر مسنون وى. يَعْتَمِدُ فِيهِ په هغې كې به لاس تړى وَمَا لَا فَلَا او هغه قيام چې داسې نه وى.نو په هغې كې مسنون نه ګڼى. هُوَ الصَّحِيحُ هم دا قول صحيح دې. فَيَعْتَمِدُ فِي حَالَةِ الْقُنُوتِ نو لاس به تړى په حالت د قنوت كې وَصَلَاةِ الْجَنَازَةِ او د جنازې په لمونځ كې وَيُرْسِلُ فِي الْقَوْمَةِ او لاس به پريږدى په قومه كې وَبَيْنَ تَكْبِيرَاتِ الْأَعْيَادِ او د اخترونو په تكبيرونو كې

تشريح:- الضابطة في الاعتماد والارسال ۞ صاحب دهدايه رحمه الله د لاس په تړلو او پريښولو كښے دا ضابطه بيان كړې ده.چې هر هغه قيام (كه حقيقى وى يا حكمى) چې په هغې كې مسنون ذكر وى.نو په داسې قيام كې لاس تړل سنت دى.اوكوم قيام چې داسے نه وى.نو په هغې كې لاس تړل مسنون نه دى.هم دا قول صحيح دې.په دے قول باندې شمس الائمه سرخسى رحمه الله صدر الكبير برهان الائمه او صدرالشهيد حسام الائمه

[1] القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى الكفاية (۱\۲۵۰) وردالمحتار(۱\۳۵۹) والهندية (۱\۷۳) ونقلا عن القول الراجح (۱\۳۷)_

فتوى وركوله. نو دده داصولو دلاندې په حالت قنوت او د جنازې په لمانځه كي لاس تړل مسنون دي. او قومه (د ركوع او سجدې مينځ) او د اخترونو په تكبيرونو كي لاسونه پرېښول مسنون دي.

**په ثناء كې ماثوره دعاء**

| |
|---|
| ﴿ثُمَّ يَقُولُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ إِلَى آخِرِهِ﴾ (¹) بيا دے «سبحانك اللهم وبحمدك» تر آخره پورې اووائي. |

**حل اللغة:** ① **يقول، قال قولاً** (ن): وئيل

**تشريح:- كلمات الثناء** ◉ امام قدوري رحمه الله فرمائي. چې لمونځ كذاربه د لاس تړلو نه روسته ثناء وائي. او ثناء دا ده. « سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالى جدك ولا إله غيرك» او په بعضوغير مشهورو رواياتو كي «وتعالى جدك وجل ثناؤك ولا إله غيرك» دي. خوچونكه «جل ثناءك» په مشهورو رواياتو كي مذكور نه دي. نو خكه به دا په فرائضو كي نه وائي.

| |
|---|
| وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د ابويوسف رحمه الله نه مروى دى. أَنَّهُ يَضُمُّ إِلَيْهِ قَوْلَهُ {إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ} إِلَى آخِرِهِ چې ددے ثناء سره دے (إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ) آخره پورې اووائي. لِرِوَايَةِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خكه چې حضرت على رضي الله عنه روايت كړې دي. أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَقُولُ ذٰلِكَ. (²) چې نبى ﷺ به دا وئيله. |

**حل اللغة:** ① **يضم، ضم ضماً** (ن) جمع كول يوځاى كول ② **وجهت، وجه توجيهاً** كرځيدل ③ **وجه جمع وجوه:** مخ

**تشريح:- الروايتان في ضم الدعاء الاخرى مع الثناء** ◉ پاته شوه د خبره چې د ثناء سره به بله دعا يوځائې كوى كه نه؟ ❶ نو په دے اړه كي د طرفينو رحمهما الله مذهب او امام ابويوسف رحمه الله قول اول دا دے. چې د ثناء سره دے بله دعا نه كوى. ② او د امام ابويوسف رحمه الله قول ثانى دا دې. چې مصلى دے د ثناء سره دا دعا يوځائې كوى (إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝) (قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ ۝) او په ځينې رواياتو كي د «من المسلمين» د الفاظو نه روسته دا الفاظ هم راغلى دى. « اللهم أنت الملك لا إلـه إلا أنت، أنت ربي وأنا عبدك ظلمت نفسى واعترفت ذنبى فاغفرلى ذنوبي جميعاً لا يغفر الذنوب إلا أنت واهدنى لأحسن الأخلاق لا يهدى لأحسنها إلا أنت واصرف عنى سيئها لا يصرف عنى سيئها إلا أنت لبيك وسعيدك الخير كله في يديك والشر ليس إليك أنا بك وإليك تبارك وتعاليت استغفرك وأتوب إليك» د فقهاو په اصطلاح كي ددے دعا نوم ،،توجه،، ده.

**دليل ابى يوسف رحمه الله** ◉ د حضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل د حضرت على رضي الله عنه روايت دې. چې نبى ﷺ به د ثنا سره دا دعا هم وئيله.

| |
|---|
| وَلَهُمَا رِوَايَةُ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د طرفينو رحمهما الله دليل د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ چې رسول الله ﷺ به كله لمونځ پيل كولو. نو دا به ئې وئيل. وَقَرَأَ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ إِلَى آخِرِهِ} (³) او «سبحانك اللهم وبحمدك» آخره پورې به ئې وئيل. وَلَمْ يَزِدْ عَلَى هٰذَا او په دے به ئې زيادت نه كولو. |

**حل اللغة:** ① **لم يزد، زاد زيادة** (ض): زياتول

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ◉ د طرفينو رحمهما الله دليل د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې. چې «أن النبى ﷺ كان إذا افتتح الصلاة- كبر وقرا سبحانك اللهم وبحمدك إلى آخره» صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى. چې حضرت انس رضي الله عنه ددے نه زياتى څه نه دى بيان كړې. نو معلومه شوه. چې د ثنا نه روسته ،،توجه،، يعنى « وَجَّهْتُ إِنِّي .... الخ» وئيل

(¹) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى مجمع الانهر (٩٤\١١) وردالمحتار (٣٦٠\١١) والهندية (٧٣\١١) والبحرالرائق (٥٤٠\١١) وتبيين الحقائق (١١١\١١) نقلا عن القول الراجح (٧٤\١١)_



ثابت نه دى.

| |
|---|
| وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى التَّهَجُّدِ او ابويوسف رحمه الله چې كوم روايت كړې دې. هغه په تهجد باند. محمول دې. وَقَوْلُهُ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ لَمْ يُذْكَرْ فِي الْمَشَاهِيرِ او د دوى قول «جل ثناؤك» په مشهور روايانو كښے مذكور نه دې. فَلَا يَأْتِي بِهِ فِي الْفَرَائِضِ نو دا به په فرائضو كي نه راولى. |

**تشريح:- الجواب عن مستدل ابى يوسف رحمه الله** ◉ مصنف دهدايه رحمه الله وئيلى دى. چې د ابويوسف رحمه الله پيش كړې روايت د تهجدو په لمونځ باندې حمل دې. يعنى نبى به په نفل مونځونو كي دا دعا كوله. او په فرائضو كي د ثناء نه سوا بله دعا منقول نه ده.

| |
|---|
| وَالْأَوْلَى أَنْ لَا يَأْتِيَ بِالتَّوَجُّهِ قَبْلَ التَّكْبِيرِ او غوره دا ده. چې د تكبير نه وړاندې توجه «انى وجهت» نه وائى. لِتَتَّصِلَ بِهِ النِّيَّةُ ددے لپاره چې نيت د تكبير سره متصل وى. هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده. |

**حل اللغة:** ① **ليتصل، اتصل اتصالاً:** ملاويدل

**تشريح:- مصنف** رحمه الله فرمائى. چې غوره دا ده. چې د نيت نه روسته او د تكبير نه وړاندې هم «انى وجهت .... الخ» نه وائى. ددے لپاره چې نيت د تكبير سره متصل شى. او په مينځ كي « انى وجهت.... الخ» فاصل نه شى. هم دا صحيح ده. او ځينې متاخرينو چې په هغوى كي فقيه ابوالليث رحمه الله هم دې. فرمائى. چې د نيت او تكبير په مينځ كي ددے وئيل جائز دى.

**د تعوذ احكام**

| |
|---|
| ﴿وَيَسْتَعِيذُ بِاللّٰهِ او پناه به غواړى په الله سره مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ د شيطان مردود نه. لِقَوْلِهِ تَعَالَى خكه چې الله تعالى فرمائيلى دى. (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيمِ ۝) كله چې تاسو قرآن وائې نو پناه غواړئ په الله تعالى سره دشيطان مردود نه ، مَعْنَاهُ د «اذا قرات» معنى دا ده. إِذَا أَرَدْتَ قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ چې كله ته د قرآن دقرات اراده اوكړې. |

**حل اللغة:** ① **يستعيد، استعاذ استعاذة:** پناه غوښتل ② **رجيم:** مردود ، شړې شوې ③ **اردت، اراد ارادة:** اراده كول

**تشريح:-** زمونږ په نيز د لمونځ په پيل كي تعوذ مسنون دې. (فتح القدير)

**دليله** ◉ دليل د الله تعالى قول دې. (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ) په آيت كي د ،،استعذ،، صيغه د امر اګرچې دا تقاضا كوى. چې تعوذ واجب دې. لكه چې عطاء او ثورى رحمهما الله فرمائى. خو چونكه اسلافو ددے په سننيت باندې اجماع كړې ده. نو خكه زمونږ عالمان رحمهم الله د تعو د مسنونيت قائل دى.

| |
|---|
| وَالْأَوْلَى أَنْ يَقُولَ أَسْتَعِيذُ بِاللّٰهِ او غوره دا ده. چې «استعيذبالله من الشيطان الرجيم» اووائى. لِيُوَافِقَ الْقُرْآنَ چې د قرآن سره موافق شى. وَيَقْرُبُ مِنْهُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ او ددے ته نزدے «اعوذ بالله» هم ده. |

**حل اللغة:** ① **ليوافق، وافق موافقة:** موافق كيدل ② **يقرب، قرب قربة** (ن): نژدې كيدل

**تشريح:- الروايات الثلاثة في صيغة التعوذ** ◉ د دريم بحث اصل دا دې. ① چې د تعوذ په الفاظو كي غوره دا دى. چې «استعيذ بالله من الشيطان الرجيم» اووائى. چې دالله تعالى د قول (فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ) سره موافق شى. ② خو په زياتو اخبارو او آثارو كي «اعوذ بالله من الشيطان الرجيم» راغلى دى. ددے وجې علامه مرغينانى رحمه الله اووئيلې. چې ،،استعيذ،، ته نزدے «اعوذ بالله» هم ده. هو مختار مذهب هم دا دې. او هم په دے باندې دے فتوى وركولې شى. ③ او ځينې حضرات وائى. چې نبى ﷺ «اعوذ بالله العظيم السميع العليم من الشيطان الرجيم» وئيلې ده. نو دا دے اختيار كړې شى.

| |
|---|
| ثُمَّ التَّعَوُّذُ تَبَعٌ لِلْقِرَاءَةِ بیا تعوذ د قرات تابع ده. دُوْنَ الثَّنَاءِ د ثناء تابع نه ده. عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (۱) د طرفینو رحمهما الله په نیز لِمَا تَلَوْنَاهُ هغې آیت په وجه کوم چې موږ تلاوت کړلو. حَتّٰى يَأْتِيْ بِهِ الْمَسْبُوْقُ دُوْنَ الْمُقْتَدِيْ نو دا به مسبوق وائی. او مقتدی نه. وَيُؤَخِّرُ عَنْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدِ او امام به تعوذ د اختر په تکبیرونو کې روستو کوی. خِلَافًا لِأَبِي يُوْسُفَ رحمه الله په دے کې د ابویوسف رحمه الله اختلاف دی. |

**حل اللغة:** ① **مسبوق**: وړاندې شوی ② **یؤخر، اخر تاخیراً**: روستوکول

**تشريح:- الاختلاف في متبوع التعوذ:** پاته شوه دا خبره. چې تعوذ د قرات تابع دے که د ثنې. نو په دے اره کې زموږ په عالمانو رحمهم الله کې اختلاف دی. ① د طرفینو رحمهما الله په نیز تعوذ د قرات تابع دے ② او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د ثناء تابع دی. نو د طرفینو په نیز چې په کوم کس باندې قرات واجب وی. هغه به تعوذ وائی. نو مسبوق به تعوذ وائی. ځکه چې په ده باندې په فوت شوو رکعتونو کې قرات واجب دی. البته مقتدی به تعوذ نه وائی. ځکه چې په ده باندې قرات واجب نه دی.

**محل التعوذ في العيدين والاختلاف فيه:** او د اخترونو په لمونځ کې به تعوذ د اختر د تکبیرونو نه روستو کوی. ځکه چې د اخترونو په اولنی رکعت کې قرات د تکبیرات العیدین نه روسته وی. او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز چې څوک ثناء وائی. هغه به تعوذ هم وائی.

**دليل ابي يوسف رحمه الله:** دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی. چې تعوذ د ثناء د جنس څخه دی. ځکه چې لکه څنګه ثناء دعا ده. دغه ډول تعوذ هم یوه دعا ده. او د شی تابع د هغه نه روسته وی. نو ثابته شوه. چې تعوذ د ثناء تابع دی. د قرات نه دی.

**دليل الطرفين رحمهما الله:** او د طرفینو رحمهما الله دلیل د الله تعالی قول دی. ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ﴾ دی.

## تسميه

| |
|---|
| قَالَ وَيَقْرَأُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فرمايي چې او بسم الله الرحمن الرحيم دے وائی. هٰكَذَا نُقِلَ فِي الْمَشَاهِيْرِ (۲) هم داسې په مشهورو احادیثو کې مروی دی. |

**تشريح:-** په تسمیه کې په څو خبرو کې کلام دی.

**حكم تسمية سورة النمل:** دا دے ښکاره وی. چې د سورة نمل په آیت ﴿إِنَّهُ مِنْ سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ کې په اتفاق سره د قرآن جزء دی. او د سورة نمل هم

**حكم التسمية بين السورتين:** خو د دوو سورتونو په مینځ کې چې کومه بسم الله مذکور ده. په دے کې اختلاف دی. چې دا د قرآن جزء دے او که نه دے؟ نو زموږ د احنافو عالمانو رحمهم الله په نیز د قرآن جزء دی. او امام مالك رحمه الله د قرآن د جزئیت قائل نه دی.

**حكم التسمية في الفاتحة:** بسم الله زموږ په نیز د سورة فاتحه جزء نه دے او نه د بل سورت بلکه د سورتونو په مینځ کې د فصل لپاره نازل شوې ده. امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې بسم الله د سورة فاتحه جزء دی. او د پاته سورتونو په جزئیت کې د امام شافعی رحمه الله دوې (دوه) اقواله دی.

## په تعوذ تسميه او آمين کې دجهر او اخفاء حكم

---

(۱) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى البحر(۵۴۳۰/۱)و خلاصة الفتاوى (۵۲/۱) وبدائع الصنائع (۲۰۲/۱) وردالمحتار(۳۶۲/۱) والهندية (۱۰۴/۱) نقلا عن القول الراجح (۷۵/۱)-

(۲) فيه احاديث منها حديث ابن عباس رضى الله عنهما قال كان النبى ﷺ يفتتح صلاته ببسم الله الرحمن الرحيم اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ۶۷ رقم ۲۴۵)_



| |
|---|
| وَيُخْفِيْهِمَا او بسم الله او تعوذ به په پټه وائی. لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه ځکه چې ابن مسعود رضي الله عنه فرمائی. أَرْبَعٌ يُخْفِيْهِنَّ الْإِمَامُ څلور شیان (څیزونه) دی. کوم چې به امام په پټه وائی. وَذَكَرَ مِنْهَا التَّعَوُّذَ وَالتَّسْمِيَةَ وَآمِيْنَ (۱) او ذکر کړی نی دی. په دے کې ،، تعوذ تسمیه او آمین،، |

**حل اللغة:** ① **يخفيهن، اخفى اخفاء**: پواره

**تشريح:- جهر التسمية واخفاءها:** ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چې په تسمیه او تعوذ کې به پټوالے کوی. یعنی په لمانځه کې به دا په پټه وائی.

**دليله:** دلیل دابن مسعود رضي الله عنه قول دی. چې څلور شیان (څیزونه) داسې دی. کوم چې امام پټ وائی. هغه څلور شیان (څیزونه) دا دی. تعوذ، تسمیه، تحمید (ربنالك الحمد) او آمین، صاحب د شرح نقایه د تحمید په ځانې ثناء ذکر کړې ده. ځکه چې امام محمد رحمه الله په آثار کې روایت کړې دی. ﴿عن ابي حنيفة رضي الله عنه عن حماد عن ابراهيم النخعي انه قال اربع تخفيهن الإمام التعو وبسم الله الرحمن الرحيم، وسبحانك اللهم وبحمدك وآمين﴾ (شرح نقايه)

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی. يَجْهَرُ بِالتَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْجَهْرِ بِالْقِرَاءَةِ چې تسمیه به په جهر باندې وائی. کله چې قرات په جهر کوی. لِمَا رُوِيَ "{أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَهَرَ فِيْ صَلَاتِهِ بِالتَّسْمِيَةِ}" (۲) ځکه چې مروی دی. چې نبی ﷺ په خپل موخ کې بسم الله په جهر سره وئیلې ده. |

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې په جهری لمونځ کې به بسم الله په جهر سره وائی.

**دليله:** د امام شافعی دلیل دا دی. حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت کوی. چې نبی ﷺ به په خپل لمونځ کې په بسم الله باندې جهر کولو. په صحیح ابن خزیمه، ابن حبان او نسائی کې د نعیم بن المجمر نه روایت دی. چې ﴿صليت وراء أبي هريرة رضي الله عنه فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم، ثم قرأ بام القرآن حتى بلغ ولا الضالين، فقال آمين، ثم يقول إذا سلم والذى نفسي بيده إنى لأشبهكم صلاة برسول الله ﷺ﴾ فتح القدير) یعنی نعیم المجمر نه روایت دی. چې ما په حضرت ابوهریره رضي الله عنه پسې روستو لمونځ کولو. نو ابوهریره رضي الله عنه بسم الله الرحمن الرحيم اووئیل. بیا ئې ام القرآن یعنی سورة فاتحه اووئیله. تردې چې ((ولا الضالين)) ته اورسیدلو. نو آمین ئې اووئیل. بیا ئې د سلام نه روسته اووئیل. په هغه ذات مې دے قسم وی. چې زما روح د هغوی په قبضه کې دی. چې زه د رسول الله ﷺ سره په لمانځه کې د ټولو نه زیات مشابه یم.

**الاستدلال:** دا حدیث په دے خبره دلالت کوی. چې حضرت ابوهریره رضي الله عنه په بسم الله، سورة فاتحه او آمین درے واړو باندې جهر کولو. ځکه که ابوهریره رضي الله عنه جهر نه کولو. نو نعیم المجمر رضي الله عنه ته به څنګه پته لګیدله. او چونکه حضرت ابوهریره رضي الله عنه اووئیل. چې زما لمونځ د رسول الله ﷺ د لمانځه سره زیات مشابه دی. نو د دے نه معلومه شوه. چې نبی ﷺ به هم دا شیان (څیزونه) په جهر سره لوستل.

| |
|---|
| قُلْنَا: هُوَ مَحْمُوْلٌ عَلَى التَّعْلِيْمِ موږ وایو. چې دا په تعلیم باندې محمول ده. |

**حل اللغة:** ① **تعليم**: خودل

**تشريح:- الجوابان من مستدلات الشافعي رحمه الله:** د حضرت امام شافعی رحمه الله بالجهر پیش کړې روایتونو نه خواب دا دی. ① چې نبی ﷺ کله کله د خلګو دتعلیم لپاره په بسم الله باندې جهر کړې دی. ګنې د نبی ﷺ عام عادت په بسم الله باندې جهر نه وو. حضرت انس رضي الله عنه خبر ورکړې دی. چې نبی ﷺ په بسم الله باندې په لمانځه

---

(۱) غربه الزيلعى ثم قال وبمعناه عنه رضي الله عنه كان يخفى بسم الله الرحمن الرحيم والاستعاذة وربنا لک الحمد اخرجه ابن ابى شيبة (نصب:۱۰۴/۱)

(۲) فيه احاديث منها حديث ابن عمر قال صليت خلف النبى وابى بكروعمر فكانوا يجهرون ببسم الله الرحمن الرحيم اخرجه الدارقطنى (۳۰۵/۱)

كي دننه جهر نه دے كړي.

② **جواب ابن الهمام رحمه الله عن حديث المجمر**۞علامه ابن الهمام رحمه الله د نعيم المجمر ﷺ د روايت ځواب وركوى اوفرمائي. چې ممكن ده. چې د حضرت ابوهريره ﷺ د اخفاء باوجود نعيم المجمر ﷺ اوريدلى وي. ځكه كه مقتدى د امام سره نزدے وي. او امام په اخفاء كي مبالغه نه وى كړي. نو هم اوريدل متحقق كيدې شي.

لِأَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَخْبَرَ ځكه چې حضرت انس ﷺ خبر وركړې دې. {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ لَا يَجْهَرُ بِهَا} چې رسول الله ﷺ به په بسم الله جهر نه كول

**تشريح:-** ددې چې په تسميه باندې به جهر نشى كولې د حضرت انس ﷺ قول دې. ارشاد دې. «صليت خلف رسول الله ﷺ وخلف أبي بكر وعمر وعثمان فلم أسمع أحدا منهم يقرأ بسم الله الرحمن الرحيم» او د مسلم په يو روايت كښے دى. «فلم اسمع احدا منهم يجهرون ببسم الله الرحمن الرحيم» حضرت انس ﷺ فرمائي. چې ما په رسول الله ﷺ، ابوبكر، عمرو او عثمان ﷺ پسې لمونځ كولو، ما په دوى كښ د يو نه هم په بسم الله باندې جهر نه دے اوريدلى.

ثُمَّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بيا دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ لَا يَأْتِي بِهَا فِي أَوَّلِ كُلِّ رَكْعَةٍ چې بسم الله به د هر ركعت په اول كي نه راوړي. كَالتَّعَوُّذِ لكه څنګه چې د تعوذ حكم دې. وَعَنْهُ اود ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم مروى دى. أَنَّهُ يَأْتِي بِهَا احْتِيَاطًا(١) چې بسم الله به احتياطاً ( دهرركعت په اول كي ) راوړي. وَهُوَ قَوْلُهُمَا اوهم دا د صاحبينو رحمهما الله قول دې.

**تشريح:- الرواية الاولى في التسمية في كل ركعة**۞پاتې شوه دا خبره چې بسم الله به په هر ركعت كي د سورة فاتحه نه وړاندې وائي. او كه صرف په اولنى ركعت كي نو په دے اړه كي د حضرت امام اعظم رحمه الله نه دوې (دوه) رواياتونه دى. دحسن بن زياد روايت دا دې. چې بسم الله به په هر ركعت كي نه وائى. بلكه د لمونځ په پيل كي صرف يو ځل وئيل كافى دى. لكه څنګه چې تعوذ صرف په اولنى ركعت كي كافى دى.

**دليلها**۞ددے دليل دا دې. چې بسم الله د سوره فاتحه جزء نه دې. بلكه د افتتاح صلاة لپاره وئيلې شي. او صلاة واحد د فعل واحد په څير دې. او د فعل واحد لپاره يوځل بسم الله وئيل كافى دى. نو د صلاة واحده لپاره هم يو ځل بسم الله وئيل كافى دى.

**الرواية الثانية عن ابى حنيفة**۞ رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله نه دوهم روايت د ابويوسف رحمه الله دې. چې په هر ركعت كي به بسم الله وائى. احتياط هم په دے كي دې.

**دليلها**۞ځكه چې په دے كي د عالمانو رحمهم الله اختلاف دې. چې بسم الله د فاتحه جزء دے او كه نه؟ او د فاتحه په هر ركعت كي وئيل ضرورى دى. نو د بسم الله وئيل هم په هر ركعت كي ضرورى شو. چې د اختلاف نه بچ والي راشي.

وَلَا يَأْتِي بِهَا بَيْنَ السُّورَةِ وَالْفَاتِحَةِ او بسم الله به د فاتحه او سورت په مينځ كي نه راوړي. إِلَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله مګر د امام محمد رحمه الله په نيز فَإِنَّهُ يَأْتِي بِهَا فِي صَلَاةِ الْمُخَافَتَةِ نو دا به په سرى لمونځ كي وائى.

**حل اللغة**① **مخافتة:** په مزه

**تشريح:- عدم التسمية بين الفاتحة والسورة**۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چې په هر ركعت كښے بسم الله وئيل د صاحبينو رحمهما الله قول دې. بيا فرمائي. چې د سورة فاتحه او سورة په مينځ كي دے بسم الله نه وائى. البته امام

---

(١) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى مجمع الانهر(٩٥\١) والهندية (٧٤\١) ،ردالمحتار(٣٦٢\١) وبدائع الصنائع (٢٠٢\١) وردالمحتار(٣٦٢\١) والهندية (٧٤\١) وتبيين الحقائق (١١١\١) والعناية (٢٥٥\١) نقلا عن القول الراجح (٧٧\١)-



محمد رحمه الله فرمائي. چې په سرى لمونځ كي بسم الله ،د سورة فاتحه اوسورة په مينځ كښے وئيلې شي. خو په جهرى كښے نشى وئيلې.

### د سورة فاتحه او ضم سورت حكم

ثُمَّ يَقْرَأُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ بيا دے سورة فاتحه اووائى. وَسُورَةً أَوْ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَيِّ سُورَةٍ شَاءَ او يو سورة يا درے آيتونه چې كوم سورة نه ئې خوښه وى. فَقِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ لَا تَتَعَيَّنُ رُكْنًا عِنْدَنَا نو زمونږ په نيز د فاتحه لوستل ركن كيدل متعين نه دى. وَكَذَا ضَمُّ السُّورَةِ إِلَيْهَا اوهم داسې ددے سره د سورت ملاوول.

**حل اللغة**① **يقرأ، قرا قراءة:** لوستل ② **لاتتعين، تعين تعينا:** متعين كول ③**ضم:** جمع كول، يوځائ كول

**تشريح:- الاختلاف في حكم الفاتحة وضم السورة**۞ د عالمانو رحمهم الله په دے اړه كي اختلاف دې. چې په لمانځه كي دننه د قرآن قرات په څومره مقدار فرض او ركن دې. ① زمونږ د عالمانو مذهب دا دې. چې مطلقاً د قران قرات فرض دې. كه يو آيت ئې اووئيل. نو ركن قرات ادا شو. پاته د سورة فاتحه لوستل او ددے سره د سورت ملاوول دا دواړه زمونږ په نيز په واجباتو كښے دى.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله فِي الْفَاتِحَةِ په سورة فاتحه كي دامام شافعى رحمه الله

**تشريح:-** امام شافعى رحمه الله فرمائي. چې د سورة فاتحه وئيل ركن دى.

وَلِمَالِكٍ رحمه الله فِيهِمَا او په سورة فاتحه او سورت دواړو كي د امام مالك اختلاف دې. لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د امام مالك رحمه الله دليل دې. چې نبى ﷺ فرمائيلى دى. {لَا صَلَاةَ إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ لمونځ نه دے مګر په فاتحه باندې ،وسورة مَعَهَا}(١) او ددے سره په سورت باندې.

**تشريح:-** امام مالك رحمه الله فاتحه او سورت ملاوول دواړو ته ركن وائى.

**دليله** ۞ دامام مالك رحمه الله دليل د نبى ﷺ قول دې. چې «لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب وسورة معها» يعنى فاتحه او سورت نه بغير مونځ صحيح نه دې. او ښكاره ده. چې دا شان د فرض وى. د واجب نه وى.

وَلِلشَّافِعِيِّ رحمه الله قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام شافعى رحمه الله دليل د نبى ﷺ قول دې. {لَا صَلَاةَ إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ}"(٢) چې لمونځ نه دې. مګر په سورة فاتحه،

**تشريح:- دليل الشافعى**۞ رحمه الله دامام شافعى رحمه الله دليل د رسول الله ﷺ حديث «لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب» دې.

وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى او زمونږ دليل دا دې. چې الله تعالى فرمائي. {فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ} وائې كوم چې تاسو ته آسان وى په قرآن كښے،

**حل اللغة**① **تيسر، تيسرا:** آسانيدل

**تسهيل: دليل الاحناف**۞او زمونږ دليل د الله تعالى ارشاد دے (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) دې. ددے آيت نه داسې استدلال كيږى. چه« ﴿ اَلْقُرْءَانِ مِن﴾ مطلق دې. نو د «المطلق يجرى على إطلاقه» قاعده ده. چې په كوم ادنى مقدار باندې قرآن صادق راځى. د هغې لوستل به فرض وى. ځكه چې هم دا اندازه مامور به ده. اوچونكه د قرآن نه بهر د قرآن قرات فرض نه دې. نو ځكه په لمانځه كي دننه به د دے فرضيت متعين وى.

وَالزِّيَادَةُ عَلَيْهِ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ لَا يَجُوزُ او په قرآن پاك باندې په خبر واحد سره زيادت جائز نه دې. لَكِنَّهُ يُوجِبُ الْعَمَلَ البته

---

١) من حديث ابى سعيد ﷺ اخرجه الترمذى فى الصلاة باب تحريم الصلاة وتحليها)ـ

٢) من حديث عبادة بن صامت ﷺ اخرجه الائمة الستة فى كتبهم منهم البخارى فى الاذان باب ١٠٤)ـ

خبر واحد عمل واجبوی. فَقُلْنَا بِوُجُوبِهِمَا نو موږ د دواړو د وجوب قائلین شو.

**حل اللغة:** ① یوجب، اوجب ایجاباً: واجب کول

**تشریح:- الجواب عن دلائل الخصمین** ❁ دامام مالك او امام شافعی رحمهما الله د دلیل ځواب دا دی.چې ددې حضراتو پیش کړی روایات اخبار احاد دی.او اخبار احاد ظنی وی.او په اصول فقه کې دا خبره ذکر ده.چې رکن په دلیل قطعی سره ثابتیږی.په دلیل ظنی سره نه ثابتیږی،البته دلیل ظنی عمل واجبوی.نو ځکه زموږ د عالمانو رحمهم الله په نیز دا دواړه واجب دی.اوچونکه د خبر واحد په ذریعه په کتاب الله باندې زیادت جائز نه دی.نو ځکه ددې احادیثو په ذریعه په کتاب الله ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ فاقر باندې زیادت هم نشی کیدې.

### د امام او مقتدی لپاره دآمین ویلو حکم

وَإِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّينَ او کله چې امام وَلَا الضَّالِّينَ اووائی. قَالَ آمِينَ او په خپله به امام آمین وائی. وَيَقُولُهَا الْمُؤْتَمُّ او مقتدی به هم وائی.

**حل اللغة:** ① قال قولاً (ن): وینا کول

**تشریح:- التامین من یقولها؟** ❁ ① مسئله دا ده.چې د سورة فاتحې په ختمیدو باندې چې کله امام «الضَّالِّينَ وَلَا» اووائی.نو امام او مقتدی دواړو لره آمین ویل پکار دی.

(لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. {إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا}"(۱) کله چې امام آمین اووائی.نو تاسو هم آمین وائې.

**حل اللغة:** ① فامنوا، امن تامیناً: آمین ویل

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ❁ زموږ دلیل دا حدیث دی.« إذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه» کله چې امام آمین اووائی.نوتاسو هم آمین وائې.ځکه چې د چا آمین ویل برابر شی د فرشتو د آمین ویلو سره نو د هغه تیر شوی واړه ګناهونه معاف کولې شی.

وَلَا مُتَمَسَّكَ لِمَالِكٍ رحمه الله فِي قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام مالك رحمه الله د نبی ﷺ په قول {إِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا آمِينَ}(۲) «إذا قال الإمام وَلَا الضَّالِّينَ ،،فقولوا آمين» کې څه استدلال نشته. مِنْ حَيْثُ الْقِسْمَةِ د ویش په اعتبار سره لِأَنَّهُ قَالَ فِي آخِرِهِ فَإِنَّ الْإِمَامَ يَقُولُهَا ځکه چې نبی ﷺ ددې حدیث په آخر کې فرمائیلی دی. «فإن الإمام يقولها»

**تشریح:-** امام مالك رحمه الله فرمائی.چې صرف مقتدی به امین وائی.امام به امین نه وائی.

❁ **دلیله** ❁ د امام مالك دلیل دا حدیث دی.« إذا قال لإمام ،، وَلَا الضَّالِّينَ ،، فقولوا آمين» مسلم پوره حدیث داسې روایت کړې دی.« إنما جعل الإمام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتو او إذا قال،، وَلَا الضَّالِّينَ ،، فقولوا آمين» یعنی امام خو ددې لپاره جوړ شوی دی.چې دده اقتداء اوشی.نو تاسو د هغه نه اختلاف مکوئ.کله چې هغه تکبیر وائی.نو تاسو تکبیر وائې.او کله چې هغه قرات وائی.نو تاسوچوپ اوسئ.او کله چې هغه وَلَا الضَّالِّينَ اووائی.نو تاسو آمین وائې

❁ **استدلال مالك** رحمه الله ❁ امام مالك رحمه الله ددې حدیث نه داسې استدلال کوی.چې نبی ﷺ ویش کړې دی.نو د امام په برخه کې د قرات اتمام دې.او د مقتدی په برخه کښې آمین ویل دی.او چونکه ویش د شرکت منافی

۱) من حدیث ابن هریرة ﷺ اخرجه الائمة الستة فی کتبهم منهم البخاری فی الاذان باب ۱۱۱)_
۲) من حدیث ابی هریرة ﷺ اخرجه النسائی فی الامامة باب ۳۸)_



دی.نو ځکه په امین ویلو کې امام او مقتدی دواړه شریك نه وی.بلکه صرف مقتدی به امین وائی.

❁ **الځواب عن دلیل مالك** رحمه الله ❁ د امام مالك رحمه الله د پیش کړی حدیث ځواب دا دی.چې ددې حدیث په آخر کې دی. « فإن الإمام يقولها» یعنی امام هم امین وائی.نو معلومه شوه.چې په دې حدیث کې ویش او ویش مراد نه دی.

### په آمین کې دجهر او اخفاء حکم

قَالَ (وَيُخْفُونَهَا) وائی.چې دا واړه خلګ به آمین په پټه وائی.

**تشریح:- الاختلاف فی جهر التامین واخفاءه** ❁ ① زموږ په نیز د امام او مقتدی ټولو لپاره آمین په پټه ویل مسنون دی. ② او امام شافعی رحمه الله د آمین بالجهر قائل دی.

❁ **دلیل الشافعی** رحمه الله ❁ د امام شافعی رحمه الله دلیل د ابوداؤد روایت دی.« عن وائل بن حجر قال كان رسول الله ﷺ إذا قرأ،، وَلَا الضَّالِّينَ ، قال آمين ورفع بها صوته» او په ترمذی کې دی.« ومد بها صوته» یعنی وائل بن حجر ﷺ فرمائی.چې رسول الله ﷺ به کله « وَلَا الضَّالِّينَ » اوویل.نو آمین به ئې ویل.او دخپل آمین سره به ئې خپل آواز اوچتولو.

لِمَا رَوَيْنَاهُ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ د ابن مسعود ﷺ ددې حدیث دوجې کوم چې موږ روایت کړلو.

**تشریح:- الدلیل الاول لاخفاء التامین** ❁ زموږ دلیل د حضرت ابن مسعود ﷺ حدیث دی.کوم چې وړاندې تیر شو.یعنی «قال اربع يخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم واللهم ربنا لك الحمد وآمين» او په یو روایت کې دی.« خمس يخفيهن الإمام» او دذکر شوی څلورو څیزونو نه علاوه ئې «سبحانك اللهم وبحمدك» هم ذکر کړې دی.ددې روایت نه آمین په پټه ویل ثابت شو.

وَلِأَنَّهُ دُعَاءٌ او ددې وجې چې آمین دعا ده. فَيَكُونُ مَبْنَاهُ عَلَى الْإِخْفَاءِ نو ددې وجې به په پټه وی.

**تشریح:- الدلیل الثانی لاخفاء التامین** ❁ دوهم دلیل دا دی.چې آمین د استجب په معنی کې دعا ده.او په دعا کې اخفاء غوره ده.ځکه چې الله تعالی فرمائی. (ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً) د امام شافعی رحمه الله د اړخ نه پیش شو حدیث د وائیل بن حجر ﷺ نه ځواب دا دی.چې علقمه بن وائل د خپل پلار وائل نه روایت کړې دی.په هغې کې «خفض به صوته» دی.نو د تعارض د وجې به د وائل ﷺ دواړه روایاتونه ناقابل استدلال وی.او د ابن مسعود ﷺ روایت به کوم چې زموږ مستدل دی.قابل استدلال وی.

وَالْمَدُّ وَالْقَصْرُ فِيهِ وَجْهَانِ او په آمین کې مد او قصر دوې (دوه) وجوهه دی.

**تشریح:- توضیح المد والقصر فی همزة امین** ❁ د آمین د لفظ همزه څینې خلګو ممدود وئیلې ده.او بعضو مقصور وئیلې ده.نو ممدود وئیلو په صورت کې خو به هم آمین پاتې وی.او د مقصور وئیلو په صورت کې به آمین وی.خودا دې واضح وی.چې په دواړو صورتونو کې به د ،،فعیل،، په وزن وی.نو د ممدود په صورت کې به ،،الف،، د اشباع وی.

❁ **الاستشهاد للهمزة الممدودة** ❁ او د ممدود په صورت کې په استشهاد کښې د مجنون دا شعر پیش کولې شی.
«ويرحم الله عبداً قال آمينا» په دې کې آمین ممدود استعمال شوې دې.په آخر کې ،،الف،، هم په دې کې داشباع لپاره دې.

دا شعر د خپل تاسیس لپاره یوه واقعه لری.واقعه دا ده.چې کله د مجنون په زړه کښې د لیلی محبت پریوتلو.او هغه ددې په محبت کې ډوب شو.او حیران اوپریشان به ګرځیدلو.نو دده پلار ملوح سره ډیر فکر شو.خلګو هغه ته مشوره ورکړه.چې دې د کعبة الله د زیارت لپاره بوځه.نو دده پلار مجنون د حج په اراده

بوتلو.او مناسك حج ني ورته اوخودل.او مجنون ته ئې اووئيل.چې دكعبې معظمې پردے اونيسه.او دا اووايه.

﴿اللهم ارحني من ليلى وحبها﴾اے زما پروديګاره! زما نه د ليلى حبت لرې كړه.او ماته سكون راكړه.نو مجنون د دے په ځائې دا شعر د شوق په اندازه كې اووئيلو.

﴿اللهم من علي ليلى وقربها﴾اے الله ماته د ليلى قرب او وصل راكړې.او په ما باندې احسان اوكړه. پلار چې دا واوريدلو.نو دهغه په وهلو ئې پيل كړه.چې ما خو درته د لرې كاوه د دعا غوښتلو لپاره وئيلى و.او ته د حاصليدو دعا كوې.نو بيا مجنون دا شعر پيل كړلو.

﴿يا رب لا تسلبني حبها أبداً ويرحم الله عبدا قال آمينا﴾يعنى اے ربه ما نه د هغې محبت كله هم زائله نكړې.او زما په دے دعا چې څوك آمين وائى.نو په هغه باندې رحم اوكړې.

استشهاد للهمزة المقصورة في الآمين﴿دا د مد استشهاد وو.او د قصر په استشهاد كې دوهم شعر ستاسو وړاندې دې.

﴿آمين فزادالله ما بيننا بعدا﴾استشهاد په دے كې دا دې.چې آمين په الف مقصوره سره راغلے دې.دا شعر د جبير ابن اضبط دې.دا شعر په هغه موقع باندې وئيلې وو.كله چې هغه د فطحل نومے يو كس نه د هغه د اوښ درخواست كړې وو.خوهغه ورته اوښ ورنكړلو.نو ده دا شعر اووئيل.پوره شعر دا دې.

﴿تباعد عني فطحل إذ دعوته : آمين فزادالله ما بيننا بعدا﴾يعنى فطحل زما نه اعراض اوكړلو.او لرې والے ئې ښكاره كړلو.كله چې ما هغه خپل حاجت اړخ ته رابللو.الله دے اوكړې.چې زمونږ په لرې والى كې نور هم زيادت وى.اے الله ته دا دعا قبوله كړه.

په دے كې د آمين لفظ وړاندې راغلے دې.او دعا روستو ده.حالانكه ترتيب واقعى ددے خلاف پكار وو.وجه دا ده.چې شاعر سره د قبوليت د دعا زيات اهتمام دې.نو د اهتمام د وجې ئې لفظ د آمين مقدم كړلو.

| |
|---|
| وَالتَّشْدِيدُ فِيهِ خَطَأٌ فَاحِشٌ او تشدد په دے كې فاحشه غلطى ده. |

تغليط التشديد﴿ د امين په ،،ميم،، تشديد فاحش غلطى ده.د بعضو په نيز خو مفسد د صلاة ده.خو د ځينې فقهاؤ رائې دا ده.چې لمونځ نه فاسديږى.ځكه چې ددے لفظونو نظير په قرآن كې موجود دې.ارشاد دې. ﴿وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ﴾

## ركوع ته د ټيټ په وخت كې تكبير وئيل

| |
|---|
| قَالَ ﴿ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْكَعُ﴾فرمائى.بيا به تكبير وائى او ركوع به كوى. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِاو په جامع صغير كې دى. وَيُكَبِّرُ مَعَ الِانْحِطَاطِ چې تكبير به وائى. د كښته كيدو سره |

حل اللغة*①يكبر، كبر تكبيراً: تكبيروئيل، بزرگى بيانول ②يركع، ركع ركوعاً(ف): ټيټيدل ③انحطاط: كښته كيدل

تشريح:- الروايتان وقت التكبيرعند النهوض للركوع ①﴿مسئله دا ده.چې د قرات پوره كاوه نه روسته به بغير د توقف نه تكبير وائى.او ركوع به كوى.يعنى اول به اودريږى.او تكبير به اووائى.بيا به ركوع اكړى.د امام قدورى رحمه الله په نيز هم دا مذهب صحيح دې.② او په جامع صغير كې دى.چې ركوع ته په تګ كې به تكبير وائى.يعنى ركوع ته د كښته كيدو په وخت كې به تكبير پيل كوى.او ركوع به پوره كوى.امام طحاوى رحمه الله فرمائى.چې هم دا صحيح ده.

| |
|---|
| {لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُكَبِّرُ عِنْدَ كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ}(١) ځكه چې نبى ﷺ د تكبير په وئيلو كې كښته شوې او پورته شوې وو. |

حل اللغة*①خفض: ټيټيدل

١) من حديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ٧٤ والنسائى فى التطبيق)_



تشريح:- دليله ﴿دليل دا دې.چې نبى ﷺ به تكبير وئيل.د هر كښته كيدو او پورته كيدو په وخت كې ابن مسعود رضي الله عنه ددے روايت داسې بيان كړې دې. ﴿كان يكبر في كل خفض ورفع وقيام وقعود وابوبكر وعمر رضي الله عنهما﴾يعنى رسول الله ﷺ به تكبير وئيل په هر كښته كيدو او پورته كيدو او اودريدو او كيناستو او ابوبكر او عمرو رضي الله عنهما هم دے حديث نه هم ركوع ته د تګ په وخت كې تكبير وئيل ثابت شو.

| |
|---|
| ﴿وَيَحْذِفُ التَّكْبِيرَ حَذْفًا﴾ او مختصر كوى به تكبير بنه. |

تشريح:- القصر بالتكبير﴿شيخ ابوالحسن قدورى رحمه الله فرمائى.چې تكبير به حذف كوى.يعنى قصر به كوى.مراد دا دې.چې په كوم ځائې كې دا نه وى.هلته به مد نه كوى.ددے تفصيل دا دې.چې په ﴿الله اكبر﴾كې به د ،،الله،، اول ته خفيفه فتح وركړى.او لام ته به مد وركړى.اوهاء ته رفع وركړى.او د ،،اكبر،، اول او د باء ته دے خفيفه فتحه وركړى.او راء ته به جزم وركړى.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْمَدَّ فِي أَوَّلِهِ خَطَأٌ مِنْ حَيْثُ الدِّينُ ځكه چې په اول د تكبير كې مد كول د دين په اعتبار سره خطاء ده. لِكَوْنِهِ اسْتِفْهَامًا ځكه چې دا استفهام دې. وَفِي آخِرِهِ لَحْنٌ مِنْ حَيْثُ اللُّغَةُ او د تكبير په آخر كې مد كول د لغت په اعتبار سره لحن دې. |

حل اللغة*①اتفهام: پوهيدل ② لحن: غلطى

تشريح:- دليله﴿ددے دليل دا دې.كه د ،،الله،، اول ته مد وركړې شى.يا د ،،اكبر،، اول ته مد وركړې شى.نودا به په شرعى لحاظ سره غلط وى.ځكه چې په دے صورت كې د استفهام معنى پيدا كيږى.او په اول صورت كې به آواز وى.،،آيا الله لوئې دے،، او په دوهم صورت كې به آواز وى.،،الله آيا لوئې دے،، په دے دواړو صورتونو كې به دالله تعالى په لوئې كې شك كونكې وى.او د الله په لوئې كې په قصد باندې شك كول كفر دې.(عنايه) خوصاحب دهدايه دے ته خطاء وئيلى دى.كفرنه البته لمونځ پرے فاسديږى.او د ،،اكبر،، په آخر كې مد كول يعنى په ځائې د ،،اكبر،، ،،اكبار،، وئيل لكه څنګه چې ځينې ساده ګان بنګالى طالبان وائى.نو دا د لغت په اعتبار سره لحن يعنى خطاء ده.په دے باندې هم لمونځ فاسديږى.

## د ركوع كيفيت او تسبيح

| |
|---|
| وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ اوخپل دواړه لاسونه به په ګيټو باندې تكيه كړى. وَيُفَرِّجُ بَيْنَ أَصَابِعِهِ او په خپلو ګوتوكې به ارتوالے ساتى. |

حل اللغة*①يعتمد، اعتمدا اعتماداً: باور كول يقين كول ②ركبة: زنګون

تشريح:- اخذالركبتين باليدين وتفريج الاصابع في ا لركوع﴿په دے عبارت كې د ركوع كاوه كيفيت او د ركوع د تسبيح بيان دې.چونكه د ركوع مسنون ذريعه دا ده.چې لمونځ ګذار په خپلو دواړو لاسونو خپلے دواړه ګونډۍ اونيسى.اود لاس ګوتے دے ارتے پريږدى.اودواړه لينګۍ دے نيغے ساتى.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِأَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځكه چې نبى ﷺ حضرت انس رضي الله عنه ته فرمائيلى وو. {إِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ يَدَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ كله چې ته ركوع كوې.نو خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو كونډو باندې اږده. وَفَرِّجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ} (١) او دخپلو ګوتو په مينځ كې ارتوالى كوه. |

تشريح:- دليله﴿ دليل دا دې.چې نبى ﷺ حضرت انس رضي الله عنه ته چا چې به خدمت كاوه فرمائيلى وو.اے بچيه! كله چې ته ركوع كوې.نو دواړه لاسونو په كونډو باندې اږده.او خپلے ګوتے ارتے ساته.

| |
|---|
| وَلَا يُنْدَبُ إِلَى التَّفْرِيجِ إِلَّا فِي هَذِهِ الْحَالَةِ اوددے حالت نه سوا په هيڅ حالت كې ارتوالے مندوب نه دې. لِيَكُونَ |

١) اخرجه الطبرانى فى معجمه الصغير والكبير(نصب:٤٤٩١١)_

أَمْكَنَ مِنَ الْأَخْذِ چې نيول ممكن وي. وَلَا إِلَى الضَّمِّ إِلَّا فِي حَالَةِ السُّجُودِ او د حالت د سجدې نه سوا په هيڅ حالت كښې ګوتې ملاوول (مندوب) نه دي. وَفِيمَا وَرَاءَ ذٰلِكَ يُتْرَكُ عَلَى الْعَادَةِ او د ذكر شوو حالتونو نه سوا به په خپل عادت باندې پرېښوولې (پرېخودې) شي.

**حل اللغة** ① **ضم**: جمع كول، يوځاى كول ③ **وراء**: علاوه

**تشريح:- محل ضم الاصابع وتفريجها في الصلاة**◉ صاحب دهدايه فرمائي. چې دركوع په حالت كې ګوتې ارتې ساتل مندوب او مستحب دي. چې په ګوتو باندې ګونډئ نيول ممكن شي. اود ركوع د حالت نه سوا ګوتې ارتې ساتل مندوب نه دي. او دسجدې په حالت كې د لاس ګوتې ملاوول مستحب دي. يعنې دا به نه ملاوولې شي اونه به ارتولې شي. بلكه په وضع طبعي به پرېښوولې (پرېخودې) شي.

﴿وَيَبْسُطُ ظَهْرَهُ﴾ او همواره به ساتي خپله شاه لِأَنَّ {النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا رَكَعَ} څكه چې نبي ﷺ به كله ركوع كوله. بَسَطَ ظَهْرَهُ} (١) نو شا (ملا) به ئې برابر همواره ساتله.

**حل اللغة** ① **يبسط، بسط بسطًا (ن)**: اچول، خورول

**تشريح:-** د ركوع په حالت كې به شاه داسې همواره او برابر ساتلى شي. كه دده په شاه باندې د اوبو ډكه پياله كېخودې شي. نو پاتې كېداې شي.

**الدليلان لاستواء الظهر**◉ دليل دا دې. ① چې نبي ﷺ به كله ركوع كوله. نو خپله شاه به ئې همواره او برابر ساتله. دحضرت عائشې رضي الله عنها روايت دې. چې ﴿انه كان يعتدل لو وضع على ظهره قدح ماء تستقر﴾ يعنې نبي ﷺ به شاه دومره همواره ساتله. كه د دوى په شاه باندې د اوبو ډكه پياله كېخودې شوې وه. نو هغه به پاتې وه. ② اود وابصه بن معبد په حديث كې دي. چې ﴿سوى ظهره حتى لو صب عليه الماء لاستقر﴾ يعنې خپله شاه به ئې همواره ساتله. تردې كه په دې اوبه اوبيولې شوې. نوهغه به ايساريدې.

﴿وَلَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ﴾ او سربه ئې نه اوچتولو. ﴿وَلَا يُنَكِّسُهُ﴾ اونه به ئې ټيټولو. لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا رَكَعَ څكه چې نبي ﷺ به كله ركوع كوله. لَا يُصَوِّبُ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُهُ (٢) نو خپل سر به ئې نه كښته كولو. اونه به ئې اوچتولو

**تشريح:- استواء الراس مع العجزفي الركوع ودليله**◉ امام قدوري رحمه الله فرمائي. چې د ركوع په حالت كې به سر نه اوچته وي. اونه كښته كوي. يعنې د كوناټو سره به ئې برابروي. دليل دا دې. چې رسول الله ﷺ به كله ركوع كوله. نوخپل سر به ئې نه كښته كاوه اونه اوچتولو.

﴿وَيَقُولُ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثًا﴾ او درې خله دې ﴿سبحان ربي العظيم﴾ وائي. ﴿وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ﴾ او دا ادنى مقدار دې. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. {إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ كله چې په تاسو كې څوك ركوع كوي. فَلْيَقُلْ فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثًا نو په خپله ركوع كې دې درې خله ﴿سبحان ربي العظيم﴾ وائي. وَذٰلِكَ أَدْنَاهُ} " (٣) أي أدنى كمال الجمع او دا كمتره درجه يعنې د كاملې جمعې ادنى ده.

**تشريح:- تسبيحات الركوع**◉ د ركوع د حالت تسبيح دا دي. چې درې خله به ﴿سبحان ربي العظيم﴾ وائي. او درې خله ونيل د كم نه كم مقدار دې. ګنې پنځه خله يا اووه خله يا ددې نه زيات ونيل دي.

**دليله**◉ دليل د نبي ﷺ قول دې. ﴿إذا ركع أحدكم فليقل في ركوعه سبحان ربي العظيم ثلاثا﴾ يعنې كله چې په تاسو

٢) من حديث وابصة بن معبد رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه فى الاقامة باب ٢٥٨)_
٣) من حديث ابى حميدالساعدى رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ١١٠)_
...حديث ابن مسعود رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ٧٩ رقم ٢٦١)_



كې څوك ركوع كوي. نوپه خپله ركوع كې دې درې خله ﴿سبحان ربي العظيم﴾ وائي. او درې خله ونيل د كامل جمعې كمه درجه ده.

## په مانځه كې د تحميد او تسميع احكام

﴿ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ﴾ بيا دې خپل سر اوچت كړي. ﴿وَيَقُولُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ﴾ او ودې وائي. ﴿سمع الله لمن حمده﴾ ﴿وَيَقُولُ الْمُؤْتَمُّ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ﴾ او مقتدى دې ﴿ربنا لك الحمد﴾ وائي.

**حل اللغة** ① **يرفع، رفع رفعًا (ف)**: اوچتول ② **سمع، سمعًا (س)**: اوريدل ③ **موتم**: مقتدى

**تشريح:- تقديرعبارة التسميع**◉ ﴿سمع الله لمن حمده﴾ معنى ده ﴿قبل الله حمد من حمده﴾ يعنې څوك چې د الله تعالى حمد وائي. الله تعالى دې دهغه حمد قبول كړي. حاصل دا چې ټوله د حمد قبوليت دعا ده. او د سماع لفظ د قبول په معنى كې هم استعمالولې شي. لكه حاكم چې د چا درخواست قبول كړي. نو وئيلى شي. ﴿سمع الأمير كلام فلان﴾ په ﴿حمده﴾ كې ،،هاء،، دسكته لپاره ده. يا ،،هاء،، كنايه ده. دواړه قولونه شته. خو اول قول د ثقاتو نه منقول دې.

**اظهرالرواية في التسميع والتحميد**◉ حاصل د مسئلې دا دې. چې په اطمينان سره دې د ركوع نه روسته خپل سر اوچت كړي. او وائي دې. چې ﴿سمع الله لمن حمده﴾ كه امام وي. نو په اجماع سره دې دا وائي. او جهر دې كوي. او كه مقتدى وي. نو ﴿ربنا لك الحمد﴾ دې وائي. اظهر روايت هم دا دې. او ﴿ربنا ولك الحمد﴾ او ﴿اللهم ربنا لك الحمد﴾ هم مروى دي. (عنايه)

﴿وَلَا يَقُولُهَا الْإِمَامُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او د ابوحنيفه په نيز به امام دا نه وائي. ﴿وَقَالَا يَقُولُهَا فِي نَفْسِهِ﴾ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي. چې امام به هم دا په پټه وائي

**تشريح:- الاختلاف تحميد الامام**◉ ① په دې اړه كې اختلاف دې. چې امام به ﴿ربنا لك الحمد﴾ وائي كه نه. د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دا دې. چې امام به دا نه وائي. ② او صاحبين رحمهما الله وائي. چې امام به هم په پټه دا وائي.

لِمَا رَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څكه چې ابوهريره رضي الله عنه روايت كړې دې. {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الذِّكْرَيْنِ} " (١) چې نبي ﷺ به دواړه ذكرونه جمع كول.

**تشريح:- الدليل العقلى للصاحبين** رحمهما الله◉ ① د صاحبينو رحمهما الله دليل دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دې. ﴿كان النبي ﷺ إذا قام إلى الصلاة يكبر حين يقوم ثم يكبر حين يركع ثم ،،يقول سمع الله لمن حمده،، حين يرفع صلبه من الركوع ثم يقول وهو قائم ،،ربنا ولك الحمد،، ثم يكبر حين يهوى ساجداً الحديث﴾ حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي. چې نبي ﷺ به كله د لمانځه اراده اوكړله. نوتكبير به ئې ونيل. كله چې به ودريدلو. بيا چې كله به ئې ركوع كوله. نو تكبير به ئې ونيل. بيا چې كله به ئې خپله شاه د ركوع نه پورته كوله. نو ﴿سمع الله لمن حمده﴾ به ئې ونيل. او چې به ودريدلو. نو ﴿ربنا ولك الحمد﴾ به ئې ونيل. بيا به ئې تكبير ونيل. كله چې به سجدې ته ټيټيدلو. (فتح القدير) ددې حديث نه معلومه شوه. چې نبي ﷺ به دواړه ذكرونه ﴿سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد﴾ جمع كول. او دوى به په عامه توګه امامت كولو. نو ثابته شوه. چې امام به دواړه ذكرونه جمع كوي.

وَلِأَنَّهُ حَرَّضَ غَيْرَهُ او ددې وجې چې ده بل ته دعوت وركړلو. فَلَا يَنْسَى نَفْسَهُ نو خپل ځان به نه هيروي.

**حل اللغة** ① **حرض، تحريضًا**: راوچتول ② **فلاينسى، نسى نسيانًا (س)**: هيرول

(١) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى العناية (٧٤١١) والكفاية (٣٦٠١١) والبحرالرائق (٥٥٢٠١١) وردالمحتار (١٦٧) نقلا عن القول الراجح (٧٨١١)-
١) اخرجه البخارى فى الاذان باب ١٢٤ رقم ٧٩٥)_

تشریح:- دوهم دلیل دا دی.چې اما م ﴿سمع الله لمن حمده﴾اووائی.نو په دے نورو ته ترغیب ورکوی.نو خپل خان دے هم نه هیروی.یعنی کله چې امام اووائی.چې چا د الله تعالی حمد اوکړلو.نو الله تعالیٰ د هغه تعریف اوری.د ده مقصود دا دی.چې دا خامخا کوی.اوپه خپله دے هم وائی.اوخپل ځان دے نه محرومه کوی.ګنی د (اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ) په وعید کښے به راشی.

ولأبی حنیفة رحمه الله قَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د ابوحنیفه دلیل دا دی.چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. {إِذَا قَالَ الْإِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ کله چې امام ﴿سمع الله لمن حمده﴾ اووائی. فَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ}(¹)نو تاسو ﴿ربنا لك الحمد﴾ وائي. هٰذِهٖ قِسْمَةٌ دا ویش دی. وَأَنَّهَا تُنَافِي الشَّرِكَةَ او ویش دشرکت منافی دی. و لِهٰذَا لَا يَأْتِي الْمُؤْتَمُّ بِالتَّسْمِيْعِ عِنْدَنَا هم د دے وجې زموږ په نیز مقتدی ﴿سمع الله لمن حمده﴾ نه وائی. خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله دامام شافعی رحمه الله اختلاف دی

تشریح:- الدلیل العقلی لابی حنیفة ① رحمه الله ۞ دابوحنیفه رحمه الله دلیل د نبی ﷺ قول ﴿إذا قال الإمام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لك الحمد﴾دی.وجه د استدال دا ده.چې نبی ﷺ د امام او مقتدی په مینځ کې ویش کړې دی.فرمائیې ئې دی.چې امام دے تسمیع وائی.او مقتدی دے تحمید،او ویش د شرکت منافی دی.دے وجه به امام د مقتدیانو سره په تحمید کې نه شریکیږی.هم دا وجه ده.چې زموږ په نیز به مقتدی سمع الله لمن حمده نه وائی.اګرچې د امام شافعی رحمه الله اختلاف په کې شته.

وَلِأَنَّهٗ يَقَعُ تَحْمِيْدُهٗ بَعْدَ تَحْمِيْدِ الْمُقْتَدِيْ.او ددے وجې چې د امام تحمید وئیل به د مقتدی د تحمید نه روسته واقع کیږی وَهُوَ خِلَافُ مَوْضِعِ الْإِمَامَةِ.او دا د امامت د موضوع خلاف ده.

تشریح:- دوهم دلیل دا دی.چې که امام ﴿ربنا لك الحمد﴾اووائی.نو دده دا تحمید به یقیناً د مقتدی د تحمید نه روسته واقع کیږی.ځکه چې مقتدی ﴿ربنا لك الحمد﴾په هغه وخت کې وائی.کله چې امام ﴿سمع الله لمن حمده﴾اووائی.نوپه دے صورت کښے بیشکه د امام ﴿ربنا لكم الحمد﴾وئیل د مقتدی د ﴿ربنا لك الحمد﴾وئیلو نه روسته واقع کیږی.اودا د امامت د موضوع نه خلاف ده.ځکه چې امام ته اول وئیل پکار وو.او مقتدی ته روستو،اودلته معامله په عکس شوه.

وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلٰى حَالَةِ الْاِنْفِرَادِ او د ابوهریره رضی الله عنه روایت په حالت د انفراد باند. محمول دی.

تشریح:- الجواب عن دلیل الصاحبین رحمهما الله ۞د صاحبینو رحمهما الله د پیش کړی د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث ځواب دا دی.چې دا حدیث په حالت دانفراد باندې محمول دی.

(وَالْمُنْفَرِدُ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا او منفرد به دواړه ذکرونه جمع کوی. فِي الْأَصَحِّ)په اصح روایت کې .وَإِنْ كَانَ يُرْوٰى اګرچې د امام صاحب رحمه الله نه مروی دی. الْاِكْتِفَاءُ بِالتَّسْمِيْعِ چې (منفرد) به ﴿سمع الله لمن حمده﴾ باندې اکتفاء کوی وَيُرْوٰى بِالتَّحْمِيْدِ.اوروایت کولې شی.چې صرف په ﴿ربنا لك الحمد﴾ باندې به اکفتاء کوی

حل اللغة:① یجمع، جمع جمعاً(ف): جمع کول

تشریح:- الروایتان في تحمید المنفرد۞ ①او د اصح قول مطابق د منفرد حکم هم دا دی.چې هغه به ﴿سمع الله لمن حمده﴾باندې اکتفاء کوی.② دوهم قول دا دی.چې دے به صرف په ﴿ربنا لك الحمد﴾باندې اکتفاء کوی.

وجه القول الاول۞داول قول وه دا ده.چې امام صرف په ﴿سمع الله لمن حمده﴾باندې اکتفاء کوی.او منفرد هم په خپل حق کې امام دی.ځکه چې لکه څنګه په امام باندې قرات واجب دی.نو دغه ډول په منفرد باندې هم قرات واجب دی.

¹) من حدیث انس رضی الله عنه اخرجه الائمة الستة فی کتبهم منهم البخاری فی الاذان باب ۵۱)_



وجه القول الثانی۞ د دوهم روایت وجه دا ده.چې منفرد که دواړه ذکرونه یعنی تسمیع او تحمید جمع کړی.نو تحمید ، به د اعتدال یعنی قومۀ په حالت کې واقع شی.حالانکه د یو حالت نه بل حالت ته د منتقل کیدو په وخت کې مسنون ذکر مشروع نه دی.لکه د دوو سجدو په مینځ کې د قعدۀ په حالت کې چې مسنون ذکر نشته. نوځکه وئیلی شوی دی.چې منفرد به ﴿سمع الله لمن حمده﴾نه وائی.بلکه صرف ﴿ربنا لك الحمد﴾به وائی.

تائید القول الثانی۞د دوهم روایت تائید ددے نه هم کیږی.چې امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چې ما د امام ابوحنیفه رحمه الله نه پوښتنه اوکړه.چې کوم کس په فرض لمونځ کې خپل سر د رکوع نه پورته کړی.نو آیا هغه ﴿اللهم اغفرلی﴾وئیلې شی.نو دوی ورته اوفرمائیل.چې ﴿ربنا لك الحمد﴾دے وائی.او سکوت دے کوی.او دغه ډول دے د دواړو سجدو په مینځ کې هم سکوت کوی.

دلیل القول الاصح۞د قول اصح دلیل صحیح حدیث دی.چې نبی ﷺ به دواړه ذکرونه یعنی تسمیع او تحمید جمع کول.

وَالْإِمَامُ بِالدَّلَالَةِ عَلَيْهِ آتٍ بِهٖ مَعْنًى.او امام په تحمید باندې د دلالت کاوه د وجې په دے باندې معنیٰ راتګ اوکړلو.

تشریح:- الجواب عن دلیل العقلی للصاحبین۞دصاحبینو رحمهما الله د عقلی دلیل ځواب دا دےچې کله امام ﴿سمع الله لمن حمده﴾ اووائی.نو ده مقتدیان د ﴿ربنا لك الحمد﴾وئیلو ته اماده کړل.نو د ﴿الدال علی الخیر کفاعله﴾مطابق لکه چې امام ﴿معنیً اوحکماً﴾د تحیمد ویونکې شو.نو ځکه د (اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ) د وعید لاندې نه داخلیږی.

## د قومه نه تر سجدې پورې د احکامو بیان

قَالَ فرمائی. ثُمَّ إِذَا اسْتَوٰى قَائِمًا بیا کله چې دے اودریږی. (كَبَّرَ وَسَجَدَ)نو تکبیر دے اووائی.او سجده دے اوکړی أَمَّا التَّكْبِيْرُ وَالسُّجُوْدُ فَلِمَا بَيَّنَّا.بهر حال تکبیر او سجود خو هم د هغه دلیل د وجې دی. کوم چې موږ بیان کړلو. وَأَمَّا الْاِسْتِوَاءُ قَائِمًا او پاته شو د رکوع نه نیغ ودریدل فَلَيْسَ بِفَرْضٍ نو دا فرض نه دی

حل اللغة:①استوی، استواءً: برابر کیدل ②سجد، سجوداً(ن): تیټیدل سجده کول③یفترض،افترض افتراضاً:فرض کیدل

تشریح:- التکبیر عندل النهوض الی السجدة۞مسئله دا ده.چې لمونځ ګزار کله د رکوع نه نیغ اودریږی.نو تکبیر دے وائی.او سجدې ته دے لاړ شی.دلیل وړاندې تیر شوې دی.چې ﴿انه ﷺ کان یکبر عند کل خفض ورفع﴾او په سجده باندې په اول باب کې دالله تعالی قول چې (ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا) باندې استدلال شوی دی.

وَكَذَا الْجِلْسَةُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ او دغه ډول د دواړو سجدو په مینځ کښ کښینستل وَالطُّمَأْنِيْنَةُ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ او په رکوع او سجود کې طمانیت (فرض نه دے) وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (¹) اودا دامام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیز دی.

تشریح:- الاختلاف في حکم القومة والجلسة۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چې تعدیل دارکانو یعنی د رکوع نه روسته نیغ ودریدل چې قومه ورته وائی.او د دواړو سجدو په مینځ کې کښینستل او په رکوع او سجده کې طمانیت یعنی د څه وخت لپاره ودریدل د طرفینو رحمهما الله په نیز فرض نه دی.

¹) القول الراجح هو قول الطرفین رحمهما الله کذا فی الکفایة (۲۶۲\۱) والبحرالرائق (۵۲۲\۱) وفتح القدیر(۲۶۲\۱) والهندیة (۷۱\۱) والفقه الاسلامی (۶۶۴\۱) نقلا عن القول الراجح (۷۹\۱)_

قَالَ أَبُويُوسُفَ رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلي دي. يُفْتَرَضُ ذٰلِكَ كُلُّهُ چي داواړه فرض دي. وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِي رحمه الله او هم دا دامام شافعي رحمه الله قول دي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چي نبي ﷺ. قُمْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ }(۱). اودریږه لمونځ اوکړه. ځکه چي تا لمونځ نه دے کړے. { قَالَهُ لِأَعْرَابِي فرمائیلي وو یو بانډیچي ته حِينَ أَخَفَّ الصَّلَاةَ په کوم وخت کي چي هغه په لمانځه کي تخفیف اوکړو

تشریح:- د امام ابویوسف رحمه الله په نیز تعدیل دارکانو فرض دي. امام شافعي رحمه الله هم ددے قائل دي. ثمره د اختلاف دا ده. چي د تعدیل ارکان نه بغیر به د طرفینو رحمهما الله په نیز لمونځ جائزوی. خو دابویوسف رحمه الله په نیز به جائزنه وی.

دلیل ابی یوسف رحمه الله ◉ دامام ابویوسف رحمه الله دلیل حدیث د صحرائي دي. دصحرائي نوم خلاد بن رافع ؓ دي. په صحیحنو کي دا حدیث په دے الفاظو سره مروی دي. « إن أعرابيا دخل المسجد فصلى ركعتين ثم جاء فسلم على النبي ﷺ فقال له إرجع فصل فإنك لم تصل فرجع فصلى كما صلى ثم جآء فسلم على النبي ﷺ فقال له إرجع فصل فإنك لم تصل فقال له في الثالثة والذي بعثك بالحق ما أحسن غيره فعلمني فقال له النبي ﷺ إذا قمت إلى الصلاة فكبر ثم إقرأ ما تيسر معك من القرآن ثم اركع حتى تطمئن راكعاً ثم إرفع حتى تعتدل قائماً ثم اسجد حتى تطمئن ساجداً ثم ارفع حتى تطمئن جالساً ثم افعل ذلك في صلاتك كلها حتى تقضيها » یعني یو صحرائي جمات ته داخل شو. او لمونځ ئي اوکړلو. بیا راغلو نبي ﷺ باندي ئي سلام واچولو. نبي ﷺ ورته اوفرمائیل. واروسته ولاړ شه لمونځ اوکړه. ځکه چي تا لمونځ نه دے کړے. یعني ستا لمونځ نه دے شوے. نو هغه واروسته لاړلو. او د اولني ځل په څیر لمونځ ئي اوکړلو. بیا راغلو. اود الله تعالی د رسول ﷺ په خدمت کښں ئي سلام واچولو. نبي ﷺ ورته بیا اوفرمائیل. څه واروسته لاړ شه. لمونځ اوکړه. ځکه چي ستا لمونځ نه دے شوے. نو هغه صحرائي په دریم ځل نبي ﷺ ته اوونیل. په هغه ذات مے دے قسم وی. چا چي ته په حق پیغمبر رالیږلے ئي. ددے نه سوا بل کوم صورت بهتر دي. تاسو ماته هغه اوښائي. نبي ﷺ هغه ته اوفرمائیل. کله چي ته د لمانځه لپاره اودریږي. نو تکبیر وایه. بیا « ما یجوز به الصلاة » د قرآن قرات کوه. بیا رکوع کوه. تردي چي د رکوع په حالت کي مطمئن شي. بیا هم دغه ډول خپل پوره لمونځ کوه. تردي چي لمونځ پوره کړي.

وجه الاستدلال ◉ په دے حدیث باندي داسے استدلال کیږی. چي د تعدیل ارکان د پریخودو په وجه نبي ﷺ د مونځ نفي اوکړله. او وے فرمائیل. « فإنك لم تصل» اودا شان د فرض وو. ځکه چي د فرضو نه سوا د بل شی منتفی کیدل د لمانځه منتفی کیدو لره مستلزم نه دی. نو ثابته شوه. چي د لمانځه دننه تعدیل د ارکانو فرض دي.

وَلَهُمَا د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دي. أَنَّ الرُّكُوعَ هُوَالْإِنْحِنَاءُ چي کي رکوع ټیټیدلو وَالسُّجُودَ هُوَالْإِنْخِفَاضُ او سجود کښته کیدلو ته وائی. لُغَةً په لغت فَتَتَعَلَّقُ الرُّكْنِيَّةُ بِالْأَدْنٰى فِيهِمَا او رکنیت به په دے واړو کي د ادنی سره متعلق وی وَكَذَا فِي الْإِنْتِقَالِ. او هم دغه ډول په انتقال کي إِذْهُوَغَيْرُمَقْصُودٍ ، ځکه چي دا مقصود نه دی.

حل اللغة ① انحناء: کګیدل، تاویدل ② انتقال: منتقل کیدل، وربدلیدل

تشریح:- دلیل الطرفین رحمهما الله ◉ د طرفینو رحمهما الله دلیل د الله تعالی ارشاد (ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا) دي. په دے طریقه چي رکوع وائی. مطلقاً ټیټیدو ته او سجده وائی کښته کیدو ته، یعني په مخکه باندي مخ لګولو ته، نو نفس رکوع او نفس سجده فرض شوه. او د آیت نه هم دا مطلوب دي. او چونکه دا آیت د رکوع او سجدي په معنی باندي دلالت کاوه کي خاص دي. و خاص د بیان محتاج نه وی. نو ځکه د صحرائي حدیث ددے آیت لپاره بیان نشی واقع کیدي.

۱) من حدیث ابی هریرة ؓ اخرجه الترمذی فی الاستیذان باب ٤ والصلاة باب ۱۱۰)_



بطلان نسخ الایة بالحدیث ◉ اوکه تاسو دا وائي. چي دا آیت دے په حدیث باندي منسوخ اوګنړلے شي. نو موږ وایو. چي دا هم ممکن نه ده. ځکه چي دا حدیث خبرواحد دي. او خبر واحد سره کتاب الله نشي منسوخ کیدي. نو ثابته شوه. چي مطلقاً ټیټیدل او په مځکه باندي مخ کیخودل فرض دی. (تفصیل دے په نور الانوار کي اوکتلي شي) جمیل

وَفِي آخِرِمَا رُوِيَ تَسْمِيَتُهُ إِيَّاهُ صَلَاةً او د بانډیچي د حدیث په آخر کي د هغې نوم لمونځ کیخودلے شوے دي حَيْثُ قَالَ فرمائیلي ئي دی. وَمَا نَقَصْتَ مِنْ هٰذَا شَيْئًا. چي که په دے کي دے کمے اوکړلو فَقَدْ نَقَصْتَ مِنْ صَلَاتِكَ نو ستا په لمانځه کي به کمے راشي

تشریح:- الجواب عن حدیث الاعرابی ◉ « وفي ما روی الخ » سره د حدیث صحرائي خواب دے. د خواب حاصل دا دي. چي صحرائي چي د لمونځ په شکل کي څه کړی وو. نو نبي ﷺ هغې ته د لمونځ نوم ورکړے وو. هم د دغه صحرائي دحدیث په آخر کي دی. « وما نقصت من هذا شيئاً فقد نقصت من صلاتك » یعني تا که په دے څیزونو کي څه کمے اوکړلو. نو ستا په لمونځ کي به کمے راشي.

الاستدلال ◉ نو که د تعدیل ارکان پریښول مفسد د لمانځه وو. نو نبي ﷺ به د صلاة نوم پرے نه کیخودلو. لکه څنګه که رکوع یا سجده پریږدی نو لمونځ فاسد یږی. اودے ته مونږ نشي وئیلي. نو معلومه شوه. چي په ترک د تعدیل ارکان سره په لمانځه کي نقصان راځی. خو لمونځ نه فاسد یږی. او ښکاره ده. چي د فرضو دا شان نه دي. نو د حدیث صحرائي نه هم د تعدیل ارکانو فرضیت نه ثابتیږی

ثُمَّ الْقَوْمَةُ وَالْجِلْسَةُ سُنَّةٌ عِنْدَهُمَا بیا قومه او جلسه د طرفینو رحمهما الله په نیز سنت ده وَكَذَا الطُّمَأْنِينَةُ فِي تَخْرِيجِ الْجُرْجَانِي رحمه الله. او د جرجاني رحمه الله دتخریج مطابق د طمانیت هم دا حال دي وَفِي تَخْرِيجِ الْكَرْخِي رحمه الله وَاجِبَةٌ او د امام کرخي رحمه الله د تخریج مطابق طمانیت واجب دي. حَتّٰى تَجِبَ سَجْدَتَا السَّهْوِ بِتَرْكِهَا سَاهِيًا عِنْدَهُ تردي چي د کرخي رحمه الله په نیز د طمانیت په پریخودو باندي دوې (دوه) سجدي د سهوے لازمیږی

حل اللغة ① ترک: پریښول

تشریح:- حکم القومة والجلسة ◉ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي. چي قومه او د دواړو سجدو په مینځ کي جلسه په اتفاق د مشائخو سره د طرفینو رحمهما الله په نیز سنت ده. او پاته شو په رکوع او سجده کي د طمانیت حکم نو ددے په تخریج کښے اختلاف دي. د امام ابوعبدالله جرجاني رحمه الله تخریج دا دي. چي طمانیت هم مسنون دي. او امام کرخي رحمه الله تخریج کړي دي. چي دا واجب دی. تردي چي د امام کرخي رحمه الله په نیز په ترک د طمانیت سره د سهوے دوې (دوه) سجدي واجبیږی

وجه قول الجرجاني ◉ د جرجاني رحمه الله دقول وجه دا ده. چي دا طمانیت د رکن د تکمیل لپاره مشروع شوي دي. او کوم شی چي د تکمیل د رکن لپاره وی. هغه سنت وی. نو دا طمانیت هم سنت دي.

وجه قول الکرخي ◉ او د امام کرخي رحمه الله د قول وجه دا ده. چي دا طمانیت د رکن مقصود بنفسه لپاره مشروع شوي دي. او کوم شی چي داسې وی. هغه واجب وی. نو ځکه دا طمانیت واجب دي.

### دسجدي کیفیت

(وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ) او خپل دواړه لاسونه به په مځکه اږدی لِأَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَصَفَ صَلَاةَ

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". څکه چې وائل بن حجر د رسول الله ﷺ لمونځ پیانولو {فَسَجَدَ نو سجده ئې اوکړله وَادَّعَمَ عَلٰى رَاحَتَيْهِ او تکیه ئې اولګوله په دواړو تلو باندې وَرَفَعَ عَجِيزَتَهُ}(۱) او کوناټې ئې اوچت کړل. (وَوَضَعَ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ) او خپل مخ ئې د دواړو تلو په مینځ کې کیخودلو وَيَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ. او دواړه لاسونه ئې دواړو غوږونو ته مخکې کیخودل لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ كَذٰلِكَ (۲) څکه چې روایت شوې دې. چې رسول الله ﷺ داسې کړې وو.

حل اللغة° ① يعتمد اعتمد اعتماداً: یقین کول، باور کول حل اللغة° ① وصف، وصفاً(ض): بیانول ② راحة: تلې ③ كف: منګوله ⑤ عجيزة،جمع عجيزات: کوناټې ⑥ حذاء: برابر، مقابل

تشريح:- كيفية السجدة ۞ په دے عبارت کې د سجدې د کیفیت بیان دې. فرمائي. چې دسجدې کیفیت دا دې. چې دواړه لاسونه به په مخکه باندې تکیه کړي. او مخ به د دواړو تلو په مینځ کې او دواړه لاسونه غوږونو ته مخکې کیږدي.

دلائلها ۞ دلیل د وائل بن حجر. حدیث دې. ① حضرت وائل ؓ د رسول الله ﷺ د لمونځ کیفیت بیانوی او فرمائي. ﴿ فسجد وادعم على راحتيه ورفع عجيزته﴾ یعنی نبی ﷺ سجده اوکړله. او دواړه تلې ئې په مخکه باندې کیخودل. او کوناټې ئې اوچت کړل. ② اوهم د وائل بن حجر ؓ نه مروی دی. ﴿ قال رمقت النبي ﷺ فلما سجد وضع يديه حذاء أذنيه﴾ فرمائي. چې ما رسول الله ﷺ لیدلے وو. کله چې به ئې سجده کوله. نو خپل دواړه لاسونه به ئې دواړو غوږونو ته مخکې کیخودل

## په پزه او تندي باندې د سجدې کولو حکم

قَالَ (وَسَجَدَ) فرمائي. سجده دے کوی. (عَلٰى أَنْفِهِ وَجَبْهَتِهِ) په خپله پزه او تندی باندې لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهِ (۲) څکه چې نبی ﷺ په دے باندې مواظبت کړې وو

حل اللغة° ① سجد،سجوداً(ن): ټیټیدل، سجده کول ② انف: پزه ③ جبهة: تندې ④ واظب، مواظبة: همیشوالې کول

تشريح:- القاعدة في وضع الاعضاء ورفعها في السجود ۞ صاحب د عنایه لیکلی دی. چې د سجدې نه د اودریدو کیفیت په اړه کې دا ضابطه ده. چې کوم اندام د مځکې سره نزدے وی. د سجدې په وخت کې به د ټولو نه مخکې هغه په مځکه اږدی. او کوم اندام چې آسمان ته نزدے وی. د ټولو نه وړاندې به هغه اوچتوی. نو اوس به د سجدو کیفیت دا وی. چې اول به په مځکه دواړه ګونډې کیږدی. بیا دواړه لاسونه بیا مخ او بعضو ونیلی دی. چې د لاس کیخودلو نه روسته به پزه اږدی. بیا به تندے اږدی. اود پاسیدو په وخت کې به ترتیب دا وی. چې اول به خپل مخ اوچت کړی. بیا دواړه لاسونه بیا دواړه ګونډې.

خلاصة العبارة ۞ د عبارت حاصل دا شو. چې په پزه او تندی دواړو به سجده کوی. څکه چې نبی ﷺ همیشه لپاره هم داسې سجده کړې ده. اوکه په یو باندې اکتفاء اوکړی. نو ددے دوې (دوه) صورتونه دی. ① چې صرف په

---

۱) قال الزيلعي غريب من حديث وائل بن حجر ؓ ورواه ابويعلى الموصلي في مسنده من حديث البراء بن عازب ؓ فقال ....عن ابى اسحاق قال وصف لنا البراء بن عازب ؓ السجود فسجد فادعم على كفيه، ورفع عجيزته وقال هكذا كان يفعل رسول الله ﷺ (نصب:۱\۴۵۹)_

۲) قال الزيلعي لم اجده الا مفرقا فروى مسلم فى صحيحه (فى الصلاة رقم ٥٤) صدره الاول من حديث وائل ان النبى ﷺ سجد فوضع وجهه بين كفيه مختصروروى اسحاق بن راهويه فى مسنده باقيه فقال ...عن وائل بن حجر ؓ قال رمقت النبى ﷺ فلما سجد وضع يديه حذاء اذنيه (نصب:۱\۴۵۹)_

۱) من حديث ابى حميد ؓ اخرجه البخارى رقم ۸۲۸)_



تندی باندې سجده اوکړی. ② چې صرف په پزه باندې سجده اوکړی.

(فَإِنْ اقْتَصَرَ عَلٰى أَحَدِهِمَا) بیا که په دے دواړو کښې ئې په یو باندې اکتفاء اوکړله (جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ) ..نو د ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز ده.

تشريح:- الاختلاف في السجدة على الانف فقط ۞ ① په اولنی صورت کې زمونږ د احنافو عالمان رحمهم الله د سجدې په جواز باندې متفق دی. او په دوویم صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سره د کراهت نه جائز ده.

(وَقَالَا) او صاحبین رحمهما الله فرمایی (لَا يَجُوزُ الِاقْتِصَارُ عَلَى الْأَنْفِ) چې په پزه باندې اکتفاء کول جائز نه دی (إِلَّا مِنْ عُذْرٍ) مګر د عذر د وجې وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ هم دا د امام صاحب رحمه الله نه یو روایت دې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" څکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {أُمِرْتُ ماته حکم شوې دې. أَنْ أَسْجُدَ عَلٰى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ چې په اووه هډوکو باندې سجده کوم وَعَدَّ مِنْهَا الْجَبْهَةَ} "(۲) او په هغې کې ئې تندے شمارلے وو

حل اللغة° ① اعظم، واحد عظم: هډوکې ② عد، عداً (ن): شمیرل

تشريح:- صاحبین رحمهما الله فرمائي. چې بغیر دعذر نه په پزه اکتفاء کول جائز نه دی. البته که عذر وی. نو شرعاً جائز ده.

دليل الصاحبين ۞ د صاحبینو رحمهما الله دلیل هغه حدیث دې. کوم چې په کتب ستۀ کې مذکور دې. ﴿ عن ابن عباس ؓ قال قال رسول الله ﷺ امرت أن أسجد على سبعة أعظم على الجبهة واليدين والركبتين وأطراف القدمين﴾ ابن عباس ؓ فرمائي. چې رسول الله ﷺ فرمائیلی. چې ماته حکم شویدې. چې زه سجده اوکړم. په اووه هډوکو، په تندی باندې، په دواړو لاسونو، دواړو ګونډو او د دواړو قدمونو اړخونو باندې.

وجه الاستدلال ۞ وجه داستدلال دا ده. چې په کومو اووه اندامونو باندې د سجدے حکم ورکړې شوې دې. په هغې کې د پوزے حکم نشته. نو څکه ثابته شوه. چې پزه د سجدې محل نه دې. اوهرکله چې پزه محل د سجدې نه دې. نو په پزه باندې اکتفاء کول هم ټیک نه دی

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ. او د ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ السُّجُودَ يَتَحَقَّقُ بِوَضْعِ بَعْضِ الْوَجْهِ. چې سجده په څیني مخ باندے متفق کیږی وَهُوَ الْمَأْمُورُ بِهِ. او هم دا مامور به ده.

تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله ۞ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چې په قرآا کریم کې مطلقاً د سجدې حکم ورکړې شوې دې. او سجده د څیني مخ په کیخودو سره متحقق کیږی. څکه چې د واړه مخ کیخودل ناممکن دی. څکه چې پزه او تندے داسې راپورته هډوکی دی. چې د واړه مخ په مځکه باندې د کیخودو نه مانع دی. بهرحال هرکله چې د واړه مخ په مځکه باندې کیخودل متعذر دی. نود څیني مخ په مځکه باندې کیخودل مامور به شو.

إِلَّا أَنَّ الْخَدَّ وَالذَّقَنَ خَارِجٌ بِالْإِجْمَاعِ البته اننګے اوزنه په اجماع سره خارج ده

حل اللغة° ① خد: اننګې ② ذقن: زنه

تشريح:- خروج الخد والذقن من السجدة ۞ البته اننګے او زنه په اجماع سره خارج ده. یعنی آیت د خپل اطلاق د وجې اګرچې دے ته هم ګډ دې. خو په اجماع سره په آیت کې دا مراد نه دی. څکه چې د سجدې نه مراد تعظیم دې. اود اننګی او زنے په مځکه کیخودو سره تعظیم مشروع نه دې. نو څکه دا دواړه د سجدې د

---

۱) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۱\۲۶۴) ومجمع الانهر(۱\۹۸) ومنحة الخالق (۱\۵۵۴) وفتح القدير(۱\۲۶۴) نقلا عن القول الراجح (۱\۸۱)_

۲) من حديث ابن عباس رضى الله عنهما اخرجه الائمة الستة فى كتبهم منهم البخارى فى الاذان باب ۱۳۳)_

مفهوم نه خارج شو.

**وجه الاستدلال** اوس پزه او تندے پاته پاتی شو.او دا دواړه د سجدې محل دې.نوځکه په دواړه باندې سجده جائز ده.لکه څنګه چې په تندی باندې اکتفاء کول جائز دی.نو دغه شان په پوه باندې هم اکتفاء جائز ده.

| |
|---|
| وَالْمَذْكُورُ فِيمَا رُوِيَ الْوَجْهُ فِي الْمَشْهُورِ.او په مشهور روايت کې مذکور وجه (مخ) ده |

**تشريح:- الجواب عن دليل الصاحبين** رحمهما الله په «والمذكور فيما الخ» سره دصاحبينو د دليل جواب دے.د خواب حاصل دا دې.چې په مشهور روايت کې د «جبهة» په ځائې «وجه» مذکور دې.په سنن اربعه کې د حضرت عباس بن عبدالمطلب نه نقل دی. «أنه سمع رسول الله ﷺ يقول إذا سجد العبد سجد معه سبعة آراب وجهه وكفاه وركبتاه وقدماه» يعنې نبی ﷺ نه مې اوريدلی دی چې فرمائيل ئې.بنده چې کله سجده کوی.نو ده سره اووه اندامونه سجده کوی.دده مخ او تلی دده لينګئ او دده دواړه قدمونه ،په دے حديث کې «وجه» مذکور ده.او وړاندې تير شوی دی.چې د «وجه» نه پزه او تندے دواړه مراد دی.ځکه موږ اووئيل.چې د سجدې په حکم کې پزه او تندے دواړه برابر دی.

| |
|---|
| وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ سُنَّةٌ عِنْدَنَا.او د لاسونو او ګيټو کيخودل زموږ په نيز سنت دی لِتَحَقُّقِ السُّجُودِ بِدُونِهِمَا.ځکه چې بغير د دے دواړو نه سجده متحقق کيږی |

**تشريح:- الاختلاف في حكم وضع اليدين والركبتين على الارض** علامه مرغينانی فرمائی.چې زموږ په نيز لاسونه او ګونډئ په مځکه باندې کيخودل مسنون دی.امام زفر،امام شافعي او فقيه ابوالليث رحمهم الله فرمائی.چې دا واجب دی.ددے حضراتو دليل د نبی ﷺ قول «امرت ان اسجد الخ» دې.وجه د استدلال دا ده.چې نبی ﷺ فرمائلی.ماته په اووه هډوکو باندې د سجدې کاوه حکم شوې دې.و د امر موجب وجوب وی.نو معلومه شوه.چې سجده کې اووه اندامونه په مځکه باندې کيخودل واجب دی.او په دے اووه اندامونو کې لاسونه او ګونډئ هم دی.ددے وجې دواړه لاسونه اودواړه ګونډئ په مځکه کيخودل واجب دی.

**دليل الاحناف** رحمهم الله زموږ دليل دا دې.چې د دواړو لاسونو او دواړو ګونډو په مځکه د کيخودو نه بغير سجده ممکن نه ده.نوځکه ددے په مځکه باندې کيخودل د سجدې په مفهوم کې داخل نه دی.او د حديث خواب دا دې.چې دا حديث صرف په دے باندې دلالت کوی.چې دا اووه اندامونه د سجدې محل دې.په د دے باندې څه دلالت نشته.چې د دے ټولو په مځکه باندې کيخودل لازم دی.او پاته شوه دا چې په حديث کې د «امرت» لفظ راغلے دې.نو ددے خواب دا دې.چې امر لکه څنګه د وجوب لپاره وی.دغه ډول د مذهب لپاره هم راځی.

| |
|---|
| وَأَمَّا وَضْعُ الْقَدَمَيْنِ او پاته شو دواړه قدمونه فَقَدْ ذَكَرَ الْقُدُورِيُّ رحمه الله نو قدوری رحمه الله ذکر کړی دی. أَنَّهُ فَرِيضَةٌ فِي السُّجُودِ چې دا په سجده کښے فرض دی. |

**تشريح:- حكم وضع القدمين على الارض** پاته شوه دا خبره چې په سجده کې د دواړو قدمونو په مځکه د کيخودو څه حکم دې.نو په دے اړه کې امام قدوری رحمه الله ذکر کړی دی.چې په سجده کې د دواړو قدمونو په مځکه کيخودل فرض دی.نوکه سجده ئې اوکړله.او د پښو ګوتے ئې د مځکې نه پورته کړې وې.نو جائز نه دی.امام کرخی رحمه الله او ابوبکر جصاص هم ددے قائلين دی.اوکه يو قدم ئې په مځکه کيخودلو.او بل ئے د مځکې نه اوچت کړلو.نودا جائز دی.او قاضی خان مع الکراهة دا جائز کړی دی.امام تمرتاشی فرمائيلی دی.چې په عدم فرضيت کې دواړه لاسونه او دواړه قدمونه برابر دی.

## د پټکی په پلو او په زياتکالی باندې د سجدې حکم

| |
|---|
| قَالَ فَإِنْ سَجَدَ فرمائی بياکه مونځګذار سجده اوکړه، عَلَى كَوْرِ عِمَامَتِهِ أَوْ فَاضِلِ ثَوْبِهِ د لنګوټې په ول يا په زياتی کالی باندې جَازَ نوجائز ده. |



**حل اللغة:** ① كور: پيچ، مروړ ② فاضل: فالتو، زياتی ③ جاز، جاز جوازا(ن): جائز کيدل، روا کيدل

**تشريح:- السجدة على كور العمامة وفاضل الثوب** ① مسئله زموږ په نيز د پټکی په ول يا په زياتی کالی باندې سجده کول جائز دی.

| |
|---|
| لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْجُدُ عَلَى كَوْرِ عِمَامَتِهِ، (١) ځکه چې نبی ﷺ دخپل لنګوټې په ول باندې سجده کوله |

**تشريح:- دليله الاول** زموږ دليل د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې. «أن النبي ﷺ كان يسجد على كور عمامته» يعنی نبی ﷺ به د لنګوټې په ول باندې سجده کوله.د عبدالله بن ابی اوفی نه نقل دی.چې «قال رأيت رسول الله ﷺ يسجد على كور عمامته» عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه فرمائی.چې ما رسول الله ﷺ ليدلے وو.چې د خپل لنګوټې په ول به ئې سجده کوله.

| |
|---|
| وَيُرْوَى أَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ او روايت کولې شی.چې نبی ﷺ به يوه کالی کښے لمونځ کولو. يَتَّقِي بِفُضُولِهِ حَرَّ الْأَرْضِ وَبَرْدَهَا (٢) چې د هغې په زياتی برخه به ئې د مځکې د ګرموالی او يخوالی نه ځان ساتلو. |

**حل اللغة:** ① يتقى، اتقى اتقاء: بچ کيدل ② حر: ګرمی ③ برد: يخنی

**تشريح:- دليله الثانی** دوهم دليل دا دې.چې ابن عباس(ن) نه مرودی دی. «أن النبي ﷺ صلى في ثوب واحد يتقي بفضوله حر الأرض وبردها» يعنی نبی ﷺ په يوه کالی کې لمونځ کولو.دوی به د هغې په زياتی برخه د مځکې د حرارت او برودت نه ځان بچ کولو.

## دواړه متې په سجده کې کهولاؤ ساتل

| |
|---|
| وَيُبْدِي ضَبْعَيْهِ او لرې دے ساتی خپلے دواړه متے |

**حل اللغة:** ① يبدى، ابدى ابداء: کولاوول ② ضبع: مټ

**تشريح:- كيفية وضع الضبعين فى السجدة** مسئله :د سجدې په حالت کې به مونځګذار خپلے متے ښکاره کوی.يعنی کهولاؤ به ئې ساتی.د ځناور په شير به ئې په مځکه پاندے نه خوروی.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی وَأَبْدِ ضَبْعَيْكَ(٣)".چې ښکاره کوه خپلے دواړه متے |

**تشريح:- دليله** دليل دا روايت دې. «عن آدم بن على البكرى قال رآني إبن عمر وأنا أصلى لا أتجافى عن الأرض بذراعى فقال يا ابن أخى لا تبسط بسط السبع وادعم على راحتيك وابد ضبعيك فإنك اذا فعلت ذلك سجد كل عضو منك» آدم بن على البكرى فرمائی.چې ابن عمر رضي الله عنهما زه اوليدم.په داسې حال کې چې ما لمونځ کولو.او د مځکې نه مې خپل لاسونه نه جلا کول.نو وے فرمائيل.اے وراره ! دځناورو په شير مه خوريږه.او په خپلو تلو باندې تکيه

---

١) من حديث ابى هريرة رضي الله عنه اخرجه عبدالرزاق فى مصنفه (١/٤٠٠) رقم ١٥٦٤)_

٢) من حديث ابن عباس رضى الله عنهما اخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفه واحمد فى مسنده (١/٢٥٦)_

(٣): قال الزيلعى رحمه الله حديث غريب وهو فى مصنف عبدالرزاق من كلام ابن عمر (رضى الله عنهما) عن ادم بن على البكرى قال رانى ابن عمر (رضى الله عنهما) و انا اصلى لا اتجافى عن الارض بذراعى فقال يا ابن اخى لا تبسط بسط السبع وادعم على راحتيك و ابد ضبعيك فانك اذا فعلت ذلك سجد كل عضو منك ورفعه ابن حبان فى صحيحه بلفظ وجاف عن ضبعيك وكذلك الحاكم فى المستدرک (نصب:١/٤٦٥)_

اولګوه.او خپلے متے کھولاو کړه.خکه چې کله ته داسې کوې.نو تا سره به هر اندام سجده کوي.

وَيُرْوَى او روايت شوې دي. وَأَبْدِدْ مِنَ الْإِبْدَادِ چې «إبداد» د «إبداد» نه ماخوذ دې وَهُوَ الْمَدُّ معنى ئې ده راښکل وَالْأَوَّلُ مِنَ الْإِبْدَاءِ او اول د «إبداء» نه دې. وَهُوَ الْإِظْهَارُ(١) معنى ئې ښکاره کول دي.

تشريح:- علامه مرغينانى فرمائى.چې په يو روايت کښے «إبداد» د دال په تشديد سره راغلے دې.د «إبداد» نه مشتق دې.چې معنى ئې راښکل ده.يعنى خپلے متے راکاږه.او اول د «إبداء» نه مشتق ده.چې معنى ئے ښکاره کول دی.يعنى خپلے متے ښکاره يعنى خه کھولاوکړه.

## په سجده کښې خيټه د ورنانو (پتونانو) نه جلا ساتل

وَيُجَافِي بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ او خپله نس به د پتونانو نه جلا ساتی.

حل اللغة: ①يجافى، جافى مجافاة: لرې ساتل ②بطن جمع بطون: نس ③فخذ جمع افخاذ: ورون

تشريح:- ابعاد البطن عن الفخذين في السجود﴿مسئله دا ده.چې مونځګذار به د سجدې په حالت کې خپله نس د خپلو پتونانو نه جلا ساتی.

{لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا سَجَدَ خکه چې نبى ﷺ به کله سجده کوله جَافَى نو جلا به ئې ساتله حَتَّى أَنَّ بَهْمَةً لَوْ أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ.تردې که د وزه بچې به د دوی د لاسونو په مينځ کې د تيريدو اراده اوکړله لَمَرَّتْ(١)نو تيريدے به شو

حل اللغة: ①بهمة: دَغوا، ګډې چيلئی بچې ②ان تمر، مر مروراً(ن): تيريدل

تشريح:- دليله﴿دليل دا دې.چې نبى ﷺ به کله سجده کوله.نو تجافى به ئې کوله،يعنى نس په ې د پتونانو نه جلا ساتله.او خنګلې به ئې مځکې نه اوچتے ساتلې.تردې که د وزه بچې به د نبى ﷺ د لاسونو په مينځ کې تيريدل غوښتل.نو تيريدے به شو.

وَقِيلَ او وئيلې شوې دی إِذَا كَانَ فِي الصَّفِّ که په صف کښے وی لَا يُجَافِي..نو جلا دے نه ساتی كَيْلَا يُؤْذِيَ جَارَهُ.چې ګاونډی ته تکليف نه وی.

حل اللغة: ①يوذى، اذى ايذاء: تکليف ورکول

تشريح:- خينې فقهاؤ وئيلې دی.که په صف کښے دننه وی.نو لاسونو ته دے جوف نه ورکوی.يعنى دا دے نه خوروی.چې ور سره نزدے کس (ګاونډی) ته تکليف نه وی.

## د پښو د ګوتو مخ قبلې طرف ته کول

وَيُوَجِّهُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ او د خپلو پښو دګوتو مخ دے قبلې ارخ ته کړی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" خکه چې نبى ﷺ فرمائيلې دی. {إِذَا سَجَدَ الْمُؤْمِنُ کله چې مومن سجده کوی سَجَدَ كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُ نو دده هر اندام سجده کوی فَلْيُوَجِّهْ مِنْ أَعْضَائِهِ الْقِبْلَةَ مَا اسْتَطَاعَ}(٢) نو چې خومره ئې وس کيږی.خپل اندامونه دے قبلې ارخ ته کوی.

١) قال الزيلعى رحمه الله حديث غريب وهو فى مصنف عبدالرزاق من كلام ابن عمر رضي الله عنهما ..عن ادم بن على البكرى قال رانى ابن عمر رضي الله عنهما وانا اصلى لا اتجافى عن الارض بذراعى فقال يا ابن اخى لا تبسط بسط السبع وادعم على راحتيك وابد ضبعيك فانك اذا فعلت ذلك سجد كل عضو منك ورفعه ابن حبان فى صحيحه بلفظ وجاف عن ضبعيك وكذالک الحاكم فى المستدرك (نصب:١/٤٦٥)_

(٢) من حديث ميمونة (رضى الله عنها) اخرجه مسلم فى الصلوة رقم ٢٣٧)-

(٣): غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن عبدالله بن عمر عن ابيه قال من سنة الصلوة ان ينصب اليمنى و استقبال اصابعها القبلة



حل اللغة: ①يوجه، وجه توجيها: متوجه کول ②نحو:پورې، ارخ ③عضو جمع اعضاء: اندام

تشريح:- دا مسئله اوددے دليل ښکاره دي.

## د سجدې تسبيح

وَيَقُولُ فِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا اود سجدې په حالت کې دے درے خله «سبحان ربي الأعلى» وائی وَذَلِكَ أَدْنَاهُ.او دا ادنى اندازه ده. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې دنبى ﷺ ارشاد دې. وَإِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ کله چې تاسو کې خوک سجده کوی. {فَلْيَقُلْ فِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا نو په خپله سجده کې دے درے خله «سبحان ربى الأعلى» وائى وَذَلِكَ أَدْنَاهُ}(١).او دا کمه درجه ده أَيْ أَدْنَى كَمَالِ الْجَمْعِ.يعنى د کمال جمع ادنى مقدار دي

تشريح:- تسبيحات السجود ثلاثاً﴿امام قدوری رحمه الله فرمائی.چې د سجدې په حالت کې به درے خله «سبحان ربي الأعلى» وائی.او دا درے خله وئيل د کم نه کمه درجه ده.عالمانو ﷺ ليکلی دی.چې ددے نه ږيښبول يا په کې کمے کول مکروه دی.ددے دليل د نبى ﷺ ارشاد دې.«اذا سجد احدکم فليقل في سجوده سبحان ربي الأعلى ثلاثا»

وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَزِيدَ عَلَى الثَّلَاثِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ.او مستحب دی.چې په رکوع او سجده کې په دريو باندې زيادت اوکړی بَعْدَ أَنْ يَخْتِمَ بِالْوِتْرِ.مګر په ناتکئ دے ختموی.د لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {كَانَ يَخْتِمُ بِالْوِتْرِ}(٢) خکه چې نبى ﷺ به په ناتکئ باندې ختمولو.

حل اللغة: ①ان يزيد، زاد زيادة: زياتول ②ان يختم، ختم ختاما(ض): ختم کول

تشريح:- استحباب الزيادة على الثلاث﴿او په رکوع او سجده کې په درے خله باندې زيادت کول مستحب دی.خو په دے شرط چې په طاق عدد باندې ختموی.او ددے دليل دا دې.چې نبى ﷺ به د رکوع او سجدې تسبيحات په طاق عدد باندې ختمولو.او په مشهور حديث «ان الله وتر يحب الوتر» باندې هم استدلال شوې دې.

وَإِنْ كَانَ إِمَامًا او که امام وی. لَا يَزِيدُ عَلَى وَجْهٍ نو په داسې طريقه دے نه وائی. يُمِلُّ الْقَوْمَ چې مقتديان ستړی شی. حَتَّى لَا يُؤَدِّيَ إِلَى التنفير چې د نفرت سبب جوړنشی

حل اللغة: ①يمل، مل ملالاً(س): زړه تنګې کيدل ستړی کيدل ②تنفير: نفرت ورکول

تشريح:- حق الزيادة للامام﴿ علامه مرغينانى رحمه الله فرمائی.که په خپله امام وی.نو په درے خله دے دومره زيادت نه کوی.چې خلګ ستړی شی.او د هغوی په زړونو کې نفرت او ناخوښی پيدا شی.دا خبره دے معلومه وی.چې د رکوع او سجدې تسبيحات سنت دی.خکه چې نص يعنى (ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا) رکوع او سجدې ته ګډ دی.ددے تسبيحاتو ته نه دے شامل.نو ثابته شوه چې د رکوع او سجدې تسبيحات فرض نه دی.

ثُمَّ تَسْبِيحَاتُ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ سُنَّةٌ.بيا د رکوع او سجدې تسبيحات وئيل سنت دی لِأَنَّ النَّصَّ تَنَاوَلَهُمَا.خکه چې نص دے دواړو ته ګډ دې. دُونَ تَسْبِيحَاتِهِمَا ددے تسبيحاتو ته نه دې. فَلَا يَزِيدُ عَلَى النَّصِّ نو په نص به زيادت نشی کولې.

والجلوس على اليسرى و عزاه الى النسائى (اى فى السنن الكبرى (٢٤٨١١) رقم ٧٤٤) نصب: ١/٤٦٦)-

(١) : تقدم تخريجه فى فصل صفة الصلوة)-

(٢) : قال الزيلعى رحمه الله غريب جدا (نصب:١/٤٦٧)-

**تشريح:- الاشكال على عدم وجوب التسبيحات**⊛خو اشكال به كيږي.چې د عدم فرضيت نه دا څنګه لازميږي.چې سنت دے وي.بلكه ممكن ده.چې واجب وي.ددے باوجود چې په وجوب باندې دوې (دوه) دلائل موجود دي.
①اول دا چې د ركوع او سجود په تسبيحاتو باندې نبي ﷺ مواظبت كړې دې. او دا دليل د وجوب دې.② دوهم دا چې د ركوع د تسبيحاتو په اړه كي نبي ﷺ فرمائيلي دي. «اجعلوها»او د سجدې د تسبيحاتو په اړه كي فرمائي. « فليقل»او دا د امر صيغے دي.او د امر موجب وجوب وي.نو ددے دواړو تسبيحات هم واجب ګرځول پكار وو.

**الجواب**⊛خواب صحرائي ته د تعليم وركاوه په وخت كي نبي ﷺ ورته ددے بيان نه وو كړې.نو معلومه شوه.چې د ركوع او سجود د تسبيحاتو حكم د وجوب نه بلكه د استحباب په طور دې.

**د ښځي د سجدې طريقه**

| |
|---|
| (وَالْمَرْأَةُ تَنْخَفِضُ فِي سُجُودِهَا) او ښحه دے په خپله سجده كښے راغونډه شي(پاته عربي وَتَلْزَقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا).او خپله نس دے د خپلو پتونانو سره يوځائې كړي لِأَنَّ ذَلِكَ أَسْتَرُ لَهَا.دا ددے په حق كي زياته پرده ده. |

**حل اللغة:** ①**تنخفص، انخفض انخفاضاً:** كښته كيدل، ټيټيدل②**تلزق، لزق لزوقاً** (س): انختل ③**بطن جمع بطون:** نس ④**استر:** ډير پټ

**تشريح:- كيفية سجدة المراة**⊛په دے عبارت كي د ښځےد سجدې د كيفيت بيان دې.فرمائي چې ښځه دے د سجدې كاوه په وخت كي راغونډه شي.يعني مخكې ته دے نزدے شي.او نس دے د پتونانو سره ملاؤ كړي.دليل دا دې.چې په دے كيفيت باندې سجده كاوه كښے د ښځے په حق كي زياته پرده ده.حالانكه د ښځے په حق كي پرده مطلوب هم ده.

مناسب ګڼړم چې په دے مقام كي د ښځے د دے كيفيت لپاره نقلي دليل د خپل كتاب ،،سنن الصلاة في فقه الأحناف،، نه نقل كړم.كوم چې بنده د ډير لټون نه روسته پيدا كړې دې. «عن علي قال إذا سجدت المرأة فلتحتفر ولتلصق فخذيها ببطنها (كذا في مصنف عبدالرزاق رقم ۵۰۷۲ (۱۳۸/۳) حسنه العثماني إعلاء السنن في الصلاة باب طريق السجود بطريق الأحوص و عزاه إلىمصنف ابن أبي شيبة لكن ماوجده فيه العبدالضعيف شاه فيصل)

**د سجدې نه د پورته كيدو او جلسي طريقه**

| |
|---|
| قَالَ (ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فرمائي.چې بيا به خپل سر پورته كړي وَيُكَبِّرُ) او تكبير به اووائي. لِمَا رَوَيْنَا دے حديث د وجې كوم چې موږ روايت كړې دې. (فَإِذَا اطْمَأَنَّ جَالِسًا .بيا چې كله په اطمينان سره كښيني كَبَّرَ وَسَجَدَ)نو تكبير دے اووائي.و سجده دے اوكړي |

**حل اللغة:** ①**اطمان، اطميناناً:** مطمئن كيدل ②**جالسا:** په ناسته

**تشريح:- التكبير عند الرفع من السجدة الاولى**⊛په دے عبارت كي د دويمې سجدې د كيفيت بيان دې.فرمائي چې د لومړئي سجدې نه په سر راپورته كاوه كي به تكبير اووائي.دليل هغه روايت دې.كوم چې وړاندې تير شوې دې.يعني «أن النبي ﷺ كان يكبر عند كل خفض ورفع»بيا چې كله په اطمينان سره كيني.نو تكبير دے وائي او دويمې سجدې ته دے لاړ شي.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ الْأَعْرَابِيِّ ځكه چې د صحرائي په حديث كي دي چې نبي ﷺ فرمائيلي دي (ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ ..بيا خپل سر پورته كړه. حَتَّى تَسْتَوِيَ جَالِسًا(١) ترڅو چې نيغ كينے |

**حل اللغة:** ①**اعرابي:** كلي وال

---

(١) تقدم تخريجه)_



**تشريح:- دليله** ⊛دليل دا دې.چې صحرائي ته ئې د لمونځ تعليم وركولو.نو نبي ﷺ فرمائيلي وو. «ثم ارفع رأسك حتى تستوى جالسا»يعني بيا سر پورته كړه.ترڅو چې ته نيغ كيني.

| |
|---|
| وَلَوْلَمْ يَسْتَوِ جَالِسًا.او كه نيغ نه وي ناست وَكَبَّرَ او تكبير ئې اووئيل وَسَجَدَ أُخْرَى او دويمه سجده ئې اوكړله أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ نو د ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز كافي شوه وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا ذكر كړې دى |

**حل اللغة:** ①**ذكرناه، ذكر ذكراً**(ن): يادول، ذكركول

**تشريح:- الاختلاف في عدم القعود بين السجدتين**⊛او كه لمونځ ګذار د سجدې نه راپورته شو.او نيغ كينه ناسته،نو د طرفينو رحمهما الله په نيز دا كافي ده.ددے تفصيل مع اختلاف د تعديل اركان لاندې تيرشوې دې.

| |
|---|
| وَتَكَلَّمُوا فِي مِقْدَارِ الرَّفْعِ. او د سر پورته كاوه په مقدار كښے كلام دې وَالْأَصَحُّ.او اصح دا دې. أَنَّهُ إِذَا كَانَ إِلَى السُّجُودِ أَقْرَبَ چې كله سجدې ته نزدے وي لَا يَجُوزُ.نو جائز نه ده لِأَنَّهُ يُعَدُّ سَاجِدًا ځكه چې دے هم په سجده كي شمارلى شي وَإِنْ كَانَ إِلَى الْجُلُوسِ أَقْرَبَ.او كه ناستے ته نزدے وو. جَازَ نو جائز دې.لِأَنَّهُ يُعَدُّ جَالِسًا ځكه چې دے ناست شمارلے شي فَتَتَحَقَّقُ الثَّانِيَةُ. |

**فتحقق الثانية**.نو دويمه سجده متحقق شوه.

**تشريح:- الاقوال في اعتبار السجدة الثانية**⊛ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې مشائخو په دے اړه كي اختلاف دې.چې د دويمې سجدې د معتبر كيدو لپاره د اولے سجدې نه په څومره مقدار كي سر پورته كول ضروري دى.① ځينې فقهاؤ وئيلي دى.چې كله تندے د مخكې نه جلا شي.او بيا سجدې ته لاړشي.نو دواړه سجدې ادا شوې.② حسن بن زياد رحمه الله وئيلي دى.چې كله د مخكې نه خپل سر دومره راپورته كړي.چې په هغې كي هوا تيره شي.نو په دے صورت كي دواړه سجدې ادا شوې.د حسن بن زياد رحمه الله قول اولني قول ته نزدے دې.③ محمد بن سلمه رحمه الله وائي.كه په دومره مقدار باندې ئې سر پورته كړو.چې ليدونكې دا ګمان اوكړي.چې ده د دويمې سجدے كاوه لپاره خپل سر پورته كړلو.نو دواړه سجدې ادا شوې.ګڼې يوه سجده به ادا شي.④ امام قدوري رحمه الله فرمائي.چې په څه باندې د «رفع» (سر پورته كول) لفظ اطلاق كيږي.نوپه دومره اندازه باندې سر پورته كول معتبر دى.⑤ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چې اصل قول دا دې.كه دومره اوچت كړي.چې د ناستے په نسبت سجدې ته نزدے وي.نو دويمه سجده جائز نه ده.ځكه چې دے تراوسه پورې په اوله سجدې كي شمارلے شي.او كه دومره اوچت كړي.چې ناستے ته نزدے وي.نودويمه سجده جائز ده.ځكه چې په دے صورت كښ دے ناست شمارلے شي.نو دويمه سجده متحقق شوه.

**الرايان في تكرار السجود دون الركوع**⊛پاته شوه دا خبره چې په هر ركعت كي يوه ركوع او دوې (دوه) سجدې ولے دى؟نو په دے اړه كي د اكثرو عالمانو رحمهم الله دا رائې ده.چې دا توقيفي شي دې.عقل او قياس ته په دے كي دخل نشته.② او ځينې حضراتو دا حكمت ذكر كړې دې.چې دوې (دوه) سجدې د شيطان ذليل كاوه لپاره دى.ځكه چې د تخليق آدم عليه السلام نه روسته چې كله الله تعالى هغه ته حكم كړې وو.چې دے آدم عليه السلام ته سجده اوكړي.نو هغه آدم عليه السلام ته سجده اونكړله.نو موږ د شيطان د رسوا كاوه او ذليل كاوه لپاره دوې (دوه) سجدې كوو.په سجده د سهوے كي نبي ﷺ دے اړخ ته اشاره كړې ده. «هما ترغيما للشيطان»يعني د سهوے دواړه سجدې د شيطان رسوا كاوه لپاره دى.③ اوبعضو وئيلي دى.چې په اوله سجده كي دے اړخ ته اشاره كړې شوې ده.چې انسان د خاورے نه پيدا شوې دې.او په دويمه كي دا اشاره ده.چې هم دے ته به واروسته كيږي.الله تعالى فرمائي. (مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ)

**دسجدې نه د اودريدو كيفيت**

قَالَ ﴿فَإِذَا اطْمَأَنَّ سَاجِدًا﴾ فرمائی. بیا چې کله د سجدې په حالت کې په اطمینان شی ﴿كَبَّرَ﴾ نو تکبیر دې ووایي ﴿وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ﴾ او موږ دا ذکر کړې دې. ﴿وَيَسْتَوِي قَائِمًا﴾ و نیغ دې اودریږی. ﴿عَلَى صُدُورِ قَدَمَيْهِ﴾ د خپلو قدمونو په تلو باندې

**حل اللغة:** ① **استوی، استواءً:** برابرول ② **قدم:** پښه

**تشریح:- التكبير عند الرفع الى القيام** فرمائی. چې کله د سجدې په حالت کې په اطمینان شی. نو د اودریدو لپاره دې تکبیر اووائی. دلیل وړاندې تیر شوې دې. یعنی «أن النبی ﷺ كان يكبر عند كل خفض ورفع»

**السوال على المصنف والجواب عنه** صاحب د عنایه لیکلی دی. چې مصنف رحمه الله له دخپل عادت مطابق وړاندې ذکر شوی حدیث ارخ ته د اشارې کاوه لپاره پکار وو. چې په «لما روينا» سره ئې اشاره کړې وه. خو کیدې شی. چې په تیره شوې مسئله کې ئې هم دې حدیث ارخ ته د اشارې لپاره «لما روينا» وئیلی وو. او اوس دلته دغه «لما روينا» ارخ ته په «وقد ذكرنا» سره اشاره کوی.

﴿وَلَا يَقْعُدُ﴾، اونه دې کښینی ﴿وَلَا يَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ﴾ او نه دې تکیه لګوی. په خپلو لاسونو سره په مځکه باندې

**حل اللغة:** ① **لایقعد، قعد قعوداً (ن):** ناسته

**تشریح:- الاختلاف في كيفية القيام من السجدة الثانية** ① امام قدوری رحمه الله فرمائی. چې د دویمې سجدې د فراغت نه روسته دې د خپلو تلو په ذریعه نیغ اودریږی. نه دې کښینی او نه دې په خپلو لاسونو باندې په مځکه تکیه لګوی. که عذر نه وی. نو مستحب دادی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ:، او امام شافعی رحمه الله فرمائی. يَجْلِسُ جَلْسَةً خَفِيفَةً چې لږه غونډې ناسته دې کوی. ثُمَّ يَنْهَضُ مُعْتَمِدًا عَلَى الْأَرْضِ بیا دې په مځکه باندې تکیه لګونکې اودریږی لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فَعَلَ ذَلِكَ.[1] ځکه چې نبی ﷺ به داسې کولو

**حل اللغة:** ① **یجلس جلس جلوساً (ض):** کښینستل ② **کان ینهض، نهض نهوضاً (ف):** پاسیدل

**تشریح:-** حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې لږه غونډې جلسه دې کوی. او بیا دې په مځکه باندې په تکیه کاوه اودریږی.

**دلیله** د امام شافعی رحمه الله دلیل د مالك ابن الحویرث رضی الله عنه حدیث دې. «أن ابی ﷺ كان إذا رفع رأسه من السجود قعد ثم نهض» یعنی نبی ﷺ چې به کله د سجدې نه سر راپورته کړلو. نو کیناستلو به بیا به ودریدلو.

وَلَنَا حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او زموږ دلیل دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {كَانَ يَنْهَضُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى صُدُورِ قَدَمَيْهِ}،[2] چې نبی ﷺ به په لمانځه کې د خپلو قدمونو په تلو باندې ودریدلو

**تشریح:- الدلیل الاول للاحناف** زموږ دلیل د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې. «أن النبي ﷺ كان ينهض في الصلاة على صدور قدميه» یعنی نبی ﷺ به په لمانځه کې دخپلو پنجو په تلو باندې ودریدلو.

**الدليل الثاني للاحناف** او د امام شعبی رحمه الله نه مروی دی. «قال كان عمر وعلي وأصحاب النبي ﷺ ينهضون في الصلاة على صدور أقدامهم» امام شعبی رحمه الله فرمائی. چې حضرت عمر، حضرت علی او د رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم به په لمانځه کې دخپلو قدمونو په پنجو باندې ودریدل.

---

[1] ) اخرجه البخاری عن مالک بن الحویرث فی الصلاة باب ١٤٣ (حدیث ٨٢٤)
[2] ) رواه الترمذی فی الصلاة باب ٩٨)_



وَمَا رَوَاهُ او حدیث کوم چې امام شافعی رحمه الله روایت کړې دې مَحْمُولٌ عَلَى حَالَةِ الْكِبَرِ، د بوډاوالی په حالت باندې محمول دې.

**حل اللغة:** ① **کبر** بوډاوالي

**تشریح:- الجواب عن حدیث الشافعی رحمه الله** اوپاته شو هغه حدیث کوم چې دامام شافعی رحمه الله په استدلال کې پیش کړې شوې دې. نو د هغې ځواب دا دې. چې دا حدیث د بوډاتوپ په وخت باندې محمول دې. یعنی د بوډاتوپ په زمانه کښې به نبی ﷺ داسې کول.

وَلِأَنَّ هَذِهِ قَعْدَةُ اسْتِرَاحَةٍ او ددې وجې چې دا قعده د استراحت ده وَالصَّلَاةُ مَا وُضِعَتْ لَهَا. او لمونځ د استراحت لپاره نه دې وضع شوې.

**تشریح:- الدلیل العقلی للاحناف** زموږ د اړخه عقلی دلیل دا دې. چې دا کښینستل د استراحت لپاره دی. او لمونځ د استراحت او آرام لپاره نه دې وضع شوې. نو ځکه دا قعده نشته.

### د دوهم رکعت پوره کولو طریقه

﴿وَيَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ﴾ او په دوهم رکعت کې دې هم هغه شان اوکړی ﴿مِثْلَ مَا فَعَلَ فِي الْأُولَى﴾ څنګه چې ئې په اولنی رکعت کې کړې وو ﴿لِأَنَّهُ تَكْرَارُ الْأَرْكَانِ﴾. ځکه چې دا د ارکانو تکرار دې ﴿إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْتَفْتِحُ وَلَا يَتَعَوَّذُ﴾ البته دا چې «سبحانك اللهم» او «أعوذبالله» دې نه وائی لِأَنَّهُمَا لَمْ يُشْرَعَا إِلَّا مَرَّةً ځکه چې دا دواړه صرف یو ځل مشروع شوې دی.

**حل اللغة:** ① **یفعل، فعل فعلاً (ف):** کول ② **یستفتح، استفتح استفتاحاً:** پیل کول ③ **یتعوذ، تعوذ تعوذاً:** پناه غوښتل، اعوذبالله وئیل

**تشریح:- كيفية الركعة الثانية** د اولنی رکعت د فراغت نه روسته دې لمونځ ګذار دوهم رکعت اوکړی. او په دوهم رکعت کښې به واړه هغه څه کوی. کوم چې ئې په اولنی رکعت کې کړی وو. دلیل دا دې. چې دوهم رکعت کې د ارکانو تکرار دې. او تکرار د اول د اعادې تقاضا کوی. ځکه چې وئیلی شوی دی. چې دوهم رکعت کښې به هغه شان کوی. څنګه چې ئې په اولنی رکعت کښې کړی وو. البته دومره توپیر ضرور شته. چې په دوهم رکعت کې به نه «سبحانك اللهم» وائی. او نه «اعوذ بالله» وائی. ځکه چې دا دواړه خبرې یو ځل مشروع شوی دی. ځک چې کوم حضرات صحابه کرام د نبی ﷺ لمونځ نقل کوی. نو هغوی دا شیان (څیزونه) صرف یو ځل روایت کړی دی.

### د رفع یدین حکم

﴿وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ﴾ و خپل لاسونه دې نه اوچتوی. ﴿إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى﴾ مګرپه تکبیر تحریمه کې

**حل اللغة:** ① **رفع:** اوچتول ② **ایدی جمع ید:** لاس

**تشریح:- الاختلاف في رفع اليدين عندالركوع والرفع منه** ① مسئله دا ده. چې د تکبیر تحریمې نه بغیر به په تکبیر کې لاس نشی اوچتولی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې. فِي الرُّكُوعِ وَالرَّفْعِ مِنْهُ رکوع ته په تلو او دې نه سر پورته کاوه کې

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې د تکبیر تحریمې نه علاوه به په دوو تکبیرونو کې لاس اوچتوی. یو رکوع ته د تلو په وخت کې او دوهم د رکوع نه پورته کیدو په وخت.

**دلیله** د امام شافعی دلیل دابن عمر رضی الله عنه حدیث دې. «أن النبي ﷺ كان يرفع يديه عند الركوع وعند رفع الرأس من

الرکوع» د ابن عمر ﷛ حدیث دی. چې نبی ﷺ به خپل دواړه لاسونه پورته کول. رکوع ته د تلو په وخت کې او د رکوع نه سر پورته کاوه په وخت کې،

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {لَاتُرْفَعُ الْأَيْدِي، .لاسونه به نشی اوچتولے إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ :مگر په اووه ځایونو کې تَكْبِيرَةُ الْإِفْتِتَاحِ، تکبیر اولی وَتَكْبِيرَةُ الْقُنُوتِ، تکبیر قنوت، وَتَكْبِيرَاتُ الْعِيدَيْنِ، تکبیرات عیدین، وَذَكَرَ الْأَرْبَعَ فِي الْحَجِّ} (۱) او څلور په حج کې ذکر شوی دی |

تشریح:- دلیل الاحناف ◉ زمونږ دلیل د ابن عباس ﷠ حدیث دی. چې «لا ترفع الأیدي إلا في سبع مواطن الحدیث» د ابن عباس ﷠ نه نقل دی. چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. لاس به نشی اوچتولې. مگر په اووه ځایونو کې ① په تکبیر تحریمه کې ② تکبیر قنوت کښې ③ تکبیرات عیدین کې ④ تکبیرعرفات کې ⑤ تکبرات جمرتین کښې ⑥ تکبیر صفا مروه کې ⑦ تکبیر استلام کښې.

| |
|---|
| "وَالَّذِي يُرْوَى مِنَ الرَّفْعِ. او کوم حدیث چې په رفع یدین کې روایت کولې شی مَحْمُولٌ عَلَى الْإِبْتِدَاءِ، هغه په ابتداء باندې محمول دی. كَذَا نُقِلَ عَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ. دغه ډول د ابن زبیر ﷛ نه منقول دی. |

تشریح:- الجواب عن دلیل الشافعی ◉ د ابن عمر ﷛ حدیث به په ابتدائے اسلام باندې حمل کولې شی. یعنی په ابتدائې اسلام کې رفع یدین وو. بیا منسوخ شو. هم دغه ډول د عبدالله بن زبیر ﷛ نه منقول دی. د ابن زبیر ﷛ نه مروی دی. «أنه رأی رجلا یصلی في المسجد الحرام یرفع یدیه في الصلاة عند الرکوع وعند رفع الرأس من الرکوع فلما فرغ من صلاته قال له لاتفعل فان هذا شئ فعله رسول الله ﷺ ثم ترکه»

مناظره ابیحنیفه واوزاعی ◉ شارحینو ﷭ دهدایه (عنایه، فتح القدیر، کفایه) په دے مسئله کې یوه خوندوره واقعه ذکر کړې ده. هغه دا چې یو ځل په مسجد حرام کې امام اوزاعی ﷫ د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ سره ملاؤ شو. امام اوزاعی ﷫ اوفرمائیل. څه خبره ده چې اهل عراق د رکوع کاوه په وخت کې او د رکوع نه سر پورته کاوه په وخت کې خپل لاسونه نه اوچتوی. حالانکه ماته «زهری عن سالم عن ابن عمر ﷛» نه دا حدیث رارسیدلے دی. چې نبی ﷺ به په دے مواقعو باندې خپل لاسونه اوچتول. امام ابوحنیفه ﷫ اوفرمائیل. «حدثنی حماد عن ابراهیم عن علقمة عن عبدالله بن مسعود ﷛ أن النبی ﷺ کان یرفع یدیه عند تکبیرة الإفتتاح ثم لا یعود» یعنی نبی ﷺ به د تکبیر تحریمه په وخت کښې خپل لاسونه اوچتول. بیا به ئې اعاده نه کوله.

امام اوزاعی ﷫ اوفرمائیل. امام ابوحنیفه باندې تعجب دی. چې زه ورته حدیث بیانوم. «حدیث زهری عن سالم عن ابن عمر» او هغه حدیث بیانوی. (حدیث حماد عن ابراهیم عن علقمی عن ابن مسعود ﷛) حاصل دا چې امام اوزاعی د علو سند لحاظ اوکړلو. او د ابن عمر ﷛ حدیث ته ئې ترجیح ورکړله. حضرت امام اعظم ﷫ ووئیل «اما حماد فکان أفقه من الزهری وإبراهیم کان أفقه من سالم ولولاسبق إبن عمر لقلت بأن علقمة أفقه منه أما عبدالله فعبدالله» یعنی حماد دزهری په مقابله کې لوئې فقیه دی. او ابراهیم د سالم نه زیات فقیه دی. او که چرته ابن عمر ﷛ ته د تقدیم زمانی فضیلت حاصل نه وو. نوما به وئیلی وو. چې علقمه د ابن عمر ﷠ په مقابله کې زیات فقیه دی. اوعبدالله خو عبدالله ﷛ دی. یعنی دهغه خو نظیر نشته. حاصل دا چې امام ابوحنیفه ﷫ د فقه روایت په اعتبار سره ابن مسعود ﷛ ته ترجیح ورکړله.

الاستدلال ◉ ددے واقعے نه دومره خبره ثابته شوه. چې د رفع یدین په سلسله کې دابن عمر ﷠ او ابن مسعود ﷛ حدیث په خپلوکې معارض دی. او په دے دواړو حدیثونو کې د نبی ﷺ فعل بیان شوې دی. نو دتعارض د وجې دواړه احادیث ساقط شو. او د نبی ﷺ قول «لا ترفع الأیدی إلا في سبع مواطن الحدیث» اړخ ته به

(۱) غربه الزیلعی ﷫ بهذا اللفظ و نقل الهیثمی بمعناه عن ابن عباس وعزاه الی معجم الطبرانی مجمع الزوائد (۱۰۲/۲)۔



رجوع کولې شی. په داسې حال کې چې دا حدیث مشهور دی. ددے نه علاوه د ابن عمر ﷠ حدیث ساقط دی. ځکه چې مجاهد ﷫ فرمائیلی دی. «صلیت خلف ابن عمر ﷠ سنتین فلم أره یرفع یدیه إلا لافتتاح الصلاة» مجاهد ﷫ فرمائی. چې ما دوې (دوه) کاله په ابن عمر ﷛ پسې لمونځ کړې دی. خو د تکبیر تحریمه نه علاوه ما چرته هغه په لاس اوچتولو نه دے لیدلې. اوقاعده دا ده. چې راوی کله دخپل روایت خلاف عمل کوی. نو دهغه روایت ساقطیږی. (نورالانوار) جمیل عفی عنه.

دهدایه دعبارت نه داسې معلومیږی. چې د رفع الیدین او عدم رفع الدین اختلاف د جواز اوعدم جواز اختلاف دی. حالانکه حقیقت داسې نه دی. ځکه مناسب گنړم. چې د خپلے پښتو شرح «مفتاح الفلاح شرح نورالایضاح» نه خپل وضاحت نقل کړم. حکم رفع الیدین عندالرکوع والسجود * رکوع او سجدې ته د کښته کیدو په وخت کې چې الله اکبر وائی. نو په دغه وخت کې دلاسونو پورته کاوه او نه پورته کاوه په اړه کې د عالمانو اختلاف دی. احناف اودصحیح قول مطابق مالکیان د ترک رفع الیدین قائل دی. او شوافع او حنابله د رفع الیدین قائلین دی. شیخ الاسلام مفتی محمد تقي عثماني دامت حیاتهم العالیه په درس ترمذی کې فرمائی: چې دا خبره یاده ساتئ: چې د امامانو په مینځ کې په دے مسئله کې اختلاف دجواز او عدم جواز نه دی. بلکه د افضلیت او عدم افضلیت دی. د فریقینو په نزد دواړه طریقے بے دکراهته جائز دی. البته په محدثینو کې امام اوزاعی او امام حمیدی او امام ابن خزیمه ﷭ رفع الیدین ته واجب وائی. (ذکره الحافظ في فتح الباري ج۲ص۱۷۴) خوچې روستو بیا په دے مسئله باندې د مناظرو بازار گرم شو. او د فریقینو د اړخ نه په دے مسئله کې اوږده اوږده بحثونه او مبالغه پیل شوه. نو ځینې شافعیانو هم په ترک درفع الیدین باندې د فساد حکم اوکړو. او په احنافو کې صاحب د منیة المصلی رفع یدین ته مکروه اووئیل: لیکن حقیقت هغه دی. کوم چې مونږ وړاندې بیان کړلو. ترکومے پورې چې د روایاتو تعلق دی. نو حقیقت دا دی. چې دواړه عملونه د نبی علیه السلام نه ثابت دی. حضرت شاه انور شاه کشمیری ﷫ د ،،رفع الیدین،، په مسئله یوه مستقله رساله لیکلې ده. او نوم ئې ورته ،،نیل الفرقدین في رفع الیدین،، ایخے دی. په دے رساله کې هغوی فرمائی. د رفع الیدین احادیث معنی متواتر دی. او د ترک رفع الیدین احادیث عملاً متواتر دی. یعنی په ترک د رفع الیدینو باندې دامت عمل راروان دی. او ددے دلیل دا دی. چې د عالم اسلام دوې (دوه) لوئې مرکزونه مدینه منوره اوکوفه وو. اوددے دواړو ښارونو خلگ بلا استثناء په ترک رفع الیدین باندې عمل کونکی وو. (درس ترمذي ج، ۲ص۲۷) چونکه احناف د ترک رفع الیدین قائلین دی. دلته کې د ترک رفع الیدین لپاره صرف یو دلیل ذکر کوم.

دلیله* دحضرت عبدالله رضی الله عنه نه روایت دی. فرمائی: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د اولنی تکبیر په وخت کې لاسونه پورته کولو. او بیا به لاسونو پورته کاوه ته نه واروسته کیدلو. رواه الطحاوي في شرح معاني الآثار(۲۲٤/۱)۔

### په قعده کې د کیناستو کیفیت

| |
|---|
| (وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او کله چې د دوهم رکعت لپاره د دویمې سجدې نه سر راپورته کړی اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى نو خپله گسه پښه به اوغزوی فَجَلَسَ عَلَيْهَا. او په دے به کښینی وَنَصَبَ الْيُمْنَى نَصْبًا. او خپله ښئ پښه به بیخی نیغه اودروی وَوَجَّهَ أَصَابِعَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ). او خپلے گوتے به قبلې اړخ ته کړی |

حل اللغة* ① رفع رفعًا(ف): اوچتول ② افترش، افتراشًا: خورول ③ فجلس، جلس جلوسًا(ض): کښینستل ④ نصب، نصبًا (ن،ض): اودرول، ورخښول ⑤ نحو: اړخ

تشریح:- کیفیة الجلوس في القعود ◉ په دے عبارت کښې د قعدې کیفیت بیان شوې دے. فرمائی. چې کله د دوهم رکعت لپاره د دویمې سجدې نه سر راپورته کړی. نو خپله چپه پښه به اوغزوی. او په دے به کینی. او ښئ به

اودروی.او د دواړو پښو ګوتې به قبلې اړخ ته متوجه کړی.

**هَكَذَا وَصَفَتْ عَائِشَةُ قُعُودَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ**[1] هم دغه ډول حضرت عائشې رضي الله عنها د نبی ﷺ کښېنستل بیان کړی دی

**تشریح:-** دلیله ﷺ دلیل دا دی.چې ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها د نبی ﷺ په لمانځه کې د کیناستو کیفیت هم داسې بیان کړی دی.

(**وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ**.او خپل دواړه لاسونه به په دواړو پتونانو باندې کیږدی **وَبَسَطَ أَصَابِعَهُ**.او دخپلو لاسونو ګوتې به اوغزوی. **وَتَشَهَّدَ**) او تشهد به ووایي

**تشریح:- وضع الدين على الفخذين** ﷺ چې کښېنی نو خپل دواړه لاسونه به په دواړو پتونانو کیږدی.او ګوتې به خورې کړی .یعنی چې په کوم حالت کې وی.هم په هغه حالت کې دې پریږدی.یوځائې کوی دې نه.او په لاسونو دې لینګئ نه نیسی.

**يُرْوَى ذَلِكَ فِي حَدِيثِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ**[2].دا په حدیث د وائل کې روایت کولې شی. **وَلِأَنَّ فِيهِ تَوْجِيهَ أَصَابِعِ يَدَيْهِ إِلَى الْقِبْلَةِ**او ددې لپاره چې د لاسونو ګوتې قبلې اړخ ته متوجه کیدل موجود شی

**حل اللغة** ① **توجيه**: متوجه کول ② **اصابع، اصبع**: ګوته

**تشریح:- دلیله** ﷺ دلیل دا دی.چې دحضرت وائل بن حجر رضي الله عنه حدیث هم په دې کیفیت سره روایت شوې دی.اوعقلی دلیل دا دی.چې په دې وضع کې د لاسونو ګوتې مخ په قبله وی.او ترکومې چې هراندام قبلې اړخ ته متوجه کول ممکن وی.نودا غوره ده.

صاحب دعنایه لیکلی دی.چې امام محمد رحمه الله دنبی ﷺ یو حدیث بیان کړی دی.په هغې کې دی.چې رسول الله ﷺ به د شهادت په ګوته باندې اشاره کوله.نو موږ به هم داسې کول.او هم دا قول د ابوحنیفه رحمه الله دی.او ددې اشارې تفصیل دا دی.چې د ښی لاس کچې او خم‌چې (قچه) ګوتې به بندې کړی.اود مینځئ او متې ګوته دې الغه (حلقه) جوړه کړی.اوپه مسواکه ګوته دې اشاره کوی.دامام حلوانی رحمه الله نه منقول دی.چې په تشهد کښې به د «لا إله» د لفظ په وخت کې خپله د شهادت ګوته پورته کوی.اود «إلا الله» په وخت کې به نې کښته کوی.چې د ګوتې پورته کول د غیرالله نه نفی او کښته کول دالله تعالی لپاره اثبات شی

په دې مقام کې هم د مفتاح الفلاح شرح نورالایضاح نه عبارت نقل کوم. په مسواکه ګوته باندې په تشهد کې اشاره کول سنت دی.او چا چې ترې انکار کړی دی.نو دهغوی قول ته څه اعتبار نشته.ځکه چې اشاره په احادیثو صحیحو سره ثابته ده.اومتاخرین عالمان ددې په سنتیت باندې قائل دی.او دا قول د روایت او درایت دواړو په رڼا کې معتبر دی.چې اشاره سنت ده.البته په احادیثوکې د اشارې کاوه په کیفیت کې مختلف طریقې راغلی دی.ټولې جائز دی.خو داحنافو په نیزدمعتمده طریقه دا ده.چې د تشهد داول څخه به دواړه لاسونه په رونانو کیږدی.چې کله «أشهد أن لا إله الا إلا الله» ته اورسی.نو د قتې او منځنۍ ګوتې څخه به الغه (حلقه) جوړه کړی.او د الوهیت د نفی په وخت کې یعنی چې کله «لا إله» وائی.نو مسواکه ګوته به پورته کړی.او د الوهیت داثبات یعنی «إلا الله» په وخت کې به مسواکه ګوته اړدی.چې په پورته کاوه کې نفی دالوهیت ته او په کیخودلو کې اثبات د الوهیت ته اشاره اوشی.علامه تقی عثمانی حفظه الله په درس ترمذی کې فرمائیلی : داشارې په اړه کې مختلف کیفیات منقول دی.په ټولو باندې عمل جائز دی. خو داحنافو په

---

[1]) غربه الزيلعی بهذا اللفظ واورد بمعناه عن عائشة وعزاه الی مسلم فی الصلاة حدیث (۲٤۰)_

[2]) غربه الزيلعی بهذا اللفظ ونقل رواية ابن عمرفی هذا وعزاه الی مسلم (فی المساجد ومواضع الصلاة (حدیث ۱۱۶)ومالک الصلاة باب (حدیث٤۸)_



نزد باندې دا طریقه غوره ده.کومه چې مخکې تاسو اولوستله.

دلیله• حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی:رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به کله په تشهد کې کیناستلو. نو چپه لاس به نې په ګسه لینګئ کیخودلو.او ښې لاس به نې په ښی لینګئ کیخودلو.او د پنځوسو نښانه به نې جوړه کړله.او په مسواکه ګوته به نې اشاره اوکړله.رواه مسلم في الصلاة باب:صفة الجلوس في الصلاة وكيفية وضع اليدين إلخ رقم الحديث ۹۱۲)

② چونکه علامه مرغینانی د ښځې د قعدې د کیفیت لپاره نقلی دلیل نه دې نقل کړې.نومناسب ګڼړم چې د خپل کتاب «سنن الصلاة في فقه الأحناف» نه هغه حواله د ښځې د قعدې د کیفیت لپاره رانقل کړم.کومه چې مې د ډیر تکل نه روسته بیا موندلې ده. «عن خالد بن اللجلاج قال كن النساء يؤمرن أن يتربعن إذا جلسن في الصلاة ولا يجلسن جلوس الرجل على أوراكهن يتقي ذلك على المرأة مخافة أن يكون منها الشيء»

(**فَإِنْ كَانَتْ امْرَأَةً**.اوکه هغه ښځه وی. **جَلَسَتْ عَلَى أَلْيَتِهَا الْيُسْرَى** نودا به په خپل چپه کوناټې باندې کښېنی **وَأَخْرَجَتْ رِجْلَيْهَا مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ**).او خپلې دواړه پښې به ښی اړخ ته راوباسی **لِأَنَّهُ أَسْتَرُ لَهَا**[1] ځکه چې دا صورت د ښځې لپاره زیات دپردې دی.

**حل اللغة** ① **اخرجت، اخراج اخراجاً**: راویستل ⑨ **جانب**: اړخ ⑩ **ایمن**: راسته

**تشریح:-** اود ښځې د کیناستو کیفیت دا دی.چې هغه به په خپل چپه کوناټې باندې کینی.او دواړه پښې به ښی اړخ ته راوباسی.ځکه چې دا طریقه د ښځې لپاره زیاته د پردې ده

### د ابن مسعود رضي الله عنه تشهد

(**وَالتَّشَهُّدُ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ إلى آخره**) وتشهد «التحيات لله والصلوات والطيبات السلام عليك أيهالنبی إلخ» **وَهَذَا تَشَهُّدُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** دا تشهد دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه دی. **فَإِنَّهُ قَالَ** " ځکه چې ابن مسعود رضي الله عنه فرمائی. {**أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ** رسول الله ﷺ زما لاس اونیولو **وَعَلَّمَنِي التَّشَهُّدَ** او ماته نې د تشهد داسې خودنه اوکړله. **كَمَا كَانَ يُعَلِّمُنِي سُورَةً مِنَ الْقُرْآنِ** لکه څنګه چې به نې راته د قرآن د یوسورت خودنه کوله **وَقَالَ**: **قُلْ** او وې فرمائیل.اووایه **التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ**} إلى آخره[2]. «التحيات لله تر آخره پورې

**حل اللغة** ① **علمنی، علم تعلیماً**: خودل ② **اخذ**: اخستل، نیول

**تشریح:- الاختلاف في التشهد** ﷺ ددې عبارت حاصل دا دی.چې قعده اولی کښې د اصح قول په بناء تشهد لوستل واجب دی.او د تشهد په الفاظو کې صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف کړی دی.د حضرت عمر رضي الله عنه تشهد دی. دحضرت علی رضي الله عنه تشهد دی.دابن عباس رضي الله عنهما تشهد دی.او د ابن مسعود رضي الله عنه تشهد دی.اود حضرت عائشه رضي الله عنها تشهد دی.او د حضرت جابر رضي الله عنه تشهد دی.او د وی نه علاوه د نورو صحابو رضي الله عنهم نه هم تشهد منقول دی.① د احنافوعالمانو رحمهم الله تشهد د ابن مسعود غوره کړی دی.② او امام شافعی رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما تشهد اختیار کړی دی.د ابن عباس رضي الله عنهما تشهددا دی. «التحيات المباركات الصلوات الطيبات لله سلام عليك أيها النبي ﷺ ورحمت الله و بركاته سلام علينا وعلى عباد الله الصالحين اشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا رسول الله»

---

[1]) كما يعلم من حديث ابن ابی شيبة فی الصلاة باب فی المراة كيف تجلس فی الصلاة رقم ۲۷۹۱ (۱/۲٤۲)_

[2]) قال الزيلعی اخرجه الائمة الستة و ا للفظ لمسلم (رواه البخاری فی الاذان باب ۱٤۸، ۱۵۰، والعمل فی ا لصلاة باب ٤،ومسلم فی الصلاة حديث ۵۶، ۶۰، ۶۲، وابوداود فی الصلاة باب ۱۷۸، والترمذی فی الصلاة باب ۱۰۰، والنسائی فی التطبيق باب ۲۳، وابن ماجه فی الاقامة باب ۲٤)_

﴿وَالْأَخْذُ بِهَذَا أَوْلَىٰ﴾ او دا تشهد اخستل غوره دي. ﴿وَالْأَخْذُ بِهَذَا أَوْلَىٰ مِنَ الْأَخْذِ بِتَشَهُّدِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا﴾ په نسبت سره د ابن عباس ﷺ تشهد ته ﴿وَهُوَ قَوْلُهُ "التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلَّهِ، سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، سَلَامٌ عَلَيْنَا" إِلَىٰ آخِرِهِ﴾ (۱) او هغه دا دي. ﴿التحيات المباركات الصلوات الطيبات لله سلام عليك أيها النبي ﷺ ورحمت الله و بركاته سلام علينا إلى آخره﴾ ﴿لِأَنَّ فِيهِ الْأَمْرَ﴾ ځکه چي دا تشهد په لوستلو کي د امر صيغه ده ﴿وَأَقَلُّهُ الِاسْتِحْبَابُ﴾ او د امر کمه درجه استحباب دي ﴿وَالْأَلِفُ وَاللَّامُ وَهُمَا لِلِاسْتِغْرَاقِ﴾ او الف او لام دواړه د استغراق لپاره دي ﴿وَزِيَادَةُ الْوَاوِ وَهِيَ لِتَجْدِيدِ الْكَلَامِ﴾ او واؤ زيادت اودا تجديد کلام لپاره وي ﴿كَمَا فِي الْقَسَمِ﴾ لکه څنګه چي په قسم کي وي ﴿وَتَأْكِيدِ التَّعْلِيمِ﴾ اود خودنې تاکيد دي.

تشريح:- وجوه ترجيح تشهد ابن مسعود ﷺ احنافو عالمانو ﷺ فرمائيلي دي.چي د ابن تشهد اختيارول هم د څو وجوهو له کبله افضل دي.① ابن مسعود ﷺ فرمائي.چي رسول الله ﷺ زما لاس اونيولو.او ماته نې تشهد تعليم راکړلو او وې فرمائيل. ﴿قل التحيات لله﴾ په دې حديث کښې د نبي ﷺ قول ﴿قـل﴾ د امر صيغه ده.او د امر کمتره درجه د استحباب ده.② السلام عليك په الف لام سره مفيد د استغراق دي③ والصلوات د واؤ سره مفيد دتجديد دي.④ دنبي ﷺ لاس نيول اود قرآن د سورت په څير تعليم ورکول مفيد د تاکيد دي.⑤ التحيات صلاة او غيرصلاة ټولو ته ګډ دي.خوکله چي دابن عباس ﷺ په تشهد کي ﴿الصلوات﴾ بغير د واؤ نه دي.نودا تخصيص شو.او اود ﴿التحيات﴾ نه مراد صرف ﴿صلوات﴾ شو.او چي ﴿والصلوات﴾ د واو سره وی.لکه چي د ابن مسعود ﷺ په نشهد کښې دي.نو اول يعني ﴿التحيات﴾ عام پاتې شو.اوچونکه په عامه کلمه سره ثناء وئيلو کي مبالغه وی.نوځکه دا اولی دي.

معنی کلمات التشهد وشان ورودها: د ،،التحيات،، معنی عبادات قوليه دي.د ،،الصلوات،، معنی عبادات بدنيه دی او د ،،الطيبات،، معنی عبادات ماليه دی.او ﴿السلام عليك﴾ دا دهغه سلام حکايت دي.کوم چي په شپه د معراج د نبی ﷺ په دربار کي خيزونو سره د ثناء کاوه په خواب کي فرمائيلی شوی وو. ﴿السلام﴾ د ﴿التحيات﴾ په مقابله کښې دي.او رحمت د صلوات په مقابله کي دي.او برکت د التحيات په مقابله کي دي.اود برکت معنی نما او زيادت راځي.په شپه د معراج کي د الله تعالی په دربار کښې دحاضرئ په وخت کي نبی ﷺ فرمائيلی وو. ﴿التحيات لله والصلوات والطيبات﴾ رب العالمين په خواب کي اوفرمائيل. ﴿السلام عليك أيها النبي ورحمة الله وبركاته﴾ بيا نبی ﷺ اوفرمائيل ﴿السلام علينا وعلى عبادالله الصالحين﴾ چي فرشتو دا واوريدل.نو وې فرمائيل. ﴿اشهد ان لا إله إلا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله﴾

## په لومړئ قعده کي په قدر د تشهد باندي د زيادت ممانعت

﴿وَلَا يَزِيدُ﴾ او زيادت به نه کوی ﴿عَلَىٰ هَذَا﴾ په دې تشهد باندي ﴿فِي الْقَعْدَةِ الْأُولَىٰ﴾ په لومړئ قعده کي

حل اللغة: ①لايزيد، زاد زيادة (ض): زياتول

تشريح:- العدم الزيادة على قدر التشهد في القعدة الاولى ﷺ فرمائي.په لومړئ قعده کي به په مقدار دتشهد باندي اضافه نه کوی.

﴿لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ﴾ ځکه چي ابن مسعود ﷺ فرمائيلي دی ﴿عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ فِي وَسَطِ الصَّلَاةِ﴾ چي نبی ﷺ ماته تشهد خودلې وو دلمونځ په مينځ کي ﴿وَآخِرِهَا﴾ ،اود لمونځ په آخر کي ، ﴿فَإِذَا كَانَ وَسَطُ الصَّلَاةِ﴾

(۱) اخرجه الجماعة الا البخاری (مسلم فی الصلاة باب حديث ۶۰، وابوداود فی الصلاة باب ۱۷۸، والترمذی فی الصلاة باب ۱۰۰، والنسائی فی التطبيق باب ۱۰۳، وابن ماجه فی الاقامة باب ۲۴، واحمد فی المسند (۲۹۲/۱)_



چي کله به د لمونځ په مينځ کښې وو ﴿نَهَضَ إِذَا فَرَغَ مِنَ التَّشَهُّدِ﴾ نوچي ځنګه به د تشهد نه فارغ شو. دستی به ودريدلو ﴿وَإِذَا كَانَ آخِرَ الصَّلَاةِ﴾ اوچي کله به د لمونځ په آخر کښې وو ﴿دَعَا لِنَفْسِهِ بِمَا شَاءَ﴾ (۱) نو دخپل خان لپاره چي به نبي ﷺ څه دعا خوښه وه کوله.

حل اللغة: ①وسط جمع اوساط: مينځ ②نهض،نهوضاً(ف): اوچتول ③فرغ، فراغة (ف): اوزګاريدل ④دعاء، دعاء (ن): رابلل، دعا غوښتل

تشريح:- دليله: دليل د ابن مسعود ﷺ قول دي.چي ﴿علمنى النبى ﷺ التشهد في وسط الصلاة وآخرها فإذا كان في وسط الصلاة نهض إذا فرغ من التشهد وإذا كان آخر الصلاة دعا لنفسه ما شاء﴾

## د آخري دوو رکعتونو د کولو طريقه

﴿وَيَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَحْدَهَا﴾ او په آخري دوو رکعتونو کي دې صرف فاتحة الکتاب ووايي

حل اللغة: ①يقرأ، قراء قراءة (ف): لوستل

تشريح:- قراءة الفاتحة فقط في الركعتين الاخرين ﷺ مسله دا ده.چي د ماسپخين، مازيګر او ماښوتن په دوو آخري رکعتونو کي او د ماښام په آخري يو رکعت کي به صرف سورة فاتحه وائي.

﴿لِحَدِيثِ أَبِي قَتَادَةَ﴾ ځکه چي د ابوقتاده ﷺ حديث دي ﴿أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ﴾ (۲) چي نبي ﷺ په آخري دوو رکتونو کښې فاتحه اولوستله

تشريح:- دليله: دليل د ابوقتاده ﷺ حديث دي. ﴿أنه ﷺ كان يقرأ في الركعتين الأولين من الظهر والعصر بفاتحة الكتاب و سورتين وفي الأخرين بفاتحة الكتاب﴾ (صحيحين) يعني نبي ﷺ به د ماپښين ، او ماز يګر په اولنو دوو رکعتونو کي سورة فاتحه او دوي (دوه) سورتونه لوستل.او په آخري دوو رکعتونو کي به ني سورة فاتحه لوستله.

﴿وَهَذَا بَيَانُ الْأَفْضَلِ﴾ اودا د افضليت بيان دي ﴿هُوَ الصَّحِيحُ﴾ ،هم دا صحيح ده.

تشريح:- الروايتان في حكم الفاتحة في الاخرين ﷺ ① علامه مرغيناني ﷺ فرمائي.چي دا د افضل بيان دي.يعنى په آخري دوو رکعتونو کښې سورة فاتحه وئيل افضل او مستحب دی.که په آخري دوو رکعتونو کي فاتحه او تسبيح دواړه ترک کړي.نو څه حرج نشته.اوپه ده باندي سجده سهوه هم واجب نه ده.خو قرات افضل دي.هم دا صحيح روايت دي.② حسن بن زياد ﷺ د امام اعظم ﷺ نه يو روايت دا هم نقل کړي دي.چي په آخري دوو رکعتونو کي د سورة فاتحه لوستل واجب دی.نوکه په هيره باندي پرينبولې (پريخودې) شي.سجده سهوه به لازميږي.

﴿لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ فَرْضٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ﴾ ځکه چي قرات کول خو په دوو رکعتونو کي فرض دي ﴿عَلَىٰ مَا نُبَيِّنُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَىٰ﴾ لکه چي تاته به روستو دې بيان راشي.انشاء الله

حل اللغة: ①ياتيک، اتى اتياناً (ض): راتګ

تشريح:- دليل دا دي.چي په آخري رکعتونو کښې قيام مقصود دي.نودا د ذکراو قرات دارو نه خالی کول مکروه دی.لکه څنګه چي رکوع او سجده د ذکر نه خالی کول مکروه دی.اود صحيح قول دليل دا دي.چي قرات صرف په اولنی دوو رکعتونو کي فرض دي.ان شاء الله ددې تفصيل به روستو راشي.

(۱) رواه احمد فى مسنده (۴۵۹/۱)_

(۲) رواه البخاری فی الاذان باب ۹۶، رقم الحديث ۷۵۹، ۷۶۲، ۷۷۶، ۷۷۸، ۷۷۹، و مسلم فی الصلاة رقم الحديث ۱۵۴، وابوداود فی الصلاة باب ۱۲۵، والنسائى فى الافتتاح باب ۶۰)

## آخرئ قعده د لومړئ په شان ده

(وَجَلَسَ فِي الْأَخِيرَةِ او په آخری قعده کښې به داسې کښېنی كَمَا جَلَسَ فِي الْأُولَى) څنګه چې په لومړئ قعده کې ناست وو.

**حل اللغة:** ① **جلس جلوساً(ض):** کښېنستل

**تشريح:- عدم التورک في القعود** ۞فرمائي. چې په آخری قعده کې به هم په هغه کيفيت باندې کينی.په کوم کيفيت چې په لومړئ قعده کښې ناست وو.

لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث وجې کوم چې موږ روايت کړې دې. مِنْ حَدِيثِ وَائِلٍ وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، يعنى حديث د وائل بن حجر او د عائشے رضي الله عنها وَلِأَنَّهَا أَشَقُّ عَلَى الْبَدَنِ، اوددے وجې چې دا هئيت په بدن باندې سخت وی

**حل اللغة:** ① **اشق:** ډیرمشقت کونکې

**تشريح:- الدليلان للاحناف** رحمهم الله ۞ ① او زموږ دليل هغه حديث دې.کوم چې موږ د وائل بن حجر اوحضرت عائشے رضي الله عنها نه نقل کړې دې.نو ددے ناستے د څينې حالاتو بيان خو د وائل ﷺ په حديث کې وو.او کيفيت يعنى ګسه پښه خورول او ښئ پښه اودرول د عائشے رضي الله عنها په حديث کښے تير شوی دی. ② او دوهم دليل دا دې.چې په دے کيفيت باندې ناسته په بدن باندې ګرانه وی .او په عبادت کښے چې په نفس باندې کوم کيفيت سخت وی.هغه افضل وی.نوځکه موږ وايو.چې په دے طريقه ناسته غوره ده.

فَكَانَ أَوْلَى نودا هئيت به غوره وی. مِنَ التَّوَرُّكِ الَّذِي يَمِيلُ إِلَيْهِ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ په نسبت د هغه تورک.د کوم اړخ ته چې امام مالک رحمه الله ميلان کوی

**حل اللغة:** ① **تورک:** په کوناواره باندې اډه لګول ② **يميل، مال ميلاً (ض):** مائل کيدل

**تشريح:-** علامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې عدم تورک افضل دې د تورک نه اوامام مالک رحمه الله فرمائی.چې په دواړو قعدو کې په تورک سره ناسته مسنون ده.او تورک دا دې.چې په کوناتو باندې کينی.او دواړه پښے ښی اړخ ته راوباسی.لکه څنګه چې ښځے کينی.

**دليله** ۞حضرت امام مالک رحمه الله په دے حديث باندې استدلال کوی. «أن النبي ﷺ قعد متوركا»

وَالَّذِي يَرْوِيهِ اوهغه حديث کوم چې په تورک کې روايت کولې شی {أَنَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَعَدَ مُتَوَرِّكًا}[1]چې نبی ﷺ په تورک سره ناست وو. ضَعَّفَهُ الطَّحَاوِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ، امام رحمه الله ضعيف ګرځولې دې.

**تشريح:- الجواب الاول عن دليل مالک** رحمه الله ۞پاته شوهغه حديث په کوم کې چې د نبی ﷺ په تورک سره ناسته نقل ده.نوهغه امام طحاوی رحمه الله ضعيف ګرځولے دې.ځکه چې دا حديث د عبدالحميد بن جعفر په سند سره نقل شوې دې.او عبدالحميد بن جعفر د ناقلين حديث په نيز ضعيف دې.

أَوْ يُحْمَلُ عَلَى حَالَةِ الْكِبَرِ او يابه هغه محمول کولےشی. په حالت د بوډاتوب باندې.

**تشريح:- الجواب الثانی عن دليل مالک** رحمه الله ۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.که دا حديث صحيح تسليم کړې شی.نو ځواب به دا وی.چې دا د تورک ناسته د بوډاتوب په حالت باندې حمل ده.يعنى کله چې د نبی ﷺ عمرزيات شو.نو نبی دا طريقه اختيار کړله.

### د تشهد حکم

[1]) رواه البخاری فی الاذان باب ۱۴۵، وابوداود فی الصلاة باب ۱۷۷، والترمذی فی الصلاة باب ۱۱۰، والنسائی فی السهو باب ۲۹، وابن ماجه فی الاقامة باب ۷۲، والدارمی فی الصلاة باب ۹۲، واحمد فی المسند (۴۲۴/۵)_



(وَيَتَشَهَّدُ و تشهد دے وائی. وَهُوَ وَاجِبٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز واجب دې وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) و په نبی ﷺ دے درود وائی وَهُوَ لَيْسَ بِفَرِيضَةٍ عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز فرض نه دې.

**حل اللغة:** ① **يتشهد، تشهد تشهداً:** ګواهی غوښتل

**تشريح:- الاختلاف في حكم التشهد والصلاة على النبي** ﷺ ۞ ① په آخری قعده کې تشهد وئيل زموږ په نيز واجب دې.اودرود شريف وئيل فرض نه دی.بلکه مسنون دې.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِيهِمَا او امام شافعی رحمه الله په دے دواړو کې اختلاف کړې دې لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" ځکه چې نبی ﷺ فرمائلی دی. {إِذَا قُلْتَ هٰذَا.کله چې ته دا اووائې أَوْ فَعَلْتَ يا دا اوکړې فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ،نوستا لمونځ پوره شو. إِنْ شِئْتَ أَنْ تَقُومَ فَقُمْ، که ته ودريدل غواړې.نو اودريږه وَإِنْ شِئْتَ أَنْ تَقْعُدَ فَاقْعُدْ} او که کښېنستل غواړے نو کينه

**حل اللغة:** ① **ان تقوم، قام قياماً (ن):** ودريدل ② **ان تقعد، قعد قعوداً (ن):** کښېنستل

**تشريح:-** دامام شافعی رحمه الله په نيز د تشهد وئيل او په نبی ﷺ باندې درود ليګل دواړه فرض دی.

**دليله** ۞د قرآت تشهد په فرضيت باندې امام شافعی رحمه الله د ابن مسعود ﷺ په حديث باندې استدلال کوی. «انه قال كنا نقول قبل أن يفترض التشهد السلام على الله السلام على جبريل وميكائيل فقال النبي ﷺ قولوا التحيات لله إلخ» بيا په آخر کې فرمائی. «إذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك»

**وجه الاستدلال** ۞ددے حديث نه په درے طريقو سره استدلال شوې دې. اول دا چې ابن مسعود ﷺ فرمائی. «قبل ان يفترض التشهد» يعنى په تشهد باندې د فرض اطلاق شوې دې.نو ددے نه ثابته شوه.چې تشهد فرض دې.

**الجواب عنه** ۞زموږ د اړخه ځواب دا دې.چې «قبل أن يفترض التشهد» کې د فرض نه لغوی معنی مراد ده.يعنى تقديرالله تعالى فرمائيلے وو. (فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ) سورة البقرة ۲۳۷)

يعنى «قدرتم» اوس مطلب دا شو.چې د تشهد مقدر کيدو نه وړاندې به موږ دا وئيل «والسلام على الله إلخ» نو اوس په تشهد باندې د فرض اطلاق راتګ لازم نشو.

د آيت نه په دريمه طريقه استدلال داسې کيداې شی چې نبی ﷺ اوفرمائيل. «قولوا التحيات لله» او قولوا د امر صيغه ده.او امر د جوب لپاره وی.نو معلومه شوه.چې «التحيات» وئيل واجب دی.اود امام شافعی رحمه الله په نيز واجب او فرض دواړه يو دی.نوځکه چې کله «التحيات» وئيل واجب شو.نو فرض به هم وی.

**الجواب عنه** ۞ددې ځواب دا دې.چې دلته د امر صيغه د تعليم او تلقين لپاره ده.نود دے نه فرضيت ثابت نشو.

د آيت نه په دريمه طريقه استدلال داسې کيداې شی چې نبی ﷺ د لمونځ پوره کيدل په دے پورې معلق کړی دی. ددے نه معلومه شوه.چې د تشهد نه بغير لمونځ پوره نه دې.او چې د څه نه بغير لمونځ نه پوره کيږی.هغه فرض وی.نو معلومه شوه.چې د تشهد لوستل فرض دی.

**الجواب عنه** ۞د دې نه ځواب دا دې.چې په حدث کې دلمونځ پوره کيدل د قرآت تشهد او آخری قعده دواړو پورې معلق شوې دې.او په دے باندې د ټولو اتفاق دی.چې د لمونځ پوره کيدل په آخری قعده پورې معلق دې.ځکه که آخری قعده پريښولې (پريخودې) شی.نو لمونځ نه کيږی.نو هرکله چې د لمونځ پوره کيدل په آخيره قعده پورې معلق شو.نو دتشهد په لوستلو پورې معلق نشو.چې اختيار پاته شی.(ځکه چې نبی ﷺ د قعود او قراءت تشهد اختيار ورکړې دې.چې په دےکې د يو ادا کول د لمونځ پوره کيدل دی.نوکه موږ تشهد هم فرض کړو . نو اختيار ختم شو.

"وَالصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خَارِجَ الصَّلَاةِ وَاجِبَةٌ، او په نبي ﷺ باندې درود ليګل د لمانځه نه بهر واجب دي إِمَّا مَرَّةً وَاحِدَةً كَمَا قَالَهُ الْكَرْخِيُّ، يا خو يو ځل لکه چې امام کرخي رحمه الله ونيلي دي. أَوْ كُلَّمَا ذُكِرَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا هر ځل واجب دي. چې د نبي ﷺ ذکر اوشي كَمَا اخْتَارَهُ الطَّحَاوِيُّ لکه څنګه چې امام طحاوي رحمه الله دا اختيار کړی دی فَكُفِينَا مُؤْنَةَ الْأَمْرِ، نود امر لوني بوج زمونږ نه کفايت شوې دې وَالْفَرْضُ الْمَرْوِيُّ فِي التَّشَهُّدِ او فرض کوم چې د تشهد په حق کښې مروی دې. هُوَ التَّقْدِيرُ هغه د تقدير په معنی کې دې.

**حل اللغة:** ① **مونة:** مشقت

**تشريح:- الدليل الاول على فرضية الصلاة** ◉ امام وړاندې مونږ ذکر کړلو چې د درود په حکم کې د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې د هغوی په نيز په لمانځه کې درود لوستل فرض دې نو هغوی د درود په فرضيت باندې دالله تعالى قول (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا) الأحزاب:۵۶) باندې استدلال کړې دې. په دے طريقه چه «صَلُّوا» د امر صيغه ده. او د امر موجب وجوب وی. او خارج د لمانځه نه درود ونيل واجب نه دی. نو ثابته شوه. چې په لمانځه کې دننه درود ونيل واجب دی.

**الجواب عنه** ◉ او د امام شافعي رحمه الله دا ونيل چې د لمانځه نه بهر درود ونيل واجب نه دی. مونږ دا خبره نه منو. ځکه چې امام کرخي رحمه الله ذکر کړی دی. چې په ژوند کې يو ځل په نبي ﷺ باندې د لمانځه نه بهر درود ليګل واجب دی. ځکه چې «صَلُّوا» د امر صيغه ده. او امر د تکرار تقاضا نه کوی. اوامام طحاوي رحمه الله فرمائي. چې کله هم د نبي ﷺ ذکر اوشي. نو درود ليګل واجب دی. خو بار بار درود ونيل ځکه واجب نه دی. چې امر د تکرار تقاضا نه کوی. بلکه ددے وجې چې د درود وجوب په سبب متکرر سره متعلق دې. او هغه سبب متکرر ظني دې. نو نو په تکرار د ذکر سره درود مکرر شو. لکه څنګه چې د وختونو په تکرار سره لمونځ مکرر واجب کيږی. بهر حال هرکله چې د لمانځه نه بهر درود ونيل واجب شو. نو په «صَلُّوا عَلَيْهِ» په صيغه باندې عمل اوشو. او په لمانځه دننه د درود وجوب ثابتولو څه اړتيا پاتې نشو.

**الدليل الثاني على فرضية الصلاة** ◉ دوهم دليل دا دې. چې نبي ﷺ فرمائي. «لا صلاة لمن لم يصل علي في صلاته» يعنې کوم کس چې په لمانځه کښې په ما باندې درود اونه ونيل نو دهغه لمونځ نه کيږی. او ښکاره ده. چې د لمونځ عدم صحت د فرضو د ترك په وجه سره راځي. د سنتو په ترك سره نه. نو ثابته شوه. چې درود شريف ونيل فرض دی.

**الجواب عنه** ◉ د امام شافعي رحمه الله پيش کړی حديث «لا صلاة لمن لم يصل الخ» ځواب دا دې. چې حديث په نفی د کمال باندې محمول دې. يعنې بغير د درود نه لمونځ کامل نه دې. لکه څنګه چې «لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد» په نفی د کمال باندې محمول دے. او په دے باندې قرينه دا ده. چې نبي ﷺ صحرائي ته د لمونځ د فرائضو تعليم ورکولو. نو په هغه وخت کې نبي ﷺ د «صلاة على النبي» ذکر نه دے کړې. که «صلاة على النبي» فرض وو. نو نبي ﷺ به ضرور ذکر کړې وو.

**كلمات الصلاة** ◉ پاته شوه دا خبره چې نبي ﷺ به په کومه طريقه باندې درود ونيل. ① نو په دے اړه کې عيسى بن ابان رحمه الله په «كتاب الحج على أهل المدينة» کې ذکر کړی دی. چې دامام نه د «صلاة النبي» په اړه کې پوښتنه اوشوه. نو وے فرمائيل. چې دا دے وائي. «اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد» صاحب دکفايه ليکلی دی. چې دا درود د کعب بن عجره رضي الله عنه د حديث موافق دې. ② حضرت علي، ابن عباس او جابر رضي الله عنهم نبي ته عرض اوکړلو. چې مونږ خو په تاسو باندې د سلام اچولو طريقه پيژنو. خو درود به څنګه وايو. نو نبي ﷺ اوفرمائيل. داسې وائې. «اللهم صل على محمد وعلى آل محمد وبارك على محمد وعلى آل محمد وارحم على محمد وعلى آل محمد كما صليت وباركت وترحمت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم في العالمين



إنك حميد مجيد»

د صلاة على النبي د فرضيت او عدم فرضيت په اړه کې اختلاف تير شو. خو يو حديث په کې هم داسې ذکر شو. چې په هغې کې په لمانځه کې د درود ونيلو ذکر وی. امام شافعي رحمه الله خو دآيت په عموم باندې استدلال کوی. نو مناسب ګنړم. چې دخپل کتاب «سنن الصلاة» نه د درود في الصلاة د مسنونيت لپاره حديث نقل کړم. «عَنْ أَبِي هَانِئٍ أَنَّ أَبَا عَلِيٍّ الْجَنْبِيَّ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ يَقُولُ سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَدْعُو فِي صَلَاتِهِ لَمْ يُمَجِّدِ اللَّهَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي ثُمَّ عَلَّمَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي فَمَجَّدَ اللَّهَ وَحَمِدَهُ وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُ تُجَبْ وَسَلْ تُعْطَ» [1]

## د ماثوره دعاګانو ونيلو حکم

قَالَ مصنف فرمائي. (وَدَعَا بِمَا شَاءَ مِمَّا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْآنِ) چې دعا دے کوی. په داسې الفاظو سره چې د قرآن د الفاظو

**حل اللغة:** ① **دعا، دعاء** (ن): رابلل، دعا غوښتل ② **يشبه، شبه شبها** (س): په شان کيدل

**تشريح:- الادعية الماثورة بعد الصلاة على النبي ﷺ** ◉ مسئله په آخري قعده کښې د صلاة على النبي ﷺ نه روسته په عربي ژبه کښې دے دا دعا اوکړی. ځکه چې په لمانځه کې سوا د عربي ژبې نه بله ژبه کې دعا کول مکروه تحريمي دی. بيا دے دا خبره ښکاره وی. چې دعا دے کوی د قرآن پاك د الفاظو سره مشابه مثلاً (رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ) النوح:۲۸) او (رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ) الحشر:۱۰) ((قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا وَإِنْ لَمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ)) الأعراف:۲۳) (رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَانِ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدْتَنَا عَلَى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ) يا چې د هغه دعاګانو سره مشابه وی. کومے چې د نبي ﷺ نه منقول وی

(وَالْأَدْعِيَةِ الْمَأْثُورَةِ) او ماثوره دعاګانو سره مشابه وی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث د وجې کوم چې مونږ روايت کړو مِنْ حَدِيثِ {ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ} يعنې حديث دابن مسعود رضي الله عنه چې نبي ﷺ فرمائيلي دی {ثُمَّ اخْتَرْ مِنَ الدُّعَاءِ أَطْيَبَهُ وَأَعْجَبَهُ إِلَيْكَ} "بيا غوره کړه. کومه دعا چې تاته زياته پاکه او خوښه وی

**حل اللغة:** ① **ادعيه واحد دعاء:** دعاګانې ② **ماثوره:** مسنون ③ **اختر، اختار اختيارا:** خوښول

**تشريح: الادعية الماثورة** ◉ مثلاً دحضرت ابوبکر رضي الله عنه نه روايت دې. «أنه قال لرسول الله ﷺ علمني يا رسول الله دعاء أدعو به في صلاتي قال قل اللهم إني ظلمت نفسي ظلماً كثيراً فإنه لا يغفر الذنوب إلا أنت فاغفرلي مغفرة من عندك إنك أنت الغفور الرحيم» حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به په دے الفاظو سره دعا کوله. «اللهم إني أسئلك من الخير كلها ما علمت منه وما لم أعلم وأعوذبك من الشر كله ما علمت منه وما لم أعلم» دليل د ابن مسعود رضي الله عنه دا حديث دې. يعنې ابن مسعود رضي الله عنه ته نبي ﷺ اوفرمائيل. «إذا كان آخر الصلاة دعا لنفسه بما شاء» بيا ددے حديث په آخر کښې دی. چې نبي ﷺ اوفرمائيل. «ثم إختر من الدعاء أعجبه وأطيبه إليك» په «أعجبه او أطيبه» کې ضمير مذکر د سنن روايت مطابق دې. خو د هدايه په ځينې نسخو کې «أعجبها وأطيبها» دې. خو هغه صحيح نه دې. او که ضمير مونث سره صحيح اوګرځولے شي. نو په «دعوات يا كلمات» سره به تاويل کولې شي.

---

[1] اخرجه النسائی فی السهوباب التمجيد والصلاة على النبی ﷺ رقم ۱۲۶۷ صححه الالبانی

وَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ عَلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او په نبي ﷺ باندې به درود ونيلو سره پيل كوى لِيَكُونَ أَقْرَبَ إِلَى الْإِجَابَةِ چې قبوليت ته نږدې وى.

حل اللغة: ① يبدأ، بدأ بدءً (ف): پيل كول

تشريح: تقديم الصلاة على الدعاء ◉ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چې اول دې په نبي ﷺ باندې درود ووايي بيا دې دعا اوكړى. چې قبوليت ته نږدې شي.

دليله ◉ دليل دا دې. چې د نبي ﷺ په حق كي دعا ضرور قبليږي. او د كريم رب د شان نه دا خبره بعيده ده. چې ځينې دعا قبوله كړى. او ځينې نه قبلوى. نو الله به ټوله دعا قبلوى.

## دخلقو د خبرو سره د مشابه دعا ممانعت

(وَلَا يَدْعُو) او په داسې الفاظو سره دې دعا نه كوى (بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ) كوم چې د خلگو د خبرو سره مشابه وى تَحَرُّزًا عَنِ الْفَسَادِ، د لمونځ د فساد نه د بچ كيدو لپاره وَلِهٰذَا يَأْتِي بِالْمَأْثُورِ، او د دې وجې به راتګ كوى په ماثوره دعاګانو الْمَحْفُوظِ، كومې چې محفوظ دى

حل اللغة: ① لايدعو، دعا دعاءً (ن): رابلل، دعا كول ② تحرز: بچ كيدل، پرهيزكول ③ ماثور: مسنون

تشريح:- لايدعو بما يشبه كلام الناس ◉ مسئله دا ده. چې په نبي ﷺ باندې د درود نه روسته به په داسې الفاظو سره دعا نه كوى. كوم چې د خلگو د خبرو سره مشابه وى. دد دې لپاره چې د لمونځ هغه جزء كوم چې د خلگو د خبرو سره متصل وى. د فساد نه محفوظ شي. هم دد دې وجې وئيلې شوى دى. چې لمونځ ګذار ته پكار دى. چې ماثوره دعاګانې كوى.

صورة عدم فساد الصلاة بالدعاء بما يشبه كلام الناس ◉ دا خبره دې ښكاره وى. كه كه د تشهد نه روسته په داسې الفاظو سره دعا اوكړى. چې هغه د خلگو د الفاظو سره مشابه وى. نو په دې سره واړه لمونځ نه فاسديږى. ځكه چې د تشهد نه روسته كه په حقيقت كښې كلام الناس موجود شي. نو لمونځ نه فاسديږى. نو كه د كلام الناس سره مشابه كلام وى. نو خامخا به لمونځ نه فاسديږى. دا حكم خو د صاحبينو رحمهما الله په نيز ښكاره دې. او دغه ډول د امام صاحب رحمه الله په نيز هم فاسد نه دې. ځكه چې كلام الناس د لمونځ ګذار د اړخه خروج بصنعه دې. نو په دې سره به دده لمونځ پوره شي. او هغه دعا كومه چې د تشهد نه روسته د كلام الناس سره مشابه الفاظو سره شوې وى. هغه به د لمانځه نه بهر وى دننه به نه وى. (عنايه)

وَمَا لَا يَسْتَحِيلُ سُؤَالُهُ مِنَ الْعِبَادِ او د كومو څيزونو غوښتل چې د خلگو نه محال نه وى كَقَوْلِهِ اللّٰهُمَّ زَوِّجْنِي فُلَانَةً لكه دده قول چې «اللـهم زوجـنى فلانـة» يُشْبِهُ كَلَامَهُمْ ځكه چې دا د خلگو دخبرو سره مشابه دې وَمَا يَسْتَحِيلُ. او دكوم شي غوښتل چې محال وى كَقَوْلِهِ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي لكه دده قول چې «اللهم اغفرلى» لَيْسَ مِنْ كَلَامِهِمْ، نو دا د خلگو د خبرو څخه نه دې. وَقَوْلُهُ اللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي او د لمونځ ګذار قول چې «اللهم ارزقنى» مِنْ قَبِيلِ الْأَوَّلِ د اول ډول څخه دې. هُوَ الصَّحِيحُ لِاسْتِعْمَالِهَا فِيمَا بَيْنَ الْعِبَادِ، هم دا صحيح ده ځكه چې دا كلام د خلگو په خبرو كي عام مستعمل دې. يُقَالُ رَزَقَ الْأَمِيرُ الْجَيْشَ وئيلى شي امير لښكر ته روزى وركړه.

حل اللغة: ① يستحيل، استحال استحالة: محال كيدل ② امير: مشر ③ جيش: لښكر

تشريح:- ما يشبه كلام الناس؟ ◉ اوس پاتې شوه دا خبره چې كومه دعا د كلام الناس سره مشابهت لرى. او كومه دعا د كلام الناس سره مشابهت نه لرى. نو دې اړه كي فرمائي. چې د كومو څيزونو چې د بندګانو نه غوښتل محال نه وى. لكه «اللهم زوجنى فلانة» نو دا د كلام الناس سره مشابه دې. او د كوم چې د خلگو نه غوښتل محال وى. لكه «اللهم اغفرلى» نو دا د كلام الناس سره مشابه نه دې. او كه مونځګذار اووائى «اللهم ارزقـنى» اې الله ماته رزق راكړه. نو دا د اول ډول څخه دې. يعنى د كلام الناس سره مشابه ده. هم دا



صحيح ده. دليل دا دې. چې دا كلام په خلگو كښې په عامه توګه مستعمل دې. وئيلى شي. «رزق الأمير الجيش» مالدار لښكر ته رزق وركړلو.

## ښي اوكس طرف ته سلام ګرځول

(ثُمَّ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ) بيا دې خپل ښي اړخ ته سلام اوګرځوى فَيَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ. بيا دې اووائى. «السلام عليكم ورحمة الله» (وَعَنْ يَسَارِهِ مِثْلَ ذٰلِكَ) او خپل چپه اړخ ته دد دې په څير

حل اللغة: ① يسلم، سلم تسليماً: سلام ګرځول ② يمين: راسته اړخ ③ يسار: چپه اړخ

تشريح:- سنية السلامين للخروج من الصلاة ◉ دد دې عبارت حاصل دا ې. چې د تشهد او نبي ﷺ باندې د درود او دعا وئيلو نه روسته به دواړو طرفونو ته سلام ګرځوى. اول ښى اړخ ته او بيا چپه اړخ ته او د سلام الفاظ دا دى. «السلام عليكم ورحـمـة الله» يعنى په تاسو دې سلام وى. او دالله رحمت، د جمهورو عالمانو رحمهم الله او لوئې صحابه كرامو حضرت عمر، او حضرت على، او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هم دا مذهب دې.

لِمَا رَوَى ابْنُ مَسْعُودٍ" ځكه چې ابن مسعود رضي الله عنه روايت كړې دې. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ چې نبي ﷺ خپل ښى اړخ ته سلام اوګرځولو حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْمَنِ. تردې چې د دوى د ښى انګى سپين والې اوليدې شو وَعَنْ يَسَارِهِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ} (1) او چپه اړخ ته تردې چې د دوى د ښى انګى سپين والې اوليدې شو

حل اللغة: ① بياض: سپين ② خد: انګې ③ ايسر: چپه

تشريح:- دليله ◉ دليل دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې. «أن النبى ﷺ كان يسلم عن يمينه حتى يـرى بيـاض خده الأيمن وعن يساره حتى يرى بياض خده الأيسر»

"(وَيَنْوِي بِالتَّسْلِيمَةِ الْأُولَى) او د اولنى سلام نه دې د هغه چا نيت اوكړى (مَنْ عَنْ يَمِينِهِ) څوك چې د ده ښى اړخ ته وى. (مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْحَفَظَةِ) كه سړى وى او كه ښځې. او ساتنه كونكې فرشتې (وَكَذٰلِكَ فِي الثَّانِيَةِ) او هم دغه ډول په دوهم سلام كي

حل اللغة: ① حفظة: ملائكه

تشريح:- ماينويه عندالسلامين ؟ ◉ مصنف رحمه الله فرمائي. چې د اولنى سلام ګرځولو په وخت كي به دهغه خلگو نيت كوى، كوم چې دده ښى اړخ تـه وى. كـه سړى وى اوكـه ښځې وى. او د ساتنه كونكو فرشتو نيت دې كوى. او دغه ډول چپه اړخ ته د سلام ګرځولو په وخت كي دې دهغوى نيت كوى. څوك چې دده چپه اړخ ته وى.

لِأَنَّ الْأَعْمَالَ بِالنِّيَّاتِ، ځكه چې د اعمالو دارومدار په نيتونو باند دې

تشريح:- دليله ◉ دليل دا دې. چې دد دې اعمالو دارومدار په نيت دې. لكه څنګه چې په حديث كي دى.

وَلَا يَنْوِي النِّسَاءَ فِي زَمَانِنَا او زموږ په زمانه كښې به (امام) د ښځو نيت نه كوى

تشريح:- نية النساء في العهد الحاضر ◉ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. زموږ په زمانه كي به د ښځو نيت نه كوى. ځكه چې په دې زمانه كښې د ښځو د جماعت لمانځه ته حاضريدل په اجماع د متاخرينو سره متروك

(1) اخرجه النسائى فى التطبيق باب ٨٣، والسهو باب ٦٨، ٧٠، ٧١، من المجتبى وفى السنن الكبرى (٣٩٤/١) ورواه ابوداود فى الصلاة باب ١٨٤، رقم الحديث ٩٩٦، وابن ماجه فى الاقامة باب ٢٨، والدارمى فى الصلاة باب ٨٧، واحمد فى المسند (١٧٢/١، ١٨١، ٣٨٦، ٣٩٠، ٣٩٤، ٤٠٦، ٤٠٨، ٤٠٩، ٤١٤، ٤٢٧، ٤٤٤، ٤٤٨، ٤٦٥) والترمذى فى الصلاة باب ١٠٥، رقم الحديث ٢٩٥، والبيهقى فى السنن الكبرى (٢٥١/٢) رقم الحديث ٢٩٧٤)_

دی.

(وَلَامَنْ لَاشَرِكَةَ لَهُ فِي صَلَاتِهِ،او نه به د داسي كس نيت كوی.څوك چې دده په لمانځه كي شريك نه وی. هم دا قول صحيح دي لِأَنَّ الْخِطَابَ حَظُّ الْحَاضِرِينَ.ځكه چې خطاب د حاضرينو برخه ده. هُوَالصَّحِيحُ

**تشريح:- الروايتان في نية غير المشاركين في الجماعة** ۞ ①او كوم مسلمانان چي په لمانځه كښې شريك نه وی.د هغوی نيت به هم نه كوی.هم دا صحيح قول دي.② او حاكم شهيد رحمه الله وئيلی دی.چې د ښځو نيت دې كوی.كه په لمانځه كي شريك وی اوكه نه وی.چې د تشهدسلام يعنی «السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين» سره موافق شی.

د قول صحيح دليل دا دي.چې سلام تحيه دخطاب ده.او خطاب د حاضرينو برخه ده.نوچې كوم خلگ په لمانځه كښې شريك نه وی.هغوی به په سلام كښې ګډ نه وی.

## د مقتدی لپاره په سلام كي د امام نيت كول

(وَلَابُدَّ لِلْمُقْتَدِي مِنْ نِيَّةِ إِمَامِهِ،ود مقتدی لپاره د امام نيت كول هم ضروری دی فَإِنْ كَانَ الْإِمَامُ مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ أَوِالْأَيْسَرِ ځكه ښی اړخ ته وی يا چپه اړخ ته نَوَاهُ فِيهِمْ) نوپه دے كي به دده نيت كوی

**حل اللغة*** ①لابد: ضروری، چې د هغې نه بله لارنه وی ②نواة، نوی نية (ض): نيت كول اراده كول

**تشريح:- ينوی الامام في اليمين والشمال** ۞مسئله داده.،چې د سلام ګرځولو په وخت كي د مقتدی لپاره ضروری دی.چې دے د خپل امام نيت اوكړی.امام كه ښی اړخ ته وی.نو ښی اړخ ته په سلام ګرځولو كي به نې نيت كوی.اوكه چپه اړخ ته وی.نو ددے اړخ په سلام كي به نې نيت كوی.

وَإِنْ كَانَ بِحِذَائِهِ اوكه امام مقتدی ته مخكې وی نَوَاهُ فِي الْأُولَى عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ.نو دابويوسف رحمه الله په نيز به مقتدی په اولنی سلام كي د امام نيت كوی تَرْجِيحًا لِلْجَانِبِ الْأَيْمَنِ،.ښی اړخ ته د ترجيح وركاوه دوج

**حل اللغة*** ①حذاء: مقابل

**تشريح:- الاختلاف في نية المحاذی للامام** ۞ ①او كه مقتدی بيخی د امام نه شاه ته وو.يعنی برابر وو.نو په دے صورت كي د ابويوسف رحمه الله مذهب دا دي.چې مقتدی به ښی اړخ ته په سلام ګرځولو كي د امام نيت كوی.

**دليله** ۞امام ابويوسف رحمه الله ښی اړخ ته ترجيح وركړی ده.ځكه چې په شريعت كښې تيامن معتبر دي.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله په نيز. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او هم دا روايت دي د ابوحنيفه رحمه الله نه نَوَاهُ فِيهِمَا (¹) چې مقتدی به په دواړو سلامونو كي د امام نيت كوی لِأَنَّهُ ذُو حَظٍّ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځكه چې امام د دواړو طرفونو برخه دار دي.

**حل اللغة*** ①حظ: برخه

**تشريح:- د**امام محمد رحمه الله مذهب دا دي.چې په د دواړو طرفونو په سلام كي به د امام نيت كوی.هم دا يو روايت دے د ابوحنيفه رحمه الله نه.

**دليله** ۞اودامام محمد رحمه الله دليل دا دي.چې محاذی(مخامخ) د دواړو طرفونو برخه دار دي.نوځكه د دواړو طرفونو په سلام كښې د امام نيت اوكړې شی.نو غوره به وی.

**الجواب عن دليل ابی يوسف رحمه الله** ۞دويمه خبره دا ده.چې د تعارض په وخت كښې كه جمع ممكن وی.نوترجيح اړخ ته به رجوع نشی كولې.ددے وجې هم امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی.چې دواړو طرفونو په سلام كي به د امام د سلام نيت كوی.

¹) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی الكفاية (٢٧٩\١) والدرالمختار(٣٩١\١) والسعاية (٢٥٧\١) وبدائع الصنائع (١٢٤\١)و تبيين الحقائق (١٢٦\١) نقلا عن القول الراجح (٨٣\١)-



## د منفرد په سلام كي نيت كول

(وَالْمُنْفَرِدُ يَنْوِي الْحَفَظَةَ) ومنفرد به د ساتنه كونكو فرشتو نيت كوی. (لَاغَيْرُ) نه بل څوك لِأَنَّهُ لَيْسَ مَعَهُ سِوَاهُمْ ځكه چې دمنفرد سره د ساتنه كونكو فرشتو نه سوا بل څوك نه وی.

**تشريح:-** مسئله او دليل ښكاره دي.

## په سلام كي د امام لپاره د نيت كولو حكم

(وَالْإِمَامُ يَنْوِي بِالتَّسْلِيمَتَيْنِ)او امام به په دواړو سلامونو كي نيت كوی. هُوَالصَّحِيحُ،هم دا صحيح ده.

**حل اللغة*** ①ينوی، نوی نية (ض): نيت كول

**تشريح:- الاقوال الثلاثة فيمن ينويه الامام في سلاميه** ۞مسئله:امام به په خپلو دواړو سلامونو كښې د ساتنه كونكو فرشتو او د دواړه اړخ مقتديانو نيت كوی.هم دا صحيح قول دي.② بعضو وئيلی دی.چې امام د نيت محتاج نه دي.③ او بعضو وئيلی دی.چې په يو سلام كي نيت كول كافی دی.

وَلَا يَنْوِي فِي الْمَلَائِكَةِ عَدَدًا مَحْصُورًا او په فرشتو كښې به دمعين عدد نيت نه كوی

**حل اللغة*** ①ملائكة واحد ملك: فرښته ② محصورا: معين

**تشريح:- لاينوی العدد المعين في الملائكة** ۞ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائي.چې په فرشتو كي به د معين عدد نيت نه كوی.بلكه مطلقاً د فرشتو نيت به كوی.ځكه چې د ساتنه كونكو فرشتو په شمار كې آثار او احاديث مختلف وارد شوی دی.

لِأَنَّ الْأَخْبَارَ فِي عَدَدِهِمْ قَدِ اخْتَلَفَتْ ځكه چې اخبار او احاديث د فرشتو په شمار كي مختلف دی فَأَشْبَهَ الْإِيمَانَ بِالْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ،نودا مسئله په پيغمبرانوعليهم السلام باندې د ايمان راوړلو سره مشابه شوه.

**حل اللغة*** ①اختلفت، اختلف اختلافا: مختلف كيدل

**تشريح:- الروايات المختلفة في عدد الحفظة** ۞ ①د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی. «أنه قال مع كل مومن خمسة من الحفظة واحد من يمينه يكتب الحسنات وآخر عن يساره يكتب السيآت وآخرأمامه يلقنه الخيات وآخر ورائه يدفع عنه المكاره وآخر عند ناصيته يكتب ما يصلي لي النبي ﷺ يبلغه إلى الرسول عليه السلام»ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی.هر مومن سره پنځه ساتنه كونكي فرشتے وی.يو ښی اړخ ته كومه چې نيكئ ليكي.اودويمه چپه اړخ ته كومه چې بدئ ليكي.دريمه دده وړاندې وی .كومه چې ده ته د نيكو تلقين كوی.څلورمه دده شاه ته وی.كومه چې دده نه تكاليف اومصائب لرې كوی.پنځمه دده تندی سره وی.كومه چې ليكي.څوك چې په نبی ﷺ باندې درود وائی.اوهغه د الله تعالی پيغمبر ته رسوی.② په يو روايت كي دی. «مع كل مؤمن ستون ملكا» ③ او په يو بل كي دی. «مائة وستون»هركله چې د ساتنه كونكو فرشتو شمار متعين نه دي.نو بغير د تعين نه دے د هغوی نيت كوی.اودا مسئله په انبياء عليهم السلام باندې د ايمان راوړلو سره مشابه ده.يعنی د څه مقرر شمار نه بغير په ټولو پيغمبرانو ايمان راوړول ضروری دي.

ثُمَّ إِصَابَةُ لَفْظِ السَّلَامِ وَاجِبَةٌ عِنْدَنَا بيا زمونږ په نيز د «سلام» لفظ ادا كول واجب دی وَلَيْسَتْ بِفَرْضٍ او فرض نه دی.

**حل اللغة*** ①اصابة : اداكول، رسول

**تشريح:- الاختلاف في الخروج من الصلاة بلفظ السلام** ۞ ①دا خبره دے ښكاره وی.چې زمونږ په نيز د سالم لفظ اداكول واجب دی.فرض نه دی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ په دے كي د امام شافعی رحمه الله اختلاف دي هُوَ يَتَمَسَّكُ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" {تَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ} امام شافعی رحمه الله دنبی ﷺ په قول «تحريمها التكبير وتحليلها التسليم» باندې استدلال كوی

**حل اللغة*** ①يتمسک، تمسک تمسكا: اداكول

**تشريح:-** د امام شافعی رحمه الله په نيز د سلام لفظ اداكول ركن او فرض دي.

**دليله** ۞دامام شافعی رحمه الله دليل د نبی ﷺ قول «تحريمها التكبير وتحليلها التسليم» دي.وجه د استدلال دا

ده.چې لکه څنګه د تکبیر تحریمه نه بغیر په لمونځ کې داخلیدل نه صحیح کیږي.دغه ډول بغیر د سلام نه د لمانځه نه وتل نه صحیح کیږي.او وړاندې تیر شوی دی.چې تکبیر تحریمه فرض ده.نو د لمونځ نه وتلو لپاره هم د سلام لفظ ونیل فرض دی.

وَلَنَا.او زموږ دلیل هغه حدیث دي.مَارَوَيْنَامِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ،کوم چې موږ د ابن مسعود﷛ روایت کړې دي وَالتَّخْيِيرُيُنَافِي الْفَرْضِيَّةَ وَالْوُجُوبَ،او اختیار ورکول د فرضیت او وجوب منافی دي

حل اللغة* ① تخییر، اختیار اختیار ورکول

تشریح:- دلیل الاحناف ﷭ ◉ زموږ دلیل دا دي.چې نبی ﷺ کله عبدالله بن مسعود﷛ ته د تشهد تعلیم ورکولو.نو نبی ﷺ ابن مسعود﷛ ته فرمائیلي وو.«إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك فإن شئت أن تقوم فقم وإن شئت أن تقعد فاقعد»ددے حدیث نه په دے طریقه استدلال کیږي.چې د الله تعالی په حقه نبی ﷺ تشهد سره د لمونځ پوره کیدو حکم لګولي دي.اوده ته ئې د کینساتو او اودریدو په مینځ کې اختیار ورکړې دي.او اختیار ورکول د شي د فرضیت یا وجوب سره منافي وي.نو ثابته شوه.چې په مقدار د تشهد نه روسته سلام وغیره بل هیڅ شي فرض نه دي.

إِلَّاأَنَّا أَثْبَتْنَا الْوُجُوبَ خو موږ احتیاطاً وجوب ثابت کړلو بِمَارَوَاهُ احْتِيَاطًا،د امام شافعی رحمه الله د روایت کړی حدیث په وجه وَبِمِثْلِهِ لَاتَثْبُتُ الْفَرْضِيَّةُ وَاللَّهُ أَعْلَمُ او د داسے حدیث نه فرضیت نشي ثابت کیدي.والله اعلم،

حل اللغة* ① لاتثبت، ثبت ثبوتاً(ن): ثابت کیدل

تشریح:- السوال ◉ خو که څوك اعتراض اوکړي.چې اختیار ورکول خو د وجوب سره هم منافی دی.نو باید ده چې سلام ګرځول واجب هم نه وي.حالانکه احناف عالمانو ﷭ د تسلیم د وجوب قائلین دی.

الجواب ◉ نو موږ وجوب احتیاطاً دهغه حدیث د وجې ثابت کړې دي.کوم چې امام شافعی رحمه الله روایت کړې دي.یعنی «تحريمها التكبير الحديث»او دا حدیث خبرواحد دي.او د خبر واحد نه وجوب ثابتیږي.فرضیت نه ثابتیږي.والله اعلم

## فصل في القراءة

ژباړه:- (دا) فصل د قرات (داحکامو په بیان) کې دي.

تشریح:- مصنف رحمه الله چې کله د لمونځ د صفت ددے کیفیت او ددے د ارکانو،فرائضو،واجباتو او د دے د سنتو نه فارغ شو.نو اوس په دے فصل کې د قرات احکام ذکر کوی.حالانکه قرات هم د لمونځ په ارکانو کې دي.خود نورو احکامو په نسبت چونکه د قرات احکام زیات دی.نوځکه د قرات احکام په جلا فصل کښ ذکر کولې شي.

### په قرات کې د جهر حکم

قَالَ فرمائی.(وَيَجْهَرُبِالْقِرَاءَةِ او قرآت باندې به جهر کوی.فِي الْفَجْرِوَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ سهار او د ماښام اود ماسخوتن په اولنو دوو رکعتونو کې إِنْ كَانَ إِمَامًا) که امام وی وَيُخْفِي فِي الْأُخْرَيَيْنِ.او نورو کې به اخفاء کوی.

حل اللغة* ① یجهر، جهر جهراً(ف): ښکاره کیدل ② اولیین: اولنی دوې (دوه) ③ اخرتین: آخرنی دوې (دوه)

تشریح:- وجوب الجهر في الجهرية والسر في السرية◉مصنف فرمائی.لمونځ ګزار که امام وی.نو د سهار په دوو رکعتونو او دماښام او ماسخوتن په اولنودوو رکعتونو کې په قرات باندې جهر کول واجب دی.



هَذَاهُوَالْمُتَوَارَثُ(١) هم دا متوارث دی

تشریح:- دلیله النقلی◉دحضرت ابوهریره﷛ نه روایت دي.«أنه قال في كل صلاة يقرأ فما أسمعنا رسول الله ﷺ أسمعنا كم وما أخفى علينا أخفينا عليكم»یعنی هر لمونځ کې چې د قرآن قرات کولې شي.چې رسول الله ﷺ په کوم کښ موږ ته اورول کړی دی.نو موږ تاسو ته اورول کوو.او چې په کومو کښ ئې په موږ اخفاء کړې ده.نو موږ ستاسو نه اخفاء کوو.

توضیح الدلیل ◉حاصل دا چې په کومو مونځونو کې رسول الله ﷺ جهر کړی وی.اوموږ ته ئې اورول کړی دی.په هغې کې موږ جهر کړې دي.او تاسو ته مو اورول کړی دی.او په کومو مونځونو کې چې نبی ﷺ اخفاء کړې وه.نو په هغې کې موږ هم اخفاء کوو.نو معلومه شوه.چې په جهری مونځونو کې جهر او په سری موځونو کې اخفاء سنت سره ثابت ده.او د امت اجماع هم دلیل دي.ځکه چې د نبی ﷺ د زمانے نه واخله تر اوسه پورې په جهری مونځونو کې جهر او سری مونځونو کې په اخفاء باندې د واړه امت اجماع ده.

(وَإِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا.اوکه خالله لمونځ کونکې وی فَهُوَمُخَيَّرٌ نو هغه ته اختیار دي إِنْ شَاءَجَهَرَوَأَسْمَعَ نَفْسَهُ) که جهر کوی.او خپل خان ته ئې اوروی. لِأَنَّهُ إِمَامٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ ځکه چې دے دخپل خان په حق کې امام دي (وَإِنْ شَاءَ خَافَتَ).اوکه غواړي نو اخفاء دے کوی لِأَنَّهُ لَيْسَ خَلْفَهُ ځکه چې دده نه شاته څوك نشته مَنْ يُسْمِعُهُ چې اورول ورته اوکړي وَالْأَفْضَلُ هُوَالْجَهْرُ.او افضل جهر دي لِيَكُونَ الْأَدَاءُعَلَى هَيْئَةِ الْجَمَاعَةِ.چې د منفرد ادا کول د جماعت په هیئت سره شي

حل اللغة* ① مخیر: اختیار ورکړې شوې ⑤ اسمع اسماعاً اورول ⑥ هیئة: حالت

تشریح:- خیار المنفرد في الجهر والاخفاء◉اوکه مونځګذار منفرد وي.نوده ته اختیار دي.که خوښه ئې وي.نو جهر دے اوکړي.اوخپل خان ته دے واوروی.ځکه چې دے دخپل خان په حق کې امام دي.اوکه خوښه ئې وي.نو اخفاء دے کوی.ځکه چې دده سره څوك داسې کس نشته.چې دے ورته اورول اوکړي.پاته شو الله تعالی نو هغه هر پټ او ښکاره اوري.حاصل دا چې منفرد باندې نه جهر واجب دے اونه اخفاء.البته جهر افضل دي.ددے لپاره چې د منفرد لمونځ د جماعت په هیئت شي.

صاحب دهدایه د جهری او سری مونځونو لپاره اجمالی حدیث بیان کړلو.مناسب ګڼړم چې دخپل کتاب «سنن ا لصلاة في فقه الأحناف»نه د ټولو جهری مونځونو لپاره دلائل ذکر کړم.

جهرالقراءة في الفجر◉ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَائِفَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ عَامِدِينَ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَقَدْ حِيلَ بَيْنَ الشَّيَاطِينِ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْهِمُ الشُّهُبُ فَرَجَعَتِ الشَّيَاطِينُ إِلَى قَوْمِهِمْ فَقَالُوا مَا لَكُمْ فَقَالُوا حِيلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْنَا الشُّهُبُ قَالُوا مَا حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ إِلَّا شَيْءٌ حَدَثَ فَاضْرِبُوا مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا فَانْظُرُوا مَا هَذَا الَّذِي حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ فَانْصَرَفَ أُولَئِكَ الَّذِينَ تَوَجَّهُوا نَحْوَ تِهَامَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِنَخْلَةَ عَامِدِينَ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَهُوَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ صَلَاةَ الْفَجْرِ فَلَمَّا سَمِعُوا الْقُرْآنَ اسْتَمَعُوا لَهُ

---

١) كما رواه انس ﷛ ان جبريل ﷵ اتى النبى ﷺ وفيه ثم امهل حتى وجبت الشمس ،فصلى بهم ثلاث ركعات يجهر فى ركعتين بالقراءة ولا يجهر فى ا لثالثة ،ثم امهله حتى اذا ذهب ثلث الليل صلى بهم اربع ركعات يجهر فى الاوليين بالقراة ولا يجهر فى الاخريين بها الحديث روه الدارقطنى (١/٢٦٠) وكذا روى الزهرى مرسلا ما فيه الاسرار فى الركعتين الاخريين من الظهروالعصر والمغرب والعشاء رواه ابوداود فى مراسيله (ص،١٢٤) رقم الحديث ٤٠) والحسن مرسلا وذكرهما عبدالحق فى ،،احكامه،، من جهة ابى داود وقال ان مرسل الحسن اصح)_

فقالوا هذا والله الذي حال بينكم وبين خبر السماء فهنالك حين رجعوا إلى قومهم وقالوا يا قومنا إنا سمعنا قرآنا عجبا يهدي إلى الرشد فآمنا به ولن نشرك بربنا أحدا فأنزل الله على نبيه صلى الله عليه وسلم قل أوحي إلي أنه استمع نفر من الجن وإنما أوحي إليه قول الجن [1]

**جهرالقراءة في المغرب**۞ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ [2]

**جهرالقراءة في العشاء**۞ عَنْ عَدِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ [3]

## په پټه د قرآت لوستلو مواقع

| |
|---|
| (وَيُخْفِيهَا الْإِمَامُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ) اوامام به په ماپښين او مازيګر کي اخفاء کوی (وَإِنْ كَانَ بِعَرَفَةَ). اګرچې په عرفه کي وی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {صَلَاةُ النَّهَارِ عَجْمَاءُ} [4] چې د ورځي لمونځ ګونګا وی أَيْ لَيْسَتْ فِيهَا قِرَاءَةٌ مَسْمُوعَةٌ. یعنی د ورځي په مونځونو کي قرات نشی اوریدی |

**حل اللغة**① يخفيها، اخفى اخفاء: پواړه ② عجماء: ګونګئی

**تشریح:- وجوب الاخفاء في الظهر والعصر**۞ د ماپښين او مازيګر په لمانځه کي په امام باندې اخفاء یعنی په پټه قرآت کول واجب دی. نوهرکله چې د جماعت په حالت کښ کوم چې موجب د جهر دې. اخفاء کول واجب دی. نو په منفرد باندې به په درجه اولی په ماپښين اومازيګر کي اخفاء واجب وی.

**دليله**۞ دليل د نبی ﷺ قول «صلاة النهار عجماء» دې. یعنی د ورځې مونځونو کي داسې قرات نشته. چې واوریدے شی.

**عدم صحة تفسير ابن عباس** رضي الله عنه ۞ حاصل دا چې د ورځې په مونځونو کي قرات خو شته. خو په پټه دې. په جهر نه دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ددے حديث تفسير داسې کړې دې. « لاقراءة في هاتين الصلاتين» یعنی د ورځې په دے دوو مونځونو کي قرات نشته. نه په جهر او نه په پټه خو د ابن عباس رضي الله عنهما دا تفسير صحيح نه دې.

**دليل القراءة في الظهر والعصر**۞ اود عدم صحت دليل دا دې. چې يو ځل خباب بن ارت رضي الله عنه نه پوښتنه اوشوه. «بم عرفتم قراءة رسول الله ﷺ في صلاة الظهر والعصرقال باضطراب لحيته» یعنی تسو څنګه اوپیژندل. چې نبی ﷺ د ماپښين او مازيګر په لمانځه کي قرات کولو. نو خباب بن ارت رضي الله عنه اوفرمائيل. چې د نبی ﷺ د ږيرے مبارکے د ويختو په خوزيدو باندې.

**دليل القراءة في الظهر**۞ اودحضرت ابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دې. « قال كان رسول الله ﷺ يسمعنا الآية ولآيتين في الظهر أحيانا» فرمائی. چې رسول الله ﷺ به کله کله موږ ته د ماپښين په لمانځه کي يو يا دوې (دوه) آياتونه اورول. نو معلومه شوه. چې د ورځې په مونځونو کي قرات په پټه دې.

| |
|---|
| وَفِي عَرَفَةَ خِلَافُ مَالِكٍ رحمه الله. او په مقام عرفه کي د امام مالک رحمه الله خلاف دې وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ. او دامام مالک خلاف هغه حديث دې. مَا رَوَيْنَاهُ کوم چې موږ روايت کړې دې. |

---

[1]) اخرجه البخارى فى الاذان باب جهرالامام بصلاة الفجررقم ۷۳۱

[2]) اخرجه البخارى فى الاذان باب الجهر فى المغرب رقم ۷۲۳

[3]) اخرجه البخارى فى الاذان باب الجهر فى العشاء رقم ۷۲۵

۴) قال الزيلعى (نصب الراية ۲/۴٬) غريب ورواه عبدالرزاق فى ,,مصنفه ،، من قول مجاهد وابى عبيدة فقال اخبرنا محمد عن عبدالكريم الجزرى ،قا ل:سمعت ابا عبيدة يقول :صلاة النهار عجماء ،، انتهى اخبرنا ابن جريج ،قال قال مجاهد صلاة النهارعجماء) وقدذكرنا فى الحاشية السابقةاحاديث الباب من تاليفى سنن الصلاة.احقر العباد شاه فيصل)_



**تشریح:- الاختلاف في الجهر والاخفاء في العرفة**۞ ① زموږ په نيز په ماپښين او مازيګر کي على الاطلاق اخفاء واجب ده. که دا مونځونه په مقام عرفه کي هم ادا کولې شی. یا ددے نه علاوه په بل ځائې کي. ② البته امام مالک رحمه الله فرمائی. چې په مقام عرفه کي په دے دواړو مونځونو کي جهر کول واجب دی.

**دليل مالک رحمه الله**۞ دامام مالک رحمه الله دليل دا دې. چې په عرفه کي لوئې جماعت سره لمونځ ادا کولې شی. نو په جمعه باندې قياس کوی. چې دلته به هم جهر کوی. خو دامام مالک رحمه الله خلاف هغه حديث حجت دې. کوم چې موږ روايت کړې دې. یعنی «صلاة النهارعجماء»

## په جمعه اخترونو او د شپې او ورځې په نوافلو کي د جهر او اخفاء حکم

| |
|---|
| (وَيَجْهَرُ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ) امام به په جمعه او اخترونو کښے جهر کوی لِوُرُودِ النَّقْلِ الْمُسْتَفِيضِ بِالْجَهْرِ. ځکه چې په جهر سره نقل مشهور راغلے دې |

**حل اللغة**① ورود: راتګ ② مستفيض: مشهور

**تشریح:- الجهر في الجمعة والعيدين**۞ مسئله: د جمعے او اخترونو په لمونځ کي هم په امام باندې جهر واجب دې.

**دليله**۞ دليل احاديث مشهوره دی. د بخاری نه سوا د محدثينو يو جماعت روايت کړې دې. «انه ﷺ كان يقرأ في العيدين و يوم الجمعة ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ و ﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ﴾» او د مسلم په روايت کښے دی. «عن أبي واقد الليثى سالنى عمر ما كان يقرأ به رسول الله ﷺ في الأضحى والفطرفقال كان يقرأ ب) (قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ) (اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ) یعنی د ابوواقد رضي الله عنه نه مروی دی. چې زما نه عمر رضي الله عنه پوښتنه اوکړه. چې نبی ﷺ به د لوئې او وړکوټی اخترونو په مونځونو کي څه وئيل؟ نودوی اوفرمائيل. سورة (قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ) (اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ) ددے رواياتو نه معلومه شوه. چې نبی ﷺ به په جمعه او اخترونو کښے جهر کولو.

| |
|---|
| وَفِي التَّطَوُّعِ بِالنَّهَارِ يُخَافِتُ. اود ورځې په نفلو کي به اخفاء کوی وَفِي اللَّيْلِ يَتَخَيَّرُ. اود شپې په نوافلو کي اختيار دې. اعْتِبَارًا بِالْفَرْضِ فِي حَقِّ الْمُنْفَرِدِ منفرد په حق کي په فرض باندې د قياس د وجے |

**حل اللغة**① تطوع: نفل

**تشریح:- كيفية الجهر في نوافل الليل والنهار**۞ علامه مرغينانی فرمائی. چې د ورځو په نفلو کښے اخفاء واجب ده. او د شپې په نوافلو کي اختيار دې. که جهر کوی او که اخفاء

**دليله القياس**۞ او دليل دا دې. چې نفلی لمونځ کونکې قياس شوې دې. په مفترض منفرد باندې یعنی ځانله فرض لمونځ کونکی باندې، یعنی لکه څنګه چې په فرضو کي د منفرد حکم دې. چې په ورځ کي په فرائضو باندې وجوباً اخفاء کوی. اوپه شپه کي ده ته اختيار دې. که غواړی نو جهر دے کوی او که غواړی نو اخفاء دے کوی.

| |
|---|
| وَهَذَا لِأَنَّهُ مُكَمِّلٌ لَهُ، اودا ددے لپاره چې نفل د فرض مکمل کونکے دے فَيَكُونُ تَبَعًا لَهُ نفل به د فرض تابع وی. |

**تشریح:- وجه القياس**۞ او ددے قياس وجه دا ده. چې نفل د فرضو تکميل دې. نو نفل د فرضو تابع شو. او د شپې په مونځونو کي منفرد ته اختيار وی. که جهر کوی او که اخفاء، دغه ډول د شپې په نفلو کي هم اختيار دې. اوچونکه د ورځې په فرضوکي اخفاء متعين ده. نو د ورځې په نوافلو کښ به هم اخفاء متعين وی.

صاحب دهدايه دشپې په نوافلو کي د جهر او اخفاء لپاره صريحی دليل نه دے پيش کړې. نو ځکه د خپل کتاب «سنن الصلاة في فقه الأحناف» نه ددے لپاره دليل نقل کوم.

**الاختيار بين الجهروالاخفاء في نوافل الليل**۞ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ قَالَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ يَرْفَعُ طَوْرًا

وَيَخْفِضُ طَوْرًا) (١)

## د جهري مونځ قضاء به هم په جهر وي

(وَمَنْ فَاتَتْهُ الْعِشَاءُ اود کوم کس نه چې د ماسخوتن لمونځ فوت شو. فَصَلَّاهَا بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ بیا د لمر راختو نه روسته ئې د هغې قضا راوړله إِنْ أَمَّ فِيهَا.نو که په قضاکې امامت کوی جَهَرَ).نو جهر به کوی

حل اللغة:① فاتته، فات فوتًا(ن) فوت کیدل

تشریح:- كيفية القراءة في القضاء حسب الاداء® مسئله: که یو کس نه د ماسخوتن یا ماښام یا سهار لمونځ قضا شو.اوبیا د نمرراختلو نه روسته ددے قضا راوړی.نو ددے دوې (دوه) صورتونه دی.یا خو به په جماعت سره قضا راوړی.یا به خانله قضا راوړی.که په جماعت سره قضا راوی.نو جهر به کوی.

كَمَا فَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.لکه رسول الله ﷺ چې کړې وو. حِينَ قَضَى الْفَجْرَ غَدَاةَ لَيْلَةِ التَّعْرِيسِ بِجَمَاعَةٍ (٢)کله چې په ليلة التعريس کې ئې د سهار (نمر راختلو) نه روسته د سهار لمونځ په جماعت سره قضاء راوړې وه

تشریح:- دليل الجهر في القضاء حسب الاداء® اودليل دا دې.چې د ليلة التعريس په موقع چې کله نبی ﷺ د سهار د لمونځ په جماعت سره قضاء راوړله.نو نبی ﷺ جهر کړې وو.

٣ واقعة ليلة التعريس® مختصر واقعه دا ده.چې دجهاد د سفر نه په واپسئ باندې د صحابه، په درخواست باندې نبی ﷺ د لښکر سره په یوځائے کې پړاؤ اوکړلو.اوحضرت بلال ﷺ د ویخ پاتې کیدو ذمه واری واخستله.خو ویده (اوده) شو.او په هغه وخت کې رابیدار شو.چې په دوی باندې لمر اولګیدلو.نو نبی ﷺ د هغه ځائې نه کوچ حکم اوکړلو.او وړاندې لاړل.کله چې نمر په نیزه اوچت شو.نونبی ﷺ راکوز شو.اودس ئې اوکړلو.او موذن ته ئې د اذان حکم اوکړلو.بیا ئې دوې (دوه) رکعته اوکړل.یعنی د سهار سنت،بیا دلمانځه لپاره اقامت اوشو.بیا د سهار لمونځ اوشو.لکه څنګه چې به ئې روزانه کولو.او ښکاره ده.چې نبی ﷺ به د سهار په لمانځه کې په قرات باندې جهر کولو.نو ثابته شوه.چې نبی ﷺ به دليلة التعريس په موقع د سهار د لمونځ قضاء په قرات بالجهر سره راوړے وی.

(وَإِنْ كَانَ وَحْدَهُ.اوکه منفرد وی. خَافَتَ حَتْمًا نو وجوباً به اخفاء کوی وَلَا يَتَخَيَّرُ.او ده ته اختیار نشته هُوَ الصَّحِيحُ).هم دا صحیح ده.

تشریح:- الروايتان في كيفية قراءة قضاء المنفرد® ①اوکه ذکر شوې قضا لمونځ خانله کوی.نو اخفاء واجب ده.او ده ته په جهر او اخفاء کې اختیار نشته.هم دا قول صحیح دې.

٣دليل القول الاول® اود قول صحیح دلیل دا دې.چې جهر کول په دوو صورتونوپورې مختص دې.یو دا چې لمونځ په جماعت سره وی. دوهم دا چې په وخت کې دننه وی.په اولنی صورت کې جهر واجب دې.او په دوهم صورت کښې د منفرد په حق کې اختیار دې.

---

(١) اخرجه ابوداود فى الصلاة باب رفع الصوت بالقراءة فى الليل رقم ١١٣٢ رجاله ثقات

٢) رواه مسلم فى المساجد ومواضع الصلاة رقم الحديث (٣١١) ومالک فى الموطاء کتاب وفوت ا لصلاة باب النوم عن الصلاة حديث ٢٦ والبيهقى فى السنن الكبرى (٥٩٣/١) موصولا عن سعيد بن المسيب عن ابى هريرة ﷺ).



په ((هو الصحيح)) سره ئې د شمس الايمه سرخسی او فخرالاسلام رحمهما الله وغیره د قول نه احتراز اوکړو څکه چې هغوی فرمائیلی دی.چې جهر افضل دې.

لِأَنَّ الْجَهْرَ يَخْتَصُّ څکه چې جهر مختص دې إِمَّا بِالْجَمَاعَةِ حَتْمًا یا په جماعت پورې . (چې په دغه وخت کې جهر واجب دې. أَوْ بِالْوَقْتِ او یا په وخت پورې (چې په وخت کښې دننه وی) فِي حَقِّ الْمُنْفَرِدِ عَلَى وَجْهِ التَّخْيِيرِ منفرد په حق کې په طریقه د اختیار سره وَلَمْ يُوجَدْ أَحَدُهُمَا،او په دواړو کې یو هم نه دے موجود شوې.

تشریح:- دليله® دعدم تخییر دلیل دا دې.چې قضا د ادا موافق وی.او د شپې د موخونو په ادا کاوه کې منفرد ته اختیار دې.که جهر کوی.اوکه اخفاء،

٣ القاعدة في الجهر والاخفاء® حاصل دا دې.چې جهر او اخفاء په شرعی توفیق باندې موقوف دی.اومونږ په شریعت کې جهر په دوو طریقو باندې بیا مونده دې.① یو دجهر وجوب دا په هغه وخت کې چې په جماعت سره جهری لمونځ کوی.که ادا وی اوکه قضاء وی.② دوهم جهر مخیر:دا په هغه وخت کښ دې.کله چې منفرد په وخت کې دننه جهری لمونځ کوی.او دلته چې منفرد د لمر راختو نه روسته جهری لمونځ کوی.نو په دواړو خبرو کې یوه خبره هم نشته.یعنی نه په جماعت سره لمونځ شته.اونه وخت،نو څکه په دے صورت کې نه جهر واجب دې.اونه جهر مخیر،بلکه اخفاء واجب ده.

## په څلوررکعته مونځ کې د ترك فاتحه یا ترك سورة حكم

(وَمَنْ قَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي الْأُولَيَيْنِ السُّورَةَ اوچا چې د ماسخوتن په اولنو دوو رکعتونو کې سورة اووئیل وَلَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ.اوسورة فاتحه ئې اونه وئیله لَمْ يُعِدْ فِي الْأُخْرَيَيْنِ.نو په روستنو دوو رکعتووکې دے د فاتحے اعاده نه کوی وَإِنْ قَرَأَ الْفَاتِحَةَ.اوکه فاتحه ئې اووئیله وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهَا.او په دے باندې ئې زیادت اونکړلو قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ الْفَاتِحَةَ وَالسُّورَةَ.نو په روستنو دوو رکعتونو کې دے سورة فاتحه او سورة دواړه ووایې وَجَهَرَ) وجهر دے کوی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (١) اودا د امام ابوحنیفه او محمد رحمهما الله قول دې.

حل اللغة:① قرا، قراءة(ف):لوستل ② لم يزد، زاد زيادة (ض): زیاتول

تشریح:- الاختلاف في قضاء الفاتحة او السورة في الاخرين® ①صورت د مسئلے دا دې.چې یو کس د ماسخوتن په اولنو دوو رکعتونو کې سورت اووئیل.خو سورة فاتحه ئے اونه وئیله.نودا کس به په آخری دوو رکعتونو کې د فاتحے قضا نه راوړی. اوکه په اولنو دوو رکعتونو کښے ئې سورة فاتحه اووئیل.خو د سورة فاتحه نه روسته ئې بل څه اونه وئیل.نو په آخری دوو رکعتونو کې به سورة فاتحه او سورت دواړه وائی.او په دواړو باندې به جهر کوی.دا مذکور حکم د طرفینو رحمهما الله په نیز دې

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ او امام ابویوسف رحمه الله فرمایي لَا يَقْضِي وَاحِدَةً مِنْهُمَا چې په دواړو کې به د یو قضا هم نه کوی لِأَنَّ الْوَاجِبَ إِذَا فَاتَ عَنْ وَقْتِهِ..څکه چې واجب کله د خپل وخت نه فوت شی. لَا يُقْضَى إِلَّا بِدَلِيلٍ نو بغیر د دلیل نه د هغې قضاء نه کیږی

---

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى العناية (٢٨٦/١) و فتح القدير(٢٨٦/١) والبحر(٥٩٠/١) والبدائع (١١١/١) والهندية (١١٨/١) نقلا عن القول الراجح (٨٤/١)_

**حل اللغة**° ① **لايقضى، قضى قضاءً** (ض): قضاكول، اداكول

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلي دي. چې سوة فاتحې او سورت دواړو کي به ديو قضاء هم نه راوړي.

**دليله** ◉ اودليل دا دي. چې سورة فاتحه او سورت په دے دواړو کي هريو واجب دی. (هم دا وجه ده. که په دے دواړو کښے يو په سهو سره پريښولې (پريخودې) شي. نو سجده سهو واجبيږي. که په شفع ثاني کي ددے قضاء راوړي اوکه نه) او واجب چې کله د خپل وخت نه فوت شي. نو د هغې قضاء نشي راوړې. البته دا که د قضاء څه دليل موجود شي. او د قضاء دليل دلته موجود نه دې. نوځکه به ددے دواړو قضاء هم نه وي. او دليل ددے وجې موجود نه دې.

**الجواب عنه** ◉ صاحب د عنايه رحمه الله د ابويوسف رحمه الله د قول ځواب ورکړې دې. اوفرمائي. چې موږ دا نه منو. چې په اخرينو کي سورت غير مشروع دې. ځکه چې فخرالاسلام رحمه الله په شرح دجامع صغير کي فرمائيلي دي. چې په اخرينو کي د سورت لوستل مندوب دی. نو ددے وجې که په اخريينو کي سورت ووايي. نوسجده سهو به واجب نه وي.

**تعريف القضاء** ◉ چې قضاء وائي. ﴿ماله مشروعاً ماعليه﴾ ارخ ته اړول، يعنی شريعت چې ددے لپاره کوم حق مشروع کړی وي. هغه دغه ارخ ته ګرځول. کوم چې په ده واجب وي. او دلته حال دا دې. چې په آخرې دوو رکعتونو کښے سورة مشروع نه دې. نو چې په آخرې دوو رکعتونو کي سورة ددے حق نه دے مقرر شوې. نو په اولنو دوو رکعتونو کي فوت شوې سورت په آخرې دوو رکعتونو کي قضاء نشي راوړې.

| |
|---|
| **وَهٰهُنَا وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْوَجْهَيْنِ** اود طرفينو دليل په دواړو صورتونو کښے توپير هم کوی **أَنَّ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ شُرِعَتْ عَلٰى وَجْهٍ** . چې د فاتحه لوستل په داسې طريقه باندې مشروع شوې ده. **يَتَرَتَّبُ عَلَيْهَا السُّورَةُ** چې سورة په دے باندې مرتب وی **فَلَوْ قَضَاهَا فِي الْأُخْرَيَيْنِ**. نوکه فاتحه په روستو دوو رکعتونو کي قضا راوړي **تَتَرَتَّبُ الْفَاتِحَةُ عَلَى السُّورَةِ**. نو په په سورة باندې به فاتحه مرتبه شي **وَهٰذَا خِلَافُ الْمَوْضُوعِ**. اودا خلاف موضوع ده. |

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ◉ د طرفينو رحمهما الله دليل او هم دا په دواړو صورتونو کي وجه د توپير هم ده. چې د فاتحې لوستل په داسې طريقه باندې مشروع شوی دی. چې سورة په دے باندې مرتب وی. يعنی فاتحه به داسې وائی. چې په دے پسې سورة اووائی. په اول صورت کي چې کله سورت اووائی. او سورة فاتحه اونه وائی. نو که په آخری دوو رکعتونو کي د فاتحې قضاء راوړی. نو سورة فاتحه به په سورت باندې مرتب وی. يعنی سورت به اول وائی. او سورة فاتحه به روستو او دا حالت د موضوع د شرع نه خلاف دې. ځکه چې اول فاتحه او بيا سورت مشروع دې. او دلته په عکس شوه. توځکه په دے صورت کي د فاتحې د قضاء راوړلو حکم نه دے ورکړې شوې.

| |
|---|
| **بِخِلَافِ مَا إِذَا تَرَكَ السُّورَةَ** ددے په خلاف چې کله ئې (په اولنو دوو رکعتونو کي ) سورة پريښولې (پريخودې) وی **لِأَنَّهُ أَمْكَنَ قَضَاؤُهَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوعِ**. ځکه چې د سورة قضا راوړل په مشروع طريقه سره ممکن دی |

**تشريح:- الصورة الثانية** ◉ پاته شو دوهم صورت يعنی چې په اولينو کښ فاتحه اووائی. او سورت اونه وائی. نو په اخريين کښے به قضا راوړی. ځکه چې په دے صورت کي په مشروع طريقه باندې قضاء راوړل ممکن دی. ځکه چې مشروع طريقه دا ده. چې د فاتحې نه روسته دے سورت وی. او دلته دا موجود دی.

| |
|---|
| **ثُمَّ ذَكَرَ هٰهُنَا** بيا دلته ئے هغه لفظ ذکر کړلو. **مَا يَدُلُّ عَلَى الْوُجُوبِ** کوم چې په وجوب باندې دلالت کوی **وَفِي** |



| |
|---|
| **الْأَصْلِ بِلَفْظَةِ الْاِسْتِحْبَابِ**. . او په مبسوط کښے په لفظ د استحباب سره دې. |

**حل اللغة**° ① **يدل، دل دلالة**: دلالت کول

**تشريح:- اختلاف العبارتين** ◉ ﴿ثم ذكرنا ههنا﴾ په دے عبارتونو سره اختلاف ذکرکړې شوې دے فرمائي. چې د جامع صغير په عبارت کي داسې لفظ مذکور دې. کوم چې په آخری دوو رکعتونو کي د سورت د قضاء په وجوب باندې دلالت کوی. ځکه چې په جامع صغير کي وائي. ﴿قرأفي الأخريين﴾ او دا په منزله د امر دې. او امر په وجوب باندې دلالت کوی. نو د جامع صغير. دعبارت نه معلومه شوه. چې په اخريينو کي د سورت قضاء راوړل واجب دی.

اودليل هغه دې. کوم چې په تيرو کرښو کي تير شو. او په مبسوط کي په لفظ د استحباب سره مذکور دې. ځکه چې د مبسوط عبارت دا دې. ﴿إذاترك السورة في الأولين أحب إلى أن يقضيها﴾ او ښکاره ده. که په اولينو کي ئې سورت پريښولو . نوپه اخريينو کي د هغې قضاء راوړل مستحب دی. ځکه چې لفظ د ،،احب،، په استحباب دلالت کوی. او په استحباب کي ددے قضاء مستحب ده. واجب نه ده.

| |
|---|
| **لِأَنَّهَا إِنْ كَانَتْ مُؤَخَّرَةً** ځکه که سورة روستو شی **فَغَيْرُ مَوْصُولَةٍ بِالْفَاتِحَةِ** نودا د فاتحې سره متصل نشو **فَلَمْ يُمْكِنْ مُرَاعَاةُ مَوْضُوعِهَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ**. نو ددے د موضوع خيال ساتل من کل وجه ممکن نه دې. |

**حل اللغة**° ① **مراعاة**: رعايت

**تشريح:- دليله** ◉ اودليل د استحباب دا دې. چې سورت بيشکه د فاتحې نه روستو شو. خو فاتحه اولی سره متصل پاتې نشوه. ځکه چې په فاتحه اولی او دسورت په مينځ کي فاتحه ثانيه (هغه فاتحه د کومے چې په اخريينو کي لوستل افضل وو) فصل واقع شو. نو ﴿من كل وجه﴾ د موضوع سورت خيال ساتل ممکن پاتې نشو. نوځکه په مبسوط کي وئيلې شوی دی. چې قضاء راوړل مستحب دی واجب نه دی.

### په فاتحه او سورت باندې جهر كول

| | |
|---|---|
| (**وَيَجْهَرُ بِهِمَا**) | او په سورت او فاتحه دواړو به جهر کوی **هُوَ الصَّحِيحُ**. هم دا صحيح ده. |

**حل اللغة**° ① **جهر، جهر جهراً** (ف): ښکاره کول

**تشريح:- الجهر والاخفاء في قضاء الفاتحة** ① مسئله دا ده. چې کله په اخريينو کي د سورت قضاء راوړی. نو په فاتحه او سورت دواړو به جهر کوی. هم دا صحيح قول دې.

دنی د اقوی تابع شو.

**په هو الصحيح** سره علامه مرغيناني رحمه الله د نورو دوو اقوالو نه احتراز کوی په هغې کي يو قول د ابن سماعه دامام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله نه روايت کړې دې. چې صرف سورت به په جهر وائی.

**وجهها** ◉ د ابن سماعه د روايت وجه دا ده. چې په اخريينو کي د فاتحې لوستل ادا ده. او د سورت لوستل قضاء ده. او ادا د خپل محل مطابق وی. او قضاء د فوت کيدو مطابق وی. نو چونکه سورت د جهر په صفت سره فوت شوې دې. نو ځکه به ددے قضاء هم د جهر په صفت سره وی. او فاتحه چونکه په خپل محل کي ده. نو ځکه په فاتحه کي ددے د صفت خيال ساتلے شی. او د فاتحې صفت په اخريينو کښے اخفاء ده. نوځکه به فاتحه په پټه وائی.

**الجواب عن السوال على هذا القول** ◉ پاته شوه دا خبره چې د جهر او اخفاء په رکعت کي جمع کيدل لازميږی. نو ددے ځواب دا دې. چې قضاء د خپل مقام سره لاحق کيږی. نوسورت اګرچې په اخريينو کي

لوستلے شی.خو په اولینو کي حسابیږی.نو ځکه تقدیرا په یو رکعت کي د جهر او اخفاء جمع کیدل نه لازمیږی.

دوهم هشام رحمه الله د امام محمد رحمه الله نه روایت کړې دې.چې بیخی به جهر نه کوی.نه په فاتحه باندې او نه په سورت باندې ،د هشام د روایت وجه دا ده.چې جهر او اخفاء دواړه په یو رکعت کي جمع کول شنیع او بد دی.اود سورت متغیر کول یعنی دجهر په ځائې سورت په پټه وئیل اولی دی.ځکه چې فاتحه په خپل محل کي هم ده.او په سورت باندې مقدمه هم ده.نو ځکه فاتحه اصل شوه.او سورت دد ے تابع په اخرینو کي دفاتحے حق دا دې.چې دا په پټه اوونیلی شی.نو سورت دد ے تابع شو.هغه به هم په پټه وئیلې شی.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْجَهْرِ وَالْمُخَافَتَةِ فِي رَكْعَةٍ وَاحِدَةٍ شَنِيعٌ ځکه چې د جهر او اخفاء په یو رکعت کي جمع کول بد دی وَتَغْيِيرُ النَّفْلِ وَهُوَ الْفَاتِحَةُ أَوْلَى.او د نفلو بدلول او هغه فاتحه ده اولی دی. |

**حل اللغة**① **جمع**: جمع کول ② **مخافتة**: په مزه ③ **شنیع**: خراب ④ **تغییر**:بدلول

**تشریح:- دلیلها**◉اود قول صحیح دلیل دا دې.چې په یو رکعت کښې جهر او اخفاء جمع کول شرعا مذموم دی.او دوې (دوه) صورتونه دی.یا خو به دواړه په پټه وانی.لکه څنګه چې دامام محمد رحمه الله نه هشام رایت کړې دې.او یا به دواړه په جهر سره وائی.په اولنی صورت کي اقوی د ادنی تابع کیدل لازمیږی.اودا په هیڅ صورت کي مناسب نه دی. ځکه چې د سورت په جهر سره وئیل واجب دی.او په آخری رکعتونو کښے د سورة فاتحے په پټه لوستل سنت دی.بلکه د نفلو په درجه کښے دی.نوفاتحه کومه چې سنت ده.د دے د اخفاء صفت چې خیال اوساتلے شی.نو سورت کوم چې واجب دې.د هغې صفت چې جهر دے هغه متغیر کیږی.اودا اقوی د ادنی تابع جوړول دی.کوم چې په هیڅ صورت کي مناسب نه دی.نوځکه دا صورت ټیک نه دې.اوس دوهم صورت پاته شو.یعنی دواړه په جهر سره لوستل نو په دے کښد څه قباحت نشته.ځکه چې په دے صورت کښے د واجب (سورت) د صفت (جهر) د وجې د نفل (فاتحه) د صفت (اخفاء) بدلیدل راځی.اودا غوره ده.ځکه چې په دے صورت کي ا

## د جهر او اخفاء تعریف

| |
|---|
| ثُمَّ الْمُخَافَتَةُ بیا په اخفاء باندې وئیل دا دی أَنْ يُسْمِعَ نَفْسَهُ.چې خپل خان ته ئې واوروی. وَالْجَهْرُ أَنْ يُسْمِعَ غَيْرَهُ اوجهر دا دې.چې نورو ته ئے واوروی وَهَذَا عِنْدَ الْفَقِيهِ أَبِي جَعْفَرٍ الْهِنْدُوَانِي رحمه الله .او دا د فقیه ابوجعفر هندوانی په نیز دی لِأَنَّ مُجَرَّدَ حَرَكَةِ اللِّسَانِ لَا يُسَمَّى قِرَاءَةً بِدُونِ الصَّوْتِ ځکه چې بغیر آواز صرف ژبې ته حرکت ور کاوه ته قرات نشی وئیلې |

**حل اللغة**① **ان یسمع، اسمع اسماعًا**: اورول ② **لسان جمع السنة**: ژبه

**تشریح:- تعریف الجهر والاخفاء**◉په دے عبارت کي دجهر او اخفاء تعریف شوې دې.د صاحب عنایه د بیان مطابق حاصل دا دې.چې د کلماتو اجزاء کوم چې په ژبه باندې مستعمل دی.دد ے دوې (دوه) قسمونه دی.کلام او قرات،ځکه چې په دے به مخاطب ته د نسبت فائده رسول مقصود وی یا نه.که اول وی.نودا به کلام وی.ګنی قرات،بیا په دے دواړو کي هریو په دوې (دوه) قسمه دې.جهر او مخافتت،

**تشریح:- الاختلاف في حد الفاصل في الجهر والاخفاء**◉خو په دے دواړو کي حد فاصل کي زمونږ د عالمانو رحمهم الله اختلاف دې.① فقیه ابوجعفر هندوانی رحمه الله فرمائی.چې اخفاء (په پټه وئیل) دا ده.چې خپل خان ته ئې واوروی.اوکه دد ے نه کم وی.نودے عجوبه او دندنه وانی.دا نه کلام دې.اونه قرات،او جهر دا دې.چې نورو ته ئے واوروی.یعنی په دومره آواز ئےاووانی.چې نزدے سړې ئې واوری.دلیل دا دې.چې بغیرد آواز نه خالی ژبې ته حرکت ورکول د قرات نوم نه دې.نه په لغت کي اونه په عرف کي.

**السوال علی تعریف الاخفاء**◉د اخفاء په تعریف باندې اعتراض کیدې شی.چې په کتابت سره تصحیح د



حروفو کیږی.خود نه ادا کاوه د وجې دے ته قرات نشی وئیلې.نو معلومه شوه.چې د قرات لپاره فقط تصحیح د حروفو کافی نه ده.بلکه آواز هم ضروری دې.

**الجواب**◉ځواب، مطلقاً تصحیح د حروف قرات نه دی.بلکه په ژبې سره تصحیح د حروفو قرات دې.

| |
|---|
| وَقَالَ الْكَرْخِي :..اوامام کرخی رحمه الله فرمایي أَدْنَى الْجَهْرِ چې د جهر کمه مرتبه دا ده. أَنْ يُسْمِعَ نَفْسَهُ چې خپل خان ته ئې واوروی. وَأَدْنَى الْمُخَافَتَةِ تَصْحِيحُ الْحُرُوفِ اود اخفاء کمه مرتبه دا ده چې حروف صحیح اوخی.لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ فِعْلُ اللِّسَانِ ځکه چې قرات خو د ژبې فعل دې دُونَ الصِّمَاخِ.د غوږ نه دې.وَفِي لَفْظِ الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَى هَذَا او په لفظ د کتاب کښے دے اړخ ته اشاره ده |

**حل اللغة**① **صماخ**: د غوږ سوړه

**تشریح:-** امام کرخی رحمه الله فرمائی.چې قرات د ژبې فعل دې.د غوږ فعل نه دې. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چې د قدوری په عبارت کي هم د امام کرخی رحمه الله قول اړخ ته اشاره موجود ده.ځکه چې په اول فصل کي مذکور دی. «فهو مخیر إن شاء جهر واسمع نفسه وإن شاء خافت»

| |
|---|
| وَعَلَى هَذَا الْأَصْلِ.او هم په دے اصل دې. كُلُّ مَا يَتَعَلَّقُ بِالنُّطْقِ هرهغه کار کوم چې نطق سره متعلق وی كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ وَالِاسْتِثْنَاءِ وَغَيْرِ ذَلِكَ.لکه طلاق، آزادول، استثناء او دد ے نه علاوه. |

**حل اللغة**① **نطق**: وینا ② **عتاق**: آزادول

**تشریح:- ثمرة الاختلاف**◉ علامه مرغینانی فرمائی.چې هم دا اختلاف په هغه شی کي دې.د کوم تعلق چې د نطق سره وی.لکه طلاق،عتاق،اواستثناء وغیره،مثلاً که چا خپلے ښځے ته اووئیل.چې «انت طالق»یا ئې غلام ته اووئیل. «انت حر»او ویونکی په خپله نه وی اوریدلې.نود امام کرخی رحمه الله په نیز طلاق او عتاق واقع شو.اودهندوانی رحمه الله په نیز واقع نه دې.دغه ډول که په دے دواړو باندې ئې جهر اوکړلو.او د استثناء ئې په داسې طریقه باندې اخفاء اوکړله.چې په خپله ئې هم واؤنه ریدل.نود امام کرخی رحمه الله په نیز طلاق او عتاق نه واقع کیږی.او استثناء به معتبر وی.او د هندوانی رحمه الله په نیزدواړه في الحال واقع کیږی.او استثناء به معتبر نه وی.هم دا اختلاف په ذبیحه باندې تسمیه کي دې.اود تلاوت د سجدې په وجوب کي دې.

## د مونځ د صحت لپاره د کم نه کم قرات اندازه

| |
|---|
| وَأَدْنَى مَا يُجْزِءُ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ اود قرات ادنی مقدار کوم چې په لمونځ کښے کافی کیږی. آيَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز یو آیت دې. |

**حل اللغة**① **یجزی، اجز اجزاءً**: کفایت کول، بدله ورکول

**تشریح:- ادنی مایجوز به الصلاة**◉ په دے عبارت کښے د «مایجوز به الصلاة»مقدار بیانیږی.که په حضر کي وی اوکه په سفر کي وی.نو فرمائی.چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د قرات ادنی مقدرا چې په هغې باندې لمونځ جائز کیږی.یو آیت دې.نو که یوآیة په دوو کلمو یا په زیاتو مشتمل وی.نو په اتفاق د مشائخو پرے لمونځ جائز دې.لکه د الله تعالی قول (ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ۝ ثُمَّ نَظَرَ ۝)

**الاختلاف في الكلمة الواحدة والحرف الواحد**◉او که یوه کلمه وی.لکه. (مُدْهَامَّتَانِ ۝) یا یو حرف وی. لکه (صٓ) (قٓ) (نٓ) نو په دے کي دمشائخو اختلاف دې.① د بعو نیز کافی کیږی.② اود بعضو په نیز نه کافي کیږی.

وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمائي. ثَلَاثُ آيَاتٍ قِصَارٍ أَوْ آيَةٌ طَوِيلَةٌ (١) چې درې واړه اياتونه يا يو اوږد آيت دی. لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى قَارِئًا بِدُونِهِ ځكه چې ددې نه كم قرات كونكی ته قاري نشي وئيلې. فَأَشْبَهَ قِرَاءَةَ مَادُونَ الْآيَةِ نو دا د «مادون الآية» قرات سره مشابه شو

حل اللغة: ① قصار: وړوكي

تشريح:- مذهب الصاحبين رحمهما الله ⊙صاحبين رحمهما الله فرمائي. چې د «ما يجوز بـه الـصلاة» مقدار درې واړه آياتونه دی. يا يولوئې آيت لكه آية الكرسی او آيت مداينه .

دليـل الـصاحبين رحمهما الله ⊙ دصاحبينو رحمهما الله دليـل دا دې. چې د وړو درې آياتونو يا يو لوئې آيت نه كوم لوستونكی ته په عام عرف كې قاري د قرآن نشي وئيلې. نودده قرآن بـه د مـادون الآيـة د قرآت سره مشابه وی. او مادون الآية د لمانځه لپاره كافی نه دې. نو د دريو وړو آياتونو يا د يو لوئې آيت نه كم قرات هم كافی نه وی. د صاحبينو رحمهما الله د دليل حاصل دا دې. چې يو آيت اګرچې په حقيقت كې قرآن دې. خو په عرف كې په درې وړو آياتونو يا يو لوئې آيت باندې د قرآن اطلاق كيږی. نوځكه به دې اړخ ته رجوع كولې شی.

وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى. اودامام صاحب رحمه الله دليل د الله تعالى ارشاد دے (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ فَاقْرَءُوا (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) بغير د څه تفصيل نه

تشريح:- دليل ابی حنيفة: رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله دليـل د الله تعـالى قـول دې. چې (فَـاقْرَءُوا مَـا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) په دې باندې استدلال داسې دې. چې دا مطلق دې. په دې كې د آيت او ما فوق الآيت څه تفصيل نشته. نو لكه څنګه چې مافوق الآيـة د جواز الصلاة لپاره كافی دې. دغـه ډول يو آيت هم كافی دې. او ددې وجه دا ده. چې يو آيت په حقيقت كې هم قرآن دې. اوحكماً هم، حقيقتاً قرآن كيدل خو ښكاره خبره ده. او حكماً ځكه دې. چې د يو آيت قرات په حائضه او جنب باندې حرام دې. نو يو آيت به د قرآن په اطلاق كې داخل وی.

إِلَّا أَنَّ مَادُونَ الْآيَةِ خَارِجٌ البته دا چې د يو آيت نه كم خارج دې. وَالْآيَةُ لَيْسَتْ فِي مَعْنَاهُ او پوره آيت ددې په معنی كې نه دې.

تشريح:- الاشكال⊙خو په دې باندې اشكال كيږی. هغه دا چې كه (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) مطلق دې. او په دې كې څه تفصيل نه وی. نو لكه څنګه چې يو آيت دجواز لپاره كافی دې. نو دغه ډول د يو آيت نه كم باندې به هم لمونځ جائز وی. ځكه چې اطلاق دواړو ته ګډ دې. حالانكه د آيت نه په كم باندې لمونځ جائز نه دې. نودغه ډول په يو آيت باندې هم بايد ده چې لمونځ جائز نه شی. حالانكه امام صاحب د جواز قائل دې.

الجواب⊙ددې ځواب دا دې. چې د آيت نه كم په اجماع سره د قرآن په اطلاق كې داخل نه دې. ځكه چې مطلق كله اونيلی شی. نو ددې نه د هغې فرد كامل مراد وی. او د قرآن فرد كامل هغه دې. كوم چې په حقيقت كښې هم قرآن وی. او په حكم كې هم قرآن وی. د آيت نه كم اګرچې په حقيقت كښې قرآن دې. ليك حكماً قرآن نه دې. نوځكه د آيت نه د كم قرات د جنب او حائضې لپاره جائز دې. نو د آيت نه كم په اجماع سره په (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) كې داخل نه دې.

اوكه څوك دا اووائی. چې كله «مادون الآية» د قرآن په اطلاق كې داخل نه دې. نو آيت دې هم ددې سره لاحق كړې شی. نو ددې ځواب صاحب دهدايه رحمه الله دا وركړې دې. چې آيت د «مـادون الآيـة» په معنی كې نه دې. نوددې وجې د «مادون الآية» سره نه لاحق كيږی.

١) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(١١/٢٩٠) والبحرالرائق (١١/٥٩١) والكفاية (١١/٢٩٠) والحلبی (ص،٣٠٩) مراقی الفلاح (ص،١٢٣)و الهندية (١١/٧١) نقلا عن القول الراجح (١١/٨٥)۔



## د سفر په مانځه كې د قرات حكم

وَفِي السَّفَرِ يَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَأَيِّ سُورَةٍ شَاءَ او په سفر كې فاتحة الكتاب اوچې كوم سورت ئې خوښ وی. لولی دې

حل اللغة: ① يقرا، قرا قراءة (ف): لوستل

تشريح:- القراءة المسنونة في السفر⊙ په دے عبارت كښې مصنف رحمه الله د سفر په حالت كې. په لمانځه كې د قرات ذكر كوی. فرمائي. چې د سفر په حالت كې مسنون قرات دا دې. چې سورة فاتحه او كوم سورة چې ئې خوښ وی. هغه دې اووائی. نو ركوتې سورت ئې اووئيل. نو هم به سنت ادا شی.

لِمَا رُوِيَ. ځكه روايت دې. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَرَأَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فِي سَفَرِهِ بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ} (١) چې نبی ﷺ به په خپل سفر كښې د سهار په لمانځه كې د معوذتينو قرات كولو.

تشريح:- دليله النقلی⊙لكه چې روايت دې. چې نبی ﷺ د سفر په حالت كې د سهار په لمانځه كې ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ وئيلې وو. دا حديث ابوداؤد او نسائی د عقبه بن عامر ؓ نه نقل كړې دې. ددې په آخر كې دی. «فلما نزل لصلاة الصبح صلى بهما صلاة الـصبح للنـاس» يعنی كله چې نبی ﷺ د سهار د لمانځه لپاره راكوز شو. نو خلكو ته ئې په دے دواړو سورتونو باندې لمونځ وركړلو.

وَلِأَنَّ السَّفَرَ أَثَّرَ فِي إِسْقَاطِ شَطْرِ الصَّلَاةِ او ځكه چې سفر لره د نيم لمونځ په ساقط كولو كې دخل دې. فَلَأَنْ يُؤَثِّرَ فِي تَخْفِيفِ الْقِرَاءَةِ أَوْلَى نو په تخفيف د قرات كې به په درجه اولی باندې دخل وی

حل اللغة: ① اسقاط: ساقط كول ② شطر: نيم

تشريح:- دليله العقلی⊙ عقلی دليل دا دې. چې د نيم لمونځ په ساقط كاوه كې د سفر ډير دخل دې. نو هر كله چې ئې د نيم لمونځ په ساقط كاوه كښې دخل دې. نو د قرات په تخفيف كې خو به ئې په درجه اولی دخل وی. حاصل دا چې كله د سفر د وجې په اصل لمونځ كې كمے شوې دې. نو په وصف يعنی قرات كې خو به په درجه اولی سره كمی كيږی.

وَهَذَا او دا حكم په هغه وخت كې دې. إِذَا كَانَ عَلَى عَجَلَةٍ مِنَ السَّيْرِ چې تلوار ئې وی دتلو. وَإِنْ كَانَ فِي أَمَنَةٍ وَقَرَارٍ اوكه په حالت د امن او قرار كې وی. يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ نَحْوَ سُورَةِ الْبُرُوجِ وَانْشَقَّتْ نو د سهار په لمانځه كې به د سورة بروج او سورة انشقاق په څير وائی لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ مُرَاعَاةُ السُّنَّةِ مَعَ التَّخْفِيفِ. ځكه چې په تخفيف سره ده لره د سنتو خيال ساتل ممكن دی.

حل اللغة: ① عجلة: تندی ② سير: تلل ③ مراعاة: رعايت

تشريح:- علامه مرغينانی رحمه الله فرمائي. چې په دومره اندازه قرات به په هغه وخت كې كوی. چې په دے كس باندې تلوار وی. او كه دے د امن او قرار په حالت كې وی. مثلاً په يو منزل باندې كوز شو. او اراده ئې دا وه. چې په اطمينان سره به ايسار شم. اوبيا به روانيږم. نو په داسې صورت كښې به د سهار په لمانځه كې ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ﴾ او ﴿إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ﴾ لولی. ځكه چې په دے صورت كې تخفيف هم دې. او د سنتو رعايت هم دې.

## په حضركې د صبا په مونځ كښې د قرأت مقدار

١) رواه ابوداود فی سننه فی الوتر باب ١٩، والنسائی فی الاستعاذة باب ،،١،، واحمد فی المسند (٤/١٥٠، ١٥٣)۔

(وَيَقْرَأُ فِي الْحَضَرِ او په حالت دحضر کښې دې لولي فِي الْفَجْرِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ د سهار په دوو رکعتونو کې بِأَرْبَعِينَ آيَةً أَوْ خَمْسِينَ آيَةً څلويښت يا پنځوس آياتونه سِوَى فَاتِحَةِ الْكِتَابِ) سوا د فاتحې نه، وَيُرْوَى مِنْ أَرْبَعِينَ إِلَى سِتِّينَ او روايت کولې شي.چې د څلويښتو نه شپيتو پورې وَمِنْ سِتِّينَ إِلَى مِائَةٍ اود شپيتو نه تر سلو پورې

**تشريح:- المقادير الثلاثة في قراءة الفجر**◉ مسئله دا ده.چې د حضر په حالت کې د سهار په دوو رکعتونو کښې د سورة فاتحه نه سوا څلويښت يا پنځوس آيتونه لولي.يعنې په هر رکعت کې دے شل يا پنځويشت آيتونه لولي.او په يو روايت کې څلويښتو نه تر شپيتو پورې او په يو کې تر سلو پورې دی.

وَبِكُلِّ ذَلِكَ وَرَدَ الْأَثَرُ او په هر(قول) باندې اثر وارد شوې دې

**حل اللغة**° ① **ورد، وروداً** (ض): وارد کيدل، راتګ

**تشريح:- الدليل لكل واحد من المقادير**◉ علامه مرغيناني فرمائي.چې په دے کې په هر مقدار باندې اثر راغلې دې.① دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی.《 أن النبي ﷺ قرأ في الفجر يوم الجمعة الم تنزيل السجدة و، (هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ.......)》يعنې نبي ﷺ د جمعې په ورځ د سهار په لمانځه کښې《الم تنزيل السجدة او (هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ.......)》 لوستے وو.په اولنی آيت کې ديرش آيتونه دی.او په دوهم کې يو ديرش دی.② په صحيح مسلم کې د جابر بن سمره رضي الله عنه حديث دې.《أن النبي ﷺ كان يقرأ في الفجر ب، ق، 》اود ابوهريره رضي الله عنه نه رايت دې.《 قال كان رسول الله ﷺ يقرأ في الفجر ما بين ا لستين إلى مائة آية》

وَوَجْهُ التَّوْفِيقِ.او د توفيق وجه دا ده أَنَّهُ يَقْرَأُ بِالرَّاغِبِينَ مِائَةً.چې شوق ساتونکو مقتديانو سره دے سل آياتونه لولي وَبِالْكُسَالَى أَرْبَعِينَ.او ستومانه کيدونکو ته دے څلويښت لولي وَبِالْأَوْسَاطِ مَا بَيْنَ خَمْسِينَ إِلَى سِتِّينَ.اومينځ درجې والا ته دے د پنځوسو نه شپتو پورې لولي وَقِيلَ.او وئيلې شوی دی.يَنْظُرُ إِلَى طُولِ اللَّيَالِي وَقِصَرِهَا چې د شپو اوږدوالی او لنډوالی ته دے ګوري وَإِلَى كَثْرَةِ الْأَشْغَالِ وَقِلَّتِهَا.اواد کارونو کثرت او قلت ته دے ګوري.

**حل اللغة**° ① **توفيق**: تطبيق ② **راغبين**: رغبت کونکی ③ **كسالى**: سستی کونکی ④ **ينظر، نظر نظراً** (ن): کتل

**تشريح:- الوجوه الثلاثة للتوفيق بين الروايات**◉ ① علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې په دے ټولو رواياتو کې وجه دتوفيق دا ده.چې مقتديان که د قرات په اوريدو کې رغبت ساتی.نو سل آياتونو پورې دے وائی.اوکه ناراسته اوستومانه کيدونکې وی.نو څلويښتو آياتونو پورې دے لولي.اوکه درميانے درجے واله خلګ وی.نود پنځوسو نه شپيتو پورې دے لولي.② د بعضو قول دا دې.چې د شپو اوږدوالی او لنډوالی ته به نظر کولې شي.يعنې د يخنۍ په شپو کې به زيات قرات لولي.او د ګرمۍ په شپو کښې دے کم قرات لولي.③ اوامام ته پکار دی.چې هغه د مقتديانو د کارونو د زيادت او کمی خيال هم ساتی.يعنې مقتديان که زيات بوخت وی.نو مختصر قرات دے کوی.اوکه اوزګار وی.نوزيات آيتونه دے لولي.

## په ماپښين کې د قرات مقدار

قَالَ (وَفِي الظُّهْرِ مِثْلَ ذَلِكَ) اود ماپښين په لمانځه کې دے ددے په څير لولي.لِاسْتِوَائِهِمَا فِي سَعَةِ الْوَقْتِ ځکه چې په دواړو کښې ګنجائش د وخت برابر وی

**حل اللغة**° ① **استواء**: برابر کيدل ② **سعة**: ګنجائش

**تشريح:- القراءة في الظهر مثل القراءة في الفجر**◉ د ماپښين په مانځ کې به ددے په څير قرات لولي.کوم قرات چې په سهار کښې ذکر شو.ځکه چې د وخت په فراخۍ کښې دواړه برابر دی.

**دليله**◉ او نقل دی.چې نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کې 《الم تنزيل السجدة》لوستله.او هم موږ ورانده روايت ذکر کړلو.چې نبي ﷺ د سهار په اولنی رکعت کې 《الم تنزيل السجدة》او په دوهم کې (هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ.......) لوستلے وو.نو ثابته شوه.چې نبي ﷺ د ماپښين په لمانځه کې هم هغه لوستل کړی دی.کوم چې نبي د سهار په دوو رکعتونو کې لوستی وو.

وَقَالَ فِي الْأَصْلِ.امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائيلي دی أَوْ دُونَهُ.يا دے د سهار نه کم لولي

**تشريح:- القراءة في الظهر دون القراءة في الفجر**◉ امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائلي دی.《 او دونه》يعنې د ماپښين په لمانځه کې دے د سهار په مقابله کې قرات کم وائی.

لِأَنَّهُ وَقْتُ الْإِشْتِغَالِ.ځکه چې د ماپښين وخت په کارونو کې دمشغولتيا وخت دې فَيُنْقَصُ عَنْهُ.نوځکه به پ کې د سهار نه کمے کوی تَحَرُّزًا عَنِ الْمَلَالِ.د ستړی والی نه د بچ کيدو دپاره.

**حل اللغة**° ① **اشتغال**: بوخت کيدل ② **تحرز**: بچ کيدل

**تشريح:- الدليل العقلي له**◉ ځکه چې د ماپښين وخت د مشغولتيا وخت دې.نوځکه به قرات کم وائی.چې په خلګو کښې ستړے والے پيدا نشي.

**الدليل النقلي له**◉ او ابوسعيد خدری رضي الله عنه روايت کړې دې.چې《أنه ﷺ كان يقرأ في الظهر قد ثلاثين آية وهو نحو سورة الملك》يعنې نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کې د ديرشو آياتونو په مقدار باندې وئيل.او دا د سورة ملک پشان.په مازيګر او ماسخوتن کښې د اوساط مفصل او ماښام کې د قصار مفصل قرات په ماذيګر، ماسخوتن، اوماښام کې د قرات مقدار

(وَالْعَصْرُ وَالْعِشَاءُ سَوَاءٌ او مازيګر او ماسخوتن دواړه برابر دی. يَقْرَأُ فِيهِمَا بِأَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ په دے دواړو کې به اوساط مفصل لولي وَفِي الْمَغْرِبِ دُونَ ذَلِكَ.او په ماښام کې به ددے نه کم، يَقْرَأُ فِيهَا بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ) د ماښام په لمانځه کښې به قصار مفصل لولي

**حل اللغة**° ① **يقرا، قرا قراءة** (ف): لوستل

**تشريح:**- صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چې د وخت د فراخۍ په صورت کې مازيګر اوماسخوتن دواړه برابر دی.نو په دے دواړو کې دے په اوساط مفصل سره قرات کوی. او د ماښام په لمانځه کې دے په قصار مفصل سره قرات کوی.

وَالْأَصْلُ فِيهِ.او اصل په دے اړه کې كِتَابُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِلَى أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رضی الله عنه ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته دحضرت عمر رضي الله عنه فرمان دې أَنْ اقْرَأْ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ.چې د ماپښين او سهار په لمانځه کې طوال مفصل لولې؛ وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ بِأَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ.اوپه مازيګر او ماسخوتن کې اوساط مفصل وَفِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ(۱) اوپه ماښام کې قصارمفصل

**تشريح:- الدليل النقلي لقراءة الصلواة الخمس**◉ علامه مرغيناني فرمائي.چې په ټولو مونځونو کښې د مستحب قرات په اړه کې اصل هغه فرمان دې.کوم چې خليفه ثانی امير المومنين سيدنا عمر بن الخطاب رضي الله عنه د ابوموسی اشعری رضي الله عنه په نوم ليږلے وو.《 أن إقرأ في ا لفجر والظهر بطوال المفصل وفي العصر و العشاء بأوساط المفصل وفي المغرب بقصار المفصل》يعنې د ماپښين او سهار په لمانځه کې طوال مفصل لوله.او په مازيګر او ماسخوتن

۱) غربه الزيلعى بهذا اللفظ ثم ذكراثارا ما تثبت هذا القدر المذكور فى المتن ومن اراد الاطلاع عليها فعليه الرجوع الى نصب الراية (نصب الراية ،۱۰/۹)_

کي اوساط مفصل او په ماښام کي قصار مفصل لوله.

وَلِأَنَّ مَبْنَى الْمَغْرِبِ عَلَى الْعَجَلَةِ، اوددے وجي چي د ماښام بنا (بنياد) په جلتئ دې. وَالتَّخْفِيفُ أَلْيَقُ بِهَا او د جلتئ سره مناسب تخفيف دې وَالْعَصْرُ وَالْعِشَاءُ يُسْتَحَبُّ فِيهِمَا التَّأْخِيرُ. او په مازيګر او ماسخوتن کي تاخير مستحب دې وَقَدْ يَقَعَانِ بِالتَّطْوِيلِ فِي وَقْتٍ غَيْرِ مُسْتَحَبٍّ. اوکله په اوږدوالی سره دا دواړه په غير مسحب وخت کښے واقع کيږي فَيُوَقَّتُ فِيهِمَا بِالْأَوْسَاطِ. نو په دے دواړو کي به په اوساط مفصل سره تحديد کولے شي.

حل اللغة: ① عجلة: تندی کول ② اليق: ډير مناسب

تشريح:- الدليل العقلی لها: عقلی دليل دا دې. چي د ماښام د لمانځه بنا (بنياد) په عجلت باندې دې. او عجلت سره مناسب تخفيف دې. او په مازيګر او ماسخوتن کي تاخير مستحب دې. نو که په دے کي اوږد قرات پيل کړی. نو دا دواړه مونځونه به ئې مستحب وخت کښ واقع شی. نو ځکه په دے دواړو کي د اوساط مفصل تعين کولې شی.

القولان في معرفة الطوال والاوساط والقصار: ① طوال مفصل د سورة حجرات نه تر سورة ،، ﴿ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ ﴾ ،، پورې دې. او اوساط مفصل د سورة بروج نه تر سورة ﴿ لَمْ يَكُنِ ﴾ پورې دې. او د ﴿ لَمْ يَكُنِ ﴾ نه تر آخره پورې قصار مفصل دې. ② اود ځيني فقهاؤ رائې دا ده. چې د سورة حجرات نه ترسورة عبس پورې طوال مفصل اود (إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ) نه تر (وَالضُّحَىٰ) پورې اوساط مفصل اود (وَالضُّحَىٰ) نه آخره پورې قصار مفصل دی.

دليله الاول: دليل د جابر بن سمره رضي الله عنه روايت دې. ﴿أن النبی ﷺ كان يقرأ في الركعتين الأولين من العصر (وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ) ،، و (وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ) يعنی نبی ﷺ به د مازيګر په اولنی رکعت کي (وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ) ،، او (وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ) ل وستل.

دليله الثانی: او دوهم دليل د معاذبن جبل رضي الله عنه حديث دې. ﴿أن قومه شكوا إلى رسول الله ﷺ تطويل قرائته في العشاء فقال له النبی ﷺ أفتان أنت يامعاذ أين أنت من (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) ،، و (وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا) يعنی د معاذ بن جبل رضي الله عنه قوم نبی ﷺ ته شکايت اوکړلو. چې معاذ دماسخوتن په لمانځه کښې اوږد قرات وائی. نو نبی ﷺ معاذ رضي الله عنه ته اوفرمائيل. اے معاذه ته خلګ ولے په فتنه کي اخته کول غواړې. چرته تلے ئې. د (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى) او د (وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا) نه. يعنی دا دواړه سورتونه ولے نه لولې. بهر حال دا دواړه روايات په دے خبره دلالت کوی. چې په مازيګراو ماسخوتن کي د اوساط مفصل نه قرات کول مستحب او غوره دې.

دليله: او دليل دا روايت دې. ﴿ أنه ﷺ قرأ في صلاة المغرب بالمعوذتين﴾ يعنی نبی ﷺ د ماښام په لمانځه کي د معوذتينو قرات کړې وو.

## د صبا د اولنی رکعت په دوهم رکعت اوږدوالی

(وَيُطِيلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى مِنَ الْفَجْرِ عَلَى الثَّانِيَةِ) او د سهار اول رکعت دے په دوهم رکعت اوږدوی إِعَانَةً لِلنَّاسِ عَلَى إِدْرَاكِ الْجَمَاعَةِ. چې خلګ جماعت رالاندې کړی.

حل اللغة: ① يطليل، اطال اطالة: اوږدول ② ادراک: موندل

تشريح:- تطويل الركعة الاولى على الثانية في الفجر: مسئله: د سهار لومړې رکعت په دوهم باندې اوږدول پکار دی. يعنی په اول رکعت کښے دے قرات زيات وائی. او په دوهم رکعت کي دے ددے په نسبت کم قرات کوی. ځکه چې د نبی ﷺ نه تر نن زمانے پورې هم دا طريقه راروانه ده. اودويمه خبره دا ده. چې په پوره لمونځ رالاندې کاوه کي به خلګو سره کومک اوشی.



## د ماپښين په دوو رکعتونو کي د قرات د مقداربيان

قَالَ (وَرَكْعَتَا الظُّهْرِ سَوَاءٌ) فرمايی او د ماپښين دواړه رکعتونه برابر دی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله او دا د ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز دی

حل اللغة: ① احب: ډيرخوښ

تشريح:- الاختلاف في تطويل الركعة الاولى على الثانية فيالظهر: په ماقبل مسئله کښے ئے اوفرمائيل. چې د سهار په لمانځه کي به په اتفاق سره اولنی رکعت ته په دوهم باندې طول ورکولې شی. ① او ددے نه سوا په نورو مونځونو کښے د شيخينو رحمهما الله مذهب دا دې. چې دواړه رکعتونه به برابر وی. اولنی آيت ته به په دوهم آيت باندې طول نشی ورکولې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله. او امام محمد رحمه الله فرمائی. أَحَبُّ إِلَيَّ چې زما دا زياته خوښه ده. أَنْ يُطِيلَ الرَّكْعَةَ الْأُولَى عَلَى غَيْرِهَا فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا(1) چې په ټولو مونځونو کي اول رکعت په دوهم باندې اوږد کړی لِمَا رُوِيَ. ځکه چې روايت شوې دې {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُطِيلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى عَلَى غَيْرِهَا فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا} چې نبی ﷺ به په ټولو مونځونو کي لومړې رکعت په دوهم رکعت باندې اوږدولو

حل اللغة: ① يطيل، اطال اطالة: اوږدول

تشريح:- امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی. چې په ټولو مونځونو کي اولنی رکعت ته په دوهم باندې طول ورکول مستحب دی.

دليله: دامام محمد رحمه الله دليل د ابوقتاده رضي الله عنه روايت دې. ﴿أن النبی ﷺ كان يطيل الركعة الأولى على غيرها في الصلوات كلها﴾

وَلَهُمَا. او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دی. أَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ اسْتَوَيَا فِي اسْتِحْقَاقِ الْقِرَاءَةِ چې دواړه رکعتونه په استحقاق د قرات کي برابر دی فَيَسْتَوِيَانِ فِي الْمِقْدَارِ. نو په مقدار کي به هم برابر وی بِخِلَافِ الْفَجْرِ. ددے په خلاف د سهار لمونځ دې. لِأَنَّهُ وَقْتُ نَوْمٍ وَغَفْلَةٍ ځکه چې چې د سهار وخت د خوب او د غفلت وخت دې.

تشريح:- دليل الشيخين رحمهما الله: اود شيخينو رحمهما الله دليل دا دې. چې د قرات په استحقاق کي دواړه رکعتونه برابر دی. ځکه چې په دواړو رکعتونو کي قرات رکن دې. نو چې د قرات په استحقاق کي دواړه برابر دی. نو په مقدار کي به هم برابر وی. په خلاف د سهار د لمانځه ، ځکه چې د سهار وخت غير اختياری طور د خوب او غفلت وی. نو په واړه لمونځ کي د خلګو د شرکت لپاره دے اول رکعت اوږد کړی.

وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى الْإِطَالَةِ او حديث په اوږدوالی باندې محمول دې. مِنْ حَيْثُ الثَّنَاءُ وَالتَّعَوُّذُ وَالتَّسْمِيَةُ د ثناء، تعوذ او تسميې په اعتبار سره

حل اللغة: ① تعوذ: پناه غوښتل، اعوذبالله وئيل ② تسمية: نوم کيخودل، دَ الله تعالی نوم اخستل، بسم الله وئيل

تشريح:- الجواب من مستدل محمد: د ابوقتاده رضي الله عنه د حديث ځواب دا دې. چې لومړې رکعت ددے وجې اوږد وی. چې په دے کي ﴿سبحانك اللهم ،، أعوذ بالله ،، او ،، بسم الله﴾ لوستلے شی. اوپه دوهم رکعت کي نشی لوستې. او پاتے شو حق دقرات، نو په دے کي دواړه برابر دی.

---

1) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی التارخانية (۴۵۶/۱) وردالمحتار (۴۰۱/۱) وفتح القدير (۲۹۳/۱) والهندية (۷۸/۱) نقلا عن القول الراجح (۸۶/۱)_

وَلَا مُعْتَبَرَ بِالزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ بِمَا دُونَ ثَلَاثِ آيَاتٍ او د درے آیتونو نه په کم کي د زیادت او کمی څه اعتبار نشته. لِعَدَمِ إِمْكَانِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ حَرَجٍ ځکه چې د حرج نه بغیر ددے نه بچ کیدل ممکن نه دی.

**حل اللغة*** ① احتراز: بچ کیدل، ډډه کول

**تشریح:- القدر المعتبر في الزيادة** ۞ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چې د درے آیتونو نه په کم مقدار کي زیادت او کمے معتبر نه دي. یعنی که په یو رکعت کښے نې د درے آیاتونو نه زیات اوونیل. په نسبت سره د دوهم رکعت ته. نو دا زیادت معتبر نه دي. اوکه یو یا دوې (دوه) آیاتونه وی. نو ددے اختبار هم نشته. او په صحیح روایت کي دی. چې په خپله نبی ﷺ د ماښام په لمانځه کي ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ ونیلے شی. حالانکه په ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ کي پنځه، او په ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ کي شپږ آیاتونه دی. یعنی په سورة والناس کي په نسبت سره سورة فلق ته یو آیت زیات دې.

## د قرات لپاره د سورت مقرر کولو حکم

(وَلَيْسَ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ قِرَاءَةُ سُورَةٍ بِعَيْنِهَا) په هیڅ لمونځ کي د مقرر سورت لوستل نشته. لَا يَجُوزُ غَيْرُهَا چې د هغې نه سوا بل جائز نه وی. لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا ددے آیت د اطلاق د وجې کوم چې موږ تلاوت کړلو.

**حل اللغة*** ① لایجوز، جاز جوازا(ن): جائز کیدل

**تشریح:- تعیین سورة او اية لصلاة** ۞ مسئله دا ده. چې په یو لمونځ کي داسې په تعین سره یو معین سورت ونیل چې د هغې نه سوا په بل باندې لمونځ جائز نه وی. تیک نه ده. دلیل دا الله تعالی د قول (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) اطلاق دې. اود اطلاق تقاضا دا ده. چې هیڅ یو سورت متعین نه وی.

(وَيُكْرَهُ أَنْ يُوَقِّتَ بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ لِشَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ) او د یولمونځ لپاره د قرآن پاک د څه حصې متعین کول هم مکروه دی. لِمَا فِيهِ مِنْ هَجْرِ الْبَاقِي ځکه چې په دے کي د پاته قرآن پریښول لازمیږی وَإِيهَامِ التَّفْضِيلِ. اود تفضیل وهم راتګ (لازمیږی)..

**حل اللغة*** ① یوقت، وقت توقیتا: معین کول ② ایهام: وهم کي پریوتل

**تشریح:- کراهة تعین سورة او اية** ۞ اودیولمونځ لپاره د څه سورت یا آیت تعین کول مکروه دی. ① ځکه چې په دے کښے یوخود پاتی قرآن پریښول لازمیږی ② او دوهم د تفضیل وهم پیدا کیږی. چې دا سورت د قرآن په نورو سورتونو باندې افضل دې. حالانکه په افضیلت کښے واړه قرآن برابر دې.

## د قرات خلف الامام شرعی حکم

(وَلَا يَقْرَأُ الْمُؤْتَمُّ خَلْفَ الْإِمَامِ) او مقتدی به په امام پسې شاته قرآت نه کوی

**حل اللغة*** ① لایقرا، قرا قراءة (ف): لوستل

**تشریح:- الاختلاف في الفاتحة خلف الامام** ۞ ① امام قدوری رحمه الله د احنافو رحمهم الله مسلک نقل کوی. اوفرمائی. چې مقتدی به په امام پسے بیخی قرات نه وائی. نه فاتحه او نه سورت، که جهری لمونځ وی اوکه سری لمونځ وی.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رحمه الله فِي الْفَاتِحَةِ امام شافعی رحمه الله په فاتحه کي مخالف دې. لَهُ دا امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې. أَنَّ الْقِرَاءَةَ رُكْنٌ مِنَ الْأَرْكَانِ چې قرات په ارکانو کي یو رکن دې. فَيَشْتَرِكَانِ فِيهِ نو په دے کي به امام او مقتدی دواړه شریك وی.

**تشریح:-** دامام شافعی رحمه الله په سورة فاتحه کي اختلاف دې. یعنی په مقتدی باندې د امام شاه ته فاتحه [...]یل واجب ده. دامام شافعی رحمه الله قدیم قول خو دا دې. چې په مقتدی باندې په سری منځ کښے چې په



کومو رکعتونو کي جهر نه وی. په هغې کښ فاتحه ونیل واجب دی. هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې.

**الدلیل العقلی للشافعی رحمه الله** ۞ دامام شافعی رحمه الله عقلی دلیل دا دې. چې قرات یو رکن دې. او په ټولو ارکانوکي امام او مقتدی دواړه شریك وی. مثلاً قیام، رکوع، سجده وغیره کي دواړه شریك دی. نو په قرات کي به هم دواړه شریك وی.

**الدلیل النقلی له** ۞ او نقلی دلیل د ابوعباده رضی الله عنه حدیث دې. فرمائی. «صلى بنا رسول الله ﷺ الصبح فثقلت عليه القراءة فلما انصرف قال إني لأراكم تقرءون خلف إمامكم قلنا أجل: قال لاتفعلوا ذلك إلا بفاتحة الكتاب فإنه لا صلاة لمن يقرأبها» یعنی رسول الله ﷺ موږ ته د سهار لمونځ راکولو. نو په دوی باندې لوستل ګران شو. لکه چې نبی ﷺ سلام اوګرځولو. نو وے فرمائل. زه وینم. چې تاسو په خپل امام پسې شاه ته قرات وائې. موږ عرض وکړلو. آو. نبی ﷺ اوفرمائیل. داسې مکوئ. مګر په فاتحة الکتاب سره، ځکه چې څوك فاتحه اونه وائی. د هغه لمونځ نه کیږی.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې. {مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ}(1) چې د کوم مقتدی امام وی. نو د امام قرات دهغه پاره قرات دې.

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ۞ او زموږ دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې. «من كان له إمام فقراءة الإمام له قراءة» ترجمه د استدلال دا ده. چې دامام قرات حکماً د مقدی لپاره کافی کیږی. نو هرکله چې د مقتدی لپاره حکماً قرات موجود شو. نو اوس به مقتدی دوباره قرات نه کوی. ګنی د مقتدی به دوباره قرات کول لازم شی. حالانکه په لمانځه کي دوباره قرات کول مشروع نه دې.

وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ رضی الله عنهم او په دے باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع ده

**تشریح:- دعوی اجماع الصحابة و السوال علیه** ۞ علامه مرغینانی فرمائی. چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع هم په دے باندې ده. چې مقتدی به په امام پسې قرات نه کوی. خو په دے باندې دا اعتراض کیږی. چې ځینې حضرات صحابه رضی الله عنهم د قرات خلف الامام د وجوب قائل دی. لکه عبادبن صامت رضی الله عنه

**الجواب الاول من السوال وضعه** ۞ ددے اعتراض ځواب دا دې. چې دلته د اکثرو صحابو اجماع مراد ده. اتیا صحابه کرامو رضی الله عنهم د قرآت فاتحه خلف الامام انکار کړې دې. امام شعبی رحمه الله فرمائی. چې ما اویا بدریان صحابه کرام لیدلی وو. چې د قرات فاتحه خلف الامام نه ئې منع کوله. خود داویا یا اتیا صحابو تعداد داکثرو صحابو تعداد نه دې. نو ځکه دے ته د اکثرو صحابو اجماع ونیل تیك نه دی.

**الجواب الثانی** ۞ ځینې حضراتو ددے ځواب دا ورکړې دې. چې د مجتهدین صحابو او لویو صحابو اجماع مراده ده. او مجتهدین صحابه رضی الله عنهم دا دی. ① ابوبکر صدیق ② عمربن الخطاب ③ عثمان بن عفان ④ علی بن ابی طالب ⑤ عبدالرحمن بن عوف ⑥ سعدبن ابی وقاص ⑦ عبدالله بن مسعود ⑧ عبدالله بن عمر ⑨ عبدالله بن عباس ⑩ زید بن ثابت رضی الله عنهم اجمعین.

**احتمال اجماع السکوتی** ۞ یواحتمال دا هم موجود دې. چې کوم حضرات د قرات فاتحه خلف الامام قائل دی. د هغوی رجوع ثابته ده. نو په دے صورت کښ به اجماع تامه شی. او دا ونیلی شی. چې کله ددے لس لویو صحابو رضی الله عنهم نه نفی ثابته ده. اوددوی خلاف د یو صحابی رد ثابت نه دې. حالانکه په هغه وخت کي د صحابو رضی الله عنهم لونې شمار موجود وو. نو دا اجماع سکوتی شوه.

وَهُوَ رُكْنٌ. اودا قرات داسې رکن دې. مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا چې د امام او مقتدی په مینځ کي مشترك دې. لَكِنْ حَظُّ

1) رواه ابن ماجه فی سننه فی الاقامة باب ۱۳، رقم الحدیث ۸۵۰، بروایة جابر رضی الله عنه والدارقطنی فی سننه (۱/۳۲۵، ۳۲۶) بروایة ابن عمر)_

الْمُقْتَدِي الْإِنْصَاتُ خو د مقتدي حصه چوپ پاتې كيدل دي وَالِاسْتِمَاعُ. او غوږ كيخودل او ريدل دي قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبي ﷺ فرمائيلي دي. {وَإِذَا قَرَأَ الْإِمَامُ كله چې امام قرات كوي فَأَنْصِتُوا} .نو تاسو چوپ اوسئ.

تشريح:- **الجواب عن الدليل العقلي**۞ پاته شوه. دامام شافعي رحمه الله دا وينا چې قرات د امام او مقتدي كي مشترك ركن دي. نو موږ دا منو. خو د مقتدي حصه چوپ پاتې كيدل دي. او غوږ كيخودل اوريدل دي.

**وظيفة المأموم هى الانصات**۞ ① نبي ﷺ فرمائيلي دي. «إذا قرء فانصتوا» كله چې امام قرات كوي. نو تاسو چوپ اوسئ. ② او دالله تعالى ارشاد دي. ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ يعنى كله چې قرآن لوستلے شي. نو تاسو غوږ ايږدئ .اوچپ اوسئ. اودا آيت د لمونځ په اړه كي نازل شوې دې. ځكه چې د ابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي. چې «إن أصحاب رسول الله ﷺ قرأوا خلفه فخلطو عليه القراءة فنزلت» يعنى د رسول الله ﷺ صحابو په نبي ﷺ پسې قرات لوستلو. نو نبي ﷺ باندې په قرات كي ګډوډے راغلو. نو دا آيت نازل شو.

**حديث ابى هريرة تفصيلاً**۞ دغه ډول د ابوهريره ﷺ نه روايت دې. «أنه ﷺ قال إنما جعل الإمام ليؤتم به فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتو» يعنى امام ددے لپاره مقرر شوي دې. چې دده اقتداء اوكړې شي. كله چې هغه تكبير واني. نو تاسو هم تكبير واني. او كله چې هغه قرات واني. نو تاسو چوپ اوسئ.

وَيُسْتَحْسَنُ عَلَى سَبِيلِ الِاحْتِيَاطِ. او (د مقتدي سورة فاتحه لوستل) د احتياط لپاره مستحب دي فِيمَا يُرْوَى عَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله. په هغه قول كي كوم چې د امام محمد رحمه الله نه نقل دې.

تشريح:- **رواية استحباب القراءة عن محمد رحمه الله**۞ دامام محمد رحمه الله نه يو روايت دا دې. چې د احتياط لپاره قرات فاتحه خلف الامام مستحسن دې. ځكه چې د عباده بن صامت ﷺ حديث وړاندې تير شو. چې «لاتفعلوا ذلك إلا بفاتحة الكتاب فإنه لا صلاة لمن لم يقرأها»

وَيُكْرَهُ عِنْدَهُمَا[1] او د شيخينو رحمهما الله په نيز مكروه ده. لِمَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ ځكه چې د مقتدي لوستلو كي وعيد راغلے دې.

تشريح:- **كراهة القراءة عندالشيخين رحمهما الله**۞ او د شيخينو رحمهما الله په نيز قرات خلف الامام مكروه دے. ځكه چې د قرات خلف الامام په اړه كي وعيد راغلے دې.

**روايات وعيد القراءة خلف الامام**۞ ① چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. «من قرأ خلف الإمام ففى فيه جمرة وقال قد خطأ السنة» كوم كس چې په امام پسې قرات اووائي. نو دهغه په خوله كي سكروټه واچوئ. اووے فرمائيل. چې دده سنت نه خلاف اوكړلو. ② او د سعد بن ابى وقاص ﷺ نه نقل دي. «أنه قال من قرأ خلف الإمام فسدت صلاته» يعنى كوم كس چې په امام پسې قرات اووئيل. نو د ده لمونځ فاسد شو. ③ او دحضرت عمربن خطاب ﷺ نه نقل دي. «قال ليت فى فم الذى يقرأ خلف الإمام حجراو غير ذلك» عمربن خطاب ﷺ فرمائي. كوم كس چې په امام پسې قرات واني. كاش چې دده په خوله كښے كاڼړے وې.

## دامام د قرات په وخت كي د مقتدي لپاره حكم

(وَيَسْتَمِعُ) او مقتدي به غوږ اړدي وَيُنْصِتُ. اوچوپ به وي وَإِنْ قَرَأَ الْإِمَامُ آيَةَ التَّرْغِيبِ وَالتَّرْهِيبِ. اګرچې امام د ترغيب يا د ترهيب ايت ووايي.

**حل اللغة**: ① **ترغيب**: رغبت وركول ② **ترهيب**: ويرول ③ **تعوذ**: اعوذبالله لوستل، پناه غوښتل ④ **سامع**: اوريدونكې ⑤ **احوط**: ډير احتياط كونكې

[1] القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير (۲۹۷\۱) والكفاية (۲۹۷\۱) وردالمحتار (۴۰۲\۱) نقلا عن القول الراجح —



تشريح:- **عدم قراءة المأموم بسماع اية رغبة او رهبة**۞ مسئله دا ده. چې امام كله قرات كوي. نو مقتدي به غوږ اړدي. اوري به اوچوپ به وي. اګرچې امام د ترغيب يا ترهيب آيت اووائي.

لِأَنَّ الِاسْتِمَاعَ وَالْإِنْصَاتَ فَرْضٌ بِالنَّصِّ ،ځكه چې غوږ لګول اوچوپ كيدل قرآني فرض دې

تشريح:- **دليله**۞ دليل دا دې. چې غوږ لګول، آوريدل، اوخاموش پاتې كيدل د نص قرآن ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ نه ثابت دي. اوپه امام پسے روستو قرات كول دجنت سوال كول او د دوزخ نه پناه غوښتل دا واړه شيان (څيزونه) په استماع او انصات كي خلل پيدا كوي. نو ځكه به په دے كي يو كار هم نه كوي.

وَالْقِرَاءَةُ. او قرات كول وَسُؤَالُ الْجَنَّةِ او جنت غوښتل وَالتَّعَوُّذُ مِنَ النَّارِ او د اور نه پناه غوښتل كُلُّ ذَلِكَ مُخِلٌّ بِهِ داواړه مخل خلل راوستونكي دي وَكَذَلِكَ فِي الْخُطْبَةِ. اوهم دا حكم په خطبه كي دې

تشريح:- **لايدعوا الامام جنة**۞ پاته شوه دا خبره چې امام يا منفرد به دجنت سوال يا د دوزخ نه پناه غواړي كه نه؟ نو په دے اړه كښے په كتاب كښے څه ذكر نه دي.

**دليله الاول**۞ البته صاحب د عنايه رحمه الله ليكلي دي. چې امام به دا كار نه په فرض لمونځ كي كوي اونه په نفل كي ،ځكه چې دا نه د نبي ﷺ نه منقول دي. اونه د دوى نه روسته داامامانو نه منقول دي.

**دليله الثانى**۞ دوهم دليل دا دې. چې امام به داسې دعاګانے غواړي. چې په مقتديانو باندې د تطويل صلاة باعث نشي. ځكه چې دا مكروه دي. نوځكه به هم امام دا كار نه كوي.

**لايدعوا المنفرد جنة في الفرض**۞ دغه ډول به منفرد هم چې كله فرض لمونځ كوي. نودا دعاګانے به د فرض لمونځ په مينځ كي نه غواړي. ځكه چې د نبي ﷺ نه منقول نه دي. اونه د هغوى نه روسته د امامانو نه منقول دي.

**جوازدعاء الجنة والتعوذ من النار في النوافل**۞ اوكه نفل كوي. نو نودجنت سوال كول او د اور نه پناه غوښتل بهتر دي.

**دليله**۞ ځكه چې دحضرت حذيفه ﷺ حديث دې. «صليت مع رسول الله ﷺ صلاة الليل فما مر بآية فيها ذكر الجنة إلا وقف وسأل الله الجنة فما مر بآية فيها ذكر النار إلا وقف وتعوذ بالله من النار» فرمائي. چې ما رسوالله ﷺ سره د شپې لمونځ كولو. نو په داسې آيت چې د جنت ذكر به پكي وو. نه به تيريدلو. مګر ودريدلو به، او د جنت سوال به ئې كولو. اوپه داسې آيت چې د جهنم ذكر به پكښے وو. په هغې به نه تيريدلو. مګر نبي ﷺ به ودريدلو. اود جهنم څخه به ئې پناه غوښتله.

(وَكَذَلِكَ إِنْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ). وهم دغه شان چې خطيب په خطبه كي په نبي ﷺ باندې درود ووايي لِفَرْضِيَّةِ الِاسْتِمَاعِ. ځكه چې خطبه اوريدل فرض دي إِلَّا أَنْ يَقْرَأَ الْخَطِيبُ قَوْلَهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ «الآية. مګر دا چې خطيب د الله تعالى قول ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ ووايي فَيُصَلِّي السَّامِعُ فِي نَفْسِهِ. نو ددے آيت اوريدونكې به په خپل زړه كي درود ووايي

تشريح:- **الانصات في الخطبة**۞ دغه ډول كه خطيب په خطبه كي وي. نو قوم به غوږ ايږدي. اوخطبه به په آرام سره اوري. ځكه چې ابوهريره ﷺ نه روايت دې. «أن النبى قال من قال لصاحبه والإمام يخطب أنصت فقد لغا ومن لغا فلا صلاة له» نبي ﷺ فرمائي. چې كوم كس د خطبه په مهال كي خپل انډيوال ته اووئيل. چپ شه. نو ده لغو خبره اوكړه. اوچا چې لغو خبره اوكړله. نو دهغه لمونځ نه كيږي.

**الانصات عند سماع الصلاة على النبى ﷺ**۞ دغه ډول كه امام په خطبه كښے په نبي ﷺ باندې درود اووائي. نو بيا به هم قوم چوپ وي. او غوږ به ايږدي اوري به،

**دليله**: دليل دا دی چې «الصلاة على النبي ﷺ» فرض نه دي. او د خطبة اوريدل فرض دی. نو د غير فرض د وجې به فرض نشي پريښولی (پريخودی). البته که خطيب دخطبې په مهال کې دا آيت اولوستلو. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا﴾ نو ددے آيت اوريدونکی به په زړه کې درود شريف وائی.

**ايضاح العبارة السابقة**: حاصل دا دی. چې د خطبې په مهال کښې درود شريف ونيل ممنوع دی. مگر کله چې خطيب دا آيت اووائی. نوپه دغه وخت کې په زړه کې درود شريف ونيلی شی. دليل دا دی. چې الله تعالی نه حکايت اوکړلو. چې هغه په نبی ﷺ باندې درود وائی. اوحکايت ئې اوکړلو. چې فرښتے هم په هغوی باندې درود وائی. او الله تعالی د درود ونيلو حکم ورکړی دی. حالانکه پخپله د دوی سره بوخت دی. نو په قوم باندې هم واجب دی. چې هغه په درود ونيلو کې بوخت شی. دے لپاره چې هغه شی متحقق شی. د کوم چې د دوی نه مطالبه شوې ده. دا حکم په هغه وخت کې دی. کله چې دے منبر سره نزدے وی.

| |
|---|
| **وَاخْتَلَفُوا فِي النَّائِي عَنِ الْمِنْبَرِ** او کوم کس چې په منبر وی. دهغه په اړه کې اختلاف دی **وَالْأَحْوَطُ هُوَ السُّكُوتُ** او په سکوت کې احتياط دی **إِقَامَةً لِفَرْضِ الْإِنْصَاتِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ**. د فرض انصات قائم پاتې کولو دپاره، والله اعلم. |

**تشريح:- الروايتان في سكوت من كان بعيداً من المنبر**: اوکه يو کس دمنبر نه لرې وی. نو د هغه په حق کې اختلاف دی. يعنی که د منبر نه دومره لرې وی. چې خطبه نشی اوريدی. نو په داسې صورت کې د قرآن قرات غوره دی. کهچوپ والے نو په دے اړه کې د محمد بن سلمه رحمه الله نه روايت دی. چهچوپ اوسيدل غوره دی. هم دا قول امام کرخی رحمه الله اختيار کړی دی. او هم دا د مصنف رحمه الله مختار مذهب دی.

**دليله**: دليل دا دی. چې د قرآن پاك قرات اوريدل اوچپ اوسيدل دوې (دوه) فرض دی. نو که دلرې والی د وجې اوريدل ممکن نه وی. نو دوهم فرض چې چوپ اوسيدل دی. ممکن دے نو دا به قائم ساتی.

② او امام فضلی رحمه الله فرمائی. چې قرات د قرآن غوره دی.

**دليله**: او دليل دا دی. چې دچوپ اوسيدو حکم په دے وجه وو. چې د قرآن په اوريدو کې تدبر اوکړی. اوچې اوريدل ترے فوت شو. نو د قرآن قرات دے کوی. چې د قرآن لوستلو ثواب حاصل کړی.

## باب الإمامة

ژباړه:- (دا) باب د امامت (د احکامو په بيان کې) دی

### د جماعت شرعی حیثیت

| |
|---|
| **الْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ** جماعت سنت مؤکده دی. **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. {**الْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى** جماعت د سنن هدی څنے دی **لَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ**}[1]. ددے څخه به نه پاتې کيږی. مگر منافق. |

**حل اللغة**: ① **لايتخلف، تخلف تخلفا**: روستو پاتې کيدل

**تشريح:- الربط بما قبله**: مصنف رحمه الله وړاندې د امام د افعالوذکر اوکړل. يعنی وجوب جهر او جوب اخفاء تحديد د قرات او د مقتدی د افعالو ذکر ئې اوکړلويعنی وجوب استماع او انصات. اوس دلته د امامت د مشروعيت صفت بيانوی. نو د ټولونه وړاندې د امام ذکر کوی. په دے پسې د امامت دخواصو بيان دی.

**حکم الجماعة**: جماعت سنت مؤکده دی. ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. جماعت د سنن هدی څنے دی. ددے څخه به صرف منافق پاتې کيږی.

**قسمي السنة**: سنت په دوه قسمه دی. سنن هدی او دوهم سنن زائد. ① سنن هدی هغه دی. په کوم باندې چې

[1] حديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رواه مسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ۲۵۶، و ۲۵۷)_



نبی کريم ﷺ په طريق د عبادت مواظبت کړی وی. خو کله کله ئې پريښولی (پريخودی) وی. ددے پريښول ضلالت دی. اودا په شعائرو داسلام کې دی. ② اوسنت زائده هغه دی. کوم چې نبی ﷺ په طريقه دعادت کړی وی. ددے په پريښولو کې څه حرج نشته. لکه د تهجدو مونځ. بهرحال جماعت سنت مؤکده دی. بغير د عذر نه ددے پريښول جائز نه دی. ترڅو چې که د يو ښار خلگ جماعت پريږدی. نوهغوی ته به د جماعت د لمونځ کاوه حکم کولے شی. که هغوی په دے باندې عمل اوکړلو. نو ډيره ښه ده. گنی هغوی سره قتال کول جائز دی.

**دلائل سنية الجماعة موكداً**: د جماعت د سنت مؤکده کيدو تائيد ددے احاديثو نه هم کيږی. کوم چې د جماعت په فضيلت کې راغلی دی ① د نبی ﷺ ارشاد دی. «صلاة الجماعة افضل من صلاة احدكم وحده بخمسة وعشرين درجة» يعنی د جماعت لمونځ د خانله لمونځ په نسبت يو په پنځويشت درجے افضل دی. او په يو روايت کې دی. چې په اوويشت درجے افضل دی. ② امام ابوداؤد، ترمذی، او ابن ماجه د ابی بن کعب رضي الله عنه په حديث کې روايت کړی دی. «صلاة الرجل مع الرجل ازكى من صلاته وحده، وصلاة الرجل مع الرجلين ازكى من صلاته مع رجل وما زاد فهو احب الى الله تعالى» يعنی د دوو کسانو جماعت د ځان له کس دلمونځ نه غوره دی. اوددوو کسانو لمونځ د درے کسانو دجماعت نه غوره دی. او څومره چې زيات وی. دالله تعالی خوښ وی.

**رواية الوجوب عن محمد**: د حضرت امام محمد رحمه الله نه د اصول د روايت نه بغير نقل شوی دی. چې جماعت واجب دی. په احنافو رحمهم الله کې عامو مشائخ ددے قائلين دی.

**دليل الوجوب**: دليل د نبی ﷺ دا قول دے «لقد هممت ان امر المؤذن فيؤذن ثم آمر رجلاً فيصلي بالناس ثم انطلق برجال مع حزم الحطب الى قوم يتخلفون عن الصلاة فاحرق عليهم بيوتهم بالنار» يعنی نبی ﷺ فرمائی. چې ما اراده کړې وه. چې مؤذن ته حکم اوکړم. چې هغه اذان اوکړی. او بيا زه يوکس ته حکم اوکړم. چې هغه خلگو ته لمونځ ورکړی. او بيا څه خلگ چې هغوی سره لرگی وی. واخلم. اوداسے خلگو اړخ ته ورشم. څوك چې د لمونځ نه روستو پاتې کيږی. او بيا په هغوی باندې د هغوی کورونه اوسوزوم. په دے حديث کښې بيخی د لمونځ پريښول مراد نه دی. بلکه د جماعت لمونځ پريښول مراد دی.

**مذهب من يفرض الجماعة عيناً**: امام احمد بن حنبل او داود ظاهری رحمهما الله فرمائی. چې جماعت فرض عين دی. دا حضرت په «لا صلاة لجار المسجد الا في المسجد» باندې استدلال کوی. يعنی چې د جمات په گاونډ کې اوسيږی. د جمات نه سوا د هغه لمونځ نه کيږی.

**الجواب**: زموږ د اړخه ددے ځواب دا دی. چې په حديث کې د صلاة کامله نفی ده. لکه څنګه چې «لا صلاة للعبد الآبق ولا للمرأة الناشزة» کې د کامل لمونځ نفی شوې ده.

**من يفترضها كفاية**: دامام کرخی اودشافعی رحمهما الله د اکثرو ملگرو په نيز جماعت فرض کفايه دی. د دوی دليل دا دی. چې مقصودی فرض دا شعائر اسلام ښکاره کول دی. اودا مقصود په بعضو کسانو باندې حاصليږی.

**ضعف هذا القول**: خودا استلال ډير کمزورے دی. ځکه چې د نبی ﷺ په زمانه کې په جمات کې جماعت کيدلو. ددے باوجود نبی ﷺ د جماعت د پريخودونکو لپاره سخت وعيد بيان کړی دی. والله اعلم بالصواب

### د امامت زيات حقدار

| |
|---|
| **وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ** وهغه دامامت لپاره ښه حقدار دی **أَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ**[1] کوم کس چې د ټولونه زيات په سنت عالم وی. **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** . او ابويوسف رحمه الله نه مروی دی. **أَقْرَؤُهُمْ** چې په دوی کې زيات قاری |

[1] القول الراجح هو قول الطرفين كذا في رد المحتار (۴۱۲/۱) والبحرالرائق (۶۰۷/۱) ومراقي الفلاح (ص،۱۶۳) ومجمع الانهر (۱۰۷/۱) والهندية (۸۳/۱) نقلا عن القول الراجح (۸۷/۱)_

حقدار دي. وَلِأَنَّ الْقِرَاءَةَ لَابُدَّ مِنْهَا، ځکه چې قرات د لمانځه لپاره ضروری دي وَالْحَاجَةُ. او دعلم حاجت په هغه وخت کېږي وی. إِلَى الْعِلْمِ إِذَا نَابَتْ نَائِبَةٌ، کله چې څه واقعه پېښه شی وَنَحْنُ نَقُولُ. او موږ وایو. الْقِرَاءَةُ مُفْتَقَرٌ إِلَيْهَا لِرُكْنٍ وَاحِدٍ چې قرات ته احتیاج د یو رکن لپاره وی وَالْعِلْمُ لِسَائِرِ الْأَرْكَانِ اوعلم ته احتیاج د ټولو ارکانو لپاره وی.

**حل اللغة:** ① لابد: ضروری، د کوم نه چې بغیرڅه لار نه وی ② نقول، قال قولاً(ن): وینا کول ③ سائر: واړه

**تشریح:- الاختلاف فیمن هو احق بالامامة** ① د امامت د ټولو نه زیات مستحق هغه کس دي. څوک چې سنتو باندې زیات واقف وی. یعنی دهغه احکامو زیات پیژندونکے وی. کوم چې د لمانځه سره متعلق وی. مثلاً د لمانځه شرطونه د لمانځه ارکان د لمانځه سنتونه اودد ے آداب، خو په دے شرط چې «ما یجوز به الصلاة» قرات باندې قدرت لری. ② دامام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دا دی. چې د امامت زیات حقدار هغه دي. څوک چې د قرآن په قرات کې د ټولو نه زیات ښه وی. خو په دے شرط چې په قدر د ارتیا علم ورته وی.

**دلیل ابی یوسف رحمه الله** دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی. چې قرات د لمانځه یو داسے رکن دی. چې د دے نه خلاصے نشته. او دعلم ارتیا په هغه وخت کښې پیښیږی. کله چې څه فاسدونکے عارض پیښ شی. چې د دے په ذریعه لمونځ د فساد نه بچ کړی. اوعارض په لمانځه کښے کله پیښیږی. او که نهٔ. نو معلومه شوه. چې د قرات علم زیات ضروری دی. په نسبت سره د سنتو علم ته، نو ځکه ،،اقرا،، په ،،عالم بالسنة،، باندې مقدم کولے شی.

**الجواب عن دلیل ابی یوسف رحمه الله** خو موږ د طرفینو رحمهما الله د اړخه ځواب ورکوو. چې قرات ته احتیاج د یو رکن لپاره وی. او علم ته احتیاج دټولو ارکانو لپاره وی. ځکه چې په کومو څیزونو چې لمونځ ماتیږی. د هغې پیژندنه هم دعلم په ذریعه کیږی. او په کوموڅیزونو چې لمونځ صحیح کیږی. دهغې پیژندل هم د علم په ذریعه کیږی. نو ثابته شوه. چې د علم ارتیا د قرات په نسبت سره زیات دي. نو ځکه به ،،اعلم بالسنة،، ته په ،،اقرا،، باندې تریح ورکولے شی.

**تائید قول الطرفین رحمهما الله بالحدیث** د طرفینو دقول تائید د حاکم په رویت سره هم کیږی. نبی ﷺ فرمائیلی دی. «یؤم القوم أقدمهم هجرة فإن کانوا في الهجرة سواء فأفقههم في الدین فإن کانوا في الفقه سواء فأقرءهم للقرآن» (شرح نقایه) یعنی قوم ته به امامت هغه کس ورکوی. چې په هجرت کې مقدم وی. اوکه په هجرت کې واړه برابر وی. نوپه دے کې زیات پوهه به امامت ورکوی. اوکه په فقاهت کې هم واړه برابر وی. نود چې د قرآن ښه قاری وی. هغه به امات ورکوی. په دے حدیث کې افقه في الدین په یعنی اعلم ته په اقرا باندې مقدم کړې شوی دي.

**تائید قول الطرفین رحمهما الله بامامة ابیبکر رضی الله عنه** حضرت انس رضی الله عنه حدیث دي. «إن الذین جمعوا القرآن علی عهد رسول الله ﷺ أربعة کلهم من الأنصار أبي کعب ومعاذ بن جبل و زید بن ثابت وابوزید رضی الله عنهم فهولاء أکثر قراءة من أبي بکر رضی الله عنه حتی قال ﷺ أقرئکم أبي رضی الله عنه» یعنی د نبی ﷺ په زمانه کې څلور نفر جامع د قرآن وو. و ددے څلورو واړو تعلق دانصارو سره وو. ابی بن کعب، معاذ بن جبل، زید بن ثابت رضی الله عنه او ابوزید رضی الله عنه نو دا څلور واړه ابوبکر رضی الله عنه ته به نسبت سره په قرآن ښه پوهیدونکی وو. خو دے باوجود نبی ﷺ د امامت ور کاوه لپاره ابوبکر رضی الله عنه وړاندې کړلو. نو معلومه شوه. که په اقرا او اعلم کې مقابله راشی. نو ،،اعلم،، به مقدم کولے شی ګڼی ،،اقرا (به وړاندې کولے شی)

## په علمیت کې د برابرۍ نه روسته د امامت حقدار

فَإِنْ تَسَاوَوْا بیا که په علم کې واړه برابر وو فَأَقْرَؤُهُمْ نو په دوی کې چې څوک زیات قاری وی هغه به حقداروی.

**حل اللغة:** ① تساووا، تساوی تساویاً: برابرکیدل

**تشریح:- تقدیم الاقرء بعد العالم بالسنة** مسئله دا ده. که ،،اعلم بالسنة،، کې دواړه جماعت خلګ برابر وی. نو [...]س به په دوئ کې چې څوک قاری وی. هغه به حقداروی.



لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {يَؤُمُّ الْقَوْمَ د قوم امامت به هغه کس کوي أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ تَعَالَى. څوک چې د کتاب الله زیات قاری وی فَإِنْ كَانُوا سَوَاءً بیا که دا واړه برابر وی فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ} (1) نو په دو ی کې د سنتو زیات پیژندونکے به امامت ورکوی

**حل اللغة:** ① یؤم، ام امامة (ن): امامت کول ② اقرا: د ټولونه زیات قراءت کونکې

**تشریح:- دلیله** دلیل د نبی ﷺ قول دي. «یؤم القوم أقرأهم لکتاب الله فإن کانوا سواء فأعلمهم بالسنة» په دے حدیث باندې وجه د استدلال ښکاره ده. خو په دوو طریقو باندې اعتراض کیږی.

**السوال** اولنے اعتراض دا کیږی. چې «یؤم القوم» د امر په معنی کې دي. او امر د وجوب لپاره وی. نو کوم ترتیب چې په حدیث کې ذکر دي. دهغې خیال ساتل واجب دی. یعنی ،،اقرا،، به په ،،اعلم،، باندې مقدم وی. حالانکه داس نه ده. ځکه چې ذکرشوې ترتیب د افضلیت د بیان لپاره دي. د جواز د بیان لپاره نه دي.

**جوابه** د اولنی اعتراض ځواب دا دي. چې په «یؤم القوم» کې امرنه دي. بلکه صیغه د خبار ده. د بیان مشروعیت دپاره، او دا حقیقت او قاعده ده. چې تر څو پورې په حقیقت باندې عمل کول ممکن وی. نو مجاز ته به تګ نشی کولې. نوځکه به دلته مجاز ته تګ نشی کولې. اودا صیغه د امر په معنی کښې نه ده.

وَأَقْرَؤُهُمْ كَانَ أَعْلَمَهُمْ او په صحابو رضی الله عنهم کې چې څوک اقرا وو نو هغوی عالمان هم وو لِأَنَّهُمْ كَانُوا يَتَلَقَّوْنَهُ بِأَحْكَامِهِ ځکه چې هغوی به قرآن د احکاو سره زده کولو فَقُدِّمَ فِي الْحَدِيثِ، نوځکه په حدیث کې ،،اقرا،، مقدم کړې شوې دي وَلَا كَذَلِكَ فِي زَمَانِنَا او زموږ په زمانه کې داسے نه ده فَقَدَّمْنَا الْأَعْلَمَ نوځکه موږ ،،اعلم،، مقدم کوو.

**تشریح:- السوال** دوهم اعتراض دا دي. چې په دے حدیث باندې استدلال د مدعی خلاف دے. حالانکه مدعی د ،،اعلم بالسنة،، تقدیم دي. او حدیث دلالت کوی په ،،اقرا لکتاب الله،، په تقدیم باندې، نودا حدیث په استدلال کې پیش کاوه لپاره څنګه صحیح کیدے شی؟

**جوابه** د دوهم اعتراض ځواب دا دي. چې صحابه کرام رضی الله عنهم واړه قاریان وو. او عالمان هم وو. ځکه چې په هغه زمانه کښ به خلګو قرآن د هغه د احکامو سره یادولو. دحضرت عمر رضی الله عنه نه نقل دی. چې دوی په دولس کاله کې سورة بقره یاد کړې وه. ښکاره ده. چې حضرت عمر رضی الله عنه په دومره اوږده مودهٔ کې سورة بقره د احکامو سره یاده کړې وه. نود صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کې چې به څوک ،،اقرا،، وو. هغه به ،،اعلم،، هم وو. نوځکه په حدیث کې ،،اقرا،، ته په ،،اعلم،، باندې تقدیم ورکړې شوې دي. او زموږ په زمانه کې چونکه داسے نه دی. نوځکه موږ ،،اعلم،، ته په ،،اقرا،، باندې تقدیم ورکوو.

## په علم او قرات کې د برابرۍ په صورت کې دامامت حقدار

فَإِنْ تَسَاوَوْا بیا که په علم او قرات کې برابر وی. فَأَوْرَعُهُمْ نو په دوی کې چې څوک ،،اورع،، (زیات تقوی دار) وی. هغه حقداردي

**حل اللغة:** ① اورع: د ټولونه زیات متقی

**تشریح:- الفرق بین الورع والتقوی** په ورع او تقوی کې توپیر دا دي. ورع وائی. د شبهاتو نه پرهیز کاوه ته او تقوی وائی دمحرماتو نه ځان ساتلو ته.

1) حدیث ابی مسعود الانصاری رضی الله عنه رواه مسلم فی المساجد ومواضع لاصلاة رقم ۲۹۰، ۲۹۱، ابوداود فی الصلاة باب ۶۰، رقم ۵۸۴، والترمذی فی الصلاة باب ۶۰ رقم ۲۳۵ والنسائی فی الامامة باب ۳، ۶ وابن ماجه فی الاقامة باب ۴۶ واحمد فی المسند (۱۱۸/، ۱۲۱، ۱۲۲ ورواه ایضاً بوداود الطیالسی رقم ۶۱۸ و ابن الجارود (۱۵۵)۔

**استحاق الاورع بعدالاقرا**ﷺمسئله دا ده.که د جماعت واړه خلګ په علم او قرات کي برابر وو.نو په دوی کي اورع حقدار دي.

| |
|---|
| لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چي نبیﷺ فرمانیلی دی {مَنْ صَلَّى خَلْفَ عَالِمٍ تَقِيٍّ په کوم متقی عالم پسے چي لمونځ اوشی فَكَأَنَّمَا صَلَّى خَلْفَ نَبِيٍّ} () نودا داسے دي.لکه چي د پیغمبر پسي لمونځ اوشي. |

**حل اللغت**ﷺ ① **حل اللغة**ﷺ① **خلف**: روستو ② **تقي**: پرهيزګار

**تشريح:- دليله**ﷺدليل د نبیﷺ قول دي.﴿من صلی خلف عالم تقی فكانما صلی خلف نبي ﷺ﴾ددے حديث په اړه کي ملاعلی قاری رحمه الله فرمانیلی دی.چي دا حديث موضوعی دي.

## دامامت لپاره د تقوی نه روسته د استحقاق صفت

| |
|---|
| فَإِنْ تَسَاوَوْا بیاکه په ذکر شوو ځيزونوکي واړه برابر وو فَأَسَنُّهُمْ نوځوك چي په دے کي عمر په اعتبار سره مشر وی.هغه به حقداروی |

**حل اللغة**ﷺ①**اسن**: بوډا

**تشريح:- تقديم الاسن بعد الاورع**ﷺمسئله دا ده.که په ذکر شوو ځيزونو کي د جماعت واړه خلګ برابر وی.نو په دوی کښ چي ځوك زيات مشر وی.هغه دامامت لپاره زيات مناسب دي.

| |
|---|
| "لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنَيْ أَبِي مُلَيْكَةَ خکه چي نبیﷺ د ابوملیکهؓ دواړو خامنو ته فرمانیلی وو {وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا سِنًّا} ()په تاسوکي چي ځوك مشر وی.هغه دے امامت کوی |

**تشريح:- دليله النقلی**ﷺدليل دنبیﷺ قول دي.د ابوملیکهؓ دوو خامنو ته ﴿وليؤمكما اكبركما سنا﴾

| |
|---|
| وَلِأَنَّ فِي تَقْدِيمِهِ تَكْثِيرَ الْجَمَاعَةِ او ددے وجے چي د مشر په وړاندي کولوکي د جماعت زيادت وی. |

**حل اللغی**ﷺ ① **تكثير**: زياتول

**تشريح:- دليله العقلی**ﷺ دوهم دليل دا دے چي دمشر سړی په وړاندي کاوه کي د جماعت زيادت وی.او وړاندي تيرشوی دی.چي د جماعت زيادت الله تعالی ته زيات خوښ دي.او په حديث کي فرمائی.﴿من لم يؤقر كبيرنا فليس منا﴾اوکله چي نې دے خپل امام جوړ کړلو.نودا دده په عزت کي بےادبی نه پاتي کيږی.

**من يؤم بعدالاسن؟**ﷺدهدايه مصنف رحمه الله دا نه دی ونيلي.که واړه په عمر کي برابر وو.نو بيا په ځوك غوره وی.حالانکه د دوی نه سوا نورو فقهاؤ ليکلی دی.که واړه په عمر کي برابر وی.نوپه دوی کي د ښه اخلاقو خاوند به غوره وی.خکه چي په حديث کي فرمانيلي شوی دی.﴿خياركم احسنكم اخلاقا﴾او كه په اخلاقو کي واړه برابر وی.نو په دوی کي چي ځوك زيات ښکلي وی. هغه به دامامت لپاره غوره وی.

**خلاصة الكلام**ﷺحاصل دا دي.چي د امامت دټولو نه زيات مستحق هغه دي.ځوك چي په علم، قرات،صلاح، نسب، اخلاق، ښکلي والی ،په دے ټولو ځيزونو کي په قوم کي غوره وی.خکه چي په دے کي د نبیﷺ اقتداء

---

۱) غربه الزيلعی بهذا للفظ ثم ذكر ما هو بمعناه عن مرثد بن ابی مرثد الغنویؓ قال قال رسول اللهﷺ من سركم ان تقبل صلاتكم فليؤمكم علماؤكم فانهم وفدكم فيما بينكم وبين ربكم مجمع الزوائد للهيثمی (۲/۶٤) والحاكم فی المستدرک فی كتاب الفضائل (۳/۲۲۲)-

۲) حديث مالک بن الحويرثؓ رواه البخاری عن مالک بن الحويرثؓ فی الاذان باب الاذان للمسافر رقم،۵۹٤، ومسلم فی المساد باب من احق بالامامة رقم ۱۰۸۱، والترمذی فی الصلاة وابن ماجه فی الاذن فی الصف رقم ۱۸۹ والنسائی فی الاذان باب ......اذان المنفردين فی السفر رقم ۶۳۰، وابوداود فی الصلاة باب من احق بالامامة رقم ٤۹۸، وابن ماجه فی اقامة الصلاة باب من احق بالامامة رقم ۹۶۹)_



ده.خکه چي نبیﷺ ترمرګه پوري امامتی کړي ده.او نبیﷺ په دے ذکر شوو صفاتو کي د ټولو نه زيات وړاندي وو.ثم الافضل فالافضل .

## د مکروه الامامت کسانو بيان

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ تَقْدِيمُ الْعَبْدِ او غلام وړاندي کول مکروه دی. لِأَنَّهُ لَا يَتَفَرَّغُ لِلتَّعَلُّمِ خکه چي هغه د زدکړي لپاره فراغت نه لري |

**حل اللغة**ﷺ① **تقديم**: وړاندي کول ② **لايتفرغ،تفرغ تفرغا**: اوزګاريدل

**تشريح:- كراهة امامة العبد**ﷺمسئله دا ده.چي غلام د امامت لپاره وړاندي کول مکروه دی.اګرچي هغه آزاد شوی وی.يعنی که آزاد شوي غلام او اصلی آزاد جمع شی.نو اصلی آزاد د امامت زياد مستحق دي.

**دليله**ﷺدليل دا دي.چي غلام ته د لمونځ د احکامو فرصت نه ملاويږی.خکه په هغه پسي لمونځ کول مکروه دي.

**عدم الكراهة عندالشافعی رحمه الله**ﷺامام شافعی رحمه الله فرمائی.که آزاد او غلام دواړه په قرات،علم او تقوی کي برابر وو.نو آزاد ته به په غلام ترجيح نشي ورکولي.

**دلائله**ﷺ ①خکه چي د نبیﷺ ارشاد دي.﴿اسمعوا واطيعوا ولو امر عليكم عبد حبشی اجدع﴾اورئ او تابعداری کوئ.اګرکه په تاسو باندي حبشی غلام امي رجړ کړي شی.② دوهم دليل دا دي.چي د ابوسيعد مولی اسيد نه روايت دي.﴿انه قال دعوت رهطا من اصحاب النبیﷺ فيهم ابوذر حضرت الصلاة فقدمونی وانا يومئذ عبد﴾يعنی ابوسعيد رحمه الله فرمائی.چي ما د رسول اللهﷺ په صحابوؓ کي يو ډلے ته دعوت ورکړلو.چي په هغوی کي ابوذرؓ هم وو.چي د لمانځه وخت راغلو .نود امامت لپاره ئې زه وړاندي کړم.او زه په دغه وخت کي غلام ووم.دا واقعه دلالت کوی.چي د غلام وړاندي کول مکروه نه دی.

**جواب الحديث الاول**ﷺزموږ د اړخه د اولنی حديث جوب دا دي.چي د غلام وړاندي کول د جماعت د کميدو سبب جوړيږی.خکه چي خلګ دده په تابعداریٔ کي شرم کوی.اوچي کوم شی د تقليل جماعت سبب وی.هغه مکروه وی.

**جواب الحديث الثانی**ﷺاو په حديث کي امارت مراد دي.امامت مراد نه دي.اود ابوسيعد دحديث خواب دا دي.چي صحابوؓ ابوسيعد ددے وجے وړاندي کړي وو.چي دے د کور مالك وو.خکه چي د کور خاوند د امامت زيات حقدار وی.

| |
|---|
| وَالْأَعْرَابِيِّ لِأَنَّ الْغَالِبَ فِيهِمُ الْجَهْلُ اوباندېچی خکه چي په باندچيانوباندي جهالت غالب وی |

**تشريح:- كراهة امامة الاعرابی**ﷺد باندېچی وړاندي کول هم مکروه دی.

**دليلاه**ﷺ ①خکه چي په دوی کښ د جهالت غلبه وی.②دغه ډول دنبیﷺ قول دي.﴿الا لايؤمن إمراة رجلاً ولا اعرابی﴾خبردار ښځه دے سړی ته امامت نه ورکوی اونه باندېچی،

| |
|---|
| وَالْفَاسِقِ لِأَنَّهُ لَا يَهْتَمُّ لِأَمْرِ دِينِهِ اوفاسق،خکه چي فاسق د خپل دين د کار اهتمام نه کوی |

**تشريح:- كرامة امامة الفاسق**ﷺاود فاسق وړاندي کول هم مکروه دی.خکه چي دے د دين په معامله کښ اهتمام نه کوی.

**عدم جوازامامة الفاسق عند مالک رحمه الله**ﷺامام مالك رحمه الله فرمائی.چي په ده پسي لمونځ کول جائز نه دي.خکه چي کله دده نه په دينی أمورو کي خيانت ښکاره شی.نو هغه به د لمونځ په ځير مهمو کارونو کي هم امين نه وی.

**الجواب**ﷺخو زموږ د اړخه ځواب دا دي.چي عبدالله بن عمر ،انس بن مالك اوددوی نه علاوه نورو صحابوؓ او تابعينو رحمهم الله په حجاج بن يوسف رئيس الفساق پسي لمونځ کولو.

**وَالْأَعْمَى لِأَنَّهُ لَا يَتَوَقَّى النَّجَاسَةَ** او روند ،ځکه چې هغه د پلیتئ نه بچ کیدل نشي کولې

**تشريح:- كراهة امامة الاعمى** د امامت لپاره روند وړاندې کول هم مکروه دي.ځکه چې هغه د روندوالي د وجې د پلیتئ نه ځان نشي بچ کیدې.

**وَوَلَدِ الزِّنَا لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ أَبٌ** او ولد الزنا ځکه چې دهغه څوك پلار نه وي. **يُثَقِّفُهُ** چې شفقت پرې اوکړي **فَيَغْلِبَ عَلَيْهِ الْجَهْلُ**،نو په هغه باندې جهل غالب وي.

**تشريح:- كراهة امام ولد الزنا** اوولد الزنا وړاندې کول هم مکروه دي.ځکه چې د هغه پلار نه وي.چې په هغه باندې شفقت اوکړي.هغه ته ادب اوښائي.او هغه ته تعلیم ورکړي.

**وَلِأَنَّ فِي تَقْدِيمِ هَؤُلَاءِ تَنْفِيرَ الْجَمَاعَةِ** او ددې وجې دده په مخکې کاوه کښې د خلګو د جماعت نه نفرت پیدا کیږي **فَيُكْرَهُ** نو ځکه مکروه دې **وَإِنْ تَقَدَّمُوا جَازَ** او که دا نفر وړاندې شو.نو جائز دي. **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلي دي. {**صَلُّوا خَلْفَ كُلِّ بَرٍّ وَفَاجِرٍ**} (١) په هر نیك او بد پسې لمونځ کوئ.

**تشريح:- الدليل المشترک** صاحب دهدایه رحمه الله د مشترکه دلیل په طور اوفرمائیل.چې ددې کسانو وړاندې کول د جماعت د خلګو د نفرت سبب دې.نو ځکه د دوی وړاندې کول مکروه دي.البته که دا خلګ په خپله وړاندې شول.نو لمونځ جائزدې.ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلي دي. «صلوا خلف كل برو وفاجر» وجه د استدلال دا ده.چې په ذکر شوو خلګو کې هر یو به یا نیك وي یا بد،نو په هغوی پسې په هر حالت کې لمونځ جائز دې.

## د اوږد مونځ حکم

**وَلَا يُطَوِّلُ الْإِمَامُ بِهِمُ الصَّلَاةَ** او امام په مقتدیاتو نه لمونځ نه اوږدوي.

**تشريح:- كراهة تطويل القراءة للامام** مسئله :امام به خلګو ته اوږد لمونځ نه ورکوي.دلیل دادې.چې نبی ﷺ فرمائیلي دي.ځکه چې قوم ته امامتی کوي.نو په هغوی کې دې د هغوی د کمزوري سړي لمونځ کوي.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلي دي. {**مَنْ أَمَّ قَوْمًا** کوم کس چې یو قوم ته امام جوړ کړې شي **فَلْيُصَلِّ بِهِمْ صَلَاةَ أَضْعَفِهِمْ**،نو هغوی ته دې لمونځ ورکوي په هغوی کې د ټولو نه د کمزوري سړي لمونځ کوي. **فَإِنَّ فِيهِمُ الْمَرِيضَ** ځکه چې په دوی کښې به بیمار هم وي **وَالْكَبِيرَ** او بوډاګان هم **وَذَا الْحَاجَةِ**} (١) او اړتیا مندهم.

**حل اللغة:** ① **اضعف:** د ټولونه زیات ضعیف ② **مريض:** ناجوړه

**تشريح:- دليله** ځکه چې په مقتدیانو کې بیماران هم وي اوبوډاګان هم،او اړتیا منده،اود معاذ بن جبل رضی الله عنه حدیث هم مستدل دې.ځکه چې معاذ رضی الله عنه خپل قوم ته اوږده مونځونه کول.نو د قوم خلګو نبی ﷺ ته ګیله اوکړه.نبی ﷺ اوفرمائیل «أفتان أنت يا معاذ» دا حدیث وړاندې تیر شوې دې.اودا خبره د صحت په طریقه باندې ثابته ده.چې یو وارې نبی ﷺ د سهار لمونځ کې معوذتین اولوستلو .کله چې نبی ﷺ د لمانځه نه فارغ شو.نو صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړلو.اے دالله پیغمبره تاسو ډیر اختصار اوکړلو .نو نبی ﷺ اوفرمائي.د ماشوم د ژړا د آواز د وجې چې دده مور په فتنه کې واقع نشي.ددې واقعې نه معلومه شوه.چې د امام لپاره د خپل قوم د حالت

---

١) حديث ابى هريرة رضی الله عنه رواه الدارقطنى فى سننه (٥٥/٢)وابن الجوزى فى العلل المتناهية (٤٢٥/١، ٤٢٦) وابوداد فى الجهاد باب ٣٣، رقم ٢٥٣٣) والبيهقى فى معرفة السنن والاثار رقم ١٥٤٢، رواه ايضا فى السنن الكبرى (١٧٣/٣) رقم ٥٣٠٠)_

١) من حديث ابى هريرة رضی الله عنه رواه البخارى فى الاذان باب ٦٢ ومسلم فى الصلاة رقم ١٨٣ ومالک فى المؤطا فى صلاة الجماعة رقم ١٣ وابوداؤد فى الصلاة باب ١٢٤ والنسائى فى الامامة باب ٣٥ واحمد فى المسند (٤٨٦/٢، ٥٠٢)_



خیال ساتل مناسب دی.

## دښځو د امامت کراهت

**وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ وَحْدَهُنَّ الْجَمَاعَةُ** ود ښځو لپاره یواځې جماعت کول مکروه دې.

**تشريح:- كراهة جماعة النساء وحدهن** دښځو خانله جماعت سره لمونځ کول مکروه تحریمي دي.

**لِأَنَّهَا لَا تَخْلُو عَنِ ارْتِكَابِ مُحَرَّمٍ**، ځکه چې د ښځو جماعت د حرامو د ارتکاب نه خالي نه وي **وَهُوَ قِيَامُ الْإِمَامِ وَسَطَ الصَّفِّ** اودا د امام د صف په مینځ کې ودریدل دي **فَيُكْرَهُ** نودا فعل مکروه دې. **كَالْعُرَاةِ** لکه چې د بربنډو سړوی حکم دې

**حل اللغة:** ① **عراة،** د عاري جمع بربنډ

**تشريح:- الوجهان لكراهة جماعتهن** ځکه دچې د ښځو جماعت کول د حرام فعل (مکروه) نه خالي نه وي. ځکه چې د دوی امامه به یا د مقتدیان ښځو نه وړاندې ولاړه وي.یا به ددوی په مینځ کې وي.①په اولنی صورت کې د عورت ښکاره کیدل زیات وي.حالانکه دا مکروه دي.②او په دوهم صورت کې دامام خپل مقام پریښول لازمیږي.حالانه دا هم مکروه دي.او جماعت سنت دې.او قاعده دا ده.چې د مکروه د ارتکابو په نسبت د سنت پریښول غوره دي.نوځکه د ښځو په حق کې دجماعت سنت پریښولې (پریخودې)شو.اود ښځو حالت د بربنډو د حال په څیر دې.یعنی لکه څنګه چې د بربنډو جمات مکروه دې.دغه ډول د ښځو جماعت مکروه دې.

**فَإِنْ فَعَلْنَ** و که ښځو د جماعت لمونځ اوکړلو **قَامَتِ الْإِمَامُ وَسَطَهُنَّ** نو امام به د دوی په مینځ کې اودریږي **لِأَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَعَلَتْ كَذَلِكَ،** (١) ځکه چې ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنها داسې کړې وو

**حل اللغة:** ① **وسط:** مینځ

**تشريح:- كيفية قيام الإمام في جماعة النساء** صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چې که د کراهت تحریمي باوجود ښځو د جماعت لمونځ کولو.نوامام به د دوی په مینځ کې اودریږي.ځکه چې حضرت عائشې رضی الله عنها هم داسې کړې وو.

**وَحُمِلَ فِعْلُهَا الْجَمَاعَةَ عَلَى ابْتِدَاءِ الْإِسْلَامِ** او د ام المؤمنین د امامتئ ورکول د اسلام په اولنی دور باندې حمل شوې دې **وَلِأَنَّ فِي التَّقَدُّمِ زِيَادَةَ الْكَشْفِ** او ددې وجې چې په وړاندې کیدو کې د عورت ښکاره کیدل زیات وي

**حل اللغة:** **كشف:** کولاویدل

**تشريح:- السوال** خو اوس اشکال دا دې.چې هر کله حضرت عائشې رضی الله عنها په د جماعت لمونځ کړې وو.نودا مکروه تحریمي ولې دې؟

**الجواب** ددې ځواب دا دې.چې د ام المومنین رضی الله عنها دا فحل د ابتداء د اسلام باندې حمل کولې شي.

**السوال على الجواب** خو په دې ځواب باندې اشکال دې.چې د نبوت نه روسته نبی ﷺ دیارلس کاله په مکه مکرمه کې تیر کړل.اوبیائي په مدینه منوره کې د شپږو کالو په عمر کې د حضرت عائشې رضی الله عنها سره نکاح اوکړله.بیاچې کله د نهو کالو شوه.نووادۀ ئې ور سره اوکړلو.یعنی د حضرت عائشې رضی الله عنها رخصتي اوشوه.او د دوی په ژوندې کې نهه کاله پاتې شوه.نو د حضرت عائشې رضی الله عنها د امامت واقعه د بلوغت نه روسته شوې ده.او په دې صورت کې دا فعل په ابتداء د اسلام باندې څنګه حمل کولې شي؟

---

١) حديث عائشة رضى الله عنها رواه الحاكم فى المستدرک (٢٠٣/١) وعبدالرزاق فى مصنفه (١٤١/٣) رقم ٥٠٨٦) والدارقطنى فى سننه (٤٠٤/١) والسنن الكبرى للبيهقى (١٨٧/٣) رقم (٥٣٥٥) وابن حزم فى المحلى (٢١٩/٤)_

**الجواب من السوال** ﴿نو ددے خواب دا دي.چې په ابتداء د اسلام باندې د حمل کاوه نه مراد دا دي.چې د ښځو د جماعت حکم منسوخ دي.(١)

**د ښځو دامامت نسخ**:او د ښځو د امامت د نسخي لپاره دليل دا اثر دي قال وهب : عن ابن ابی ذئب .. مـولی لـبنی هاشم أخبره عن علی ابن ابی طالب ﷺ انه قال:لا تؤم المرأة

البته دلته د احقر شاه فيصل د اړخه دا شبه دهچې يو څيز منسوخ شی نو بيا هغه څنګه جائز کيدې شی البته دا وئيلی شيچې د ښځو د جماعت سنت کيدل منسوخ شوې دی او نفس جواز پاته پاتې دي

**د يو مقتدی په امام پسې اقتداء**

| |
|---|
| **وَمَنْ صَلَّى مَعَ وَاحِدٍ** اوکوم کس چې د يو کس سره لمونځ کوی، **أَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ**(٢) نو هغه دے خپل ښی اړخ ته اودروی |

**حل اللغة**: ① صلی،صلی صلاة: دعا کول، لمونځ کول ② اقامة،اقام اقامة: قائم کول ③

**تشريح:- قيام الواحد عن يمين الامام** ﴿مسئله دا ده.که يو سړي يو مقتدی سړی، ته امامتی ورکوی.نو دا مقتدی دے خپل ښی اړخ ته اودوی.

| |
|---|
| **لِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا**، دليل د ابن عباس رضی الله عنهما حديث دي. **فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى بِهِ** څکه چې نبی ﷺ ده ته منځ ورکولو **وَأَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ**}(٣)او دے نې خپل ښی اړخ ته او درولے وو **وَلَا يَتَأَخَّرُ عَنِ الْإِمَامِ** اومقتدی به دامام نه شاته نه وی |

**تشريح:- دليله** ﴿دليل دابن عباس رضی الله عنهما حديث دي.پوره حدث دا دي. ﴿بت عند خالتی ميمونة رضی الله عنها لأراقب صلاة النبی ﷺ بالليل فانتبه قال نامت العيون وغابت النجوم وبقی الحي القيوم ثم قرأ آخر سورة آل عمران ﴿إن في خلق السماوات والأرض واختلاف الليل والنهار إلى آخرها ثم قام إلى شن معلق فتوضأ وافتتح فقمت وتوضأت وقفت على يساره وأخذ بأذني وأدارني خلفه حتى أقامني عن يمينه﴾ (متفق عليه) يعنی ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.چې ماد خپلے ترور ميمونے رضی الله عنها کره شپه تيره کره.چې د نبی ﷺ د شپے لمونځ اوګورم.نو نبی ﷺ پاسيدلو.او وے فرمائيل.سترګے اودے شوی دی.او ستوری ډوب شوی دی.او حی او قيوم ات پاته دي.بيا دوی سورة آل عمران آخری آيتونه ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيٰتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ نه تر آخره سورت پوره اولوستل.بيا نبی ﷺ په يو ميخ پوری د زوړند مشک نه اوبه واخستلے او اودس ئې اوکړلو.او لمونځ ئې شرع کړلو.نو زه هم پاسيدم.اودس مے اوکړلو.او د نبی ﷺ چپه اړخ ته اودريدم.نو نبی ﷺ زه د غوږ نه اونيولم.او زه ئې خپلے شاه اړخ ته راښکلم.تردے چې خپل ښی اړخ ته ئې اودرولم.ددے حديث نه معلومه شوه.ه د امام سره يو مقتدی وی.نو هغه د امام ښی اړخ ته اودريږل مختار قول دی.په ظاهر الرواية کې دی.چې يومقتدی به په امام پسې شاه ته نه اودريږی.

| |
|---|
| **وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ** او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی. **أَنَّهُ يَضَعُ أَصَابِعَهُ عِنْدَ عَقِبِ الْإِمَامِ**،چې مقتدی به خپلے ګوتے د امام د پوندو سره برابر ساتی **وَالْأَوَّلُ هُوَ الظَّاهِرُ**،او اول روايت ظاهر دي **فَإِنْ صَلَّى خَلْفَهُ أَوْفِي يَسَارِهِ** اوکه يو |

١) (المدونة، لمالک ،١/٨٦) ثم صحح العثمانی سنده (متن اعلاء السنن باب کراهة جماعة النساء رقم الحديث ١٢٢٠، (١/٢٩٦)

٢) القول الراجح هو القول الاول کذا فی العناية (١/٣٠٨) وردالمحتار(١/٤١٩) والبحر(١/٦١٦) والهندية (١/٨٨) نقلا عن القول الراجح (١/٨٩)_

٣) حديث ابن عباس رضی الله عنهما رواه البخاری فی باب العلم بباب ٤١، ومسلم فی صلاة المسافين وقصرها رقم ١٨١، وابوداود فی التطوع باب ٢٦، والنسائی فی الامامة باب ٢٢، وابن ماجه فی الطهارة باب ٤٨، ومالک فی صلاة لليل رقم ١١)_



| |
|---|
| مقتدی دامام چپه اړخ ته يا شاته لمونځ اوکړلو **جَازَ** نو هم جائز دي **وَهُوَ مُسِيءٌ** او دے ګناهګار دي. **لِأَنَّهُ خَالَفَ السُّنَّةَ** څکه چې ده د سنتو خلاف اوکړلو. |

**حل اللغة**: ① يضع، وضع وضعا: ساتل ② عقب: روستو ③ يسار: چپه ④ مسيئ: ګناهګار

**تشريح:- رواية محمد رحمه الله في قيام الواحد عن الامام** ﴿اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چې مقتدی به خپلے ګوتے د امام د پوندے سره برابر کوی.او اول قول ظاهر دي.او که يو مقتدی د امام شاه ته يا چپه اړخ ته لمونځ اوکړلو.نو هم جائز دي.يعنی لمونځ ئې نه فاسديږی.خوګناهګار دي.څکه چې ده د سنتو خلاف عمل اوکړلو.

**د دوو مقتديانو د اودريدو مقام**

| |
|---|
| **وَإِنْ أَمَّ اثْنَيْنِ** اوکه دوو سړو ته امامتی ورکوی **تَقَدَّمَ عَلَيْهِمَا**(١) نوامام به په دواړو مقدم وی |

**حل اللغة**: ① تقدم: تقدما: وړاندې کيدل

**تشريح:- الروايتان في مقام الاثنين من الامام** ﴿① اوکه دامام نه سوا نور دوې (دوه) مقتديان وی.نو امام به په دے دواړو باندې وړاندې اودريږی.

| |
|---|
| **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** او دابويوسف رحمه الله نه نقل دی. **يَتَوَسَّطُهُمَا**،چې امام به د دواړو په مينځ کې اودريږی **وَنُقِلَ ذٰلِكَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ**(٢) او دا د ابن مسعود رضی الله عنه نه منقول دی. |

**تشريح:-** اودامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چې امام به د دے دواړو په مينځ کې اودريږی.دا د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه منقول دی.لکه‌چې روايت شوې دي.چې ابن مسعود رضی الله عنه علقمه او اسود رحمهما الله ته لمونځ ورکاوه .او ابن مسعود رضی الله عنه د دواړو په مينځ کې ولاړ وو.

| |
|---|
| **وَلَنَا** او زمونږ دليل دا دي. {**أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تَقَدَّمَ عَلَى أَنَسٍ وَالْيَتِيمِ** چې نبی ﷺ په انس رضی الله عنه او يتيم نه وړاندې ودريدلے وو **حِينَ صَلَّى بِهِمَا**}(٣) کله‌چې نې دواړو ته لمونځ ورکولو **فَهٰذَا لِلْأَفْضَلِيَّةِ** نودا د افضيلت لپاره دي |

**تشريح:- دليل الرواية الاولی** ﴿او زمونږ دليل دا دي.چې کله نبی ﷺ حضرت انس او يتيم رضی الله عنهما ته امامتی کوله.نونبی ﷺ د هغوی دواړو نه وړاندې ولاړ وو.نود نبی وړاندې ودريدل د افضيليت دليل دي.

| |
|---|
| **وَالْأَثَرُ دَلِيلُ الْإِبَاحَةِ** او اثر د اباحت دليل دي. |

**تشريح:- الجوابان عن مستدل الرواية الثانية** ﴿① او د ابن مسعود رضی الله عنه اثر د اباحت دليل دي.② ابراهيم نخعی رحمه الله فرمائيلی د.چې د ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت شوې دي.چې د خائې د تنګ والی د وجے داسے شوی وو.نواوس ددے اثر نه اباحت هم نه ثابتيږی.

**د سړو لپاره په ښځو اوماشومانو پسې د اقتداء حکم**

١) القول الراجح هو قول الجمهور کذا فی العناية (١\٣٠٩) وردالمحتار(١\٤٢٠) والطحطاوی (ص،١٦٧) والهندية (١\٨٨) نقلا عن القول الراجح (١\٩٠)_

٢) رواه مسلم فی المساجد مواضع الصلاة رقم ٢٨، وابوداود فی الصلاة باب ٧٠، رقم ٦١٣) والبهقی فی السنن الکبری (٣/١٤٠)رقم (٥١٧٣) واحمد فی المسند (١/٤٥٩) وشرح معانی الاثار (١/١٨١) _

٣) حديث انس بن مالک رضی الله عنه رواه البخاری فی الصلاة باب ٢٠، ومسلم فی المساجد ومواضع الصلاة رقم ٢٦٦ وابوداود فی الصلاة باب ٧٠، والترمذی فی الصلاة باب ٥٩، والنسائی فی الامامة باب ١٩، وابن ماجه فی المساجد باب ٨، رقم ٧٢٧)_

**وَلَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ** د سړو لپاره جائزنه دی. **أَنْ يَقْتَدُوا بِامْرَأَةٍ وَصَبِيٍّ** چې دوی په ښځو یا ماشومانو پسې اقتداء اوکړي.

**حل اللغة:** ① لايجوز،جاز جوازًا (ن): جائز كيدل، روا كيدل

**تشريح:- عدم جواز اقتداء الرجل بالمراة والصبى** مسئله :دسړو لپاره د ښځو او ماشومانو پسې اقتداء كول جائز نه دی.

**أَمَّا الْمَرْأَةُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** بهر حال په ښځې پسې خو ددے وجې چې نبی ﷺ فرمائيلی دی { **أَخِّرُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَخَّرَهُنَّ اللَّهُ** [1]} ښځې روستې كړئ. په كوم ځائې كې چې الله تعالى دوی روستو كړی دی **فَلَا يَجُوزُ تَقْدِيمُهَا** نو د ښځې مقدم كول جائز نه دی

**حل اللغة:** ① اخروهن،اخر تاخيرا: روستوكول، موخركول

**تشريح:- دليل عدم جواز الاقتداء بالمراة** د ښځې پسې اقتداء كول خو ددے وجې ناجائزده. چې نبی ﷺ فرمائيلی دی. ﴿ اخروهن من حيث اخرهن الله﴾

**التوجيهان في الاستدلال** ① وجه د استدلال دا ده. چې لفظ د ،،حيث،، نه مراد ځائې دې. اوچې په كوم ځائې كې د ښځو تاخير واجب وی. هغه د لمانځه د ځائې نه سوا بل ځائې نه دې. نو ثابته شوه. چې الله تعالى ښځې د لمانځه په ځائې كې روستو كړې دی. يعنې دا حق نې نه دے وركړې. چې دوی سړو ته امامتی وركړی. ② اوبعضے حضراتو فرمائيلی دی. چې ،،حيث،، د تعليل لپاره دې. نو اوس ژباړه دا شوه. چې ښځې روستو كوئ. ځكه چې الله تعالى دوی روستو كړی دی. الله تعالى دوی په شهادت، وراثت، سلطنت او ټولو ولاياتو كې روستو كړی دی. نو هركله چې الله تعالى ښځه روستو كړې ده. نو ددے وړاندې كول يعنې دا امام جوړول به هم جائز نه وی.

**وَأَمَّا الصَّبِيُّ فَلِأَنَّهُ مُتَنَفِّلٌ** او ماشوم ددے وجې چې هغه نفلی مونځګذار دې **فَلَا يَجُوزُ اقْتِدَاءُ الْمُفْتَرِضِ بِهِ** نو د مفترض لپاره په ده پسې اقتداء كول جائز نه دی

**تشريح:- وجه عدم جواز الاقتداء بالصبى** پاتــه شو د ماشوم دامامتئ خبره ،نو دده امامت ددے وجې جائز نه دې. چې دے نفل كونكے دې. نو د مفترض په ده پسې اقتداء كول جائز نه دی. يعنې د بالغ فرض لمونځ په ده پسې جائز نه دې. صاحب د هدايه فرمائی. چې په تراويحو او سنن مطلقه كې اختلاف دې. ① د بلخ ﷺ د مشانخود قول مطابق په تراويحو او سنن مطلقه كې په نابالغه پسې اقتداء كول جائز دی. ② او زموږ مشائخ ﷺ يعنې مشائخ د ماوراالنهر دا ناجائز ګرځولې ده.

**المذهبان في الاقتداء بالصبى في السنن** ① حاصل داچې په سنت مونځونو كې كه نابالغ ماشوم امامت نی اوكړله. نو د بلخ د مشائخو ﷺ په نيز د بالغو سړو لپاره په ده پسې اقتداء كول جائز ده. ② او د ماوراء النهر يعنې بخارا او سمرقند د عالمان او مشائخ ﷺ دا ناجائز ګرځوی.

**دليل جواز الاقتداء** د بلخ مشائخو په مظنونه لمونځ باندې قياس كړې دې. مطنونه لمونځ دا دې. چې يو كس دا خيال اوكړو. چې دده په ذمه واجب دې. نو ده په دے ګمان كې لمونځ ادا كول روع كړلو. په مينځ كې ورته مفسد پيښ شو. او لمونځ مات شو. بيا معلومه شوه. چې دده په ذمه واجب نه وو. ا اوس د پيل د وجې ددے قضاء راوړل واجب دی. يا نه دی. په دے اړه كې د دړے واړه امامانو ﷺ په نيز حكم دا دې. چې قضاء واجب نه ده. البته د امام زفر رحمه الله په نيز قضاء واجب ده. نو كه نفل ادا كونكے بالغ سړی په بل سړی پسې په مظنونه لمونځ كې اقتداء كړې وه. نوجائز ده. اوس د بلخ دمشانخو ﷺ د قياس حاصل دا شو. چې نفل لمونځ

1) غربه الزيلعى رفعه (نصب الراية ٣٩/١) ورواه موقوفا على ابن مسعود كذا فى مصنف عبدالرزاق والطبرانى فى معجمه )۔



په پيل كاوه باندې واجبيږی. او مظنونه لمونځ نه واجبيږی. نو هركله چې نفلی مونځګذار په مطنونه لمونځ كونكی پسې اقتداء كولے شي. نو دغه ډول نفلی مونځګذار په ماشوم پسې اقتداء كولے شي.

**وَفِي التَّرَاوِيحِ وَالسُّنَنِ الْمُطْلَقَةِ جَوَّزَهُ مَشَايِخُ بَلْخٍ** او په تراويحو او سنتو مطلقو كې د بلخ مشائخو ﷺ دا جائز كړی دی **وَلَمْ يُجَوِّزْهُ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللَّهُ**، او زموږ مشائخو ﷺ دا جائز نه دی ګرځولې

**تشريح:- المراد من السنن المطلقة** دسنن مطلقه نه مراد سنن رواتب دی. كوم چې د فائضو نه وړاندې او د فرضو نه روسته مشروع شوی دی. د يو روايت مطابق د اختر لمونځ هم سنت دې. او وتر، كسوف ،خسوف او استسقاء مونځونه هم د صاحبينو ﷺ په نيز سنت دی.

**وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّقَ الْخِلَافَ فِي النَّفْلِ الْمُطْلَقِ بَيْنَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ** [1] اوزموږ په مشائو كې بعضو د ابويوسف او امام محمد ﷺ په مينځ كې په نفل مطلق كې اختلاف متحقق كړې دې

**تشريح:- الاختلاف في الاقتداء في النفل المطلق** او زموږ په مشائخو كې بعضو د نفل مطلق په صورت كې د امام ابويوسف اوامام محمد ﷺ په مينځ كې اختلاف بيان كړې دې. ① امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. چې په نفل مطلق كې هم د بالغ سړی په ماشوم پسې اقتداء جائز نه ده. ② او امام محمد رحمه الله دا جائز ګرځولې

ده صاحب د ،،هدايه،، فرمائی. چې د بالغ سړی په ماشوم پسې اقتداء په هيڅ لمانځه كې جائز نه ده. كه نفل مطلق وی اوكه موقت وی. هم دا د ماروا ء النهر د مشائخو ﷺ مذهب دې.

**وَالْمُخْتَارُ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا** او مختار دا ده. چې دا په ټولو مونځونو كښې جائز نه ده. **لِأَنَّ نَفْلَ الصَّبِيِّ دُونَ نَفْلِ الْبَالِغِ** ځكه چې د ماشوم نفل د بالغ د نفلو نه كم دی. **حَيْثُ لَا يَلْزَمُهُ الْقَضَاءُ بِالْإِفْسَادِ بِالْإِجْمَاعِ**، ځكه چې نفل په فاسد كاوه په اجماع سره په ماشوم باندې ددے قضاء نه لازميږی **وَلَا يُبْنَى الْقَوِيُّ عَلَى الضَّعِيفِ**، اوبناء به نه

[1] القول الراجح هو قول ابى يوسف كذا فى فتح القدير(٣١٠\١) والدرالمختار(٤٢٧\١) وردالمحتار(٣٢٨\١) والهندية (٨٥\١) نقلا عن القول الراجح (٩٠\١)_

**كوى قوى په ضعيف پسې**

**تشريح:- ترجيح عدم جواز الاقتداء** دا دے مختار مذهب دليل دا دې چې د ماشوم مونځګذار نفل د بالغ مونځګذار د نفلو نه په درجه کې کم دی. ځکه چې په اتفاق سره که ماشوم په نفلو کې پيل اوکړی. اوبيا فاسد ئې کړی. نو په ده باندې قضاء واجب نه ده. اوکه بالغ سړی نفلی مونځ فاسد کړلو. نو د هغه په ذمه قضاء واجب ده. اوقاعده دا ده. چې د قوى بناء په ضيف پاندے نه کيږی. نوځکه به د بالغ د نفلو بناء د ماشوم په نفلو باندې نشی کولې.

**بِخِلَافِ الْمَظْنُونِ** په خلاف د مظنون د لمانځه **لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ** ځکه چې هغه مجتهد فيه ده. **فَاعْتُبِرَ الْعَارِضُ عَدَمًا** نو اعتبار اوکړې شو. د عارض چې معدوم دے،

**تشريح:- الجواب من القياس على صلاة المظنون** د ،، بخلاف المظنون،، نه د بلخ د مشائخو رحمهم الله د قياس نه ځواب دے، د ځواب حاصل دا دې. چې بالغ په ماشوم پسې اقتداء کول په ،، ظان،، پسې اقتداء کاوه باندې قياس کول فاسد دی. ځکه چې د مظنون لمونځ مختلف فيه دې. د امام زفر رحمه الله په نيز د فساد په صورت کې په ظان باندې قضاء واجب ده. اود ماشوم لمونځ که فاسد شی. نوپه هغه باندې په اجماع سره قضاء واجب نه ده. دغه ډول طفوليت (ماشومتوب) داسے شی دې. کوم چې د بلوغ پورې بر حال پاته وی. نو د بالغ لمونځ ده د لمونځ سره لمونځ کيدے نشی. ځکه چې د فساد په صورت کې په بالغ باندې قضاء واجب ده. او په نابالغ باندې قضاء نه واجبيږی.

**الجواب الثانى من القياس** دا دے په خلاف د مظنون ظن، دا يو عارضى شی دې. نودا به معدوم معتبر کولے شی. نو که نفلی مونځګذار په مظنون امام پسې اقتداء اوکړله. نو د دواړو لمونځ متحد کيدے شی. بيا خاص کر د امام زفر رحمه الله په نيز ځکه چې د فساد په صورت کې په دواړو باندې قضاء واجبيږی.

**وَبِخِلَافِ اقْتِدَاءِ الصَّبِيِّ بِالصَّبِيِّ** او په خلاف د اقتداء د ماشوم په ماشوم پسې **لِأَنَّ الصَّلَاةَ مُتَّحِدَةٌ** ځکه چې لمونځ متحد دې.

**تشريح:-** حاصل دا چې د بالغ او نابالغ مونځونه غير متحد دی. اود بالغ او ظان مونځونه متحد دی. بيا خاص کر د امام زفر رحمه الله په نيز نوچې دا توپير موجود وی. نو «اقتداء البالغ بالصبى په إقتداء البالغ بالظان» باندې قياس مع الفارق شو. دا دے په خلاف د نابالغ په نابالغ پسے اقتداء کول جائز ده. ځکه چې د دواړو مونځونه متحد دی. ځکه چې په دواړو کې په چا باندې قضاء واجب نه ده. نودا بناء د ضعيف په ضعيف باندې شوه. او دا جائز ده.

## د صفونو ترتيب

**وَيَصُفُّ الرِّجَالَ** وصف به جوړوی سړی **ثُمَّ الصِّبْيَانَ** بيا ماشومان **ثُمَّ النِّسَاءَ** بيا ښځے،

**حل اللغة:** ① **يصف، صف صفوفا** (ن): صف تړل

**تشريح:- تقرب اهل العلم من الامام** په دے عبارت کې په امام پسې روستو د اودريدو د ترتيب بيان دې. فرمائی. چې په امام پسې به د ټولو نه وړاندې سړی اودريږی. بيا په هغوی پسے ماشومان اودريږی. او په هغوی پسې ښځے اودريږی.



**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی **{لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى}**[1] نزدے دے وی. ما ته په تاسو کې بالغان سړی

**حل اللغة:** ① **ليلينى، ولى ولاية** (ض): ملاويدل، نيزديکيدل ② **نهى**، د نهية جمع: عقل

**تشريح:- دليله** دليل د نبی ﷺ دا ارشاد دې. «ليلنى منكم أولوالأحلام والنهى» ،ليلى،، د امر صيغه ده. د ،ولى، نه ماخوذ دې. دا دے معنی نزدے کيدل دی. احلام جمع د حلم بالضم ده. حلم هغه شی ته وائی. کوم چې ويده (اوده) سړې وينی. خو دا دے غالب استعمال دخوب دلالت ته رسيدونکی شی کې دې. او «نهى» د نهية جمع ده. په معنی دعقل ،اوس د حديث مطلب دا شو. چې ځوك په تاسو کې ماته نزدے وی. هغه دے هغه خلګ وی. ځوك چې عاقلان بالغان وی.

**السوال على الدليل** ځوکه ځوك دا اووائی. چې دا حديث د سړو په ماشومانو باندې تقديم خو ثابتوی. خو په ښځو باندې د ماشومانو تقديم نه ثابتوی.

**الجواب** نو دا دے ځواب دا دې. چې د احتمال رجوليت دوجے ماشومان د سړو تابع دی. او تابع د متبوع نه روسته وی. نو ماشومان نه په سړو پسې وی. اوپه ښځو باندې مقدم وی.

**وَلِأَنَّ الْمُحَاذَاةَ مُفْسِدَةٌ** او دا دے وجے چې د ښځے په محاذات سره لمونځ فاسديږی **فَيُؤَخَّرْنَ** نو ځکه به ښځے روستو کولے شی.

• **محاذاة:** برابر کيدل، مقابل کيدل

**تشريح:- ثبوت خلفية النساء من الصبيان بالحديث** او په ځواب کې دا هم ونيلے شی. چې په ښځو باندې د ماشومانو تقديم د نبی ﷺ د فعل نه ثابت دې. ځکه چې نبی ﷺ يوه بوډئ ښځه د يتيم نوم نابالغ نه روستو اودريولے وه.

**الاستدلال الصريح** زيات بهتر استدلال په هغه حديث باندې کيږی. کوم چې امام احمد رحمه الله په خپل مسند کې د ابومالك اشعرى نه نقل کړې دې. د روايت الفاظ دا دی. «أنه قال يا معشر الأشعريين :إجمعوا واجمعوا نساءكم وأبناءكم حتى أريكم صلاة رسول الله ﷺ فاجتمعوا وجمعوا أبناءهم ونساءهم ثم توضا وأراهم كيف يتوضا ثم تقدم فصف الرجال في أدنى الصف وصف الولدان خلفهم وصف النساء خلف الصبيان» يعنى ابومالك اشعرى رضی الله عنه اوفرمائيل. اے داشعرى قبيلے خلګو تاسو په خپله هم راجمع شئ. او خپلے ښځے او بچی هم راجمع کړې. چې زه تاسو ته د رسول الله ﷺ لمونځ اوښايم. نو هغوی هم راجمع شول. او خپل ځامن او ښځے ئې هم راجمع کړې. بيائې اودس اوکړلو. اوهغوی ته ئې اوخودل. چې نبی ﷺ به څنګه اودس کولو. بيا ابومالك وړاندې شو. بيا د سړو صف ودريدلو. او د هلكانو په هغوی پسے روستو او د ښځو صف دماشومانو نه روستو جوړ کړې شو.

**الدليل العقلى** عقلی دليل دا دې. چې د ښځے په محاذات باندې دسړی لمونځ ماتيږی. نوځکه به ښځے روستو کولے شی.

## د ښځې د محاذات مسئله

**وَإِنْ حَاذَتْهُ امْرَأَةٌ** وکه ښځه د سړی سره برابر وی **وَهُمَا مُشْتَرِكَانِ فِي صَلَاةٍ وَاحِدَةٍ** و حال دا وی. چې دواړه په يو لمونځ کې شريك وی **فَسَدَتْ صَلَاتُهُ** نو د سړی لمونځ فاسديږی. **إِنْ نَوَى الْإِمَامُ إِمَامَتَهَا** خو په دے شرط چې امام

1) حديث ابن مسعود رضی الله عنه رواه مسلم فى الصلاة رقم ۱۲۳، وابوداود فى الصلاة باب ۹۵، رقم ۶۷۵، والترمذى فى الصلاة باب ۵۴، رقم ۲۲۸) والنسائى فى الصلاة باب ۵۴، والدارمى فى الصلاة باب ۵۱ واحمد فى المسند (۴۵۷/۱) والحاكم فى المستدرک (۸/۲) كلهم من حديث ابن مسعود رضی الله عنه)_

ددې ښځې د امامت نیت کړې وي

حل اللغة: ① حاذته، حاذی محاذاة: برابر کیدل ② فسدت، فسد فسادًا (ن): فاسید کیدل ③ نوی، نیة: نیت کول، اراده کول

تشریح:- **الاختلاف في فساد صلاة الرجل بمحاذاة المراة** ◉ ① صورت د مسئلې دا دې.که یوه ښځه د سړي سره برابر اودریږي.په داسې حال کې چې سړې او ښځه دواړه په یو لمونځ کې مشترک وي.او امام دې ښځې دامامت نیت هم کړې وي.نوپه داسې صورت کې به دسړي لمونځ فاسدیږي.

**وَالْقِيَاسُ** او قیاس دا وائی. **أَنْ لَا تَفْسُدَ** چې د سړي لمونځ دې فاسد نشي **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او هم دا د امام شافعي رحمه الله قول دې. **اعْتِبَارًا بِصَلَاتِهَا** د ښځې په لمونځ باندې قیاس کوی **حَيْثُ لَا تَفْسُدُ** ځکه چې د ښځې لمونځ نه فاسدیږي

تشریح:- **مذهب الشافعي**: اود قیاس تقضا داده.چې د سړي لمونځ دې هم فاسد نشي.② اوهم دا د امام شافعي رحمه الله قول دې.

**دلیله** ◉ امام شافعي رحمه الله د سړي لمونځ د ښځې په لمونځ باندې قیاس کوی.یعنی د محاذات په وجه د ښځې لمونځ په اتفاق سره نه ماتیږي.نو دسړي لمونځ به هم نه ماتیږي.او د قیاس وجه دا ده.چې محاذات داسې فعل دې.چې د جانبینو نه متحقق وي.نو کله چې په محاذات د ښځې د لمونځ لپاره فاسد نه دې.نود سړي د لمانځه لپاره دې هم مفسد نه وي.

**وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ** او وجه د استحسان هغه حدیث دې. **مَا رَوَيْنَاهُ** کوم چې موږ روایت کړې دې.

تشریح:- **وجه الاستحسان للفاسد** ◉ وجه داستحسان هغه حدیث دې.کوم چې موږ وړاندې ذکر کړلو.د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حدیث ﴿أن رسو الله ﷺ قال أخروهن من حیث أخرهن الله﴾ په دې حدیث کې سړو ته حکم شوې دې.چې دوی ښځې روستو کړي.نوهر کله چې ښځه ده سره برابر شي. نو لکه چې سړي خپل فرض مقام پریښنولو.ځکه چې داسې مونځ چې په هغې کې سړي او ښځې دواړه شریک وي.د ښځې روستو کول د سړي فرض دی.او داخبره منلې شوې ده.چې چا فرض پریښولې (پریخودې) وي.د هغه لمونځ فاسد وي.د بل چا نه ،نو ځکه موږ دا وایو.چې د محاذات په وجه د سړي لمونځ فاسدیږي.د ښځې نه.

**وَأَنَّهُ مِنَ الْمَشَاهِيرِ** او حدیث په مشهور و احادیثو کې دې

تشریح:- **جواب السوال التقدیری** ◉ اوکه دا اعتراض اوکړې شي.چې دا خبر واحد دې.او په خبر واحد باندې فرضیت نه ثابتیږي.نو ددې ځواب صاحب د هدایه رحمه الله په ﴿انه من المشاهیر﴾ سره ورکړې دې.یعنی دا حدیث په مشهرو احادیث کې دې.ځکه چې قطعی الدلالة وي.اوپه حدیث مشهور سره فرضیت ثابتیږي.نو څه اعتراض پاتې نشو.

**وَهُوَ الْمُخَاطَبُ بِهِ** او هم سړې ددې حکم مخاطب دې. **دُونَهَا** ښځه ئې نه ده **فَيَكُونُ هُوَ التَّارِكُ لِفَرْضِ الْمَقَامِ** نو هم سړې به د فرض مقام پریخودونکې وي **فَتَفْسُدُ صَلَاتُهُ دُونَ صَلَاتِهَا**، نو دده لمونځ به فاسدیږي.دښځې به نه فاسدیږي **كَالْمَأْمُومِ إِذَا تَقَدَّمَ عَلَى الْإِمَامِ** لکه مقتدی کله چې دې په امام باندې وړاندې شي.

تشریح:- **الجواب من القیاس** ◉ اوپه ﴿هو المخاطب﴾ سره دقیاس ځواب دا دې.حاصل د ځواب دا دې.چې د ښځې لمونځ نه ماتیږي.ددې نه دا نه لازمیږي.چې دسړي لمونځ دې هم نه ماتیږي.ځکه چې د نبي ﷺ د قول ﴿اخروهن﴾ مخاطبین سړي دی.ښځې نه دی.نو د فرض پریخودنکی سړی شو.ښځې نه.نوځکه صرف د سړي لمونځ فاسدیږي.دغه شان چې کله د ښځې سره خپل فرض مقام پریږدی.نو دهغه لمونځ هم فاسدیږي.

**فوائد** ◉ محاذات مفسده دا دي.چې په لمانځه کې دننه د ښځې قدم د سړي.دقدم سره برابر او مقابل وي.

**د امام د نیت نه کولو په صورت کې دمونځ حکم**



**وَإِنْ لَمْ يَنْوِ إِمَامَتَهَا** اوکه امام د ښځې د امامت نیت نه وی کړې. **لَمْ تَضُرَّهُ** نود ښځې محاذات د سړي لپاره نقصانی نه دی **وَلَا تَجُوزُ صَلَاتُهَا** نو د ښځې لمونځ نه جائز کیږي. **لِأَنَّ الِاشْتِرَاكَ لَا يَثْبُتُ دُونَهَا عِنْدَنَا** ځکه چې اشتراک بغیر د امامت دنیت نه زموږ په نیز نه ثابتیږي

حل اللغة: ① لم ینو، نوی نیة (ض): نیت کول ② لم تضره، ضر ضرا (ن): نقصان ورکول ③ لاتجوز، جاز جوازا (ن): اتزکیدل ④ جنب: اړخ

تشریح:- **صورة عدم نیة الامام امامتها** ◉ په دې عبارت کې یو صورت بیان کړې شوې دې.چې امام د محاذی ښځې د امامت نیت نه وی کړې.یعنی دا نیت ئې نه وی کړې.چې زه ددې ښځې امام یم.نو په دې صورت کې د ښځې محاذات سړي ته څه ضررر نه رسوی.او ددغه ښځې لمونځ هم جائز نه دې.

**دلیله** ◉ دلیل دا دې.چې زموږ په نیز بغیر د نیت نه اشتراک في الصلاة نه ثابتیږي.

**خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ**، په خلاف د قول د زفر رحمه الله.

تشریح:- **مذهب زفر رحمه الله في لزوم نیة امامتها** ◉ اګرچې د امام زفر رحمه الله په نیز بغیر دنیت نه هم اشتراک ثابتیږي.ځکه چې دامام زفر رحمه الله په نیزچې ښځه کله د سړي په لمانځه کې داخله شي.نود سړي د لمونځ د فساد لپاره دا شرط نه دې.چې امام دې ددې د امامت نیت کړې وي.ځکه چې سړې د سړو او ښځو دواړو امامت کولې شي.

**توضیح العبارة** ◉ ① بیا دا خبره دې ښکاره وي.چې د سړي د اقتداء نیت بغیر د امامت د نیت نه صحیح دې.یعنی که امام دانیت نه وی کړې.چې زه امام یم.نو بیا هم سړې د دغه امام اقتداء کولې شي.نودغه ډول بغیر دامامت د نیت نه د ښځو اقتداء هم صحیح ده.نو ثابته شو.چې د سړي د لمونځ دفساد لپاره د ښځې د امامت نیت شرط نه دې. ② خو زموږ په نیز بغیر دامام نه اشتراک نه ثابتیږي.

**أَلَا تَرَى** آیا ته نه ګورې. **أَنَّهُ يَلْزَمُهُ التَّرْتِيبُ** چې په امام باندې لازم دې.ترتیب کول **فِي الْمَقَامِ** هر یو د اودریدو په ځائې کې د اودرولو **فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْتِزَامِهِ** نودا خبره به د امام په لزوم باندې موقوفه وی **كَالِاقْتِدَاءِ** لکه څنګه چې د اقتداء حال دې.

تشریح:- **دلیل الاحناف** رحمهم الله ◉ ددې وجه د ﴿أخروهن﴾ احادیث دی.د مقتدیانو په ترتیب سره د اودرولو ذمه واری په امام باندې ده.یعنی ترتیب د مقام په امام باندې لازم دې.او په کوم کس چې څه شی لازم وی.نو هغه به د هغه په لزوم باندې موقوف وی.یعنی که امام ئې لازم کړي.نو لازم به وی.ګنی نه وی.لکه څنګه چې د اقتداء حال دې.چې د مقتدی د اقتداء کاوه نیت شرط دې.ځکه چې هم ددې اقتداء د نیت په وجه هغه خپل لمونځ د امام په ضمانت کې ورکوی.که د امام په څه حرت کې سره په لمانځه کې نقص او ضرر پیدا شی.نو مقتدی به هغه قبلوی.اودهغه په رضا سره به په هغه باندې لازمیږي.دغه ډول د امام ښځو ته د امامتې ور کاوه نیت شرط دې.چې د ښځو د اړخه که څه ضرر پیش شی.نم هغه به امام قبول کړې وی.

**الدلیل العقلی اشتراط نیة امامة المراة** ◉ شمس الائمه سرخسی رحمه الله بغیر د امامت د نیت نه دامام د لمونځ دعدم فساد وجه دا بیان کړې ده.که بغیر دامامت د نیت نه د ښځې اقتداء صحیح اوګرځولې شي.نو هره ښځه به چې څنګه غواړي.د سړي د لمونځ په فاسدولو باندې قادره وی.هغه داسې چې په سړي پسې به اقتداء کوی.اود هغه په اړخ کې به اودریږي.او ښکاره ده.چې په دې کښ سړي ته ضرر دې.ددې وجې د سړي لپاره د امامت شرط اوګرځولې شو.ددې لپاره چې دا ضرر د سړي په رضا مندئ سره په ده باندې لازمیږي.

**إِنَّمَا يُشْتَرَطُ نِيَّةُ الْإِمَامَةِ** او د امامت نیت په هغه وخت کې شرط دې. **إِذَا ائْتَمَّتْ مُحَاذِيَةً**.چې ښځه برابر ولاړه وی (اواقتداء ئې کړې وی)

**تشريح:- صورة فساد صلاة الامام بقيام المحاذاة** ﴿وإنما يشترط نية الإقامة﴾ ددے ځائي نه صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چې دامام د امامت نيت په هغه وخت كي شرط دي.چې كله ښځه دامام سره برابر ولاړه وي.اوهغه مقتدي جوړه شي.يعني د محاذات دوجے به د امام لمونځ په هغه وخت كي فاسديږي.كلهچې ښځه د هغه سره محاذي شي.او اقتداء وروسته اوكړي.او امام ددے د امامت نيت هم كړے وي.

> **وَإِنْ لَمْ يَكُنْ بِجَنْبِهَا رَجُلٌ** اوكه د ښځے په اړخ كے سړے نه وي **فَفِيهِ رِوَايَتَانِ**،نو په دے كي دوې (دوه) روايتونه دي

**تشريح:- حكم قيام المراة خلف الامام**◉اوكه ښځه د امام سره ولاړه وي.نو ددے دوې (دوه) صورتونه دي.يوداچې دا ښځه د مقتدي سره محاذي ولاړه وي. دوهم داچې د مقتدي سړي سره محاذي ولاړه نه وي.يعني دده په اړخ كي سړے نه وي.كه دا ښحه د سړي مقتدي سره محاذي ولاړه وي.نو صحيح دا ده.چې پغير د امامت د نيت نه دا ښځه مقتدنړه نه جوړيږي.

**حكم قيام المراة المحاذة مع رجل خلف الامام**◉كه د ښځے په اړخ كي سړے نه وي.يعني دے سره محاذي څوك سړے نه وي.نو په دے كښ دوې (دوه) روايتونه دي.①په يو روايت كي دامامت نيت كول دامام لپاره شرط دي.او په يو روايت كښ شرط نه دي.د دواو روايتونو وجه دا ده.چې په دے صورت كښ په فصل سره ښځه محاذي نه ده.نو ددے په ذات سره به څه فساد هم نه راځي.البته ددے خبره احتمال شته.چې دا وړاندې شي.او محاذيه شي.نو كه ددے احتمال اعتبار اوكړې شي.نو دامامت نيت به شرط وي.چې د لمونځ فساد ددے په التزام كاوه سره وي.اوكه ددے احتمال خيال اونه ساتلے شي.نونيت شرط نه دي.

**التطبيق بين الروايتين**◉ پاته شوه دا خبره چې په دے دوړو روايتونو كي د نيت د شرطت روايت او اول روايت كي څه توپير دے؟ نو ددے ځواب دا دي.چې په اول صورت كي يعني كلهچې ښځه د سړي سره محاذي ولاړه وي.نو فساد به بالفعل واقع وي.او په دوهم صورت كي د فساد امكان دي.يعني كلهچې ښځه په امام پسې ولاړه وي.او ددے په اړخ كي سړے نه وي.نو په دے صورت كي د فساد احتمال شته.كه دا وړاندې شي.او سړي سره برابر اودريږي.نودا احتمال په حقيقت باندې قياس كړې شو.او د نيت شرط اولګولے شو.يعني كه اعتبار اونكړي.نو نيت شرط نه دي.لكه څنګهچې په بل روايت كي دي.(عنايه)

> **وَالْفَرْقُ عَلَى إِحْدَاهُمَا** او توپير په دے دواړو كي په يو كي دا دي **أَنَّ الْفَسَادَ فِي الْأَوَّلِ لَازِمٌ**،چې فساد په اولنی لمونځ كي لازم دي **وَفِي الثَّانِي مُحْتَمَلٌ** او په دوهم صورت كي د فساد احتمال شته.

**تشريح:- الفرق بين الروايتين**◉علامه بدرالدين عيني رحمه الله شارح ،،هدايه،، ليكلي دي.چې فاضل مصنف رحمه الله په بيان كړي اولنی صورت او دوهم روايت (عدم اشتراط نيت) كي توپير كول دي.نو اوس به توپير دا وي.چې په اولنی صورت كي چونكه د لمونځ فساد لازميږي.نوځكه نيت شرط دي.چې د لمونځ د فساد دالتزام نه بچ وي.او په دوهم صورت كي چونكه محل محتمل دي.نوځكه د نيت شرط اونه لګولے شو.

**دمحاذاة شرطونه**

> **وَمِنْ شَرَائِطِ الْمُحَاذَاةِ** د محاذات مفسده په شرطونو كي دا دي. **أَنْ تَكُونَ الصَّلَاةُ مُشْتَرَكَةً**،چې لمونځ مشترك وي.

**حل اللغة:** ①**محاذاة:** برابركيدل

**تشريح:- الاشتراک في التحريمة**◉په دے عبارت كي مفسد محاذات شرطونه ذكر شوي دي.①اول داچې د دواړو لمونځ په تحريمه او ادا كښ مشترك وي.په تحريمه كي د اشتراك مطلب دا دي.چې د دواړو د تحريمے بناء د امام په تحريمه باندې وي.يا په دے دواړو كي يو د بل په تحريمه باندې بناء كړې وي.په دے طريقهچې په ښځه او سړي كي يو امام او بل مقتدي وي.او په ادا كي د اشتراك مطلب دا دي.چې كوم لمونځ دا دواړه



كوي.په هغے كښ د دے دوړو لپاره امام وي.حقيقة يا حكما ،

**مثاله**◉مثلاً يو سړي او يوے ښځے په دريم ركعت كي په امام پسې اقتداء اوكړله.بيا دا دواړه يے اودسه شو.او دواړه لاړل.بيا راغلل.اولمونځ كول ئې پيل كړل.او ښځه دده سره محاذي شي.نوكه ښځه د امام په دريم او څلورم ركعت كي محاذي شوې وي.كومچې د دے دواړو اولنے او دوهم ركعت وي.نو د سړي لمونځ به ددے محاذات د وجے فاسديږي.ځكهچې په دريم او څلورم ركعت كي د تحريمے او د ادا دواړو په اعتبار سره اشتراك دي.اشتراك في التحريمه خو ددے لپاره دي.چې د دواړو د تحريمے بناء د امام په تحريمه باندې وي.او اشتراك في الاداء ددے وجے دي.چې په دوهم او څلورم ركعت كښ د دواړو لپاره يو امام دي.اګرچې حكماً دي.حكماً ددے وجے دي.چې كله دواړه د اودس كاوه لپاره لاړ شي.نو امام خپل جماعت پريږدي.نوامام خپل لمونځ پوره كړي وي.نو په دريم او څلورم ركعت كي دا واړه لاحق شو.ا د لاحق لپاره اګرچې په حقيقت كي امام نه وي.خو حكماً امام وي.

**ادراک الركعتين الاخريين مع الامام**◉اوكه روستني دواړه ركعتونه اوكړي.او په خپل دريم او څلورم (كومچې په حقيقت كي د دوي اولنے او دوهم ركعت دے) لاړه شي.او د سړي سره محاذي شي.نود سړي لمونځ نه ماتيږي.ځكهچې په اولنی او دوهم ركعت كي دا دواړه مسبوقان دي.اومسبوقچې كله خپل فوت شوي ركعتونه كوي.نودهغه لپاره نه حقيقة امام وي.اونه حكماً امام وي.و په دے دواړو ركعتونو كښ شركت في التحريمه اګرچې موجود دي.خو شركة في الاداء موجود نه دي.نو ځكه په دے صورت كي هم محاذات مفسد د لمانځه نه دي.

> **وَأَنْ تَكُونَ مُطْلَقَةً**، اوداچې لمونځ مطلق وي. **وَأَنْ تَكُونَ الْمَرْأَةُ مِنْ أَهْلِ الشَّهْوَةِ** او داچې ښځه، د اهل شهوت ځنی وي **وَأَنْ لَا يَكُونَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ** اوداچې د سړي او ښځه په مينځ كي حائل نه وي.

**تشريح:-** دوهم شرط دا دي.چې صلاة مطلقه وي.(د ركوع او سجدے مونځ) اګرچې د څه عذر د وجے دا په اشاره باندې ادا كوي.نود جنازے په لمانځه كي محاذات مفسد نه دي.③دريم شرط دا دي.چهچې ښځه مشتهاة (قابل شهوت) وي.برابره ده كه دا ښځه وينځه وي اوكه اصيله وي.بي بي وي يا مور يا خور وغيره محرمه وي.④څلورم شرط دا دي.چې د دواړو په مينځ كي څه شي پرده نه وي.مثلاً ستن،يا بل څه ځيز،يا دومره ځائے خالي وي.چې په هغے كي يو سړے اودريديږي.

> **لِأَنَّهَا عُرِفَتْ مُفْسِدَةً بِالنَّصِّ، بِخِلَافِ الْقِيَاسِ** ځكهچې د محاذات مفسد كيدل خلاف قياس په نص سره معلوم شوي دي **فَيُرَاعَى جَمِيعُ** نو ددے ټولو كارونو خيال به په كي ساتلے شي **مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ** په كوموچې نص وارد شوي دي.

**حل اللغة:** **فيراعى**، **راعى مراعاة**: رعايت ساتل

**تشريح:- دليل الشروط**◉د دے ټولو شرطونو دليل دا دي.چې دمحاذات فساد خلاف القياس يعنى ﴿اخروهن من حيث أخرهن الله﴾نه معلوم شوه.نو ددے ټولو كارونو خيال به ساتلے شي.په كوموچې نص وارد شوې وي.

**انكار صاحب العناية من صحة الاستدلال**◉صاحب د عنايه رحمه الله دا استدلال مسترد كړې دي. فرمائي.چې په دے حديث كي هډو د لمونځ نشته.لاپاتې ددے قيوداتو ذكر،خو بعضے حضراتو ددے قيوداتو د اثبات لپاره د ډيرو تكلفاتو نه كار اخستے دي.ددے لپاره د مولانا عبدالحى رحمه الله حاشيه د هدايه اوګورئ.

البته ما په خپل ،،كتاب صلاة الحنفى فى ضوء احاديث النبوى،، كښې د دې مسئلې لپاره دا دليل ذكر كړې دي

**دليل محاذاة الرجل**◉ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْكِنْدِيِّ أَنَّهُ رَكِبَ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَسْأَلُهُ عَنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ، قَالَ فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ فَسَأَلَهُ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَا أَقْدَمَكَ قَالَ لِأَسْأَلَكَ عَنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ قَالَ وَمَا هُنَّ قَالَ رُبَّمَا كُنْتُ أَنَا وَالْمَرْأَةُ فِي بِنَاءٍ ضَيِّقٍ فَتَحْضُرُ الصَّلَاةُ فَإِنْ صَلَّيْتُ أَنَا وَهِيَ كَانَتْ بِحِذَائِي وَإِنْ صَلَّتْ خَلْفِي خَرَجَتْ مِنَ الْبِنَاءِ فَقَالَ عُمَرُ تَسْتُرُ بَيْنَكَ وَبَيْنَهَا بِثَوْبٍ ثُمَّ تُصَلِّي بِحِذَائِكَ إِنْ شِئْتَ وَعَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ فَقَالَ نَهَانِي عَنْهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَعَنِ الْقَصَصِ

فَإِنَّهُمْ أَرَادُونِي عَلَى الْقَصَصِ فَقَالَ مَا شِئْتَ كَأَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يَمْنَعَهُ قَالَ إِنَّمَا أَرَدْتُ أَنْ أَنْتَهِيَ إِلَى قَوْلِكَ قَالَ أَخْشَى عَلَيْكَ أَنْ تَقُصَّ فَتَرْتَفِعَ عَلَيْهِمْ فِي نَفْسِكَ ثُمَّ تَقُصَّ فَتَرْتَفِعَ حَتَّى يُخَيَّلَ إِلَيْكَ أَنَّكَ فَوْقَهُمْ بِمَنْزِلَةِ الثُّرَيَّا فَيَضَعَكَ اللَّهُ تَحْتَ أَقْدَامِهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقَدْرِ ذَلِكَ (۱)

## د ښځو لپاره په جماعت کې شرکت

وَيُكْرَهُ لَهُنَّ حُضُورُ الْجَمَاعَاتِ او د ښځو لپاره جماعت ته حاضريدل مکروه دی يَعْنِي الشَّوَابَّ مِنْهُنَّ مراد خوانانې ښځې دی.

حل اللغة: ① شواب، د شابة جمع: خوانه ښځه

تشريح:- المذهبان في حضور النساء الجماعة ① د خوانانو ښځو جاعت ته حاضريدل مکروه دی. ② امام شافعي رحمه الله فرمائی. چې د ښځو جمات ته تلل مباح دی.

دليل الشافعي دامام شافعي رحمه الله دليل د نبي ﷺ ارشاد دې. «لا تمنعوا آماء الله مساجد الله» يعني د الله تعالى وينځې د الله تعالى د جماتونو نه مه منع کوئ. او په يو روايت کې دی. «إذا إستاذنت أحدكم إمرأته إلى المسجد فلا يمنعها» يعني کله چې په تاسو کې د چا نه خپله ښځه د جمات تلو اجازت اوغواړی. نو هغه دې نه منع کوی.

لِمَا فِيهِ مِنْ خَوْفِ الْفِتْنَةِ ځکه چې د دوی په حاضرئ کې د فتنې ويره ده.

تشريح:- دليل الاحناف ① زمونږ دليل دا دې. چې د خوانانو ښځو په حاضرئ کې د فتنې ويره ده. ځکه به دوی جماتونو ته د حاضريدو نه منع کولې شی. ② دوهم دليل دا دې. چې کله حضرت عمر رضي الله عنه ښځې جماتونو ته د تلو نه منع کړلې. نو ښځو حضرت عائشې رضي الله عنها ته شکايت اوکړلو. نو ام المومنين رضي الله عنها ورته اوفرمائيل. که نبي ﷺ ته د دې حالت علم شوې وې. د کوم چې عمر رضي الله عنه ته علم دې. نو نبي ﷺ به ښځې اجازت نه وو ورکړې. په يو روايت کې دی. که نبي ﷺ د نن په څير مونځګذارو حالت ليدلې وې. نو لکه څنګه چې د بنی اسرائيلو ښځې منع شوې وې. تاسو به هم منع شوې وئ.

تائيد الاحناف باثر العائشة رضي الله عنها زمونږ د مذهب تائيد د دې حديث نه هم کيږی. کوم چې ابن عبدالبر رحمه الله په خپل سند سره د حضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل کړې دې. «أيها الناس إنهوا نساءكم عن لبس الزينة والتبختر في المساجد فإن بنى إسرائيل لم يلعنوا حتى لبست نسائهم الزينة وتبخروا في المساجد» يعني اې خلګو خپلې ښځې په جماتونو کې د زينت او تکبر د لباس اغوستلو نه منع کړئ. ځکه چې بنی اسرائيل ملعون شوی نه وو، تر دې چې د هغوی ښځو په جماتونو کښې د زينت او فخر او غرور جامې واچولې. چونکه زمونږ په زمانه کښې د فاسقانو غلبه ده. نو ځکه به غير مزينې زنانه هم منع کولې شی.

## د بوډاګانو ښځو لپاره په جماعت کې شرکت

وَلَا بَأْسَ لِلْعَجُوزِ او د بوډئ ښځې لپاره څه بديت نشته. أَنْ تَخْرُجَ فِي الْفَجْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ چې هغه د صبا، ماښام او د ماسخوتن په لمانځه کې اوځی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (۲) او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ده.

حل اللغة: ① عجوز: بوډۍ ښځه

تشريح:- الاختلاف في خروج العجوزات الى المساجد حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله بوډئ ګانې ښځې د ماپښين او مازيګر په وخت کې د وتلو نه منع کړی دی. البته د ماسخوتن او او ماښام په وخت کې ئې د وتلو اجازت

(۱) اخرجه ابوداود فى الصلاة باب اذا احدث فى صلاته فليستقبل رقم ۸۵۳ رجاله ثقات)

(۲) القول الراجح هو عدم الجواز مطلقا كذا فى العناية على هامش فتح القدير (۱\۳۱۸) وفتح القدير (۳۱۷) ردالمحتار (۱\۴۱۸) ومجمع الانهر (۱\۱۰۹) نقلا عن القول الراجح (۱\۹۲)_



ورکړی دی.

وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمايي يَخْرُجْنَ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا چې بوډئ ګانې ښځې په ټولو مونځونو کې وتلې شی. لِأَنَّهُ لَا فِتْنَةَ لِقِلَّةِ الرَّغْبَةِ إِلَيْهَا ځکه چې (په بوډئ ګانو ښځو کې) د رغبت د کمی د وجې د فتنې ويره نه وی. فَلَا يُكْرَهُ نو مکروه به نه وی. كَمَا فِي الْعِيدِ لکه څنګه چې په اختر کې وی

تشريح:- او صاحبينو رحمهما الله بوډئ ګانې ښځو ته په ټولو مونځونو کې د وتلو اجازت ورکړې دې.

دليل الصاحبين د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چې بوډئ ګانو ښځو ته د طبعيت د ميلان د کمی د وجې څه فتنه نه وی. نو ځکه د دوی وتل هم مکروه نه دی. لکه په اختر کې چې ئې وتل په اتفاق سره جائز دی.

الروايتان في مقصد خروج النساء في العيدين ① پاته شوه دا خبره چې په اختر کې وتل د لمانځه لپاره دی. يا بغير د لمانځه نه، نو په دې اړه کې د اما ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دی. يو روايت کوم چې حسن رحمه الله نقل کړې دې. چې بوډئ ګانې ښځې به د اختر د لمانځه لپاره اوځی. او په آخری صف کې به اودريږی. سړو سره به مونځ کوی. ځکه چې ښځې د سړو تابع شوی دی. او په جماعت کې شريکې شوی دی. ② دوهم روايت کوم چې معلی د ابويوسف رحمه الله نه او ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل کړې دې. چې په اختر کې د بوډئ ګانو ښځو وتل د جماعت د تکبير لپاره دې. يعنی يو اړخ ته دې اودريږی. او د سړو سره دې لمونځ نه کوی. ځکه چې د صحت په طريقه دا خبره ثابته شوې ده. چې نبي ﷺ حايضو ښځو ته اختر ته د وتلو حکم کړې و، . حالانکه هغوی دلمونځ قابلې نه وې. نو معلومه شوه. چې په اختر کښې وتل د اختر دلمانځه لپاره نه وی. بلکه د جمعې د زياتولو لپاره وی.

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ فَرْطَ الشَّبَقِ حَامِلٌ چې شدت شهوت باعث د جماع دې. فَتَقَعُ الْفِتْنَةُ، نو فتنه به واقع کيږی. غَيْرَ أَنَّ الْفُسَّاقَ انْتِشَارُهُمْ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْجُمُعَةِ، مګر دا چې فاسقان ماپښين، مازيګر او جمعه کې خپاره واره وی

تشريح:- دليل ابی حينفة رحمه الله دامام ابوحينفه رحمه الله دليل دا دې. چې د شهوت زيادت د جماع باعث جوړيږی. نو د بوډئ ګانو ښځو په وتلو کې هم فتنه واقع کيږی. البته دومره خبره ضروری ده. چې فاسقان خلګ په ماپښين او مازيګر او د جمعې د لمانځه په وختونو کې ګرځی. نو ځکه به په دې وختونو کې بوډئ ګانې ښځې نه اوځی.

أَمَّا فِي الْفَجْرِ وَالْعِشَاءِ فَهُمْ نَائِمُونَ، او په سهار او ماسخوتن کې ويده (اوده) وی. وَفِي الْمَغْرِبِ بِالطَّعَامِ مَشْغُولُونَ، او دماښام په وخت کې خورک کې لګيا وی

تشريح:- پاته شو د سهار او ماسخوتن په وخت کښې نو دوی په دغه وخت کښې ويده (اوده) وی. او دماښام په وخت کې په خوراك کې بوخت وی. و ملعومه شو. چې په دې دريو وختونو کې د فاسقانو نه امن وی. ځکه په دې دړے واړه وختونو کې بوډئ ګانو ښځې ته د لمانځه لپاره د وتلو اجازت ورکړې شو.

وَالْجَبَّانَةُ مُتَّسِعَةٌ او په اخترونو کې صحراء لويه وی فَيُمْكِنُهَا الِاعْتِزَالُ عَنِ الرِّجَالِ او په لوئې ډګر کې د ښځو لپاره د سړو نه جلا کيدل ممکن دی فَلَا يُكْرَهُ نو ځکه (په اختر کې) وتل مکروه نه دی.

تشريح:- الجواب عن قياس الصاحبين صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. چې دصاحبينو رحمهما الله په اختر کې وتلو باندې قياس صحيح نه دې. ځکه چې د اختر په ورځ په عامه توګه لمونځ په صحراء کې وی. او صحراء لويه وی. نو په

لونې ډگر کي د بوډۍ ګانو ښځو د سړو نه یوخواته کیدل ممکن وی.ځکه د دوی په اختر کښې وتل مکروه نه دی.

فائده◉ نن سهار چونکه فساد عام دې.نو په ټولو مونځونو کې د بوډۍ ګانو ښځو لپاره وتل مکروه دی.(عنایه)

### دطاهره لپاره د مستحاضه اقتداء کول

قَالَ وَلَا يُصَلِّي الطَّاهِرُ خَلْفَ مَنْ او پاك سړي دې په هغه کس پسې لمونځ نه کوی. هُوَ فِي مَعْنَى الْمُسْتَحَاضَةِ ځوكچې د مستحاضة په حکم کې وی

تشریح:- عدم جوازاقتداء الطاهر خلف المعذور◉مستحاضه( او ځوكچې د مستاضة په حکم کې وی.د فقهاؤ په اصطلاح کې هغه ته معذور وائی.نو اوس صورت د مسئلې دا شو.چې پاك سړې به په معذوره پسې لمونځ نه کوی.اونه پاکه ښځه په مستحاضة ښځې پسې.

وَلَا الطَّاهِرَةُ خَلْفَ الْمُسْتَحَاضَةِ او نه پاکه ښځه په مستحاضة ښځه پسې لمونځ کوی. لِأَنَّ الصَّحِيحَ أَقْوَى حَالًا مِنَ الْمَعْذُورِ، ځکه چې د روغ حالت د معذوره په نسبت اقوی دې وَالشَّيْءُ لَا يَتَضَمَّنُ مَا هُوَ فَوْقَهُ، او ځیزد خپل ځان نه اوچت لپاره متضمن نه وی وَالْإِمَامُ ضَامِنٌ حالانکه امام ضامن وی بِمَعْنَى أَنَّهُ تَضَمَّنَ صَلَاتُهُ صَلَاةَ الْمُقْتَدِي په دې معنی چې دامام لمونځ د مقتدی د لمانځه لپاره متضمن دې.

تشریح:- مفهوم الاستدلال◉د دلیل نه وړاندې دا خبره په ذهن کې کینوئ.چې د دې په ځیر د ټولو مسئلو اصل دنبی ﷺ ارشاد دې «الإمام ضامن»اود حدیث معنی دا ده.چې د امام لمونځ دمقتدی د لمونځ متضمن دې.دا معنی نه ده.چې دمقتدی د لمونځ ذمه وار یعنی مکلف دې.دویمه خبره چې دخپل ځان نه کم لره متضمن دې.یا د خپل ځان په ځیر لره،خو دخپل ځان اوچت لره متضمن نه دې.

حاصل الدلیل◉اوس ددلیل حاصل دا شو.چې په ذکر شوی صورت کښې مقتدی چونکه پاك او غیر معذور دې.او امام د معذور په حکم کښې دې.نوځکه د مقتدی د لمونځ حال د امام د لمانځه د حالت نه قوی او اوچت دې.او دامام دلمانځه حال کم او ادنی دې.اوچونکه کم او اضعف اقوی لره نشی متضمن کیدې.نوځکه دامام لمونځ د مقتدی دلمانځه لپاره نشی متضمن کیدې.حالانکه دامام لمونځ د مقتدی د لمانځه لپاره متضمن وی.نوځه د پاك او غیر معذور سړی اقتداء په معذور پسې جائز نه ده.دغه ډول د پاکې ښځې اقتداء په مستحاضة پسې جائز نه ده.ځکه چې د مستحاضة د لمونځ حالت د مقتدئ ښځې د لمونځ دحالت نه ناقص دې.

### دقاری په امی او د کاسی په عاری پسې اقتداء

وَلَا يُصَلِّي الْقَارِئُ خَلْفَ الْأُمِّيِّ ولمونځ به نه کوی قاری په امی پسې کوی. وَلَا الْمُكْتَسِي خَلْفَ الْعَارِي ونه عورت پټونکې په بربنډ پسې لِقُوَّةِ حَالِهِمَا ځکه چې د قاری او مکتسی حال د امی او عاری په نسبت سره قوی دې.

حل اللغة:①امی: ان پړه ②مکتسی: کپړې اغوستونکې ③عاری: بربنډ ، چاسره چې کپړې نه وی

تشریح:- مسئله اودد دلیل ښکاره دې.

### اودس کونکو لپاره په تیمم کونکو پسې اقتداء



وَيَجُوزُ أَنْ يَؤُمَّ الْمُتَيَمِّمُ الْمُتَوَضِّئِينَ وتیمم کونکو ته د اودس کونکو امامت جائز دې وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ.(۱) اودا د امام ابوحنیفه اوابویوسف رحمهما الله په نیز دې

حل اللغة:①ان یوم، ام امامة (ن): امامت کول ②متوضئین: اودس کونکی

تشریح:- المذهبان في اقتداء المتوضی بالمتیمم◉په دې اړه کې اختلاف دې.چې متوضی په متیمم پسې اقتداء کولې شی کنه نه؟①شیخینو رحمهما الله دا جائز ګرځولې ده.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَجُوزُ او امام ممحمد رحمه الله فرمائی.چې جائز نه دې لِأَنَّهُ طَهَارَةٌ ضَرُورِيَّةٌ ځکه چې تیمم خو طهارت ضروریه دې وَالطَّهَارَةُ بِالْمَاءِ أَصْلِيَّةٌ. او په اوبو سره طهارت حاصلول اصل دې

تشریح:- او امام محمد د عدم جوازقائل دې.

دلیله◉د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چې تیمم طهارت ضروری دې.او طهارت په اوبو سره طهارت اصلیه دې.او په دې خبره کې څه شك نشته.چې کوم کس د طهارت اصلیه حامل وی.د هغه حال زیات قوی وی.په نسبت سره دهغه چا حال ته چې په طهارت ضروریه باندې مشتمل وی.نومعلومه شوه چې د مقتدی حال د امام د حال نه اقوی دې.او دا خبره منلې شوه.چې د کم حالت کس د اوچت حالت کس ته امامت نشی ورکولې.نوځکه موږ وایو.چې د اودس کونکو اقتداء جائز نه ده.

وَلَهُمَا أَنَّهُ طَهَارَةٌ مُطْلَقَةٌ او دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چې تیمم طهارت مطلقه دې وَلِهَذَا لَا يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْحَاجَةِ هم ددې وجې دا په قدر د حاجت پورې محدود نه دې

حل اللغة:حاجت: ضرورت

تشریح:- دلیل الشیخین◉اود شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چې تیمم طهارت مطلقه غیر موقته دې.یعنی تیمم مطلقاً طهارت دې.د مستحاضة د طهارت په ځیر موقت نه دې.هم دا وجه داچې په قدر د جاحت پورې مقدر نه دې.بلکه ترلس کالو پورې که اوبه پیدا نشو.یا ددې په استعمال باندې قدرت نه وی.نو تیمم په مشروع وی.نوهرکله چې تیمم طهارت مطلقه شو.نوهرکله چې تیمم طهارت مطلقه شو.نو د متیمم او متوضی دواړو حالت یو شان شو.اوهرکله چې د دواړو حالت یو شان شو.نو یو د بل امامت کولې شی.

### په ماسح پسې د غاسل اقتداء

وَيَؤُمُّ الْمَاسِحُ الْغَاسِلِينَ او مسح کونکی د پښو وینځونکو امامتی ورکولې شی

حل اللغة:①ماسح: مسح کونکې ②غاسلین: وینځونکی

تشریح:- جوازامامة الماسح للغاسل◉صورت د مسئلې دا دې.چې په موزو باندې مسح کونکې پښو وینځونکی امامتی کولې شی.

---

(۱) القول الراجح هو قول الشیخین کذا فی فتح القدیر (۱\۳۲۰) وطحطاوی (ص،۱۶۱) والخانیة (۱\۹۰) والبحرالرائق (۱\۶۳۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۹۲)-

لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ سِرَايَةَ الْحَدَثِ إِلَى الْقَدَمِ، ځکه چې موزه يې اودسې قدم ته د سرايت نه منع کونکې ده وَمَا حَلَّ بِالْخُفِّ او څه چې په موزه کښې داخل شوی وي. يُزِيلُهُ الْمَسْحُ، نو هغه موزه لرې کوي.

**حل اللغة:** ① **خف:** موزه ② **مانع:** بندونکې ③ **يزيله، ازال، يزيل ازالة:** زائل کول

**تشريح:- دليله**ۃ دليل دا دی. چې صاحب د موزې خپلو پښو وينځلو نه روستو موزې اچولې دي. او موزه قدم ته د حدث سرايت نه پرېږدي. ود کس د پښو وينځونکې پاتې شو.

**الجواب من السوال التقديرى**ۃ پاتې دا چې حدث په موزه کې ورداخل شوی دی. نو ددې ځواب دا دی. چې څه په موزه کې ورداخل شوی وي. هغه په مسح لرې کوي. نو ځکه د موزې د خاوند طهارت د وينځونکې په څېر پاتې دی.

بِخِلَافِ الْمُسْتَحَاضَةِ په خلاف د مستحاضه لِأَنَّ الْحَدَثَ ځکه چې حدث (يې اودسې) داسې څيز دی. لَمْ يُعْتَبَرْ شَرْعًا چې ددې زوال شرعاً معتبر دی. مَعَ قِيَامِهِ حَقِيقَةً ددې باوجود چې حدث په حقيقت کې موجود وي.

**تشريح:-** ددې په خلاف مستحاضه ( ښځه ده. يعنی په چا پسې چې د عذر د وجې اقتداء کول جائز نه دي. ددې وجه دا ده. چې د معذور حدث په حقيقت کې قائم وي. نو چې حدث موجود وي. نو شريعت دا معذوره ګرځولې ده. داسې نه ده. چې حدث ئې زائله کړې وي. نو چونکه د معذور سره په حقيقت کې حدث قائم دی. نو ځکه د غير معذور لپاره په معذور پسې اقتداء کول جائز نه دي.

## د قائم په قاعد پسې اقتداء

وَيُصَلِّي الْقَائِمُ خَلْفَ الْقَاعِدِ (1) او ولاړ سړی په ناست پسې لمونځ کولې شي

**حل اللغة:** ① **يصلي، صلى صلاة:** لمونځ کول، دعا کول ② **خلف:** روستو ③ **قاعد:** کيناستونکې

**تشريح:- المذهبان في صلاة القائم خلف القاعد**ۃ **مسئله:** قائم د قاعد اقتداء کولې شي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام محمد رحمه الله فرمائي. لَا يَجُوزُ، چې جائز نه دي وَهُوَ الْقِيَاسُ او هم دا قياس دی. لِقُوَّةِ حَالِ الْقَائِمِ ځکه چې د قائم حال قوی وي.

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله فرمائي. چې د قائم په قاعد پسې اقتداء کول جائز نه ده.

الدليلان عليه ۃ ① م دا د قياس تقاضا ده. ځکه چې د قائم حال د قاعد د حال نه قوی دی. ② او لکه څنګه چې روغ سړی په هغه ناجوړه پسې اقتداء نشي کولې. څوک چې په اشاره لمونځ کوي. ځکه چې د روغ حال د دغه مريض نه قوی دی. دغه ډول د قائم لپاره په قاعد پسې اقتداء کول جائز نه دي.

وَنَحْنُ تَرَكْنَاهُ بِالنَّصِّ، او موږ قياس د نص د وجې پرېږدو وَهُوَ مَا رُوِيَ او نص هغه حديث دی. کوم چې روايت کړې شوی دی {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى آخِرَ صَلَاتِهِ قَاعِدًا چې نبي ﷺ آخري لمونځ په ناسته کړې وو. وَالْقَوْمُ خَلْفَهُ قِيَامٌ} (2) او قوم ورپسې ولاړ وو.

**حل اللغة:** **ترکناه، ترک ترکا (ن):** پرېښول

**تشريح:- دليل الشيخين والجواب عن قياس محمد رحمه الله**ۃ خو موږ دا قياس د نص په وجه پرېږدوو. د نص نه مراد

---

1) القول الراجح هو قول الشيخين كذا فى الخانية (۳۴/۱) والعناية (۳۲۰/۱) الدرالمختار(۴۳۵/۱) والحلبى (ص،۵۱۸) نقلا عن القول الراجح (۹۳/۱)_

1) من حديث عائشة رضى الله عنها رواه البخارى فى الاذن باب ۵۱ ومسلم فى الصلاة باب رقم ۹۰ والنسائى فى الاقامة باب ۴۰ والدارمى فى الصلاة باب ۴۴ واحمد فى المسند (۲۵۱/۶)_



دا حديث دی. چې نبي ﷺ کله په مرض الوفات کې اخته شو. نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. چې ابوبکر ؓ ته اووائې. چې خلګو ته لمونځ ورکړي. چې دا نې واوريدلو. نو حضرت عائشې ؓا (حضرت حفصې ؓا ته اووئيل. چې ته د الله پيغمبر ته اووايه. چې ابوبکر ؓ د نرم زړه سړی دی. چې ستاسو په ځائې په مصلی اودرېږي. نو په خپل ځان به ئې قابو رانشي. ددې وجې بل چاته د لمونځ ورکول حکم اوکړئ. عائشې ؓا د خبره دوباره اوکړله. نو نبي ﷺ اوفرمائيل. "إِنَّكُنَّ صَوَاحِبَاتُ يُوسُفَ" ابوبکر ته اووائې. چې خلګو ته لمونځ ورکړي. بيا چې کله صديق اکبر لمونځ پيل کړلو. نو نبي ﷺ په مرض کې خفت محسوس کړلو. بيا ئې د حضرت عباس او حضرت علی ؓ په سهارا باندې جمات ته تشريف يوړلو. چې کله ابوبکر ؓ د نبي کريم ﷺ په راتګ باندې پوهه شو. نو روستو شو. او نبي ﷺ وړاندې شو. او په ناسته ئې لمونځ کولو. او ابوبکر ؓ به د نبي ﷺ په لمانځه پسې لمونځ کولو. او خلګو به د ابوبکر ؓ په لمانځه پسې لمونځ کولو. مراد دا دی. چې نبي ﷺ په ناسته امامتي کوله. او ابوبکر ؓ چې به د نبي ﷺ د تکبير آواز واوريدلو. نو تکبير به ئې کولو. او چې خلګو به د ابوبکر ؓ د تکبير آواز واوريدلو. نو تکبير به ئې وئيل. دا د نبي ﷺ آخري لمونځ وو. په دې کې نبي ﷺ امامتي ورکړې وه. ددې حديث نه معلومه شوه. چې د ولاړه سړي لمونځ په ناسته لمونځ کونکې پسې کيږي.

## په مومي پسې د مومي اقتداء

وَيُصَلِّي الْمُومِئُ او په اشاره سره لمونځ کونکې به لمونځ کوي خَلْفَ مِثْلِهِ په خپل هم مثل په څېر په اشاره پسې. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحَالِ ځکه چې په حالت کې دواړه برابر دي إِلَّا أَنْ يُومِئَ الْمُؤْتَمُّ قَاعِدًا اګر چې دا مقتدی په په ناسته اشاره کوي وَالْإِمَامُ مُضْطَجِعًا، او امام په ملاسته اشاره کوي لِأَنَّ الْقُعُودَ مُعْتَبَرٌ ځکه چې قعود خو معتبر دی. فَتَثْبُتُ بِهِ الْقُوَّةُ نو په دې سره به قوت ثابت شي.

**تشريح:- مسئله:** په اشاره باندې لمونځ کونکې د خپل ځان په څېر په اشاره لمونځ کونکې پسې اقتداء کولې شي. اګر چې امام په ناسته اشاره کوي. او مقتدی په ولاړه اشاره کوي.

**دليله**ۃ ځکه چې په ولاړه اشاره کاوه په صورت کې قيام رکن نه پاتې کيږي. بلکه ددې پرېښول غوره دي. نو دا قيام د عدم قيام په حکم کې دی. حاصل د دليل دا دی. چې که يو کس په ناسته په اشاره باندې د لمونځ کاوه قدرت لرلو. نو په ناسته په اشاره باندې لمونځ کول جائز نه دي. نو معلومه شوه. چې قعود معتبر رکن دی. او هر کله چې قعود معتبر رکن شو. نو په دې سره د مقتدی په حال کې قوت ثابتوي. کوم چې امام ته حاصل نه دی. او چونکه د زيات قوي حال والا کس په هغه کس پسې اقتداء جائز نه ده. چې په حالت کې قوي نه وي. نو ځکه په ناسته اشاره کونکې لپاره په ملاسته اشاره کونکې پسې اقتداء جائز نه ده.

## د راکع او ساجد لپاره د مومي پسې اقتداء

وَلَا يُصَلِّي الَّذِي يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ او رکوع او سجده کونکې به اقتداء نه کوي خَلْفَ الْمُومِئِ په اشاره لمونځ کونکې پسې. لِأَنَّ حَالَ الْمُقْتَدِي أَقْوَى، ځکه چې د مقتدی حالت اقوی دی وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ او په دې کې د امام زفر رحمه الله اختلاف دی.

**حل اللغة:** ① **يركع، ركع ركوعا (ف):** ټيټيدل، رکوع کول ② **مومي:** اشاره کونکې

**تشريح:- المذهبان في اقتداء الراكع بالمؤمنى**ۃ ① مسئله دا ده. چې په رکوع او سجدې سره موخ کونکې به په اشاره کونکې پسې لمونځ نه کوي. ② امام زفر رحمه الله فرمائي. چې اشاره کونکې د رکوع او سجده کونکې امامت کولې شي.

**دليل زفر رحمه الله**ۃ د امام زفر دليل دا دی. چې په اشاره لمونځ کونکې نه رکوع او سجده په بدل سره ساقط شوې. يعنی رکوع او سجده اګر چې ساقطې شوې. خو ددې بدل يعنی اشاره موجود ده. او د بدل سره ادا کول داسې دي. لکه اصل سره دا کول، هم دا وجه ده. چې متيمم د اودس کونکو امامتي کولې شي.

**دليل جمهورالاحناف**۞زموږ دليل دا دي.چي په دے مسئله کښې د مقتدی حال اقوی دي.او امام اضعف دي.او وړاندې تير شوی دی.چي اضعف الحال اقوی الحال ته امامتي نشي ورکولي.

پاته پاتے شوه دا خبره‌چي دا شاره د رکوع او سجدے بدل دي.نو موږ دا خبره نه منو.ځکه‌چي اشاره د رکوع او سجدے بعضے برخه ده.او بعضے شي د کل شي بدل نشي کيدي.

**د مفترض لپاره په متنفل پسې اقتداء**

| |
|---|
| **وَلَا يُصَلِّي الْمُفْتَرِضُ خَلْفَ الْمُتَنَفِّلِ** وفرض کونکے دے په نفل کونکی پسې اقتداء نه کوی. **لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ بِنَاءٌ** خکه‌چي اقتداء کول بناء ده. |

**حل اللغة:** ①**خلف:** روستو، **متنفل:** نفل لمونځ کونکي

**تشريح:- عدم جوز اقتداء ا لمفترض بالمتنفل**۞د مفترض لپاره په متنفل پسي اقتداء كول جائز نه ده.

| |
|---|
| **وَوَصْفُ الْفَرْضِيَّةِ مَعْدُومٌ فِي حَقِّ الْإِمَامِ** حالانکه د امام په حق کي ، د فرضيت وصف معدوم دي. **فَلَا يَتَحَقَّقُ الْبِنَاءُ عَلَى الْمَعْدُومِ** نو بنا ، كول په معدوم باندې نه متحقق كيږي. |

**تشريح:- دليله**۞خکه‌چي اقتداء نوم دے د بناء کولو.او بناء امر وجودی دي.امر عدمی نه دي.اوبنکاره ده.چي متابعت مفهوم وجودی دي.مفهوم سلبی نه دي.او د امر وجودی بناء په امر عدمی باندې صحيح نه ده.اوچونکه په ذکر شوې مسئله کي د امام په حق کي د فرضيت وصف معدوم دي.نوځکه بناء نه متحقق کيږي.او کله‌چي بناء کول نه متحقق کيږي.نو اقتداء به څنګه صحيح شي.

**د يومفترض په بل مفترض پسې اقتداء**

| |
|---|
| **قَالَ وَلَا مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا** فرمايي او اقتداء دے نه کوی هغه کس‌چي فرض کوی **خَلْفَ مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا آخَرَ** روستو په هغه کس پسي‌چي بل فرض کوی |

**حل اللغة:** ①**فلابد:** ضروری، چي د هغې نه بله لارنه وی ②**يصح، اصح صحيحاً** (ض): صحيح کيدل

**تشريح:- عدم جواز اقتداء المفترض بالمفترض فرضاً اخر**۞صورت د مسئلے دا دي.چي د يو فرض کونکے به په بل فرض کونکی پسي اقتداء نه کوی.مثلاً د ماپښين لمونځ کونکے به د مازيګر لمونځ کونکی پسي اقتداء نه کوی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ شَرِكَةٌ وَمُوَافَقَةٌ** خکه‌چي اقتداء خو د شرکت او موافقت نوم دي **فَلَا بُدَّ مِنَ الِاتِّحَادِ.** نوځکه اتحاد ضروری دي |

**تشريح:- دليله**۞دليل دادي.چي اقتداء نوم دي.په تحريمه کي د شرکت او په افعال بدنيه کښې د موافقت ،او شرکت کي موافقت په هغه وخت کښې کيدے‌شی.چي د دواړو تحريمه او افعالوکي اتحاد وی .اوچونکه په ذکر شوی صورت کي اتحاد نشته.نوځکه اقتداء هم صحيح نه ده.

| |
|---|
| **وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَصِحُّ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ** او دامام شافعی رحمه الله په نيز په دے ټولو صورتونوکي اقتداء صحيح ده |

**تشريح:- خلاف الشافعی في الصور المذكورة**۞د امام شافعی رحمه الله په نيز په ذکر شوی صورتونو کي اقتداء صحيح ده.يعنی رکوع کونکی په اشاره کونکی پسي اقداء کولے شی.دغه ډول مفترض په متنفل پسي اقتداء کولے شی.اود يو فرض کونکی په بل فرض کونکی پسي اقتداء کولے شی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ عِنْدَهُ أَدَاءٌ عَلَى سَبِيلِ الْمُوَافَقَةِ،** خکه‌چي دامام شافعی رحمه الله په نيز اقتداء على سبيل الموافقت ادا کاوه نوم دي |

**تشريح:- دليل الشافعی رحمه الله** ۞ دامام شافعی رحمه الله دليل دا دي.چي ﴿اقتداء على سبيل الموافقت﴾د ارکانو ادا



کاوه نوم دي.يعنی صرف په اعمالو کښې موافقت وی.نو لکه‌چي د دوی په نيز يو کس په خپلو اعمالو کي منفرد دي.او جماعت صرف په دومره اندازه دي.چي افعال کوم‌چي هر يو ادا کوی يوځائي ادا کوی.ددے دليل نه معلومه شوه.چي د شوافعو ﷺ په نيز صرف په افعالو کي موافقت ضروری دي.شرکت في التحريمه کي ضروری نه دي.او هرکله‌چي شرکت في التحريمه کي ضروری نشو.نو يو فرض ادا کونکے بل فرض ادا کونکی پسي اقتداء کولے شی.

**دليل الشافعی رحمه الله** ۞دامام شافعی رحمه الله استدلال په دے مسئله کي د مفترض په متنفل پسي د لمونځ کاوه جواز کي ټيک دي.دحضرت معاذ رضی الله عنه حديث دي.﴿ أن معاذاً كان يصلي العشاء مع النبي ﷺ ثم يرجع فيصليها بقومه في بني سلمة فكان صلاة قومه فرضاً وصلاته نفلا﴾يعنی حضرت معاذ رضی الله عنه به د نبی ﷺ سره دماسخوتن لمونځ اوکړلو.بيا به واروسته لاړلو.اوبنو سلمه کي به ئې خپل قوم ته لمونځ ورکولو.نود معاذ رضی الله عنه د قوم لمونځ به فرض و.او د معاذ رضی الله عنه لمونځ به نفل وو.ددے حديث ن معلومه شوه.چي د مفترض لمونځ په متنقل پسے جائز دي.

**الجواب عنه**۞زموږ د اړخه ځواب دا دي.چي کيدای شی.چي معاذ رضی الله عنه د نفلو په نيت د نبی ﷺ پسي لمونځ کولو.اوخپل قوم ته ئې فرض کولو.نو ددے احتمال سره دامام شافعی رحمه الله استدلال ټيک نه دي.

**الجواب الثانی**۞زموږ د اړخه دا ځواب هم ورکړې شوې‌دې.که د متفرض په متنفل پسي اقتداء کول جائز وه.نو په صلاة خوف کي دا طريقه ولے نه ده مشروع شوي.چي نيم لمونځ ئې يوے ډلے ته کولو.او نيم لمونځ بلے ډلے ته،بلکه هرے يوے ډلے ته ئې پوره پوره لمونځ کولو.او دا خبره ثابته ده.چي د هجرت په يوه زمانه کي دوو ډلو ته يو لمونځ نيم نيم کړې وو.او په مينځ کي د هرے ډلے نه د لمونځ سره منافی اعمال څرګند شوی وو.که د متفرتض لپاره په متنفل پسي اقتداء جائز وه.نو نبی ﷺ به هرے يوے ډلے ته پوره لمونځ کړې وو.نيم نيم لمونځ به ئې ورته نه کولو.

| |
|---|
| **وَعِنْدَنَا مَعْنَى التَّضَمُّنِ مُرَاعًى** او زموږ په نيز په کي دتضمن معنی ملحوظه ده. |

**تشريح:- مذهب الاحناف**۞اوزموږ په نيز د موافقت سره د تضمن معنی هم ملحوظه ده.يعنی د امام لمونځ د مقتدی د لمانځه لپاره متضمن دي.ترڅو که د امام لمونځ فاسد شي.نود مقتدی لمونځ به هم فاسد وی.او د امام لمونځ دصحت په صورت کي به د مقتدی لمونځ صحيح وی.د امام د ضمانت دليل د حضرت ابوهريره رضی الله عنه حديث دي.چي ﴿الإمام ضامن﴾

**الفرق بين المذهبين في ضوء المثال**۞حاصل دا شو.چي زموږ په نيز د جماعت سره لمونځ ادا کول داسے دی.لکه‌چي يو کس څه کسانو ته دعوت اوکړی.او د خوراك انتظام هم په خپله اوکړی.نولکه‌چي داعی د مدعو حضراتو دخوراك ضامن شو.اود امام شافعی رحمه الله په جماعت سره لمونځ کول داسے دی.لکه څنګه‌چي څه نفر دخپل خپل کور نه ډوډئ راوړی.او د يو کس په درستخوان باندې جمع شی.او خوراك کوی.نو لکه د دوی صرف په خوراك کي موافقت موجود شو.ځوك د چا ذمه دار او ضامن نه دي.

**د متنفل لپاره په مفترض پسې اقتداء**

| |
|---|
| **وَيُصَلِّي الْمُتَنَفِّلُ خَلْفَ الْمُفْتَرِضِ** او لمونځ د.کوی متنفل په مفترض پسې **لِأَنَّ الْحَاجَةَ فِي حَقِّهِ** لکه‌چي متنفل ته د اصل لمونځ حاجت دي **إِلَى أَصْلِ الصَّلَاةِ وَهُوَ مَوْجُودٌ فِي حَقِّ الْإِمَامِ** او هغه د امام په حق کي موجود دي **فَيَتَحَقَّقُ الْبِنَاءُ** او پناء کول متحقق شوه. |

**حل اللغة:** ①**متنفل:** نفل لمونځ کونکي ②**حاجت:** ضرورت

**تشريح:- جواز اقتداء المتنفل بالمفترض**۞نفلی مونځګذار په فرضی مونځګذار پسي اقتداء کولے شی.دليل دا دي.چي د متنفل په حق کي صرف د صل لمونځ اړتيا وی.او اصل لمونځ د امام په حق کي موجود دي.خکه دمتنفل په مفترض پسي اقتداء متحقق ده.وجه ددے دا ده.چي د نفلیء لمونځ دصحت لپاره مطلق نيت

كافي دي.او په مطلق نيت باندې فرض هم مشتمل دې.ځکه اقتداء صحيح ده.

## په بې اودسه امام پسې د اقتداء حکم

وَمَنْ اقْتَدٰي بِإمَامٍ اوچاچې په يو امام پسې اقتداء اوکړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّ إمَامَهُ مُحْدِثٌ بيا معلومه شوه.چې امام بې اودسه وو أَعَادَ نو دے به لمونځ به راګرځوی. (اوقوم به هم لمونځ ګرځوی)

**حل اللغة:** ① **اقتدى**، اقتدى اقتداء: پيروی کوی ② **علم**، علماً(س): پيژنګلو، پيژندل ③ **محدث**: بې اودسه ④ **اعاد**، اعاد اعادة: واروسته کول

**تشريح:- الاختلاف في اعادة الصلاة بالاقتداء بالامام المحدث**⊛ ①صورت د مسئلې دا دې.چې که يو کس په امام پسې اقتداء اوکړله.بيا مقتدی ته علم اوشو.چې دده امام بې اودسه وو.نو دا کس دے د خپل لمونځ اعاده اوکړی.اوکه د اقتداء کاوه نه وړاندې د امام بې اودسی معلومه شوې وه.نو په اجماع سره اقتداء کول جائز نه دی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی {مَنْ أَمَّ قَوْمًا چاچې يو قوم ته امامتی ورکړله. ثُمَّ ظَهَرَ بيا معلومه شوه. أَنَّهُ كَانَ مُحْدِثًا أَوْجُنُبًا چې دے محدث يا جنب وو أَعَادَ صَلَاتَهُ وَأَعَادُوا}[1] نو دخپل لمونځ اعاده دے اوکړی

**حل اللغی:** جنباً: جنبی

**تشريح:-** دترجمې نه مطلب ښکاره دې

وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللّٰهُ په دے کې دامام شافعی رحمه الله اختلاف دې بِنَاءً عَلٰى مَا تَقَدَّمَ په هغے باندې بناء کوی.کوم چې وړاندې تير شو

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.که د اقتداء کاوه نه روسته د امام بې اودسی معلومه شوه.نو په مقتدی باندے د خپل لمونځ اعاده واجب نه ده.

**دليله**⊛ د امام شافعی رحمه الله دليل وړاندې تير شوې دې.چې د دوی په نيز ﴿على سبيل الموافقت﴾ د افعالو ادا کاوه نووم اقتداء ده.يعنی په امام او مقتدی کې د هر يو لمونځ جلا جلا دې.د امام لمونځ د مقتدی لمونځ لره متضمن نه دې.ځکه د امام د لمونځ په فساد باندې د مقتدی لمونځ نه فاسديږی.بلکه د مقتدی لمونځ به صحيح وی.اوګرچې د حدث د وجے د امام لمونځ فاسديږی.

وَنَحْنُ نَعْتَبِرُ مَعْنَى التَّضَمُّنِ اومونږ دتضمن د معنی اعتبار کوو. وَذٰلِكَ فِي الْجَوَازِ وَالْفَسَادِ او تضمن په جواز او فساد کې وی.

**تشريح:- توضيح الضمانة**⊛خو زمونږ د اړخه به خواب دا وی.چې زمونږ په نيز د تضمن معنی معتبر ده . د دے تفصيل دا دې.چې د نبی ﷺ ارشاد ﴿الإمام ضامن﴾ به د دوو حالتو نه خالی نه وی.يا خو به د دے نه مراد دا وی.چې امام د خپل خانله لمونځ ضامن دې.او يا به دا وی.چې امام د قوم د لمونځ ضامن دې.په اولنی صورت کې څه فائده نشته.ځکه چې هر سړې د خپل لمونځ ضامن وی.البته دوهم صورت صحيح دې.بيا ددے هم دوې (دوه) صورتونه دی.ځکه چې امام به يا د خپل قوم د لمونځ وجوباً او اداءً ضامن وی.زيا په صحت او فساد کې ،وجوباً او اداءً ضامن کيدل خو په اجماع سره مراد نه دې.نو متعين شوه.چې د صحت او فساد په اعتبار سره ضامن کيدل مراد دی.يعنی د امام د لمونځ د صحت په صورت کې د مقتدی لمونځ صحيح کيږی.او د امام د لمونځ د فساد په صورت کې د مقتدی لمونځ فاسديږی.

[1]) غربه الزيلعی بهذا اللفظ (نصب الراية ١/٥٧) ثم قال ويه اثر عن علی رضی الله عنه ورواه محمد بن الحسن فی کتابه الاثار) ... ان علی بن ابی طالب رضی الله عنه قال فی الرجل يصلی بالقوم جنبا قال يعيد ويعيدون انتهی و رواه الدارقطنی فی سننه (١/٣٦٤)۔



**تائيد الاحناف باثر علی رضی الله عنه**⊛علامه ابن الهمام رحمه الله د احنافو په تائيد کې د حضرت جعفر نه د حضرت علی رضی الله عنه دا فعل نقل کړې دې. ﴿ان علياً رضی الله عنه صلی بالناس وهو جنب او علی غير وضوء فاعاد وامرهم ان يعيدوا﴾ حضرت علی رضی الله عنه خلګو ته په حالت جنابت يا بغير د اودس لمونځ اوکړلو.بيا ئې د لمونځ اعاده اوکړله.او خلګو ته ئې هم د اعادے حکم اوکړلو.ددے نه معلومه شوه.چې د مقتدی لمونځ د امام د لمونځ په فساد سره فاسديږی.

## د امی قاريانو او اميانو ته د امامتۍ ورکولو حکم

وَإذَا صَلّٰى أُمِّيٌّ اوکه امی کس لمونځ اوکړلو. بِقَوْمٍ يَقْرَءُونَ وَبِقَوْمٍ أُمِّيِّينَ دقاريانو يو قوم يا د اميانو يو قوم ته فَصَلَاتُهُمْ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ[1] نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ددے ټولو لمونځ فاسد دې

**حل اللغة:** ① **يقرءون**، قرا قراءة (ف): لوستل

**تشريح:- تعريف الامی**⊛ **امی** ،،ان پړه،، منسوب الی الام يعنی څنګه چې دے د خپل مور ځيګولے وی .هم هغه شان وی.او په کتاب الله ،حديث او د عربو په ژبه کښې چرته هم دا لفظ راغلے دے .د دے نه مراد هغه کس دې.څوك چې په ليکلو او لوستلو قدرت نه لری.کو کس چې د قرآن يو آيت لوستلے شی.دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هغه د اميت نه خارج دې.

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمائی صَلَاةُ الْإمَامِ وَمَنْ لَا يَقْرَأُ تَامَّةٌ چې دامام لمونځ او کوم کس چې قاری نه وی . د هغوی لمونځ پوره شو

**حل اللغی:** ① **تامة**: پوره

**تشريح:-** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز څوك چې د درے آياتونو يا يواوږد آيت په لوستلو قادر وی.نو هغه د اميت نه خارج دې.(عنايه)

**الاختلاف في امامة الامی للقاری والامی**⊛ ①صورت د مسئلے دا دې.که امی کس اميانو او قاريانو ته لمونځ اوکړو.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دټولو لمونځ فاسد شو.اود صاحبينو رحمهما الله قول دې.چې د امام او اميانو لمونځ پوره شو.او کوم مقتديان چې په قرات باندې قادر وو.نو دهغوی لمونځ اونشو.

لِأَنَّهُ مَعْذُورٌ أَمَّ قَوْمًا مَعْذُورِينَ وَغَيْرَ مَعْذُورِينَ ځکه چې يو معذور کس معذور او غيرمعذور قوم ته امامتی اوکړله فَصَارَ كَمَا إذَا أَمَّ الْعَارِي عُرَاةً نو دا داسے شوه.چې امامت اوکړی بربند بربندو ته. وَلَابِسِينَ .او عورت پټوونکو ته

**حل اللغة:** ① **عاری**: بربند ② **لابسين**: کپړې اغوستونکې

**تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله**⊛ دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چې يو معذور امی يومعذور قوم ته امامتی اوکړله .اودا په اتفاق سره جائز صحيح ده.نو دا داسے شوه.لکه چې يو بربند سړی بربندو او عورت پټونکو ته امامتی اوکړله.نو په دے صورت کې په اتفاق سره د بربند امام او بربندو مقتديانو لمونځ جائز دې.او د ستر پټونکو کسانو لمونځ فاسد دې.نو دغه ډول دلته هم د امی امام او اميانومقتديانو مونځ جائز شو.اود قاريانو لمونځ فاسد دې.

وَلَهُ او دامام صاحب رحمه الله دليل دا دې. أَنَّ الْإمَامَ تَرَكَ فَرْضَ الْقِرَاءَةِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهَا چې امام په قدرت علی القراءة باوجود فرض قرات پريښولو فَتَفْسُدُ صَلَاتُهُ، (نو) د امام لمونځ فاسد شو. وَهٰذَا لِأَنَّهُ او دا خبره ددے وجے ده. لَوِ اقْتَدٰي بِالْقَارِي که دے ذکر شوی امی د يو قاری مقتدی اقتداء کړې وه تَكُونُ قِرَاءَتُهُ قِرَاءَةً لَهُ نو د قاری قرات

[1]) القول الراجح هو قول ابی حنيفة كذا فی خلاصة الفتاوی (١\٩٩) والخانية (١\٨٩) وردالمحتار (١\٤٣٨) والبحر الرائق (١\٦٤) وتبيين الحقائق (١\١٤٤) والهندية (١\٨٥) نقلا عن القول الراجح (١\٩٤)۔

به دده قرات وو،

حل اللغة: فتفسد، فسد فساداً (ن): فاسد کیدل

تشریح:- **دلیل ابی حنیفة رحمه الله**۞ دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې چې یو کس په قرات باندې قادر وی.خو ددے باوجود قرات پریږدی.نو دده لمونځ فاسد شو.اوچونکه په دے مسئله کې هم امام یعنی امی په قرات باندې د قدرت باوجود قرات پریښولو .نوځکه د امام لمونځ هم فاسد شو.اوکله چې دامام لمونځ فاسد شو.نو د ټولو مونږ به فاسد وی.ځکه چې د امام لمونځ په صحت او فساد په اعتبار سره متضمن دې.

**توضیح قدرة الامی علی القراءة**۞ پاتے شوه دا خبره چې امی په قرات بادے د قدرت باوجود فرض قرات پریښولو .نو ددے ځواب دا دې.چې که امی امام د یو قاری مقتدی اقتداء کړې وه.نو د قاری قرات به دده قرات وو.ځکه چې نبی ﷺ ارشاد دې. «من کان له إمام فقراءة الإمام قراءة له»اودا اقتاء کول دده په اختیار کې وو.نو ده په خپل اختیار سره دا پریښولې (پریخودې) ده.ځکه چې د قاری امام قرات د امی مقتدی لپاره قرات دې.

بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ وَأَمْثَالِهَا په خلاف د هغه مسئلے او په څیر د نورو مسئلو، لِأَنَّ الْمَوْجُودَ فِي حَقِّ الْإِمَامِ ځکه چې کومه خبره دامام په حق کې موجود ده. لَا يَكُونُ مَوْجُودًا فِي حَقِّ الْمُقْتَدِي هغه د مقتدی په حق کې موجود نه ده

تشریح:- **الجواب عن مقیس علیه**۞ دے په خلاف د بربنډ او عورت پټونود جماعت مسئله،دے په څیر مسائل شته.مثلاً ګونګا سړی ګونګیانو اوقاریانو ته امامتی اوکړله.یا اشاره کونکو څو اشاره کونکو او څو هغه کسانو ته امامتی اوکړله.چې هغوی په رکوع او سجدے قادر وو.وجه ددے دا ده.چې په دے مسائلو کې کومه خبره امام ته حاصل ده.هغه مقتدی سره موجود نه ده.یعنی که عورت ئې پټ کړې وی.هغه کس امامتی کړې وه.نود مقتدی په حق کې شریعت دا حکم نه ورکوی.چې د مقتدی عورت پټ شو.او د امام په رکوع او سجدے ادا کاوه سره د مقتدی رکوع او سجدے نه ادا کیږی.نو ددے توپیر باوجود د یو په بل باندې قیاس کول صحیح نه دې.

## دقاری او امی ځانله ځانله مونځ کول

وَلَوْ كَانَ يُصَلِّي الْأُمِّيُّ وَحْدَهُ وکه امی ځانله لمونځ کوی وَالْقَارِئُ وَحْدَهُ او قاری ځانله. جَازَ نو جائز ده. هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحیح ده لِأَنَّهُ لَمْ تَظْهَرْ مِنْهُمَا رَغْبَةٌ فِي الْجَمَاعَةِ ځکه چې د دے زړونه په جماعت کې رغبت نه دے ښکاره شوې.

حل اللغة: ① وحده: یوازې

تشریح:- **المذهبان في صلاة الامی منفرداً مع وجود القاری**۞ مسئله: ① که امی او قاری جلا جلا لمونځ کوی. نودا جائز ده.اوهم دا حکم صحیح دې.② او د امام مالک رحمه الله قول دا دې.چې په دے صورت کې د امی لمونځ نه جائز کیږی.

**دلیل مالک رحمه الله**۞ د امام مالک رحمه الله دلیل دادې.چې په دے مسئله کې هم امی په قرات باندې قادر دې.په دے شان سره که امی په قاری پسې اقتداء اوکړی.نو امی ته به هم قرات حاصل شی.

**دلیل الاحناف**۞ زمونږ دلیل دا دې.چې دامی او قاری دواړو د اړخه په جماعت کاوه کې د شوق اظهار نه دے شوې.هرکله چې ئې په جماعت کښې رغبت نشته.نو اوس د امی په قرات باندې قدرت هم ظاهر نشو.بلکه په ده باندې به هم دعاجز خیال کولے شی.

## په مانځه کې امی خلیفه جوړول

فَإِنْ قَرَأَ الْإِمَامُ فِي الْأُولَيَيْنِ که امام په اولنو دوو رکعتونو کې قرات کړی وی ثُمَّ قَدَّمَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ أُمِّيًّا بیا د آخری دوو لپاره ئې امی وړاندې کړلو.(خلیفه ئې جوړ کړلو) فَسَدَتْ صَلَاتُهُمْ نو د مقتدیانو لمونځ فاسد شو.



حل اللغة: ① اولیین: رومبی دوې (دوه) رکعته ② قدم،تقدیماً: وړاندې کول ③ امی: ان پړه

تشریح:- **الاختلاف في فساد الصلاة باستخلاف الامی**۞ ① صورت د مسئلے دا دې.چې اام اولنی دوو رکعتونو کښے قرات اوکړلو.بیا امام یے اودسه شو.او هغه د روستنو دووو رکعتونو یا په ماښام کښے د یو رکعت لپاره امی کس خلیفه جوړ کړلو.نو د ټولو مقتدیانو لمونځ فاسد شو.

وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام زفر رحمه الله فرمائی. لَا تَفْسُدُ چې فاسد نه دې. لِتَأَدِّي فَرْضِ الْقِرَاءَةِ. ځکه چې فرض قرات ادا شوې دي

تشریح:- دامام زفر رحمه الله مذهب دا دې.چې فاسد نه دې.هم دا یو روایت د امام ابویوسف رحمه الله نه هم دې.

**دلیل زفر رحمه الله**۞ دامام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چې فرض قرات خو شوې دې.او په آخرینو دوو رکعتونو کې قرات فرض نه دې.بلکه سنت دې.ددے وجے په آخرینو دوو کې په خلیفه جوړولو کښے امی او قاری دواړه برابر دی.نو په آخری دوو رکعتونو کښ امی خلیفه جوړولوکښے د لمونځ فساد نشته.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دې. أَنَّ كُلَّ رَكْعَةٍ صَلَاةٌ چې هر رکعت په حقیقت کې لمونځ دې. فَلَا تَخْلُو عَنِ الْقِرَاءَةِ نو د قرات څخه به خالی نه وی إِمَّا تَحْقِيقًا أَوْ تَقْدِيرًا اګرکه قرات تحقیقاً وی یا تقدیراً وَلَا تَقْدِيرَ فِي حَقِّ الْأُمِّيِّ او د امی په حق کې د قرات مقدرکول هم صحیح نه دی لِانْعِدَامِ الْأَهْلِيَّةِ،ځکه چې په هغه کښے اهلیت نشته

حل اللغة: ① فلاتخلو، خلا خلواً(ن): خالی کیدل ② انعدام، نیشت کیدل

تشریح:- **دلیل الاحناف** رحمهم الله۞ زمونږ دلیل دا دې.چې هر رکعت په حقیقت کښ لمونځ دې.ځکه به هیڅ رکعت د قرات نه خالی نه وی.برابره ده که قرات حقیقةً وی اوکه حکماً یا تقدیراً،نو په اولنو دوو رکعتونو کې قرات تحقیقاً دې.اوپه روستونو کښے تقدیراً دې.ځکه چې د رسول الله ﷺ د حدیث نه معلومه شوې ده.چې د اولنو قرات د اخرینو قرات دې.اود امی په حق کښے په دے دواړو کې یوهم موجود نه دې.د امی په حق کې تحقیقاً د قرات عدم وجود خو ښکاره دې.او دتقدیراً د دے وجے موجود نه دې.چې په ده کې اهلیت نشته.او مقدر کول په هغه ځائې کښ وی.په کوم ځائې کې چې ددے تحقیق ممکن وو.نو چونکه د امی په حق کې تحقیقاً قرات موجود نه دې.نو ځکه د دے په حق کې تقدیراً منل ممکن نه دی.

وَكَذَا عَلَى هَذَا لَوْ قَدَّمَهُ فِي التَّشَهُّدِ والله تعالی أعلم بالصواب.اوهم داسے حکم دې.که امام امی په تشهد کښے وړاندې کړلو.والله اعلم بالصواب

تشریح:- **حکم استخلاف الامی بعد التشهد**۞ دغه ډول که په تشهد کې ئے د تشهد دمقدار نه روسته امی خلیفه جوړ کړل،نو د امام زفر رحمه الله په نیز لمونځ نه فاسدیږی.او زمونږ په نیز فاسدیږی.اوکه د تشهد د مقدار تیریدو نه روسته ئې خلیفه جوړ کړې وی.نو دامام صاحب رحمه الله په نیز لمونځ نه فاسدیږی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نه فاسدیږی.او بعضے فقهاؤ فرمائیلی دی.چې درے واړه حضراتو په نیز فاسد نه دی.والله اعلم بالصواب

## بَابُ الْحَدَثِ فِي الصَّلَاةِ

ژباړه:- (دا) باب په لمانځه کې د بې اودسئ پیښیدو (داحکامو په بیان) کې دې.

تشریح:- **الربط بما قبله**۞ مصنف رحمه الله وړاندې په تفصیل سره د عوارضو نه د سلامتیا احکام ذکر کړل.اوس په دے باب کې به هغه عوارض ذکرکوی.کوم چې لمانځه کې پیښیږی.او لمونځ فاسدوی.چونکه د سلامتیا احکام اصل دی.اود اصل وړاندې کول غوره وی.نوځکه ئې د سلامتیا احکام وړاندې ذکر کړل.

## په مانځه کې د امام بې اودسه کیدل

وَمَنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ فِي الصَّلَاةِ کوم کس چې په لمانځه کې بے اودسه شی انْصَرَفَ نو اودے ګرځی فَإِنْ كَانَ إِمَامًا

بیا که دا کس امام وی **اسْتَخْلَفَ** نو خپل خلیفه د جوړ کړی **وَتَوَضَّأَ** او په خپله دے اودس اوکړی **وَبَنَی** او بناء دے اوکړی

**حل اللغة:** ① **سبقه، سبق سبقا(ن،ض):** وړاندې والې کول، مخکې کېدل ② **انصرف، انصرافا:** واروسته کېدل ③ **استخلف، استخلافا (ن،ض):** خلیفه جوړول

**تشریح:- توضیح المسئلة**◉صورت دا دې. که یو کس په لمانځه کې بې اودسه شو. یعنی غیر اختیاری بې اودسی ورته پیښه شوه. چې حدث سماوی ورته وښیلی شی. نو په داسې صورت کې دے دستی بغیر د څه توقف نه واروسته شی. دستی د لمانځه نه د واروسته کېدو حکم ددے وجې دې. چې د حدث نه روسته که یو ساعت هم ایسار پاتې شو. نودا کس د حدث د یو جزء سره د لمانځه ادا کونکے شو. او په حالت د بې اودسئ کښې لمونځ کول جائز نه دی. نو د لمانځه کوم جزء چې د حدث سره مقارن ادا شی. هغه به فاسد وی. اوچونکه د جزء فساد مستلزم وی. فساد د کل لره. نوځکه واړه لمونځ فاسدېږی. او فساد د جزء فساد د کل لره ځکه مستلزم دې. چې فساد ویش نه قبلوی. یا داسې اووایه. چې کله د لمانځه یو جزء فاسد شو. نو پاته لمونځ به هم فاسد وی. ځکه چې «صلاة واحدة» او صحة او فساداً ویش نه قبلوی.

**کیفیة التخلف**◉اوس دا کس چاته چې حدث لاحق شوې دې. که امام وی. نو په مقتدیانو کې دے څوک خپل خلیفه جوړ کړی. او د خلیفه جوړولو صورت دا دې. چې د هغه کالی دے اونیسی. او خپل محراب ته دے رابنکی. او په خپله دے اودس اوکړی. او بناء دے اوکړی. یعنی دغه لمونځ دے د اودس نه روسته پیل کړی.

**وَالْقِيَاسُ أَنْ يَسْتَقْبِلَ** و قیاس دا وو. چې د سر نه لمونځ پیل کړی **وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ** او هم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې. **لِأَنَّ الْحَدَثَ يُنَافِيهَا** ځکه چې حدث د لمونځ سره منافی دې **وَالْمَشْيَ وَالْإِنْحِرَافَ يُفْسِدَانِهَا** او تلل او د قبلې نه اوړېدل دواړه دلمونځ فاسدونکی دی **فَأَشْبَهَ الْحَدَثَ الْعَمْدَ.** نودا حدث مشابه شو. د حدث عمد سره

**تشریح:-** اوقیاس دا دې. چه چې د سر نه دے لمونځ پیل کړی. او هم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې. امام مالك رحمه الله هم ددے قائل دې.

**مذهب الشافعی ودلیله**◉دامام شافعی رحمه الله دلیل دا دې. چې حدث د لمونځ سره منافی دې. ځکه چې د لمانځه سره طهارت لازم دې. اوحدث د طهارت منافی دې. اوقاعده دا ده. چې شے د خپل منافی سره پاته نه پاتې کېږی. نو لمونځ د حدث سره پاته نشی پاتې کېدې. اوهرکله چې د حدث سره لمونځ پاته نه پاتې کېږی. نو لمونځ به د سر نه پیل کول واجب او لازم وی.

**الدلیل الثانی للشافعی رحمه الله** ◉ دوهم دلیل دا دې. چې د بناء په صورت کښې به لمانځه په مینځ کې اودس لپاره تلل او د قبلې نه اوړېدل لازمیږی. او دا دواړه کارونه د فونځ فاسدونکی دی. او قاعده دا ده. چې کوم شی لمونځ فاسدونکے وی. لمونځ دهغے سره پاته نه پاتې کېږی. لکه څنګه چې د حدث عمد سره لمونځ پاته نه پاتې کېږی. نو ثابته شوه. چې «مشی» او «انحراف عن القبلة» سره لمونځ پاته نه پاتې کېږی. اوهرکله چې لمونځ پاته نشو. نو ددے اعاده ضروری شوه. حاصل دا شوه. چې غیر اختیاری حدث د حدث عمد سره مشابه دې. او حدث عمد کې په اتفاق سره بناء جائز نه ده. نو په دے حدث کې به هم بناء جائز نه وی. بلکه استیناف (د سر نه لمونځ کول) به ضروری او لابدی وی.

**وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او زموږ دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې {**مَنْ قَاءَ أَوْ رَعَفَ** چې چا قئ اوکړلو. یا ئې د پوزے



نه وینه اووتله **أَوْ أَمْذَى فِي صَلَاتِهِ** یا ترے مذی اووتله. په لمانځه کښې **فَلْيَنْصَرِفْ** نو هغه دے خپل لمونځ راوګرځی **وَلْيَتَوَضَّأْ** او اودس دے اوکړی **وَلْيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ** او په خپل لمانځه دے بناء اوکړی **مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ**}[1] ترڅو چې ئې خبرے نه وی کړې او نبی ﷺ فرمانیلی دی.

**حل اللغة:** ① **رعف، رعفا (ف،ن):** د پوزې نه وینه څڅېدونکې کېدل

**تشریح:- الدلیل الاول للاحناف** رحمهم الله ◉زموږ دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې «من قاء اورعف او امذی فی صلاته فلینصرف ولیتوضا ولیبن علی صلاته مالم یتکلم» د عبارت د ترجمے عنوان لاندې ددے حدیث ژباړه تیره شوې ده.

**وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** {**إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ** چې کله په تاسو کې څوك لمونځ کوی **فَقَاءَ أَوْ رَعَفَ** او قئ اوکړی. یا یې پزه راماته شی. **فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فِيهِ** نو پکار ده. چې خپله پزه باندے لاس کیږدی. **وَلْيُقَدِّمْ مَنْ لَمْ يُسْبَقْ بِشَيْءٍ**} او غیر مسبوق خلیفه کړی

**حل اللغة:** ① **فلیضع، وضع وضعا (ف):** ساتل

**تشریح:- الدلیل الثانی للاحناف** رحمهم الله ◉ دوهم دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې. «إذا صلی أحدکم فقاء او رعف فلیضع یده علی فمه ولیقدم من لم یسبق بشئ» یعنی کله چې په تاسو کې څوك د لمانځه په مهال کښے قئ اوکړی. یا ئې پزه ماته شی. نو په خپله پزه دے لاس کیږدی. اوغیر مسبوق یعنی مدرك دے وړاندې کړی. یعنی خلیفه دے جوړ کړی.

**استخلاف المدرک دون المسبوق**◉ددے حدیث نه معلومه شوه. چې مدرك دے خلیفه جوړ کړی. مسبوق دے خلیفه نه جوړوی. ځکه که مسبوق خلیفه جوړ کړی. نود سلام ګرځولو نه وړاندې به هغه بل مدرك خلیفه جوړوی. چې مدرك د سلام ګرځولو سره د خلګو لمونځ پوره شی. اوچې مسبوق امام خپل لمونځ پوره کړی. نوچې مسبوق خلیفه جوړ کړې شی. په دے کې د خلیفه جوړولو تکرار لازمیږی. نوځکه بهتره دا ده. چې د اول نه غیر مسبوق یعنی مدرك خلیفه جوړ کړی. چه د دوباره خلیفه جوړولو د قباحت نه نجات حاصل شی. بهرحال د ذکر شوی حدیث نه د بناء جواز داسے ثابتیږی. چې په حدیث کې دی. «ولیبن علی صلاته» دا دامر صیغه ده. اود امر ادنی مرتبه اباحت دې. نوځکه د بناء اباحت ثابت شو.

**السوال**◉خودلته یو اشکال کیږی. هغه داچې په حدیث کې «لیتوضا» صیغه د امر د وجوب لپاره ده. نو «ولیبن علی صلاته» هم باید ده چې د وجوب لپاره وې. حالانکه احناف فقهاء رحمهم الله د وجوب بناء قائلین نه دی.

**الجواب**◉ځواب دا دې. چې زموږ په نیز «قران فی اللفظ قران فی الحکم» نه واجبوی. نوځکه دا اعتراض لغو دې.

**اجماع الصحابة** رضی الله عنهم ◉ددے نه علاوه خلفاء راشدینو رضی الله عنهم او فقهاء صحابوْ «عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، انس بن مالك، سلمان فارسی رضی الله عنهم» په دے خبره باندې اجماع کړې ده. دکومے چې موږ قائل یو. یعنی د بناء په جواز باندې نه په وجوب باندې، اود اجماع په وجه قیاس پرینبولې (پرېخودې) شی. نو «لیبن علی صلاته» په «ولیتوضا» باندې نشی قیاس کولې.

**افضل استخلاف غیرالمسبوق**◉په دوهم حدیث کې صرف د استخلاف بیان دې. اود نبی ﷺ ارشاد «من لم یسبق بشئ» کې د افضلیت بیان دې. ځکه چې مدرك (غیرمسبوق) د مسبوق په نسبت په پوره لمونځ ادا کاوه باندې

---

[1] غربه الزیلعی بهذا اللفظ (نصب الرایة ۶۱/۱،) وذکرت لهذه المسئلة فی «سنن الصلاة» عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَصَابَهُ قَيْءٌ اَوْ رُعَافٌ اَوْ قَلَسٌ اَوْ مَذْيٌ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ وَهُوَ فِي ذَلِكَ لَا يَتَكَلَّمُ رواه ابن ماجه فی اقامة الصلاة باب ما جاء فی البناء علی الصلاة رقم ۱۲۱۱ حسنه الزیلعی نصب الرایة نواقض الوضوء ۳۷/۱ _

زيات قادر دي.نو مسبوق خليفه جوړول به خيانت وي.

وَالْبَلْوَىٰ فِيمَا يَسْبِقُ او ابتلاء .خو په داسې حدث كښې دى.كوم چې بې اختياره راشى دُونَ مَا يَتَعَمَّدُ.په هغه كې نه ده.كوم چې په قصد سره وى فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو عمد به بې اختياره سره نشى لاحق كولې.

**حل اللغة**:فلايلحق، لحق لحوقًا (س): ملاويدل، لاحق كيدل

**تشريح:- الجواب عن القياس**﴿والبلوى فيما يسبق الخ﴾نه د امام شافعى رحمه الله دقياس ځواب دې.د ځواب حاصل دا دې.چې حدث ،سابق يعنى غير اختيارى حدث په حدث عمد باندې قياس كول ټيك نه دى .ځكه چې په دې دواړو كې توپير موجود دې.ځكه چې په غيراختيارى حدث كې ابتلاء ده.ځكه چې دا د ده اختيار نه بغير حاصليږى.نو دې معذور ګرځول به جائز وى.او ددې په خلاف حدث عمد په هغې كې دا خبره نشته.نو چې دا توپير په كې، ددې باوجود قياس كول څنګه ټيك كيدې شى.

## د سرنه د مونځ پيل كولو افضليت

وَالِاسْتِئْنَافُ أَفْضَلُ او د سرنه پيل كول افضل دى تَحَرُّزًا عَنْ شُبْهَةِ الْخِلَافِ،چې د اختلاف شبې نه احتراز اوشى

**حل اللغة**:①استيناف: د اول نه پيل كول ②تحرزا: ډډه كول، پرهيزكول

**تشريح:- الاقوال الثلاثة في فضل الاستيناف وعدمها**﴿①صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.چې په ذكر شوې مسئله كښې اګرچې بناء جائز ده.خو د سر نه پيل كول افضل دى.چې د اختلاف د شبې نه احتزاز راشى.او كه څوك دا اووائى.چې په استيناف كې د عمل ابطال دې.نو موږ ځواب وركوو .چې بې شكه ابطال د عمل دې.خو د اكمال لپاره وو.داسې ابطال د عمل محمود دې.مذموم نه دې.

وَقِيلَ إِنَّ الْمُنْفَرِدَ يَسْتَقْبِلُ او وئيلې شوى دى.چې منفرد دې د سر نه لمونځ راګرځوى وَالْإِمَامَ وَالْمُقْتَدِيَ يَبْنِي او امام او مقتدى دې بناء كوى صِيَانَةً لِفَضِيلَةِ الْجَمَاعَةِ چې د جماعت فضيلت محفوظ شى.

**حل اللغة**:صيانة: ساتنه كول

**تشريح:-** بعضې مشانخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چې منفرد لره د سر نه پيل كول افضل دې.او د امام او مقتدى لپاره بناء كول افضل دى.چې د جماعت افضليت محفوظ شى.③او بعضې حضراتو وئيلى دى.كه امام او مقتدى ته بل جماعت ملاويدې شى.نو استنيناف افضل دې.او كه نشى ملاويدې.نو بناء افضل ده.

## منفرد ته په مانځه كې حدث لاحق كيدل

وَالْمُنْفَرِدُ إِنْ شَاءَ أَتَمَّهُ فِي مَنْزِلِهِ، او منفرد لره پكار دى.چې په هغه ځائې كښې لمونځ اوكړى وَإِنْ شَاءَ عَادَ إِلَىٰ مَكَانِهِ او كه خوښه، ئې وى.نو خپل ځائې ته دې واروسته شى

**حل اللغة**:①منفرد: يوازې ②شاء شاء(ف): غوښتل

**تشريح:-** ①اختيار المنفرد في اتيان الموضع الاول ﴿فرمائى.چې منفرد ته اختيار دې.كه خوښه ئې وى.نو بناء دې اوكړى.او په كوم ځائې كې چې ئې اودس كړې وى.هلته دې لمونځ پوره كړى.ځكه چې په دې كې كموالې د تګ دې.او كه خوښه، ئې وى.نو خپل ځائې ته دې واروسته راشى.واړه لمونځ دې په يو ځائې ادا كړى.اولنې قول زموږ د مشانخو دې.او قول ثانى د شمس الائمه سرخسى رحمه الله او شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله دې.

وَالْمُقْتَدِي يَعُودُ إِلَىٰ مَكَانِهِ او مقتدى دې خپل ځائې ته واروسته كيږى

**تشريح:- وجوب الاتيان الى الموضع الاول للماموم**﴿او مقتدى به خپل ځائې ته واروسته راځى.او لمونځ به پوره كوى.اګرچې دا مقتدى امام محدث وى.چاچې خليفه جوړ كړى وى.د مقتدى لپاره دا حكم واجب او لازم دې.

إِلَّا أَنْ يَكُونَ إِمَامُهُ قَدْ فَرَغَ مګر دا چې چې د هغه امام فارغ شوې وى أَوْ لَا يَكُونَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ يا ددې دواړو په



مينځ كې څه حائل نه وى.

**تشريح:- استثناء الصورتين من الوجوب**﴿خو دوې (دوه) صورتونه ددې حكم نه مستثنى دى.①چې دده امام فارغ شوې وى.②چې دده اود امام په مينځ كښې د اقتداء نه مانع شى حائل نه وى.يعنى مقتدى چې په كوم ځائې كې اودس كړى وى.هلته په امام پسې اقتداء كاوه كښې څه شى حائل نه وى.چې هغه د اقتداء مانع وى.لكه پلنه لاره وى. ،لوئې درياب وى.د كركو نه بغير اوچت ديوال وى.نو په دې دواړو صورتونو كې كه مقتدى د اودس په ځائې كې لمونځ پوره كول غواړى.نو څه قباحت په كې نشته.

## په غلطئ په ځان باندې د محدث اوجنب ګمان كول

وَمَنْ ظَنَّ او چاچې ګمان اوكړلو. أَنَّهُ أَحْدَثَ چې په دې وخت كې دې بې اودسه شوې دې فَخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ نو دې د جمات نه بهر شو. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ لَمْ يُحْدِثْ بيا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه وو اسْتَقْبَلَ الصَّلَاةَ نو د سرنه دې لمونځ اوكړى ،وَإِنْ لَمْ يَكُنْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ او كه دې د جمات نه بهر ته نه وو وتلې يُصَلِّي مَا بَقِيَ نو پاته لمونځ دې اوكړى

**حل اللغة**:①ظن، ظنًا(ن): ګمان كول ②فخرج، خرج خروجًا(ن): وتل

**تشريح:- صور الانصراف من الصلاة بظن الحدث**﴿مسئله:كه يو كس ته د لمانځه په حالت كې دا ګمان اوشو.چې دې بې اودسه شو نو هغه د خپل ځائې نه واروسته شو.بيا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه دې.نو اوس به كتلې شى.كه دده د قبلې د اړخ نه ګرځيدل د لمانځه د اصلاح په اراده وى.يا به د لمونځ د پريخودو په اراده وى.كه دوهم صورت وى.نودده بناء كول جائز نه دى.كه د جمات نه وتلې وى اوكه نه وى.او كه اول صورت وى.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دى. يا به د جمات نه خروج موجود شوې وى.يا به نه وى.كه د جمات نه خروج موجود وى.نو په دې وخت كې به د سر نه لمونځ كى.بناء كول جائز نه دى.او كه د جمات نه وتلې نه وى.نو خپل پاته لمونځ دې پوره كړى.د سر نه د پيل كاوه اړتيا نشته.

وَالْقِيَاسُ فِيهِمَا او قياس په دواړو صورتونو كې هم دا دې الِاسْتِقْبَالُ،چې د سر نه لمونځ اوكړى وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ او هم دا د امام محمد رحمه الله نه مروى دى لِوُجُودِ الِانْصِرَافِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ. ځكه چې د قبلې نه مخ اړول بغير د عذر نه موجود شو

**حل اللغة**:①انصراف: واروسته كيدل

**تشريح:- وجه القياس في الصورتين**﴿صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى.چې په دواړو صورتونو كې (كه د جمات نه وتلې وى او كه نه وى.د قياس تقاضا هم دا ده.چې د سر نه لمونځ پيل كړى.بناء نه كوى.هم دا د امام محمد رحمه الله نه روايت دې.

②دليل القياس﴿دليل د قياس دا دې.چې بغير د عذرنه د قبلې نه مخ اړول موجود شو.او ظاهره ده.چې بغير د عر نه د قبلې نه مخ اړول د لمونځ ماتونكى دى.نو ځكه په دې دواړو صورتونو كې بغيرد عذر نه د قبلې نه د مخ اړول په وجه لمونځ فاسد شو.اوچې لمونځ فاسد شى.نو په دې صورت كې د لمونځ راګرځول واجب دى.بناء نه وى.نو ځكه په دې دواړو صورتونوكښې د لمانځه اعاده واجب ده .يعنى د سر نه كول لازم دى.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ او وجه د استحسان دا ده. أَنَّهُ انْصَرَفَ عَلَىٰ قَصْدِ الْإِصْلَاحِ،چې دا كس د اصلاح په اراده باندې واروسته شوې دې أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ تَحَقَّقَ .ولې تاسو نه ګورئ كه هغه خره متحقق شوې وه مَا تَوَهَّمَهُ د كومې چې ده ګمان كړې وو. بَنَىٰ عَلَىٰ صَلَاتِهِ نو ده به په خپل لمانځه باندې بناء كوله فَأُلْحِقَ قَصْدُ الْإِصْلَاحِ بِحَقِيقَتِهِ نو د اصلاح قصد په حقيقى اصلاح پورې لاحق كولې شى مَا لَمْ يَخْتَلِفِ الْمَكَانُ بِالْخُرُوجِ، ترڅوچې د جمات نه د وتلو په وجه ځائې بدل نكړى.

**حل اللغة**:لم يختلف، اختلف اختلافًا: مختلف كيدل

والبلوی فیمایسبق او ابتلاء .خو په داسې حدث کښې دی.کوم چې بې اختیاره راشی دون مایتعمد.په هغه کې نه ه.کوم چې په قصد سره وی فلایلحق به نو عمد به بې اختیاره سره نشی لاحق کولې.

اللغی٭ فلایلحق، لحق لحوقًا (س): ملاویدل، لاحق کیدل

ریح:- الجواب عن القیاس٭ ﴿و البلوی فیما یسبق الخ﴾ نه د امام شافعی رحمه الله دقیاس خواب دی.د خواب اصل دا دی.چې حدث ،سابق یعنی غیر اختیاری حدث په حدث عمد باندې قیاس کول تیک نه دی خکه چې په دې دواړو کې توپیر موجود دی.خکه چې په غیراختیاری حدث کې ابتلاء ده.خکه چې دا د ده تیار نه بغیر حاصلیږی.نودې معذور ګرخول به جائز وی.اودې په خلاف حدث عمد په هغې کې دا خبره سته.نوچې دا توپیر په کې، ددې باوجود قیاس کول څنګه تیک کیدې شی.

## د سرنه د مونځ پیل کولو افضلیت

ستئناف أفضل او د سرنه پیل کول افضل دی تحرزا عن شبهة الخلاف،چې د اختلاف شبې نه احتراز اوشی

اللغة٭ ① استیناف: د اول نه پیل کول ② تحرزا: ډډه کول، پرهیزکول

ح:- الاقوال الثلاثة في فضل الاستيناف وعدمها٭ ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چې په ذکر شوي مسئله کې اګرچې بناء جائز ده.خو د سر نه پیل کول افضل دی.چې د اختلاف د شبې نه احتراز راشی.اوکه څوک دا نی.چې په استیناف کې د عمل ابطال دی.نو مونږ خواب ورکوو .چې بې شکه ابطال د عمل دی.خو د ال لپاره وو.داسې ابطال د عمل محمود دی.مذموم نه دی.

ان المنفرد یستقبل او ونیلې شوی دی.چې منفرد دې د سر نه لمونځ راګرځوی والامام والمقتدي يبني او م اومقتدی دې بناء کوی صیانة لفضیلة الجماعة چې د جماعت فضیلت محفوظ شی.

لغی٭ صیانة: ساتنه کول

:- بعضې مشائخو رحمهم الله فرمانیلی دی.چې منفرد لره د سر نه پیل کول افضل دی.او د امام او مقتدی لپاره کول افضل دی.چې د جماعت افضلیت محفوظ شی.③ او بعضې حضراتو ونیلی دی.که امام او مقتدی جماعت ملاویدې شی.نو استنیناف افضل دی.اوکه نشی ملاویدی.نو بناء افضل ده.

## منفرد ته په مانځه کې حدث لاحق کیدل

فردان شاء أتم في منزله او منفرد لره پکار دی.چې په هغه خائی کښې لمونځ اوکړی وان شاء عاد الی مکانه اوکه خوښه نې وی.نوخپل خائې ته دې واروسته شی

لغة٭ ① منفرد: یوازې ② شاء شاء(ف): غوښتل

- اختیار المنفرد في اتیان الموضع الاول٭ فرمائی.چې منفرد ته اختیار دی.که خوښه نې وی.نو بناء دې .اوپه کوم خائې کې چې نې اودس کړې وی.هلته دې لمونځ پوره کړی.خکه چې په دې کې کموالې د ی.اوکه خوښه نې وی.نو خپل خائې ته دې واروسته راشی.واړه لمونځ دې په یو خائې ادا کړی.اولنې مور د مشائخو دی.او قول ثانی د شمس الائمه سرخسی رحمه الله او شیخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله دی.

ي یعود الی ... قتدی دې خپل خائې ته واروسته کیږی

وجو... ع الاول للماموم٭ اومقتدی به خپل خائې ته واروسته راخی.او لمونځ به پوره ... حدث وی.چاچې خلیفه جوړ کړی وی.د مقتدی لپاره دا حکم واجب او لازم

... کرداچې چې د هغه امام فارغ شوی وی أولایکون بینهما حائل یا ددې داړو په



مینځ کې څه حائل نه وی.

تشریح:- استثناء الصورتین من الوجوب٭ خو دوې (دوه) صورتونه ددې حکم نه مستثنی دی.① چې دده امام فارغ شوې وی.② چې دده اود امام په مینځ کښې د اقتداء نه مانع شی حائل نه وی.یعنی مقتدی چې په کوم خائې کې اودس کړی وی.هلته په امام پسې اقتداء کاوه کښې څه شی حائل نه وی.چې هغه د اقتداء مانع وی.لکه بلنه لاره وی، ،لوئې دریاب وی.د کړکو نه بغیر اوچت دیوال وی.نو په دې دواړو صورتونو کې که مقتدی د اودس په خائې کې لمونځ پوره کول غواړی.نوڅه قباحت په کې نشته.

## په غلطئ په ځان باندې د محدث اوجنب ګمان کول

ومن ظن او چاچې ګمان اوکړلو. انه أحدث چې په دې وخت کې دې بې اودسه شوې دی فخرج من المسجد نو دې د جمات نه بهر شو. ثم علم انه لم یحدث بیا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه وو استقبل الصلاة نو د سرنه دې لمونځ اوکړی ،وان لم یکن خرج من المسجد اوکه دې د جمات نه بهر ته نه وو وتلې یصلی ما بقی نو پاته لمونځ دې اوکړی

حل اللغة٭ ① ظن، ظنًا(ن): ګمان کول ② فخرج، خرج خروجًا(ن): وتل

تشریح:- صور الانصراف من الصلاة بظن الحدث٭ مسئله:که یو کس ته د لمانځه په حالت کې دا ګمان اوشو.چې دې بې اودسه شونو هغه د خپل خائې نه واروسته شو.بیا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه دی.نو اوس به کتلې شی.که دده د قبلې د اړخ نه ګرځیدل د لمانځه د اصلاح په اراده وی.یا به د لمونځ د پریخودو په اراده وی.که دوهم صورت وی.نودده بناء کول جائز نه دی.که د جمات نه وتلې وی اوکه نه وی.او که اول صورت وی.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دی. یا به د جمات نه خروج موجود شوې وی.یا به نه وی.که د جمات نه خروج موجود وی.نو په دې وخت کې به د سر نه لمونځ کی.بناء کول جائز نه دی.اوکه د جمات نه وتلې نه وی.نو خپل پاته لمونځ دې پوره کړی.د سر نه د پیل کاوه اړتیا نشته.

والقیاس فیهما او قیاس په دواړو صورتونو کې هم دا دې الاستقبال چې د سر نه لمونځ اوکړی وهو روایة عن محمد رحمه الله اوهم دا د امام محمد رحمه الله نه مروی دی لوجود الانصراف من غیر عذر. خکه چې د قبلې نه مخ اړول بغیر د عذر نه موجود شو

حل اللغی٭ ① انصراف: واروسته کیدل

تشریح:- وجه القیاس في الصورتین٭ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چې په دواړو صورتونو کې (که دجمات نه وتلې وی اوکه نه وی.د قیاس تقاضا هم دا ده.چې د سر نه لمونځ پیل کړی.بناء نه کوی.هم دا د امام محمد رحمه الله نه روایت دی.

دلیل القیاس٭ دلیل د قیاس دا دی.چې بغیر د عذرنه د قبلې نه مخ اړول موجود شو.او ظاهره ده.چې بغیر د عر نه د قبلې نه مخ اړول د لمونځ ماتونکی دی.نوخکه په دې دواړو صورتونو کې بغیرد عذر نه د قبلې نه د مخ اړول په وجه لمونځ فاسد شو.اوچې لمونځ فاسد شی.نو په دې صورت کې د لمونځ راګرځول واجب دی.بناء نه وی.نوخکه په دې دواړو صورتونوکښ د لمانځه اعاده واجب ده .یعنی د سر نه کول لازم دی.

وجه الاستحسان اووجه د استحسان دا ده. أنه انصرف علی قصد الاصلاح،چې دا کس د اصلاح په اراده باندې واروسته شوې دی ألا تری أنه لو تحقق .ولې تاسو نه ګورئ که هغه خره متحقق شوې وه ماتوهمه د کومې چې ده ګمان کړې وو. بنی علی صلاته نو ده به په خپل لمانځه باندې بناء کوله فالحق قصد الاصلاح بحقیقته نو د اصلاح قصد په حقیقی اصلاح پورې لاحق کولې شی مالم یختلف المکان بالخروج، ترڅوچې د جمات نه د وتلو په وجه خائې بدل نکړی.

حل اللغی٭ لم یختلف، اختلف اختلافًا: مختلف کیدل

زيات قادر دي.نو مسبوق خليفه جوړول به خيانت وي.

وَالْبَلْوَىٰ فِيمَا يَسْبِقُ او ابتلاء ،خو په داسې حدث كښې دى.كوم چې بې اختياره راشى دُونَ مَا يَتَعَمَّدُ.په هغه كې نه ده.كومه چې په قصد سره وى فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو عمد به بې اختياره سره نشى لاحق كولې.

**حل اللغة**فلايلحق، لحق لحوقاً (س): ملاويدل، لاحق كيدل

**تشريح:- الجواب عن القياس**﴿والبلوى فيما يسبق الخ﴾نه د امام شافعى رحمه الله دقياس ځواب دې.د ځواب حاصل دا دې.چې حدث ،سابق يعنى غير اختيارى حدث په حدث عمد باندې قياس كول ټيك نه دى .ځكه چې په دې دواړو كي توپير موجود دې.ځكه چې په غيراختيارى حدث كي ابتلاء ده.ځكه چې دا د ده اختيار نه بغير حاصليږي.نودې معذور ګرځول به جائز وي.اوددې په خلاف حدث عمد په هغې كې دا خبره نشته.نوچې دا توپير په كې ددې باوجود قياس كول څنګه ټيك كيدې شي.

## د سرنه د مونځ پيل كولو افضليت

وَالِاسْتِئْنَافُ أَفْضَلُ او د سرنه پيل كول افضل دى تَحَرُّزًا عَنْ شُبْهَةِ الْخِلَافِ،چې د اختلاف شبې نه احتراز اوشى

**حل اللغة**①استيناف: د اول نه پيل كول ②تحرزاً: ډډه كول، پرهيزكول

**تشريح:- الاقوال الثلاثة في فضل الاستيناف وعدمها**﴿①صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.چې په ذكر شوې مسئله كښې اګرچې بناء جائز ده.خو د سر نه پيل كول افضل دى.چې د اختلاف د شبې نه احتراز راشى.اوكه څوك دا اووائى.چې په استيناف كي د عمل ابطال دې.نو موږ ځواب وركوو .چې بې شكه ابطال د عمل دې.خو د اكمال لپاره وو.داسې ابطال د عمل محمود دې.مذموم نه دې.

وَقِيلَ إِنَّ الْمُنْفَرِدَ يَسْتَقْبِلُ،او وئيلې شوى دى.چې منفرد دې د سر نه لمونځ راګرځوى وَالْإِمَامُ وَالْمُقْتَدِي يَبْنِي او امام اومقتدى دې بناء كوى صِيَانَةً لِفَضِيلَةِ الْجَمَاعَةِ چې د جماعت فضيلت محفوظ شي.

**حل اللغة**صيانة: ساتنه كول

**تشريح:- بعضې مشائخو** رحمهم الله فرمائيلي دى.چې منفرد لره د سر نه پيل كول افضل دې.او د امام او مقتدى لپاره بناء كول افضل دى.چې د جماعت افضليت محفوظ شي.②او بعضې حضراتو وئيلي دى.كه امام او مقتدى ته بل جماعت ملاويدې شي.نو استنيناف افضل دې.اوكه نشي ملاويدې.نو بناء افضل ده.

## منفرد ته په مانځه كې حدث لاحق كيدل

وَالْمُنْفَرِدُ إِنْ شَاءَ أَتَمَّهُ فِي مَنْزِلِهِ، او منفرد لره پكار دى.چې په هغه ځائې كښې لمونځ اوكړى وَإِنْ شَاءَ عَادَ إِلَىٰ مَكَانِهِ اوكه خوښه، ئې وى.نوخپل ځائې ته دې واروسته شي

**حل اللغة**①منفرد: يوازې ②شاء شاء (ف): غوښتل

**تشريح:- ①اختيارالمنفرد في اتيان الموضع الاول**﴿فرمائى.چې منفرد ته اختيار دې.كه خوښه ئې وى.نو بناء دې اوكړى.اوپه كوم ځائې كي چې ئې اودس كړې وى.هلته دې لمونځ پوره كړى.ځكه چې په دې كې كموالې د تګ دې.اوكه خوښه، ئې وى.نو خپل ځائې ته دې واروسته راشي.واړه لمونځ دې په يو ځائې ادا كړى.اولنې قول زموږ د مشائخو دې.او قول ثانى د شمس الائمه سرخسى رحمه الله او شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله دې.

وَالْمُقْتَدِي يَعُودُ إِلَىٰ مَكَانِهِ اومقتدى دې خپل ځائې ته واروسته كيږى

**تشريح:- وجوب الاتيان الى الموضع الاول للماموم**﴿اومقتدى به خپل ځائې ته واروسته راځى.او لمونځ به پوره كوى.اګرچې دا مقتدى امام محدث وى.چاچې خليفه جوړ كړى وى.د مقتدى لپاره دا حكم واجب او لازم دې.

إِلَّا أَنْ يَكُونَ إِمَامُهُ قَدْ فَرَغَ مګر دا چې چې د هغه امام فارغ شوې وى أَوْ لَا يَكُونَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ يا ددې دارو په



مينځ كي څه حائل نه وى.

**تشريح:- استثناء الصورتين من الوجوب**﴿خو دوې (دوه) صورتونه ددې حكم نه مستثنى دى.①چې دده امام فارغ شوې وى.②چې دده اود امام په مينځ كښې د اقتداء نه مانع شي حائل نه وى.يعنى مقتدى چې په كوم ځائې كي اودس كړې وى.هلته په امام پسې اقتداء كاوه كښې څه شي حائل نه وى.چې هغه د اقتداء مانع وى.لكه بلنه لاره وى.،لوئې درياب وى.د كړكو نه بغير اوچت ديوال وى.نو په دې دواړو صورتونوكي كه مقتدى د اودس په ځائې كي لمونځ پوره كول غواړى.نوڅه قباحت په كي نشته.

## په غلطئ په ځان باندې د محدث اوجنب ګمان كول

وَمَنْ ظَنَّ او چاچې ګمان اوكړلو. أَنَّهُ أَحْدَثَ چې په دې وخت كي دې بې اودسه شوې دې فَخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ نو دې د جمات نه بهر شو. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ لَمْ يُحْدِثْ بيا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه وو اسْتَقْبَلَ الصَّلَاةَ نو د سرنه دې لمونځ اوكړى ،وَإِنْ لَمْ يَكُنْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ اوكه دې د جمات نه بهر ته نه وو وتلې يُصَلِّي مَا بَقِيَ نو پاته لمونځ دې اوكړى

**حل اللغة**①ظن، ظناً(ن): ګمان كول ②فخرج، خرج خروجاً(ن): وتل

**تشريح:- صور الانصراف من الصلاة بظن الحدث**﴿مسئله:كه يو كس ته د لمانځه په حالت كي دا ګمان اوشو.چې دې بې اودسه شونو هغه د خپل ځائې نه واروسته شو.بيا ورته معلومه شوه.چې بې اودسه شوې نه دې.نو اوس به كتلې شي.كه دده د قبلې د اړخ نه ګرځيدل د لمانځه د اصلاح په اراده وى.يا به د لمونځ د پريخودو په اراده وى.كه دوهم صورت وى.نودده بناء كول جائز نه دى.كه د جمات نه وتلې وى اوكه نه وى.او كه اول صورت وى.نو ددې هم دوې (دوه) صورتونه دى. يا به د جمات نه خروج موجود شوې وى.يا به نه وى.كه د جمات نه خروج موجود وى.نو په دې وخت كي به د سر نه لمونځ كى.بناء كول جائز نه دى.اوكه د جمات نه وتلې نه وى.نو خپل پاته لمونځ دې پوره كړى.د سر نه د پيل كاوه اړتيا نشته.

وَالْقِيَاسُ فِيهِمَا و قياس په دواړو صورتونو كي هم دا دې الِاسْتِقْبَالُ،چې د سر نه لمونځ اوكړى وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ اوهم دا د امام محمد رحمه الله نه مروى دى لِوُجُودِ الِانْصِرَافِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ. ځكه چې د قبلې نه مخ اړول بغير د عذر نه موجود شو

**حل اللغة**① انصراف: واروسته كيدل

**تشريح:- وجه القياس في الصورتين**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چې په دواړو صورتونو كي (كه دجمات نه وتلې وى اوكه نه وى.د قياس تقاضا هم دا ده.چې د سر نه لمونځ پيل كړى.بناء نه كوى.هم دا د امام محمد رحمه الله نه روايت دې.

①دليل القياس﴿دليل د قياس دا دې.چې بغير د عذرنه د قبلې نه مخ اړول موجود شو.او ظاهره ده.چې بغير د عر نه د قبلې نه مخ اړول د لمونځ ماتونكى دى.نوځكه په دې دواړو صورتونو كي بغيرد عذر نه د قبلې نه د مخ اړول په وجه لمونځ فاسد شو.اوچې لمونځ فاسد شي.نو په دې صورت كي د لمونځ راګرځول واجب دى.بناء نه وى.نوځكه په دې دواړو صورتونوكښ د لمانځه اعاده واجب ده .يعنى د سر نه كول لازم دى.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ اووجه د استحسان دا ده. أَنَّهُ انْصَرَفَ عَلَىٰ قَصْدِ الْإِصْلَاحِ،چې دا كس د اصلاح په اراده باندې واروسته شوې دې أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ تَحَقَّقَ .ولې تاسو نه ګورئ كه هغه خره متحقق شوې وه مَا تَوَهَّمَهُ د كومې چې ده ګمان كړې وو. بَنَىٰ عَلَىٰ صَلَاتِهِ نو ده به په خپل لمانځه باندې بناء كوله فَأُلْحِقَ قَصْدُ الْإِصْلَاحِ بِحَقِيقَتِهِ نو د اصلاح قصد په حقيقى اصلاح پورې لاحق كولې شى مَا لَمْ يَخْتَلِفِ الْمَكَانُ بِالْخُرُوجِ، ترڅوچې د جمات نه د وتلو په وجه ځائې بدل نكړى.

**حل اللغة**لم يختلف، اختلف اختلافاً: مختلف كيدل

**تشریح:- وجه الاستحسان**۞وجه د استحسان دا ده.چې دا کس د لمونځ د اصلاح په اراده ګرځیدلے دې.نوځکه دا مفسد د لمانځه نه دی.که هغه خبره متحقق شوې وه.دکومچې ده ګمان کړې وو.یعنی حدث په حقیقت کې واقع شوې وو.نو ده به په خپل لمونځ باندې بناء کوله.نو د اصلاح اراده به د حقیقت اصلاح سره ملحق کولے شی.

**جواز رمی المسلمین اذا جعلوا جنة**۞او په اسلامی شریعت کې داسے ثابت دی.که کافرانو مسلمانان قیدیان د خپل خان لپاره ډهال جوړ کړل.نو د مسلمانانو لپاره په هغوی باندې غشی چلول جائز دی.خو شرط دا دې.چې د مسلمانانو تیراندازو اراده د کافرانو ویشتل وی.مسلمانان قیدیانو باندې غشی چلول نه وی.صاحب د هدایه فرمائی.چې د اصلاح اراده به د حقیقت اصلاح سره په هغه وخت کې ملحق کولے شی.چې د جمات نه د وتلو په وجه نې خائې نه وی بدل کړې.ځکه چې د مکان اوخائې بدلول تحریمه باطلوی.نوچې ترڅو پورې خائې یو وی.نوتحریمه پاته وی.

## په غلطۍ سره د حدث په ګمان بل کس خلیفه جوړول

**وَاِنْ كَانَ اسْتَخْلَفَ** اوکه وهم کونکی څوك خلیفه جوړ کړلو **فَسَدَتْ** نو لمونځ فاسدیږی. **لِاَنَّهٗ عَمَلٌ كَثِيْرٌ مِّنْ غَيْرِ عُذْرٍ** ځکه چې بغیر د عذر نه عمل کثیر دې

**حل اللغة**: ①**استخلف، استخلف استخلافا**: خلیفه جوړول ②**کثیر**: زیات

**تشریح:-** مسئله دا ده.که دے دے اودسۍ ګمان کونکی څوك خلیفه جوړ کړلو.بیا معلومه شوه.چې بے اودسه نه وو.نو دده لمونځ فاسد شو.اګرچې د.د جمات نه وتلے نه وی.

دلیل دا دې.چې خلیفه جوړول عمل کثیر دې.او بغیر د عذر نه عمل کثیر مفسد دلمانځه دې.ځکه په دے صورت کې دده لمونځ فاسدیږی.البته که قوم خلیفه جوړ کړی.نو د امام نه سوا به دهغوی لمونځ فاسد شی.او که د لمونځ ګذار د حدث ګمان متحقق شی.نو عمل د استخلاف مفسد نه دې.ځکه چې په دے صورت کې عذر موجود دې.نو خلیفه جوړول د جمات نه دوتلو په څیر شو.یعنی د جمات نه وتل که د لمونځ د اصلاح په اراده وی.او عذرهم موجود وی.نود جمات نه وتل د لمانځه ماتونکی نه دی.دغه ډول که خلیفه جوړول د لمانځه د اصلاح په اراده وی.او عذر هم موجود وی.نو خلیفه جوړول هم مفسد د لمانځه نه دی.

**وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا** اودا ددے په خلاف دې **اِذَا ظَنَّ اَنَّهٗ افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ** چې ده ګمان کړی وی.چې ده بغیر د اودس نه لمونځ پیل کړې دې **فَانْصَرَفَ** نو ده مخ واړلوو **ثُمَّ عَلِمَ اَنَّهٗ عَلٰى وُضُوْءٍ** بیا ورته معلومه شوه.چې په اودس وو **حَيْثُ تَفْسُدُ** نو لمونځ فاسد شو **وَاِنْ لَّمْ يَخْرُجْ** اګرچې دے د جمات نه بهرته نه وی وتلې **لِاَنَّ الْاِنْصِرَافَ عَلٰى سَبِيْلِ الرَّفْضِ** ځکه چې دا ګرځیدل د لمونځ ماتولو په غرض دی، **اَلَا تَرٰى** آیا تاسو نه ګورئ **اَنَّهٗ لَوْ تَحَقَّقَ** دغه خبره په حقیقت کې واقع وی. **مَا تَوَهَّمَهٗ** د کومې چې ده ګمان کړی وو **يَسْتَقْبِلُهٗ** نو د سر نه بل لمونځ پیل کوی **فَهٰذَا هُوَ الْحَرْفُ**،نو هم دا اصل دې

**حل اللغة**: ① **افتح، افتتاحا**: پیل کول ② **تفسد، فسد فسادا (ن)**: خرابیدل،فاسد کیدل ③ **حرف**: اړخ،طرف

**تشریح:- صورة فساد الصلاة بالانصراف**۞صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چې د لمونځ داصلاح په اراده راګرځیدل ددے په خلاف دی.چې ده ګمان کړی وی.چې ده بغیر د اودس نه لمونځ پیل کړې دې.بیا داودس په اراده باندې ده اړخ واړولو.بیا معلومه شوه.چې دے په اودس کې دې.اوګمان غلط وو.نو په دے صورت کښے دده لمونځ فاسد شو.اګرچې د.د جمات نه بهرته وتلے نه وی.اګرچې دا ګرځیدل د لمونځ ماتوول په غرض وی.یعنی د لمونځ پریخود لپاره واروسته شوې وی.د لمونځ د اصلاح لپاره نه وی.نو که دده بے اودسی متحقق شی.نو دے به د سرنه لمونځ راګرځوی.

**الضابطة في الفساد وعدمه**۞ضابطه او اصل دا دې.که د لمانځه نه ګیدل د اصلاح په غرض وی.نولمونځ نه



فاسدیږی.خو په دے شرط چې د جمات نه وتل او استخلاف نه وی واقع شوې.او که د اعراض او ماتولو په اراده باندې انصراف شوی وی.نو لمونځ فاسدیږی.

**وَمَكَانُ الصُّفُوْفِ فِي الصَّحْرَاءِ لَهٗ حُكْمُ الْمَسْجِدِ**، او په صحراء کې د صفونو ځائې دجمات په حکم کې دې

① صحرا: ډګر

**تشریح:- حد الانصراف الصحراء**۞**وکان الصفوف الخ**۞په دے سره دا خودل غواړی.چې که دا خبره په جمات کې نه وی پیښه شوې.بلکه په صحرا او ډګر کې نې لمونځ کولو.او د بے اودسۍ ګا ورته پیښ شوی وی.نود صفونو ځائې دده لپاره د جمات حکم لری.یعنی د بے اودسۍ په ګمان کې روستو اړخ ته لاړلو.او د صفونو نه تیر شو.بیا معلومه شوه.چې بے اودسه شوې نه دې.نو دده لپاره بناء کول جائز نه دی.اودغه ډول که ښی اړخ ته یا چپه اړخ ته د صفونو نه تیر شۍ.نو بناء کول جائز نه دی.او که د صفونو نه تیر شو نه وی.نو بناء کولے شی.

**وَلَوْ تَقَدَّمَ قُدَّامَهٗ** اوکه دے مخکې اړخ ته ور وړاندې شوې وی **فَالْحَدُّ هُوَ السُّتْرَةُ**، نوحد د ستره دې **وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ** او که وړاندې ستره نه وی **فَبِمِقْدَارِ الصُّفُوْفِ خَلْفَهٗ** نو روستنو صفونو په مقدار

**حل اللغة**: ① **قدام**: وړاندې

**تشریح:- حد الانصراف قدام الامام**۞اوکه مخکې اړخ ته تل وی.اوکه مخکې ستره هم وی.نو د سترے حد دې.نردے که د سترے نه تیر شو.نو لمونځ نې فاسد شو.اوکه وړاندې ستره نه وی.ود روستنو صفونو په مقدار به حد وی.مثلاً که روستنی صفونه پنځه ګزه وی.نو مخکې اړخ ته به هم پنځه ګزه وی.چې ددے نه په تیریدو سره به لمونځ ماتیږی.

**وَاِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا** اوکه ګمان کونکے منفرد مونځګذار وی **فَمَوْضِعُ سُجُوْدِهٖ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ** نو ده حد مقام د سجدے دې.هر اړخ ته.

**حل اللغة**: ⑧ **موضع**: ځائې

**تشریح:- حد الانصراف للمنفرد**۞اوکه د بے اودسۍ ګمان کونکے منفرد وی.نو په دے مقام به سجده کیږی.او دا حد به د هر اړخ نه شمارلے شی.تردے چې ښی چپه او شا ته به د منفرد لپاره هم دا اندازه وی.

## د مونځ په حال کې د لیونتوب،احتلام،او بیهوشۍ راتلل

**وَاِنْ جُنَّ** اوکه په لمونځ ګذار لیونے شو. **اَوْ نَامَ** یا ویده (اوده) شو. **فَاحْتَلَمَ** او په دے کې ورته احتلام اوشو **اَوْ اُغْمِيَ عَلَيْهِ** یا په ده باندې بے هوشی راغله. **اِسْتَقْبَلَ** نو لمونځ به د سرنه پیل کوی

**حل اللغة**: ①**جن، جنونا(ن)**: لیونې کیدل ②**فاحتلم، احتلم احتلاما**: بالغ کیدل احتلام کیدل

**تشریح:- صور استیناف الصلاة**۞ ① مسئله دا ده.که لمونځ ګذار لیونے شو.که امام وی او که مقتدی یا منفرد ④یا په حالت د لمانځه کې اوده شو.او احتلام ورته اوشو.③یا په ده باندې بیهوشی راغله.نو د سرنه به لمونځ پیل کوی.

**لِاَنَّهٗ يَنْدُرُ وُجُوْدُ هٰذِهِ الْعَوَارِضِ**.ځکه چې د داسے عوارضو پیښیدل نادر وی. **فَلَمْ يَكُنْ فِيْ مَعْنٰى مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ** نو دا عوارض د ،،ما وردبه النص،، په معنی کې نه دی **وَكَذٰلِكَ اِذَا قَهْقَهَ**.اوهم دغه ډول که ده په خندائې قهقه سره اوخاندل **لِاَنَّهٗ بِمَنْزِلَةِ الْكَلَامِ وَهُوَ قَاطِعٌ** ځکه چې قهقه په شان د خبرو ده.او خبرے د لمونځ ماتونکی دی.

**حل اللغة**: ① **ندر، ندرا،ندورا (ن)**: نادر کیدل ② **قهقه**: په زوره خندا کول ③ **قاطع**: ماتونکې

**تشریح:- دلیله**۞دلیل دا دې.چې په لمانځه د دے عوارضو پیښیدو نادر دی.نو دا عوارض د هغه عوارضو په څیر نه دی.په کومو چې نص راغلے دې.یعنی د نبی ﷺ قول **من قاء أو رعف في صلاته الخ** حاصل دا دې.چې حدث غیرنادرالوجود دې.په هوا وتلو او پوزے ماتیدلو کې بناء جائزده.او په حدث ،،نادر الوجود،، کې بناء جائز نه ده.اوهم دغه ډول که ده په خندائې قهقه سره اوخاندل.نو هم باء جائز نه ده.بلکه د سرنه به مونځ شرو

ع كوي. ځكه‌چې د قهقهي فعل په منزله د خبرو دي. او خبرې د لمونځ ماتونكې دي. ځكه‌چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. ﴿ ما لم يتكلم﴾ يعني ترڅو چې ئې خبرې نه وي كړي. نو بناء كولې شي. اوكه خبرې ئې اوكړلې. نو بناء جائز نه ده.

## د قرات نه د عجز په وخت كې بل كس خليفه جوړول

وَإِنْ حُصِرَ الْإِمَامُ عَنِ الْقِرَاءَةِ اوكه امام د قرات نه بند شو فَقَدَّمَ غَيْرَهُ نو ده بل كس وړاندې كړلو أَجْزَأَهُمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ (۱) نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د خلګو لپاره كافي ده

حل اللغة: ① حصر، حصر حصراً (ن): منع كيدل ② فقدم، قدم تقديماً: وړاندې كيدل

تشريح:- معنى الحصر ۞ ﴿حصر﴾ په حاء او صادر سره د سينې تنګيدل، او د خبرو نه عاجز كيدل، صاحب د عنايه رحمه الله ليكلي دي. چې يوكس د يوځيز نه داسې بند شي. چې اوس په هغې باندې قادر پاتې نشي. نو د ده په اړه كې وئيلې شي. ﴿قد حصر عنه امامته﴾ څومره قرآن ياد وو. كه د هغې دهيرولو د وجې د قرات نه عاجزشي. نو وئيلى شي. هغه د قرات نه بند شو.

المذهبان في صحة البناء وعدمها ۞ ① نوكه ده په مقتديانو كښې څوك خپل خليفه جوړو كړلو. نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا جائز ده. او دا د امام محمد رحمه الله يوقول دي.

وَقَالَا اوصاحبين رحمهما الله فرمائي. لَا يُجْزِئُهُمْ چې د هغوى لپاره دا كافي نه ده. لِأَنَّهُ يَنْدُرُ وُجُودُهُ ځكه داسې واقعه نادر الوجود ده فَأَشْبَهَ الْجَنَابَةَ فِي الصَّلَاةِ. نوپه لمانځه كې د جنابت سره مشابه شوه

تشريح:- او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي. چې دا جائز نه دي.

دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چې ﴿حصرعن القراءة﴾ كله كله پيښيږي. لكه څنګه‌چې په لمانځه كې دننه جنب كيدل نادرالوجود دي. نو د جنابت په شان به دلته هم دا د ﴿ما ورد به النص﴾ قي او د پوزې ماتيدلو په څير نه وي. نولكه څنګه‌چې د جنابت په صورت كې د سر نه د لمونځ پيل كول ضروري دي. دغه ډول د ﴿حصر عن القراءة﴾ په صورت كښې به هم دسر نه لمونځ پيل كول ضروري وي. اوخليفه جوړول په ټيك نه وي.

وَلَهُ او دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې أَنَّ الْاِسْتِخْلَافَ لِعِلَّةِ الْعَجْزِ چې خليفه جوړول د عجز د وجې وي وَهُوَ هَاهُنَا أَلْزَمُ او دلته به عجز واقع دي

تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چې د حدث پېښيدولو په صورت كې خليفه جوړول جائز دي. ځكه‌چې په دغه صورت كې امام د لمونځ پوره كاوه نه عاجز شوى وې. او دلته يعنى ﴿حصر عن القراءة﴾ په صورت كې عجز زيات لازميدونكې دې. ځكه‌چې د بې اودسه لپاره خو داهم ممكن ده. چې په جمات كې اوبه موجود وي. او هغه د خليفه جوړولو نه بغيرخپل لمونځ پوره كړي. خوچې كوم كس نه واړه قرآن هيرشي. هغه د لمانځه په پوره كاوه باندې قادر پاتې نشو. البته‌چې دا دوباره ياد كړي. او ازده كړي. چې هركله‌چې د حدث په صورت كې خليفه جوړول جائز دي. حالانكه په دې صورت كې عجز كم دې. نو د ﴿حصر عن القراءة﴾ په صورت كې خو به په درجه اولى سره خليفه جوړول جائز وي. ځكه‌چې په دې صورت كښې عجز زيات لازم دې. (عنايه)

وَالْعَجْزُ عَنِ الْقِرَاءَةِ غَيْرُ نَادِرٍ. اود قرات نه عجز غيرنادرالوقوع دې فَلَا يَلْحَقُ بِالْجَنَابَةِ نو جنابت سره دا نشي لاحق

(۱) القول الراجح هو قول ابى حنيفة كذا فى فتح القدير (۱\۳۳٤) والبحرالرائق (۱\۳۹۳) وردالمحتار(۱\٤٤٦) وتبيين الحقائق (۱\۱٤۷) بدائع الصنائع (۱\۲۲٦) نقلا عن القول الراجح (۱\۹٦)_



كولي:

حل اللغة: ① جناية: ناپاكى

تشريح:- الجواب ۞ په دې سره د صاحبينو رحمهما الله د قول ځواب دې. دځواب حاصل دا دې. چې د قرات نه عجز نادر الوجود نه دې. (بلكه غير نادر الوجود دې.) اوجنابت نادر الوجود دې نو يو ،،غير نادرالوجود،، شى د ،،نادرالوجود،، شى سره لاحق كول څنګه صحيح كيدې شي.

## د فرض قرات نه د عجز په صورت كې د خليفه جوړول

وَلَوْ قَرَأَ مِقْدَارَ اوكه ده دومره اندازه باندې قرات كړې وو. مَا تَجُوزُ بِهِ الصَّلَاةُ چې لمونځ جائز كيدلو. لَا يَجُوزُ الْاِسْتِخْلَافُ بِالْإِجْمَاعِ نو خليفه جوړول په امام سره جائز نه دي. لِعَدَمِ الْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځكه‌چې د خليفه جوړولو حاجت نشته

حل اللغة: ① لايجوز، جاز جوازاً (ن): جائزكيدل ② حاجة: اړتيا

تشريح:- مسئله دا ده. كه امام په دومره اندازه قرات كړې وو. چې لمونځ پې جائزكيدلو. يعنى د امام صاحب په نيزيو آيت اود صاحبينو رحمهما الله په نيز درې آياتونه ،او بيا د قرات كاوه نه عاجز شو. نو دده لپاره خليفه جوړول جائز نه دي. اوكه ده څوك خليفه جوړ كړلو. نو لمونځ فاسديږي. دا حكم په اجماع سره دې. دليله دا دې. چې كله ئې ﴿ما يجوز به الصلاة﴾ اندازه باندې قرات كړې وي. نواوس د خليفه جوړولو اړتيا پاته نشي. اودا خبره ښكاره ده. چې بغير د شرعى اړتيا نه خليفه جوړول جائز نه دي.

## دتشهد نه روسته د بې اودسۍ راتلل

وَإِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ بَعْدَ التَّشَهُّدِ اوكه لمونځ ګذار د تشهد نه روسته بې اودسه شو. تَوَضَّأَ وَسَلَّمَ نو اودس دې اوكړي. اوسلام دې اوګرځوي. لِأَنَّ التَّسْلِيمَ وَاجِبٌ ځكه‌چې سلام ګرځول واجب دي. فَلَا بُدَّ مِنَ التَّوَضُّؤِ نو اودس كول ضروري دي. لِيَأْتِيَ بِهِ چې سلام اوګرځوي.

حل اللغة: ① سبقه، سبق سبقا (ض): وړاندې كيدل ② فلابد: ضروري

تشريح:- مسئله داده. چې لمونځ ګذار د تشهد نه روسته بې اودسه شو. نو حكم دا دې. چې دې به اودس اوكړي. او بيا به سلام اوګرځوي. ځكه‌چې سلام ګرځول واجب دې. نو ددې وجې اودس كول مهم (ضروري) شو. چې واجب سلام ادا كړي.

## د تشهد نه روسته په قصد بې اودسه كيدل

وَإِنْ تَعَمَّدَ الْحَدَثَ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ اوكه ده په دې حالت كښ په قصد خان بې اودسه كړلو. أَوْ تَكَلَّمَ يا ئې خبرې اوكړلې. أَوْ عَمِلَ عَمَلًا يُنَافِي الصَّلَاةَ يا ئې داسې څه عمل اوكړلو. كوم‌چې د لمانځه سره منافي وي. تَمَّتْ صَلَاتُهُ نو دده لمونځ پوره شو. لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْبِنَاءُ لِوُجُودِ الْقَاطِعِ، ځكه‌چې د لمونځ ماتونكې شى موجوديدو په وجه بناء كول متعذر شو. لَكِنْ لَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ خو په ده باندې د لمونځ راګرځول نشته. لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ عَلَيْهِ شَيْءٌ مِنَ الْأَرْكَانِ ځكه‌چې په اركانو كې په ده باندې دڅه شى پاته نه دې

حل اللغة: ① تعمد، تعمد تعمداً: اراده اوقصد كول ② تكلم، تكلم تكلماً: خبرې كول ③ عمل عملاً (س): كاركول ④ تعذر، تعذر تعذراً: مشكل كيدل ⑤ لم‌يبق، بقى بقاءً (ض): پاته كيدل

تشريح:- د ترجمې نه مطلب ښكاره دې

## د متيمم په مانځه كې د اوبو ليدل

فَإِنْ رَأَى الْمُتَيَمِّمُ الْمَاءَ فِي صَلَاتِهِ كه متيمم په خپل لمونځ كې اوبه اوليدلې. بَطَلَتْ نو دده لمونځ باطل شو. وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا مسئله وړاندې تيره شوې ده.

حل اللغة: ① بطلت، بطل بطلانا (ن): باطل كيدل ② مر، مر مروراً (ن): تيريدل

**تشريح:-** د ترجمې نه مطلب ښکاره دې

## د مونځ فاسديدو دولس مسائل

وَإِنْ رَآهُ بَعْدَ مَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ (۱) اوكه متيمم د تشهد په اندازه د كيناستلو نه روسته اوبه اوليدل. أَوْ كَانَ مَاسِحًا فَانْقَضَتْ مُدَّةُ مَسْحِهِ ② په موزه باندې مسح كونكے وو. دهغه د مسح موده تيره شوه. أَوْ خَلَعَ خُفَّيْهِ بِعَمَلٍ يَسِيرٍ ③ يا ئې خپلے دواړه موزے اوويستلې په لږ عمل سره، أَوْ كَانَ أُمِّيًّا فَتَعَلَّمَ سُورَةً ④ يا امى وو. نو څه سورت ياد كړلو. أَوْ عُرْيَانًا فَوَجَدَ ثَوْبًا ⑤ يا بربنډ وو. نو جامے ئې اوموندلے أَوْ مُومِيًا ⑥ يا په اشاره سره ركوع او سجده كونكے وو. فَقَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ بيا په ركوع او سجده قادر شو. أَوْ تَذَكَّرَ فَائِتَةً (۷) او يا ئې ياد كړلو. قضا شوي لمونځ عَلَيْهِ قَبْلَ هَذِهِ كوم چې په ده باندې د لمانځه نه وړاندې واجب القضاء وو أَوْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ الْقَارِئُ (۸) يا امام قارى بے اودسه شو. فَاسْتَخْلَفَ أُمِّيًّا نو هغه امى كس خليفه جوړ كړو. أَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ فِي الْفَجْرِ (۹) يا په سهار كي لمر راوختلو. أَوْ دَخَلَ وَقْتُ الْعَصْرِ (۱۰) يا داخل شو. د مازيگر وخت فِي الْجُمُعَةِ په داسے حال كې چې ده د جمعے لمونځ كولو. أَوْ كَانَ مَاسِحًا عَلَى الْجَبِيرَةِ (۱۱) يا په جبيره باندې مسح كونكے وو. فَسَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ نو ښه شو. او اوغورځيدله. أَوْ كَانَ صَاحِبَ عُذْرٍ (۱۲) يا دے معذور وو. فَانْقَطَعَ عُذْرُهُ دده عذر ختم شو. كَالْمُسْتَحَاضَةِ لكه مستحاضه ښځه وَمَنْ بِمَعْنَاهَا او هغه كس چې دد ے په معنى كي وي.

**حل اللغة:** ① **راه، راى روية (ف):** كتل ② **قعد، قعد قعودا (ن):** كښيناستل ③ **ماسحا:** مسح كونكې ④ **فانقضت، انقضى انقضاءً:** پوره كيدل ⑤ **خلع، خلع خلعًا (ف):** ويستل ⑥ **خف:** موزه ⑦ **عريانًا:** بربنډيدل ⑧ **فوجد، وجد وجدانًا (ض):** موندل ⑨ **مومئًا:** اشاره كونكې ⑩ **فائتة:** فوت شوې ⑪ **امى:** ان پړه ⑫ **فانقطع، انقطع انقطاعًا:** منقطع كيدل، جلا كيدل ⑬ **جبيرة جمع جبائر:** پټئ ⑭ **خروج:** وتل ⑮ **لايتوصل، توصل توصلاً:** رسيدل ⑯ **استخلاف:** خليفه جوړول

**تشريح:- مواقع فساد الصلاة المسمى بالمسائل اثناء عشرة** ❁ په دے عبارت كي د مسائل اثناء عشره بيان دې. كومے چې د تشهد په اندازه د كيناستلو نه روسته پيښے شي. ① متيمم مونځگذار د تشهد په مقدار باندې د كيناستلو نه روسته اوبه اوليدلې. ② په موزو باندې مسح كونكے وو. د تشهد په اندازه دكيناستلو نه روسته ئې د مسح مودهٔ پوره شوه. ③ ياد تشهد نه روسته ئې د په عمل قليل سره دواړه موزوو اوويستله. اوعمل قليل دادې. چې موزے داسے سستے وي. چې د لاسونو اړتيا پيښ نشي. صرف د پښو په حركت سره يوه موزه اوځي ④ يا مونځگذار وو. د تشهد په اندازد كيناستلو نه روسته ئې دقرآن يو سورت ياد كړلو. صاحب د عنايه رحمه الله فرمائيلي دي. چې قران ترے هير شوي وي. خود تشهد د مقدار نه روسته ورته ورياد شي. مطلب دا نه دې. چې ده په لمانځه كي زده كړلو. ځكه چې د تعليم لپاره زده كول ضروري وي. او زدكړه د لمونځ د فعل سره منافي دې. په دے باندې په اتفاق سره لمونځ پوره كيږي. او بعضو وئيلي دي. چې د سورة زده كاوه مطلب دا دې. چه چې بغير د اختياره واوريدلو. او بغير د كوښښ نه ورته ياد شو. ⑤ يا مصلي بربنډ لمونځ كولو. ده د مقتدار د تشهد نه روسته كالي اوموندله. ⑥ يا مصلي په اشاره سره ركوع او سجده كونكے وو. دے د تشهد د اندازه نه روسته په ركوع او سجده باندې قادر شو. ⑦ يا مصلي ته د تشهد د انازے نه روسته قضا لمونځ ورياد شو. كوم چې په ده باندې ددے لمونځ نه وړاندې واجب القضاء وو. مثلاً په ماښپين كي ورته د تشهد اندازه نه روسته ورياد شو. چې د سهار لمونځ ترے قضاء شوېدې. حالانكه د ترتيب د فرضيت د وجے هغه وړاندې كول پكار وو ⑧ ياد تشهد د اندازے نه روسته امام قاري بے اودسه شو. او هغه امى كس خليفه جوړ كړلو. ⑨ يا د تشهد د مقدار نه روسته د سهار په لمانځه كي لمر راوختلو. ⑩ يا د تشهد دمقدار نه روسته دمازيگر وخت داخل شو. حالانكه دا كس د جمعے په لمانځه كي وو. ⑪ يا مصلي په پټئ باندې مسح كونكے وو. نو دتشهد دمقدار نه روسته پټئ د روغوالي د وجے اوغورځيدله. ⑫ يا معذور وو. خو د تشهد د مقدار نه روسته دده عذر منقطع شو. يعنى هغه عذر ختم شو. لكه مستحاضه ښځه، يا څوك چې ددے



په معنى كي وي. لكه هغه كس چې متيازے ترے روانے وي. يا د پوزے وينه د روانيدو عذر ئے وي.

بَطَلَتْ صَلَاتُهُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (۱) دامام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق د دوى لمونځ باطل شو. وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمائي. تَمَّتْ صَلَاتُهُ چې د دوى لمونځ پوره شو.

**تشريح:- الاختلاف في فساد الصلاة وعدمه** ❁ ① په دے دولسو مسائلو كي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز لمونځ باطل شو. ② اوصاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي. په دے ټولو صورتونو كي لمونځ پوره شو.

وَقِيلَ وئيلي شوي دي. الْأَصْلُ فِيهِ چې په دے باب كي اصل دا دې. أَنَّ الْخُرُوجَ عَنِ الصَّلَاةِ بِصُنْعِ الْمُصَلِّي فَرْضٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ چې د لمانځه نه وتل د لمونځ گذار په اختيارى فعل باندې د ابوحنيفه رحمه الله په نيز فرض دى. وَلَيْسَ بِفَرْضٍ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو رحمهما الله په نيز فرض نه دى. فَاعْتِرَاضُ هَذِهِ الْعَوَارِضِ عِنْدَهُ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دے حالت كي ددے عوارضو راتګ داسے دى كَاعْتِرَاضِهَا فِي خِلَالِ الصَّلَاةِ لكه د لمانځه په مينځ كي دے عارضو راتګ، وَعِنْدَهُمَا او د صاحبينو رحمهما الله په نيز كَاعْتِرَاضِهَا بَعْدَ التَّسْلِيمِ. لكه د سلام نه روسته ددے عوارضو راتلو په شير دى.

**تشريح:- الاصل المختلف فيه** ❁ بعضے مشائخو رحمهم الله فرمائيلي دى. چې په دے باب كي اصل دا دې. چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د لمانځه نه بهر وتل د مصلي په اختيار سره فرض دى. اودصاحبينو رحمهما الله په نيز فرض نه دى. نو ددے اصل په بناء دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د آخرى قعدے نه روسته دے عوارضو راتګ كوم چې په هر مسئله كي جلا جلا ذكر شول. داسى دى. لكه چې د لمانځه په مينځ كي راغلى وي. اود لمونځ په مينځ كي ددے عوارضو راتګ د لمونځ مفسد دى. نو كه آخرى قعدے نه روسته هم دا عوارض راتګ د لمانځه فاسدونكي دى. نو ځكه د آخرى قعدے نه روسته هم كه دا عوارض پيښ شى. نو لمونځ به باطل وى. ② اودصاحبينو رحمهما الله په نيز د آخرى قعدے نه روسته ددے عوارضو راتګ داسى دى. لكه څنګه چې د سلام نه روسته وى. او دا ښكاره خبره ده. چې د سلام ګرځولو نه روسته هيڅ يو عارض لمونځ نه فاسدوى. نو ځكه د آخرى قعدے نه روسته ددے عوارضو راتګ د لمونځ فاسدونكى نه دى.

لَهُمَا مَا رَوَيْنَا كوم چې موږ روايت كړې دې. مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دصاحبينو رحمهما الله لپاره حديث د ابن مسعود رضي الله عنه دليل دې.

**تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله** ❁ دصاحبينو رحمهما الله دليل د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې. حديث دا دې. چې رسول الله ﷺ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته فرمائيلي وو. «إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم» يعنى كله چې تا دا اووئيل. يا دے دا اوكړلو. نوستا لمونځ پوره شو. كه ستا زړه پاسيدل غواړى. نو اودريږه. په دے حديث باندې استدلال داسے دې. چې نبى ﷺ د لمونځ پوره كيدل په تشهد وئيلو يا د تشهد په مقدار ناسته پورې معلق كړلو. نو كوم كس چې د لمونځ پوره والے په بل شى پورے معلق كړلو. نوده د نص مخالفت اوكړلو. حاصل دا دې. چې په دے مسائلو كي د آخرى قعدے نه روسته د دے عوارضو ذكر دې. او په آخرى قده باندې لمونځ پوره شو. نو هر كله چې په آخرى قعده باندې لمونځ پوره شو. نو ددے نه روسته د مونځ باطليدلو څه سوال پيدا كيږى!

وَلَهُ او دابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ أَدَاءُ صَلَاةٍ أُخْرَى چې د لمونځ گذار لپاره په دوهم لمونځ كښے پيل كول ممكن نه دى إِلَّا بِالْخُرُوجِ مِنْ هَذِهِ. مگر داچې دے ددے معنى نه اوځي. وَمَا او كوم څيز چې داسے وي. لَا

---

(۱) القول الراجح هو قول ابى حنيفة كذا فى ردالمحتار(۱\۴۴۹) ومنحة الخالق عل هامش البحر(۱\۶۵۹) نقلا عن القول الراجح (۱\۹۷)_

يَتَوَصَّلُ إِلَى الْفَرْضِ إِلَّا بِهِ چې دهغې نه بغير فرض ته تلل نشي کيدې. كَوْنُ فَرْضًا نو هغه هم فرض وي.

**تشريح:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چې د بل لمونځ په خپل وخت کي ادا کول فرض دی. او دا ممکن نه دی. چې ترخور پورې د دغه موجوده لمونځ نه خارج شو نه وی. چې بل لمونځ پيل اوکړی. نو ددے موجوده لمونځ نه وتل د بل فرض لمونځ ادا کول لپاره ذريعه شوه. يعنی د بل فرض لمونځ ادا کول ددے موجوده لمونځ نه په وتلو موقوف دی. اوچوکه د فرض موقوف عليه هم فرض وی. نوځکه ددے موجوده لمونځ نه وتل هم فرض شو.

**فائده:** هم دا وجه ده. چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د لمونځ نه وتل په ،،صنعه،، فرض دی. ددے نظيردا دې. چې په يو کس باندې نفقه واجب وی. او هغه بغير د ګټلو نه نشی حاصليدې. نو په ده باندې ګټه کول هم فرض دی. يا مثلاً سجده فرض ده. او دا تر هغه وخته پورې ممکن نه ده. ترڅوچې د رکوع نه منتقل شوې نه وی. نو دا انتقال هم فرض شو. ځکه چې د فرض موقوف عليه فرض وی.

وَمَعْنَى قَوْلِهِ تَمَّتْ قَارَبَتِ التَّمَامَ او د نبی ﷺ قول «وتمت» معنی ده «قاربت التمام»

**تشريح:- جواب دليل الصاحبين رحمهما الله** ﴿ومعنى قوله تمت إلخ﴾ نه د ابن مسعود رضي الله عنه د حديث خواب دې. دخواب حاصل دا دې. چې په حديث کي «تمت صلاتك» معنی «قاربت التمام» ده. يعنی کله چې ده دا اوونی. نو ستا لمونځ پوره کيدو ته نزدے شو.

**نظيره:** دا داسے ده. لکه څنګه چې د نبی ﷺ قول «الحج العرفة» يعنی حاجې په عرفه باندې وقوف اوکړلو. نو د ده حج پوره شو. حالانکه د وقوف عرفه نه روسته هم لا تراوسه پورې طواف زيارت فرض پاته وی. نو دلته هم دا معنی ده. چې حج پوره کيدو ته نزدے شو.

وَالِاسْتِخْلَافُ لَيْسَ بِمُفْسِدٍ او خليفه جوړول مفسد نه دی. حَتَّى يَجُوزُ فِي حَقِّ الْقَارِئِ، تردےچې د قاري په حق کي جائز دی. وَإِنَّمَا الْفَسَادُ ضَرُورَةُ حُكْمٍ شَرْعِيٍّ چې دلمونځ د فساد حکم صرف د شرعی حکم د وجے دې. وَهُوَ عَدَمُ صَلَاحِيَةِ الْإِمَامَةِ او هغه داچې په امام کي دامامت صلاحيت نشته.

**تشريح:- توضيح السوال المقدر** ﴿والإستخلاف ليس بمفسد﴾ په دے سره د يو سوال مقدر ځواب دې. سوال دا دې. چې کله امام قاري بے اودسه شی. اوده امی کس خليفه جوړ کړلو. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بايد ده چې لمونځ فاسد نشی. ځکه چې خليفه جوړول دلمونځ ماتونکے نه دی. يعنی که قاري محدث بل څوك قاري جوړ کړی. نو لمونځ نه فاسديږی. نو دغه ډول دلته هم بايد ده چې فاسد نشی.

**الخواب:** بيشکه خليفه جوړول مفسد د صلاة نه دی. ځکه خو د قاري بل قاري خليفه جوړول جائز دی. خو په ذکر شوی صورت کښ فساد د استخلاف د وجے نه دې. بلکه د بل شی د وجے دې. او هغه بل شی د حکم شرعی اړتيا دې. او د امر شرعی اړتيا دې. چې امی څوك چې خليفه جوړولے شی. په هغه کي دامامت صلاحيت نه وو. نو په امام کي د امامت د صلاحيت د فقدان د وجے لمونځ فاسديږی. د خليفه جوړلو د وجے نه.

## د حدث په عارض کيدو د امام مسبوق لره خليفه جوړول

وَمَنِ اقْتَدَى وچاچې اقتداء اوکړله. بِإِمَامٍ په امام پسې بَعْدَمَا صَلَّى رَكْعَةً د يو رکعت کاوه نه روسته فَأَحْدَثَ الْإِمَامُ بيا امام بے اودسه شو. فَقَدَّمَهُ و امام هم دا مسبوق خليفه جوړ کړلو. أَجْزَأَهُ نو کافی ده. لِوُجُودِ الْمُشَارَكَةِ فِي التَّحْرِيمَةِ، ځکه چې په تحريمه کي مشارکت موجود شو.

**حل اللغة:** ① **اقتدى، اقتداء:** پيروی کول ② **فقدمه، قدم تقديماً:** وړاندې کول

**تشريح:- استخلاف المسبوق** صورت د مسئلے دا دې. چې يو کس داسے امام پسې اقتداء اوکړله. چې يو رکعت کړی وی. بيا دغه امام بے اودسه شو. او هغه دا مسبوق خپل خليفه جوړ کړو. نو دا جائز ده. ځکه چې د استخلاف د صحيح کيدو لپاره شرط په تحريمه کي مشارکت دې. او دا مشراکت في التحريمه کي موجود



شوي دي. نو ځکه خليفه جوړول صحيح شو.

وَالْأَوْلَى لِلْإِمَامِ او د امام لپاره غوره ده. أَنْ يُقَدِّمَ مُدْرِكًا د مدرك وړاندې کول. (خليفه جوړول) لِأَنَّهُ أَقْدَرُ عَلَى إِتْمَامِ صَلَاتِهِ، ځکه چې مدرك ته دامام د لمونځ په پوره کاوه زيات قدرت وی.

**حل اللغة:** ① **مدركاً:** موندونکې ② **اتمام:** پوره کول

**تشريح:- افضلية استخلاف المدرك** خو غوره دا ده. چې امام څوك مدرك خليفه جوړ کړی. ځکه چې مدرك دامام د لمونځ په پوره کاوه باند. زيات قادر دې. ځکه چې مسبوق خليفه جوړ کړې شی. نو هغه د سلام ګرځولو لپاره د بل کس خليفه جوړول ته محتاج دې. او ښکاره خبره ده. چې په دے صورت کي دوې (دوه) ځله خليفه جوړول لازميږی. او يو ځل خليفه جوړول غوره دی. په نسبت سره بار بار خليفه جوړول ته.

وَيَنْبَغِي لِهَذَا الْمَسْبُوقِ او د مسبوق لپاره مناسب دی. أَنْ لَا يَتَقَدَّمَ چې هغه نه وړاندې کيږی. (يعنی خلفت نه قبلوی) لِعَجْزِهِ عَنِ التَّسْلِيمِ ځه چې هغه د سلام ګرځولو نه عاجز دې.

**حل اللغة:** ① **عجز:** عاجز کيدل ② **تسليم:** سلام کول، سلام ګرځول

**تشريح:- ماينبغی للمسبوق؟** صاحب د هدايه رحمه الله ليکی. چې د مسبوق لپاره هم مناسب دا دی. چې هغه وړاندې کيږی. يعنی خلافت نه قبلوی. ځکه چې هغه د سلام ګرځولو نه عاجز دې. اوکه وړاندې شو. نوجائز ده. ليکن خلاف اولی ده.

## د مسبوق خليفه جوړولو په صورت کي سلام ګرځول

فَلَوْ تَقَدَّمَ که مسبوق وړاندې شو. يَبْتَدِئُ نو هغه به هغه ځائې نه پيل کوی. مِنْ حَيْثُ انْتَهَى إِلَيْهِ الْإِمَامُ کوم ځائې ته چې امام رسيدلے وی. لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه چې دا مسبوق دامام قائم مقام دې. وَإِذَا انْتَهَى إِلَى السَّلَامِ وچې تر څو پورې دا مسبوق سلام ګرځولو ته نه وی رسيدلې. يُقَدِّمُ مُدْرِكًا نو بل مدرك به نه وړاندې کوی. يُسَلِّمُ بِهِمْ چې قوم سره سلام اوګرځوی.

**حل اللغة:** ① **تقدم، تقدم تقدماً:** وړاندې کول ② **يسلم، سلم تسليماً:** سلام ګرځول، سلام کول

**تشريح:- ما يفعل المسبوق بعد فراغ صلاة الامام** صورت د مسئلآ دا دې. چې امام محدث مسبوق سړې خليفه جوړکړلو. او دا مسبوق وړاندې شو. نو د هغه حالت څخه به پيل کوی. کوم حالت ته امام رسيدلآ وو. ځکهچې دآ د امام قائم مقام دې. اوکلهچې دا مسبوق دامام مونځ پوره کړی. او د سلام ګرځولو وخت ته اورسيای. نو په خپله دآ روستو شی. او مدرك دآ وړاندې کړی. چې هغه مقتديانو سره سلام اوګرځوی. اودهغوی مونځ پوره کړی. او مسبوق به مدرك ځکه وړاندې کوی. ځکه چې مسبوق په خپله دسلام ګرځولو نه عاجز دې. ځکهچې اوس هم هغه ته يو رکعت پاته دې. نو هغه دآ د داسآ کس نه کومك طلب کړی. څوکچې په دآ قادر وی.

فَلَوْ أَنَّهُ حِينَ أَتَمَّ صَلَاةَ الْإِمَامِ بيا که مسبوق خليفهچې په کوم وخت کي د لمونځ پوره کړلو. قَهْقَهَ نو قهقه ئې اوکړله. أَوْ أَحْدَثَ مُتَعَمِّدًا يا ئې ځان بے اودسه کړلو. أَوْ تَكَلَّمَ يا ئې خبرے اوکړلې. أَوْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ يا د جمات نه اووتلو. فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو دده لمونځ فاسد شو. وَصَلَاةُ الْقَوْمِ تَامَّةٌ او د مقتديانو لمونځ پوره شو.

**حل اللغة:** ① **فسدت، فسد فساداً (ن):** فاسد کيدل ② **تمام:** پوره کيدل

**تشريح:- صورة فساد صلاة الامام المسبوق** اوکه داسے صورت شو. چې مسبوق خليفهچې کله د امام لمونځ پوره کړلو. نو قهقه ئے اوکړله. يا په قصد ئې ځان بے اودسه کړلو. يا ئې خبرے اوکړلې. يا د جمات نه بهر ته اووتلو. نو په دے صورتونو کي د مسبوق خليفه لمونځ په خپله فاسد شو. دغه ډول که په مقتديانو کي څوك

مسبوق وي.نو هغه لمونځ هم فاسد شو.اود مقتديانو لمونځ پوره شو.خو په دے شرط چې دا مقتديان داول نه تر آخره پورې داامام سره شريك وي.

لِأَنَّ الْمُفْسِدَ فِي حَقِّهِ وُجِدَ فِي خِلَالِ الصَّلَاةِ ځکه چې مفسد د مسبوق خليفه په حق کې د لمونځ په مينځ کې واقع شو. وَفِي حَقِّهِمْ بَعْدَ تَمَامِ أَرْكَانِهَا او د مدرك مقتديانو د ټولو ارکانو پوره کيدو نه پس،

تشريح:- دليله ۞ دليل دا دې چې مفسد شی د مسبوق په حق کې دلمانځه په مينځ کښ موجود شو.او مقتديانو په حق کې د ټولو ارکانو پوره کيدو نه روسته موجود شو.او دا خبره منلے شوې ده.چې د لمانځه په مينځ کې د لمونځ ماتوی شی موجود کيدل لمونځ فاسدوی.اود رکنونو پوره کيدو نه روسته لمونځ نه فاسديږي.

وَالْإِمَامُ الْأَوَّلُ إِنْ كَانَ فَرَغَ او امام اول که فارغ شوې وي. لَا تَفْسُدُ صَلَاتُهُ، نو د هغه لمونځ نه فاسديږي. وَإِنْ لَمْ يَفْرُغْ اوکه فارغ شوے نه وي. تَفْسُدُ نو دهغه لمونځ به فاسد شي. وَهُوَ الْأَصَحُّ هم دا صحيح ده.

حل اللغة:لم يفرغ، فرغ فراغة (ن): اوزګاريدل.

تشريح:- حالتی الامام الاول ۞ پاته شو اول امام نو دهغه دوې (دوه) حالتونه دي.يوداچې هغه نه ځومره لمونځ پاتې شوی وي.هغه په خليفه پسے پوره کړي.اوفارغ شي. دوهم داچې لاتراوسه پورې فارغ شوې نه وي.په اول حالت کې دده لمونځ نه فاسديږي.ځکه چې دےهم د مدرکانو په څير شو.اګرچې په مينځ کې لاحق شوې وو.اوپه دوهم حالت کې دده لمونځ داسے فاسديږي.لکه څنګه چې د مسبوق لمونځ فاسديږي.هم دا صحيح روايت دې.

## د قدر التشهد نه روسته د امام په قصد باندې قهقه کول

فَإِنْ لَمْ يُحْدِثِ الْإِمَامُ الْأَوَّلُ نو که اول امام يے اودسه شوې نه وو وَقَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ او په اندازه د تشهد ناست وو ثُمَّ قَهْقَهَ بيا ئې قهقه اوکړله أَوْ أَحْدَثَ مُتَعَمِّدًا يا ئې په قصد باندې ځان بے اودسه کړلو فَسَدَتْ صَلَاةُ الَّذِي لَمْ يُدْرِكْ أَوَّلَ صَلَاةِ الْإِمَامِ نو دده د هغه مقتدی لمونځ فاسديږي.چاچې د داامام د لمونځ اول نه رالاندې کړې عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ([1]) دابوحنيفه رحمه الله په نيز وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائی. لَا تَفْسُدُ چې لمونځ نه فاسديږي وَإِنْ تَكَلَّمَ اوکه امام خبرے اوکړلې. أَوْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ يا د جمات نه بهر شو. لَمْ تَفْسُدْ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو نه ماتيږی لمونځ په اتفاق سره د دې عالمانو ټولو

حل اللغة:①قعد، قعد قعوداً (ن): کښينستل ②متعمداً: په قصد سره ③لم يدرک ادراکاً: موندل

تشريح:- فساد صلاة المسبوق بافساد صلاة الامام ۞ په عبارت کې امام په اول سره مقيد کول تساهل دې. ځکه چې په دے مسئله کې د استخلاف د عدم دوجے امام ثانی نشته.اوس صورت د مسئلے دا شو.چې امام بے اودسه شوې نه وی.بلکه هغه واړه رکعتونو اوکړی.او د تشهد په اندازه هم کيناستلو.بيا هغه قهقه اوکړله.يا ئے په قصد باندې ځان بےاودسه کړلو.نو داامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د داسے مقتدی فاسديږي.چاچې د امام دلمونځ اول نه وی رالاندې کړې.يعنی د مسبوق لمونځ به فاسد شي.

۩ عدم فساد صلاة المدرک بافساد الامام صلاته ۞ مصنف رحمه الله د مسبوق د لمونځ د فساد قيد ددےوجے اولګولو.چې د مدرك لمونځ په اتفاق سره نه فاسديږي.او پاته شو د لاحق لمونځ نود هغه په اړه کې دوې (دوه) روايتونه دي.يو د فساد او بل د عدم فساد ،او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چې د مسبوقينو لمونځ هم نه فاسديږي.او که د تشهد په اندازه د کيناستلو نه روسته امام خبرے اوکړې.يا د جمات نه بهر شو.نوپه اتفاق سره د چا لمونځ هم نه ماتيږي.

[1]) القول الراجح هو قول ابی حنيفة کذا فی شرح الوقاية (۱۸۶\۱) والدرالمختار (۴۵۲\۱) والفقه الاسلامی (۲۸\۲) نقلا عن القول الراجح (۹۸\۱)_



۩ خلاصة البحث ۞ حاصل د مسئلے دا دې.چه چې امام د مسبوقينو او مدرکينو امامت کولو.کله چې امام د سلام محل ته راورسيدلو.نو هغه قهقه اوکړله.يا ئے ځان په قصد باندې بے اودسه کړلو.نو داامام صاحب په نيز د مسبوقينو لمونځ فاسديږي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز نه فاسديږي.اوکه د سالم محل ته راورسيدلو.او امام خبرے اوکړلې.يا د جمات نه بهر شو.نو په اتفاق سره د مسبوقينو لمونځ هم نه فاسديږي.

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. أَنَّ صَلَاةَ الْمُقْتَدِي بِنَاءٌ عَلَى صَلَاةِ الْإِمَامِ چې د مقتدی لمونځ د امام په لمونځ باندې مبنی دې جَوَازًا وَفَسَادًا په جواز کې هم او په فساد کې هم وَلَمْ تَفْسُدْ صَلَاةُ الْإِمَامِ او د امام لمونځ نه دے فاسد ، فَكَذَا صَلَاتُهُ نو د مقتدی لمونځ به هم (نه وی فاسد) وَصَارَ كَالسَّلَامِ وَالْكَلَامِ او دا د سلام او کلام په څير شو.

تشريح:- دليل الصاحبين رحمهما الله ۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چې دجواز او فساد په اعتبار سره د مقتدی لمونځ داامام په لمونځ باندې مبنی دې.لکه څنګه چې په «الامام ضامن» حديث کښ بيان شو.او د امام لمونځ نه دے فاسد ،نو د مقتدی لمونځ به هم نه فاسديږي.مقتدی که مسبوق وي.او که مدرك يالاحق اوپه قصد باندې بے اودسه کول ،او قهقه د سلام او کلام په څير دی.يعنی لکه څنګه چې د تشهد د اندازے نه روسته د امام په سلام اوکلام سره د مقتدی لمونځ نه ماتيږی.نو دغه ډول په قهقه او قصداً ځان بے اودسه هم لمونځ نه فاسديږي.

وَلَهُ او دابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ الْقَهْقَهَةَ مُفْسِدَةٌ لِلْجُزْءِ الَّذِي چې قهقه دهغه جزء فاسدونکے ده. يُلَاقِيهِ مِنْ صَلَاةِ الْإِمَامِ کوم چې د امام د لمونځ سره ملاؤ وو فَيُفْسِدُ مِثْلُهُ مِنْ صَلَاةِ الْمُقْتَدِي،نو ددے په شان به د مقتدی لمونځ هم فاسديږی

حل اللغة:① يلاقيه، لاقی ملاقی : ملاويدل، لاحق کيدل

تشريح:- دليل ابی حنيفة رحمه الله ۞ اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چې د امام په لمانځه کې چې د کوم جزء سره متصل قهقه واقع شوې ده.هغه جزء د فاسد کړل.نو ځکه ددے جزء په څير د مقتدی لمونځ هم فاسديږي.ځکه چې د مقتدی لمونځ د امام په لمانځه باندې مبنی دې.هرکله چې د مقتدی (مسبوق دلمونځ يو جزء فاسد شو.نو پاته لمونځ په دے باندې نشی بناء کيدې.ځکه چې د فاسد جزء په فاسد باندې بناء کول فاسد وی.حاصل داچې د مسبوق د لمانځه بناء ممکن نه ده.نوځکه لمونځ هم نشی پوره کيدې.بلکه د مسبوق لمونځ به فاسديږي.

غَيْرَ أَنَّ الْإِمَامَ لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْبِنَاءِ خو دا امام د بناء محتاج نه دې. وَالْمَسْبُوقُ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ،او مسبوق د هغے محتاج دې وَالْبِنَاءُ عَلَى الْفَاسِدِ فَاسِدٌ او په فاسد باندې بناء کول فاسده وي.

حل اللغة:①لايحتاج، احتاج احتياجاً: محتاج کيدل

وجه عدم جواز بناء المسبوق ۞ البته دومره خبره ضرور ده.چې امام ته د بناء کاوه احتياج نشته.ځکه چې د هغه واړه ارکان پوره شوی دی.اوس خو د ختميدو وخت دې.نوځکه د امام لمونځ پوره شو.او دغه ډول د مدرك مقتديانو لمونځ هم پوره شو.او پاته شو مسبوق نوهغه د بناء کاوه محتاج دې.ځکه چې د غه د لمونځ اوله برخه پاته ده.او وړاندې تير شوی دی.چې په کوم جزء باندې بناء کوی.چې جزء د قهقه د وجے فاسد شو.او په فاسد جزء باندې بنا کول فاسد وی.نوځکه د مسبوق لپاره بناء کول مکن شو.اوهرکله چې بناء کول ممکن نشو.نو لمونځ هم فاسد شو.

بِخِلَافِ السَّلَامِ په خلاف د سلام لِأَنَّهُ مِنْهُ ځکه چې هغه لمونځ پوره کونکے دې. وَالْكَلَامُ فِي مَعْنَاهُ،او کلام د سلام په څير دې

تشريح:- اتحاد الكلام والسلام ۞ په خلاف د سلام ځکه چې سلام د لمونځ پوره کونکے دې.د لمونځ فاسدونکے نه

دي. اوكلام د سلام په معنى دي.په دے طريقه چې چې سلام په حقيقت كي دقوم سره بنى او چپه اړخ ته مخ كول او خبرے كول دى.ځكه چې سلام (السلام عليكم) كي كاف د خطاب موجود دى.كوم چې په كلام باندې دلالت كوى.بهرحال هركله چې كلام هم د سلام په معنى شو.نو كلام هم د لمونځ پوره كونكے دې.فاسدونكے نه دي.نو چې ځنګه د سلام نه روسته مسبوق خپل پاتې شوې لمونځ پوره كولے شى.نو دغه ډول ئے د كلام نه روسته هم پوره كولے شي.

**دليل ابى حنيفة رحمه الله**⊛صاحب د نهايه رحمه الله د ابوحنيفه رحمه الله دليل داسے نقل كړې دې.چې حدث او قهقه دواړه د تحريمے د موجباتو ځنے نه دى.بلكه په ممنوعاتو د تحريمه كي دى.نو ځكه دا دواړه د لمونځ هغه جزء فاسدوى.چا سره چې متصل واقع وى.اوچونكه د امام لمونځ د مقتدى د لمونځ دجواز اوفساد متضمن وى.نو ځكه د مقتدى د لمونځ هم دا جزء فاسديږى.او مسبوق چونكه د پاته لمونځ پوره كاوه لپاره د بناء محتاج دې.او په فاسد باندې بناء كول فاسد وى.ځكه په دے دواړو صورتونو كي د مسبوقينو لمونځ فاسديږى.او سلام او خروج عن المسجد دواړه د تحريمے د موجباتو ځنى دى.سلام خو ددے وجے موجب دتحريمے دې.چې نبى ﷺ فرمانيلى دى.«تحليلها التسليم»او خروج عن المسجد ځكه چې الله تعالى فرمانيلى دى. ﴿وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ﴾ نودا دواړه موجب دتحريمے دى.نو مفسد د صلاة نه دى.بلكه د لمونځ پوره كونكى دى.اوهركله چې د مام لمونځ پوره شو.څه جزء ئے فاسد نشو.نو مسبوق هم دخپل لمونځ بناء كولے شى.

| |
|---|
| **وَيَنْتَقِضُ وُضُوءُ الْإِمَامِ** او د امام اودس به ماتيږى **لِوُجُودِ الْقَهْقَهَةِ فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ** ځكه چې قهقه په حرمت صلاة كي واقع شوه. |

**حل اللغة:** ينتقض، انتقض انتقاضاً: ماتيدل

**الاختلاف في نقض الوضوء بالقهقة بعدالتشهد**⊛ ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلے دى.چې دتشهد د مقدار نه روسته د امام قهقه د درے واړه عالمانو رحمهم الله په نيز ناقض د اودس ده.② امام زفر رحمه الله فرمائى.چې په دے صورت كي ناقض نه ده.امام زفر رحمه الله دا قاعده بيان كړې ده.چې كومه قهقه د لمونځ راګرځول واجبوى.هغه ناقض د اودس ده.اوچې كومه قهقه د لمونځ د راګرځولو واجبونكے نه وى. نوهغه ناقض د اودس هم نه وى.

## په ركوع او سجده كي د بې اودسۍ راتلل

| |
|---|
| **وَمَنْ أَحْدَثَ** وكوم كس چې بے اودسه شو. **فِي رُكُوعِهِ أَوْ سُجُودِهِ** په خپله ركوع يا سجده كي ، **تَوَضَّأَ** نو هغه دے اودس اوكړى **وَبَنَى** او بناء دے اوكړى. **وَلَا يَعْتَدُّ بِالَّتِي أَحْدَثَ فِيهَا**، او نه دے شمارى هغه ركن په كوم كي چې ورته بے اودسي راغلے وى |

**حل اللغة:** ① احدث، يحدث احداثاً: پيدا كول، ايجاد كول،دكې بولې كول بې اودسه كيدل ② توضا، توضيا: اودس كول ③ لايعتد، اعتداعتداداً: شمير

**تشريح:- الشروع للمحدث من الركن الذى حدث فيه**⊛مسئله دا ده.چې څوك په ركوع يا د سجدے په حالت كنبے بے اودسه شى.كه هغه منفرد وى او كه امام يا مقتدى وى.نو ده ته پكار دى.چې ودس اوكړى.او بناء اوكړى.او په كوم ركن كي چې بے اودسه شوې وى.هغه دے نه شمارى.

| |
|---|
| **لِأَنَّ إِتْمَامَ الرُّكْنِ بِالْإِنْتِقَالِ** ځكه چې دركن پوره كول د هغے ركن نه بل ركن ته اوړيدو سره كيږى **وَمَعَ الْحَدَثِ لَا يَتَحَقَّقُ** او د حدث سره انتقال نه متحقق كيږى **فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِعَادَةِ**، ځكه د دے ركن راګرځول ضروري نه دى. |

**حل اللغى:** اتمام: پوره كول

**دليله**⊛دليل دا دې.چې يو ركن په هغه وخت كي مكمل كيږى.كله چې د هغے نه بل ركن ته انتقال اوشى.او دا





انتقال فرض دې.او د حدث سره انتقال نه متحقق كيږى.ځكه چې منتقل اليه (كوم اړخ ته چې منتقل كيږى)د لمونځ يو جزء دې.او د حدث راتللو نه روسته د لمونځ يو جزء ادا كول هم مفسد دى.نو ځكه ددے ركن راګرځول ضرورى دى.مثلا كه په ركوع كي بے اودسه شوې وو.نو اودس دے اوكړى.واوروسته دے راشى.او هم د ركوع نه دے پيل اوكړى.

**مايقتضيه ا لقياس في المسئلة**⊛صاحب د عنايه رحمه الله ليكلى دى.چې د قياس تقاضا خو داوه.چې څومره لمونځ ادا شوې وى.هغه واړه فاسد شو.خومونږ قياس د هغه حديث په وجه پريخودو.كوم چې د لمونځ د بناء په اړه كي راغلے دې.نو په مقتضى د قياس د دغه ركن ماتيدل او فاسديدل پاته شو.په كوم كي چې حدث لاحق شوې وى.

## په ركوع يا سجده كي د خليفه جوړ شوى كس د مونځ طريقه

| |
|---|
| **وَلَوْ كَانَ إِمَامًا** اوكه دا محدث امام وو **فَقَدَّمَ غَيْرَهُ** نو ده بل كس خليفه جوړ كړلو **دَامَ الْمُقَدَّمُ عَلَى الرُّكُوعِ**.نو خليفه به د ركوع په حالت باندې برابر پاتې كيږى. **لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْإِتْمَامُ بِالْإِسْتِدَامَةِ** ځكه چې خليفه لپاره د ركوع پوره كول په هميشه لپاره ساتلو سره ممكن دى. |

**حل اللغة:** ① فقدم،قدم تقديماً: وړاندې كول ② اتمام: پوره كول

**تشريح:- ما يفعل المستخلف في الركوع**⊛مسئله دا ده.چې دا محدث امام وو.څوك چې په ركوع كي بے اودسه شوى وى.بيا امام په تيټه تيټه بل كس خليفه جوړ كړلو.نو دے خليفه ته د سر نه د ركوع كاوه اړتيا نشته.بلكه د ركوع په مقدار به هم په دغه ركوع كي ايسارشي.

**دليله**⊛دليل دا دې.چې په كوم فعل باندې دوازم كو شى.په هے كي استدامت (ايساريدل) د سر نه د پيل كاوه حكم لرى.نو دلته هم د خليفه لپاره په استدامت سره پوره ركوع ادا كول ممكن دى.ځكه ونيلى شوى دى.چې دے به په ركوع كي د ركوع پا ندازه باندې پاتې كيږى.د سرنه د ركوع كاوه څه اړتيا نشته.

## په ركوع يا سجده كي د ركوع سجدې پاتې كيدو يادېدل

| |
|---|
| **وَلَوْ تَذَكَّرَ** او كه مصلى ته ورياده شوه **وَهُوَ رَاكِعٌ أَوْ سَاجِدٌ** په هغه حالت كي چې ركوع كونكے يا سجده كونكے وى **أَنَّ عَلَيْهِ سَجْدَةً** دا خبره چې په ده باندې سجده پاته ده. **فَانْحَطَّ مِنْ رُكُوعِهِ** نو هغه د ركوع نه د سجدے د قضاء كوول لپاره تيټ شو. **أَوْ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنْ سُجُودِهِ** و خپل سر ئې د سجدے نه اوچت كړل. **فَسَجَدَهَا** او سجده ئې اوكړله. **يُعِيدُ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ**[1] نو ركوع او سجدے اعاده به كوى **وَهَذَا بَيَانُ الْأَوْلَى** او دا بيان د افضليت دې. |

**حل اللغة:** ① تذكر، تذكراً: يادول ② راكع: ركوع كونكې ③ ساجد: سجده كونكې ④ فانحط، انحط انحطاطاً: ټيټيدل ⑤ رفع، رفع رفعاً (ف): اوچتول ⑥ يعيد، اعاد اعادة: واروسته كولا

**تشريح:- تذكرة السجدة اوالركوع فيهما**⊛صورت د مسئلے دا دې.چې مصلى ته په حالت د ركوع كي ورياد شو.چې په ده باندې سجده پاتې ده.يا د سجدے په حالت كي ورته ورياد شو.چې په ده باندې سجده پاته ده.برابره ده كه سجده د تلاوت وى يا سجده د لمانځه وى.نوكه ده ته په ركوع كنبے ورياد شوې وى.او هم په ركوع كي ددے د قضاء لپاره ټيټ شو.اوقضاء سجده ئې اوكړله.اوكه د سجدے په حالت كنبے وو.او قضاء سجده ورته ورياده شوه.او هغه ددے موجوده سجدے نه سر پورته كړلو.او قضاء سجده ئے اوكړله.نو په كومه

[1]) قال العلامة ابن الهمام بعد تفصيل المسئلة والاصح ما فى الكتاب للقاعدة التى قدمناها فى اول باب صفة الصلاة من ان الترتيب بين ما يتحد فى كل الصلاة من الاركان وهو القعدة وبين غيرها مطلقا شرط لا بين المتحد فى كل ركعة وهو المتعدد فى كل الصلاة وبين المتعدد فى كل ركعة الخ كذا فى فتح القدير (١\٣٤٢) وشرح الوقاية (١\١٦٢) وردالمحتار(١\٤٥٣) نقلا عن القول الراجح (١\٩٩)_

رکوع یا سجده کي ورته وریاد شوی وو.او قضاء سجده نې کړې وه.دهغه رکوع او سجدے اعاده به اوکړي.او دا اعاده کول غوره او مستحب دی.

**لِتَقَعَ أَفْعَالُ الصَّلَاةِ مُرَتَّبَةً بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ**،چې ترخومره کيدے شي.افعال په ترتيب سره ادا شي

**حل اللغة:** لتقع، وقع، وقوعا (ف): واقع کيدل

**دليله**﴿ ددے لپاره چي ترکومے پورې ممکن وی.افعال په ترتيب سره ادا شي.يعنی د موجوده رکوع نه د قضاء شوې سجدے ادا کول مقدم دی.نوخکه د هغے وړاندې کول غوره دی.

**وَإِنْ لَمْ يُعِدْ** او که ده د رکوع یا سجدے اعاده اونکړله **أَجْزَأَهُ** نو هم ده لپاره کافی ده **لأن الترتيب في أفعال الصلاة ليس بشرط** خکه چي ترتيب د لمونځ په افعالو کښے شرط نه دې.**وَلِأَنَّ الِانْتِقَالَ مَعَ الطَّهَارَةِ شَرْطٌ** او خکه چي په طهارت سره منتقل کيدل شرط دې **وَقَدْ وُجِدَ**. او هغه موجود شو

**حل اللغة:** وجد، وجد وجودنا (ض): موندل

**تشريح:-** که ده د رکوع او سجدے اعاده اونکړله .نو بیا هم ټيک ده.خکه چې په کومه رکوع او سجده کي ورته قضاء سجده وریاده شوې وی.هغه په حقيقت کښے خو شوې ده.اعاده صرف د ترتيب د وجے وه.خو چونکه د لمانځه په افعالو کي ترتيب شرط دې.نو خکه که په افعالو کي ترتيب موجود نشی.نو په لمونځ کي څه توپير نه راځي.

﴿**وجه عدم شرطية الترتيب في الافعال**﴾ په افعالو کي دترتيب د عدم شرطيت دليل دا دې.چي مسبوق خپل لمونځ د هغه ځائي نه پيل کوی.د کوم ځائي نهچي امام پريښولې (پريخودې) وی.بیا دامام سلام ګرځولو نه روسته د لمونځ اوله برخه کومهچي پاتې شوه هغه اداکوی.لکهچي مسبوق د لمونځ اخر په اول کي ادا کړلو.او اول د لمونځ ئے روستو ادا کړلو.نوکه ترتيب شرط وې.نو د مسبوق لپاره به د جماعت د عذر په وجه ددے پريښول جائز نه وو.

﴿**الدليل الثاني**﴾ دوهم دليل دا دې.چي په رکوع يا سده کښ ورته کومه قضاء سجده وریاده شي.نو ددے نه بل رکن ته په طهارت سره اوړيدل شرط دې.هرکلهچي دا سړې د رکوع نه نيغ سجدے ته لاړلو.و یا نې د سجدے نه سر راپورته کړلو.اود قضاء سجده نې اوکړله.نو د طهارت سره منتقل کيدل موجود شو.نو هغه رکوع يا سجدهچي په کومه کي ورته قضاء سجده وریاد شوې وی.ادا شوه.ددے نه سوا د بل څه اړتيا نشته.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ** او ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. **أَنَّهُ تَلْزَمُهُ إِعَادَةُ الرُّكُوعِ** چې په مصلی مذکور باندې د رکوع او سجدے اعاده لازم ده **لِأَنَّ الْقَوْمَةَ فَرْضٌ عِنْدَهُ** خکه چي د امام ابويوسف رحمه الله په نيز قومه فرض وی.

**حل اللغة:** يلزمه، لزم لزما (س): لازم کيدل

**تشريح:- مذهب ابي يوسف رحمه الله**﴿ دامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.که د رکوع نه ئې سر پورته کړلو. او نيغ سجدے ته لاړلو.نو په ده باندې د رکوع اعاده لازم ده.

﴿**دليل ابي يوسف رحمه الله**﴾ دليل دا دې.چي دامام ابويوسف رحمه الله په نيز قومه يعنی د رکوع نه سر پورته کول فرض دی.نو هرکلهچي ده د رکوع نه سرو پورته نکړلو.بلکه نيغ د رکوع نه سجدے ته لاړلو.نو ده فرض پريښولو .اوکلهچي فرض يعنی قومه پريښولې (پريخودې) شی.نو رکوع هم ادا نشوه.او هرکلهچي رکوع ادا نشوه.نوددے اعاده لازمی شوه.

## يوکس ته د امامت ورکولو په صورت کي داستخلاف بيان

**قَالَ وَمَنْ أَمَّ رَجُلًا وَاحِدًا** او که سړی امامت ورکولو.يو سړي ته. **فَأَحْدَثَ** بيا امام ئے اودسه شو. **وَخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ** او د جمات نه اووتلو. **فَالْمَأْمُومُ إِمَامٌ** نو مقتدی امام دې. **نَوَى أَوْ لَمْ يَنْوِ** برابره ده که اولنی امام د ده د خلافت نيت کړې يا نه وی



**حل اللغة:** ①أم، ام امامة (ن): امامت کول ②خرج، خرج خروجا (ن): وتل ③ماموم: مقتدی ④نوی، نوی نية (ض): نيت کول

**تشريح:- صيرورة الماموم الواحد خليفة**﴿صورت د مسئلے دا دې.چي يو سړې پل سړي ته امامت ورکولو.بيا امام ئے اودسه شو.او هغه د جمات نه بهر شو.نو مقتدی امام شو.برابره ده که اولنی امام دده دخلافت نيت کړې وی او که نه.خو په دے شرطچي هغه دامامت اهل وی.په عبارت کي يو احتمال دا هم شته.چي د ےمقتدی د خلافت کاوه نيت کړې وی او که نه.

**لِمَا فِيهِ مِنْ صِيَانَةِ الصَّلَاةِ**،خکه چي په دے کي د لمانځه ساتنه دې.

**حل اللغة:** صيانة: بچ کول

**تشريح:- دليله**﴿دليل دا دې.چي په دے صورت کي يعنی مقتدی امام متعين شي.د متقدی د لمونځ ساتنه دې.خکه که امام مقرر نشي.نود امامت ځائې به دامام نه خالی پاتې شی.او دامامت ځائې دامام نه خالی پاتې کيدل د مقتدی لمونځ فاسدوی.نوخکه موږ وايو.چې په ذکر شوی صورت کي مقتدی پخپله امام مقرريږی.

**وَتَعْيِينُ الْأَوَّلِ لِقَطْعِ الْمُزَاحَمَةِ** او د اولنی امام (څوك) متعين کول د مزاحمت د ختمولو لپاره وی. **وَلَا مُزَاحَمَةَ هَاهُنَا**، او دلته څه مزاحمت نشته **وَيُتِمُّ الْأَوَّلُ صَلَاتَهُ**.او امام اول دے خپل لمونځ پوره کړی **مُقْتَدِيًا بِالثَّانِي** د بل چا اقتداء دے اوکړی **كَمَا إِذَا اسْتَخْلَفَهُ حَقِيقَةً** لکه څنګهچي ئے دے په حقيقت کي خليفه جوړ کړې وی.

**تشريح:- السوال التقديري**﴿﴿وتعين الأول﴾ په دے سره د اعتراض ځواب دې.اعتراض دا دې.چي تعينن (متعين کول) بغير د تعيين) (متعين کاوه نه بغير) نشي متحقق کيدې.او دلته حالت دا دې.چي ئے اودسه امام مقتدی دامامت لپاره متعين کړې نه دې.نو مقتدی څنګه امام جوړيدے شي؟

﴿**الجواب**﴾ ځواب دا دې.چي د امام محدث څوك خليفه مقرر کول د مزاحمت د ختمولو لپاره وی.اوچونکه دلته څوك مزاحم نشته.نو خکه حکماً تعيين موجود شو.او هرکلهچي حکماً تعيين موجود شو.نوداسے شوه.لکهچي امام محدث دے خليفه مقرر کړې وی.اوس به دا امام محدث د خپل لمونځ په بل پسې اقتداء کوی.او پوره کوی به ئې.لکهچي ده دے په حقيقت کي خليفه مقرر کړې وو.نوده اقتداء به ئې کوله او لمونځ به ئې پوره کولو.

**وَلَوْ لَمْ يَكُنْ خَلْفَهُ** او که په امام محدث پسې شاه ته څوك نه وی. **إِلَّا الصَّبِيُّ أَوْ امْرَأَةٌ** سوا د ماشوم يا ښځے نه، **قِيلَ تَفْسُدُ صَلَاتُهُ** نو وئيلي شوی دی.چې د امام لمونځ به فاسد وی. **لِاسْتِخْلَافِ مَنْ** خکه چي هغه کس خليفه جوړ کړې شو. **لَا يَصْلُحُ لِلْإِمَامَةِ**، څوك چې د امامت قابل نه دې

**حل اللغة:** ① صبي جمع صبيان: ماشوم ① استخلاف: خليفه جوړول

**تشريح:- الاختلاف في فساد صلاة من كان غيرصالح للامامة**﴿او که په امام محدث پسې روستو نابالغه ماشوم يا د ښځے نه سوا بل څوك نه وو.نو په دے اړه کي د مشائخو رحمهم الله اختلاف دې.① دبعضو خيال دې.چي د امام لمونځ فاسد شو.خکهچي ده هغه کس خليفه جوړکړلو.چي هغه د امامت اهل نه دې.هرکلهچي ماشوم يا ښځه د امامت لپاره متعين شو.اګرچي حکماً دی.نو امام محدث په دوی پسې اقتداء کونکے دې.اوقاعده دا ده.چي کوم کس د داسے کس پسې اقتداء اوکړی.چې هغه د امامت اهل نه وی.نود هغه لمونځ فاسديږی.

**وَقِيلَ لَا تَفْسُدُ** او وئيلے شوی دی.چې د امام محدث لمونځ نه فاسديږی. **لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الِاسْتِخْلَافُ قَصْدًا** خکه چي قصد سره خليفه جوړول نه دی موجود شوې. **وَهُوَ لَا يَصْلُحُ لِلْإِمَامَةِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ** او که دے دامامت لائق وی.والله اعلم

**تشريح:-** اوبعضو مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی.چي د امام محدث لمونځ نه فاسديږی.خکهچې د لمونځ فاسد کيدل خو د مقتدی په خليفه جوړولو باندې موقوف دی.او دلته دا نه دی موجود شوې.خکهچي (استخلاف (خليفه جوړول) به يا حقيقةً وی اويا حکماً وی.اودلته په دواړو کي يو هم موجود نه دی.حقيقةً خو خکهچي د

امام محدث د اړخه په حقيقت كي خليفه جوړول نه دي موجود شوي.او حكماً ځكه نه دي.چي ماشوم يا ښځه د امامت صلاحيت نه لري.نو هر كله چي په دے دواړو كي د امامت صلاحيت نشته.نو حكماً خو خليفه نشي جوړيدي.نو چي نه په حقيقت كي استخلاف شته.او نه حكماً استخلاف شته.نو د امام محدث لمونځ به هم نه فاسديږي.ځكه چي د امام د لمونځ فساد د مقتدى په خليفه جوړولو باندي مبنى وي.والله اعلم بالصواب

## بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّلَاةَ وَمَا يُكْرَهُ فِيهَا

ژباړه:- (دا) باب دهغه څيزونو په بيان كي دي.كوم چي لمونځ فاسدوي.او كوم چي په لمانځه كي مكروه دي.

تشريح:- الربط بما قبله۞په تير شوي باب كي د هغه عوارضو ذكر اوشو.كوم چي په لمانځه كي غير اختياري طور پيښيدونكي وو.او په دے باب كي د هغه عوارضو بيان دي.كوم چي په لمانځه كي په اختيار سره واقع كيږي.حاصل دا چي په تير شوي باب كي دغير اختياري عوارضو بيان وو.او په دے باب كي د اختياري حوادثو بيان دي.

### په مانځه كي خبرو كولو سره د مونځ د فساد حكم

وَمَنْ تَكَلَّمَ فِي صَلَاتِهِ او كوم كس چي په خپل لمونځ كي خبرے اوكړلي. عَامِدًا أَوْ سَاهِيًا كه په قصد وي.او كه په سهو بَطَلَتْ صَلَاتُهُ نو دده مونځ باطل شو.

حل اللغة:① تكلم، تكلم تكلماً: خبري كول ② عامداً: په قصد سره ③ ساهياً: په هيره سره

تشريح:- الفرق بين السهو والنسيان والخطا۞سهو وائي.د قوت مدركه نه د صورت زائله كيدل او نسيان د قوت حافظه نه د صورت زائله كيدل.ترد ے چي د كس جديد محتاج شي.او خطاء دا ده.چي صورت خو پاته وي.خو چي كله د يو شي د تكلم اراده اوكړي.نو بغير د ارادے نه بل شي په ژبه باندي راشي.په دے ځائي كي د سهو نه عامه معنى مراد ده.كوم چي درئي واړه قسمونو ته ګډ ده.اوچونكه په سهو او نسيان كي د شرعي حكم په اعتبار سره څه توپير نشته.نو ځكه مصنف رحمه الله هم د دے دواړو په مينځ كي څه توپير اونكړلو.

الاختلاف في فساد الصلاة بالكلام ۞ ①مسئله :كه يو كس په خپل لمونځ كښ په قصد يا په سهوه كلام اوكړلو.نو دده لمونځ باطل شو.كلام د داسے حروفو آواز ته وائي.چي مفيد د معنى وي.كله يو حرف وي.لكه ،ق، يعني بچ شه ،او كه يو حرف بے معنى وي.نو كلام نه دي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الْخَطَإِ وَالنِّسْيَانِ،په خطا او نسيان كي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دي. وَمَفْزَعُهُ الْحَدِيثُ الْمَعْرُوفُ.(۱)او د امام شافعي رحمه الله ملجا حديث معروف دي.

تشريح:- او د امام شافعي رحمه الله په نيز د خطا او نسيان په صورت كي لمونځ نه فاسديږي.په دے شرط چي اوږد نه وي.ځكه چي اوږد كار دخطاء او نسيان سره منافى دي.

دليله۞د امام شافعي رحمه الله مستدل حديث معروف دي.﴿رفع عن أمتى الخطاء والنسيان﴾يعني زما د امت نه خطاء او نسيان پورته كړے شوي.

الوجهان للاستدلال۞ ①او وجه د استدلال دا ده.چي حكم په دوي (دوه) قسمه وي.دنيئوي (د لمونځ فاسدونكے) او اخروي (ګناهګاريدل)نو لكه چي نبى ﷺ اوفرمائيل.چي زما د امت نه د خطاء او نسيان دنيوي

---

۱) قال الزيلعى (نصب الراية ،۲/۶۵) يشير الى قوله ﷺ رفع عن امتى الخطا والنسيان،، وهذا لا يوجد بهذا اللفظ وان كان الفقهاء كلهم لايذكرونه الا بهذا اللفظ واقرب ما وجدناه بلفظ ،،رفع الله عن هذه الامة ثلاثا) ثم اورد احاديثا بمعناه منها حديث ابن [illegible] عنهما ،،ان الله وضع عن امتى الخطا والنسيان وما استكرهوا عليه،، رواه ابن ماجه فى الطلاق باب ۱۶ رقم [illegible] حبان انظرموراد الظمان الى زوائد ابن حبان (ص،۳۶۰) رقم الحديث ،۱۴۹۸)_



او اخروي دواړه حكمونه پورته شوي دي.يعني په دے دواړو كښے نه څه شي فاسديږي.او نه په اخرت كي څه ګناه شته.②صاحب دعنايه ليكلي دي.چي وجه د استدلال دا ده.چي ددے دواړه حقيقت خو غير مرفوع دي.ځكه چي دا دواړه په خلګو كي موجود دي.نو ددے حكم يعني فساد راوستل به مرفوع وي.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دي. قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چي نبى ﷺ فرمائيلي دي. {إِنَّ صَلَاتَنَا هَذِهِ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ،دا مونځ چي په دے كي د خلګو د خبرو څه ګنجائش نشته. وَإِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ وَالتَّهْلِيلُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ}(۱)او دا خو صرف تسبيح ،تهليل او قرات د قرآن دي.

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ۞زموږ دليل د معاويه بن الحكم اسلمي رضي الله عنه حديث دي.پوره حديث داسے دي.﴿قال صليت خلف رسول الله ﷺ فعطش بعض القوم فقلت يرحكم الله فرمانى القوم بأبصارهم فقلت واثكل اماه مالى أراكم تنظرون إلى شزرا فضربوا بايديهم على أفخاذهم فعلمت أنهم يسكتوني فلما فرغ النبي ﷺ دعانى فوالله ما رأيت معلماً أحسن تعليما منه كما كهرني ولا زجرني ولكن قال إن صلاتنا هذه لايصلح فيها شئ من كلام الناس وإنما هى التسبيح والتهليل وقراءة القرآن﴾يعني معاويه بن حكم رضي الله عنه فرمايي.چي ما په رسول الله ﷺ پسے لمونځ كولو.نو يو كس انتوشے اوكړلو.ما ورته ﴿يرحمك الله﴾ اوويل.نو خلګو ماته ته خپل نظرونه ماته په تيز كړلو.نو ما اووئي.ددوي مياندے دے بوري شي. ما څه چم (چل) كړي دي.چي زه تاسو ته ګورم.چي په برندو سترګو ګوري.نو هغوي خپل ورونان په خپلو لاسونو اووهل،نو زه پوهه شوم.چي دوي ماچوپ كول غواړي.چي كله نبى ﷺ د لمانځه نه فارغ شو.نو زه ئے راؤ غوښتلم.په الله قسم چي ما د نبى ﷺ نه ښه معلم نه دے ليدلي.دوي ماته نۀ په غصه شو.اونه ئي زه اورټلم.بلكه وے فرمائيل.چي زموږ په دے لمونځ كي د خلګو د خبرو نه دڅه شي ګنجائش نشته.دا خو صرف تسبيح ،تهليل او قرات د قرآن دي.

وجه الاستدلال۞ددے حديث نه معلومه شوه.چي په لمونځ كي د كلام عدم وجود د لمونځ حق دي.لكه څنګه چي د طهار وجود د لمونځ حق دي.نو لكۀ څنګه چي دعدم طهارت سره لمونځ جائز نه دي.دغه ډول د كلام د وجود سره هم لمونځ جائز نه دي.

وَمَا رَوَاهُ او حديث د كوم چي امام شافعي رحمه الله روايت كړي دي. مَحْمُولٌ عَلَى رَفْعِ الْإِثْمِ هغه دګناه لرے كيدو باندي محمول دي.

حل اللغة:① رفع: اوچتول، لرې كول ② اثم: ګناه

تشريح:- الجواب من حديث الشافعي رحمه الله ۞دامام شافعي رحمه الله د پيش كړي حديث نه ځواب دا دي.چي حديث ﴿رفع عن أمتى الخطأ والنسيان﴾د ګناه په پورته كيدو باندي محمول دي.حاصل دا دے .چي په حديث كښے د آخرت حكم يعني ګناه نه واقع كيدل په اجماع سره مراد ده.اوس كه دنيوي حكم يعني مفسد كيدل ترے هم مراد واخستے شي.نو عموم مشترك لازميږي.حالانكه عموم مشترك جائز نه دي.

توضيح قياس الشافعي رحمه الله ۞په خلاف د ،،السلام،، نه،په دے سره دامام شافعي رحمه الله د قياس نه ځواب دي.د قياس حاصل دا دي.چي سلام د كلام په څير دي.ځكه چي په دے دواړو كي هر يو قاطع صلاة دي.او د سلام په حق كي عمد او نسيان په مينځ كي څه تفصيل شته.يعني په سهو سلام فاسدونكے نه دي.او په قصد سره فاسدونكے دي.نو هم دا تفصيل بايد ده چي كلام كي هم وي.يعني په سوه كلام مفسد نه دي.او عمداً كلام به مفسد وي.

---

۲) حديث معاوية ابن الحكم السلمى رضي الله عنه رواه مسلم فى المساجد ومواضع الصلاة رقم ۳۳ واحمد فى المسند (۵/۴۴۷، ۴۴۸) والبيهقى فى السنن الكبرى (۲/۳۵۵) رقم الحديث (۳۳۵۲)_

بِخِلَافِ السَّلَامِ سَاهِيًا په خلاف د سهو د سلام ، لِأَنَّهُ مِنَ الْأَذْكَارِ خکه چې هغه د لمونځ په اذکارو کې دې ذِكْرًا فِي حَالَةِ النِّسْيَانِ نوسلام په حالت د نسیان ذکر شمارلے شی. وَكَلَامًا فِي حَالَةِ التَّعَمُّدِ او په حالت د عمد کې کلام ، لِمَا فِيهِ مِنْ كَافِ الْخِطَابِ خکه چې په دے کښې ،،کاف،، دخطاب دې.

**تشريح:- الجواب عن قياس الشافعي** ﴿ دځواب حاصل دا دې چې سلام من کل وجه د کلام په شان نه دې. خکه چې سلام خو د لمونځ په اذکارو کې دې. ترد ےچې په ،،التحیات،، کې لوستلے شی. ﴿السلام علیك أیها النبی ...﴾ او سلام د الله تعالی په اسماء حسنی کې دې. البته ،،سلام،، د وجے د کلام حکم اختسے دې. نو لندیز دا شوه. چې ﴿السلام علیك﴾ من وجه ذکر دې. او من وجه کلام دې. نو موږ په دواړو وجوهو باندې عمل اوکړلو. او قول مو اوکړلو. که سلام په هیره وی. نودا په د اذکارو سره لاحق کیږی. اولمونځ به پرے نه فاسدیږی. اوکه په قصد وی. نو د کلام سره به لاحق کیږی. او لمونځ به پرے فاسدیږی.

## په مونځ کې د آه او ژړا حکم

فَإِنْ أَنَّ فِيهَا أَوْ تَأَوَّهَ او که په لمونځ کې چا آه اوکړو. أَوْ بَكَى یا ئې اوژړل فَارْتَفَعَ بُكَاؤُهُ نو دده ژړا اوچته شوه. فَإِنْ كَانَ مِنْ ذِكْرِ الْجَنَّةِ أَوِ النَّارِ نو که دا د جنت یا دوزخ د ذکر د وجے وی. لَمْ يَقْطَعْهَا نو لمونځ نه ماتیږی

**تشريح:- توضيح البكاء وغيره في الصلاة** ﴿ ،،انین،، په درد کښې د اخته کس اواز دې. څه ته چې په اردو کې ،،کراهنا،، (او په پښتو کې زویرګی) وائی. او بعضے حضراتو وئیلی دی. چې ،،انین،، آه،، وئیل دی. او د ژړا پورته کیدل دا دی. چې د. نه حروف پیدا شی.

**صورتی الفساد وعدمه** ﴿ مسئله دا ده. چې په لمانځه کې زویرګی کول یا ،،اوه،، وئیل، یا ژړل په دے طریقه وی. چې د هغے نه حروف پیدا شی. نو په دے کې به هر یو یا د جنت یا د دوزخ د ذکر د وجے وی. یا په د درد یا د څه بل مصیبت د وجے وی. نو که اول وی. یعنی دجنت یا د دوزخ د ذکر د وجے ئې ژړلے وی یا ئې ،،اوه،، کړې وی. نولمونځ نه فاسدیږی.

لِأَنَّهُ يَدُلُّ عَلَى زِيَادَةِ الْخُشُوعِ خکه چې دا د زیادت خشوع دلیل دې

**تشريح:- الوجه الاول لعدم فساد الصلاة** ﴿ خکه چې دا د خشوع په زیادت دلالت کوی. او چونکه په لمانځه کې هم خشوع مطلوب ده. نو د خشوع زیادت د څنګه د لمونځ فاسدونکے جوړیدے شی؟

**الوجه الثانی لعدم فساد الصلاة** ﴿ دوهم دلیل دا دې چې دا کس صراحةً ﴿اللهم إنی أسالك الجنة وأعوذبك من النار﴾ اووائی. نولمونځ نه فاسدیږی. نو د کنایه په صورت کې خو به په طریق اولی سره نه فاسدیږی.

وَإِنْ كَانَ مِنْ وَجَعٍ أَوْ مُصِيبَةٍ او که د درد یا د مصیبت د وجے وی قَطَعَهَا[1] نو لمونځ ماتیږی. لِأَنَّ فِيهِ إِظْهَارَ الْجَزَعِ وَالتَّأَسُّفِ خکه چې په دے کښې د جزع او افسوس اظهار دې. فَكَانَ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ نو د کلام الناس څخه شو

**تشريح:- الوجه الاول لفساد الصلاة** ﴿ او که په مانځه کښې دا خبرے د درد یا مصیبت د وجے پیدا شوی وی. نو لمونځ فاسدیږی. همدا قول د امام مالك او امام احمد رحمهما الله دې. خکه چې په دے کې د جزع او تاسف اظهار دې. نودا په کلام الناس کښې د دے وجے داخل شو. او کلام الناس د لمونځ فاسدونکے دې. نو دا هم د لمونځ فاسدونکی دی.

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين كذا فی ردالمحتار(١\٤٥٧) والكفاية (١\٣٤٥) والعناية (١\٣٤٥) وتبيين الحقائق (١\١٥٥) والهندية (١\١٠٠) ومراقى الفلاح (ص،٤٦١) نقلا عن القول الراجح (١\١٠٠)_



**الوجه الثانی لفساد الصلاة** ﴿ دویمه خبره دا ده. که دے سړی د درد او مصیبت اظهار په صراحت سره کولو. مثلاً ﴿إنی مصاب﴾ اے خدایا زما کومك اوکړه. زه مصیبت زده یم. نو د دے لمونځ به ماتیدلو. نودغه ډول به دلالة او کنایة د تاسف په اظهار لمونځ فاسدیږی.

د دواړو صورتونو لپاره دا اثر هم مستدل دې. ﴿سئلت عائشة رضی الله عنها عن الأنین فی الصلاة فقالت إن كان من خشیة الله لا تفسد صلاته وإن كان من الألم تفسد وقال ﷺ طوبی للبكائین فی الصلاة﴾ یعنی د عائشے رضی الله عنها نه په لمانځه کښې د زویرګی او آه او ژړا په اړه کښے پوښتنه اوشوه. نو هغوی ورته اوفرمائیل. که دا د الله تعالی د ویرے د وجے وی. نولمونځ نه فاسدیږی. اوکه د درد او الم د وجے وی. نولمونځ فاسدیږی. او نبی ﷺ فرمائیلی دی. په لمانځه کښې ژړا کونکو لپاره زیرے دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ او ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّ قَوْلَهُ آهٍ لَا يُفْسِدُ فِي الْحَالَيْنِ که ،،آه،، وئیل په دواړو حالتونو کې مفسد نه دې. وَأَوْهِ يُفْسِدُ او ،،اوه،، مفسد دې.

**مذهب ابی یوسف رحمه الله في المسئلة** ﴿ د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی. چې ،،اه (د همزه په فتح او هاء په جزم سره) وئیل په دواړو حالتونو کښے مفسد د صلاة نه دی. که دجنت یا د دوزخ د ذکر د وجے وی اوکه د مصیبت د وجے وی. او ،،اوه،، وئیل مفسد دی.

وَقِيلَ او وئیلی شوی دی. الْأَصْلُ عِنْدَهُ چې د ابویوسف رحمه الله په نیز اصل دا دې. أَنَّ الْكَلِمَةَ إِذَا اشْتَمَلَتْ عَلَى حَرْفَيْنِ چې کلمه کله په دوو حرفونو مشتمله وی. وَهُمَا زَائِدَتَانِ او هغه دواړه زیاتی وی. أَوْ أَحَدُهُمَا یا په هغے دواړو کې یو زیاتی وی. لَا تُفْسِدُ، نو لمونځ نه فاسدیږی وَإِنْ كَانَتَا أَصْلِيَّتَيْنِ او که دواړه اصلی وی تُفْسِدُ نو لمونځ فاسدیږی

**تشريح:- الاصل عندابی یوسف في فساد الصلاة بالكلام** ﴿ بعضے حضراتو فرمائیلی دی. چې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز ضابطه دا ده. چې کله کلمه په دوو حرفونو مشتمله وی. او هغه دواړه حروف په حروف زائدو کښې وی. یا په هغے کښے یو دحروف زائدو څخه وی. نونو لمونځ نه فاسدیږی. اوکه دواړه حروف اصلیه وی. نو لمونځ فاسدیږی. د دے وجه دا ده. که دعربو د کلام بنا (بنیاد) په درے حرفونو دې. د یو حرف اړتیا خو د دے وجے پیښیږی چې د دے نه ابتداء کیږی. او د دوهم د دے وجے چې په هغے باندې وقف کولے شی. او دریم په دے دواړو کې د فصل لپاره وی. نوحرف واحد اقل دجمله دې. نو په دے باندې د کلمه یا د کلام د لفظ اطلاق نه کیږی. اودوې (دوه) حرفونه که په دے کې یو زیاتی وی. نوچې حرف اصلی ته نظر اوکړې شی. نود دے بناء هم په یو حرف باندې پاتې شوه. او که دوې (دوه) حرفو اصلی وی. نو په دریو حروفو کې اکثر موجود شو. اواکثر قائم مقام د کل وی. نو په دوو اصلی حروفو باندې مشتمله کلمه باندې تلفظ کول لمونځ فاسدوی.

وَحُرُوفُ الزَّوَائِدِ جَمَعُوهَا فِي قَوْلِهِمْ، الْيَوْمَ تَنْسَاهُ، ..او حروف زائده اهل لغت په خپل قول ﴿الیوم تنساه﴾ کښے جمع کړی دی

**تشريح:- حروف الزوائدعند اهل اللغة** ﴿ فاضل مصنف رحمه الله فرمائی. چې حروف زوائد اهل لغت په خپل دے قول ﴿الیوم تنساه﴾ کښے جمع کړی دی.

**واقعة تعلم حروف الزائدة** ﴿ شیخ رضی په حروف زائدو باندې یوه واقعه نقل کړې ده. واقعه دا ده. یو څل یو شاګرد خپل استاذ نه د حروف زوائدو په اړه کې پوښتنه اوکړه. استاذ صاحب ورته ځواب ورکړلو. ﴿الیوم تنساه﴾ شاګرد دا اوګنړلو. چې استاذ په تیر شوی سبق کښې کلام اړخ ته اشاره اوکړله. حالانه وړاندې نه ما سوال کړې دې. اونه استاذ څه ځواب راکړې دې. نوځکه ئے دستی عرض اوکړلو. ﴿ما سالت قط﴾ چې ما خو ستاسو نه بیخی سوال نه دے کړې. بیا استاذ ځواب ورکړلو. ﴿الیوم تنساه﴾ شاګرد دا اوګنړلو. چې د الفاظو تلفظ کوی. اوصرف د دے معانی مراد اخلی. یعنی ګنړخ دا اوګنړله. چې استاذ صاحب زما د حافظے کمزوری

عذر جوړوی.او خواب روستو کوی.که زه تاته اوښایم.نو نن به نې هیر کړې.نوځکه ده په دے خل دستی اوونیل. «والله لانساه» کلهچې استاذ صاحب اولیدل.چې د شاګرد لپاره اشاره کافی نه ده.نوبیا نې ورته تنبیه ورکړله.او وے فرمائیل. «یا احمق اجیبك مرتین»

وَهٰذَا لَا يَقْوَىٰ او دا اصل قوی نه دې. لِأَنَّ كَلَامَ النَّاسِ فِي مُتَفَاهَمِ الْعُرْفِ يَتْبَعُ ځکهچې کلام الناس کیدل د عرف د اصطلاح تابع وی. وُجُودَ حُرُوفِ الْهِجَاءِ د حروف هجاء په موجودوالی وَإِفْهَامَ الْمَعْنَىٰ، او د معنی په پوهیدلو سره وَيَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ فِي حُرُوفٍ كُلُّهَا زَوَائِدُ او دا متحقق کیږی په داسے حروفو کې چې هغه واړه زیاتی وی.

تشریح:- **تضعیف قاعدة ابی یوسف رحمه الله** ◉ «وهذا لا یقوی الخ» په دے کې فرمائی.کوم اصول چې امام ابویوسف رحمه الله بیان کړی دی.هغه قوی نه دی.ځکهچې مفسد د صلاة کلام الناس دې.او په عام عرف کې د کلام الناس د دوو خبرو تابع دې.اول داچې حروف هجاء موجود شی.تردے که د مصلی په آواز کې هلو حروف نه وی.نو په اتفاق سره مفسد نه دې. دوهم داچې حروف هجاء مفید دمعنی وی.تردے که حروف هجاء مفید د معنی نه وی.نود لمانځه فاسدونکے به نه وی.

**تضعیف قول ابی یوسف رحمه الله في ضوء المثال** ◉ اودا خبره هم منلے شوې ده.چې کلام په هغه وخت کې متحقق کیږی.کلهچې د هغے واړه حروف زائده وی.مثلاً چا اوونیل.چې «انتم الیوم سالتمونیها» په دے جمله کې د مبتداء او خبر ترکیب دې.او ددے کلام واړه حروف زائده دی.ددے باوجود مفسد دصلاة دې.نو معلومه شوه.چې مطلقاً کلام مفسد د صلاة دې.که په حروف زائده مشتمل وی اوکه په حروف اصلیه باندې.

**توضیح مرام ابی یوسف رحمه الله** ◉ خوصاحب د نهایه رحمه الله په ځواب کې فرمائیلی دی.چې دامام ابویوسف رحمه الله کلام په دوو حروفو کې دې.یعنی که کلام په دوو زیاتی حروفو باندې مشتمل وی.یا په حروف اصلیه باندې ،او که د دوو حروفو نه په زیاتو باندې مشتمل وی.نواګرچې هغه واړه حروف زائده وی.نو بیا هم د ابویوسف رحمه الله قول د طرفینو رحمهما الله دقول په خیر دې.یعنی لمونځ پرے فاسدیږی.

## په مانځه کې د ټوخې وغیره حکم

وَإِنْ تَنَحْنَحَ بِغَيْرِ عُذْرٍ او که مصلی غاړه تازه کړله.بغیر د عذر نه بِأَنْ لَمْ يَكُنْ مَدْفُوعًا إِلَيْهِ په داسے شان چې مدفوع الیه نه وو. وَحَصَلَ بِهِ الْحُرُوفُ او ددے نه حروف پیدا شو. يَنْبَغِي أَنْ يُفْسِدَ عِنْدَهُمَا نو مناسب دا دی.چې د طرفینو رحمهما الله په نیز فاسد شو. وَإِنْ كَانَ بِعُذْرٍ وتنحنح که د عذر د وجے وی. فَهُوَ عَفْوٌ نو دا معاف دی. كَالْعُطَاسِ وَالْجُشَاءِ لکه انتوشے او آسویلے، إِذَا حَصَلَ بِهِ حُرُوفٌ کلهچې ددے نه حروف پیدا شی.

حل اللغة: ① تنحنح، تنحنحا: په کړس کړس ② حصل، حصل حصولاً (ن): حاصلول ③ عطاس، انتروشې ④ جشاء: اډرکی

تشریح:- **التنحنح في الصلاة وصورتاه** ◉ مسئله دا ده که مصلی تنحنح اوکړلو.یعنی غاړه نې تازه کړله.او ددے په وجه حروف هم پیدا شو.مثلا اح (بالفتح یا باضم) نې اوکړلو.نو ددے دوې (دوه) صورتونه دی.یا به د عذر د وجے وی یا بغیر د عذر نه.که بغیر د عذر نه وی.یعنی اضطراری نه وی.بلکه اختیاری وی.نو د طرفینو رحمهما الله په نیز لمونځ فاسدیدل پکار دی.او که د عذر د وجے وی.نو دا معاف دی.یعنی لمونځ نه فاسدیږی.لکه انتوشے او آسویلے باندې چې لمونځ نه فاسدیږی.اګرچې ددے نه حروف هجاء ښکار شی.

## په مانځه کې د انتوشې جواب ورکول

وَمَنْ عَطَسَ او که چا ته انتوشے ورشی فَقَالَ لَهُ آخَرُ يَرْحَمُكَ اللهُ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ هغه ته بل کس چې لمونځ کوی.اوونیل، «یرحمك الله» فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو دهغه لمونځ فاسد شو. لِأَنَّهُ يَجْرِي فِي مُخَاطَبَاتِ النَّاسِ ځکهچې دا د خلګو په مخطباتو کې جاری دې فَكَانَ مِنْ كَلَامِهِمْ، نو دا د خلګ ود کلام ځنې شو

حل اللغة: ① عطس، عطاسا (ن،ض): انتروشی کول ② فسدت، فسد فساداً (ن): فاسد کیدل ③ یجری، جری جریا (ض):



جاری کیدل

تشریح:- **فساد الصلاة بیرحمک الله** ◉ مسئله دا ده.چې یوکس ته انتوشۍ ورغلو.نو بل کس ورته کوم چې لمونځ کولو «یرحمك الله» اوئیل.نو د دغه قائل لمونځ فاسد شو.ځکهچې «یرحمك الله» کې کاف د خطاب دې.او په خلګو کې دا وینا جاری ده.نو ځکه دا د کلام الناس د قبیلے ځنے شو.او کلام الناس مفسد د لمانځه دې.نودا هم مفسد د صلاة شو.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ الْعَاطِسُ أَوِ السَّامِعُ الْحَمْدُ لِلّٰهِ په خلاف ددے چې کلهچې انتوشے کونکی مصلی یا اوریدونکی مصلی اوونیل. «الحمد الله» عَلَىٰ مَا قَالُوا په دے بناء چې مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی لِأَنَّهُ لَمْ يَتَعَارَفْ جَوَابًا ځکهچې د «الحمد لله» ځواب ورکول متعارف نه دې.

حل اللغة: سامع: اوریدونکې

تشریح:- **عدم فساد الصلاة بالحمد لله** ◉ ددے په خلاف که انتوشے کونکے مصلی یا اوریدونکے مصلی «الحمدلله» اوئیل،نو د مشائخو رحمهم الله د قول مطابق لمونځ نه فاسدیږی.ځکهچې «الحمد لله» وئیل په عرف کې خواب نشی شمارلې.بلکه دا ذکر الله دې.او ذکر الله سره لمونځ نه فاسدیږی.نو ځکه وئیلی شوی دی.چې «الحمد لله» وئیلو سره لمونځ نه فاسدیږی.

**روایة الفساد بالحمد لله** ◉ صاحب دعنایه رحمه الله دمحیط په حواله سره لیکلی دی.چې دامام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دا دې.چې د انتوشی کونکے دے په خپل زړه کې «الحمد لله» وائی.او خپلے ژبې ته دے حرکت نه ورکوی.که ده خپلے ژبې ته حرکت ورکړلو.نو دده لمونځ فاسد شو.

## دامام نه سوا بل چاته لقمه (فتح) ورکول

وَإِنِ اسْتَفْتَحَ او که چا لقمه اوغوښتله فَفَتَحَ عَلَيْهِ فِي صَلَاتِهِ و مصلی په خپل لمونځ کې لقمه ورکړله تَفْسُدُ نو دده لمونځ فاسدیږی وَمَعْنَاهُ ددے قول معنی دا ده. أَنْ يَفْتَحَ الْمُصَلِّي عَلَىٰ غَيْرِ إِمَامِهِ چې مصلی د خپل امام نه سوا بل چاته لقمه ورکړله لِأَنَّهُ تَعْلِيمٌ وَتَعَلُّمٌ ځکهچې دا خودل او زده کول دی فَكَانَ مِنْ جِنْسِ كَلَامِ النَّاسِ نوځکه دا په کلام الناس کښے شمارلی شی

حل اللغة: ① ففتح، فتح فتحاً (ف): کولاوول نوړنی ورکول ② تفسد، فسد فساداً (ن): فاسد کیدل ③ تعلیم: خودنه ④ تعلم: زده کړه

تشریح:- **الصورالأربع في الإستفتاح** ◉ استفتاح لقمه طلبول او کومك غوښتل،الله تعالی فرمائی.«یستفتحون» دې «یستفرون» د عقل په اعتبار سره د «استفتاح» څلور قسمونه دی.① ځکهچې لقمه اخستونکے او لقمه ورکونکے یا خو به دواړه په لمونځ کې نه وی ② اویا به دواړه په لمانځه کې وی. ③ یا به مستفتح (لقمه اخستونکے) په لمانځه کې وی او فاتح (لقمه ورکونکے) به نه وی. ④ یا به ددے په عکس وی.یعنی فاتح (لقمه ورکونے به په لمانځه کې وی.او مستفتح (لقمه اسختونکے) به په لمانځه کې نه وی.

**حکم الصور الاربع** ◉ اولنے صورت یعنی چې دواړه په لمانځه کې نه وی.نو زمونږد بحث نه خارج دې.او دوهم قسم یعنی چې دواړه په لمانځه کې وی.نوددے دوې (دوه) صورتونه دی.یا به د دواړو لمونځ یو وی.په دے طریقه چې مستفتح یعنی لقمه اخستونکے امام وی.او فاتح یعنی لقمه ورکونکے به مقتدی وی.او یا به د دواړو لمونځ یو نه وی.اولنے صورت به په وړاندو کرښو کې ذکر کړو.او په دوهم صورت کې یعنی چې د دواړو لمونځ متحد نه وی.نو په دے کې د هر یو موخ فاسدیږی.د مستفتح هم او د فاتح هم،ځکهچې دا تعلیم او تعلم دې.یعنی فاتح تعلیم ورکړلو.اومستفتح تعلم اوکړلو.یعنی زده نې کړل.نو ددے تعلیم او تعلم د وجے دا د کلام الناس ځنے شو.او کلام الناس مفسد د صلاة دې.نو ځکه دا دواړه مفسد د صلاة دی.

لَمْ يُشْتَرَطِ التَّكْرَارُ فِي الْأَصْلِ بیا امام محمد رحمه الله په مسبوط کښ د تکرار شرط لګولے دې

**تشریح:- روایة محمد رحمه الله في المبسوط** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چې امام محمد رحمه الله په مبسوط کي لیکلی دی.چې که لقمه ور کاوه کي تکرار بیا موجود شو.نو دده لمونځ فاسدیږی.اوکه تکرار نه وی.نو نه فاسدیږی.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ** ځکه چې دا فعل د لمونځ په اعمالو کښې نه دي. **فَيُعْفَى الْقَلِيلُ مِنْهُ**،نو ځکه ددے کم معاف دي |

**حل اللغة:** فیعفی، عفا عفواً (ن): معاف کول، پریښول

**تشریح:- دلیله** او دلیل ئې دا ذکر کړې دې.چې لقمه ورکول یو عمل دې.او دا د لمونځ په اعمالو کښې نه دې.اوکه منافی د لمونځ وی.که عمل کثیر وو.نومفسد د صلاة دې.اوکه قلیل وی.نو مفسد د صلاة نه دې.نو یوځل لقمه ورکول عمل قلیل دې.او ددے نه زیات عمل کثیر دې.ددے وجے امام محمد رحمه الله فرمائی.که په لقمه ور کاوه کښې تکرار موجود شو.نولمونځ به فاسد وی ګنی نه به وی.

| |
|---|
| **وَلَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ** او په جامع صغیر کي دا شرط نشته **لِأَنَّ الْكَلَامَ بِنَفْسِهِ قَاطِعٌ** ځکه چې کلام خو په خپله مفسد د صلاة دي **وَإِنْ قَلَّ** اګرچې کم وی. |

**تشریح:- روایة محمد رحمه الله في الجامع الصغیر** خو په جامع صغیر کښے دا شرط نشته.ځکه چې لقمه ورکول کلام کول دی.او کلام په خپله د لمونځ ماتونکے دې.اګرچې قلیل وی.حاصل داچې د لقمه ورکول ئې په مبسوط کي فعل شمارلے دې.اوپه جامع صغیر کي ئې قول اوکلام شمارلے دې.او فعل کثیر مفسد د صلاة دې.قلیل نه دې.اوکلام قلیل هم مفسد دې.صاحب د هدایه رحمه الله اګرچې یو ته هم ترجیح نه ده ورکړې.خو بعضے فقهاؤ د جامع صغیر روایت اصح ګرځولې دې.

### دمقتدی خپل امام ته فتح ورکول

| |
|---|
| **وَإِنْ فَتَحَ عَلَى إِمَامِهِ** اوکه مقتدی خپل امام ته فتح ورکړله **لَمْ يَكُنْ كَلَامًا مُفْسِدًا** نو دا کلام فاسدونکې نه دي **اسْتِحْسَانًا** (اودا حکم) استحسانی دې |

**تشریح:- عدم فساد الصلاة بالفتح علی امامه** ددے عبارت اولنۍ صورت د کوم چې په وړاندینۍ مسئله کي وعده کړې شوې وه.د هغے بیان دې.یعنی که مستفتح او فاتح دواړو لمونځ یو وی.په داسے طریقه چې مستفتح امام و.او فاتح مقتدی وی.نودا استحساناً کلام نه دې.

**دلیل الاستحسان** دلیل د استحسان هغه اثر دې.کوم چې روایت کړې شوې دې.«أن رسول الله ﷺ قرأ في الصلاة سورة المومنين فترك منها كلمة فلما فرغ منها قال ﷺ ألم يكن فيكم أبي بن كعب فقال بلى يا رسول الله ﷺ فقال ﷺ هلا فتحت قال ظننت أنها نسخت فقال ﷺ لو نسخت لأنبأتكم» یعنی رسول الله ﷺ په لمانځه کښې ،،سورة مؤمنون،، لوستل.او یوه کلمه ئې پریخودله.کله چې دوی د لمانځه نه فارغ شو.نو وے فرمائیل.آیا په تاسو کي ابی بن کعب نه وو.ابی بن کعب رضي الله عنه عرض اوکړلو.ولے نه.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.تا ولے فتح رانکړله.نو ابی بن کعب رضي الله عنه عرض اوکړلو.ما دا ګمان اوکړلو.چې دا منسوخ شوې ده.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.که چرته منسوخ شوې وې.نو ما به خامخا تاسو ته خبر درکړې وو.(عنایه) ددے اثر نه معلومه شوه.چه چې خپل امام ته فتح ورکول لمونځ نه فاسدوی.

**اثر علی رضي الله عنه** اود حضرت علی رضي الله عنه قول دې.«إذا إستطعمك الإمام فاطعمه» یعنی کله چې امام ستا نه ګوله (نمړۍ) اوغواړی.نونمړۍ ورکوه.(فتح القدیر)

**حدیث انس رضي الله عنه**:د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دې.چې موږ خلګو به د رسول الله ﷺ په زمانه کي امامانو ته فتح ورکوله.(حاکم)

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ إِلَى إِصْلَاحِ صَلَاتِهِ** ځکه چې مقتدی د خپل لمونځ ټیک کاوه ته مجبور دې **فَكَانَ هَذَا مِنْ أَعْمَالِ** |



| |
|---|
| **صَلَاتِهِ مَعْنًى** نو ځکه دا فتح ورکول معنی دده د لمونځ د اعمالو څخه شوه |

**حل اللغة:** ① مضطر: مجبور، لاچار

**تشریح:- الدلیل العقلی** عقلی دلیل دا دې.چې مقتدی د خپل لمونځ صحیح کاوه ته مجبوره دې.نو دا فتح ورکول معنی دده د لمونځ په اعمالو کښې شوه.او د لمونځ هیڅ یو عمل لمونځ نه فاسدوی.نو ځکه فتح ورکول مفسد نه ده.

| |
|---|
| **وَيَنْوِي الْفَتْحَ عَلَى إِمَامِهِ** و مقتدی دے خپل امام ته د لقمے ور کاوه نیت کوی **دُونَ الْقِرَاءَةِ** د قرات د قران نه. |

**حل اللغة:** ینوی ینوی نیة (ض): نیت کول

**تشریح:- القولان في نیة المأموم فتح الامام** د مشائخو رحمهم الله په دے اړه کي اختلاف دې.چې مقتدی به خپل امام ته د لقمے ور کاوه نیت کوی اوکه د قرات،بعضو وئیلی دی.چې د تلاوت اوقرات نیت دے کوی.د لقمے ورکولو نیت دے نه کوی.

| |
|---|
| **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا صحیح ده **لِأَنَّهُ مُرَخَّصٌ فِيهِ**،ځکه چې فتح ورکول داسے کار دې.چې ددے اجازت ورکړې شوې دې **وَقِرَاءَتُهُ** او د مقتدی قرآن لوستل داسے کار دې **مَمْنُوعٌ عَنْهَا** چې ددے نه منع شوې ده. |

**تشریح:-** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چې صحیح دا ده.چې د لقمے ور کاوه نیت دے کوی.د قران د قرات نیت دے نه کوی.ځه چې مقتدی ته د لقمے ور کاوه اجازت ورکړې شوې دې.اود قرات نه منع شوې دې.نوچې د کوم شی اجازت ورته ورکړې شوې دې.داسے دے نه کوی.چې هغه پریږدی.اود کوم کار نه چې منع شوې دې.هغه کوی.یعنی د قرات نیت دے نه کوی.

### دفاتح د فتحې نه اخستلو په صورت کې دفاتح د مونځ حکم

| |
|---|
| **وَلَوْ كَانَ الْإِمَامُ انْتَقَلَ إِلَى آيَةٍ أُخْرَى** و که امام بل آیت ته منتقل شو **تَفْسُدُ صَلَاةُ الْفَاتِحِ** نو د فتح ورکونکی لمونځ فاسدیږی **وَتَفْسُدُ صَلَاةُ الْإِمَامِ لَوْ أَخَذَ بِقَوْلِهِ** او که امام دده قول واخستلو.نو د امام لمونځ هم فاسدیږی |

**حل اللغة:** ① انتقل، انتقل انتقالاً: منتقل کیدل، وربدلیدل ② فاتح: نوړنی ورکونکې ③ اخذ، اخذ اخذاً (ن): اخستل نیول

**تشریح:- صورتا فساد صلاة المأموم والامام** صورت د مسئلے دا دې.چې امام په کوم آیت کي انختے وی.د هغے نه نه وی وتلې.بلکه بل آیت اووائی.او مقتدی ورته فتح ورکړله.نو د فتح ورکونکی لمونځ فاسدیږی.او که امام دده فتح واخستله.نو د امام لمونځ هم فاسد شو.

| |
|---|
| **لِوُجُودِ التَّلْقِينِ وَالتَّلَقُّنِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ** ځکه چې د مقتدی تلقین کول،او د امام هغے لره اخستل بغیر د اړتیا نه موجود شو |

**حل اللغة:** تلقین: وریادول

**تشریح:- دلیله** دلیل دا دې.چې د مقتدی د اړخه تلقین د امام د اړخه تلقین بغیرضرورته موجود شو.نو استحسان خو پاتې نشو.البته د قیاس د تقاضا مطابق دا کلام مفسد شو.

**قول عدم فساد صلاة الامام والمأموم** دا خیال ساتئ.چې دا د بعضے مشائخو رحمهم الله قول دې.کوم چې مصنف دهدایه رحمه الله اختیار کړې دې.او د بعضو قول دې.چې نه د امام لمونځ فاسدیږی.اونه د مقتدی،یعنی نه د فتح ورنکونکی لمونځ فاسدیږی.اونه د امام.

**دلیله** ځکه چې وړاندې کوم اثر تیر شوې دې.«أن رسول الله ﷺ قرأ في الصلاة سورة المومنين» هغه مطلق دې.اودهغے د اطلاق تقاضا دا ده.چې دفتح ورکونکی او امام لمونځ په هیڅ حالت کي فاسد نشی.

| |
|---|
| **وَيَنْبَغِي لِلْمُقْتَدِي** او د مقتدی لپاره مناسب دا دی. **أَنْ لَا يُعَجِّلَ بِالْفَتْحِ**،چې هغه په فتح ور کاوه کي جلتی نه کوی **وَلِلْإِمَامِ أَنْ لَا يُلْجِئَهُمْ إِلَيْهِ** او امام لره پکار دی.چې مقتدیان په فتح ور کاوه باندې نه مجبوره کوی **بَلْ يَرْكَعُ** |

بلکه رکوع کوی إِذَا جَاءَ أَوَانُهُ چي دده وخت راغلې وی أَوْ يَنْتَقِلَ إِلَى آيَةٍ أُخْرَى يا بل آيت اړخ ته منتقل شي.

**تشريح:- مايتبغي للامام والماموم في الفتح** صاحب د هدايه امام او مقتدی دواړه ته هدايت کړې دي. چي مقتدی دې په فتح ور کاوه کښې جلتي نه کوي. اوامام دې مقتديان په فتح ور کاوه نه مجبوره کوي. مثلاً بار بار يو آيت وائي. ياچوپ اودريږي. داسې دې نه کوي. بلکه چي فرض مقدار (چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز يو آيت او د صاحبينو رحمهما الله په نيز درې آياتونه دي) ئې لوستې وي. نو رکوع دې کوي. او بعضې حضراتو د مستحب قرات اعتبار کړې دې. يعنی چي مستحب قرات ئې کړې وي. نو رکوع دې کوي. يا دې امام بل آيت ته منتقل کيږي. يعنی په کوم آيت کي چي بند شوی وی. هغه دې پريږدي. او بل آيت دې پيل کړي. حاصل دا چي مقتديان دې په فتح ور کاوه باندې نه مجبوره کوي.

**په مانځه کي په تهليل سره د جواب ورکولو حکم**

فَلَوْ أَجَابَ فِي الصَّلَاةِ رَجُلًا بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ که مصلی په لمانځه کښې چا ته په «لا إله إلا الله» سره ځواب ورکړلو فَهَذَا كَلَامٌ مُفْسِدٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ[1] نو دا کلام د ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نيز مفسد دي

**حل اللغة:** ① اجاب، اجاب اجابة : ځواب ورکول

**تشريح:- الصورتان في المسئلة** مسئله دا ده. که د مصلی په وړاندې چا اوونيل. «أ إله مع الله؟» يعنی دالله تعالی سره بل معبود شته؟ نو دې مصلی چي واوريدلو. نو «لا إله إلا الله» ئې د ځواب په طور اوونيل. ① نو اس به دا کلام د دوو حالتو نه خالی نه وی. يا خو به په دې سره ده ځواب قصد کړې وی. ② يا به ئې دخپل خان په اړه کي دلمانځه خبر ورکول اراده وی. چي زه په لمانځه کي يم. که دوهم صورت وی. نو ددې حکم به په راروانو کرښو کي راشي. اوکه اول صورت وی. نو د طرفينو رحمهما الله په نيز لمونځ فاسديږي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: او ابويوسف رحمه الله فرمائی لَا يَكُونُ مُفْسِدًا چي مفسد نه دي. وَهَذَا الْخِلَافُ فِيمَا او دا اختلاف په هغه صورت کښې دي. إِذَا أَرَادَ بِهِ جَوَابَهُ چي مصلی په دې کلام سره د ويونکی ځواب اراده وی لَهُ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دي أَنَّهُ ثَنَاءٌ بِصِيغَتِهِ چي دا کلام د خپل وضع په اعتبار سره ثناء الهی ده فَلَا يَتَغَيَّرُ بِعَزِيمَتِهِ نو دا د مصلی په عزم سره نه متغير کيږي

**حل اللغة:** ① اراد، اراد ارادة : اراده کول

**تشريح:-** او امام ابويوسف رحمه الله په نيز لمونځ نه فاسديږي.

**دليل ابی يوسف** رحمه الله دابويوسف رحمه الله دليل دا دې چي دا کلام د خپل معنی موضوع له په اعتبار سره د الله تعالی حمد او ثناء ده. اوچي کوم کلام د معنی موضوع له په اعتبار سره ثناء دالله تعالی وی. هغه د متکلم په عزم او ارادې سره نه متغير کيږي. لکه څنګه چي مصلی په خپل دې کلام سره دخپل ځان په اړه کښې په لمانځه کي د مشغوليت خبر ورکول غرض وی. نو په دې سره معنی موضوع له نه متغير کيږي. نو دغه شان چي د ځواب اراده ئې کړې وی. نو په دې صورت کښې هم معنی موضوع له نه متغير کيږي. او معنی موضوع له چونکه ثناء اوحمد ده. او په ثناء اوحمد دالله تعالی سره لمونځ نه فاسديږي. نو څکه په «لا إله إلا الله» سره هم لمونځ نه فاسديږي.

وَلَهُمَا او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. أَنَّهُ أَخْرَجَ الْكَلَامَ مَخْرَجَ الْجَوَابِ چي «لا إله إلا الله» د ځواب په طور سره

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين كذا فی فتح القدير(٣٤٩\١) والدرالمختار(١٥٩\١) وخلاصة الفتاوی (١٢٢\١) ومجمع الانهر (١١٩\١) نقلا عن القول الراجح (١٠٢\١)_



استعمال شوېدې وَهُوَ يَحْتَمِلُهُ اودا دځواب احتمال هم لري. فَيُجْعَلُ جَوَابًا نو څکه به دا ځواب ګرځولې شي.

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې چي «لا إله إلا الله» داسې کلام دې چي دالله تعالی د ثناء او ځواب دواړو احتمال لري. نو دا کلام مشترک په خير شو. او د مشترک په معانيو کي په قصد او اراد. س سره د يوې معنی متعين کول جائز دی. نو کله چي مصلی په «لا إله إلا الله» سره د ځواب اراده اوکړله. نو دا به ځواب ګرځولې شي. لکه د انتوشی ځواب يعنی «يرحمك الله» چونکه ځواب دې. څکه کلام الناس شو. او کلام الناس چونکه مفسد د صلاة دې. نو څکه «لا إله إلا الله» نه چي ځواب مراد واخستې شی. نو په دې صورت کي مفسد د صلاة دې.

**السوال** صاحب د عنايه رحمه الله په دې موقع باندې يو اعتراض او ځواب ذکر کړې دې. هغه هم اوګورئ. فرمائی. اعتراض دا دې. چي يو ځل حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د نبی صلی الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو. او اجازت ئې اوغوښتلو. حالانکه په هغه وخت کي د الله پيغمبر صلی الله عليه وسلم لمونځ کولو. نبی صلی الله عليه وسلم په ځواب کي اوفرمائيل. «ادخلوها بسلام آمنين» او په دې سره نبی صلی الله عليه وسلم د ځواب ارادې اوکړله. حالانکه د نبی صلی الله عليه وسلم لمونځ فاسد نشو. ددې نه معلومه شوه. که د يو آيت يا کلمه توحيد سره د ځواب ارده اوکړی. نو هم لمونځ نه فاسديږي.

**الجواب** شمس الائمه سرخسی رحمه الله ځواب کي فرمائی. چي نبی صلی الله عليه وسلم د وړاندې نه تلاوت کولو. او کله چي ابن مسعود رضی الله عنه اجازت اوغوښتلو. نو په دغه وخت کي هلته راورسيدلو. نو معلومه شوه. چي نبی صلی الله عليه وسلم د تلاوت په قصد دغه آيت وئيلې وو. د ځواب په قصد ئې نه وو وئيلې. نو دا اعتراض کول ټيک نه دی.

كَالتَّشْمِيتِ وَالِاسْتِرْجَاعِ چي انتوشی کونکی ته ځواب او استرجاع «إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ» هم، عَلَى الْخِلَافِ فِي الصَّحِيحِ په صحيح روايت کي هم په دې اختلاف دی.

**حل اللغة:** تشميت: د انتروشی ځواب ورکول

**تشريح:- الروايتان في فساد الصلاة بكلمة الاسترجاع** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. که مصلی ته مخکی چا اووئيل. چي فلانې مړشو. نو مصلی اووئيل. «إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ» نو په دې کي د مشائخو اختلاف دې ① بعضو مشائخو وئيلی دی. چي دا صورت هم مختلف فيه دې. يعنی د طرفينو رحمهما الله په نيز لمونځ فاسديږي. اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز نه فاسديږي. ② او بعضو مشائخ رحمهم الله فرمائی. چي دا صورت متفق عليه دې. يعنی امام ابويوسف رحمه الله په استرجاع کي د لمونځ په فساد کي د طرفينو رحمهما الله سره موافقت کړې دې.

**وجه الفرق بين المسئلتين عند ابی يوسف** رحمه الله پاته شوه دا خبره چي د امام ابويوسف رحمه الله په نيز تو پير څه دې. چي «لا إله إلا الله» مفسد نه ګڼړي. او استرجاع مفسد ګرځوی. نو ددې ځواب دا دې. چي استرجاع د مصيبت د اظهار لپاره دې. اولمونځ ددې لپاره نه دې مشروع شوې. او «لا إله إلا الله» د تعظيم او توحيد لپاره دې. اودلمونځ مشروعيت هم ددې لپاره شوې دې. حاصل دا چي استرجاع دلمونځ منافی ده. ددې وجې مفسد د صلاة ده. او «لا إله إلا الله» چونکه دلمانځه منافی نه دې. نو څکه دا کلمه مفسد نه ده. صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. چي د مختلف فيه قول صحيح دې.

**په مانځه کي د مشغوليت اعلان کولو لپاره تهليل وغيره وئيل**

وَإِنْ أَرَادَ إِعْلَامَهُ أَنَّهُ فِي الصَّلَاةِ او که په کلمه د ثناء يا د قران په لوستلو کي ئې اراده بل ته خبر ورکول وو. چي زه په لمانځه کي يم. لَمْ تَفْسُدْ بِالْإِجْمَاعِ نو په اجماع سره لمونځ نه فاسديږي.

**حل اللغة:** ① اراد، ارادة : اراده کول ② اعلام: ښکاره کول ③ لم تفسد فسد فسادا (ن): فاسد کيدل

**تشريح:-** په وړاندې مسئله کي د دوهم احتمال وعده شوې وه. په دې عبارت کي د هغې بيان دې. يعنی يو

مصلی کلمه توحید یا د قران پاك یو ایت په دے اراده باندې اووئیل.چې بل ته دده لمونځ معلوم شی.نو په دے په اجماع سره لمونځ نه فاسدیږی.

**لِقَوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. {إِذَا نَابَتْ أَحَدَكُمْ نَائِبَةٌ فِي الصَّلَاةِ} که تاسو کښې چا ته په لمانځه کې څه واقعه پیښه شی. **فَلْيُسَبِّحْ**}[1] نو تسبیح دے وائی.

**حل اللغة:** نابه، ناب نوبة (ن): مخې ته کیدل

**تشریح:- دلیله** ﷺ دلیل د نبی ﷺ قول دې. «إذا نابت أحدكم نائبة في الصلاة فليسبح فإن التسبيح للرجال والتصفيق للنساء» یعنی کله چې په لمانځه کې په تاسو کښې چا ته څه واقعه پیښه شی.نو تسبیح دے وائی.ځکه چې تسبیح د سړو لپاره دې.او تصفیق د ښځو لپاره دې.او تصفیق دا دې.چې ښځه د خپل ښی لاس تلے د چپه لاس شاه ته راپریږدی.

## د ماپښین د یو رکعت کولو نه روسته په بل مونځ کې پیل کول

**وَمَنْ صَلّٰى رَكْعَةً مِنَ الظُّهْرِ** او که چا (مثلاً) د ماپښین یو رکعت اوکړلو **ثُمَّ افْتَتَحَ الْعَصْرَ أَوِ التَّطَوُّعَ** بیا ئې د مازیګر یا نفلو لمونځ پیل اوکړله **فَقَدْ نَقَضَ الظُّهْرَ** نو دده د ماپښین لمونځ مات شو **لِأَنَّهٗ صَحَّ شُرُوْعُهٗ فِيْ غَيْرِهٖ** ځکه چې په غیر کې دده پیل کول صحیح شو **فَيَخْرُجُ عَنْهُ** نو د ماپښین نه بهر شو.

**حل اللغة:** ① صلی، صلی صلاة : دعا کول لمونځ کول ② افتتح، افتتح افتتاحاً: پیل کول ③ نقض، نقضاناً (ن): ماتول

**تشریح:-** که یو کس مثلاً د ماپښین په لمانځه کې یو رکعت اوکړلو.بیا ئے د مازیګر د لمانځه یا د نفل لمونځ نیت اوکړلو.او دا نیت ئې په زړه کې اوکړلو.نه ئې په ژبه باندې اوکړلو.او نه ئې غوږونو ته لاسونه پورته کړل.نو په دے صورت کې اولنے لمونځ یعنی د ماپښین لمونځ باطل شو.

دلیل دا دې.چې دے کس په بل لمونځ کې پیل کول په شریعت کې صحیح دی.او په بل لمونځ کې د پیل کاوه لپاره د اولنی لمونځ نه وتل ضروری دی.نو ځکه اولنے لمونځ باطل شو.

## د ماپښین په دوهم رکعت کې دوباره د ماپښین نیت کول

**وَلَوِ افْتَتَحَ الظُّهْرَ بَعْدَ مَا صَلّٰى مِنْهَا رَكْعَةً** او که د ماپښین د یو رکعت کاوه نه روسته بیا ئې د ماپښین لمونځ پیل کړلو **فَهِيَ هِيَ** نو دا دوهم لمونځ هم هغه اولنے لمونځ دې **وَيَجْتَزِئُ بِتِلْكَ الرَّكْعَةِ** او هغه رکعت به حسابیږی

**تشریح:- حکم تعدد النية في صلاة واحدة** ﷺ مسئله دا ده.چې اول ئې د ماپښین لمونځ پیل کړلو.په هغے کښې ئې یو رکعت اوکړلو.بیا ئې دوباره هم د دغه ماپښین نیت اوکړلو.او تکبیر تحریمه ئې اووئیله.نو بغیر په ژبې سره د نیت کاوه نه،نو دا دوهم لمونځ اولنے لمونځ دې.یعنی د اولنی لمونځ نه خارج شوے نه دې.او کوم رکعت چې ئې کړې دې.هم به هغه شارلے شی.تردے که دده نه روسته ئې درے رکعته اوکړل. نو د ماپښین فرض ادا شو.او که دده نه روسته ئې څلور رکعته اوکړل.په دے ګمان چې اولنے رکعت باطل شوې دې.او په دریم رکعت باندې هم ناست هم نه دے،نو د آخری قعدے د فوت کیدو د وجے دده لمونځ باطل شو.

**لِأَنَّهٗ نَوَى الشُّرُوْعَ** ځکه چې مصلی د پیل کاوه نیت کړې دې **فِيْ عَيْنِ** په داسے فرض کې چې هغه بعینه هم هغه دې. **مَا هُوَ فِيْهِ** په کوم کې چې دے موجود وو **فَلَغَتْ نِيَّتُهٗ** نو دده نیت لغو دې **وَبَقِيَ الْمَنْوِيُّ عَلٰى حَالِهٖ** او د کوم نیت چې ئې کړې دې.نو هغه په خپل حالت پاته دې.

---

1) حدیث سهل بن سعد رضی الله عنه رواه البخاری فی الاذان باب ٤٨ ومسلم فی الصلاة رقم الحدیث ١٠٢ وابوداود فی الصلاة باب ١٦٩ والنسائی فی لامامة باب ٧ والدارمی فی الصلاة باب ٩٥ ومالک فی الموطا فی قصر الصلاة فی السفر رقم ٦١ واحمد فی المسند (٣٣٠/٥، ٣٣٢، ٣٣٣)_



**حل اللغة:** ① نوی، نوی نیة (ض): نیت کول ② فلغت، لغا لغواً (ن): لغو کیدل ③ منوی: نیت کړې شوې

**تشریح:- دلیله** ﷺ دلیل دا دې.چې مصلی بعینه د هغه شی د پیل کاوه نیت اوکړلو.په کوم کې چې دے وړاندې موجود وو.نو ځکه دده نیت لغو دې.او د کوم نیت چې ئې په اول کې کړې وو.هغه پاته دې.

## په مانځه کې د مصحف نه قرات کول

**وَإِذَا قَرَأَ الْإِمَامُ مِنَ الْمُصْحَفِ** او که امام د مصحف نه قرات اوکړلو **فَسَدَتْ صَلَاتُهٗ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ**[1] نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دده لمونځ فاسد شو.

**حل اللغة:** ① قرا، قرا قاءة (ف): لوستل ② فسدت، فسد فساداً (ن): فاسد کیدل

**تشریح:- الاختلاف في فساد الصلاة بالقراءة من المصحف** ﷺ ① صورت د مسئلے دا دې.که امام یا منفرد په مصحف کښې په کتلو سره قرات اوکړلو.که لږ وی یا زیات،نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دده لمونځ فاسد شو.

**وَقَالَا** و صاحبین رحمهما الله فرمایي **هِيَ تَامَّةٌ** چې په کتلو سره د لوستونکی لمونځ پوره دې. **لِأَنَّهَا عِبَادَةٌ** ځکه چې یو عبادت دې. **انْضَافَتْ إِلٰى عِبَادَةٍ أُخْرٰى** چې د بل عبادت سره ملاؤ شو.

**حل اللغة:** ① تامة: پوره ② انضافت، انضاف انضیافاً: ملاویدل

**تشریح:-** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چې مع الکراهة جائز دې.یعنی لمونځ ئې پوره شو. خو مکروه دې.③ د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نیز خو بغیر د کراهت نه جائز دې.

**دلائلهما** ﷺ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.① چې قرات یو عبادت دې.او په محصف کې کتل هم عبادت دې.ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. «أعطو أعينكم من العبادة حظها قيل وما حظها من العبادة قال النظر في المصحف» یعنی خپلو سترګو ته په عبادت کې برخه ورکړئ.اووئیلی شو.چې په عبادت کې ددے برخه څه ده؟نو نبی ﷺ اوفرمائیل.په مصحف کې کتل ،ددے حدیث نه معلومه شوه.چې په مصحف کې نظر کول د سترګو عبادت دې.نو دلته یو عبادت د بل عبادت سره ملاؤ شو.او یواځے یو عبادت مفسد د صلاة نه دې.نو چې کله دوې (دوه) عبادتونه ملاؤ شوی.نو په درجه اولی به مفسد د لمانځه نه وی.② دوهم دلیل حدیث د ذکوان دې. «أنه كان يوم عائشة في رمضان وكان يقرأ من المصحف» یعنی د حضرت عائشے رضی الله عنها آزاد شوې غلام ذکوان نوم به په رمضان کې حضرت ام المؤمنین ته امامتی ورکوله.او ده به د مصحف نه قرات کولو.

**إِلَّا أَنَّهٗ يُكْرَهُ** خو دا مکروه دې. **لِأَنَّهٗ تَشَبُّهٌ بِصَنِيْعِ أَهْلِ الْكِتَابِ** ځکه چې دا صورت د اهل کتابو د طریقے سره مشابه ده

**حل اللغة:** ① صنیع: طریقه

**تشریح:- وجه الكراهة** ﷺ او کراهت دده وجے دې.چې دا صورت د اهل کتابو د طریقے سره مشابه دې.ځکه چې اهل کتاب اذکارو وغیره د نه یادولو په وجه هم دغه ډول په لاس کې نیسی اوکوی.او د اهل کتابو مشابهت هم په صحیح حدیث کې منع شوې دې.نو چې په کوم صورت کې بغیر د مشابهت نه په شریعت باندې عمل کول ممکن وی.نو په دغه صورت کې د اهل کتابو سره مشابهت کول مکروه دی.

**وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دی **أَنَّ حَمْلَ الْمُصْحَفِ** چې د مصحف اوچتول **وَالنَّظَرَ فِيْهِ** او په هغے کې کتل **وَتَقْلِيْبَ الْأَوْرَاقِ** او د پاڼو اړول راړول، **عَمَلٌ كَثِيْرٌ** عمل کثیر دې

**تشریح:- الدليل الاول لابی حنیفة رحمه الله** ﷺ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چې قران پاك اوچتول،او په دے کې

---

[1]) القول الراجح هو قول ابی حنیفة رحمه الله كذا فی الخانیة (٦٥/١) وردالمحتار (٤٦/١) والبحر (١٠/٢) والهندیة (١٠/١)نقلا عن القول الراجح (١٠٢/١)_

نظر کول، او د پاڼو اړول راړول دا مجموعه عمل کثیر دي. او عمل کثیر مفسد د صلاة دي. نو ځکه دا صورت مفسد د صلاة دي.

**وَلِأَنَّهُ تَلَقَّنَ مِنَ الْمُصْحَفِ** او د دې وجې چې د مصحف نه زده کول داسې دی **فَصَارَ كَمَا إِذَا تَلَقَّنَ مِنْ غَيْرِهِ،** نو دا داسې شو لکه چې د بل چا نه زده کول کوي

**حل اللغة:** ① **تلقن، تلقن تلقنا:** مخکې حاصلول

**تشریح:- الدليل الثاني** دوهم دلیل دا دې. چې د مصحف نه لوستل د دې نه زده کول دي. نو دا داسې شوه. لکه چې د بل سړي نه موږ زده کوو. او په لمانځه کښې د بل کس نه زده کول او تلقن اخستل مفسد د صلاة دي. نو په دې صورت کې به هم لمونځ فاسد وي.

**وَعَلَى هَذَا لَا فَرْقَ بَيْنَ الْمَوْضُوعِ وَالْمَحْمُولِ،** او د دې وجې په رحیل کې کیښودې شوې قرآن شریف نه لوستل او په اوچت کړی قرآن نه لوستلو کې څه توپیر نشته **وَعَلَى الْأَوَّلِ يَفْتَرِقَانِ،** او د لومړنی وجې مطابق په کې توپیر شته.

**حل اللغة:** **يفترقان، افترق افتراقا:** جلا کیدل

**تشریح:- ثمرة اختلاف الدليلين** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي. چې د دوهم دلیل په بناء باندې قرآن پروت وي. او د هغې نه قرآن لولي. یا ئې په لاسو کې اوچت کړې وي. او قرات ئې کوي. په دې دواړو کې څه توپیر نشته. ځکه چې تلقن په دواړو صورتونو کې موجود دې. او هم دا تلقین باعث د فساد دې. او د اول دلیل په بناء په دواړو کې توپیر شته. ځکه که قرآن په یو شي باندې کیښودې شوې وي. او مصلی د هغې نه زده کوي. او لولي. نو په دې کښې عمل کثیر نشته او که لاسونو کې ئې اخستې وي. او لولي ئې. نو دا عمل کثیر دې. شمس الائمة سرخسی رحمه الله دوهم دلیل اصح ګرځولې دې.

### په مانځه د مکتوب په پوهیدلو د مونځ حکم

**وَلَوْ نَظَرَ إِلَى مَكْتُوبٍ** او که مصلي د (قرآن نه سوا) څه لیکلی شوی شی ته او کتل. **وَفَهِمَهُ** او په هغې پوهه شو **فَالصَّحِيحُ** نو صحیح قول دا دې **أَنَّهُ لَا تَفْسُدُ صَلَاتُهُ بِالْإِجْمَاعِ** چې په اجماع سره دده لمونځ نه فاسدیږي.

**حل اللغة:** ① **نظر، نظر نظرا (ن):** کتل ② **فهم، فهم فهما (س):** پوهیدل

**تشریح:- الاختلاف في فساد الصلاة بالنظر الى المكتوب وفهمه** صورت د مسئلې دا دې. چې مصلی د قرآن نه سوا بل مکتوب اولیدلو. او په هغې باندې پوهه شو. خو په ژبه ئې تلفظ اونکړلو. نو په دې اړه کې د مشائخو د قول مطابق د امام ابویوسف رحمه الله په نیز لمونځ نه فاسدیږي. او د امام محمد رحمه الله په نیز فاسدیږي.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ** د دې په خلاف کله چې دې قسم اوخوری **لَا يَقْرَأُ كِتَابَ** چې فلانې کتاب به نه وایم. **فُلَانٍ حَيْثُ يَحْنَثُ بِالْفَهْمِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ** نو امام محمد رحمه الله په نیز صرف په پوهیدلو حانث کیږي

**حل اللغة:** ① **حلف، حلف حلفا (ض):** قسم خوړل ② **يحنث، حنث حنثا (س):** حانث کیدل

**تشریح:-** لکه که یو کس قسم اوخوړلو. چې فلانې کتاب به نه لولوم. بیا ئې هغې ته او کتلو. او په هغې باندې پوهه شو. خو په ژبه ئې تلفظ اونکړلو. نو د امام ابویوسف رحمه الله په نیز حانث نه دې. او د امام محمد رحمه الله په نیز حانث دې.

**دليل ابى يوسف رحمه الله** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې. چې قرات په ژبه باندې کیږي. ځکه چې قرات د کلام د قبیلې څخه دې. او کلام په ژبه باندې کیږي. نو معلومه شوه. چې قرات به هم په ژبې سره کیږي. او مسئله دا ده. چې قسم خوړونکی په ژبه نه وي ویلې. بلکه لیکلې شي ئې صرف اولیدلو. او پوهه شو پرې. نو ځکه به دې حانث نه وي. او که مصلی وي. نو دده لمونځ نه فاسدیږي.

**اتفاق الصاحبين في مسئلة الصلاة** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي. چې په ذکر شوې مسئله کې په اجماع سره



لمونځ نه فاسدیږي. په ذکر شوې مسئله کې د صاحب هدایه رحمه الله د بیان مطابق امام محمد رحمه الله هم د عدم فساد په حکم کې د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. اوس حاصل دا شو. چې د قرآن نه سوا که بل لیکلې شوې څیز ته او ګوري. او پوهه شي پرې. او ژبه ئې اونه واني. نو د امام ابویوسف رحمه الله په نیز لمونځ نه فاسدیږي. او که د نه لوستلو قسم ئې خوړلې وي. نو هم نه حانثیږي. او امام محمد رحمه الله د عدم فساد صلاة په مسئله کې د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. خو که دا قسم اوخوری. چې فلانې کتاب نه لولم. او بیا ده کتاب اولیدلو. او په هغې باندې پوهه شو. خو په ژبه باندې ئې اونه ویل. نو د امام محمد رحمه الله په نیز حانثیږي.

**لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُنَالِكَ الْفَهْمُ** ځکه چې دلته مقصود پوهیدل دی **أَمَّا فَسَادُ الصَّلَاةِ** پاته شو د لمونځ فساد **فَبِالْعَمَلِ الْكَثِيرِ** نو دا په عمل کثیر سره راځي **وَلَمْ يُوجَدْ** او هغه موجود شوې نه دې.

**تشریح:- وجه الفرق بين المسئلتين عند محمد** د امام محمد رحمه الله په نیز په دواړو مسئلو کې وجه د توپیر دا ده. چې په مسئله د قسم کې فهم مقصود وي. یعنی د قسم خوړونکی مقصود دا وي. چې د فلانی راز به د هغه د تحریر په کتلو سره معلوموم. او چې کله ئې معلوم کړلو. نو حانث شو. که په ژبه ئې حرکت ورکړې وي او که نه. ځکه چې د قسم مقصود موجود شو. او پاته شو د لمونځ فساد. او دا په عمل کثیر سره کیږي. او عمل کثیر نه دې موجود شوې. ځکه چې پوهیدل عمل خفیف دې. بلکه عمل هډو ښکاره شوې نه دې. نو ځکه په دې صورت کښې فساد نه راځي. (عنایه)

### د ښځې د مونځګذار مخکې تیریدل

**وَإِنْ مَرَّتِ امْرَأَةٌ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي** او که د مصلی مخکې ښځه تیره شوه **لَمْ تَقْطَعْ صَلَاتَهُ** نو (دا تیریدل لمونځ نه ماتوی

**حل اللغة:** ① **مرت، مر مرورا (ن):** تیریدل ② **لم تقطع، قطع قطعا (ف):** ماتول

**تشریح:- الاختلاف في قطع الصلاة بالمراة والكلب والحمار** ① د مونځګذار مخکې د ښځې تیریدل لمونځ نه ماتوی. ښځه که حائضه وي او که غیر حائضه وي. دغه ډول د سپي او خر تیریدل هم لمونځ نه فاسدوي. ② اصحاب ظواهر وائي. چې د دې درې واړو څیزونو تیریدل لمونځ ماتوي. د امام احمد بن حنبل رحمه الله مشهور قول هم دا دې.

**دليل اصحاب الظواهر** د اصحاب ظواهر دلیل د نبی ﷺ قول دې. «تقطع المرأة الصلاة والكلب والحمار» دا حدیث د ابوذر غفاری رضی الله عنه نه نقل دې. (عنایه، کفایه) یعنی د ښځې سپي او خر تیریدل د لمونځ فاسدونکی دی.

**الجواب عن دليل اهل الظواهر** د جمهورو د دلائلو نه وړاندې د فاضل جلال الدین بن شمس الدین الخوارزمی صاحب د کفایه په ژبه کې د اصحاب ظواهر د پیش کړی حدیث ځواب اوګورئ. فاضل موصوف فرمائي. چې په کوم وخت کې حضرت عائشې رضی الله عنها ته دا حدیث اورسیدلو. نو هغوی د دې نه انکار اوکړلو. او حضرت عروه رحمه الله ته مخاطب شوه او وې فرمائیل. «يا عروة ما ذا يقول أهل العراق قال يقولون يقطع الصلاة مرور المرأة والحمار والكلب فقالت يا أهل العراق والشقاق والنفاق قرنتمونا بالكلاب والحمار. كان رسول الله ﷺ يصلي بالليل وأنا معترضة بين يديه إعتراض الجنازة فإذا سجد حبست رجلي وإذا قام مددتها» یعنی اې عروه اهل عراق څه وائي. حضرت عروه اوفرمائیل. چې اهل عراق وائي. چې د ښځې خر او سپي تیریدل لمونځ قطع کوي. نو حضرت عائشې رضی الله عنها اوفرمائیل. اې اهل عراق والشقاق والنفاق تاسو موږ ښځې د سپو او خرو سره برابروئ. رسول الله ﷺ به د شپې مونځ کولو. او زه به مخکې ملاسته ووم. لکه ځنګه چې جنازه کیښودې شي. کله چې به نبی ﷺ سجده کول. نو ما به خپلې پښې راغونډولې. او کله چې به نبی ﷺ ودریدلو. نو پښې به مې خورولې.

**الاستدلال بالحديث** د دې واقعه نه معلومه شوه. چې حضرت ام المومنین عائشه رضی الله عنها د حدیث د ابوذر رضی الله عنه په سختئ سره انکار اوکړلو. او د مصلی وړاندې د ښځې په تیریدو سره د لمونځ فاسدیدل ئې په سخته لب او لهجه کې تردید اوکړلو. د زیات نه زیات دا اعتراض کیدلې شي. چې بحث د مصلی وړاندې په تیریدو کې

دي.د پښو په خورلو کي نه دي.اود حضرت عائشې ﷺ د بيان نه د پښو خوړول او سملاستل ثابتيږي.د لمونځ ګذار وړاندي تيريدل ترے نه ثابتيږي .ځواب دا دي.چي کله ني پښے خورے کړي وي.اوملاسته وي.نو دا لمونځ نه ماتوي.نو تيريدل خو به په درجه اولي سره لمونځ نه ماتوي.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي {**لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ مُرُورُ شَيْءٍ**}(۱) د هيڅ څيز تيريدل لمونځ نه قطع کوي. **إِلَّا أَنَّ الْمَارَّ آثِمٌ** خو تيريدونکے ګناهګار دي **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي {**لَوْ عَلِمَ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي** که د مصلي وړاندي تيريدونکي ته پته وي. **مَاذَا عَلَيْهِ مِنَ الْوِزْرِ** چي دے څومره ګناهګاريږي **لَوَقَفَ أَرْبَعِينَ**}(۲) نو څلويښتو پوري به ولاړ وو

**حل اللغة:** ① **مار**: تيريدل ② **وزر**: بوج، ګناه ③ **لوقف، وقف وقوفا (ض)**: ودريدل

**تشريح:-** **دليل الجمهور** ﷺ ◉ د جمهورو عالمانو ﷺ دليل د رسول الله ﷺ ارشاد دي. «لا يقطع الصلاة مرور شيء فادرأوا ما استطعتم فإنه شيطان» يعني د هيڅ شي تيريدل لمونځ نه فاسدوي.چي څومره کيدے شي.دفع کوي.ځکه چي دے شيطان دي.خو دومره خبره ضرور ده.چي د لمونځ ګذار مخکي تيريدونکے ګناهګار دي.ځکه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي. «لو علم المار بين يدى المصلي ما ذا عليه من الإثم لوقف اربعين» يعني که د لمونځ ګذار مخکي تيريدونکي ته پته لګيدله.چي دے څومره ګناهګاريږي. نو څلويښتو پوري به ولاړ وو.راوي واني.چي ماته معلومه نه ده.چي څلويښت کاله دي که څلويښت مياشتے اوکه څلويښت ورځي.بعضے حضراتو ونيلي دي.چي دحضرت ابوهريره ﷺ دحديث نه په طريقه د صحت سره ثابته ده.چي څلويښت کاله مراد دي.

**وَإِنَّمَا يَأْثَمُ** او ګناهګار به هله وي **إِذَا مَرَّ فِي مَوْضِعِ سُجُودِهِ** چي د مصلي د سجدے ځائے کښے تير شي **عَلَى مَا قِيلَ** لکه چي ونيلي شوي دي

① **موضع**: مقام، ځاي

**تشريح:-** **اقوال العلماء في حد اثم المرورفيه** ◉ «وإنما يأثم إذا مر الخ» نه ددے مقام بيان دي.چي په هغي کي تيريدل حرام دي.ددے حد ني دا بيان شوي دي.① چي د مصلي د قدم نه واخله تر د سجدے د مقام پوري هم دا اصح قول دي.او هم دا شمس الائمه سرخسي،شيخ الاسلام او قاضي خان ﷺ اختيار کړي دي.② بعضے مشائخو ونيلي دي.چي کله لمونځ ګذار خپل نظر د خپلے سجدے ځائي ته کړي.او په تيريدونکي دده نظر نه پريوځي.يعني حد د سجدے د ځائي نه هم وړاندي هغه ځائي پوري دي.چي د سجدے ځائي ته نظر کوي.اوپه دغه حالت کي ورته وړاندي څومره ځائي ښکاري.نوچي کوم ځائي نه ښکاري.دهغے ځائي نه تيريدل مکروه نه دي.③ بعضو د دوو يا دريو صفونو مقدار مقرر کړي دي.④ اوبعضو درے ګزونه ⑤ اوبعضو پنځوګزو پوري اندازه کړي دي.⑥ اوبعضو څلويښتو ګزو پوري اندازه کړي ده.دا حکم په هغه وخت کي دي.چي دے په صحرا يا په ډګر کي لمونځ کوي.

**القولان في حد اثم المرور في المسجد** ◉ اوکه په جمات کي لمونځ کوي.① نو دبعضو رائي دا ده.چي پنځوس ګزه پريږدي.اواخوا تيريږي.② او د بعضو قول دا دي.چي د مصلي او د قبلے د ديوال په مينځ کښے تيريدل مناسب نه دي. بلکه د ديوال هغه اړخ ته دے تيريږي.

---

۱) حديث ابي سعيد الخدري ﷺ رواه ابوداود في الصلاة باب ۱۱۴ رقم الحديث ۷۱۹ وسنن الدارقطني (۳۶۸/۱) وسنن البيهقي (۳۹۵/۲) رقم الحديث (۲۵۱۰)_

۲) حديث ابوجهيم ﷺ رواه البخاري في الصلاة باب ۱۰۱ ومسلم في الصلاة رقم الحديث ۲۶۱ وابوداود في الصلاة باب ۱۰۸ والترمذي في الصلاة باب ۱۳۴ والنسائي في القبلة باب ۸ والدارمي في الصلاة باب ۱۳۰ ومالک في قصر الصلاة في السفر رقم الحديث ۳۴ و احمد في المسند (۱۶۹/۴)_



**وَلَا يَكُونُ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ** اوچي د دواړو په مينځ کي څه شي حائل نه وي **وَتُحَاذِي أَعْضَاءُ الْمَارِّ أَعْضَاءَهُ** او د تيريدونکي اندامونه د مصلي اندامونو ته مخکي شي **لَوْ كَانَ يُصَلِّي عَلَى الدُّكَّانِ** اګرچي هغه په دوکان چي باندي لمونځ کوي.

**حل اللغة:** تحاذي، حاذى محاذاة: مقابله کيدل، مخکي کيدل

**تشريح:-** **عدم الاثم في المروربين يدى المصلي** ◉ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چي د لمونځ ګذار وړاندي دتيريدولو کراهت په هغه وخت کښ دي.چي د لمونځ ګذار او تيريدونکي په مينځ کي څه شي حائل نه وي.لکه ستن،دوال ،ستره،يا ناست سړي ،وغيره،اوکه څه شي حائل وي.نو تيريدونکے ګناهګار نه دي. ددے نه روسته فرمائي.که يو کس په دوکان چي باندي لمونځ کوي.نو مخکي تيريدونکے به په هغه وخت کي ګناهګار وي.چي د تيريدونکي اندامونه د مصلي د اندامو سره برابر او مخکي شي.اوکه دسړي قد بارېر اوچت ځائي باندي لمونځ کوي.نو د هغے نه وړاندي تيريدونکے ګناهګار نه دي.

## د صحراء کښ د مونځ کونکي لپاره د ستره ښخول

**وَيَنْبَغِي لِمَنْ يُصَلِّي فِي الصَّحْرَاءِ** اوکوم کس چي په ډګر کښے لمونځ کوي.ده لپاره مناسب دا ده. **أَنْ يَتَّخِذَ أَمَامَهُ سُتْرَةً** چي هغه خپل مخکي ستره اودروي **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي. {**إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فِي الصَّحْرَاءِ** کله چي په تاسو کي څوك په ډګر کي لمونځ کوي **فَلْيَجْعَلْ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةً**}(۱) نو خپل مخکي دے ستره اودروي

**حل اللغة:** ① **صحراء**: ميدان، ځنګل ② **يتخذ،اتخذ اتخاذا**: اخستل، نيول

**تشريح:-** **استحباب نصب السترة في الصحراء** ◉ مسئله دا ده.که يو کس په ډګر کي لمونځ کوي .نوخپل مخکي دے ستره اودروي.اودا مستحب عمل دي.

**دليله** ◉ دليل د نبي ﷺ ارشاد دي. «إذا صلى احدكم في الصحراء فليجعل بين يديه سترة»

**وَمِقْدَارُهَا ذِرَاعٌ فَصَاعِدًا** او د سترے مقدار يو لويشت يا زيات دي **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چي نبي ﷺ فرمائيلي دي {**أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ** آيا عاجز دي.په تاسو کي څوك **إِذَا صَلَّى فِي الصَّحْرَاءِ** چي کله په ډګر کښے لمونځ کوي. **أَنْ يَكُونَ أَمَامَهُ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ**}(۲) چي ددے وړاندي دکجاوے په څير لرګے وي

**حل اللغة:** ① **ذراع**: ګز ② **رحل**: کجاوه

**تشريح:-** **قدرالسترة** ◉ پاته شوه دا خبره چي د سترے اندازه به څه وي.و په دے اړه کي فرمائي.چي د سترے اوږدوالے لږترلږ يو ګز پکار دي.او زياتي څومره وي.څه باك نشته.

**دليله** ◉ دليل د نبي ﷺ قول دي. «ايعجز احدكم إذا صلى في الصحراء ان يكون امامه مثل مؤخرة الرحل»

---

۱) غربه الزيلعي بهذا اللفظ (نصب الراية ۷۹/۲) وروى ابوهريرة ﷺ بلفظ ،،اذا صلى احدكم فليجعل تلقاء وجهه شيا فان لم يجد فلينصب عصا.فان لم يكن معه عصا فليخطط خطا ولايضره ما مر من امامه،، رواه ابوداود في الصلاة باب ۱۰۲ رقم الحديث ۶۸۹ وابن ماجه في الاقامة باب ۳۶ رقم الحديث ۹۴۳ واحمد في المسند (۲۴۹/۲، ۲۵۵، ۲۶۶. وابن حبان في صحيحه انظرمواردالظمان رقم الحديث ۴۰۸ والحاکم في المستدرک (۲۵۱/۱)_

۲) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ (نصب الراية ۸۰/۲) وعن طلحة بن عبدالله ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا جلعت بين يديک مثل موخرة الرحل فلا يضرک من مر بين يديک،، رواه مسلم في الصلاة رقم ۲۴۱) وابوداود في الصلاة باب ۱۰۱ ، رقم الحديث ۶۸۵، والترمذي في الصلاة باب ۱۳۳ رقم الحديث (۳۳۵) و ابن ماجه في الاقامة باب ۳۶ رقم الحديث ۹۴۰ ) واحمد في المسند (۳۷۶/۱)_

«موخرة» د میم ضمه او د خاء کسره، هغه لرګی ته وائی. کوم چې د کجاوے شاه ته د کیناستونکی د سر برابر وی. خاء په تشدید سره ونیل غلط دی. «رحل» د کجاوے په معنی دے.

وَقِيلَ او ونیلی شوی دی. يَنْبَغِي أَنْ تَكُونَ فِي غِلَظِ الْأُصْبُعِ چې مناسب دی. چې پلنوالے ئې د ګوتې په اندازه وی لِأَنَّ مَا دُونَهُ لَا يَبْدُو لِلنَّاظِرِ مِنْ بَعِيدٍ خکه چې ددے نه کم پلنوالے د لرے نه کتونکی ته په نظر نه راځی فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُودُ نو مقصد نه حاصلیږی.

حل اللغى: غلط: پیروالې ② اصبع جمع اصابع: ګوته ③ لايبدو، بدا بدواً (ن): ښکاره کیدل ④ ناظرين: کتونکی

تشريح:- صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی. چې ډبروالے ئې دیوے ګوتې برابر وی.
دلیل دا دې چې ددے نه کم ډبروالے کتونکو ته نه ښکاری. نو ددے نه د ډبرے ستره سره مقصود نه حاصلیږی. نو خکه ونیلی شوی دی. چې کم ازکم د یوے ګوتې د غټ والی په اندازه پکار دی.

**دسترې لګولو طريقه**

وَيَقْرُبُ مِنَ السُّتْرَةِ او سترے ته دے نزدے وی.

حل اللغة: ① يقرب، قرب قربا (س، ک): نژدې کیدل

تشريح:- ① جعل السترة مقابل الحاجب په دے عبارت کښ بیان شوې دې. چې مصلی دے ستره خپلے ښی یا ګسے وریځے ته مخکی ساتې. یعنی د دواړو سترګو په مینځ کی دے نه ساتی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. {مَنْ صَلَّى إِلَى سُتْرَةٍ کوم کس چې سترے اړخ ته لمونځ کوی فَلْيَدْنُ مِنْهَا}[1] نو هغے ته دے نزدے وی وَيَجْعَلُ السُّتْرَةَ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوْ عَلَى الْأَيْسَرِ او ستره دے خپلے ښی یا ګسے وریځے ته مخکی ساتی بِهِ وَرَدَ الْأَثَرُ[2] په دے باندې اثر وارد شوې دي

حل اللغى: ① فليدن، دنا دنواً (ن): نیزدیکیدل

تشريح:- ① دليله خکه چې په دے باندې اثر وارد شو دې. امام ابوداود د ضباعه بنت المقداد بن الاسود رحمه الله نه او هغوی د خپل پلار مقداد بن الاسود نه روایت کړې دې. «قال ما رأيت رسول الله ﷺ يصلي إلى عود ولا عمود ولا شجر إلا جعله على حاجبه الأيمن أوالأيسر ولا يصمد له صمدا» مقداد رضی الله عنه فرمائی. ما د الله تعالی حق پیغمبر ﷺ کله هم څه لرګی یا ستن، یا ونې اړخ ته لمونځ کونکے نه دے لیدلی. مګر دا چې هغه به ئې خپلے ښی یا ګسے وریځے ته مخکی ساتله. او ددے اراده به ئې نه کوله. (فتح القدير) صاحب د عنايه رحمه الله دا اثر په دے الفاظو سره نقل کړې دې. «أنه ﷺ ما صلى إلى شجرة ولا إلى عود ولا عمود إلا جعله على حاجبه الأيمن ولم يصمد له صمداً أي لم يقصده قصداً إلى المواجهة»

وَلَا بَأْسَ بِتَرْكِ السُّتْرَةِ نو د سترے په پریخودو کي څه قباحت نشته. إِذَا أَمِنَ الْمُرُورَ چې کله چې د چا د تیریدو نه امن وی وَلَمْ يُوَاجِهِ الطَّرِيقَ او لاره دده مخکې نه وی.

تشريح:- ① صورة جوازترک السترة صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. چې د سترے په ترک کاوه کي په هغه وخت کے

1) روى من حديث سهل بن خيثمه رضی الله عنه رواه ابوداود فى الصلا باب ١٠٦) والنسائى فى القبلة باب ٢١ ورواه النسائى فى السنن الكبرى (٥٨١/١) وليس فيه يمر بين يديه ..الخ و رواه ابن حبان فى صحيحه (انظرموارد الظمان الى زوائد ابن حبان (ص،١١٧) رقم الحديث ٤٠٩) والحاكم فى المستدرک (٢٥١/١، ٢٥٢)_
2) قال الزيلعى رحمه الله يشير المصنف..... الى حديث مقداد بن الاسود قال رايت رسول الله ﷺ لا يصلي الى عود ولا عمرد ولا شجرة الا جعله على حاجبه الايمن او الايسر ولا يصمد له صمدا رواه ابوداودفى الصلاة باب ١٠٤ واحمد فى المسند (٤/٦) وابن عدى فى الكامل (٨٠/٧) _



څه قباحت نشته. چې کله د خلګو د تیریدو نه امن وی. او مخکی لاره نه وی. په دے عبارت کي دے اړخ ته اشاره ده. چ د سترے علت مخکی تیریدل دی. نو چې کوم خائې کي د تیریدو غالب ګمان نه وی. نو هلته د سترے په پریخودو کي څه قباحت نشته. البته د امن باوجود ستره لګول مستحب دی.

**د امام د سترې د مقتدي لپاره کفايت**

وَسُتْرَةُ الْإِمَامِ سُتْرَةٌ لِلْقَوْمِ او د امام ستره هم د قوم ستره ده. لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى بِبَطْحَاءِ مَكَّةَ إِلَى عَنَزَةٍ خکه چې نبی ﷺ په بطحا مکه کښې ،،شل،، (هغه لرګے چې سوکه ورته لګیدلے وی.) ته لمونځ کړې وو وَلَمْ يَكُنْ لِلْقَوْمِ سُتْرَةٌ[1] او د قوم لپاره ستره نه وه.

حل اللغة: ① عنزة: ډنډا

تشريح:- كفاية سترة الامام للقوم د جماعت د لمونځ په صورت کي د امام ستره د مقتدیانو لپاره کافی ده.
① دليله دليل هغه حديث دې. کم چې امام بخاری و امام مسلم د حضرت ابوجحيفه رحمه الله نه روایت کړې دې. د علامه ابن الهمام رحمه الله د بیان مطابق دحدیث متن دا دے «انه ﷺ صلى بهم بالبطحاء وبين يديه عنزة والمرأة والحمار يمرون من ورائها» یعنی نبی ﷺ په مقام بطحاء کي خلګو ته لمونځ کولو. او د نبی ﷺ مخکي ،،شل،، وو. او ښځے او خرونه د شل نه اخوا تیریدل. منصف د هدايه رحمه الله فرمائی. چې د مقتدیانو لپاره ستره نه وه. دے نه معلومه شوه. چې د امام ستره د مقتدیانو لپاره کافی ده.

**د سترې د ښخولو کيفيت**

وَيُعْتَبَرُ الْغَرْزُ او ستره ښخول معتبر دی دُونَ الْإِلْقَاءِ وَالْخَطِّ ددے غورځول نه، او نه خط راښکل، لِأَنَّ الْمَقْصُودَ لَا يَحْصُلُ بِهِ خکه چې ددے نه مقصود نه حاصلیږی.

حل اللغة: ① غرز: ورتوښل خښول

تشريح:- المذهبان في الخط مكان السترة ماتن رحمه الله وائی. چې ستره ښخول معتبر دی. ددے په مځکه باندې غورځول یا خط راښکل معتبر نه دې. خو دا په هغه وخت کي دې. چې مځکه نرمه وی. او د سترے ښخول ممکن وی. او که مځکه سخته وی. او دسترے ښخول ممکن نه وی. نو ستره دے په مځکه په اوږد ... سی باندې اړدی. په پلنوالی نه، او په اوږدوالی دے خکه اړدی. چې دا د ښخولو په طريقه شي. او که د ستر اودرولو لپاره لرګے وغیره څه شي نه وی. نو آیا په مځکه باندې خط راښکل معتبر دی. که نه. نو د صاحب د عنايه د بیان مطابق د طرفینو رحمهما الله نه نقل دی. چې خط راشکل معتبر نه دی. او دا څه شي نه دې. ② البته امام شافعی رحمه الله فرمائی. چې یو اوږد خط دے راښکی. او بعضے متاخرینو هم ددے قائل دی. صاحب دهدايه رحمه الله د طرفینو رحمهما الله دلیل بیانوی. او فرمائی. چې د سترے نه مقصود د مصلی او تیریدونکی په مینځ کي حائل کیدل دی. او دا مقصود په دے طريقه نه حاصلیږی. نو خط راښکل او نه راښکل دواړه برابر دی.

**د سترې دعدم وجود په صورت کي د تيريدونکي منع کول**

وَيَدْرَأُ الْمَارَّ او مصلی دے تیریدونکے منع کوی إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ چې ده ته مخکی ستره نه وی. أَوْ مَرَّ بَيْنَهُ وَبَيْنَ السُّتْرَةِ یا د مصلی او سترے په مینځ کښے تیر شو.

حل اللغة: ① مار: تیریدل

تشريح: حكم دفع المار للمصلى مسئله دا ده. چې د مصلی مخکي ستره نه وی. یا ستره خو وی. خو ددوی او مصل په مینځ کي څوك د تیریدو اراده اوکړی. نو مصلی دے د غه تیریدونکے منع کوی. خکه چې نبی ﷺ

1) حديث عون بن ابى جحيفة عن ابيه رواه البخارى فى الصلاة باب ٩٣ رقم الحديث (٤٩٩) ومسلم فى الصلاة رقم الحديث (٢٥٢)_

فرمائيلي دي. «فادرؤا ما استطعتم» يعنى څه خومره ممكن وي.نو دے منع كوئ.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خكه چې نبي ﷺ فرمائي. {اِدْرَءُوْا مَا اسْتَطَعْتُمْ}(١) چې ترڅو پورې كيدے شي.نو تاسو هغه منع كوئ. وَيَدْرَأُ بِالْإِشَارَةِ او منع كوئ.په اشارے سره كَمَا فَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَلَدَيْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا(٢) لكه څنګه چې نبي ﷺ ام سلمے رضي الله عنها د دوو خامنو سره كړي وو

**حل اللغة**: فادرءوا، درء ادرأ (ف): لرې كول

**تشريح:- دليل دفع المار من امام المصلى** پاته شوه دا خبره.چې مصلي به تيريدونكے څنګه منع كوي. اره كي فرمائي.چې په اشاره دے منع كوي.لكه چې نبي ﷺ د ام سلمے رضي الله عنها دوې (دوه) بچي منع كړي وو.نو په دے دصاحب د كفايه او عنايه دا ذكر كړې دې. «ان النبي ﷺ كان يصلي في بيت ام سلمة فقام ولدها عمر ليمر بين يديه فاشار إليه أن قف فوقف ثم قامت بنتها زينب لتمر بين يديه فأشار إليها أن قفي فابت فمرت فلما فرغ من صلاته قال ناقصات العقل ناقصات الدين صواحب يوسف صواحب كرسف يغلبن الكرام ويغلبهن اللئيم» يعنى نبي فخر دوعالم محسن اعظم ﷺ د حضرت ام سلمے رضي الله عنها كور كي لمونځ كولو.نو د ام سلمے رضي الله عنها خوئې عمر ودريدلو.چې د نبي ﷺ وړاندې تير شي.نبي ﷺ هغه ته اشاره اوكړله.چې اودريږه.نو هغه اوديدلو.بيا د ام سلمے ساده لور زينب ودريدله.چې د نبي ﷺ وړاندې تيره شي.نبي ﷺ هغے اړخ ته اشاره اوكړله.چې اودريږه.خو هغے اونه منل.او تيره شو.بيا چې كله صاحب د شريعت د خپل لمونځ نه فارغ شو.نو وے فرمائل. دا د بني آدم لونړه د عقل او دين په اعتبار سره ناقص دي.د يوسف عليه السلام ملګرے دي.او د كرسف (هغه كپړه چې د حيض اونفاس په مهال كې نې زنانه استعمالوي) خاوندانے دي.دوي په شريف او ښه خلګو باندې غالب راځي.او رزيل خلګ په دوي باندې غالب وي.بهر حال دے حديث نه په اشاره سره منع كول ثابت شو.

أَوْ يَدْفَعُ بِالتَّسْبِيْحِ يا دے دے منع كوي په تسبيح وئيلو سره لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه حديث د وجے كوم چې مونږ روايت كړې دې .ددے نه وړاندې وَيُكْرَهُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا او دواړه جمع كول مكروه دي لِأَنَّ بِأَحَدِهِمَا كِفَايَةٌ څكه چې د دے دواړو نه په يوكښے كفايت دې.

**تشريح:- دفع المار بالتسبيح** يا به په تسبيح وئيلو سره دے منع كوي.دليل وړاندې تير شوې دې.يعنى د نبي ﷺ قول چې «اذا نابت أحدكم نائبة في الصلاة فليسبح»

**كراهة الجمع بين الاشارة والتسبيح** او اشاره او تسبيح دواړه جمع كول مكروه دي.څكه چې په دے دواړو كي په يو باندې اكتفاء كول كافي دي.

**د مونځ مكروهات**

## په مانځه كي د عبث حركت كولو كراهت

فَصْلٌ (دا) فصل (د مكروهاتو د لمانځه په بيان كي دے) وَيُكْرَهُ لِلْمُصَلِّي او د مصلي لپاره مكروه دي أَنْ يَعْبَثَ بِثَوْبِهِ أَوْ بِجَسَدِهِ داچې لوبے كوي د خپلو جامو يا بدن سره

**حل اللغة**: ① يعبث، عبث عبثا (س): بازې (لوبې) كول ② ثوب جمع اثواب: كپړې ③ جسد جمع جسود: بدن

**تشريح:- الربط بما قبله** وړاندې د مفسداتو دلمانځه بيان وو.په دے فصل كي دمكروهاتو ذكر دې.

**الفرق بين العبث والسفاهة** د امام بدرالدين كردري رحمه الله د قول مطابق عبث هغه فعل دې.چې په هغے كي غرض خو وي.خو شرعي نه وي.او «سفه» هغه دې.چې په هغے كي هډو څه غرض نه وي.

١) حديث ابن عمر رضى الله عنهما كذا في الدارقطني في سننه (١/٣٦٨) وسنن البيهقي (٢/٣٩٥) رقم الحديث (٢٥١٠) ووقفه مالك في الموطا على عبدالله كتاب قصر الصلاة باب الرخصة في المرور بين يدى المصلى)_

٢) حديث ام سلمة رضى الله عنها رواه ابن ماجه في الاقامة باب ٣٨ واحمد في المسند (٦/٢٩٤)_



مسئله دا ده.چې د مصلي د خپلو جامو يا بدن سره لوبے كول مكروه دي.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي {إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى كَرِهَ لَكُمْ ثَلَاثًا، الله تعالى ستا لپاره درے شيان (څيزونه) مكروه كړي دي وَذَكَرَ مِنْهَا الْعَبَثَ فِي الصَّلَاةِ}(١) او په دغه دريو څيزونو كي يو په لمونځ كي عبث لوبے كول دي.

**دليله الاول** ① دليل دا دې.چې نبي ﷺ فرمائيلي دي.الله تعالى ستاسو لپاره درے شيان (څيزونه) مكروه كړي دي.په دے كي يو په لمانځه كي لوبے كول او په پاته دوو كي يو د روژے په حالت كي ګنده خبرے كولې.او بل شي په مقبره كي په قهقه خاندل،

وَلِأَنَّ الْعَبَثَ خَارِجَ الصَّلَاةِ حَرَامٌ او ددے وجے چې عبث د لمانځه نه بهر حرام دي فَمَا ظَنُّكَ فِي الصَّلَاةِ نو په لمانځه كښے بيا ستا څه ګمان دې.

**حل اللغة**: ظن: ګمان خيال

**تشريح:-** دوهم دليل دا دې.چې عبث فعل د لمونځ نه بهر حرام دې.نو په لمانځه كي ستا څه خيال دې.يعنى په لمانځه كي خو به په درجه اولى سره حرام وي.

## په مانځه كي د ګټكو اړولو راړولو كراهت

وَلَا يُقَلِّبُ الْحَصٰى ګټكي دے نه اړوي راړوي په لمانځه كي لِأَنَّهُ نَوْعُ عَبَثٍ څكه چې دا د عبث يو ډول دې إِلَّا أَنْ لَا يُمَكِّنَهُ مِنَ السُّجُوْدِ البته داچې ده ته سجده كول ممكن نه وي فَيُسَوِّيَهُ مَرَّةً وَاحِدَةً نو يو ځل دے دا برابر كړي

**حل اللغة**: ① لايقلب، قلب تقليبا: واروسته ګرځيدل ② نوع: قسم ③ فيسويه، سوى تسوية: برابرول ④ مرة: يوځل

**تشريح:- كراهة تقلب الحصى** مسئله دا ده.چې د لمونځ په حالت كي ګټكي نه اړوي.څكه چې دا يو ډول عبث فعل دې.البته كه سجده كول ورته ممكن نه وي.نو په يوځل دے اخوا كړي.يعنى يو ځل دے د سجدے ځائې برابر كړي.په غير ظاهر روايت كي د دوو ځلو اجازت هم شته.

{لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي مَرَّةً يَا أَبَا ذَرٍّ وَإِلَّا فَذَرْ}(٢) يو ځل اے ابوذره رضي الله عنه ګني دا دے هم پريږدې

**حل اللغة**: فذر، وذر ذرا (س): پريښول

**تشريح:- دليله** دليل د نبي ﷺ ارشاد دې. «مرة يا اباذر والا فذر» يعنى اے ابوذر يو ځل ګني دا هم پريږده.مراد دا دې.چې د سجدے د ځائې نه يو ځل د ګټكو لرے كاوه اجازت شته.اوكه يوځل ئے هم لرے نكړې.بلكه پريږ

١) قال الزيلعى رحمه الله رواه القضاعى فى مسند الشهاب ... عن يحيى بن ابى كثير مرسلا ثم ذكر ضعف هذا الحديث (نصب الراية ٢/٨٥) والعبدالضعيف شاه فيصل ينقل لكراهة العبث فى الصلاة حديثا من كتابه ،،سنن الصلاة فى فقه الاحناف،، قَالَ حَجَّاجُ الْأَمَوِيُّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ وَرَاٰى رَجُلًا يَعْبَثُ فِي صَلَاتِهِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا تَعْبَثْ فِي صَلَاتِكَ وَاصْنَعْ كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ،رواه احمد فى مسندالصحابة حديث ابن الخطاب رقم ٤٨٠٠ رجاله ثقات )_

١) قال الزيلعى رحمه الله قلت غريب بهذا اللفظ واخرجه احمد فى مسنده عنه قال سالت عن النبى ﷺ عن كل شئ حتى سالته عن مسح الحصى فقال ﷺ واحدة او ،دع، انتهى هكذا عزاه صاحب التنقيح على التحقيق ولم اجده فيه الا عن حذيفة... انتهى كلام ......الزيلعى رحمه الله ثم تتبعه العبدالضعيف شاه فيصل فوجد هذا الحديث برواية ابى ذر رضي الله عنه باللفظ الذى عزاه صاحب التنقيح الى مسند احمد وهو عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ شَيْءٍ حَتّٰى سَاَلْتُهُ عَنْ مَسْحِ الْحَصٰى فَقَالَ وَاحِدَةً اَوْ دَعْ قَالَ مُؤَمَّلٌ عَنْ تَسْوِيَةِ الْحَصٰى اَوْ مَسْحِ مسند احمد مسند الانصار حديث ابى ذرالغفارى رقم الحديث ٢٠٤٧٣ا نعم ثم عزاه الزيلعى رحمه الله برواية ابى ذر رضي الله عنه الى مصنف عبدالرزاق وابن ابى شيبة كذا فى نصب الراية ٢/٨٦)_

نې دي.نودا بهتره ده.

**غرابة الفاظ صاحب الهداية في حديث ابی ذر**﴿علامه ابن الهمام شارح د هدایه رحمه الله لیکلی دی.چې حدیث په دې الفاظو سره غریب دې.عبدالرزاق د حضرت ابوذر ﷺ نه دا حدیث په دې الفاظو کې نقل کړې دې.﴿ سألت النبي ﷺ عن کل شیئ حتى عن مسح الحصى فقال واحدة أودع﴾حضرت ابوذرﷺ فرمائی.چې ما د رسول الله ﷺ نه دهر شي پوښتنه کړې ده.تردې چې د ګټکو اخوا کاوه په اړه کې هم،نو نبی ﷺ اوفرمائیل.چې یو ځل ګنی پرېږ نې ده.او د معیقیب نه روایت دې.﴿ أنه ﷺ قال تمسح الحصى وأنت تصلي فإن كنت لا بد فاعلاً فواحدة﴾یعنی نبی ﷺ فرمائیلی دی.چې ګټکی مه اخوه کوه.په داسې حالت کې چې ته په لمانځه کې نې.اوکه اړتیا پیښ شی.نویوځل.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ فِيهِ إِصْلَاحَ صَلَاتِهِ** ځکه چې په دې کې د مصلی د لمونځ اصلاح ده. |

**حل اللغی**°اصلاح: ټیک کول

**تشریح:- الدليل العقلی**﴿اوعقلی دلیل دا دې.چې ګټکی اخوا کول د خپل لمونځ د اصلاح لپاره دی.او په کوم عمل سره چې د لمونځ اصلاح مقصود وی.نوپه هغې کې څه حرج نشته.

### د ګوتو نه د ټقونو ویستلو او په تشی د لاسونو کیخودلو کراهت

| |
|---|
| **وَلَا يُفَرْقِعُ أَصَابِعَهُ** او د خپلو ګوتو ځخه به ټقونه نه اوباسی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی.{**لَا تُفَرْقِعْ أَصَابِعَكَ** ته د ګوتو نه ټقونه مه اوباسه **وَأَنْتَ تُصَلِّي**}(١) په داسې حال کې چې ته په لمانځه کې نې. |

**حل اللغة**° ① **لايفرقع، فرقع فرقعة**: چغې وهل ② **اصابع**: ګوته

**تشریح:- كراهة فرقعة الاصابع**﴿په لمانځه کې د ګوتو نه ټقونه ویستل هم مکروه دی.

**دلیله**﴿دلیل دا دې.چې نبی ﷺ حضرت علیﷺ ته فرمائیلی وو.﴿ أنى أحب لك ما أحب لنفسى لا تفرقع أصابعك وأنت تصلى﴾یعنی زه ستا لپاره هغه شی خوښوم.کوم چې زه دخپل ځان لپاره خوښوم.نو په حالت د لمانځه کې د خپلو ګوتو نه ټقونه مه اوباسه.د بعضو په نیز د لمانځه نه بهر هم د ګوتو نه ټقونه ویستل مکروه دی.وجه د کراهت دا ده.چې دا د قوم لوط عمل دې.

| |
|---|
| **وَلَا يَتَخَصَّرُ** او تخصر مه کوه **وَهُوَ وَضْعُ الْيَدِ عَلَى الْخَاصِرَةِ** اوتخصر په تشی باندې لاس کیخودل دی **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الِاخْتِصَارِ فِي الصَّلَاةِ**(٢) ځکه چې نبی ﷺ په لمانځه کې د تخصر نه منع فرمائیلې ده. |

**حل اللغی**° ① **لايتخصر، تخصر تخصراً**: په نس لاس کیخودل ② **وضع**: ساتل

**تشریح:-** د لمانځه په حالت کښې تخصر هم مکروه تحریمی دې.ځکه چې په حالت د لمانځه کې دتخصر نه نبی ﷺ منع فرمائیلې ده.حضرت ابوهریرهﷺ روایت کړې دې.﴿ أنه ﷺ نهى عن الإختصار في الصلاة﴾

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ فِيهِ تَرْكَ الْوَضْعِ الْمَسْنُونِ** او ددې وجې چې په دې کښې د مسنون طریقې پرېښول دی. |

**تشریح:- الدليل العقلی**﴿عقلی دلیل دا دې.چې د تخصر په صورت کې د مسنون طریقې پرېښول لازمیږی.اود لمانځه نه بهر هم د سړی او ښځې لپاره مکروه تنزیهی دې.

**الاقوال الثلاثة في تعريف المختصر**﴿ ①دمختصر یو تفسیر خوصاحب د هدایه کړې دې.یعنی په تشو باندې

---

٢) حدیث علی ﷺ رواه ابن ابن ماجه فی الاقامة باب ٤٢ رقم الحدیث ٩٦٥ ولفظه فیه ,,لاتفقع,,)_

١) حدیث ابی هریرةﷺ رواه البخاری فی العمل فی الصلاة باب ١٧ ومسلم فی المساجد ومواضع الصلاة حدیث ٤٧ وابوداود فی الصلاة باب ١٧٢ رقم الحدیث ٩٤٧، والترمذی فی الصلاة باب ١٦٤، والنسائی فی الافتتاح باب ١٢ والدارمی فی الصلاة باب ١٣٨ واحمد فی المسند (٢٣٢/٢ والحاکم فی المستدرک (٢٦٤/١)_



لاسونه کیخودل،هم دا تفسیر غوره او مناسب دې.②او بعضو ونیلی دی.چې مختصر په همسا باندې تکیه لګونکی ته وانی.③او بعضو ونیلی دی.چې تخصر دا دې.چې د سجدې یو آیت حذف کړی.او پاته اووائی.

### په مانځه ښی اوګس طرف ته د کتلو کراهت

| |
|---|
| **وَلَا يَلْتَفِتُ** او په لمانځه کې دې التفات نه کوی **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی "**لَوْ عَلِمَ الْمُصَلِّي** که مصلی پوهیدلې **مَنْ يُنَاجِي** چې چا سره مناجات کوی **مَا الْتَفَتَ**"(١) نو التفات به نې نه کولو |

**حل اللغة**° ①**لايلتفت، التفت التفاتاً**: متوجه کیدل ②**علم، علم علماً** (س): پیژندل ③**يناجي، ناجی مناجاة**: زاری کول، مناجات کول

**تشریح:- كراهة الالتفات في الصلاة**﴿مسئله د ښټ په اړولو سره دې التفات نه کوی.ځکه چې په دې کې کراهت دې.

**دليلاه**﴿ ①دلیل دا دې.چې نبی ﷺ فرمایلی دی.که مصلی پوهیدلې چې چا سره مناجات کوی.نو ﴿ احوا به نې التفات نه کولو.②دغه ډول د نبی ﷺ نه نقل دی.﴿ أن الرحمة تواجه العبد ما دام في صلاته فإذا إلتفت اعرض عنه﴾یعنی الله تعالی برابر بنده ته په لمانځه کې په مخ سره متوجه وی.خوچې کله دې التفات اوکړی.نو هغه خپل مخ دده نه واړوی.

**الدليل العقلی**﴿عقلی دلیل دا دې.چې د ښټ د اړولو سره التفات کاوه کې د بعضې ښټ سره د قبلې نه اوړیدل راځی.که په پوره بدن سره د قبلې نه اوړیدل اوشی.نو په ے سره لمونځ فاسدیږی.نوچې کله بعضې بدن د قبلې نه واوړی.نو لمونځ به مکروه وی.ځکه چې عمل کثیر مفسد د صلاة دې. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.﴿ سألت رسول الله ﷺ من إلتفات الرجل في الصلاة فقال هو إختلاس يختلسه الشيطان من صلاة العبد﴾یعنی ما د رسول الله ﷺ نه په لمانځه کښې دسړی د التفات په اړه کښې پوښتنه اوکړه.نونبی ﷺ اوفرمائیل.چې دا اختلاس (دهوکه کول او تښتول) دی.چې دا د بنده د لمونځ نه شیطان تښتوی.بهر حال ددې روایاتو او عقلی دلیل نه دا خبره ثابته شوه.چې التفات مفسد د صلاة نه دې.اګرچې ښی او ګیه اړخ ته د قبلې نه اوړیدل راشی.خو په دې شرط چې قبلې ته شا رانشی.

| |
|---|
| **وَلَوْ نَظَرَ بِمُؤْخِرِ عَيْنَيْهِ يَمْنَةً وَيَسْرَةً** او که مصلی د سترګ په ګوټونو باندې ښی او ګیه اړخ ته کتل **مِنْ غَيْرِ أَنْ يَلْوِيَ عُنُقَهُ** بغیر د ښت اړولو نه **لَا يُكْرَهُ** نو مکروه نه دی. **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُلَاحِظُ أَصْحَابَهُ فِي صَلَاتِهِ بِمُوقِ عَيْنَيْهِ**(٢) ځکه چې نبی ﷺ به په لمانځه. کې خپلو صحابوﷺ ته د خپلو سترګو په ګوټونو باندې کتل |

**تشریح:- عدم الكراهة بموق العينين**﴿اوکه مصلی د خپلو سترګو په ګوټونو سره ښی او ګیه اړخ ته کتل،بغیر د ښټ اړولو نه،نو دا مکروه نه دی.

**دلیله**﴿ځکه چې نبی ﷺ به په لمانځه کې خپلو صحابوﷺ ته د خپلو سترګو په ګوټونو باندې کتل.البته آسمان اړخ ته کتل مکروه دی.

---

٢) غربه الزیلعی بهذا اللفظ (نصب الرایة ٨٨/٢) واخرجت فی تالیفی سنن الصلاة فی فقه الاحناف مایدل علی کراهة الالتفات فی الصلاة عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الِالْتِفَاتِ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ (البخاری فی الاذان باب الالتفات فی الصلاة رقم ٧٠٩)_

٣) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ وخرجت في سنن الصلاة لهذه المسئلة... عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ انَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْحَظُ فِي الصَّلَاةِ يَمِينًا وَشِمَالًا وَلَا يَلْوِي عُنُقَهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ (الترمذی فی الجمعة باب ماجاء فی الالتفات فی الصلاة رقم ٥٣٦ غربه الترمذی)_

## په مانځه کې د سپي په څېر کيناستلو کراهت

ولایقعي او د سپي پشان دې نه کښيني ولایفترش ذراعیه ونه دې غزوي ليچې خپلې

حل اللغة: ① لایقعي، اقعی اقعاء: دَ سپي پشان کښينستل ② یفترش، افتراشا: خورول

تشریح:- کراهة الاقعاء وافتراش الذراعین ﴿صاحب د قدوری رحمه الله فرمائي. چه‌چې اقعاء او دسجدې په حالت کې دواړه لاسونه خورول مکروه دي.

{لقول ابی ذر رضی الله عنه: خکه‌چې ابوذر ﷺ فرمائي. نهانی خلیلی عن ثلاث: زه خپل خليل د دريو څيزونو نه منع کړې یم. أن انقر نقر الدیك، يو دا چه) تونګې اووهم د چرګ پشان وأن أقعي اقعاء الكلب، (دوهم دا چه) د سپي پشان اقعاء اوکړم وأن أفترش افتراش الثعلب} (۱)(دريم دا چه) د لومبړې پشان لاسونه خپاره کړم

حل اللغة: ① نهانی، نهی نهما (ف): منع کول ② ان انقر، نقر نقرا (ن): مښوکه ③ ثعلب: لومبړه

تشریح:- ؟ دليله قول ابی ذر ﷺ وغرابته ﴿صاحب دهدايه رحمه الله په دليل کښې دحضرت ابوذر ﷺ قول پيش کړې دې. خو د هدايه شارحينو ﷺ فرمائيلي دي. چې امام احمد رحمه الله په خپل مسند کې د ابوهريره ﷺ قول روايت کړې دې. مراد دا دې. چې د ابوذر ﷺ قول غريب دې. د حديث متن دا دې. ﴿نهاني رسول الله ﷺ عن ثلاثة عن نقرة كنقرة الديك وإقعاء كإقعاء الكلب، والتفات كالتفات الثعلب﴾ ابوهريره ﷺ فرمائي ﷺ چې زه رسول الله ﷺ د دريو څيزونو نه منع کړې یم. يو د چرګ پشان تونګو وهلو نه يعني چې سجده دومره زر اوکړم. لکه څنګه‌چې چرګ تونګې وهي. دوهم د سپي پشان ناستې نه. يعني په التحيات کې دداسې ناستې نه، او دواړو سجدو په مينځ کې د سپي پشان کيناستلو نه ئې منع فرمائيلې ده. دريم د لومبړې پشان يو خوا بل خوا کتلو نه ئې منع کړې یم او د ابوذر ﷺ حديث کوم‌چې صاحب د هدايه رحمه الله ذکر کړې دې. په دې کې دريمه خبره دا ده. چې ﴿أن أفترش افتراش الثعلب﴾ يعني د لومبړې پشان (په حالت د سجده کې) د لاسونو خورولو نه ئې منع کړې یم.

والإقعاء: أن یضع الیتیه او اقعاء دا ده. چې کيږدي خپل دواړه کوناتې على الأرض په مځکه باندې وینصب رکبتیه نصبا اودواړه لينګئ اودروي هو الصحیح هم دا صحيح دې.

حل اللغة: ① ان یضع، وضع وضعا (ف): ساتل ② لية: کوناتې

تشریح:- ؟ تفسيري الاقعاء ﴿د اقعاء دوې (دوه) تفسيرونه شوي دي. ① يو د امام طحاوی رحمه الله په نيز او ② بل د امام کرخی رحمه الله په نيز، ① د امام طحاری رحمه الله په نيز اقعاء دا ده. چې په خپلو کوناتو باندې کيني. او خپل دواړه ورونان اودروي. او خپلې دواړه ګونډئ د سينې سره جختې کړي. او دواړه لاسونه په مځکه کيږدي. هم دا صحيح تفسير دې. او هم دا صاحب د هدايه رحمه الله اختيار کړې دې. ② د امام کرخی رحمه الله په نيز اقعاء دا ده. چې خپل دواړه قدمونه اودروي. او په کوناتو باندې کيني. او دواړه لاسونه په مځکه کيږدي.

## په مانځه کې د سلام جواب ورکولو حکم

ولایرد السلام بلسانه او په خپله ژبه دې د سلام خواب نه ورکوي لأنه كلام خکه‌چې دا کلام دې. ولا بیده او نه په خپل لاس سره، لأنه سلام معنى خکه‌چې معنی دا هم سلام دې حتى لو صافح بنية التسليم تردې که د سلام نيت سره ئې مصافحه اوکړله تفسد صلاته نولمونځ فاسديږي.

۱) غربه الزيلعى بهذا اللفظ من حديث ابى ذر ﷺ وخرجت فى «سنن الصلاة» لكراهة الاقعاء والافتراش هذين الحديثين عن علىّ قال قال لى رسول الله صلى الله عليه وسلم لا تُقع بين السجدتين (ابن ماجه فى الصلاة باب الجلوس بين السجدتين رقم ۸۸۴ رجاله ثقات الا حارث فانه قد اختلف فيه) و عن جابر قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا سجد احدكم فليعتدل ولا يفترش ذراعيه افتراش الكلب( ابن ماجه فى الصلاة باب الاعتدال فى السجود رقم ۸۸۱ صححه الالبانى)۔



حل اللغة: ① لایرد، رد ردا (ن): واروسته کيدل، واروسته کول ② صافح، صافح مصافحة: مصافحه کول، لاس ملاوول ③ تسليم: سلام ګرځول ④ تفسد، فسد فسادا (ن): فاسد کيدل

تشریح:- کراهة جواب السلام بالاشارة وفسادها بالجواب باللسان ﴿په لمانځه کې په ژبې سره د سلام خواب ورکول د لمونځ فاسدونکې دې. خکه‌چې دا کلام دې. او په کلام سره لمونځ ماتيږي. نو د سلام په خواب سره به هم لمونځ ماتيږي. ددې خبرې دليل‌چې سلام او د سلام خواب ورکول کلام دې. دا دې. چې يوکس قسم اوخوړلو. چې زه به د فلانی سره خبرې نه کوم. بيا ئې هغه ته سلام اوکړلو. نو دا کس به حانثيږي. او په لاس سره د سلام خواب ورکول مکروه دې. خکه‌چې دا هم معنی سلام دې. نو که د سلام په نيت باندې مصافحه اوکړي. په دې سره لمونځ ماتيږي.

؟ السوال ﴿دلته يو اعتراض دا دې. چې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائيلي دي. ما حضرت بلال ﷺ ته اووئيل. ﴿كيف كان النبي ﷺ يرد عليهم حين كانوا يسلمون عليه وهو في الصلاة قال كان يشير إليه بيده﴾ يعني په کوم وخت کښې‌چې به نبی ﷺ په لمانځه کښې وو. او خلګو به په نبی ﷺ باندې سلام واچولو. نو نبی ﷺ به څنګه خواب ورکولو. بلال ﷺ اوفرمائيل. چې د لاس په اشاره به ئې خواب ور کاوه. د دې نه معلومه شوه. چې د په لاس سره د سلام خواب ورکول مکروه نه دی.

الخواب ﴿دا واقعه د تحريم نه په وړاندې زمانه باندې محمول دې. نو دا د عدم کراهت دليل نه دې.

## په مانځه کې د پړلتئ وهلو او د ويختو معقوص کولو کراهت

ولا یتربع او پړلتئ دې نه وهي إلا من عذر مګر د عذر د وجې لأن فيه ترك سنة القعود خکه‌چې په دې کې د سنت ناستې ترک دې.

حل اللغة: ① لایتربع، تربعا تربعا: په څلوربوړی کښينستل ② قعود: کښينستل

تشریح:- کراهة التربع في الصلاة ﴿مسئله: د لمونځ په حالت کې بغير د عذر نه پړلتئ وهلو سره ناسته مکروه ده. خکه‌چې په دې ناسته کې د سنت ناستې پريښول دي.

تضعيف کراهة التربع خارج الصلاة بدليلين ﴿نو ددې علت په بناء دا ناسته د لمانځه نه بهر هم مکروه ده. خو شمس الائمه سرخسی رحمه الله وغيره دا قول رد کړې دې. ① خکه‌چې د لمانځه نه بهر د نبی ﷺ د خپل صحابو ﷺ سره په پړلتئ ناسته ثابته ده. (فتح القدير) ② دغه ډول په مسجد نبوی ﷺ کې د فاروق اعظم ﷺ په عامه توګه ناسته هم د پړلتئ وه. صحيح خبره هم دا ده. چې د پړلتئ د ناستې په نسبت په دواړه کونډو باندې ناسته تواضع ته زياته نزدې ده. نو د لمانځه په حالت کې هم دا ناسته غوره ده. مګر داچې څه عذر وي.

ولا یعقص شعره او ويخته دې نه معقوص کوي. وهو أن يجمع شعره على هامته او عقص دا دې. چې خپل ويخته په تندی باندې جمع کړي ويشده بخيط او په تار ئې اوتړي، أو بصمغ يا ئې په ګوند باندې يوځائې کړي ليتلبد، چې کلك شي. فقد روي خکه‌چې نقل دي. أنه عليه الصلاة والسلام نهى أن يصلي الرجل وهو معقوص (۱) چې نبی ﷺ د معقوص په حالت کښې د لمونځ کاوه نه منع فرمائيلې ده.

حل اللغة: ① شعر: ويښته ② ان یجمع، جمع جمیعا: جمع کول ③ خیط: تار ④ صمغ: ګوند (سريش)

تشریح:- ؟ کراهة العقص ﴿د لمانځه په حالت کې د سر ويختو کلکول هم مکروه دي. صاحب د کفايه د ويختو د معقوص کاوه درې صورتونه ليکلي دي. ① د سر نه کير چاپيره د ويختو نه کوڅيو جوړې کړي. لکه څنګه‌چې ښځې کوي. ② په تندی ئې جمع کړي. او په تار ئې اوتړي ③ په څه ځليخدار څېز يا ګوند باندې ئې کلك کړي.

؟ دلائل کراهة العقص ① ﴿دليل د ابورافع حديث دې. ﴿قال نهى رسول الله ﷺ أن يصلي الرجل ورأسه

۱) حديث ابى رافع ﷺ اخرجه ابن مجاه فى الاقامة باب ۶۷، وابوداود فى الصلاة باب ۸۷ والترمذى فى الصلاة باب ۱۶۵ وامد فى المسند(۱۴۶/۱) والترمذى فى الصلاة وحسنه والطبرانى فى معجمه واسحاق بن راهويه فى مسنده )۔

معقوص» یعنی نبی ﷺ سړي په دے حالت کښ د لمانځه نه منع کړي دي. چې دده په سر باندې د ویختو چونټه جوړول. ② دغه ډول د نبی ﷺ نه نقل دی. «أمرت أن أسجد على سبعة وأن لا أكف شعراً ولا ثوبا» یعنی ماته په اووه اندامونو باندې د سجدے کاوه حکم شوي دي. او ددے خبرے چې ویخته نه راغونډوم. او نه جامے، او د ویختو په چونټه کاوه کي ددے کف دي. نو ځکه د چونټه کاوه نه منع شوني ده. ③ او د حضرت عمر ﷺ نه نقل دی. «أنه مر برجل ساجد عاقص شعره فحله حلاعنيفاً وقال إذا طول أحدكم شعرة فليرسله ليسجد معه» یعنی حضرت عمر ﷺ یو سړي سره خواه کي تیر شو. او هغه سجده کوله. او د هغه ویختو نه چونټه جوړه شوي وه. نو حضرت عمر ﷺ په سختئ سره هغه پرانستله. او وے فرمائیلی. کله چې په تاسو کښے د چا ویخته اوږده وی. نو هغه دے زړوند پریږدی. چې هم هغے سره سجده کوی.

## په مانځه کي د جامي راغونډول او د سدل كراهت

**وَلَا يَكُفُّ ثَوْبَهُ** و خپله کالی دے نه راغونډوی. **لِأَنَّهُ نَوْعُ تَجَبُّرٍ** ځکه چې په دے کي یو ډول تکبر دي.

**حل اللغة:** ① **لایکف، کف کفا** (ف): راغونډول ② **نوع:** قسم ③ **تجبر:** تکبر

**تشریح:- كراهة كف الثوب** ◉ کف د جامے دا دي. چې کله د سجدے کاوه اراده اوکړی. نو د خپلے مخے یا شاه نه کالی راوچته کړی. اوس حاصل د مسئلے دا دي. چې که کالی په مخکه باندې راوغورځیږی. نو دا دے نه رانیسی. ځکه چې په دے کي یو ډول تکبر دي.

**وَلَا يَسْدُلُ ثَوْبَهُ** او نه دے خپله کالی زوړندوی. **لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ السَّدْلِ،** (۱) ځکه چې نبی ﷺ د زوړندولو نه منع کړي ده **وَهُوَ أَنْ يَجْعَلَ ثَوْبَهُ عَلَى رَأْسِهِ وَكَتِفَيْهِ** او سدل دا دي. چې خپله کالی په سر او اوږو باندې واچوی **ثُمَّ يُرْسِلَ أَطْرَافَهُ مِنْ جَوَانِبِهِ** او ددے اړخونه خپلو طرفونو ته زوړند پریږدی

**حل اللغی:** ① **لایسدل، سدل سدلا:** کپړه زوړندول ② **یجعل، جعل جعلا** (ف): کول، جوړول ③ **کتف:** اوږه ④ **یرسل، ارسل ارسالا:** پریښول ⑤ **اطراف واحد طرف:** اړخ

**تشریح:- كراهة السدل** ◉ او جامے دے په طریقے نه زوړندوی.

**دلیله** ◉ دلیل دا دي. چې امام ابوداود د ابوهریره ﷺ نه روایت کړي دي. «أنه ﷺ نهى عن السدل في الصلاة وان يغطى الرجل فاه» یعنی نبی ﷺ په لمانځه کي د سدل نه منع کړي ده. او ددے نه ئي منع کړي ده. چې سړي خپله خوله پټه کړی. سدل دا دي. چې خپله کالی په خپل سر او اوږو باندې راواچوی. او د هغے اړخونه دواړو طرفونو نه زوړند پریږدی.

**تعریف السدل** ◉ صاحب د کفایه رحمه الله فرمائی. چې سدل دے ته وائی. چې پټو (څادر) یا قباء په خپلو اوږو باندې واچوی. او خپل لاسونه په لستوڼو کي نه اچوی. که د قمیص سربیره وی او که د قمیص لاندې وی.

**وَلَا يَأْكُلُ وَلَا يَشْرَبُ** و (په لمانځه کي) دے نه خوراک کوی او نه څکاك کوی. **لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ** ځکه چې دا د لمونځ په اعمالو کي نه دي.

**تشریح:- عدم الاکل والشرب في الصلاة** ◉ او په لمونځ کي به نه خوراک کوی او نه څکاك کوی. ځکه چې دا د لمونځ په اعمالو کي نه دي. خو که د غاښونو په مینځ کي څه شی وی. او بیا هغه تیر کړی. نو دده لمونځ نه فاسدیږی. ځکه چې کوم شی د غاښونو په مینځ کي وی. هغه د لاړو تابع دي. او د لاړو تیرول د لمونځ فاسدونکے نه دي. نو ددے تابع به هم په تیرولو سره د لمونځ فاسدونکے نه وی.

## په مانځه کي په قصد یا په هیره خوراك څكاك كول

٢) حديث ابى هريرة رواه ابوداود فى الصلاة باب ٨٥ والترمذى فى الصلاة باب ١٦١ واحمد فى المسند (٢٩٥/٢) وابن حبان فى صحيحه انظر موارد الظمان الى زوائد ابن حبان رقم ٤٧٨، والحاكم فى المستدرك (١٥٣/١)ـ



**فَإِنْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ** بیا که مصلی خوراك یا څکاك اوکړلو. **عَامِدًا أَوْ نَاسِيًا** که په قصد وی او که په سهو **فَسَدَتْ صَلَاتُهُ** نو دده لمونځ فاسد شو.

**حل اللغة:** ① **اکل، اکل اکلا** (ن): خوراك ② **شرب، شربا** (س): څښل ③ **عامدا:** په قصد سره ④ **ناسیا:** په هیره سره ⑤ **فسدت، فسد فسادا** (ن): فاسد کیدل

**تشریح:- فساد الصلاة بالاكل والشرب مطلقاً** ◉ مسئله دا ده. چې د لمانځه په حالت کي څواك یا څکاك کول د لمونځ ماتونکی دی. که لمونځ فرض وی او که نفل وی. او خوراك څکاك که په قصد وی او که په سهو یا په نسیان سره،

**لِأَنَّهُ عَمَلٌ كَثِيرٌ** ځکه چې دا عمل کثیر دي

**تشریح:- دلیله** ◉ دلیل دا دي. چې خوراك او څکاك په دے دواړو کښ هریو عمل کثیر دي. او عمل کثیر مفسد د صلاة دي. نو ځکه په دے صورتونو کي لمونځ ماتیږی.

**وَحَالَةُ الصَّلَاةِ مُذَكِّرَةٌ** او د لمونځ حالت یادونکے دي.

**تشریح:- السوال التقدیری** ◉ «وحالة الصلاة مذكرة» دا د یو سوال ځواب دي. سوال دا دي. چې د لمانځه په حالت کښ په هیره سره خوراك څکاك دغه ډول معاف کیدل پکار وو. لکه څنګه چې په حالت د روژه کي معاف دی.

**الجواب** ◉ د لمونځ حالت د روژے د حالت پشان نه دي. ځکه چې د لمونځ حالت یادونکے دے. یعنی د بیدارئ او هوښیارئ حالت دي. نو د لمونځ په حالت کښے خوراك څکاك په هیره او سهو سره نه کیږی. ددے په خلاف د روژے حالت هغه یادونکے نه دي. د دے وجے د روژے په حالت کي هیره او نسیان معاف دی. (ګورئ نه چې د روژے په حالت کښے روژه دار ویده (اوده) کیدے هم شی. او داسے کار هم کولے شی. چې په هغے کي ورته روژه هډو یاده نه وی. ازمترجم)

## د امام په محراب کي د اودریدو حکم

**وَلَا بَأْسَ** وڅه قباحت نشته **بِأَنْ يَكُونَ مَقَامُ الْإِمَامِ فِي الْمَسْجِدِ** چې امام په جمات کي ولاړ وی. **وَسُجُودُهُ فِي الطَّاقِ** او دده سجده په محراب کي وی **وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُومَ فِي الطَّاقِ** و مکروه دا دي. چې امام په محراب کي ولاړ وی.

**حل اللغة:** ① **لاباس:** هیڅ حرج نشته ② **طاق:** محراب، کړکنی ③ **ان یقوم، قام قیاما** (ن): ودریدل

**تشریح:- عدم كراهة السجدة في المحراب** ◉ مسئله که د امام قدمونه په جمات کي وی. او په سجده کول ئې په محراب کي وی. نو په دے کي څه قباحت نشته. ځکه چې اعتبار قدمونو لره دے. نو چې قدم په جمات کي وی. نو دے د مقتدیانو سره برابر دي. اګرچې سجده ئې په محراب کښے وی

**لِأَنَّهُ يُشْبِهُ صَنِيعَ أَهْلِ الْكِتَابِ** ځکه چې دا د اهل کتابو دعمل سره مشابه دي **مِنْ حَيْثُ تَخْصِيصِ الْإِمَامِ بِالْمَكَانِ،** په دے حیثیت چې هغوی د امام ځائې خاص کوی **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ سُجُودُهُ فِي الطَّاقِ** په خلاف ددے چې د امام سجده په محراب کي وی

**حل اللغی:** ① **صنیع:** طریقه ② **تخصیص:** خاص کول

**تشریح:- كراهة السجدة في المحراب** ◉ او که دامام قدمونه هم په محراب کي وی. نو دا مکروه دي. ځکه چې په دے کي د اهل کتابو سره مشابهت دي. ځکه چې دهغوی د امام ځائې مخصوص وی. ددے په خلاف که د امام قدمونه د محراب نه بهر وی. او سجده په محراب کښے وی. نو دا مشابهت نه دي. او په دے باب کي د کراهت وجه هم مشابهت دي. نو چې په کوم صورت کي مشابهت موجود وی. کراهت به وی. او چې په کوم صورت کي

مشابهت نه وي.نو کراهت به نه وي.

**الوجه الاخرى لكراهة القيام في المحراب**◉بعضې حضراتو د کراهت وجه دا بيان کړې دې.که امام يواځې په محراب کښې ولاړ وي.يعنې دده قدمونه په محراب کې وي.نو د امام حالت به بنې او چپه اړخ ته مقتديانو نه پټ وي.اوکه محراب په داسې طريقه وي.چه‌چې د امام حالت پټ نه وي.نود امام يواځې په محراب کې ودريدل هم مکروه نه دي.هم دا قول د ابوجعفر طحاوي رحمه الله دې.(عنايه)

| |
|---|
| **وَيُكْرَهُ أَنْ يَكُونَ الْإِمَامُ وَحْدَهُ عَلَى الدُّكَّانِ** ومکروه دي‌چې امام يواځې په.دوکان‌چې (اوچت ځائې) وي **لِمَا** **قُلْنَا** دے دليل د وجې کوم‌چې موږ بيان کړلو |

**تشريح:- كراهة قيام الامام على الدكان ووجهها**◉او دا هم مکروه دي.چې امام په اوچت ځائې باندې ولاړ وي.او واړه مقتيدان لاندې ولاړ وي.ځکه‌چې په دے کې هم د يهوديانو سره مشابهت دې.اوکه امام سره څه نفر ولاړ وي.نودا مکروه نه دې.

**الاقوال الثلاثة في قدرالارتفاع**◉صاحب د هدايه رحمه الله د اوچتوالي مقدار نه دے بيان کړې.په دے اړه کې څو اقوال دي.①امام طحاوي رحمه الله فرمائي.دچې ميانه قدر سړي د قد برابر وي.نو مکروه دې.اوکه ددے نه کم وي.نو مکروه نه د.هم دا د امام ابويوسف رحمه الله نه منقول دی.②بعضو وئيلي دي.چې دومره اندازه باندې اوچت وي.چې په هغې باندې امتياز واقع کيږي.③او بعضو وئيلي دي.چې د يو ذراع اوچتوالي وي.دا دريم قو په ستره باندې قياس شوېدې.او په دے باندې اعتماد دې.دا خبره ياده ساتل پکار دي.چې عذر نه وي.اوکه عذر وي.نو د امام يواځې په اوچت ځائې باندې اودريدو کې څه کراهت نشته.

| |
|---|
| **وَكَذَا عَلَى الْقَلْبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** وهم دغه ډول ددے په عکس هم په ظاهر روايت کې مکروه دې **لِأَنَّهُ ازْدِرَاءٌ بِالْإِمَامِ** ځکه‌چې دا صورت د امام په حق کې تحقير دې. |

**تشريح:- كراهة قيام المأموم فوق الامام**◉صاحب د کتاب فرمائي.که صورت دد.په عکس وي.يعنې امام کښته وي.او مقتديان اوچت وي.نو د ظاهر روايت مطابق دا مکروه دی.ځکه‌چې په دے صورت کښې د يهوديانو سره مشابهت اګرچې نشته.خو د امام په حق کښې سپکوالے دې.حالانکه موږ لره دده عزت او احترام کول پکار دي.امام طحاوي رحمه الله فرمائي.چې په دے صورت کې د يهوديانو سره مشابهت نشته.نوځکه دا صورت مکروه نه دې.خو ددے ځواب وړاندې دليل کې تير شو. هغه اوګورئ.

## د ناست سړي شاه ته مونځ کول

| |
|---|
| **وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُصَلِّيَ إِلَى ظَهْرِ رَجُلٍ** او د داسې سړی شا اړخ ته لمونځ کاوه کې څه قباحت نشته. **قَاعِدٍ يَتَحَدَّثُ** ځوك‌چې خبرے کوي. |

**حل اللغة:** ①**لاباس**: هيڅ حرج نشته ②**ظهر**: شا ، ملا ③**قاعد**: کيناستونکې

**تشريح:- عدم كراهة الصلاة الى ظهررجل**◉مسئله دا ده.چې د يو داسې کس شاه ته مخ کول او لمونځ کول‌چې هغه خبرے کوي.مکروه نه دی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا رُبَّمَا كَانَ يَسْتَتِرُ بِنَافِعٍ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ**(١) ځکه‌چې ابن عمر رضي الله عنهما به بعضې وخت په بعضو سفرونو کې د نافع رحمه الله نه ستره جوړوله |

**حل اللغة:** ① **يستتر، استتر استتاراً**: پټول، ستره جوړول ② **اسفار واحد سفر**: سفر

**تشريح:- دليله**◉دليل دا دې.چې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به په سفر ويرغه کې د سترے لپاره‌چې کله وونه وغيره

---

١) قال الزيلعي رحمه الله رواه ابن ابى شيبة فى مصنفه ..عن نافع رحمه الله قال كان ابن عمررضى الله عنهما اذا لم يجد سبيلا الى سارية من سوارى المسجد قال لى ولنى ظهرك(نصب الراية ٩٧/٢)_



نه موندلزنو خپل غلام نافع ته به ئې فرمائيل چې خپله شاه کړه راته.

**كراهة الصلاة الى وجه رجل**◉اوکه د بل کس مخ اړخ ته لمونځ کوی.نولمونځ به مکروه وي.

**دليله**◉ځکه چې نقل دي. «أن عمر رضي الله عنه رأى رجلاً يصلي إلى وجه غيره فعزرهما بالدرة وقال للمصلي تستقبل صورة في صلاتك وقال للقاعد أتستقبل المصلي بوجهك»يعنې حضرت عمر رضي الله عنه يو سړې اوليدلو.چې د بل سړی مخ ته ئې لمونځ کولو.نو هغوی په دره باندې دواړه اووهل.او مصلی ته ئې اووئل.چې په خپل لمونځ کې شکل ته مخ کوې.اوناست کس ته ئې اووئيل.ته په خپل مخ باندې د مصلی استقبال کوې.ددے واقعې نه معلومه شوه.چې دا مکروه دی.ګنی فاروق اعظم رضي الله عنه به دومره سختی ولے کوله.البته که د سړی مخ اړخ ته لمونځ کوی.او د مصلی او دده په مينځ کې دريم کس وي.چې د هغه شاه د مصلی مخ اړخ ته وي.نو دا صور غير مکروه دې.

**قول كراهة الصلاة خلف رجل يتحدث**◉دماتن رحمه الله قول «إلى ظهر رجل يتحدث»نه معلومه شوه .چې په دے کې هم څه حرج نشته.چې يو کس لمونځ کوی.او ده سره نزدے څه خلګ خبرے کوی .خو بعضې حضراتو دے ته مکروه وئيلي دی.

**دليله**◉وجه د کراهت دا حديث دې. «أن رسول الله ﷺ نهى أن يصلي الرجل وعنده قوم يتحدثون أونائمون»يعنې د الله تعالى په حقه پيغمبر ﷺ منع فرمائيلے ده.چې سے لمونځ کوی.حالانکه ده سره نزدے څه خلګ خبرے کوی.يا ويده (اوده) وی.

**الجواب من دليل قول الكراهة**◉زموږ د اړخه د حديث ځواب دا دې.چې دا ممانعت په هغه وخت کښې دې.په کوم وخت کې چې د خلګو آوازونه دومره وی.چې دهغې دوجې په لمانځه کې د خطاء کيدو ويره وی.ياويره وی‌که په ويده (اوده) کسانو کې د چا باد خارج شی.نودے به په لمانځه کې په خندا شی.نوکه دا ويره نه وی.نو څه حرج نشته.

## د مونځ ګذار مخکې د مصحف يا توره واقع کيدل

| |
|---|
| **وَلَا بَأْسَ** اوڅه قباحت نشته **بِأَنْ يُصَلِّيَ** که سړې لمونځ کوی. **وَبَيْنَ يَدَيْهِ مُصْحَفٌ مُعَلَّقٌ** او دده وړاندې مصحف اويزاند وی **أَوْسَيْفٌ مُعَلَّقٌ**)يا توره زوړنده وی. |

**حل اللغة:** ①**مصحف**: قرآن مجيد ②**معلق**: زوړند

**تشريح:- عدم كراهة الصلاة الى المصحف والسيف المعلق**◉مصنف رحمه الله فرمائي.که د مصلی مخکې که قران پاک زوړند وی.يا توره زوړنده وی.نو په دے کې کراهت نشته.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُمَا لَا يُعْبَدَانِ**، ځکه‌چې د مصحف او تورے عبادت نه کيږی **وَبِاعْتِبَارِهِ تَثْبُتُ الْكَرَاهَةُ** او کراهت هم په دے اعتبار سره ثابت دې. |

**تشريح:- دليله**◉ځکه‌چې ددےدواړو عبادت نشی کيدې.حالانکه هم د عبادت په اعتبار سره د کراهت حکم لګولے شی.هرکله‌چې د دے دواړو عبادت نشی کيدې.نوکه مخکې دا زوړند وی.نو په لمونځ کاوه کې څه کراهت هم نشته.

**قول كراهة الصلاة الى سيف معلق**۞بعضے عالمانو ﷺ ليكل دى چې دا عمل مكروه دې.

**دليله**۞اودليل ئې دا ذكر كړې دې چې توره د حرب او جنګ آله ده. و په اوسپنه او وسلو كښې سخت ډول حرج او د جنګ امكان شته. نو د لمونځ پشان د تضرع او عاجزئ په مقام كې دا وړاندې كيخودل مناسب نه دى. ونيلے شوى دى چې دا ابن عمر رضي الله عنهما قول دې.

**قول كراهة الصلاة الى المصحف**۞اوچې قرآن مخكې وى. نودے ته په لمونځ كاوه كښې كراهت ددے وجے دې چې په دے كښې د اهل كتابو سره مشابهت دې. خكه چې اهل كتاب دخپلو كتابونو سره هم داسے كوى. ونيلى شوى دى چې دا قول د ابراهيم نخعى رحمه الله دې.

**ترديد قول كراهة الصلاة الى السيف**۞زموږ د اړخه د اول خواب دا دې چې بيشكه توره د حرب او دجنګ آله ده. خو دا خيال هم پكار دې چې لمونځ هم د جنګ خانې دې. هم ددے وجے دامام د اودريدو خانې ته محراب وائى. نو هركله د لمونځ خانې د جنګ دې. نولمونځ ګذار ته مخكې د جنګ آلات كيخودل مناسب دى.

**دليلاه** ۞ ① خكه چې موږ ته په صلاة الخوف كې د خان سره د وسلے كيخودلو حكم شوې دې. الله تعالى فرمائى. ﴿وَلْيَأْخُذُوا﴾ نو توره د لمونځ ګذار مخكښے زوړندول د كراهت سبب نه دې. ② دغه ډول په سفر اوحضر كې به د نبى ﷺ مخكښې د نيزے ستره ښخولے شوه. او نبى ﷺ به هغے اړخ ته لمونځ كولو. او ښكاره ده چې نيزه هم وسله ده. نو ظاهره شوه. چې د مصلى وړاندې د وسلے كيخودلو كې څه كراهت نشته.

**الجواب من القول الثاني**۞د دويمے خبرے خواب دا دې چې اهل كتاب خپل كتاب د مصلى وړاندې د دے وجے نه اړدى. چې د هغے عبادت دې. بلكه ددے وجے اړدى. چې په لمانځه كې هغے ته ګورى. او لوستل كوى. اوښكاره خبره ده. چې دا خو زموږ په نيز هم مكروه دى. بلكه لمونځ ماتوى. خو كه داسے مونځګذار ته كيخودے شى. نو په دے كې څه قباحت نشته. دغه ډول كه زوړند كړې شى. نوهم څه قباحت نشته. (فتح القدير، كفايه)

## د عكس په فرش باندې د مونځ حكم

**وَلَا بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَى بِسَاطٍ** او په داسے فرش باندې په لمونځ كاوه كې څه قباحت نشته **فِيهِ تَصَاوِيرُ** چې په هغے باندې تصويرونه جوړ شوى دى

**حل اللغة:** ① **بساط** خورونه

**تشريح:- عدم كراهة الصلاة على بساط مصور**۞داسے قالين چې چې په هغے باندې تصوريونه جوړ شوى وى. په هغے باندې په لمونځ كولوكې څه قباحت نشته. يعنى بغير د كراهته جائز دې.

**لِأَنَّ فِيهِ اسْتِهَانَةً بِالصُّوَرِ** خكه چې په داسے كاوه كې د تصويرونو تحقير او تذليل دې

**حل اللغة:** ① **استهانة** ذليل كول

**تشريح:- دليله**۞دليل دا دې چې په داسے كاوه كې د تصورينو تحقير او تذليل وى. او موږ ته ددے خبرے حكم شوې دې. كه يو ناپوهه د ساه لرونكى خناورد عكس جوړولو حماقت اوكړى. نو موږ به دغه عكس ذليل او



سپك ګنړواو هغے سره د ذلت او سپكاوى عمل كوو.

**وَلَا يَسْجُدُ عَلَى التَّصَاوِيرِ** او سجده دے په عكس باندې نه كوى **لِأَنَّهُ يُشْبِهُ عِبَادَةَ الصُّورَةِ**، خكه چې دا د عكس د عبادت سره سره مشابهت دې

**حل اللغة:** لايسجد، سجدسجدة (ن): سجده كول

**تشريح:- لايسجد على الصورة في البساط**۞مصنف رحمه الله فرمائى. چې سجده دے په عكس باندې نه كوى. خكه چې دا د عكس د عبادت كولو سره مشابهت دې. د جمع صغير د عبارت حاصل دا دې. چې په تصويردار فرش باندې دے لمونځ كوى. خوسجده دے په عكس باندې نه كوى.

**وَأَطْلَقَ الْكَرَاهَةَ فِي الْأَصْلِ** او په مبسوط كې كراهت مطلق ليكلے شوې دي **لِأَنَّ الْمُصَلَّى مُعَظَّمٌ** خكه چې جائې نماز قابل تعظيم شى دې.

**تشريح:- كراهة الصلاة على البساط مطلقاً**۞په مبسوط كې ليكلى دى. چې په تصويردار فرش باندې لمونځ كول مطلقاً مكروه دى. كه سجده په عكس باندې كوى اوكه نه كوى.

**دليله**۞اودليل ئې دا ذكر كړې دې. چې هغه فرش كوم چې د لمانځه لپاره تيارشوې وى. يعنى مصلى فى نفسه معظمه اومكرمه ده. نو كه په دے كښې عكس وى. نو دے تصويرونو يو ډول تعظيم راحى. حالانكه موږ ته ددے د اهانت حكم شوې دې. نو خكه په جائې نماز باندې د تصويرونو وجود مطلقاً مناسبت نه دې. كه په دے كې په عكس باندې سجده كوى اوكه نه كوى.

**الفرق بين العكس والتمثال والمراد ههنا**۞تصوير هغه وى. كوم چې د الله تعالى دمخلوق سره مشابه جوړ شوې وى. كه د ذى روح وى اوكه د غير ذى روح وى. او تمثال د ذى روح عكس سره خاص دې. خو دلته د ذى روح عكس مراد دې. خكه چې د غير ذى روح په عكس كښے څه كراهت نشته.

**دليله**۞د ابن عباس رضي الله عنهما اثر دې. چې ابن عباس رضي الله عنهما يو مصور ته اووئيل. ﴿إن كنت لا بد فاعلاً فعليك بتمثال غير ذى روح﴾ يعنى كه تا خامخا عكس جوړوئ. نود غير ذى روح شى عكس جوړوه. (فتح القدير)

## د عكس سره د مونځ كولو د كراهت صورتونه

**وَيُكْرَهُ** او مكروه دى **أَنْ يَكُونَ فَوْقَ رَأْسِهِ فِي السَّقْفِ** داچې د مصلى د سر سربيره په بام (چت) كې **أَوْ بَيْنَ يَدَيْهِ** يا دده مخكې **أَوْ بِحِذَائِهِ** يا دده ښى يا چپه اړخ ته **تَصَاوِيرُ** تصويرونه وى **أَوْ صُورَةٌ مُعَلَّقَةٌ** يا د څه شكل زوړند وى

**حل اللغة:** ① **فوق**: سربيره، پورته ② **سقف**: بام (چت) ③ **حذاء**: مخكى ④ **معلقة**: زوړندشوې

**تشريح:- كراهة الصلاة عندالصورة**۞فرمائى. كه د مصلى د سر سربيره په بام (چت) كې يا دده مخكې يا دده ښى يا چپه اړخ ته تصويرونه وى. نو په دے كښې لمونځ كول مكروه دى. يا عكس زوړند وى. نو هم لمونځ مكروه دې.

{الحديث جبريل: خکه چې په حديث جبرئيل کي دی إنّا لاندخل بيتاً موږ داسې کورته نه داخليږو فيه كلب په کوم کي چې سپې وی أو صورة}(١)، يا عکس

حل اللغة: ① لاتدخل،دخل دخولاً (ن): داخليدل ② كلب جمع كلاب: سپې

تشريح:- دليله ⊙دليل د جبرئيل حديث دی. عن أبي هريرة أنه قال إستاذن جبريل على النبي فقال أدخل فقال كيف أدخل وفي بيتك ستر فيه تصاوير أما أن تقلع رأسها أو تجعل بساطا يوطاء فإنا معشر الملائكة لاندخل بيتاً فيه تصاوير (شرح نقايه)يعنى حضرت ابوهريره فرمائى. چې جبرئيل آمين د الله تعالى د نبى نه اجازت اوغوښتلو. نبى ورته اوفرمائيل. داخل شه. جبرئيل ورته اووئيل. څنګه داخل شم. حالانکه ستاسو په کور کي يوه پرده ده. چې په هغې کي تصويرونه دی. يا خو ددې سر کټ کړئ. يا ترې فرش جوړ کړئ. چې خوروله شی. خکه چې موږ د فرښتو ډله داسې کور ته نه داخليږو. چې په هغې کښې تصويرونه وی. ددې حديث نه داسې استدلال کولې شی. چې کوم کور ته فرښتې نه داخليږی. هغه بد ترين کور وی. او لمونځ په بدترينو کورونو کي کول مکروه دی.

المراد من الملائكة ⊙دا خبره دې د نظرورانديږ وی. چې په حديث کي د فرشتو نه مراد د رحمت فرشتې مراد دی. پاته شوې د ساتنه فرشتې نوهغه د دوو وختونو نه علاوه په هيڅ وخت کي د انسان نه نه جلا کيږی. اوهغه دوې (دوه) وختونه دا دی. يو د قضاء حاجت وخت او دوهم د بی بی سره د صحبت کاوه وخت. (شرح نقايه)

ولو كانت الصورة صغيرة او که عکس دومره ورکوټې وی بحيث لاتبدو للناظر چې کتونکی ته په نظر نه راخی لايكره نومکروه نه دی لأن الصغار جدا لاتعبد خکه د ډيرو وړو تصويرونو عبادت نه کيږی.

تشريح:- عدم الكراهة في صورة صغر الحيوان ⊙اوکه هغه عکس دمره ورکوټې وی. چې کتونکی ته نه ښکاره کيږی. نو مکروه نه دی. خکه چې د ډيرو وړو تصويرونو عبادت نه کيږی. نو هغه د بت په حکم کي نه شو.

دليله ⊙ددې تائيد ددې نه هم کيږی. چې حضرت ابوهريره سره يوه انګشتری (ګوتمه) وه. په هغې باندې د دوو مچانو تصويرونه جوړشوی وو.

وجدان خاتم دانيال ⊙يوه واقعه صاحب د فتح القدير ،صاحب د کفايه او ملا علی قاری ټولو ذکرکړې دی. واقعه دا ده. چې د فاروق اعظم د خلافت په زمانه کي د حضرت دانيال (څوک چې پيغمبر تير شوی دی.) انګشتری (ګوتمه) پيدا شوه. د هغې ګوتمې په غمی باندې د يو شرموښ اوشرمخئ اود دواړو په مينځ کي د يو بچی عکس وو. په عکس کښې خودلې شوی و. چې شرموښ او شرمخئ دواړه دا بچې ختی. فاروق اعظم چې کله دا اوليدل. نود دوی په سترګو کي اوښکې راغلې. اوهغه انګشتری (ګوتمه) نې حضرت ابوموسی اشعری ته حواله کړه.

سبب بناء خاتم دانيال ⊙ددې واقعې روسته منظر دا دی. چې بخت نصر مجوسی چې په کوم وخت کښې په

١) حديث ابن عمر(ع) رواه البخاري في بدء الخلق باب ٧ رقم الحديث ٣٢٢٧ واللباس باب ٩٤ رقم الحديث ٥٩٦٠ وابن ماجه في اللباس باب ٤٤)_



تخت باندې کيناستلو. نو هغه ته يو نجومی خبر ورکړلو. چې يو ماشوم به پيدا کيږی. چې تا به هلاکوی. چې دا ئې واوريدلو. نو بخت نصر هر پيدا کيدونکې ماشوم قتل پيل کړل. کله چې دحضرت دانيال مور دانيال اوځيږلو. نو د سلامتيا په اميد ئې دې په يو بيابان ځنګل کي پريښولو. په دې دشت بيابان کي د حقيقی مربی نه سوا بل څوک بنيآدم نه وو. او نه څوک آدم زاد، الله تعالی ددې معصوم ماشوم چې په مستقبل کي به د رشد او هدايت چينه وی. د تربيت دا انتظام اوکړلو. چې يو شرموښ ئې راوږليږلو. چې هغه ددې ماشوم د ضرری ځناورو نه ساتنه کوی. او يو شرمخئ ئې ده ته په شيدې ورکاوه باندې مأموره کړه. دا دواړو به دا نيک ماشوم ځټل. چې لوئې شو. نو حضرت دانيال د ګوتمې په يو غمی باندې دا نقش جوړ کړلو. چې دې ته ګوری اوهروخت د الله تعالی نعمتونه يادوی.

الاستدلال بالواقعة ⊙ددې واقعې نه هم ښکاره شوه. چې د ډير ورکوټی عکس په کور کي ساتل مکروه نه دی. ګنی حضرت عمر به د حضرت دانيال دا انګشتری (ګوتمه) حضرت ابوموسی اشعری ته ولې حواله کوله.

### د سرکټ شوی يا سر وران شوی عکس سره دمونځ حکم

وإذا كان التمثال مقطوع الرأس وکله چې دعکس نه سر کټ شوې وی أي ممحوّ الرأس يعنى سر وران شوې وی. فليس بتمثال نو هغه هډو عکس نه دی لأنه لايعبد بدون الرأس خکه چې د بغير سره عکس عبادت نشی کولې

حل اللغة: ① تمثال جمع تمثيل: عکس ② مقطوع: پريکړې شوې

تشريح:- عدم كراهة الصلاة الى عكس مقطوع الراس ⊙که عکس سر کټ شوې وی. يعنی د هغې سرېيخی وران شوې وی. نو چونکه دا عکس نه دې. بلکه د جماداتو پشان دی. نو خکه دې اړخ ته لمونځ کول مکروه نه دی. صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. چې د بغير سره عکس عبادت نه کيږی.

وصار كما إذا صلى إلى شمع أو سراج او دا داسې شوه. لکه چې څوک موم يا ډيوې اړخ ته لمونځ کوی على ماقالوا ددې وجې چې بعضې مشائخو فرمائيلی دی.

* سراج جمع سُرُج: سراج

تشريح:- المقيس عليه لعدم الكراهة ⊙نو دا داسې شوه لکه چې يو کس لمونځ کوی. او وړاندې شمع يا سراج پرته وی. نو لکه څنګه چې ددې عبادت نه کيږی. نو دغه ډول د سرکټه عکس هم عبادت نه کيږی. او د مصلی وړاندې ددې په کيخودو کي د کراهت وجه هم دا ده. چې ددې عبادت کيږی. نوچې دا وجه موجود نه وی. نو کراهت به هم نه وی. مشائخو هم دا وئيلی دی.

الخلاف في عدم كراهة المقيس عليه ⊙ دبعضې حضراتو قول دا دی. چې مخکې شمع يا سراج پرته وی. نو لمونځ کول مکروه دی. لکه څنګه چې د لمونځ ګذار مخکي انګيتې وی. او په هغې کي لګيدلې سکروټکې وی. يا لمبه وهونکې اور وی. نو دا مکروه دی. خو صحيح قول د عدم کراهت دی.

### په غورځولې شوي بالخ او غورځوي فرش باندې د مونځ كولو حكم

**وَلَوْكَانَتِ الصُّورَةُ عَلَى وِسَادَةٍ مُلْقَاةٍ** او كه عكس په غورځولې شوي بالخت باندې وي **أَوْعَلَى بِسَاطٍ مَفْرُوشٍ** ياپه خوره كړې شوې بستره باندې وي **لَايُكْرَهُ** نو مكروه نه دې **لِأَنَّهَا تُدَاسُ وَتُوطَأُ**، ځكه چې تكيه او فرش پائمال كولے او خورولے شي. **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْوِسَادَةُ مَنْصُوبَةً** په خلاف ددے چې بالخ ولاړ وي **أَوْكَانَتْ عَلَى السُّتْرَةِ** يا عكس په پرده وي. **لِأَنَّهُ تَعْظِيمٌ لَهَا**، ځكه چې دا د عكس تعظيم دې

**حل اللغة:** ① **وسادة** تكيه ② **ملقاة** اچولې شوي ③ **مفروش** خورشوي ④ **تداس، داس دوسًا (ن)** د پښولاندې كول

**تشريح:- عدم كراهة الصلاة على وسادة ملقاة وبساط مفروش**⊛مسئله ،كه عكس په غورځيدلى بالخت باندې وي.يا په خور شوى فرش باندې وي.نو دا مكروه نه دې.ځكه چې بالخت په دے حالت كي پائمال كولے شي.اوفرش خورولے شي.او ظاهره ده.چې په دے صورت كي د عكس توهين اوتذليل دې.تظيم نه وي.ددے تائيد د يو حكايت نه هم كيږي.

**حكاية حسن وعطاء** رحمهما الله⊛حكايت دا دې.چې يو ځل حضرت حسن بصرى او عطاء رحمهما الله يو داسے كور ته ورداخل شو.چې په هغے كي په فرش باندې تصويرونه وو.عطاء ودريدلو.او حسن بصرى په هغے باندې كيناستلو.حضرت حسن بصرى رحمه الله اوئيل.د عكس تعظيم په دے باندې په نه ناسته كي دې.البته كه بالخت ولاړ وي.يا عكس پرده وي.نو مكروه دې.ځكه چې دا د عكس تعظيم دې.يعنى دے سره څه بے احترامى نه ده.

**وَأَشَدُّهَا كَرَاهَةً** او د ټولونه زيات كراهت دا دې **أَنْ تَكُونَ أَمَامَ الْمُصَلِّي** چې عكس د مصلى مخكي وي. **ثُمَّ مِنْ فَوْقِ رَأْسِهِ** بيا داچې د مصلى د سر سربيره وي. **ثُمَّ عَلَى يَمِينِهِ** بيا داچې د مصلى ښى اړخ ته وي **ثُمَّ عَلَى شِمَالِهِ** يا دده چپه اړخ ته وي. **ثُمَّ خَلْفَهُ** بيا د ده روستو اړخ ته.

**تشريح:- درجات كراهة وجود التصوير**⊛(واشدها كراهة الخ)ددے خبره بيان دې.چې د كراهت احاد او افراد د شدت په اعتبار سره مختلف دى.① د ټولو نه زيات كراهت په دے كي دې.چې عكس دمصلى وړاندې وي.② بياچې د ده د سر سربيره وي.③ بيا ددے نه كم چې د مصلى ښى اړخ ته وي.④ بيا ددے نه كم چې چپه اړخ ته وي.⑤ بياچې شاه اړخ ته وي.بعضے عالمانو رحمهم الله وئيلى دى.كه عكس شاه اړخ ته وي.نو مكروه نه دې.خو ددے په كور كي وجود مكروه دې.ځكه چې د لمونځ ځاني خو د داسے څيزونو نه پاكول مستحب دى.كوم چې د فرشتو د داخليدو نه مانع وي.

### د عكس په جامو كي د مونځ كولو كراهت

**وَلَوْلَبِسَ ثَوْبًا** و كه داسے جامے ئے اغوستے وى **فِيهِ تَصَاوِيرُ** چې په هغے كي تصويرونه وى **يُكْرَهُ** نودا مكروه دى. **لِأَنَّهُ يُشْبِهُ حَامِلَ الصَّنَمِ**،ځكه چې دا د بت اوچتونكى سره مشابهت دې **وَالصَّلَاةُ** پاتے شو لمونځ **جَائِزَةٌ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ** نو په دے ټولو مكروهو صورتونو كي جائز دې **لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهَا**، ځكه چې د لمانځه شرطونه جمع دى



**حل اللغة:** ① **لبس، لبس لبسًا(س)**: اغوستل ② **حامل**: اوچتونكي ③ **صنم جمع اصنام**: بت ④ **جميع** واړه

**تشريح:- كراهة الصلاة في الثوب المصور**⊛داسے جامے اغوستل چې په هغے باندې تصيرونه وى.مكروه دى.ځكه چې دا كس دبت اوچتونكى سره مشابه شو.مشابه ورته د دے وجے وئيلے شوې دې.چې په كالى كښې په حقيقت كي بت نه وى.صاحب د هدايه رحمه الله فرمانى.چې په دے ټولو صورتونو كښے لمونځ جائز دې.ځكه چې دلمونځ واړه شرطونه جمع دى.

**وَتُعَادُعَلَى وَجْهٍ غَيْرِمَكْرُوهٍ**،او په غير مكروه طريقه باندې به د لمونځ اعاده كولے شى **وَهٰذَاالْحُكْمُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ** او هم دا حكم د هر هغه لمونځ دې. **أُدِّيَتْ مَعَ الْكَرَاهَةِ** كوم چې په كراهت سره ادا كړى شى.

**حل اللغى:** ① **تعاد،اعاد اعادة** : واروسته كول ② **اديت، ادى تادية** اداكول

**تشريح:- القاعدة في اعادة الصلاة اذا اديت مع الكراهة** ⊛صاحب د هدايه رحمه الله فرمانى.كه لمونځ په مكروه طريقه ادا شى.نو د احتياط تقاضا دا ده.چې دا په غير مكروه طريقه باندې واروسته كړې شى.شيخ قوام الدين كاكى رحمه الله په شرح د ،،منار،،كي د واجب د لفظ تصريح كړې ده.يعنى كه لمونځ د كراهت سره ادا شى.نو د هغے اعاده واجب ده.خو رښتينے خبره دا ده.چې كه لمونځ د كراهت تحريمى سره ادا شى.نو د هغے اعاده واجب ده.ځكه چې مكروه د واجب په مرتبه كي وى.او كه كراهت تنزيهى سره ادا شى.نود هغے اعاده مستحب ده.ځكه چې مكروه تنزيهى د متسحب په مرتبه كښے دے

### غير ذى روح عكس ته د مونځ كولوعدم كراهت

**وَلَايُكْرَهُ** او مكروه نه دې. **تِمْثَالُ غَيْرِذِي الرُّوحِ** د غير ذى روح عكس **لِأَنَّهُ لَايُعْبَدُ** ځكه چې ددے عبادت نه كيږي.

**حل اللغة:** ① **تمثال جمع تماثيل**، عكس

د ترجمې نه مطلب ښكاره دې

### په مانځه كي ضررى ځناور قتلول

**وَلَابَأْسَ** وڅه قباحت نشته **بِقَتْلِ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ فِي الصَّلَاةِ** د مار او لړم په لمانځه كي دننه قتلولو كي

**حل اللغة:** ① **لاباس**: هيڅ باك نشته ② **حية**: مار ③ **عقرب**: لړم ④

**تشريح:- عدم كراهة قتل الاسودين في الصلاة**⊛د لمانځه په حالت كي مار او لړم قتلول بغير د كراهت نه مباح دى.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى { **اُقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ** قتل كړئ.دوې (دوه) تور (ما راو لړم) **وَلَوْ**

كُنْتُمْ فِي الصَّلَاةِ}(١) اګرچې تاسو په لمانځه کې ئې

حل اللغى: ① اقتلوا، قتل قتلاً (ن): قتل کول، وژل

تشریح:- **دلیله**⊛دلیل د نبی ﷺ ارشاد دی. «اقتلوا الأسودین ولو كنتم في الصلاة» په حدیث کې د اسودین نه مراد مار او لړم دی. ژباړه دا شوه. چې مار او لړم قتلوئ. اګرچې تاسو په لمانځه کې یئ.

وَلِأَنَّ فِيهِ إِزَالَةَ الشُّغْلِ او ددې وجې چې په دې کې د زړه مشغولیت لرې کیږي فَأَشْبَهَ دَرْءَ الْمَارِّ نو د تیریدونکی منع کاوه سره مشابه شو

حل اللغى: ① ازالة: زائل کول

تشریح:- **الدلیل ا لعقلی**⊛او عقلی دلیل دا دی. چې مار او لړم وژل ددې وجې جائز دی. چې په دې سره د زړه مشغولیت لرې کیږي. یعنی د مونځګذار نظرچې تر څو پورې په هغې باندې وی. نو دده زړه هغې اړخ ته متوجه وی. او ده ته د لمانځه روح چې حضور قلب دې نه حاصلیږي. ځکه وئیلې شوی دی. چې دې وژنې چې د زړه مشغولیت مو ختم شی. او حضور قلب درته نصیب شی. نو دا د مار او لړم وژل د لمونځ ګذار مخکې د تیریدونکی منع کاوه سره مشابه شو.

**القولان في عدد مرات الضربات**⊛ ①صاحب دعنایه رحمه الله لیکلی دی. چې مصنف د هدایه رحمه الله ددې څه تفصیل نه دې ذکر کړې دی. چې په یو ځل به ئې وژنی او که بار بار وهلو ته ضروت پیښ شی. نو په څو کرته کې به ئې وژنی. هم دا دوهم قول د شمس الائمه سرخسی رحمه الله دی. یعنی که په یو ځل وهلو سره ئې وژل ممکن وی. نو یو ځل به ئې وهی. او که څو ځله وهلو ته اړتیا پیښ شی. نو په دې به هم سرپه نه کوی. حاصل دا دی. چې مقصود ددې قتلول دی. که په یوځل وهلو سره وی. اوکه په ګڼرو وهلو سره وی. دلیل دا دی. چې نبی ﷺ «اقتلوا الأسودین» فرمائیلی دی. او په دې کښې څه تفصیل نشته. ②دبعضې فقهاؤ خیال دا دی. چې که په یوځل وهلو سره قتلول ممکن وی. نو وژنی دی. اولمونځ دې نه راګرځوی. اوکه څوکرته وهل په عمل کښې راشی. نو لمونځ به راګرځوی. ځکه چې دا عمل کثیر دی. اوعمل کثیر مفسد د صلاة دی.

**تضعیف القول الثانی**⊛خو ددې ځواب دا دی. بیشکه چې په څو ځله لرګی وهلو کې عمل کثیر دی. خو دا عمل کثیر داسې دی. چې ددې د شریعت د اړخه رخصت او اجازت دی. لکه په لمانځه کې چې حدث پیښ شی. نو ددې نه روسته د مصلی تلل د کوهی نه اوبه راویستل، او اودس کول دا مجموعه عمل کثیر دی. خو د شریعت د رخصت ور کاوه د وجې مفسد د صلاة نه دی. نو هم دغه ډول دلته هم چونکه د شریعت د اړخه رخصت دی. نو ځکه په بار بار وهلو کې فساد د لمانځه نشته.

١) من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه رواه ابوداود فی الصلاة باب ١٦٥، والترمذی فی الصلاة باب ١٧٠وحسنه والنسائی فی السهو باب ١٢ وابن ماجه فی الاقامة باب ١٤٦ والدارمی فی الصلاة باب ١٧٨ واحمد فی المسند (٢/٢٣٣) وابن حبان انظر موارد الظمان الی زوائد ابن حبان رقم الحدیث ٥٢٨ والحاكم فی المستدرک (٤/٢٧٠)_



وَيَسْتَوِي جَمِيعُ أَنْوَاعِ الْحَيَّاتِ او په دې حکم کښې د مار واړه قسمونه ګډ دی

حل اللغى: ①یستوی، استوی استواءً: برابر کیدل ②جمیع: واړه ③ انواع، واحد نوع: ډول

تشریح:- **القولان في تسوية اقسام الحياة في القتل**⊛ ① فاضل منصف رحمه الله فرمائی. چې په دې حکم کې د مار واړه قسمونه برابر دی. که هغه سپین وی اوکه برګ یا تور، هم دا قول صحیح دی. ځکه چې کوم حدیث موږ روایت کړې دی. هغه مطلق دی. تولو ته ګډ دی. ②فقیه ابوجعفر هندوانی رحمه الله فرمائی. چې بعضې سپین ماران په کورنونو کې اوسیږي. او نیغ ګرځي. هغه پیریان وی. د هغوی قتلول مباح نه دی. ځکه چې د الله تعالی رښتینی پیغمبر ﷺ فرمائیلی دی. «إیاكم والحیة البیضاء فإنها من الجن» یعنی د سپین رنګ مار قتلولو نه ځان ساتئ. ځکه چې دا پیرې وی. په دې کې د لمونځ او غیر لمونځ څه تفصیل نشته. نود داسې ډول مار د قتلولو په لمانځه کې هم اجازت نشته. البته که د وړاندې نه دا اووائی. چې تاسو لاړ شئ: د مسلمانانو لار پریږدئ. ګنې موږ مو قتلوو. اوددې باوجود هم هغه لاړل نه. نود هغه قتلول مباح دی.

هُوَ الصَّحِيحُ هم دا خبره صحیح دې لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا دهغې حدیث د اطلاق د وجې کوم چې موږ روایت کړلو.

تشریح:- **تضعیف الفرق في الحياة**⊛ امام ابوجعفر طحاوی رحمه الله په مارانو کې توپیر کول غلط ګرځولې دی. ځکه چې نبی ﷺ د پیریانو نه وعده اخستې وه. چې دوی به امت ته د مار په صورت کې نه ښکاره کیږي. اونه به د دوی کورونو ته داخلیږي. نوچې دوی وعده ماته کړی. نو قتل ئې مباح شو. هم دا قول شمس الائمه سرخسی رحمه الله اختیار کړې دی. او په حدیث کې د ،،اسودین،، نه مراد صرف تور ماران نه دی. بلکه دا لفظ د عربو په عرف کې د مطلق مار لپاره استعمالیږي. که د هر رنګ وی.

**په مانځه کښې د آیاتونو او تسبیحاتو شمارلو کراهت**

وَيُكْرَهُ ومکروه دی عَدُّ الْآيِ وَالتَّسْبِيحَاتِ بِالْيَدِ فِي الصَّلَاةِ په لمانځه کې په لاس سره تسبیحات یا آیاتونه شمارل وَكَذَلِكَ عَدُّ السُّوَرِ(١س) او هم دا حکم د سورتونو د شمار دی.

حل اللغة: ①عد: شمیرل ②ید جمع ایدی: لاس ③سُور واحد سورة: سورت

تشریح:- **كراهة عد الایات والتسبیحات بالید**⊛مسئله دا ده. چې په لمانځه کې دننه په لاس سره د تسبیحاتو او آیاتونو شمارل مکروه دی. که فرض وی اوکه نفل، دغه ډول د سورتونو شمارل هم مکروه دی.

لِأَنَّ ذَلِكَ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ. ځکه چې دا د لمونځ په اعمالو کې نه دی

تشریح:- **دلیله**⊛ځکه چې د آیاتونو یا تسبیحاتو یا سورتونو شمارل د لمانځه د اعمالو څخې نه دی. دا ظاهر روایت دی. د ،،بالید،، د قید نه معلومه شوه. چې بندونو ته زور ورکول یا په زړه کې یاد ساتل مکروه نه دی. د ،،بالید،، قید نه دا هم معلومه شوه. چې په ژبه دې شمارل نه کوی. ځکه چې په ژبه شمار لمونځ

١) القول الراجح هو قول ابی حنیفة رحمه الله كذا فی رالمحتار(٤٨١\١) والخانیة (٥٨\١) والبحر(٢٩\١٢) والهندیة(١٠٥\١) نقلا عن القول الراجح (١٠٤\١)_

فاسدوی.

فائدة قید،،الصلاة،،۞ ①مصنف رحمه الله د ،،في الصلاة قید ذکر کړلو.او دے اړخ ته ئے اشاره اوکړله.چې د لمانځه نه سوا په بل صورت کي شمارل مکروه نه دی.②خو علامه فخر الاسلام رحمه الله ذکر کړی دی.چې د لمانځه نه بهر هم د تسبیحاتو شمارل بدعت دي.نو دا به نه شماری.اوچې تسبیح وائی.نو شمارل دے نه کوی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى او د صاحبیو رحمهما الله نه نقل دی أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِذَلِكَ چې په دے کي څه قباحت نشته فِي الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ جَمِيعًا مُرَاعَاةً لِسُنَّةِ الْقِرَاءَةِ چې په فرض او نفلو کي د سنت قرات لحاظ ساتلو لپاره وی وَالْعَمَلِ بِمَا جَاءَتْ بِهِ السُّنَّةُ په هغے شی باندې دعمل کاوه لپاره کوم چې په سنت کي راغلے دي

تشریح:-او په غیر ظاهر روایت کښے د صاحبینو رحمهما الله نه نقل دی.آیاتونه یا تسبیحات په فرائضو او نوافلو دواړو کښے شمارلو کي څه قباحت نشت.

دلیلهما ۞د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دی.چې بعضے وخت انسان ته د آیاتونو د شمار اړتیا پیښیږی.مثلاً هغه غواړی.چې په فرائضو کي په مسنون طریقه قرات اوکړی.یعنی څلویښت یا شپیته آیاتونه اولولی.لکه څنګه چې د رسول الله ﷺ د سنت نه ثابت دی.یا مثلاً په صلاة التسبیح کوم چې حدیث کي راغلی دی.په هغے باندې عمل کول غواړی.نو اوس ښکاره ده.چې په دے دواړو صورتونو کي د شمارلو نه بغیر بله څه طرقه نشته.نو په دے وخت کي په شمارلو کي څه قباحت شته.

قُلْنَا مور خواب ورکوو. يُمْكِنُهُ چې د مصلی لپاره ممکن ده أَنْ يَعُدَّ ذَلِكَ قَبْلَ الشُّرُوعِ چې هغه دا په لمانځه کښے د پیل کاوه نه وړاندې شمار کړی فَيَسْتَغْنِي عَنِ الْعَدِّ بَعْدَهُ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو د دے د شمارلو څخه به بے پرواه وی.والله اعلم

تشریح:-.دلیل ابوحنیفة۞د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دي.چې په قرات مسنون باندې عمل کول داسے هم کیدے شی.چې د لمانځه نه وړاندې شمارل اوکړی.او متعین کړی چې په اولنی رکعت کي به د دے خائې نه دے خائې پورې وایم.او په دوهم رکعت کي به د دے خائې نه دے خائې پورې وایم.نو په دے صورت کي په لمانځه کي شمالو ته اړتیا نه پیښیږی.پاته شوه د صلاة التسبیح خبره نو په هغے هم په لاس سره شمارلو ته څه اړتیا نشته.بلکه د ګوتو په بندونو سره شمارلے کیدے شی.والله اعلم بالصواب

فَصْلٌ دا فصل دي وَيُكْرَهُ او مکروه دی. اسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ بِالْفَرْجِ فِي الْخَلَاءِ په بیت الخلاء کي په شرمګاه سره قبلې اړخ ته مخ کول

حل اللغة: ① فرج: شرمګاه ②خلاء: بیت الخلاء.

تشریح:- کراهة الاستقبال الی القبلة مطلقاً۞وړاندې د لمانځه د مکروهاتو بیان وو.په دے فصل کي د لمانځه نه بهر د مکروهاتو بیان دي. مسئله دا ده.چې د قضاء حاجت یعنی متیازو یا غټ اودس ماتی په وخت کښے خپله شرمګاه (ذکر) سره قبلې اړخ ته مخ کول مکروه تحریمی دی.که په کولاؤ ډګر کښ وی.اوکه په آبادئ



کي وی.که مخکی حائل وی اوکه نه وی.په هر صورت کښ مکروه تحریمی دي.

لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ ذَلِكَ(١) څکه چې نبی ﷺ د دے نه منع کړې ده.

تشریح:- دلیله۞دلیل دا دي.چې نبی ﷺ د دے نه منع کړې دي.د نبی ﷺ ارشاد دي. ﴿عن سلمان ﷺ قال قيل له لقد علمكم نبيكم كل شئ حتى الخراء قال أجل لقد نهانا ﷺ أن نستقبل القبلة بغائط أو ببول الحديث﴾ (ابوددود) سلمان فارسی ﷺ نه چا پوښتنه اوکړه.چې تاسو ته ستاسو پیغمبر د هر شی تعلیم درکوی.تردے چې د متیازو کاوه هم (د سائل وینا د توقو په طریقه وه) نو حضرت سلمان فارسی ﷺ اوفرمائیل.آو موږ خپل پیغمبر د متیازو په حالت کي قبلې ته د مخ کاوه نه منع کړی یو.او د ابوداود په بل روایت کښے دی. ﴿إذا أتيتم الغائط فلا تستقبلوا القبلة بغائط ولا بول ولكن شرقوا أو غربوا﴾ یعنی کله چې تاسو د قضاء حاجت لپاره ځئ.نو قبلې ته مه مخ کوئ او مه شاه کوئ.بلکه تاسو مشرق یا لویدیځ (مغرب) اړخ ته مخ کوئ.

من هم اهل الخطاب في الحديث۞یوه خبره په ذهن کي ساتئ.چې د ﴿ولكن شرقوا أو غربوا﴾ حکم خاص کړ د اهل مدینے لپاره دي.څکه چې کعبه مکرمه د مدینے نه نه مشرق اړخ ته ده.او نه لویدیځ اړخ ته.بلکه جنوب اړخ ته ده.زموږ هندوستانیانو لپاره دا حکم نه دي.بلکه زموږ لپاره ﴿ولكن شملوا وجنبوا﴾ دي.یعنی د قضاء حاجت په وخت کي شمال یا جنوب اړخ ته مخ کوئ.اوکینئ.

وَالِاسْتِدْبَارُ يُكْرَهُ فِي رِوَايَةٍ او په یو روایت کي استدبار هم مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ تَرْكِ التَّعْظِيمِ، څکه چې په دے کي ترك تعظیم دي. وَلَا يُكْرَهُ فِي رِوَايَةٍ او په یو روایت کي مکروه نه دی لِأَنَّ الْمُسْتَدْبِرَ څکه چې استدبار کونکے په داسے حال کي وی . فَرْجُهُ غَيْرُ مُوَازٍ لِلْقِبْلَةِ.چې د هغه شرمګاه قبلې ته مخکی نه وی وَمَا يَنْحَطُّ مِنْهُ او څه چې د شرمګاه نه غورځیږی يَنْحَطُّ إِلَى الْأَرْضِ،هغه زمکے اړخ ته ځی

حل اللغة:①استدبار: شاکول ②ترک: پریښول ③ ینحط، انحط انحطاطاً: پریوتل، وتل

تشریح:- الروایتان في استدبار القبلة ①۞استبار قبله یعنی کعبه مکرمے اړخ ته شاه کاوه کي د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه ده روایتونه دی.د یو روایت مطابق قبلې ته شاه کاوه کي هم ترك تعظیم دي.②او په بل روایت کي دا دی.چې قبلې ته شاه کول مکروه نه دی.څکه چې دکوم کس قبلې ته شاه وی.اوناست وی.نو دهغه شرمګاه د قبلې اړخ ته نه وی.اوڅه چې د شرمګاه نه غوځیږی.هغه زمکے اړخ ته غورځیږی.یعنی د متیازو دارے بل اړخ ته ځی.بهر حال قبلې ته دے نه مخ کوی.

بِخِلَافِ الْمُسْتَقْبِلِ په خلاف د قبلې ته د مخ کونکی لِأَنَّ فَرْجَهُ مُوَازٍ لَهَا څکه چې د هغه شرمګاه قبله ته برابر وی وَمَا يَنْحَطُّ مِنْهُ اوچې څه د شرمګاه نه غورځیږی يَنْحَطُّ إِلَيْهَا نو هغه قبلې اړخ ته ځی.

---

١) من حديث ابی ایوب الانصاری ﷺ رواه البخاری فی الصلاة باب ٢٩ رقم الحدیث ٣٩٤ ومسلم فی الصلاة فی الطهارة رقم الحدیث ٥٩ وابوداود فی الطهارة باب ٤ رقم ٩ والترمذی فی الطهارة باب ٦ رقم ٨ والنسائی فی الطهارة باب ١٨ رقم ٥٧ و٥٨ وابن ماجه فی الطهارة باب ١٧ رقم ٣١٨ ومالک فی القبلة رقم ١)_

**تشریح:-** په خلاف د. هغه کسانوچې قبلې ته ئې مخ وی. چې کله هغوی قبلې ته مخ کوی. او کینی. نو د هغوی شرمگاه قبلې ته برابر او مخکی وی. او څه‌چې په متیازو کاوه کې د شرمګاه نه غورځیږی. هغه قبلې ارخ ته غورځیږی. نوځکه استقبال قبله مکروه ګرځولې شوې ده. په دے مسئله کې ډیر تفصیل دې. خو د هغے ډکر د سننو کتابونه دی. د هغې ورځې انتظار کوئ. چې کله تاسو د دوره حدیث په کال ددے مهمے مسئلے بحثونه اورئ.

## د جمات په چت باندې د وطئ، متیازو او غټو بولو کولو کراهت

> **وَتُكْرَهُ** اومکروه تحریمی دی. **الْمُجَامَعَةُ فَوْقَ الْمَسْجِدِ** د جمات په چهت باندې جماع کول **وَالْبَوْلُ** متیازے کول **وَالتَّخَلِّي** و غټ بول کول

**حل اللغة:** ① **مجامعة**: کوروالی کول ② **فوق**: دپاسه، پورته ③ **بول**: بولې

**تشریح:- کراهة الوطی والبول الغائط علی سقف المسجد** مسئله د جمات په چهت باندې جماع کول، متیازے کول او غټ بول کول مکروه تحریمی دی.

> **لِأَنَّ سَطْحَ الْمَسْجِدِ لَهُ حُكْمُ الْمَسْجِدِ** ځکه‌چې د جمات د چهت هم د جمات حکم دې **حَتَّى يَصِحَّ** تردےچې صحیح ده **الِاقْتِدَاءُ مِنْهُ** د چهت نه اقتداء کول **بِمَنْ تَحْتَهُ** په هغه کس پسې کوم‌چې په جمات کې کښته وی.

**حل اللغة:** ① **سطح**: چت ② **یصح، صح صحیحاً (ض)**: صحیح کیدل

**دلائله في ضوء المسائل** ځکه‌چې د جمات چهت هم هغه حکم لری. کوم‌چې د جمات وی. ① که یو کس د جمات په چهت باندې اودریږی، او په هغه امام پسے اقتداء اوکړی. کوم‌چې کښته په جمات کې وی. نو په شریعت کې دا ټیک ده.

> **وَلَا يَبْطُلُ الِاعْتِكَافُ بِالصُّعُودِ إِلَيْهِ**، او چهت ته په ختلو سره اعتکاف نه باطلیږی **وَلَا يَحِلُّ لِلْجُنُبِ الْوُقُوفُ عَلَيْهِ** اود جنب لپاره د جمات په چهت باندې ودریدل حلال نه دی

**حل اللغة:** **صعود**: ورختل

او د جمات چهت ته په ختلو سره د معتکف اعتکاف نه باطلیږی. ③ او د جنب لپاره د جمات په چهت باندې ودریدل جائز نه دی. لکه څنګه‌چې ورله په جمات کې دننه ودریدل جائزنه دی. نو ثابته شوه. چې د جمات د چهت لپاره هم دجمات حکم دې. او په جمات کې دا واړه کارونه کوم‌چې په متن کې ذکر دی. حرام دی، نو دجمات په چهت به هم حرام (مکروه تحریمی) وی.

## د کور د جمات په چهت باندې د متیازو کولو عدم کراهت

> **وَلَا بَأْسَ** او څه قباحت نشته **بِالْبَوْلِ فَوْقَ بَيْتٍ** د داسے کور په چهت باندې متیازے کاوه کې **فِيهِ مَسْجِدٌ** په کوم کور کې چې جمات وی **وَالْمُرَادُ مَا** او مراد هغه خائې دې **أُعِدَّ لِلصَّلَاةِ فِي الْبَيْتِ** کوم‌چې په کور کې دلمانځه لپاره مقرر وی

**حل اللغة:** ① **لاباس**: هیڅ باك نشته ② **اعد، اعد اعداداً**: تیارول



**تشریح:-** ① **عدم کراهة البول علی مسجد البیت** مسئله دا ده. که په کور کې د لمانځه لپاره څه خائې مقرر کړې شی. نو د دغه کور په چهت باندې متیازے او غټ بول کاوه کې څه قباحت نشته.

> **لِأَنَّهُ لَمْ يَأْخُذْ حُكْمَ الْمَسْجِدِ** ځکه‌چې دے د جمات حکم نه دے اخستې

**حل اللغة:** **لم یاخذ، اخذ اخذاً (ن)**: اخستل، نیول

**تشریح:-** ① **دلیله في ضوء المسائل** ① دلیل دادې. چې دے خائې ته دحقیقی جمات حکم نشی ورکولې. تردےچې ددے خرڅول هم کیدے شی. ② او په دے کې وراثت هم جاری کیږی. خو موږ ته په کورونو کې د جمات جوړوول ترغیب راکړې شوې دې. نو د هر مسلمان لپاره مناسب دی. چې په خپل کور کې د لمانځه لپاره خائې مقر کړی. چې په هغے کې سنت او نوافل ادا کوی.

> **وَإِنْ نُدِبْنَا إِلَيْهِ**. اګرچې موږ ته په کورنو کې دجمات جوړولو ترغیب راکړې شوې دې.

**تشریح:-** ① **حکم جعل المساجد في البیوت** ① الله تعالی د حضرت موسی علیه السلام په قصه کې فرمایي **وَاجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ** او په خپلو کورنو کې قبله جوړه کړې. یعنی په خپلو کورونو کې د لمانځه لپاره خائې مقرر کړئ. ② او نبی ﷺ فرمائیلی دی. «لا تتخذوا بیوتکم قبرا» د خپلو کورنو نه مقبره مه جوړوئ مراد دا دې. چې په کورونو کې لمونځ کول مه پریږدئ. چې دا د مقبرے پشان شی. بلکه په کورونو کې لمونځ کوئ. او د الله تعالی عبادت کوئ.

## د جمات دروازې بندولو حکم

> **وَيُكْرَهُ أَنْ يُغْلَقَ بَابُ الْمَسْجِدِ**: او دجمات دروازه بندول مکروه دی. **لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الْمَنْعَ مِنَ الصَّلَاةِ**، ځکه‌چې دا د لمونځ نه منع کاوه سره مشابهت دې

**حل اللغة:** ① **یغلق، اغلق اغلاقاً**: بندول، منع کول

**تشریح:- القولان في تغلیق ابواب المساجد** مسئله ، ① د جمات دروازه بندول مکروه دی. ځکه‌چې دا د لمونځ نه منع کاوه سره مشابهت دې. او د لمونځ نه منع کول حرام دی، د الله تعالی اِرشاد دې. ((**وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ**)) یعنی د هغے کس نه لوئې ظالم څوك کیدے شی. څوك‌چې په جماتونوکې د الله تعالی د ذکر کاوه نه منع کوی.

> **وَقِيلَ** او وئیلی شوی دی **لَا بَأْسَ بِهِ** چې څه قباحت نشته **إِذَا خِيفَ عَلَى مَتَاعِ الْمَسْجِدِ** چې د جمات په سامان باندې ویره وی **فِي غَيْرِ أَوَانِ الصَّلَاةِ** سوا د وختونو دلمانځه نه

**حل اللغة:** ① **خیف، خاف، خوفاً (س)**: ویریدل ② **متاع**: سازوسامان ③ **اوان**: وخت

**تشریح:-** بعضے حضراتو وئیلی دی. که د جمات د سامان ضائع کیدو او د غلا وغیره ویره وی. نو د دروازے په بندولو کې څه قباحت نشته. ځکه‌چې د زمانے د اختلاف په وجه د خلګو حالتونه مختلف کیږی. که تاسو غور اوکړئ. نو په یوه زمانه کې د ښځو جماتونو ته د تلو اجازت وو. خوچې کله د فتنے ویره شوه. نو دوی منع کړې

شوي.بلکه په دے زمانه کي د دوی جماتونو ته راتګ هډو ټیک نه دی.دغه ډول د دے فتنے د لرے کاوه لپاره د جماتونو دروازه بندولو کي څه قباحت نشته.بلکه بندول ئې ټیک دی.

## د جمات دښائسته کولو حکم

| |
|---|
| وَلَابَأسَ وڅه قباحت نشته أَنْ يُنَقَّشَ الْمَسْجِدُ په منقش کاوه دجماتونو کي بِالْجِصِّ په چونه وَالسَّاجِ،د ساج په لرګی. وَمَاءِالذَّهَبِ او د سرو زرو په اوبو باندې |

حل اللغة: ① ينقش،نقش تنقيشا: دَ مختلف رنګونو نقش او نګار ② جص: چونه

تشریح:- کراهة تزين المساجد: په دے مسئله کي د خلګو اختلاف دې. بعضے حضراتو دجماتونو منقش کول او ښائسته کول مکروه ګرځولی دی.

دلائل کراهة تزين المساجد: ①ځکه‌چې يو ځل حضرت علی رضي الله عنه د يو مزخرف (منقش او ښائسته) جمات سره نزدے تير شو.نو دوی اوفرمائيل «لمن هذه البيعة» يعني دا ګرجا د چا ده. ښکاره ده.چې د حضرت علی رضي الله عنه دا فرمائيل په جماتونو کښے د دے عمل د کراهت د وجے وو.②دغه ډول نبی ﷺ د قيامت په نښو کي د جماتونو ښائست هم شمارلے دې.③وليد بن عبدالملك مدينے منورے ته د مسجد نبوی د ښائسته کاوه لپاره مال اوليږلو.نو حضرت عمربن عبدالعزيز هغه په محتاجو خلګو کي خيرات کړل.دا واړه دلائل د جماتونو تزيين په کراهت باندې ګواه دی.

| |
|---|
| وَقَوْلُهُ لَابَأسَ يُشِيْرُإِلَى او د مصنف رحمه الله قول چې «لا باس» دے اړخ ته اشاره کونکې دې أَنَّهُ لَايُؤْجَرُ چې نقش کونکی ته به په نقش کاوه څه نشي ورکولې. عَلَيْهِ لَكِنَّهُ لَايَأْثَمُ بِهِ، خو د دے په وجه به ګناهګار هم نه وی وَقِيْلَ او ونيلی شوی دی. هُوَقُرْبَةٌ چې د جمات نقش او نګار عبادت دې |

تشریح:- عدم كراهة التزين: شمس الامه سرخسی رحمه الله فرمائی.چې د ماتن په قول «لا باس» کښے اشاره ده.چې د جماتونو په منقش کاوه او ښائسته کاوه باندې نه د اجر او ثواب ترتب کيږی.او نه پرے د ګناه او معصيت،بعضے حضرات فرمائی.چې د جماتونو ښائسته کول عبادت دې.

دليله: دليل دا دې.چې الله تعالی موږ ته د جماتونو د عمارت يعنی دے د آبادولو او ښائسته کاوه اړخ ته راغب کړی يو.دالله تعالی ارشاد دې ﴿إِنَّمَا يَعْمُرُمَسٰجِدَاللهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ دغه ډول د الله تعالی کعبه د سرو زرو او سپينو زور په اوبو سره ښائسته کولے شی.ديباج يعنی د ريښم په کپړو کي دا پټولے شی.نو معلومه شوه.چې د الله تعالی کور ښائسته کول عبادت او د ثواب خبره ده.علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلی دی.چې د جماتونو ښائست د عبادت د وجے دې.چې په دے کي د جماتونو تعظيم او توقير دې.

| |
|---|
| وَهٰذَا او دا «لا باس» په هغه وخت کي دې إِذَافَعَلَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ،چې دخپل ذاتی مال نه ئې خرج کوی أَمَّا الْمُتَوَلِّي پاته شو متولی فَيَفْعَلُ مِنْ مَالِ الْوَقْفِ نو هغه به په وقف کي هم هغه کار کوی مَايَرْجِعُ إِلَى اِحْكَامِ الْبِنَاءِ چې په هغے باندې آبادے مضبوطيږی دُوْنَ مَايَرْجِعُ إِلَى النَّقْشِ نه هغه کارچې هغه د نقش او نګار وی |



| |
|---|
| حَتّٰى لَوْفَعَلَ نو که متولی داسے اوکړلو يَضْمَنُ،وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ ضامن به وی.والله اعلم بالصواب |

حل اللغة: ①يرجع، رجع رجوعا (ض): واروسته کيدل، واروسته کول ② بناء: بنا (بنياد)

تشریح:- تنبيه صاحب الهداية: صاحب دهدايه رحمه الله وائی.چې د جماتونو ښائست، عبادت کيدل اويا په دے کي د قباحت نشتوالے په هغه وخت کي دې.چې کله متولی د خپل ذاتی مال نه خرج کوی.خو په دے شرط چې هغه حلال وی.هغه مال دے نه خرج کوی.کوم‌چې د جمات د جوړولو لپاره دد دے مصارفو باندې وقف وی.نو متولی به په وقف مال کښے هم هغه کار کوی.چې په هغے باندې آبادی مضبوطيږی.هغه کار به نه کوی.کوم‌چې د نقش او نګار وی.که داسے ئې اوکړلو.نو متولی به د مال ضامن وی.يعنی متولی به د خپل مال تاوان ورکوی.د ابوبکر رازی رحمه الله نه نقل دی.چې زموږ په زمانه کي د ظالمانو د ويرے دنه بچ کيدو لپاره پاتې شوی مال د عمارت د مضبوطتيا نه روسته دد دے په زينت کي خرج کول جائز دی.يعنی متولی به ضامن نه وی.

# بَابُ صَلَاةِ الْوِتْرِ

ژباړه:- (دا) باب د وتر مونځ (په بيان کې) دې.

تشریح:- کله‌چې مصنف رحمه الله د فرائضو او د هغے د متعلقاتو يعنی وختونو ،کيفيت، ادا او ادائې کامل اوقاصر نه فارغ شو.نو اوس په دے باب کي دَ هغه لمونځ بيان دې.کوم‌چې د فرضو نه کم او د نفلو نه غوره دې.يعنی ،،صلاة وتر،، د دے مناسبت وجه دا ده.چې وړاندې د نوافلو بيان دې.و واجب يعنی وتر ئې د فرضو او نفلو په مينځ کي ذکر کړل.لکه څنګه‌چې د دے حق دې.

## د وترو شرعی حيثيت

| |
|---|
| اَلْوِتْرُوَاجِبٌ عِنْدَأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ[1] وتر د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز واجب دی |

تشریح:- الاختلاف في حكم الوتر: د وترو په مسئله کي د امام ابوحنيفه* نه درے روايات دی.①اول داچې وتر واجب دی.

| |
|---|
| وَقَالَاسُنَّةٌ و صاحبين رحمهما الله فرمائی.چې وتر سنت دی. لِظُهُوْرِآثَارِالسُّنَنِ فِيْهِ ځکه چې په وترو کي د سنتو آثار |

[1] ) القول الراجح هو قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی العناية (٣٦٩/١) وردالمحتار(٤٩١/١) والبحر(٣٧/١) والهندية (١١٠/١) ومراقی الفلاح (ص،٧١) نقلا عن القول الراجح (١٠٥/١)_

# مفید الواعظین

## تالیف:- مولانا شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم،
جامعه اسلامیه چارسده

### خصوصیات

دیو واعظ او مبلغ دپاره چې د کومو څیزونو ضرورت وی په کومو سره چې هغه خپل وعظ او تبلیغ ښائسته کوی اود خلقو په زړونو باندې اثر کوی چې هغوی د غفلت د خوب نه رابیدار شی اود یقظت په میدان روان شی د ګناهونو د کندو نه رابهر شی اود نیکو په ګلستان کښې ورداخل شی د شیطان نه مرور شی اود رحمن سره پخلا شی هغه ټول په دې کتاب کښې موجود دی که په ښه صفاتو ځان موصوف کول دی او که د غلطو صفاتو نه ځان ساتل دی که د بندګانو حقوق ادا کول دی او که د نیکو اعمال فضائل دی او که د اخرت دپاره تیارې دې

**خورونکی**

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵



ښکاره دی حَيْثُ لَا يَكْفُرُ جَاحِدُهٗ نو د وترو منکر نه کافر کیږی وَلَا يُؤَذَّنُ لَهٗ او د وترو لپاره اذان نشته

**تشریح:-** دوهم داچې وتر سنت موکده دی.هم دا صاحبینو رحمهما الله او امام شافعي رحمه الله اختیار کړے دې.③ دریم داچې وتر فرض دی.دا قول د امام زفر رحمه الله او مالکیانو رحمهم الله دې.

**دلائل الصاحبین** رحمهما الله ۞ ① د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چې په وترو کې د سنتو آثار ښکاره دی. مثلاً د سنتو پشان د وترو منکر هم کافر نه دې.او نه د وترو لپاره اذان کولے شی.لکه د سنتو لپاره چې اذان نشته.نو معلومه شوه.چې وتر سنت دی.② صاحب د شرح نقایه رحمه الله د صاحبینو رحمهما الله د اړخه نقلی دلیل بیان کړې دې.دلیل دا دې.چې نبی ﷺ یو بانډیچی ته اوفرمائیل.﴿خمس صلاة کتبهن الله علیك قال هل علی غیرها قـا لا إلا أن تطوع﴾ یعنی الله تعالی په تا باندې پنځه مونځونه فرض کړی دی.بانډیچی اووئیل.آیا ددے نه علاوه هم په ما بادے فرض شته.نبی ﷺ اوفرمائیل.نه مګر داچې نفل کوې.ددے حدیث نه معلومه شوه.چې د پنځه وخته مونځونو نه علاوه پاته واړه نفل دی.نود وترو وجوب نه ثابتیږی.ځکه چې وتر د پنځونو مونځونو نه علاوه دی.③ دوهم داچې په صحیحنوکې د ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل دی.﴿أن النبی ﷺ أوتر علی البعیر﴾ یعنی نبی کریم ﷺ وتر په سپرلۍ باندې کړې دی.او دا خبره ښکاره ده.چې په سولۍ باندې نفل لمونځ ادا کیږی. فرض او واجب نه ادا کیږی.که وتر واجب لمونځ وو.نو نبی ﷺ به په سور باندې نه وو ادا کړې.

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې قَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې نبی ﷺ فرمائیلی دی {اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى زَادَكُمْ صَلَاةً چې الله تعالی ستاسو لپاره یو نوې لمونځ زیاتی کړلو اَلَا وَهِيَ الْوِتْرُ، خبردار چې هغه وتر دی. فَصَلُّوْهَا مَا بَيْنَ الْعِشَاءِ اِلٰى طُلُوْعِ الْفَجْرِ}(۱) نو دا به د ماسخوتن او سهار راختو په مینځ کښې کوی اَمْرٌ وَهُوَ لِلْوُجُوْبِ،په حدیث کښې امر دې.او دامر لپاره د جوب وی. وَلِهٰذَا وَجَبَ الْقَضَاءُ بِالْاِجْمَاعِ،هم ددے وجے د وترو قضاء په اجماع سره واجب ده

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة** رحمه الله ۞ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې.﴿إن الله تعالی زادکم صلاة الا وهی الوتر فصلوها ما بین العشاء إلى طلوع الفجر﴾

**الاستدلال بالوجوه الثلاثة لوجوب الوتر من الحدیث**۞ صاحب د عنایه رحمه الله لیکلی دی.چې ددے حدیث نه په درې طریقو سره استدلال شوې دې.① اول دچې د زیادت نسبت الله تعالی ته شوې دې.اود سنتو نبت رسول الله ﷺ ته کیږی.نو که وتر سنت وې.نو په حدیث کې به الله تعالی ته د نسبت په ځائې رسول ﷺ ته شوې وو.خو چونکه نبی ﷺ ته نسبت نه دے شوې.نو د وترو لمونځ سنت نه دې.بلکه واجب دې.② دوهم داچې په یو شی باندې زیادت په هغه وخت کې کیږی.چې ﴿شی مزید علیه﴾ (په کوم چې زیادت شوی وی.) محدود العدد وی.او دا خبره منلے شوې ده.چې نوافل غیر محدود دی.ددے څه انتهاء نشته.نو زیادت په فرائضو کې کیږی.ځکه چې محدود العدد دی.او چوکه مزید (د کوم چې زیادت شوی وی) د مزید علیه د جنس نه کیدل ضروری دی.نوځکه ددے مقتضی دا ده.چې په فرائضو د کوم شی زیادت شوی وی.یعنی وتر دے هم فرض وی.خو چونکه حدیث خبر واحد دې.او دا غیر قطعی دلیل دې.او په دلیل غیر قطعی سره واجب نه ثابتیږی

۱) من حدیث خارجة بن حذافه رضی الله عنه رواه ابوداود فی الوترباب ۱ رقم ۱۴۱۸ والترمذی فی الوتر باب ۱ رقم ۴۵۲ وابن ماجه فی الاقامة باب ۱۱۴ و الحاکم فی المستدرک (۱/۳۰۶) وحسن اسناده والدارقطنی فی سننه (۲/۳۰) والطبرانی فی معجمه وابن عدی فی الکامل والبیهقی فی السنن الکبری (۲/۶۵۸) رقم ۴۴۶۰)_

.اونه پرے فرض پرے ثابتيږی.نو ځکه وتر واجب نه دی.③دریم داچې په ذکر شوی حدیث کې ﴿فصلوها﴾ د امر صیغه ده.او امر لپاره د وجوب وی.نو د دے نه هم د وجوب ثبوت کیږی.

**دليل ابى حنيفة** رحمه الله ◉صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.وتر چونکه واجب دی.نوځکه ددے قضاء واجب ده.ګنی د سنتو قضاء نه کیږی.

**تائید مذهب ابى حنيفة بالحديث**◉د امام صاحب رحمه الله تائید ددے حدیث نه هم کیږی.چې سردار دوجهان ﷺ فرمائیلی دی.﴿ الوتر حق واجب فمن لم یوتر فلیس منا﴾یعنی وتر حق واجب دی.چاچې وتر اونکړلو.نو هغه زموږ نه نۀ دې.(ابوداود) په مسلم شریف کې د ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث دې.﴿ ان النبی ﷺ قال اوتروا قبل ان تصبحوا﴾یعنی نبی ﷺ فرمائیلی دی.د سهار راختو نه وړاندې وړاندې وتر کوئ.په دے حدیث کښې ﴿اوتروا﴾ د امر صیغه ده.او په وجوب باندې دلالت کوی.

وَإِنَّمَا لَمْ نُكَفِّرْ جَاحِدَهُ او ددے د منکر تکفیر ددے وجے نکیږی لِأَنَّ وُجُوبَهُ ثَبَتَ بِالسُّنَّةِ چې ددے وجوب په سنت سره ثابت دې وَهُوَ الْمَعْنِي او هم دا معنی ده.د هغه قول بِمَا رُوِيَ عَنْهُ کوم چې د ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دې أَنَّهُ سُنَّةٌ چې وتر سنت دی

**حل اللغة**①**جاحد**: انکارکونکې

**تشریح:- الجواب من الدليل العقلى للصاحبين** رحمهما الله ◉د صاحبینو رحمهما الله دارخه د عقلی دلیل ځواب دا دې.چې د وترو منکر ځکه کافر نه دې.چې د وترو ثبوت په سنت غیر متواتره سره دې.او داچې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت شوې دې.چې وتر سنت دی.ددے معنی هم دا ده.چې د وترو ثبوت په سنت سره شوې دې.

وَهُوَ يُؤَدَّى فِي وَقْتِ الْعِشَاءِ او وتر چونکه د ماسخوتن په وخت کښې ادا کولے شی فَاكْتَفَى بِأَذَانِهِ وَإِقَامَتِهِ نو د ماسخوتن اذان او اقامت باندې اکتفاء کړې شوې دې.

**تشریح:-** چونکه د وترو لمونځ د ماسخوتن په وخت کې ادا کولے شی.نو ځکه د ماسخوتن په اذان او اقامت باندې اکتفاء کړې شوې ده.د وترو لپاره د خانله اذان او اقامت اړتیا نشته.

## د وترو درې رکعتونه په یو سلام پوره کول

قَالَ الْوِتْرُ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ وتردرے رکعتونه دی لَا يُفْصَلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ په دے کښې به په سلام سره جدائی نه کوی

**حل اللغة**①**لايفصل، فصل فصلاً** (ض): جلا کول

**تشریح:- الاختلاف في ركعات الوتر وسلامه**◉د وترو د رکعتونو په شمار کې اختلاف دې.او په دے خبره کې هم اختلاف دې.چې وتر به په یو سلام سره کوی.اوکه په دوو سلامنو سره.①د احنافو عالمانو رحمهم الله په نیز د وترو درے رکعتونه په یو سلام سره واجب دی.په مینځ کښے به په سلام ګرځولو سره فصل نه کوی.

لِمَا رَوَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ځکه چې حضرت عائشے رضی الله عنها روایت کړې دې {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ



يُوتِرُ بِثَلَاثٍ }(۱)چې نبی ﷺ درے رکعته وتر کول. وَحَكَى الْحَسَنُ رَحِمَهُ اللَّهُ إِجْمَاعَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى الثَّلَاثِ، (۲)او حسن بصری رحمه الله په درے رکعتونو د مسلمانانو اجماع نقل کړې ده

**حل اللغة**°**حجة**: دلیل

**تشریح:- دلائل الاحناف**◉زموږ دلائل دا دی.①دحضرت عائشه رضی الله عنها نه نقل دی.﴿ أن النبی ﷺ كان يوتر بثلاث ركعات﴾② حسن بصری رحمه الله په یو سلام د وترو د درے رکعتونو اجماع نقل کړې ده.دحسن بصری(نه مروی دی.﴿ قال أجمع المسلمون على أن الوتر ثلاث لايسلم إلا في آخرهن﴾یعنی فرمائی.چې مسلمانانو په دے خبره باندې اجماع کړې ه.چې وتر در رکعتونه دی.صرف ددے په آخر کې به سلام ګرځوی.

﴿③عن عائشة رضی الله عنها قال كان رسول الله ﷺ لا يسلم في الركعتين الأولين من الوتر﴾یعنی حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چې نبی؟ به د وترو په اولنو دوو رکعتون کې سلام نه ګرځولو.④د ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی.﴿ وتر الليل ثلاث كوتر النهار) یعنی د شپے وتر درے رکعتونه دی.لکه د ورځ وترچې درے رکعته دی.د ورځې د وترو نه مراد د ماښام لمونځ دې.(فتح القدير)⑤ ابوخالد بیان کړې دې.چې ما د جلیل القدر تابعی ابوالعالیه رحمه الله نه د وترو په اړه کې پوښتنه اوکړه.نو وے فرمائیل.﴿ علمنا أصحاب رسول الله ﷺ أن الوتر مثل صلاة المغرب هذا وتر الليل وها وتر النهار﴾یعنی موږ ته د نبی ﷺ صحابو رضی الله عنهم تعلیم رکړې دې.چې وتر د ماښام د لمونځ پشان دی.دا د شپې وتر دی.او دا یعنی ماښام د ورځې وتر دی.دے نه هم معلومه شوه.چې د ماښام پشان وتر هم درے رکعتونه دی.⑥عن عائشة رضی الله عنها أن النبی ﷺ كان يوتر بثلاث يقرأ في الركعة الأولى ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ وفي الثانية قل يا ايهاالكافرون وفي الثالثة قل هو الله احد ،والمعوذتين﴾یعنی نبی ﷺ به درے رکعته وتر کول.په اولنی رکعت کښې به ئې ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾او په دوهم رکعت کښے به ئې ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾او په دریم رکعت کې به ئې ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾او معوذتین وئیل.⑦مشهور اثر دې.﴿ نهى رسول الله ﷺ عن البتيراء﴾یعنی نبی ﷺ د صلاة بتیراء یعنی د یو رکعت کاوه نه منع فرمائیلے ده.

هَذَا أَحَدُ أَقْوَالِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ،او هم دا د امام شافعی رحمه الله په اقوالو کې یو قول دې

**تشریح:-** د امام شافعی رحمه الله دوې (دوه) اقوال دی.یو قول خو د احنافو رحمهم الله د قول مطابق دې.

وَفِي قَوْلٍ يُوتِرُ بِتَسْلِيمَتَيْنِ او په یو قول کې به په دو سلامونو سره وتر کوی هُوَ قَوْلُ مَالِكٍ،او هم دا د امام مالک رحمه الله قول دې.

**تشریح:-** دوهم قول دا دې.چې د وترو درے رکعتونه به په دوو سلامونو سره کوی.هم دا قول د امام مالک رحمه الله دې.

وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِمَا او د دواړو خلاف حجت هغه حدیث دې.مَا رَوَيْنَاهُ کوم چې موږ روایت کړلو.

---

۱) من حديث عائشة رضى الله عنها رواه النسائى فى السنن الكبرى(۱/٤٤٠)رقم الحديث ۱٤٠٠ والمستدرک فى الحاكم(۱/۳٤)

۲) قال الزيلعى رحمه الله اخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفه .....عن الحسن قال اجمع المسلحون على ان الوترثلاث لايسلم الا فى اخرهن)_

**تشریح:-** اوبعضو وئیلی دی.چې وتر یو رکعت دې.

**الدلائل الثلاثة لکون الوتر رکعة واحدة**﴿ ①د یو رکعت قائلین د ابن عمر رضی الله عنهما په حدیث سره استدلال کوی.حدیث دا دې.﴿ أن رجلاً سال النبی ﷺ عن صلاة اللیل فقال مثنی مثنی فإذا خشیت الصبح فصل رکعة توتر لـك مـا صلیت﴾یعنی د نبی ﷺ نه یو کس د صلاة اللیل په اړه کي پوښتنه اوکړه.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.دوې (دوه) رکعتونه دی.اوچې تا سره د سهار راختو ویره شی.نو یو رکعت کوه.دا به ستا لپاره د شوی لمونځ وتر شی.② دغه ډول په مسلم شریف کي د ابن عمر رضی الله عنه نه مرفوعاً روایت دې.چې ﴿الوتر رکعة من آخر اللیل﴾یعنی وتر د شپې په آخر کښ یو رکعت دې.③دغه ډول د نبی ﷺ نه روایت دې.﴿ قال من احب ان یوتر بخمس فلیفعل ومن احب أن یـوتر بواحـدة فلیفعـل﴾یعنی نبی ﷺ فرمائیی دی.څوك چې د وترو پنځه رکعته خوښوی.نو دا دې کوی.اوڅوك چې یو رکعت خوښوی.نو دا دې کوی.د وترو د اووه، نهه، اود یوولس رکعتونو تعداد هم مروی دې.(عنایه)

**الجوابان عن دلائل کون الوتر رکعة واحدة**﴿کوم حضرات چې د وترو د یو رکعت قائلین دی.د هغوی د اړخه د پیش کړی ابن عمر رضی الله عنه د حدیث ځواب د امام طحاوی رحمه الله د قول مطابق دا ې.چې د نبی ﷺ قول چې ﴿فـصل رکعة﴾معنی دا ده.چې ﴿صل رکعة مع ثنتین قبلها﴾یعنی نبی ﷺ وویل .چې ددې نه وړاندې دوې (دوه) رکعتونو سره یو رکعت ملاؤ کړه.نو وس درې رکعتونه شول. یو رکعت نشو. دوهم ځواب دا دې.چې د یو رکعت یا پنځه رکعتونه یا اووه یا نهه یا د یوولسو رکعتنو روایت د وترو د استقرار نه وړاندې دې.خوچې کله درې رکعته مقرر شو.نو پاته روایتونه مسنوخ شول.

## په وترو کې د قنوت وئیلو محل

> وَيَقْنُتُ فِي الثَّالِثَةِ قَبْلَ الرُّكُوعِ او د دریم رکعت نه وړاندې دې قنوت وائی.

**حل اللغة:** ①**یقنت، قنت قنوتاً** (ن): اطاعت کول، په لمانځه کي ودریدل، دَ الله تعالی په وړاندې عاجزی کول، دعائې قنوت لوستل﴾

**تشریح:-** **الاختلاف في محل قنوت الوتر**﴿ په دې عبارت کښ د دعاء قنوت محل ذکر دې. زمونږ په نیز د دعاء قنوت محل د رکوع نه وړاندې دې.

> وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ بَعْدَهُ او امام شافعی رحمه الله فرمائی. لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ فِي آخِرِ الْوِتْرِ چې د رکوع نه روسته (دې قنوت وائی) ځکه چې مروی دی.چې نبی ﷺ د وترو په آخر کښ قنوت وئیل وَهُوَ بَعْدَ الرُّكُوعِ (١) او د وترو آخر د رکوع نه روسته وی

**تشریح:-** او د شافعی په نیز د رکوع نه روسته دې.

**دلیل الشافعی**﴿د شافعی دلیل دا دې.چې ﴿أنه ﷺ قنت في آخر الوتر﴾یعنی نبی ﷺ د ترو په آخر کښ قنوت وئیل.او د وترو آخر د رکوع نه روسته وی.نو قنوت به د رکوع نه روسته وائی.

---

١) من حدیث سوید بن غفلة قال سمعت ابابکروعمر وعثمان وعلی رضی الله عنهم یقولون :قنت رسول الله ﷺ فی اخرالوتر وکانوا یفعلون ذلک روه الدارقطنی (٣٢/٢)_



> وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دې. مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ، (٢) چې روایت کړې شوې دې چې نبی ﷺ د رکع نه وړاندې قنوت وئیل

**تشریح:-** **دلیل الاحناف** رحمهم الله﴿ زمونږ دلیل د ابی بن کعب رضی الله عنه روایت دې.﴿ أن رسول الله ﷺ کان یـوتر فیقنـت قبـل الرکـوع﴾یعنی نبی ﷺ بـه وتر کولو.نو قنوت بـه ئې د رکوع نه وړاندې وئیل.کوم الفاظ چې صاحب د ،،هدایه،، بیان کړی دی.هغه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی.

**تائید الاحناف بحدیث انس** رضی الله عنه﴿دغه ډول زمونږ د مذهب تائید دې نه هم کیږی.﴿ عن عاصم الأحول سالت أنساً عن القنوت في الصلاة قال نعم فقلت أکان قبل الرکوع أو بعده قال قبله قلت فإن فلاناً أخبرني عنك أنك قلت بعده قال کـذب إنما قنت رسول الله ﷺ بعد الرکوع شهراً﴾یعنی د عاصم احول نه نقل دی.چې ما د حضرت انس رضی الله عنه نه په لمانځه کښ د قنوت په اړه کي پوښتنه اوکړه .نو هغوی اوفرمائیل.آو ما پوښتنه اوکړه .چې د رکوع نه وړاندې که پس؟ وې فرمائیل.د رکوع نه وړاندې ،ما اوئې.چې فلانی ماته ستاسو د اړخه دا خبر راکړې دې.چې تاسو وائې.چې د رکوع نه روسته انس رضی الله عنه اوفرمائیل.چې هغه کس دروغ وائی.نبی ﷺ صرف یو میاشت د رکوع نه روسته قنوت وئیلې دې.

> وَمَا زَادَ عَلَى نِصْفِ الشَّيْءِ آخِرُهُ اوکوم څیز چې د نیم نه روستو وی.هغه آخر وی.

**تشریح:-** **الجواب من مستدل الشوافع** رحمهم الله﴿دې احادیثو نه معلومه شوه.چې قنوت د رکوع نه وړاندې دې. روستو نه دې.پاتې شو د امام شافعی رحمه الله پیش کړې روایت نه ځواب نو دهغې په اړه کي عرض دا دې .چې په حدیث کي ﴿قنت في آخر الـوتر﴾الفاظ دی.او د رکوع نه په وړاندې ونیلو باندې هم د آخر اطلاق صحیح کیږی.نو دا حدیث زمونږ خلاف حجت نشی جوړیدې.

## په ټول کال کې د قنوت وئیلو حکم

> وَيَقْنُتُ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ او پوره کال به قنوت وائی.

**تشریح:-** **الاختلاف في مدة القنوت**﴿ ①زمونږ په نیز په وترو کي واړه کال دعائې قنوت وئیل واجب دی.

> خِلَافًا لِلشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې فِي غَيْرِ النِّصْفِ الْأَخِيرِ مِنْ رَمَضَانَ د رمضان د نصف اخیر نه سوا

**تشریح:-** دحضرت امام شافعی رحمه الله په نیز صرف په رمضان المبارك په نصف آخیر کي دعائې قنوت وئیل مستحب دی.او بغیر د کراهت نه په واړه کال کي جائزدې.(عین الهدایه)

**دلیل الشافعی** رحمه الله﴿دامام شافعی رحمه الله دلیل دا روایت دې.﴿ أن عمر أمر أبي بن کعب بالإمامة في ليال رمضان وأمر القنوت في النصف الأخیر منه﴾یعنی حضرت عمر رضی الله عنه ابن بن کعب رضی الله عنه ته د رمضان په شپو کي دامامت حکم کړې وو.او د رمضان په آخری نیمه برخه کي د دعاء قنوت.

**الجواب الانکاری من مستدل الشافعی** رحمه الله﴿د امام شافعی رحمه الله پیش کړی د اثر عمر رضی الله عنه ځواب دا دې.چې د قنوت نه مراد په لمانځه کي دننه طول قرات دې.یعنی حضرت عمر رضی الله عنه ابی بن کعب رضی الله عنه ته د رمضان په آخری نیمه برخه کي د طول قرات حکم کړې وو.ددې ځواب نه روسته دا اثر د امام شافعی رحمه الله مستدل

---

٢) من حدیث ابی بن کعب رضی الله عنه رواه النسائیوابن ماجه فی الاقامة باب ١٢٠)_

پاتې نشو.

**الجواب التسليمين مستدل الشافعي** رحمه الله ۞ اوکه تسليم کړې شي هم چې د قنوت نه مراد دعاء قنوت ده.طول قرات نه ده.نو موږ ځواب ورکوو.چې دا د يوصحابي اثر دي.اوامام شافعي رحمه الله د صحابي رضي الله عنه اثر قابل استدلال نه ګڼړي.

**جواب الشوافع عن اعتراض الاحناف** ۞ خو د امام شافعي رحمه الله د اړخه دا وئيلې شي.چې دا اثر ځکه قابل استدلال دې.چې دا منى اجماع ده.ځکه چې حضرت ابى بن کعب رضي الله عنه د صحابو رضي الله عنهم د يو لوئې جماعت په موجودګئ کې امامت ورکړې دې.او هيڅ صحابي پرې انکار نه دے کړې.نو ځکه دا د اجماع قائم مقام شوه.

**الجواب من جواب الشوافع** رحمهم الله ۞ خو موږ په ځواب کې وايو.چې د ابن عمر رضي الله عنه اختلاف ثابت دې.ځکه چې ابن عمر رضي الله عنهما فرمائى. ﴿ لا اعرف القنوت إلا طول القيام﴾ يعنى زما يه نيز د طول قيام نه سوا د قنوت بله څه معنى نشته.نو د ابن عمر رضي الله عنهما د اختلاف باوجود اجماع څنګه منعقد کيدے شي.

| |
|---|
| {لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِلْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځکه چې نبي ﷺ حسن بن على رضي الله عنهما ته فرمائيلى وو.حِينَ عَلَّمَهُ دُعَاءَ الْقُنُوتِ کله چې حسن رضي الله عنه ته دعاء قنوت اوخودلو . اجْعَلْ هَذَا فِي وِتْرِكَ}(١)چې دا په خپلو وترو کې شامل کړى مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير د څه تفصيل نه، |

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ او زموږ دليل دا ديث دې.چې نبي ﷺ حسن بن على رضي الله عنه ته د دعاء قنوت تعليم ورکړلو.او بيائے ورته اوفرمائيل. ﴿ إجعل هذا في وترك﴾ يعنى دا دعاء په خپل وترو کې داخله کړه.په دے کې د رمضان او غير رمضان څه تفصيل نشه.نو پوره کال دعاء قنوت وئيل ثابت شو.

## په وترو کې د فاتحه او سورت د لوستلو حکم

| |
|---|
| وَيَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً او د وترو په هر رکعت کښ به فاتحه او سورت لولى لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چې الله تعالى فرمائيلى دى. {فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ} په قران کې څه آسان وى.هغه لولى. |

**حل اللغة:** ① **يقرأ،قرأ قراءة** (ف): لوستل ② **تيسر تيسراً**:آسانيدل

**تشريح:- وجوب الفاتحة وضم السورة في الوتر** ۞ د وترو په هر رکعت کښ د سور فاتحه او بل يو سورت وئيل په اتفاق سره واجب دى.د صاحبينو رحمهما الله او اما شافعي رحمه الله په نيز خو ددے وجے چې وتر سنت دى.او په سنتو او نوافلو کې په هر رکعت کې قرات شه.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز وتر اګرچې واجب دى.خو چونکه د وترو د وجوب ثبوت په سنت سره دې.او سنت مفيد د يقين نه دى.نو ځکه د دے په وجوب کې يوقسم شک پاتې شو.نو د احتياط د وجے امام ابوحنيفه رحمه الله په هر رکعت کې قرات واجب اوګرځولو.لکه څنګه چې په سنتو او نوافلو کې په هر رکعت کې قرات واجب دې.

دصاحب ،،هدايه،، دالله تعالى په ارشاد (فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) باندې د مطلق قرات لپاره استدلال کيدے شي.خود سورت فاتحة په تعين او په ضم د سورت باندې استدلال نشى کيدې.

## د قنوت لوستلو طريقه

١) من حديث حسن بن على رضي الله عنه رواه ابوداود فى الوتر باب ٥، والترمذى فى الوتر باب ١و، والنسائى فى قيام الليل باب ٥١ وابن ماجه فى الاقامة باب ١١٧ والدارمى فى الصلاة باب ٢١٤ واحمد فى المسند (١٩٩/١، ٢٠٠ وابن حبان فى صحيحه فى الثالث والعشرين من القسم الثانى منه والحاكم فى المستدرک (١٧٢/٣)_



| |
|---|
| فَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَقْنُتَ او که قنوت وئيل غواړى كَبَّرَ نو تکبير دے ووايي |

**حل اللغة:** ① **اراد، اراد ارادة** : اراده کول ② **کبر، کبر تکبيراً**: لوئى بيانول، تکبير وئيل

**تشريح:- تکبير القنوت** ۞ مسئله دا ده.چې په دريم رکعت کې د سورة فاتحه د قرات او ضم د سورت نه روسته چې کله د دعاء قنوت وئيلو اراده اوکړى.نو خپل دواړه لاسونه به د غوږونو پورې پورته کړى.او تکبير دے اووائى.بيا دے دعائ قنوت اووائى.تکبير وئيل واجب دى.

| |
|---|
| لِأَنَّ الْحَالَةَ قَدِ اخْتَلَفَتْ ځکه چې حالت بدل شو وَرَفَعَ يَدَيْهِ او دواړه لاسونه دے پورته کړى وَقَنَتَ او قنوت دے ووايي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلى دى {لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ}(١)لاسونه به نشى اوچتولې.مګر په اووه ځايونو کې وَذَكَرَ مِنْهَا الْقُنُوتَ او په هغه اووه کښ ئې د قنوت ذکر کړې دې. |

**حل اللغة:** ① **اختلفت، اختلف اختلافاً**: مختلف کيدل ② **رفع، رفع رفعاً** (ف) : اوچتول ③ **ايدى واحد يد**: لاس ④ **مواطن**: ځايونه

**تشريح:- دليله** ۞ دليل دا دې.چې د مصلى حالت بدل شو.په دے طريقه چې اول په حقيقى قرات کښ بوخت وو.او اوس په شبيه قرات يعنى دعاء قنوت کې مشغوليږى.او چونکه تکبيرات مشروع شوى دى.د حالت تبديلئ په وخت کې نو ځکه په دے موقع هم تکبير وئيل واجب دې.

**السوال على الدليل** ۞ خو په دے دليل باندې بعضے حضراتو رحمهم الله اعتراض کړې دې.هغه داچې تکبير په هغه وخت کښ مشروع شوې دې.کله چې په افعالو کې دننه تبديلى واقع شى.يعنى د يو فعل نه بل فعل ته د منتقل کيدو په وخت کې ،لکه د ټيټيدو په وخت يا د اودريدو په وخت تکبير مشروع دې.په اقوالو کې دننه د تبديلئ په وخت تکبير مشروع نه دې.تاسو غور اوکړئ.چې مصلى کله ثناء اووائى.او قرات پيل کوى.نو په هغه وخت کې تکبير نشته.حالانکه د ثناء نه روسته د قرات اړخ ته حالت بدليږى.نو معلومه شوه.چې د اختلاف احوال او اقوال په وخت کې تکبير مشروع نه دې.بلکه د اختلاف افعال په وخت کې مشروع دې.

**الجواب من السوال** ۞ ددے ځواب دا دې.چې په دے حالت کې لاسونه پورته کول د نبي ﷺ د قول ﴿لا ترفع الأيدى إلا في سبع مواطن﴾ نه ثابت دى.او په لمانځه کې دننه بغير دتکبير نه د لاسونو اوچتولو غير مشروع دى.لکه تکبير د افتتاح او تکبيرات د اخترونو،نو په دے حديث سره تکبير وئيل هم ثابت شو.

## د وترو نه سوا د قنوت وئيلو حکم

| |
|---|
| وَلَا يَقْنُتُ فِي صَلَاةٍ غَيْرِهَا او د وترو نه سوا به په بل لمونځ کښ قنوت نه وائى |

**تشريح:- الاختلاف في القنوت في غير الوتر** ۞ ① داحنافو عالمانو رحمهم الله په نيز د وتور نه سوا په بل لمونځ کې قنوت نشته.

| |
|---|
| خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي الْفَجْرِ په لمانځه د سهار کښ د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې |

**تشريح:-** امام شافعي رحمه الله فرمائى.چې د سهار په لمانځه کې قنوت مسنون دى.ابونصر بغدادى رحمه الله فرمائى.چې د امام شافعي رحمه الله په نيز د سهار په لمانځه کې قنوت وئيل مسنون دى.

**دليله** ۞ امام شافعي دليل د انس رضي الله عنه حديث دې. ﴿ كان النبى ﷺ يقنت في صلاة الفج إلى أ فارق الدنيا﴾ يعنى

١) غربه الزيعلى رحمه الله بهذا اللفظ و نقل الهيثمى بمعناه عن ابن عباس وعزاه الى معجم الطبرانى مجمع الزوائد (١٠٢/٢)_

نبی ﷺ به د سهار په لمانځه کي قنوت وئیل. ترده چي د دنیا نه رخصت شو.

> لِمَا رَوَى ابْنُ مَسْعُودٍ {رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خکه چي دابن مسعود رضی الله عنه روایت کړی دی. أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ شَهْرًا} چي نبی ﷺ د سهار په لمانځه کي یو میاشت پوري قنوت وئیل. ثُمَّ تَرَكَهُ(١) بیا ئې دا پریښولو
>
> حل اللغة: ① شهر: میاشت ② ترکه، ترک ترکا (ن): پریښول

**تشریح:- دلائل الاحناف** ① د احنافو رحمهم الله دلیل د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث دی. «أن النبی ﷺ قنت في صلاة الفجر شهراً یدعو علی حي من أحیاء العرب» نبی ﷺ یوه میاشت د سهار په لمانځه کي قنوت وئیل. د عربو د یوی قبیلي لپاره ئې خیر کولي. ② په خپله د حضرت انس رضی الله عنه نه نقل دی. چي «قال قنت رسول الله ﷺ في صلاة الفجر شهراً أو قال أربعین یوما علی أهل ذکوان وعصیة حین قتلوا القراء وهم سبعون رجلاً أو ثمانون» یعنی نبی ﷺ یو میاشت یا څلویښت ورځي قنوت وئیلي وو. مقصد هغه خلګو ته خیر کول وو. چاچي اویا یا اتیا قاریان شهیدان کړی وو. ددې حدیث نه هم معلومه شو. چي نبی ﷺ د سهار په لمانځه کښي د څو ورځو نه علاوه دعاء قنوت نه دی وئیلي. ③ ابوعثمان نهدی رحمه الله فرمایي «صلیت خلف أبي بکر رضی الله عنه سنتین وصلیت خلف عمر رضی الله عنه کذلك فلم أر واحداً منهما یقنت في صلاة الفجر» یعنی ما په ابوبکر او عمر رضی الله عنهما پسي دوې (دوه) دوې (دوه) کاله لمونځ کړی دی. خو په دوی کي مې څوك هم د سهار په لمانځه کي د دعاء قنوت په وئیل نه دی لیدلي.

## د صبا په مانځه کي د قنوت نازله وئیلو حکم

> فَإِنْ قَنَتَ الْإِمَامُ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ که امام د سهار په لمانځه کي قنوت وئیل يَسْكُتُ مَنْ خَلْفَهُ نو کوم کسان چي وریسې روستو وی. هغوی دې چوپ وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ(٢) د طرفینو رحمهما الله په نیز
>
> حل اللغة: ① یسکت، سکت سکوتا (ن): خاموش کیدل ② خلف: روستو

**تشریح:- الاختلاف في اتباع الحنفی امامه الشافعی** صورت د مسئلي دا دی. ① که شافعی المسلك د سهار په لمانځه کي دعاء قنوت اووئیل. اومقتدی حنفی المذهب وی. نو په داسې صورت کي د طرفینو رحمهما الله په نیز دې حنفی المسلك مقتدی چوپ وی. قنوت دې نه وائی.

> وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ وامام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی. يُتَابِعُهُ چي د امام اتباع دې کوی لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِإِمَامِهِ، خکه چي مقتدی د خپل امام تابع دی. وَالْقُنُوتُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او د سهار په لمانځه کي قنوت امر مجتهد فیه (یعنی داسې مسئله ده چي د عالمانو په کي اختلاف کړی دی) دی.
>
> حل اللغی: ① تبع: تابع

② او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چي د امام اتباع دې کوی. یعنی حنفی المسلك مقتدی دې هم قنوت وائی.

**دلیل ابی یوسف رحمه الله** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی. چي مقتدی په یقین سره د امام تابع دی. او

---

١) من حدیث علقمة عن عبدالله رضی الله عنه قال الزیلعی رحمه الله رواه الطبرانی فی معجمه وابن ابی شیبة فی مصنفه والطحاوی فی الاثار، انتهی کلامه ورواه البیهقی فی السنن الکبری (٢/٣١) والطحاوی فی شرح الاثار (١/١٤٤)_

٢) القول الراجح هو قول الطرفین کذا فی مجمع الانهر (١/١٢٩) والعنایة (١/٣٨١) والبحر (١/٤٥) والهندیة (١/١١٢) [...]ن القول الراجح (١/١٠٦)_



اصل دا دی. چي مقتدی دامام متابعت اوکړی.

**عدم زوال الیقین بالشک** او د سهار په لمانځه کي قنوت وئیل مختلف فیه دی. خکه چي د بعضې مجتهدینو په نیز د سهار په لمانځه قنوت وئیل مسنون دی. او د بعضو په نیز د سهار په مانځ کښې قنوت وو. خو منسوخ شوی دی. نو ددې اختلاف د وجې د سهار په لمانځه کښې قنوت وئیل او نه وئیل مشکوك او محتمل دې او دا ثابت اصول دی. چي اصل اویقینی شی د شك د وجې نشي پریښولې (پریخودې). نوځکه به د امام تابعداری نه پریږدی. بلکه د امام تابعداری به کوی. حنفی المسلك مقتدی دې هم قنوت وائی.

> وَلَهُمَا او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی. أَنَّهُ مَنْسُوخٌ چي قنوت منسوخ دی وَلَا مُتَابَعَةَ فِيهِ، او په منسوخ کښې متابعت نشته

**تشریح:- دلیل الطرفین رحمهما الله** د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی. چي د سهار په لمانځه کي قنوت وئیل منسوخ شوی دی. خکه چي نبی ﷺ د سهار په لمانځه کي یو میاشت قنوت وئیلې وو. بیا ئې پریښولې (پریخودې) وو. او په منسوخ کي متابعت نشی کولې. نوځکه دې حنفی المسلك مقتدی د قنوت په وئیلو کښې د شافعی المسلك تابعداری نه کوی. بلکه چوپ دې ولاړ وی.

> ثُمَّ قِيلَ بیا وئیلی شوی دی يَقِفُ قَائِمًا چي ولاړه دې وی لِيُتَابِعَهُ چي په هغه خائې کي د امام تابعداری اوکړی فِيمَا تَجِبُ مُتَابَعَتُهُ، په کوم کي چي د امام تابعداری واجب ده وَقِيلَ او بعضو وئیلی دی. يَقْعُدُ تَحْقِيقًا لِلْمُخَالَفَةِ چي مقتدی دې کینی چي مخالفت ثابت شی لِأَنَّ السَّاكِتَ شَرِيكُ الدَّاعِي خکه چي چوپ د دعا کونکی سره شریك وی وَالْأَوَّلُ أَظْهَرُ او اول روایت اظهر دې
>
> حل اللغی: ① تجب، واجب وجوبا (ض): واجب کیدل ② یقعد، قعد قعوداً (ن): کښینستل

**تشریح:- القولان في مایفعله المأموم في صورة عدم الاتباع؟** ① پاتې شوه دا خبره چي مقتدی تابعداری نه کوی. نوځه به کوی؟ نو په دې اړه کي د بعضې حضراتو رائې دا ده. چي مقتدی دې چوپ ولاړ وی. چي په کوم څیز کي تابعداری واجب ده. په هغې کي تابعداری اوشی. یعنی قیام او قنوت دوې (دوه) شیان (څیزونه) دی. نو حنفی المسلك مقتدی دې په قیام کي د خپل امام تابعداری کوی. او په قنوت کي دې تابعداری نه کوی. ② او د بعضو قول دی. چي کله شافعی المسلك امام قنوت وئیل پیل کړی. نو حنفی المسلك دې کینې چي د امام پوره مخالفت ښکاره شی. خکه چي چوپ ولاړ کس د دعا کونکی سره شریك وی. لکه څنګه چي مقتدی قرات نه کوی. اوچپ ولاړ وی. خوددې باوجود د امام سره په قرات کي شریك وی.

**ترجیح القول الاول** صاحب د "هدایه" رحمه الله فرمائی. چي اول قول اظهر دی. یعنی چوپ سړی ولاړ پاتې کیدل اظهر دی.

**توضیح الاظهریة في قول صاحب العنایة** صاحب د عنایه رحمه الله د اظهریت وجې دا ذکر کړی ده. چي د امام فعل په مشروع او غیر مشروع دواړو باندې مشتمل دی. نو قیام کوم چي مشروع دې. په دې کي دې د امام تابعداری کوی. او قنوت کوم چي غیر مشروع دی. په دې کي دې اتباع نه کوی. بلکه چوپ دې ولاړ و.

**توضیح الاظهریة في قول صاحب عین الهدایة** په عین الهدیه کي لیکلی دی. چي اول قول ددې وجې اظهر دی. چي په لمانځه کښې د امام مخالفت کول اګرچي په رکن او شرط کي نه دی. خو بیا هم د دوو وجوهاتو د کبله بد دی. اول داچي دا د اقتداء د شان نه خلاف دی. خکه چي په حدیث کي دی «إنما جعل الإمام لیؤتم به» یعنی امام خو ددې لپاره وی. چي دده تابعداری اوکړی شی. دوهم داچي دا فعل ددې وجې که عمل کثیر

نه دي.مفسد هم نه دي.او لږ مکروه دي.(اودا قاعده ده.چې کله مقابله په مينځ کښې واجب او مکروه کې راشي.نو ترجيح به واجب ته وی.ازمترجم)

**القول الثالث فيما يفعله المأموم الحنفي**@بعضې حضرات فرمائي.چې کله امام قنوت وائي.نو حنفي المسلك مقتدي دې يکني،اوالتحيات وغيره دې اووائي.او د امام نه وړاندې دې سلام واړوي.خکه چې حنفي المسلك مقتدي په نيز په بدعت کښې لګيا شو.نو دده د انتظار څه وجه نشته.مصنف د هدايه رحمه الله دا قول ذكر نكړلو.خکه چې په دې صورت کې سلام کوم چې امر مشروع دي.په دې کې دامام مخالفت لازميږي.اودا مناسب نه ده.

> وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ دې مسئلې په دې خبره دلالت اوکړلو عَلَى جَوَازِ الاقْتِدَاءِ بِالشَّفْعَوِيَّةِ چې په شافعي المسلك پسې اقتداء کول جائز دي وَعَلَى الْمُتَابَعَةِ فِي قِرَاءَةِ الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ او په دې خبره ئې دلالت اوکړلو.چه چې په وترو کښې دې د قنوت په وئيلو کښې د امام تابعداري کوي

**تشريح:- جواز الاقتداء بصاحب المسلك المخالف**@«ودلت المسئلة على جواز الإقتداء» په دې عبارت سره دا بيانول مقصود دي.چې دا مسئله په دوو خبرو دلالت کوي.اول داچې د حنفي المذهب په شافعي المذهب پسې اقتداء کول جائز دي.دغه ډول په مالكي او حنبلي پسې اقتداء کول هم جائزده.دويمه داچې مقتدي د وترو په قنوت کښې د خپل امام تابعداري کوي.خکه چې اختلاف د سهار د قنوت په تابعدارئ کي دي.د وترو په قنوت کي نه دي.نوچې په کوم خائې کي قنوت مسنون بلکه واجب وی.هلته به مقتدي چوپ نه پاتي كيږي.بلكه قنوت به وائي.

> وَإِذَا عَلِمَ الْمُقْتَدِي مِنْهُ او چې کله مقتدي (حنفي په امام (شافعي المذهب نه داسې خبره معلومه کړي مَا يَزْعُمُ بِهِ فَسَادَ صَلَاتِهِ چې په هغې باندې ددې لمونځ ماتيږي كَالْفَصْدِ وَغَيْرِهِ لكه په رګ لګول وغيره لَا يُجْزِئُهُ الِاقْتِدَاءُ بِهِ نو ددې حنفي لپاره دده اقتداء کول کافي نه ده

**تشريح:- صورة عدم جواز الاقتداء بصاحب المسلك المخالف**@صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.که حنفي المسلك مقتدي ته د خپل شافعي المسلك امام د اړخه په يقين سره داسې څه خبره معلومه شي.چې په هغې سره د احنافو د مذهب مطابق لمونځ فاسديږي.نو ددې حنفي لپاره د هغه اقتداء کول جائز نه دي.مثلاً شافعي المسلك امام اودس اوکړلو.بيا ئې رګ اووهل،يا د غير سبيلين نه مرداري اووتله.او اودس ئې راونه ګرخولو.نو دحنفي لپاره د هغه اقتداء جائز نه دي.خکه چې دا شيان (څيزونه) د شوافعو رحمهم الله په نيز ناقض د اودس نه دي.خو د احنافو رحمهم الله په نيز ناقض دي.نوخکه د حنفي المذهب مقتدي د ګمان مطابق دده امام بې اودسه دي.اوپه بې اودسه پسې اقتداء کول جائز نه دي.

> وَالْمُخْتَارُ فِي الْقُنُوتِ الْإِخْفَاءُ او په قنوت کښې غوره پټ وئيل دي لِأَنَّهُ دُعَاءٌ خکه چې دا دعا ده. وَاللَّهُ أَعْلَمُ

**تشريح:- الروايتان في جهر القنوت واخفاءه**@ ①فرمائي. په قنوت کي اخفاء مختار ده.دعاء قنوت ويونکې که مقتدي وی او که منفرد وی.خکه چې قنوت يوه دعا ده.او په دعاکي اخفاء غوره ده.②د بعضې حضراتو خيال دا دي.چې قنوت دې په جهر سره لولي.خکه چې قنوت د قرآن سره مشابه دي.هم دا وجه ده.چې «اللهم إنا نستعينك» په اړه کي صحابو رضي الله عنهم اختلاف کړي دي.چې آيا دا قرآن دې اوکه نه دي.د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قول دا دي.چې قنوت د قرآن سورت دي.او ابی بن کعب رضي الله عنه فرمائي.چې دا قرآن نه دي. عالمان رحمهم الله هم ددې



قائلين دي.خو د احتياط تقاضا هم دا ده.چې حائضه او نفاسه او جنب دې د لوستلو نه ځان ساتي.(کفايه)

**كلمات القنوت**@ صاحب د کفايه ليکلي دي.چې د ټولو نه اوږد قنوت هغه دي.کوم چې د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دي. «اللهم اغفرلنا وللمؤمنين والمؤمنات والمسلمين والمسلمات وألف بين قلوبهم وأصلح بينهم وانصرهم على عدوك وعدوهم اللهم العن كفرة أهل الكتاب الذين يصدون عن سبيلك ويكذبون رسلك ويقاتلو أوليائك اللهم خالف بين كلمتهم وزلزل اقدامهم وأنزل بهم بأسك الذى لا يرد عن القوم المجرمين بسم الله الرحمن الرحيم إنا نستعينك ونستغفرك ونؤمن بك ونتوكل عليك ونثنى عليك الخير ونشكرك ولانكفرك ونخلع ونترك من يفجرك بسم الله الرحمن الرحيم اللهم إياك نعبد ولك نصلي ونسجد وإليك نسعى ونحفد ونرجوا رحمتك ونخشى عذابك إن عذابك بالكفار ملحق» په بعضې رواياتو کي د «اللهم إنا نستعينك» نه پيل شوې ده.

## بَابُ النَّوَافِلِ

ژباړه:- (دا) باب د نوافلو (په بيان کې) دي

**تشريح:-** وړاندې د فرض او واجب بيان وو.په دې باب کي د سنتو او نوافلو بيان دې.د نفل معنى (کوم چې په فرض باندې زياتي وی) چونکه سنتو ته هم ګډ ده.نوخکه ئې په عنوان کښې صرف نوافل ذكر كړل.او د سنتو ذكر اونكړې شو.

### د سنت موكده او غير موكده بيان د ركعتونو تعداد

> السُّنَّةُ رَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ سنت دی.د سهار نه وړاندې دوې (دوه) ركعته السنة ركعتان قبل الفجر وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ او څلور ركعته د ماپښين نه وړاندې وَبَعْدَهَا رَكْعَتَانِ او دوې (دوه) ركعتونه د ماپښين نه روسته وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الْعَصْرِ او څلور ركعته د مازيګر نه وړاندې وَإِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ او كه غواړې نو دوې (دوه) (دې اوكړي) وَرَكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ اود ماښام نه روسته دوې (دوه) ركعته وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الْعِشَاءِ او د ماسخوتن نه وړاندې څلور ركعته وَأَرْبَعٌ بَعْدَهَا او د ماسخوتن نه روسته څلور ركعته وَإِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ او كه غواړې نو دوې (دوه) ركعته(دې اوكړي)

**حل اللغة:** ①قبل: وړاندې

**تشريح:- قسمي السنة**@صاحب د ،،هدايه،، رحمه الله په دې باب کي. اګرچې د سنتو او نوافلو دواړو ذكر كوي.خو د مهميت او اشرفيت په وجه د سنتوذكر وړاندې كړې شو.①بيا د سنتو دوې (دوه) قسمونه دي. موكده او غير موكده ،موكده هغه سنتو ته وائي.په كومو باندې چې نبي ﷺ كله كله د پريخودو سره مواظبت كړې وی.②او غير موكده هغه سنت دي.په كومو باندې چې د الله تعالى نبي ﷺ هميشه ئې نه وي كړې.

**عدد السنن المؤكدة**@سنت موكده دولس ركعتونه دي.د سهار د لمانځه نه وړاندې دوې (دوه) ركعته ،د ماپښين نه وړاندې څلور ركعته ،اود ماپښين نه روسته دوې (دوه) ركعته ،او د ماښام نه روسته دوې (دوه) ركعته ،او د ماسخوتن نه روسته دوې (دوه) ركعته،ددې نه سوا سنت غير موكده دي.

**ذكر صاحب القدوري السنن المؤكدة وغيرالمؤكدة**@صاحب د قدوري رحمه الله موكد او غير موكده دواړه په دې طريقه ذكر كړي دي.چې د سهار د لمانځه نه وړاندې دوې (دوه) ركعته،او د ماپښين نه وړاندې څلور ركعته،اود ماپښين نه روسته دوې (دوه) ركعته دي.د مازيګر نه وړاندې څلور ركعته دي.كه غواړي نو په

دوې (دوه) رکعته دے اکتفاء کوی.اد ماسخوتن نه روسته څلور رکعته دی.یا دے په دوې (دوه) رکعته اکتفاء کوی.

**وجه الابتداء من سنة الفجر**ﷺپاته شوه داخبره چې صاحب د قدوری رحمه الله د سهار د سنتو نه ولے پیل اوکړله.نو ددے وجه دا ده.چې د سهار سنت په سنتو کي زیات قوی دی.نبیﷺ د سهار د سنتو په اړه کي فرمائیلی دی.«صلوهاولو طردتکم الخیل»یعنی تاسو د سهار سنت کوئ.اګرچې تاسو اسونه پائمال کوی.

**الدلیل الفقهی لاهمیة سنة الفجر**ﷺحسن بن زیاد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه روایت کړې دې.که یو کس د سهار سنت بغیر د عذر نه په ناسته اوکړی.نو جائز نه دی.عالمانو او مشائخو رحمهم الله لیکلی دی.که یو کس د مرجع د خلګو وی. خلګ دده نه د فتوو.او د شریعت د مسائلو تپوسونه کوی.نو د خلګو د اړتیا لپاره دده لپاره د ټولو سنتوپرېښول جائزدی.د سهار د سنتو نه سوا،ددے نه هم د سهار دسنتو اقوی کیدل ثابتیږی.

**وجه تقدیم سنة الظهرفي المبسوط**ﷺحضرت امام محمد رحمه الله په مبسوط کښې د ماپښین د سنتو ذکر وړاندې کړې دې.او وجه د تقدیم ئې دا بیان کړې ده.چې سنت د فرضو تابع دې.او په نبیﷺ باندې د ټولو نه وړاندې د ماپښین لمونځ فرض شوې وو.نوچونکه د ماپښین فرض اولنے فرض دې.نوځکه د ماپښین د سنتو ذکر هم اول اوکړې شو.

**الاختلاف في افضلية السنن بعدسنة الفجر**ﷺباقی پاتې شوه داچې د سهار د سنتو نه روسته کوم سنت اقوی دی.نو په دے اړه کښې څه قدرے اختلاف دې.①امام حلوائی رحمه الله فرمائیلی دی.چې د سهار د سنتو نه روسته مهمیت کي د ماښام د سنتو درجه ده.ځکه‌چې د الله تعالی پاك نبیﷺ د ماښام سنت په سفر او حضر کښې چرته هم نه دی پرېښولې (پرېخودې).بیا فرمائی.چې د ماښام د سنتو نه روسته د ماپښین دسنتو درجه ده.او وجه ئې دا ذکر کړې دې.چې د ماپښین نه روسته سنت متفق علیها دی.او د ماپښین نه وړاندې سنت مختلف فیها دی.بیا فرمائی.چې د ماپښین د روستنو سنتو نه روسته د ماسخوتن د روستنو سنتو درجه ده.او بیا د ماپښین نه د وړاندینو سنتو درجه ده.بیا دمازیګر د وړاندینو سنتو درجه ده.بیا د ماسخوتن د وړاندینو سنت درجه ده.② د بعضے عالمانو رحمهم الله خیال دې.چې د سهار د سنتو نه روسته د نورو سنتو په نسبت د ماپښین وړاندینی سنت زیادت موکد او قوی دی.هم دا قول اصح دې.ځکه‌چې ددے په پرېخودو باندې وعید راغلے دې.نبیﷺ فرمائیلی دی.«من ترك أربعاً قبل الظهر لم تنله شفاعتی»یعنی چاچې د ماپښین اولنی څلور رکعته پرېخودل.هغه ته به زما شفاعت نصیب نشی.علامه حلوائی رحمه الله د هم ذکرکړی دی.چې د تراویحو نه سوا د ټولو سنتو په کور کښې ادا کول افضل دی.ځکه‌چې په تراویحو کي د صحابوؓ اجماع ... کښې کولې.(عنایه)

... ونیت کي اصل دا دې. **قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ**چې نبیﷺ فرمائیلی دی."{ ... **الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ**چاچې په شپه او ورځ کښے په دولس رکعته باندې مواظبت اوکړلو ... تعالی به د هغه لپاره په جنت کي یوکور جوړ کړی

... نت ابی سفیانؓ ا... ول اللهﷺ یقول ما من عبد مسلم یصلی لله فی کل یوم بثنی عشرة ... الفریضة الا بنی الله ... النطوع ... ب ... واه مسلم فی صلاة المسافرین وقصرها رقم ۱۰۳ و ابوداود فی ... والترمذی فی الصلاة با... والنسائی السنن الکبری (۱/٤٥٩) رقم ۱٤٦٩ وفی قیام اللیل من



**حل اللغة***① ثابر،ثابر مثابرة : همیشه والې کول، دوام کول ② بنی، بنی بناء (ض): جوړول

**تشریح:- دلیل سنیة اثنتیٰ عشرة رکعة**ﷺصحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چې د ذکر شوو دولس رکعتونو په سنت مؤکده کیدو کي اصل دلیل د نبیﷺ ارشاد دې.امام ترمذی او ابن ماجه ددے حدیث الفاظ داسے ذکر کړی دی.«عن عائشة ؓ قالت قال رسول اللهﷺ من ثابر علی إثنتی عشر رکعة من السنة بنی الله له بیتا في الجنة أربع رکعات قبل الظهر ورکعتین بعدها ورکعتین بعد المغرب ورکعتین بعد العشاء ورکعتین قبل الفجر»یعنی حضرت عائشه ؓ فرمائی.چې نبیﷺ فرمائیلی دی.کوم کس چې په دولس مسنون رکعتونو باندې همیشوالے اوکړلو.الله تعالی به دده لپاره په جنت کښے یو کور جوړ کړی.(دولس رکعتونو دا دی څلور د ماپښین نه وړاندې ،دوې (دوه) د ماپښین نه روسته ،دوې (دوه) د ماښام نه پس،دوې (دوه) د ماسخوتن نه روسته او دوې (دوه) د سهار نه وړاندې ،

**روایة ام حبیبة ؓ**ﷺد امام بخاری رحمه الله نه سوا جماعت محدثینو رحمهم الله دا حدیث د ام حبیبه بنت ابی سفیان ؓ نه په دے الفاظ سره نقل کړې دې.«أنها سمعت رسول اللهﷺ یقول ما من عبد مسلم یصلی لله في کل یوم إثنتی عشرة رکعة تطوعا من غیر الفریضة إلا بنی الله له بیتاً في الجنة»یعنی ام حبیبه ؓ د رسول اللهﷺ نه اوریدلی دی.چې فرمائیل ئې.کوم مسلمان بنده‌چې خالص دالله تعالیٰ لپاره روزانه دولس رکعته د فرضو نه زیاتی کوی.الله تعالی به یقیناً د هغه لپاره په جنت کښے کور جوړ کړی.

| |
|---|
| **وَفَسَّرَ**او نبیﷺ ( د دولس رکعتونوکوم) تفسیر کړې دې. **عَلَى نَحْوِمَاذُكِرَفِى الْكِتَابِ**،هغه شان څنګه‌چې په کتاب (قدوری) کي ذکر دې **غَيْرَأَنَّهُ لَمْ يَذْكُرِالْأَرْبَعَ قَبْلَ الْعَصْرِ**البته داچې نبیﷺ د مازیګر نه وړاندې د څلورو رکعتونو ذکر نه دے کړې **فَلِهَذَاسَمَّاهُ فِى الْأَصْلِ حَسَنًا**ددے وجے امام محمد رحمه الله په مبسوط کي دے څلورو رکعتونو ته حسن وئیلی دی |

**تشریح:- وجه الاختیاربین الاربع والرکعتین**ﷺصاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چې رسول اللهﷺ د دولسو تفسیر ددے مطابق بیان کړې دې.کوم‌چې د کتاب په‌متن کي ذکر دې.(١) خوچونکه ددے حدیث په تفسیر کي د

المجتبی باب ٦٧ وابن ماجه فی الاقامة باب ۱۰۰ رقم ۱۱٤۱ والدارمی فی الصلاة باب ۱٤٤ واحمد فی المسند (٦/٣٢٧، ٤٢٦، ٤٤٣ والحاکم فی المستدرک (١/٣١١)_

١) صاحب دهدایه رحمه الله په متن کښا داسا فرمائیلي دی.وفسرعلی نحو ما ذکر فی الکتاب) یعنی نبی ﷺ د دولسو رکعتونو تفسیر داسا کړې دې.لکه څنګه چې په کتاب یعنی قدوری کښا ذکر دې.په دا مقام کښې داحقر مترجم راتا دا ده.چه صاحب د هدایه رحمه الله ته مناسب دا وو.چه داسا ئې فرمائیلی وو.وذکرفي الکتاب علی نحو ما فسر في الحدیث) ځکه چې په د هدایه په عبارت کښې د نبیﷺ تفسیرد صاحب قدوری د عبارت تابع ګرځولا شوې دې.حالانکه د مرتبا په لحاظ سره هم حدیث د قدوری په عبارت باندې مقدم دې.اود تاریخ په لحاظ سره هم،بیا بله عجیبه خبره دا ده.چه صاحب د اشرف الهدایه په ژباړه (ترجمه) د متن ژباړه (ترجمه) داسا کوی،، نبیﷺ چې کوم تفسیر کړې دې.هم د هغا مطابق په کتاب کښې مذکور دی،، حالانکه دا د هدایه د لفظ ژباړه (ترجمه) نه ده.اګرچه پکار هم داسا وه.نوجمیل احمدصاحب د متن ژباړه (ترجمه) دعبارت مطابق نه ده کړې.اوبیاچه کله ددا عبارت تشریح کوی.نوهلته د هدایه د عبارت صحیح ژباړه (ترجمه) کوی.چه ،، نبی ﷺ د دولسو رکعتونو تفسیر هم دهغا مطابق کړې دې.کوم چې په متن کښا مذکور دې.نودلته یوتسامح د صاحب د هدایه نه شوې دې.چه د نبی ﷺ ارشاد ئې د صاحب قدوری د متن تابع کړې دې.او بله تسامح د جمیل احمد صاحب نه چې په متن کښې ئې غلطه ژباړه (ترجمه) کړې ده.)_

مازيګرنه وړاندې د څلورو ركعتونو ذكر نشته.نوځكه امام محمد رحمه الله په مبسوط كښې دا څلور ركعتونه مستحب ګرځولي دي.اواختيار ئې وركړې دې.كه د مازيګر نه وړاندې څلور ركعته كوي اوكه دوې (دوه) ركعته كوي.ځكه‌چې د مازيګر نه وړاندې د ركعتونو په شمار كې آثار مختلف دي.د ابن عمر رضي الله عنه نه نقل دي. «قال قال رسول الله ﷺ رحم الله إمرأ صلى قبل العصر أربعا» نبي ﷺ فرمائيلي دي.الله تعالى دې په هغه سړي باندې رحم اوكړي.ځكه‌چې د مازيګر نه وړاندې څلور ركعته كوي.اوحضرت علي رضي الله عنه نه نقل دي. «أن النبي ﷺ كان يصلي قبل العصر ركعتين» يعنى نبي ﷺ به د مازيګر نه وړاندې دوې (دوه) ركعته كول.

**فضل الاربع بالنسبة الى ركعتين** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چې افضل هم دا دى.چې د مازيګر نه وړاندې څلور ركعته اوكړي.ځكه‌چې د څلورو ركعتونو شمار هم زيات دې.او تحريمه هم ډير وخته وړے پاتې كيږي.نو د دوو ركعتونو په نسبت سره د څلورو ركعتونو ثواب هم زيات وي.

| |
|---|
| وَخُيِّرَ لِاخْتِلَافِ الْآثَارِ، او د آثارو د اختلاف وجه اختيار وركړې شوې دې وَالْأَفْضَلُ هُوَ الْأَرْبَعُ او غوره دا دى.چې څلور ركعته اوكړي |

**تشريح:- وجه التخيير بين الاثنين والاربع** فاضل مصنف رحمه الله فرمائي.چې د رسول الله ﷺ د دولسو ركعتونو د تفسير په موقع د ماسخوتن نه وړاندې د څلورو ركعتونو ذكر هم نه دے كړې.هم دا وجه ده.چې دا څلور ركعتونه هم د استحباب په درجه كې دى.خود مشابره د حديث نه علاوه په نورو احاديث كې د څلورو ركعتونو ذكردې. دبراء بن عازب رضي الله عنه حديث دې. «قال قال رسول الله ﷺ من صلى قبل الظهر أربعاً كان كأنما تهجد من ليلة ومن صلاهن بعد العشاء كان كمثلهن من ليلة القدر» يعنى براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي.چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دى.چاچې د ماپښين نه وړاندې څلور ركعته اوكړل.نو لكه‌چې ټوله شپه ئې عبادت اوكړلو.او چاچې د ماسخوتن نه روسته څلور ركعته اوكړل.نو لكه‌چې د ليلة القدر څلور ركعته ئې رالاندې كړل.نود حديث په الفاظو كې په دووه او څلورو كې اختلاف دې.نوځكه صاحب د قدورى رحمه الله اختيار وركړلو.چې د ماسخوتن نه روسته دے څلور ركعته اوكړي.اوكه دوې (دوه) ركعته كوى.خو غوره دا ده.چې څلور ركعته اوكړي.خاص كر د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،دامام صاحب او صاحبينو رحمهما الله اصل اختلاف په دے كښې دې.چې د شپے لمونځ مثنى مثنى افضل دے اوكه په يو سلام سره څلور ركعته كول افضل دى.

**الاختلاف في كيفية الاربع قبل الظهر** ① مصنف د هدايه رحمه الله فرمائي.چې زمونږ په نيز د ماپښين نه وړاندې څلور ركعته يوځائې دى.نو كه يو كس په دوو سالمونو سره ادا كړل.زمونږ په نيز د هغے اعتبار نشته.

| |
|---|
| وَلَمْ يَذْكُرِ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الْعِشَاءِ او ذكر كړې ئې نه دى څلور ركعته وړاندې د ماسخوتن نه فَلِهٰذَا كَانَ مُسْتَحَبًّا نوځكه مستحب دى لِعَدَمِ الْمُوَاظَبَةِ، د امله د نه هميشوالى نه وَذَكَرَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ، او په حديث مذكور كې د ماسخوتن نه روسته دوې (دوه) ركعته ذكر دى وَفِي غَيْرِهِ ذَكَرَ الْأَرْبَعَ اوددې نه په علاوه كې ئې ذكر كړې څلور فَلِهٰذَا خُيِّرَ، نو ددې امله بهتره دى إِلَّا أَنَّ الْأَرْبَعَ أَفْضَلُ خو دومره ده‌چې څلور ركعته غوره دى خُصُوصًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ خاص كر د امام ابو حنيفه رحمه الله په نيز عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ، لكه څنګه معلومه ده‌چې د |



| |
|---|
| مذهب د امام ابوحنيفه رحمه الله نه وَالْأَرْبَعُ قَبْلَ الظُّهْرِ بِتَسْلِيمَةٍ وَاحِدَةٍ عِنْدَنَا، اوزمونږ په نيز د ماپښين نه وړاندې په يو سلام سره څلور ركعته دى كَذَا قَالَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، (1) لكه څنګه‌چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دى |

**حل اللغة:** ① ② **عدم:** نيشت كيدل ③ **مواظبة:** هميشه والې ④ **تسليمة:** سلام ګرځول

**تشريح:-** دامام شافعى رحمه الله په نيز افضل دا دى‌چې په دوو سلامونو سره ئې ادا كړي.

**الدليل الاول للشافعى رحمه الله** ① دامام شافعى رحمه الله دليل د ابوهريره رضي الله عنه حديث دې. «أن النبي ﷺ كان يصليهن بتسليمتين» يعنى نبي ﷺ به دا څلور ركعته په دو سلامونو كول.

**الجواب منه** دامام شافعى رحمه الله د پيش كړى ابوهريره رضي الله عنه دحديث نه ځواب دا دے.چې په حديث كې د تسليمتين نه مراد تشهدين دې.يعنى نبي ﷺ به د ماپښين نه وړاندې په څلورو ركعتونو كې دوې (دوه) ځله تشهد كول.نو په حديث كې ئې حال يعنى سلام ګرځولو په ځائې محل يعنى تشهد مراد دې.دا خيال ساتئ:چې دا تاويل د رئيس الفقهاء حضرت عبدالله بن معسود رضي الله عنه نه مروى دې.

**الدليل الثانى للشافعى:** او په يو حديث كې دى. «أن النبي ﷺ قال صلاة الليل والنهار مثنى مثنى» يعنى نبي ﷺ فرمائيلي دى.د شپےاو ورځې لمونځ دوې (دوه) دوې (دوه) ركعته دې.

**الجواب منه** اود دوهم حديث نه ځواب دا دې.چې «صلاة الليل مثنى مثنى» الفاظ خو مشهور دى.اود «والنهار» لفظ غريب دې.او ناقابل استدلال دې.نو ددے حديث نه په دے باندې استدلال صحيح نه دې.چې د ماپښين نه وړاندې څلور ركعته په دوو سلامونو وو.

## د شپې اوو ورځو د نوافلو تعداد

| |
|---|
| قال صاحب د قدورى رحمه الله فرمايي قَالَ وَنَوَافِلُ النَّهَارِ إِنْ شَاءَ صَلَّى بِتَسْلِيمَةٍ رَكْعَتَيْنِ اود ورځې نوافل كه غواړى نو دوې (دوه) ركعته دے اوكړى وَإِنْ شَاءَ أَرْبَعًا و كه غواړى نه څلور ركعته دے اوكړى وَتُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلَى ذٰلِكَ.او په دے باندې زيادت مكروه دې وَأَمَّا نَافِلَةُ اللَّيْلِ پاتې شو د شپے نوافل قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ نو ابوحنيفه رحمه الله فرمايي إِنْ صَلَّى ثَمَانَ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيمَةٍ جَازَ، (2) كه په يو سلام باندې اته ركعته اوكړى.نو جائز دې وَتُكْرَهُ الزِّيَادَةُ، او په دے باندې زيادت مكروه دې وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائى.لَا يَزِيدُ فِي اللَّيْلِ عَلَى رَكْعَتَيْنِ بِتَسْلِيمَةٍ.چې د شپے دے په يو سلام سره د دوو ركعتونو نه زيادت نه كوى وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ لَمْ يَذْكُرِ الثَّمَانِيَ فِي صَلَاةِ اللَّيْلِ،او په جامع صغير كښے امام محمد رحمه الله د شپے په لمونځ كې اته نه دى ذكر كړې |

**حل اللغة** ① **نهار:** ورځ ② **شاء، شاء شيئاً (ف):** غوښتل ③ **جاز، جاز جوازاً (ن):** جائزكيدل ④ **لايزيد، زاد زيادة (ض):** زياتول

**تشريح:- الاختلاف في عدد ركعات النوافل بالتسليمة الواحدة** تراوسه پورې د سنتو بيان وو.په راروانو كرښو كښے د نوافلو ذكر دې.عالمانو رحمهم الله د اباحت او افضيلت په اعتبار سره د شپے او ورځې د نوافلو په تعداد كې

---

1) من حديث ابى ايوب الانصارى رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى التهجد التطوع باب ٧ رقم ١٢٧٠ والترمذى فى الشمائل (ص٢٠) وابن ماجه فى الاقامة باب ١٥ رقم ١١٥٧ واحمد فى المسند (٤١٦/٥) والبيهقى فى السنن الكبرى (٦٨٨/٢) رقم ٤٥٨١)_

2) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى حاشية الطحطاوى (ص٢١٤) والدرالمحتار (٥٠٠/١١) والبحر (٥٣١/٢) والهندية (١١٣/١) نقلا عن القول الراجح (١٠٧/١)_

اختلاف کړي دي. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي. چې د ورځې په نوافلو کې دا مباح دي. چې په يو سلام باندې دوې (دوه) رکعته يا څلور رکعته اوکړي. ددے نه زياتي کول مکروه دي. اود شپې په نفلو کې په يو سلام باندې اته رکعته کول بغير د کراهت نه جائز دي. او په اتو باندې زيادت کول مکروه دي. په جامع صغير کې د اتو رکعتونو ذکر نشته. بلکه د شپږو ذکر دي. يعنی امام محمد رحمه الله په جامع صغير کښې فرمائيلي دي. چې په شپه کې په يو سلام سره شپږ رکعته ادا کولے شي.

**توضيح عبارة القدوري** رحمه الله ۞ د قدوري د عبارت «وقالا لا يزيد بالليل على ركعتين بتسليمة» په ظاهره معلوميږي. چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز په سلام سره د دوو رکعتونو نه زيادت کول جائز نه دي. حالانکه داسې نه ده. بلکه مراد دا دي. چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز په دوو رکعتونو باندې زيادت کول افضل نه دي.

**الاحتراز من قول الشافعي** رحمه الله ۞ او په «قال ابوحنيفة رحمه الله إن صلى ثمان ركعات» سره د امام شافعي رحمه الله د قول نه احتراز کړي شوي دي. ځکه چې امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دي. چې په يو سلام سره دې په څلورو رکعتونو زيادت نه کوي. اوکه په څلورو رکعتونو ئې زيادت اوکړلو. نو دا به مکروه وي.

| |
|---|
| وَدَلِيلُ الْكَرَاهَةِ او د کراهت دليل دا دي أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَزِدْ عَلَى ذَلِكَ، چې نبی ﷺ په اتو باندې زيادت نه دے کړي (١) وَلَوْلَا الْكَرَاهَةُ اوکه کراهت نه وو لَزَادَ تَعْلِيمًا لِلْجَوَازِ، نو د جواز د تعليم لپاره به ئې زيادت کړي وې |

**حل اللغة:** ① تعليم: خودنه

**تشريح:-** **دليل كراهة الزيادة على ثماني ركعات بتسليمة واحدة** ۞ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چې په شپه کې په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه د زيادت په کراهت باندې دليل دا دي. چې نبی ﷺ په اتو رکعتونو باندې زيادت نه دے کړي. که په يو سلام سره په اتو رکعتونو باندې زيادت مکروه نه وو. نو د جواز د بيان لپاره به يو ځل دوې (دوه) ځله نبی په اتو باندې زيادت ضرور کړي وو. خو نبی ﷺ په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه کله هم په نفلو کې زيادت نه دے کړي. نو ځکه په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه زيادت کول مکروه دي.

**السوال** ۞ معترض وئيلے شي. چې په شپه کې په يو سلام باندې د اتو رکعتونو نه زيادت کاوه باندې هم سنت وارد شوي دي. نقل شوي دي. «انه ﷺ كان يصلي بالليل خمس ركعات سبع ركعات تسع ركعات احد عشر ركعة ثلاث عشرة ركعة» يعنی نبی ﷺ به په شپه کې پنځه رکعته هم کولو. اواوه رکعته او او نهه هم او يوولس هم او کله به ئې ديارلس هم کول.

**الجواب** ۞ زموږ د اړخه ددے ځواب دا دي. چې په پنځو رکعتونو کې دوې (دوه) رکعته صلاة الليل وو. يعنی دوې (دوه) نفل او درے رکعته وتر وو. او په اووه رکعتونو کې څلور رکعته صلاة الليل او درے رکعته وتر وو. او په اووه رکعتونو کې شپږ رکعته صلاة الليل او درے رکعته وتر و. او په يوولس رکعتونو کښې اته رکعته صلاة الليل او درے رکعته وتر وو. او په ديارلس رکعتونو کې اته رکعته صلاة الليل او درے رکعته وتر او دوې (دوه) رکعته د سهار سنت وو. نبی ﷺ دا واړه رکعتونو په يو سلام سره اد کول. بيا ئې داسې تفصيل بيان کړل. ځکه چې پورته تير شو. نو دے تفصيل نه روسته د اعتراض څه ګنجائش پاتې نشو. (فتح

1) قال الزيلعي رحمه الله غريب وفی صحيح مسلم خلافه اخرجه من حديث عائشة رضی الله عنها فی حديث طويل قالت: كنا نعد له سواكه وطهوره فيبعثه الله ما شاء ان يبعثه من الليل فيتسوک ويتوضا ويصلي تسع ركعات لا يجلس فيها الا فی الثامنة الحديث نصب الراية ١٣٨/٢)_



القدير)

| |
|---|
| وَالْأَفْضَلُ فِي اللَّيْلِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ مَثْنَى مَثْنَى، او په شپه کې د صاحبينو رحمهما الله په نيز دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته افضل دی وَفِي النَّهَارِ أَرْبَعًا أَرْبَعًا، اوپه ورځ کې څلور څلور رکعته وَعِنْدَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ فِيهِمَا مَثْنَى مَثْنَى، او د امام شافعی رحمه الله په نيز په شپه او ورځ دواړو کې دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته دی وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فِيهِمَا أَرْبَعًا أَرْبَعًا. (١) او دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دواړو کې څلور څلور رکعته دی |

**تشريح:-** **خلاصة المذاهب في افضلية عدد ركعات النفل في الليل والنهار** ۞ ① «والأفضل في الليل» نه په افضليت کې کلام شوي دي. ① فرمائي. چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز په شپه کښې افضل دا دی. چې دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته کوی. او په ورځ کښ څلور څلور رکعته کوی. ② او د امام شافعی رحمه الله په نيز په شپه او ورځ دواړو کښ دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته کول افضل دی. ③ او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دواړو کښې څلور څلور رکعته کول افضل دی.

| |
|---|
| لِلشَّافِعِي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ " {صَلَاةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى} (٢) دامام شافعی رحمه الله دليل د نبی ﷺ قول «صلاة الليل والنهار مثنى مثنى» دي. |

**تشريح:-** **دليل الشافعي** رحمه الله ۞ دامام شافعی رحمه الله دليل دابن عمر رضي الله عنهما حديث دي. «صلاة الليل والنهار مثنى مثنى» يعنی نبی ﷺ فرمائيلي دی. چې د شپې او ورځ لمونځ (نفل) دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته دی.

| |
|---|
| "وَلَهُمَا الِاعْتِبَارُ بِالتَّرَاوِيحِ، او د صاحبينو رحمهما الله دليل په تراويحو باندې قياس دي |

**تشريح:-** **دلائلهما** ۞ ① دصاحبينو رحمهما الله دليل په تراويحو باندې قياس دي. يعنی د تراويح لمونځ په اتفاق سره دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته کول افضل دی. نو دغه ډول به د شپې په نفلو کې هم دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته افضل وی.

② عقلی دليل دا دي. چې په يو سلام سره څلور رکعته کول کښ د تحريمې په اعتبار سره دوام دي. نو چې په مينځ کې نه فارغ کيږي. ددے وجې په کښې مشقت زيات دي. اوچې په کوم عبادت کښ مشقت زيات وی. هغه افضل وی. نو ځکه په يو سلام سره څلور رکعته کول به افضل وی. په نسبت سره دوو رکعتونو ته.

**تائيد افضلي الاربع في ضوء المسئلة** ۞ هم دا وجه که چا په يو سلام سره د څلورو رکعتونو ادا کوول نذر اومنلو. نو ده په دوو سلامونو سره څلور رکعته ادا کړل. نو دده نذر نه پوره کيږي. ځکه چې نذر ئې په افضله طريقه د ادا کاوه کړي وو. چې څلور رکعته دی. او دا ئې اوکړله په مفضوله طريقه، او قاعده دا ده. چې افضل او اعلى په مفضول او ادنى سره نه ادا کيږي. او که په دوو سلامونو سره ئې د ادا کول نذر کړي نوی. نو په يو سلام سره کاوه باندې نذر پوره کيږي. ځکه چې د مفضول په ځائې په افضل سره ادا اوکړې شوه.

[1] القول الراجح هو قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی الدرالمختار (٥٠٠/١) ومراقی الفلاح مع حاشية الطحطاوی (ص، ٢١٥) والهندية (١١٣/١) والبحرالرائق (٥٤/١) نقلا عن القول الراجح (١٠٧/١)_

٢) من حديث ابن عمر رضی الله عنهما روه ابواود فی التطوع باب ١٣ رقم ١٢٩٥، والترمذی فی الجمعة باب ٦٥ رقم ٥٩٧ وابن ماجه فی الاقامة باب ١٧٢ رقم ١٣٢٢ والنسائی فی السنن الكبری (١٧٩/١) رقم ٤٧٢ واحمد فی المسند (٢/٥، ٩، ١٠، ٢٦، ٥١) والبيهقی فی السنن الكبری (٦٨٥/٢) رقم ٤٥٧٣)_

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْعِشَاءِ أَرْبَعًا أَرْبَعًا} "چې نبي ﷺ د ماسخوتن نه روسته څلور رکعته کول رَوَتْهُ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، (١) دا حضرت عائشې رضي الله عنها روايت کړې دي وَكَانَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يُوَاظِبُ عَلَى الْأَرْبَعِ فِي الضُّحَى، او په څاښت کې به نې په څلورو باندې هميشوالې کولو (٢) وَلِأَنَّهُ أَدْوَمُ تَحْرِيمَةً او د دې لپاره چې د تحريمې په اعتبار سره دې ته زيات دوام ملاو شي فَيَكُونُ أَكْثَرَ مَشَقَّةً نو د مشقت په اعتبار سره به هم زيات شي وَأَزْيَدَ فَضِيلَةً او په فضيلت کې به هم زيات شي وَلِهَذَا لَوْ نَذَرَ دې وجې که نذر اومني أَنْ يُصَلِّيَ أَرْبَعًا بِتَسْلِيمَةٍ نو دې به په يو سلام سره څلور رکعته کوي لَا يَخْرُجُ عَنْهُ بِتَسْلِيمَتَيْنِ، نو هغه به په دووسلامونو سره د دې نذر نه نه اوځي وَعَلَى الْقَلْبِ يَخْرُجُ او د عکس په صورت کې اوځي

تسهيل: دلائل ابوحنيفة: ① د ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي. چې نبي ﷺ د ماسخوتن نه روسته څلور رکعته کول. دا حضرت عائشې رضي الله عنها روايت کړې دي. ② او په څاښت کې به نې په څلورو باندې هميشوالې کولو. او د دې لپاره چې د تحريمې په اعتبار سره دې ته زيات دوام ملاو شي. نو د مشقت په اعتبار سره به هم زيات شي. او په فضيلت کې به هم زيات شي. د دې وجې که نذر اومني. نو دې به په يو سلام سره څلور رکعته کوي. نو هغه به په دووسلامونو سره د دې نذر نه نه اوځي. او د عکس په صورت کې اوځي.

وَالتَّرَاوِيحُ تُؤَدَّى بِجَمَاعَةٍ او تراويح به په جماعت سره ادا کولې شي فَيُرَاعَى فِيهَا جِهَةُ التَّيْسِيرِ، نو ځکه به په دې کښې د آسانتيا خيال ساتلې شي.

تشريح:- الجواب من قياس الصاحبين ﴿والتراويح تـؤدى بجماعـة﴾ دا عبارت د صاحبينو د قياس نه ځواب دې. د ځواب حصل دا دې. چې بيشکه د تراويح لمونځ دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته کول افضل دی. خو د تراويح لمونځ په جماعت سره ادا کولې شي. او په اجتماعي کارونو کښې د عامو خلګو د خيال ساتلو د وجې د سهولت او آسانتيا حکم کولې شي. لکه چې نبي ﷺ فرمائلي دی. امام ته پکار دی. چې مختصر لمونځ ورکوي. ښکاره ده. چې په دې امر کې د عامو مقتديانو خيال ساتلې شو دې. نو چونکه د تراويح لمونځ په جماعت سره ادا کيږي. نو ځکه د عامو خلګو د آسانتيا د وجې د وو دوو رکعتونو کاوه حکم ورکړې شوې دې. ځکه چې په دوې (دوه) دوې (دوه) رکعته کاوه کې آسانتيا ده. په نسبت سره څلورو رکعتن ته، او که ځانله تراويح کوي. نو څلور رکعته کول افضل دی. خو په دې شرط چې توان نې وی. او نوافل چونکه په جماعت سره نه ادا کيږي. ځکه په نفلو کې دا خيال نشي ساتلې.

وَمَعْنَى مَا رَوَاهُ او د دې حديث معنى کوم چې امام شافعي رحمه الله روايت کړې ده شَفْعًا لَا وِتْرًا، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ جفت دي. طاق نه دي. والله اعلم.

تشريح:- الجواب من مستدل الشافعي ﴿ رحمه الله ومعنى ما رواه شفعاً لا وتـراً﴾ په دې سره د امام شافعي رحمه الله د

٣) رواه ابوداود فی التطوع باب ٢٦ رقم ١٣٤٦)_

حديث معاذة عن عائشة رضى الله عنها رواه مسلم فى صلاة المسافرين وقصرها رقم ٧٩ وابويعلى الموصلى فى مسنده)_





پيش کړی حديث ﴿صلاة الليل والنهار مثنى مثنى﴾ ځواب دې. حاصل د ځواب دا دې. چې د شپې او ورځې لمونځ تکی دے ناتکی نه دي. يعنی د نبي ﷺ د دوو عدد بيانول نه دی. بلکه د رسول الله ﷺ مطلب دا دي. چې نوافل دے په ناتکی رکعتونو سره نشی ادا کولې. بلکه تکی يعنی جفت جوړه دے ادا کولې شی. سکه ده رکعته په يو سلم سره وی او که څلور او که اته والله اعلم

### په فرائضو کې د قرات حکم

فصل فی القراءة دا فصل د قرات په بيان کښې دې القراءة فی الفرض واجبة فی الرکعتين په فرض لمونځ کې په دوو رکعتونو کې قرات کول واجب دی

تشريح:- الاقوال الخمسة في حكم القراءة في الفرض الرباعي ﴿ صاحب د هدايه رحمه الله چې د فرض واجبو او نوافلو د بيان نه فارغ شو. نو اوس په دې فصل کې د قرات د مسئلې ذکر کوی. نو په څلور رکعته لمونځ کښې د قرات په مسئله کې پنځه اقوال دی. ① د احنافو عالمانو رحمهم الله په نيز په دوو رکعتونو کښې قرات فرض دې.

وقال الشافعي او امام شافعي رحمه الله فرمائی. فی الرکعات کلها چې په ټولو رکعتونو کې واجب دې لقوله عليه الصلاة والسلام. ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلي دی لاصلاة إلا بقراءة. بغير د قرات نه لمونځ نه کيږی () وکل رکعة صلاة. او هر رکعت لمونځ دې.

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله په نيز په ټولو رکعتونو کې فرض دې. ②

دليله ﴿ د امام شافعي رحمه الله دليل هم دا حديث دې. ځکه چې نبي ﷺ فرمائيلي دی. بغير د قرات نه لمونځ نه کيږی. او هر رکعت لمونځ دې. نو په هر رکعت کې به قرات فرض وی. او د هر رکعت د لمونځ کيدو دليل دا دې. که يو کس قسم اوخوړلو. چې زه به لمونځ نه کوم. او بيا هغه يو رکعت اوکړلو. نو حانث کيږی به، نو د يو رکعت په کاوه باندې حانث کيدل د دې خبرې دليل دې. چې يو رکعت لمونځ دې. ګنی نه به حانث کيدلو.

وقال مالك او امام مالك رحمه الله فرمايي فی ثلاث رکعات چې په دريو رکعتونو کښې (فرض) دې. إقامة للأکثر مقام الکل تيسيرا ځکه چې د آسانتيا د وجې اکثر قائم مقام د کل وی.

حل اللغة: ① تيسيراً: آسانی

تشريح:- امام مالك رحمه الله فرمائی. چې په درې رکعتونو کې فرض دې.

دليل مالك رحمه الله ﴿ د امام مالك رحمه الله دليل دا دې. چې نبي ﷺ فرمائيلي دی. ﴿لا صلاة إلا بقراءة﴾ او هر رکعت صلاة دې. نو رکعت به د قرات نه بغير نه وی. خو چونکه درې رکعته اکثر دی. او د آسانې لپاره اکثر قائم مقام د کل شو. نو ځکه درې رکعته قائم مقام د څلورو اوګرځولې شول. او په درې رکعتونو کې قرات فرض کړې شو.

③ حسن بصری رحمه الله په يو رکعت کښې د قرات د فرضيت قائل د. ⑤ ابوبکر اصم په لمانځه کې د قرات د سنتيت قائل دې. ابوبکر رحمه الله قرات په نورو اذکارو باندې قياس کړې دې. يعنی لکه څنګه چې په لمانځه کې د رکوع او سجدې تسبيحات و ثناء وغيره مسنون دی. دغه ډول د قرآن پاك قرات هم مسنون دې.

١) من حديث ابی هريرة ﷺ روا البخاری فی الاذان باب ١٤ رقم ٧٧٢ ومسلم فی الصاة رقم ٤٢ ) وابوداود فی الصلاة باب ١٢٥ واحمد فی المسند (٢٥٨/٢)_

ۚ**دليل الحسن** رحمه الله ﴿ دحسن بصرى رحمه الله دليل دادي.چي ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ كي ﴿فَاقْرَءُوا﴾ د امر صيغه ده.او امر د تكرار تقاضه نه كوى.نوځكه په يو ركعت كي قرات فرض دي.

| |
|---|
| **ولنا قوله تعالى** ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ او زموږ دليل د الله تعالى قول دے ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ **والأمر بالفعل لايقتضى التكرار** اود يو فعل (كار) امر د تكرار تقاضا نه كوى |

**حل اللغة:** ①**فاقرءوا، قرا قراءة** (ف): لوستل ② **تيسر، تيسر تيسرا:** آسانيدل

**تشريح:-** ۚ**دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿ د احنافو دليل د الله تعالى ارشاد دي ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ په دے طريقه چي ﴿اقرا﴾ د امر صيغه ده.او امر د تكرار تقاضا نه كوى.نو په هر ركعت كي د قرات فرضيت په عبارة النص سره ثابت شو.او چونكه دوهم ركعت په هر لحاظ سره د اولنى ركعت مشابه دي.نو ځكه په دلالة النص سره په دوهم ركعت كي هم قرات واجب شو.حاصل داچي په اولنى ركعت كي د قرات وجوب په عبارة النص او په دوهم ركعت كي په دلالة النص سره ثابت شو.

ۚ**السوال** ﴿ دلته كي يوسوال كيږى.هغه داچي په اولنى او دوهم ركعت كي مشابهت نشته.بلكه مفارقت دي.ځكه چي په اولنى ركعت كښ ثناء ،تعوذ او تسميه شه.او په دوهم ركعت كي دا شيان (څيزونه ) نشته.

ۚ**الجواب** ﴿ د شيان (څيزونه ) امر زائد دي.اعتبار صرف اركانو لره دي.او په اصل اركانو كي دواړه ركعتونه يوشان دى.

| |
|---|
| **وإنما أوجبنا في الثانية** او په دوهم ركعت كښ موږ واجب اوګرځولو **استدلالا بالأولى**. په اولنى ركعت باندي استدلال كوو. **لأنهما يتشاكلان من كل وجه** ځكه چي دواړه ركعتونه په حيثيت سره هم شكل دى **فأما الأخريان** باتى شو روستنى دوې (دوه) ركعتونه **فيفارقانهما** نو هغه مفارقت لرى د اولينو نه **في حق السقوط بالسفر** په وجه د ساقط كيدو **وصفة القراءة** او د قرات په صفت كي **وقدرها** او د قرات د مقدار كي **فلا يلحقان بهما** نو آخرى ركعتونه د اولنو سره نشي ملحق كولي. |

**حل اللغة:** ①**اوجبنا، اوجب ايجابا:** واجب كول ② **سقوط:** ساقط كيدل ③ **صفة:** خوبى ④ **تلحقان، لحق لحوقا** (س): ملاويدل،لاحق كيدل ⑧ **حلف، حلف حلفا** (ض): قسم خوړل **وجوه الفرق بين الركعتين الاولين والاخرين** ﴿ پاته پاتى شو آخرى دوې (دوه) ركعتونه نو هغه د اولنو ركعتونو نه مختلف دى.او د توپير وجوهات ئے دا دى.① د سفر په وجه آخرى دوې (دوه) ركعتونه ساقط كيږى ا اولنى دوې (دوه) نه ساقط كيږى.② په اولنو دوو ركعتونو كي قرات بالجهر كيږى.او په آخرنو دوو ركعتونو كي په پټه ونيلى شى.③ په اولنو دوو ركعتونو كي د فاتحے سره د سورت ملاوول هم واجب دى.او په آخرنو دووو ركعتونو كي د فاتحے سره د سورت ضم كول نشته.نو هركله چي دومره توپير شته.نو آخ[illegible]كعتونه د اولنو دوو سره نشي لاحق كولي.

| |
|---|
| **والصلاة فيما [illegible]** [illegible]ى حديث كي د ﴿صلاة﴾ لفظ ښكاره موجود [illegible]بع كولے شى. **وهى الركعتان عرفا** هغه په عرف كي [illegible]خوړلو لايصلى صلاة.چي لمونځ به نه كوى دے |

[illegible]ة **فيما يروى**﴿ په دے سره د امام شافعى رحمه الله د پيش[illegible]ي.دخواب حاصل[illegible]چي په حديث كښ د صريحى لفظ د[illegible] د صلاة كامل[illegible]دو ركعتونو كيږى.نو د حديث نه په



دوو ركعتونو كښ د قرات ثبوت كيږى په هر ركعت كي د قرات ثبوت نه كيږى.

| |
|---|
| **بخلاف ما إذا حلف لايصلى** په خلاف چي لكه ﴿لا يصلى﴾ اووائى.اوقسم اوخورى. |

**تشريح:-** ۚ**المراد من لفظ الصلاة** ﴿ پاته شوه دا خبره چي چي د صريحى لفظ د صلاة نه په عرف كي دوې (دوه) ركعته مراد وى.نودا څنګه معلومه شوه.نو ددے ځواب دا دي.چي كه يو كس په دے الفاظ سره قسم اوخوړلو.چي ﴿لا يصلى صلاة﴾ يعنى لفر د صلاة ذصراحة ذكر كړلو.نو د دوو ركعتونو په كاوه سره به حانث كيږى.او كه صرف ﴿لايصلى﴾ ئي ونيلى وو.او لفظ د صلاة ئي نه وو ونيلي.نو د يو ركعت په كاوه به هم حانث كيږى.

## د فرضو په آخرى دوو ركعتونو كي د قرات حكم

| |
|---|
| **وهو مخير في الأخريين** او لمونځ ګذار ته په آخرى دوو ركعتونو كښ اختيار دي **معناه**.ددے مراد دا دي **إن شاء سكت** كه زړه ئي غواړى نوچوپ دے اودريږى **وإن شاء قرأ**..اوكه غواړى نوقراءت دي ووايي **وإن شاء سبح** اوكه غواړى نو تسبيح دے ووايي **كذا روي عن أبى حنيفة رحمه الله**.هم دا دامام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دى **وهو المأثور عن على وابن مسعود وعائشة**(١) رضي الله عنهم.او هم دا د على ،ابن مسعود او عائشے رضي الله عنها نه منقول دى |

**حل اللغة:** ①**مخير،** اختيارور كړې شوې ② **سكت، سكت سكوتا** (ن): چوپ كيدل ③ **شاء، شاء شيئا** (ف): غوښتل ④ **ماثور:** منقول

**تشريح:-** ۚ**اختيار المصلى في قراءة الاخرين** ﴿ صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.چي په آخرى دوو ركعتونو كښ مصلى ته اختيار دي.كه د سورة فاتحے قرات كوى.يا د درے تسبيحاتو په اندازه چوپ اودريږى.يا درے ځلى تسبيح اوائى.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا منقول دى.اودا تسبيح ونيل حضرت على،ابن مسعود اوعائشه رضي الله عنها نه هم منقول دي.

| |
|---|
| **إلا أن الأفضل**.خو افضل دا دى.**أن يقرأ** چي قرات ووايي **لأنه عليه الصلاة والسلام داوم على ذلك** ځكه چي نبى ﷺ په دے باندې مداومت كړې دي(٢) **ولهذا لايجب السهو بتركها**..او هم ددے وجے ترك قرات سره (په آخرى دوو ركعتونو كي ) سجده سهوه نه واجبوى **في ظاهر الرواية** د ظاهر روايت مطابق. |

**تشريح:-** خو په آخرينو كي د سورة فاتحه قرات كول افضل دى.ځكه چي نبى ﷺ كله كله د پريخودو سره په دے باندې.مداومت كړې دي.هم دا وجه ده.چي كه په آخرينو كښ ئي قرات د فاتحے پريښولو .نوپه ده باندې سجده سهوه واجب نه ده.نو ددے نه هم په آخرينو دوو ركعتونو كي د فاتحے لوستلو افضليت معلوم شو.صاحب د هدايه رحمه الله فرمائى.چي ظاهر روايت هم دا دي.

ۚ**ترك قراءة الفاتحة والتسبيح في الاخرين** ﴿ امام حسن بن زياد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه روايت كړې

---

١) قال الزيلعى رحمه الله روى ابن ابى شيبة فى مصنفه عن شريک عن ابى اسحاق السبيعى عن على وابن مسعود قالا اقرا فى الاولبين وسبح فى الاخريين وفيه انقطاع وهن عن عائشة رضى الله عنها غيب نصب الراية (١٤٣/٢)_

٢) قال الزيلعى رحمه الله يشهدله حديث ابى قتادة رواه الجماعة الا الترمذى ان النبى ﷺ كان يقرا فى الظهر فى الركعتين الاولبين بفاتحة الكتاب وسورتين وفى الركعتين الاخريين بفاتحة الكتاب ويطيل فى الركعة الاولى ما لا يطيل فى الثانية وكذلک فى العصر وهكذا فى الصبح قال محقق نصب الراية رواه البخارى فى الاذان باب ١٠٩، ومسلم فى الصلاة رقم ١٥٤ وابوداد فى الصلاة باب ١٢٥ والنسائى فى الافتاح باب ٦٠ وابن ماجه فى الاقامة باب ٥ واحمد فى المسند (٣٠٥/٥، ٣٠٩)_

دي.چې په آخرينو کي که مونځګذار نه قرات اوکړلو.او نه ئې په قصد سره تسبيح اووئيل.نو ګناهګار به وی.اوکه په سهو سره ئې دا شيان (څيزونه) ترک کړل.نو سجده سهو به پرے واجب وی.

دليله۞دليل دا دی.چې په آخرينو کي قيام مقصود دې.نو دا د قرات کاوه نه خالی کول مکروه دی.صاحب د عنايه رحمه الله فرمائيلی دی.چې ظاهر روايت اصح دې.ځکه‌چې په قيام کي خو اصلی قرات دې.او هرکله‌چې قرات ساقط شو.نو مطلق قيام خو به خامخا پاته وی.نو دا داسے شوه لکه‌چې د مقتدی قيام،(عنايه)

### په نفلو کي د قرات حکم

| |
|---|
| والقراءة واجبة في جميع ركعات النفل اود نفلو په ټولو رکعتونو کښ قرئت واجب دې وفي جميع الوتر.او د وترو په ټولو رکعتونو کي |

حل اللغة° ① جميع: واړه

تشريح:- وجوب القراءة في كل ركعة من النفل۞مسئله :قرات د نفلو او وترو په ټولو رکعتونو کښے واجب دي.

| |
|---|
| أما النفل فلأن بهرحال نفل خو ددے وجې‌چې كل شفع منه صلاة على حدة د نفلو هر دوې (دوه) رکعته مستقل لمونځ دې والقيام الى الثالثة.او د دريم رکعت لپاره ودريدل كتحريمة مبتدأة د سرنه د تحريمے ترلو پشان دی ولهذا لايجب بالتحريمة الأولى إلا ركعتان في المشهور عن أصحابنا رحمهم الله هم ددے وجے زموږ د انډيوالان د مشهور قول مطابق د لومړنی تحريمے نه صرف دوې (دوه) رکعته واجبيږی ولهذا قالوا..هم ددے وجے مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی يستفتح في الثالثة أي يقول سبحانك اللهم.چې په دريم رکعت کي «سبحانك اللهم وبحمدك الخ» پورې دے وائی |

حل اللغة° ① لايجب، وجب وجوباً (ض): واجب کيدل ② يستفتح،استفتح استفتاحاً: پيل کول

تشريح:- دليله۞د نفلو په ټولو رکعتونو کي قرات ددے وجے واجب دې.چې د نفلو هر دوې (دوه) رکعته‌جلا لمونځ دې.نو په لومړنی تحريمه به دوې (دوه) رکعته واجبيږی.اوکه د دوو رکعتونو نه ئې د زياتو نيت کړی وی.نو د احنافو عالمانو رحمهم الله د مشهور قول مطابق دا دی.که د څلورور نيت ئې کړی وی.او بيا ئے د دوو رکعتونو پوره کاوه نه وړاندې فاسد کړل.نو د پيل کاوه د وجے به صرف د دوو رکعتونو قضا واجب وی.نو معلومه شوه.چې په اوله تحريمه باندې صرف دوې (دوه) رکعته لازميږی.چونك هر دوې (دوه) رکعته‌جلا لمونځ دې.نود احنافو مشائخو رحمهم الله په نيز دريم رکعت ته د اودريدو لپاره دے ثناء وائی.ځکه‌چې د دريم رکعت لپاره ودريدل د نوئې تحريمے په مرتبه کښے دی.

| |
|---|
| وأما الوتر فللاحتياط.او پاتې شو وتر نو د احتياط د وجې. |

تشريح:- وجوب القراءة في جمع ركعات الوتر۞اود وترو په ټولو رکعتونو کي د دے وجے قرات واجب دې.چې په لمانځه کښے قرات لذاته رکن مقصود دې.اود د وترو وجوب د حديث نه ثابت دې.نو د وترو د نفليت احتمال پيدا شو.نو د احتياط د وجے د وترو په ټولو رکعتونو کي قرات واجب کړې شو.حاصل داچې د امام ابوحنيفه رحمه الله په وتر لمونځ اګرچې واجب دې.خو چونکه د نفلو آثار په کي ښکاره دی.نو موږ د احتياط د پاره په هر رکعت کې د سنتو او نفلو پشان قرات واجب کړلو.

### د نفلو په فساد د قضاء حکم

| |
|---|
| قال (ومن شرع في نافلة فرمائی.چا څوک‌چې په نفلی لمونځ کي داخل شو ثم أفسدها.بيا ئے هغه فاسد کړلو |



| |
|---|
| قضاها).نو ددے به قضاء راوړی |

حل اللغة° ① شرع،يشرع شروعًا (ف): پيل کول ② افسدها، افسد افساداً: فاسد کول ③قضاها، قضى قضاءً (ض): پوره کول، قضاکول

تشريح:- الاختلاف في لزوم النفل بالشروع۞ ①دا مسئله مختلف فيه ده.چه‌چې نفلی لمونځ يا نفلی روژه په پيل کاوه سره لازميږی. که نه ؟ په دے اړه کي.د احنافو عالمانو رحمهم الله مذهب دا دې.چې نفل (که لمونځ وی اوکه روژه) په پيل سره لازميږی.نو د نفلی لمونځ پيل کوول نه روسته که هغه فاسد کړی.نو د هغې قضا واجب ده.

| |
|---|
| وقال الشافعي رحمه الله .او امام شافعی رحمه الله فرمايي لاقضاء عليه.چې په ده باندې قضاء واجب نه ده. لأنه متبرع فيه ځکه‌چې دې په دے نفلو کښ متبرع دې ولالزوم على المتبرع او په متبرع باند.لزوم نه وی. |

تشريح:- دامام شافعی رحمه الله په نيز نفل په پيل سره نه لازميږی.ترڅوچې د شوافعو رحمهم الله په نيز که نفلی لمونځ د پيل کاوه نه روسته فاسد کړی.نو په هغه باندې قضا نشته.

دليله۞ داما شافعی رحمه الله دليل دا دې.چې نفل کونکې په خپل فعل کښ متبرع دې.او په تبرع کونکی باندې لزوم نه وی.(ځکه‌چې د الله تعالی ارشاد دې(مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ) نو په لمانځه کښے پيل کونکی باندې هم لزوم نشته.

الجواب عنه° دامام شافعی رحمه الله د دليل نه ځواب دا دې.چې په متبرع باندې د پيل کاوه نه وړاندې لزوم نه وی. خوچې کله پيل اوکړی.نو د پيل نه روسته لزوم راځی.او آيت.مَا (مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ) په اول صورت باندې محمول دې.په دوهم باندې نه دے محمول.

| |
|---|
| ولنا او زموږ دليل دا دې أن المؤدي.چې د نفلو کومه برخه اداکړې شوه وقع قربة.هغه طاعت واقع شو. فيلزم الإتمام ضرورة صيانته عن البطلان نو هغه د بطلان نه د محفوظ ساتلو لپاره د هغې پوره کول لازم دی. |

تشريح:- دليل الاحناف رحمهم الله ۞زموږ دليل دا دې.چې د پيل کاوه نه روسته‌چې د نفلو کومه برخه ادا کړې شوه.هغه قربت او عبادت واقع شو.او کوم څيزچې قربت او عبادت واقع شی.د هغې پوره کول لازم وی.چې د ابطال حق غير نه محفوظ اوساتلے شی.ځکه د الله تعالی ارشاد دې. (وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ۝) خپل عملونه مه ضائع کوئ.نو نفل د پيل کاوه نه روسته د دے پوره کول واجب دی.نو په مينځ کښ په فساد سره به ددے قضا واجب وی.

### په څلور رکعته مونځ کي د دوېمې شفعې په فساد د قضاحکم

| |
|---|
| (وإن صلى أربعا اوکه د څلورو رکعتو په نيت سره ئې (په نفلی لمونځ کي) پيل اوکړله وقرأ في الأوليين.او په اولنو دوو رکعتونو کي ئې قرات اوکړلو وقعد.او قعده ئې اوکړله ثم أفسد الأخريين.بيا ئې روستنی دوې (دوه) رکعتونه فاسد کړل قضى ركعتين).نوهم د دوو رکعتونو قضاء به راوړی |

حل اللغة° ①صلى، صلى صلاة: دعا کول، لمونځ کول ②قرا، قرا قراءة (ف): لوستل ③قعد، قعد قعوداً : کښينستل

تشريح:- قضاء الشفع الثانی بالشروع فيه۞صورت د مسئلے دا دې.که يو کس د څلورو رکعتو په نيت باندې نفل

پيل کړل.او په اولنو دوو رکعتونو کي ئې واجب قرات هم ولوستل.او په دوو رکعتو ئې قعده هم وکړله.بيا ئې دويمه شفع (آخرى دوې (دوه) رکعتونه) فاسده کړله.نو په ده باندې صرف د ويمې شفعه قضا واجب ده.په مسئله کښې ئې په دوهم رکعت د کيناستو قيد ددې وجې ذکر کړې دې.که په دوهم رکعت باندې نه وې ناست،او آخرى شفع فاسده کړي.نو په اتفاق سره پرې د څلورو رکعتونو قضا واجب ده.

**لِأَنَّ الشَّفْعَ الْأَوَّلَ قَدْ تَمَّ** ځکه چې لومړنى شفع خو پوره شوې ده **وَالْقِيَامُ إِلَى الثَّالِثَةِ بِمَنْزِلَةِ تَحْرِيمَةٍ مُبْتَدَأَةٍ**..او د دريم رکعت لپاره ودريدل د نوې تحريمې په مرتبه کي دي **فَيَكُونُ مُلْزِمًا**.نو دهغه د دوو رکعتونو لازمونکې شوه

**حل اللغة**° ① **تم، تم تماماً** (ض): پوره کيدل

**تشريح:- دليله**°حاصل دا که دريم رکعت ته د اودريدو نه روسته ئې دويمه شفع فاسده کړله.نو په ده باندې صرف د دويمې شفعې قضاء واجب ده.ځکه چې اوله شفع خو پوره شوې ده.او د دريم رکعت لپاره ودريدل د نوې تحريمې په مرتبه کښ دى.نو په دې تحريمه صرف دويمه شفع لازمه شوه.نو دې د فساد په صورت کي به هم ددې قضا واجب وى.

**هَذَا إِذَا أَفْسَدَ الْأُخْرَيَيْنِ بَعْدَ الشُّرُوعِ فِيهِمَا**.دا د قضا حکم په هه وخت کي دې.چې روستنۍ شفع ئې د پيل کوول نه روسته فاسده کړې وى **وَلَوْ أَفْسَدَ قَبْلَ الشُّرُوعِ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي**.اوکه په دويمه شفع کي ئې د پيل کوول نه وړاندې فاسده کړه **لَا يَقْضِي الْأُخْرَيَيْنِ**.[1]نو د آخرى دوو رکعتونو قضاء نشته.

**حل اللغة**° ① **افسد، افسد افساداً**: فاسد کيدل

**تشريح:-** علامه مرغينانى رحمه الله فرمانى چې د دويمې شفعې د قضا راوړلو حکم په هغه وخت کي دې چې په دې کي ئې پيل کړې وى او بيا ئې فاسده کړې.اوکه دريم رکعت ته د اودريدو نه وړاندې ئې دويمه شفع فاسده کړه.نو په ده باندې د څه شى قضا واجب نه ده.ځکه چې په دوهم رکعت باندې قعده کاوه سره لومړنى شفع پوره شوه.او دويمه شفع کي لا پيل نه ده شوې.نو د لومړنى شفعې قضا خو ددې وجې نشته.چې هغه پوره شوې ده.او د دويمې شفعې قضا ځکه نشته.چې په هغې کښې پيل نه ده شوې.

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله او د ابويوسف رحمه الله نه روايت دې **أَنَّهُ يَقْضِي اعْتِبَارًا لِلشُّرُوعِ بِالنَّذْرِ**.چې د (څلورو قضاء به راوړى.شروع په نذر باندې قياس کوى

**تشريح:- وجوب قضاء الاربعة عند ابى يوسف** رحمه الله ۞دامام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دا دې.چې که لومړنى شفع فاسده کړي.اوکه دويمه شفع په هر صورت کښ په د څلورور رکعتو قضا واجب وى.

**دليله** ۞امام ابويوسف رحمه الله څلور رکعته نفل لمونځ کښ پيل کول په نذر باندې قياس کړې دى.يعنى لکه څنګه چې يو د څلورو رکعتونو نفلو په نذر کاوه سره څلور رکعته واجبيږى.دغه ډول که د څلورو رکعتو په نيت سره ئې نفل پيل کړل.نو څلور رکعته به واجبيږى.ترې که په لومړنى شفع کي ئې نفل باطل کړل.نو بيا به هم د څلورو رکعتونو قضاء واجب وى.وکه په دويمه شفع کي ئې نفل فاسد کړل.نوهم به د څلورو قضا واجب وى.ددې قياس علت او سبب لزوم دې.يعنى لکه څنګه چې په نذر سره نفل لازميږى.ده شان په پيل کاوه سره

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى فتح القدير (٣٩٦\١) ومجمع الانهر (١٣٣\١) والبحر الرائق (٥٩\١) نقلا عن القول الراجح (١٠٩\١)-



هم نفل لازميږى.

**وَلَهُمَا**.او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې. **أَنَّ الشُّرُوعَ يَلْزَمُ** چې پيل کول هغه شى لازموى. **مَا شُرِعَ فِيهِ** کوم چې ئې پيل کړې وى **وما لا صحة له إلا به** .او هغه څيزچې د هغې نه بغير پيل په کښې کړې شوې شى نه صحيح کيږى **وَمَا لَا صِحَّةَ لَهُ إِلَّا بِهِ وَصِحَّةُ الشَّفْعِ الْأَوَّلِ لَا تَتَعَلَّقُ بِالثَّانِي**.اود لومړنى شفع صحت په دويمې شفعې باندې موقوف نه دې **بِخِلَافِ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ**.په خلاف د دوهم رکعت

**حل اللغة**° ① **يلزم، لزم لزوماً** (س): لازم کيدل

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ۞د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چې پيل کول د هغه شى دوجوب سبب وى.کوم چې پيل شوى وى.او د هغه شى د وجوب سبب وى.په کوم باندې چې د پيل کړې شوى شى صحت موقوف وى.مثلاً چې نفل لمونځ کړى نو لومړې رکعت شو.ځکه چې لومړې رکعت ﴿ما شرع فيه﴾دې. يعنى چې په کوم شى کي پيل شوى وى.او د اولنى رکعت صحت موقوف دې. په دوهم رکعت باندې نو په پيل کاوه سره دوهم رکعت هم واجب شو.

**عدم وجوب الشفعة الثانية بفساد الاولى**۞پاتې شوه شفع ثانى (آخرى دوى رکعتونه نو هغه نه ﴿ما شرع فيه﴾دى.او نه په هغې باندې د ﴿ماشرع فيه﴾صحت موقوف دې.نو لومړنى شفع کښې پيل کاوه سره دويمه شفع نه واجبيږى.او هرکله چې دويمه شفع واجب نه شوه.نو د لومړنى شفعې په باطلولو سره د دويمې شفعې قضاء هم نه واجبيږى.دغه ډول که دويمه شفع باطله کړى.نو صرف د دويمې شفعې قضاء به واجب وى.د لومړنى شفعې قضاء به واجب نه وى.ددې په خلاف که په نذر کښې په يو سلام سره د څلورو رکعتونو نذر اوکړى.نوپه يو سلام سره به څلور رکعته واجب وى.او که په دوو سلامونو سره څلور رکعته اوکړى.نونذر نه پوره کيږى.

**وَعَلَى هَذَا سُنَّةُ الظُّهْرِ**،او هم په دې اختلاف باندې د ماپښين سنت دى **لِأَنَّهَا نَافِلَةٌ**.ځکه چې هغه نفل دى.

**تشريح:- الاختلاف في سنة الظهر القبلية**۞هم دا اختلاف د ماپښين نه وړاندې په څلورو سنتو کي دې. يعنى د ماپښين نه وړاندې ئې د څلور رکعته سنتو نيت اوکړلو.او لمونځ ئې پيل کړلو.بيا ئې اولنى دوې (دوه) رکعتونه اوکړل.او دريم رکعت ته د اودريدو نه هغه فاسد کړى.نو د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به د څلورور قضا راوړى.او د طرفينو رحمهما الله په نيزبه د دوو رکعتونو قضا راوړى.

**وَقِيلَ** او ځينې مشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى **يَقْضِي أَرْبَعًا**.چې د څلور رکعتونو قضاء به راوړى **احْتِيَاطًا** (دا حکم په احتياط باندې مبنى دے) **لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَةِ صَلَاةٍ وَاحِدَةٍ**.ځکه چې د ماپښين نه وړاندې څلور رکعته سنت د يو لمونځ مرتبه لرى

**حل اللغة**° ① **يقضى، قضى قضاءً** (ض): پوره کول، قضا کول

**تشريح:- قضاء الاربع ودليله**۞ځينې مشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چې په دې صورت کي د احتياط لپاره د څلورو رکعتونو قضاء دې راوړى.ځکه چې دا څلورو رکعتونه د يو لمونځ په مرتبه کي دى.که يوه ښځه ددې سنتو په لومړنى شفع کي وى.يعنى د دريم رکعت پيل کيدو نه وړاندې دې ته خپل خاوند طلاق ورکړلو.يا دې څلور رکعته پوره کړلو.او سلام ئې اوګرځولو.نو ددې ښځې اختيار باطل شو.حالانکه په مجلس بدلولو سره خيار باطليږى.او د کار په بدليدو سره مجلس بدليږى .نو معلومه شوه.چې د ماپښين وړاندينى څلور سنت

يو لمونځ دې.اوكه اولنی دوې (دوه) ركعته

## په څلور ركعته نفلو په ټولو ركعتونو كې د قرات نه كولوحكم

(وَإِنْ صَلَّى أَرْبَعًا او كه دنفلو څلور ركعته ئې اوكړل. وَلَمْ يَقْرَأْ فِيهِنَّ شَيْئًا او په يوكي ئې قرات اونه وئيل. أَعَادَ رَكْعَتَيْنِ) نو د دوو ركعتونو اعاده به كوی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله دا حكم د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله يَقْضِي أَرْبَعًا.او ابويوسف رحمه الله په نيز به د څلورو قضا راوړی.

حل اللغة: ① صلی، صلی صلاة: لمونځ كول،دعاكول ② لم يقرا،قرا قراءة (ف): لوستل ③ اعاد، اعاد اعادة: واروسته كول

تشريح:- ترک القراءة في اربع ركعات النفل ۞ د متن مسئله دا ده.كه چا د نفلو څلور ركعته اوكړل .او په يو ركعت كي ئې هم قرات انكړلو.نو د طرفينو رحمهما الله په نيز د دوو ركعتو قضا واجب ده.و د ابويوسف رحمه الله په نيزد څلورو قضا واجب ده.

وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى ثَمَانِيَةِ أَوْجُهٍ دا مسئله په اته صورتونو ده.

حل اللغة: ① اوجه: صورتونه

تشريح:- الصور الثمانية وفق صاحب الهداية ۞ د صاحب هدايه رحمه الله د نظرورانديې اته صورتونه دا دی. ❶ په څلورو كي قرات ترك كړې شوی وی. ② په شفع ثانی كي ترك كړې شوی وی. ③ په شفع اول كي ترك كړې شوی وی. ④ په شفع ثانی كښے په يو ركعت كي ترك كړې شوی وی. ⑤ په شفع اول كښ په يو ركعت كي ترك كړې شوی وی. ⑥ په شفع اول كښ په يو ركعت كي او په شفع ثانی كي په يو ركعت كښ ترك كړې شوی وی. ⑦ په شفع ثانی كښے په ددو ركعتونو كي او په شفع اول كي په يو ركعت كي ترك كړې شوی وی. ⑧ په شفع اول كي په دواړو ركعتونو كښ او په شفع ثانی كي په يو ركعت كي ترك كړې شوی وی.

وَالْأَصْلُ فِيهَا او اصل په دے كي دا دی. أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله تَرْكَ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ أَوْ فِي إِحْدَاهُمَا يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ چې د امام محمد رحمه الله په نيز په اولنو دوو ركعتونو كي يا ددے دواړو نه په يو كي قرات پريښول د بطلان د تحريمې موجب دې. لِأَنَّهَا تُعْقَدُ لِلْأَفْعَالِ خكه‌چې تحريمه د افعالو لپاره تړلی شی

حل اللغة: ① اولیين: ړومبی دوې (دوه) ركعتونه ② يوجب، اوجب ايجاباً: واجب كيدل

تشريح:- الاصل عند محمد رحمه الله ۞ چونكه ددے مسئلې تخريج د درے واړه امامانو په جلا جلا اصولو بانديې مبنی دې.خكه علامه مرغينانی اول اصول ذكركړی دی. فرمانی.د امام محمد اصل او بنيادی خبره دا ده.چې په اولنو دوو ركعتونو كي قرات پريښول يا په دے دواړو كي په يو كي قرات پريښول تحريمه باطلوی.خكه‌چې تحريمه منعقد كولې شی.د افعالو لپاره او افعال د ترك قرات په وجه فاسد شو.نو هغه تحريمه كومچې د افعالو لپاره منعقد كولې شی.هغه هم فاسده شوه.

دليله ۞ دليل داې.چې د نفلو هره شفع خانله او مستقل لمونځ دې.نو په دے كښے قرات پريښول لمونځ د قرات نه خالی كول دی.او مونځ‌چې د قرات نه د خالی كيدو په وجه فاسد شی.نو ددے قضا واجبيږی .او تحريمه باطليږی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله تَرْكُ الْقِرَاءَةِ فِي الشَّفْعِ الْأَوَّلِ لَا يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ.او د ابويوسف رحمه الله په نيز په لومړنی شفع



كښ قرات پريښول د بطلان د تحريمې موجب نه دې وَإِنَّمَا يُوجِبُ فَسَادَ الْأَدَاءِ.بلكه فساد د ادا واجبوی

تشريح:- الاصل عند ابی يوسف رحمه الله ۞ د امام ابويوسف رحمه الله اصل دا دې.چې په اوله شفع كي د قرات پريښول تحريمه نه باطلوی.بلكه نور فاسدوی.خكه‌چې قرات يو زياتی ركن دې.تاسو غور اوكړئ .چې بغير د قرات نه هم لمونځ موجوديږی.لكه د ګونګا په حق كي لمونځ بغير د قراته دې.البته د قرات نه بغير دا نه صحيح كيږی.بهر حال په اوله شفع كښ د قرات پريخدل د ادا د فساد موجب دې.د تحريمې د بطلان موجب نه دې.او فساد د ادا د ترك ادا نه لوئې نه دې.يعنی دا كه پريښولې (پريخودې) شی.مثلاً یے اودسه شو.او داودس لپاره لاړو.نو په دے صورت كي ده ادا پريخودله.خو تحريمه ئې باطله نشوه.نو هركله‌چې د ادا په پريخودو سره تحريمه نه باطليږی.نو د ادا په فساد سره خو به په طريقه اولی سره تحريمه نه باطليږی.

لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ رُكْنٌ زَائِدٌ.خكه‌چې قرات ركن زائد دې. أَلَا تَرَى ولے تاسو نه ګورئ أَنَّ لِلصَّلَاةِ وُجُودًا بِدُونِهَا.چې د لمانځه بغير د قرات نه وجود شته غَيْرَ أَنَّهُ لَا صِحَّةَ لِلْأَدَاءِ إِلَّا بِهَا.خو دومره ده‌چې بغير د قرات نه ادا صيح نه ده. وَفَسَادُ الْأَدَاءِ لَا يَزِيدُ عَلَى تَرْكِهِ او د ادا فساد د ادا كاوه د پريخودو نه لوئې نه دی. فَلَا يُبْطِلُ التَّحْرِيمَةَ نوتحريمه باطله نشوه

تشريح:- دليله ۞ دليل دا دې.چې په يو ركعت كښ د قرات د پريخودو په وجه د قياس تقاضا خو هم دا ده.چې د اول پشان دے تحريمه باطله شی.او لمونځ دے فاسد شی.لكه‌چې څنګه د سهار په يو ركعت كي قرات پريخودو سره لمونځ فاسديږی.خو په يو ركعت كي د قرات په پريخود سره د لمونځ فساد مختلف فيه دې. خكه‌چې د حسن بصری رحمه الله مذهب دې.چې په يو ركعت كي قرات كول كافی دی.كه د دوو ركعتونو نه ئې په يو كي قرات اونكړلو.نولمونځ نه فاسديږی.نو په احتياط بانديې عمل كوو.او موږ وايو، .چې په يو ركعت كي د قرات پريخودو سره لمونځ فاسديږی.او قضا واجبيږی.خود شفع ثانی د لزوم په حق كي تحريمه پاتہ وی.

وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله تَرْكُ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ.او د ابوحنيفه رحمه الله په نيز په اولنو كي دقراءت ترك كول بطلان دتحريمې واجبوی وَفِي إِحْدَاهُمَا لَا يُوجِبُ او په دے دواړو كي د يو پريښول د بطلان تحريمې موجب نه دې. لِأَنَّ كُلَّ شَفْعٍ مِنَ التَّطَوُّعِ صَلَاةٌ عَلَى حِدَةٍ او خكه‌چې د نفلو هرشفع خانله لمونځ دې وَفَسَادُهَا بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِي رَكْعَةٍ وَاحِدَةٍ مُجْتَهَدٌ فِيهِ.او په يو ركعت كښ قرات پريښولو سره ددے فساد مختلف فيه دې. فَقَضَيْنَا بِالْفَسَادِ فِي حَقِّ وُجُوبِ الْقَضَاءِ نو موږ حكم وركړلود فساد د وجوب قضاء په حق كي وَحَكَمْنَا بِبَقَاءِ التَّحْرِيمَةِ او د بقاء د تحريمې حكم مو وركړلو فِي حَقِّ لُزُومِ الشَّفْعِ الثَّانِي احْتِيَاطًا د شفع ثانی د لزوم په حق كي احتياطاً

تشريح:- الاصل عند ابی حنيفه رحمه الله ۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله اصل دا دې. ① چې په اولنو دو ركعتونو كي د قرات پريښول تحريمه باطلوی. ② او په يوركعت كي پريښول تحريمه نه باطلوی.

إِذَا ثَبَتَ هَذَا هركله‌چې دا ثابته وشه نَقُولُ..نو مونږ وايو إِذَا لَمْ يَقْرَأْ فِي الْكُلِّ.چې ده كله په ټولو كي قرات اونكړلو قَضَى رَكْعَتَيْنِ عِنْدَهُمَا.[1] نو د طرفينو رحمهما الله په نيز به د دوو ركعتونو قضاء راوړی لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ قَدْ

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی شرح عقود رسم المفتی (ص۷۱،) والبحرالرائق (۵۹|۱) نقلا عن القول الراجح (۱٤۹|۱) نقلا عن القول الراجح (۱۱۰|۱)-

بَطَلَتْ بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِي الشَّفْعِ الْأَوَّلِ عِنْدَهُمَا خکه چې د دے دواړو په نيز اوله شفع د قرات پريښولو دوجې تحريمه باطله شوه فَلَمْ يَصِحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي نو د دويمې شفع پيل کول صحيح نشو. وَبَقِيَتْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله د ابويوسف رحمه الله په نيزتحريمه پاته ده فَصَحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي. نو د دويمې شفعے پيل کول صحيح شو ثُمَّ إِذَا أَفْسَدَ الْكُلَّ. بياچې ده واړه فاسد کړل بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِيهِ په دے کښے د قرات پريخودو د وجے فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأَرْبَعِ عِنْدَهُ. او نو د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په ده باندې د څلورور قضا واجب ده.

**تشريح:- توضيح المسئلة على اصول الائمة الثلاثة**◉صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی. هر کله چې د هر يوبيان شوې اصل ثابت شو. نو د متن د مسئلې وضاحت داسې دې. چې کله مصلی د نفلو په څلورو رکعنو کي قرات اونکړی. ①نو د طرفينو رحمهما الله په نيزاوله شفع د قرات د پريخودو په وجه تحريمه باطله شوه. اوچې تحريمه باطله شوه. نو د دويمې شفعے پيل کول تيک نه ده. نولکه چې ده د دوو رکعتونو لپاره تحريمه تړلے وه. اوهغه نې فاسده کړه. نو په ده باندې د دوو رکعتونو قضاء واجب ده.② او چونکه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز تحريمه نه باطلوی. نو شفع ثانی پيل کول هم صحيح شوه. خو د ترک قرات د وجې څلور واړه رکعتونه فاسد شول. نوځکه څه د څلورو واړو قضا واجب دی. والله اعلم

## په اولنودوو رکعتونو کې قرات کول او په روستنو کې نه کول

وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُولَيَيْنِ اوکه ده صرف په اولنو کښ قرات اوکړلو لَا غَيْرُ فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُخْرَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نوپه ده باندې په اجماع سره آخرنو قضاء واجب ده

**حل اللغة**° ①**قرا، قرا قراءة** (ف): لوستل ②**اولیین**: رومبی دوې (دوه) رکعتونه

**تشريح:- قضاء الاخرين دون الاولين**◉مسئله دا ده. که د نفلو په اولنو دوو رکعتونو کې ئے قرات اولوستلو. او په آخری دوو کي نې قرات انه لوستلو. نو په اجماع په ده باندې د دوو رکعتونو قضا واجب ده.

لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ لَمْ تَبْطُلْ خکه چې تحريمه نه ده باطله شوې. فَصَحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي. نو په دويمه شفع کښن پيل کول صيح شو. ثُمَّ فَسَادُهُ بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ لَا يُوجِبُ فَسَادَ الشَّفْعِ الْأَوَّلِ بيا د ترک قرات د وجې د شفع ثانی فساد د شفع اول فساد نه واجبوی.

**حل اللغة**° ①**لم تبطل، بطل بطلانًا** (ن): باطل کيدل ②**لايجب، اوجب ايجابًا**: واجب کيدل

**تشريح:-** خکه چې اوله شفع کي قرات موجود شو. نو ددے د وجې تحريمه باطله نشوه. نوچې تحريمه باطله نشوه. نو په دويمه شفع کښے پيل کول هم صحيح شو. نود قرات پريخودو په وجه د دويمې شفعے فساد د لومړنی شفعے فساد لره مستلزم نه دې. نو نو هر کله چې دويمه شفع فاسده شوه. لومړئی نه ده. نو قضا به هم صرف د دويمې شفعے واجب وی. د لومړنی به نه وی.

**التنبيه في صورة المسئلة**◉دا خيال ساتئ: چې دا حکم په هغه وخت کي دې. چې په اوله شفع ئ قعده کړې وی. اوکه قعده نې نه وی کړې. نو د څلورو رکعتونو قضا به واجب وی. دويمه شفع به د قرات د پريخودو د وجې واجب وی. او اوله شفع به د آخری قعدې د پريخودو د وجې واجب وی.

## د اولنو دوو رکعتونو د قضا د وجوب صورت

وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ اوکه ده صرف په آخری رکعتونو کي قرات اوکړلو لَا غَيْرُ فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو په اجماع سره د اولنو قضا واجب ده



**حل اللغة**° ①**قرا، قرا قراءة** (ف): لوستل ②**اخرين**: آخری دوې (دوه) رکعتونه ③**قضاء**: پوره کول ①

**تشريح:- صورة قضاء الاولين فقط**◉مسئله دا ده. که لمونځ گذار په آخری دوو رکعتونو کي قرات اوکړلو. اوپه اولنو دوو رکعتونو کي ئ قرات پريښولو. نو په اتفاق سره د اولنو دوو رکعتونو قضا واجب ده. ددے مسئلې په حکم کي دړ حضرات متفق دی.

لِأَنَّ عِنْدَهُمَا لَمْ يَصِحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي. خکه چې د طرفينو رحمهما الله په نيز د دويمې شفعے پيل کول صحيح نشو

**حل اللغة**° **لم يصح، صح صحيحًا** (ض) صحيح کول

**تشريح:-** خو په تخريج کښے مختف دی. طرفينو رحمهما الله فرمائی. چې په اولنو دوو رکعتونو کښ د قرات نه کاوه د وجې تحريمه باطله شوه. تردې که چا په دويمه شفع کښ په ده پسې اقتداء اوکړله. نو د هغه اقتداء نه صحيح کيږی. دغه ډول که په دويمه شفع کښ دے کس په کړکرس سره اوخاندل. نواودس نه ماتيږی. که تحريمه نه باطليدله. نواود دويمې شفعے پيل کول تيک وو. نوپه ده پسې اقتداء کول به هم صحيح وو. اوپه کړس کړس خندلو سره به اودس هم ماتيدلو. بهر حال دا اوشوه. چې په اولنو دوو رکعتونو کي د قرات د پريښولو په وجه تحريمه باطله شوه. او هر کله چې تحريمه باطله شوهنو د دويمې شفعے پيل هم صحيح نه ده. اوچې د دويمې شفعے پيل صحيح نشوه. نو د هغې قضا به هم واجب نه وی. بلکه صرف د دوو رکعتونو قضا به واجب وی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله إِنْ صَحَّ. او د ابويوسف رحمه الله په نيز اگرچې صحيح شو فَقَدْ أَدَّاهَا. خو ده آخری دوې (دوه) رکعتونه ادا کړل.

**حل اللغة**° ①**اداهما، ادى نادية**: اداکول

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. چې په اولنو دوو رکعتونو کي د قرات په پريخودو تحريمه نه باطليږی. نو په دويمه شفع کښے پيل کول هم صحيح شو. نو د شفع ثانی پيل که صحيح وی. اودے کس دوهم شفع هم ادا کړې ده. او هر کله چې دويمه شفع ادا شوه. نونو قضا به صرف د اولنو واجب وی د روستنو به نه وی.

## په څلور رکعته نفلو کې د قرات پريخودو درې صورتونه

وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُولَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُخْرَيَيْنِ اوکه په اولنو دوو کښے اود آخری دوو نه نې په يو کې قرات اوکړلو فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُخْرَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ. نو په اتفاق سره په ده باندې د آخری دوو قضا واجب ده وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُولَيَيْنِ فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ اوکه قراءت ئې اوکړوپه آخری دوو رکعتونو کي او په يو رکعت د اولنو دوونه نو په ده باندې قضاء د اولنو دوو رکعتونو ده په اتفاق سره

**حل اللغة**° ①**اولیین**: رومبی دوې (دوه) رکعتونه ②**اخرين**: آخری دوې (دوه) رکعتونه ③**قرا، قرا قراءة** (ف): لوستل

**تشريح:- الصورتان الاتفاقية**◉په دے عبارت کښ درے صورتونه ذکر دی.① يو داچې په اولنی دوو رکعتونو او آخری دوو نه په يو کي قرات اوکړی. په دے صورت کي په اتفاق سره د آخری دوو رکعتونو قضا واجب ده.
②داچې په آخری دوواود اولنی دوونه په يو کي قرات آوکړی. نوپه دے صورت کښ په اتفاق سره د دوو قضا واجب ده.

وَلَوْ قَرَأَ فِي إِحْدَى الْأُولَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُخْرَيَيْنِ اوکه په آخرنی دواړو کي اود اولنی دوو په يو کي ئې قرات اوکړلو عَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ علی قول ابي يوسف رحمه الله عليه قَضَاءُ الْأَرْبَعِ نو دابويوسف رحمه الله په نيز د څلورو قضا واجب

وَكَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ...او هم داسې د ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم دی لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ بَاقِيَةٌ ځکه چې تحريمه پاته ده

تشريح:- الصورة الاختلافية ◉ اوکه د اولنو دوو رکعتونو نه په يو کښې رکعت کې او د آخری دوو نه په يو کښې رکعت کې قرات اوکړی.نو په دې صورت کې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د څلورو رکعتو قضا واجب ده.هم دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دې.

دليله ◉ اودامام ابويوسف رحمه الله په نيز چونکه د قرات د پرېخودو د وجې تحريمه نه باطليږی.ځکه د هغوی په نيز په دويمه شفع کې پيل کول صحيح دی.اوچې په دويمه شفع کې پيل صيحح شوه.نوچونکه په دواړو شفعو کې په يو يو رکعت کې قرات پرېښولې (پرېخودې) شوې دې. ځکه به د دواړو شفعو يعنی څلورو رکعتونو قضا واجب وی.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله ..او امام محمد رحمه الله فرمانی عَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ([1]).چې د اولنو قضا واجب ده.لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ قَدِ ارْتَفَعَتْ عِنْدَهُ ځکه چې د هغو په نيز تحريمه ختمه شوه

تشريح:- په اختلافی صورت کې د امام محمد رحمه الله په نيز د اولنو دوو قضا واجب ده.

دليله ◉ دامام محمد رحمه الله دليل دا دې.چې د اولنو دوو رکعتونو نه په يو کې د قرات پرېښولو په وجه تحريمه پورته شوه.يعنی تحريمه باطله شوه.ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نيز د لومړنی شفعې په يو رکعت کې قرات پرېښول د تحريمې د بطلان موجوب دې.نوچې تحريمه باطله شوه.نو د دويمې شفعې پيل کول هم صې نشو.او هرکله چې د دويمې شفعې پيل کول صحيح نشو.نونو ددې قضا ه واجب نشوه.بلکه صرف د لومړنی شفعې قضا به واجب وی.

وَقَدْ أَنْكَرَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله هَذِهِ الرِّوَايَةَ عَنْهُ.امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ددې روايت انکار کړې دې وَقَالَ.او ابويوسف رحمه الله فرمائيلی دی. رَوَيْتُ لَكَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله چې ماخو د ابوحنيفه رحمه الله نه تاته دا روايت کړې وو أَنَّهُ يَلْزَمُهُ قَضَاءُ رَكْعَتَيْنِ.چې په ده باندې ددوو رکعتونو قضا لازم ده

تشريح:- انکار ابی يوسف رحمه الله عن رواية قضاء الاثنين ◉ «وقد انکر ابويوسف هذه الرواية الخ» په دې سره د امام ابويوسف رحمه الله په واسطه د امام ابوحينفه رحمه الله مذهب بيانوی.چې د څلورو رکعتونو قضا واجب ده.خوامام محمد رحمه الله چې جامع صغير د تصنيف نه چې کله فارغ شو.اوامام ابويوسف رحمه الله ته ئې واوروله.نوامام ابويوسف رحمه الله ورته اوفرمائيل.چې ماستا وړاندې دامام اعظيم رحمه الله نه دا روايت نه دې نقل کړې.بلکه ما ستا وړاندې د ابوحنيفه رحمه الله نه دا روايت نقل کړې وو.چې په دې کس باندې د څلورو رکعتونو قضا واجب ده.امام محمد رحمه الله اوفرمائيل.داسې نه ده.بلکه تاسو ماته هم دا روايت نقل کړې وو.چې امام صاحب په نيز په دې کس باندې د څلورو دوو رکعتونو قضا واجب ده.

وَمُحَمَّدٌ رحمه الله لَمْ يَرْجِعْ.او امام محمد رحمه الله رجوع نه ده کړې. عَنْ رِوَايَتِهِ عَنْهُ د ابويوسف رحمه الله د روايت کاوه د وجې.

تشريح:- وثوق محمد علی حفظه ◉ حضرت امام محمد رحمه الله په خپله حافظه باندې دومره کلك ولاړ وو.چې د امام ابويوسف رحمه الله په انکار باندې د اصرار کاوه باوجود ئې رجوع اونکړله.بعضې عالمانو وئيلی دی چې د امام ابويوسف رحمه الله خبره تيك ده.ځکه چې وړاندنې د امام ابوحنيفه رحمه الله اصل بيان شو دې.چې اولنو دوو رکعتونو کې د قرات پرېښول د تحريمې د بطلان موجب دې.په يو رکعت کې د قرات په پرېخودو تحريمه نه

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی فت القدير(۳۹۹\۱) وردالمحتار(۵۱۳\۱) وتبيين الحقائق (۱۷۵\۱) والبحرالرائق (۶۰۱۲) نقلا عن القول الراجح (۱۱۰\۱)_



باطليږی.او په ذکر شوې مسئله کښې هم دا صورت فرض کړې شوې دې.چې د اولنو په يو رکعت کې او د آخرنو په يو رکعت کې ئې قرات کړی وی.او په يو يو کې ئې قرات پرېښولې (پرېخودې) وی.نوچې د اولنو دوو نه په يو کې قرات پرېښولو سره د امام اعظم په نيز تحريمه نه باطليږی .نو د دويمې شفعې پيل به صحيح وی.اوچې په دويمه شفع کې پيل صحيح شوه.نود اولنو يو رکعت او د آخرنو په يو رکعت کې د قرات د پرېخودو د وجې د واړو شفعو يعنی د څلورو رکعتونو قضا واجب ده. صرف د لومړنی شفعې نه ده واجب.

## د اولنی رکعت نه علاوه په نورو کې د ترک قرات حکم

وَلَوْ قَرَأَ فِي أَحَدَى الْأُولَيَيْنِ لاغير اوکه ده قرات اوکړلو د لومړنی شفعې په يو رکعت کې صرف قَضَى أَرْبَعًا عِنْدَهُمَا نو د شيخينو رحمهما الله په نيز به د څلورو رکعتو قضا راوړی

حل اللغة ◎ ① قضی، قضی، يقضی قضاءً (ض): پوره کول، قضا کول

تشريح:- الاختلاف في ترک القراءة في الرکعات الثلاثة ◉ مسئله دا ده.که په اولنو دوو رکعتونو کې په يو کې قرات اوکړی.او په نورو کې قرات پرېږدی.① نو د شيخينو رحمهما الله په نيز به د څلورو قضا راوړی.

دليلهما ◎ د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې.چې ددې دواړو بزرگانو په نيز تحريمه پاته ده.① د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خو ددې وجې چې په اولنو دوو رکعتونو کې په يو کې د قرات پرېښول د دوی په نيز تحريمه نه باطلوی.② او پاتې شو امام ابويوسف رحمه الله نود هغوی په نيز هم تحريمه نه باطلوی.بهر حال کله چې د دې دوړو په نيز تحريمه باطله نشوه.نوپه دويمه شفع کې پيل صحيح شوه.خو چونکه د لومړۍ شفعې په يو رکعت کښې او د دويمې شفعې په دواړ رکعتونو کې قرات پرېښولې (پرېخودې) شوې دې.ځکه به د څلورو قضا واجب وی.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله قَضَى رَكْعَتَيْنِ([1]).اودا مام محمد رحمه الله په نيز به د دوو رکعتونو قضا راوړی

حاصل ◎ د امام محمد رحمه الله په نيز به د دوو رکعتونو قضا واجب وی.

دليله ◎ دامام محمد رحمه الله په نيز چونکه د لومړنی شفعه په يو رکعت کې هم د قرات پرېښول تحريمه باطلوی .نودهغوی په نيز په دويمه شفع کې پيل کول نه صحيح کيږی.اوچې دويمه شفع کې پيل صحيح نشو .نود هغې قضا به هم واجب نه وی.البته د لومړنی شفعې په يو رکعت کښ د قرات د پرېخودو په وجه د هغې قضا واجب ده.

وَلَوْ قَرَأَ فِي أَحَدَى الْأُخْرَيَيْنِ لاغير اوکه په آخری دوو رکعتونو کښې ئې په يو کې قرات اوکړلو قَضَى أَرْبَعًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله ..نو د ابويوسف رحمه الله په نيز به د څلورو قضا راوړی

تشريح:- الاختلاف في ترک القراءة في احدی الاخرين ◉ که د آخری دوو رکعتونو نه ئې په يو کې قرات اوکړلو.اوپه پاته دريو کې ئې پرېښولو .نودامام ابويوسف رحمه الله په نيز د څلورو رکعتونو قضا واجب ده.

دليله ◎ دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چې د هغو په نيز تحريمه مطلقاً نه ده باطله،نوچې تحريمه نه ده باطله ،نود دويمې شفعې پيل هم صحيح شوه.خو چونکه ده په اولنو دواړو رکعتونو کې او د آخری دوو رکعتونو نه په يو کې قرات اونکړلو.نو ځکه به د دواړو شفعو يعنی د څلورو رکعتونو قضا واجب وی.

وَعِنْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ). او د طرفينو رحمهما الله په نيز به د وو رکعتونو قضا راوړی

تشريح:- د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز د دوو رکعتونو قضا واجب ده.

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فی الفقه الاسلامی (۵۱\۱۲) والهندية (۱۱۳\۱) و ردالمحتار(۵۱۳\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۱۲\۱)_

**دليلهما**: د طرفينو رحمهما الله په نيز چونكه په اولنو دوو ركعتونو كي د قرات په پريخودو سره تحريمه باطله شوه. نو خكه په دويمه شفع كي پيل صحيح نشو. اوچي په دويمه شفع كي پيل صحيح نشوه. نو د دے قضا به هم واجب نه وي. البته په لومړنى شفع كي په دواړو ركعتونو كي د قرات د پريخودو په وجه د لومړنى شفع قضا واجب ده.

**قَالَ**. امام محمد رحمه الله فرمائي. (وَتَفْسِيرُ قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" {لَا يُصَلَّى بَعْدَ صَلَاةٍ مِثْلُهَا} [1] چي د نبي ﷺ د قول «لا يصلى بعد صلاة مثلها» تفسير دا دي يَعْنِي رَكْعَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ. چي نه به كوي. دوي (دوه) ركعته په قرات وَرَكْعَتَيْنِ بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ او دوي (دوه) ركعته بغير د قرات فَيَكُونُ بَيَانُ فَرْضِيَّةِ الْقِرَاءَةِ فِي رَكَعَاتِ النَّفْلِ كُلِّهَا) نو دا حديث د نفلو په ټولو ركعتونو كي د قرات د فرضيت بيان كي شي.

**حل اللغة**: ① **لايصلى، صلى صلاة**: لمونځ كول، دعا كول ② **فيكون، كان كونًا** (ن): كيدل

**تشريح:- توضيح استدلال محمد رحمه الله** ◉ صاحب دهدايه رحمه الله «هذه المسئلة على ثمانية اجه» او فرمائيل. او چي كومو اتو مسائلو ته ئي اشاره كړي وه د توضيح او تشريح د د هغي د دلائلو سره ذكر كړي شوه. اوس صاحب دهدايه رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول «وتفسير قوله ﷺ لا يصلى بعد صلاة مثلها» نه په دے خبره استدلال كوي. چي د نفلو په ټولو ركعتونو كي قرات فرض دي. امام محمد رحمه الله فرمائي. چي د حديث مراد دا دي چي د فرض پشان به داسي څلور ركعتونه د هغي نه روسته نشي كولي. چي په دوو كي قرات وي. او په دوو كي قرات نه وي. چي د فرض پشان شي. بلكه په څلورو ركعتونو كي به قرات وي. نو په دے حديث سره د نفلو په ټولو ركعتونو كي د قرات د فرضيت ثبوت اوشو.

## د قدرت على القيام باوجود په ناسته د نفل كولو حكم

**(وَيُصَلِّي النَّافِلَةَ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ)** او په قيام د قدرت لرو باوجود په ناسته نفل كولي شي.

**حل اللغة**: ① **يصلى، صلى صلاة**: لمونځ كول، دعا كول ② **نافله**: نفل كول

**تشريح:- جوازالنفل قاعدا مع القدرة على القيام** ◉ مسئله، د قادر على القيام لپاره په ناسته نفل كول جائز دي.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** خكه چي حضور ﷺ فرمائيلي دي {صَلَاةُ الْقَاعِدِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلَاةِ الْقَائِمِ} [1] چي په ناسته لمونځ كول په ولاړه د كاوه په نسبت نيمه درجه لري

**حل اللغة**: ① **قاعدا**: په ناسته ② **قاعد**: ناست ⑤ **قائم**: اودريدونكي

**تشريح:- دليله** ◉ دليل دادي چي حضور ﷺ فرمائيلي دي. «صلوة القاعد على النصف من صلوة القائم» يعني په ولاړه د لمونځ كاوه په نسبت په ناسته لمونځ كولو كي نيم ثواب دي. د دے حديث څخه به استدلال په دے طريقه وي. چي په حديث كي د رسول الله ﷺ مراد يا خو دادي. چي د عذر په وجه په ناسته لمونځ اوكړي يا بغير د عذر نه. اول خو كيدلے نه شي. خكه چي د عذر په وجه سره په ناسته او په ولاړه كول، په ثواب كي دواړه برابر دي. نو متعين شوه. چي بغير د عذر نه په ناسته كول مراد دي. پاتي شو دا چي په حديث كي فرض لمونځ مراد دے يا نفل. نو موږ وايو فرض په اجماع سره مراد نه دي. خكه چي بغير د عذر نه په اجماع سره

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب مرفوعا ووقفه ابن ابى شيبة فى مصنفه على عمر بن الخطاب وابن مسعود (رضى الله عنهما)... قال لا يصلى على اثر صلوة مثلها. نصب الراية (١٤٤\٢)-

(١) : من حديث عمران بن حصين رضي الله عنه رواه البخارى فى التقصير باب ١٧ والترمذى فى الصلوة باب ١٥٧ وابوداؤد فى الصلوة باب ١٧٥ رقم ٩٥١ والنسائى فى صلوة الليل باب ٢١ وابن ماجه فى الاقامة بباب ١٤١ و احمد فى المسند (٤٤٢\٤، ٤٤٣)-



فرض لمونځ په ناسته كول جائز نه دي. نو دوهم يعني نفل متعين شو. يعني دا ثابت شو. چي نفل لمونځ بغير د عذر نه كولي شي. البته په ولاړه د كاوه په نسبت به ثواب نيم وي.

**وَلِأَنَّ الصَّلَاةَ خَيْرٌ مَوْضُوعٌ**. او خكه چي لمونځ خير موضوع دي **وَرُبَّمَا يَشُقُّ عَلَيْهِ الْقِيَامُ**. او ډير خله په بنده باندي قيام سخت وي **فَيَجُوزُ لَهُ تَرْكُهُ**. په دے وجه دده لپاره قيام ترك كول جائز دي. **كَيْ لَا يَنْقَطِعَ عَنْهُ** چي دده نه دا خير منقطع نشي

**حل اللغة**: ① **يشق، شق مشقة** (ن): سختيدل، مشكل كيدل ② **فيجوز، جاز جوازًا** (ن): جائز كيدل ③ **ينقطع، انقطع انقطاعًا**: منقطع كيدل

**تشريح:- الدليل العقلى** ◉ دليل عقلي دادي. چي نفل لمونځ خيرموضوع دي. يعني د بنده لپاره دا نيكى داسي مقرر شوي ده. چي په ټولو وختونو كي ئي كولي شي. د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دي. چي حضور ﷺ وويل «الصلوة خير موضوع فمن شاء استقل ومن شاء استكثر» يعني لمونځ خيرموضوع دي. چي څوك غواړي كم دے كوي. او څوك چي غواړي ډير دے كوي.

**حاصل المسئلة** ◉ حاصل دادي. چي نفل لمونځ غير واجب دي. او كوم ځيزچي په دے اندازه وي. په هغي كي داسي څه شرط نه شي لګولي. چي هغه د دے د پريښولو سبب وي. خكه چي كوم شي د خير د پريښولو سبب وي. هغه خير موضوع نه شي كيدي. او د قيام شرط لګول د نفل پريښولو سبب كيدي شي. خكه چي ډير وخته په مونځګذار باندي قيام سخت وي. نو كه قيام د نفل لمونځ لپاره شرط اوګرځولي شي. نو ډير خله د قيام ګرانيدو په وجه د نفلو پريښول لازميږي. حالانكه نفل خير موضوع دي. يعني په ټولو وختونو كي د حاصلولو نيكى ده. خكه د نفل لمونځ لپاره د قيام شرط اونه لګولي شو.

**وَاخْتَلَفُوا فِي كَيْفِيَّةِ الْقُعُودِ**. او عالمانو رحمهم الله د ناستے په كيفيت كي اختلاف كړي دي **وَالْمُخْتَارُ أَنْ يَقْعُدَ** غوره داده. چي داسي كښيني **كَمَا يَقْعُدُ فِي حَالَةِ التَّشَهُّدِ**. څنګه چي د تشهد په حالت كي كښيني **لِأَنَّهُ عُهِدَ مَشْرُوعًا فِي الصَّلَاةِ** خكه چي په لمانځه كي هم دا مشروع او متعارف شوى دى

**تشريح:- الاختلاف في كيفية القعود في النفل** ◉ صاحب دهدايه فرمائي. چي عالمانو رحمهم الله د نفلو د ناستے په كيفيت كي اختلاف كړي دي. ① امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړي دي. چي د نفل كونكي څنګه خوښه وي. په ناسته نفل لمونځ كولي شي. خكه چي كله دده لپاره د اصل قيام پريښول جائز دي. نو د صفت قعود پريښول به په طريقه اولى سره جائز وي. ② د امام ابويوسف رحمه الله نه مروى دى. چي د حبواء په شكل دے كيني. خكه چي حضور ﷺ په آخرى عمر كي د احتباء په حالت كي لمونځ كولو. (د حبواء په حالت كي ناسته داده. چي دواړه ګونډۍ اودروی. او كوناټي په مځكه كيږدي. بيا دواړه لاسونه اوتړي» ③ د امام محمد رحمه الله نه مروى دى. چي پرلتئ دے وهي. ④ امام زفر رحمه الله فرمائي. چي د تشهد په كيفيت دے كيني. د مصنف رحمه الله هم دا خوښ مذهب دي. فتوى هم په دے ده. خكه چي په لمانځه كي هم دا طريقه مشروع شوي ده.

## په مانځه كي د قيام نه قعود ته د تلو حكم

**(وَإِنْ افْتَتَحَهَا قَائِمًا** او كه نفل ئي په ولاړه پيل كړل. **ثُمَّ قَعَدَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ** بيا بغير د عذر نه كيناستلو **جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** ([1]). نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دى **وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ** او دا استحسان دي

**حل اللغة**: ① **افتتحها، افتتح افتتاحًا**: پيل كول ② **قائمًا**: په اودريدو ③ **قعد، قعد قعودًا** (ن): كښيناستل

[1]) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار (٥١٥\١) وفتح القدير (٢٠٢\١) ومراقى الفلاح (ص، ٢٦٦) والبحر الرائق (٦٣\٢) والهندية (١١٤\١) نقلا عن القول الراجح (١١٢\١)-

**تشریح:- الاختلاف في القعود من القیام في النفل**⊛مسئله داده. که چا نفل لمونځ په ولاړه پیل کړو. بیا بغیر د عذر نه کیناستلو. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دی.

**وَعِنْدَهُمَا لَا يُجْزِيهِ** او د صاحبینو رحمهما الله په نیز ناجائز دی **وَهُوَ قِيَاسٌ** او دا قیاس دی **لِأَنَّ الشُّرُوعَ مُعْتَبَرٌ بِالنَّذْرِ**. ځکه چې پیل کول په نذر باندې قیاس کولی شی

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله په نیز ناجائز دی. حکم اول استحساني دی. او ثاني قیاسي دی.

**ادلیلهما**⊛د صاحبینو رحمهما الله دلیل قیاس دی. یعنی نفل لمونځ پیل کول قیاس شوی دے په نذر باندې. په دے طریقه که چا په ولاړه د نفل لمونځ کاوه نذر اوکړو. نو دده لپاره به په ناسته کول جائز نه وی. دغه ډول که په ولاړه ني نفل لمونځ پیل کړو. نو په ناسته کول جائز نه دی.

**لَهُ** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې **أَنَّهُ لَمْ يُبَاشِرِ الْقِيَامَ فِيمَا بَقِيَ**. چې متنفل په مابقی کي قیام اونکړو **وَلَمَّا بَاشَرَ** او( په کوم کي چې ني قیام) اوکړو. **صَحَّتْ بِدُونِهِ**. هغه د قیام نه بغیر صحیح دې

**تشریح:- دلیل ابی حنیفة رحمه الله**⊛د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. مخکښي تیرشوی دی. چې پیل کول هغه شی لازموی. کوم چې پیل شی. او په کوم چې د "ماشرع فیه" صحت موقوف دې. نو په نفلو پیل کاوه سره رکعت اولی او ثانیه دواړه واجبیږی. رکعت اولی خو به ځکه واجب وی. چې دا پیل شوې دې. او رکعت ثانیه په دے وجه، چې په دے باندې د رکعت اولی صحت موقوف دے. ځکه چې صلوة بتیراء ممنوع دې. خو په ذکر شوې مسئله کي رکعت اولی په ولاړه پیل شوې دې. خو ددے صحت په دے موقوف نه دې. چې رکعت ثانیه هم په ولاړه اوکړې شی.

**بِخِلَافِ النَّذْرِ** په خلاف د نذر. **لِأَنَّهُ الْتَزَمَهُ نَصًّا** ځکه چې ده په صراحت سره قیام لازم کړو **حَتَّى لَوْ لَمْ يَنُصَّ عَلَى الْقِيَامِ** تردې که د قیام تصریح ني نه وه کړې. **لَا يَلْزَمُهُ الْقِيَامُ عِنْدَ بَعْضِ الْمَشَايِخِ** رحمهم الله. نو د ځینې مشائخو رحمهم الله په نیز په ده باندې قیام نه لازمیدلو

**تشریح:-** که یو کس اول رکعت په ولاړه باندې پیل کړی په دې سره د دوهم رکعت قیام نه لازمیږی ددې په خلاف نذر دې ځکه چې په نذر کي ده ښکاره په خان باندې قیام لازم کړې دې نو هم په ولاړه سره لمونځ کاوه باندې به دده نذر پوره کیږی نو که یو کس په خپل نذر کي د قیام صراحت نه وی کړې بلکه مطلقا دا ني وئیلی وی چې نفل به کوم نو د بعضې مشائخو په نیز په ده باندې قیام لازم نه دې

### د ښار نه بهر په خاروی باندې د نفل کولو حکم

**وَمَنْ كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ** اوکوم سړی چې د ښار نه بهر وی **تَنَفَّلَ عَلَى دَابَّتِهِ** هغه دے په خپله څوارلۍ باندې نفل لمونځ کوی **إِلَى أَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ**. کوم اړخ ته چې غواړی متوجه دے شی. **يُومِئُ إِيمَاءً** په داسې حال کي چې اشاره کوی

**حل اللغة:** ①خارج: بهر ② تنفل، تنفل تنفلاً: نفل کول ③جهة: طرف، اړخ ④توجهت، توجه توجهاً: متوجه کیدل ⑤یومی، امی ایماءً: اشاره کول

**تشریح:- الاختلاف في الصلاة قاعداً بعد الافتتاح راکباً**⊛ ①مسئله، دښار نه بهر په سپرلۍ باندې نفل لمونځ کول جائز دی. که د عذر په وجه وی یا بغیر د عذر نه. دلمونځ په پیل کي د قبلې اړخ ته متوجه وی اوکه متوجه نه وی. یعنی کوم اړخ ته چې د سپرلۍ مخ وی. هم هغه اړخ ته دے مخ کړی او ادا دے کړی.

**لِحَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ** رضی الله عنهما دحدیث ابن عمر رضی الله عنهما په وجه. **قَالَ {رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** فرمائی. چې ما رسول الله ﷺ اولیدلو **يُصَلِّي عَلَى حِمَارٍ**. چې دوی ﷺ په خر باندې لمونځ کولو **وَهُوَ مُتَوَجِّهٌ إِلَى خَيْبَرَ**. په داسې حال کي چې دوی ﷺ خیبر اړخ ته متوجه وو **يُومِئُ إِيمَاءً}** [1] په اشاره سره



**تشریح:- دلیلها**⊛ددے ټولو خبرو دلیل د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث دې. «قال رأیت رسول الله ﷺ یصلی علی حمار وهو متوجه الی خیبر یومی ایماء» یعنی حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی. چې ما د الله پاک رسول ﷺ په خر باندې اشاره سره په لمونځ کاوه باندې اولیدلو. په داسې حال کي چې دوی خیبر اړخ ته متوجه وو.

**وَلِأَنَّ النَّوَافِلَ غَيْرُ مُخْتَصَّةٍ بِوَقْتٍ**. او ځکه چې نوافل د وخت سره مختص نه دی **فَلَوْ أَلْزَمْنَاهُ النُّزُولَ وَالِاسْتِقْبَالَ**. نو که موږ په ده باندې د سپرلۍ نه راکوزیدل او قبلې اړخ ته متوجه کیدل لازم کړو. **تَنْقَطِعُ عَنْهُ النَّافِلَةُ** نو دده به نفل لمونځ منقطع شی **أَوْ يَنْقَطِعُ هُوَ عَنِ الْقَافِلَةِ**. یا به دے د قافلے نه جلا شی

**حل اللغة:** ①الزمناه، الزم الزاماً: لازم کول ② نزول: راکوزیدل، نازل کیدل ③ ینقطع، انقطع، انقطاعاً: منقطع کیدل

**تشریح:- الدلیل العقلی**⊛عقلی دلیل دادې. چې په سپرلۍ باندې د نفلو کاوه جواز ځکه دې. چې نوافل د هیڅ وخت سره مخصوص نه دی. نو که موږ په مصلی باندې د سپرلۍ نه کوزیدل او استقبال قبله لازم اوګرځوو. نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی. یا خو به د سپرلۍ نه راکوزیږی. قبلې اړخ ته به متوجه کیږی. او یا به نه د سپرلۍ نه راکوزیږی. او نه به استقبال د قبلې کوی. که دوهم صورت وی. نو نفل به دده نه منقطع شی. ځکه چې دکومے پورې دے په سپرلۍ باندې وی. نفل نه شی ادا کولې. او هرکله چې په دغه وخت کي نوافل نه شی اداکولې. نو دے د نوافلو د خیرموضوع (یعنی په ټولو وختونو کي دعمومیت) نه محروم شو. حالانکه نوافل خیرموضوع دی. یعنی دا نیکی هر وخت حاصلیدے شی. او که لومړې صورت وی. یعنی د سپرلۍ نه راکوزیدل او قبلې اړخ ته مخ کاوه سره نفل لمونځ کول. په دے صورت کي به دے د قافله نه ورسته پاتې شی. نو ددے عذر په وجه په سپرلۍ باندې د نفل لمونځ کاوه اجازت ورکړې شو.

**أَمَّا الْفَرَائِضُ**. پاتې شو فرائض **فَمُخْتَصَّةٌ بِوَقْتٍ** نو دا خاص وختونو سره مخصوص دی

**تشریح:- وجه عدم جواز الفرائض راکباً**⊛پاتې شو فرائض، نو دا د خاص وختونو سره مخصوص دی. نو په دے مخصوص وختونو کي په راکوزیدلو او قبلې ته د مخ کاوه په لزوم کي هیڅ تکلیف او حرج نشته دې. په دے وجه په سپرلۍ باندې د فرض لمونځ کاوه اجازت ورنکړې شو.

**اجواز الفرض راکباً عندالعذر**⊛البته د عذر د وجې جائز دی. ① مثلاً د غل ویره، یا د درنده ګانو ویره وی. که د سپرلۍ نه راکوز شی. او فرض ادا کړی. نو د سپرلۍ څاروے او سامان به غل اوتښتوی. یا به ئې درنده هلاك کړی. ② یا مثلا په ټوله مځکه باندې دومره ډیرے خټے او چقړے دی. چې په دے باندې سجده کول ممکن نه دی. ③یا مثلا سور سړې دومره بوډا او شیخ فانی وی. چې دے په سپرلۍ باندې یواځے نه شی سوریدې. او هلته کي د سورولو لپاره بل څوك هم موجود نه وی. نو په دے صورتونو کي په سپرلۍ باندې فرائض ادا کول شرعاً جائز دی. ځکه چې د الله تعالی ارشاد دے «فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا» یعنی که تاسو ته ویره وی. نو په ولاړه ولاړه یا په سپرلۍ باندې په د سپرلۍ په حالت کي لمونځ کوئ.

**وَالسُّنَنُ الرَّوَاتِبُ نَوَافِلُ** او راتبه سنتونه هم نفل دی

**حل اللغة:** ①سنن رواتب: سنت مؤکد

**تشریح:- حکم السنن الراتبة راکباً**⊛ صاحب دهدایه فرمائی. چې سنت مؤکده هم نفل دی. یعنی د نفلو په شان

(١) : من حدیث ابن عمر (رضی الله عنهما) رواه مسلم فی صلوة المسافرین وقصرها رقم ٣٥ وابوداؤد فی صلوة السفر باب ٨ والنسائی فی القبلة باب ٧.

سنت مؤكده هم په سپرلۍ باندې جائز دی.پاتې شو وتر،نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز سپرلۍ باندې جائز نه دی.ځكه‌چې ددوی په نيز د وترو لمونځ واجب دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دې.ځكه‌چې ددوی په نيز د وترو لمونځ سنت دې.او سنت په منزله د نفل په سپرلۍ باندې جائز دی.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله .او د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت شوې دې أَنَّهُ يَنْزِلُ لِسُنَّةِ الْفَجْرِ چې د سهار د سنتو لپاره به راكوزيږی لِأَنَّهَا آكَدُ مِنْ سَائِرِهَا ځكه‌چې دا د نورو سنتونو نه زيات مؤكد دی

**تشريح:- رواية اداء سنة الفجرنازلاً**◉د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې.چې د سهار سنت د سپرلۍ نه راكښته اداكړی.ځكه‌چې د سهار سنت په نسبت د نورو سنتو زيات مؤكد دی.په دے وجه به ددے حكم د نورو سنتونو نه مختلف وی.ابن شجاع فقيه وئيلی دی.چې داسې ښكاری.چې د امام صاحب نه دا روايت د افضليت د بيان لپاره دی.يعنی افضل دادی.چې د سهار سنت د سپرلۍ نه راكښته ادا كړی.

والتقييد بخارج المصر ينفی اشتراط السفر..او د خارج مصر قيد لګول د سفر د شرط نفی كوی وَالْجَوَازَ فِي الْمِصْرِ(¹) او په ښار كي د جواز نفی كوی

**تشريح:- جواز الصلاة راكباً لغير المسافر**◉ ① په دې عبارت سره دا بيانول مقصود دی.چې په اصل مسئله كي دا قيد لګول‌چې د آبادۍ نه بهر وی، دوې (دوه) خبرے ثابتوی .يوه داچې په سپرلۍ باندې د نفل لمونځ د جواز لپاره مسافر كيدلو شرط نشته.بلكه د آبادۍ نه بهر كيدل كافی دی.كه مقيم وی او كه مسافر وی.

**تشريح:- عدم جواز الصلاة راكباً في المصر**◉ د ((خارج المصر)) په قيد سره دويمه خبره بيانوی.چې په ښار او آبادۍ كي دننه په سپرلۍ باندې نفل كول جائز نه دی.ځكه‌چې د ښار نه بهر په سپرلۍ باندې د نفلو جواز خلاف قياس په نص سره ثابت دې.او ښار د خارج ښار په حكم كي هم نه دې.نو په ښار كي دننه به په قياس باندې عمل كولې شی.او د ښار نه بهر كي به خلاف قياس په نص باندې عمل كولې شی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله .او د ابويوسف رحمه الله نه مروی دی أَنَّهُ يَجُوزُ فِي الْمِصْرِ أَيْضًا چې په ښار كي هم جائز دی

**تشريح:-** د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دےچې په ښار كي دننه هم بغير دكراهت نه په سپرلۍ باندې نفل كول جائز دی.

**دليله**◉د امام ابويوسف مستدل د ابن عمر رضي الله عنه حديث «ان النبی ﷺ ركب الحمار فی المدينة يعود سعد بن عبادة رضي الله عنه وكان يصلی وهو راكب» دې. يعنی حضور ﷺ په مدينه كي په خر باندې سور شو.د سعد بن عباده رضي الله عنه بيمار پرسۍ لپاره ئې تشريف اوړلو.او حضور ﷺ په سپرلۍ باندې لمونځ كولو.ددے حديث نه ثابته شوه.چې په ښار كي دننه هم په سپرلۍ باندې نفل كول جائز دی.

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ او د ظاهرالرواية وجه دا ده. أَنَّ النَّصَّ وَرَدَ خَارِجَ الْمِصْرِ چې نص د ښار نه بهر كاوه باندې وارد شوې دې وَالْحَاجَةُ إِلَى الرُّكُوبِ فِيهِ أَغْلَبُ او هلته كي د سپرلۍ اړتيا هم زيات دې.

**وجه ظاهرالرواية**◉د ظاهرالرواية وجه داده.چې نص يعنی د ابن عمر رضي الله عنهما حديث كوم‌چې د مسئلې په پيل كي ذكر شوې دے) د آبادۍ نه بهر دلمونځ په جواز كي وارد شوې دې.او د آبادۍ نه بهر د سپرلۍ اړتيا هم زيات وی.نو په ښار كي دننه به په دے نشی قياس كولې.

**دليل ابی حنيفة رحمه الله** ◉د امام صاحب مستدل هم دا حديث دې.ليكن ددوی په نيز دكراهت وجه داده.چې په

(¹) القول الراجح هو عدم جواز الصلاة على الدابة فی المصر قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(١١٦١٥) والبحر الرائق (٦٤١٢) والهندية (١٤٢١١) وشرح عقود رسم المفتی (ص٨٠) نقلا عن القول الراجح (١١٤١١)-



آبادۍ كي دننه ګڼه ګوڼه ډيره وی.په دے وجه په قراءت كي غلطی واقع كيدلو نه ساتنه نشی راتلې. په دے وجه په آبادۍ كي دننه په سپرلۍ باندې نفل كول مكروه اوګرځولی شو.

**الروايتان في رجوع الامام عن قوله**◉علامه ابن الهمام رحمه الله ليكلی دی.چې كله امام ابوحنيفه رحمه الله دا اووئيل.چې په آبادۍ كي دننه په سپرلۍ باندې نفل كول جائز نه دی.نو ابويوسف رحمه الله امام اعظم رحمه الله ته دا حديث پيش كړو.امام صاحب‌چې دا حديث واوريدلو.نو خپل سر ئې اوچت نه كړو.① اوس د بعض خلګو وينا داده.چې سر نه اوچتول د خپل قول نه رجوع كاوه لپاره وو.يعنی حضرت امام صاحب رحمه الله د خپل قول نه رجوع اوكړله.او دحديث رسول ﷺ په وړاندې ئې د عاجزۍ لپاره سر كښته كړلو.② او ځينې خلګو وئيلی دی.چې د حضور ﷺ په آبادۍ كي دننه په سپرلۍ باندې نفل كول شاذ امر دې.او شاذ امر حجت نه وی.لهذا دا حديث د امام صاحب په خلاف حجت نه دې.

## د سپرلۍ نه نزول ته اود نزول نه ركوب ته د منتقل كيدو حكم

(فَإِنِ افْتَتَحَ التَّطَوُّعَ رَاكِبًا كه نفل لمونځ په سپرلۍ باندې پيل كړی ثُمَّ نَزَلَ بيا راكوز شی. يَبْنِي نو (په دے) بناء كولې شی وَإِنْ صَلَّى رَكْعَةً نَازِلًا او كه يو ركعت كښته په مځكه اوكړی ثُمَّ رَكِبَ بيا سور شی اسْتَقْبَلَ) نو د سر نه دے اوكړی

**حل اللغة**◉ ①**افتتح، افتتح افتتاحا**: پيل كول ②**تطوع**: نفل ③**راكبا**: سورشوې ④**نزل،نزل نزولاً (ض)**: راكوزيدل ⑤**ركب، ركب ركوبا(س)**: سوريدل

**تشريح:- بناء الراكب والنازل**◉صورت د مسئلې دادې.كه څوك په سپرلۍ باندې سور شو. او په اشاره باندې ئې نفل لمونځ پيل كړو.بيا دے په مځكې راكوز شو.نو دا سړې دے هم په دے باندې بناء اوكړی.دوباره د سر نه د لمونځ پيل كاوه اړتيا نشته.او كه په مځكه ئې نفل لمونځ پيل كړو.او يو ركعت ئې اوكړو.بيا ددے نه كم.بيا سور شو،نو دا سړې دے د سر نه لمونځ پيل كړی.په دے به د بناء كاوه اجازت نه وی.

لِأَنَّ إِحْرَامَ الرَّاكِبِ انْعَقَدَ ځكه‌چې دسور كس تحريمه منعقد شوې وه مُجَوِّزًا لِلرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ( په دے طريقه چه) ركوع او سجده ورته په اشاره جائزوه. لِقُدْرَتِهِ عَلَى النُّزُولِ ځكه‌چې دے د سپرلۍ نه په راكوزيدلو باندې قادر دې. فَإِنْ أَتَى بِهِمَا كله‌چې ئې دواړه پوره كړل صَحَّ.نو صحيح شو. وَإِحْرَامُ النَّازِلِ انْعَقَدَ لِوُجُوبِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ او د كوز كس تحريمه د ركوع او سجده واجب كاوه لپاره منعقد شوې وه. فَلَا يَقْدِرُ عَلَى تَرْكِ مَا لَزِمَهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرِهِ نو ده ته بغير د عذر نه د هغه شی د پريښودلو قدرت نه وی.كوم‌چې په ده لازم شوې وی

**حل اللغة**◉ ①**انعقد، انعقاداً**: منعقد كيدل ②**فلايقدر، قدر قدرة (ض)**: قادر كيدل ③**عذر**: تنګی،تكليف،سختی

**تشريح:- القاعدة**◉د دليل نه مخكې د تمهيد په طور يوه مقدمه په ذهن كي كينوئ.مقدمه داده.د ځينې صلوة بناء په ځينې صلوة باندې هغه وخت جائز وی.چې كله دواړو ته يوه تحريمه شامله وی.او كه دواړو ته يوه تحريمه شامله نه وی. نو بناء به جائز نه وی.

**دليله**◉اوس دليل دادې.چې په سپرلۍ باندې د سوريدو په وخت‌چې كومه تحريمه تړلے شوې وه. هغې په اشارے سره د ركوع اوسجدې د جواز نه علاوه حقيقی ركوع او سجده هم جائز ګرځولې وه.ځكه‌چې دا كس بغير د تحريمے باطلولو نه د سپرلۍ نه په راكوزيدلو او په ركوع او سجده باندې قادر دې.نو ده‌چې كوم لمونځ په سپرلۍ باندې په اشاره سره كړې دې.او كوم ئې په په مځكه په ركوع او سجدې سره كړې دې.دواړه د يوے تحريمې موجب دی.يعنی دواړو ته تحريمه واحده ګڼ ده.نو هركله‌چې دواړو ته يوه تحريمه ګڼ ده.نو د ديو په بل باندې بناء كول جائز دی.او كومه تحريمه‌چې په مځكه باندې د سپرلۍ نه راكوزه تړلے شوې وه.هغه صرف د ركوع او سجدې د موجب په حيثيت سره منعقد شوې ده.يعنی په دے سره ركوع او سجده واجب شوې ده.په اشارے سره نه ده واجب شوې.ځكه‌چې بغير د تحريمې باطلولو نه سور سړې په دے قادر نه

دي.او باطلونكي عمل كثير دي.روسته كوم مونځ چې په ركوع او سجدې سره په مخكه باندې شوي دي.اوكوم په سپرلۍ باندې په اشاره سره اداء كړې شوې دي.دے دواړو ته يوه تحريمه ګډ نه ده.او هركله چې يوه تحريمه دواړو ته شامله نه ده.نو د يو په بل باندې بناء كول هم جائز نه دی.

> **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله.او د ابويوسف رحمه الله نه مروی دی **أَنَّهُ يَسْتَقْبِلُ إِذَا نَزَلَ أَيْضًا**.([1])چې كله راكوز شی.نو هم دے د سر نه اوكړی

**تشريح:- رواية ابی يوسف رحمه الله** ۞د امام ابويوسف رحمه الله نه مروی دی.كه په سپرلۍ باندې ئې نفل لمونځ كړو.بيا په مخكه راكوز شو.نو په دے صورت كې دے هم بناء نه كوی.بلكه د سر نه دے لمونځ اوكړی.

**دليله**۞دليل ددے دادې.چې په دے صورت كې په ضعيف باندې د قوی بناء كول لازميږی . ځكه چې كوم لمونځ په سپرلۍ باندې په اشاره ادا شی.هغه ضعيف دې.او كوم چې د سپرلۍ نه راكښته په مخكه په ركوع اوسجدې سره ادا شی. هغه قوی دې.او د قوی بناء په ضعيف باندې جائز نه ده.

**نظيره**۞لكه مريض په اشاره باندې لمونځ كونكې كه د لمونځ په مينځ كې په ركوع اوسجده باندې قادر شی.نو دے به د سر نه لمونځ كوی.چې بناء د قوی علی الضعيف لازم نشی.

**الجواب عن دليل ابی يوسف رحمه الله** ۞زمونږ د اړخه ځواب كې هغه مقدمه ذكر كول كافی دی. كومه چې خادم د تمهيد په طور پيش كړې ده.يعنی تاسو بغير د څه ويرے او خطرے نه صفا صفا اووائی.چې د امام ابويوسف رحمه الله قياس فاسد دې.ځكه چې مريض د ركوع اوسجدې نه عاجز دې.دده تحريمه ركوع اوسجده ته د عدم قدرت په وجه ګډ نه ده.نو تحريمه چې كومے ته ګډ نه وی.د هغې بناء به په هغه شی باندې څنګه صحيح وی.چې هغې ته تحريمه ګډ وی.په دے وجه مريض د ركوع او سجده نه عاجز دې.كه دے د لمانځه په مينځ كې په ركوع او سجده باندې قادر شو.نو دده بناء جائز نه ده.په خلاف ددے چې يو سړی په سپرلۍ باندې نفل لمونځ پيل كړی وی.بيا د سپرلۍ نه راكوز شی.نو ددے سړی لپاره بناء كول جائز ده.ځكه چې په سپرلۍ باندې كومه تحريمه تړلے شوې ده.هغه د ركوع او سجدې د جواز ثابتونكې ده.نودلته كې تحريمه هغې ته هم ګډ ده.كوم مونځ چې په سپرلۍ باندې اداكړې شی.او هغې ته هم ګډ ده.كوم چې د سپرلۍ نه كښته په مخكه په ركوع او سجدې سره ادا شوې وی.هركله چې تحريمه دواړو ته ګډ ده.نو د يو په بل باندې بناء كول هم جائز دی.

> **وَكَذَا عَنْ مُحَمَّدٍ** رحمه الله.او هم داسې د امام محمد رحمه الله نه هم روايت دې **إِذَا نَزَلَ بَعْدَ مَا صَلَّى رَكْعَةً**.چې د يو ركعت كاوه نه روسته راكوز شی

**تشريح:- رواية محمد رحمه الله** ۞د امام محمد رحمه الله نه دا روايت هم دې.كه په سپرلۍ باندې د يو ركعت پوره كاوه نه روسته راكوز شی. نو د سر نه دے دوباره لمونځ اوكړی.بناء به نه كوی.ځكه چې يو ركعت لمونځ دې.نو په دے كې به د قوی په ضعيف باندې بناء نه كوی.او كه ديو ركعت پوره كاوه نه بغير راكوز شوې وی.نو بناء كولې شی.ځكه چې د يو ركعت پوره كاوه نه مخكې فقط تحريمه اوموندلے شوه.او تحريمه د لمونځ شرط دې.او شرط چې د ضعيف لپاره منعقد شوې وی.هغه به د قوی لپاره هم شرط وی.مثلاً چې كوم اودس د نفل لپاره شوې وی.هغه به د فرض لپاره هم كافی وی.نوديو ركعت پوره كيدو نه مخكې كه راكوز شی.نو په دے كې د قوی بناء په ضعيف باندې نه لازميږی.

---

([1]) لكن القول الراجح هو عدم الاستقبال هذا قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(١\٤٠٦) والعناية (١\٤٠٦) والكفاية (١\٤٠٦) والدرالمختار(١\٥١٧) وحاشية الطحطاوی (ص،٢٩٤) والبحر(٢\٦٥) والهندية (١\١٤٣) نقلا عن القول الراجح (١\١١٥)-



> **وَالْأَصَحُّ هُوَ الْاَوَّلُ وَهُوَ الظَّاهِرُ**.او اصح هم هغه ظاهرالرواية دې.

**تشريح:- ترجيح صاحب الهداية**۞ علامه مرغينانی فرمائی.چې قول اول كوم چې په متن كې مذكور دې.هم هغه اصح دې.او هم هغه ظاهرالرواية دی.

# فَصْلٌ فِي قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

ژباړه:- دا فصل د رمضان د قيام (په بيان) كې دې.

**تشريح:- وجه ذكر لفظ رمضان**۞ صاحب دهدايه په عنوان كې د قيام رمضان لفظ دحديث په اتباع كې ذكركړې دې.ځكه چې حضور ﷺ فرمائيلی دی.﴿ان الله تعالی فرض عليكم صيامه و سنت لكم قيامه﴾يعنی الله تعالی په تاسو باندې د رمضان روژه فرض كړې ده.اوما ستاسو لپاره ددے قيام مسنون كړو.(ابن ماجه) په حديث كې د قيام رمضان لفظ موجود دې.په دے وجه د فصل عنوان هم په دے لفظ سره تجويز كړې شو.

**الربط بماقبله ووجوه الفرق بين النوافل والتراويح**۞د تراويح لمونځ چونكه د نوافلو نه لږ شان مختلف دې.ځكه ئې تراويح يعنی قيام الليل په خانله فصل كې ذكر كړلو.تراويح د عامو نوافلو نه په څو خبرو كې مختلف دې. ① اوله داچې څلورم داچې په تراويحو كې يو قرآن ختمول مسنون دی.په نورو نفلونو كې دا سنت نه دی② دوهم داچې نوافل د هيڅ وخت سره خاص نه دی.او تراويح د رمضان د شپو سره مخصوص دی.③ دريم داچې نفلو كې د ركعتونو تحديد نشته دې.او په تراويحو كې د ركعتونو حد شته.④ په عامو نفلونو كې جماعت نشته او په تراويح كې جماعت دې.(عنايه)

**د تراويحو حكم او ركعتونه**

> **(يُسْتَحَبُّ أَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بَعْدَ الْعِشَاءِ** د رمضان په مياشت كې د ماسخوتن نه روسته د خلګو راجمع كيدل مستحب دی **فَيُصَلِّي بِهِمْ إِمَامُهُمْ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ**.ددوی امام به دوی ته پنځه ترويحے كوی. **كُلُّ تَرْوِيحَةٍ بِتَسْلِيمَتَيْنِ** هره ترويحه په دوې (دوه) سلامونو سره **وَيَجْلِسُ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيحَتَيْنِ مِقْدَارَ تَرْوِيحَةٍ** او د هر دوو ترويحو په مينځ كې د يو ترويحے په مقدار سره به كښينی **ثُمَّ يُوتِرُ بِهِمْ)** بيا دے امام دوی ته وتر اوكړی

**حل اللغة**۞ ① **ان يجتمع،اجتمع اجتماعًا**: جمع كيدل ② **فيصلی، صلی صلاة**: لمونځ كول دعاكول ③ **ترويحة**: دَ كوم معنی چې مطلقًا كښينستل دی، بيا دې ناسته باندې اطلاق اوشوچې په رمضان كې دَ څلورو ركعتونه روسته دَ آرام حاصلولوډ پاره كينی. بيا هرو څلورو ركعتوته ترويحه اوونيلې شوه.④ **يجلس، جلس جلوسًا(ض)**: كښينستل

**تشريح:- كيفية اداء التراويح**۞امام قدوری رحمه الله فرمائی.چې د ماسخوتن د فرضو نه روسته د رمضان په مياشت كې د تراويحو په غرض سره د خلګو راجمع كيدل مستحب دی.امام به خلګو ته پنځه ترويحے كوی.هره ترويحه به په دوو سلامونو سره ادا كوی.او د هر دوو ترويحو په مينځ كې به د يو ترويحے په مقدار د آرام په غرض كينی.بيا به امام دوی ته وتر لمونځ كوی.

**وجه تسمية التروايح**۞صاحب د عنايه ليكلی دی.چې ترويحه دڅلور ركعتو نوم دې.ځكه چې څلور ركعتونه راحت او آرام ته رسوی.يعنی د څلور ركعتونو نه روسته د راحت او آرام اجازت وركړې شوېدې.

> **ذَكَرَ لَفْظَ الْاِسْتِحْبَابِ**..قدوری لفظ د استحباب ذكر كړې دې. **وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا سُنَّةٌ**او اصح دا دی.چې تراويح سنت دی. **كَذَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله هم دغه ډول حسن رحمه الله هم د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دې

**تشريح:- حكم التراويح**۞د قدوری د عبارت نه معلوميږی.چې د تراويح لمونځ مستحب دې. علامه مرغينانی فرمائی چې صحيح خبره داده.چې تراويح سنت مؤكده دی. د سړو لپاره هم او د ښځو لپاره هم.د امام

ابوحنیفه ؒ نه هم دا مروی دی. چې تراویح سنت مؤکده دی.

**لِأَنَّهُ وَاظَبَ عَلَيْهَا الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُونَ ؓ** .ځکه‌چې خلفاء راشدین ؓ په دے مواظبت کړې دې

**تشریح:-** د سنت مؤکده دلیل دا دې. چې خلفاء راشدینو ؓ د تراویحو لمونځ باندې مواظبت او همیشوالے کړې دې. اودخلفاء راشدینو ؓ په یو عمل باندې مواظبت کول د هغې د مسنونیت دلیل دې. ځکه‌چې نبی کریم ﷺ فرمایلی دی. « علیکم بسنتی و سنة خلفاء الراشدین من بعدی» یعنی په تاسو باندې زما او زما نه روسته د خلفاؤ سنت لازم دی. دے حدیث نه معلومه شوه. چې څنګه د نبی کریم ﷺ معمول بها طریقے ته سنت وئیلی شی. هم دغه ډول د خلفاء راشدینو ؓ طریقے ته هم سنت وئیلی شی.

**ابتداء عشرین رکعة بجماعة** ۞ خودا خبره په ذهن کې ساتئ: چې د هدایه په دے عبارت کې د خلفاء لفظ تغلیباً استعمال شوې دې. ګنی دلته کې د خلفاء نه مراد حضرت عمر، عثمان، علی ؓ مراد دی. ځکه‌چې باقاعده په حماعت سره د شل رکعته تراویحو پیل د فاروق اعظم ؓ د عهد خلافت نه شوې وه. ګنی د دے نه مخکې خلګو به خانله خانله تراویح کولې. حضرت عمر ؓ اوفرمائیل. « انی اری ان اجمع الناس علی امام واحد جمعهم علی ابی بن کعب فصلی بهم خمس ترویحات عشرین رکعة» څه خلګ په یو امام باندې راجمع کول غواړم. نو خلګ ئې په ابیؓ ابن کعب ؓ باندې راجمع کړل. بیا ابیؓ ابن کعب ؓ خلګو ته پنځه ترویحو کې شل رکعته لمونځ اوکړو.

**وَالنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَيَّنَ الْعُذْرَ فِي تَرْكِهِ الْمُوَاظَبَةَ**[1] او حضور ﷺ په ترک مواظبت باندې عذر بیان کړې وو **وَهُوَ خَشْيَةُ أَنْ تُكْتَبَ عَلَيْنَا** او هغه په موږ د فرض کیدلو ویره وه.

**تشریح:- السوال** ۞ عتراض کیږی. هغه دا که د تراویح لمونځ سنت مؤکده دې. نو حضور ﷺ په دے باندې مواظبت ولے نه دے فرمائیلے؟

**الجواب** ۞ علامه مرغینانی ؒ ځواب اړخ ته اشاره اوکړه. فرمائي چې حضور ﷺ د مواظبت په ترک باندې دا عذر بیان اوفرمائیل. چې زما په مواظبت کاوه سره په امت باندې د فرض کیدو احتمال دې. ځکه ما په تراویحو باندې مواظبت اونکړو. بلکه کله کله مے پریخودلی هم دی. نقل دی . «انه خرج لیلة من لیال رمضان وصلی عشرین رکعة فلما کانت الیلة الثانیة اجتمع الناس فخرج وصلی بهم عشرین رکعة فلما کانت اللیلة الثالثة کثر الناس فلم یخرج ﷺ وقال عرفت اجتماعکم لکنی خشیت ان تکتب علیکم فکانوا یصلونها فرادی الی زمن عمر ؓ» یعنی د رمضان په شپو کې یوه شپه د الله نبی ﷺ تشریف راوړلو. او خلګو ته ئې شل رکعته اوکړل. چې کله دویمه شپه شوه. او خلګ راجمع شو. نو حضور ﷺ تشریف راوړلو. او خلګو ته ئې شل رکعته اوکړل. کله‌چې دریمه شپه شوه. او خلګ ډیر شول. نو نبی کریم ﷺ تشریف راونړلو. او دائې اوفرمائیل. چې ماته ستاسو جمع کیدل معلوم وو. خوماسره ویره ده. که په تاسو باندې فرض نشی. نو خلګو دحضرت عمر زمانه خلافت پورې خانله خانله لمونځ کولو.

**السوال** ۞ چې د تراویح لمونځ سنت مؤکد دې. نو صاحب د قدوری لفظ د یستحب ولے اووئیلے؟

**الجواب** ۞ متقدمینو مشائخ ؒ د یستحب لفظ کله د ډیر ښه لپاره استعمالوی. او د ډیر ښه لفظ واجب ته هم ګډ دې. نو ممکن ده. چې د مستحب لفظ دلته کې هم په دے معنی وی. یعنی د تراویح لپاره اجتماع ډیر ښه او د فضیلت شی دې. او دا سنت دی.

**الجواب الثانی** ۞ دوهم **جواب** دادې. چې شیخ ابوالحسن قدوری ؒ د خلګو اجتماع ته مستحب وئیلی دی. د تراویح لمونځ ته ئې نه دی وئیلی. نو داسې اووایه . چې په رمضان المبارک کې دننه د ماسخوتن لمونځ

(۱)من حدیث عائشة (رضی الله عنها) رواه البخاری فی التهجد باب ۵، ومسلم فی صلوة المسافرین و قصرها رقم ۱۷۷ ، ۱۷۸ و ابوداؤد فی رمضان باب ۱، والنسائی فی قیام اللیل باب ۴، ومالک فی رمضان رقم ۱ و احمد فی المسند (۱۷۷/۶)-



نه روسته د خلګو اجتماع مستحب ده. خود تراویح لمونځ سنت دې.

**الخواب الثالث** ۞ دریم ځواب دادے چې د ځینې صحیح روایاتونه ثابت دی. چې نبی کریم ﷺ د وترو سره د تراویحو یوولس رکعته کړی دی. او د بعضو نه د شلو رکعتو ثبوت ملاویږی. یوولس رکعته د ابوسلمه بن عبدالرحمن دحدیث نه ثابت دی. د حدیث الفاظ دادی. « سالت عائشة ؓ کیف کانت صلوة رسول الله ﷺ فی رمضان فقالت ما کان یزید فی رمضان ولا غیره علی احدی عشرة رکعة» (الحدیث) (فتح القدیر) ابوسلمه بن عبدالرحمن وائی چې ما دحضرت عائشه ؓ نه پوښتنه اوکړو. چې په رمضان کې د رسول الله ﷺ لمونځ څنګه وو. دوی ؓ اوفرمایل. چې رسول الله ﷺ به په رمضان او غیر رمضان کې د یوولس رکعتو نه زیات نه کول. یعنی اته د تراویح، او درے دوترو. او د ابن عباس ؓ د حدیث نه د شلو رکعتو ثبوت ملاویږی. « انه ﷺ کان یصلی فی رمضان عشرین رکعة سوی الوتر» ابن عباس ؓ وائی چې نبی کریم ﷺ به په رمضان المبارک کې د وترو نه علاوه شل رکعته کول. (فتح القدیر) اوس بعضو حضراتو په دے دواړو حدیثونو کې د تطبیق کاوه کوښښ کړې دې. دوی فرمائی. چې اته رکعته د وترو نه علاوه سنت دی. او شل رکعته مستحب دی. نو کیدې شی. چې صاحب د قدوری هم په دے قول باندې عمل کاوه په وجه یستحب وئیلی وی. یعنی شل رکعته په پنځو ترویحو کې مستحب دی.

## د تراویح جماعت او ترویحو بیان

**وَالسُّنَّةُ فِيهَا الْجَمَاعَةُ** اوسنت په تراویح کې جماعت دې **لَكِنْ عَلَى وَجْهِ الْكِفَايَةِ**. خود کفایه په طور **حَتَّى لَوِامْتَنَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ كُلُّهُمْ عَنْ إِقَامَتِهَا**، تردې که د یو جومات خلګ (ټول) د جماعت قائمولو نه منع شی **كَانُوا مُسِيئِينَ**. نو واړه به ګناهګار وی **وَلَوْ أَقَامَهَا الْبَعْضُ**. او که بعضو جماعت قائم کړو **فَالْمُتَخَلِّفُ عَنِ الْجَمَاعَةِ**. نو کوم کس چې دجماعت نه وروسته پاتې شی. **تَارِكٌ لِلْفَضِيلَةِ** هغه د فضیلت پریخودونکې دې

**حل اللغة**° ① **امتنع، امتنع امتناعاً**: بندیدل ② **اقامة**: قائمول ③ **مسیئین**: ګناهګار ④ **اقامها، اقام یقیم اقامة**: قائمول ⑤ **تارک**: پریخودونکې ⑥ **فضیلت**: زیاتوالې

**تشریح:-** سنیة الجماعة في التراویح علی الکفایة ۞ علامه مرغینانی ؒ فرمائی. چې داکثرو مشائخو په نیز د تراویحو جماعت سنت علی الکفایه دې. که د یو جومات ټولو خلګو د تراویحو لمونځ پریښولو. نو واړه به ګناهګار وی. او که بعضو جماعت قائم کړو. او بعضو پریښولو. نو په جماعت کې نه شریکیدونکی خلګ به د فضیلت پریخودونکی وی.

**لِأَنَّ أَفْرَادَ الصَّحَابَةِ ؓ رُوِيَ عَنْهُمُ التَّخَلُّفُ**[1]. ځکه‌چې د ځینې صحابوؓ روستو پاتې کیدل نقل دی

**تشریح:- دلیله** ۞ دلیل دادې. چې ځینې صحابه داسې دی. چې دوی نه د تراویح په جماعت کې نه شرکت مروی دی. یعنی دا حضرات صحابه ؓ په جماعت کې نه دی شریك شوی. بلکه خانله ئې کړی دی. کله څنګه‌چې امام طحاوی ؒ د ابن عمر ؓ او عروه ؒ نه یو روایت کړې دې.

**سنیة الجماعة في التراویح علی العین** ۞ ځینې عالمانو ؒ د تراویح جماعت ته سنت علی العین وئیلی دی. نو د دوی په نیز که څوك خانله د تراویح لمونځ اداکړی. نو د ترك سنت په وجه به ګناهګار وی.

**جواز اداءها في البیوت عندابیوسف** ۞ دامام ابویوسف ؒ نه مروی دی. که د سنت قرات رعایت کاوه سره په کور کې تراویح کول ممکن وی. نو جائز دی. چې دے په کور کې خانله د تراویح لمونځ اوکړی. خوکه څوك فقیه کبیر وی. چې دده د عمل خلګ اقتداء کوی. نو دا فقیه کبیر دے په کور کې تراویح نه اداکوی.

۱) روی الزیلعی اثارا و ذکر فیها ترک ابن عمر وعروة و غیرهما التراویح بالجماعة مع الناس انظر نصب الرایة (۱۵۲/۲)-

**دليله**۞ د امام ابويوسف رحمه الله دليل د نبي كريم ﷺ دا قول دی. «عليكم بالصلاة في بيوتكم فان خير صلاة المرء في بيته الا المكتوبة» يعني نبي كريم ﷺ اوفرمايل. چې په تاسو په خپل كور كي لمونځ كول لازم دی. ځكه چې د سړي بهترين لمونځ دده په خپل كور كي دی. بغير د فرض نه.

**الجواب من دليل ابي يوسف رحمه الله**۞ زمونږ د اړخه ځواب دادی. چې قيام رمضان ددے نه مستثنیٰ دی. ځكه چې مخكي معلومه شوه. چې نبي كريم ﷺ په جوماتو كي د تراويح لمونځ ادا كړې وو. اوچې كله ني تشريف راونه ړلو. نو ددے عذر ني بيان كړلو. اوخلفاء راشدينو رضي الله عنهم عمل هم دا پاتې شوې دی. چې د تراويح لمونځ ني په جماعت سره په جوماتو كي ادا كړې دی. ددے وجې بغير د عذر نه د تراويح جماعت پرېښولو اجازت نشته.

> وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْجُلُوسِ بَيْنَ التَّرْوِيحَتَيْنِ مِقْدَارُ التَّرْوِيحَةِ. او د دوو ترويحو په مينځ كي د يو ترويحے په مقدار كښېنستل مستحب دی.

**تشريح:- استحباب الترويحة**۞ په دے عبارت كي بيان شوی دی. چې د دوې (دوه) ترويحو په مينځ كي او د پنځمے ترويحے او د وترو په مينځ كي كښېنستل مستحب دی.

**دليله**۞ دليل د اهل حرمين يعنی د مكې او مدينې د خلكو عادت دی. د مكې خلگ د دوو ترويحو په مينځ كي د بيت الله طواف كوی. او د مدينې خلگ ددے په عوض كي څلور ركعته نفل لمونځ كوی. او د هر ښار خلكو ته اختيار دی. چې د دوو ترويحو په مينځ كي تسبيح اووائی. يا د كلمے طيبے ورد اوكړی. يا خاموشئ سره انتظار اوكړی.

> وَكَذَا بَيْنَ الْخَامِسَةِ وَبَيْنَ الْوِتْرِ او هم دغه ډول د پنځمے ترويحے او وترو په مينځ كي، لِعَادَةِ أَهْلِ الْحَرَمَيْنِ ځكه چې د اهل حرمين عادت دی وَاسْتَحْسَنَ الْبَعْضُ الِاسْتِرَاحَةَ عَلَى خَمْسِ تَسْلِيمَاتٍ او بعضو په پنځو سلامونو باندې استراحت مستحسن ګڼړلے دی. وَلَيْسَ بِصَحِيحٍ. او دا صحيح نه ده.

**حل اللغة**۞ ① **استراحة**: آرام كول

**تشريح:- تضعيف قول الترويحة بعد خمس ترويحات**۞ بعض حضراتو په پنځو سلامونو يعنی په نصف تراويحو باندې استراحت ته مستحسن وئيلی دی. خو دا قول صحيح نه دی.

**تسامح صاحب الهداية**۞ رحمه الله دا خبره په ذهن كي ياده ساتئ: چې علامه مرغيناني په عبارت «والمستحب في الجلوس» كي څه قدرے تسامح دی. ځكه د عبارت نه معلومېږی. چې د دوې (دوه) ترويحو په مينځ كي كښېنستل مستحب دی. او په دليل كي ني د اهل حرمين عادت پيش كړې دے. او د اهل حرمين عادت دا وو. چې د مكې خلكو به طواف كولو. او مدينې خلگ وبه لمونځ كولو. نو معلومه شوه. چې ددے حضراتو عادت د ناستے نه وو. بلكه د انتظار كاوه وو. انتظار په كيناستو سره وی اوكه بغير د ناستے نه وی. په دے وجه مناسب دا وو. چې داسې ني وئيلی وو. «والمستحب في الا نتظار بين الترويحتين مقدار الترويحة» (عنايه فتح القدير كفايه)

## د تراويحو وخت او د قرات مقدار

> وَقَوْلُهُ ثُمَّ يُوتِرُ بِهِمْ يُشِيرُ او د مصنف رحمه الله قول «ثم يوتر بهم» دے اړخ ته اشاره كوی إِلَى أَنَّ وَقْتَهَا بَعْدَ الْعِشَاءِ قَبْلَ الْوِتْرِ چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته او د وترو نه مخكي دی وَبِهِ قَالَ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ او هم ددے قائل عام مشائخ رحمهم الله دی

① حل اللغی **يشير**، اشار اشارة: اشاره كول

**تشريح:- الاختلاف في وقت التروايح**۞ ① په دے عبارت كي د تراويحو وخت بيان شوې دی. فرمائی چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته او د وترو نه مخكي دی. عام مشائخ رحمهم الله ددے قائلين دی. ترديې كه د



ماسخوتن نه مخكي يا د وترو نه روسته ني د تراويحو لمونځ اوكړو. نو دا به تراويح نه وی. ځكه چې د تراويح علم د صحابو رضي الله عنهم د فعل نه ثابت شوې دی. نو صحابو رضي الله عنهم چې په كوم وخت كي د تراويحو لمونځ كړې دی. هم هغه به د تراويحو وخت وی. او دا خبره منلے شوې ده. چې صحابو رضي الله عنهم د ماسخوتن نه روسته د تراويحو لمونځ كړې دی. نود تراويحو به هم دا وخت وی. ② او د بلخ د متاخرينو مشائخو رحمهم الله مذهب دادی. چې ټوله شپه د سهار صادق پورې د تراويحو وخت دی. د ماسخوتن نه مخكي هم او د ماسخوتن نه روسته هم. ځكه چې د تراويحو نوم قيام ليل دی. ددے وخت به هم ليل يعنی شپه وی.

> وَالْأَصَحُّ. او اصح دا دی أَنَّ وَقْتَهَا بَعْدَ الْعِشَاءِ. چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته دی إِلَى آخِرِ اللَّيْلِ تر آخرد شپې پورې قَبْلَ الْوِتْرِ وَبَعْدَهُ اګرچې د وترو نه مخكي وی يا وروسته لِأَنَّهَا نَوَافِلُ ځكه چې تراويح نوافل دی سُنَّتْ بَعْدَ الْعِشَاءِ چې د ماسخوتن نه روسته مقرر شوی دی.

**تشريح:- ترجيح المذهب الاول**۞ اصح قول دادی. چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته د آخری شپې پورې دی. د وترو نه مخكي هم او د وترو نه روسته هم. ځكه چې تراويح نفل دی. چې د ماسخوتن نه روسته مقرر شوی دی. نو د تراويحو لمونځ به د ماسخوتن د لمانځه تابع وی. او تابع د متبوع نه روسته وی. نود تراويح لمونځ به د ماسخوتن نه روسته وی مخكي به نه وی.

**القولان في تاخير التراويح**۞ ① او تراويح د شپې آخره پورې مؤخر كول مستحب دی. ځينې عالمان رحمهم الله فرمائی. چې د نيمې شپې پورې مؤخر كول مستحب دی. ② خوكه د نيمې شپې نه روسته ني تراويح اوكړل. نود بعضو په نيز مكروه دی. ځكه چې تراويح د ماسخوتن د لمونځ تابع دی. او ماسخوتن د نيمې شپې نه روسته ادا كول مكروه دی. نوتراويح به هم د نيمې شپې نه روسته مكروه وی.

**ترجيح القول ا الاول**۞ او اصح قول دادی. چې د نيمې شپې نه روسته مكروه نه دی. ځكه چې تراويح صلوة الليل دی. او په صلوٰة الليل كي د شپې آخر افضل دی. نوپه تراويح كي هم د شپې د آخره پورې تاخير افضل دے مكروه نه دی.

> وَلَمْ يَذْكُرْ قَدْرَ الْقِرَاءَةِ فِيهَا او مصنف رحمه الله د قرات مقدار ذكر نكړلو. وَأَكْثَرُ الْمَشَايِخِ رحمهم الله او اكثرو مشائخ رحمهم الله د دے قائلين دی. عَلَى أَنَّ السُّنَّةَ فِيهَا الْخَتْمُ مَرَّةً چې په تراويحو كي يوځل ختم كول سنت دی. فَلَا يُتْرَكُ لِكَسَلِ الْقَوْمِ نويو ختم د قوم د سست والی د وجې پرېښول نه دی پكار

**حل اللغة**۞ ① **ولم يذكر، ذكر ذكراً (ن)**: ذكر كول، يادول ② **كسل**: سستي

**تشريح:- الاقوال الثلاثة في قدرالقراءة في التراويح**۞ «ولم يذكر قدر القراءة...الخ» علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. چې ماتن دا بيان نه كړل. چې د تراويحو په شلو ركعتو كي دے څومره قران وائی. په دے اړه كي اختلاف دی. ① ځينې خلگ وائی. چې د تراويحو په هره شفع كي به دومره مقدار تلاوت كوی. څومره قرات چې د ماښام په لمونځ كي وی. ځكه چې د ترايحو لمونځ نفل دی. او نفل په نسبت د فرض آسان وی. نود قرات په مقدار كي تراويح په آسانو فرائضو باندې قياس كولې شی. او آسان په فرائضو كي د ماښام لمونځ دی. خو دا قول صحيح نه دی. ځكه چې په دے مقدار سره د پوره مياشت مبارك په تراويح كي يو ختم نه شی كيدلې. حالانكه په تراويح كي يو ځلے كلام پاك ختمول مستحب دی. ② ځينې فرمائی. چې د تراويحو په هره شفع كي به دومره قرات كوی. څومره اندازه چې د ماسخوتن په لمانځه كي كوی. ځكه چې تراويح د ماسخوتن تابع دی. ③ حسن بن زياد د امام اعظم رحمه الله نه روايت كړې دی. چې په هر ركعت كي د لسو آياتونو په مقدار قرات كوی. هم دا صحيح قول دی. ځكه چې په دے صورت كي په خلكو باندې آسانی هم ده. او د ختم قران سنت هم ادا كيدې شی. ځكه چې په ديرشو شپو كي د تراويح شپې سوه ركعته وی. او د قران پاك واړه آياتونه د شپې و زرو نه څه سربيره دی. چې په هر ركعت كي لس آياته تلاوت كوی. نو په تراويحو كي به پوره قران يو

خل ختم شي.او دا مسنون هم دی. علامه مرغيناني رحمه الله هم دا فرمايي .چې په تراويحوکي يوځل د کلام پاك ختم کول مسنون دي.تردې که خلګ سستي کوي.نوهم به دا سنت به نشي پريخودلي.

**بِخِلَافِ مَا بَعْدَ التَّشَهُّدِ مِنَ الدَّعَوَاتِ** په خلاف د التحيات نه روسته د دعاګانو **حَيْثُ يَتْرُكُهَا**.چې دا پريښولي (پريخودي) شي **لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِسُنَّةٍ**. ځکه چې دا سنت نه دی.

**تشريح:- جوازترک الدعوات** ۞ددې حاصل دادې.که د «التحيات» نه روسته دعاګانې په مقتديانو باندې ګرانې وی.نو ددې په پريښولو کي هيڅ باك نشته.ځکه چې دا مسنون نه دی.خود التحيات نه روسته درود ونيل به مناسب وی.دا به نه پريږدی.ځکه چې درود ونيل د امام شافعي رحمه الله په نيز فرض دي.نو زموږ په نيز هم احتياط په دې کي دي.چې وائی ئې.

## په غير رمضان کې د وتر دجماعت حکم

**(وَلَا يُصَلِّي الْوِتْرُ بِجَمَاعَةٍ** او وتر به جماعت سره نه کوی **فِي غَيْرِ شَهْرِ رَمَضَانَ)** د رمضان المبارك نه علاوه **وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْمُسْلِمِينَ** هم په دې باندې د مسلمانانو اجماع ده **وَاللهُ أَعْلَمُ**.

**حل اللغة**° ①**لايصلي، صلى صلاة**: لمونځ کول،دعا کول ②**شهر**: مياشت

**تشريح:- كراهة الوتربجماعة في غيررمضان**۞د رمضان المبارك نه علاوه په نورومياشتوکي وتر په جماعت سره مشروع نه دی.ځکه چې وتر من وجه نفل دی.او د رمضان نه سوا کي نفل په جماعت سره کول مکروه دی.نو احتياط هم په دې کي دي.چې د رمضان نه سوا وتر جماعت سره اونکړې شی.هم په دې باندې د مسلمانانو اجماع ده.

**الاختلاف في فضيلة الوتربجماعة في رمضان**۞البته په رمضان المبارك کي وتر په جماعت سره کول مکروه نه دی.خو په افضليت کي اختلاف دې.① علامه ابن الهمام رحمه الله وئيلی دی.چې د رمضان په مياشت کي وتر په جماعت سره کول افضل دی.ځکه چې عمر رضي الله عنه به وتر په رمضان کي په جماعت سره کول.② او ابوعلی نسفي رحمه الله ذکر کړی دی.زموږ د عالمانو رحمهم الله په نيز جماعت سره نه کول افضل دی.ځکه چې ابی بن کعب رضي الله عنه به وتر دجماعت سره نه کول.والله اعلم،

# بَابُ إِدْرَاكِ الْفَرِيضَةِ

ژباړه:- (دا) باب دفرض مونځ موندلو (په بيان)کې دي.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞ په تيروشوو بابونوکي دفرائضو،واجباتو اونفلو بيان وو.اوس په دې باب کي د ادائې کامل يعنی په جماعت سره دلمونځ ادا کاوه بيان دي.

## د سنتو په حال کې د فرضو اقامت

**وَمَنْ صَلَّى رَكْعَةً مِنَ الظُّهْرِ** اوکوم کس چې د ماپښين يو رکعت اوکړو **ثُمَّ أُقِيمَتْ** بيا جماعت ودريدلو **يُصَلِّي أُخْرَى**)..نوداکس دې دوهم رکعت اوکړی.

**حل اللغة**° ①**اقيمت، اقام اقامة**: قائمول، اودرول

**تشريح:- ادراک الامام فی الرکعة الاولی من الظهر منفرداً** ۞صورت دمسئلې دادې چې يوکس د ماپښين يو رکعت خانله اوکړو.يعنی لومړې رکعت ئې په سجده مقيد کړو.بيا امام باجماعته د ماپښين لمونځ پيل کړو.نو په داسې صورت کي دې کس له پکار دی چې ورسره دوهم رکعت ملاؤ کړی .يعنی د دوې (دوه) رکعته ادا کولونه روسته دې سلام ګرځوی.په يو رکعت دې سلام نه ګرځوی.



**صِيَانَةً لِلْمُؤَدِّي عَنِ الْبُطْلَانِ** چې دباطليدونه هغه رکعت محفوظ شي.کوم چې ادا شوې دي **(ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ** بيا دې دمقتديانوسره شريك شي. **إِحْرَازًا لِفَضِيلَةِ الْجَمَاعَةِ** دجماعت فضيلت حاصلولو لپاره

**حل اللغة**° ①**صيانة**: ساتنه کول، بچ کول ②**مودی**: اداکړې شوې ③**بطلان**: باطل کيدل ④**يدخل،دخولاً (ن)**: داخليدل

**تشريح:- دليله**۞دليل دادې که په يو رکعت ئې سلام واړولو.نودا رکعت به باطل شي.ځکه چې په حديث پاك کي دصلوة بُتيراء نه منع شوې ده.خود ادا شوی رکعت دباطليدو نه دبچ کاوه د پاره د دوهم (رکعت) دملاؤولوحکم دې.اوچې کله ئې په دوهم رکعت سلام واړولو،نوداکس دې د امام سره په جماعت کي شريك شي.چې د جماعت فضيلت حاصل شي.

**نظيره** ۞ اوداحکم داسې دې لکه چې يو کس د جمعې په ورځ په جامع جمات کي د ماپښين لمونځ پيل کړو.تردېچې يو رکعت ئې اداکړو.بيا د جمعې لمونځ پيل شو.نوداکس دې رکعت سره دوهم رکعت ملاؤکړی.بيا دې په دوو رکعتونو سلام واړوی او دجماعت فضيلت حاصلولو لپاره دې د جمعې په لمانځه کي شريك شي.

**اعتراض صاحب العناية وجوابه**۞ په دې موقع صاحب د ،،عنايه،، يو اعتراض اوځواب ليکلې دې.اعتراض دا دې.چې د ماپښين کوم مونځ چې ځانله پيل شوې دې.هغه فرض دې.او جماعت سنت دې.نو دسنت د اقامت لپاره د فرضيت صفت باطلول څنګه جائزدی؟

**الجواب**۞د ماپښين فريضه کومه چې منفرداً پيل شوې وه.ددې ماتول دسنت ادا کاوه لپاره نه دی.بلکه علی وجه الکمال فريضه قائمولو لپاره دی.اود اکمال لپاره ماتول هم اکمال دې.لکه چې دوباره جمات جوړولو لپاره جمات شهيدول دثواب سبب دې.دعذاب سبب نه دې.اودا خبره ښکاره ده.چې په جماعت سره لمونځ کول دخانله لمونځ کاوه په نسبت اوويشت درجې افضل دې.

**(وَإِنْ لَمْ يُقَيِّدِ الْأُولَى بِالسَّجْدَةِ**، اوکه ده د ماپښين لومړې رکعت په سجده مقيد کړې نه وی **يَقْطَعُ** نودستی دې مات کړی. **وَيَشْرَعُ مَعَ الْإِمَامِ** اوامام سره دې شريك شي **هُوَ الصَّحِيحُ**).هم دا قول صحيح دې. **لِأَنَّهُ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ** ځکه چې دا د ماتولومحل دې، **وَهَذَا الْقَطْعُ لِلْإِكْمَالِ** او(دا)ماتول دمکمل کاوه لپاره دی **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي النَّفْلِ** په خلاف د هغې چې په نفلوکي وی **لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْإِكْمَالِ**،ځکه چې د نفلو ماتول دکامل کاوه لپاره نه دی

**حل اللغة**° ①**يقطع، قطع قطعاً (ف)**: ماتول، قطع کول ②**محل**: مقام ځاې ③**رفض**: پريخودل،ماتول ④**اكمال**: پوره کول

**تشريح:- الاختلاف في قطع الصلاة بالركعة الاولى**۞ ①صاحب د قدوری رحمه الله دوهم صورت دا بيان کړې دې.که دې کس د ماپښين اول رکعت په سجده نه وی مقيد کړې.اوجماعت ودريدلو.نوداکس دې دا مات کړی.اوامام سره دې شريك شي.هم دا صحيح مذهب دې.اوهم ددې قائل فخرالاسلام رحمه الله دې.

②ځينې حضراتو وئيلی دی.چې په دې صورت کي دې هم په دوؤ رکعتو سلام واړوی.بيا دې امام سره شريك شي.شمس الائمه سرخسي رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليل المذهب المرجوح**۞دشمس الائمه رحمه الله دليل دا دې.چې لومړې رکعت په سجدې مقيد کولونه مخکي اګرچې دې په لمانځه کي دې.خودا قربت او عبادت دې.اوجماعت سنت دې . نو د سنتو د رعايت ساتلو لپاره به د دې قربت باطلول څنګه جائزوی.لکه چې څوک نفل لمونځ پيل کړې وی.اود اولني رکعت سجده ئې هم نه وی کړې.چې فرض لمونځ په جماعت سره پيل شو.نودا نفل کونکې دې خپل نفل نه قطع کوی.بلکه دوې (دوه) رکعته دې پوره کړی.بيا ددې نه روسته دې په جماعت کي شريك شي.کله چې ئې لومړې رکعت په

سجدې نه وی مقيد کړې.او په صورت کې نفل نشی قطع کولې.نو فرض به په درجه اولی نشی قطع کولې.

**دليل المذهب الراجح**ⓐدصحيح مذهب دليل دادې.چې لومړې رکعت په سجده دمقيد کولونه مخکې د رفض محل دی.يعنی دا ماتولے شی.اونظيردد ے دادې.که يوکس په څلورم (رکعت) د کيناستو نه بغير د پنځم رکعت لپاره ودريدلو.نودکومے پورې چې ئې پنځم رکعت په سجده مقيد کړې نه وی.نودا پريښودې شی.يعنی د پنځم رکعت سجده کاوه نه مخکې مخکې هغه آخری قعدې ته واروسته راتلے شی.په ده د شپې م رکعت ملاؤول ضروری نه دی.او پاتې شوه داچې فرض باطلول لا زميږی.نوددے خواب تيرشو.چې دا قطع کول اوبطلان د اکمال لپاره دی.يعنی د ماپښين فريضه علی وجه الکمال حاصلولو لپاره ده.

**الجواب من قياس المذهب المرجوح**ⓐ﴿بخلاف ما إذا كان فى النفل...الخ﴾په دے سره دشمس الا ئمه رحمه الله دقياس علی النفل خواب دې. د خواب حاصل دادې.چې په جماعت کې دشرکت کاوه لپاره د ماپښين فرض ماتول،د فريضے په علی وجه الاکمال پوره کاوه لپاره دی.يعنی دجماعت فضيلت حاصلولو دپاره.اودنفلو ماتول د اکمال لپاره نه وی.نوددے توپير په وجه فرض په نفلوقياس کول تيك نه دی.

| |
|---|
| وَلَوْكَانَ فِى السُّنَّةِ قَبْلَ الظُّهْرِوَالْجُمُعَةِاوکه داکس د ماپښين يا دجمعې په مخکنو سنتوکې وی فَأُقِيمَ.بيا اقامت اوشو. أَوْخَطَبَ يا خطبه پيل شوه يَقْطَعُ عَلَى رَأْسِ الرَّكْعَتَيْنِ.نودوې (دوه) رکعته دے پوره کړی اومات دے کړی يُرْوَى ذٰلِكَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله ،دا د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل شوی دی. |

**تشريح:- صورتی تکميل الرکعتين**ⓐ ①اوکه چا د ماپښين نه مخکې څلور رکعته سنت پيل کړل.بيا د ماپښين لمونځ پيل شو.يائې دجمعې نه مخکې د سنتو نيت اوتړلو بيا امام خطبه پيل کړه.په دے دواړو صورتونو کې حکم دادےچې دوې (دوه) رکعته دے پوره کړی اوسلام دے واړوی. او د ماپښين په لمانځه اوپه خطبه کې دے شريك شی.داحکم د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.

| |
|---|
| وَقَدْقِيلَ يُتِمُّهَااوونيلی شوی دی‌چې دادے پوره کړی. |

**تشريح:-** بعضو ونيلی دی.چې څلور واړه رکعوته دے پوره کړی.بيا دے د ماپښين په لمانځه کې يا په خطبه کې شريك شی.خکه‌چې د ماپښين او دجمعې نه مخکې څلور رکعته په منزله د يولمونځ دی.خکه دے دا په دوؤ قسطونو کې نه تقسيموی.بلکه څلور واړه دے په يوځل ٰداکړی.

**په دريم رکعت د جماعت ودريدل و صورت**

| |
|---|
| (وَإِنْ كَانَ قَدْصَلَّى ثَلَاثًامِنَ الظُّهْرِ اوکه دے کس د ماپښين درے رکعته اداکړی وی يُتِمُّهَا) نودادے پوره کړی |

**حل اللغة**° ① يتمها،اتم اتماماً: پوره کول

**تشريح:- اکمال اربع رکعات**ⓐصورت دمسئلې دا دې.که يوکس د ماپښين درے رکعته ادا کړی وی.بيا جماعت ودريدلو نوداکس دے څلور رکعته پوره کړی.

| |
|---|
| لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِحُكْمَ الْكُلِّ..خکه‌چې د اکثر لپاره دکل حکم دې فَلَايَحْتَمِلُ النَّقْضَ.نودا قطع کول نه برداشت کوی |

**تشريح:- دليله**ⓐدليل دادےچې دےکس د ماپښين دلمانځه اکثره برخه اداکړې ده.اواکثر دکل قائم مقام وی .نو د دے نه دفراغت شبه ثابتيږی.اوکه يوکس په حقيقت کې فارغ شوې وی.نود ماتولو احتمال نه پاتې کيږی .نوکله‌چې فراغت شبه ثابته شوه.نودا به هم نقض نه قبلوی.

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَاإِذَاكَانَ فِى الثَّالِثَةِ بَعْدُ.په خلاف ددےچې دے تراوسه په دريم رکعت کې وی وَلَمْ يُقَيِّدْهَابِالسَّجْدَةِ.اودا نې په سجده مقيد کړې نه وی. حَيْثُ يَقْطَعُهَانودا دے قطع کړی. لِأَنَّهُ مَحَلُّ الرَّفْضِ خکه‌چې دا د قطع کاوه محل دې. وَيَتَخَيَّرُاِنْ شَاءَعَادَفَقَعَدَاوده ته اختيار دې.که غواړی نوواروسته دے کښينی وَسَلَّمَ.اوسلام دے واړوی |



**حل اللغة**° ①لم يقيدها،قيد تقييداً: قيدل کول

**تشريح:-** ددے په خلاف که دغه کس تراوسه په دريم رکعت کې وی.او دريم رکعت ئې په سجدې نه وی‌مقيد کړې ،نو دا دے قطع کړی.اوبه جماعت کې دے شريك شی.اوکله چې ئې په دے حالت کې د قطع کاوه اراده اوکړه.نوده ته اختيار دې.که زړه ئې غواړی.نو د دريم رکعت قيام دے پريږدی.اوکيدينی، سلام دے واړوی.چې لمونځ په مشر وع طريقے سره ختم شی.

| |
|---|
| وَإِنْ شَاءَكَبَّرَقَائِمًايَنْوِي الدُّخُولَ فِى صَلَاةِ الْإِمَامِ،اوکه غواړی.نوپه ولاړه ولاړه دے د امام په لمانځه کې د داخليدو په نيت تکبير ووايي |

**تشريح:- جوازالشرکة من القيام**ⓐاوکه زړه ئې غواړی.نوپه دريم رکعت کې په ولاړه ولاړه دے تکبير ووايي اود امام سره دے په جماعت کې شريك شی.په داسې حال کې چې د امام سره د شرکت نيت هم اوکړی.خکه‌چې دا دجماعت فضيلت حاصلولو اړخ ته مسارعت او مسابقت دې.اودا فعل محمود دې.د الله تعالی ارشاد دے (وَسَارِعُوْاإِلَى مَغْفِرَةٍمِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ) (الايه) اوپه دے اړه کې اختيار دې.چې لاسونه غوړونو پورې اوچت کړی اوکه نه.

| |
|---|
| (وَإِذَا أَتَمَّهَا اوچې کله ئې د ماپښين لمونځ پوره کړو يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ نود مقتديانو سره دے شريك شی وَالَّذِي يُصَلِّي مَعَهُمْ...اوکوم‌چې مونځ‌چې د هغوی سره ادا کوی نَافِلَةٌ).هغه به نفل وی . لِأَنَّ الْفَرْضَ لَايَتَكَرَّرُفِى وَقْتٍ وَاحِدٍخکه‌چې په يو وخت کې فرض نشی مکرر کيدې. |

**تشريح:- حکم الشرکة فی الجماعة بعدالفريضة منفرداً**ⓐ په متن کې ذکر دی.که منفرد درے رکعته ادا کړل.اوجماعت ودريدلو.نود ماپښين څلور واړه رکعته دے پوره کړی.خوکله‌چې ده د ماپښين لمونځ پوره کړو.نواوس دے داکس دمقتديانو سره شريك شی.خودا شرکت ضروری نه دې.خکه‌چې دے کوم لمونځ د مقتديانوسره کوی.دا نفل دې.اودا لمونځ نفل خکه دې.چې کوم لمونځ ئې منفرداً اداکړې وو.د ماپښين فريضه په هغې سره ادا شوه.اوس که دا هم فرض اوګنړلې شی.نو په يووخت کې به يوفرض دوې (دوه) څله ادا شی .حالانکه په يووخت کې د فرض تکرارمشروع نه دے .بلکه په يو وخت کې يوفرض مشروع دې.بهرحال‌چې کوم لمونځ ئې د مقتديانو سره په جماعت کې شريك ادا کړو.هغه نفل دې.اوپه نفل کې الزام نه وی.نو په دے کس دمقتديانو سره شرکت لازم نه دې.البته دجماعت په شرکت کې نفل کول افضل دی.خکه‌چې دمقتديانو سره د شرکت په صورت کې دجماعت نه د اعراض تهمت به هم لرې شی.ګنی هسے بيسه به په اعراض عن الجماعه سره متهم شی.

**السوال**ⓐپه دے موقع يوښکاره اشکال کيدې شی.اوهغه داچې څوصفحے مخکې داخبره راغلے وه.چې په غير رمضان کې جماعت سره نفل ادا کول مکروه دی.خو دلته‌چې کوم صورت ذکر دې.دے کې په جماعت سره نفل ادا کول لازميږی؟

**الجواب**ⓐکراهت هغه وخت دې.چې امام او مقتدی دواړه نفل کوی.خوچې کله امام مفترض او مقتدی متنفل وی نو هيڅ کراهت نشته.نقل دی﴿أن رسول الله ﷺ فرغ من الظهر فرأى رجلين فى اخريات الصفوف لم يصليا معه فقال على بهما فاتى بهما و فرائصهما ترتعد فقال على رسلكما فانى ابن إمرأة كانت تاكل القديد ثم قال ما لكما لم تصليا معنا فقالا كنا صلينا فى رحالنا فقال عليه السلام اذا صليتما فى رحالكما ثم اتيتما صلاة قام.... فصليا معهم واجعلا صلاتكما معهم سبحة اى نافلة ) يعنی رسول الله ﷺ د ماپښين د لمانځه نه فارغ شو.نونبی‌کريم ﷺ دصفونو نه بيخی شا ته دوې (دوه) نفر اوليدل.چې هغوی دنبی‌کريم ﷺ سره لمونځ نه ووکړې.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چې دا دواړه ماله راولئ .دا دواړه راوستلے شو.(د ويرے د وجے) ددے دواړو اوږے رپيدې.نبی‌کريم ﷺ ورته اوفرمائيل.چې

تاسو مطمئن اوسيږئ. (ويريږئ مه) خه د داسې ښځې خوے يم. چې اوچې غوښه به نې خوړله. (يعنى د ډيرے غريبے كورنئ سره تعلق ساتم) بيا نبى كريم ﷺ وويل. چې تاسو زما سره لمونځ ولے اونكړو. دے دواړو اوونيل. موږ په خپل كوركي لمونځ كړې وو. نبى كريم ﷺ وويل. كله چې تاسو په خپل كوركي لمونځ كړې وى. او بيا تاسو ديوقوم دلمانځه په وخت كي حاضرشئ. نو دوى سره ئې هم لمونځ كوئ. او دوى سره كوم چې لمونځ اوكړئ. هغه نفل شمارئ. دے حديث نه معلومه شوه. كه امام فرض ادا كوى. او مقتدى نفل، نو په دے كي كراهت نشته.

## د سنتو په دوهم ركعت كي دجماعت ودريدل

(فَإِنْ صَلَّى مِنَ الْفَجْرِ رَكْعَةً كه دسحر ئې يو ركعت كړې وى. ثُمَّ أُقِيمَتْ بيا جماعت ودريدلو يَقْطَعُ وَيَدْخُلُ مَعَهُمْ) نو دادے قطع كړى او مقتديانو سره دے شريك شى لِأَنَّهُ لَوْ أَضَافَ إِلَيْهَا أُخْرَى. ځكه كه دے دوهم ركعت ملاؤكړى تَفُوتُهُ الْجَمَاعَةُ. نو جماعت به فوت شى

**حل اللغة:** ① صلى، صلى صلاة: لمونځ كول، دعا كول ② يدخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ③ اضاف، اضاف اضافة: ملاوول، تيتول، اړه وركول ④ تفوته، فات فوتًا (ن): فوت كيدل

**تشريح:- ثلاث صور فى قطع الصلوة وعدمها فى الفجر بعد اقامة الجماعة** ۞ صورت دمسئلي دادے ① كه يو كس دسحر (د فرض لمونځ) يو ركعت كړې دے، بيا جماعت ودريدلو. نو داكس دے خپل لمونځ قطع كړى. د خلگو سره دے په جماعت كي شريك شى. ځكه كه دوهم ركعت ملاووى. نو ځانله دده لمونځ پوره شو. خو جماعت فوت شو. حالانكه جماعت سنت مؤكد دې. نو دجماعت فضيلت حاصلولو لپاره دے هغه لمونځ قطع كړى. كوم ئې چې منفرداً پيل كړې دې.

وَكَذَا إِذَا قَامَ إِلَى الثَّانِيَةِ هم دغه ډول كه د دوهم ركعت لپاره ودريدلو قَبْلَ أَنْ يُقَيِّدَهَا بِالسَّجْدَةِ مخكي ددے نه چې دا په سجده مقيد كړى

**تشريح:-** هم دغه ډول كه داكس دسحر دوهم ركعت لپاره ودريدلو. خو د دوهم ركعت سجده ئې نه ده كړې نو په دے صورت كي دے هم لمونځ قطع كړى. او په جماعت كي دے شريك شى.

وَبَعْدَ الْإِتْمَامِ لَا يَشْرَعُ فِي صَلَاةِ الْإِمَامِ. او دسحر لمونځ پوره كاوه نه روسته دے د امام سره لمونځ نه پيل كوى. لِكَرَاهَةِ التَّنَفُّلِ بَعْدَ الْفَجْرِ ځكه چې دسحر لمانځه نه روسته نفل كول مكروه دى

**تشريح:-** البته كه چرے ده دسحر لمونځ ځانله ادا كړو. دے نه روسته جماعت ودريدلو. نو اوس دے د امام په لمانځه كي شركت نه كوى. ځكه چې په دے صورت كي د امام سره كوم لمونځ كوى هغه به نفل وى. حالانكه دسحر لمانځه نه روسته دنمر راختلو پورې نفل كول مكروه دى. هم دغه ډول د مازيگر نه روسته دنمر پريوتلو پورې نفل كول مكروه دى.

وَكَذَا بَعْدَ الْعَصْرِ او هم دغه ډول د مازيگر نه روسته لِمَا قُلْنَا، ددے دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړو وَكَذَا بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ. او هم دغه ډول دماښام نه روسته د ظاهر روايت مطابق لِأَنَّ التَّنَفُّلَ بِالثَّلَاثِ مَكْرُوهٌ، ځكه چې درے ركعته نفل كول مكروه دى وَفِي جَعْلِهَا أَرْبَعًا مُخَالَفَةٌ لِإِمَامِهِ. او دده څلور (ركعته) كولو كي د امام مخالفت دې.

**تشريح:- عدم الشركة مع الامام فى المغرب** ۞ د ظاهر روايت مطابق دے د ماښام لمونځ ځانله كاوه نه روسته په جماعت كي شركت نه كوى. ځكه كه امام سره شريك شى. نو دوې (دوه) صورتونه دى. يا به د امام سره سلام اړوى. يا به د امام دفراغت نه روسته يو ركعت بل كوى. چې څلور ركعته شى. درے د امام سره او يود امام د فراغت نه پس. په اولنى صورت كي به د نفلو درے ركعته شى. حالانكه درے ركعته نفل لمونځ كول مكروه



دى. او په دوهم صورت كي د امام مخالفت لازميږى. او دا هم ټيك نه ده. ځكه موږ اوونيل، كه چا دماښام لمونځ منفرداً اوكړو. بيا جماعت ودريدلو. نو داكس دے په جماعت كي شركت نه كوى.

## د اذان نه روسته د جُمات نه د وتلو حكم

(وَمَنْ دَخَلَ مَسْجِدًا او يو كس داسې جمات ته داخل شى قَدْ أُذِّنَ فِيهِ. چې په هغې كي اذان شوې وى يُكْرَهُ لَهُ أَنْ يَخْرُجَ، نو ده لپاره وتل مكروه دى حَتَّى يُصَلِّيَ). تر دې چې لمونځ اوكړى

**حل اللغة:** ① دخل، دخولاً (ن): داخليدل ② أذن، اذن تاذينًا: اذان وركول ③ ان يخرج، خرج خروجًا (ن): وتل

**تشريح:-** مسئله داده، كه يو كس داسې جمات ته داخل شى. چې په هغے كي اذان شوې وى. نو په دے كي څه قدرے تفصيل دے ځكه چې يو كس داسې جمات ته داخل شى. چې په هغې كي اذان شوې وى. نو ددے دوې (دوه) حالته دى. يا خو به دے كس دا لمونځ كړې وى يا به ئې نه وى كړې ؟ كه لمونځ ئې كړې وى نو ددے حكم به روسته بيان كړو. او كه لمونځ ئې نه وى كړې. نو بيا دوې (دوه) صورتونه دى. دا جمات به يا دده دمحلے وى يا به دده د محلے نه وى ؟ كه دده دمحلے وى. نو دلمونځ كاوه نه مخكي دده د پاره وتل مكروه دى. ځكه چې مؤذن ده ته د لمونځ دعوت وركړې دے، نو دا دعوت دے قبول كړى. او بغير دلمونځ كاوه نه دے نه اوځى. او كه دا جمات دده دمحلے نه وى. نو بيا دوې (دوه) صورتونه دى. يا به دده د محلے خلگو په خپل جمات كي لمونځ كړې وى يا به ئې نه وى كړې ؟ كه لومړې صورت وى نو بيا هم بغير دلمونځ كاوه. نه دده دجمات نه بهر وتل مكروه دى. ځكه چې جمات ته د داخليدو په وجه داكس ددے جمات په خلگو كي شو. او كه دوهم صورت وى نو داكس په خپل جمات كي دلمونځ كاوه لپاره ددے جمات نه وتلے شى. ځكه چې په ده دخپلے محلے په جمات كي لمونځ كول واجب دى. (عنايه)

علامه مرغينانى دا مسئله داسې ذكر كړې ده. كه يو كس په داسې جمات كي داخل شى. چې په هغې كي اذان شوې وى، نو بغير دلمونځ كولو نه ددے جمات نه وتل دده د پاره مكروه دى.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى {لَا يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ النِّدَاءِ.. چې دجمات نه د اذان نه روسته څوك نه اوځى إِلَّا مُنَافِقٌ. خو منافق أَوْ رَجُلٌ يَخْرُجُ لِحَاجَةٍ يُرِيدُ الرُّجُوعَ} [1] يا هغه كس چې د واروسته راتلو په نيت د يو خاص اړتيا لپاره اوځى

**حل اللغة:** ① نداء: اذان

**تشريح:- دليله** ۞ دليل د الله د نبى ﷺ قول دے «لا يخرج من المسجد بعد نداء إلا منافق او رجل يخرج لحاجته يريد الرجوع (مرسل ابى داؤد)» ابن ماجه داحديث په دے الفاظو كي بيان كړې دے «عن محمد بن يوسف مولى عثمان بن عفان ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من ادرك الاذان فى المسجد ثم خرج لم يخرج لحاجة و هو لا يريد الرجوع فهو منافق» محمد بن يوسف وائى چې رسول الله ﷺ وويل. كوم كس چې په جمات كي اذان بيا موندلو. بيا د جمات نه اووتلو. حالانكه نه دڅه اړتيا لپاره اووتو. او نه ئې د واروسته راتلو اراده وه نو هغه منافق دې.

قَالَ علامه مرغينانى فرمايي (إِلَّا إِذَا كَانَ يَنْتَظِمُ بِهِ أَمْرُ جَمَاعَةٍ) البته چې كله ده سره د جماعت انتظام متعلق وى. لِأَنَّهُ تَرْكٌ صُورَةً، ځكه چې دا وتل په ظاهره ترك، تَكْمِيلٌ مَعْنًى او په باطن كي تكميل دې.

**تشريح:-** صاحب دقدورى رحمه الله فرمائى. كه دے كس سره دبل جمات دجماعت ذمه وارى وى. مثلاً امام وى يا مؤذن وى. نو د اذان نه روسته هم ده لپاره وتل جائز دى. ځكه چې داوتل خو په ظاهره ترك دے خو په باطن كي

---

(۱) من حديث عثمان بن عفان رضى الله عنه رواه ابن ماجه فى الاذان باب ۷۷ رقم ۷۳٤ و ابوداؤد فى المراسيل (ص،۱۲۱) رقم ۲٤) عن سعيد بن مسيب وكذا عبدالرزاق فى مصنفه)-

تکميل دي.

**السوال** ۞ پاتې شو دا اعتراض چې دحديث نه ثابتيږي چې د اذان نه روسته دجمات نه وتل مطلقا ممنوع دی. که دے کس سره د بل جمات انتظام متعلق وی. اوکه نه وی.

**الجواب** ۞ په حديث کې د ممانعت مقصود تهمت دے يعنی اذان نه روسته دجمات نه وتونکی؛ کس خلگ د لمانځه نه په اعراض کاوه متهم کوی. خو د امام اومؤذن په حق کې دا تهمت موجود نه دې. يعنی واړه خلگ دا دواړه پيژنی. چې دا په بل جمات کې دجماعت انتظام کوی. ځکه ددے دواړو په وتو کې څه حرج نشته.

**په کومو صورتونو کې د جماعت نه وتل جائز دی؟**

(وَإِنْ كَانَ قَدْ صَلَّى) اوکه ده ددے وخت لمونځ کړې وو (وَكَانَتْ الظُّهْرَ أَوْ الْعِشَاءَ). اودا لمونځ د ماپښين اوماسخوتن وو. (فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَخْرُجَ) نو په وتلو کې څه باك نشته (لِأَنَّهُ أَجَابَ دَاعِيَ اللَّهِ مَرَّةً) ځکه چې ده يوځل د اذان ورکونکی دعوت قبول کړې دے

**حل اللغة:** ① صلی، صلی صلاة: لمونځ کول، دعا کول ② لاباس: هيڅ حرج نشته ③ يخرج، خرج خروجا (ن): وتل ④ اجابه اجاب اجابة: قبلول ⑤ داعی: دعوت ورکونکی، دعاکونکې دلته مراد مؤذن دې ⑥ مرة: يوځل ⑦ مؤذن: اذان ورکونکې ⑧ عيانا: په ښکاره توگه ⑨ اخذ، اخذ اخذا (ن): اخستل نيول

**تشريح:-** په دے عبارت کې هغه صورت ذکر شويدې. چې دکوم بيانولو وعده په مخکينی؛ مسئله کې شوې وه. صورت دا دے چې يوکس داسې جمات ته داخل شو، چې په هغې کې اذان شوې وی. اودےکس دا لمونځ کړې وی. که دا نمونځ (دکوم لپاره چې اذان شوې دې. اودےکس په خپل کور يا په بل جمات کې دا لمونځ کړې وی) د ماپښين يا دماسخوتن وی نوده لپاره د جمات نه په وتلو کې څه حرج نشته. ځکه چې ده يوځلے د الله ﷻ د داعی يعنی دمؤذن دعوت قبول کړې دے،

(إِلَّا إِذَا أَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِي الْإِقَامَةِ)، خو کله چې مؤذن اقامت پيل کړی. (نو نه دے اوځی) (لِأَنَّهُ يُتَّهَمُ بِمُخَالَفَةِ الْجَمَاعَةِ عِيَانًا) ځکه چې دے په ښکاره دجماعت په مخالفت سره متهم کيږی

**تشريح:-** اوکه مؤذن اقامت پيل کړو. نوپه دے صورت کې دے داکس دجمات نه نه اوځی. بلکه په جماعت کې دے شريك شی. په داسې حال کې چې ده دا لمونځ کړې وی.

**دليله** ۞ دليل دادے چې د اقامت اوجماعت پيل کيدو نه روسته که اوځی. نو خلگ به نې دجماعت په مخالفت سره متهم کوی. نود تهمت نه دبچ کيدو لپاره دے په جماعت کې شريك شی. او دا لمونځ کوم چې دجماعت سره ادا کوی. نفل به شی. ځکه چې دے کس فرض مخکې اداکړی دی

(وَإِنْ كَانَتْ الْعَصْرَ أَوْ الْمَغْرِبَ أَوْ الْفَجْرَ). اوکه دالمونځ دمازيگر يا ماښام يا دسحر وی (خَرَجَ)، نو اوديځی (وَإِنْ أَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِيهَا). اگرچې مؤذن اقامت پيل کړی (لِكَرَاهَةِ التَّنَفُّلِ بَعْدَهَا). ځکه چې ددے مونځونو نه روسته نفل کول مکروه دی.

**تشريح:- جواز الخروج من المسجد** ۞ خوکه دالمونځ دمازيگر يا دماښام يا دسحر وی، نو داکس د مؤذن د اقامت پيل کاوه نه روسته هم دجمات نه وتلے شی. ځکه چې دے کس خوفرض اداکړی دی. اوس که په جماعت کې شرکت کوی نودابه نفل وی. حالا نکه دمازيگر اوسحر نه روسته نفل مکروه دی. او پاتې شو دماښام لمونځ نو د ماښام نه روسته نفل کول اگرچې مکروه نه دی. خود امام سره شريکيدو په وجه به درے رکعته نفل شی. حالا نکه درے رکعته نفل کول مکروه دی. اوکه تاسو دا اووائې چې د امام سلام اړولو نه روسته دے يو رکعت بل اوکړی. چې څلور رکعته شی. نو په دے صورت کې د امام مخالفت لازميږی. ځکه چې امام په درے رکعتونوسلام اړولے دې. اودے به په څلور رکعتونو سلام اړوی، حالا نکه د امام مخالفت هم ټيک نه ده.



**دجماعت په حال کې دسحر دسنتو حکم**

(وَمَنْ انْتَهَى إلَى الْإِمَامِ) اوکه يوکس راورسيدوامام ته (فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ) د سحر په لمانځه کې (وَهُوَ لَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيْ الْفَجْرِ). او د سحر دوې (دوه) رکعته (سنت) نې نه وو کړی (إنْ خَشِيَ) (نو) که ده ويره وی (أَنْ تَفُوتَهُ رَكْعَةٌ) چې يو رکعت به فوت شی (وَيُدْرِكَ الْأُخْرَى). او دوهم رکعت به (د امام سره) بيا مومی (يُصَلِّي رَكْعَتَيْ الْفَجْرِ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ). نو دسحر دوې (دوه) رکعته سنت دے دجمات دروازې سره اوکړی (ثُمَّ يَدْخُلُ). بيا دے په جماعت کې شريك شی (لِأَنَّهُ أَمْكَنَهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْفَضِيلَتَيْنِ) ځکه چې ده له دواړه فضيلتونه جمع کول ممکن دی

**حل اللغة:** ① انتهی، انتهيا انتهاء: رسيدل ② خشی، خشية (س): ويريدل ③ يدرك، ادرك ادراكا: موندل ④ جمع: جمع کول

**تشريح:- ادراك الجماعة فی سنة الفجر** ۞ صورت دمسئلې دا دے چې يوکس په داسې وخت کې جمات ته داخل شو. چې امام دسحر لمونځ کولو. اوداکس تر اوسه دسحرسنت نه ووکړی. نو اوس سوال دادې. چې داکس بغير دسحر دسنتو اداکولونه په جماعت کې شريك شی. اوکه مخکې سنت اوکړی. بياپه جماعت کې شريك شی. ددے حکم دادے که دا ويره وی. چې که اول سنت اوکړی. نو د فرضوبه يو رکعت فوت شی. او دوهم رکعت به بيامومی. نوپه دے صورت کې اول دے دجمات دروازے سره دسحرسنت اوکړی. بيا دے د امام سره په جماعت کې شريك شی.

**دلائل اهمية سنة الفجر** ۞ دليل ددے دادے چې د سحرسنت په سنتوکې اقوی او افضل دی. ① نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی «صلوهما و إن طردتم الخيل» يعنی دسحر دوې (دوه) رکعته سنت کوئ. اگرچې تاسو اسونه (په پښو کې واغږی (پائمال کړی) ② اوفرمائې چې «رکعتا الفجر خير من الدنيا وما فيها» يعنی دسحر دوې (دوه) رکعته سنت د دنيا اومافيها نه بهتر دی. ③ او دسحر يو رکعت د امام سره موندل داسې دی. لکه چې واړه لمونځ دے بيا موندلو. ځکه چې د الله تعالی د رسول ﷺ ارشاد دے «من ادرك ركعة من الفجر فقد ادرك الصلوة» يعنی چاچې د سحر يو رکعت بيا موندلو لکه چې پوره لمونځ نې بيا موندلو. (عنايه)

**وجه الاستدلال** ۞ نودلته دواړه فضيلتونه يعنی دسحر دسنتوفضيلت اودجماعت فضيلت جمع کول ممکن دی. په دے وجه جماعت کې دشريکيدو نه مخکې دےد سحردوې (دوه) رکعته سنت ادا کړی. بيا دے په جماعت کې شريك شی. چې دواړه فضيلتونه حاصل شی.

(وَإِنْ خَشِيَ فَوْتَهُمَا) . او که ده ته د دواړو رکعتونو د فوت کيدو ويره وی (دَخَلَ مَعَ الْإِمَامِ)(1) نود امام سره دے داخل شی (لِأَنَّ ثَوَابَ الْجَمَاعَةِ أَعْظَمُ). ځکه چې دجماعت ثواب ډير لوئې دے (وَالْوَعِيدَ بِالتَّرْكِ أَلْزَمُ)، (1) اودجماعت پريښولو وعيد الزم (ډيرسخت) دې

**حل اللغة:** ① اعظم: ډير لوئ

**تشريح:- ترك سنة الفجر** ۞ اوکه ده ته دا ويره وی. که دسحر په سنتوکې بوخت شی. نودسحر دواړه رکعتونه به فوت شی. نو په دے صورت کې داحکم دې. چې دسحر سنتو کاوه نه بغيردے د امام سره په جماعت کې شريك شی.

---

(1): قال الزيلعی رحمه الله کانه يشير الی حديث الجماعة من سنن الهدی لا يتخلف عنها الا منافق کبا تقدم نصب الراية (154\2)-

1) قال الزيلعی رحمه الله کانه يشيرالی حديث الجماعة من سنن الهدی لا يتخلف عنها الا منافق کما تقدم نصب الراية(154/2)_

**فضائل الجماعة**◎ څکه‌چې د جماعت ثواب ډیر زیات دے ① د الله ﷻ د رسول ﷺ ارشاد دے «صلوة الجماعة تفضل صلوة المنفرد بسبع و عشرين درجة» يعنى دجماعت سره لمونځ كول دخانله لمونځ كاوه په نسبت اوويشت درجے افضل دي. ② او په جماعت پریښودلو سخت وعید وارد شوې دے، نبی‌کریم ﷺ فرمائیلی دی «تارك الجماعه ملعون» جماعت پریخودونکې ملعون دے ③ او نبی کریم ﷺ فرمائی «لقد هممت ان استخلف من صلى بالناس و انظر الى من لم يحضر الجماعه فامر بعض فتيان يحرقوا بيوتهم» يعنى ما اراده كړې ده. چې يوخليفه جوړ كړم چې خلګو ته لمونځ وركړي او هغه خلګ اووينم چې په جماعت كي نه شريكيږي. بيا ځيني ځوانانو ته حكم وركړم چې ددوی كورونه اوسوزوی. حاصل د دليل دادې. چې كله دجماعت ثواب هم ډير زيات دې. اودجماعت په پريښولو وعيد هم راغلے دې. نوداكس دے په جماعت كي شريك شی. اودسحرسنت دے پريږدی

بِخِلَافِ سُنَّةِ الظُّهْرِ په خلاف د ماپښين دسنتو حَيْثُ يَتْرُكُهَا فِي الْحَالَتَيْنِ چې دادے په دواړو حالتونوكي پريږدی لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَدَاؤُهَا فِي الْوَقْتِ بَعْدَ الْفَرْضِ. څکه‌چې د ماپښين دسنتو اداكول دفرضو نه روسته په وخت كي دننه ممكن دی هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده

**تشريح:-** اوهم دغه صورت كه د ماپښين په سنتوكي راپيښ شی. يعنی‌كه يوكس بغير د ماپښين د سنتو كاوه نه جمات ته داسې وخت داخل شی. چې امام لمونځ كولو. نواوس به داكس د ماپښين سنت مخكي اداكوی. اوبيا به په جماعت كي داخليږی. اوكه مخكي په جماعت كي شريك شی او د ماپښين سنت پريږدی. نوپه دے اړه كي فاضل مصنف رحمه الله فرمائی. چې د ماپښين په سنتوكي دمشغوليدو په وجه كه د امام سره د ماپښين دپوره لمونځ فوت كيدو ويره وی اوكه دځينې لمونځ فوت كيدو ويره وی. په دواړوصورتونو كي دے د ماپښين سنت پريږدی. اوپه جماعت كي دے شريك شی . څكه‌چې په وخت كي دننه د فرضونه روسته د ماپښين دسنتو اداء كول ممكن دی. چې د ماپښين د فرضو نه روسته دسنتو اداكول ممكن دی. نو ددے سنتو په وجه دے دجماعت فضيلت نه پريږدی، هم دا صحيح قول دې.

**ليله**◎ څكه‌چې يوځلے دنبی‌كريم ﷺ نه د ماپښين مخكنی څلور ركعته سنت فوت شول. نو نبی‌كريم ﷺ د ماپښين نه روسته د هغې قضاء راوړله. دا دحضرت عائشے رضی الله عنها نه نقل دی. (عنايه)

وَأَمَّا الِاخْتِلَافُ بَيْنَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله ..او اختلاف د ابويوسف رحمه الله اود امام محمد رحمه الله په مينځ كي فِي تَقْدِيمِهَا عَلَى الرَّكْعَتَيْنِ ددے (څلور ركعتو) په دوو ركعتو مقدم كاوه وَتَأْخِيرِهَا عَنْهُمَا[1] او ددے دوو نه په روسته كولوكي دې وَلَا كَذَلِكَ سُنَّةُ الْفَجْرِ. اوداحال دسحر په سنتو كي نه دے عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى. انشاء الله موږ به ئې بيان كړو

**حل اللغة:** ① **تقديم:** وړاندې كول ② **تاخير:** روستوكول ③ **بين، بين تبيينًا:** بيان كول

**تشريح:-** البته په دے اړه كي اختلاف دې. چې كله د ماپښين نه مخكي سنت فوت شی. نود ماپښين (د فرضو)نه روسته د دوو ركعتو نه مخكي د هغې قضاء راوړی. اوكه ددے دواړو نه روسته به د هغې قضاء راوړی. ① په دے اړه كي د امام ابويوسف رحمه الله مذهب دا دې. چې اول دے د ماپښين روستنی دوې (دوه) ركعته سنت اوكړی. بيادے د ماپښين وړاندينی څلور ركعته (قضاء شوی سنت) اوكړی. اوامام محمد رحمه الله وئيلی دی. چې مخكي دے د څلورو ركعتونو قضاء راوړی، بيادے د ماپښين روستنی دوې (دوه) ركعته

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله اى تقديمها على الركعتين اللتين بعد الفرض كذا فى فتح القدير(۱\۴۱۵) وردالمحتار(۱\۵۱۳) وحاشية الطحطاوى (ص،۲۴۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۱۱۶)-



اوكړی.

**دليل ابی يوسف رحمه الله** ◎ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې. چې دا څلور ركعته خودخپل مسنون ځائې يعنی دقبل الظهرنه فوت شوی دی. نو روستنی دوې (دوه) ركعته دے دخپل محل ځني نه فوت كوی. بلكه دادے د ماپښين نه روسته اداء كړی. او د ماپښين مخكنی څلور ركعته دے د هغې نه روسته اوكړی.

**نظيره فی امور الدنيا**◎ ددنيا په قانون كي هم ددے نظير ملاويږی. تاسوحضراتو به ددے مشاهده كړې وی. كه په سټيشن ددوو ګاډو كراس اوشی. نود ريلوے قانون دا دےچې كوم ګاډے سټيشن ته مخكي راورسی. هغه روسته پريښولې (پريخودې) شی. اوكوم‌چې وروسته راشی هغه مخكي روانه وی. څكه كوم‌چې ګاډے سټيشن ته د مخكي نه راغلے ولاړ وی. هغه خودخپل وخت نه هسے هم روستو شوے‌دے، خوكوم‌چې روسته راغلے دې. هغه هسے بيسه ولے روستو كولې شی، په دے وجه مخكي ،وروسته راتلونكې روانولے شی.

**دليل محمد**◎ د امام محمد رحمه الله دليل دا دې. چې د ماپښين نه مخكنی څلور ركعته فرض خو هسے هم موخرشوی دی. نو اوس نورموخركول نه دی پكار، په دے وجه مناسب دا دی‌چې مخكي څلور ركعته اوكړی او بيا دوې (دوه) ركعته اوكړی. صاحب دهدايه وائی. چې دسحر دسنتو داحال نه دې. د دے تفصيل به وړاندې راشی.

وَالتَّقْيِيدُ بِالْأَدَاءِ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ. اودسحر سنت دجمات دروازې سره د اداء كاوه قيدلګول يَدُلُّ عَلَى الْكَرَاهَةِ فِي الْمَسْجِدِ دلالت كوی. چې په جمات كي دننه اداءكول مكروه دی إِذَا كَانَ الْإِمَامُ فِي الصَّلَاةِ. په دے شرطچې امام په لمانځه كي وی

**تشريح:- موضع اداء سنة الفجر عند اقامة الفرض**◎ **و التقيد بالاداء عند باب المسجد.....الخ**، په دے عبارت سره ئې د هغې قيد فائده بيان كړې ده، كوم‌چې قدوری ذكركړې دے، كه جماعت ودريدلے وی. نو دسحر سنت دے دجمات دروازې سره اداكړی. حاصل داكه امام په لمانځه كي وی. نوپه جمات كي دننه سنت كول مكروه دی. څكه‌چې داكس په جمات كي دننه دنفلو(سنتو)كونكې دې. او امام په فرضو اداكولوكي بوخت دې. نو دامكروه دی. څكه وائی. چې دسحرسنت دے دجمات دروازې سره اداكړی. خوكه دجمات دروازې سره دلمونځ كولوځائې نه وی. نو په جمات كي دننه دے ديوے ستنے شاته اودريږی او اودادے كړی. د ټولونه زيات كراهت په دے كي دې. چې په كوم صف كي خلګ فرض كوی. هم په دے صف كي داكس دسنتو نيت اوتړی او اودريږی.

وَالْأَفْضَلُ فِي عَامَّةِ السُّنَنِ وَالنَّوَافِلِ الْمَنْزِلُ. او افضل په عامو سنتو اونفلو كي كور دې هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2] دا دنبی‌كريم ﷺ نه نقل دی.

**تشريح:-** صاحب دهدايه فرمائی. چې دتراويح نه علاوه په عامو سنتو اونفلوكي افضل دادی. چې داكوركي اداكړی. هم داد نبی كريم ﷺ نه نقل دی. په احاديثوكي مذكور دی.

**دلائل فضيلة النفل فی البيوت**◎ ① «نوّروا بيوتكم بالصلوة ولا تجعلوها قبورا» يعنی خپل كورونه په لمونځ روښانه كړئ. ددے نه مقبره مه جوړوئ. ظاهره ده‌چې دلته كي دلمونځ نه سنت او نفلونه مراد دی فرائض مراد نه دی. څكه‌چې د فرضود پاره جماتونه دی. ② «ان جميع سنن رسول الله ﷺ و وتره كان فى بيته» يعنی د رسول الله ﷺ واړه سنت او وتر به په كوركښې وو. ③ «قول نبی ﷺ فى مسجد بنى عبد الاشهل لما رآهم يصلون بعد المغرب هذه

(۱)من حديث زيد بن ثابت رضى الله عنه رواه البخارى فى الادب باب ۷۵ ومسلم فى صلوة المسافرين وقصرها رقم ۲۱۳ و ابوداؤد فى الوتر باب ۱۱ والترمذى فى الصلوة باب ۲۱۳ رقم ۴۵۰ والنسائى فى قيام الليل باب ۱ و احمد فى المسند (۵\۱۸۲)

صلوة البيوت» (ابوداؤد، ترمزی، نسائی) يعنى دبنى عبد الاشهل په جمات كي كله‌چي رسول الله ﷺ خلګ اوکتل‌چي هغوی دماښام نه روسته لمونځ کولو.نونبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چي دا دکور لمونځ دي. يعنى دا لمونځ کوم‌چي دفرضونه علاوه دے په کورونوکي کول پکار دی.④ په صحيح مسلم کي دی «عن عائشة رضي الله عنها قالت كان ﷺ يصلي في بيته قبل الظهر اربعا ثم يخرج فيصلي بالناس ثم يدخل فيصلي ركعتين و كان يصلي بالناس المغرب ثم يدخل فيصلي ركعتين» يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل دی‌چي رسول الله ﷺ د ماپښين نه مخکي څلور رکعته په خپل کورکي کول.بيابه راوتلو.او خلګو ته به ئې فرض لمونځ ورکولو،بيابه کورته داخليدو اودوي (دوه) رکعته به ئې کول،او خلګو ته به ئې دماښام لمونځ ورکولو.بيا به کور ته راتلو.او دوي (دوه) رکعته به ئې کول.ددے حديث نه هم په کور کي دسنتوکول ثابتيږی.⑤په صحيحين کي دی «عن حفصه و ابن عمر رضي الله عنهما انه ﷺ كان يصلي ركعتين بعد الجمعة في بيته» يعنى نبی‌کريم ﷺ به دجُمعے(د مانځه)نه روسته په کورکي دوي (دوه) رکعته لمونځ کولو.⑥ «فعليكم بالصلوة في بيوتكم فان خير صلاة المرء في بيته الا المكتوبة» يعنى په تاسوخپل کورکي لمونځ کول لازم دی.ځکه‌چي دسړی بهترين لمونځ دده په کورکي دے سوا د فرضونه.» ⑦ صلاة المرء في بيته افضل من صلاته في مسجدي هذا الا المكتوبة» (ابوداؤد) يعنى د سړی لمونځ په خپل کورکي افضل دے په نسبت دده د لمانځه (چي ادائي کړی) زما په جمات کي سوا د فرضونه، ددے ټولو حديثونو نه ثابتيږی.چي د فرائضونه علاوه سنت او نفل په کورکي ادا کول افضل دی. (فتح القدير)

**د سحر سنت د نمرختو نه روسته قضا راوړل**

(وَإِذَا فَاتَتْهُ رَكْعَتَا الْفَجْرِ اوكه دلمونځ كونكی نه دسحر دوي (دوه) ركعته سنت فوت شی لَا يَقْضِيهِمَا قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ).نو د نمرختو نه مخکي دے د هغې قضاء نه راوړی لِأَنَّهُ يَبْقَى نَفْلًا مُطْلَقًا.ځکه‌چي دا دواړه رکعته صرف نفل پاتې شول وَهُوَ مَكْرُوهٌ بَعْدَ الصُّبْحِ.اودسحر نه روسته نفل کول مکروه دی

حل اللغة* ①فاتته، فات فوتًا (ن): فوت كيدل ②لايقضيهما، قضى قضاءً (ض): قضاكول، پوره كول، اداكول ③يبقى، بقى بقاءً (س): پاته كيدل

تشريح:- مسئله داده.كه دسحر سنت فوت شی.نوددے قضائی به راوړی اوکه نه ؟ په دے واړه متفق دی.چي د لمرختونه مخکي قضاء اونکړې شی.ځکه‌چي سنت کله دخپل ځائې نه فوت شی.نو نفل ګرځی.اودسحر لمانځه نه روسته دنمر راختو پورې نفل کول مکروه دی.په دے وجه د لمر راختو نه مخکي دے ددے قضاء نه راوړی.

(وَلَا بَعْدَ ارْتِفَاعِهَا.او قضاء دے نه كوی دنمرختو نه روسته عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله ([1]) د شيخينو رحمهما الله په نيز

حل اللغة* ① ارتفاع: اوچتيدل

تشريح:- اودنمر راختونه روسته په قضاء راوړو کي اختلاف دے، دشيخينو رحمهما الله په نيز دنمر راختو نه روسته هم د سحردسنتو قضاء واجب نه ده.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله.او امام محمد رحمه الله فرمائی أَحَبُّ إِلَيَّ.چي زما دا خبره خوښه ده أَنْ يَقْضِيَهُمَا إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ)چي د زوال وخت پورې ددے قضاء اوکړی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَضَاهُمَا بَعْدَ ارْتِفَاعِ الشَّمْسِ غَدَاةَ لَيْلَةِ

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۱\۴۹۹) وحاشية الطحطاوى (ص،۳۰۰) وشرح الوقاية (۱\۱۷۹) ومراقى الفلاح (ص،۲۴۶)نقلا عن القول الراجح (۱\۱۱۷)-



التَّعْرِيسِ.([1]).ځکه‌چي نبی کريم ﷺ دليلة التعريس په سهار دنمر اوچت راختلونه روسته د هغې قضاء کړې وه

تشريح:- امام محمد رحمه الله وئيلی دی‌چي واجب خونه ده.خو بهتره خبره ده.چي قضاء راوړی. د امام محمد رحمه الله دليل دادےچي د ليلة التعريس په سهار دنمر اوچت راختونه پس نبی کريم ﷺ دسحر دسنتو قضاء کړې ده.ددے نه ثابتيږی.چي دنمر راختو نه روسته دسحر دسنتو قضاء کيږی،

وَلَهُمَا.او دشيخينو رحمهما الله دليل دا دے أَنَّ الْأَصْلَ فِي السُّنَّةِ چي په سنتو کي اصل دادې أَنْ لَا تُقْضَى چي قضاء ئې اونکړی لِاخْتِصَاصِ الْقَضَاءِ بِالْوَاجِبِ..ځکه‌چي قضاء واجبوسره خاص ده

حل اللغة* ①اختصاص: خاص كول

تشريح:- د شيخينو رحمهما الله دليل دادےچي اصل دادې.چي دسنتو قضاء نشی راوړ لې.ځکه‌چي قضاء د واجب سره مخصوص ده،او واجب سره ځکه خاص ده.چي قضاء په ،،مثل د ما وجب الامر ،،ته د سپارلو نوم دے او سنت ،واجب نه دی.په دے وجه مثل د واجبو ته ئې سپارل څنګه متحقق کيدې شی.

وَالْحَدِيثُ وَرَدَ فِي قَضَائِهَا.اوحديث وارد دې.ددے دواړو په قضاء کي تَبَعًا لِلْفَرْضِ دفرضو په اتباع کي ،.فَبَقِيَ مَا رَوَاهُ عَلَى الْأَصْلِ ددے نه علاوه په(خپل )اصل پاته شول

حل اللغة* ①تبعا: تابع

تشريح:- جواب دليل محمد رحمه الله ۞ د امام محمد رحمه الله د پيش کړې شوی دليل ځواب دادےچي دليلة التعريس په سهار نبی کريم ﷺ دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتوقضاء کړې ده.يعنى چونکه د سحر فرض لمونځ هم فوت شوې وو.په دے وجه‌چي کله نبی‌کريم ﷺ دفرضوقضاء راوړله.نوددے په اتباع کي ئې دسنتوهم قضاء راوړله.نو ددے نه علاوه به په اصل پاته وی.يعنى ددے صورت نه علاوه به قضاء نشی راوړ لې.

وَإِنَّمَا تُقْضَى تَبَعًا لَهُ.اوددے دوو رکعتوبه دفرضو په اتباع کي قضاء راوړ لے‌شی وَهُوَ يُصَلِّي بِالْجَمَاعَةِ أَوْ وَحْدَهُ.که فرض په جماعت سره کوی يا ځانله إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ.د زوال وخت پورې

تشريح:- قضاء سنة الفجر فى تبعية الفرض ۞ علامه مرغينانی اووئيل‌چي دسحر دسنتوقضاء به دفرضو په اتباع کي کولې شی.يعنى که دسحر دفرض لمونځ قضاء کوی نودسحر د سنتوقضاء دے هم اوکړی دسحر دفرض لمونځ قضاء که په جماعت سره کوی اوکه ځانله ئې قضاء راوړی

وَفِيمَا بَعْدَهُ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ رحمهم الله ..او د زوال نه روسته کي دمشائخو رحمهم الله اختلاف دے

تشريح:- الاختلاف فى وقت قضاء الفجر۞ دا خبره ياد ساتی‌چي دسحر دسنتوقضاء دفرضو په اتباع کي صرف د زواله پورې راوړے‌شی.خوکه دنمر زوال اوشو.او تراوسه ئې قضائی نه وه راوړې.نوپه دے کي اختلاف دے ①څينې‌حضرات وائی.چي د زوال نه روسته دسحر دسنتو قضائی نشته.اګرچي دفرضو تابع ولے نه وی.ځکه‌چي رسول الله ﷺ د زوال نه مخکي مخکي دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتو قضاء راوړے ده،② او بعضے حضرات وائی‌چي د زوال نه روسته هم دفرضو په اتباع کي دسحر دسنتو قضاء کولې شی.

وَأَمَّا سَائِرُ السُّنَنِ سِوَاهَا،او پاتې شول نور سنت بغير د سحر د سنتونه فَلَا تُقْضَى بَعْدَ الْوَقْتِ وَحْدَهَا ،نو هغه به د وخت نه روسته ځانله قضاء نه شی راوړ لې

(1) : من حديث ابى قتادة رضي الله عنه رواه مسلم فى المساجد وموضع الصلوة رقم ۳۱۱ وابوداؤد فى الصلوة باب ۱۱ والبيهقى فى السنن الكبرى (۲\۳۰۷) رقم (۳۱۷۳)-

**حل اللغة:** ①سائر: واړه

**تشريح:- القولان فى قضاء غير سنة الفجر فى تبع الفرض:** پاتې شو دسحر دسنتو نه علاوه نورسنت، نو ددې په اړه كي حكم دا دې.چې د وخت نه روسته به يواځې دسنتو قضاء نشي راوړ لې.

وَاخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ رحمهم الله فِي قَضَائِهِمَا تَبَعًا لِلْفَرْضِ اودفرضو په اتباع كي قضاء كولوكي دمشائخو رحمهم الله اختلاف دې.

**حل اللغة:** ① اختلف، اختلف اختلافًا: مختلف كيدل

**تشريح:-** خو دفرضو په اتباع كي قضائي كيدےشي اوكه نه ؟ نو په دے اړه كي دمشائخو رحمهم الله اختلاف دے ①بعضو وئيلى دى.چې قضاء دے راوړى.ځكه‌چې ډير شيان (څيزونه ) ضمنا ثابتيږى،اګرچې قصداً نه ثابتيږى.

②او بعضو وئيلى دى.چې قضاء دے نه راوړى.ځكه‌چې قضاء د واجبوسره خاص ده هم داصحيح قول دې.

**د ماپښين جماعت سره ئې يو ركعت موندل**

وَمَنْ أَدْرَكَ مِنَ الظُّهْرِ رَكْعَةً اوكه يوكس د ماپښين يو ركعت بيا موندلو وَلَمْ يُدْرِكِ الثَّلَاثَ .او درے ئې اونه موندل فَإِنَّهُ لَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ نوده ماپښين جماعت سره اونكړو وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله ..او امام محمد رحمه الله وئيلى دى قَدْ أَدْرَكَ فَضْلَ الْجَمَاعَةِ چې ده دجماعت فضيلت بيا موندلو

**حل اللغة:** ①ادرك، ادرك ادراكًا: موندل ②لم يصل، صلى تصلية: لمونځ كول، دعاكول

**تشريح:- مدرك الركعة الواحدة مدرك فضل الجماعة:** مسئله دا ده.كه چا دڅلور ركعتيزلمونځ يو ركعت د امام سره بيا موندلو.او درے ركعته ئې اونه موندل.نودا به وئيلى شى.چې ده جماعت سره لمونځ نه دے كړې.امام محمد رحمه الله فرمائى.چې دجماعت فضيلت ئې بيا موندلو.په متن كي د امام محمد رحمه الله تخصيص هسے شوې دې.ګنى دا حكم د احنافو متفق عليه دې.

لِأَنَّ مَنْ أَدْرَكَ آخِرَ الشَّيْءِ ځكه‌چې چا ديوڅيز آخر بيا موندلو فَقَدْ أَدْرَكَهُ...نوده دغه شى موندلے دے فَصَارَ مُحْرِزًا ثَوَابَ الْجَمَاعَةِ ،نودے دجماعت ثواب حاصلونكې شو لَكِنَّهُ لَمْ يُصَلِّهَا بِالْجَمَاعَةِ حَقِيقَةً.ليكن (د ماپښين لمونځ ئې) په حقيقت كي جماعت سره اونكړو

**تشريح:- دليله:** دليل دا دےچې چا د يوڅيز اخرے جُزء بيا موندلو.نوده دغه شى بيا موندلو.نوداكس د جماعت فضيلت حاصلونكې شو.البته په حقيقت كي ئې دا لمونځ په جماعت سره نه دے كړې.

وَلِهَذَا يَحْنَثُ بِهِ فِي يَمِينِهِ لَا يُدْرِكُ الْجَمَاعَةَ ،اوپه دے وجه به هم دومره مقدار په خپل قسم ﴿لايدرك الجماعت﴾ (جماعت به نه بيا مومى)كي حانثيږى وَلَا يَحْنَثُ فِي يَمِينِهِ لَا يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْجَمَاعَةِ.اوپه خپل قسم ﴿لا يصلى الظهر با لجماعة﴾ ماپښين به جماعت سره نه كوى)كي به نه حانثيږى.

**حل اللغة:** ① يحنث، حنث حنثا (ن): دروغژن كيدل، حانث كيدل②يمين جمع ايمان: قسم

**تشريح:-** هم دا وجه ده.كه چا قسم اوخوړو.چې په خدائې قسم زه به جماعت رالاندې كوم.بيا يو ركعت د جماعت سره ملاؤ شو.نو داكس به حانث كيږى.ځكه‌چې ده فضيلت د جماعت موندلے دې.اوكه دا قسم اوخرى.چې ﴿و الله لا يصلى الظهر بالجماعه﴾په خدائې زه به ماپښين دجماعت سره نه كوم .بيا ده ته يو ركعت امام سره ملاؤ شو.نو داكس به حانث نه وى.ځكه‌چې په حقيقت كي ده د جماعت سره د ماپښين لمونځ نه دے كړې.



**د جماعت فوت كيدونه روسته د فرضو نه وړاندې د نفلو ختم**

وَمَنْ أَتَى مَسْجِدًا يوكس داسې جمات ته راغلو قَدْ صَلَّى فِيهِ.چې په هغې كي لمونځ شوې وو. فَلَا بَأْسَ نوهيڅ باك نشته بِأَنْ يَتَطَوَّعَ قَبْلَ الْمَكْتُوبَةِ چې د فرضو نه مخكې هغه نفل اوكړى مَا بَدَا لَهُ چې څومره ئې زړه غواړى مَا دَامَ فِي الْوَقْتِ) خوچې تركومه په وخت كي ګنجائش وى وَمُرَادُهُ او مراد د امام محمد رحمه الله دادې. إِذَا كَانَ فِي الْوَقْتِ سَعَةٌ.چې تركومه په وخت كي ګنجائش وى.

**حل اللغة:** ①اتى، اتى اتيانًا (ض): راتګ ②فلاباس: هيڅ حرج نشته ③يتطوع، تطوع تطوعًا: نفل ادا كول ④مكتوبه:فرض ⑤سعة: ګنجائش،وسعت

**تشريح:- الشركة فى الجماعة بعد اداء الفريضة منفردًا:** صورت دمسئلې دادےچې دكوم كس نه جماعت فوت شى.او هغه داسې جمات ته لاړشى.چې په هغې كي جماعت شوې وى.يا ئې په كور كي دفرض لمونځ كاوه اراده كړې وى.نو په دے اړه كي هيڅ باك نشته.چې دے دفرض ادا كولونه مخكې چې څومره غواړى.سنت اونفل اداكړى.په دے شرطچې په وخت كي ګنجائش وى.

وَإِنْ كَانَ فِيهِ ضِيقٌ اوكه په وخت كي تنګى وى تَرَكَهُ.نو نفل دے پريږدى قِيلَ هَذَا فِي غَيْرِ سُنَّةِ الظُّهْرِ وَالْفَجْرِ.وئيلى شوىچې دا حكم د ماپښين او دسحر دسنتو نه علاوه كي دے لِأَنَّ لَهُمَا زِيَادَةَ مَزِيَّةٍ.ځكه‌چې د ماپښين او دسحر دسنتو لپاره زياتى فضيلت دې. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي سُنَّةِ الْفَجْرِ دسحر دسنتو اړه كي نبى‌كريم ﷺ فرمائيلى، {صَلُّوهُمَا وَلَوْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ}[1] ادا كوئ اګرچې اسونه تاسو پائمال كړى وَقَالَ فِي الْأُخْرَى او د ماپښين سنتو اړه كي فرمايې {مَنْ تَرَكَ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الظُّهْرِ چاچې د ماپښين نه مخكې څلور ركعته پريښول لَمْ تَنَلْهُ شَفَاعَتِي }(۲)ده ته به زما شفاعت نصيب نه شى

**حل اللغة:** ①ضيق: تنګى ②ترك: پريښول ③طردتكم، طرد طردًا(ن): د پښولاندې كول ④خيل جمع خيول: اس

**تشريح:- مايفعله عند ضيق الوقت:** اوكه وخت تنګ وى.نو مخكې دےفرض لمونځ اوكړى.چې فرض د خپل وخت نه فوت نشى①څينې حضراتو وئيلى.چې د وخت دتنګوالى په صورت كي دسنتو او نفلو پريښولو حكم د ماپښين اوسحرسنتو نه علاوه كي دې.ځكه‌چې د ماپښين اوسحر سنت د نوروسنتو په مقابله كي زيات افضل دى.ځكه د وخت دتنګوالى باوجود به داضرور كولےشى.اوكه وخت بالكل تنګ شى.او دفرضونه علاوه هيڅ ګنجائش پاتې نه شى.نوپه داسې صورت كي د ماپښين او دسحر سنت هم پريښولې (پريخودې) شى.دسحر دسنتو تاكيدكي ﴿قال النبى ﷺ صلو ها ولو طرد تكم الخيل ﴾دې.او د ماپښين دسنتو په تاكيدكي (من ترك الاربع قبل الظهر لم تنله شفاعتى )دې.

وَقِيلَ.او وئيلى شوى ۵ هَذَا فِي الْجَمِيعِ چې دا حكم د ټولو سنتو اړه كي دې لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهَا ( عِنْدَ أَدَاءِ الْمَكْتُوبَاتِ بِجَمَاعَةٍ.ځكه‌چې نبى كريم ﷺ دجماعت سره دفرضو ادا كاوه په وخت په دے سنتومواظبت

(۱) : من حديث ابى هريرة رضي الله عنه رواه ابوداؤد فى التطوع باب ۳ رقم ۱۲۵۸ و احمد فى المسند (۲\۴۰۵)- ۲) قال الزيلعى غريب جدا نصب الراية (۲\۱۶۱)-

۳) قال الزيلعى رحمه الله هذا معروف من الاحاديث ولم يرو انه ﷺ ترك شيا من الرواتب المذكورة فى النوافل الا الركعتين بعد الظهر وقضاهما بعد الظهر وركعتى الفجر وقضاهما بعد الفرض،بعدالشمس كذا فى نصب الراية (۲/۱۶۱)_

كړي دي وَلَاسُنَّةَ دُونَ الْمُوَاظَبَةِ[1] .او بغير د مواظبت نه سنت نه ثابتيږي

**حل اللغة:** ① واظب،واظب مواظبة: هميشه والي كول

**تشريح:-** بعضو وئيلي چې د وخت دتنګوالي په صورت کې دسنتو دپريښودلو حکم په ټولو سنتو کې دے که د ماپښين او دسحر وي اوکه ددے نه علاوه وي.ځکه نبي کريم ﷺ په سنتومواظبت هغه وخت کړے دے.چې کله به هغوی فرض په جماعت سره اداکول.اوچې کله به ئې فرض ځانله کول . نو نبي کريم ﷺ په دے سنتومواظبت نه دے فرمائيلے،او بغير دمواظبت نه سنت نه ثابتيږي.نو دمنفرد په حق کې به دامونځونه سنت نه وي.بلکه نفل به وي.اوپه نفلو کې اختيار دےچې کوي ئې اوکه نه ئې کوي.په دے وجه وائي.چې دنه کولوحکم په ټولو سنتوکې دے.

وَالْأَوْلَى أَنْ لَا يَتْرُكَهَا فِي الْأَحْوَالِ كُلِّهَا .او غوره داده.چې داسنت په ټولوحالاتو کې نه پريښودے شي لِكَوْنِهَا مُكَمِّلَاتٍ لِلْفَرَائِضِ .ځکه‌چې داسنت دفرضو پوره کونکی دی إِلَّا إِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ خوچې کله د وخت فوت کيدو ويره وي..

**حل اللغة:** ① مکملات: پوره کونکې ښځه

**تشريح:- ترجيح صاحب الهديه ﷺ** علامه مرغيناني وئيلي دي.چې غوره دا دهچې داسنت دے په هيڅ حال کې نه پريږدی.که په وخت کې تنګي وي اوکه وسعت وي.او فرض لمونځ په جماعت سره کوي او که ځانله کوي.که مقيم وي او که مسافر وي.ځکه‌چې سنت دفرائضو تکميل کونکی دی.نو دفرضو ثواب مکمل کاوه لپاره دے دا په هيڅ حال کې نه پريږدی.دغه ډول کُبارصحابه کرامو رضي‌الله عنهم او تابعينو ﷺ په دےعمل کړې دے.چې سنت ئې په هيڅ حال کې نه دی پريښودی. او که دوخت فوت کيدو ويره وي.نو سنت دے پريږدی او فرض دے ادا کړي.(عنايه)

### چاچې امام په رکوع کې بيا نه موندلو هغه رکعت بيا نه موندلو

وَمَنِ انْتَهَى إِلَى الْإِمَامِ فِي رُكُوعِهِ او کوم کس‌چې امام په رکوع کې بيا موندلو فَكَبَّرَ بيا دے کس تکبير تحريمه اووئيله وَوَقَفَ .او توقف ئې اوکړو حَتَّى رَفَعَ الْإِمَامُ رَأْسَهُ ترد‌يچې امام خپل سر اوچت کړو لَا يَصِيرُ مُدْرِكًا لِتِلْكَ الرَّكْعَةِ ..نوداکس ددے رکعت موندونکې نشو

**حل اللغة:** ① انتهى، انتهى انتهاءً: رسيدل ② وقف، وقف وقوفاً (ض): ودريدل ③ رفع، يرفع (ف): اوچتول ④ مدرك: موندونکې

**تشريح:-** مسئله داده.چې يوکس امام ته په داسې وخت کې راورسيدو.چې امام په رکوع کې وو. او دےکس تکبير تحريمه اووئيله.او ودريدلو.خود امام سره ئې رکوع اونکړه.ترد‌يچې امام د رکوع نه خپل سراوچت کړو،نود درے واړه امامانو ﷺ په نيز دا کس ددے رکعت موندونکې نشی شمارلی.امام زفر ﷺ فرمائي چې داکس ددے رکعت موندونکې شمارلے شی.هم دا قول د سفيان ثوري،ابن ابی ليلی اودعبدالله بن مبارك ﷺ دی.

خِلَافًا لِزُفَرَ ﷺ د امام زفر ﷺ اختلاف دی هُوَ يَقُولُ أَدْرَكَ الْإِمَامَ فِيمَا ..هغه فرمائي.چې ده امام په داسې حالت کې بيا موندلو لَهُ حُكْمُ الْقِيَامِ چې ورته دقيام حکم ملاوړدی

(۱) : قال الزيلعي ﷺ هذا معروف من الاحاديث ولم يرو انه (صلى الله عليه وسلم) ترک شيئا من الرواتب المذكورة فی النوافل الا الركعتين بعد الظهر و قضاهما بعد الظهر و ركعتى الفجر قضاهما بعد الفرض، بعد الشمس كذا فی نصب الراية (۱۶۱\۲)-



**تشريح:- دليله ﷺ** د امام زفر ﷺ دليل دادے.چې دےکس امام د رکوع په حالت کې موندلے دے.اګرچې په خپله ئې رکوع اونکړه.او رکوع ته د قيام حکم حاصل دے روسته د رکوع په حالت کې موندل داسې دی.لکه په حقيقت کې دقيام په حالت کې موندل،اوپه حقيقت کې قيام موندلو سره رکعت موندونکےشو.په دےوجه د رکوع په حالت کې امام موندلوسره هم ددے رکعت موندونکې شمارلے شی.

**الجواب عنه ﷺ** او پاتې شوه د امام زفر ﷺ داوينا،چې رکوع ته دقيام حکم حاصل دے.نو داهم نه منو.ځکه‌چې دعبد الله بن عمر ﷺ حديث دے «اذا ادركت الامام راكعا فركعت قبل ان يرفع راسه فقد ادركت تلك الركعة وان رفع راسه قبل ان يركع فاتتك تلك الركعة» يعنی کله‌چې تا امام د رکوع په حالت کې بيا موندلو. اوتا د امام دسر اوچتولو نه مخکې رکوع اوکړه.نوتا دا رکوع بيا موندله.اوکه امام سر اوچت کړو(ستا)د رکوع نه مخکې نودا رکعت ستا نه فوت شو

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دے أَنَّ الشَّرْطَ هُوَ الْمُشَارَكَةُ فِي أَفْعَالِ الصَّلَاةِ چې شرط په افعالو د صلاة کې مشارکت دی وَلَمْ يُوجَدْ .اوهغه موجود نشو لَا فِي الْقِيَامِ نه په قيام کې وَلَا فِي الرُّكُوعِ اونه په رکوع کې.

**حل اللغة:** لم يوجد،وجدوجداناً (ض): موندل

**تشريح:- دليل ائمة الثلاثة ﷺ** ددرې واړو عالمانو دليل دا دے.چې اقتداء نوم دے د لمانځه په اعمالو کې د شرکت،اوشرکت دلته کې موجود نشو.نه په قيام کې اونه په رکوع کې .نوچې ددے رکعت نه په قيام کې شرکت اوشو.اونه په رکوع کې .نوداکس ددے رکعت موندونکې نشو.

### امام ئې په رکوع کې بيا موندلو نو ده رکعت بيا موندلو

وَلَوْرَكَعَ الْمُقْتَدِي قَبْلَ إِمَامِهِ اوکه مقتدی دخپل امام نه مخکې رکوع اوکړه فَأَدْرَكَهُ الْإِمَامُ فِيهِ بيا امام دے په رکوع کې بيا موندلو جَازَ نو دا جائز دی.

**حل اللغة:** ① رکع، رکع، رکوعاً (ف): ټيټيدل، رکوع کول ② فادرکه، ادرک، ادراکاً: موندل ③ جاز،جاز جوازاً(ن): جائز کيدل

**تشريح:- الاختلاف فی عدم الشركة مع الامام فی الركوع ﷺ** مسئله داده که مقتدی د امام نه مخکې رکوع ته لاړو.بيا امام هم رکوع ته لاړو،ترد‌يچې دواړه په رکوع کې شريك شو.نوپه دے صورت کې به دمقتدی لمونځ نه فاسديږی.هم دا حکم هغه وخت دے.چې دا صورت په سجده کې راپيښ شوے وی.البته دمقتدی لمونځ به مکروه وی.دکراهت وجه دنبی‌کريم ﷺ قول «لا تبادرونی بالركوع والسجود» دے.يعنی په زکوع او لمانځه کې زمانه مه مخکې کيږئ.نبی‌کريم ﷺ فرمايي «اما يخشى الذى يركع قبل الامام ان يحول راسه راس الحمار» يعنی‌کوم کس‌چې د امام نه مخکې رکوع کوی هغه له يريدل پکار دی.چې دده سر دخر دسر په شان شی.

وَقَالَ زُفَرُ ﷺ او امام زفر ﷺ فرمائی لَا يُجْزِئُهُ چې مقتدی له کافی نه ده لِأَنَّ مَا أَتَى بِهِ قَبْلَ الْإِمَامِ .ځکه‌چې مقتدی کومه رکوع د امام نه مخکې اوکړه غَيْرُ مُعْتَدٍّ بِهِ هغه معتبرنه ده فَكَذَا مَا يَبْنِيهِ عَلَيْهِ ..نوکوم‌چې ه په دے مبنی ده هغه به هم معتبرنه وی

**تشريح:-** امام زفر ﷺ فرمائی.چې لمونځ نه جائزکيږی.نوپه مقتدی ددے رکوع اعاده واجب ده.که اعاده ئې اونکړه.نولمونځ به ئې ټيك نه وی.

**دليله ﷺ** د امام زفر ﷺ دليل دادے.چې مقتدی د رکوع کومه برخه د امام نه مخکې ادا کړې ده.هغه معتبر نه ده.ځکه‌چې نبی‌کريم ﷺ فرمايي «انما جعل الامام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه» يعنی امام دے لپاره مقررشوے دے.چې دده اقتداء اوکړے شی.نو دده سره اختلاف مه کوئ.چې کله هغه برخه معتبرنه ده.نوپه دے

کوم چې ده مبنی ده. هغه به هم فاسده وي. ځکه چې «بنا علی الفاسد» فاسد وي. نو دا داسې شوه. لکه چې دده د امام د رکوع نه مخکي خپل سر د رکوع نه اوچت کړو.

وَلَنَا او زموږ دليل دادي أَنَّ الشَّرْطَ هُوَ الْمُشَارَكَةُ فِي جُزْءٍ وَاحِدٍ چې شرط په يوجزء کي مشارکت دے كَمَا فِي الطَّرَفِ الْأَوَّلِ والله اعلم. لکه څنګه چې په اول اړخ کي دي. والله اعلم

تشريح:- دليل جمهور الاحناف ﷺ زموږ دليل دادي. چې د جوازشرط په يوجزء کي شرکت دي. نو په يوجزء کي شرکت او موندلے شو. يعني په اولنی جزء کي اګرچې شرکت اونه موندلے شو. خو په اخرنی جزء کي موندلے شوېدي. او د لمونځ جائزکيدو لپاره دومره قدرے مشارکت کافی دي. لکه په اولنی جزء کي شرکت مقتدی دامام سره رکوع اوکړه. خود امام نه مخکي ئې خپل سر اوچت کړو. نو جائزدی. ځکه چې په يوجزء کي، يعنی مشارکت اوموندلے شو. اوکه د امام نه مخکي رکوع ته لاړو. اود امام د رکوع نه مخکي ئې خپل سر اوچت کړو. نو لمونځ جائزنه دي. ځکه چې په دے صورت کي په هيڅ جزء کي شرکت نه دے موندلے شوي. حالانکه په يوجزء کي شرکت موندل ضروری دی.

## بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ

ژباړه:- (دا) باب دفوت شوومونځونو دقضاء (په بيان) کي دي.

تشريح:- په تيرشوی باب کي د ادا اوددے دمتعلقاتو د احکاموبيان وو. اوس په دے باب کي دقضاء احکام ذکرکيږی، چونکه ادا اصل اوقضاء ددے خليفه دي. ځکه ئې ادامخکي اوقضاء روسته ذکرکړې ده. اداء وائی عين واجب ددے مستحق ته سپارل، او قضاء وائی مثل د واجبو (مستحق) ته سپارل.

### د فوت شوي مونځ د قضاء راوړو وخت

(وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ چې ديوکس لمونځ فوت شی قَضَاهَا إِذَا ذَكَرَهَا. نو ددے قضاء دے راوړی چې کله وريادشی وَقَدَّمَهَا عَلَى فَرْضِ الْوَقْتِ) او دادے مخکي کړی. د وختی فرض نه وَالْأَصْلُ فِيهِ او اصل په دےکي دادي أَنَّ التَّرْتِيبَ بَيْنَ الْفَوَائِتِ وَفَرْضِ الْوَقْتِ عِنْدَنَا مُسْتَحَقٌّ چې دقضاشوی او دوختی فرضو په مينځ کي زموږ په نيز ترتيب واجب دي

حل اللغة: ① فاتته، فات فوتًا (ن): فوت کيدل ② قضاها، قضى قضاءً (ض): اداکول، قضاکول ③ قدمها، قدم تقديمًا: وړاندې کول ④ فوائت: فوت شوي

تشريح:- الاختلاف فی ترتيب قضاء الفوائت ﷺ مسئله داده. که دچا نه لمونځ فوت شی. نو چې کله وريادشی. د هغې قضاء دے راوړی. اودا دے په وختی مقدم کوی. صاحب دهدايه فرمائی چې ضابطه داده. چې زموږ په نيز دفوت شوی او وختی په مينځ کي ترتيب واجب دي.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رحمه الله مُسْتَحَبٌّ. او د امام شافعی رحمه الله په نيزمستحب دي لِأَنَّ كُلَّ فَرْضٍ أَصْلٌ بِنَفْسِهِ. ځکه چې هرفرض په خپله يو اصل دي. فَلَا يَكُونُ شَرْطًا لِغَيْرِهِ نو دا به دبل لپاره شرط نه وی

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله په نيز واجب نه دي. يعنی دفوت شوی لمونځ په وختی مقدم کول واجب نه دی.

حل اللغة: ① فلايكون، كان كونًا (ن): کيدل

دليله ﷺ د امام شافعی رحمه الله دليل دادي. چې هرفرض بذات خوديواصل دي. نودابه دبل لپاره شرط نه وی. ځکه چې شرط تابع وی. اود اصالت او تبعيت په مينځ کي منافات دي. نوکه د وختی لمونځ لپاره دفوت شوی اداکول واجب (شرط) اوګنړلے شی. نوپه دے صورت کي دفوت شوی تابع کيدل لا زميږی. حالانکه فوت شوي



لمونځ دفرض کيدو د وجې په خپله اصل دي. نو ثابته شوه چې دفوت شوی لمونځ په وختی لمونځ مقدم کول واجب نه دی.

وَلَنَا او زموږ دليل دادي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی کريم ﷺ فرمائی. {مَنْ نَامَ عَنْ صَلَاةٍ کوم کس چې اوده شی أَوْ نَسِيَهَا يا دهغه نه هيرشی فَلَمْ يَذْكُرْهَا إِلَّا وَهُوَ مَعَ الْإِمَامِ بيا وريادنشو. البته داچې دے د امام سره وی فَلْيُصَلِّ الَّتِي هُوَ فِيهَا نو ادادےکړی هغه چې په کومےکي موجود دي ثُمَّ لِيُصَلِّ الَّتِي ذَكَرَهَا بيا دے هغه اوکړی. کوم چې وريادشی (روسته د هغې لمونځ نه چې د امام سره ئې اوکړی) ثُمَّ لِيُعِدِ الَّتِي صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ}(1) بيادے د هغې اعاده اوکړی کوم چې ئې د امام سره کړې دي.

حل اللغة: ① نام، نام نومًا (س): اوده کيدل ② نسيها، نسى نسيانًا (س): هيرول

تشريح:- دليل الاحناف ﷺ زموږ دليل د الله ﷺ دنبی ﷺ ارشاد دے «من نام عن صلاة او نسيها فلم يذكرها الاوهو مع الامام فليصل التي هو فيها ثم ليصل التي ذكرها ثم ليعد التي مع الامام» دحديث حاصل دا دي. که لمونځ فوت شو. اودےکس د امام سره وختی (لمونځ) شروع کړو. نود امام سره دے وختی لمونځ پوره کړی. بيا دے د فوت شوی لمونځ قضا راوړی. بيا دے د هغې لمونځ اعاده اوکړی. کوم ئې چې د امام سره کړې وی. ددے حديث نه معلومه شوه. کوم چې لمونځ ئې د امام سره کړې دے چونکه داد فوت شوی لمونځ نه مقدم شوې دي. حالانکه دفوت شوی مقدم کول واجب وو. په دے وجه ددے د راګرځولوحکم دي. چې دفوت شوی او وختی په مينځ کي ترتيب متحقق شی.

السوال ﷺ خو دلته کي يواعتراض دي. هغه داچې حديث د اخبار آحاد څخه دي. اوپه خبرواحد سره فرضيت نه ثابتيږی. نوپه دے حديث ترتيب فرضيت نه ثابتيږی.

الجواب ﷺ داحديث خبرمشهوردي. خبرواحد نه دي که اومنو. چې دا خبرواحد دي. نوځواب دا دي. چې ترتيب خوپه کتاب الله يعنی (اقيموا الصلاة) سره ثابت دے، يعنی کتاب الله مجمل دے په دے وجه داحديث د مجمل کتاب بيان واقع شوې دي.

### په فوت شوو او وختي مونځونو کي ترتيب

(وَلَوْ خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ او که د وخت فوت کيدو ويره وي. يُقَدِّمُ الْوَقْتِيَّةَ نو وختی دے مقدم کړی ثُمَّ يَقْضِيهَا) بيا دے دفوت شوی قضاء راوړی

حل اللغة: ① خاف، خاف خوفًا (س): ويريدل ② يقدم، قدم تقديمًا: وړاندې کول، مقدم کول

تشريح:- اسباب سقوط الترتيب ﷺ په مخکنۍ مسئلې کي تيرشوی دی. چې د فوت شوی اود وختی لمونځ په مينځ کي ترتيب واجب دي. خوکه وخت تنګ شو اوددے خبرے ويره شوه. که دفوت شوی په قضاء کي بوخت شی. نو وخت به اوځی په داسې صورت کي دے وختی لمونځ مقدم کړی بيا ددے نه روسته دے د فوت شوی قضاء راوړی.

لِأَنَّ التَّرْتِيبَ يَسْقُطُ بِضِيقِ الْوَقْتِ ځکه چې ترتيب د وخت د تنګۍ په وجه ساقطيږی وَكَذَا بِالنِّسْيَانِ هم دغه ډول په هيريد وَكَثْرَةِ الْفَوَائِتِ او په ډيروفوت شووسره کي لِئَلَّا يُؤَدِّيَ إِلَى تَفْوِيتِ الْوَقْتِيَّةِ چې وختی فوت کيدل لازم نشی.

تشريح:- ځکه چې په درے څيزونو ترتيب ساقطيږی. ① د وخت تنګوالے ② هيره ③ دفوت شوی (مونځونو) کثرت د کثرت مقدار شپې مونځونه دی. په دے څيزونوسره ترتيب ځکه ساقطيږی. چې وختی لمونځ

(1): من حديث ابن عمر (رضى الله عنهما) رواه الدارقطنى فى سننه (٤٢١١١) والبيهقى فى السنن الكبرى (٣١٣١٢) رقم ٣١٩٣)-

فوت کيدل لازم نشي.

## د وخت د تنګۍ باوجود د قضا شوي مونځ د تقديم حکم

وَلَوْقَدَّمَ الْفَائِتَةَ او که ده (دوخت د تنګۍ باوجود) قضا شوې (لمونځ) مقدم کړو جَازَ نوجائز دی لِأَنَّ النَّهْيَ عَنْ تَقْدِيمِهَا لِمَعْنًى. ځکه چې د فوت شوي مقدم کولونه ممانعت د داسې معنی د وجې دې. فِي غَيْرِهَا کوم چې په غير کې ده

**حل اللغة:** ① قدم، قدم تقديمًا: وړاندې کول ② فاتته: فوت شوې ③ جاز، جاز جوازًا (ن): جائز کيدل ④ تقديم: وړاندې کول

**تشريح:- جواز تقديم الفائتة على الوقتية مع الاثم** ۞ مسئله دا ده. که د وخت د تنګۍ باوجود ئې فوت شوې لمونځ اوکړو. او وختی (لمونځ) ئې پرېښولو. نو فوت شوې به ادا شي. خو د وخت (مونځ) په خپل وخت کې ادا کاوه د وجې به ګناهګار وی. ځکه چې د فوت شوي (مونځ) د داسې تنګۍ په حالت کې په مقدم کاوه کوم چې ممانعت دے نو دا د داسې معنی په وجه دے چې په غير کې ده. يعنی وختی (لمونځ) پرېخودل، نو د و... ی پرېښولو د وجې دفوت شوي په ادا کې هيڅ نقصان رانغلو، او د وختی په پرېښولو به په ده عظيمه ګناه وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي الْوَقْتِ سَعَةٌ. په خلاف د دے چې په وخت کې ګنجائش وی وَقَدَّمَ الْوَقْتِيَّةَ. او ده وختی لمونځ مقدم کړو حَيْثُ لَا يَجُوزُ نوجائز نه دی لِأَنَّهُ أَدَّاهَا قَبْلَ وَقْتِهَا ځکه چې ده دا د خپل هغې وخت نه مخکې اداکړو الثَّابِتِ بِالْحَدِيثِ کوم چې په حديث سره ثابت دې.

**حل اللغة:** ① سعة: ګنجائش ② اداها، ادى تادية: اداکول

**تشريح:- عدم جواز تقديم الوقتي على الفائتة** ۞ د دے په خلاف که په وخت کې ګنجائش وی او بيا وختی لمونځ مقدم کړی. نو دا جائز نه دی. ځکه چې ده وختی لمونځ د خپل وخت نه مخکې اداکړو. د وخت نه مخکې اداکول په دے وجه لا زميږی. چې د حديث نه ثابت دی. چې د وختی (مونځ) وخت د فوت شوي نه روسته دې. او کوم چې لمونځ د وخت نه مخکې ادا شي هغه ټيک نه وی. په دے وجه په وخت کې د ننه د ګنجائش په صورت کې به د وختي په فوت شوي مقدم کول جائز نه وی.

## په فوت شوي مونځونو کې د ترتيب حکم

وَلَوْفَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ او که د ده نه څو مونځونه فوت شول. رَتَّبَهَا فِي الْقَضَاءِ نو په قضاء کې دے دا په ترتيب سره راوړی كَمَا وَجَبَتْ فِي الْأَصْلِ لکه څنګه چې په اصل کې واجب شوی وی

**حل اللغة:** ① فاتته، فات فوتًا (ن): فوت شوې ② رتبها، رتب ترتيبًا: ثابت کول، دَ مرتبې په لحاظ باندې ساتل ③ وجبت، وجب، وجوبًا (ض): واجب کيدل

**تشريح:- وجوب الترتيب بين الفوائت** ۞ مسئله دا ده. چې ترتيب څنګه د وختی او فوت شوي په مينځ کې فرض دې. هم دغه ډول په خپله د فوت شوو مينځ کې هم فرض دې. که څو مونځونه فوت شي. نو دے قضاء دے هم په هغه ترتيب راوړی. په کوم ترتيب چې ادا واجب شوی وو.

{لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ شُغِلَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ ځکه چې نبی کريم ﷺ د خندق په ورځ د څلورو مونځونو نه مشغوله شو فَقَضَاهُنَّ مُرَتَّبًا بيا هغوی دا په ترتيب سره اداکړل ثُمَّ قَالَ بيا ئې او فرمائيل صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي} [1]، تاسو داسې لمونځ کوئ لکه څنګه چې تاسو زه په لمونځ کاوه اوليدلم

[1]) من حديث ابن مسعود (رضى الله عنه) رواه الترمذى فى المواقيت باب ١٨ والنسائى فى المجتبى (١٠٧١١) و رواه



**حل اللغة:** ① شغل، شغل شغلاً (ن): بوخت کيدل

**تشريح:- دليله** ۞ دليل د رسول الله ﷺ حديث دے د حديث الفاظ دا دی «عن عبدالله بن مسعود ﷺ قال ان المشركين شغلوا رسول الله ﷺ عن اربع صلوات يوم الخندق ذهب من الليل ماشاء الله فامر بلالاً فاذن ثم اقام فصلى الظهر ثم اقام فصلى العصر ثم اقام فصلى المغرب ثم اقام فصلى العشاء» ابن مسعود اووئيل چې مشرکانو رسول پاک ﷺ د خندق په ورځ د څلورو مونځونو نه مشغوله کړې وو. تر دې چې شپه تيره شوه. نو نبی کريم ﷺ بلال ﷺ ته امر اوکړو. بلال ﷺ اذان اوکړو. بيائې اقامت اوکړو. بيائې د ماپښين لمونځ اوکړو. بيائې اقامت اوکړو. بيائې د مازيګر لمونځ اوکړو. بيا ئې اقامت اوکړو بيائې د ماښام لمونځ اوکړو. بيائې اقامت اوکړو بيائې د ماسخوتن لمونځ اوکړو. بيائې اوفرمائيل چې «صلوا كما رايتمونى اصلى» تاسو داسے لمونځ کوئ لکه څنګه چې تاسو ما وينئ چې زه لمونځ کوم.

په حديث کې د غور کولو نه پته لګی. چې په کوم ترتيب سره مونځونه فوت شوی وو، نبی کريم ﷺ هم په هغه ترتيب سره د هغې قضاء راوړله. او بيا ئې حکمًا اوفرمائيل چې «صلوا كما رايتمونى اصلى» يعنی راتلونکی وخت لپاره هم دا حکم دې. بهرحال په دے حديث سره د فوت شوو په مينځ کې ترتيب ثابت شو.

(إِلَّا أَنْ يَزِيدَ الْفَوَائِتُ عَلَى سِتَّةِ صَلَوَاتٍ). خو دا چې فوت شوی مونځونه شپږ و ته اورسي (نو بيا په کې ترتيب ساقطيږی) لِأَنَّ الْفَوَائِتَ قَدْ كَثُرَتْ ځکه چې فوت شوی ډيرشي فَيَسْقُطُ التَّرْتِيبُ فِيمَا بَيْنَ الْفَوَائِتِ نَفْسِهَا. نو په خپله د فوت شوو په مينځ کې ترتيب ساقطيږی كَمَا سَقَطَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْوَقْتِيَّةِ. لکه څنګه چې د فوت شوی او وختی مونځونو په مينځ کې (ترتيب) ساقطيږی وَحَدُّ الْكَثْرَةِ او د کثرت حد دا دې أَنْ تَصِيرَ الْفَوَائِتُ سِتًّا. چې فوت شوی شپږ شی لِخُرُوجِ وَقْتِ الصَّلَاةِ السَّادِسَةِ [1] د شپږ م لمونځ په وخت وتلو سره

**حل اللغة:** ① يزيد، زاد زيادة (ض): زياتول ② فتسقط، سقط سقوطًا (ن): ساقط کيدل

**تشريح:- سقوط الترتيب بالكثرة** ۞ او که د فوت شوو تعداد زيات شي. او شپږ شي. نو د دے په مينځ کې به ترتيب ساقط شي.

**دليله** ۞ دليل دا دې. چې په دے صورت کې قضا شوی زيات دی. او د زيات فوت شوو مونځونو په مينځ کې د حرج دفع کاوه لپاره ترتيب ساقطيږی. لکه څنګه چې د زياتو قضا شوو او وختی مونځونو په مينځ کې ترتيب ساقطيږی. او د کثرت مقدار دا دے چې فوت شوی مونځونه شپږ شي. يعنی د شپږ م لمونځ وخت اوځي.

وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ، او هم دا مراد دې. د هغې نه چې په جامع صغير کې ذکر دی وَهُوَ قَوْلُهُ وَإِنْ فَاتَتْهُ أَكْثَرُ مِنْ صَلَاةِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ.. او هغه دا دی. که د يوے ورځې او شپې د مونځونو نه زيات شول (نو دا به شپږ شی) أَجْزَأَتْهُ الَّتِي بَدَأَ بِهَا بيا ده لره جائز دے هغه (مونځ) چې پيل کړې ئې وی لِأَنَّهُ إِذَا زَادَ عَلَى يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ځکه چې کله د يوے شپې او ورځې نه زيات شول تَصِيرُ سِتًّا. نو دا به شپږ شی

**تشريح:- ذکر المسئلة فی الجامع الصغير** ۞ هم دا مسئله په جامع صغير کې په دے طريقه بيان شوې ده. که فوت شوی مونځونه د يوے ورځې او يوے شپې نه زيات شوی وی نو د کوم لمونځ نه چې پيل کوی هغه به جائز وی. ځکه چې د يوے ورځې شپې نه د زياتيدو په وجه فوت شوی مونځونه شپږ شی دی. او شپږ مونځوه

احمد).

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين ﷺ اى خروج الوقت السادسة كذا فى ردالمحتار (٥٣٩١١) ومجمع الانهر (١٤٦١١) والبحر الرائق (٩١١٢) وحاشية الطحاوى (ص،٢٤١) نقلا عن القول الراجح (١١٩١١)_

برابريدل دكثرت علامه ده.او مخكي تيرشوي دي.چې قضاشوي مونځونه كه زيات وي نوددے په مينځ كي ترتيب ساقطيږي.نوچې دكوم لمونځ نه هم دقضاء ابتداء كوي ټيك ده،ترتيب وار وي اوكه بغيرد ترتيبه وي.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله اود امام محمد رحمه الله نه نقل دي.اعْتَبَرَ دُخُولَ وَقْتِ السَّادِسَةِ چې دوي د شپږم لمونځ په وخت داخليدو اعتبار كړي دي

تشريح:- الكثرة بدخول الوقت السادس۞ د امام محمد رحمه الله نه نقل دي.كه دشپږم لمونځ وخت داخل شو.نو هم به فوت شوي ډير شمارلےشي.خوصاحب دهدايه فرمائي.چې لومړي قول صحيح دے يعني دشپږم وخت دخروج اعتباردے ددخول اعتبار نه دې.

وَالْأَوَّلُ هُوَ الصَّحِيحُ خو اول قول صحيح دې لِأَنَّ الْكَثْرَةَ بِالدُّخُولِ فِي حَدِّ التَّكْرَارِ ځكه چې كثرت خوپه حد د تكرار كي داخليدو سره راځي وَذَلِكَ فِي الْأَوَّلِ ،اودا به په اول قول وي.

تشريح:- دليل القول الاول۞ داولني قول دصحت دليل دادې.چې دكثرت لفظ به هغه وخت كي صادقيږي.چې كله په مونځونوكي تكرار پيل شي.او تكرار به هغه وخت وي چې كله دشپږم لمونځ وخت اوځي ځكه چې كله دشپږم لمونځ وخت اووتلو.نودقضاء شوي مونځونوتكرار راغلو.

صاحب دعنايه ليكلي دي چې ددے اصل،قضاء بالاغماء ده يعني د بےهوشۍ دوجےكه مونځونه زيات فوت شي.نوددے قضاء به واجب نه وي اوكه كم مونځونه فوت شي.نوددے قضاء واجب ده،اودا خبره د ثبوت حدته رسيدلےده،چې حضرت علي رضي الله عنه ديوے ورځې اوشپې نه كم بےهوشه شوې وو .نو هغوي رضي الله عنه د مونځونو قضاء راوړله.او عمار بن ياسر رضي الله عنه پوره يوه ورځ اوشپه بےهوشه وو.نوهغوي هم د يوے ورځې او شپې د مونځونوقضائي فرمائيلے ده.اوحضرت عبد الله بن عمررضي الله عنهما ديوے ورځې شپې نه زيات بےهوشه پاتې شوې وو.نوهغوي قضائي اونكړه.ددے درے واړوحضراتو واقعاتونه ثابته شوه چې د كثرت په تعريف كي تكرار معتبردې.يعني دشپږم لمونځ وخت وتل.

## فوت شوي مونځونه قديمه او جديده دي ددې د اداكولوطريقه

وَلَوِ اجْتَمَعَتِ الْفَوَائِتُ الْقَدِيمَةُ وَالْحَدِيثَةُ اوكه قضاء مونځونه قديمه اوجديده جمع شول قِيلَ تَجُوزُ الْوَقْتِيَّةُ. نوونيلي شوي چې د وختي اداكول جائزدي. مَعَ تَذَكُّرِ الْحَدِيثَةِ سره ددےچې زاړه ورته ياد دي لِكَثْرَةِ الْفَوَائِتِ ځكه چې فوائت ډير دي

حل اللغة° ①اجتمع، اجتماعاً: جمع كيدل ②حديثة: نوې ③يجوز، جاز جوازاً (ن): جائز كيدل

تشريح:- دفوت شوومونځونو دوې (دوه) قسمونه دي،قديمه اوجديده،صورت دادې.كه يوكس يومياشت مونځونه پريښنول بيادے په خپلوكړو پښيمانه شو.اودفوت شوومونځونو قضاء ئې ددے په وختونو كي پيل كړه بيا ددے نه مخكي چې ددے فوت شووقضاء مكمل كړي.نورمونځونه ترے فوت شول.خو دانور قضاشوي مونځونه د شپږ ونه كم دي.نومخكي فوت شوي مونځونوته قديمه اودے روستنوته جديده ونيلےشي،اوس كه دےكس وختي لمونځ اوكړو.اوده ته دا پريښنولې (پريخودې) شوي حديثه مونځونه هم يادوو.نوپه داسې صورت كي به د وختي(مونځ)كول جائز وي اوكه ناجائز.

په دے اړه كي دبعضےمتاخرينو رحمهم الله خيال دادې.چې وختي لمونځ جائز دےځكه چې فوائت قديمه اوحديثه دواړه ملاويدوسره دكثرت حدته رسيږي.اوكثرت ترتيب ساقطوي .روستهچې ترتيب ساقط شو.نو وختي په فوت شوي مقدم كولوكي هيڅ حرج نشته دے فتوي هم په دے قول ده.

وَقِيلَ لَا تَجُوزُ.او ونيلي شوي چې جائز نه دي وَيُجْعَلُ الْمَاضِي كَأَنْ لَمْ يَكُنْ.اوتيرشوي مونځونه به معدوم شمارلےشي زَجْرًا لَهُ عَنِ التَّهَاوُنِ چې دسستۍ ورته تنبيه اوشي.



حل اللغة° ① يجعل، جعل جعلاً (ف): كول، جوړول ② تهاون: سستي

تشريح:- بعضے حضراتو ونيلےدي.چې د فوائت حديثه نه مخكي د وختي اداكول جائزنه دي دعدم جواز دليل دادےچې دےكس دفوائت قديمه په ادا كولوكي سستۍ اوبے پرواهۍ نه كار اخستےدې. نوشريعت ده ته زجر او زورنے ور كاوه لپاره فوائت قديمه «كان لم يكن» يعني معدوم اوګرځول ګوياچې فوائت قديمه دده په ذمه هډو وو نه،اوچې كله فوائت قديمه كالعدم شول نو اوس صرف فوائت حديثه پاتې شول.اوفوائت حديثه دشپږ و مونځونونه كم دي په دے وجه په خپله دے كي هم ترتيب واجب دے اودفوت شوي او وختي په مينځ كي هم ترتيب واجب دې.كلهچې په فوت شوي او وختي مينځ كي ترتيب واجب دےنو د وختي په فوائتو مقدم كول جائزنه وي.

## دفوت شوي مونځونو دكثرت نه قلت ته په راتلو دترتيب حكم

وَلَوْ قَضَى بَعْضَ الْفَوَائِتِ اوكه دبعضےفوت شوو(مونځونو) ئې قضا راوړله حَتَّى قَلَّ مَا بَقِيَ تردےچې ما بقي(د شپږ ومونځونونه )كم پاتې شول عَادَ التَّرْتِيبُ عِنْدَ الْبَعْضِ(¹) نودبعضو په نيز ترتيب واروسته كيږي وَهُوَ الْأَظْهَرُ اوهم داقول زيات ښكاره دے

حل اللغة° ① قضى، قضى يقضى قضاءً (ض): قضاكول،اداكول ② قل، قل قليلاً (ض): كمول ③ بقى بقاءً (س): پاته كيدل ④عاد، عاد يعوداً (ن): پريښنول

تشريح:- الروايتان فى لزوم الترتيب بالعود الى الاقل ۞صورت دمسئلې دادےچې مثلاً ديوكس نه د يوےمياشتے مونځونه فوت شول.بيادےكس دفوت شوومونځونو قضائىشروع كړه.تردےچې د شپږ و مونځونونه كم پاتې شول.بيا دےكس د وخت لمونځ اوكړو.په داسے حال كي چې مابقي (د كومے ئې چې تر اوسه قضاء نه ده راوړے)ده ته ياد وي.نو په داسې صورت كي به وختي لمونځ جائز وي يا ناجائز.د امام محمد رحمه الله نه په دےكي دوې (دوه) روايتونه دي ①يو روايت دعدم جوازدے ددے قائل فقيه ابوجعفر رحمه الله اودعلامه مرغيناني رحمه الله دے ② دوهم روايت دجوازدې.چې ددے قائل ابوحفص كبيرعلامه فخرالاسلام شمس الائمه صاحب دمحيط او قاضي خان رحمهم الله دي.

فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله ځكهچې د امام محمد رحمه الله نه روايت شوې دے فِيمَنْ تَرَكَ صَلَاةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ ، دهغےكس په اړه كي چاچې يوه ورځ اوشپه مونځونه پريښنول وَجَعَلَ يَقْضِي مِنَ الْغَدِ مَعَ كُلِّ وَقْتِيَّةٍ فَائِتَةً او راتلونكې ورځ ئې دهر وخت لمانځه سره ديوفوت شوي قضاء كول پيل كړل فَالْفَوَائِتُ جَائِزَةٌ عَلَى كُلِّ حَالٍ.نو فوائت په هرحال كي جائز دي وَالْوَقْتِيَّاتُ فَاسِدَةٌ.او وختي فاسد دي. إِنْ قَدَّمَهَا كه وختي مقدم اوكړي لِدُخُولِ الْفَوَائِتِ فِي حَدِّ الْقِلَّةِ ځكهچې فوائت د قلت په حد كي داخل دي وَإِنْ أَخَّرَهَا اوكه وختيه موخركړي فَكَذَلِكَ.نوهم فاسد دي إِلَّا الْعِشَاءَ الْأَخِيرَةَ علاوه د اخرى ماسخوتن نه لِأَنَّهُ لَا فَائِتَةَ عَلَيْهِ فِي ظَنِّهِ حَالَ أَدَائِهَا ،ځكهچې ددے د ادا كاوه په وخت دده په ګمان كي په ده څه قضاء نشته.

تشريح:- دليل الرواية الثانية۞د دوهم روايت دليل دادې.چې ددےكس په ذمه ديوے مياشتےمونځونه وو ، او دا ظاهره دهچې د يوے مياشتے مونځونه كثير دي.اوپه كثرت دفوائتوسره ترتيب ساقطيږي.نو دلته هم دفوائتودكثرت په وجه ترتيب ساقط شو.اوقاعده داده چه" الساقط لايعود" يعني كوم چې شي يوځلے ساقط شي. هغه واروسته نه راځي.مثلاً نا پاكې اوبه لړے وي.دا ناپاكې اوبه دے په جاري اوبو كي واچولې تردےچې

---

¹) لكن القول الراجح هو عدم عود الترتيب كذا فى ردالمحتار(١\٥٤٠) وحاشية الطحطاوى (ص،٢٤١) والبحرالرائق (٢\٨٦) والهنديى (١\١٢٣) نقلا عن القول الراجح (١\١٢٠)-

دا هم کثیرے شولے، او اوبهیدے بیا دا اوبه لږے شولې نو اوس دوباره نه پلیتیږي. ځکه چې د اوبو د کثرت او جاري کیدو په وجه ددے نجاست ساقط شوې وو. اوقاعده ده چې " السـاقط لایعـود " نوساقط شوې نجاست واروسته نه راځي.

نوهم دغه شان چې کله دفوت شوو د کثرت په وجه ترتیب ساقط شي. بیا قضاء مونځونه کم پاتې شي. نو اوس ددے قلت په وجه ترتیب نه واروسته کیږي. اوچې کله ترتیب نه واروسته کیږي. نو وختی لمونځ هم په مابقي فوائتو مقدم کول جائز دی.

**ترجيح الرواية الاولى بالدراية**۞صاحب دهدایه فرمائي. چې رومبۍ روایت درایة اوروایة په دواړه اعتبارسره اظهر دے درایةً خو ځکه چې دترتیب ساقطیدو علت مفضي الى الحرج په وجه کثرت دے اوچونکه د اکثرو مونځونو قضائي نې کړې ده صرف دشپې و مونځونونه کم پاته دی. په دے وجه دترتیب ساقطیدو علت پاته نشو. او کله چې علت دسقوط پاته نشو. نودترتیب ساقط کیدوحکم هم پاته نه شو. ځکه چې دعلت منتفي کیدو د وجې حکم منتفي کیږي اوکله چې د ترتیب ساقطیدوحکم پاته نشو. نوترتیب به واروسته راځي اوچې کله ترتیب واروسته راشي. نو په مابقي فوائتوبه د وختي مونځونو مقدم کول څنګه جائز شي؟ ځکه چې په فوائت قلیله او وختیه کې ترتیب فرض دې.

**ترجيح الرواية الثانية بالرواية**۞اوروایةً په دے وجه ښکاره دې. چې د امام محمد رحمه الله نه د هغې کس په اړه کې روایت دې. چاچې یوه ورځ او یوه شپه مونځونه پریښولي (پریخودي) دی. مثلاً دسحر دلمانځه نه واخله د ماسخوتنه پورې پنځه واړه مونځونه ترے فوت شول بیا راتلونکې ورځ دهر وختی (مونځ) سره ئې دیوفوت شوی (لمونځ) قضاء راوړی. مثلاً د سحرد لمونځ په وخت ئې دپرون تیر شوی سحرلمونځ قضا راوړی. اود ماپښین په وخت د پرون تیرشوی ماپښین قضا اوکړی وغیره وغیره نوپه دے صورت کې به فوائت په هر حال کې جائز وي. که فوت شوی ئې په وختی مقدم کړی وی اوکه مؤخر کړی. خودومره قدرے فرق ضرور شته دې. چې د تقدیم په صورت کې به پنځه واړه وخته دسحر نه ترماسخوتنه پورې فاسد شي، اود تاخیر په صورت کې به د ماسخوتن نه علاوه پاته څلور فاسد شي.

**تفصيله**۞ تفصیل داده چې دکوم کس نه دسحرنه ماسخوتنه پورې پنځه مونځونه فوت شي. او ده د راتلونکې ورځې نه قضا راوړل پیل کړل. په دے طریقه چې مخکې ئې د سحر وختی (مونځ) ادا کړو. بیائې د پرون تیرشوی سحر قضا راوړله. نوچونکه داکس صاحب ترتیب دې. اووختی ئې په فوائتو مقدم کړل. نووختی لمونځ فاسدشو. اوفوت شوی مونځونه ئې شپې شول. پنځه پرونی تیرشوی. اویو نن صبانے مونځ، خوچې کله ده د پرون تیرشوی سحرلمونځ قضا راوړله. اودا هم صحیح شو. اوس فوت شوی بیا پنځه پاتې شول. څلورمونځونه د ماپښین نه ترماسخوتن پورې د تیرے شوې ورځې، اویودنن ورځې د سحر مونځ. بیا ئې د ماپښین په وخت کې دنن ماپښین لمونځ مخکې اداکړو. اود پرون تیر شوی ماپښین (مونځ) ئې روسته. نود نن ماپښین لمونځ فاسد شو. ځکه چې ددے باوجودچې دے صاحب ترتیب وو. ده وختی په قضا شوو مقدم کړل اوچې دنن ماپښین فاسد شو. نوبیا شپې مونځونه فوت شول. یعنی د پرون تیرشوی مازیګرنه دنن ماسپخینه پورې، بیا د مازیګروخت راغې. او په دے کې ئې د نن مازیګرلمونځ مخکې اداکړو. نود صاحب ترتیب کیدو په وجه دا فاسد شو. اود فوت شوو تعداد بیا شپې شول. خوچې کله ئې د پرون تیرشوی مازیګر (مونځ) اوکړو. اودا ټیک دې. نو فوت شوی هم پنځه پاته شول، یعنی د ماښام نه مازیګره پورې، بیا د ماښام په وخت کې ئې وختی مقدم کړو. نودصاحب ترتیب کیدو په وجه د ماښام وختی لمونځ فاسد شو. اود فوت شووتعداد شپې شو. یعنی د پرونی تیرشوی ماښام نه ترنن ماښام پورې، خوچې کله ئې د پرونی تیرشوی ماښام قضاء راوړله. نوبیا فوت شوی (مونځونه) پنځه پاتې شول، خوچې کله دماسخوتن په وخت کې ئې وختی مخکې ادا کړو، نودصاحب ترتیب کیدو په وجه دماسخوتن لمونځ فاسدشو. اوبیا واړه فوت شوی





شپې شول. یعنی د پرونی تیرشوی ماسخوتن نه دنن ماسخوتن پورې، خوچې کله ئې د تیرشوی ماسخوتن قضا راوړله. او دا جائزده. نوبیا فوت شوی پنځه پاتې شول.

**نتيجة التفصيل**۞په دے تفصیل سره به تاسو ته معلوم شوي وي. که وختی لمونځ ئې په فوت شوی لمونځ مقدم کړو. نوفوت شوې به جائزاووختی به فاسدوي. اودا هم ثابته شوه. که فوت شوی کم یعنی د شپې ونه کم پاتې شي. نوترتیب واروسته راګرځي. دلته کې هم دا ثابتول مقصود دي. اوکه وختي د فوت شوی نه روستو شو. نوددے تفصیل دادې. چې نن دسحر په وخت کې دمخکني تیرشوی سحر لمونځ ادا شو. خو دنن سحرلمونځ ادا نشو. ځکه دنن سحرکوم چې وختی (مونځ) دے هغه ئې مقدم کړې دے په پاتـه فوت شوی مونځونو ، حالا نکه دترتیب په وجوب سره دفوت شوی لمونځ په وختی لمونځ مقدم کول ضروري وو. هم دغه ډول پاته مونځونه هم قیاس کړئ، خودماسخوتن په وخت کې چې کله دتیر شوی ماسخوتن لمونځ ئې مخکې ادا کړو. او بیا ئې د نن ماسخوتن لمونځ اداکړو. نو امام محمد رحمه الله وائي. چې دنن ماسخوتن لمونځ ټیک دې. ځکه دده خیال دې. چې زما په ذمه هیڅ فوت شوې لمونځ نشته. حالا نکه دنن څلور واړه مونځونه فوت شوي دي. نوداکس داسې شو. لکه د فوت شوې لمونځ هیرونکے، اوداخبره تیره شوه. چې هیره ترتیب ساقطوي. نوکله چې ترتیب ساقط شو . نودماسخوتن لمونځ جائز شو.

**التنبيه**۞دا خبره په ذهن کې یاد ساتل پکار دی. چې دا حکم په هغه وخت کښے دې. چې دے جاهل وي. خوکه عالم وي. اوددے مسئلې نه واقف وي. نودماسخوتن لمونځ هم نه ټیک کیږي. والله اعلم با لصواب

## د فوت شوی د یادداشت باوجود وختی مونځ کول

(**وَمَنْ صَلَّى الْعَصْرَ** اوکه چا د مازیګر (مونځ) اوکړو. **وَهُوَ ذَاكِرٌ** په داسے حال کې چې ورته یاد وو **أَنَّهُ لَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ** چې ده د ماسپخین (مونځ) نه دے کړې **فَهِيَ فَاسِدَةٌ** نود مازیګر (لمونځ) فاسد دې **إِلَّا إِذَا كَانَ فِي آخِرِ الْوَقْتِ**). خوکه یادیدل دمازیګر په آخری وخت کې وي (نو فاسد نه دے) **وَهِيَ مَسْأَلَةُ التَّرْتِيبِ** اودا مسئله دترتیب ده

**حل اللغة*** ① صلى، صلاة: لمونځ کول ② ذاكر: ذکر کونکې ③ فسدت، فسد فساداً (ن): فاسد کیدل

**تشريح:- الصورتان في قضاء الفوتية**۞ ① مسئله داده چې یوکس د مازیګرلمونځ اوکړو. اوده ته دا یاد وو. چې تراوسه مې د ماپښین لمونځ نه دے کړې ، نو د مازیګرلمونځ فاسدشو. ځکه چې ده ترتیب پریښولو . حالانکه په ده ترتیب فرض وو. ② اوکه د مازیګرلمونځ ئې دمازیګر په آخری وخت کې ادا کړو. اودا ورته یاد وو. چې د ماسپخین (لمونځ) ئې نه دے کړې. نود مازیګر لمونځ ټیک دې. ځکه چې د وخت تنګیدل ترتیب ساقطوي.

**وَإِذَا فَسَدَتِ الْفَرْضِيَّةُ**، اوکله چې فرضیت فاسدشو **لَا يَبْطُلُ أَصْلُ الصَّلَاةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله ([1]). نود شیخینو رحمهما الله په نیز به اصل لمونځ فاسد نه وي ۞

**حل اللغة*** ① يبطل، بطل بطلاناً (ن): باطل کیدل

**تشريح:- الاختلاف في بطلان التحريمة**۞ ① پاتې شوه داخبره چې دترتیب په فوت کیدوکله فرضیت باطل شو. نو اصل لمونځ هم باطل شو هوکه نه؟ نوپه دے اړه کې اختلاف دې. شیخین رحمهما الله فرمائي. چې اصل لمونځ نه باطلیږي. یعنی د ترتیب نه موندلو په وجه د مازیګر فرض لمونځ اګرچې باطل شو . خو د دے نفل کیدل پاته دی. حاصل دا چې د مازیګر دالمونځ به په فرضو کې نشی شمارلې. بلکه نفل به شمارلے شي. ② اوامام محمد رحمه الله فرمائي. چې د فرضیت په بطلان اصل لمونځ هم باطل شو. یعنی د مازیګر دالمونځ به نه فرض شمارلے

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الشیخین رحمهما الله كذا فى الخانية (٥٥١١) وردالمحتار (٥٣٧١١) ومراقى الفلاح (ص. ٢٤٠) وطحطاوى (ص. ٢٤٠) والهندية (١٢٣١١) نقلا عن القول الراجح (١٢٢١١)-

شی.اونه نفل.

**ثمرة الاختلاف**۞ ثمره د اختلاف په دے صورت کي ښکاره کيږی.① کوم‌چې کس د وخت په وسعت کې د مازيگرلمونځ پيل کړی.په داسے‌حال کې چې ده ته د مازيگرفوت شوی(لمونځ )ياد وو.بيا دے کس په حالت د لمانځه کې په قهقهے سره اوخاندل نود شيخينو رحمهما الله په نيز دده اودس مات شو.ځکه‌چې د شيخينو رحمهما الله په نيز دده اصل لمونځ پاته دي.اوپه حالت دلمانځه کي په قهقهے سره خندل ناقض د اودس دی.په دے وجه د دوی په نيز اودس مات شو.

> **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **يَبْطُلُ**.اود امام محمد رحمه الله په نيز(اصل لمونځ )باطل شو، **لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ عُقِدَتْ لِلْفَرْضِ** ځکه‌چې تحريمه دفرض لپاره منعقد شوې ده **فَإِذَا بَطَلَتْ الْفَرْضِيَّةُ بَطَلَتْ التَّحْرِيمَةُ أَصْلًا** ،نوکله‌چې فرضيت باطل شو.نوتحريمه هم د بيخ نه باطله شوه

**تشريح:-** اود امام محمد رحمه الله په نيزاودس نه ماتيږی.ځکه‌چې د امام محمد رحمه الله په نيز اصل لمونځ باطل شو.په دے وجه د دوی په نيز دا قهقهه به د لمانځه په حالت کې نه وی.اودلمانځه دحالت نه علاوه په قهقهے سره خندل اودس نه ماتوی.په دے وجه دے صورت کې په قهقهے سره خندل هم ناقض د اودس نه دی.

**دليله**۞اصل مسئله کې د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چې تحريمه دمازيگر دفريضے لپاره منعقد شوې ده. اوهرهغه څيزچې د هغې لپاره تحريمه منعقد شی.چې کله هغه باطل شی.نوتحريمه هم باطليږی.ځکه‌چې تحريمه د هغې څيزحاصلولو ذريعه وی.نوکله‌چې مقصود باطل شی.نود هغې وسيله او ذريعه به هم باطليږی .اوچې تحريمه باطله شوه.نواصل صلاة هم باطل شو.اوچې اصل صلاة باطل شو.نونه فرض ادا شو اونه نفل.

> **وَلَهُمَا** اودشيخينو رحمهما الله دليل دادے **أَنَّهَا عُقِدَتْ لِأَصْلِ الصَّلَاةِ بِوَصْفِ الْفَرْضِيَّةِ**.چې تحريمه دفرضيت دوصف سره د اصل لمانځه لپاره منعقد شوې ده. **فَلَمْ يَكُنْ مِنْ ضَرُورَةِ بُطْلَانِ الْوَصْفِ بُطْلَانُ الْأَصْلِ** نود وصف په بطلان د اصل بطلان ضروری نه دی.

**حل اللغة**° ① **وصف**: خوبی، صفت ② **فلم يكن، كان يكون كونًا** (ن): کيدل

**تشريح:- دليل الشيخين** ۞دشيخينو رحمهما الله دليل دا دےچې تحريمه منعقد شوې ده د اصل صلاة دپاره.چې هغه د فرضيت وصف موصوف دې.اود ترتيب فوت کيدوپه وجه دمازيگردلمونځ د فرضيت وصف باطل شو،ضروری نه دەچې د نفل کيدو وصفيت هم باطل شی.

**نظيره**۞لکه‌چې يوکس دخپلے تنگدستئ اوغربت په وجه په کفاره يمين کې درے روژے نيول پيل کړی.بيا د ورځې په مينځ کې مالدارشو.نودده اصل روژه نه باطليږی.بلکه ددے روژے د کفاره واقع کيدو وصف باطليږی.يعنی هغه روژه به په کفاره ديمين کې نشی شمارلې.البته روژه به نفل شی.اوپه کفاره ديمين کې به ځکه نشی شمارلې.چې دمالدارکس لپاره ضروری دی.چې دے کفاره ديمين خوراك ور کاوه اداکړی يا په جامو اچولو،او ياغلام آزاد کړی.په دے درے واړو د عدم قدرت په صورت کې د روژے نيولوحکم دی.نوکلهچې ده د تنگدستئ په وجه په روژے نيولوکفاره ادا کول پيل کړل.خوپه ورځ کې دننه د روژے په حالت کې داکس مالدارشو.نود ده د روژے دکفاره واقع کيدووصف باطل شو.خواصل روژه باطله نه ده.لکه څنگه‌چې دلته د وصف په بطلان د اصل بطلان نه راځی.هم دغه ډول د متن په مسئله کې هم د فرضيت دوصف په بطلان اصل لمونځ نه باطليږی.

### د مازيگر مونځ په فساد موقوف کيدو مطلب

> **ثُمَّ الْعَصْرُ يَفْسُدُ فَسَادًا مَوْقُوفًا** بيا مازيگر دفساد موقوف په طور فاسد شو. **حَتَّى لَوْ صَلَّى سِتَّ صَلَوَاتٍ** تردې که شپږ مونځونه ئې اوکړل **وَلَمْ يُعِدِ الظُّهْرَ** اود ماپښين اعاده ئې اونکړه **انْقَلَبَ الْكُلُّ جَائِزًا**.نوواړه مونځونه به



> جائزشی **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله([1])دا حکم داامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدې

**حل اللغة**° ① **يفسد، فسد فسادًا** (ن): فاسد کيدل، خرابيدل ② **لم يعد، اعاد اعادة**: واروسته کول ③ **انقلب، انقلب انقلابًا**: واروسته کيدل، ورگرځيدل، په يقيني توگه باندې

**تشريح:- صورة المسئلة**۞ذکرشوې مسئله يعنی‌چې دمازيگرلمونځ ئې اوکړو.اودا ورته ياد وو.چې د ماپښين لمونځ ئې نه دے کړې.نو په دےصورت کې فرمائی.چې دترتيب فوت کيدوپه وجه د مازيگرلمونځ فاسد دې.خو په دےکې اختلاف دې.چې دمازيگردا لمونځ موقوفاً فاسدشو.اوکه قطعاً اوحتماً ،

**مذهب ابی حنيفة** رحمه الله ۞نوامام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چې د مازيگر لمونځ موقوفاً فاسدشو.تردې که شپږ مونځونه ئې اوکړل يعنی دنن مازيگرنه ترد سهار مازيگره پورې.اود ماپښين دفوت شوی لمونځ ئې لاتراوسه قضا نه وی راوړې.نودا واړه مونځونه جائزشول.

**دليله**۞دليل دا دےچې دمازيگراوددے نه روسته د پنځومونځونوپورې د فساد علت د ترتيب وجوب دے،يعنی مازيگر،ماښام،ماسخوتن،اودراروانے ورځې د ماپښين مونځ،په دے وجه فاسد دی.چې ده تراوسه د پرون تيرشوی ماپښين (مونځ) نه دےکړې.حالانکه د ترتيب تقاضا دا وه.چې مخکې ئې د پرونی تير شوی ماپښين قضا راوړے وې.خوچې کله ده د راروانے ورځې د مازيگرلمونځ ادا کړو . نواوس گويا د پرون تيرشوی ماپښين لمانځه نه روسته شپږ مونځونه فاسد شول.اوپه شپږ و مونځونو کثرت ثابتيږی.او مخکې تيرشو.چې په ډيروقضاشوو مونځونو ترتيب ساقطيږی.نوکله‌چې دے کس د راروانے ورځې دمازيگرمونځاوکړو.نود قضا شوو په کثرت ترتيب ساقط شو.اوکله‌چې ترتيب ساقط شو.نو مونځونه جائز شول.

> **وَعِنْدَهُمَا يَفْسُدُ فَسَادًا بَاتًّا**..اودصاحبينو رحمهما الله په نيز به مازيگر يقينا فاسد وی **لَاجَوَازَ لَهُ بِحَالٍ**).دا اوس په هيڅ حال کې نشی جائز کيداې **وَقَدْ عُرِفَ ذَلِكَ فِي مَوْضِعِهِ**.اودا په خپله موقع معلومه شوې ده.

**تشريح:- مذهب الصاحبين** رحمهما الله ۞صاحبين رحمهما الله فرمائی.چې دمازيگرلمونځ به حتماً اوقطعاً فاسد وی .يعنی په هيڅ حال کې نشی جائزکيدې.ددےصورت دادےچې يوکس دمازيگرلمونځ نه دے کړې.بيا ددے نه روسته د پنځو مونځونوپورې ئې په خپل وخت کې ادا کړل.نودصاحبينو رحمهما الله په نيز پنځه واړه فاسد دی.

**دليلهما**۞دصاحبينو رحمهما الله دليل دا دےچې دترتيب ساقط کيدو علت د فوت شووکثرت دی. او قاعده دا ده.چې حکم دعلت نه مؤخروی.نود ترتيب ساقط کيدوحکم به هغه وخت وی.چې کله فوائت زيات (شپږ) شی.نوفوائت يعنی د ماپښين لمونځ قضا راوړلونه بغيرکه پنځه واړه مونځونه په خپل خپل وخت اوکړی.نو پنځه واړه مونځونه يقينی فاسد وی.ځکه‌چې دترتيب ساقط کيدو علت بيا نه موندلے شو.

### د وترکولونه بغير دسهر دمانځه حکم

> **وَلَوْ صَلَّى الْفَجْرَ** اوکه ده دسحرلمونځ اوکړو **وَهُوَ ذَاكِرٌ**.اوده ته ياد وی **أَنَّهُ لَمْ يُوتِرْ**.چې د وترلمونځ ئې نه دےکړې **فَهِيَ فَاسِدَةٌ** نودا فاسد دې **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله.([2]) په نيزد امام ابوحنيفه رحمه الله **خِلَافًا لَهُمَا** دصاحبينو رحمهما الله اختلاف دې

**حل اللغة**° ① **صلى صلاة**: لمونځ کول ② **ذاكر**: ذکر کونکې ③ **لم يوتر، اوتر ايتارًا**: وتر کول

---

[1]) القول الراجح هو قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی فتح القدير(۴۳۳\۱) وردالمحتار(۵۴۰\۱) والخانية (۵۶\۱) والهندية (۱۲۴\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۲۳\۱)-

[2]) القول الراجح هو قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۵۳۶\۱) والخلاصة (۸۹\۱) وشرح الوقاية (ص،۱۸۲) وردالمحتار (۵۳۸\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۲۴\۱)-

تشريح:- الاختلاف في صحة الفجر عند تذكرة فائتة الوتر⊙صورت دمسئلې دا دې چې يوكس د سحرلمونځ اوكړو.په دا سې حال كې چې ده دوترولمونځ نه ووكړې.اوده ته وترنه كول يادوو. ① نوپه دے صورت كې د امام صاحب رحمه الله په نيزدسحرلمونځ فاسد دې ② اودصاحبينو رحمهما الله په نيزفاسد نه دې.

وَهٰذَا بِنَاءٌ اودا بنا (بنياد) په دے خبره دې عَلٰى أَنَّ الْوِتْرَ وَاجِبَةٌ عِنْدَهٗ چې د امام صاحب په نيز وتر واجب دى سُنَّةٌ عِنْدَهُمَا اودصاحبينو رحمهما الله په نيزسنت دى وَلَا تَرْتِيْبَ فِيْمَا بَيْنَ الْفَرَائِضِ وَالسُّنَنِ اودفرضواوسنتو په مينځ كې ترتيب نشته

تشريح:- بناء الاختلاف بينهم⊙دامام صاحب اودصاحبينو رحمهم الله په مينځ كې دا اختلاف په دے خبره مبنى دې چې د امام صاحب رحمه الله په نيزد وترو لمونځ واجب دې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزسنت دې.او دا خبره معلومه شوېده.چې ترتيب صرف په فرضوكې واجب دې.اوپه ذكرشوى صورت كې چونكه ترتيب موجودنه دې په دے وجه دسحرلمونځ فاسددې.اودصاحبينو رحمهما الله په نيز وتر دماسخوتن (دمانځه)حصه ده.په دے وجه دسحراو وترو په مينځ كې ترتيب واجب نه دې. اوچونكه وتر او دسحرپه لمانځه كې ترتيب واجب نه دې.خكه دسحرلمونځ فاسد نه دې.اګرچې دا ورته ياد وي چې وتر لمونځ ني نه دے كړې.

وَعَلٰى هٰذَا إِذَا صَلَّى الْعِشَاءَ اوهم په دے بناء كه دماسخوتن لمونځ ني اوكړو ثُمَّ تَوَضَّأَ بيا ني اودس اوكړو وَصَلَّى السُّنَّةَ وَالْوِتْرَ..اوسنت اود وترلمونځ ني اوكړو ثُمَّ تَبَيَّنَ أَنَّهٗ صَلَّى الْعِشَاءَ بِغَيْرِ طَهَارَةٍ بيا ښكاره شوه چې دماسخوتن لمونځ ني بےاودسه كړې دې فَعِنْدَهٗ يُعِيْدُ الْعِشَاءَ والسنة نود امام صاحب په نيزبه دے د ماسخوتن د فرضواوسنتو دواړو اعاده اوكړى دُوْنَ الْوِتْرِ(١) نه دوترو لِأَنَّ الْوِتْرَ فَرْضٌ عَلٰى حِدَةٍ عِنْدَهٗ .خكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز وترخانله فرض دى

حل اللغة: ① توضا، توضا توضيا: اودس كول ② تبين، تبين تبينا: ښكاره كيدل ③ يعيد، اعاد يعيد اعادة: واروسته كول

تشريح:- الاختلاف في اعادة الوتراذا اداها بالطهارة⊙هم په دے اصل چې د امام صاحب په نيزوترواجب دى.اودصاحبينو رحمهما الله په نيزسنت دى.كه دماسخوتن لمونځ ني اوكړو بيائي اودس اوكړو.اود ماسخوتن نه روسته ني سنت اووترلمونځ اداكړو،بيا ښكاره شوه چې دماسخوتن لمونځ ني بےاودسه كړې دے ①نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د ماسخوتن د فرض لمونځ اودسنتو دواړو اعاده كوى. د وترو اعاده به نه كوى.دوترو اعاده به خكه نه كوى.چې وتردامام صاحب رحمه الله په نيز واجب دى.اودا ني په دے وخت كې په طهارت سره اداكړى دى.خكه چې د وترو وخت هم هغه دې. كوم چې د ماسخوتن دې.زيات نه زيات داوبلې شي.چې په ماسخوتن اووتروكې ترتيب او موجود نشو.نو دےخواب دا دې.چې دنسيان په عذر سره ترتيب ساقط شوې دے،نودوترو اعاده به ضرورى نه وى.اود سنتو اعاده به خكه ضرورى وى.چې سنت د فرضو تابع دى.نوچې د فرضواعاده كيږى.ددے دتابع اعاده به هم ضرور كيږى.

وَعِنْدَهُمَا يُعِيْدُ الْوِتْرَ أَيْضًا اودصاحبينو رحمهما الله په نيزدے د وترو اعاده به هم كوى لِكَوْنِهٖ تَبَعًا لِلْعِشَاءِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ خكه چې دا دماسخوتن تابع دى.والله اعلم

تشريح:- دصاحبينو رحمهما الله په نيزوترسنت دى.اوسنت دماسخوتن دفرضوتابع دى.په دے وجه به د ماسخوتن لمانځه سره د وترو اعاده هم ضرورى وى.والله اعلم.

(١) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى الكفاية (٤٣٣/١) وردالمحتار (٥٣٨/١) نقلا عن القول الراجح (١٢٥/١)-



## باب سجود السهو

ژباړه:- (دا) باب دسهو دسجدو( په بيان كې ) دې.

تشريح:- د ادا اود قضاء د بيان نه چې فارغ شو.نواوس هغه ځيزبيانوى.چې په ادا اوپه قضاء كې د واقع كيدونكى نقصان تلافى كوى.يعنى سجده سهو،دسجدې تركيب د(اضافت المسبب الى السبب) قبيلے څخه دې خكه چې په لمانځه كې سهودسجدو واجبولو سبب دې.

### د سجده سهو وجوب اود اداكولوطريقه

يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ فِي الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ السَّلَامِ دزيادت اونقصان په صورت كې دے د سلام نه روسته دوې (دوه) سجدې اوكړى ثُمَّ يَتَشَهَّدُ بيا دے تشهد ووايي ثُمَّ يُسَلِّمُ بيا دے سلام واړوى

حل اللغة: ① يسجد،سجد سجدة: تيتيدل، سجده كول ② يسلم سلم تسليماً: سلام كول، سلام ګرځول

تشريح:- الاختلاف في سجدة السهو قبل السلام او بعده⊙مسئله داده.كه په لمانځه كې د څه فعل زياتوالے راشى.ياكمى.نوپه ده به دوې (دوه) سجدې د سهوے واجب وى.پاتې شوه داخبره چې دسلام نه روسته به واجب وى.اوكه دسلام نه مخكې ،نود دے په جوازكې د هيڅ چا اختلاف نشته.دټولو اتفاق دےچې سجده سهودسلام نه مخكې اوكړى.يا د سلام نه پس.دواړه جائزدى.البته په افضليت كې اختلاف دې① داحنافو رحمهم الله په نيزد سلام نه روسته غوره ده.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رحمه الله يَسْجُدُ قَبْلَ السَّلَامِ اودامام شافعى رحمه الله په نيزدےدسلام نه مخكې سجده اوكړى لِمَا رُوِيَ خكه چې نقل دى {أَنَّهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سَجَدَ لِلسَّهْوِ قَبْلَ السَّلَامِ}(٢) چې نبى كريم ﷺ دسلام نه مخكې سجده سهوكړې ده

تشريح:- اود امام شافعى رحمه الله په نيزدسلام نه مخكې غوره ده.

حل اللغة: ① سهو: هيرول

دليله⊙دامام شافعى رحمه الله دليل دادې.چې نبى كريم ﷺ سجده سهودسلام نه مخكې كړې ده.لكه چې په صحاح ستة كې دعبدالله بن مالك ﷺ حديث دې.دبخارى الفاظ دا دى ﷺان النبى ﷺ صلى الظهر فقام فى الركعتين الأولين ولم يجلس فقام الناس معه حتى إذا قضى الصلوة و انتظر الناس تسليمه كبر و هو جالس فسجد سجدتين قبل أن يسلم⊙يعنى نبى كريم ﷺ د ماپښين لمونځ كاوه او په مخكنو دوو ركعتوكې بغير د قعدې كاوه پاسيدلو.هغوى ﷺ سره خلګ هم پاسيدل تردې چې كله لمونځ ختميدو ته نزدے شو.او خلګ ود نبى كريم ﷺ دسلام اړولو انتظاركولو.نونبى كريم ﷺ په ناسته ناسته تكبير اووئيل. ود سلام اړولونه مخكې ني دوې (دوه) سجدې اوكړې.د دے حديث نه معلومه شوه چې سجده سهو قبل السلام ده.

وَلَنَا اوزمونږدليل دادې قَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبى كريم ﷺ فرمائيلي دى {لِكُلِّ سَهْوٍ سَجْدَتَانِ بَعْدَ السَّلَامِ}(١) چې

(١) : من حديث عبدالله ابن بحينة رضى الله عنه رواه البخارى فى السهو باب ٥ رقم ١٢٣ ومسلم فى المساجد و مواضع الصلوة رقم ٨٥ و ابوداؤد فى الصلوة باب ١٨٩ و الترمذى فى الصلوة باب ١٧١ رقم ٢٩١ والنسائى فى السهو باب ٢٦ وابن ماجه فى الاقامة باب ١٣٥)-

(١)من حديث ثوبان رضى الله عنه اخرجه ابوداؤد فى الصلوة باب ١٩٥ رقم ١٣٨ وابن ماجه فى الاقامة باب ١٣٦ واحمد فى المسند (٢٨٠/١٥) وعبدالرزاق فى مصنفه (٣٢٢/٢)-

د هرے سهوے لپاره دسلام نه روسته دوې (دوه) سجدې دی **وَرُوِيَ**...اوروايت دې. **أَنَّهٗ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ}** (۱) چې نبی‌کریم ﷺ دسلام نه روسته دسهوے دوې (دوه) سجدې کړی دی **فَتَعَارَضَتْ رِوَايَتَا فِعْلِهٖ**.د نبی کریم ﷺ د فعل دواړه روایتونه متعارض شول **فَبَقِيَ التَّمَسُّكُ بِقَوْلِهٖ سَالِمًا** اود نبی کریم ﷺ په قول استدلال بلا معارضه پاته شو.(نوپه دے به استدلال کولې شی.)

**حل اللغة** ① **فتعارضت، تعارض تعارضاً**: په یوبل اعتراض کول ② تمسك، نیول

**تشریح:- دلائل الاحناف** ① ﷺ د احنافو ﷺ دلیل دنبی‌کریم ﷺ قول ﴿لكل سهو سجدتان بعد السلام﴾ دی.(ابوداؤد،ابن ماجه) ② دوهم دلیل حدیث فعلی دې.چې نبی‌کریم ﷺ دسلام نه روسته دوې (دوه) سجدے کړی دی. صاحب دهدایه وائی.چې دوې (دوه) فعلی‌حدیثونه متعارض شی.نودا دواړه به پریښولې (پریخودې) شی.اودنبی‌کریم ﷺ په قول به عمل کولے‌شی.اودنبی کریم ﷺ قول دادې.چې دسهوے دوې (دوه) سجدې دسلام نه روسته دی.

**وَلِأَنَّ سُجُوْدَ السَّهْوِ مِمَّا**. او خکه‌چې سجده سهودهغے‌څیزونوځنے ده **لَا يَتَكَرَّرُ**.چې هغه نشی مکرر کیداې **فَيُؤَخَّرُ عَنِ السَّلَامِ**.نودسلام نه به روستوکولې شی **حَتّٰى لَوْ سَهَا عَنِ السَّلَامِ** که په سلام سره سهواوکړی **يَنْجَبِرُ بِهٖ**.نودا به هم (په دے)سجده پوره شی **وَهٰذَا الْخِلَافُ فِي الْأَوْلَوِيَّةِ** اودا اختلاف په اولویت کې دې

**حل اللغة** ① **فیؤخر،اخر تاخیراً**: روستوکول ② **سهی، سهی سهواً(ن)**: هیرول ③ **ینجبر، انجبر انجباراً**: پوره کیدل

**تشریح:-** داحنافو ﷺ عقلی دلیل دادې.چې په اجماع سجده سهو نشی مکرر کیدې .اود سلام نه مخکې د سجده سهوے کاوه په صورت کې دتکرار امکان دې.په دےطریقه‌چې دسلام نه مخکې ئې سجده اوکړه. بیاچې کله دسلام اړولو وخت راغې.نو د ده شك شو.چې درے رکعته شوی دی اوکه څلور.په دے سوچ کې پروت وو.تردېچې په سلام کې تاخیراوشو.بیا وریاد شو.چې څلور رکعته شوی دی.نواوس دسلام دتاخیرد وجې په ده دوې (دوه) سجدې د سهو واجب شوې.نودا کس به دوباره سجده سهوکوی اوکه نه.نودوې (دوه) صورتونه دی.که ده دوباره سجده سهواونکړه.نوپه لمانځه کې به داسې نقص پاته شی.چې د هغې تلافی نه ده شوې.اوکه دوباره ئې سجده سهواوکړه.نوسجده سهو به مکررشی.حالا نکه دا په اجماع سره غیر مشروع ده.په دے وجه مناسب دی.چې سجده سهو د سلام نه روسته اوشی.چې دټولوسهوو تلافی اوشی.

**وَيَأْتِيْ بِتَسْلِيْمَتَيْنِ**.اودوې (دوه) سلامونه دے واړوی **هُوَ الصَّحِيْحُ** دا صحیح دی‌ هم **صَرْفًا لِلسَّلَامِ الْمَذْكُوْرِ**.خکه په احادیثو کې کوم‌چې سلام ذکردې **إِلٰى مَا هُوَ الْمَعْهُوْدُ** هغه معهود سلام اړخ ته راجع دې

**تشریح:- تسلیم السلامین**◉پاتې شوه دا خبره‌چې دسجده سهوے نه مخکې دواړو اړخ ته سلام واړوی اوکه یوطرف.① په دے اړه کې د هدایه دمصنف ﷫ په نیزراجح دا دی.چې دواړو طرفونو ته سلام واړوی.هم ددے قائل شمس الا ئمه سرخسی، صدرالاسلام اوفقیه ابوالليث ﷭ دی.

**دلیله**◉دهدایه مصنف دقول صحیح دلیل دابیان کړې دې.چې په احادیثوکې کوم ځائې لفظ دسلام ذکر

(۲) من حدیث عبدالله ﷠ اخرجه البخاری فی الصلوة باب ۳۲ رقم ٤۰٤ ومسلم فی المساجد و مواضع الصلوة رقم ۹۱، ۹۲، و ابوداؤد فی الصلوة باب ۹ رقم ۱۰۱۹ والترمذی فی الصلوة باب ۱۷۲ رقم ۳۹۲ والنسائی فی السهو باب ۲۵ وابن ماجه فی الاقامة باب ۱۳ رقم ۱۲۰۵)-

(۱) من حدیث عبدالله ﷠ البخاری فی الصلاة باب ۳۲ رقم ٤۰٤ ومسم فی المساجد ومواضع الصلاة رقم ۹۱، ۹۲، وابوداود فی الصلاة باب ۹ رقم ۱۰۱۹ والترمذی فی الصلاة باب ۱۷۲ رقم ۳۹۲ والنسائی فی السهو باب ۲۵ وابن ماجه فی الاقامة باب ۱۳ رقم ۱۲۰۵)



دې.د هغې نه متعارف اومعهود سلام مراددې.اومتعارف دواړو اړخ ته سلام اړول دی.یو اړخ ته مراد نه دے،په دے وجه دواړو اړخ ته سلام اړول ضروری دی. بعضے‌حضرات وائی.چې د امام ابوحنیفه اود امام ابو یوسف ﷺ په نیزهم داحکم دې.

**تسلیم السلام الواحد**: اودشیخ الاسلام خواهرزاده،علامه فخرالاسلام اودصاحب ایضاح ﷭ په نیزراجح دادی.چې صرف ښی اړخ ته سلام واړوی.

**دلیله**◉د شیخ الاسلام خواهرزاده وغیره دلیل دادې.چې دسلام دوې (دوه) حکمونه دی .یوخودقوم لپاره تحیه او دعې.او بل قطع کول د احرام.اودلته لمونځ قطع کول مقصودنه دی .نومعلومه شوه‌چې تحلیل مراددې.اوپه تحلیل کې تکرار نه وی.په دے وجه دسلام دتکرار هیڅ اړتیا نشته.بلکه یو اړخ ته به کافی وی.

**وَيَأْتِيْ بِالصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ**. او په نبی‌کریم ﷺ درود وائی **وَالدُّعَاءِ**.اوخان لپاره دے دعا اوغواړی **فِيْ قَعْدَةِ السَّهْوِ** سهوے په قعده کې **هُوَ الصَّحِيْحُ**. هم دا صحیح ده

**تشریح:- المذهبان في الصلاة في قعود الصلاة**◉پاتې شوه داخبره‌چې درود علی النبی ﷺ اوماثوره دعاګانے په قعدې د صلوة کې وئیل پکاردی اوکه په قعده د سهوے‌کې ،دقعده صلوة نه د سجده سهوے نه مخکنۍ قعده مراد ده.اود قعده سهو نه مراد د سجده (سهو) نه روسته قعده ده.① په دے اړه کې امام طحاوی ﷫ فرمائی.چې په دواړو قعدوکې دے اووائی.یعنی په قعدې دصلوة کې هم اوپه قعدې دسهوےکې هم.

② اودشیخینو ﷭ په نیزبه په قعدې دصلوة کې وائی.یعنی دسجده سهوےنه مخکې ،اودامام محمد ﷫ په نیزبه په قعده د سهوکې وائی.یعنی دسجده سهونه پس،مصنف دهدایه هم دے ته صحیح وئیلی دی.

**دلیل الطحاوی** ﷫◉امام طحاوی ﷫ دخپل مذهب تائید کې یوه ضابطه بیان کړې ده.هغه دا ده.چې هرهغه قعده‌چې د هغې په آخرکې سلام وی.په هغې کې به درود علی النبی ﷺ وئیلې شی .نو ددے ضابطے په رڼاکې دواړو قعدوکې یعنی په قعدې دصلوة اوپه قعدې دسهوے په آخر کې سلام شته.

**لِأَنَّ الدُّعَاءَ مَوْضِعُهٗ آخِرُ الصَّلَاةِ**.خکه‌چې د دعا مقام دلمانځه په آخرکې دې

**تشریح:- دلیل الشیخین**◉دشیخینو ﷭ دلیل دادې.چې درود او دعا د لمانځه په آخری قعده کې وئیلی شی.اوپه کوم کس‌چې سجده سهوواجب شوه.د هغه دغه سلام کوم‌چې دسجده سهوے لپاره دې.هغه د لمانځه نه ویستل کوی.اوچې دا سلام د لمانځه نه ویستل کوی.نوهم قعده د صلوة، قعده د ختم شوه.اود امام محمد ﷫ په نیزچونکه دا سلام دلمانځه نه خارجول نه کوی.بلکه دسجده سهو نه روسته کوم‌چې سلام دے هغه د لمانځه نه خارجول کوی.په دے وجه به قعده سهو قعده دختم وی.نه داچې قعده دصلوة ،اود درود او دعاء مقام چونکه دلمونځ آخردې.په دے وجه په قعده سهو کې به درود او دعا وئیلې شی.په قعده دصلوة کې به نشی وئیلې.د امام محمد ﷫ قول مفتی به دې.

### د جنس صلاة څنی چې نه وی دهغې د زیادت حکم

**قَالَ (وَيَلْزَمُهُ السَّهْوُ)** اووائی‌چې سهو به لازم وی. **إِذَا زَادَ فِيْ صَلَاتِهٖ فِعْلًا** چې کله په خپل لمانځه کې داسې فعل زیادت اوکړی. **مِنْ جِنْسِهَا** چې هغه د لمونځ جنس وی **(لَيْسَ مِنْهَا)** (خو) دلمونځ جزء نه وی

**حل اللغة** ① **یلزمه، لزم لزوماً (س)**: لازم کیدل ② **زاد، زاد زیادة (ض)**: زیاتول

**تشریح:- الربط بما قبله**◉په اولنی باب کې بیان شوی وو.چې سجده سهو د زیادت اونقصان په وجه واجبیږی.خودا ئې ذکرنکړل.چې څنګه زیاتوالے اونقصان موجب دسهودې.نودلته کې هم د هغې تفصیل او تفسیر ذکردې.

**وجوب السهو بزیادة ما یکون من جنس الصلاة**◉صاحب دقدوری ﷫ فرمائی.چې سجده سهو د هرهغه فعل په

زيادت لازميږي .کوم چې فعل د لمونځ د جنس څخه وي.خو دلمونځ جزء نه وي.مثلاً ديو رکعت نې دوې (دوه) رکوع اوکړې.يائې درے سجدې اوکړې. نويوه رکوع اويوه سجده کوم چې زياتي ده.هغه اګرچې دلمونځ جنس دې .خو دلمونځ جزء نه دې.نود يوے رکوع په ځائې نې دوې (دوه) رکوع اوکړې.يا د دوو سجدو په ځائې نې درے سجدې اوکړې.نو ددے زيادت په وجه به سجده سهو واجب وي.

وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى.اودا په دے خبره دلالت کوی. أَنَّ سَجْدَةَ السَّهْوِ وَاجِبَةٌ چې سجده سهو واجب ده. هُوَ الصَّحِيْحُ هم دا صحيح ده لِأَنَّهَا تَجِبُ لِجَبْرِ نقصان .ځکه چې سجده سهو هرهغه نقصان پوره کاوه لپاره واجب ده تَمَكَّنَ فِي الْعِبَادَةِ کوم نقصان چې په لمانځه کي ځائې اونيولو فَتَكُوْنُ وَاجِبَةً..نودا به واجب وي.

حل اللغة* ① يدل، دل دليلاً (ن): دلالت کول ② تجب، وجب وجوباً (ض)،واجب کيدل

تشريح:- المذهبان في حکم سجدة السهو ۞صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چې دماتن قول ﴿ويلزم السهو إذا زاد ...الخ﴾دسجده سهو په وجوب دلالت کوی.اود وجوب قول صحيح دې.هم ددے قائل امام مالك او امام احمد رحمهما الله دی.اوخينې د احناف عالمان لکه امام ابوالحسن کرخی رحمه الله فرمائي.چې سجده سهوسنت ده.

دليل القول الصحيح ۞دقول صحيح دليل دادې.چې سجده سهود هغې نقصان پوره کاوه لپاره واجب ده.کوم چې په عبادت کي پيدا شوې وی.که دسجده سهو په ذريعه نقصان پوره نشو.نود لمونځ اعاده به واجب وی.ددے لپاره چې نقصان پوره شی.اوکله چې دنقصان پوره کاوه لپاره دلمونځ اعاده واجب ده.نوسجده سهوبه هم واجب وی.ځکه چې په دے هم نقصان پوره کيږی.لکه چې دلمونځ په اعادے نقصان پوره کيږی.

كَالدِّمَاءِ فِي الْحَجِّ لکه څنګه چې په حج کي قربانيانے دی

حل اللغة* ① دماء جمع دم: وينه،خودلته به معنى وه قرباني

تشريح:- تائيده بالمثال ۞اودسجده سهو مثال داسے دې.لکه په حج کي دم جنايت،يعنی که د احرام په حالت کي ترے جنايت اوشی.نو په دے سره به حج کي نقصان پيدا شی.اوددے نقصان تلافي به په دم جنايت(قرباني) سره کيږی.اودم جنايت واجب وی.نولکه څنګه چې په حج کي دم جنايت واجب ده.دغه ډول په لمانځه کي سجده سهو واجب ده.

وَإِذَا كَانَ وَاجِبًا.اوکله چې دا سجده واجب شوه لَا يَجِبُ.نوواجب به نه وی إِلَّا بِتَرْكِ وَاجِبٍ په ترك د واجبو أَوْ تَأْخِيْرِهِ ،يا ددے په تاخير أَوْ تَأْخِيْرِ رُكْنٍ يا د يو رکن په تاخير سره سَاهِيًا خوسهواً هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ ضابطه هم داده

حل اللغة* ① ترک: پريښول ② ساهيا: په هيره سره

تشريح:- صور وجوب السهو في ضوء الامثله ۞فاضل مصنف رحمه الله فرمائي.چونکه سجده سهو واجب ده. نو سجده سهو به هغه وخت واجب وی.چې کله په سهو څه واجب پاتې شی.ياد واجبو په ادا کاوه کي تاخير راشی.يا ديو رکن په اداکولو کي تاخير اوشی.دترك واجب مثال اوله قعده پريږدی.ياداخترونو په مونځونو کي تکبيرات زوائد پريږدی.(خو داخترونو په مونځونو کي د ډيرے ګڼړے په وجه به سجده سهو نشی کولے) دتاخير واجب مثال لکه د پنځم رکعت لپاره سهواً ودريدلو.نوده نه په سلام کي تاخيراوشو.اوسلام واجب دې.اود تاخير رکن مثال لکه په اوله قعده کي دتشهد ونيلونه روسته ئې درود اوونيل.نود دريم رکعت قيام کوم چې فرض دې په هغې کي تاخيراوشو.بهرحال د سجده سهو په وجوب کي اصول دادی.چې په سهوه ترك د واجبو موجود شي يا تاخير د واجب يا تاخير د رکن.

وَإِنَّمَا وَجَبَ بِالزِّيَادَةِ اوسجده سهو په زيادت سره په دے وجه واجب شوه. لِأَنَّهَا لَا تَعْرِيْ عَنْ تَأْخِيْرِ رُكْنٍ أَوْ تَرْكِ وَاجِبٍ ،چې دا د يو رکن د تاخير يا د ترك د واجبونه خالی نه وی

حل اللغة* ① لاتعرى، عرى عرياناً (ض): خالي، بربنډ يدل ② تاخير: روستو کول



تشريح:- السوال التقديري ۞﴿وإنما وجبت الزيادة...الخ﴾نه دسوال ځواب دې.دسوال حاصل دادې.چې تاسو وايې چې سجده سهو به په ترك د واجبو واجبيږي.يا په تاخيردواجبو يا په تاخير د رکن.خود زيادت په صورت کي خو نه ترك د واجب دے اونه تاخير.(لکه چې دوې (دوه) رکوع اوکړي.يا درے سجدې اوکړي)نود زيادت په صورت کي د سجده سهو وجوب نه دے پکار.حالانکه په اول دباب کي ونيلی شوی دی.چې د زيادت په صورت کي سجده سهو واجبيږي.

الجواب ۞ځواب دادے چې د زيادت په صورت کي هم تاخير درکن ياترك د واجب لازميږي . مثلاًچې درے سجدې نې اوکړې.نوقيام کوم چې فرض رکن دې. په دے کي به تاخير لازميږي . اوکه د اوله قعده نه روسته په هيره پنځم رکعت لپاره پاسيدو.اودائې په سجده مقيد هم کړو.نوحکم دا دےچې دے سره دے شپږم رکعت ملاؤ کړی.چې څلور رکعته فرض اودوې (دوه) رکعته نفل شی.اوس تاسو اوګورئ.چې ددے دوو رکعتو د زيادت په وجه په څلور رکعتونوکوم چې سلام واجب وو. هغه ترك شو.نوثابته شوه.چې زيادت هم تاخيرد رکن يا ترك د واجب لره مستلزم دې.

## د سنت په ترك د سجده سهو حکم

قَالَ (وَيَلْزَمُهُ) اوسجده سهو به لازم وی. (إِذَا تَرَكَ فِعْلًا مَسْنُوْنًا) کله چې يو فعل مسنون پريږدی كَأَنَّهُ أَرَادَ بِهِ فِعْلًا وَاجِبًا.لکه چې ده په دے د فعل واجب اراده کړې ده. إِلَّا أَنَّهُ أَرَادَ بِتَسْمِيَتِهِ سُنَّةً خو ددے په سنت نوم ايخودلو نې دا اراده کړې ده أَنَّ وُجُوْبَهَا ثَبَتَ بِالسُّنَّةِ.چې ددے وجوب په سنت ثابت دې.

حل اللغة* ① يلزمه، لزم لزوماً (س): لازم کيدل ② اراد، اراد ارادة: اراده کول

تشريح:- المراد من المسنون هو الواجب ۞مسئله :صاحب دقدوری رحمه الله وائي.چې لمونځ کونکی که يوفعل مسنون پريښولو .نوپه ده به سجده سهو واجب وی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چې په متن کي د فعل مسنون نه مراد فعل واجب دې.ځکه چې د فعل مسنون په پريښولو سجده سهو نه واجبيږی.بلکه په ترك د واجب واجبيږی.پاتې شوه دا خبره چې په متن کي ،،فعلاً مسنونا،، ولے ونيلے شوی دی؟ نو د دے ځواب دا دې.چې چونکه د واجبو وجوب په سنت سره ثابت دې.(ځکه ئې پرے د سنت اطلاق اوکړلو.)

## د واجب په پريښولو د سهو وجوب

قَالَ أَوْ تَرَكَ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ فرمائي.چې يا نې قرات فاتحه پريخوده لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ.ځکه چې(په لمانځه کي فاتحه ونيل)واجب دی أَوِ الْقُنُوْتَ.يا دعائې قنوت پريږدی. أَوِ التَّشَهُّدَ أَوْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ ياتشهد يا تکبيرات د اخترونو پريږدی

حل اللغة* ① ترک، ترک ترکاً (ن): پريښول ② قنوت: دعائې قنوت

تشريح:- وجوب سجدة السهو بترك الواجب ۞په دےعبارت کي د هغه څيزونوتفصيل دې.چې دکومو په پريښولو سجده سهوواجبيږی. فرمائي چې په لمانځه کي دقرات فاتحه پريښول هم موجب دسجدې دی.ځکه چې قرات د فاتحه واجب دې.خودا خيال ساتل پکاردی.چې دفرضوپه اولنو دوو رکعتوکي په ترك د فاتحے سجده سهو واجبيږی.اوپه آخرنو دوو رکعتوکي په ترك د فاتحے سجده سهونه واجبيږی.ځکه چې په آخری دوو رکعتوکي د فاتحے ونيل واجب نه دی.بلکه مستحب دی . البته د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن بن زياد رحمه الله روايت دادې.چې په آخرنو کي هم په ترك د فاتحه سجده سهو واجبيږی.په وترلمونځ کي دعاء قنوت ،تشهد اود اخترونوتکبيرونه پريښول دا واړه موجب دسجدې دی.

**لِأَنَّهَا وَاجِبَاتٌ** ځکه چې دا شیان (څیزونه) واجب دی **فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهَا**[1]. ځکه چې نبی کریم ﷺ په دے مواظبت کړې وو **مِنْ غَيْرِ تَرْكِهَا مَرَّةً** بغیر د کله کله پرېښولو نه. **وَهِيَ أَمَارَةُ الْوُجُوبِ**. اودا علامت دے د وجوب

**حل اللغة:** ①**واظب:** همیشه والې ②**امارة:** نښانه علامت

**تشریح:- دلائل** ① دلیل دادې چې دا درے واړه شیان (څیزونه) واجب دی. اوپه ترک د واجب سجده سهو واجبیږی. نو ددے په ترک به هم سجده سهو واجبیږی. اوددے څیزونو د وجوب دلیل دادې چې نبی کریم ﷺ په دے څیزونو مواظبت کړې دې. اوکله ئې هم نه دی پریخی. اود رسول پاك ﷺ په یو څیز بغیر د ترک نه مداومت کول د هغې د وجوب دلیل دې.

**وَلِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَى جَمِيعِ الصَّلَاةِ**، اوپه دے وجه چې دا شیان (څیزونه) پوره لمونځ اړخ ته منسوب کیږی **فَدَلَّ عَلَى** نودا په دے خبره دلالت شو **أَنَّهَا مِنْ خَصَائِصِهَا**. چې دا شیان (څیزونه) دلمونځ په خصائصوکې دی. **وَذَلِكَ بِالْوُجُوبِ** اودا اختصاص به د وجوب په وجه دی

**تشریح:-** دوهم دلیل دادې چې دا شیان (څیزونه) واړه لمونځ ته منسوب کیږی. لکه چې وئیلی شی قنوت الوتر، تکبیرات صلوة العیدین، تشهد الصلوة ، نو د دے څیزونو واړه لمونځ ته منسوب کیدل د دے خبرے دلیل دې. چې دا شیان (څیزونه) د لمونځ د خصائصو څخه دی. اواختصاص ثابتیږی د وجوب نه، نو ثابته شوه چې دا شیان (څیزونه) د واجباتو څخه دی.

**ثُمَّ ذِكْرُ التَّشَهُّدِ يَحْتَمِلُ الْقَعْدَةَ الْأُولَى وَالثَّانِيَةَ**. بیا د تشهد (مطلقا) ذکر کول احتمال لری د اوله قعده او دویمې **وَالْقِرَاءَةَ فِيهِمَا**. اوپه دے دواړو کې د التحیات وئیلو **وَكُلُّ ذَلِكَ وَاجِبٌ**، اوپه دے کې هریو واجب دې **وَفِيهَا سَجْدَةُ السَّهْوِ**. او د دے په پرېښولو کې سجده سهو لازم ده **هُوَ الصَّحِيحُ** ده. دا قول صحیح دې

**تشریح:- ترجیح صاحب الهدایة** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چې شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله لفظ د تشهد ذکر کړې دې. اولفظ د تشهد لومړنی ، اخرنی قعده او التحیات ته وئیلے کیږی. اوپه دے کې هر یو واجب دې. اوددے ټولو په ترک سجده سهولازم ده. هم دا قول صحیح دې.

**السوال** دهدایه په دے عبارت اعتراض دې. هغه دا چې صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی «وکل ذلك واجب» دے نه معلومیږی. چې قعده آخره هم واجب ده. حالانکه قعده آخره واجب نه ده. بلکه فرض ده. ددے په پرېښولو لمونځ فاسدیږی.

**الجواب** ددے ځواب دادې. چې په عبارت کې تخصیص دې. یعنې د آخری قعدې پرېښولو نه مراد د دے تاخیر دې. یعنی بغیر د آخری قعدې نه که پنځم رکعت ته ودریدلو، او پنځم رکعت ئې په سجده مقید نکړو. بلکه قعدې ته واروسته شو. نوسجده سهو دے اوکړی اولمونځ دے پوره کړی. ځکه چې په تاخیر کې هم یو ډول ترک دې. په دے وجه د تاخیر په ترک سره تعبیر اوکړې شو.

**د جهر په ځائې پټ قرات وئیل او ددې په عکس**

**(وَلَوْ جَهَرَ الْإِمَامُ** اوکه امام په هغې مونځونو کې جهر اوکړی **فِيمَا يُخَافِتُ**. په کومو کې چې اخفاء واجب وی **أَوْ خَافَتَ**. یا ئې په هغې مونځونو کې اخفاء اوکړه **فِيمَا يَجْهَرُ**. په کومو کې چې جهر واجب وی **تَلْزَمُهُ سَجْدَتَا السَّهْوِ)**. نو په ده سجده سهو لازمیږی

**حل اللغة:** ①**جهر، جهر جهراً (ف):** ښکاره کول ②**خافت، خافت مخافتة:** پو اړه ③**تلزمه، لزم لزوماً (س):** لازم کیدل

(۱) : قال الزیلعی رحمه الله هذا معروف ولم ینقل الترک، نصب الرایة (۱۷۳/۲)-



**تشریح:- ترک الجهر او الاخفاء** ① په سری لمونځ کې جهر کول اوپه جهری لمونځ کې اخفاء کول سجده سهو واجبوی.

**لِأَنَّ الْجَهْرَ فِي مَوْضِعِهِ وَالْمُخَافَتَةَ فِي مَوْضِعِهَا مِنَ الْوَاجِبَاتِ**. ځکه چې جهر په خپله موقع او اخفاء په خپله موقع د واجباتو څخه دی

**حل اللغة:** ①**موضع،** مقام ځائې

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله زمونږ دلیل دادې چې په کومو مونځونو کې په جهر قرات کیږی. په هغې کې جهر کول په امام واجب دی. چې د امام قرات مقتدی هم واوری. اود امام قرات د مقتدی (د قرات) قائم مقام شی. او د ورځې په مونځونو کې په امام اخفاء ځکه واجب ده. چې اخفاء په دے کې مشروع شوې ده. چې دکافرانو دغلطئ اچولو نه قرآن پاك محفوظ شی. لکه چې تاسو ته به معلومه وی. چې نبی کریم ﷺ دقرات د اخفاء حکم هغه وخت ورکړې وو. کله چې کافرانو دنبی کریم ﷺ دتلاوت کاوه په وخت د غلطئ اچولو کوښښ کولو. هم دا وجه ده چې د ورځې په مونځونو کې اخفاء واجب ده. دشپې په مونځونو کې واجب نه ده. ځکه چې دشپې به دا خلگ ویده (اوده) پراته وو، نوحاصل دا شو. چې د ورځې په مونځونو کې اخفاء دقرآن د ساتنه لپاره مشروع شوې ده. او ددے ډول څیزونو نه د قرآن ساتنه کول واجب دی. نوثابت شو. چې د ورځې په مونځونو کې اخفاء واجب ده. بهرحال کله چې په سری مونځونو کې جهر اوپه جهری مونځونو کې اخفاء واجب شوه. نوددے په ترک به سجده سهوه هم واجب وی. ځکه چې په ترک د واجب سجده (سهو) واجبیږی. (الکفایه)

**وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِي الْمِقْدَارِ**. اود مقدار اړه کې روایت مختلف دې

**حل اللغة:** ①**اختلفت، اختلف اختلافاً:** مختلف کیدل

**تشریح:- الروایتان في قدرالجهر والاخفاء** پاتې شوه دا خبره چې په جهری لمونځ کې په څومره قدرے اخفاء اوپه سری لمونځ کې په څومره قدرے جهر سجده سهو واجبیږی. نوپه دے اړه کې روایات مختلف دی. ① په ظاهرروایت کې دی. چې په دواړو صورتونو کې قلیل اوکثیر برابر دی. یعنې که په جهری لمونځ کې ئې اخفاء اوکړه. اوکه په سری لمونځ کې ئې جهر اوکړو، قلیل مقدار وی. اوکه کثیر مقدار ، دواړو صورتونو کې سجده سهوواجبیږی،

**وَالْأَصَحُّ قَدْرُ مَا**. اواصح په دواړو صورتونو کې دومره مقدار دې. **تَجُوزُ بِهِ الصَّلَاةُ فِي الْفَصْلَيْنِ** چې په هغې لمونځ جائز کیږی **لِأَنَّ الْيَسِيرَ مِنَ الْجَهْرِ وَالْإِخْفَاءِ**. ځکه چې لږ شان جهر اولږ شان اخفاء **لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ** ، د دے نه بچ کیدل ممکن نه دی **وَعَنْ كَثِيرٍ مُمْكِنٌ**. اود کثرت مقدار نه بچ کیدل ممکن دی

**حل اللغة:** ① **احتراز:** ډډه کول

**تشریح:-** صاحب دهدایه وائی. صحیح خبره داده. چې په کوم مقدار لمونځ ټیك کیږی. هم دومره مقدار اخفاء اوجهر ئې په دواړو صورتونو کې اوکړو . نو سجده سهو به واجب وی. ځکه چې دجهر او اخفاء معمولی مقدار نه بچ کیدل ممکن نه دی. البته د مقدار کثیر نه بچ کیدل ممکن دی. په دے وجه د سهو حکم به مقدار کثیر سره متعلق وی. د مقدار قلیل سره به نه وی. او په څومره مقدار قرات چې لمونځ ټیك کیږی هغه کثیر دې. اوددے نه کم قلیل دې.

**وَمَا يَصِحُّ بِهِ الصَّلَاةُ كَثِيرٌ**. اوپه کوم مقدار چې لمونځ صحیح کیږی هغه کثیر دې **غَيْرَ أَنَّ ذَلِكَ عِنْدَهُ آيَةٌ وَاحِدَةٌ** خود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا مقدار یو آیت دے **وَعِنْدَهُمَا ثَلَاثُ آيَاتٍ**. اودصاحبینو رحمهما الله په نیز درے آیاتونه دی

**حل اللغة:** ①**یصح، صح صحیحاً:** صحیح کیدل

**تشریح:- المذهبان في قدرما یجوز به الصلاة** پاتې شوه دا خبره چې د «مایجوزبه الصلوة» نه څه مقدار دې. نوپه دے

اړه کي اختلاف دے د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز يو ايت دے او دصاحبينو په نيز درے اياتونه دي.

| وَهٰذَا فِي حَقِّ الْإِمَامِ اوپه دے دواړوصورتونوکي دسجدې واجب کيدل د امام په حق کي دي دُونَ الْمُنْفَرِدِ. دمنفرد په حق کي واجب نه دي |
|---|

**حل اللغة*** ① **منفرد:** خان له لمونځ کونکي

**تشريح:- حكم وجوب السهوفي حق الامامة** ◉صاحب دهدايه وائي. چې په سري مونځونوکي دجهرپه وجه او په جهري مونځونو کي د اخفاء په وجه دسجده سهو د وجوب حکم د امام په حق کي دي. دمنفرد په حق کي نه دي. يعني که امام داسي اوکړل. نوسجده سهو به واجب وي.

| لِأَنَّ الْجَهْرَ وَالْمُخَافَتَةَ مِنْ خَصَائِصِ الْجَمَاعَةِ، ځکه چې جهر او اخفاء د جماعت په خصائصوکي دي. |
|---|

**تشريح:- دليله** ◉دليل دادے چې جهر او اخفاء دجماعت په خصوصياتوکي دي. يعني په جهري مونځونو کي جهر اوپه سري مونځونوکي اخفاء دجماعت په صورت کي کيږي. اوکه خانله لمونځ کوي. نو ده ته اختيار دي. چې په جهرقرات کوي. اوکه په اخفاء. نوچې په منفرد جهر يا اخفاء واجب نه ده. نوددے په پريښودلو به سجده هم نه واجبيږي، او په امام چونکه واجب دي. په دے وجه د امام د پريښودلو په صورت کي به په امام سجده سهوواجب وي.

**السوال** ◉په دے ځيني خلګو اعتراض کړې دې. هغه داچې په جهري مونځونوکي وجوب د جهرمنو، چې دا دجماعت په خصوصياتو کي دې. ځکه چې په جهري مونځونو کي منفرد ته اختيار دے. چې هغه بالجهرقرات کوي اوکه په اخفاء. خوپه سري مونځونوکي د اخفاء وجوب دجماعت په خصوصياتوکي نه منو. ځکه چې په سري مونځونوکي په منفرد هم په پټه قرات واجب دې. نوپه سري مونځونوکي د اخفاء پريښولو په وجه په منفرد هم سجده سهو واجب کيدل پکاردی. حالانکه علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چې په دے صورت کي به هم په منفرد سجده سهوواجب نه وي.

**الجواب** ◉داد نوادر روايت دې. يعني په سري مونځونو کي په منفرد د اخفاء وجوب د نوادر روايت دې. اود ظاهرروايت مطابق په منفرد اخفاء واجب نه ده. ځکه چې د ورځو په مونځونوکي په قرات کي اخفاء کول په دے وجه واجب شوی وو. چې د کافرانو داړخه مغالطه لرې کړې شي. اودکافرانو په قرات کي مغالطه پيداکول به هغه وخت وی. چې کله لمونځ په طريقه دشهرت ادا شي. اود منفرد لمونځ دشهرت په طريقه نه وی. د دے وجې په ده اخفاء واجب نه ده. بلکه ده ته اختيار دې. چې په نورو مونځونوکي هم په اخفاء قرات اوکړی يا په جهرسره اوکړی. اوکله چې منفرد ته اختياردے نو د ترك اخفاء په وجه په ده سجده سهو نه واجبيږي. (عنايه)

## د امام په سهو د مقتدي سهو ده

| قَالَ | (وَسَهْوُ الْإِمَامِ | وائي چې د امام سهوکول | يُوجِبُ عَلَى الْمُؤْتَمِّ السُّجُودَ) | په مقتدی سجده واجبوی. |
|---|---|---|---|---|

**حل اللغة*** ①**سهو:** هيره ②**يوجب، اوجب ايجاباً:** واجب کول ③**موتم:** مقتدی

**تشريح:- لزوم السجدة على الماموم بسهوالامام** ◉مسئله داده. که د امام نه سهو اوشي. نوسجده سهو په امام هم واجبيږي. اوپه مقتدی هم. ځکه کوم چې سبب د امام په حق کي سجده سهو واجبونکي دے، هغه دمقتدی په حق کي هم متحقق شو.

| لِتَقَرُّرِ السَّبَبِ الْمُوجِبِ فِي حَقِّ الْأَصْلِ ځکه چې د اصل (امام) په حق کي سجده واجبولو والا سبب مقرر شوې دې |
|---|

**تشريح:-** ځکه چې مقتدی په صحت اوفساد او په اقامت کي د امام متابعت په خپل ځان لازم کړې دې. نود امام د سهو په وجه کوم چې نقصان د امام په لمانځه کي متمکن (پيدا) شوې دے، هغه نقصان دمقتدی په



لمانځه کي هم يقينا پيدا شو. او کله چې امام ددے نقصان پوره کاوه لپاره سجده کوی. نوپه مقتدی هم په خپل لمانځه کي د پيدا شوی نقصان پوره کولود پاره سجده کول ضروری دی.

| وَلِهٰذَا يَلْزَمُهُ حُكْمُ الْإِقَامَةِ بِنِيَّةِ الْإِمَامِ په دے وجه په مقتدی د اقامت حکم د امام په نيت سره لازميږي |
|---|

**حل اللغة*** ① **يلزم، لزم لزوماً(س):** لازم کيدل

**تشريح:- كون صلاة الماموم تابع لصلاة الامام** ◉صاحب دهدايه وائي. چې دمقتدی لمونځ د امام دلمونځ تابع وی. په دے وجه که امام او مقتدی واړه مسافروی. اودلمونځ په مهال کي امام د اقامت نيت اوکړو. نود ټولومقتديانو فرض لمونځ به څلور رکعته شي. اګرچې د مقتديانوداړخه نيت موجود شوې نه وی

| (فَإِنْ لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ | بيا که امام سجده اونکړه | لَمْ يَسْجُدِ الْمُؤْتَمُّ) | .نومقتدی دے هم سجده نه کوی |
|---|---|---|---|

**حل اللغة*** ① **لم يسجد، سجد سجدة (ن):** ټيټيدل، سجده کول

**تشريح:- عدم وجوب السجدة على الماموم ان نسيها الامام** ◉ ①صاحب دقدوری فرمائی. که د سجده سهو د وجوب باوجود امام سجده سهواونکړه. نو په مقتدی به هم سجده سهوواجب نه وی.

| لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُخَالِفًا لِإِمَامِهِ ځکه چې (په دےصورت کي به) مقتدی دخپل امام نه مخالف شی وَمَا الْتَزَمَ الْأَدَاءَ إِلَّا مُتَابِعًا. حالانکه ده د امام په تابعداریٔ کي د ادا کاوه التزام کړې وو. |
|---|

**حل اللغة*** ① **التزم، التزم، التزاماً:** لازم کول

**تشريح:- دليله** ◉زمونږدليل دادې. که مقتدی بغيرد امام د سجده سهوکولونه سجده سهو اوکړه. نود امام مخالفت کول به لازم شی. حالانکه التزام ئې دا کړې وو. چې د امام په اتباع کي به لمونځ اداکوی. حاصل داچې التزام ئې کړې وو دمتابعت د امام، اوکړې ئې دےمخالفت، اودمتابعت اومخالفت په مينځ کي منافات دې. خوچې دمقتدی په سجده کولومخالفت متحقق کيږي نومتابعت منتفی شو.

## د مقتدي سهو دامام سهو نه ده

| (فَإِنْ سَهَى الْمُؤْتَمُّ | که مقتدی سهو شو | لَمْ يَلْزَمِ الْإِمَامَ وَلَا الْمُؤْتَمَّ السُّجُودُ) | نونه په امام سجده کول لازم دی اونه په مقتدی |
|---|---|---|---|

**حل اللغة*** ①**موتم:** مقتدی ②**لم يلزم، لزم لزوماً (س):** لازم کول

**تشريح:-** صورت دمسئلې دادې. که د مقتدی نه په لمونځ کي سهو اوشوه. مثلاً په اوله قعده کي ئې تشهد اونه وئيل. نوپه دے وجه به نه په امام سجده سهولازم وی. اونه په مقتدی،

| لِأَنَّهُ لَوْ سَجَدَ وَحْدَهُ. ځکه که خانله مقتدی ئې اوکړی كَانَ مُخَالِفًا لِإِمَامِهِ نودے به دخپل امام مخالف شی وَلَوْ تَابَعَهُ الْإِمَامُ. اوکه امام هم دده متابعت اوکړی يَنْقَلِبُ الْأَصْلُ تَبَعًا. نو څوك چې اصل وو هغه به تابع شی. |
|---|

**تشريح:-** ځکه چې دصحت اوفساد په اعتبارسره د امام لمونځ د مقتدی په لمونځ مبنی نه وی. نودمقتدی د لمونځ په نقصان سره به د امام لمونځ نه ناقص کيږي. اوکله چې د امام په لمونځ کي هيڅ نقصان واقع نشو. نوپه ده به سجده هم واجب نه وی. اوکله چې په امام سجده سهو واجب نشوه. نوپه مقتدی به هم واجب نه وی. ځکه که په مقتدی سجده سهو واجب شی. نودے به خانله سجده کوی. يابه دده امام هم ده سره سجده کوی. په اولنی صورت کي د امام مخالفت کول لازميږي. او په دوهم صورت کي قلب موضوع لازميږي. يعني امام کوم چې اصل وو هغه به تابع شی. او مقتدی چې تابع وو. هغه به اصل شی. اودا دواړه خبرے جائزنه دی. يعنی مخالفت : امام اوقلب موضوع. خوچې دا دواړه خبرے جائزنه دی. نوپه مقتدی به سجده سهو هم واجب نه وی.

## د لومړئ قعدې د هېرېدو صورت

(وَمَنْ سَهَىٰ عَنِ الْقَعْدَةِ الْأُولَىٰ) اوكوم كس نه‌چې اوله قعده هيره شوه. ثُمَّ تَذَكَّرَ بيا وريادہ شوه وَهُوَ إِلَىٰ حَالَةِ الْقُعُودِ أَقْرَبُ په داسې حالت كې چې قعدې ته نزدے وو عَادَ نو راواروسته دے‌شي وَقَعَدَ اوقعده دے اوكړي وَتَشَهَّدَ اوتشهد دے ووايي لِأَنَّ مَا يَقْرُبُ مِنَ الشَّيْءِ خكه كوم‌چې څيزته نزدے وي يَأْخُذُ حُكْمَهُ هغه هم دهغے حكم لري

حل اللغة* ① تذكر، تذكر تذكراً: يادول ② قعود: كښيناستل ③ عاد، عاد عوداً (ن): واروسته كول ④ يقرب، قرب قرباً (ن): نژدې كيدل ⑤ ياخذ، اخذ اخذاً (ن): اخستل، نيول

تشريح:- الرجوع الى القعدة في صورة القرب الى القعدة⊛مسئله داده.چې رباعي يا ثلاثي فرضو كې كه چا اوله قعده پرېخوده.اوبيا وريادہ شوه.نودوې (دوه) صورتونه دي.ياخوبه دے قعدې ته زيات نزدے وي. په دے طريقه‌چې ده خپلے گونډئ نه وي اوچتے كړې.او يا به قيام ته زيات نزدے وي.په دے طريقه‌چې ده خپلے گونډئ اوچتے كړې وي.كه اول صورت وي.نوواروسته دے شي.او قعده دے اوكړي.او تشهد دے اووائي.خكه‌چې قريب الشئ د هغه څيزحكم لري.لكه دجمعې اود اخترونو مونځونو په حق كې چې فناء دښار ته دښارحكم حاصل دي.

ثُمَّ قِيلَ بيا ونيلے‌شوي دي يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ لِلتَّأْخِيرِ.چې د تاخير په وجه دے سجده سهو اوكړي وَالْأَصَحُّ.او اصح داده أَنَّهُ لَا يَسْجُدُ چې سجده دے نه كوي. كَمَا إِذَا لَمْ يَقُمْ.لكه‌چې دے هډو ولاړ نه وو.

حل اللغة* ① لم يقم، قام قياماً (ن): ودريدل

تشريح:- الروايتان في وجوب السهوفي الصورة الاولى⊛پاتې شوه داخبره،چې په دےصورت كې به سجده سهو واجب وي‌اوكه نه. ① نود بعضوحضراتو رائې ده.چې سجده سهوبه واجب ده.خكه اوله قعده كومه‌چې واجب ده.په دے كې تاخير بيا موندلے شو. ② اوقول صحيح دادې.چې سجده واجب نه ده،خكه‌چې كله قريب الشئ ته د هغه څيزحكم وركړې شو.نولكه‌چې دے هډو ودريدلے نه دې.اوچې لومړې قعدې ته راواروسته شو.نوقيام متحقق نشو.او په اوله قعده كې تاخيرهم موجود نشو.اوچې تاخيرموجود نشو.نوسجده سهو هم واجب نشوه.

(وَلَوْ كَانَ إِلَى الْقِيَامِ أَقْرَبَ) اوكه قيام ته زيات نزدے وي (لَمْ يَعُدْ).نوقعدې ارخ ته دے‌نه واروسته كيږي لِأَنَّهُ كَالْقَائِمِ مَعْنًى خكه‌چې دے معنیٰ د قائم په شان دې. (وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ). اوسجده سهودے اوكړي لِأَنَّهُ تَرَكَ الْوَاجِبَ.خكه‌چې ده واجب ترك كړی دی .

تشريح:- وجوب السهو في الصورة الثانية⊛اوكه دوهم صورت وي.نوداكس دے قعدې ته واروسته نه راخي. بلكه دريم ركعت لپاره دے اودريږي. خكه‌چې اوس قاعده تيره شوه.چې قريب الشئ ته د هغه شي درجه وركولے‌شي.نوچې داكس قيام ته ډيرنزدے وي.نومعنیٰ د قائم په مرتبه كې شو.اود قائم لپاره اوله قعده ته واروسته كيدل جائز نه دي.خكه‌چې د دريم ركعت قيام فرض دې.اواوله قعده واجب ده. اود واجب په وجه فرض پرېښول ټيك نه دي.البته په دےصورت كې به سجده سهو واجب وي. خكه‌چې ده واجب يعنی اوله قعده پرېښولې (پرېخودې) ده.

## د پنځم ركعت نه قاعدې ته واروسته كيدل

(وَإِنْ سَهَا عَنِ الْقَعْدَةِ الْأَخِيرَةِ) اوكه د آخرې قعدې نه سهو شو (حَتَّىٰ قَامَ إِلَى الْخَامِسَةِ).تردېچې د پنځم ركعت لپاره پاسيدو (رَجَعَ إِلَى الْقَعْدَةِ) نوقعدې ته دے واروسته شي (مَا لَمْ يَسْجُدْ) چې تركومے نې (د پنځم ركعت)سجده



نه وي كړې.

حل اللغة* ① قام،قام قياماً(ن): ودريدل ② رجع، رجع رجوعاً (ض): واروسته كيدل، واروسته كول

تشريح:- الرجوع الى القعدة في الركعة الخامسة⊛صورت دمسئلې مسئلې دا دې.كه يوكس نه آخرى قعده هيره شي. اوپه څلور ركعته لمونځ كې د پنځم ركعت لپاره اودريږي.يا په درے ركعته مونځ(دماښام اووترو)كې دڅلورم ركعت لپاره اودريږي.يا دوې (دوه) ركعته لمونځ كې دريم ركعت ته اودريږي.نو ترڅوچې نې دا ركعت يعنی په څلور ركعته كې پنځم ركعت په سجده مقيد كړې نه وي.نو قعدې ته دے واروسته كيږي.

لِأَنَّ فِيهِ إِصْلَاحَ صَلَاتِهِ خكه‌چې په دے كې دده دلمونځ اصلاح ده. وَأَمْكَنَهُ ذَٰلِكَ او دا دده لپاره ممكن هم دی لِأَنَّ مَا دُونَ الرَّكْعَةِ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ خكه‌چې د يوركعت نه كم پرېښولې (پرېخودې) شي

حل اللغة* ① اصلاح: صحيحوالې ② رفض: پرېخودل

تشريح:- دليله⊛دليل دادې.چې قعدې ته په واروسته راتلو كې دده دلمونځ اصلاح ده.اودده لپاره دلمونځ اصلاح ممكن هم ده.خكه‌چې ديو ركعت نه په كم پرېښولو كې هيڅ باك نشته.ديو ركعت نه كم نه خوحقيقتا لمونځ دې.اونه دلمونځ په حكم كې دې.هم داوجه ده.كه چا قسم اوخوړلو.چې زه به لمونځ نه كوم. بيا نې د يو ركعت نه كم اوكړو.نوحانث به نه وي.

قَالَ ابوالحسين قدوری فرمائي.چې (وَأَلْغَى الْخَامِسَةَ) پنځم ركعت دے لغوكړي

تشريح:- كون الركعة الخامسة لغوا⊛پاتې شو پنځم ركعت،نوصاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چې پنځم ركعت دے لغوكړي.خكه‌چې داكس آخرى قعدې ته واروسته شوې دې.اود آخرى قعدې محل د پنځم ركعت نه مخكې دې.اوقاعده دا ده.كوم‌چې كس په افعالو دلمانځه كې د يو فعل نه داسےڅيزته واروسته شي.چې د هغې محل ددے نه مخكې وي.نودا فعل مرجوع عنه (دكوم نه‌چې رجوع شوې ده)لغوكيږي.مثلاً يوكس د تشهد په مقدار كيناستو.بيا وريادہ شو.چې دلمونځ سجده نې نه ده كړې. يا سجده تلاوت نې نه ده كړې.بيا ده دغه فوت شوې سجده اوكړه.نوسجده سهوكول واجب دی. خكه‌چې په دے صورت كې تاخير د فرض هم دې.اوتاخيرد واجب هم.تاخيرد فرضوخوخكه‌چې په قعده آخره كې تاخير شوې دې. او قعده آخره فرض ده.اوتاخيرد واجب خكه دې.چې لفظ دسلام واجب دے هغه مؤخرشوې دې.

لِأَنَّهُ رَجَعَ إِلَىٰ شَيْءٍ خكه‌چې دے داسےڅيزته واروسته شوېدې مَحَلُّهُ قَبْلَهَا.چې د هغے محل د پنځم ركعت نه مقدم دې فَيَرْتَفِضُ.نودا دے پرېږدی (وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ).اود سهوےسجده دے اوكړي لِأَنَّهُ أَخَّرَ وَاجِبًا.خكه‌چې ده فرض مؤخركړی دی

تشريح:- الاحتمالان في العبارة⊛دهدايه عبارت«لانه اخر واجبا»كې لفظ واجب نه واجب معروف معنیٰ هم مراد كيدې شي.او واجب قطعي، يعنی فرض هم مرادكيدےشي،د اولےمعنی مراد اخستو په صورت كې به دلفظ دسلام تاخيرمراد وي.اوپه دويمه معنی مراد اخستوكې به د آخرى قعدې تاخيرمراد وي.

## آخرې قعدې هېرېدلو حكم

(وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍ) اوكه پنځم ركعت نې په سجده مقيد كړو (بَطَلَ فَرْضُهُ عِنْدَنَا).نو زموږ په نيز دده فرض باطل شو

حل اللغة* ① قيد، قيد تقييداً: قيد كول، خاص كول ② بطل، بطل بطلاً (ن): باطل كول

تشريح:- المذهبان في بطلان الفرض⊛ ① صورت دمسئلې دادې.كه قعده آخره هيره شوه.اوپنځم ركعت نې په سجده مقيد كړو.نو زموږ په نيزدده فرض باطل شو.

خِلَافًا لِلشَّافِعِي رحمه الله. د امام شافعي رحمه الله په دے کي اختلاف دي.

**تشريح:-** امام شافعي رحمه الله فرمائي. چي دده فرض باطل نه دی. بلکه قعدے ته دے واروسته شي. تشهد دے اووائي. اوسجده سهودے اوکړي. اوسلام دے واړوی.

**دليله ﴿** ①په دے د امام شافعي رحمه الله دليل دا روايت دے ﴿ان النبي ﷺ صلى الظهر خمسا﴾ يعنی نبی کريم ﷺ د ماپښين پنځه رکعته اوکړل. اودامنقول نه دی. چي نبی کريم ﷺ په څلورم رکعت قعده اوکړه. اونه دامنقول دی. چي نبی کريم ﷺ دخپل لمونځ اعاده کړي ده.

**الجواب عنه ﴿** د دې نه په ځواب کي صاحب د عنايه رحمه الله فرمائيلی دی. چي نبی کريم ﷺ په څلورم رکعت قعده آخره کي ناست وو. اودليل د دے خبرے دادې. چي راوی وئيلی دی ﴿صلى الظهر خمسا﴾ او ماپښين نوم دے د ټولو ارکانو د مانځه، اوپه ټولو ارکانوکي قعده هم ده. اود پنځم رکعت لپاره هغوی ﷺ په دے ګمان ودريدل. چي دا دريم رکعت دې. نو حديث ددے تاويل نه روسته دا روايت د امام شافعي رحمه الله مستدل نه پاتي کيږی.

**لِأَنَّهُ اسْتَحْكَمَ شُرُوعُهُ فِي النَّافِلَةِ قَبْلَ إِكْمَالِ أَرْكَانِ الْمَكْتُوبَةِ** ځکه چي د فرض ارکان پوره کولونه مخکي دده نفل پيل کول مستحکم شو **وَمِنْ ضَرُورَتِهِ خُرُوجُهُ عَنِ الْفَرْضِ**. اوده لپاره دفرض نه خروج لازم دې

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ﴿زمونږ دليل دادې. چي دے کس د پنځم رکعت سجده اوکړله. په وجه دے د نفل پيل کونکے شو. حالانکه تراوسه پورې دفرض لمونځ واړه ارکان مکمل شوی نه دی. ځکه چي قعده آخره چي رکن دی. هغه نه ده موندلے شوې. اود فرض لمونځ واړه ارکان مکمل کيدونه مخکي په پوره عزم سره نفل لمونځ پيل کول فرض لمونځ فاسدوی. ځکه چي د فرض او نفل په مينځ کي منافات دې. اوکله چي "احد المتنافيين" يعنی نفل متحقق شو. نو آخر يعنی فرض منتفي شو.

**وَهٰذَا لِأَنَّ الرَّكْعَةَ بِسَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ صَلَاةٌ حَقِيقَةً**. اودا ځکه چي رکعت په يوه سجده په حقيقت کي لمونځ دې **حَتَّى يَحْنَثَ بِهَا فِي يَمِينِهِ لَا يُصَلِّي**. تردې که د "لا يصلی" قسم ئې اوخوړو. نو د يو رکعت په يوه سجده کولو حانثيږی.

**تشريح:- الركعة بغير السجدة ليس بصلاة ﴿**صاحب دهدايه وائي. چي رکعت بلاسجده لمونځ نه دې. او سجدې سره حقيقتاً لمونځ دې. هم دا وجه ده. که چا قسم اوخوړو. او ﴿والله لا أصلی﴾ ئې اووئيل. نو چي يو رکعت سجدې سره اوکړی. نو حانث کيږی.

**(وَتَحَوَّلَتْ صَلَاتُهُ نَفْلًا)** او دده لمونځ بدل شو **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله (١). اونفل شو. دشيخينو رحمهما الله په نيز **خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ** رحمه الله **عَلَى مَا مَرَّ**، د امام محمد رحمه الله اختلاف دې. په هغې بناء چي تير شو.

**تشريح:- الاختلاف في الاصل ﴿**امام ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي. چي پنځم رکعت په سجده دمقيد کولو په وجه د فرض په بطلان کي اختلاف دې. دشيخينو رحمهما الله په نيزد فرضيت وصف باطل شو. اصل صلاة نه دے باطل شوې. يعنی مونځ چي د آخری قعدې نه بغير ادا شی. نو دا نه فرض حسابيږی اونه نفل. د فريقينو دلائل په باب قضاء الفوائت کي تيرشوی دی. چي دشيخينو رحمهما الله په نيز بطلان وصف، بطلان اصل لره مستلزم نه دې. اود امام محمد رحمه الله په نيز بطلان د وصف بطلان د اصل لره مستلزم دې.

### د شپږم رکعت ملاوولو حکم

**(فَيَضُمُّ إِلَيْهَا رَكْعَةً سَادِسَةً)** نو دے پنځو سره دے شپږم رکعت ملاؤ کړی **وَلَوْ لَمْ يَضُمَّ**. اوکه ده ملاؤ نکړو **لَا شَيْءَ**

(١) ...جح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى العناية (٤٤٥\١) وردالمحتار (٥٥٢\١) والبحر (١٠٢\٢) والهندية (١٢٩\١) ...الراجح (١٢٦\١)-



**عَلَيْهِ**. نو په ده هيڅ واجب نه دی. **لِأَنَّهُ مَظْنُونٌ** ځکه چي دے مظنون دې

**حل اللغة:** ①فيضم، ضم، يضم ضماً (ن): ملاوول، جمع کول ②مظنون: ګمان کړې شوې

**تشريح:- المذهبان في بطلان الصلاة ﴿**په مخکينو کرښوکي تيرشوی دی. چي کله ئې پنځم رکعت په سجده مقيد کړو. نو دشيخينو رحمهما الله په نيزدا لمونځ نفل شو. اوفرضيت ئې باطل شو. اود امام محمد رحمه الله په نيزاصل لمونځ باطل شو. خو د شيخينو رحمهما الله په نيزاصل لمونځ باطل نه دې. نو دے ددے پنځو رکعتونو سره شپږم رکعت ملاؤ کړی. چي نفل جفت شی طاق پاتې نشي. ځکه چي نفل جفت مشروع شوی دی. طاق رکعتونه مشروع نه دی

**المذهبان في وجوب السجدة ﴿**پاتې شوه داچي په ده به سجده سهوواجب وی اوکه نه؟ ① نو د بعضو خيال دې. چي سجده سهودے اوکړي. ② خوصحيح خبره داده. چي په ده سجده سهو واجب نه ده. ځکه چي د آخری قعدې د نه کاوه په وجه دده لمونځ فاسد شوېدې. اوکوم نقصان چي دفساد په صورت کي وی. هغه په سجده سهونه پوره کيږی. په دے وجه به سجده سهو واجب نه وی. ځکه چي سجده سهود نقصان دتلافئ د پاره مشروع شوې ده. اوکه ده شپږم رکعت ملاؤ نکړلو. نو په ده هيڅ واجب نه دی. ځکه چي هغه لمونځ کوم چي پيل شوې دې. يعنی پنځم رکعت هغه مظنون دے. يعنی ده قصداً نفل نه دی پيل کړی. او وجه ددے داده. چي دے کس داڅلورم رکعت ګڼړلے دے او ولاړ دے، دا نه چي پنځم رکعت ئې ګڼړلې دې. حاصل داچي دا مونځ چي دپنځم رکعت نه ئې پيل کړې دې. هغه مظنون دې. اومظنون غير مضمون وی. په دے وجه ددے لمونځ قضاء وغيره واجب نه ده

**ثُمَّ إِنَّمَا يَبْطُلُ فَرْضُهُ بِوَضْعِ الْجَبْهَةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله. بيا دده فرض به د ابو يوسف رحمه الله په نيزد تندی په لګولو باطل شي **لِأَنَّهُ سُجُودٌ كَامِلٌ**. ځکه چي داکامله سجده ده **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله **بِرَفْعِهِ**.(١) اود امام محمد رحمه الله په نيز په سر اوچتولو **لِأَنَّ تَمَامَ الشَّيْءِ بِآخِرِهِ** ځکه چي ديوڅيز پوره کيدل د دے آخر سره متعلق وی **وَهُوَ الرَّفْعُ**، اوهغه سر اوچتول دی **وَلَمْ يَصِحَّ مَعَ الْحَدَثِ**. اودا سراوچتول د حدث سره صحيح نه دی.

**حل اللغة:** ① يبطل بطل بطلاً (ن): باطل کول ②وضع: ساتل ③ جبهة جمع جباه، جبهات: تندې ④تمام: پوره کيدل ⑤رفع: اوچتول ⑥لم يصح، صح صحيحاً (ض): صحيح کيدل

**تشريح:- المذهبان في تكميل السجدة ﴿**په دې عبارت سره فرمائی. چي کله ئې د پنځم رکعت سجده اوکړه. نو فرض به باطل شی. د سجدې يو آغاز دې. يعنی په مځکه تندے ايخودل، اويو ددے منتهی ده. يعنې د مځکې نه تندے اوچتول. نو اوس سوال دادې. چي په مځکه تندی ايخودلو سره فرض باطليږی. اوکه د مځکې نه د سر اوچتولو سره فرض باطليږی. صاحب دهدايه وائی. په دے اړه کي اختلاف دې. ①امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. چي په تندی ايخودلو فرض باطليږی. ځکه چي دا کامله سجده ده. ځکه چي سجده په حقيقت کي دتندی په مځکه د ايخودلو نوم دې. ②او امام محمد رحمه الله فرمائی. چي سر کله د مځکې نه اوچت کړی. نو دده فرض باطل شو. ځکه چي شی پوره کيږی. هغې په آخر سره. او ددے آخر سر اوچتول دی. نو سجده به هغه وخت کامليږی. چي کله سر د مځکې نه اوچت شی. اوچي په سراوچتولو سجده کامليږی. نو د سر اوچتولونه روسته فرض باطل شو. ددے نه مخکي نه باطليږی.

**تائيد محمد** رحمه الله ﴿امام محمد رحمه الله دخپل قول په تائيد کي فرمائی. ﴿و لم يصح مع الحدث﴾ يعنی په

(١) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى فتح القدير (٤٤٦\١) والكفاية (٤٤٦\١) والعناية (٤٤٦\١) والدرالمختار (٥٥٢\١) والبحر الرائق (١٠٣\٢) ومجمع الانهر (١٥٢\١) والبحر الرائق (١٠٥\٢) نقلا عن القول الراجح (١٢٧\١)-

حدث سره د سر اوچتول ټيك نه وي.حاصل داچې په دے دټولو اتفاق دې.چې په کوم رکن کې حدث بيا موندلے شي.د هغې رکن اعاده واجب ده.نو امام محمد رحمه الله فرمائي.چې د پنځم رکعت په سجده کې حدث لاحق شو.نود هغې اعاده په اتفاق واجب ده.اوچې کله د دے اعاده واجب شوه.نومعلومه شوه.چې صرف په تندی ايخودلو سجده نه مکمل کيږي.که صرف په تندی ايخودلوسجده پوره کيدې.نودحدث د پيښيدو په صورت کې به د دے اعاده واجب نه وې.ځکه چې دحدث پيښيدونه مخکې به سجده پوره شوې وه.بهرحال داخبره ثابت شوه.چې دسجدې تکميل دتندی د مخکې نه اوچتولوسره کيږي.صرف په مځکه ايخودلو سره نه کيږي.

| |
|---|
| وَثَمَرَةُ الْخِلَافِ تَظْهَرُ فِيمَا اود اختلاف ثمره به په دے صورت کې ظاهريږي إِذَا سَبَقَهُ الْحَدَثُ فِي السُّجُودِ چې د سجدې په حالت کې ده ته حدث لاحق شي(په دے صورت کې) بَنَى عِنْدَ مُحَمَّدٍ رحمه الله د امام محمد رحمه الله په نيزد دے بناء اوکړي خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله اختلاف دې. |

**حل اللغة:** ① **تظهر، ظهر ظهوراً** (ف): ښکاره کيدل ② **سبقه، سبق سبقة** (ن): وړاندې کيدل، مخکې کيدل

**تشريح:- صورة ثمرة الاختلاف** ◉ د امام ابو يوسف او امام محمد رحمهما الله په مينځ کې د اختلاف ثمره به په دے صورت کې ظاهريږي.چې دے کس ته د پنځم رکعت په سجده کې حدث لاحق شو.نوداکس د اودس کاوه لپاره لاړو.اوس ده ته ورياد شو.چې دڅلورم رکعت نه روسته ئې آخری قعده نه ده کړې.

① نود امام محمد رحمه الله په نيز داکس دے اودس اوکړي.او آخری قعدې ته دے واروسته شي.خپل فرض لمونځ دے پوره کړي.په دے طريقه چې تشهد دے اووائي.سجده سهوه دے اوکړي.اوسلام دے واړوي.ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نيزد مځکې نه دسراوچتولونه مخکې سجده نه کامليږي،اوپه حدث سره سراوچتول ټيك نه دی.نود امام محمد رحمه الله په نيزداسجده معتبره نشوه.اوکله چې سجده معتبرنشوه.نوګويا پنځم رکعت په سجده مقيد موجود نشو.اوکله چې پنځم رکعت په سجده مقيد نشو.نودده فرض هم باطل نشو.اوکله چې فرض باطل نشو.نو آخری قعدې ته دے واپس.اوفرض دے پوره کړي. ② اود امام ابو يوسف رحمه الله په نيزداکس دے په خپل لمونځ بناء نه کوی.ځکه چې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز تندے په مځکه ايخودلوسجده مکمل شوې ده،اوکله چې د پنځم رکعت سجده مکمل شوه.نودده فرض باطل شو،اوچې فرض باطل شو.نوپه دے بناء کول جائز پاتې نشو.ځکه چې په باطل بناء نه کيږي.

### په څلورم د قعدې نه روسته د ودريدلو حکم

| |
|---|
| (وَلَوْ قَعَدَ فِي الرَّابِعَةِ) اوکه په څلورم رکعت ئې قعده اوکړه، ثُمَّ قَامَ بيا ودريدلو وَلَمْ يُسَلِّمْ اوسلام ئې اونه ګرځولو عَادَ إِلَى الْقَعْدَةِ..نوقعدے ته دے واروسته شي. مَا لَمْ يَسْجُدْ لِلْخَامِسَةِ چې ترکومه ئې د پنځم رکعت لپاره سجده نه وی کړې وَسَلَّمَ نوسلام دے واړوی |

**حل اللغة:** ① **قعد، قعد قعوداً** (ن): کښينستل ② **قام، قام قياماً** (ن): ودريدل ③ **لم يسلم،سلم تسليماً**: سلام ګرځول، سلام کول ④ **عاد، عاد عوداً** (ن): ودريدل ⑤ **لم سجد، سجد سجدة** (ن): سجده کول، ټيټيدل

**تشريح:- العود الى القعدة من الركعة الخامسة** ◉ صورت دمسئلې دادې.که لمونځ ګذار په مقداردتشهد په څلورم رکعت قعده اوکړه.اوسلام ئې وانه ړولو.بلکه په هيره پاسيدو.نوترکومے چې ئې د پنځم رکعت لپاره سجده نه وی کړې.قعدې ته دے واروسته شي.خوقعدې ته واروسته کيدو نه روسته دے دتشهد اعاده نه کوی.بلکه سجده سهودے اوکړي. اوسلام دے اوګرځوی.



| |
|---|
| لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِي حَالَةِ الْقِيَامِ غَيْرُ مَشْرُوعٍ..ځکه چې د قيام په حالت کې سلام اړول مشروع نه دی وَأَمْكَنَهُ الْإِقَامَةُ عَلَى وَجْهِهِ بِالْقُعُودِ.اوپه وجه مشروع قعدے ته په واروسته کيدوسلام ګرځول ممکن دی. |

**تشريح:-** دلائله ◉ ① دليل نقلی دا دې.چې يوځل نبی کريم ﷺ د پنځم رکعت لپاره پاسيدو.دشا نه چا د تسبيح په ذريعه نبی کريم ﷺ ته خبرورکړو.نوقعدې ته واروسته شو.بيا نبی کريم ﷺ سلام واړلو.اوسجده سهو ئې اوکړه. ② عقلی دليل دادې.چې د قيام په حالت کې سلام ګرځول مشروع نه دی.اوپه مشروع طريقه سلام اړول ممکن دی.په دے طريقه چې قعدے ته واروسته شي.

| |
|---|
| لِأَنَّ مَا دُونَ الرَّكْعَةِ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ ځکه چې ديو رکعت نه دکم پريښولو محل دی. |

**تشريح:- وجه ترک القيام في الركعة الخامسة** ◉ پاتې شوه دا خبره چې په دے صورت کې د پنځم رکعت پريښول لازميږي.نودد دے ځواب دادې.چې د پنځم رکعت کولونه مخکې مخکې هغه ديو رکعت نه کم دې.اوديو رکعت نه کم د پريښولو محل دې.يعنې د يو رکعت نه د کم مقدار په پريښولو کې څه باك نشته.لکه چې يوکس دلمانځه په ړومبی رکعت کې دې.اوتر اوسه ئې په سجده مقيد کړې نه دې.تردې چې مؤذن تکبيرشروع کړو.نودے کس له پکار دی.چې دا يو رکعت پريږدی. او په جماعت کې شريك شي.

② عدم بطلان الصلاة في صورة ترک اقل من ركعة ◉ پاتې شوه داخبره چې ديو رکعت نه کم ولے پريښولې (پريخودې) شی؟نوددے ځواب دادې.چې رکعت ئې کله په سجده مقيد کړو.او رکعت پوره شو.نودے ته دلمونځ حکم حاصل شو.اولمونځ باطل کول جائز نه دی.ځکه چې دالله تعالی ارشاد دې (وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ)خوچې ترڅونې چې په سجده مقيد کړې نه وی.نو هغه رکعت ناقص دې.دے ته دلمونځ حکم حاصل نه دې.اوچې د لمونځ ورته حکم حاصل نشو.نوددے په باطلولو کې څه باك نشته.ځکه داپه (وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ) کې داخل نه دې.

### د پنځم رکعت نه روسته د شپږم رکعت کول

| |
|---|
| (وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِالسَّجْدَةِ) اوکه ده پنځم رکعت په سجده مقيد کړو ثُمَّ تَذَكَّرَ بيا ده ته ورياد شو(چې دا پنځم رکعت دے) الرَّفْضِ ضَمَّ إِلَيْهَا رَكْعَةً أُخْرَى نو دے سره دے يو رکعت بل ملاؤ کړي وَتَمَّ فَرْضُهُ..اودده فرض پوره شو لأن الباقي إصابة لفظة السلام .ځکه چې باقی صرف لفظ دسلام دے وهي واجبة.اوهغه واجب دې لِأَنَّ مَا دُونَ الرَّكْعَةِ بِمَحَلِّ لِأَنَّ الْبَاقِيَ إِصَابَةُ لَفْظَةِ السَّلَامِ وَهِيَ وَاجِبَةٌ |

**حل اللغة:** ① **قيد، قيد تقييداً**: قيد کول، راګيرول ② **تذكر، تذكر تذكراً**: يادول، ياد راتګ ③ **ضم، ضم ضماً** (ن): ملاوول، راجمع کول ④ **تم، تم تماماً** (ض): پوره کيدل

**تشريح:- صحة الفرض بضم الركعة السادسة** ◉ مسئله، که يوکس په څلورم رکعت کيناستو،بيا په هيره پاسيدو.اود پنځم رکعت سجده ئې هم اوکړه.اوس ده ته ورياد شو.چې دا څلورم رکعت نه دې.بلکه پنځم دې.نوده له پکار دی.چې شپږم رکعت هم ملاؤ کړي.په دے صورت کې فرض لمونځ پوره شو.او پنځم او شپږم دواړه رکعته نفل شو.فرض لمونځ خو په دے وجه پوره شو.چې په لفظ دسلام سره وتل زموږ په نيز واجب دی.او په دے صورت کې لفظ دسلام پاته شو.او په ترك د واجبولمونځ نه فاسديږي.نوپه دے صورت کې هم فرض لمونځ نه فاسديږي.پاتې شوپه ترك دواجب د نقصان پيدا کيدل.نوهغه به په سجده سهو پوره شي

**وَاِنَّمَا يَضُمُّ اِلَيْهَا اُخْرٰي.** اوبل ركعت دے په دے وجه ملاؤ كړي. **لِتَصِيْرَ الرَّكْعَتَانِ نَفْلًا** چي دوې (دوه) ركعته نفل شي. **لِاَنَّ الرَّكْعَةَ الْوَاحِدَةَ لَاتُجْزِئُهُ** خكه چي يو ركعت جائز نه دي **{لِنَهْيِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَنِ الْبُتَيْرَاءِ}** (١) خكه چي نبي كريم ﷺ د ﴿صلاه بتيرا﴾ نه منع كړې ده

**حل اللغة*** ① لتصير، صار صيراً (ض): كيدل

**تشريح:- علة الاختلاف**۞صاحب دهدايه وائي. چي دشپږم ركعت ملاوُولوحكم په دے وجه شوې دې. چي دوې (دوه) ركعته نفل شي. خكه چي نبي كريم ﷺ دصلوة بُتيراء نه منع كړې ده. په دے وجه يو ركعت كول جائزنه دي.

**حكم ضم الركعة السادسة**۞دقدوري دعبارت نه داپته نه لګي چي دشپږم ركعت ملاوُول واجب دي اوكه مستحب يا جائز دي. خو دمبسوط عبارت دے ﴿عليه ان يضيف﴾ اوكلمه د،، على ،، ايجاب لپاره راځي. نو د مبسوط په عبارت سره په وجوب دلالت اوشو.

**ثُمَّ لَاتَنُوْبَانِ عَنْ سُنَّةِ الظُّهْرِ** ..اودا دوې (دوه) ركعته سنت به د ماپښين قائم مقام نه وي **هُوَ الصَّحِيْحُ** دا صحيح ده.

**حل اللغة*** ① لاتنوبان، ناب نوبة (ن): نائب جوړيدل، قائمقام كيدل

**تشريح:- القولان في حساب الركعة الخامسة والسادسة من سنة الظهرالبعدية**۞ ①صاحب دهدايه وائي. چي دادوې (دوه) ركعته يعني پنځم اوشپږم به د ماپښين نه د روستنو دوو ركعتونوقائم مقام نه وي. قول صحيح هم دادې. ②خود بعضے حضراتومذهب دا دې. چي دا دواړه ركعته به د ماپښين نه د روستنو سنتو قائم مقام شي.

**لِاَنَّ الْمُوَاظَبَةَ عَلَيْهَا بِتَحْرِيْمَةٍ مُبْتَدَاَةٍ** خكه چي په دے دوو ركعتونود نبي كريم ﷺ مواظبت په نوے تحريمې سره وو.

**حل اللغة*** ① مواظبة: هميشه والي كول

**تشريح:- دليل القول الصحيح**۞د قول صحيح دليل دادې. چي سنت نوم دے دنبي كريم ﷺ دطريقے اونبي كريم ﷺ به د ماپښين سنت په نوے تحريمے سره كول. اوچونكه په ذكرشوې صورت كي نوے تحريمه موجود نشوه. خكه دا دواړه ركعته د ماپښين دسنتو قائم مقام هم نه دي.

## دشپږم ركعت ملاوُولونه روسته د سجده سهو حكم

**(وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ اسْتِحْسَانًا)** واستحساناً دے سجده سهواوكړي. **لِتَمَكُّنِ النُّقْصَانِ فِي الْفَرْضِ بِالْخُرُوْجِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ** خكه چي نقصان د فرضونه په غيرمسنون طريقه وتلو سره پيدا شوې دې **وَفِي النَّفْلِ بِالدُّخُوْلِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ.** اونفلو كي په غير مسنون طريقه داخليدو سره

**حل اللغة*** ①يسجد، سجد سجدة (ن): سجده كول ②خروج: وتل ③وجه: طريقه ④دخول: داخليدل

**تشريح:- صيرورة الركعتين نفلاً**۞صورت دمسئلي دادې. چي كله مونځګذار په څلور ركعتونودتشهد په مقدار كيناستو. بيا په هيره پنځم ركعت لپاره پاسيدو. اودانې په سجده هم مقيد كړو. نواوس دا حكم دې چي دے سره شپږم ركعت ملاؤكړي. اوسجده سهواوكړي. په دےصورت كي به مخكنی څلور ركعته فرض شي. اوروستنی دوې (دوه) ركعته به نفل شي.

**وجوب السهو استحساناً**۞صاحب دهدايه وائي چي دسجدےحكم استحساني دې. ګني د قياس تقاضا دا

(١) : من حديث ابى سعيد رضي الله عنه اخرجه ابن عبدالبر رحمه الله في التمهيد قاله الزيلعي رحمه الله فى نصب الراية (٢/١٧٣، ٤)-



ده. چي سجده سهودے واجب نه وي.

**وجه القياس**۞د قياس وجه دا ده. چي سهو په فرضو كي واقع شوې ده. په دے طريقه چي لفظ سلام واجب دے هغه ترك شوې دے اودا لمونځ كونكې د پنځم ركعت لپاره پاسيدو. نود فرضونه نفلوته منتقل شو. اوكوم كس ته چي په يولمونځ كي سهوشوې وي. په هغه هم په هغه لمانځه كي سجده سهو واجب وي په بل لمونځ كي سجده سهو نه واجبيږي. خودلته كه سجده سهو واجب كړې شي. نوهم دا به لازم شي. چي سهو اوشوه په فرضوكي ،اوسجده سهو ئې اوشوه په نفلو كي ،حالانكه دا ټيك نه ده. نو د قياس په تقاضا دا ثابته شوه. چي په ده سجده سهو واجب نه ده.

**وجه الاستحسان**۞د استحسان د وجےمخكي دا ذهن نشين كړئ. چي نقصان په فرضو او نفلو دواړو كي متمكن شوېدے، په فرضوكي خوپه دے وجه چي دڅلور ركعتونونه روسته په لفظ دسلام سره وتل واجب دي. اوحال داچي ده لفظ دسلام ترك كړې دې. خود واجبو دترك په وجه فرضو كي نقصان پيدا شو. دامذهب د امام محمد رحمه الله دې.

**سبب وجوب سجدة السهو عند ابى يوسف**۞ اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز په نفلوكي نقصان په دے وجه پيدا شوېدے، چي د دوی په نيزنفل په مستقل نوے تحريمې سره پيل كول واجب دي .اودا واجب ده ترك كړو. حاصل داچي د امام محمد رحمه الله په نيزد لفظ سلام دپريښولو په وجه فرضوكي نقصان پيداشوېدې. اود امام ابو يوسف رحمه الله په نيزد نفلو لپاره دنوے تحريمې نه موندلو په وجه په نفلوكي نقصان پيدا شوې دې. ددے تمهيد نه روسته عرض دې. چي پورته ذكرشوې صورت كي دسجده سهو استحساناً وجوب فقط د امام محمد رحمه الله په مذهب دی. خكه چي امام محمد رحمه الله په نيزنقصان په فرضو كي موجود شو. او بيا د فرضونه نفل ته منتقل شو. نود قياس تقاضا خوهم داوه. چي د فرضود نقصان تلافی په نفلوكي نه وي. لكه چي په مخكينوكرښوكي بيان شو. خوچونكه د نفلو بناء هم په لومړنی تحريمه ده. په نوے تحريمې نفل نه دي پيل شوی. په دے وجه د سجده سهو د وجوب په حق كي ونيلی شی. چي دا يولمونځ دې. اوكله چي يولمونځ دې. او په دےكي واجب يعني لفظ دسلام پريښولې (پريخودې) شو. نوسجده سهو واجب شوه.

**مثاله**۞ددے مثال داسې دې. لكه چي يوكس په يوسلام شپږ ركعته نفل لمونځ كول پيل كړي. بيا په شفع اول كي سهو شو. نو په اخرد لمانځه كي به سجده سهو كوی. اګرچي دنفلو هره شفع خانله لمونځ دې. خودتحريمه واحده په وجه شپږ واړه ركعته دصلوة واحده په حكم كي دي.

**وجوب سجدة السهو عند ابى يوسف استحساناً وقياساً**۞اود امام ابو يوسف رحمه الله په نيز د نوے تحريمه د عدم وجود په وجه په نفلو كي دننه نقصان پيدا شوې دې. خكه د دوی په نيزسجده سهو هم قياساً واجب ده او هم استحساني.

**وَلَوْ قَطَعَهَا** ،اوكه دا نفل ئې قطع كړل. **لَمْ يَلْزَمْهُ الْقَضَاءُ** نو قضاء به لازم نه وي **لِاَنَّهُ مَظْنُوْنٌ.** خكه چي دامظنون دی

**حل اللغة*** ① قطعها، قطع قطعًا (ف): ماتول، پريكول ② مظنون: ګمان كړې شوې ③اقتدى، اقدى اقتداءً: پيروی كول

**تشريح:- عدم لزوم الركعتين بعد الفساد فيهما**۞ ①علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. كه دا نفل لمونځ ئې قطع كړو .مثلاً د پنځم ركعت پوره كاوه نه روسته ئې لمونځ پريښولو .نوپه ده ددے دوو ركعتونو قضا واجب نه ده. خكه لمونځ يا روژه كه على وجه الظن پيل كړې شي. نو دا زموږ په نيز نه لازميږي، خكه چي دےكس دفرضو په ګمان پنځم ركعت پيل كړې دې. حالانكه په ده فرض پاته نه وو. په دے وجه دا پيل كول به د نفلولازمونكی نه وي. اوكله چي نفل لازم پاتې نشو. نودقطع كاوه په وجه به ددے قضا هم واجب نه وي.

وَلَوِاقْتَدَى بِهِ إِنْسَانٌ فِيهِمَا. اوکه په دے دوو رکعتونوکي کوم انسان دده اقتداء اوکړه **يُصَلِّي سِتًّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ**[1] رحمه الله نود امام محمد رحمه الله په نيز مقتدى دے شپږ رکعته اوکړی **لِأَنَّهُ الْمُؤَدِّي بِهَذِهِ التَّحْرِيمَةِ**. ځکه چې هم په دے تحريمې سره هم دا تعداد ادا شوېدې

**حل اللغة**: ① **مؤدى**: اداکړې شوې

**تشريح**:- **اقتداء الغير بهذا المصلى** ﴿ولو اقتدى به انسان...الخ﴾ نه فاضل مصنف رحمه الله فرمائى. که يوانسان په دے دواړو رکعتونوکي يعنى په پنځم او شپږ م کي ددے کس اقتدى اوکړه. نود امام محمد رحمه الله په نيزبه دا مقتدى شپږ (رکعته) کوى. يعنى که په پنځم کي ئې اقتداء کړې وى. نود امام دسلام اړولو نه روسته دے څلور رکعته نوراوکوى. اوکه په شپږ م رکعت کي ئې اقتداء کړې وى. نود امام د فراغت نه روسته دے پنځه رکعته نور اوکړی په دے طريقه چې يو رکعت دے اوکړی. نو قعده دے اوکړی. بيا دے په دوو رکعتونوکينى. بيا دے دوې (دوه) رکعته اوکړی. اوقعده دے اوکړی. اوسلام دے واړوى.

**دليله** ﴿ دامام محمد رحمه الله دليل دادې. چې دے مقتدى د امام تحريمې سره لمونځ پيل کړې دے. نوچې څومره امام ادا کړې دې. هم هغه هومره په مقتدى لازميږى. چې امام شپږ رکعته کړى دى. نو په مقتدى هم شپږ رکعته لازم دى.

وَعِنْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ. اود شيخينو په نيز به صرف دوې (دوه) رکعته کوى **لِأَنَّهُ اسْتَحْكَمَ خُرُوجُهُ عَنِ الْفَرْضِ** ځکه چې د فرضونه دده وتل مستحکم شوى دى

**حل اللغة**: ① **استحكم، استحكم استحكاماً**: مضبوط کيدل

**تشريح**:- **اتمام الماموم ركعتين عند الشيخين** رحمهما الله ﴿شيخين رحمهما الله فرمائى. چې دا مقتدى دے صرف دوې (دوه) رکعته اوکړی.

**دليلهما** ﴿ د شيخينو رحمهما الله دليل دادې. چې امام کله شپږ م رکعت لپاره پاسيدو. نود امام د فرض لمونځ نه وتل مستحکم اومتيقن شو. اوچې د فرضونه وتل متيقن شو. نودده د فرض لمونځ تحريمه هم منقطع شوه. ځکه چې په يو وخت کي د مختلفو دوو مونځونو په تحريموکي کيدل ناممکن دى. نو حاصل دا شو. چې د فرضوتحريمه منقطع شوه. اود نفلو تحريمه پيل شوې ده. اوظاهره ده. چې دے مقتدى نفلوتحريمه کي اقتداء کړې ده. په دے وجه په ده ددے نفلوشفع دوو رکعتونونه علاوه نورهيڅ څه نه واجبيږى.

وَلَوْأَفْسَدَهُ الْمُقْتَدِي. اوکه مقتدى دا فاسد کړل **فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله. نود امام محمد رحمه الله په نيز په ده قضاء نشته **اعْتِبَارًا بِالْإِمَامِ** په امام به قياس کولې شى

**حل اللغة**: ① **افسده، افسد افساداً**: فاسد کول، خرابول ② **يقضى قضى قضاءً (ض)**: اداکول، قضاکول

**تشريح**:- **المذهبان في قضاء ما افسد من الركعتين** ﴿ولو افسد المقتدى...الخ﴾ د دے عبارت حاصل دا دې. که چا په پنځم اوشپږ م رکعت کي د امام اقتداء کولونه روبسته دا فاسد کړل. ① نود امام محمد رحمه الله په نيز په دے مقتدى قضاء واجب نه ده.

**دليله** ﴿ د امام محمد رحمه الله دليل قياس دې. يعنى امام محمد رحمه الله دمقتدى حال د امام په حال قياس کړې دې. اوڅوکرښے مخکي تيرشوى دى. که امام دوې (دوه) رکعته فاسد کړل. نوپه ده قضا واجب نه ده. نو د امام په حال قياس کوى اوفرمائى. چې ددے دوو رکعتونوقضا په مقتدى هم واجب نه ده.

[1]) القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا فى ردالمحتار (١١٠٥٥٢ والجوهرة (١١٤٩) نقلا عن القول الراجح (١١٢٨)



وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله **يَقْضِي رَكْعَتَيْنِ**[1]. اود ابو يوسف رحمه الله په نيزدے ددوو رکعتونو قضا دے اوکړی **لِأَنَّ السُّقُوطَ بِعَارِضٍ يَخُصُّ الْإِمَامَ** ځکه چې دعارض په وجه سقوط د امام سره مخصوص دې.

**تشريح**:- د امام ابو يوسف رحمه الله په نيز به په زير بحث صورت کي مقتدى د دوو رکعتونوقضا راوړى.

**دليله** ﴿ دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادې چې دقيلس تقاضا خوهم داوه، چې په امام هم قضا واجب شى. ځکه چې امام هم پنځم اوشپږ م رکعت يعنى نفل لمونځ پيل کاوه نه روسته دا باطل کړى دى. اودنفلو پيل کاوه نه روسته که باطل کړې شى. نوددے قضا واجبيږى. نوپه دے صورت کي په امام هم قضاء واجب کيدل پکار وو. خودعارض د وجې قضاء ساقطه کړې شوه. اوعارض دادے، چې امام فرض ادا کاوه په اراده نفل پيل کړى دى. اودا عارض د امام سره مخصوص دې. اوکوم څيزچې د امام سره مخصوص وى. هغه غيرته نه متعدى کيږى. ځکه ددے عارض د وجے د امام د ذمے نه ساقط شوى دى. اوچونکه د مقتدى په حق کي دا عارض موجود نه دې. په دے وجه په ده به قضا واجب وى.

**په اوله شفعه کي د سهو نه روسته په دې د بلې شفعه د بناء حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله (په جامع صغير کي) وئيلى دى **(وَمَنْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ تَطَوُّعًا)** کوم کس چې دوې (دوه) رکعته لمونځ اوکړو **فَسَهَى فِيهِمَا**. او په دے کي سهوشو. **وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ** اودسهوے سجده ئې هم اوکړه. **ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُصَلِّيَ أُخْرَيَيْنِ** بيا ئې اوغوښتل. چې نوردوې (دوه) رکعته اوکړى **لَمْ يَبْنِ**. نو بناء دے نه کوى **لِأَنَّ السُّجُودَ يَبْطُلُ**. ځکه چې سجده سهودا باطلوى **لِوُقُوعِهِ فِي وَسَطِ الصَّلَاةِ**. ځکه چې سجده په مينځ د لمانځه کي واقع شوې ده

**حل اللغة**: ① **صلى، صلى صلاة**: لمونځ کول، دعاکول ② **تطوع**: نفل ③ **اراد، اراد ارادة**: اراده کول ④ **يبطل، بطل بطلاناً (ن)**: باطل کول ⑤ **وسط**: مينځ

**تشريح**:- **عدم جواز البناء الشفع الذى سهى فيه** ﴿صورت دمسئلې دادې. چې يوکس دنفلودوې (دوه) رکعته اوکړل. خو په دے کي سهوه شو. اود هغې لپاره ئې سجده سهو هم اوکړه. بيا ده اوغوښتل. چې په دے دوو رکعتونود نورو دوو رکعتونو نفلو بناء اوکړى. نودے کس ته دبناء اجازت نشته دې. بلکه سلام دے واړوى. په خانله تحريمه دے دوې (دوه) رکعته نفل اوکړى.

**دليله** ﴿ دليل نه مخکي داخبره په ذهن کي کينوئ. چې سجده سهودلمونځ په آخرکي مشروع شوې ده. د لمونځ د دوو شفعو په مينځ کي نه ده مشروع شوې. اوس د دليل حاصل دا شو. چې په دے صورت کي د سجده سهوے کولونه روسته دنورو دوو رکعتونوبناء کول به سجده سهو بے ضرورته باطله کړى. ځکه چې سجده سهو په مينځ دلمانځه کي واقع شوېده. حالانکه په مينځ د لمانځه کي سجده سهومشروع نه ده. بلکه د لمانځه په آخرکي مشروع شوېده. موږ دے بناء ته بے ضرورته ځکه وايو. که داکس نور دوې (دوه) رکعته په نوے تحريمې سره د سرنه ادا کړې وه. نود بناء نه بغير به ټيک وو. نوځکه په بناء کولود سجده سهوے د باطلولو هيڅ اړتيا نه وو.

**السوال** ﴿ زيات نه زيات دا وئيلى شى. چې دبناء کاوه په صورت کي په يوسلام دڅلور رکعتونو ادا کولوفضيلت حاصل شو. ځکه چې په يوسلام څلور رکعته کول افضل دى. په نسبت د دوو سلامونو؟

**الجواب** ﴿ ددے ځواب دادې. چې دبناء په صورت کي بيشکه په څلور رکعتونو مداومت کاوه فضيلت به

[1]) القول الراجح هو قول ابى يوسف رحمه الله كذا فى فتح القدير (١١٤٤٨) والدرالمختار (١١٥٥٣) ومجمع الانهر (١١١٥١) والبحرالرائق (١٠٥١٢) والجوهرة (١١٤٩) نقلا عن القول الراجح (١١١٢٩)-

حاصل شي.خو په دے صورت کي نقض د واجب لازميږي.يعني سجده سهوچې واجب ده په مينځ د لمانځه کي واقع کيدو د وجې باطليږي.او د واجب د نقض نه بچ کيدل اولی دی.په نسبت د فضيلت حاصلولو.په دے وجه اووئيلی شو.چې داکس دے په مخکينئ ددو رکعتونو بناء نه کوی.بلکه په نوے تحريمه دے نور دوې (دوه) رکعته اداکړي.

> **بِخِلَافِ الْمُسَافِرِ**. په خلاف دمسافر، **إِذَا سَجَدَ السَّهْوَ**چې کله ده سجده سهو اوکړه **ثُمَّ نَوَى الْإِقَامَةَ**.بيائې د اقامت نيت اوکړو **حَيْثُ يَبْنِي**.نوهغه بناء کولې شی **لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَبْنِ**. خکه چې مسافر که بناء اونکړی **يَبْطُلُ جَمِيعُ الصَّلَاةِ**.نو پوره لمونځ به باطل شی،

**حل اللغة**: ① **نوی، نوی نية** (ض): نيت کول ② **جميع**: واړه

**تشريح**:- **اعادة سجدة السهو عندالبناء**⊙صاحب دهدايه رحمه الله وائی.چې بيشکه دے کس له بناء کول پکارنه دی.خوددے باوجودکه بناء ئې اوکړه. اودويمه شفعه ئې هم اداکړه.نوصحيح ده.خکه چې تراوسه تحريمه پاته ده.البته سجده سهو باطل شوه.خکه چې بناء ئې اوکړه.نوسجده سهودلمونځ په مينځ کي واقع شوه.حالانکه د لمانځه په مينځ کي سجده سهونه ده مشروع شوې.په دے وجه به دا سجده معتبرنه وی.اوپه ده به د سجده سهو دوباره کول واجب وی.

> **وَمَعَ هَذَا لَوْ أَدَّى**ددے باوجود که ده اداء اوکړه **صَحَّ**.نوصحيح ده . **لِبَقَاءِ التَّحْرِيمَةِ**خکه چې تحريمه پاته ده **وَيَبْطُلُ سُجُودُ السَّهْوِ**.اوسجده سهو به باطل شی. **هُوَ الصَّحِيحُ**هم دا قول صحيح دې.

**تشريح**:- **وجه صحة بناء المسافر**⊙ ددےعبارت حکم د متن دمسئلې اختلاف دې. حاصل دا دې.چې مسافرد رباعی فرضو قصر کاوه په وجه دوې (دوه) رکعته اوکړل.اود سهو راتلو په وجه ئې سجده سهو اوکړه،بيا د سلام اړولونه مخکي ئې د اقامت نيت اوکړو.نودامسافردے هم په دے تحريمه بناء اوکړی .اوڅلور رکعته دے پوره کړی.اوسلام دے واړوی.خکه چې د اقامت په نيت په ده څلورر کعته پوره کول لازم شو.اوس که داکس بناء اونکړی.نودده واړه لمونځ به باطل شی.اوپه بناء کولو کي نقض د واجب دې.خکه چې دسجده سهو باطل کول دی.اونقض د واجبو ادنی دے ، په نسبت سره ابطال د فرضوته ،اوقاعده ده چې دلوئې غلطئ لرے کاوه لپاره وړه غلطی برداشت کيدې شی.په دے وجه اعلی يعنی فرض لمونځ دباطلولونه دبچ کاوه لپاره ادنی يعنی د سجده سهونقض برداشت کولے شی.

### په سجده د سهو کي د اقتداء حکم

> **وَمَنْ سَلَّمَ**يوکس (دلمانځه په آخرکي)سلام واړولو **وَعَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ**.حالانکه په ده سجده سهولازم وه، **فَدَخَلَ رَجُلٌ فِي صَلَاتِهِ بَعْدَ التَّسْلِيمِ**دسلام اړولونه روسته يوکس ددے مونځگذار په لمانځه کي داخل شو **فَإِنْ سَجَدَ الْإِمَامُ** ،که امام سجده اوکړه **كَانَ دَاخِلًا**،نودا مقتدی دده په لمانځه کي داخل شو **وَإِلَّا فَلَا**.گنی نه (دے داخل)، **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله [1] اوداحکم د شيخينو رحمهما الله په نزدې

**حل اللغة**: ①**سلم، سلم تسليماً**: سلام گرځول، سلام کول ②**فدخل، دخل دخولاً** (ن): داخليدل ③**سجد، سجد سجدة** (ن): سجده کول

**تشريح**:- **الاقتداء بعد السلام قبل سجدة السهو**⊙صورت دمسئلې دادې.چې يوکس چې په هغه سجده واجب وه.هغه سلام واړولو بل کس دده دسلام اړولونه روسته دده په لمانځه کي د اقتداء نيت اوکړو . او شريک شو.① نود

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى فتح القدير(۱\۴۵۰) وردالمحتار(۱\۵۵۴) وتبيين الحقائق (۱\۱۹۸) وشرح الوقاية (۱\۱۸۷) وحاشية الطحطاوى(ص،۱۵۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۳۰۱)-



شيخينو رحمهما الله په نيزحکم دا دے که امام سجده سهواوکړه.نودا مقتدی دده په لمانځه کي داخل شو.اوکه امام سجده سهو اونکړه.نودده په لمانځه کي به شريك نشي شمارلې. دا مسئله اوددے نه علاوه ډيرمسائل په دے اصل موقوف دی.چې په چاسجده سهوواجب وی.نوهغه سلام دے دحرمت صلوة نه اوباسی اوکه نه،

> **وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمانی **هُوَ دَاخِلٌ**.چې دے داخل دې **سَجَدَ الْإِمَامُ أَوْ لَمْ يَسْجُدْ**.که امام سجده اوکړی اوکه نه، **لِأَنَّ عِنْدَهُ سَلَامُ مَنْ عَلَيْهِ السَّهْوُ**خکه چې د امام محمد رحمه الله په نيز د دے کس سلام (چې په چا سجده سهو لازم ده)دے **لَا يُخْرِجُهُ عَنِ الصَّلَاةِ أَصْلًا**د لمانځه نه بيخی خارج کولے نه شی **لِأَنَّهَا وَجَبَتْ جَبْرًا لِلنُّقْصَانِ**.خکه چې سجده سهودنقصان پوره کاوه لپاره واجب شوې ده **فَلَا بُدَّ**.په دے وجه ضروری ده **مِنْ أَنْ يَكُونَ فِي إِحْرَامِ الصَّلَاةِ**چې داکس دلمونځ په احرام کي وی

**حل اللغة**: ①**وجبت، وجب وجوباً** (ض): واجب کيدل ②**فلابد**: ضروری، چې د څه نه بله لار نه وی

**تشريح**:- اوپه دے اړه کي د امام محمد رحمه الله مذهب دادې.چې ددے کس سلام دےدلمانځه نه نه اوباسی.نه موقوفا،اونه باتاً (غيرموقوف) هم دادامام زفرقول دې.

**دليل محمد**⊙ رحمه الله د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چې سجده سهود هغې نقصان تلافی کاوه لپاره واجب ده.کوم چې نقصان مؤدی يعنی په ادا شوی لمانځه کي پيدا شوې دې.اوتلافی کول په هغه وخت متحقق کيږی.چې هغه څيزموجود وی.چې دکومے تلافی کول مقصود وی،يعنی دسجدې په ذريعه دلمونځ دنقصان تلافی هغه وخت کيدې شی.چې کله لمونځ موجود وی.اودلمونځ د قيام بقا په تحريمه موقوف ده،نومعلومه شوه.چې په چا سجده واجب ده.د هغه سلام هغه د لمانځه د احرامه نه خارجوی .بلکه دسلام باوجود تحريمه پاته کيږی.چې کله سلام نه روسته تحريمه پاته ده، نو د سلام نه روسته دده اقتداءکول هم ټيك دی.امام که د سهوے سجده اوکړی اوکه نه.

> **وَعِنْدَهُمَا يُخْرِجُهُ عَلَى سَبِيلِ التَّوَقُّفِ**.اودشيخينو رحمهما الله په نيزبه دےعلی سبيل التوقف خارجوی **لِأَنَّهُ مُحَلِّلٌ فِي نَفْسِهِ**.خکه چې سلام خوپه خپله تحليل کونکےدې **وَإِنَّمَا لَا يَعْمَلُ لِحَاجَتِهِ** او(دلته دخارجيدو)عمل نه کوی **إِلَى أَدَاءِ السَّجْدَةِ**.خکه چې دسجدې اداکولو اړتيا دې **فَلَا يَظْهَرُ دُونَهَا**.نو بغير د سجدې څخه به نه ظاهريږی **وَلَا حَاجَةَ عَلَى اعْتِبَارِ عَدَمِ الْعَوْدِ**.اودعدم عود اعتبارکولو هيڅ اړتيا نشته

**حل اللغة**: ① **محلل**: حلالونکې ② **لايعمل، عمل عملاً** (س): کارکول ③ **حاجة**: اړتيا ④ **عود**: واروسته کيدل

**تشريح**:- دشيخينو رحمهما الله مذهب دادې.چې دده سلام دے د لمانځه نه موقوفا خارجوی . د موقوفا مطلب دادې.چې دسلام نه روسته که ده سجده سهواوکړه.نو وئيلې به شی.چې تحريمه پاته ده.اوچې تحريمه پاته ده.نود بل لمونځ گذار اقتداء کول هم ټيك دی.اوکه دسلام نه روسته ده سجده اونکړه.نووئيلې به شی.چې تحريمه پاته نشوه.اوکله چې تحريمه پاته نشوه.نو اقتداءکول هم ټيك نه شو.

**دليلهما**⊙ دشيخينو رحمهما الله دليل دادې.چې سلام بذات خود محلل يعنی دلمونځ نه خارجونکې دې.لکه چې د نبی کريم ﷺ ارشاددے «تحليلها التسليم»اوکه مانع راپيښ شی.نولفظ دسلام به خپل عمل نه کوی.او مانع دسلام دسجده سهواداکولو اړتيا دې.که دسلا م نه روسته سجده سهو اوکړی.نو چونکه مانع بيا موندلے شو.په دے وجه به سلام خپل عمل نه کوی.يعنی دا مونځگذاربه دلمانځه نه خارجوی.اوکه سجده سهونې اونکړه.نومانع تحليل موجود نشو.په دے وجه به لفظ دسلام خپل عمل کوی.يعنی دا لمونځ گذار به دلمونځ نه خارجوی.ددے دليل نه ثابته شوه.چې په کوم کس سجده سهو واجب وی.دهغه سلام هغه علی سبيل التوقف دلمانځه نه خارجوی.

> **وَيَظْهَرُ الْاِخْتِلَافُ فِي هَذَا**،اواختلاف ظاهريږی. په دے مسئله کي **وَفِي انْتِقَاضِ الطَّهَارَةِ بِالْقَهْقَهَةِ**اوپه قهقهے سره په اودس ماتيدوکي

**تشريح:- ظهورثمرة الخلاف في مسئلتين**۞علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې د امام محمد رحمه الله اود شيخينو رحمهما الله اختلاف په دے مسئله کې ظاهرېږي.او ددے نه علاوه په نورو دوومسئلوکې ظاهرېږي.① يوه داچې دسلام نه روسته‌چې دے کس په قهقهه سره اوخاندل.نوپه چاچې سجده سهو واجب وی. په دے قهقهے سره د امام محمد رحمه الله اود امام زفر رحمه الله په نيزبه اودس ماتيږي.ځکه‌چې ددوی په نيزلمانځه کې قهقهه موجود شوه. اودشيخينو رحمهما الله په نيز که ئې سجده سهو اوکړه.نواودس ماتيږي .ځکه‌چې دسجدےکولوپه وجه قهقهه په مينځ دلمانځه کې موجود شوه.

> **وَتَغَيُّرِ الْفَرْضِ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ**،په دے حالت کې په نيت د اقامت په فرض متغير کيدوکې

**تشريح:-** دويمه مسئله دا ده.چې د سلام نه روسته اوسجده سهونه مخکې مسافرد اقامت نيت اوکړی.نود امام محمد رحمه الله په نيز به دده فرض لمونځ د دوو رکعتو په ځائې څلور رکعته شی.که سجده سهواوکړی اوکه نه. او د شيخينو رحمهما الله په نيزکه ئې سجده سهواوکړه.نودده فرض لمونځ به په نيت د اقامت سره څلور رکعته شی. او که سجده سهو ئې اونکړه.نوڅلور رکعته نه ګرځی.(شرح نقايه)

### د تحليل په غرض د سلام ګرځولو نه روسته سجده سهو کول

> **(وَمَنْ سَلَّمَ يُرِيْدُ بِهٖ قَطْعَ الصَّلَاةِ** اوڅوك‌چې د لمانځه قطع کاوه په اراده سلام واړوی **وَعَلَيْهِ سَهْوٌ**.حالانکه په ده سهوهم وی. **فَعَلَيْهِ اَنْ يَّسْجُدَ لِلسَّهْوِ)** نو په ده د سهو په وجه سجده کول واجب دی **لِأَنَّ هٰذَا السَّلَامَ غَيْرُ قَاطِعٍ** ځکه‌چې دا سلام قاطع دلمونځ نه دې **وَنِيَّتُهٗ تَغْيِيْرُ الْمَشْرُوْعِ**..اودده نيت مشروع متغيرکوی **فَلَغَتْ**.نو لغوه به وی.

**حل اللغة*** ①**يريد، اراد ارادة**: اراده کول ②**قطع**: ماتول ③**فلغت، لغا لغواً**(ن): لغو، بيکاره کيدل

**تشريح:- السلام بنية قطع الصلاة لمن كان عليه السهو**۞صورت دمسئلې دادې.يوکس‌چې په هغه سجده سهو واجب وی.هغه د لمونځ قطع کاوه په قصد سلام واړلو.نو په ده د لمونځ فاسدونکی عمل د وجود نه وړاندې سجده سهوکول واجب دی.ځکه‌چې د«من عليه السهو»سلام په اتفاق سره قاطع د لمانځه نه دې.د امام محمد رحمه الله په نيز خوځکه‌چې دا سلام ددوی په نيزمحلل (دلمونځ نه خارج کونکے)شو.نومشروع نشو.اودشيخينو رحمهما الله په نيز اګرچې محلل دې.خوموقوفاً محلل دې.نه داچې باتا اوقطعا،حاصل داچې سلام قاطع دلمونځ نه دے مشروع شوې.اوکوم څيزچې قاطع د لمونځ نه وی مشروع شوې.هغه لمونځ قطع کولےنشی.نو په دے سلام لمونځ نه قطع کيږی. پاتې شودلمونځ قطع کاوه نيت،نوهغه به دخلاف مشروعيت د وجې لغوه شی د هغې اعتبار به نشی کولې.

### په درې يا څلور رکعته کولوکې د شك حکم

> **(وَمَنْ شَكَّ فِيْ صَلَاتِهٖ** اوکوم سړی ته‌چې په لمانځه کې شك شی **فَلَمْ يَدْرِ**.خوده ته معلومه نه وی **أَثَلَاثًا صَلّٰى أَمْ أَرْبَعًا**چې درے رکعته ئې کړی دی‌که څلور

**حل اللغة*** ①**شک، شک شکاً**(ن): شك کول ②**فلم يدر، درى يراية**(ض): پيژندل

**تشريح:-** مسئله دا ده.چې لمونځ ګذار ته په خپل لمانځه کې دا شك وړپيښ شی.چې درے رکعته شو اوکه څلور.اودا شك په ړومبیٔ‌ځل وړپيښ شوې وی.نوپه داسے‌صورت کې دےلمونځ د سرنه اوکړی.

> **وَذٰلِكَ أَوَّلُ مَا عَرَضَ لَهٗ**..اودا شك لومړې ځل وی‌چې ده ته وړپيښ شوې وو. **اسْتَأْنَفَ)** نودا کس دے د نوی سر نه لمونځ اوکړی

**حل اللغة*** ① **عرض، عرض عرضاً**(ض):مخې ته راتګ ، لاحق کيدل ② **استانف، استانف استينافاً**: د نوې سر کول، واروسته کول



**تشريح:- الاقوال الثلاثة في المراد من اول ما عرض له**۞پاتې شوه داخبره‌چې د متن دعبارت«اول ماعرض لـه»نه څه مراد دے؟نو په دے اړه کې بعضو مشائخو رحمهم الله ونيلی‌دی.چې ددےجملےنه مراد دا دې.چې سهودده عادت نه وی.بلکه کله کله پيښيږی.دامطلب هرګزنه دې.چې په واړه عمرکې کله سهو شوې نه وی. دشمس الائمه سرخسی رحمه الله هم دا رائې ده.② فخرالاسلام رحمه الله فرمائی.مراد دا دې.چې په دے لمانځه کې ړومبیٔ سهوهم دا وی.③ اوبعضوحضراتوونيلی‌دی.چې په ژوندکې په ړومبی ځل هم داسهو پيښه شوې وی.د بلوغ نه روسته په لمانځه کې چرے هم سهو شوې نه وی. لومړې قول راجح دے.

> **لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه‌چې نبی‌کريم ﷺ فرمائيلی دی {**إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاتِهٖ** ..کله‌چې په تاسوکې څوك په خپل لمانځه کې دا شك اوکړی **أَنَّهٗ كَمْ صَلّٰى** چې څومره ئې کړې دې **فَلْيَسْتَقْبِلِ الصَّلَاةَ**}[1] نولمونځ دے د نوی سر نه اوکړی.

**تشريح:-** دليل دصاحب دهدايه پيش کړې حديث دې.چې نبی‌کريم ﷺ فرمائيلی دی کله‌چې په تاسوکې څوك په خپل لمانځه کې دا شك اوکړی‌چې څومره ئې کړې دې نولمونځ دے د نوی سر نه اوکړی.

### د سهو د باربار پيښيدوحکم

> **(وَإِنْ كَانَ يَعْرِضُ لَهٗ كَثِيْرًا** اوکه ده ته داشك ډير وړپيښيږی **بَنٰى عَلٰى أَكْبَرِ رَأْيِهٖ)**.نوپه خپله غالب رائې دے بناء کوی.

**حل اللغة*** ① **يعرض، عرض عرضاً**(ض): مخې ته کيدل،لاحق کيدل ② **راى**: ګمان خيال

**تشريح:- الصورتان في وقوع الشک**۞صورت دمسئلې دادې.که د ادا شوی رکعتونودمقدار په اړه کې زيات شك پيښيږی.نوددے دوې (دوه) صورتونه دی.① ياخوبه ده ته د يو اړخ ظن غالب وی يا به نه وی.که ظن غالب وی.نوهم د هغې مطابق دےعمل کوی.

> **لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه‌چې د الله حبيب ﷺ فرمائيلی دی. {**مَنْ شَكَّ فِيْ صَلَاتِهٖ** چاته‌چې په لمانځه کې شك شی **فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ**}[1] نوهغه دےد صحيح خبرے لپاره په زړه کې تحری اوکړی

**حل اللغة*** ① **فليتحر، تحرى تحرياً**: کوښښ کول ② **صواب**: صحيح

**تشريح:- دليله**۞ ①ځکه‌چې دنبی کريم ﷺ ارشاددے«من شك فی صلاته فليتحر الصواب»ملاعلی قاری د صحيحنو په حواله دا حديث څه قدرے په تفصيل سره ذکرکړې دے«عن ابن مسعود رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال إذا شك احدکم فليتحر الصواب وليتم عليه ثم ليسلم ثم ليسجد سجدتين»يعنی‌چې کله په تاسو کې چاته شك پيښ شی.نوهغه دے تيك خبرے لپاره په زړه سره تحری اوکړی.اودتحری اوظن غالب مطابق دےعمل اوکړی.بيادےسلام واړوی.اودوې (دوه) سجدې دے اوکړی.② عقلی دليل دا دے. که هرځل دلمونځ د اعادےحکم ورکړې شی.نوحرج به واقع شی.د دے وجې د حرج لرې کاوه لپاره به په ظن غالب عمل کولې شی.

> **(وَإِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهٗ رَأْيٌ** .اوکه دده هيڅ رائې نه وی **بَنٰى عَلَى الْيَقِيْنِ)**.نو په خپل يقين دےعمل اوکړی **لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځکه‌چې نبی‌کريم ﷺ فرمائيلی دی. {**مَنْ شَكَّ فِيْ صَلَاتِهٖ** چاته‌چې په خپل لمانځه کې شك شی

(۱) غربه الزيلعی رحمه الله وقال اخرج ابن ابی شيبة فی مصنفه عن ابن عمر (رضی الله عنهما) قال فی الذی لا يدری کم صلی اثلاثا او اربعا قال يعيد ای يحفظ. انتهی. (نصب الراية (۲:۱۷۵)-

(۲) من حديث ابن مسعود رضی الله عنه اخرجه البخاری فی الصلوة باب ۳۱ ومسلم فی المساجد ومواضع الصلوة رقم ۸۹، ۹۰ و ابوداؤد فی الصلوة باب ۹۰ والنسائی فی السهو باب ۲۷ وابن ماجه فی الاقامة باب ۳۳ و احمد فی المسند (۱:۳۷۹، ۳۳۸)-

فَلَمْ يَدْرِ. هغه ته معلوم نه وی. أَثَلَاثًا صَلَّى أَمْ أَرْبَعًا چې درے رکعته ئې اوکړل که څلور، بَنَى عَلَى الْأَقَلِّ}(٢) نو په کمتر دے عمل اوکړی

تشریح:- **التسوية بين الظنين**◉ اوکه ده ته د یو اړخ هم ظن غالب نه وی. نو په اقل دے عمل اوکړی. یعنی که په درے یا څلور رکعته کې شك وی. اود هیڅ یو غالب گمان نه وی. نو درے رکعته دے خیال کړی.

**دليله**◉ دلیل د رسول خدا ﷺ دا فرمان دے «من شك فی صلاته فلم يدر أثلاثا صلى ام أربعا بنى على الأقل» امام ترمذی دا حدیث په دے الفاظو سره ذکر کړې دے «عن عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه قال سمعت النبي ﷺ يقول إذا سهى احدكم فی صلاته فلم يدر واحدة صلى او ثنتين فليبن على واحدة فان لم يدر ثنتين صلى أو ثلاثا فليبن على ثنتين فاذا لم يدر ثلاثا او اربعا فليبن على ثلاث»

وَالِاسْتِقْبَالُ بِالسَّلَامِ أَوْلَى. اود نوی سرنه په سلام سره کول غوره دی لِأَنَّهُ عُرِفَ مُحَلِّلًا. ځکه چې د سلام محلل کیدل معلوم شوی دی دُونَ الْكَلَامِ، نه د کلام وَمُجَرَّدُ النِّيَّةِ يَلْغُو. او خالی نیت به لغووی

حل اللغة* ① تلغو، لغا لغواً (ن): فضول کیدل، بې کاره کیدل

تشریح:- **غرض المصنف**◉ د مصنف رحمه الله مقصد دادې. که د سرنه دلمونځ کاوه اراده اوکړی. نو موجوده مشکوك فیه لمونځ په سلام قطع کول غوره دی. یعنی باقاعده دے سلام واړوی. اودسرنه دے لمونځ پیل کړی. په کلام سره لمونځ قطع کول غوره نه دی. ځکه چې په شریعت کې سلام ته محلل وئیلې شوې دې. کلام نه. کلام خو مفسد دلمونځ دې. دنبی ﷺ حدیث دے «تحليلها التسليم» نو په اسلامی شریعت او حدیث رسول ﷺ کې سلام محلل (دلمونځ نه خارجونکے) معلوم شو. نو په سلام د لمونځ نه وتل غوره دی. په کلام نه، اوکه دلمونځ نه د وتلو صرف نیت اوکړې شی. اود لمانځه قطع کونکې عمل موجود نه شی.. نو دا کافی نه دې. بلکه نیت چې تر کومه پورې داسې عمل سره متصل نه وی. چې هغه قاطع دلمونځ وی نو هغه لغو نیت دې. ددے هیڅ اثر نه وی.

وَعِنْدَ الْبِنَاءِ عَلَى الْأَقَلِّ يَقْعُدُ فِي كُلِّ مَوْضِعٍ. او په اقل دبناء کاوه په صورت کې په هر هغه مقام به قعده کوی يَتَوَهَّمُ آخِرَ صَلَاتِهِ. چې په هغې آخرد لمونځ خیال کوی. كَيْ لَا يَصِيرَ تَارِكًا فَرْضَ الْقَعْدَةِ والله اعلم چې دے د فرض لمونځ قعدې پریخودونکے نشی، والله اعلم.

تشریح:- **القعود على كل ركعة**◉ «وعند البناء على الاقل...» ددے عبارت حاصل دادې. چې په اقل دبناء کاوه په صورت کې دے په هر رکعت قعده اوکړی. اوتشهد دے اووائی. مثلاً په رباعی لمونځ کې لمونځ گذار ته دا شك پیښ شو. چې دا ړومبے رکعت دے او که دویم. او یو اړخ ته ئې غالب گمان هم نه وی. نو دا دے ړومبے رکعت اوگنړی. خو ددے رکعت پوره کیدو نه روستو دے قعده اوکړی. ځکه چې دا هم ممکن ده. چې دا دوهم رکعت وی. او په دوهم رکعت قعده واجب ده. په دے وجه دے د قعدې په حکم کې اومنی. بیا دے پاسی دریم رکعت دے اوکړی. او بیا دے قعده اوکړی. ځکه ممکن ده. چې دا څلورم رکعت وی. او په څلورم رکعت قعده فرض ده. بیا دے پاسی څلورم رکعت دے اوکړی. او قعده دے اوکړی. ځکه چې دلمونځ گذار په نیز دا د څلورم رکعت په حکم کې دې. او په څلورم رکعت قعده فرض ده. حاصل دا چې د فرض قعدې اود واجب قعدې پاتې کیدو په ویره دے په هر رکعت قعده اوکړی. اوددے صورت خادم په تفصیل سره بیان کړلو. والله اعلم

(٢) من حديث عبدالله بن عوف رضي الله عنه اخرجه الترمذی فی الصلوة باب ١٧٤ رقم ٣٩٨ وابن ماجه فی الاقامة باب ١٣٢ رقم ١٢٩ و احمد فی المسند (١٩١١، ١٩٣) والحكم فی المستدرك (٣٢٤١١، ٣٢٥)-



## باب صلوة المريض

ژباړه:- (دا) باب د بیمار د لمونځ (په بیان کې) دې.

تشریح:- الربط بما قبلها◉ دصلوة اضافت مریض ته د اضافت فعل الی الفاعل قبیلے څخه دے، مصنف دهدایه رحمه الله د بیمار د لمانځه ذکر دسجده سهو نه روسته په دے وجه کړې دې. چې مرض او سهو دواړه دعوارض سماویه څخه دی. او سهو چونکه عام ده مریض او تندرست ټولو ته پیښیږی. ځکه د سجده سهو ذکر وړاندې اوکړې شو. اود بیمار دلمانځه ذکر وروسته اوکړې شو.

### د قیام نه د عاجز کس مونځ

{إِذَا عَجَزَ الْمَرِيضُ عَنِ الْقِيَامِ مریض چې کله د ودریدلو نه عاجز شی صَلَّى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ}. نو په ناسته دے په رکوع او سجده سره لمونځ اوکړی

تشریح:- **صلاة العاجز عن القيام**◉ صورت دمسئلې دادې. چې بیمار کس که په ودریدلو قادر نه وی. په دا شان چې په ودریدلو کې د صحت په بنه کیدو کې د تاخیر ویره وی. یا په ولاړه لمونځ کاوه کې سخت ضعف (کمزوری) وی. یا درد وغیره وی. نو ده لپاره د قیام پریښول جائز دی. اودا کس دے په ناسته رکوع او سجده سره لمونځ کوی،

{لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځکه چې نبی کریم ﷺ عمران بن حصین رضي الله عنه (چې ورته د بواسیرو مرض وو) ته فرمائیلی وو صَلِّ قَائِمًا. په ولاړه لمونځ کوه. فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ که ستا ددے توان نه وی فَقَاعِدًا نو په ناسته کوه. فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ. که ددے توان نه وی. فَعَلَى الْجَنْبِ نو په اړخ کوه. تُومِئُ إِيمَاءً}(١) په دے حال کې چې ته اشاره کوې

تشریح:- **دلائله**◉ ① دلیل دعمران بن حصین رضي الله عنه حدیث دے «قال كانت بی بواسير فسالت النبی ﷺ عن الصلوة فقال صل قائما فان لم تستطع فقاعداً فان لم تستطع فعلى جنب» امام نسائی دالفظ زیات کړې دے «فان لم تستطع فمستلقيا لا يكلف الله نفسا إلا وسعها» عمران بن حصین رضي الله عنه فرمائی. چې ماته د بواسیرو مرض وو. ما د سید الانبیاء ﷺ نه په دے حالت کې دلمونځ کاوه پوښتنه اوکړو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. په ولاړه لمونځ کوه. اوکه ددے توان دے نه وی. په ناسته ئې کوه. اوکه ددے توان هم نه وی. نو په اړخ، اوکه ددے توان هم نه وی، نو په نیغه ملاسته ئې کوه. الله تعالی څوك دده د توان نه زیات نه مکلف کوی.

وَلِأَنَّ الطَّاعَةَ بِحَسَبِ الطَّاقَةِ. او ځکه چې اطاعت په قدر د توان وی.

تشریح:- صاحب دهدایه «عقلی دلیل» بیانولو کې ددے جملے حاصل ذکر کړې دې. فرمائی. چې طاعت په قدر د توان وی. یعنی چې څومره قدرے ممکن وی. او چې څنگه ممکن وی. هغه شان او هم هغه قدرے طاعت استعمالوه.

**توضيح التكليف بقدر الطاقة**◉ که مریض په لږ شان قیام قادر وی. مثلا دیو آیت وئیلو په مقدار یا تکبیر وئیلو په مقدار قادر وی. او په پوره قیام قادر نه وی. نو هم د دومره مقدار قیام حکم به ورکولې شی. چې کله عاجزه شی. نو کښینی دې. ځکه چې د توان مطابق طاعت دې. دغه ډول که مریض تکیه اولگوی یا په همسا ډډه اولگوی او اودریدے شی. نو ده لپاره دقیام ترك کول جائز نه دی. والله اعلم،

(١) من حديث عمران بن حصين رضي الله عنه اخرجه البخاری فی تقصير الصلوة باب ١٩ والترمذی فی الصلوة باب ١٥٧ وابن ماجه فی الاقامة باب ١٣٩ و احمد فی المسند (٤٢٦\٤) و ابوداؤد فی الصلوة باب ١٧٥ رقم ٩٥٢ والنسائی فی قيام الليل باب ٢٢) والحاكم فی المستدرك (٣١٥\١)-

## د رکوع اوسجدې نه دعاجز مونځ

قَالَ ابوالحسين قدوري رحمه الله فرمائی ﴿فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ﴾ که د رکوع اوسجده قدرت نه لري. ﴿أَوْمَأَ إِيمَاءً﴾ نواشاره دے کوی. يَعْنِي قَاعِدًا يعنی په ناسته. لِأَنَّهُ وُسْعُ مِثْلِهِ خکه چې هم دا د ده په وس کې ده ﴿وَجَعَلَ سُجُودَهُ أَخْفَضَ مِنْ رُكُوعِهِ﴾. اوخپله سجده دے په نسبت د رکوع کښته کوی لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَهُمَا خکه چې اشاره ددے دواړوقائم مقام ده فَأَخَذَ حُكْمَهُمَا. نود هغې په حکم کې ده

**تشريح:- صلاة العاجز عن الركوع والسجود**⊛صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. که د رکوع اوسجدې کولو توان نه لري. نو په ناسته دے رکوع اوسجده په اشاره کوی. خکه چې دے وخت دده توان هم دومره قدرے دې. اومخکې تیرشو. چې طاعت په قدر د توان وی.

﴿وَلَا يَرْفَعُ إِلَى وَجْهِهِ شَيْئًا﴾ اوخپل مخ ارخ ته دے څه څيزنه اوچتوي. ﴿يَسْجُدُ عَلَيْهِ﴾ چې په هغې سجده اوکړی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې د نبی کريم ﷺ ارشاددې {إِنْ قَدَرْتَ أَنْ تَسْجُدَ عَلَى الْأَرْضِ ..که ته په مخکه سجدې کاوه توان لرې فَاسْجُدْ نوپه مخکه سجده کوه وَإِلَّا فَأَوْمِئْ بِرَأْسِكَ}[1] کنی په خپل سر اشاره کوه

**تشريح:-** البته دسجدې اشاره به د رکوع د اشارے نه په نسبت سره کښته وی. يعنی دسجدې اشاره کاوه په وخت دے سرزيات کښته کوی.

**دليله**⊛دليل دادې. چې اشاره د رکوع اوسجدې قائم مقام ده. نود رکوع اوسجدې په حکم کې به وی. اوچونکه حقيقی سجده په نسبت دحقيقی رکوع کښته وی. په دے وجه به دسجدې اشاره هم د رکوع د اشارے ته په نسبت سره کښته وی.

﴿فَإِنْ فَعَلَ ذَلِكَ﴾ اوکه داسې ئې اوکړل ﴿وَهُوَ يَخْفِضُ رَأْسَهُ﴾ او حال دا وی. چې دے خپل سر کښته کولے شی ﴿أَجْزَأَهُ﴾ نوده له کافی شو. لِوُجُودِ الْإِيمَاءِ خکه چې اشاره بياموندلے شوه

**تشريح:- عدم رفع الشئ الى وجهه و دليله**⊛شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی. چې سجدے کاوه لپاره دے څه شی خپل مخ ته نه اوچتوی. دليل درسول الله ﷺ حديث دے ﴿إن قدرت أن تسجد على الأرض فاسجد وإلا فاوم برأسك﴾ امام بزار د امام محمد رحمه الله په خپل مسند کې داحديث په دے الفاظوسره ذکرکړې دے ﴿عن جابر أن النبي ﷺ عاد مريضا فراه يصلي على وسادة فاخذها فرمى بها فاخذ عوداً ليصلي عليه فاخذه فرمى به وقال صل على الأرض إن استطعت وإلا فاوم إيماءً و اجعل سجودك أخفض من ركوعك﴾ يعنی حضرت جابر رضی الله عنه وائی. چې نبی کريم ﷺ د يو بيمار دعيادت لپاره تشريف يوړو. نو وے کتل. چې هغه په تکيه لمونځ کولو. نبی کريم ﷺ تکيه واخستله. اووے غورزوله. بيا هغه يو لرګے راواخسته، چې په هغے لمونځ اوکړی. نبی کريم ﷺ هغه هم اوغورځولو. او وے فرمائيل. چې په مخکه لمونځ کوه. که قدرت دے وی. ګنی اشاره کوه. اوخپله سجده د رکوع نه کښته کوه. داحديث په دے خبره محمول دې. چې دے بيمارتکيه اوچته کړه. اوتندی سره ئې لګوله، نبی کريم ﷺ هغه منع کړو نودد ے حديث نه معلومه شوه. چې سجده کاوه لپاره څه شی اوچتول او تندی سره لګول ټيك نه دی.

﴿وَإِنْ وَضَعَ ذَلِكَ عَلَى جَبْهَتِهِ﴾ اوکه ده دا شی په خپل تندی کيخودلو ﴿لَا يُجْزِئُهُ﴾ نوجائز به نه وی. لِانْعِدَامِهِ خکه چې اشاره معدومه شوه.

**تشريح:- الصورتان في رفع الشئ الى الوجه**⊛صاحب دهدايه فرمائی. که مريض تکيه اوچته کړه. اوتندی سره ئې اولګوله. نود دوو حالونه خالی نه دی. يا به رکوع او سجدې لپاره خپل سر کښته کوی يا نه. ① که سرکښته

(١)من حديث جابر رضی الله عنه اخرجه البزار فی مسنده والبيهقی فی ،،المعرفة،، ورواه البيهقی ايضا فی السنن الكبری (٤٣٤\٢، ٤٣٥) رقم ٣٦٦٩) وانظر مجمع الزوائد للهيثمی (١٤٨\٢)-



کوی. نو کافی شو. خکه چې په سر کښته کولواشاره موجود شوه. اوهم دا په ده فرض ده. البته مکروه دی.

**تشريح:-** اوکه تکيه ئې اوچته کړه. اوتندی سره ئې اولګوله. اوسر بيخی کښته نه شو. نو په دے رکوع اوسجده نه اداکيږی، خکه چې په دے صورت کې اشاره معدومه شوه حالانکه دا فرض وه.

## د ناستې نه د عاجز کس مونځ

﴿فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُودَ﴾ اوکه مريض ته د ناستے قدرت هم نه وی. ﴿اسْتَلْقَى عَلَى ظَهْرِهِ﴾ نو په خپله شا دے څملی ﴿وَجَعَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْقِبْلَةِ﴾. اوخپلے پښے دے قبلې ته کړی ﴿وَأَوْمَأَ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ﴾. او رکوع او سجده دے په اشاره سره کوی

**تشريح:- صلاة العاجز عن القعود**⊛که مريض ته د ناستے قدرت نه وی. نو په خپله شاه دے ستونی ستغ څملی. اود خپل سرلاندې دے اوچته شان تکيه کيږدی. چې د ناستے مشابه شی. چې رکوع او سجده په اشاره کول ممکن وی. خکه تکيه نه بغير تندرست کس اشاره نشی کولې. نو بيمار به ئې څه اوکړی. او پښے دے قبلې ته کړخوی. اود رکوع اوسجدې اشاره دے کوی.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خکه چې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی يُصَلِّي الْمَرِيضُ قَائِمًا چې بيمار دے په ولاړه لمونځ کوی فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ. که ددے قدرت ئې نه وی {فَقَاعِدًا نوپه ناسته دے کوی فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ. اوکه ددے ئې هم قدرت نه وی فَعَلَى قَفَاهُ. نوپه څټ دے څملی يُومِئُ إِيمَاءً. او اشاره دے کوی. فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ که داهم نشی کولې فَاللَّهُ تَعَالَى أَحَقُّ. نوالله تعالی زيات لائق دې بِقَبُولِ الْعُذْرِ مِنْهُ}[1] چې دده عذر قبول کړی.

**تشريح:- دليله**⊛دليل دنبی کريم ﷺ قول دے ﴿يصلي المريض قائما فان لم يستطع فقاعداً فان لم يستطع فعلى قفاه يومي ايماء فان لم يستطع فالله تعالى احق بقبول العذر منه﴾

**المذهبان في مراد الجزء الاخر من الحديث**⊛دحديث آخری جزء د ﴿فالله احق بقبول العذر منه﴾ په تفسير کې دعالمانواختلاف دے، ① بعضو عالمانو رحمهم الله وئيلی دی. چې په اشاره قدرت نه درلودی په صورت کې قضاء نه ساقطيږی، البته لمونځ مؤخر کولې شی. چې کله تندرست شی قضا دے راوړی. ددے حضراتوپه نيزبه ددے تفسير دا دې. چې الله تعالی د تاخير عذر قبلولو لپاره زيات لائق دې. ② اوبعضووئيلی دی. چې په دے حالت کې قضا ساقطيږی. ددے حضراتو په نيز تفسيردادې. چې الله تعالی د اسقاط عذر قبلولو زيات لائق دې. صاحب دعنايه هم دے قول ته اصح وئيلی دی.

## په اړخ په ملاسته د مونځ کولو حکم

﴿وَإِنِ اسْتَلْقَى عَلَى جَنْبِهِ﴾ اوکه بيمار په اړخ څملاسته ﴿وَوَجْهُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ﴾، اودده مخ د قبلې په اړخ وی ﴿جَازَ﴾. نوجائز دې. لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ دهغے حديث په وجه چې مونږ وړاندې روايت کړې دې.

**تشريح:- المذهبان في كيفية صلاة المستلقي**⊛ ① صاحب دقدوری رحمه الله وائی. چې بيمارکه په اړخ څملی. او په اشاره لمونځ اوکړی. په داسے حال کې چې دده مخ قبلې ته وی. نودا هم جائزده. دليل دعمران بن حصين رضی الله عنه حديث دې. چې په اول باب کې ذکر شوې دې. اود الله تعالی قول (الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى

(١) :غربه الزيلعی بهذا اللفظ (نصب الرايه (١٧٩\٢) وخرجت لهذه المسئلة فی تاليفی ،،سن الصلوة،، عن الحسين بن علی بن ابی طالب (رضی الله عنهما) عن النبی (صلی الله عليه وسلم) قال يصلی المريض قائما ان استطاع فان لم يستطع صلی قاعدا فان لم يستطع ان يسجد اوما وجعل سجوده اخفض من ركوعه فان لم يستطع ان يصلی قاعدا صلی علی جنبه الايمن مستقبل القبلة فان لم يستطع ان يصلی علی جنبه الايمن صلی مستلقيا رجله مما يلی القبلة كذا اخرجه البيهقی فی الصلوة باب ما روی فی كيفية الصلوة علی الجنب او الاستلقاء رقم ٣٤٩٣ (٣٠٧\٢)-

جُنُوبِهِمْ﴾(الایه) هم په دے دال دي.حاصل دادي.چي دعمران بن حصين ﷺ حديث ﴿فان لم تستطع فعلى الجنب تـومى ايماء﴾اود عبدالله بن عمر حديث ﴿فان لم يستطع فعلى قفا يومى ايماء﴾متعارض دی.ځکه چي په حديث دعمران ابن حصين ﷺ كي په اړخ په ملاسته لمونځ كول ذكر دی.اودعبدالله بن عمر ﷠ حديث كي په نيغه په ملاسته لمونځ كول ذكر دی.اود بيمار حالت دعذر حالت دي. په دے وجه په دے دواړوحالتونو كي په هر هيئت لمونځ كول جائز دی.

> إِلَّا أَنَّ الْأَوْلٰى هِيَ الْأُوْلٰى عِنْدَنَا خو مخكينے هيئت زموږ په نيز غوره دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ.د امام شافعی ﷬ اختلاف دي

**تشريح:-** البته په غوره والی كي اختلاف دي.زموږ په نيز په اولنی هيئت(په نيغه ملاسته) لمونځ كول غوره دی.② اود امام شافعی اود امام مالك ﷬ په نيز په هيئت ثانيه(په اړخ) لمونځ كول غوره دی.

> لِأَنَّ إِشَارَةَ الْمُسْتَلْقِيْ تَقَعُ إِلٰى هَوَاءِ الْكَعْبَةِ.ځكه چي دملاست اشاره دكعبے دهواء په اړخ پريوځی وَإِشَارَةَ الْمُضْطَجِعِ عَلٰى جَنْبِهِ إِلٰى جَانِبِ قَدَمَيْهِ.او په اړخ دملاست اشاره دده د دواړو قدمونو په اړخ پريوځی وَبِهِ تَتَأَدَّي الصَّلَاةُ.اوهم په دے لمونځ اداكيږی.

**تشريح:- وجه ترجيح مذهب الاحناف** ﷬ ۞اوزموږ په نيزد غوره والی وجه داده.چي په نيغه ملاسته دلمونځ ادا كولواشاره دكعبے فضا په اړخ كيږی.اوپه اړخ ملاستے سره دمونځګذار اشاره دده قدمونو اړخ ته كيږی .اولمونځ په دے اداكيږی.چي اشاره دكعبے د فضا اړخ ته وی.په دے وجه په نيغه ملاسته لمونځ اداكول غوره دی.

### د سر د اشارې نه د عاجز كس مونځ

> ﴿فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْإِيْمَاءَ بِرَأْسِهِ﴾ اوكه مريض په خپل سرهم د اشارے قدرت نه لری أُخِّرَتِ الصَّلَاةُ عَنْهُ.نوده ځخه به لمونځ موخركول شی وَلَا يُوْمِئُ بِعَيْنَيْهِ.اواشاره به نه كوی.په خپلوستركو وَلَا بِقَلْبِهِ،او نه په خپل زړه وَلَا بِحَاجِبَيْهِ[1] اونه په خپلو وريځو سره

**تشريح:- المذهبان في تاخيرالصلاة عن العاجز عن الايماء**① ۞ شيخ ابوالحسن قدوری فرمائی.كه مرض دومره زيات شی.چي د سر په اشاره هم د لمونځ كاوه قدرت نه لری.نولمونځ دے روستو كړی.او په ستركو،زړه،او وريځوسره اشاره كول كافی نه دی.

> خِلَافًا لِزُفَرَ ﷬ ،د امام زفر ﷬ اختلاف دي.

**تشريح:-** امام زفر ﷬ وانی چي داسې مريض دے په خپلو ستركو او زړه سره په اشاره لمونځ كوی.اوچي كله تندرست شی.نواعاده دے اوكړی . هم ددے قائل امام شافعی ﷬ دي.

> لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ.د هغه حديث په وجه كوم چي مونږه مخكي روايت كړي دي.

**تشريح:- دلائل جمهورالاحناف** ﷬ ۞زمونږدليل هغه حديث دي.چي مخكي تيرشوې دے،يعني ﴿ان قـدرت ان تسجد على الأرض فاسجد وإلا فاوم براسك﴾په دے حديث كي دمقام بيانولو په موقع په سراكتفاء شوېده.كه دسرنه په علاوه اشاره كول جائزوه.نونبیكريم ﷺ به ضرور بيان كړې وه. د نبیكريم ﷺ بيان نـه فرمائيل دعدم جواز دليل دي.

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول علماءنا الثلاثة ﷬ وهو ظاهر الرواية عنهم كذا فى الخانية (٨٣\١) والبحر الرائق (١١٦\٢) ...رالمختار(٤٦٢\١) والهندية (١٣٧\١) نقلا عن القول الراجح (١٣١\١)-



> وَلِأَنَّ نَصْبَ الْإِبْدَالِ بِالرَّأْيِ مُمْتَنِعٌ او په دے وجه چي بدل په رائې سره مقرركول ممتنع دی

**تشريح:-** عقلی دليل دادي.چي اشاره په حقيقت كي د ركوع اوسجده بدل دي.او بدل په رائې سره مقرركول ممنوع دی.اوپه حديث كي صرف په سرسره د اشارے ذكردي.په ستركووغيره سره د اشارے كاوه ذكر نشته.نوكه په دے ځيزونوسره د اشارے كاوه اجازت وركړې شی.نود بدل په رائې سره مقرركول لازميږی.حالانكه داجائزنه دی.په دے وجه په ستركو وغيره اشاره كول كافی نه دی.

> وَلَا قِيَاسَ عَلَى الرَّأْسِ او په سر قياس كيدې نه شي لِأَنَّهُ يَتَأَدَّي بِهِ رُكْنُ الصَّلَاةِ..ځكه چي په سرسره دلمونځ يو ركن اداكيږی دُوْنَ الْعَيْنِ.نه داچي په ستركو وَأُخْتَيْهَا اوددے په خويندو(يعنی په وريځو او زړه)

**تشريح:- السوال** ۞اوكه تاسودا اوائې.چي دا په رائې سره د بدل مقررول نه دی.بلكه داخودسر په حكم قياس كول دی.يعنی څنګه چي په سرسره اشاره كول دركوع اوسجده لپاره كافی دی.هم دغه ډول په ستركو وغيره سره اشاره كول هم كافی كيدل پكاردی.

**الجواب**۞نوځواب به داوی.چي ستركےوغيره په سر قياس كول تيك نه دی.ځكه چي په سرسره د لمونځ يو ركن يعنی سجده اداكيږی.او په ستركو،زړه،او وريځوسره سجده نه اداكيږی. يعنی ددے درے واړه اعضاؤ دسجدې په اداكولو كي څه دخل نشته،نوپه دے توپير يو په بل قياس كول،څنګه تيك كيدےشی.

> وَقَوْلُهُ أُخِّرَتْ عَنْهُ إِشَارَةٌ إِلٰى او د ابوالحسين قدوری ﷬ قول ﴿اخرت عنه﴾ دے خبرے اړخ ته اشاره ده أَنَّهُ لَا تَسْقُطُ الصَّلَاةُ عَنْهُ.چي په دے لمونځ نه ساقطيږی وَإِنْ كَانَ الْعَجْزُ أَكْثَرَ مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ.او اګرچي عجز ديوے ورځي اوشپې نه زيات وی إِذَا كَانَ مُفِيْقًا،په شرط ددےچي داكس په آرام اوپه سكون كي وی هُوَ الصَّحِيْحُ.هم داصحيح ده لِأَنَّهُ يَفْهَمُ مَضْمُوْنَ الْخِطَابِ.ځكه چي دامريض دخطاب مضمون پيژنی

**تشريح:- صحة قول تاخيرالصلاة عنه**۞ ①دقدوری‌عبارت ﴿اخـرت عنـه﴾سره ددے‌خبرےنشاندهی كيږی.چي دداسےمريض دذمے نه لمونځ نه ساقطيږی.بلكه لمونځ به دده په ذمه پاته وی، د صحت په بنه كيدو به قضا واجب وی.اګرچي دا حالت ديوے ورځي نه زيات وی.په دے شرطچي په دومره وخت كي مريض په هوش كي پاتې شوې وی.هم دا قول صحيح دي.ځكه‌چي دا مريض‌چي كله په آرام اوپه هوش كي وی.نود لمونځ د ادا حكم پيژنی.اوچي حكم پيژنی.نوده ته حكم متوجه دي.نو په دے وجه په ده د ادا كاوه حكم واجب شو.خود عذر په وجه بالفعل د نه ادا كولومهلت وركړې شو.تردېچي قدرت حاصل شی.

> بِخِلَافِ الْمُغْمٰى عَلَيْهِ.ددے په خلاف هغه كس‌چي په هغه بےهوشی راغلی وی.

**تشريح:-** ددے په خلاف هغه كس‌چي هغه ديوے ورځي نه زيات بےهوشه پاتې شو.چونكه دے دخطاب دفهم نه عاجزدي.ځكه به لمونځ دده دذمےنه لمونځ ساقط شی، ②بعضوحضراتو وئيلےدی.چي دبيمارۍ هغه حالت چي په هغې كي په سرسره اشاره هم قدرت نه وی.كه ديوے ورځي نه زيات وی.نوپه ده به قضاء واجب نه وی.اوكه د يوے ورځي شپې نه كم دي.نوقضاء به لازم وی.

### په قيام قادر او د ركوع او سجدې نه د عاجز مونځ

> وَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ وكه مريض ته په قيام قدرت وی وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ .او په ركوع او سجده قدرت نه وی لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ.نو په ده قيام لازم پاتې نشو وَيُصَلِّيْ قَاعِدًا.او په ناسته دے اوكړی. يُوْمِئُ إِيْمَاءً په داسې حال كي چي اشاره كوی

**تشريح:- سقوط القيام عن عاجزالركوع والسجود**۞ ①مسئله داده.كه يوكس داسې بيمار وی.چي دے په قيام قادر وی.خوپه ركوع اوسجده قدرت نه لری.نو په ده قيام لازم نه دي.بلكه په ناسته دے په اشاره لمونځ ادا كړی.

لِأَنَّ رُكْنِيَّةَ الْقِيَامِ په دے وجه چې دقيام ركنيت په دے غرض دي لِلتَّوَسُّلِ بِهِ إِلَى السَّجْدَةِ. چې د قيام په ذريعه سجده اداكوى لِمَا فِيهَا مِنْ نِهَايَةِ التَّعْظِيمِ. ځكه چې په دا سے سجده كي زيات تعظيم دي. فَإِذَا كَانَ لَا يَتَعَقَّبُهُ السُّجُودُ خو كله چې قيام دا سے وى. چې د هغې نه روسته سجده نه وى لَا يَكُونُ رُكْنًا. نو قيام ركن نه پاتې كيږى فَيَتَخَيَّرُ. په دے وجه مريض ته اختيار دے

تشريح:- دليله ⊛دليل دادي. چې قيام فقط په دے غرض ركن دي. چې دا د سجدې اداكولو وسيله وى. او قيام دسجدې ادا كاوه وسيله ځكه ده. چې د قيام نه روسته په سجده كولو كي بے انتها تعظيم دے، نو كله چې د قيام نه روسته سجده نه وى. هغه قيام به ركن نه وى. او چې كله په دے حالت كي قيام ركن پاتې نشو. نو بيمار لمونځ گذار ته په قيام كولو او نه كولو كي اختيار دي.

وَالْأَفْضَلُ هُوَ الْإِيمَاءُ قَاعِدًا. افضل په ناسته اشاره كول دى لِأَنَّهُ أَشْبَهُ بِالسُّجُودِ. ځكه چې په ناسته اشاره كول حقيقى سجدې سره زيات مشابه دى.

تشريح:- البته افضل دادى. چې په ناسته ركوع او سجده په اشاره كوى. ځكه چې په ناسته دسجده اشاره كول دحقيقى سجده سره زيات مشابه ده. ځكه چې په ناسته اشاره كاوه په وخت سر مځكې ته زيات نزدے شى. په نسبت په ولاړه داشاره كولو.

## په مانځه كې د قيام نه عاجزه كيدل

(وَإِنْ صَلَّى الصَّحِيحُ بَعْضَ صَلَاتِهِ قَائِمًا) او كه تندرست كس دلمونځ څه برخه په ولاړه اوكړه ثُمَّ حَدَثَ بِهِ مَرَضٌ بيا ده ته مرض پيدا شو يُتِمُّهَا قَاعِدًا. نو په ناسته دے لمونځ پوره كړى، يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ په دا سے حال كي چې ركوع او سجده كوى أَوْ يُومِئُ. يا اشاره كوى، إِنْ لَمْ يَقْدِرْ كه (په ركوع او سجده) قادر نه وى، أَوْ مُسْتَلْقِيًا نو په ملاسته (دے لمونځ پوره كړى) إِنْ لَمْ يَقْدِرْ كه (په ناسته) قادر نه وى.

تشريح:- جواز بناء الادنى على الاعلى ⊛مسئله داده. كه تندرست كس دلمونځ يوه برخه په ولاړه اداكړه، بيا په مينځ دلمانځه كي دا سے مرض پيدا شو. چې په قيام قادر نشو. نو كه په ركوع سجده قدرت لرى. په ناسته دے په ركوع او سجده لمونځ پوره كړى. او كه په ركوع او سجده قدرت نه لرى. نو د ركوع او سجدے اشاره دے اوكړى. او لمونځ دے پوره كړى. او كه دومره مريض شو. چې په ناسته هم قدرت پاتې نشو. نو په نيغه ملاسته دے لمونځ پوره كړى.

لِأَنَّهُ بِنَاءُ الْأَدْنَى عَلَى الْأَعْلَى ځكه چې ادنى په اعلى مبنى وى. فَصَارَ كَالِاقْتِدَاءِ نو د اقتداء په شان شو.

تشريح:- دليله ⊛دليل دادي. چې په دے درے واړو صورتونو كي د ادنى بناء په اعلى شوې ده. او د ادنى بناء په اعلى كول جائز دى. لكه چې د ادنى حال والا د اعلى حال والا اقتداء كول جائز دى. يعنى څنگه چې په ناسته د لمونځ كونكى په ولاړه لمونځ كونكى پسې اقتداء جائز ده. هم دغه ډول په خپله دخپل ځان په حق كي دا خبره جائز ده. چې دلمونځ اوله برخه په ولاړه اوكړى، بيا دعذر په وجه روستنۍ برخه په ناسته اوكړى.

## په اشاره د ركوع او سجدې نه په قيام قدرت موندل

(وَمَنْ صَلَّى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ لِمَرَضٍ) او څوك دمرض په وجه په ناسته په ركوع او سجده سره لمونځ كوى ثُمَّ صَحَّ بيا تندرست شو. بَنَى عَلَى صَلَاتِهِ قَائِمًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ (١) رحمهما الله د شيخينو رحمهما الله په

---

١) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى العناية (٤٦٠\١) والدرالمختار (٥٦٣\١) وتبيين الحقائق (٢٠٢\١) وخلاصة الفتاوى (١٩٦\١) نقلا عن القول الراجح (١٣٢\١)-



نيزدے په ولاړه په خپل لمونځ بناء اوكړى. وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائى اِسْتَقْبَلَ. د سرنه دے پيل اوكړى

تشريح:- المذهبان في بناء الركوع على القيام ⊛صورت دمسئلې. يو كس دمرض په وجه په ناسته په ركوع او سجدې سره د لمونځ يوه برخه ادا كړه. بيا دلمونځ په مينځ كي تندرست شو. په قيام قادر شو. ① نو د شيخينو رحمهما الله په نيزدے او دريږى. او په خپل لمونځ دے بناء اوكړى. ② او د امام محمد رحمه الله په نيزدے د سرنه لمونځ پيل كړى.

بِنَاءً عَلَى اخْتِلَافِهِمْ فِي الِاقْتِدَاءِ دا اختلاف د دوى په اقتداء كي په اختلاف مبنى دي وَقَدْ تَقَدَّمَ بَيَانُهُ. او د دے بيان مخكي تير شوېدى.

تشريح:- بناء الاختلاف فى المسئلة ⊛دامام محمد او دشيخينو رحمهما الله اصل اختلاف په دے خبره كي دي. چې قائم په قاعد پسې شاته اقتداء كولے شى او كه نه؟ امام محمد رحمه الله فرمائى. چې د قائم په قاعد پسې اقتداء كول جائز نه ده. او شيخين رحمهما الله فرمائى. جائز ده. چونكه د امام محمد رحمه الله په نيزد قائم په قاعد پسې اقتداء كول ناجائز ده. نو دحالت قيام دلمونځ بناء دحالت قعود په لمونځ پسې هم ناجائز ده. او د شيخينو رحمهما الله په نيزد قائم په قاعد پسې اقتداء كول چونكه جائز ده نو په خپل حق كي هم د حالت قيام د لمونځ په حالت قعود لمانځه بنى كول جائز دى.

## د اشارې نه په ركوع او قيام قدرت موندل

(وَإِنْ صَلَّى بَعْضَ صَلَاتِهِ بِإِيمَاءٍ) او كه دلمونځ يوه برخه ئې په اشارے سره اداكړه ثُمَّ قَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. بيا په ركوع او سجده قادر شو اسْتَأْنَفَ عِنْدَهُمْ جَمِيعًا). نو د آئمه ثلاثه په نيزدے لمونځ دوباره د سر نه اوكړى لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ اقْتِدَاءُ الرَّاكِعِ بِالْمُومِئِ. ځكه چې د ركوع كونكى د اشاره كونكى پسې اقتداء جائز نه ده فَكَذَا الْبِنَاءُ. هم دا حال د بناء دي.

تسهيل: المذهبان في بناء الركوع على الايماء ⊛مسئله: يو كس دعجز په وجه سره دلمونځ يوه برخه په اشارے اداكړه. بيا په مينځ دلمانځه كي په ركوع او سجده قادر شو. نو د آئمه ثلاثه ابوحنيفه. صاحبين رحمهما الله په نيز دے دوباره د سرنه لمونځ اوكړى. ② امام زفر رحمه الله فرمائى. چې په دے صورت كي هم بناء كول جائز دى.

ⓐبناء الاختلاف ⊛دليل دادي. چې زموږ په نيزد ركوع كونكى اشاره كونكى پسې اقتداء كول جائز نه دى. او د امام زفر رحمه الله په نيز جائز ده. هم دا حال د بناء دي.

## په نفلو كې د قيام بناء په قعود او د قعود بناء په قيام

(وَمَنْ افْتَتَحَ التَّطَوُّعَ قَائِمًا) او چا چې نفل په ولاړه پيل كړل ثُمَّ أَعْيَا. بيا ستړے شو لَا بَأْسَ نو په دے كي څه حرج نشته أَنْ يَتَوَكَّأَ عَلَى عَصًا أَوْ حَائِطٍ. چې دے په همسا يا په ديوال ډډه اولگوى أَوْ يَقْعُدَ). يا كينى. لِأَنَّ هَذَا عُذْرٌ ځكه چې دا عذر دي

تشريح:- جواز بناء القيام على القعود في النفل ⊛كه چا نفل لمونځ په ولاړه پيل كړو. بيا ئې په څه څيز ډډه اولگوله. نو كه د عذر د امله وى مثلاً ستړے شو. نو په دے كي هيڅ باك نشته.

وَإِنْ كَانَ الِاتِّكَاءُ بِغَيْرِ عُذْرٍ. او كه ډډه لگول بغير دعذره وى يُكْرَهُ. نو مكروه دي لِأَنَّهُ إِسَاءَةٌ فِي الْأَدَبِ. ځكه چې دا بے ادبى ده

تشريح:- رواية اتفاق الاحناف في كراهة الاتكاء في النفل من غير عذر ⊛او كه بغير د عذر نه وى. نو بعضو مشائخو

رحمهم الله وئيلي دي.چې دا په اتفاق سره د احنافو رحمهم الله مکروه دی. دکراهت وجه داده.چې بغيردعذره په ډډه لګولو کي ګستاخي او بےادبي ده.خوددے قول په بنا (بنياد) د امام ابوحنيفه رحمه الله ارخ نه بغيردعذره په ناسته او بغيردعذره په ډډه لګولو کښ توپير بيانول ضروري دی.خکه د امام صاحب رحمه الله په نيز بغيردعذره کښېنستل مکروه نه وی.اوبغيردعذره ډډه لګول مکروه وی.نووجه دفرق داده.چې په ابتداءکي په ولاړه نفل پيل کولوکي اوپه ناسته پيل کولوکي نفل کونکی ته اختيار دی.نودا اختيار به په انتهاء کښے هم بغيردکراهته پاتے وی.البته ده ته دا اختيار نشته.چې په نفل لمونځ کي پيل په ډډه لګولواوکړی.يا بغيرد ډډے لګولو نه اوکړی.چې په ابتداء کي دا اختيار نشته.په انتهاء کي به هم نه وی.

| |
|---|
| **وَقِيلَ** اوونيلي شوی دی **لَا يُكْرَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله .چې د ابوحنيفه رحمه الله په نيزمکروه نه دی **لِأَنَّهُ لَوْ قَعَدَ عِنْدَهُ بِغَيْرِ عُذْرٍ يَجُوزُ** خکه‌چې د دوی په نيزکه بغيردعذره کښېنستل جائزدی **فَكَذَا لَا يُكْرَهُ الِاتِّكَاءُ** .دغه ډول ډډه لګول هم مکروه نه دی |

**تشريح:- رواية عدم الكراهة عنه**﴿بعضومشائخ رحمهم الله وائی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدلمونځ په مينځ کي که ئې بغيردعذره ډډه اولګوله.نوبغيردکراهته جائزدی.دليل دادی.چې دامام صاحب په نيز بغيردعذره د نفل لمونځ په مينځ کي کښېنستل مکروه نه دی.نوډډه لګول به هم مکروه نه وی.خکه‌چې کښېنستل د قيام منافي‌دی.چې دا مکروه نه دی.نوډډه لګول‌چې د قيام منافي هم نه دی.هغه به په درجه اولی مکروه نه وی.

| |
|---|
| **وَعِنْدَهُمَا يُكْرَهُ**.اود صاحبينو رحمهما الله په نيزمکروه دی. **لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ الْقُعُودُ عِنْدَهُمَا** خکه‌چې ددوی په نيز کښېنستل نا جائزدی **فَيُكْرَهُ الِاتِّكَاءُ**.نوډډه لګول هم مکروه دی. |

**تشريح:-** دصاحبينو رحمهما الله په نيزبغيردعذره ډډه لګول مکروه دی.وجه ددے داده.چې ددوی په نيز بغير د عذره کښېنستل مکروه دی.نوډډه لګول به هم مکروه وی.

### بغيرعذره په ناسته د مونځ کولوکراهت

| |
|---|
| **(وَإِنْ قَعَدَ بِغَيْرِ عُذْرٍ** اوکه بغيرد عذره کيناستو **يُكْرَهُ بِالِاتِّفَاقِ)**.نوپه اتفاق مکروه دی **وَتَجُوزُ الصَّلَاةُ عِنْدَهُ**.[1] اود امام صاحب په نيزلمونځ جائز **وَلَا تَجُوزُ عِنْدَهُمَا** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز نا جائز دي **وَقَدْ مَرَّ فِي بَابِ النَّوَافِلِ**.او په باب النوافل کي دا مسئله تيره شوې ده. |

**تشريح:-** مسئله :که چا په ولاړه نفل لمونځ پيل کړو.بيا بغيردعذره کيناستو.نو په اتفاق سره مکروه دی.خود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د کراهت باوجود لمونځ جائزدے او د صاحبينو رحمهما الله په نيزپه دےصورت کي هډولمونځ نه دے جائز.په دےعبارت کي لږه شان تسامح ده.په دےطريقه‌چې صاحبين رحمهما الله په دے صورت کي دعدم جواز قائل دی.اوعدم جوازدکراهت سره متصف کيدےنشی.

نو دصاحبينو رحمهما الله دمسلك په بناء به ﴿يكره بالا تفاق﴾ونيل څنګه درست وی. دويمه خبره داده.چې په دے مسئله کي د امام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب په بيان کي دا وئيلي شوی دی. د نفل لمونځ په مينځ کي بغيردعذره کښېنستل مکروه دی.اوددے نه په مخکي مسئله کي احقر ليکلی دی.چې د امام صاحب په نيز بغيردعذره کښېنستل مکروه نه دی.نوتطبيق دادې.چې دمبسوط دبيان مطابق دحضرت امام صاحب صحيح قول دعدم کراهت دې.اويوقول دکراهت دې.نو په تيره شوېمسئله کي قول صحيح ذکر شوېدې.اوپه دے مسئله کي دوهم قول ذکرشوېدې.

[1]) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(١\٤٦٢) والكفاية (١\٤٦٢) والعنايى (١\٤٦١) وردالمحتار (١\٥٦٣) والهندية (١\١١٤) والبحرالرائق (٢\١١٧) نقلا عن القول الراجح (١\١٣٣)-



### بغيرد عذره په کيشتۍ کي د مونځ حکم

| |
|---|
| **(وَمَنْ صَلَّى فِي السَّفِينَةِ قَاعِدًا مِنْ غَيْرِ عِلَّةٍ** اوچا بغيرد بيمارۍ نه په روانه کښتۍ کي په ناسته لمونځ اوکړو **أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزجائزدي **وَالْقِيَامُ أَفْضَلُ** ..او ودريدل افضل دی. |

**تشريح:- صورالصلاة في السفينة**﴿صاحب دعنايه فرمائی.په کښتۍ کي لمونځ کونکےبه د قيام نه عاجز وی.يا به عاجز نه وی.① که عاجزوی.نوپه اتفاق سره په ناسته لمونځ کول جائزدی.② اوکه دقيام نه عاجز نه وی.نوددے هم دوې (دوه) صورتونه دی. کښتۍ به يا ولاړه وی.يا به روانه وی.① که اول صورت وی.نوپه اتفاق سره په ناسته لمونځ کول جائزنه دی.

**المذهبان في فرضية القيام في السفينة السائرة**﴿اوکه دوهم صورت وی.① نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بغيردځه بيمارۍ نه په ناسته لمونځ کول جائزدی.خوپه ولاړه کول افضل دی.

| |
|---|
| **وَقَالَا: لَا يُجْزِئُهُ** اودصاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه دي **إِلَّا مِنْ عُذْرٍ**[1]).خو په عذرسره. **لِأَنَّ الْقِيَامَ مَقْدُورٌ عَلَيْهِ** خکه‌چې په قيام دده قدرت حاصل دې **فَلَا يُتْرَكُ**.نودا به نشی پريښولې (پريخودې) |

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائی. بغيردعذره په ناسته لمونځ کول جائزنه دی.هم دامذهب د امام مالك .امام شافعی .او امام احمد رحمهم الله دې.

**دليل الصاحبين** رحمهما الله ﴿ دصاحبينو رحمهما الله له دليل دادې.په قيام دده قدرت حاصل دې.اود قدرت علی القيام په صورت کي قيام نشی پريښولې (پريخودې).نوپه دےصورت کي هم قيام نشی پريښولې (پريخودې).

| |
|---|
| **وَلَهُ**.اود امام صاحب رحمه الله دليل دادې **أَنَّ الْغَالِبَ فِيهَا مَهَالُ الرَّأْسِ** چې په کښتۍ کي په عامه توګه سر چورلی **وَهُوَ كَالْمُتَحَقِّقِ**..اودامتحقق په شان دې |

**تشريح:- دليل ابی حنيفة**﴿د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. په روانه کښتۍ کي په ولاړه لمونځ کولوسره په عامه توګه مهال سر (د سرچورليدل)راځی.اوغالب په منزلـه دمتحقق وی.مثلاً په ډډه اوده کيدوته حدث وائی. خکه‌چې په دےحالت کي په عام طوږد اعضاء د سستيدو په وجه باد خارجيږی.نو غالب دمتحقق په مرتبه کي ګرځولې شی.اود اودس ماتيدوحکم پرے لګولےشی.دغه ډول دلته کي هم د مهال سرغالب احتمال دمتحقق په مرتبه کي راکوزشوېدې.اودا ونيلي شی.ګوياچې دا کس د قيام نه عاجزدې.اوچې د قيام نه عاجزوی.نو په ناسته لمونځ کولوکي هيڅ قباحت نشته.البته د امام صاحب په نيزهم په ولاړه لمونځ کول افضل دی.خکه‌چې په ولاړه کول د اختلاف د شبه نه ډيره لرې ده.يعنی په ناسته لمونځ کاوه کي د عالمانواختلاف دې.خو په ولاړه دلمونځ کاوه په صورت کي به د اختلاف مشقت نه نجات ملاؤ شی.

| |
|---|
| **إِلَّا أَنَّ الْقِيَامَ أَفْضَلُ**.خوداچې قيام افضل دې **لِأَنَّهُ أَبْعَدُ عَنْ شُبْهَةِ الْخِلَافِ** خکه‌چې دا د شبه د خلاف نه لرې ده **وَالْخُرُوجُ أَفْضَلُ مَا أَمْكَنَهُ**..اوچې څومره قدرے ممکن وی.د کښتۍ نه بهر راوتل افضل دی **لِأَنَّهُ أَسْكَنُ لِقَلْبِهِ**.خکه‌چې په دے کي د زړه اطمينان وی |

**تشريح:- فضل الصلاة خارج السفينة**﴿صاحب دهدايه فرمائی.که ممکن وی.نود لمانځه لپاره د کښتۍ نه بهر راوتل افضل دی.خکه‌چې په دےکي دهريو زړه ته دټولو نه زيات اطمينان دې.که د کښتۍ نه وتل ممکن وی.اوددے باوجود رااُونه وتو.بلکه په کښتۍ کي ئې لمونځ اوکړونوهم جائزدې.

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(١\٥٦٣) ونورالايضاح (ص،٩٧) وطحطاوى (ص،٢٢٣) التاترخانية (١\٤٤) والهندية (١\١٤٣) نقلا عن القول الراجح (١\١٣٤)-

**وَالْخِلَافُ فِي غَيْرِ الْمَرْبُوطَةِ.** او اختلاف بغير تړلې شوې كښتۍ كې دې **وَالْمَرْبُوطَةُ كَالشَّطِّ** او تړلې شوې كښتۍ د سمندر د غاړې په شان ده **هُوَ الصَّحِيحُ**..دا صحيح ده.

**تشريح:- الاختلاف في السفينة السائرة** ⊛ صاحب دهدايه وائي. بغير د عذره په ناسته د لمونځ كولو د جواز او عدم جواز اختلاف په داسې كښتۍ كې دې. چې په غاړه تړلې شوې نه وي. بلكه روانه وي. او كومه كشتي چې د سمندر په غاړه تړلې شوې وي. هغه د سمندر د غاړې په شان ده. يعنې څنګه چې بغير د عذره په مځكه د سمندر په غاړه په ناسته كول جائز نه دي. هم دغه ډول تړلې شوې كښتۍ كې هم بغير د عذره په ناسته لمونځ كول جائز نه دي. صحيح قول هم دادې.

## د بېهوشۍ په سبب په زياتو قضا شوو مونځونو كې ترتيب

**(وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ أَوْ دُونَهَا** او په چا چې د پنځو مونځونو پورې يا د دې نه كمه بې هوشي وه **قَضَى** نو د هغې دې قضا راوړي **وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ** او كه د دې نه زيات وي. **لَمْ يَقْضِ)** نو قضا دې نه راوړي **وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ.** او دا استحسان دې

**تشريح:- المذهبان في المسئلة** ⊛ مسئله كه يو كس د پنځو مونځونو نه زيات بې هوشه شو. نو د دې قضا واجب نه ده. دا حكم په نظر د استحسان دې. په دې مسئله كې زموږ د عالمانو قاعده دا ده كه كه د اغماء په وجه فوت شوې مونځونه قليل وي. نو د دې قضائې راوړل واجب دي. او كه كثير وي. نو قضا راوړل ئې واجب نه دي.

**وَالْقِيَاسُ.** او قياس دادې **أَنْ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِ.** چې په ده قضا نشته. **إِذَا اسْتَوْعَبَ الْإِغْمَاءُ وَقْتَ صَلَاةٍ كَامِلٍ** چې بې هوشۍ پوره يو لمونځ راګير كړي **لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ.** نو عجز متحقق شو **فَأَشْبَهَ الْجُنُونَ.** اغماء د جنون مشابه شوه

**تشريح:-** د قياس تقاضا داده. كه بې هوشۍ د يو لمونځ پوره وخت راګير كړي. نو په ده به قضا واجب نه وي. هم د دې قائل امام مالك او امام شافعي رحمهما الله دي.

**دليلهما** ⊛ د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله دليل دادې. چې كله اغماء د لمونځ پوره وخت راګير كړي. نو عجز متحقق شو. او په قول د بعضو د جنون مشابه شو. نو د بعضو حضراتو په نيز. لكه څنګه چې د يو لمونځ د پوره وخت جنون قضا نه واجبوي. هم دغه ډول د اغماء په صورت كې هم قضا نه واجبوي.

**وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ.** او د استحسان وجه داده **أَنَّ الْمُدَّةَ إِذَا طَالَتْ.** چې د اغماء موده كله اوږده شي **كَثُرَتِ الْفَوَائِتُ.** نو قضا مونځونه به ډېر شي **فَيَتَحَرَّجُ فِي الْأَدَاءِ.** د دې په قضا كولو كې به په حرج كې پريوتل وي **وَإِذَا قَصُرَتْ.** او چې موده كمه وي. **قَلَّتْ** نو قضا به كمه وي **فَلَا حَرَجَ** څكه به په حرج كې نه پريوځي

**تشريح:- دليل الاحناف** رحمهم الله ⊛ په وجه د استحسان د احنافو عالمانو رحمهم الله دليل دادې. چې موده د اغماء اوږده شي. نو فوت شوي مونځونه به كثير شي. او س كه د كثير فوت شوو (مونځونو) د قضا حكم وركړې شي. نو دغه كس به په حرج كې واقع شي. او چونكه په شريعت اسلامي كې حرج لرې شوې دې. په دې وجه د دې كثير فوت شوو قضا واجب نه ده. او كه موده د اغماء كمه ده. نو فوت شوي مونځونه به قليل وي. او د كمو فوت شوو مونځونو قضا راوړلو كې هيڅ حرج نشته. څكه د كمو فوت شوو مونځونو د قضا راوړلو حكم وركړې شوې دې.

**استدلال الاحناف بطريقة اخرى** ⊛ د احنافو دليل داسې هم بيانيدې شي. چې عذر په درې قسمه دې. ① اول ممتد. لكه ماشوموالې. دا بالاجماع مانع د فرضيت دې. ② دوهم قاصر. لكه خوب دا په اتفاق سره مانع نه دې. نو كه د خوب په وجه لمونځ فوت شي. نو د دې قضا واجب ده ③ دريم چې په مينځمې درجه كې وي. جنون او اغماء. كه دا اوږده شي. نو د ممتد سره به مولښتي كولې شي. نو چې قضا به ساقطه وي. او كه كم وي. نو د



قاصر سره به لاحق كيږي. نو چې قضا به واجب وي.

**وَالْكَثِيرُ** او زيات دا دي **أَنْ تَزِيدَ عَلَى يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ** چې قضا ئې د يوې ورځ او شپې نه زياته شي **لِأَنَّهُ يَدْخُلُ فِي حَدِّ التَّكْرَارِ** څكه چې دا د تكرار په حد كې داخليږي

**تشريح:- حد الكثرة** ⊛ واضحه دې وي. چې د كثير حد دادې. چې فوت شوي مونځونه د يوې ورځې نه زيات شي. تر دې چې د شپې م لمونځ وخت تيرشي. څكه چې د شپې م لمونځ وخت تيرشي. نو په مونځونو كې به تكرار پيل شي. او د تكرار نه روسته د كثرت ښكاره كيدل ضروري دي.

**وَالْجُنُونُ كَالْإِغْمَاءِ.** او جنون د اغماء په شان دې. **كَذَا ذَكَرَهُ أَبُو سُلَيْمَانَ** رحمه الله هم دغه ډول ابو سليمان رحمه الله ذكر كړې دی.

**تشريح:- الجواب من قياس الامامين** رحمهما الله ⊛ صاحب دهدايه ﴿والجنون كالاغماء﴾ سره د امام مالك او د امام شافعي رحمهما الله د قياس ځواب وركړې دې. د خواب حاصل دادې. چې اغماء د جنون په شان نه ده. بلكه جنون د اغماء په شان دې. يعنې جنون كه د پنځو مونځونو نه زيات پاتې شو. نو قضا به ساقطيږي. او كه كم وي. نو نه به ساقطيږي. ابو سليمان رحمه الله هم دا ذكر كړې دی.

**بِخِلَافِ النَّوْمِ** په خلاف د اوده كيدو **لِأَنَّ امْتِدَادَهُ نَادِرٌ.** څكه چې د اوده كيدو دومره اوږديدل نا آشنا دی **فَيَلْحَقُ بِالْقَاصِرِ.** نو ويده (اوده) كيدل به د عذر قاصر سره مولښتي كولې شي

**تشريح:-** د دې په خلاف خوب چې كه دا زيات هم وي. نو بيا به هم قضا نه ساقطيږي. څكه چې د خوب اوږديدل نا آشنا دي. نو دا به د عذر قاصر سره مولښتي كولې شي. د عذر ممتد سره به نشي مولښتي كولې.

**ثُمَّ الزِّيَادَةُ تُعْتَبَرُ مِنْ حَيْثُ الْأَوْقَاتُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله [1]. بيا زيادت او كثرت د امام محمد رحمه الله په نيزد وختونو په اعتبار سره معتبر دې **لِأَنَّ التَّكْرَارَ يَتَحَقَّقُ بِهِ** څكه چې تكرار هم په دې سره متحقق كيږي

**تشريح:- المذهبان في متعلق الكثرة** ⊛ احناف عالمان رحمهم الله په دې متفق دي. چې د كثير حد دادې. چې قضا مونځونه د يوې شپې ورځې نه زيات شي. خو په دې كې اختلاف دې. چې دا زياتوالې ﴿من حيث الاوقات﴾ معتبر دې. او كه ﴿من حيث الساعات﴾ معتبر دې. ① امام محمد رحمه الله فرمائي. چه ﴿من حيث الأوقات﴾ معتبر دې. يعنې كه پنځه مونځونه فوت شول. او د شپې م لمونځ وخت تير شو. نو كثرت به ثابت شي. او د كثرت فوائت په وجه به قضا واجب نه وي. او كه د شپې م لمونځ پوره وخت نه وي تير شوې. بلكه څه ساعتونه تير شوي دي. نو د امام محمد رحمه الله په نيز كثرت نه ثابتيږي. او د ده د ذمې نه قضا نه ساقطيږي. صاحب دهدايه رحمه الله د امام محمد رحمه الله دليل دا ذكر كړې دې. چې تكرار به هم په شپې و مونځونو متحقق كيږي. او د شپې و مونځونو فوت كيدل ﴿مفضي إلى الحرج﴾ دي. نو دا قضا ساقطونكې دي. نو د كثرت په تحديد كې د مونځونو فوت كيدل معتبر دي.

**وَعِنْدَهُمَا مِنْ حَيْثُ السَّاعَاتُ.** او د شيخينو رحمهما الله په نيز په لمحاتو سره شمارلې شي. **هُوَ الْمَأْثُورُ عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ عُمَرَ** رضي الله عنهما **والله اعلم بالصواب** هم داد حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه نقل دی. والله اعلم بالصواب .

**تشريح:-** شيخين رحمهما الله وائي. چې د كثرت په تحديد كې ساعتونه (لمحات) معتبر دي. وختونه معتبر نه دي. يعنې د يوې ورځې شپې نه كه يو دوې (دوه) ساعتونه هم زيات شي. نو كثرت نه ثابتيږي. هم دا د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه منقول دي.

[1]) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير (۱\۴۶۳) ورد المحتار (۱\۵۶۴) والبحر الرائق (۲\۱۱۸) والتاتارخانية (۲\۱۲۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۴۳۶)

**ثمرة الاختلاف**◎ داختلاف ثمره په دے صورت کې ښکاره کیږی. چې په یوکس د ساختئ په وخت بے هوشی راغله. بیا بله ورځ د زوال نه یوساعت مخکې ئې افاقه راغله. (په هوش کې راغے) . نودا د ساعتونو (لمحاتو) په اعتبارسره د یوے ورځې شپې نه زیات دي. دشیخینو رحمهما الله په نیز به په ده قضا واجب نه وی. اود امام محمد رحمه الله په نیز به په ده قضا واجب وی. ځکه چې په دے صورت کې د مونځونو په مینځ کې په پنځو مونځونو اضافه نه ده شوې. صحیح حکم خدا ئې ته ښه معلوم دي.

## باب في سجدة التلاوة

ژباړه:- (دا) باب د سجده تلاوت (په بیان) کې دي.

**تشریح:- الربط بما قبله**◎ مناسب خبره داوه. چې سجده تلاوت ئې د سجده سهو نه فوراً روسته ذکر کړې وې. ځکه چې په دے دواړو کې هریوسجده ده. خود مریض لمونځ دعارض سماوی په وجه دي. اوسهوهم په عارض سماوی سره وی. په دے مناسبت سره ئې د سجده سهو نه روسته دمریض لمونځ بیان اوکړلو. په دے مناسبت سره د سجده سهو نه روسته دمریض صلاة بیان شو. نود سجده تلاوت بیان لازماً مؤخرشو.

**نوعیة اضافة السجدة الی التلاوة**◎ په سجده تلاوت کې دحکم اضافت سبب ته شوېدې. ځکه چې د سجده تلاوت سبب هم تلاوت دي. خوکه یوکس اعتراضاً دا اُووائی. چې د تلاوت نه بغیرسماع هم د سجده تلاوت سبب دې. نوداسې وئیل پکاروو. چې «سجود التلاوت و السماع» ددے ځواب دا دې. چې تلاوت څنګه د سجدې سبب دې. دغه ډول د سماع هم سبب دې. د تلاوت ذکرمن وجه د سماع په ذکر هم مشتمل دې. په دے وجه د تلاوت په ذکر اکتفاء شوېده.

### په قران کریم کې د سجدو تعداد

**قَالَ** صاحب د قدوری وانی **سُجُودُ التِّلَاوَةِ فِي الْقُرْآنِ أَرْبَعَ عَشْرَةَ** چې په قران کې د تلاوت سجدې ټولے څوارلس دی **فِي آخِرِ الْأَعْرَافِ**. د سورة اعراف په آخرکې **وَفِي الرَّعْدِ** په سورة رعد کې . **وَالنَّحْلِ** په سورة نحل کې. **وَبَنِي إِسْرَائِيلَ** په سورة بنی اسرائیل کې **وَمَرْيَمَ** په سورة مریم کې **وَالْأُولَى فِي الْحَجِّ**. رومبئ سجده په سورة حج کې **وَالْفُرْقَانِ**. په سورة فرقان کې **وَالنَّمْلِ**. په سورة نمل کې . **والم تَنْزِيلُ** په سورة الم تنزیل کې **وَص**. په سورة صٓ کې **وَحم السَّجْدَةِ** په سورة خم السجده کې. **وَالنَّجْمِ**. په سورة النجم کې **{وَإِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ}**. په سورة اذا السماء انشقت کې **وَاقْرَأْ**. او په سورة اقرا کې **كَذَا كُتِبَ فِي مُصْحَفِ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ** دغه ډول دحضرت عثمان رضی الله عنه په مصحف کې لیکلی شوی دی **وَهُوَ الْمُعْتَمَدُ**..او هم دا معتمد دی

**تشریح:-** صاحب د قدوری وانی. چې په قرآن کریم کې آیات سجده څوارلس دی.

① د سورة اعراف په آخرکې (إِنَّ الَّذِينَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ۩) (پ۹ ع۱۴)
② په سورة رعد کې (وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَظِلَالُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ۩)(پ۱۳ ع۸)
③ په سورة نحل کې (يَخَافُونَ رَبَّهُمْ مِنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ۩) (پ۱۴ ع۱۲)
④ په سورة بنی اسرائیل کې (وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا۩) (پ۱۵ ع۱۲)
⑤ په سورة مریم کې (إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا۩) (پ۱۶ ع۷)
⑥ د سورة حج ورومبئ سجد (وَمَنْ يُهِنِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُكْرِمٍ ۚ إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ۩) (پ۱۷ ع۹)
⑦ په سورة فرقان کې (وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا۩) (پ۱۹ ع۳)
⑧ په سورة نمل کې (اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ۩) (پ۱۹ ع۱۷)
⑨ په سورة سجدة (الم تنزیل) کې (إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ۩) (پ۲۱ ع۱۵)
⑩ په سورة صٓ کې (فَغَفَرْنَا لَهُ ذَٰلِكَ ۖ وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ۩) (پ۲۳ ع۱۱)
⑪ په سورة خم سجده کې (فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا فَالَّذِينَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْأَمُونَ۩)(پ۲۵ ع۱۹)
⑫ په سورة النجم کې (فَاسْجُدُوا لِلَّهِ وَاعْبُدُوا۩) (پ۲۷ ع۷)
⑬ په سورة اذا السماء انشقت کې (وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ۩) (پ۳۰ ع۹)
⑭ په سورة علق کې (وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ۩)پ۳۰ ع۲۱)

صاحب دهدایه ددے څوارلسو سجدو په ځایونو دمصحف عثمانی نه استدلال کړې دې. اومصحف عثمانی معتمد دې.

**وَالسَّجْدَةُ الثَّانِيَةُ فِي الْحَجِّ لِلصَّلَاةِ عِنْدَنَا**. او په سورة حج کې دویمه سجده زموږ په نیزد لمونځ اړه کې ده

**تشریح:- المذهبان في تعین السجدات**◎ «و السجدة الثانية فى الحج.. .الخ» د عبارت نه یو اختلاف ته اشاره ده. هغه داچې د امام شافعی رحمه الله په نیزهم آیات : سجدے څوارلس دی. خوددوی په نیز په سورة حج کې دواړه سجدې سجده تلاوت دی. او په سورة ص کې سجده د تلاوت نشته. بلکه سجده د شکرده. او زموږ په نیزد سورة حج رومبئ سجده. سجده تلاوت ده. د دویمے سجدې نه د لمانځه سجده مرادده. د تلاوت سجده مراد نه ده . اوپه سورة ص کې زموږ په نیز سجده تلاوت ده.

**دلیل الشافعی رحمه الله**◎ په سورة حج کې په دوو سجدوکیدو د امام شافعی رحمه الله مستدل د عقبه بن عامر رضی الله عنه حدیث دے «ان رسول الله ﷺ قال فضلت الحج بسجدتين من لم يسجدهما لم يقرأهما» یعنی سورة حج په دوو سجدو فضیلت ورکړې شوې دې. چاچې دا دواړه اونکړې. لکه چې دائې اونه وئیله.

**دلیل الاحناف رحمهم الله**◎ زمونږ دلیل دادې. ابن عباس اود ابن عمر رضی الله عنه نه منقول دی «قالا سجدة التلاوة فى الحج هى الأولى و الثانية سجدة الصلاة» فرمائی چې په سورة حج کې د تلاوت سجده رومبئ ده. اودویمه د لمانځه سجده ده. ددے تائید دے نه هم کیږی. چې دویمه سجده ئې رکوع سره مولښتی ذکرکړې ده. لکه چې فرمائیلے ئې دی «و اركعوا و اسجدوا» قاعده ده. چې کومه سجده د رکوع سره مقترنه وی. د هغے نه د لمانځه سجده مراد وی. لکه چې حضرت مریم ته په خطاب کې فرمائیلی شوی دی «واسجدى واركعى»

**الجواب من مستدل الشافعی رحمه الله**◎ اود عقبه بن عامر رضی الله عنه دحدیث ځواب دادې. دنبی کریم ﷺ د قول (یعنی فضیلت د سورة حج په سجدتینو) تاویل دا دې. رومبئ سجده د تلاوت ده. اودویمه سجده د لمانځه ده.

**دلیل الشافعی لسجدة سورة، ص،**◎ پاتې شوداچې په سورة صٓ کې په سجده شکرکیدو. د امام شافعی رحمه الله دلیل څه دې. نودصاحب عنایه د بیان مطابق داحدیث مستدل دے «تلاقى خطبه سورة صٓ فتشزن الناس السجود فقال علام تشزنتم انما توبة نبى وقال ﷺ سجدها داؤد توبة و نحن نسجدها شكرا» یعنی نبی کریم ﷺ په خپله خطبه کې د سورة صٓ تلاوت اوفرمائلو. (د سجده آیت د تلاوت په وخت) خلګ ود سجدے کاوه تیاری اوکړه. نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل. تاسو خلګ وسجدے لپاره ولے تیارشوئ. داخود نبی توبه ده. او د نبی کریم ﷺ قول دې. چې ددے ځائې کې حضرت داؤد علیه السلام سجده کړې ده . د توبے په طور . اومونږ سجده کوو د شکر په طور.

**الجواب من مستدل الشافعی رحمه الله**◎ زمونږ دا ړخه ددے حدیث ځواب دادې. چې سجده شکرد سجده تلاوت منافی نه ده. ځکه چې هیڅ یو عبادت داسے نه دې. چې په هغے کې د شکر معنی نه وی. اودا هم ثابته ده. چې نبی کریم ﷺ دخطبے په مهال د تلاوت سجده کړې ده. په دے په سورة ص کې د سجدې په آیت د سجدې د تلاوت ثابت شو. اوکه داخبره اومنلے شی. چې نبی کریم ﷺ په دے موقع سجده نه ده کړې. نودا د جواز تاخیرد تعلیم لپاره وو. ددے د پاره نه وو. چې دلته د تلاوت سجده واجب نه ده.

**تائيد الاحناف** رحمهم الله ⊛ زمونږ د مذهب تائيد د دے نه هم كيږي. چې يو صحابي ﷺ اووئيل. اے د الله رسوله ﷺ په دے اړه كي ستاسوخه رائي ده. چې اوده كس په خوب كي اووينې. چې زه سورة ص ليكم چې كله د سجدې خائې ته اورسيدم. نوقلم اودوات سجده اوكړه. داچې نبي كريم ﷺ واوريدل. نواونې فرمائيل. چې ددوات اوقلم په نسبت موږ زيات حقداريو. چې سجده اوكړو. نونبي كريم ﷺ حكم وركړو. ترديچې د سجدې آيت اووئيلې شو. اونبي كريم ﷺ دصحابو رضي الله عنهم سره سجده اوكړه.

**وَمَوْضِعُ السَّجْدَةِ فِي حم السَّجْدَةِ عِنْدَ قَوْلِهِ {لَا يَسْأَمُونَ} فِي قَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ**. او په حم السجده كي د سجدے خائې دحضرت عمر ﷺ د قول مطابق په ..لا يسامون .. دې. **وَهُوَ الْمَأْخُوذُ لِلِاحْتِيَاطِ** اودا قول د احتياط په وجه اخستے شوېدې.

**تشريح:- تعين موضع السجود في ،،حم،، السجدة** ⊛ علامه مرغيناني وائي. په حم سجده كي آيت د سجدې په «لا يسامون» دې. لكه چې دحضرت عمر ﷺ قول دې. اوهم په دے عمل كولو كي احتياط دې.

## په په تالي او سامع د تلاوت د سجدې وجوب

**وَالسَّجْدَةُ وَاجِبَةٌ فِي هَذِهِ الْمَوَاضِعِ** اوسجده كول په دے خايونو كي واجب ده. **عَلَى التَّالِي** په تلاوت كونكي **وَالسَّامِعِ** اوپه اوريدونكي هم **سَوَاءٌ قَصَدَ سَمَاعَ الْقُرْآنِ أَوْلَمْ يَقْصِدْ**. كه د قران اوريدو اراده ئې كړې وي اوكه نه

**تشريح:- وجوب سجدة التلاوة** ⊛ ① امام ابوالحسن قدوري رحمه الله وائي. چې په ذكرشوي څوارلسو مقاماتو سجده كول په قاري اوسامع دواړوواجب ده. كه سامع د آوريدو قصد كړې وي اوكه نه.

**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** څكه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي {**السَّجْدَةُ عَلَى مَنْ سَمِعَهَا**..چې سجده په هغه چا هم ده. چاچې واوريده **وَعَلَى مَنْ تَلَاهَا**[1]} او په هغه هم ده. چاچې اووئيله **وَهِيَ كَلِمَةُ إِيجَابٍ**. اوداكلمه د ايجاب ده **وَهُوَ غَيْرُ مُقَيَّدٍ بِالْقَصْدِ**. اودا په قصد مقيد نه ده.

**تشريح:- دليله** ⊛ دليل داحديث دے «سجدة على من سمعها و على من تلاها» وجه استدلال دا دې. چې په حديث كي لفظ د "على" راغلے دې. چې په الزام دلالت كوي. اودا حديث چونكه د قصد په قيد مقيد نه دې. ددے وجې به په هر اوريدونكي سجده تلاوت واجب وي. كه داوريدو نيت ئې كړې وي. اوكه نه.

## د مقتدي په تلاوت د سجده تلاوت حكم

**(وَإِذَا تَلَا الْإِمَامُ آيَةَ السَّجْدَةِ** اوكله چې امام آيت د سجدې تلاوت كړو **سَجَدَهَا وَسَجَدَهَا الْمَأْمُومُ مَعَهُ**. نوامام دے سجده اوكړي. اوده سره به مقتدي هم سجده كوي. **لِالْتِزَامِهِ مُتَابَعَتَهُ** څكه چې مقتدي د امام متابعت په خپل ځان لازم كړې دې.

**تشريح:- وجوب السجدة على الماموم** ⊛ مسئله دا ده. كه امام دسجدې دآيت تلاوت اوكړو. نوامام دے په لمانځه كي دستي سجده اوكړي. اوده سره دے مقتديان هم سجده اوكړي.

**دليله** ⊛ دليل دادې. چې مقتدي د اقتداء په نيت د امام تابعداري په خپل ځان لازم كړې ده. په دا سے صورت كي كه مقتدي دامام سره سجده اونكړي. نود امام مخالفت به لازم شي.

**(وَإِذَا تَلَا الْمَأْمُومُ** اوچې مقتدي تلاوت اوكړي **لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ وَلَا الْمَأْمُومُ** نه به امام سجده كوي اونه مقتدي **فِي**

(۱) غربه الزيلعي رحمه الله ثم قال و اخرج ابن ابي شيبة في مصنفه عن ابن عمر (رضي الله عنهما) انه وقال محقق نصب الراية احمد شمس الدين وفي البخاري في سجود القران باب ۱۰ تعليقا بلفظ انما السجدة على من استمعها (نصب الراية ۱۸۲\۲)-



**الصَّلَاةِ وَلَا بَعْدَ الْفَرَاغِ)**. نه په لمانځه كي او نه د لمانځه د فراغت نه روسته **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** رحمهما الله [1]. د ابو حنيفه او ابو يوسف رحمهما الله په نيز

**تشريح:- المذهبان في وجوب السجدة بقراءة الماموم** ⊛ ① اوكه مقتدي آيت د سجدې تلاوت كړي. نود شيخينو رحمهما الله په نيز امام اومقتدي دواړه دے سجده نه كوي. نه په لمانځه كي او نه د لمانځه نه پس. دا دعامو عالمانو رحمهم الله مذهب دې.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله. اوامام محمد رحمه الله فرمايي **يَسْجُدُونَهَا إِذَا فَرَغُوا**. چې كله دلمونځ نه فارغ شي. نوامام او مقتدي واړه دے سجده اوكړي **لِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَقَرَّرَ**. څكه چې سبب موجود شوېدې **وَلَا مَانِعَ** اومانع هيڅ نشته.

**حل اللغة:** ① **تقرر، تقرر تقريراً**: ثابت كيدل

**تشريح:-** حضرت امام محمد رحمه الله فرمائي. چې امام كله د لمانځه نه فارغ شي. نوواړه دے سجده اوكړي.

**دليله** ⊛ دليل دادې. دسجدې سبب يعني دمقتدي د سجده آيت لوستل اود پاته حضراتو دا اوريدل موجود شو. او مانع د سجدې يعني ددوي په لمانځه كي مشغوليت لرے شو. او قاعده ده. چې كله د يوځيز سبب اوموندے شي. اومانع لرے شي. نوهغه شي په يقين سره متحقق كيږي. په دے وجه دلمونځ د فراغت نه روسته په امام اومقتدي دواړوسجده واجب ده.

**بِخِلَافِ حَالَةِ الصَّلَاةِ**. په خلاف د لمانځه دحالت **لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى خِلَافِ وَضْعِ الْإِمَامَةِ أَوِ التِّلَاوَةِ**. څكه رسول كوي هغه شي ته چې خلاف دے د وضع د امامت او تلاوت نه

**حل اللغة:** ① **يوذي، ادى نادية**: اداكول

**تشريح:- وجه تاخيرالسجدة عن حالة الصلاة** ⊛ ددے په خلاف دلمونځ حالت دې. يعني په لمانځه كي دے امام اومقتدي دواړه سجده نه كوي. څكه چې په لمونځ كي د سجدې كاوه په صورت كي د امامت د وضع خلاف لازميږي. يا د تلاوت د وضع خلاف لازميږي. څكه چې مقتدي چاچې د سجدې آيت تلاوت كړې دې. مخكي به هغه سجده كوي. يا به امام مخكي سجده كوي. كه تالي يعني مقتدي مخكي سجده اوكړي. او امام دده متابعت اوكړو. نود امام د وضع خلاف لازميږي. يعني امام چې متبوع وو. هغه به تابع شي. اومقتدي چې تابع وو. هغه متبوع به شي. اوكه امام مخكي سجده اوكړي. او تالي يعني مقتدي د هغه متابعت اوكړي. نود تلاوت دموضوع خلاف لازميږي. څكه چې تالي د سامع امام وي. نود تالي د سجدې مقدم كيدل واجب دي. نبي كريم ﷺ تالي (تلاوت كونكي) ته فرمائيلي دي «كنت امامنا فلو سجدت لسجدنا معك» ته زمونږ امام وې. كه تا سجده كړې وه. نوتا سره به مونږ هم سجده كړې وه. حاصل داچې په تالي د سجدې وجوب مقدم دې. او دلته كي معامله برعكس شوه. چې امام سجده مخكي اوكړي. اوتالي روسته. بهر حال د لمانځه په حالت كي سجده كولو سره څه نه څه خرابي لازماً راځي. ددے وجې د لمونځ په حالت كي دے نه امام سجده كوي او نه مقتدي.

**وَلَهُمَا**، او د شيخينو رحمهما الله دليل دادې **أَنَّ الْمُقْتَدِيَ مَحْجُورٌ عَنِ الْقِرَاءَةِ** چې مقتدي د قرات نه بند كړې شوې دې. **لِنَفَاذِ تَصَرُّفِ الْإِمَامِ عَلَيْهِ**. څكه چې په ده د امام تصرف نافذ دې **وَتَصَرُّفُ الْمَحْجُورِ لَا حُكْمَ لَهُ** اود محجور التصرف هيڅ حكم نشته

**حل اللغة:** ① **محجور**: منع كړې شوې، لرې كړې شوې

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في الدرالمختار (۵۶۶\۱) وشرح الوقاية (۱۹۱\۱) وخلاصة الفتاوى (۱۸۵\۱) والبحرالرائق (۱۲۰\۲) والهندية (۱۳۳\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۳۶\۱)-

**تشريح:- دليل الشيخين** ﷭ د شيخينو ﷭ دليل دادي.امام پسې شاته مقتدى لپاره قرات كول ممنوع دى.مقتدى د پاره قرات كول ځكه ممنوع دى.چې د امام تصرف په ده نافذ دې. يعنې د امام قرات دمقتدي د ارخه هم قرات شمارلے شى.لكه چې د نبى كريم ﷺ ارشاد دے ﴿من كان له إمام فقراءة الإمام لـه قـراءة﴾ بهرحال مقتدى ممنوع عـن القرات دې.اوڅوك چې دكوم تـصرف نـه بند شوې وى.دده د تـصرف هيڅ حكم نه وى.نومقتدى چونكه ممنوع عن القراءة دې.د دے وجې به دده د قرات هيڅ حكم نه وى.اوچې دده د قرات څه حكم نشته.نو په ده به سجده تلاوت هم واجب نه وى.اوچې په تالى سجده واجب نه ده. نودده په سامع يعنې په امام به هم سجده واجب نه وى.

| |
|---|
| **بِخِلَافِ الْجُنُبِ وَالْحَائِضِ**..په خلاف د جنب اوحائضې **لِأَنَّهُمَا مَنْهِيَّانِ عَنِ الْقِرَاءَةِ** ځكه چې دا دواړه د قرات نه بند كړې شوى دى **إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَى الْحَائِضِ بِتِلَاوَتِهَا**..خوپه حائضه ددے په تلاوت (سجده) نه واجبيږى **كَمَا لَا يَجِبُ بِسَمَاعِهَا** لكه څنګه چې پرے ددے په اوريدو نه واجبيږى **لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الصَّلَاةِ**..ځكه چې دلمونځ اهليت معدوم دې. **بِخِلَافِ الْجُنُبِ** په خلاف د جنب. |

**حل اللغة:** ① **جنب:** جنبى ② **لا يجبه، وجب وجوبًا** (ض): واجب كيدل ③ **تلاوة:** لوستل ④ **سماع:** اوريدل ⑤ **انعدام:** معدوم كيدل ⑥ **اهلية:** قابليت، صلاحيت

**تشريح:- السؤال التقديري** ﴿بخلاف الجنب و الحائض...الخ﴾ په دے عبارت سره د يوقياس ځواب دې.قياس دا دې چې مقتدى په ممنوع عن القراءة كيدوكې دجنب اوحائضې په شان دې.او سجده ددے دواړونه په قرات اوريدو واجبيږى.يعنى په دے دواړو كې كه څه هم دسجده آيت تلاوت كړو.او بل څه واوريدو.نو په اوريدونكى بـه هـم سجده تـلاوت واجـب وى.هـم دغـه ډول مقتدىكـه محجـورعن القراءة دې. خو د دے باوجودكه ده آيت د سجدې تلاوت كړو.او امام دده قرات واوريدو.نوپه امام سجده تلاوت واجبيدل پكاردى.حالانكه شيخين ﷭ په امام هم د سجدې د وجوب قائل نه دى.

**الجواب** ﴿جنب اوحائضه ممنوع عـن القراءة دى.اومقتدى محجورعن القراءة دې.اودممنوع (منهى) او محجـور پـه مينځ كې تـوپير دادې.د محجـور عنـه فعـل غيرمعتبـروى.حرام اومكـروه نـه وى. اود ممنوع (څوك چې منع كړې شوې وى)فعل معتبروى.حرام وى اوكه مكروه.مثلاً بيع فاسد ممنوع (منهى)ده.خوكه څوك بيع فاسده اوكړه.اومشترى په مبيع قبضه اوكړه.نود مشترى ملك به ثابت شى. اوكه محجورعنه مثلاً نابالغه ماشوم يامجنون دعقد بيع معامله اوكړى.اومشترى په مبيع قبضه هم اوكړى.نود مشترى ملك نه ثابتيږى .نو جنب اوحائضه ممنوع عن القراءة دى.محجورعن القراءة نه دى.ځكه به ددوى تلاوت سبب د سجدې وى. اوددے اثر به داوى.چې كوم كس دا آيات سجده واورى. په هغه به سجده تلاوت واجب وى.ددے په خلاف مقتدىچې دا محجور عن القراءة دې. نو نه به دده قرات معتبروى.اونه به سبب د سجدې وى.

**الفرق بين الحائض والجنب** ﴿صاحب دهدايه ﷫ وائى.ممنوع عن القراءة كيدوكې جنبى اوحائضه دواړه برابردى .خودومره توپير دې.چې په حائضه ښځه نه پخپله په تلاوت سجده واجبيږى . او نه دبل په تلاوت اوريدو.اوجنب كس كه د سجدې د آيت تلاوت اوكړى.نوهم به سجده تلاوت واجب وى.اوكه د بل نه ئې واورى نوهم به واجب وى.وجه داده.چې دتلاوت د سجدې په وجوب كې د لمانځه اهليت معتبردې.كه ادا وى اوكه قضې.اوپه حائضه ښځه كې د لمونځ اهليت دواړه قسمه نشته.اوپه جنبى كې د لمونځ اهليت موجود دې.په دے طريقه كه په وخت كې دننه ئې غسل اوكړو.نو ادا به واجب وى.ګنى قضا به واجب وى.

## په غير مونځګذار د سجدې د تلاوت د وجوب حكم

| |
|---|
| **(وَلَوْ سَمِعَهَا رَجُلٌ** اوكه د(امام يامقتدى)نه دسجدې آيت يو داسے كس واوريدو **خَارِجَ الصَّلَاةِ سَجَدَهَا)** چې د لمانځه نه بهر وى.نو هغه دے سجده تلاوت اوكړى **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا قول صحيح دې. **لِأَنَّ الْحَجْرَ ثَبَتَ فِي حَقِّهِمْ** |



| |
|---|
| ځكه محجوركيدل د مقتد يانو په حق كې ثابت ذى **فَلَا يَعْدُوهُمْ**..نوددوى څخه به نه متجاوزكيږى. |

**حل اللغة:** ① **سمعها، سمع سمعًا** (س): اوريدل ② **رجل جمع رجال:** سړې ③ **خارج:** بهر ④ **سجدها، سجد سجدة** (ن): سجده كول ⑤ **ثبت، ثبت ثبوتًا** (ن): ثابت كيدل ⑥ **فلا يعدوهم، عدا عدوا** (ن): تجاوز كول

**تشريح:- المذهبان في وجوب السجدة على السامع غير المصلى** ﴿ مسئله:يوداسے كس چې دلمونځ نه بهردې.د امام يا مقتدى نه آيت دسجدې واورى. او دا كس چې آيت د سجدې ئې اوريدلے وى.هغه سره په لمانځه كې شريك هم نشو.نوپه اتفاق سره په ده سجده تلاوت واجب ده.هم دا قول صحيح دې.① بعضو حضراتوونيلے دى.چې دا حكم مختلف فيه دې.د شيخينو ﷭ په نيز به داكس سجده نه كوى.② اوداامام محمد ﷫ په نيز به سجده كوى.د قول صحيح دليل دادې.چې محجورعن القراءه كيدل دمقتديانو په حق كې ثابت شوى دى.نوددوى څخه به نه متجاوزكيږى.اوچې ددے نه متجاوز نشو.نوددوى نه علاوه په نورو خلګو به ددے اثر هم نه وى.اوچې د مقتد يانونه علاوه په نورودمحجور عن القراءة كيدل څه اثر نه كوى.نود سجدې د آيت په اوريدو په دوى سجده واجبيږى.

## دمونځ ګذار دخرجې كس نه د سجدې آيت اوريدل

| |
|---|
| **(وَإِنْ سَمِعُوا** اوكه خلګو واوريدو **وَهُمْ فِي الصَّلَاةِ** په داسې حال كې چې دوى په لمانځه كې دى **سَجْدَةً مِنْ رَجُلٍ**.ديوداسے كس نه آيت د سجدے **لَيْسَ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ** چې هغه د دوى په لمانځه كې شريك نه وو **لَمْ يَسْجُدُوهَا فِي الصَّلَاةِ)** .نودا خلګ دے په لمانځه كې سجده نه كوى |

**حل اللغة:** ① **سمعوا، اسمع سمعًا** (س): اوريدل ② **لم سيجدوها، سجد سجدة** (ن): سجده كول

**تشريح:- سماع المصلى اية السجدة من خارج** ﴿صورت دمسئلې دادې.كه بعضے خلګو په حالت د لمانځه كې د يوداسے كس نه آيت د سجدې واوريدو.چې هغه ددوى په لمونځ كې شريك نه وو . نو دا خلګ دے د لمونځ په حالت كې سجده تلاوت نه كوى.ځكه چې دا سجده د لمونځ سجده نه ده . اود لمونځ سجده ځكه نه ده.چې ددے خلګو آيت د سجدې اوريدل د لمونځ په افعالوكې نه دى .

| |
|---|
| **لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِصَلَاتِيَّةٍ** ځكه چې دا سجده د لمانځه سجده نه ده **لِأَنَّ سَمَاعَهُمْ هٰذِهِ السَّجْدَةَ لَيْسَ مِنْ أَفْعَالِ الصَّلَاةِ** ځكه چې ددے خلګ وآيت د سجدې اوريدل د لمونځ په افعالو كې نه دى **(وَسَجَدُوهَا بَعْدَهَا)**.اود لمونځ نه روسته دے سجده اوكړى **لِتَحَقُّقِ سَبَبِهَا** ځكه چې ددے سبب متحقق شو. |

**تشريح:-** ځكه چې د لمونځ افعال ياخو فرض وى يا واجب اويا سنت.اوآيت د سجدې اوريدل په دے كې يوهم نه دې .حاصل داچې دا سجده د لمونځ په افعالو كې نه ده.اوكوم څيزچې د لمونځ په افعالو كې نه وى.هغه په لمانځه كې اداكول هم جائز نه دى .نو ثابته شوه.چې دا خلګ دے په لمونځ كې سجده تلاوت نه كوى. البته د لمونځ نه روسته سجده تلاوت كول واجب دى.ځكه چې د سجدې سبب يعنى آيت د سجده اوريدل موجود شوې ده.

## په مونځ كې سجده كول كافي نه دي

| |
|---|
| **(وَلَوْ سَجَدُوهَا فِي الصَّلَاةِ** اوكه دے خلګو په لمانځه كې سجده اوكړه **لَمْ يُجْزِهِمْ)** نودوى د پاره نه كافى كيږى **لِأَنَّهُ نَاقِصٌ**.ځكه چې دا ادائې ناقص ده. **لِمَكَانِ النَّهْيِ** ځكه چې نهى موجود ده **فَلَا يَتَأَدَّى بِهِ الْكَامِلُ**.نو په دے به ادا كامل نه وى. |

**حل اللغة:** ① **سجدوها، سجد سجدة** (ن):سجده كول ② **لم يجزهم، جاز جوازًا** (ن) جائز كيدل ③ **فلا يتادى، تادى تاديًا:** اداكيدل، پوره كيدل

**تشريح:- عدم اعتبار السجدة المسموعة في الصلاة من خارج** ﴿دا مسئله په مخكې مسئله كې تيره شوېده.چې ددے

خلګو لپاره په لمانځه کي سجده کول ممنوع دي. خوددے ممانعت باوجود که ئې سجده اوکړه. نودا به معتبره نه وي. البته لمونځ به هم فاسد نه وي. د سجدې د عدم اعتبار دليل دا دې چې دا سجده ناقصه ده. ځکه شريعت په لمانځه کي د هر هغه شي داخلولو نه منع کړې ده. کوم چې د لمونځ په افعالو کي نه وي. بهرحال دا سجده ناقصه ده. اود سماع په وجه چې کومه سجده واجب شوېده. هغه کامله ده. او قاعده ده. چې کامل واجب په ناقصه طريقه ادا کاوه نه اداکيږي. ځکه ددے خلګو په لمونځ کي په سجده کاوه سجده تلاوت نه ادا کيږي.

### د سجدې اعاده لازمي ده د مونځ نه

**قَالَ** مصنف رحمه الله وائي **(وَأَعَادُوهَا)**. ددے سجدې اعاده دے اوکړي **لِتَقَرُّرِ سَبَبِهَا** ځکه چې ددے سبب ثابت شوېدې **(وَلَمْ يُعِيدُوا الصَّلَاةَ)**. اود لمونځ اعاده دے نه کوي **لِأَنَّ مُجَرَّدَ السَّجْدَةِ لَا يُنَافِي إِحْرَامَ الصَّلَاةِ**. ځکه چې صرف سجده کول د احرام صلاة منافي نه ده

**حل اللغة**: ① **اعادوها، اعاد اعادة**: واروسته کول ② **مجرد**: خان له ③ **لاينافي، نافي منافاة**: منافي کيدل

**تشريح:- عدم اعتبار سجدة القوم في الصلاة**⊛صاحب دکتاب وائي. چې دے خلګ وبه خپل لمونځ کي کومه سجده د تلاوت کړې ده. چونکه دا شرعا معتبر نه ده. په دے وجه د لمونځ نه روسته دے د دے اعاده اوکړي. ځکه چې د سجده تلاوت سبب (سماع) موجود شوه. اوچونکه لمونځ نه فاسديږي. په دے وجه د لمونځ د اعادے اړتيا نشته اولمونځ ځکه نه فاسديږي. چې لمونځ ياخو فاسديږي د يو رکن په پريخودو. او يا فاسديږي د لمونځ منافي خيز په پيښيدو. اودلته دواړه خبرے نشته. ځکه چې سجده د لمونځ منافي نه ده.

**وَفِي النَّوَادِرِ**. او په نوادر کي دي **أَنَّهَا تُفْسِدُ**. چې لمونځ به فاسد شي **لِأَنَّهُمْ زَادُوا فِيهَا**. ځکه چې دے خلګو په خپل لمونځ کي داسې سجده زياتي کړې ده **مَا لَيْسَ مِنْهَا**. چې په لمانځه کي نه ده **وَقِيلَ هُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ** رحمه الله اوونيلي شوي دي. چې داد امام محمد رحمه الله قول دې.

**حل اللغة**: ① **زادوا، زاد زيادة** (ض): زياتول

**تشريح:-** اود نوادر روايت دې. چې په دے صورت کي به لمونځ فاسد شي. ځکه چې دے خلګ وبه لمانځه کي د داسې شي اضافه کړې ده. چې د لمونځ په افعالو کي نه دې. ځيني حضرات وائي. چې د لمونځ فساد د امام محمد رحمه الله قول دې. د شيخينو رحمهما الله په نيز په دے صورت کي لمونځ نه فاسديږي.

**بناء الاختلاف**⊛د اختلاف بنا (بنياد) دادې. چې د امام محمد رحمه الله په نيز د سجدې زياتوالے مفسد د لمونځ دې. اودشيخينو رحمهما الله په نيز د يو رکعت نه دکم زياتوالے لمونځ نه فاسدوي.

### دخارجي کس آيت د سجدې اوريدل اوبيا په جماعت کي شرکت کول

**(فَإِنْ قَرَأَهَا الْإِمَامُ** اوکه امام آيت د سجدې اولوستلو **وَسَمِعَهَا رَجُلٌ**. اودا داسے کس واوريدو **لَيْسَ مَعَهُ فِي الصَّلَاةِ**. چې هغه دده په لمونځ کي شريک نه وو **فَدَخَلَ مَعَهُ بَعْدَ مَا سَجَدَهَا الْإِمَامُ**. بيا د امام سجده کاوه نه روسته هغه کس د امام سره شريک شو **لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ أَنْ يَسْجُدَهَا)**. نو په هغه سجده کول واجب نه دی. **لِأَنَّهُ صَارَ مُدْرِكًا لَهَا بِإِدْرَاكِ الرَّكْعَةِ** ځکه چې دا کس په رکعت موندو د سجدې موندونکے شو

**حل اللغة**: ① **قراها، قرا قراءة** (ف): لوستل ② **سمعنا، سمع سمعًا** (س): اوريدل ③ **فدخل، دخل دخولاً** (ن): داخليدل ④ **لم يكن، كان كونًا** (ن): کيدل ⑤ **مدركًا**: موندوکي

**تشريح:- الشركة مع الامام بعد ما سمع اية السجدة منه** ⊛صورت د مسئلې دادې. چې امام د آيت د سجدې تلاوت اوکړو. اودا داسے کس واوريدو. چې هغه دده په لمونځ کي شريک نه دې. بيا داکس امام سره په لمونځ کي شريک شو. نوکه د امام دسجده کولونه روسته شريک شوی وی نو په ده سجده تلاوت کول واجب نه



دی. ځکه چې ددے رکعت په موندو دا کس د سجدے موندونکے شو. اوکه ده په دوهم رکعت کي امام سره شرکت اوکړو. نود لمانځه د فراغت نه روسته دے سجده تلاوت اوکړي. ځکه چې کله دے کس دا رکعت اونه موندو په کوم کي چې آيت لوستلے شوېدې. نوده نه قرات اوموندو اونه ئې ددے متعلقات (يعني سجده) اومونده. اوچې سجده ئې اونه مونده. نود لمونځ د فراغت نه روسته سجده کول واجب شوه.

**(وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَهَا**. اوکه د امام سجده کولونه مخکي هغه د امام سره شريک شو **سَجَدَهَا مَعَهُ)**. نود امام سره دے سجده اوکړي **لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَسْمَعْهَا**. ځکه که ده آيت د سجدې اوريدلے هم نه وو. **سَجَدَهَا مَعَهُ** نود امام سره په ده سجده واجبيده **فَهَاهُنَا أَوْلَى**. نواوس په درجه اولى واجب ده

**تشريح:-** اوپه زير بحث مسئله کي دوهم صورت دا دې چې د امام د سجدې کاوه نه مخکي د امام سره شريک شو. نود امام سره دے سجده اوکړي. ځکه چې دے کس که آيت د سجدې نه وو اوريدلې. په دے طريقه چې امام په رو ونيلے وو. نوهم به د امام سره سجده کول واجب وو. نو په دے صورت کي چې ده آيت د سجدې اوريدلے هم دی. په درجه اولى امام سره سجده کول واجب دی. اودا کس چې د امام نه آيت د سجدې واوري.

**(وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ مَعَهُ**. اوکه د امام سره شريک نه شی **سَجَدَهَا)** نودا سجده دے اوکړي **لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ** ځکه چې سبب متحقق شوې دي.

**تشريح:- حكم من لم يشرک مع الامام بعد سماع اية السجدة**⊛اود امام په لمانځه کي شريک نشي. نود لمونځ نه بهر په ده سجده کول واجب ده. ځکه چې د سجدې سبب يعنى آيت د سجدې اوريدل موجود شوی دی.

### د صلاتي سجدې د بهر ادا کولو حکم

**(وَكُلُّ سَجْدَةٍ وَجَبَتْ فِي الصَّلَاةِ** اوهر هغه سجده چې په لمونځ کي واجب شی **فَلَمْ يَسْجُدْهَا فِيهَا**. بيا ئې دا په لمانځه کي ادا نکړه. **لَمْ تُقْضَ خَارِجَ الصَّلَاةِ)** نو دا د لمونځ نه بهرنه اداکيږي

**تشريح:- عدم كفاية السجدة الصلاتية خارجاً**⊛صاحب د قدوری رحمه الله يوضابطه کليه ته اشاره کړې ده. ضابطه دا ده. هرهغه سجده چې هغه په لمانځه کي د آيت د سجدې تلاوت کاوه په وجه واجب شی. خو په لمونځ کي اونکړې شی. نودلمونځ نه بهرادا کولو سره هغه نه اداکيږي.

**لِأَنَّهَا صَلَاتِيَّةٌ**. ځکه چې دا سجده د لمونځ شوه **وَلَهَا مَزِيَّةُ الصَّلَاةِ**. اودلمونځ سجدې ته دلمونځ فضيلت حاصل دے **فَلَا تَتَأَدَّى بِالنَّاقِصِ** نو دا به ناقصه نشی ادا کولې.

**تشريح:- دليله**⊛دليل دادې. چې دا سجده دلمونځ سجده ده. دلمونځ سجده کيدو مطلب دادې. چې د سجدې د آيت تلاوت کوم چې موجب د سجدے دې. د لمونځ د افعالوځنے دې. اودلمونځ سجدې ته د لمونځ فضيلت حاصل دې . په دے وجه په لمانځه کي د سجده تلاوت وجوب کامل شو. اوکوم څيزچې کامل واجب وی. هغه په ناقص ادا کاوه نه اداکيږي. اودا خبره ښکاره ده. چې د لمونځ نه بهر چونکه د لمونځ فضيلت نشته. په دے وجه د لمونځ نه بهرچې کومه سجده ادا شی هغه به ناقصه وی.

### د يوآيت خارج او صلاة دواړو کي د لوستلو په وجه د سجدې حکم

**(وَمَنْ تَلَا سَجْدَةً** اوکه چا آيت د سجدې تلاوت کړو **فَلَمْ يَسْجُدْهَا**. بيا ئې دا ادا نکړو **حَتَّى دَخَلَ فِي صَلَاةٍ**. ترديچې په يو لمونځ کي داخل شو. **فَأَعَادَهَا** بيا ئې هم هغه آيت د سجدې دوباره (په لمانځه کي) اوونيل **وَسَجَدَ**. اوسجده ئې اوکړه **أَجْزَأَتْهُ السَّجْدَةُ عَنِ التِّلَاوَتَيْنِ)**. نودا سجده ورله د دواړو تلاوتونو نه کافي کيږي

**حل اللغة**: ① **تلا، تلا تلاوة** (ن): لوستل ② **دخل، دخل دخولاً** (ن): داخليدل ③ **فاعادها، عاد اعادة**: واروسته کول

④اجزاته، اجزا اجزاءً: كفايت كول

**تشريح:- جوازالسجدة عن تلاوتين الخارجية والصلاتية**⊛په دې عبارت کې د سجده تلاوت د تداخل بيان دې. مسئله داده.که چا خارج د لمانځه نه آيت دسجدې تلاوت کړو.اوسجده ئې اونکړه.تردېچې په څه نفل يا فرض لمونځ کې داخل شو. بيا ئې هم ددېسجدې آيت دوباره تلاوت کړو.او په لمانځه کې ئې د تلاوت سجده اوکړه.نودا به د دواړو تلاوتونو لپاره کافي وي.

**لِأَنَّ الثَّانِيَةَ أَقْوَى**.ځکه چې دويمه سجده خو اقوىٰ ده **لِكَوْنِهَا صَلَاتِيَّةً**.چې دا دلمونځ سجده ده **فَاسْتَتْبَعَتِ الْأُولَى**.نودا مخکينۍ سجدې ته شريکه شوه

**تشريح:- دليله**⊛دليل دادې.چې دويمه سجده اقوىٰ ده.او اقوىٰ ځکه ده.چې داد لمونځ سجده ده.بهرحال دويمه سجده‌چې اقوىٰ ده.نو رومبۍچې خارج د لمانځه نه واجب شوې وه.ددې تابع ده.اوچونکه متبوع تابع ته متضمن وي.ددې وجې دويمه سجده به رومبۍ سجدې ته متضمن وي.او په دويمې جدې ادا کاوه سره به رومبۍ سجده هم ادا شي.

**وَفِي النَّوَادِرِ**.اوپه نوادرکې دي **يَسْجُدُ أُخْرَى بَعْدَ الْفَرَاغِ**چې دويمه سجده دې دلمونځ فارغيدو نه روسته اوکړي

**تشريح:- رواية النوادر**⊛په نوادرکې دي.چې په لمانځه کې د سجده تلاوت په کاوه يوه سجده ادا کيږي. دويمه سجده د لمونځ نه د فراغت نه روسته اداکول ضروري دي.

**لِأَنَّ لِلْأُولَى قُوَّةَ السَّبْقِ**..ځکه‌چې مخکنۍ سجدې ته د تقدم قوت حاصل دې **فَاسْتَوَيَا** ځکه دواړه برابرشو

**تشريح:- دليله**⊛دليل ددې دادې.دويمه سجده د لمونځ سجده کيدو په وجه که اقوىٰ ده.نو رومبنۍ سجدې ته د تقدم د وجې قوت حاصل دې.نو په قوت کې دواړه برابرشوې.په دې‌کې به يودبل تابع نه وي.اوچې يود بل تابع نه وي.نود يوې سجدې په ادا کاوه به دويمه سجده نه اداکيږي.

**قُلْنَا**.مونږ.خواب ورکوو **لِلثَّانِيَةِ قُوَّةُ اتِّصَالِ الْمَقْصُودِ**...چې دويمې سجدې ته مقصود سره د اتصال قوت حاصل دې **فَتَرَجَّحَتْ بِهَا**ځکه به دويمې سجدې ته ترجيح وي.

**تشريح:- تضعيف رواية النوادر**⊛زمونږد ارخه ځواب دادې.چې دويمې سجدې ته د تساوي نه روسته يوقوت بل هم حاصل دې.اوهغه قوت دادې.چې تلاوت د ادا ئې سجده سره متصل دې. يعنې‌چې دوهم ځل ئې په لمانځه کې آيت تلاوت د سجدې اوکړو.نوهم دې‌سره ئې سجده اداکړې ده.ددې په خلاف‌چې د لمانځه نه بهرهم د دې آيت تلاوت شوې وو.نوسجده ورسره نه وه اداشوې.بهرحال په نسبت د مخکې سجدې‌دويمه سجده اقوى شوه.ځکه‌چې سجدې ئې دستې ادا شوه.نوهم ددې قوت په وجه دويمې‌سجدې ته قوت ورکړې شوېدې .اوونيلې شوي دي.چې د دويمې سجدې په ادا کاوه سره لومړئې سجده هم ادا کيږي.

### دخارجي تلاوت لپاره سجده کول اوبيا په مانځه کې هم هغه آيت لوستل

**(وَإِنْ تَلَاهَا** وکه(خارج د مانځه) نه ئې آيت د سجدې اولوستلو **فَسَجَدَ** اوسجده ئې اوکړه. **ثُمَّ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ**. بيا په لمانځه کې داخل شو **فَتَلَاهَا**.اوهم هغه آيت د سجدې ئې تلاوت کړو **سَجَدَهَا)**.نوددې لپاره دې سجده اوکړي

**حل اللغة**①تلاها، تلا تلاوة (ن): لوستل ② فسجد، سجد سجدة (ن): سجده کول ③دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل

**تشريح:- عدم كفاية السجدة الصلاتية عن الخارجية لاية واحدة**⊛مسئله داده.که چا د لمانځه نه بهر د سجدې آيت تلاوت کړو.اوسجده دتلاوت ئې اوکړه.بيا په لمانځه کې داخل شو.اوهم ددې آيت د سجدې تلاوت ئې اوکړو.نو په ده لمانځه کې د تلاوت کاوه په وجه سجده تلاوت واجب شوه.



**لِأَنَّ الثَّانِيَةَ هِيَ الْمُسْتَتْبِعَةُ**.ځکه چې دويمه سجده خوتابع جوړونکې ده **وَلَا وَجْهَ إِلَى إِلْحَاقِهَا بِالْأُولَى**.اورومبۍ سجدې سره ددېد مولبنتي کاوه هيڅ وجه موجود نه ده **لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى سَبْقِ الْحُكْمِ عَلَى السَّبَبِ**ځکه په دې سره تقدم د حکم په سبب راځي.

**حل اللغة**①مستتبعه، تابع جوړونکې، شاشاته وايونکې ② يؤدي، ادى تادية: اداکول

**تشريح:- دليله**⊛دليل دادې.چې په مخکنۍ مسئله کې تيرشوېدې.چې دويمه سجده دلمونځ سجده کيدو په وجه اقوىٰ ده.اوداقوىٰ کيدو په وجه هغه رومبۍ سجدې لره تابع جوړونکې‌ده.اوچې دويمه سجده د رومبۍ سجدې لره تابع جوړونکې‌ده.نوددويمې‌سجدې رومبۍ سجدې‌سره د مولبنتي کاوه هيڅ وجه نشته .ځکه‌چې که سجده ثانيه دويمې‌سجدې سره مولبنتي کړې شوه. نوددې مطلب به داوي.چې د دويمې سجدې لپاره تلاوت روسته شوېدې.اوسجده مخکې اوکړې شوه.اوداخبره ښکاره ده.چې د سجده تلاوت د وجوب سبب تلاوت دې.نوپه دې‌صورت کې د سبب تاخيراودحکم تقديم لازميږي.حالانکه داخبره ټيك نه ده. نو ثابته شوه.چې په دې‌صورت کې تداخل متعذر دې.اوچې تداخل متعذرشو.نودويمه سجده به د دوهم تلاوت په وجه واجب وي.

### په يومجلس کې د يو آيت په تکرار سره د سجدې حکم

**(وَمَنْ كَرَّرَ تِلَاوَةَ سَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ** اوکه چا په يومجلس کې آيت د سجدې مکررتلاوت کړو. **أَجْزَأَتْهُ سَجْدَةٌ وَاحِدَةٌ** نوده له يوه سجده کافي‌کيږي **فَإِنْ قَرَأَهَا فِي مَجْلِسِهِ** اوکه په خپل مجلس کې ئې آيت اولوستو **فَسَجَدَهَا**.اوسجده ئې اوکړه **ثُمَّ ذَهَبَ**.بيا چرته لاړو **وَرَجَعَ**.اوواروسته راغې **فَقَرَأَهَا** بيا ئې هم دغه آيت د سجدې تلاوت کړو **سَجَدَهَا ثَانِيَةً**.نودوباره دې سجده اوکړي **وَإِنْ لَمْ يَكُنْ سَجَدَ لِلْأُولَى**.اوکه ده د رومبی مجلس سجده اونکړه **فَعَلَيْهِ السَّجْدَتَانِ)**.نو په ده به دوې (دوه) سجدې واجب وي

**حل اللغة**① كرر، كرر تكريراً: باربار وئيل ②اجزاته، اجزا اجزاءً: كفايت كول ③قراها، فقرا قراءة (ف): لوستل ④ذهب، ذهب ذهاباً (ف): تلل ⑤رجع، رجعرجوعاً (ض): واروسته کيدل، واروسته کول ⑥لم يكن، كان كوناً (ن): کيدل

**تشريح:- الصورتان لوجوب سجدة التلاوة**⊛صورت د مسئلې دادې①چې يوکس په يومجلس کې يو آيت د سجدې بار بار تلاوت کړو.نود ټولوتلاوتونو لپاره يوه سجده کافي کيږي.② دويمه مسئله دا ده.چې يوکس په يومجلس کې آيت د سجدې تلاوت کړو.اوسجده ئې اوکړه.بيا چرته لاړو.اوواروسته راغې.نوبيا ئې هم هغه آيت اولوستل.نودوباره دې سجده د تلاوت اوکړي.اوکه ده د ورومبی مجلس سجده نه وي ادا کړې. نو په ده به دوې (دوه) سجدې واجب وي.

**وَلِأَصْلُ**.اواصل دادې **أَنَّ مَبْنَى السَّجْدَةِ عَلَى التَّدَاخُلِ دَفْعًا لِلْحَرَجِ**.چې دحرج دفع کولود پاره دسجدې دارومدار په تداخل دې

**حل اللغة**①حرج: تنګى تکليف

**تشريح:- وجه القياس** ⊛صاحب دهدايه رحمه الله وائي.اصل دا دې.چې استحساناً د سجدې بناء په تداخل ده. ګنې د قياس تقاضا داده.چې د هرتلاوت په وجه دې سجده واجب وي.که مجلس متحد وي اوکه مختلف وي.ځکه‌چې د سجده تلاوت حکم دې.اوحکم دسبب په تکرارسره مکررکيږي.ددې وجې دتلاوت په تکرار سجده مکرر کيدل پکار دي.که دتلاوت تکرار په يو مجلس کې وي.اوکه په مختلف مجلسونوکې وي.

**وجه الاستحسان**⊛وجه د استحسان د خلګو نه حرج لرې کول دي.ځکه‌چې مسلمانان دقران د تعليم او تعلم محتاج دي.اوتعليم اوتعلم بغيرتکراره نه حاصليږي.نو په يو مجلس کې د سجدې‌د يو آيت په بار بار تلاوت

کولوسره که تکرار د سجدې لازم کړې شي. نو مفضی الی الحرج به وی. او حرج شرعاً دفع کړې شوې دې. ځکه اوونیلی شو. چې په دے صورت کې به هم یوه سجده واجب وی.

**استدلال الاستحسان بحدیثین** ◉ حدیث هم ددے شاهد دې. لکه چې نقل دی. چې جبرئیل امین ﷺ به په نبی کریم ﷺ یو آیت د سجدې راوړلو. او دا به ئې باربار لوستلو. خو نبی کریم ﷺ به ددے لپاره یوه سجده کوله. حالانکه د سجده تلاوت سبب چې ځنګه تلاوت دې. دغه ډول سماع هم ده. ② دغه ډول د حضرت ابو موسی اشعری ﷛ نه نقل دی چې هغوی ﷛ د کوفے په مسجد کې ناست وو. او خلګ وته ئې د قران تعلیم ورکولو. او که آیت د سجدې به راتلو. نو دا به ئې هم باربار لوستلو. چونکه مجلس به یو وو. ځکه به ئې یوه سجده کوله.

**وَهُوَ تَدَاخُلٌ فِي السَّبَبِ دُونَ الْحُكْمِ**. او دا په سبب کې تداخل دے نه په حکم کې **وَهٰذَا أَلْيَقُ بِالْعِبَادَاتِ**. او د عباداتو سره هم دا تداخل زیات مناسب دې **وَالثَّانِي بِالْعُقُوبَاتِ**. او دوهم د عقوباتو زیات مناسب دې

**تشریح:- قسمی التداخل** ◉ علامه مرغینانی رحمه الله وائی. چې د تداخل دوې (دوه) قسمونه دی. ① یو تداخل فی السبب. ② دوهم تداخل فی الحکم. د عباداتو مناسب تداخل فی السبب دې. د عقوباتو مناسب تداخل فی الحکم دې. په سبب کې تداخل د عباداتو مناسب ځکه دې. که په حکم کې تداخل وی. او په سبب کې تداخل نه وی. نو د اسبابو تعدد به پاته وی. او چې د اسبابو تعدد پاته شی. نو هغه سبب کوم چې موجب للعبادة دې. هغه به بغیر د عبادت نه موجود شي. او په دے کې ترک احتیاط دې. حالانکه په عباداتو اداکولو کې احتیاط دې. نه په ترک کې. د دے وجې مونږ اوونیل. چې په عباداتو کې په اسبابو کې تداخل دې. چې واړه اسباب په منزله د یو سبب شی. او په پرے خپل حکم مرتب شی. ددے په خلاف عقوبات دی. چې په اداکاوه کې ئې احتیاط نشته. بلکه ددے په دفع کولو کې احتیاط دې. د دے وجې په عقوباتو کې به په حکم کې تداخل وی. په سبب کې به نه وی. چې د سبب د موجب د وجود باوجود حکم موجود نشی. او د موجب سبب موجودیدو باوجود د عقوبت نه ملاویدل به محض د الله د عفو و کرم نتیجه وی. ځکه چې کریم کله کله د عقوبت د سبب د وجود باوجود معافی کوی.

**ثمرة الاختلاف** ◉ ثمره د اختلاف به په دے مثال کې ښکاره شي. چې یو کس زنا اوکړه. ده ته حد اولګولې شو. بیا ئې دوباره زنا اوکړه. نو دوباره به حد لګولے شي. او که آیت د سجدې ئې تلاوت کړو. او سجده ئې اوکړه. بیا ئې هم دغه آیت هم په دغه مجلس کې تلاوت کړو. نو په ده به دویمه سجده واجب نه وی. ځکه چې په سبب کې د تداخل په وجه دواړه تلاوتونه په منزله د یو سبب شو.

**وَإِمْكَانُ التَّدَاخُلِ عِنْدَ اتِّحَادِ الْمَجْلِسِ**. او د تداخل امکان د اتحاد مجلس په وخت وی. **لِكَوْنِهِ جَامِعًا لِلْمُتَفَرِّقَاتِ** ځکه چې مجلس متفرق شیان (څیزونه) جمع کوی **فَإِذَا اخْتَلَفَ**. او چې مجلس مختلف شی **عَادَ الْحُكْمُ إِلَى الْأَصْلِ** نو حکم به اصل ته عود کوی.

**حل اللغة** ① **جامع**: جمع کونکې ② **اختلف، اختلف اختلافاً**: مختلف کیدل

**تشریح:- شرط التداخل** ◉ په دې عبارت سره د تداخل شرط خودلے شوے دې. فرمائی. چې د تداخل شرط د سجدې آیت او د مجلس اتحاد دې. ځکه چې نص، اجماع او حرج، د مجلس واحده او د آیت واحده په صورت کې موجود دی. نو ددے نه علاوه واړه صورتونه په اصل قیاس پاته دی. دوهم دلیل دا دې. چې تداخل به هغه وخت ټیک وی. چې یو داسے جامع موجود شي. چې واړه اسباب را جمع کړی. او واړه اسباب د سبب واحده په مرتبه کې کړی. او داسے جامع مجلس دې. ځکه چې مجلس متفرق شیان (څیزونه) جمع کونکې دې.

**امثلة کون المجلس هو الجامع** ◉ مثلاً په یو مجلس کې که ایجاب او قبول دواړه موجود شي. نو ونیلی شي. چې قبول د ایجاب سره متصل دې. حالانکه په حقیقت کې منفصل دې. نو معلومه شوه. چې مجلس ایجاب او قبول



ته جامع دې. دغه ډول په یو مجلس کې که لږ لږ خوخله قے اوکړی. نو دا به یو قے شمارلے شی. ددے نه معلومه شوه. چې مجلس جامع متفرقات دې. نو تر کومه چې اتحاد مجلس وی. نو د تلاوت د تکرار باوجود به یوه سجده واجب وی. خو که مجلس بدل شی. نو حکم به خپل اصل ته واروسته کیږی. یعنی د یو آیت د سجدې په باربار تلاوت کاوه به باربار سجده واجبیږی.

**وَلَا يَخْتَلِفُ بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ**. او مجلس صرف په اودریدو نه مختلف کیږی **بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ**. په خلاف د مخیره. **لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ** ځکه چې ودریدل د اعراض دلیل دې **وَهُوَ الْمُبْطِلُ هُنَالِكَ**. او اعراض کول دلته کې اختیار باطلوی

**حل اللغة** ① **دلیل**: نښانه علامت

**تشریح:- تحقق تغیر المجلس** ◉ پاتې شوه دا خبره. چې د مجلس بدلیدل به کله متحقق وی. نو په دے اړه کې صاحب د کفایه وائی. د ړومبی مجلس نه که پاسیدو. او چرته لرې لاړو. نو د مجلس بدلیدو حکم به لګولې شی. او که نیزدے لاړو. نو اتحاد مجلس به پاته وی. او په نیزدے او لرے کې فاصل دا دې. چې دوې (دوه) یا درے قدمه مقدار نیزدے دې. او ددے نه زیات بعید دې.

**عدم تغیر المجلس بالقیام** ◉ صاحب د هدایه فرمائی. صرف په اودریدو مجلس نه مختلف کیږی. په خلاف د مخیره. مخیره هغې ښځے ته ونیلے شي. چې د هغے خاوند هغے ته ﴿اختاری نفسك﴾ ونیلو سره د طلاق اختیار ورکړې وی. نو مخیره که الفاظ خیار اوریدو نه روسته اودریده. نو ددے خیار به باطل شی. خو د خیار باطلیدل ددے لپاره نه دی. چې مجلس بدل شو. بلکه ددے لپاره دی. چې ودریدل د اعراض دلیل دې. او اعراض صراحةً وی او که دلالةً. خیار مخیره باطلوی.

**وَفِي تَسْدِيَةِ الثَّوْبِ يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ**. او د وړیځ (اودلو په وخت کې چې جولا ئې وودل کوی) د خورولو په تلو راتلو کې به وجوب د سجدې مکرر کیږی

**تشریح:- صور تغیر المجلس** ◉ فاضل مصنف وائی. ① چې جولا کله په خپله کړیځ کې ولاړ وی او د وړیځ خورولو په تلو راتلو کې به وجوب سجده مکرر کیږی. یعنی د وړیځ خورولو په وخت که یو آیت د سجدې باربار تلاوت کړی. نو څومره ځل چې ئې تلاوت کړې وی. هغه هومره سجدې به واجب وی. ځکه چې په تلو راتلو کې مجلس بدلیږی.

**وَفِي الْمُنْتَقِلِ مِنْ غُصْنٍ إِلَى غُصْنٍ كَذٰلِكَ فِي الْأَصَحِّ**. او د اصح قول په بناء د یو ښاخ نه بل ښاخ په اړخ منتقل کیدو کې هم دا حکم دې.ا

**حل اللغة** ① **غصن جمع غصان**: ښاخ

**تشریح:-** دغه ډول که د وُنے په یو ښاخ کیناستو. او یو آیت د سجدې ئې تلاوت کړو. بیا دوهم ښاخ ته واوړیدو. او هم هغه آیت ئې دوباره اولوستو. نو دوې (دوه) سجدې به واجب وی. هم دا قول صحیح دې.

**وَكَذَا فِي الدِّيَاسَةِ لِلِاحْتِيَاطِ** او د احتیاط په وجه دا حکم د فصل په غوبل (پائمال) کاوه کې هم دې.

**حل اللغة** ① **دیاسة**: کښبت (پټی)

**تشریح:-** دا حکم په هغه وخت کې هم دې. چې په څاروو غنم غوبل (پائیمال) شی. زمونږ په علاقو کې دے ته غوبل وائی. نو د غوبل کاوه په وخت یعنی غنم پائمال کاوه په وخت که ئې یوه سجده باربار لوستله. نو باربار به سجده واجب وی. دا قول په احتیاط مبنی دې.

### د سامع د مجلس په بدلیدو د سجده سهو د وجوب تکرار

**وَلَوْ تَبَدَّلَ مَجْلِسُ السَّامِعِ** او که د اوریدونکی مجلس بدل شو. **دُونَ التَّالِي** نه د تلاوت کونکی. **يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ**

**على السامع** نو په سامع به وجوب مكرر وى

**حل اللغة:** ① **تبدل، تبدل تبدلاً:** بدليدل ② **تالى:** تلاوت كونكې ③ **يتكرر، تكرر تكرراً:** باربار ونيل ④ **سماع** اوريدل

**تشريح:- تكرارالوجوب على السامع بسبب تكرارتغيرالمجلس۞** مسئله داده.كه د آيت اوريدونكى مجلس بدل شو.او د تلاوت كونكى مجلس نه وى بدل شوې .نوپه اتفاق سره په سامع وجوب د سجدې مكرر كيږي.

**لِأَنَّ السَّبَبَ فِي حَقِّهِ السَّمَاعُ.** خكه‌چې دسجده د وجوب سبب د ده په حق كښ د تلاوت اوريدل دى

**تشريح:- دليله۞** دليل دادې.چې دسامع په حق كې د سجده تلاوت د وجوب سبب سماع ده.اوچونكه د مجلس بدليدو په وجه سماع مكررشوېده.دے وجې به وجوب سجده هم مكرروى.

**وَكَذَا إِذَا تَبَدَّلَ مَجْلِسُ التَّالِي دُونَ السَّامِعِ** .اوهم دغه ډول كه بغير د سامع نه د تلاوت كونكى مجلس بدل شو **عَلَى مَا قِيلَ**.نوهم به بناء وى په هغه‌چې ونيلى شوى دى

**تشريح:- رواية تكرارالوجوب على السامع عند تغيرمجلس التالى۞** اوكه دتلاوت كونكى مجلس بدل شو . اودسامع مجلس نه وى‌بدل شوې.نودعلامه فخرالاسلام رحمه الله دقول مطابق په دے صورت كې به هم په سامع وجوب د سجدې مكرر وى.

**ادلاته۞** ① دليل دا دې.چې د سجدې د آيات اوريدل په تالى باندې مبنى دې.اومجلس دتلاوت بدل شو. نو سماع به هم په تلاوت باندې قياس كولې شى.يعنى داسې به ونيلى شى.چې هركله د تلاوت مجلس بدل شى .نوحكماً د سماع مجلس هم بدل شو. ② خينې حضراتو دا دليل بيان كړې دې.چې سجدې د تلاوت سبب د تالى او سامع دواړوپه حق كې تلاوت دې.اود بدليدل د مجلس په وجه تلاوت مكرر شو.په دے وجې به د سجدې وجوب په تالى او سامع دواړو مكرروى.

**وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ عَلَى السَّامِعِ** اوصحيح خبره داده.چې په اوريدونكى به وجوب مكررنه وى **لِمَا قُلْنَا** د هغې دليل په وجه‌چې موږ مخكې بيان كړو.

**تشريح:- ترجيح الرواية الاولى۞** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.صحيح خبره داده.چې په دےصورت كې به په سامع وجوب سجده مكررنه وى.خكه‌چې د سامع په حق كې د سجدې د وجوب سبب سماع ده.اود سماع په مجلس كې تكرار نه دے شوې.نو په ده به وجوب د سجدې هم مكررنه وى.

## دسجدې كولوطريقه

**(وَمَنْ أَرَادَ السُّجُودَ** اوچاكه د سجده تلاوت كاوه اراده اوكړه **كَبَّرَ**.نوتكبيردے ووايي **وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ** ولاسونه دے نه اوچتوى **وَسَجَدَ**. او سجده دےاوكړى **ثُمَّ كَبَّرَ** بيادےتكبيراووائى **وَرَفَعَ رَأْسَهُ)**.اوخپل سردےاوچت كړى **اعْتِبَارًا بِسَجْدَةِ الصَّلَاةِ**.د لمونځ په سجده قياس كاوه سره

**حل اللغة:** ① **اراد، اراد ارادة:** اراده كول، غوښتل ② **لم يرفع، رفع رفعًا (ف):** اوچتول ③ **يد جمع ايدى:** لاس ④ **راس جمع رءوس:** سر

**تشريح:- كيفية سجدة التلاوة۞** په دے عبارت كې دسجده تلاوت دكيفيت بيان دې.نوكيفيت دا دې.چې كله دسجدې د تلاوت كاوه اراده اوكړى.نو بغيرد دواړو لاسونواوچتولودےتكبير اووائى. اوسجده دے اوكړى‌بيا دے تكبير اووائى.اوخپل سردے اوچت كړى.

**وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ.** اوهم داد ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل دى.

**تشريح:- دليله۞** دليل د لمونځ په سجده قياس دې.هم داد عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل دى.دا په ذهن كې



ساتى:چې د دے دواړه تكبيرونه مسنون دى.واجب نه دى.

**(وَلَا تَشَهُّدَ عَلَيْهِ وَلَا سَلَامَ)** او په ده نه تشهد شته او نه سلام **لِأَنَّ ذَلِكَ لِلتَّحَلُّلِ**.خكه‌چې سلام خود لمونځ نه د وتلو لپاره وى **وَهُوَ يَسْتَدْعِي سَبْقَ التَّحْرِيمَةِ**.اوهغه تقاضا كوى د تحريمې د سبقت **وَهِيَ مُنْعَدِمَةٌ**.او تحريمه معدوم ده.

**تشريح:- عدم التشهد والسلام فيها۞** علامه مرغينانى رحمه الله وائى.دسجده تلاوت كونكى باندې نه تشهد شته اونه سلام.

**ادليله۞** خكه‌چې تشهد اوسلام دلمونځ نه د وتلو لپاره مشروع شوې دې.اود لمونځ نه وتل تقاضا كوى.چې مخكې تحريمه وى.او تحريمه دلته كې معدوم ده.نوتحليل به هم نه كيږى.اوچې تحليل نشته.نوتشهد او سلام هم نشته.

**فوائد:** دقدورى اودهدايه عبارت په دے اړه كې خاموش دې.چې په سجد تلاوت كې به څه وائى .نو په دے سلسله كې بعضےدا وائى.چې دلمونځ په سجده كې چې څه ونيلےشى.هم هغه دے په سجده تلاوت كې وائى .

② اود بعضوقول دې.چې په سجد تلاوت كې دےدا وائى. سُبْحَانَ (رَبِّنَا إِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا)

## په پيوسته تلاوت كې د سجدې آيت پرېښولو كراهت

**قَالَ** امام محمد رحمه الله وائى.**(وَيُكْرَهُ** اومكروه دى داچې **أَنْ يَقْرَأَ السُّورَةَ فِي الصَّلَاةِ أَوْ غَيْرِهَا** په لمونځ يا بغيرد لمانځه نه سورت لوستل **وَيَدَعَ آيَةَ السَّجْدَةِ)** او آيت د سجده پرېښول **لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الِاسْتِنْكَافَ عَنْهَا** خكه‌چې دا فعل دسجدےنه دمخ اړولو مشابه دى

**حل اللغة:** ① **يكره، كره كراهة (س):** مكروه كيدل، ناخوښه كيدل ② **يقرا قرا قراءة (ف):** لوستل ③ **يدع، ودع وداعًا (ف):** پرېښول ④ **استنكف، استنكف استنكافًا:** تكبر كول، دَ شرم يا غرور په وجه سره منع كيدل

**تشريح:- كراهة ترك اية السجدةفي التلاوة۞** امام محمد رحمه الله فرمائى. په لمانځه يا بغيرد لمانځه نه پوره سورة لوستل.او آيت د سجدې پرېښول مكروه دى.وجه د كراهت داده.چې دا عمل د آيت دسجدې نه د اعراض كاوه مشابه دې.اود قرآن پاك د يو آيت نه هم اعراض كول حرام دى.خكه‌چې داخوكفردې.اوچې حقيقتاً اعراض كول حرام دى.نوكوم څيزچې ددےمشابه وى.هغه به ضرورمكروه وى.

**(وَلَا بَأْسَ**.او په دےكې هيڅ باك نشته **بِأَنْ يَقْرَأَ آيَةَ السَّجْدَةِ**.چې آيت د سجدې ووايي **وَيَدَعَ مَا سِوَاهَا**.اوددےنه علاوه پرېږدى **لِأَنَّهُ مُبَادَرَةٌ إِلَيْهَا**.خكه‌چې داخو سجدې ته پيش قدمى‌ده **قَالَ مُحَمَّدٌ** رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول دې **أَحَبُّ إِلَيَّ**..چې زما په نيزخوښه خبره داده **أَنْ يَقْرَأَ قَبْلَهَا**.چې دآيت دسجدې نه مخكې دې اولولى. **آيَةً أَوْ آيَتَيْنِ** يويادوې (دوه) آياتونه **دَفْعًا لِوَهْمِ التَّفْضِيلِ** دتفضيل وهم لرےكاوه لپاره

**حل اللغة:** ① **لاباس:** هيڅ حرج نشته ② **احب:** ډير خوښ ③ **وهم:** كمان، خيال ④ **تفضيل:** فضيلت وركول

**تشريح:- عدم الكراهة في تلاوة اية السجدة وترک غيرها۞** اوكه چا آيت د سجدې تلاوت كړو.او پاته واړه سورت ئې پرېخودو.نوپه دےكې هيڅ مضائقه نشته.خكه‌چې داسجدےته مبادرت او پيش قدمى ده. البته امام محمد رحمه الله فرمائى.ښه خبره داده.چې د آيت د سجدې نه مخكې يو يا دوې (دوه) آيتونه اولولى.چې داوهم نه وى.چې آيت د سجدې ته په نورو فضيلت حاصل دې.حالانكه په قران كيدوكې واړه آياتونه برابردى.

**وَاسْتَحْسَنُوا إِخْفَاءَهَا**.اوعالمانو ددے اخفاء مستحسن كرخولې ده **شَفَقَةً عَلَى السَّامِعِينَ**.په سامعينود شفقت په نظر **والله أعلم**. الله تعالى زيات ښه پوهيږى.

**تشريح:- استحباب اخفاء اية سجدة التلاوة۞** عالمانوداخبره مستحسنه كرخولې ده.چې آيت دسجدې پټ اووائى.چې په اوريدونكوكرانه نشى. صاحب دعنايه دمحيط په حواله ليكلى‌دى.چې كه تلاوت كونكې

يواځې وي.نوچې څنګه غواړي اودې لولي.په پټه سرا وي اوكه جهري.اوكه دده سره نور خلك دي.نومشائخ د احنافو وائي.دغه خلګ كه په اوداسه كي دي.اوپه دوی په سجده كولوكي څه ګراني نه وي.نو په جهرونيل پكار دي.اوكه بې اودسه وي.يا(تاسو) پوهه شي چې په اوريدو به سجده اونكړي.يا به په دوی ګرانه شي.نو په پټه دې اوواني. والله اعلم بالصواب.

## باب صلاة المسافر

ژباړه:- دا باب دمسافر دمونځ (په بيان)كې دې.

**المعنوى اللغوى والشرعى للسفر**۞دسفرلغوی معنی د مسافه طې كول ده.اود شريعت په اصطلاح كې سفر هغه دې.چې په هغې احكام متغير كيږي.مثلاً دلمونځ قصر.په رمضان كي د افطار اجازت. د مسح موده تر درې ورځو پورې اوږديدل.داخترونو. دجمعې او د قربانۍ دوجوب سقوط بغير محرمه د آزادې ښځې د وتلو حرمت خيال ساتل پكار دی.چې دسفرشرعاً اعتبار به هغه وخت وي.چې د سفرنيت وي.اوعملاً سفرموجود شي.كه چا د دريو ورځو مسافه دنيت نه بغيردپوره دنيا چكر اولګولو.نوداكس د شريعت په نظر كي مسافر نشي كيدې. اوكه دسفرنيت ئې اوكړو.خوعملاً ئې سفر اونكړو.نوهم به مسافرنه وي. د سفر په وجه په احكاموكي تغير هغه وخت وي.چې كله نيت دسفراو فعل سفردواړه. على سبيل الاجتماع موجود شي.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞چونكه د تلاوت په شان سفرهم دهغې عوارضوځنې دې.چې دهغې انسان كسب كوي.په دې وجه دسجده تلاوت احكام بيانولونه پس.دسفراحكام ذكركړې شول.او چونكه تلاوت اوسجده تلاوت عبادت دې.اوسفرعبادت نه دې.په دې وجه سجده تلاوت مقدم اود سفراحكام مؤخر كړې شول.

**السوال**۞د اقامت لپاره صرف نيت كافي دې.خودسفر لپاره صرف نيت كافي نه دې. بلكه فعل د سفرهم ضروري دې.داسې ولې ده؟

**الجواب**۞ سفرفعل دې.اوپه فعل كي صرف اراده اوقصد كافي نه وي.بلكه دعمل اړتيا وي. مثلاً لمونځ يو فعلي شي دې.په دې كي صرف نيت كافي نه دې.بلكه د نيت سره كه قيام ركوع، سجده، وغيره وي. نولمونځ به وي ګڼی نه به وي.او اقامت د ترك فعل نوم دې.اوترك فعل صرف په نيت حاصليږي.

### د سفر شرعي مسافت

| | |
|---|---|
| **اَلسَّفَرُالَّذِي يَتَغَيَّرُبِهِ الْأَحْكَامُ** هغه سفرچې په هغې احكام بدليږي دادې. **أَنْ يَقْصِدَ** چې د تلو اراده اوكړي. **مَسِيْرَةَ** | |
| **ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا** درې ورځې او درې شپې **بِسَيْرِالْإِبِلِ وَمَشْيِ الْأَقْدَامِ** د اوښ په رفتار يا د قدمونو په چال سره | |

**حل اللغة**①**يتغير، تغير تغيراً**: بدلول ②**يقصد، قصد قصداً** (ض): قصد كول،اراده كول ③**مسيرة**: مسافت، فاصله ④**مشى**: تګ

**تشريح:- تقديرالمسافة بثلاثة ايام ولياليها**۞صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي.چې په كوم سفر احكام متغير كيږي.هغه سفردادې.چې انسان درې ورځې اودرې شپې دتلو اراده اوكړي. په چال كي د اوښ چال معتبر دې.يا پياده يا د ريږې . دا خبره په ذهن كښې ساتل پكاردي.چې دهرملك په كال كي د ټولو نه وړه ورځ معتبرده.لكه چې زموږ دلته شاملي په هندكي په سخته يخنۍ كي دټولونه وړه ورځ وي.دغه ډول شپه ورځ ۲۴ ګنټې تلل مراد نه دي.بلكه هره ورځ د سحر نه ترزوال وخته پورې تلل مراددي.ځكه چې ۲۴ ګنټې تلل نه دانسان په وس كي دي.اونه دسوارلۍ ځاروی په توان كښې.بهرحال هره ورځ دسحرنه ترزواله يو منزل ته په رسيدو دې آرام كوي په درې شپو . اودرې ورځوكي چې كوم مسافه اوكړي.هغه مسافه دسفردې.



| |
|---|
| **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** ځكه چې نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي {**يَمْسَحُ الْمُقِيمُ كَمَالَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ** مقيم دې پوره يوه ورځ او يوه شپه مسح كوي **وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا**}[1] اومسافردې درې ورځې.اودرې شپې **عَمَّتْ بِالرُّخْصَةِ الْجِنْسَ** (دا) جنس رخصت ته عام دې **وَمِنْ ضَرُورَتِهِ عُمُومُ التَّقْدِيرِ**.اوددې د لوازماتو ځنې عموم تقدير دي |

**حل اللغة**①**يمسح، مسح مسحاً** (ن): مسح كول ②**كمال**: پوره ③**عمت**: **عم عاماً** (ن): عام كيدل ⑧**قدر، قدر، تقديراً** اندازه كول، فيصله كول

**تشريح:- دليله**۞ددرې ورځو اودرې شپو په تقدير په حديث رسول ﷺ (يمسح المقيم كمال يوم وليلة والمسافر ثلثة ايام ولياليها) سره استدلال شوېدې.وجه د استدلال داده.چې "المسافر"كي الف لام استغراقي دې.نود مسح رخصت به هرمسافر ته ګډ وي.يعني هرمسافردرې ورځې اودرې شپې د مسح په قدرت قادروي.اوهرمسافردرې شپې ورځې په مسح كاوه هغه وخت قادروي.چې اقله موده دسفردرې شپې ورځې وي.كه اقله موده دسفر ددې نه كمه اوګڼړلې شي.نودهرمسافر درې ورځې اودرې شپې په مسح قدرت ممكن نه پاتې كيږي.حالانكه په حديث كي د هرمسافر لپاره درې ورځې اودرې شپې د مسح كولوقدرت ثابت دې.نوثابته شوه.چې دسفركم نه كم موده درې ورځې اودرې شپې ده.

**تائيد مذهب مدة ثلاثة ايام ولياليها**۞زموږ دمذهب تائيد ددې حديث نه هم كيږي. ﴿لا تسافر المراة فوق ثلاثة أيام ولياليها إلا ومعها زوجها أو ذو رحم محرم منها﴾په حديث كي لفظ فوق زائد دې.لكه (**فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ**۞) كي لفظ فوق زائددې.اوس به دحديث مطلب دا شي.چې هيڅ يوه ښځه دې درې ورځې اودرې شپې سفرنه كوي.خوداچې دې سره يادې خاوند وي.يا ذی رحم محرم وي.داخبره منو.چې ښځې لپاره دسفرمودې نه دكم مسافه لپاره بغير د محرم نه سفركولواجازت دې.نوچونكه په حديث كي درې ورځې اودرې شپې ښځه بغيردمحرم نه د سفر كاوه نه منع شوې ده.په دې وجه د سفرموده به درې ورځې اودرې شپې وي.

| |
|---|
| **وَقَدَّرَ أَبُو يُوسُفَ** رحمه الله **بِيَوْمَيْنِ وَأَكْثَرِ الْيَوْمِ الثَّالِثِ**.او امام ابو يوسف رحمه الله دسفرمقدار دوې (دوه) ورځې اود دريمې ورځې اكثره برخه ګرځولې ده **وَالشَّافِعِي بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِي قَوْلٍ**.اوامام شافعي رحمه الله ديوقول مطابق يوه ورځ اويوه شپه مقرر كړې ده **وَكَفَى بِالسُّنَّةِ حُجَّةً عَلَيْهِمَا**او ذكر شوېحديث ددواړو په حال دحجيت لپاره كافي دې. |

**تشريح:- الاختلاف الثلاثة في مدة السفر**۞ ① په احنافوعالمانو رحمهم الله كي امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. اقله موده د سفر دوې (دوه) ورځې پوره اود دريمې ورځې اكثره برخه ده.② د امام شافعي رحمه الله په نيزد يوقول مطابق يوه ورځ او يوه شپه كم نه كم دسفرموده ده.③ امام مالك اوامام احمد رحمهما الله فرمايي . څلور فرسخه اقله موده دسفرده.هم دا يوقول د امام شافعي رحمه الله دې.صاحب دهدايه وائي.زموږ پيش كړې حديث ددواړو مخالفوا قوالو خلاف حجت دې.

### د منځنۍ منزل اعتبار دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| **(وَالسَّيْرُ الْمَذْكُورُ** | اوكوم رفتار چې ذكرشوېدې | **هُوَ الْوَسَطُ)** | داد اوسط درجې رفتاردې |

**حل اللغة**①**سير**: تلل ②**وسط**: مينځ

**تشريح:- حد سيرالوسط**۞صاحب دقدوری رحمه الله وائي.چې د اوښ يا دقدمونو رفتاركي معتدل اود اوسط درجې رفتارمراددې.چې نه ډير تيزوی اونه ډيرسست.بلكه ميانه حال تلل وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دا دې.چې ادنی موده دسفردرې منزله دې.يعني كه چا ددرې منزلوپه اراده سفرشروع اوكړو.نودې به شرعاً

---

[1]: من حديث عائشة (رضى الله عنها) اخرجه مسلم فى الطهارة رقم ٨٥)-

مسافر ګڼرلي شي.صاحب دهدايه فرمائي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله التَّقْدِيرُ بِالْمَرَاحِلِ اود ابوحنيفه رحمه الله نه په مرحلو اندازه نقل ده وَهُوَ قَرِيبٌ مِنَ الْأَوَّلِ اودا قول د اول سره قريب دي

حل اللغة* ① مراحل جمع مرحلة: دَ مسافر دَ يوې ورځې سفر

تشريح:- الاقول في اعتبارالفرسخ⊛دحضرت امام صاحب دا قول هم د قول اول سره قريب دي.ځكه چې انسان عادةً په يوه ورځ كې يو منزل سفركوي.بالخصوص په وړو ورځوكي . نوموده دسفردرے ورځې بيانول يادرے منزلو بيانول يوه خبره ده.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْفَرَاسِخِ اوپه فرسخونواندازه كول معتبرنه ده هُوَ الصَّحِيحُ هم داصحيح ده.

حل اللغة* ①فراسخ جمع فرسخ: درې ميله هاشمی، اوَ بعضوپه قول دولس زره ګزه اودا تقريبًا اته كلوميتره برابر دي

تشريح:- صاحب دهدايه فرمائي.چې د صحيح قول مطابق د سفر د مودے په تعين كې د فرسخ څه اعتبار نه دے شوې.يوفرسخ درے ميله وی.عامو مشائخود فرسخونواعتبار كړې دي.نوځينې مشائخو يوولس فرسخو نه ذكر كړی دی.اوبعضو اتلس اوبعضو پنځلس (والعلم عندالله)

## په سمندركي د اوچې رفتارمعتبرنه دي

(وَلَا يُعْتَبَرُ السَّيْرُ فِي الْمَاءِ) اوپه سمندركي رفتارمعتبرنه دي مَعْنَاهُ.ددے معنی دا ده. لَا يُعْتَبَرُ بِهِ السَّيْرُ فِي الْبَرِّ چې دسمندررفتارسره به د اوچے رفتار معتبرنه وی فَأَمَّا الْمُعْتَبَرُ فِي الْبَحْرِ.پاتې شوپه سمندركي اعتبار فَمَا يَلِيقُ بِحَالِهِ.نوهغه دادې.چې څنګه ددےدحال مناسب وی كَمَا فِي الْجَبَلِ.لكه څنګه چې په غركي دي.

حل اللغة* ① لايعتبر، اعتبر اعتبارًا: معتبركيدل ②سير: تلل ③بحر: سمندر ④فلا يليق، لاق لياقة (ض): مناسب كيدل ⑤جبل جمع جبال: غر

تشريح:- الاعتبار الى سيرالوسط البرى في البحر⊛صورت دمسئلې دادې.چې په سمندركي كه په كښتئ كي سفر اوكړې شي.نوددے دحال مناسب به اعتباركولے شی.يعنی كه هوا موافق وی.مخالف نه وی.نوپه دے كي درے ورځو اودرے شپوكي چې څومره مسافه كولې شي.هغه به موده د سفر بللے شی.لكه څنګه چې د غرونو په سفر كي د درے ورځو اودرے شپو مسافه معتبردې.اګرچې په هواره مځكه كي دومره مسافه ددے نه په كمه موده كي پوره كيږی.

توضيح العبارة⊛دمتن دعبارت حاصل دادې.چې په سمندری سفركي د اوچے رفتارمعتبرنه وی.مثلاً يومقام ته درسيدو دوې (دوه) لارے وی.يود سمندر.اودويمه د اوچې.د اوچے په لاره كي دغه مقام ته رسيدو لپاره درے ورځې اود درے شپو مسافه دي.اود سمندر په لاره د دوو ورځو مسافه دې. نوكه يوكس دا مسافه د اوچے په لاره پوره كوی.نوده ته به د مسافر رخصت حاصل وی . اوكه په سمندری لارلاړو.نودسفر رخصت به حاصل نه وی.

## د قصرمونځ شرعحيثيت

قَالَ شيخ قدوری فرمايي (وَفَرْضُ الْمُسَافِرِ فِي الرُّبَاعِيَّةِ رَكْعَتَانِ) دمسافر څلورركعته لمونځ دوې (دوه) ركعته دي لَا يَزِيدُ عَلَيْهِمَا).. په دے به زياتوالے نه كوی.

حل اللغة* ① رباعية: څلور ركعته ②لايزيد، زاد زيادة (ض): زياتول

تشريح:- المذهبان في نوعية القصر⊛قدوری رحمه الله فرمايي .زموږ په نيزڅلور ركعته لمونځ په مسافر دوې (دوه) ركعته فرض دي.په دے اضافه كول جائزنه دی.حاصل داچې زموږ په نيزدمسافر په حق كي قصر رخصت اسقاط دې.يعنی په څلور ركعته لمونځ كي دوې (دوه) ركعته ساقط شوی دی.اودوې (دوه) ركعته پاتې دی.



وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمايي فَرْضُهُ الْأَرْبَعُ دده فرض څلور ركعته دی وَالْقَصْرُ رُخْصَةٌ اوقصركول رخصت دي اِعْتِبَارًا بِالصَّوْمِ په روژه قياس كاوه كوی.

تشريح:- امام شافعی رحمه الله فرمائي.دمسافرپه حق كي قصر، ،رخصت ترفيه، ، دي.او پوره كول افضل دی.يعنی دمسافر دسهولت پيش نظرده ته ددوو ركعتونوكولواجازت وركړې شوې دے .ګنی په څلور ركعته لمونځ كي په ده څلور ركعته فرض دی.اوهم څلورركعته كول افضل دی .د دے قائل امام محمد رحمه الله هم دي. او دا امام مالك رحمه الله هم يوقول دې.

اَدليله⊛ ①دامام شافعی رحمه الله دليل په روژه قياس دې.يعنی څنګه چې مسافر لپاره په رمضان المبارك كي دافطار اجازت دې.اوروژه نيول افضل دی.هم دغه ډول په څلور ركعته لمونځ كي د قصراجازت وركړې شوېدې.ګنی واړه كول افضل دی.

وَلَنَا اوزموږ دليل دادې. أَنَّ الشَّفْعَ الثَّانِي لَا يُقْضَى چې د دويمې شفعے نه قضا شته وَلَا يُؤْثَمُ عَلَى تَرْكِهِ.او نه ددے په پريخودو ګناهګاريږی وَهَذَا آيَةُ النَّافِلَةِ. اودا علامت دې.ددے په نفليت

حل اللغة* ① لايقضى، قضى، يقضى قضاءً (ض): قضا كول، اداكول ②لايثم، اثم اثمًا (ف): ګناهګاريدل ③ ترك: پريښول

تشريح:- دلائل الاحناف⊛زمونږدليل دادې.① كه مسافرقصراوكړی.اوآخری درے ركعته پريږدی.نود اقامت نه روسته نه ددے قضا شته.اونه ددے په پريخودو ګناهګاريږی.اود قضا نه واجبيدل،اونه ګناهګاريدل د دويمې شفعے د نفليت علامت دې.نو ثابته شوه.چې په مسافرپه څلور ركعته لمونځ كي صرف دوې (دوه) ركعته واجب دی.② دوهم نقلی دليل ﴿عن عائشة رضى الله عنها قالت فرضت أى الصلوة ركعتين ركعتين فأقرت صلوة السفر و زيدت فى الحضر﴾ (بخارى ومسلم) حضرت عائشة رضى الله عنها فرمائی.لمونځ دوې (دوه) دوې (دوه) ركعته فرض شوې دې .نودسفرلمونځ (هم په دے حالت) پاته شو.اودحضر په لمانځه كي اضافه اوكړې شوه.③ ﴿عن ابن عباس رضى الله عنهما قال فرض الله الصلوة على لسان نبيكم فى الحضرأربع ركعات و فى السفر ركعتين﴾ابن عباس رضى الله عنهما فرمائي.الله تعالى ستاسود رسول په ژبه په حضركي څلورركعته فرض كړل.او په سفر كي دوې (دوه) ركعته.④ د طبرانی روايت دې.﴿ إفترض رسول الله ﷺ ركعتين فى السفر كما إفترض فى الحضرأربعا﴾رسول الله ﷺ په سفركي دوې (دوه) ركعته فرض كړی دی.لكه څنګه چې نبي په حضركي څلور ركعته فرض كړی دی. ⑤په نسائی اوابن ماجه كي دی.﴿ عن ابن أبى ليلى عن عمر رضى الله عنه قال صلوة السفرركعتان وصلوة الأضحى ركعتان وصلوة الفطر ركعتان وصلاة الجمعة ركعتان تمام غيرقصرعلى لسان محمد ﷺ﴾حضرت عمر رضى الله عنه فرمائی.دسفرلمونځ دوې (دوه) ركعته دي.د لوئې اخترلمونځ دوې (دوه) ركعته دی.د عيدالفطر (وړوكی اختر)لمونځ دوې (دوه) ركعته دی.اودجمعې لمونځ دوې (دوه) ركعته دی.اودا پوره لمونځ دے .بغيرد قصر كاوه نه د الله تعالى د پيغمبر ﷺ په ژبه.⑥ په بخاری شريف كي دابن عمر رضى الله عنه نه نقل دی.﴿ صحبت رسول الله ﷺ فى السفرفلم يزدعلى ركعتين حتى قبضه الله وصحبت عمر رضى الله عنه فلم يزد على ركعتين حتى قبضه الله وصحبت عثمان فلم يزد على ركعتين حتى قبضه الله وقد قال الله تعالى لقد كان لكم فى رسول الله اسوة حسنة﴾د ابن عمر رضى الله عنهما نه نقل دی.چې زه په سفركي د رسول الله ﷺ سره ووم .هغوی ﷺ په دوو ركعتو زيادت نه ووكړې. تردېچې نبیكريم ﷺ وفات شو.اوخپل پلارمحترم حضرت عمر رضى الله عنه سره په سفركي ووم.هغوی هم په دوو ركعتونو اضافه نه وه كړې.تردېچې هغوی رضى الله عنه وفات شو.دحضرت عثمان رضى الله عنه سره مې سفركړې وو.هغوی هم دخپل ژوندے پورې په دوو ركعتونواضافه نه وه كړې.اوالله تعالى د نبیكريم ﷺ ژوند مبارك ته اسوة حسنة فرمائيلی دی .ځكه به ددے اتباع كولې شی.ددے ټولوحديثونونه دسفردلمونځ دوې (دوه) ركعته ثابتيږی.كه دسفر په لمونځ كي څلور ركعته كول افضل وو.لكه څنګه چې د امام شافعی رحمه الله خيال دې.نونبیكريم ﷺ اود هغوی صحابو رضى الله عنهم به هيڅ كله دا فضيلت نه

وو پرېښولي (پرېخودي).

بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې. لِأَنَّهُ يُقْضَى. ځکه چې ددې قضا راوړې شي.

**تشريح:- الجواب من قياس الشافعي** رحمه الله ۞ دحضرت امام شافعي رحمه الله د قياس ځواب دا دې. چې د مسافر قصرلمونځ دده په روژو قياس كول ټيك نه دى. په دې وجه بيشكه مسافرته په رمضان كې د افطار اجازت وركړې شوېدې. خو په دواړو كې توپير دا دې. چې په مسافر په څلور ركعته لمونځ كې د قصر كاوه په صورت كې د اخرېينوقضا واجب نه ده. اود روژو قضا واجب ده. نوپه دې توپير سره يو په بل قياس كول څنګه ټيك كېدې شي. حاصل داچې يوڅيز په داسې حال كې پرېخودل. چې نه د هغې بدل واجب وى. نه د هغې په پرېخودو. څه ګناه وى. نودا ددې څيز د نفليت علامت ده. پاتې شوه روژه. نود دې ترك بغيرد بدل نه نه دې. بلكه ددې بدل موجود دې. يعنى قضې.

## د قصر په ځائې د اتمام حكم

(وَإِنْ صَلَّى أَرْبَعًا اوكه مسافرڅلور ركعته اوكړل وَقَعَدَ فِي الثَّانِيَةِ قَدْرَ التَّشَهُّدِ. او په دوهم ركعت د تشهد په مقداركيناستو أَجْزَأَتْهُ الْأُولَيَانِ عَنِ الْفَرْضِ. نواولنى دوې (دوه) ركعته به دفرضونه دده لپاره كافى شي وَالْأُخْرَيَاتُ لَهُ نَافِلَةٌ. او روستنى دوې (دوه) ركعته به دده لپاره نفل شي اعْتِبَارًا بِالْفَجْرِ په سحر قياس كولوسره. وَيَصِيرُ مُسِيئًا لِتَأْخِيرِ السَّلَامِ اود تاخيرد سلام په وجه به ګناهګاروى

**حل اللغة**° ① صلى، صلى صلاة: لمونځ كول، دعاكول ② قعد، قعدقعوداً (ن): كښېنستل ③ يصير، صار صيراً (ض): كېدل ④ مسيئا: ګناهګار ⑤ تاخير: روستوكول

**تشريح:- صيرورة الركعتين نفلاً بالاتمام** ۞ صورت دمسئلې دادې. چې مسافر په ځائې د دوو ركعتونو څلور اوكړې. اود تشهد په مقدارپه دوهم ركعت هم كېنى. نو اولنى دوې (دوه) ركعته فرض او روستنى دوې (دوه) ركعته نفل شمارلې شى. صاحب دهدايه رحمه الله دسحر په لمانځه قياس كړې دې. يعنى كه دسحر نې څلورر ركعته اوكړل. او په دوهم ركعت كيناستو. نو دسحر دوې (دوه) ركعته فرض به اداشى. البته په سلام كې د تاخيرپه وجه به ګناهګاروى.

(وَإِنْ لَمْ يَقْعُدْ فِي الثَّانِيَةِ قَدْرَهَا. اوكه په دوهم ركعت په قدرد تشهد نې ناسته اونكړه بَطَلَتْ). نودا لمونځ باطل شو لِاخْتِلَاطِ النَّافِلَةِ بِهَا قَبْلَ إِكْمَالِ أَرْكَانِهَا ځكه چې نفل د فرضوسره ددې د اركانو دمكمل كېدو نه مخكې مخلوط شو.

**حل اللغة**° ① بطلت، بطل بطلاً (ن): باطل كېدل ② اختلاط: ملاويدل، ګډوډ كېدل ③ اكمال: پوره كېدل

**تشريح:- بطلان الفريضة بعدم القعود على الركعتين** ۞ اوكه دا مسافر په دوهم ركعت د تشهد په مقداركېنه ناستو. نودده لمونځ به باطل شى. دليل دادې. دفرض اركان مكمل كېدو نه مخكې دفرضو سره نفل مخلوط شو. اركان ځكه مكمل نشو. چې قعده آخره ركن دې. هغه نې پرېخوده. اود فرض اركان مكمل كاوه نه مخكې فرض د نفلوسره مخلوط كول باطلونكې د لمونځ دې. ځكه دده لمونځ باطل شو.

## د قصرشروع كولو مقام

(وَإِذَا فَارَقَ الْمُسَافِرُ بُيُوتَ الْمِصْرِ اوچې مسافردښاركورونه پرېږدى صَلَّى رَكْعَتَيْنِ) نودوې (دوه) ركعته دې اوكړى

**حل اللغة**° ① فارق، فارق، مفارقة: جداكېدل ② بيوت واحد بيت: كور ③ مصر جمع امصار: ښار ④ صلى، صلى صلاة: لمونځ كول

**تشريح:- ابتداء القصر بالتجاوز من البنيان** ۞ سوال دادې. چې دسفر د پيل نه روسته قصركول كله پيل



كېږي؟ نودې حكم دادې. چې كله د ابادئ نه بهراوځى. نو په ده قصركول واجب شو.

لِأَنَّ الْإِقَامَةَ تَتَعَلَّقُ بِدُخُولِهَا ځكه چې د اقامت (حكم) دې كورونو ته داخليدلو سره متعلق كېږى فَيَتَعَلَّقُ السَّفَرُ بِالْخُرُوجِ عَنْهَا. نود سفر (حكم) به هم ددې كورونو نه وتلو سره متعلق كېږى

**حل اللغة**° ① اقامت: قائم كول ② تتعلق، تعلق تعلقاً: متعلق كېدل

**تشريح:- دلائله** ۞ دليل دادې. چې مسافركله دخپل وطن د ښار په آبادئ كې داخلېږى. نود اقامت حكم ورسره متعلق كېږى. نوچې ددې آبادئ نه بهراوځى. نودسفرحكم به پورې متعلق كېږى.

وَفِيهِ الْأَثَرُ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. او په دې باب كې دحضرت على رضي الله عنه اثردې. لَوْ جَاوَزْنَا هَذَا الْخُصَّ لَقَصَرْنَا[1] كه مونږ ددې كوډنۍ نه واوړيدو. نوقصر به وو

**تشريح:-** په دې سلسله كې دحضرت على رضي الله عنه اثرهم منقول دې. «لوجاوزنا هذا الخص لقصرنا» خص وانى. د بانړس يا لرګى كوډنۍ ته. حاصل داچې حضرت على رضي الله عنه فرمائيلې دى. كه مونږ ددې كوډنۍ نه وړاندې تېر شو. نود قصرلمونځ به كوو. هم ددې تائيد د انس رضي الله عنه حديث نه هم كېږى «قال صليت مع رسول الله ﷺ الظهربالمدينه اربعا والعصربذى الخليفة ركعتين» حضرت انس رضي الله عنه فرمائى. چې ما رسول الله ﷺ سره په مدينه منوره كې د ماپښين څلور ركعته اوكړل. او د مازيګر مے په ذوالحليفه كې دوې (دوه) ركعته اوكړل.

## د اقامت د موده حد

(وَلَا يَزَالُ عَلَى حُكْمِ السَّفَرِ اودسفر په حكم به هميشه پاته وى حَتَّى يَنْوِيَ الْإِقَامَةَ فِي بَلْدَةٍ أَوْ قَرْيَةٍ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا أَوْ أَكْثَرَ تردې چې په يو ښاريا كلى كې پنځلس ورځې. يا ددې نه د زياتو د قيام نيت اوكړى وَإِنْ نَوَى أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ. اوكه ددې نه كم نيت نې اوكړو قَصَرَ). نو قصردې اوكړى

**حل اللغة**° ① لايزال، زال زوالاً (س): پاته كېدل، نه زائل كېدل ② ينوى، نوى نية (ض): نيت كول ③ بلدة جمع بلاد: ښار ④ قرية جمع قرى: كلې

**تشريح:- اقل مدة الاقامة** ۞ مسئله داده. چې د سفرحكم به هغه وخت پاته وى. تركومے چې په يوښار ياكلى كې د پنځلسو ورځو يا ددې نه زيات د قيام نيت اونكړى. اوچې د پنځلسو ورځو يا ددې نه دزيات قيام نيت اوكړى. نو دسفرحكم به ختم شى. اوداكس به مقيم شمارلې شى. اوكه د پنځلسوورځونه د كمو اوسيدو نيت اوكړى. نو زمونږ په نيز به داكس مقيم نه وى. بلكه قصرلمونځ به كوى. حضرت امام مالك. اوامام شافعي رحمهما الله فرمائى. دڅلور ورځو دقيام په نيت به مقيم كېږى. د امام شافعى رحمه الله يوقول دادې. كه دڅلورو ورځونه نې زيات قيام اوكړ. نودې مقيم شو. كه نيت اوكړى اوكه اونكړى. حاصل داچې زمونږ اود امام شافعى رحمه الله په مينځ كې دوې (دوه) ځايه اختلاف دې.

**[1] المذهبان في اقل مدة الاقامة** ۞ يو داچې دمقيم كېدو لپاره كم ازكم د څومره ورځو دقيام نيت ضرورى دې؟ ① نوزمونږ په نيز د پنځلسو ورځو په نيت مقيم شمارلې شى. ② او ددوى په نيز د څلورو ورځو په نيت مقيم شمارلې شى.

**[2] دليل الشافعي** رحمه الله ۞ امام شافعى رحمه الله په خپل دې قول دقرآن نه استدلال كړې دې. د الله تعالى ارشاددې (وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَوٰةِ) په دې آيت كې الله تعالى په «ضرب فى الارض» يعنى په

---

(۱) اوردته فى ,,سنن الصلوة،، عن ابى حرب بن ابى الاسود ان عليا خرج من البصرة فصلى الظهر اربعا فقال اما انا اذا جاوزنا هذا الخص صلينا ركعتين اخرجه ابن ابى شيبة فى الصلوة باب من كان يقصر الصلوة رقم ۸۱۶۹ وثق رجاله النيموى اثار السنن فى الصلوة باب القصر اذا فارق البيوت رقم ۸۳۲)-

وتلو.قصرمباح ګرځولي دي.ددےمفهوم مخالف دا دي.که ﴿ضرب فی الارض﴾نه وی .قصر مباح نه دي.اوچي مسافرد اقامت نيت اوکړو.نوده ﴿ضرب فی الارض﴾پريخودو.اوچي ﴿ضرب فی الارض﴾ئي پريخودو.نودده لپاره ﴿ضرب فی الارض﴾مباح پاتي نشو.خو په دے به سوال داوی.که دځلور ورځو نه کم د قيام نيت اوکړی.نوهم د قصر کاوه اجازت نه دے پکار.ځکه چي ﴿ضرب فی الارض﴾په دےصورت کي هم موجود نشو. د دےځواب دادي.چي د نص تقاضا هم داده.چي دځلور ورځونه کم قيام کولوسره د قصرحکم پاته نشی.خومونږد اجماع د دليل په وجه دځلور ورځو نه کم کي دا نص ترك کړي دي. ځکه چي ددے نه کم د قيام په نيت سره د مقيم ګرځيدو هيڅ يوکس قائل نشته.

**المذهبان في شرطية نية الاقامة لها**◉ ① دوهم اختلاف دادي.چي د اقامت لپاره زموږ په نيزاصل نيت شرط دي.زموږ په نيز به بغيرد اقامت د نيت نه مقيم نه وی.اګرکه د پنځلسو ورځونه زيات قيام اوکړی.② د امام شافعی رحمه الله په نيزد اقامت لپاره نيت شرط نه دي.

**دليل الشافعی**◉ د امام شافعی رحمه الله دليل دحضرت عثمان رضی الله عنه قول ﴿من اقام اربعا اتم﴾دے. يعني چي کوم کس دځلورورځو قيام اوکړی.هغه دے پوره لمونځ کوی.په دے قول کي دنيت ذکر نشته.نوثابته شوه.چي د اقامت لپاره نيت ضروری نه دي.

> **لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ اعْتِبَارِ مُدَّةٍ**.ځکه چي په قيام کي د مودے اعتبار کول ضروری دي **لِأَنَّ السَّفَرَ يُجَامِعُهُ اللَّبْثُ**.ځکه چي په سفرکي هم ايساريدل موجود دی. **فَقَدَّرْنَاهَا بِمُدَّةِ الطُّهْرِ** نو موږ موده د اقامت د طهرمودے سره اندازه کړه **لِأَنَّهُمَا مُدَّتَانِ مُوجِبَتَانِ**.ځکه چي دا دواړه مودے واجبونکي دی

**تشريح:- دليل اقل مدة الاقامة**◉ داقامت لپاره د پنځلسو ورځو اعتبارکولوکي د امام اعظم رحمه الله دليل دادي.چي دمسافر لپاره دا ضروری نه ده.چي ددےشپه ورځ ۲۴ګهنټے روان وی.بلکه دے ډيرکرته اودريږی هم. اوکافی وخته پورې اودريږی.نومعلومه شوه.چي سفر او لُبث(ايساريدل) دواړه جمع کيږی.دا خبره هم "اظهرمن الشمس" ده.چي دايساريدو نوم اقامت اومقيم کيدل دی.خوددے دواړو په مينځ کي د توپير کاوه لپاره د يوے مودے اعتبارکول ضروری دي.د دے وجي موږ په مودے د طهر قياس اوکړو.اوموده د اقامت مو پنځلس ورځي مقررکړه.

**العلة المشتركة بين المدتين**◉ پاتي شوه داخبره.چي د قياس علت مشترکه څه دے؟ نوپه دے اړه کي صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چي موده د طهر اوموده د قيام د دواړو "موجب کيدل" علت مشترکه دي.يعني دحيض په وجه چي کوم عبادت ساقط شوي وو.په مودے دطهرسره چي څنګه هغه واروسته عودکوی.دغه ډول د سفر په وجه سره ساقط شويعبادت هم د اقامت په مودے سره واروسته عودکوی.نوددے قياس په بنا (بنياد) لکه څنګه چي ادنی موده دطهر پنځلس ورځي ده.دغه ډول ادنی موده د اقامت هم پنځلس ورځي ده.هم دغه وجه ده.چي دطهرضد دحيض ادنی موده درے ورځي دی.نود اقامت ضد دسفر ادنی موده به هم درے ورځي وی.

> **وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ**[1] رضی الله عنهما.اوهم دا مقدارداابن عباس رضی الله عنهما اوابن عمر رضی الله عنهما نه منقول دي **وَالْأَثَرُ فِي مِثْلِهِ كَالْخَبَرِ**.او په داسي قسمه باب کي د صحابی رضی الله عنه قول د رسول اکرم ﷺ د قول په شان دي

**تشريح:- الدليل النقلی علی تعين المدة**◉ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.د اقامت دمودے پنځلس ورځي کيدل. دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړی دی.لکه چي مجاهد روايت کړي دے ﴿عن ابن عباس وابن عمر رضی الله عنهما قالا إذا أدخلت بلدة وأنت مسافر وفی عزمك أن تقيم بها خمسة عشر يوما فأكمل الصلوة وإن كنت لاتدری

(1) :قال الزيلعی رحمه الله اخرجه الطحاوی عنهما قالا اذا قدمت بلدة و انت مسافر وفی نفسک ان تقيم خمسة عشر يوما اكمل الصلوة بها و ان كنت لا تدری متی تطعن فاقصرها انتهی نصب الرايه ۱۹۰/۲)-



متی تظعن فاقصر﴾ يعني ددے دواړو حضرات صحابو رضی الله عنهم فرمائی دي.چي ته کله يو ښار ته داخل شي.په داسے حال کي چي ته مسافر ئي.اوستا اراده د پنځلسو ورځو د قيام وی.نوته لمونځ پوره کوه.اوکه تاته دا علم نه وی.چي کله به سفر کوم. نو قصرکوه.صاحب دهدايه فرمائی.د پنځلسو ورځو تحديد دمقدراتو شرعيه څخه دي.اود ورځو تقديراوتحديد داسے څيزدي.چي په دے کي په عقل سره لاره نشي موندي.اوقاعده ده.چي په ﴿مالا يعقل﴾کي اثر دصحابی رضی الله عنه په منزله دخبراو د حديث وی.ګوياچي ابن عباس او ابن عمر رضی الله عنهم د پنځلسو ورځو تعين د نبی کريم ﷺ نه اوريدلے دي.نو بيان کړي ئي دي.

> **وَالتَّقْيِيدُ بِالْبَلْدَةِ وَالْقَرْيَةِ يُشِيرُ إِلَى**.دښار اوکلی قيد لګول دےخبرے ته اشاره کوی **أَنَّهُ لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ فِي الْمَفَازَةِ**.چي په ځنګل کي د اقامت نيت کول صحيح نه دی **وَهُوَ الظَّاهِرُ**. هم دا ښکاره ده.

**تشريح:- الروايتان في نية الاقامة في الصحراء**◉ صاحب دهدايه وائی.① دامام ابوالحسن قدوری رحمه الله د اقامت لپاره دښار يا قريه قيد لګولوکي دے ته اشاره ده.چي په ځنګل کي د اقامت نيت کول ټيك نه دی.هم دا ظاهر راويت دي.② اګرچي قاضی ابويوسف رحمه الله فرمائی.که ګډبانه (شپونکی) دګياه او اوبو په ځائي کي خيمے اولګوی.اود پنځلسو ورځو ايساريدو نيت اوکړی.نومقيم به شمارلی شی.

## بغيرد نيت د قيام نه په پوهٔانی شي د قيام حکم

> **وَلَوْ دَخَلَ مِصْرًا عَلَى عَزْمٍ** اوکه يو مسافرښارته په دے اراده داخل شو **أَنْ يَخْرُجَ غَدًا أَوْ بَعْدَ غَدٍ**.چي سهار يابله ورځ به واروسته کيږی **وَلَمْ يَنْوِ مُدَّةَ الْإِقَامَةِ** اود اقامت نيت ئي نه وی کړي **حَتَّى بَقِيَ عَلَى ذَلِكَ سِنِينَ**..ترديچي هم په دے اراده څوکاله پاتي شو **قَصَرَ**.نو قصربه کوی

**حل اللغة*** ①دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ②عزم: اراده ③يخرج،خرج خروجي (ن): وتل

**تشريح:- قصرالصلاة مالم ينوالاقامة**◉ په مخکي مسئله کي تيرشو.چي د اقامت لپاره پنځلس ورځي د قيام نيت کول ضروری دي.هم په هغي باندي دا مسئله متفرع کوی او فرمائی.که مسافر يوښارته په دے نيت داخل شی.چي سهار يا بله ورځ به روانيږی.د اقامت دمودے يعني د پنځلسو ورځود قيام نيت ئي نه وی کړي ترديچي هم په دےنن سهار کي څوکاله تيرشو.نودے به قصرکوی.مقيم به نشي ګڼړلی.

> **لِأَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَقَامَ بِأَذْرَبِيجَانَ سِتَّةَ أَشْهُرٍ**[1] ځکه چي ابن عمر رضی الله عنه په آزر بائيجان کي شپږ مياشتے قيام کړي وو **وَكَانَ يَقْصُرُ** او قصر به ئي کوو

**تشريح:- دليله**◉ دليل دادي.چي حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما د آذر بائيجان په مقام شپږ مياشتے قيام کړي وو. چونکه حضرت ابن عمر رضی الله عنه په يووخت پنځلس ورځي دقيام نيت نه ووکړي. په دے وجه هغه دقصرلمونځ کولو.

> **وَعَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ** رضی الله عنهم **مِثْلُ ذَلِكَ** او دصحابو رضی الله عنهم د يو جماعت نه هم دغه ډول نقل دی.

**تشريح:-** هم ددے په شان د نورو صحابو رضی الله عنهم نه نقل دی.لکه د سعدابن ابی وقاص رضی الله عنه په اړه کي نقل دی.چي دوی د نيشاپور په يوکلی کي دوي (دوه) مياشتے قيام کړي وو.اوقصر به ئي کولو.دغه ډول علقمه بن قيس رضی الله عنه په خوارزم کي دوي (دوه) کاله قيام کړي وو.اوقصرلمونځ ئي کولو.

## په دارالحرب کي د لښکرد اقامت د نيت حکم

(1) قال الزيلعی رحمه الله رواه عبدالرزاق فی مصنفه و اخرج البيهقی فی ,,المعرفة،، وقال محقق نصب الراية احمد شمس الدين رواه البيهقی فی السنن الكبری (۲۱۷/۳ رقم ۵۴۷۶) و احمد فی المسند (۸۳/۲) كذا فی نصب الراية ۱۹۲/۲)-

(وَإِذَا دَخَلَ الْعَسْكَرُ أَرْضَ الْحَرْبِ) او چې اسلامي لښکر د کافرانو ملك ته داخل شي (فَنَوَوُا الْإِقَامَةَ بِهَا) او په هغې کښې د پنځلسو ورځو پاتې کېدو نیت اوکړي. (قَصَرُوا) نو هم به قصر کوي (وَكَذَا إِذَا حَاصَرُوا فِيهَا مَدِينَةً أَوْ حِصْنًا) او هم دغه شان چې کله په دارالحرب کې د یو ښار یا قلعې محاصره اوکړي

**حل اللغة**: ① **عسکر جمع عساکر**: لښکر ② **حرب جمع حروب**: جنګ ③ **قصروا، قصر قصرًا (ن)**: مختصر کول، وړوکې کول، قصر کول ④ **حاصروا، حاصر محاصرة**: محاصره کول، راګیرول ⑤ **مدينة**: ښار ⑥ **حصن جمع حصون**: د ساتنه اوچت ځای، قلعه

**تشریح: - عدم اعتبار نية الاقامة في دارالحرب للعسکر**۞ چې اسلامي لښکر دارالحرب ته داخل شي. او د پنځلسو ورځو قیام نیت اوکړي. نو هم حکم دا دې. چې دا اسلامي لښکر دې قصر لمونځ کوي. هم دا حکم په هغه وخت کې دې. چې اسلامي فوج دارالحرب ته ورننوځي. او د یو ښار یا قلعې محاصره اوکړي. حاصل دا چې په دارالحرب کې د اسلامي لښکرد اقامت نیت معتبرنه دې.

(لِأَنَّ الدَّاخِلَ) ځکه چې داخلېدونکي لښکر (په دوو خبرو کې) متردد دې (بَيْنَ أَنْ يَهْزِمَ فَيَقِرَّ) یو دا چې شکست به خوري او به تختي (وَبَيْنَ أَنْ يَنْهَزِمَ فَيَفِرَّ) دویمه دا چې شکست به ورکړي. پاتې به شي (فَلَمْ تَكُنْ دَارَ إِقَامَةٍ) نو ځکه به دا دار اقامت نه وي.

**تشریح: - دلیله**۞ ځکه چې د اقامت د نیت محل هغه ځائې وي. کوم ځائې کې چې انسان ته یقیني آرام او امن حاصل نه وي. او دلته کې صورت دا دې. چې اسلامي لښکر د قرار او فرار په مینځ کې متردد دې. ځکه چې د شکست په صورت کې به د تېښتې لاره اختیاروي. او د فتح په صورت کې به ایسارېږي. نو د تېښتې او پاتې کېدو په حالت کې دارالحرب د اسلامي لښکر لپاره دارالاقامت نشي ګرځېدې. لکه چې په دارالاسلام کې ځنګل دار اقامت نه دې. هم دا وجه ده چې په ځنګل کې د اقامت نیت معتبرنه دې.

## د باغیانو د محاصرې په حال کې د اقامت د نیت حکم

(وَكَذَا إِذَا حَاصَرُوا) او هم دغه شان چې اسلامي لښکر محاصره اوکړه. (أَهْلَ الْبَغْيِ) د باغیانو (فِي دَارِ الْإِسْلَامِ) په دارالاسلام کې (فِي غَيْرِ مِصْرٍ) د ښار نه سوا (أَوْ حَاصَرُوهُمْ فِي الْبَحْرِ) [1] یا ئې په سمندر کې د دوی محاصره اوکړه

**حل اللغة**: ① **حاصروا، حاصر محاصرة**: راګیرول ② **بحر**: سمندر

**تشریح: - مسئله**: که اسلامي لښکر په دارالاسلام کې د ښار نه علاوه په ځنګل وغیره کې د باغیانو محاصره اوکړي. یا په سمندر کې په یو ټاپو کې ئې د باغیانو محاصره اوکړه. او اسلامي لښکر پنځلس ورځې د اقامت نیت اوکړو. نو د دوی دا نیت معتبر نه دې. بلکه په دوی به د قصر لمونځ کول لازم وي.

(لِأَنَّ حَالَهُمْ مُبْطِلٌ عَزِيمَتَهُمْ) ځکه چې د دوی حالت د دوی اراده باطلوي

**تشریح: - دلیله**۞ دلیل دا دې. چې اسلامي لښکر په دې صورت کې هم د ایسارېدو او تېښتې په مینځ کې متردد دې. نو د دوی د تردد حالت د دوی اراده او د اقامت نیت باطلوي. ځکه چې څنګه فتح حاصلولو کې د اسلامي لښکر پاتې کېدل ممکن دی. دغه ډول د شکست خوړلو په حالت کې فرار (تښتېدل) هم ممکن دې.

**نوعية القيدين في العبارة**۞ د صاحب هدایه بیان کړې دلیل نه معلومېږي. چې په عبارت کې "في غير مصر" او د "في البحر" قید اتفاقي دې. هم دا وجه ده. که اسلامي لښکر د باغیانو په ښار کې پاتې شو. او په قلعه کې ئې

[1]) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا فى الدرالمختار (۵۸۲\۱) والتاتارخانية (۲\۶) والبحر الرائق (۲\۱۳۳) نقلا عن القول الراجح (۱\۱۳۸)۔



د دوی محاصره اوکړه. نو هم به د اسلامي لښکرد اقامت نیت صحیح نه وي. ځکه چې د باغیانو ښار د مقصود (فتح) حاصلولو نه پس. د ځنګل په شان دې. ځکه چې اسلامي لښکر به په دې کې اقامت نه کوي. بلکه بهر ته به ځي.

(وَعِنْدَ زُفَرَ رحمه الله يَصِحُّ فِي الْوَجْهَيْنِ) او د امام زفر رحمه الله په نیز په دواړو صورتونو کې صحیح دي (إِذَا كَانَتِ الشَّوْكَةُ لَهُمْ) په شرط د دې چې غلبه اسلامي لښکر ته حاصل وي (لِلتَّمَكُّنِ مِنَ الْقَرَارِ ظَاهِرًا) ځکه چې په ظاهره دوی ته په پاتې کېدو قابو حاصل دي

**حل اللغة**: ① **يصح، صح صحيحًا (ض)**: صحیح کېدل ② **مدر**: غونډۍ، خاوره

**تشریح: - مذهب زفر رحمه الله**۞ امام زفر رحمه الله فرمائي. که اسلامي لښکر د حربیانو محاصره اوکړي. او که د باغیانو. په دواړو صورتونو کې د اقامت نیت صحیح دې. خو دا حکم په هغه صورت کې دې. چې کله اسلامي لښکر ته په ملك کې قوت او غلبه حاصله وي. ځکه چې په دې صورت کې په ظاهره په پاتې کېدو قدرت حاصل دي.

(وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله يَصِحُّ) او د ابو یوسف رحمه الله په نیز هغه وخت صحیح دي. (إِذَا كَانُوا فِي بُيُوتِ الْمَدَرِ) چې کله د اسلامي لښکر قیام د ښارونو په کورونو کې وي (لِأَنَّهُ مَوْضِعُ إِقَامَةٍ) ځکه چې دا د پاتې کېدو ځایونه دي

**حل اللغة**: ① **موضع جمع مواضع**: مقام، ځای

**تشریح: - مذهب ابی یوسف رحمه الله**۞ د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دا دې. چې د اسلامي لښکر د حربیانو یا د باغیانو د محاصره کاوه په صورت کې د اقامت نیت کول. هغه وخت صحیح دې. چې کله د اسلامي لښکر قیام د ښارونو په کورونو. او عمارتونو کې وي. او که په خیمو کښې قیام وي. نو د دوی نیت معتبر نه دې.

**دلیله**۞ دلیل دا دې. چې د اقامت ځائې او محل کورونه او عمارتونه دي. خیمې د اقامت ځایونه نه دي.

(وَنِيَّةُ الْإِقَامَةِ مِنْ أَهْلِ الْكَلَأِ وَهُمْ أَهْلُ الْأَخْبِيَةِ) او د اقامت نیت د د ګیاه دارو خلګو او دا د خیمو نفر دي (قِيلَ لَا تَصِحُّ) وئیلې شوي دي. چې صحیح نه دې (وَالْأَصَحُّ) او اصح دا دې (أَنَّهُمْ مُقِيمُونَ) چې دوی مقیم دي (يُرْوَى ذَلِكَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله) [1] د امام ابویوسف رحمه الله نه هم دا سې روایت شوېدې (لِأَنَّ الْإِقَامَةَ أَصْلٌ)... ځکه چې اقامت اصل دې (فَلَا تَبْطُلُ بِالِانْتِقَالِ مِنْ مَرْعًى إِلَى مَرْعًى) نو د یوې ورشو (چراګاه) نه بلې ورشو ته په منتقل کېدو سره نه باطلېږي.

**حل اللغة**: ① **اخبية واحد خبا**: خیمه ② **فلا تبطل، بطل بطلاً (ن)**: باطل کېدل ③ **مرعى**: د څرن ځای

**تشریح: - المذهبان في نية الاقامة من اهل الاخبية**۞ صاحب د هدایه وائي. هغه خلګ د چا چې د معاش دارومدار په څاروو وي. غوي چې کوم ځائې کې ګیا او اوبه وینی خیمه لګوي. او پاتې کېږي. او بیا چې هلته ګیا ختمه شي نو روانېږي. او په یو داسې موقع هم دغه ډول ځائې کې پاتې کېږي. د دوی د اقامت په صحت او عدم صحت کې د عالمانو رحمهم الله اختلاف دې. ① د بعضې عالمانو خیال دې. چې د دې خلګو د اقامت نیت صحیح نه دې. ځکه چې دغه خلګ د اقامت په ځائې کې نه دی. ② اصح قول دا دې. چې دا خلګ مقیم دی. یعنی د ابتداء نه هډو مسافر شوي نه دی. ځکه چې اقامت اصل دې. او سفر په دې عارض کېږي. نو اقامت به هغه وخت باطلېږي. چې کله ده ته سفر عارض وي. یعنی دوی د یو مقام نه بل مقام ته قصد کړې وي. چې د درې ورځو مسافه دې. نو دا خلګ به په لاره کې مسافر وي.

**نية اهل الكلاء**۞ او د یو ورشو (د څرن ځائې) نه بلې ورشو ته منتقل کېدو ته سفر نه وائي. نو د ورشو نه بلې ورشو ته منتقل کېدل اقامت نه باطلوي. او چې اقامت نه باطلېږي. نو دا خلګ به مقیم وي. مسافر به نه وي.

[1]) القول الراجح هو قول ابی یوسف رحمه الله كذا فى الدرالمختار (۵۸۳\۱) والبحر الرائق (۲\۱۳۳) والتاتارخانية (۲\۷) نقلا عن القول الراجح (۱\۱۳۹)۔

## د مسافر لپاره دمقيم د اقتداء حكم

(وَإِنْ اقْتَدَى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِ فِي الْوَقْتِ) اوكه په يووخت كي مسافر د مقيم اقتداء اوكړه (أَتَمَّ أَرْبَعًا) نو پوره څلور ركعته دے اوكړي.

**حل اللغة:** ① اقتدى، اقتدى اقتداءً: پيروي كول، اقتدا كول ② مسافر: سفركونكي ③ مقيم: يوځاى حصار ④ اتم، اتم تماماً: پوره كول

**تشريح:-** دے ځاي نه د دوو خبروحكم بيان شوېدي. يودمسافر په مقيم پسې داقتداء كولوحكم. دوهم د مقيم په مسافر پسې داقتداء حكم. لومړي صورت په وخت كي جائزدي. خود وخت وتلونه روسته جائز نه دي. او دوهم صورت په وخت كي هم جائزدي. اودوخت نه روسته هم. صاحب د قدوري رحمه الله د اولنى صورت بيانولونه روسته فرمائي. كه مسافر په وخت كي په مقيم پسې اقتداء اوكړه. يعنى په څلور ركعته لمونځ كي مسافردمقيم اقتداء اوكړه. نومسافربه پوره څلور ركعته كوي.

(لِأَنَّهُ يَتَغَيَّرُ فَرْضُهُ إِلَى أَرْبَعٍ) ځكه چې د تابع كيدو په وجه دمسافر فريضه څلورو ركعتوته متغير كيږي (لِلتَّبَعِيَّةِ كَمَا يَتَغَيَّرُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ) لكه څنگه چې د اقامت په نيت سره متغير كيږي

**تشريح:- دليله ⊛** دليل دادي. چې مسافردے كس دمتابعت التزام كړي دي. اودهغه فرض لمونځ څلور ركعته دى. اوځوك چې د هغه كس د متابعت التزام اوكړي. د چا فريضه چې څلور ركعته وى. نود تابع كيدو په وجه دده فريضه په څلورو ركعتونو بدليږي. لكه څنگه چې د اقامت په نيت دمسافر فريضه څلور ركعتو كي تبدليږي.

(لِاتِّصَالِ الْمُغَيِّرِ بِالسَّبَبِ وَهُوَ الْوَقْتُ) . ځكه چې بدلونكي سبب يعنى وخت سره متصل شوې دي.

**تشريح:- بيان العلة الجامعة ⊛** د (لاتصال المغير) نه دعلت جامعه بيان دي. يعنى دلته كي جامع موجود دي. هغه داچې مغير (دوې (دوه) ركعته په څلورو كي بدولونكے) سبب سره اتصال دي. لكه چې مغير. په اول كي اقتداء ده. چې سبب يعنى وخت سره متصل دي. لكه څنگه چې په دوهم كي مغير (يعنى نيت د اقامت) سبب (يعنى وخت) سره متصل دي.

## د مسافر په فوت شوى مونځ كي په مقيم پسې اقتداء

(وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ فِي فَائِتَةٍ) اوكه مسافر. مقيم سره په يوفوت شوى لمونځ كي شريك شو (لَمْ تُجْزِهِ) . نوجائزنه دي

**حل اللغة:** ① دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ② فائتة: فوت شوې ③ لم تجزه، جاز جوازاً (ن): جائز كيدل

**تشريح:- عدم جوازاقتداء المسافر بالقيم في الفائتة ⊛** مسئله داده. كه مسافرپه قضا لمونځ كي د مقيم د اقتداء نيت اوكړو. نودا جائز نه ده.

(لِأَنَّهُ لَا يَتَغَيَّرُ بَعْدَ الْوَقْتِ) ځكه چې د مسافر فريضه به دوخت نه روسته نه متغير كيږي (لِانْقِضَاءِ السَّبَبِ) ځكه چې سبب خوتيرشو (كَمَا لَا يَتَغَيَّرُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ) لكه څنگه چې (قضا مونځ) په نيت د اقامت سره نه بدليږي

**حل اللغة:** ① لايتغير، تغير تغيراً: بدليدل

**تشريح:- دليله ⊛** ځكه چې د وخت تيريدو نه روسته دمسافرفريضه نه بدليږي. ځكه چې دفرض لمونځ سبب خو وخت دي. او اقتداء چې كوم تغيركوي. هغه چې دسبب سره متصل شي. نو اثر كوي. اوچونكه قضا لمونځ كي سبب يعنى د وخت تيريدو په وجه دا اتصال موجود نشو. په دے وجه د مسافر فرض د دوو ركعتو نه په څلورو ركعتو كي نه بدليږي. لكه چې قضا لمونځ په نيت د اقامت سره نه بدليږي. حالانكه نيت د اقامت هم دوې (دوه) ركعته په څلور ركعته كي بدلوي.



(فَيَكُونُ اقْتِدَاءُ الْمُفْتَرِضِ بِالْمُتَنَفِّلِ فِي حَقِّ الْقَعْدَةِ أَوْ الْقِرَاءَةِ) ځكه چې د قعدې يا قرات په حق كي د مفترض په متنفل پسې اقتداء لازميږي.

**حل اللغة:** ① اقتداء: پيروي كول ② مفترض: فرض اداكونكي ③ متنفل: نفل ادا كونكي ④ قراءة: لوستل

**تشريح:- توضيح اقتداء المفترض بالمتنفل ⊛** په (فيكون اقتداء المفترض بالمتنفل... الخ) سره د ماقبل نتيجه ذكر ده. حاصل داچې دلمونځ د وخت وتلو نه پس. كه مسافر څلور ركعته قضا لمونځ كي دمقيم اقتداء اوكړي. نوپه دوو خرابيانو كي به يوه خرابي ضرورلازميږي. ياخوبه دخپل امام مخالفت لازميږي. اويا به اقتداء د مفترض په متنفل پسې لازميږي. ځكه كه مسافر په قضا څلور ركعته لمونځ كي د مقيم اقتداء اوكړه. نو ددے دوې (دوه) صورته دي. ① مسافرمقتدى به په دوو ركعتوسلام اړوى. يا په څلورو. كه مسافرپه دوور كعتوسلام واړولو. نودا د خپل امام مخالفت شو. اومخالفت د امام مفسد د لمانځه دي. ② اوكه مسافرد آخره پورې امام سره شريك پاتې شو. نواوس ددے دوې (دوه) صورته دي ① مسافرپه پيل كي اقتداء كړې ده ② اوكه په آخردوو ركعتونوكي. كه لومړې صورت وى. نوپه دوو ركعتو قعده د مسافرحق كي فرض ده. ځكه چې دده په حق كي دا قعده آخرى ده. اود امام مقيم په حق كي فرض نه ده. ځكه چې دده په حق كي دا قعده اولى ده. اوقعده اولى فرض نه ده. نوپه دے صورت كي د قعدې په حق كي مفترض د متنفل مقتدى وى. اوكه په آخرى دوو ركعتونوكي ئې اقتداء كړې وى. نو په آخركي د امام يعنى دمقيم قرأت نفل دي. اودمقتدى يعنى دمسافر فرض دي. نو په دے صورت كي دقرات په حق كي د مفترض په متنفل پسې اقتداء لازميږي. اودا خبره منلے شوې ده. چې زموږ په نيز اقتداء د مفترض په متنفل پسې ناجائزده.

حاصل دادي. چې د وخت وتلو نه روسته د مسافرپه مقيم پسې مقتدى جوړولوكي. په دواړو صورتونو كي فساد دي. نود وخت نه روسته دا اقتداء هډو صحيح كيږي نه.

## د مسافر مقيمينو ته د امامت حكم

(وَإِنْ صَلَّى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِينَ رَكْعَتَيْنِ) كه مسافرمقيمينو ته دوې (دوه) ركعته لمونځ اوكړو (سَلَّمَ) . نوامام مسافردے سلام واړوى (وَأَتَمَّ الْمُقِيمُونَ صَلَاتَهُمْ) . اومقيم خلگ دے خپل لمونځ پوره كړي (لِأَنَّ الْمُقْتَدِيَ الْتَزَمَ الْمُوَافَقَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ) ځكه چې مقتدى په دوو ركعتوكي د موافقت التزام كړي دي. (فَيَنْفَرِدُ فِي الْبَاقِي كَالْمَسْبُوقِ) نوپه پاته دوو ركعتوكي به هغه د مسبوق په شان ځانله وى

**حل اللغة:** ① صلى، صلاة: لمونځ كول ② مسافر: سفركونكي ③ سلم، سلم تسليماً: سلام گرځول، سلام كول ④ اتم، اتم اتماماً: پوره كول ⑤ التزام، التزام التزاماً: لازم كول، بندوبست كول

**تشريح:-** صورت دمسئلې دادي. كه مقيم خلگ وپه مسافرپسې اقتداء اوكړه. نومسافردے دوى ته دوې (دوه) ركعته اوكړي. او قعدې نه روسته دے سلام واړوى. اومقيم خلگ دے خپل لمونځ پوره كړي.

دليل دادي. چې مقيم مقتدى امام مسافر اوگڼلو. نو په دوور كعتونوكي ئې د موافقت التزام كړې وو. او د كوم چې ئې التزام كړې وو. هغه اداكړې شو. حالانكه د مقيم مقتدى لمونځ اوسه پورې نه دے پوره شوې. د دے وجې مقيم مقتدى به په پاته دوو ركعتونوكي منفرد وى. لكه چې د امام د سلام اړولو نه روسته مسبوق منفرد وى.

(إِلَّا أَنَّهُ لَا يَقْرَأُ فِي الْأَصَحِّ) . خود اصل قول په بناء به قرات نه كوى. (لِأَنَّهُ مُقْتَدٍ تَحْرِيمَةً) ځكه چې د تحريمې په اعتبارسره دے مقتدى دي (لَا فِعْلًا) . نه داچې د فعل په اعتبارسره (وَالْفَرْضُ صَارَ مُؤَدًّى) . اوفرض خوادا شوېدى (فَيَتْرُكُهَا احْتِيَاطًا) . نو احتياطا دے قرات پرېږدى

**حل اللغة:** ① صار، صارصيراً (ض): كيدل ② فيتركها، ترک تركاً (ن): پريښول

**تشریح:- وجه الفرق بینهما:** خو په دے دواړوکي دومره توپیر دي چي مقیم مقتدی دے د اصح قول په بناء په دے رکعتونوکي قرات نه کوی. کومچي د مسافر د امام د سلام اړولو نه روسته کوی. او دے مسبوق قرات کوی. د قول اصح دلیل دا دی چي مقیم په آخرو دوو رکعتونوکي د تحریمې په اعتبار سره مقتدی دې. خود فعل په اعتبارسره مقتدی نه دي. د تحریمې په اعتبارسره خومقتدی خکه دے چي ده په اوله تحریمه کي د امام سره د اداکاوه التزام کړي دي. اود فعل په اعتبارسره مقتدی خکه نه دی چي په دوو رکعتونود سلام په ذریعه د امام مسافر فعل ختم شوبدې. اوچې کوم کس داسې وی. یعنیٰ د تحریمې په اعتبارسره مقتدی اود فعل په اعتبارسره غیرمقتدی. نوهغه ته لاحق وئیلي شی. اوپه لاحق قرات نه وی. خکه د تحریمې په اعتبارسره که دده په مقتدیت ته نظراوشی. نوپه ده به قرات کول حرام وی. اوکه د فعل په اعتبارسره په غیرمقتدیت نظر اوشی. نودده لپاره به قرات کول مستحب وی. خکه چي په کومو دوو رکعتونوکي قرات فرض وو. هغه ادا شوی دی. حاصل داچي په آخری دوو رکعتونوکي د مقیم مقتدی لپاره قرات کول حرام اود مستحب په مینځ کي دائر دي. نوحرامو ته ترجیح ورکولوکي احتیاط په دےکي دي. چي مقیم مقتدی په آخری دوو رکعتونوکي قرأت پرېږدی.

بخلاف المسبوق. په خلاف د مسبوق لأنه أدرك قراءة نافلة خکه چي مسبوق نفل قرات لاندې کړي دي فلم يتأد الفرض خو اوسه پورې فرض قرات ادا شوې نه دي فكان الإتيان أولى په دے وجه قرات کول به غوره وی.

**حل اللغة:** ① ادرک، ادرک ادراکا: موندل ② اتیان: راتگ

**تشریح:- حکم قراءة المسبوق:** په خلاف د مسبوق. دلته کي د مسبوق نه هغه مسبوق مراد دي. چي ده ته په څلور رکعته لمونځ کي اولنی دوې (دوه) رکعته امام سره نه وی ملاو شوې. بلکه آخری دوې (دوه) رکعتونو کي امام سره شریک شوې وی. بهرحال د امام د سلام اړولو نه روستهچي مسبوق خپل فوت شوی دوې (دوه) رکعته کوی. نو په ده به په دےکي قرات کول واجب وی. خکهچي مسبوق په آخری دوو رکعتونوکي د امام کوم قرات موندلے دي. هغه نفل قرات وو. او په اولنو دوو رکعتونوکي چي کوم فرض قرات دي. هغه ني تر اوسه ادا کړي نه دي. د دے وجې په مسبوق قرات کول واجب دي. والله اعلم بالصواب

### مسافر امام لپاره «اتموا صلاتکم فانا قوم سفر» وئیل مستحب دي

قال ويستحب للإمام اوداامام لپاره مستحب دی إذا سلم چي کله دےسلام واړوی أن يقول نو داسے اووائی. أتموا صلاتكم. تاسوخپل لمونځ پوره کړئ. فإنا قوم سفر مونږ مسافریو

**حل اللغة:** ① یستحب، استحب استحباب: مستحب کیدل ② سلم، سلم، یسلم تسلیما: سلام گرځول، سلام کول ③ یقول، قال قولاً (ن): وینا کول ④ اتموا، اتم اتماما: پوره کول

**تشریح:- اخبار الامام للقوم بحاله من السفر:** امام که مسافر وی. نو په دوو رکعتونو سلام اړولو نه روسته دے مقتدیانو ته داسې اووائی. تاسوحضرات خپل لمونځ پوره کړئ. زه مسافریم.

لأنه عليه الصلاة والسلام قاله حين صلى بأهل مكة خکه چي نبیکریم ﷺ کوم وخت د مکې خلگو ته لمونځ اوکړونوهم دغه ني فرمائیلي وو وهو مسافر[1] په داسي حال کي چي هغوی ﷺ مسافر وو

**تشریح:- دلیله:** دلیل د ابو داؤد او ترمذی روایت کړې حدیث دے «عن عمران بن حصین رضی الله عنه قال غزوت مع رسـول

(1) من حدیث عمران بن حصین رضي الله عنه اخرجه ابوداؤد فی صلوة المسافر باب ۱۰ رقم ۱۲۲۹ والترمذی فی الجمعة باب ۳۹ و (۲/۱۹۱۳) رقم (۵۴۸٤) والطحاوی فی شرح الاثار (۲٤۲۱۱) والطبرانی فی معجمه وابن ابی شیبة فی مصنفه و ...حاق بن راهویه و ابوداؤد الطیالیسی والبزار فی مسانیدهم)-



الله ﷺ وشهدت معه الفتح فاقام بمكة ثمان عشرليلة لا يصلي إلا ركعتين يقول يا أهل مكة صلوا أربعا فإنا قوم سفر» عمران بن حصین رضی الله عنه وائی. چي ما د رسول الله ﷺ سره غزاگانے کړی دی. د نبیکریم ﷺ سره په فتح مکه کي شریک شوې یم. نبیکریم ﷺ اتلس شپې په مکة مکرمه کي قیام اوکړو. په دے موده کي نې (به څلوررکعته مونځ کي صرف دوې (دوه) رکعته کول. وویل به نې. اے د مکې خلگ و. تاسوڅلور رکعته کوئ. څه خو مسافر یم.

② **عدم شرطیة علم المأموم بحال الامام من الاقامة والسفر:** دقدوری رحمه الله عبارت نه ظاهرېږي. چي دا شرط نه دےچي د لمونځ پیل کاوه نه مخکي مقتدی ته د امام سفر یا اقامت علم وی. خکه که مقتدیانو ته د امام د سفر علم مخکي نه وی. نو دسلام اړولو نه روسته د امام مسافرداو وېناچي «أتموا صلاتكم» عبث ده. اوکه دده داقامت علم وی. نومسافر به په خپل قول "انا قوم سفر" کي کاذب وی

### وطن نه په واروسته کیدو د اتمام حکم

وإذا دخل المسافر في مصره او کلهچي مسافر خپل وطن کي داخل شی أتم الصلاة نو پوره لمونځ دے کوی وإن لم ينو المقام فيه. اگرچي په دےکي نې د قیام نیت نه وی کړې

**حل اللغة:** ① دخل، دخل دخولاً (ن): داخلیدل ② مصر جمع امصار: ښار ③ اتم، اتم اتماما: پوره کول ④ لم ینو، نوی نیة (ض): نیت کول ⑤ مقام: ځای

**تشریح:- الاقامة بمجرد الدخول مصره:** صورت د مسئلې دادې. کله مسافر د دے ورڅو مسافه اوکړی. اوسفر مکمل کړی. بیا دے خپل وطن اصلی ته داخل شی. نو په آبادئ کي داخلیدو سره مقیم شو. اگرچي داقامت نیت نې نه وی کړې.

لأنه عليه الصلاة والسلام وأصحابه رضي الله عنهم كانوا يسافرون خکهچي نبیکریم ﷺ اود هغوی صحابو رضی الله عنهم به سفرکولو ويعودون إلى أوطانهم مقيمين من غير عزم جديد[2] اوخپلو وطنونو ته واروسته راتلوسره بغیرد څه اراد‌ے مقیم کیدل

**حل اللغة:** ① یعودون، عاد عوداً (ن): واروسته کیدل ② عزم: اراده ③ جدید: نوې

**تشریح:- دلیله:** دلیل دادې. د خدائې رسول ﷺ اود هغوی صحابو رضی الله عنهم به سفرکولو. او دسفرپوره کیدونه روستهچي به وطن ته واروسته راغلل. نوبغیرد اقامت د نیت څخه به مقیم کیدل.

### د اقامت وطن په وطن د اقامت سره باطلیدل

ومن كان له وطن اوداچي یووطن وو فانتقل عنه بیا د هغې وطن نه دےمنتقل شو واستوطن غيره. اوددے نه علاوه نې بل ځائې وطن جوړکړو ثم سافر بیا نې سفراوکړو ودخل وطنه الأول اوخپل اولنی وطن ته داخل شو قصر نولمونځ دےقصرکوی

**حل اللغة:** ① کان، کان کوناً (ن): کیدل ② فانتقل، انتقل انتقالاً: منتقل کیدل، وربدلیدل ③ استوطن، استیطاناً: وطن جوړول ④ فدخل، دخل دخولاً (ن): داخلیدل

**تشریح:- الاقسامة الثلاثة للوطن:** عامو مشائخو رحمهم الله د وطن درےقسمونه بیان کړی دی ① وطن اصلی ② وطن اقامت ③ وطن سکنیٰ. ① وطن اصلی د انسان خپل پیدا نشی ځائې دې. یا هغه ښارچي په هغےکي دده اهل وعیال اوسیږی. اوددے نه دمنتقل کیدواراده نه لری. ② وطن اقامت هغه ښار یاکلےدې. چي په هغې کي مسافرد پنځلسو ورځودقیام اراده کړې وی. ددےدوهم نوم وطن د سفرهم دې. ③ وطن سکنیٰ هغه

(2) قال الزیلعی لم اجد له شاهدا والمصنف استدل به علی ان المسافر اذا دخل مصره اتم الصلوة و ان لم ینو الاقامة نصب الرایة (۲/۱۹۵)-

**تشريح:- وجه الفرق بينهما**⊛خو په دے دواړوكي دومره توپير دي.چي مقيم مقتدى دے د اصح قول په بناء په دے ركعتونوكي قرات نه كوى.كوم‌چي د مسافر د امام د سلام اړولو نه روسته كوى.او دے مسبوق قرات كوى.د قول اصح دليل دا دي.چي مقيم په آخرو دوو ركعتونوكي د تحريمې په اعتبار سره مقتدى دي. خود فعل په اعتبارسره مقتدى نه دي.د تحريمې په اعتبارسره خومقتدى خكه دے .چي ده په اوله تحريمه كي د امام سره د ادا كاوه التزام كړي دي.اود فعل په اعتبارسره مقتدى خكه نه دي.چي په.دوو ركعتونود سلام په ذريعه د امام مسافر فعل ختم شوېدي.اوچي كوم كس داسي وى.يعنى‌د تحريمې په اعتبارسره مقتدى اود فعل په اعتبارسره غيرمقتدى.نوهغه ته لاحق وئيلي شى.اوپه لاحق قرات نه وى. خكه د تحريمې په اعتبارسره كه دده په مقتديت ته نظراوشى.نوپه ده به قرات كول حرام وى.اوكه د فعل په اعتبارسره په غيرمقتديت نظر اوشى.نودده لپاره به قرات كول مستحب وى.خكه‌چي په كومو دوو ركعتونوكي قرات فرض وو.هغه ادا شوى دى.حاصل داچي په آخرى دوو ركعتونوكي د مقيم مقتدى لپاره قرات كول حرام اود مستحب په مينځ كي دائر دي.نوحرامو ته ترجيح وركولوكي احتياط په دےكي دي.چي مقيم مقتدى په آخرى دوو ركعتونوكي قرات پرېږدى.

| |
|---|
| بِخِلَافِ الْمَسْبُوقِ.په خلاف د مسبوق لِأَنَّهُ أَدْرَكَ قِرَاءَةً نَافِلَةً خكه‌چي مسبوق نفل قرات لاندې كړي دي فَلَمْ يَتَأَدَّ الْفَرْضُ خو اوسه پورې فرض قرات ادا شوې نه دي فَكَانَ الْإِتْيَانُ أَوْلَى په دے وجه قرات كول به غوره وى. |

**حل اللغة**°①ادرك، ادرك ادراكًا: موندل ② اتيان: راتګ

**تشريح:- حكم قراءة المسبوق**⊛په خلاف د مسبوق.دلته كي د مسبوق نه هغه مسبوق مراد دي.چي ده ته په څلور ركعته لمونځ كي اولنى دوې (دوه) ركعته امام سره نه وى ملاو شوې.بلكه آخرى دوې (دوه) ركعتونو كي امام سره شريك شوې وى.بهرحال د امام د سلام اړولو نه روسته‌چي مسبوق خپل فوت شوى دوې (دوه) ركعته كوى.نو په ده به په دےكي قرات كول واجب وى.خكه‌چي مسبوق په آخرى دوو ركعتونوكي د امام كوم قرات موندلے دي.هغه نفل قرات وو.او په اولنو دوو ركعتونوكي چي كوم فرض قرات دي.هغه ئې تر اوسه ادا كړي نه دي.د دے وجې په مسبوق قرات كول واجب دي.والله اعلم بالصواب

**مسافر امام لپاره «اتموا صلاتكم فانا قوم سفر» وئيل مستحب دى**

| |
|---|
| قَالَ (وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ اودامام لپاره مستحب دى إِذَا سَلَّمَ.چي كله دےسلام واړوى أَنْ يَقُولَ نو داسے اووائى. أَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ. تاسوخپل لمونځ پوره كړئ. فَإِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ موږ مسافريو |

**حل اللغة**°①يستحب، استحب استحباب:مستحب كيدل ②سلم، سلم، يسلم تسليمًا: سلام ګرځول، سلام كول ③يقول، قال قولاً (ن): وينا كول ④اتموا،اتم اتمامًا: پوره كول

**تشريح:- اخبارالامام للقوم بحاله من السفر**⊛امام كه مسافر وى.نو په دوو ركعتونو سلام اړولو نه روسته دے مقتديانو ته داسي اووائى. تاسوحضرات خپل لمونځ پوره كړئ.زه مسافريم.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَهُ حِينَ صَلَّى بِأَهْلِ مَكَّةَ خكه‌چي نبى‌كريمﷺ كوم وخت د مكې خلګو ته لمونځ اوكړونوهم دغه ئې فرمائيلي وو وَهُوَ مُسَافِرٌ[1] په داسي حال كي چي هغوى ﷺ مسافروو |

**تشريح:- دليله**⊛دليل د ابو داؤد او ترمذى روايت كړې حديث دے «عن عمران بن حصين ﷺ قال غزوت مع رسول

[1]من حديث عمران بن حصين رضي الله عنه اخرجه ابوداؤد فى صلوة المسافر باب ۱۰ رقم ۱۲۲۹ والترمذى فى الجمعة باب ۳۹و (۲۱۹|۳) رقم (۵۴۸ والطحاوى فى شرح الاثار (۱|۴۲۱۱) والطبرانى فى معجمه وابن ابى شيبة فى مصنفه و ق بن راهويه و ابوداؤد الطيالسى والبزار فى مسانيدهم)-



الله ﷺ وشهدت معه الفتح فاقام بمكة ثمان عشرليلة لا يصلى إلا ركعتين يقول يا أهل مكة صلوا اربعا فإنا قوم سفر» عمران بن حصين‌ﷺ وائى.چي ما د رسول الله ﷺ سره غزاګانے كړې دى.د نبى‌كريمﷺ سره په فتح مكه كي شريك شوې يم.نبى‌كريمﷺ اتلس شپې په مكة مكرمه كي قيام اوكړو.په دے موده كي ئې (په څلورر كعته مونځ)كي صرف دوې (دوه) ركعته كول.وويل به ئې.اے د مكې خلګ و.تاسوڅلور ركعته كوئ.څه خو مسافر يم.

**عدم شرطية علم الماموم بحال الامام من الاقامة والسفر**⊛دقدورى رحمه الله عبارت نه ظاهريږي.چي داشرط نه دےچي د لمونځ پيل كاوه نه مخكي مقتدى ته د امام سفر يا اقامت علم وى.خكه كه مقتديانو ته د امام د سفر علم مخكي نه وى.نو دسلام اړولو نه روسته د امام مسافردا وينا‌چي «اتموا صلاتكم» عبث ده.اوكه دده داقامت علم وى.نومسافر به په خپل قول"انا قوم سفر"كي كاذب وى

**وطن نه په واروسته كيدو د اتمام حكم**

| |
|---|
| (وَإِذَا دَخَلَ الْمُسَافِرُ فِي مِصْرِهِ اوكله‌چي مسافرخپل وطن كي داخل شى أَتَمَّ الصَّلَاةَ نو پوره لمونځ دے كوى وَإِنْ لَمْ يَنْوِ الْمُقَامَ فِيهِ)..اګرچي په دےكي ئې د قيام نيت نه وى كړې |

**حل اللغة**°①دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ②مصر جمع امصار: ښار ③اتم،اتم اتمامًا : پوره كول ④لم ينو، نوى نية (ض): نيت كول ⑤مقام: ځائ

**تشريح:- الاقامة بمجردالدخول مصره**⊛صورت دمسئلې دادي.كله مسافرددرے ورځو مسافه اوكړى .اوسفر مكمل كړى.بيا دے خپل وطن اصلى ته داخل شى.نوپه آبادئ كي داخليدو سره مقيم شو . اګرچي داقامت نيت ئې نه وى كړې.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَأَصْحَابَهُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ كَانُوا يُسَافِرُونَ خكه‌چي نبى‌كريمﷺ اود هغوى‌صحابوؓ به سفركولو وَيَعُودُونَ إِلَى أَوْطَانِهِمْ مُقِيمِينَ مِنْ غَيْرِ عَزْمٍ جَدِيدٍ.[2] اوخپلو وطنونو ته واروسته راتلوسره بغيرد څه ارادے مقيم كيدل |

**حل اللغة**°①يعودون، عاد عوداً (ن): واروسته كيدل ② عزم: اراده ③ جديد: نوې

**تشريح:- دليله**⊛دليل دادي.د خدائې رسولﷺ اود هغوى صحابوؓ به سفركولو.او دسفرپوره كيدونه روسته‌چي به وطن ته واروسته راغلل.نوبغيرد اقامت د نيت څخه به مقيم كيدل.

**د اقامت وطن په وطن د اقامت سره باطليږي**

| |
|---|
| (وَمَنْ كَانَ لَهُ وَطَنٌ اودچاچي يووطن وو فَانْتَقَلَ عَنْهُ بيا د هغې وطن نه دےمنتقل شو وَاسْتَوْطَنَ غَيْرَهُ..اوددے نه علاوه ئې بل ځائې وطن جوړكړو ثُمَّ سَافَرَ.بيا ئې سفراوكړو وَدَخَلَ وَطَنَهُ الْأَوَّلَ.اوخپل اولنى وطن ته داخل شو قَصَرَ) نولمونځ دےقصركوى |

**حل اللغة**°①كان، كان كونًا (ن) :كيدل ②فانتقل، انتقالاً: منتقل كيدل، وربدليدل ③استوطن، استيطانًا: وطن جوړول④ فدخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل

**تشريح:- الاقسامة الثلاثة للوطن**⊛عامو مشائخو رحمهم الله د وطن درےقسمونه بيان كړى دى①وطن اصلى②وطن اقامت③وطن سكنى.① وطن اصلى د انسان خپل پيدا ښنى ځائې دي.يا هغه ښارچي په هغےكي دده اهل وعيال اوسيږى.اوددے نه دمنتقل كيدواراده نه لرى.② وطن اقامت هغه ښار ياكلےدي.چي په هغې كي مسافرد پنځلسو ورځودقيام اراده كړې وى.ددے دوهم نوم وطن د سفرهم دي.③ وطن سكنى هغه

[2]قال الزيلعى لم اجد له شاهدا والمصنف استدل به على ان المسافر اذا دخل مصره اتم الصلوة و ان لم ينو الاقامة نصب الراية (۱۹۵|۲)-

ښاردې چې په هغې کې مسافر د پنځلسوورځونه کم قیام اراده کړې وي.

**قسمي الوطن عند المحققين**⊛محققینودوطن دوې (دوه) قسمونه بیان کړي دي.وطن اصلي اووطن اقامت دے حضراتود وطن سکنی اعتبار نه دے کړې.ځکه چې په وطن سکنی کې اقامت نه ثابتیږي .بلکه دسفرحکم پاته وي. قاعده داده.چې وطن اصلي په وطن اصلي باطليږي.اونه په وطن اقامت باطليږي.اونه په سفركولوسره.اووطن داقامت په وطن اقامت په سفراوپه وطن اصلي درے واړو باطليږي.

لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ وَطَنًا لَهُ ځکه چې دا اوس د ده وطن پاتې نشو أَلَا تَرَىٰ ولے نشی کتې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَعْدَ الْهِجْرَةِ عَدَّ نَفْسَهُ بِمَكَّةَ مِنَ الْمُسَافِرِينَ[1] چې نبي کريم ﷺ د هجرت نه روسته په مکه مکرمه کې خپل ځان په مسافروکې شمارلو

**حل اللغة**° ① لم يبق،بقى بقاءً (س): پاته کيدل، پاته کيدل

**تشريح:- دليله**⊛دليل ددے دادې.چې څيزد خپل ځان نه په لوئې شی باطليږي.يا په برابر.اودا خبره منلے شوې ده.چې په وطن اصلي بل شی پورته نشته.نووطن اصلي به په خپل برابر يعني په وطن اصلي سره باطليږي.صورت ددے دا دې.چې ديوکس يو وطن وي.هغه ددے نه منتقل شي.اوبل ځائې خپل وطن جوړ کړي.نو لومړې وطن اصلي باطل شو.نوکه دسفرشرعی نه روسته دے خپل اولني وطن ته داخل شي.نومقيم به نشي شمارلې.بلکه قصربه کوي.هم دغه وجه ده.چې د صاحب شريعت ﷺ وطن اصلي مکه مکرمه وو. خو نبي کريم ﷺ چې هجرت اوکړو.اومدينې منورې ته ئې تشريف يوړو.اومدينه ئې خپل وطن جوړ کړو.نومکه وطن اصلي پاتې نشو.هم دا وجه ده.چې دهجرت نه روسته نبي کريم ﷺ مکې مکرمے ته تشريف يوړلو.نوخپل ځان ئې مسافرشمارلو.وويل ئې «اتموا صلاتكم فانا قوم سفر»

وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ اوداځکه چې قاعده داده. أَنَّ الْوَطَنَ الْأَصْلِيَّ يَبْطُلُ بِمِثْلِهِ چې وطن اصلي په خپل مثل (وطن اصلي) سره باطليږي دُونَ السَّفَرِ.نه په سفر سره وَوَطَنُ الْإِقَامَةِ يَبْطُلُ بِمِثْلِهِ.او وطن د اقامت باطليږي په خپل مثل وطن اقامت سره وَبِالسَّفَرِ وَبِالْأَصْلِيِّ او په سفرسره اوپه وطن اصلي سره.

**تشريح:-** وطن اصلي د وطن اقامت نه ما اوچت دې.نو په وطن اصلي باندې وطن اقامت باطليږي.او وطن اقامت د وطن اقامت برابر دې.نووطن اقامت په وطن اقامت هم باطليږي.اووطن اقامت په سفر سره ځکه باطليږي.چې سفر د وطن اقامت ضد دې.اوقاعده ده چې شی په خپل ضد سره باطليږي.

**السوال**⊛اوکه سوال اوشی.چې سفرخود وطن اصلي هم ضد دې.نووطن اصلي هم په سفرسره باطليدل پکاردي.حالانکه داسے نه ده.

**الجواب**⊛دوطن اصلي په سفرسره باطليدل د اثر په وجه دي.ځکه نقل دي.چې نبي کريم ﷺ غزاګانو لپاره د مدينې منورې نه وتلو.اولرې علاقو ته به ئې تشريف اوړلو.خوددے باوجود مدينه منوره د هغوی ﷺ وطن اصلي وو.نبي کريم ﷺ چې به کله د سفرنه واروسته تشريف راوړو.نود اقامت نيت به ئې نه کولو.که وطن اصلي په سفرسره باطليدلو.نو په واپسۍ به نبي کريم ﷺ د اقامت نيت ضرور کولو.

### په دوو ښارونوکې د اقامت د نيت حکم

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله يشهد له حديث انس رضي الله عنه خرجنا مع النبى (صلى الله عليه وسلم) من المدينة الى مكة فكان يصلى ركعتين ركعتين حتى رجعنا الى المدينة قيل كم اقمتم بمكة؟ قال اقمنا بها عشرا) اخرجه البخارى فى تقصير الصلوة باب ۱ رقم ۱۰۸۱ ومسلم فى صلوة المسافرين وقصرها رقم ۱۵ و ابوداؤد فى صلوة السفر باب ۱۰ رقم ۱۲۳۳ والترمذى فى الجمعة باب ٤۰ رقم ٥٤۸ والنسائى فى السنن الكبرى (۱\۵۸۷) رقم ۱۹۱۰ وابن ماجه فى الاقامة باب ۷٦ رقم ۱۰۷۷ واحمد فى المسند (۳\۲۸۲)۔



وَإِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ اوهر کله چې مسافر نيت اوکړي. أَنْ يُقِيمَ بِمَكَّةَ وَمِنًى خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا په مکه او منی کې د پنځلسو ورځو د اقامت لَمْ يُتِمَّ الصَّلَاةَ نو پوره لمونځ به نه کوي

**حل اللغة**° ①نوى، نوى نية (ض): نيت کول ②ان يقيم، اقام اقامة: حصاريدل، قيام کول

**تشريح:-** صورت دمسئلې دادې.چې مسافر په داسې دوو ځايونو کې د پنځلسو ورځو د پاتې کيدو نيت اوکړي .چې په دے کې يو هم مستقل نه وي.مثلاً داچې په مکه اومنی کې د اقامت نيت اوکړي،نو دے به مقيم نه وي.اولمونځ به قصرکوي.

لِأَنَّ اعْتِبَارَ النِّيَّةِ فِي مَوْضِعَيْنِ يَقْتَضِي .ځکه چې په دووځايونوکې د نيت معتبرکيدل مقتضي دی اعْتِبَارَهَا فِي مَوَاضِعَ چې په ډيرو ځايونوکې دے نيت معتبر وي وَهُوَ مُمْتَنِعٌ او دا ممتنع دې. لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يَعْرَىٰ عَنْهُ ځکه چې سفر ددے نه خالي نه وي

**حل اللغة**° ①لايعرى، عرى عريانًا (ض): خالي کيدل، بربنډيدل

**تشريح:- عدم اعتبار نية الاقامة في موضعين**⊛ځکه چې په دوو ځايونوکې د نيت معتبرکيدل ددے خبرے مقتضي دې.چې د دوو نه په زياتو ځايونوکې هم نيت معتبر شي.ګنی ترجيح بلا مرجح به لازميږي .اود مسافر په ډيروځايونو کې د قيام نيت کول ممتنع دی.ځکه چې سفر په ګڼرو ځايونوکې د قيام کاوه نه خالي نه وي.بلکه په ډيروځايونوکې قيام کول ضروري وي.نوکه په ګڼروځايونوکې د اقامت د نيت اعتبار اوکړې شي.نو ددے مطلب به دا وي.چې سړې کله هم مسافر نه وي.

إِلَّا إِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ أَنْ يُقِيمَ بِاللَّيْلِ فِي أَحَدِهِمَا .اوکه په دے دواړوکې په يو کې د شپې د اقامت نيت اوکړي فَيَصِيرُ مُقِيمًا بِدُخُولِهِ فِيهِ.نو دے مقام ته په داخليدلو سره به مقيم ګرځی لِأَنَّ إِقَامَةَ الْمَرْءِ مُضَافَةٌ إِلَىٰ مَبِيتِهِ ځکه چې د سړي مقيم کيدل دده د شپې تيرولو ځائې اړخ ته منسوب کيږي

**حل اللغة**° ① فيصير، صار يصيرًا (ض): کيدل ② دخول: داخليدل ③مرء: سړې ④ مبيت: دَ شپې تيرولو ځائ

**تشريح:- صحة اعتبار الاقامة في موضع المبيت**⊛اوکه صورت دا شي چې په دوو ځايونوکې د پنځلسو ورځو د اقامت نيت اوکړي او په دے دواړوکې يو متعين ځائې کې د شپې تيرولو نيت اوکړي.نو دا نيت به معتبر وي.اوس که دا سړې مخکې هغه ځائې ته لاړوکوم ځائې کې ئې چې ئې د ورځې تيرولو نيت وي.نو دے به مقيم نه وي.اوکه اول هغه ځائې ته لاړوکوم ځائې کې ئې چې ئې د شپې تيرولو اراده کړې وي.نو دے کلی ته داخليدلو سره به مقيم شي.بيا به هغه کلی اړخ ته په تلو باندې مسافر نه وي کوم ځائې کې چې ئې د ورځې تيرولو نيت کړې وي.ځکه چې د سړي اقامت د شپې تيرولو ځائې اړخ ته منسوب کيږي،تاسو اوګورئ چې کوم سړې په بازارکې کاروبارکوي که دده نه پوښتنه اوکړې شي چې دے وخت ته کوم ځائې کې اوسيږي ،نودے به د هغے محلے پته ښائی کوم ځائې کې چې دے شپه

### د سفر د مونځ په حضرکې او ددې په عکس بيان

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ فِي السَّفَرِ اود چا نه چې په سفرکې لمونځ فوت شی قَضَاهَا فِي الْحَضَرِ رَكْعَتَيْنِ.نو په حضرکې به دوې (دوه) رکعته قضا راوړي وَمَنْ فَاتَتْهُ فِي الْحَضَرِ.او د چا نه چې په حضرکې لمونځ فوت شی قَضَاهَا فِي السَّفَرِ أَرْبَعًا نو ددے به په سفرکې څلور رکعته قضا راوړي

**حل اللغة**° ①فائتة، فات فوتًا (ن): فوت کيدل ②قضاها، قضى يقضى قضاءً (ض): قضا کول، اداکول

**تشريح:- حكم فائتة السفر فيى الحضر وعكسه**⊛صورت د مسئلې دادےچې د سفر په حالت کې که څلور رکعتيز لمونځ فوت شی.او په حضر کې ئې د هغې قضا راوړل اوغوښتل.نو دوې (دوه) رکعته دے قضا راوړي.اودحضر په زمانه کې که څلور رکعتيز لمونځ فوت شی.بيا د سفر په حالت کې ئې د هغې قضا راوړل

اوغوښتل.نود څلورو رکعتو قضا به راوړي.

**لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِحَسَبِ الْأَدَاءِ.** ځکه چې قضاء د ادا موافق وي

**تشريح:- دليله**۞دليل دادې.چې قضاء د ادا موافق واجب وي.يعنی په کوم سړي چې ادا څلور رکعته واجب شول.نو دے به قضا هم څلور رکعته کوي.او په چاچې دوې (دوه) رکعته ادا واجب شي.په ده باندې به قضا هم دوې (دوه) رکعته واجب وي.

**وَالْمُعْتَبَرُ فِي ذٰلِكَ آخِرُ الْوَقْتِ.** او په دے کې معتبر آخري وخت دې **لِأَنَّهُ الْمُعْتَبَرُ فِي السَّبَبِيَّةِ** ځکه چې آخري وخت په سببيت کښے معتبر وي **عِنْدَ عَدَمِ الْأَدَاءِ فِي الْوَقْتِ** که په وخت کې ئې دننه ادا کړې نه وي.

**تشريح:-** په اداکې د وخت آخر معتبردې.د آخري وخت نه مراد مقدار د تحريمې دې.مثلاً که د ماپښين په اول وخت کې مقيم وو.بيا د وخت ختميدلو نه مخکې د سفر لپاره اووتلو.اود آباديْ نه هغه وخت بهرشو.چې وخت صرف د يو رکعت يا کم پاته وو.نو په ده باندې به دوې (دوه) رکعته قضا واجب وي.ځکه چې په آخري وخت کې دے مسافرشو.او هم دا معتبر دې.او په اداکې د وخت آخر ځکه معتبر دےچې په وخت کې دننه د ادا کاوه په صورت کې د لمونځ د وجوب په سببيت کې آخرے وخت معتبردې.

**السوال**۞په دے ځائې کې يو اعتراض کيدےشي.هغه داچې زمونږ کلام په قضا لمونځ کې دې.اولمونځ چې کله دخپل وخت نه فوت شي.نو د اصول فقه د بيان مطابق پوره وخت د لمونځ سبب وي.نه داچې آخري جزء.

**الجواب**۞د بعضے مشائخوپه نيز د لمونځ فوت کيدو په صورت کې د وخت آخري جزء سبب وي. ممکنه ده چې مصنف د هدايه هم دا اختيارکړې وي.

### په قصر کې د نافرمان او تابعدار برابري

**(وَالْعَاصِي وَالْمُطِيعُ فِي سَفَرِهِمَا)** وخوک چې په خپل سفرکې فرمانبرداروي اوکه نافرمان **فِي الرُّخْصَةِ سَوَاءٌ** (دواړه) په رخصت کې برابر دي

**حل اللغة:** ①**عاصي**: گناهگار ،نافرمان ②**مطيع**: حکم منونکې

**تشريح:- الاقسام الثلاثة للسفر**۞د فقهاؤ د بيان مطابق د سفردرے قسمونه دي①سفر دطاعت لکه حج اوجهاد، ②مباح سفر لکه سفر د تجارت ③ سفر د معصيت لکه د ډاکې اچولو لپاره سفرکول يا دښځے بغير د محرم نه حج لپاره سفرکول،

**المذهبان في سفر المعصية**۞اولنی دوې (دوه) قسمونه په اتفاق سره د رخصت سبب دې.① او دريم ډول زمونږ په نيز د رخصت سبب دې.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ** ﷫ .اوامام شافعي ﷫فرمائي **سَفَرُ الْمَعْصِيَةِ لَا يُفِيدُ الرُّخْصَةَ.** چې د نافرمانئ سفر د رخصت فائده نه ورکوي **لِأَنَّهَا تَثْبُتُ تَخْفِيفًا** ځکه چې رخصت خو تخفيف ثابتوي **فَلَا تَتَعَلَّقُ بِمَا** نورخصت داسے څيز سره نه متعلق کيږي **يُوجِبُ التَّغْلِيظَ** چې هغه سختي واجبوي

**حل اللغة:** ① **لايفيد، افاد افادة**: فائده ورکول ② **تثبت ،ثبت ثبوتًا** (ن) ثابت کيدل ③**فلاتتعلق، تعلق تعلقًا**: متعلق کيدل ④ **وجب ايجابًا**: واجب کيدل

**تشريح:-** په زيربحث مسئله کې دامام شافعي ﷫ په نيز دريم ډول سبب نه دې.

**دليله**۞دامام شافعي ﷫دليل دادې.چې رخصت په مکلف باندې تخفيف راولي . اوکوم څيزچې په مکلف باندې تخفيف راولي.هغه داسې څيزسره نه متعلق کيږي.چې هغه سختي واجبوي.دے وجې رخصت د داسې شي نه متعلق کيږي،چې هغه سختي واجبوي. يعنی معصيت او نافرمانی خوسختي اوعذاب واجبوي.دے سره رخصت او تخفيف نه متعلق کيږي. تاسو دا داسې هم وئيلې شئ،چې رخصت خو رحمت او



انعام دے دا د عذاب مستحق ته نه ملاويږي .

**وَلَنَا إِطْلَاقُ النُّصُوصِ** زمونږدليل د نصوصو اطلاق دي

**تشريح:- الدليلان للاحناف** ﷭ ۞زمونږ دليل د نصوصو اطلاق دې.يعنی په کومو نصوصوکې چې رخصت راغلے دې.هغه على الاطلاق هر مسافر ته گډ دی.مثلاً الله تعالى فرمائيلی دی(**فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ**) نبی ﷺ فرمائيلی دی سفرض المسافر رکعتان﴾په بل ځائې کې ارشاد دې.﴿يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة ايام ولياليها﴾په دے نصوصوکې د مطيع اوعاصی هيڅ تفصيل نشته.بلکه هرمسافر ته گډ دې.خواه که په خپل سفرکې مطيع وي ياعاصی.

**وَلِأَنَّ نَفْسَ السَّفَرِ لَيْسَ بِمَعْصِيَةٍ.** اوځکه چې نفس سفرگناه نه ده **وَإِنَّمَا الْمَعْصِيَةُ.** او پاتې شومعصيت، **مَا يَكُوْنُ بَعْدَهُ** نو دا هغه څيزدې.چې روسته د سفر نه پيدا کيږي **أَوْ يُجَاوِرُهُ** او يا د سفر په مهال کښے وی **فَصَلَحَ مُتَعَلَّقُ الرُّخْصَةِ** نو سفر د دے لائق شوچې رخصت دے سره متعلق وی والله أعلم

**حل اللغة:** ①**معصيت**: گناه ②**يجاوره، جاور مجاورة**: ملاويدل، لاحق کيدل

**تشريح:-** دوهم دليل دادې.چې نفس سفر معصيت نه دې.ځکه چې سفرنوم دے د مسافه قطع کولو،اوپه دے معنی کې هيڅ معصيت نشته.معصيت خوهغه دې.چې کوم د مسافه قطع کاوه نه روسته وي.مثلاً ډاکه اچول يا غلا کول يا نورڅه معصيت،چې د سفر په مهال کې کيږي.لکه د غلام تښتيدل،نوهرکله چې نفس سفرمعصيت نه دې.نو دےسره رخصت متعلق کيدې شی- والله اعلم

## باب صلاة الجمعة

ژباړه:- (دا) باب د جمعې د لمانځه (په بيان کې )دې.

**تشريح:- الربط بما قبله**۞دا باب د مخکې باب مناسب دې.ځکه چې په دواړوکې تنصيف دې. البته په قصرکې د سفر په وجې سره نيموالې شوېدې.او په جمعه کې د خطبے په واسطے سره ، خوچونکه سفر هر رباعی لمونځ لری نيمونکې دې.او دجمعے خطبه صرف د ماپښين لمونځ نيموی . د دے وجې سفر د هر رباعی لمونځ نيمولوته عام شو.اوخطبه صرف د ماپښين لمونځ نيمولو ته خاص ده.او د خاص ذکر چونکه د عام نه روسته وی .په دے وجه د سفرد لمونځ نه روسته د جمعې د لمونځ ذکرشو.

**ووجه تسميتها** ۞جمعې ته جمعه ځکه وائی.چې خلگ په دے ورځ کې راجمع کيږي،

**الحركتان في الجمعة** ۞ ①جُمعه د اجتماع نه ده.لکه څنگه چې فرقت د افتراق نه دې.لفظ دجمعې په ضمه د ميم دې.او په سکون سره هم وئيلے شوې دې.② ځينې حضراتو د ميم په فتحه سره هم نقل کړې دې.

**تاريخ فرضية الجمعة**۞کله چې نبی ﷺ د مکے نه هجرت اوکړلو.او مدينې منورې اړخ ته ئې تشريف يوړلو.نو هغوی په قباء کې دننه د عمرو بن عوف﷛ په محله کې څوارلس شپې قيام کړې وو.هم په دے مهال کې هغوی ﷺ ديو جومات بنا (بنياد) کيخودو.چې ورته په اسلام کې د ټولو نه لومړې جومات وئيلې شی.چې قران حکيم ترے نه په (**لَمَسْجِدٌ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى**) الآية) سره تعبيرکړې دې. .بيا کله چې نبی ﷺ د قباء نه د مدينې په اړخ دجمعې په ورځ روان شو.نو په لاره کې د سالم بن عوف په محله کې د جمعې د لمانځه وخت راغې.نو نبی ﷺ د سپرلئ نه راکوز شو . په دے جومات کې ئې دجمعې لمونځ اداکړو.او دا د خوړ په مينځ کې دې.دا په اسلام کې د ټولو نه لومړې اداکړې شوې جمعه وه.په دے جمعه کې په سوونو مسلمانان شريك شول.په اسلام کې د ټولو نه د لومړئ جمعې ،اوخطبے پوره تفصيل اصح السير ،سيرت مصطفى شرح سيرکبير کې اوگورئ .

**الشروط المتعلقة بالمصلى لفرضية الجمعة**۞دجمعې د فرضيت دولس شرطونه دی.شپږ شرطونه خو داسې

دی.چې د هغې د ذات په مونځګذار کي وجود ضروری دې. ① آزاد وی.په غلام جُمعه فرض نه ده② سړې وی. په ښځه فرض نه ده③ مقیم وی.په مسافر فرض نه ده④تندرست وی. یعنی داسې بیمارنه وی‌چې په جُمعه کي شرکت د تکلیف سبب وی⑤د پښو سلامتیا ⑥ د سترګو سلامتیا، په شَل او نابینا باندې فرض نه ده.

**الشروط المتعلقة بذات المصلی**⊛شپږ شرطونه داسے دی.چې د هغې تعلق د لمونځ کونکی د ذات سره نه دې.
①ښار②جومات③بادشاه ④ وخت⑤خطبه⑥ عام اجازت

## د جُمعې د صحت شرطونه

| |
|---|
| ﴿لَا تَصِحُّ الْجُمُعَةُ إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ أَوْ فِي مُصَلَّى الْمِصْرِ﴾ جُمعه نه صحیح کیږی مګر په جامع ښارکي یا دښار په فناءکي ﴿وَلَا تَجُوزُ فِي الْقُرَى﴾ اوجُمعه په کلی کي جائزنه ده |

**حل اللغة**:①**لاتصح،صح صحیحًا** (ض): صحیح کیدل ②**مصر جمع امصار**: ښار ③**لاتجوز،جاز جوازًا** (ن): جائز کیدل ④**قری واحد قریة**: کلې ⑤

**تشریح:- الاختلاف في صلاة الجمعة في القرية**⊛صورت دمسئلې دادې.چې دجمعې لمونځ په ښار او په فناء دښار دوارو ځایونوکي جائز دې. البته په کلی‌کي جائزنه دې.

| |
|---|
| ﴿لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ځکه چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. {لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيقَ وَلَا فِطْرَ وَلَا أَضْحَى إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ}[1] چې جُمعه، تشریق، د وړوکي اخترلمونځ ،د لوے اختر مونځ جائز نه دے مګر په جامع ښارکي |

**حل اللغة**:①**موضع جمع مواضع**: ځای مقام

**تشریح:- دلیل الاحناف** رحمهم الله ⊛زموږ دلیل دنبی ﷺ قول ﴿لاجمعة ولاتشریق﴾حدیث دې.یعنی دجمعې مونځ، تکبیرات تشریق،وړوکے اختر،او لوے اختر صرف په ښارکي جائزدې.دا قول علامه مرغینانی رحمه الله دنبی ﷺ قول ګڼړلےدې.خو صحیح خبره داده.چې دا دنبی ﷺ قول نه دې.بلکه د حضرت علی رضی الله عنه قول دے لکه ځنګه‌چې صاحب د فتح القدیر لیکلی دی چې ابن ابی شیبه دا قول په حضرت علی رضی الله عنه باندې موقوف کړې دې.

② امام مالك اوامام شافعی رحمهما الله په کلی کي هم دجمعې د جواز قائلین دی.امام شافعی رحمه الله فرمائیلی‌دی.چې په کوم کلی کي څلویښت آزاد مقیم خلګ آباد وی.د خانه بدوشو پشان دګرمۍ اویخنۍ په موسم کي کډے نه اوړی. نو په دوی به جُمعه فرض وی.

**ادلتهما**⊛ ①دامام مالك او امام شافعی رحمهما الله دلیل ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ دې.په دے آیت کي الله تعالی فرمائی.چې کله دجمعې په ورځ دجمعې اذان اوشی.چې خلګ فوراً حاضرشی.ددے نه معلومه شوه.چې د جمعے لپاره د څه خاص ځای ښار یا کلی ارتیا نشته.بلکه په هرځاې جمعه کول جائز ده.که ښار وی او که کلې.که غټ کلے وی اوکه ورکوټے.

**الجواب عنه**⊛د امام شافعی اود امام مالك رحمهما الله د اولنی دلیل ځواب دا دې.چې آیت ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ستاسو په نیز هم په خپل اطلاق باندې نه دې.ځکه‌چې د آیت اطلاق تقاضا کوی‌چې جُمعه دےپه هرځاې کي جائز وی.په آبادۍ کي هم او په ځنګل کي هم،حالانکه په خپله ستاسو په نیزجمعه نه په ځنګل کي جائزده اونه په داسې کلی‌کي چې د هغې اوسیدونکی دګرمۍ یا د یخنۍ په موسم کي کډے اوړی.نوپه آیت کي بالاتفاق مخصوص ځاې مراد دې.تاسو د مخصوص ځاې نه کلے مراد واخستلو.او موږ ښار مراد

[1] قال الزیلعی رحمه الله غریب مرفوعا و انما وجدته موقوفا علی علی رضی الله عنه و رواه عبدالرزاق .. وابن ابی شیبة فی الصلوة باب من قال لا جمعة و لا تشریق الا فی مصر جامع رقم ٥٠٦٠ (١١\٤٣٩)-



اخستے دې.ښار مراد اخستل ډیر مناسب دی.ځکه‌چې دحضرت علی رضی الله عنه قول ددے مؤید دې.

دوهم دلیل د ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دے ﴿ان اول جمعة جمعت فی الإسلام بعد المدینة ماجمعت بجواثا وهی قریة فی البحرین﴾یعنی په اسلام کي د مدینې منورې نه روسته د ټولو نه وړومبنۍ جُمعه په جواثا کي اوکړې شوه.او جواثا په بحرین کي یوکلےدې.

**الجوابان عنه**⊛ ①د دوهم دلیل یعنی دحدیث ابن عباس رضی الله عنهما ځواب دادې.چې په حدیث کي د قریة نه مراد ښاردې.ځکه‌چې په ابتدائی زمانه کي د قریة اطلاق په ښار باندې کیدلےشو.لکه ځنګه‌چې په خپله قرآن حکیم کي دی﴿وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ﴾ (الآیه) ددے نه مراد مکه اوطائف دې.او مکه په یقین سره ښاردې.نو ثابته شوه.چې په حدیث کي د قریه نه مراد ښاردې.② دوهم ځواب دادےچې جواثا په بحرین کي د یوے قلعے نوم دې.او د قلعے لپاره ضروری ده‌چې حاکم اوعالم په کي وی.نوپه دے سره هم ددے ښارکیدل ثابت شو.ددے وجې په مبسوط کي وئیلی شوی دی.چې جواثا د بحرین د یو ښار نوم دې.

**دریم دلیل قیاس دې**.هغه داچې جمعه یو لمونځ دې.نود نورو مونځونو په شان ددےهم په هرځاې کي کول جائز دی.

**الجواب عنه**⊛د دریم دلیل یعنی د قیاس ځواب دادې.چې آیت په هرځاې کي دجمعې په جائزکیدو باندې دلالت کوی.خو ددے باوجود حضرت علی رضی الله عنه په بعضوځایونوکي دجمعې دجواز نفی کړې ده.مثلاً په کلی کي او په ځنګل کي ،دحضرت علی رضی الله عنه بعضوځایونوکي دجمعےلمونځ ته جائز وئیل او په بعضوځایونو کي دجواز نفی کول، کیدې شی‌چې دا ئې هم دنبی ﷺ نه آوریدلی وی،ځکه‌چې دا خلاف قیاس دې.نوهرکله‌چې په ښارکي دننه دجمعےجواز او په کلی کي عدم جواز خلاف قیاس دې.نو دا په نورو مونځونو باندې قیاس کول درست نه دی.

**تعریف فناء المصر**⊛ دوهم لفظ مصلی دې.د ښارمصلی عیدګاه وی.خودلته د مصلی نه فناء د ښار مراد ده.فناء د ښار،د ښار هغه ماحول( ګیرچاپیره) ته وائی.چې ښارسره جخته وی.چې د ښاریانو د مصلحتونو لپاره جوړه کړې شوې‌وی.لکه مقبره،د اسونوزغلولو میدان،د څرن ځاې ، عیدګاه، مذبح، او زموږ په زمانه کي پارك وغیره.

**الاقوال الثلاثة في حدود فناء ا لمصر**⊛د ښار د فناء د تقدیر او تحدید په اړه کي اختلاف دې.① امام محمد رحمه الله په یوغلوه (د غشی ویشتلونه روسته د هغې د غورځیدو د ځاې په مقدار)سره مقیدکړې دې.او د غلوه اطلاق د درے سوه ګزونو نه څلورسوه ګزونو پورې کیږی.یعنی د آبادۍ نه بهر د څلورسوه ګزونو پورې ځاې ته د ښار فناء وئیلےشی.② امام ابویوسف رحمه الله یومیل یا دوې (دوه) میله تحدید بیان کړې دې.د ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.که امام د اړتیا د وجې د ښاریانو سره د ښار نه دوې (دوه) میلو پورې اووتلو.تردې‌چې دجمعې وخت داخل شو.نوده له جائز دی.چې هم دغه ځاې کي د جُمعےلمونځ اداکړی.③ ځینې‌حضراتو فرمائیلی دی.که څوك په ښارکي اودریږی .اوتیزه چغه اووهی.یا مؤذن اذان اوکړی.نوکوم ځاې پورې‌چې آواز اورسی.هغه ځاې ته فناء د ښار وئیلےشی.ددے تفصیل نه روسته کتل پکاردی‌چې

| |
|---|
| ﴿وَالْمِصْرُ الْجَامِعُ: كُلُّ مَوْضِعٍ لَهُ أَمِيرٌ وَقَاضٍ﴾اوجامع ښار هرهغه ځاې دےچې د هغې یو امیر، اوقاضی وی ﴿يُنَفِّذُ الْأَحْكَامَ وَيُقِيمُ الْحُدُودَ﴾[1] چې هغه احکام نافذوی. اوحدود قائموی.﴿وَهَٰذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ﴾ رحمه الله او دا د ابو یوسف رحمه الله نه مروی دی. |

[1] القول الراجح هو هدا قول ابی حنیفة رحمه الله لکن صاحب الهدایه ترک ذکر السکک والرساتیق فی تعریف المصر المنقول عن ابی حنیفة رحمه الله کذا فی فتح القدیر(٢\٢٥) والخانیة (١\٨٤) وردالمحتار(١\٥٩٠) والتاترخانیة (٢\٥٠) وردالمحتار(١\٥٩٠) نقلا عن القول الراجح (١\١٤٠)-

**حل اللغة*** ① **يقيم، اقام اقامة**: قائم كيدل، ودريدل

**تشريح:- تعريف المصرالجامع**۞ دحضرت امام ابويوسف رحمه الله نه په دے اړه كي يو روايتونه مروى دى. ① يو داچې مصرجامع هرهغه ځائې دې. په كوم كي چې امير او قاضى وى. چې په احكاموجارى كاوه او په شرعى سزاګانو قائمولو باندې قادر وى. د «ينفذ الأحكام» نه روسته ئې د «يقيم الحدود» قيد لګولې دې. محكم (چې حكم اوفيصله كونكے) جوړ كړې شوې وى. او د قاضيه (بنځے) نه احتراز كړې شوې دې. ځكه چې د بنځے قضاء جائزده مګردے ته د حدود اوقصاص قائمولو قدرت، شرعيه نشته. د مصرجامع په سلسله كي هم دا ظاهر مذهب دې. او هم دا امام كرخى رحمه الله اختياركړې دې.

**وَعَنْهُ أَنَّهُمْ إِذَا اجْتَمَعُوا فِي أَكْبَرِ مَسَاجِدِهِمْ** او د ابويوسف رحمه الله نه دا هم مروى دى. چې كله خلګ د هغه ځائې (په خپل) لوئې جومات كي جمع شى **لَمْ يَسَعْهُمْ** نو د ټولو خلګو په دے كي راتګ نه كيږى، **وَالْأَوَّلُ اخْتِيَارُ الْكَرْخِي** لومړې قول امام كرخى رحمه الله اختياركړې دى **وَهُوَ الظَّاهِرُ** او هم دا ظاهرمذهب دې **وَالثَّانِي اخْتِيَارُ الثَّلْجِي** او دوهم قول امام ثلجى رحمه الله اختياركړې دې

**حل اللغة*** ① **اجتمعوا، اجتمع اجتماعًا**: جمع كيدل، يوځائې كيدل

**تشريح:-** دوهم روايت دادې. چې مصرجامع هرهغه ځائې دې. چې ددغه ځائې د ټولو نه په لوئے جومات كي كه ددغه ځائې خلګ راجمع شى. په چاچې جمع فرض ده. نو په دے كي نه ځائيږى. بلكه دجمع لپاره د بل جومات جوړولو اړتيا محسوس شى. دا روايت ابوعبدالله ثلجى رحمه الله اختياركړې دې.

**وَالْحُكْمُ غَيْرُ مَقْصُورٍ عَلَى الْمُصَلَّى** او د جواز حكم په فناء د جومات باندې منحصر نه دې **بَلْ تَجُوزُ فِي جَمِيعِ أَفْنِيَةِ الْمِصْرِ** بلكه د ښار په ټولو فناګانو كي جائزدې **لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَتِهِ فِي حَوَائِجِ أَهْلِهِ** ځكه چې د ښار د ضرورياتو په سلسله كي ،د ښار د فناء واړه اړخونه په منزله د مصلى كي دى.

**تشريح:- توضيح العبارة**۞ «والحكم غيرمقصور على المصلى....الخ ، » ددے مطلب دادې. چې دجمعې لمونځ څنګه چې په عيدګاه كي جائزدى. ځكه چې دا فناء د ښارده. هم دغه ډول د ښار څلور واړه اړخه د كوم كوم ځائې پورې چې د ښار د فناء اطلاق كيږى. په هغې كي هم دجمعې لمونځ جائزدې. ځكه چې د ښاريانو د ضرورياتو پوره كاوه په سلسه كي د ښار فناء د ښار په مرتبه كي ده.

## په منى كي دجُمعې حكم

(**وَتَجُوزُ بِمِنًى إِنْ كَانَ الْأَمِيرُ أَمِيرَ الْحِجَازِ أَوْ كَانَ مُسَافِرًا عِنْدَهُمَا**[1]) رحمهما الله اود منى په مقام كي جُمعه كول جائز دى. كه امير دحجاز امير وى. يا خليفة المسلمين په خپله د مسافر په طور باندې ډلته كي موجود وى. (داجواز) د ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز دے

**حل اللغة*** ① **يجوز، جاز جوازًا (ن)**: جائزكيدل، رواكيدل

**تشريح:- جوازالجمعة في منى في الحج**۞ مسئله داده. چې دامام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمهما الله په نيز دحج په ورځوكي په منى كي دننه دجمعې لمونځ كول جائزدې. خوپه دے شرط چې اميرهغه سړې وى. چې د صوبه حجاز حاكم وى. صرف دحج كاوه لپاره اميرنه وى جوړشوې. ياخليفة المسلمين په خپله دحج په اراده سفركړې وى. اودلته كي موجود وى.

**الوجهان لقيد السفرمع الخليفة**۞ خليفه سره د مسافركيدوقيد په دے وجه لګولې شوې دې. ① كه خليفه په

[1] ) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(٥٩٥\١) والبحرالرائق (١٤٢\٢) وتبيين الحقائق (٢١٨\١) والهندية (١٤٥\١) نقلا عن القول الراجح (١٤١\١)-



منى كي مقيم وى. نو په درجه اولې سره به دجمعې لمونځ جائز وى. ② دوهم د دے وهم لرې كاوه لپاره چې اميرموسم كه مسافر وى نو دے جمعه نه شى قائمولې. نودغه ډول خليفه هم د مسافر كيدو په صورت كي جُمعه نشى قائمولې.

**جواز الجمعة في اقتداء الخليفة**۞ صاحب د قدورى رحمه الله ددے وهم لرې كاوه لپاره فرمائى. چې دموسم حج امير د مسافركيدو په صورت كي بے شكه چې جُمعه نشى قائمولې. خوكه خليفة المسلمين مسافر وى. نو ددے باوجود جُمعه قائمولے شى. دے نه دا هم ظاهره شوه. كه خليفه يا بادشاه په خپل مملكت كي دوره اوكړى. نو په هرښار كي به په ده باندې جمعه واجب وى. نوپه كوم ښاركي چې دجمعې ورځ راشى. هم په هغې كي دے جمعه اداكړى.

**دليله**۞ دليل دادې. چې هركله دده په حكم سره د نورو دجمعې امام مقرر كول وى. نود ده په خپله د جمعے امامتې وركول خو به په طريقه اولى سره جائز وى. بهرحال د شيخينو رحمهما الله په نيز په دے شرط سره په منى كي جُمعه جائزده.

**وَقَدْ قَالَ مُحَمَّدٌ**: رحمه الله **لَا جُمُعَةَ بِمِنًى**) او امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى چې په منى كي جُمعه نسته **لِأَنَّهَا مِنَ الْقُرَى حَتَّى لَا يُعَيَّدَ بِهَا** ځكه چې منى خوپه كلوكي يو كلے دې. تردې چې په دے كي به د لوے اخترلمونځ هم نه شى كولے

**تشريح:- عدم جوازالجمعة فى منى عند محمد** رحمه الله ۞ حضرت امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى. چې په منى كي قطعا جُمعه نه ده جائز، او د امام محمد رحمه الله

**دليله**۞ دليل دادے چې منې نه خو ښاردې. او نه فناء د ښار ده. بلكه يوكلے دې. او په كلى كي جمعه جائز نه ده. په دے وجه به منى كي جمعه جائز نه وى. هم دا وجه ده چې په منى كي د لوے اخترلمونځ نه كيږى. د امام محمد رحمه الله په نيز منى په فناء د ښاركي په دے وجه داخل نه ده. چې ددوى په نيز دفناء اطلاق په يوه غلوه(څلورسوه ګذونو) پورې وى. اومنى د يوے غلوه نه زياته ده.

**وَلَهُمَا أَنَّهَا تَتَمَصَّرُ فِي أَيَّامِ الْمَوْسِمِ** او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دے. چې منى د حج په موسم كي ښارجوړيږى **وَعَدَمُ التَّعْيِيدِ لِلتَّخْفِيفِ** او د اخترلمونځ هلته كي نه كيدل آسانى پيدا كاوه د وجې دې

**تشريح:- دليل الشيخين** رحمهما الله ۞ دشيخينو رحمهما الله دليل دادې. چې منى بے شكه ښارنه دې. خو دحج په موسم كي ښار جوړيږى. ځكه چې هلته دحج په موسم كي بازار لګى. او بادشاه يا دهغه نائب اوقاضى په دے موسم كي دلته موجود وى. حالانكه دموسم حج نه علاوه دا واړه شرطونه موجود نه وى. ځكه د موسم حج نه علاوه هلته كي جمعه جائزنه ده.

**الجواب من عدم اداء صلاة العيد في منى**۞ پاتې شوه دا خبره چې په منى كي دننه د لوے اختر لمونځ نه كيږى. نو ددے وجه دا نه ده. چې منى دحج په موسم ښار نه وى. بلكه ددے وجه داده. چې په دغه ورځ حاجيان په مناسك حج، رمى، ذبح، حلق وغيره كي بوخت وى. اووخت تنګ وى. په دے وجه د آسانتيا لپاره حاجيانو ته د اختر لمونځ نه كاوه اجازت وركړې شو.

**الدليل الثانى**۞ دوهم دليل دادې. چې منى چونكه په حرم كي ګډ ده. په دے وجه منى د مكے په فناء كي داخل ده. د الله رب العزت ارشاد دے ((هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ)) په دے آيت كي د منى نه په كعبے سره تعبيركړې شوې ده. په دے وجه د قربانۍ اوهدى څاروى په مكه كي نه ذبحه كيږى. بلكه په منى كي ذبحه كيږى. ددے نه معلومه شوه. چې منى دمكې په حكم كي ده يا د مكې د فناء په حكم كي ، اوجُمعه اداكول چې څنګه په ښاركي دننه جائزدى. دغه ډول دښار په فناء كي هم جائز دى.

**وَلَا جُمُعَةَ بِعَرَفَاتٍ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا** او په عرفات كي بالاتفاق جُمعه جائزنه ده **لِأَنَّهَا فَضَاءٌ** ځكه چې عرفات خوخالى

ډگر دي وَيَبنِي أَبْنِيَةً او په منى كي كلى جوړشوى دى

تشريح:- **عدم جواز الجمعة في عرفات**۞په ډگر عرفات كي بالاتفاق جُمعه جائز نه ده.وجه داده.چې عرفات خوصرف يوميدان دې.آبادى وغيره هيڅ نشته .او د مكې په فناء كي هم داخل نه ده.ځكه‌چې عرفات په حل كي دے په حرم كي نه دې. روسته هركله‌چې عرفات نه ښار دې.او نه فناء د ښار، نوهلته كي به جمعه قائمول هم جائز نه وى.

وَالتَّقْيِيدُ بِالْخَلِيفَةِ وَأَمِيرِ الْحِجَازِ لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لَهُمَا او د خليفه او اميرحجاز قيد لگول دے لپاره دى .چې ولايت خو دواړوته دي أَمَّا أَمِيرُ الْمَوْسِمِ باتى شو امير د موسم فَيَلِي أُمُورَ الْحَجِّ لَا غَيْرُ نودے صرف دحج د امورو متولى دى .

تشريح:- **وجه قيد الخليفة والامير**۞صاحب د قدورى په منى كي دننه دجمعې دجواز لپاره د امير حجاز ياخليفه كيدو قيد په دے وجه لگولې دې.چې دجمعې قائمولو ولايت دے دواړو ته حاصل دې.او پاتې شو هغه اميرچې ورته امير موسم ونيلى شى.هغه خو دحج د أمورو متولى وى. ددے نه علاوه د نور څه نه وى. په دے وجه ده ته ولايت دجمعې حاصل نه دې.

**شرائط د صحت اداء، ړومبې شرط سلطان دي**

(وَلَا يَجُوزُ إِقَامَتُهَا إِلَّا لِلسُّلْطَانِ او جُمعه قائمول جائزنه دى.مگر دخليفه لپاره أَوْ لِمَنْ أَمَرَهُ السُّلْطَانُ) يا دهغه چا لپاره چې خليفه ورته اجازت ورکړې وى.

**حل اللغة**°①**لايجوز، جاز جوازاً** (ن): جائز كيدل ②**اقامة**: قائم كول ③**امره، امر امراً** (ن): حكم وركول

تشريح:- **المذهبان في شرطية الامام لاقامة الجمعة**۞ ①دجمعې ادا كاوه لپاره دسلطان وجود هم شرط دې.سلطان هغه والى وى.چې دده نه پورته بل والى نه وى.لكه خليفه يا هغه سړيچې هغه ته سلطان حكم او اجازت وركړې وى.لكه أمير، قاضى يا خطيب، په دے شرطچې دوى ته دجمعې قائمولو اجازت وى.

تشريح:- حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائيچې دجمعې ادا كاوه لپاره د سلطان يا دده د نائب كيدل شرط نه دى.(عنايه)

①**دليله**۞دامام شافعى رحمه الله دليل دادې.چې په كومه زمانه كي دريم خليفه حضرت عثمان غنى رضي الله عنه د باغيانو په گيره كي په خپل كوركي دننه په مدينه منوره كي محصور وو. نو حضرت على رضي الله عنه خلگ وته دجمعې لمونځ اوكړو.او دا مروى نه دى.چې دعثمان رضي الله عنه په حكم سره ئې كړې دې.حالانكه دغه وخت خلافت دحضرت عثمان رضي الله عنه په لاس كي وو.ددے نه معلومه شوه .چې د جمعې ادا كاوه لپاره د سلطان يا دده د نائب وجود شرط نه دې.

①**الجوابان عنه** ۞①د امام شافعى رحمه الله د دليل ځواب دادې.كيدې شىچې حضرت على رضي الله عنه دحضرت عثمان رضي الله عنه په حكم سره دجمعې لمونځ كړې وى.اوكه تسليم كړو.چې حضرت عثمان رضي الله عنه حكم نه وو وركړې.
②نو موږ ځواب وركوو.چې كله خلگ دحضرت على رضي الله عنه خواه ته راجمع شو.او خلگ د اقامت جُمعه محتاج هم وو.نودحضرت على رضي الله عنه لپاره جُمعه كول جائزشو.ځكه‌چې دخليفه نه اجازت حاصلول متعذر شو.نو په داسې صورت كي چې په چا باندې خلگ اتفاق اوكړي. هغه دے جمعه ادا كوى.

لِأَنَّهَا تُقَامُ بِجَمْعٍ عَظِيمٍ ځكه چې جُمعه د يو عظيم جماعت سره قائمولے شى وَقَدْ تَقَعُ الْمُنَازَعَةُ فِي التَّقَدُّمِ وَالتَّقْدِيمِ او كله په مخكې كيدو او په امخكې كولوكي جگړه پيښيږى وَقَدْ تَقَعُ فِي غَيْرِهِ او كله ددے نه علاوه په بله څه خبره كي جگړه پيښيږى فَلَابُدَّ مِنْهُ تَتْمِيمًا لِأَمْرِهِ نو د جمعې كار پوره كاوه لپاره خليفه يا د ده د نائب وجود ضرورى دې.

**حل اللغة**°①**عظيم**: لوئ ②**تقع، وقع وقوعاً** (ف): واقع كيدل ③**منازعة**: جگړه ④**تقدم**: وړاندې كيدل ⑤**تقديم**: وړاندې كول ⑥**فلابد**: ضرورى



تشريح:- **دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چې جُمعه يو عظيم جماعت سره اداكولے شى.ځكه‌چې دا جامع الجماعات دې. او حال دادې.چې كله جگړه په وړاندې كيدوكي جگړه پيښيږى. ① يو وائىچې زه به امامت كوم.او بل وائىچې زه به امامت كوم. ② اوكله په وړاندې كولوكي هم جگړه واقع كيږى.يوه ډله وائىچې موږ فلانكې بزرگ امام كوو.او دويمه ډله وائىچې نه،بلكه فلانكې به امام كوو.اوكله د تقديم او د تقدم نه علاوه په بله خبره كي جگړه پيښيږى. ③ مثلا څه خلگ وائىچې زموږ په جومات كي دے جمعه ادا كړې شى. ④ اوڅه خلگو رائې ددے خلاف وى.څه وائىچې زر دے ادا كړې شى.اوڅه روستو كول غواړى.نود مجمع عظيم په دے اختلاف سره شيطان ته د فتنې اچولو ښه موقع ملاويږى.په دے وجه موږ وايو.چې دجمعې ادا كاوه لپاره دخليفه يا دده نائب وجود ضرورى دې.خيلفه كه عادل وى اوكه ظالم،

**د جمعې د مانځه لپاره د وخت شرطيت**

(وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْوَقْتُ او دجمعې په شرائطوكي يو وخت دې فَتَصِحُّ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ روسته جُمعه به د ماپښين په وخت كي صحيح كيږى وَلَا تَصِحُّ بَعْدَهُ) او د ماپښين د وخت نه روسته به نه صحيح كيږى

**حل اللغة**°①**فتصح، صح، صحيحاً** (ض): صحيح كيدل

تشريح:- **شرطية الوقت للجمعة**۞دجمعې د شرائطو نه وخت هم دې. يعنى دجمعې لمونځ د ماپښين په وخت كي صحيح دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {إِذَا مَالَتِ الشَّمْسُ ځكه چې نبى ﷺ فرمائيلى دى.چې كله لمر زوال اوكړى فَصَلِّ بِالنَّاسِ الْجُمُعَةَ}[1] نوخلگو ته لمونځ وكړه

**حل اللغة**°①**مالت، ما ميلاً** (ض): مائل كيدل، تيتيدل ②**شمس جمع شموس**: لمر

تشريح:- **دليله**۞ ①دليل دادےچې نبى ﷺ مصعب بن عمير رضي الله عنه كله مدينې منورې ته اوليګلو.نوفرمائيلى ئې وو﴿اذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة﴾يعنى هركله‌چې نمر زائله شى.نو خلگو ته دجمعې لمونځ اوكړه.د بخارى روايت دے ﴿عن انس كان النبى ﷺ يصلى الجمعة حين تميل الشمس﴾دحضرت انس رضي الله عنه نه مروى دى.چې رسول خدا ﷺ چې به كله لمر زوال اوكړو دجمعې لمونځ به ئې كولو. ② په مسلم كي دى ﴿عن سلمة بن الاكوع رضي الله عنه كنا نجمع مع رسول الله ﷺ اذا زالت الشمس﴾يعنى موږ خلگو به دجمعې لمونځ كاوه كله‌چې به نمرزائله شو.

(وَلَوْ خَرَجَ الْوَقْتُ او كه دا وخت اووتلو وَهُوَ فِيهَا حالانكه لمونځ كونكي دجمعې په لمانځه كي دى اسْتَقْبَلَ الظُّهْرَ نو د سر نه دے د ماپښين لمونځ اوكړى وَلَا يَبْنِيهِ عَلَيْهَا) وجُمعه دے په ماپښين باندې نه بناء كوى لِاخْتِلَافِهِمَا ځكه چې په جُمعه او ماپښين دواړوكي اختلاف دې .

تشريح:- **المذهبان في جوازالبناء وعدمه**۞صاحب دقدورې فرمائى.كه د ماپښين د لمونځ وخت په دے حال كي اووتلوچې امام دجمعې په لمانځه كي بوخت وو.نو د جمعےلمونځ فاسد شو.اوس به د سر نه د ماپښين لمونځ كوى.په جمعې باندې د ماپښين د لمونځ بناء كول جائز نه دى. ② دامام شافعى اودامام زفر رحمهما الله په نيز بناء كول جائزدى.ددے حضراتو دليل دادې.چې جُمعه د ماپښين قصر لمونځ دې.نوكوم وختچې د ماپښين وو.هم هغه وخت دجمعې دې.روسته جُمعه هم ماپښين دې. نو د جمعې په لمونځ باندې د ماپښين بناء كول درست وى.

①**دليل الاحناف** رحمهم الله ۞زموږ دليل دادې.چې د جمعې او ماپښين په مينځ كي اسماً، كماً، كيفاً، او د

(1): قال الزيلعى رحمة الله عليه غريب و خرجت فى تاليفى سنن الصلوة لوقت الجمعة عن انس بن مالك رضي الله عنه ان النبى (صلى الله عليه وسلم) كان يصلى الجمعة حين تميل الشمس كذا فى البخارى فى الجمعة باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس رقم ٨٥٣)-

شرائطوپه اعتبارسره اختلاف او تغايردي. ① اسماً خوځکه چې د يو نوم جمعه ده اود دوهم نوم ماپښين دې. ② كمّاً ځکه چې د ماپښين څلور رکعته دی.او دجمعې دوې (دوه) رکعته دی. ③ كيفاً ځکه چې په جمعه کې قرات جهری دې.او په ماپښين کې سری،اودشرانطو په اعتبارسره ځکه اختلاف دې.چې دجمعې ادا کاوه لپاره څه شرائط مخصوص دی.چې دا په ماپښين کې نشته .بهر حال د جمعې او ماپښين په مينځ کې تغاير اواختلاف دې. اوتغاير بناء منع کوی.لکه ځنګه چې اقتداء منع کوی. په دے وجه موږ وايو.چې د ماپښين بناء په جُمعه باندې کول ټيك نه دی.

## د جمعې لپاره د خطبې شرطيت

(وَمِنْهَا الْخُطْبَةُ) اودجمعې په شرانطوکې خطبه ده. لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا صَلَّاهَا بِدُونِ الْخُطْبَةِ فِي عُمْرِهِ[1] ځکه چې نبی ﷺ په واړه عمرکې بغير دخطبې نه هيڅ جُمعه نه ده کړې

**حل اللغة*** ① **صلاها، صلى صلاة**: لمونځ کول ② **بدون**: بغير

**تشريح:- شرطية الخطبة للجمعة**۞ دجمعې يوشرط خطبه دې.دخطبې نه بغير دجمعې لمونځ نه کيږی.

**دليله**۞ دليل دادے چې بانی د شريعت مطهره ﷺ په خپل ژوند کې هيڅ يوه جمعه بغير د خطبې نه نه ده کړې.که چرے خطبه دجمعې په شرانطوکې نه وې.نو د بيان جواز لپاره به يوځل نبی ﷺ خطبه ضرور پريښولې (پريخودې) وه.دجمعې خطبه دجمعې دلمونځ نه مخکې او د زوال نه روسته واجب ده.که

(وَهِيَ قَبْلَ الصَّلَاةِ بَعْدَ الزَّوَالِ) او خطبه د جُمعے د لمونځ نه مخکې او د زوال نه روسته شرط دې بِهِ وَرَدَتِ السُّنَّةُ[1] هم په دے باندې سنت وارد شوې دې

**حل اللغة*** ① **قبل**: وړاندې ② **وردت، ورد ورودا** (ض): وارد کيدل، راتګ

**تشريح:- وقت الخطبة**۞ دجمعې لمونځ نه روسته يا د زوال نه مخکې نې اوونيله.نوجائز نه ده.

**دليله**۞ دليل دادې.چې جمعه د ماپښين قانم مقام خلاف قياس ده.اوسنت هم په دے طريقه وارد شوې دې.چې جُمعه په خطبې سره مقيد ده.لکه ځنګه چې حديث کې راغلی دی.چې رسول خدا ﷺ هيڅ يوه جُمعه بغير د خطبے نه نه ده کړې.او قاعده ده چې کوم څيزخلاف قياس ثابت وی.هغه د خپل مورد سره خاص وی.نودجمعې مشروعيت به هم په دے طريقه وی.خطبه به دلمونځ نه مخکې وئيلے شی.

(وَيَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِقَعْدَةٍ) او دوې (دوه) خطبې دے وائی، د دواړوخطبو په ما بينځ کې به په ناستے

(۱)كما خرجت فی ،،سنن الصلوة،، لشرطية الخطبة عن ابی هريرة ان رسول الله صل قال ان الملائكة يوم الجمعة على ابواب المساجد يكتبون الناس على منازلهم جاء فلان من ساعة كذا جاء فلان من ساعة كذا جاء فلان والامام يخطب جاء فلان فادرک الصلوة و لم يدرک الجمعة اذا لم يدرک الخطبة) رواه احمد فی مسند المكثرين الباقی المسند السابق رقم ۸۱۶۷ رجاله ثقات الا على بن زيد و اوس بن خالد فانهما ضعيفان)-

(۲): قال الزيلعی رحمه الله يؤخذ هذا من حديث السائب بن يزيد رضی الله عنه رواه البخاری (ای فی الجمعة باب ۲۱، رقم ۹۱۲، ۹۱۳، ۹۱۵) قال كان الاذان على عهد رسول الله (صلى الله عليه وسلم) و ابی بكر وعمر يوم الجمعة حين يجلس الامام، فلما كان عثمان رضی الله عنه و كثر الناس امر بالاذان الثانی) ووجهه ان الاذان لا يكون الا قبل الصلوة فاذا كان الاذان حين الامام على المنبر للخطبة دل على ان الصلوة بعدالخطبة كذا فی نصب الراية ۲\۲۰٤.)-



سره جدائی راولی بِهِ جَرَى التَّوَارُثُ[2] هم په دے سره توارث راروان دې .

**حل اللغة*** ① **يخطب، خطب، خطبة** (ن): وعظ کول، تقرير کول ② **يفصل، فصل فصلاً** (ض): جلا کول، فاصله کول ③ **جرى، جرى جريانًا** (ض): جاری کيدل

**تشريح:- وجوب الخطبتين**۞ ابوالحسين قدوری رحمه الله فرمائی.چې دوې (دوه) خطبے واجب دی.د دواړو په منځ کې به د درے آياتونو په مقدار ناستے سره فصل کوی.

**دليله**۞ هم په دے توارث راروان دې.يعنی د بزرګانو نه نسل په نسل هم دغه شان راتګ منقول دی.

**المذهبان في حكم الجلسة بين الخطبتين**۞ زموږ په نيز دا قعده شرط نه ده.بلکه د استراحت لپاره ده.اوامام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی.چې شرط ده.ترديچې ددوی په نيز په يوه خطبه باندې اکتفاء کول جائز نه دی.

**دليله**۞ د امام شافعی رحمه الله دليل توارث دې.

**دليل الاحناف** رحمهم الله ۞ زموږ دليل د جابربن سمره رضی الله عنه حديث دے ﴿ان النبی ﷺ كان يخطب قائما خطبة واحدة فلما اسن جعلها خطبتين يجلس بينهما جلسة﴾ يعنی نبی ﷺ به په ولاړه يوه خطبه وئيله ، هرکله چې هغوی بوډا توب ته اورسيدل . نونبی ﷺ به دوې (دوه) خطبے وئيلې په دے دواړوکې به نې جلسه کوله.دے نه معلومه شوه چې په يوه خطبه باندې اکتفاء کول جائزدی.

**په خطبه کې د قيام حكم**

(وَيَخْطُبُ قَائِمًا عَلَى طَهَارَةٍ) وخطبه دے په طهارت سره په ولاړه وائی لِأَنَّ الْقِيَامَ فِيهِمَا مُتَوَارَثٌ[1] ځکه چې په خطبه کې ودريدل متوارث دی

**حل اللغة*** ① **يخطب، خطب، خطبة**: تقرير کول ،وعظ کول، د حاضرين په وړاندې خطبه لوستل ② **قائمًا**: په ولاړه

**تشريح:- حكم القيام في الخطبة**۞ ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چې خطبه دے په ولاړه په طهارت سره اووئيلې شی.په خطبه کې قيام زموږ په نيز سنت دې

**حكم الطهارة في الخطبة**۞ ① دخطبې په وخت طهارت زموږ په نيزسنت دې. ② خو دامام ابويوسف اوامام شافعی رحمهما الله په نيزشرط دې.ترديچې ددوی په نيز بغير دطهارته خطبه وئيل جائز نه دی.

(ثُمَّ هِيَ شَرْطُ الصَّلَاةِ) بيا خطبه د جمعې د لمونځ شرط دې فَيُسْتَحَبُّ فِيهَا الطَّهَارَةُ كَالْأَذَانِ نو په خطبه کې طهارت مستحب دې . لکه په اذان کې

**تشريح:- الاقوال ا لثلاثة فی وجه شبه الخطبة مع الاذان**۞ ① علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چې خطبه چونکه د لمونځ شرط دې.په دے وجه په خطبه وئيلوکې طهارت مستحب دې.لکه ځنګه چې په اذان کې دې.صاحب دکتاب خطبه د اذان سره مشابه کړې ده.په ظاهره معلوميږی چې وجه د شبه شرطيت دې.يعنی ځنګه چې خطبه دجمعې دلمونځ شرط ده.دغه ډول اذان هم شرط دې.حالانکه داسې نه ده.د اذان د لمانځه لپاره شرطيت بيخی غلط دی. ② صاحب د عنايه فرمائی.چې د ﴿كالاذان﴾ تعلق ﴿فيستحب الطهارة﴾ سره دے.د ﴿وهی شرط للصلوة﴾ سره نه دې.اوس به مطلب دا شی .چې لکه ځنګه د اذان لپاره طهارت مستحب

(۱) وخرجت للفصل بين الخطبتين فی ،،سنن الصلوة،، عن سماک قال انبانی جابر بن سمرة ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) كان يخطب قائما ثم يجلس ثم يقوم فيخطب قائما فمن نباک انه كان يخطب جالسا فقد كذب فقد والله صليت معه اكثر من الفی صلوة) مسلم فی الجمعة باب ذكر الخطبتين قبل الصلوة وما فيهما من الجلسة رقم ۲٤۲۷)-

(۲) : كما خرجت للقيام فی الخطبة تاليفی سنن الصلوة عن ابن عمر (رضی الله عنهما) قال كان النبی (صلى الله عليه وسلم) يخطب قائما ثم يقعد ثم يقوم كما تفعلون الان رواه البخاری فی الجمعة باب الخطبة قائما رقم ۸٦۹)-

دي.دغه ډول دخطبې لپاره هم طهارت مستحب دي.③ علامة الهند عبدالحئ صاحب رحمه الله دهدايه په حاشيه كي ليكلي دي.چې وجه د تشبيه دا ده.چې څنګه اذان د وخت داخليدلو نه روسته دي.دغه ډول خطبه هم د وخت داخليدلو نه روسته ده.

(وَلَوْخَطَبَ قَاعِدًا أَوْعَلَى غَيْرِطَهَارَةٍ جَازَ) او كه په ناسته ئې خطبه او وئيله، يا بغير د طهارت نه.نوهم جائزدى لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ (إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ) خكه چې مقصود حاصل شو.خودا مكروه دى لِمُخَالَفَةِ التَّوَارُثِ د توارث نه د مخالفت په وجه وَلِلْفَصْلِ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الصَّلَاةِ اود لمانځه اوخطبې په ما بينځ كي فصل واقع كيدو د امله.

**حل اللغة:** ①**قاعداً:** په ناسته ②**جاز، جاز جوازاً (ن):** جائز كيدل ③**حصول:** حاصليدل ④**فصل:** جدائى كول فاصله كول

**تشريح:- كراهية الخطبة قاعداًومحدثاً** ابوالحسين قدورى رحمه الله فرمائى كه خطبه ئې په ناسته بغيرطهارته نه اووئيله .نوجائزده.خومكروه ده.جائز دے وجې ده.چې مقصود دخطبې يعنى وعظ او تذكيرحاصل شو.او په ناسته خطبه وركول مكروه په دے وجه دى.چې د توارث خلاف ده.او بغير د طهارته په دے وجه مكروه ده.چې په دے صورت كي د لمونځ اوخطبې په منځ كي فصل راځى.څكه‌چې بغيرد طهارته د(خطبه)وركاوه په صورت كي به د خطبې نه روسته طهارت حاصلوى.بيا به لمونځ پيل كوى.دغه ډول به يقيناً فصل راځى.

## په خطبه كي په ذكر باندې د اكتفاء حكم

(فَإِنِ اقْتَصَرَعَلَى ذِكْرِاللَّهِ) كه خطيب په ذكرالله باندې اكتفاء وكړه (جَازَعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله)[1] نود ابوحنيفه رحمه الله په نيزجائز ده

**حل اللغة:** ①**اقتصر، اقتصر اقتصاراً:** قصر كول ②**جاز، جاز جوازاً (ن):** جائزكيدل

**تشريح:- المذهبان في قدرالخطبة** دخطبه په مقداركي په خپله د احنافو عالمان رحمهم الله مختلف دى.① دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيزكه دخطبې په اراده صرف "الحمدلله" ووايي يا "سبحان الله" اووائى، يا "لا اله الا الله" اووائى.نو جائز ده.او كه د انتوشى په وجه خطيب "الحمدلله" ووايي يا د تعجب په وجه "سبحان الله" اووائى.نو په اتفاق سره خطبه جائز نه ده.

(وَقَالَا: لَابُدَّمِنْ ذِكْرٍطَوِيلٍ يُسَمَّى خُطْبَةً) اوصاحبينو رحمهما الله فرمائى.چې طويل ذكر چې هغې ته خطبه وئيلے‌شى ،ضرورى دي لِأَنَّ الْخُطْبَةَ هِيَ الْوَاجِبَةُ خكه چې واجب خوخطبه ده وَالتَّسْبِيحَةُ أَوِالتَّحْمِيدَةُ لَاتُسَمَّى خُطْبَةً او يو تسبيح يا يو تحميد ته خطبه نشى وئيلى

**حل اللغة:** ① **لابد:** ضرورى ② **طويل:** اوږد

**تشريح:-** صاحبينو رحمهما الله فرمائى‌چې دومره قدرے اوږدوالي ضرورى دي.چې عادتًا عرفًا ورته خطبه وئيلے‌شى.

**الاقوال الثلاثة في الخطبة المتعارفة** ①متعارفه خطبه داده.چې خطيب د الله حمد بيان كړى.په رسول ﷺ باندې درود اووائى.اودټولومسلمانانو لپاره دخيردعا اوكړى.② دامام كرخى رحمه الله په نيز د متعارف خطبه مقدار درے آياتونه دى.③ اود بعضو په نيز د تشهد مقدار دي.يعنى د"التحيات "نه د "عبده ورسوله" پورې.

دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چې واجب خو هغه دې.چې ورته خطبه اووئيلې شى.او"الحمدلله" وئيل يا "سبحان الله" وئيل يا "لااله الا الله" وئيل، ددے نوم خطبه نه دې.كه خطيب صرف داكلمه ووايي .نوواجب خطبه ادا نشوه.

[1]) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى ردالمحتار(۱\۵۹۸) والهندية (۱\۱٤٦) نقلا عن القول الراجح (۱\۱٤۲)-



وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله لَاتَجُوزُحَتَّى يَخْطُبَ خُطْبَتَيْنِ اعْتِبَارًالِلْمُتَعَارَفِ اوامام شافعى فرمايي جائزنه ده.تردې پورې چې دوې (دوه) خطبې ووايي د عادت په اعتبارسره

**تشريح:- وجوب الخطبتين عندالشافعى رحمه الله** امام شافعى رحمه الله فرمائى.چې دوې (دوه) خطبې واجب دى.وړومبۍ خطبه دالله حمد ،صلوة على النبى ﷺ،د تقوى وصيت،اوكم نه كم‌چې په يو آيت باندې مشتمل وى.او په دويمه خطبه كي د آيت په ځائې د مسلمانانو سړو او ښځو لپاره دعا وى.

**دليله** د امام شافعى رحمه الله دليل عرف او د خلګو عادت دې.يعنى ددے نه كم ته د خلګو په عادت اوعرف كي خطبه نشى وئيلې.او په عامه توګه خطيبان حضرات ددے نه كمه خطبه نه وائى.

وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى {فَاسْعَوْاإِلَى ذِكْرِاللَّهِ} مِنْ غَيْرِفَصْلٍ او د ابوحنيفه رحمه الله دليل د بارى تعالى قول (فَاسْعَوْاإِلَى ذِكْرِاللَّهِ وَذَرُواالْبَيْعَ الآيه)دے بغير د تفصيل نه.

**تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د بارى تعالى قول (فَاسْعَوْاإِلَى ذِكْرِاللَّهِ وَذَرُواالْبَيْعَ الآية)دې.په دے طريقه‌چې دټولو مفسرينو رحمهم الله په نيز د ذكرالله نه خطبه مراد ده.او په دے كي دقليل اوكثير څه تفصيل هم نشته.دے نه ثابته شوه.چې مطلقاً به په ذكرالله سره خواه كه قليل وى اوكه كثير واجبه خطبه ادا شى.

وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ الْحَمْدُلِلَّهِ او د حضرت عثمان رضی الله عنه حال مروى دې .چې هغوى الحمدلله ووئيله فَارْتَجَ عَلَيْهِ نو ژبه ئې بنده شوه فَنَزَلَ نو دوى د منبر نه راكوز شو وَصَلَّى.[2] اولمونځ ئې اوكړو.

**تشريح:- تائيد مذهب ابيحنيفة رحمه الله بالدليلين** ① دحضرت عثمان رضی الله عنه حال مروى دې.دخليفه جوړيدلو نه روسته‌چې كله په وړومبى ځل دجمعې ادا كاوه لپاره منبر ته اوختلو اوالحمدلله ئې اووئيله.نو ددوى ژبه بنده شوه.دوى د منبر نه راكوز شول.او خلګو ته ئې دجمعې لمونځ اوكړو.په دغه وخت صحابه عالمان رضی الله عنهم هم موجود وو.خو چا هم دحضرت عثمان رضی الله عنه په دے فعل باندې نكير او نه اوكړلو .نو د صحابو رضی الله عنهم د سكوتى اجماع نه هم ثابت شو.چې د الله په ذكر باندې اكتفاء كولوسره خطبه جائز ده .پاتې شوه دصاحبينو رحمهما الله دا قول‌چې لفظ د"الحمدلله" ته عرفًا خطبه نشى وئيلې.بيشكه دے ته عرفًا خطبه نشى وئيلې.خولغةً ورته خطبه وئيلې شى.② هم دغه وجه ده.چې نبى ﷺ هغه سړى ته چاچې «من يطع الله ورسوله فقد رشد ومن يعصهما فقد غوى»اووئيل.« بئس الخطيب انت»فرمائيلى وو.اوګورئ په دومره مقدار كلام كولوسره ئې ده ته خطيب اووئيلې.دے نه معلومه شوه.چې دخطبې لپاره طويل ذكر ضرورى نه دى.(فتح القدير)

## د جُمعې لپاره دجماعت شرطيت

(وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْجَمَاعَةُ) اودجُمعې‌په شرائطوكي جماعت دې لِأَنَّ الْجُمُعَةَ مُشْتَقَّةٌ مِنْهَا خكه چې جُمعه دجماعت نه مشتق ده.(وَأَقَلُّهُمْ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ثَلَاثَةٌ سِوَى الْإِمَامِ) ودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز تعداد د جماعت د امام نه سوا درے سړى دى (وَقَالَا: اثْنَانِ سِوَاهُ)[1] اوصاحبين رحمهما الله فرمائى.چې د امام نه علاوه دوې (دوه) سړى دى

**حل اللغة:** ①**اقل:** كم ②**ثلاث:** درې ③**سوى:** علاوه

(۱) : قال الزيلعى رحمه الله غريب واشتهر فى الكتب انه قال على المنبر الحمد لله فرتج عليه فقال ان ابابكر وعمر (رضى الله عنهما) كانا يعدان لهذا المكان مقالا فانكم الى امام فعال احوج منكم الى امام قوال، نصب الراية، ۲\۲۰۵)-

[2]) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الكفاية فى صدر فتح القدير(۲\۳۲) وردالمحتار(۱\۶۰۰) والهندية (۱\۱٤۸) والتاتارخانية (۲\۵۷) والفقه الاسلامى (۲\۲۷۵) نقلا عن القول الراجح (۱\۱٤۳)-

**تشريح:- المذهبان في كم ينعقد بهم الجماعة وفق قول صاحب القدوري**۞جماعت په اتفاق سره د جمعې لپاره شرط دي.البته دافرادو په تعداد كي اختلاف دي.① د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د امام نه علاوه كم ازكم درے سړي ضروري دي.هم دا د امام زفر رحمه الله قول دي.② او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د امام نه علاوه كم ازكم درے سړي ضروري دي.دا قول د صاحب قدوري رحمه الله د بيان مطابق دي.

| |
|---|
| **قَالَ** رضى الله عنه مصنف فرمائي.**وَالْأَصَحُّ أَنَّ هٰذَا قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله **وَحْدَهُ** چې اصح دا ده.چې دا قول فقط د امام ابويوسف رحمه الله دي |

**تشريح:- نظرصاحب الهداية في المسلكين**۞ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چې رشتيا خبره داده.چې د امام نه علاوه د دوو مقتديانو وجود فقط دامام ابويوسف رحمه الله قول دي.او پاتې شو امام محمد رحمه الله نود دوی قول د امام صاحب رحمه الله دقول موافق دي.دعلامه مرغيناني د بيان مطابق حاصل دا شو.چې د طرفينو رحمهما الله په نيز دجمعې دجماعت لپاره د امام نه علاوه درے سړي شرط دي.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د امام نه علاوه دوې (دوه) سړي هم كافي دي.

**دليل شرطية الجماعة**۞دجمعې لپاره جماعت ځكه شرط دي.چې جُمعه د جماعت نه مشتق ده.نوجُمعه بغير د جماعت نه متحقق كيږي.لكه ضارب چې د ضرب نه مشتق دي.نو ضارب بغير د ضربه نه متحقق كيږي .

| |
|---|
| **لَهُ أَنَّ فِي الْمُثَنّٰى مَعْنَى الْإِجْتِمَاعِ** د ابو يوسف رحمه الله دليل دادې .چې په دووكي د اجتماع معنى ده **وَهِيَ مُنْبِئَةٌ عَنْهُ** اوجُمعه ددے خبر وركوي |

**حل اللغة**°**منبئة**: خبرور كونكې

**تشريح:- دليل ابى يوسف**۞ رحمه الله دجماعت دعدد په سلسله كي د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چې دجمعې لغوى معنى د جمع كيدو ده.او په دوو كي د اجتماع معنى موجود ده.په دے طريقه چې په دے كي يو د بل سره جمع كيږي.چې دجمعې لغوى معنى د دوو د شمير نه متحقق ده.نو د امام نه علاوه د دوو سړو وجود د جمعې د جواز لپاره كافي دي.

| |
|---|
| **وَلَهُمَا أَنَّ الْجَمْعَ الصَّحِيحَ إِنَّمَا هُوَ الثَّلَاثُ** د طرفينو رحمهما الله دليل دادې .چې جماعت صحيح درے(سړي)دى **لِأَنَّهُ جَمْعٌ تَسْمِيَةً وَمَعْنًى** ځكه چې درے اسمًا او معنًى دواړه جمع دى |

**حل اللغة**°①**جمع**: جمع كول

**تشريح:- دليل الطرفين** رحمهما الله ۞دطرفينو رحمهما الله دليل دادې.چې بيشكه جُمعه د اجتماع په معنى دلالت كوى.خو د الله تعالى ارشاد (**فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ**ط)**الآية**) په ذريعه خطاب جمعے سره دې.يعنى دخطاب لپاره دجمع صيغه ذكر شوې ده.اود جمع صحيح اطلاق كم ازكم په دريو باندې كيږي .ځكه چې د دريو شميرد نوم اومعنى دواړوپه اعتبارسره جمع ده.په دے وجه موږ وايو.چې د امام نه علاوه كم ازكم د درے سړووجود ضروري دي.

| |
|---|
| **وَالْجَمَاعَةُ شَرْطٌ عَلٰى حِدَةٍ** او جماعت "عليحده" شرط دې **وَكَذَا الْإِمَامُ** اوهم دغه ډول د امام كيدل بل شرط دې **فَلَا يُعْتَبَرُ مِنْهُمْ** په دے وجه به امام په دے كي نشى شمارلي |

**حل اللغة**°**فلا يعتبر، اعتبراعتبارًا**: معتبر كيدل

**تشريح:- السوال التقديرى**۞ **و الجماعة شرط على حدة** سره د يو سوال ځواب دے سوال دادې.چې د امام ابويوسف رحمه الله د قول مطابق هم د امام په شامليدو درے نفر كرځي.

**الجواب**۞ددے ځواب دادې.چې جماعت خانله شرط دې.اودامام وجود بيل شرط دې.په دے وجه دالله تعالى ارشاد "فاسعوا" دجمع صيغه ددرے افرادو متقاضى ده.او "الى ذكرالله" ديو ذاكر (امام) متقاضى



ده.نود ايت نه د ځلورو سړو وجود ثابت شو.يعنى يو امام او دده نه علاوه درے مقتديان . ددے نه ظاهره شوه چې د امام شمير به په دے دريو كي نه وي.بلكه د امام نه علاوه د درے سړو جمع وجود دجمعې شرط دې.

## دجمعې په مانځه كې صرف د ښځو اوماشومانو پاتے كيدل

| |
|---|
| **(فَإِنْ نَفَرَ النَّاسُ قَبْلَ أَنْ يَرْكَعَ الْإِمَامُ وَيَسْجُدَ وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا النِّسَاءُ وَالصِّبْيَانُ** اوكه د امام د ركوع او سجدې كاوه نه مخكې خلګ لاړل بغير د ښځو او ماشومانو نه، **اِسْتَقْبَلَ الظُّهْرَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو د ابوحنيفه رحمه الله په نيز امام دے د سر نه دوباره لمونځ اوكړي **وَقَالَا: إِذَا نَفَرُوا عَنْهُ بَعْدَ مَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ** او صاحبين رحمهما الله فرمائي.كه دامام دلمونځ پيل كاوه نه روسته خلګ امام پريږدى.او اوتښتى **صَلَّى الْجُمُعَةَ** نوامام دے جُمعه اوكړي |

**حل اللغة**°① **نفر، نفر نفرًا** (ن): تيښته، تګ ② **يركع، ركع ركوعًا** (ف): تيتيدل،ركوع كول ③ **يسجد، سجد سجدة** (ن): سجده كول ④**لم يبق، بقى بقاءً** (س): پاته كيدل ⑤**افتتح، افتتحافتتاحًا**: پيل كول

**تشريح:- صورة جوازالظهرفقط**۞مسئله داده. كه دجمعې لمونځ پيل كاوه نه مخكې خلګ امام يواځے پريږدى.او اوتښتى،نو په اجماع سره دے امام د ماپښين لمونځ اوكړى.دجمعې لمونځ كاوه اجازت به نه وى.

**الصورة المختلفة بين الامام والصاحبين**۞ ①اوكه دجمعې لمونځ پيل كاوه نه روسته د امام د ركوع اوسجدې كولو نه مخكې خلګ امام پريږدى.او اوتښتى. نود حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز امام دے په دے صورت كې هم دسر نه د ماپښين لمونځ اوكړى.② اود صاحبينو رحمهما الله په نيز دے امام په جُمعه باندې بناء اوكړى.يعنى هم دجمعې لمونځ دے اوكړى.د ماپښين كاوه قطعًا اړتيا نشته.

| |
|---|
| **فَإِنْ نَفَرُوا عَنْهُ بَعْدَ مَا رَكَعَ رَكْعَةً وَسَجَدَ سَجْدَةً** اوكه د ركوع او د يوے سجدې كاوه نه روسته امام پريږدى.او اوتښتى. **بَنٰى عَلَى الْجُمُعَةِ)** نوامام دے په جُمعه باندې بناء اوكړى. |

**تشريح:- الصورة المختلفة بين الائمة وزفر**۞اوكه د امام د ركوع اوسجدې كاوه نه روسته خلګ امام پريږدى .اواوتښتى.نود آئمه ثلاثة (ابوحنيفه اوصاحبين رحمهم الله ) په نيز دے دے په جُمعه باندې بناء اوكړى .يعنى د جمعې لمونځ دے پوره كړى.

| |
|---|
| **خِلَافًا لِزُفَرَ** رحمه الله په خلاف دامام زفر رحمه الله **هُوَ يَقُولُ: إِنَّهَا شَرْطٌ** امام زفر رحمه الله فرمائي.چې جماعت شرط دې **فَلَا بُدَّ مِنْ دَوَامِهَا كَالْوَقْتِ** نو ددے ترآخره پورې برابر پاتې كيدل ضروري دى.په شان دوخت |

**حل اللغة**° ① **فلابد**: ضروري

**تشريح:-** د امام زفر رحمه الله په نيز دے په دے صورت كي هم د ماپښين لمونځ اوكړى.

**دليله**۞د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چې جماعت د ادائې جُمعه لپاره شرط دې.لكه چې وخت شرط دې.نو څنګه چې د وخت د اول نه آخره پورې وجود ضروري دې.دغه ډول د اولے تحريمې نه آخره پورې د جماعت وجود ضروري دې.په ذكرشوى صورت كي چونكه د اول نه د آخره پورې جماعت موجود نشو.بلكه په مينځ كي جماعت فوت شو.په دے وجه جمعه فاسده شوه.او په امام باندې د ماپښين لمونځ لازم شو.

| |
|---|
| **وَلَهُمَا أَنَّ الْجَمَاعَةَ شَرْطُ الْإِنْعِقَادِ** دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې .چې جماعت دجمعې منعقد كيدو لپاره شرط دې **فَلَا يُشْتَرَطُ دَوَامُهَا كَالْخُطْبَةِ** د جماعت آخره پورې پاتې كيدل شرط نه دې .لكه خطبه |

**تشريح:- دليل الصاحبين** ۞ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چې دجماعت وجود دجُمعه د اداشرط نه دې.بلكه دجمعې د منعقد كيدوشرط دې.لكه چې خطبه د جمعې د انعقاد لپاره شرط ده.او د انعقاد دشرط د اول نه د آخره پورې وجود ضروري نه دې.بلكه د انعقاد د حده پورې ئې وجود ضروري دى.د دے نه روسته ضروري نه

دي. کله چې د تحريمې په وخت جمع بيا مونده شوه. نوجمعه منعقد شوه. دې نه روسته د جماعت پاته کيدل شرط نه دې. نود جمعې د انعقاد نه روسته د جماعت په فوت کيدو سره جمعه نه فوت کيږي. او هر کله چې جمعه فوت نه شوه. نوامام دے هم دا پوره کړی. د ماپښين لمونځ دے نه کوی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله أَنَّ الِانْعِقَادَ بِالشُّرُوعِ فِي الصَّلَاةِ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چې دجمعې انعقاد د لمونځ په پيل سره کيږي. وَلَا يَتِمُّ ذَلِكَ إِلَّا بِتَمَامِ الرَّكْعَةِ اوانعقاد پوره کيږی نه مګر په يو رکعت پوره کولو سره لِأَنَّ مَا دُونَهَا لَيْسَ بِصَلَاةٍ ځکه چې د يو رکعت نه کم خو هډو لمونځ نه دې فَلَا بُدَّ مِنْ دَوَامِهَا إِلَيْهَا ځکه د يو رکعته پورې دجماعت دوام ضروری دې.

**تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله** ۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادے چې بيشکه جماعت د جمعې د انعقاد شرط دې. لکه چې ته هم وايې. خو د لمونځ انعقاد د لمونځ په پيل سره کيږي. اود لمونځ اطلاق په يو رکعت مکمل کولو باندې کيږي. ځکه چې د يو رکعت نه کم ته لمونځ نه شي وئيلې. هم دغه وجه ده. چې د يو رکعت نه کم که پريښولې (پريخودې) شو. نو هغه به د ﴿وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ لاندې نه راځي. نوثابته شوه. چې د لمونځ اطلاق به لږترلږه په يو رکعت باندې کيږي، حاصل دا شو. چې جماعت دجمعې د انعقاد لپاره شرط دې. اوجمعه منعقد کيږي د جمعې د لمونځ په پيل کولو سره. او د لمونځ اطلاق کم ازکم په يو رکعت کيږي نوګويا دجمعې لمونځ به د يو رکعت پوره کيدو سره پيل کيږي. نو يو رکعت پوره کيدو پورې د جماعت وجود شرط دی. او رکعت پوره کيږي په رکوع او سجده باندې. نو د اولنی رکعت د رکوع او سجده پورې که جماعت پاتې شو. نوجمعه منعقد شوه. اوس که د امام د رکوع او سجدې پوره کيدو نه روسته خلګ اوتښتيدل. اوجماعت فوت شو. نوجمعه نه فوت کيږي. اوکه ددے نه مخکې اوتښتيدل. نوجمعه فوت کيږي. چونکه د جمعې لمونځ منعقد کيدو نه مخکې د انعقاد شرط يعنی جماعت موجود شو. ځکه به جمعه فاسده وی. اوپه امام باندې به
ماپښين کول واجب وی.

بِخِلَافِ الْخُطْبَةِ په خلاف دخطبې فَإِنَّهَا تُنَافِي الصَّلَاةَ ځکه چې خطبه خو د لمونځ منافی ده فَلَا يُشْتَرَطُ دَوَامُهَا نود خطبې رکعت پورې دوام شرط نه دې

**تشريح:- السوال** ۞ پاتې شوه دا خبره چې دجمعې خطبه هم دجمعې د انعقاد شرط دې. خو د يو رکعت پوره کيدو پورې ددے وجود ضروری نه دې.

**الجواب** ۞ نو ددے ځواب دادې. چې بيشکه دجمعې خطبه د جمعې د انعقاد شرط دې. خوچونکه خطبه دلمونځ
منافی ده. که په لمونځ کې خطبه اووئيلے شی. نولمونځ فاسديږي. په دے وجه د يو رکعت پوره کيدو پورې ددے پاته کيدل شرط اونه ګرځولې شو.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِبَقَاءِ النِّسْوَانِ، وَكَذَا الصِّبْيَانُ او د ښځو او ماشومانو پاته پاتې کيدو هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّهُ لَا تَنْعَقِدُ بِهِمُ الْجُمُعَةُ ځکه چې ښځو او ماشومانو باندې حماعت نه منعقد کيږي فَلَا تَتِمُّ بِهِمُ الْجَمَاعَةُ نو په دوی باندې د جماعت (شرط هم) نه پوره کيږي

**تشريح:- عدم اعتبار النساء والصبيان** ۞ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی. که خلګ دجمعې لمونځ پريږدی او اوتښتی. او ښځے او ماشومان پاته شی. نو د دوی څه اعتبار نشته. ځکه چې په ځانله ښځو او ماشومانو باندې جمعه نه منعقد کيږي. نو په دوی باندې د جماعت شرط هم نه پوره کيږي.

**السوال** ۞ د امام صاحب رحمه الله په دليل باندې يو اشکال کيدې شی. هغه دا چې هر کله د يو رکعت نه په کم باندې لمونځ نه منعقد کيږي. نونفل پيل کاوه نه روسته په ماتولو سره قضاء واجب کيدل نه دی پکار. چې د يو



رکعت پوره کاوه پورې ئې مات نکړي.

**الجواب** ۞ د رکعت نه کم په لمانځه کې دوې (دوه) حالتونه دی. اول دا چې تحريمه بيا موندے شوه. په دے اعتبار سره دا لمونځ دې. او چونکه لمونځ نوم دے د قرات او د رکوع او د سجود، او دا او موجود نشول. نو په دے اعتبار سره دا لمونځ نه دې. بيا د نفل ماتولو په مسئله کې موږ په احتياط باندې عمل کوو. د اول جهت په اعتبار کولو سره مو قضاء واجب کړه. چې په دے کې په يقين سره د قصور نه بچ شو. او د جمعې په مسئله کې موږ د دوهم جهت اعتبار اوکړو. ځکه چې د ماپښين لمونځ په کولو سره په يقين سره فرض اداشو.

## په ځينو افرادو باندې جُمعه فرض نه ده

(وَلَا تَجِبُ الْجُمُعَةُ عَلَى مُسَافِرٍ وَلَا امْرَأَةٍ وَلَا مَرِيضٍ وَلَا عَبْدٍ وَلَا أَعْمَى) او جُمعه واجب نه ده. په مسافر باندې او نه په ښځه باندې او نه په بيمار باندې او نه په غلام باندې او نه په ړوند باندې

**حل اللغة:** ① **لاتجب، وجب وجوباً**(ض): واجب کيدل ② **مريض:** ناجوړه ③ **عبد:** غلام ④ **اعمى:** ړوند، نابينا

**تشريح:- من لاجمعة عليهم** ۞ دجمعې اداکول نه په مسافر باندې واجب دی، نه په ښځه باندې، نه په بيمار باندې، نه په غلام باندې او نه په نابينا باندې،

لِأَنَّ الْمُسَافِرَ يُحْرَجُ فِي الْحُضُورِ ځکه چې مسافر ته د جمعې په حاضرئ کې تکليف پيښيږی وَكَذَا الْمَرِيضُ وَالْأَعْمَى اوهم دا (حرج) بيمار او ړوند ته دې وَالْعَبْدُ بوخت بِخِدْمَةِ الْمَوْلَى او غلام دخپل آقا په خدمت کې بوخت وی وَالْمَرْأَةُ بِخِدْمَةِ الزَّوْجِ او ښځه د خپل خاوند په خدمت کې مشغوله ده فَعُذِرُوا دَفْعًا لِلْحَرَجِ وَالضَّرَرِ دوی معذور اوګرځولی شول. د حرج او ضرر لرے کولو دپاره.

**حل اللغة:** ① **يحرج، حرج حرجاً**(ن): لاحق کيدل ② **دفعا:** لرې کول ③ **حرج:** تنګی تکليف

**تشريح:- دليله** ۞ دليل دادے چې مسافر بيمار او نابينا ته دجمعې په حاضريدو کې تکليف پښيږی. او غلام د خپل مالك په خدمت کې او ښځه دخپل خاوند په خدمت کې مشغوله وی. نو د دوی نه د تکليف او ضرر لرې کاوه په غرض دا حضرات دجمعے حاضريدو نه معذور اوګرځولی شول.

## دمعذورو خلقو په جمعه کې د شرکت حکم

(فَإِنْ حَضَرُوا که دا خلګ حاضر شول وَصَلَّوْا مَعَ النَّاسِ او دوی دخلګو سره جُمعه اوکړله أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ) نو ددے وخت د فرضو نه دوی له جُمعه کافی شوه

**حل اللغة:** ① **حضروا، حضر حضوراً**(ن): حاضريدل ② **صلو، صلى صلاة:** لمونځ کول

**تشريح:- صحة اداء جمعة المعذورين** ۞ کوم خلګ چې د جمعې ادا کاوه نه معذور ګڼړلی شوی دی. که دوی جُمعه ته حاضر شول. او د خلګو سره ئې د جمعې لمونځ اداکړو. نو د دوی د وخت فرض ادا شو.

لِأَنَّهُمْ تَحَمَّلُوهُ ځکه چې دے خلګو حرج او مشقت برداشت کړلو فَصَارُوا كَالْمُسَافِرِ إِذَا صَامَ نو دوی داسې مسافر په شان شول. څوک چې روژه اونيسی.

**حل اللغة:** ① **تحملوه، تحمل تحملاً:** برداشت کول ② **صام، صام صياماً**(ن): روژه ساتل

**تشريح:- دليله** ۞ دليل دادې. چې ددے خلګو نه دجمعې ساقطيدل د داسې معنی په وجه نه وو. چې په لمونځ کې اوموندلے شی. بلکه د دوی نه حرج او ضرر لرې کاوه په غرض دجمعې فرضيت پورته کړې شوې وو. خو چې کله دوی حرج او مشقت برداشت کړو. او په همت سره ئې دجمعې لمونځ اداکړو. نو دا خلګ د هغے مسافر په شان شول. چا چې دسفر په حالت کې روژه اونيوله. حالانکه دمشقت د وجې مسافر ته په رمضان المبارك کې د روژو نه نيولو اجازت وو. نو که ده روژه اونيوله جائز ده. بلکه افضله ده. ځکه چې ده د مقيم په نسبت زيات مشقت برداشت کړلو. دغه ډول که دے خلګو مشقت اوچت کړو. او د جمعې لمونځ ئې اوکړو. نو جائز دی.

## ځول ځول د جُمعې امامت كولاي شي

(وَيَجُوزُ لِلْمُسَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ أَنْ يَؤُمَّ فِي الْجُمُعَةِ) اومسافر، غلام او بيمار لپاره په جُمعه كي امام جوړيدل جائزدی

**حل اللغة:** ① **يجوز، جاز جوازًا** (ن): جائز كيدل ② **عبد**: غلام ③ **يؤم، ام امامة** (ن): امامت كول

**تشريح:- المذهبان في صحة امامة المعذورين في الجمعة** ① مسئله دا ده.چې مسافر، بيمار او په غلام باندې اگرچې جُمعه فرض نه ده.خو په جُمعه كي د دوی امام جوړيدل جائزدی.دامام شافعی رحمه الله اصح قول هم دادی.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَا يُجْزِئُهُ اوامام زفر رحمه الله فرمائي. چې جائز نه دی. لِأَنَّهُ لَا فَرْضَ عَلَيْهِ خكه چې په دوی باندې جمعه فرض نه ده فَأَشْبَهَ الصَّبِيَّ وَالْمَرْأَةَ نو(هريو)د ماشوم اوښځې مشابه شو

**حل اللغة:** ① **اشبه، اشباهًا**: په شان كيدل

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائي.چې په دوی كي دچا هم امام جوړيدل جائزنه دی.

**دليله** د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چې په جمعه نه فرض كيدوكي دا درے واړه د نابالغ ماشوم او ښځے په شان دی.نوځنگه چې د ماشوم اوښځے دجمعې امامت جائزنه دې.دغه ډول ددوی امامت هم جائزنه دې.

وَلَنَا أَنَّ هَذِهِ رُخْصَةٌ او زموږ دليل دادې .چې نه فرض كيدل رخصت دې فَإِذَا حَضَرُوا خوچې كله دا خلگ حاضرشول يَقَعُ فَرْضًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ نودا لمونځ به فرض واقع شی .لكه چې موږ بيان كړې دی

**حل اللغة:** ① **يقع، وقع وقوعًا** (ف): واقع كيدل ② **فبيناه، بين تبيينًا**: بيانول

**تشريح:- دليل جمهورالاحناف** رحمهم الله زموږ دليل دادې.چې مسافر،غلام او په بيمار باندې دجمعې نه فرض كيدل د رخصت د وجې وو.يعنى جُمعه په هر يو باندې فرض عين ده.ځكه چې خطاب (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ) عام دې.خو مسافر وغيره ته دحرج لرې كاوه لپاره په جُمعه كي دنه حاضريدو اجازت وركړې شوېدې. خوچې دا خلگ دجمعې ادا كاوه لپاره حاضرشول.او د حرج د ضرر مشقت ئي برداشت كړلو.نودا لمونځ به فرض وی نفل به نه وی،لكه چې موږ بيان كړی دی.نوهركله چې د مسافر وغيره دجُمعے لمونځ فرض واقع شو.نوددوی امام جوړيدل هم جائز دی.

أَمَّا الصَّبِيُّ پاتې شو ماشوم فَمَسْلُوبُ الْأَهْلِيَّةِ نو( په ده كي )د امامت اهليت نسته

**تشريح:- الجواب من القياس على الصبي** پاتې شو ماشوم اوښځه باندې قياس نو دا صحيح نه دې.ځكه چې نابالغ ماشوم كي د امامت اهليت نشته .اود امامت اهليت په كي ځكه نشته،چې دالله تعالى خطاب ده ته گډ نه دې.نوكله چې ماشوم د امامت اهليت نه لری.نود ده امام جوړول به څنگه درست شی!

وَالْمَرْأَةُ لَا تَصْلُحُ لِإِمَامَةِ الرِّجَالِ او ښځه د سړو د امامت اهليت نه لری

**تشريح:- الجواب من القياس على المراة** او پاتې شوه ښځه نو په دے كي دښځو د امامت اهليت شته.خو د سړو د امامت اهليت نشته.اوهركله چې د سړو د امامت اهليت نشته،نو ښځے ته به د سړو د امامت د جواز حكم هم حاصل نه وی.

وَتَنْعَقِدُ بِهِمُ الْجُمُعَةُ اوپه مسافر،غلام او بيمارباندې جُمعه منعقد كيږی لِأَنَّهُمْ صَلَحُوا لِلْإِمَامَةِ ځكه چې دا خلگ د امامت لائق دی فَيَصْلُحُونَ لِلِاقْتِدَاءِ بِطَرِيقِ الْأَوْلَى نو د اقتداء لپاره په طريقه اولى لائق دی.

**تشريح:- انعقادالجمعة بالمعذورين فقط** د مسافر،غلام او بيمار دجمعې امامت درست دې.خوكه دجمعې



منعقد كاوه لپاره صرف دا خلگ د هغې تعداد مطابق هم وی.په كوم تعداد سره چې جمعه منعقد كيږی.نوجُمعه منعقد كيږی.

**دليله** دليل دادې.چې هركله دا خلگ د امامت لائق دی نو د اقتداء لائق به په درجه اولى سره وی.

## جمعې د مانځه نه وړاندې په كور كې د ماپښين دمونځ حكم

(وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِي مَنْزِلِهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ صَلَاةِ الْإِمَامِ) اوچاچې دجمعې په ورځ په خپل مقام باندې د امام دلمونځ نه مخكي د ماپښين لمونځ اوكړو. وَلَا عُذْرَ لَهُ حالانكه ده ته څه عذرهم وو كُرِهَ لَهُ ذَلِكَ نودده په حق كي دا مكروه دی. وَجَازَتْ صَلَاتُهُ) اولمونځ ئی جائزشو

**حل اللغة:** ① **صلى، صلى صلاة**: لمونځ كول،دعا كول ② **منزل**: ځائ مقام ③ **قبل**: وړاندې ④ **جازت، جاز جوازًا** (ن): جائز كيدل

**تشريح:- المذهبان في صحة اداء الظهر في البيت قبل الجمعة** صورت د مسئلي دا دې.① كه چا دجمعې په ورځ د امام دجمعې لمونځ كاوه نه مخكي په خپل كوركي د ماپښين لمونځ اوكړو . حالانكه ده ته څه عذرهم نه وو.نودده دا لمونځ جائزشو.خو مكروه دې.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله لَا يُجْزِئُهُ اوامام زفر رحمه الله فرمائي.چې جائزنه دې لِأَنَّ عِنْدَهُ الْجُمُعَةَ هِيَ الْفَرِيضَةُ أَصَالَةً ځكه چې دامام زفر رحمه الله په نيز اصلي فرض خوجُمعه ده وَالظُّهْرُ كَالْبَدَلِ عَنْهَا او ماپښين ددے دبدل په شان دې وَلَا مَصِيرَ إِلَى الْبَدَلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْأَصْلِ اوپه اصل باندې دقدرت درلو په صورت كي بدل اړخ ته رجوع نشی كيداې

**تشريح:-** امام زفر رحمه الله فرمائي.چې جائزنه دې.هم دا د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله قول دې.

**دليله** ددے حضراتو دليل دادې.چې دجمعې په ورځ دجمعې لمونځ اصلاً فرض دے .او ماپښين ددے بدل دې.ځكه دجمعې دلمونځ په اړخ د سعی امر شوې دې. اودكومے پورې چې جمعه فوت شوې نه وی.د ماپښين كاوه نه منع كړې شوې ده.نو دجمعې لمونځ مامور بالاداء كيدل او د ماپښين ممنوع كيدل د جمعې د لمونځ د فرضيت اصلي كيدو دليل دې.او دا خبره منلے شوې ده.چې دكومے پورې په اصل باندې قدرت وی.نودبدل په اړخ رجوع نشی كيدې.نودجمعې په لمانځه باندې دقدرت درلودی په صورت كي د ماپښين اداكول درست نه دی.

وَلَنَا أَنَّ أَصْلَ الْفَرْضِ هُوَ الظُّهْرُ فِي حَقِّ الْكَافَّةِ اوزموږ دليل دادې .چې دټولو په حق كي اصلي فرض ماپښين دې هَذَا هُوَ الظَّاهِرُ هم دا ظاهره ده إِلَّا أَنَّهُ مَأْمُورٌ بِإِسْقَاطِهِ بِأَدَاءِ الْجُمُعَةِ خوجمعه اداكولو سره ددے ساقطولو حكم وركړې شوې دې

**حل اللغة:** ① **اسقاط**: ساقط كيدل

**تشريح:- دلائل الاحناف** رحمهم الله ① زموږ دليل دادې.چې دجمعې په ورځ اصلاً د ماپښين لمونځ فرض دے .لكه چې په نورو ورځوكي د ماپښين لمونځ فرض دې.دليل دنبی ﷺ قول «اول وقت الظهر حين تزول الشمس» دی. په دے طريقه چې حديث مطلق دې.دهيڅ ورځې تخصيص نشته.نود نمرد زوال نه روسته په ټولو ورځوكي بغيرداستثناء نه د ماپښين وخت دی

وَهَذَا لِأَنَّهُ مُتَمَكِّنٌ مِنْ أَدَاءِ الظُّهْرِ بِنَفْسِهِ دُونَ الْجُمُعَةِ اود ماپښين اصل كيدل ځكه دی چې هرسړې د ماپښين په ادا كاوه باندې په خپله قادر دے نه په ادا جُمعه باندې لِتَوَقُّفِهَا عَلَى شَرَائِطَ لَا تَتِمُّ بِهِ وَحْدَهُ ځكه چې جُمعه په داسې شرائطو باندې موقوف ده.چې هغه په ځانله سړی كي نه پوره كيږی. وَعَلَى التَّمَكُّنِ يَدُورُ التَّكْلِيفُ حالانكه هم په قدرت باندې د مكلف كيدو مداردې .

**حل اللغة:** ① **لاتتم، تم تمامًا** (ض): پوره كيدل ② **يدور، دار دورانًا** (ن): گرځيدل

**تشريح:-** دوهم دليل دادي.چي تكليف د قدرت په اندازه وي.لكه چي ارشاد رباني دے **﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾** او په دے وخت كي دننه دلمونځ مكلف ،په خپله د ماپښين لمونځ ادا كاوه باندې قادر دي.دجمعې په ادا كاوه باندې نه دے قادر ،ځكه چي جمعه په داسې شرائطو باندې موقوف ده.چي په خانله يوسړى سره نه پوره كيږي.مثلا د امام وجود،دجماعت كيدل وغيره نو په جمعه مكلف جوول د تكليف مالا يطاق د قبيلے څخه دي.دومره خبره ضرور ده.چي دجمعې په ورځ دجمعې په ادا كاوه سره د ماپښين لمونځ ساقطولو حكم وركړي شوې دي.نود قدرت باوجود د جمعې نه اعراض كول اود ماپښين لمونځ اداكول جائز ،خو سره د كراهته.

## څانله د ماپښين مونځ كونكي جمعې ته حاضريدل

**﴿فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَحْضُرَهَا﴾** بيا كه دده په رائې كي ظاهره شوه چي جمعې ته حاضرشي **فَتَوَجَّهَ إِلَيْهَا وَالْإِمَامُ فِيهَا** نوجمعې اړخ ته متوجه شو.په.داسے حال كي چي امام دجمعې په لمونځ كي وى **بَطَلَ ظُهْرُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله بِالسَّعْيِ**[1] نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدتلوسره دده د ماپښين لمونځ باطل شو

**حل اللغة:** ① **بدا، بدا بدوًا(ف):** ښكاره كيدل ② **حضور:** حاضريدل ③ **فتوجه،توجه توجهًا:** متوجه كيدل ④ **بطل، بطل بطلاً (ن):** باطل كيدل ⑤ **سعي:** كوښښ كول

**تشريح:- الصورتان في السعي الى الجمعة بعداداء الظهر** ۞ صورت دمسئلې دادي.چي يوسړى د جمعې په ورځ په خپل كوركي د ماپښين لمونځ اوكړو.په داسې حال كي چي تر اوسه پورې دجمعې لمونځ نه وى ادا شوې.بيا ده ته خيال راغے چي دجمعې په لمانځه كي شركت پكاردي.په دے اراده دا سړې جامع جومات اړخ ته روان شو.نوددے دوې (دوه) صورتونه دى.① ياخوبه داسړې د امام سره دجمعې په لمونځ كي شريك شى.② يا به شريك نشى.

**جواز الجمعة وبطلان الظهر** ۞ كه د امام سره ئې دجمعې لمونځ بياموندلو.نو دده د ماپښين د لمونځ فرضيت باطل شو.خوبه نفلو به بدل شى.

**المذهبان في بطلان الظهر بالسعى الى الجمعة** ۞ اوكه چرے دا سړې دجمعې لپاره روان شو.اودا هغه وخت وو.چي امام دجمعې په لمانځه كي وو.خو دده په رسيدو رسيدوكي امام دجمعې دلمانځه نه فارغ شو.اودے سړى دجمعې لمونځ د امام سره بيا نه موندلو.① نو په دے اړه كي د امام الهمام قدوې (دوه) الانام امام اعظم رحمه الله مذهب دادي.چي دكور نه په تلوسره دده د ماپښين لمونځ باطل شو.اوس چونكه ده ته دجمعې لمونځ ملاؤ نه شو.او ادا شوې د ماپښين لمونځ ئې باطل شو.په دے وجه د ماپښين لمونځ دےدوباره اوكړي.

**﴿وَقَالَا لَا يَبْطُلُ حَتَّى يَدْخُلَ مَعَ الْإِمَامِ﴾** اوصاحبين رحمهما الله فرمائي.چي ماپښين نه باطليږي.تردې چي د امام سره داخل شى **لِأَنَّ السَّعْيَ دُونَ الظُّهْرِ** ځكه چي سعى د ماپښين نه كمتر ده **فَلَا يَنْقُضُهُ بَعْدَ تَمَامِهِ** نود ماپښين مكمل كيدو نه روسته سعى دا نشى ماتولې **وَالْجُمُعَةُ فَوْقَهَا** اوجمعه د ماپښين نه زياته ده **فَيَنْقُضُهَا** نو جُمعه به ماپښين ماتوى

**حل اللغة:** ① **يدخل، دخل دخولاً (ن):** داخليدل

**تشريح:-** اود صاحبينو رحمهما الله مذهب دادي.چي صرف په تلوسره د ماپښين لمونځ نه باطليږي.بلكه دجمعې په لمانځه كي په شركت سره باطليږي.يعنى ددے سړى درسيدلونه مخكي كه امام دجمعې د لمانځه نه فارغ

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(٢\٣٤) وردالمحتار(١\٦٠٤) وهكذا فى الهندية نقلا عن القول راجح (١\١٤٥)-



شو.نو دده ماپښين لمونځ به باطل نشو.اوكه د امام سره دجمعې په څه برخه كي شريك شو.نو دده ماپښين به باطل شى.

**دليلهما** ۞ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادي.چي جمعے ته سعى كول په خپله مقصود نه دي.بلكه دجمعې ادا كاوه وسيله ده.او د ماپښين فرض مقصود دي.په دے وجه جمعے ته سعى په نسبت د ماپښين ادنى اوكمتر ده. او قاعده دا ده.چي اعلى د ادنى په وجه نه باطليږي.په دے وجه صرف جمعے ته په سعى باندې ماپښين نه باطليږي. اوجمعه چونكه د ماپښين نه اعلى او اُوچته ده .ځكه جُمعه د ماپښين لمونځ باطلوى.

**وجه اولوية الجمعة** ۞ پاتې شوه داچي جُمعه اعلى ولے ده.نو ددےځواب دادي.چي موږ ته شريعت اسلام دا حكم كړې دي.چي دجمعې په ورځ دے ماپښين ساقط شى اوجُمعه اداكړې شى . نو د جمعې په وجه د ماپښين لمونځ ساقطيدل دجمعې د اعلى اواوچتوالى دليل دي.

**﴿وَصَارَ كَمَا إِذَا تَوَجَّهَ بَعْدَ فَرَاغِ الْإِمَامِ﴾** اودا داسےشوه .لكه چي د امام د فارغ كيدونه روسته جمعې اړخ ته متوجه شي

**حل اللغة:** ① **فراغ :** اوزګاريدل

**تشريح:- نظيره** ۞ صاحب دهدايه فرمائي.چي دا داسې شوه.لكه دامام د جمعې نه دفارغ كيدو نه روسته جمعې اړخ ته متوجه شوچي په دے صورت كي په اتفاق سره سعى د ماپښين لمونځ نه باطلوى.ځكه چي دايےكاره سعى ده.دغه ډول جمعے ته سعى هم په دے صورت كي ماپښين نه باطلوى.حالانكه جمعے ته د سعى په وخت كي امام په جُمعه كي وو.خو دده په رسيدلوسره امام دجمعې دلمونځ نه فارغ شو.

**﴿وَلَهُ أَنَّ السَّعْيَ إِلَى الْجُمُعَةِ مِنْ خَصَائِصِ الْجُمُعَةِ﴾** اود امام صاحب رحمه الله دليل دادي .چي جمعے ته سعى د جمعې د خصوصياتو څخه ده **فَيُنْزَلُ مَنْزِلَتَهَا فِي حَقِّ ارْتِفَاعِ الظُّهْرِ احْتِيَاطًا** نود ماپښين ماتولو په حق كي به احتياطاً سعى د جمعې په مرتبے ته راكښته كولې شي

**تشريح:- دليل ابى حنيفة رحمه الله** ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي.چي سعى يعنى دجمعې لپاره تلل دجمعې په خصائصوكي دى.ځكه چي جُمعه يوداسې لمونځ دي.چي دا هرځائې كي نشي اداكيدي.بلكه د دے لپاره مخصوص ځائې ضروري دي.نو بغيرد سعى الى الجمعه نه دجمعې اداكول ممكن نه دى.نو ثابته شوه.چي سعى الى الجُمعه، دجمعې سره مخصوص ده.اوهركله چي سعى دجمعې په خصائصو كي ده.نوسعى الى الجمعه به دجمعې په مرتبه كي وى.نوځنګه چي د ماپښين ادا كاوه نه روسته دجمعې په لمونځ كي شريكيدل ماپښين باطلوى.دغه ډول دجمعې دلمونځ په اړخ سعى كول هم ماپښين باطلوى.په شرط ددےچي كوم وخت ئې سعى كړې وى.دغه وخت امام دجمعې په لمونځ كي وو.

**﴿بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنْهَا﴾** په خلاف ددے چي امام جُمعےنه فارغ شوې وى. **لِأَنَّهُ لَيْسَ بِسَعْيٍ إِلَيْهَا** ځكه چي دا د جمعې په اړخ سعى كول نه دى.

**تشريح:-** د دے په خلاف ئې كه د امام دجمعې دلمانځه نه دفراغت نه روسته سعى اوكړي.نو دا سعى ماپښين نه باطلوى.ځكه چي دا سعى دجمعې په مرتبه كي نه ده.او دجمعې په مرتبه كي ځكه نه ده چي دا د جمعې په اړخ سعى نه ده.

**ثمرة الاختلاف بين المذهبين** ۞ د امام صاحب او دصاحبينو رحمهما الله په مينځ كي ثمره داختلاف به په دے صورت كي ظاهريږي.چي يوسړى په خپل كوركي د ماپښين اداكولونه روسته دجمعې لپاره هغه وخت لاړو،چي امام دجمعې په لمانځه كي بوخت وو.خو دده د رسيدلو پورې امام دجمعې نه فارغ شو.نود امام صاحب رحمه الله په نيز چونكه سعى الى الجمعه سره ماپښين باطل شوې دي.په دے وجه د ماپښين اعاده به كوى.او دصاحبينو رحمهما الله په نيز چونكه ماپښين نه دے باطل شوې.په دے وجه به د ماپښين اعاده نه كوى.

## د جمعې نه وړاندې په ښاركي دننه د معذورينو د ماپښين جماعت كول

﴿وَيُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْمَعْذُوْرُوْنَ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي الْمِصْرِ﴾ اود معذورو خلكو دجمعې په ورځ په ښاركي دننه په جماعت سره د ماپښين لمونځ اداكول مكروه دی ﴿وَكَذَا أَهْلُ السِّجْنِ﴾ دغه ډول د قيديانو هم،

حل اللغة: ① مصر جمع امصار: ښار ② سجن: قيد، قيدی

تشريح:- كراهة جماعة المعذورين يوم الجمعة ۞ مسئله داده.چې معذور خلگ مثلاً غلام، مسافر، د جمعې په ورځ په ښاركي دننه دجمعې لمونځ نه مخكې يا وروسته كه په جماعت سره د ماپښين لمونځ اوكړی.نودا عمل مكروه دی.

﴿لِمَا فِيْهِ مِنَ الْإِخْلَالِ بِالْجُمُعَةِ﴾ خكه چې په دے عمل سره په جمعه كي دننه خلل پيداكيږی ﴿إِذْ هِيَ جَامِعَةٌ لِلْجَمَاعَاتِ﴾ خكه چې جمعه خو واړه جماعتونو لره راجمع كونكے ده

حل اللغة: ① اخلال: خيال كول، بې غوری كول ② جامعة: جمع كونكې، يونيورستی ته هم وئيلې شی

تشريح:- دليله ۞ دليل داد ےچې په دے عمل كي په جمعه كي دننه خلل واقع كيږی.خلل داد ې.چې جمعه واړه جماعتونو راجمع كونكې ده.نوكله چې بعضو خلگو ماپښين په جماعت سره ادا كړو . نو جمعه جامع الجماعات پاتې نشوه.

تضعيف دليل صاحب الهداية رحمه الله ۞ ددے دليل نه معلومه شوه.چې په يوښاركي گڼرے جمعې جائز نه دی. حالانكه په يو ښار كي ډيرو خايونو كي جمعه ادكول دامام صاحب او امام محمد رحمهما الله په نيز جائزدی.روسته دصاحب هدايه دجماعت دكراهت په دليل كي اخلال بالجمعه بيانول غير معقول دی.مناسب دادی.چې دكراهت دليل دا بيان كړې شی.چې دجمعې په ورځ ماپښين په جماعت سره ادكولو كي په ظاهری صورت د جمعې معارضه او مقابله معلوميږی.

﴿وَالْمَعْذُوْرُ قَدْ يَقْتَدِيْ بِهِ غَيْرُهُ بِخِلَافِ أَهْلِ السَّوَادِ﴾ اود معذورو سره كله غيرمعذور هم اقتداء كوی. په خلاف دكلی والو ﴿لِأَنَّهُ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِمْ﴾ چې په دوی باندې جمعه نسته

حل اللغة: يقتدي، اقتدى اقتداءً: اقتداكول، پيروی كول

تشريح:- السوال التقديري ۞ ﴿والمعذور...الخ﴾ په دے سره د سوال ځواب دے سوال دادې.چې كله په معذورينو باندې جمعه فرض نه ده.نو ددوی ماپښين په جماعت سره اداكولو كي په جمعه كي دننه دخلل څه سوال دے؟

الجواب ۞ ځواب داد ےچې د معذورينو سره كله غيرمعذورين هم اقتداء كوی.نودغيرمعذورين په اقتداء كاوه سره په جمعه كي خلل راخی.ددے په خلاف دكلی خلگ كه په جمع سره د ماپښين لمونځ اداكړی.نو په دے كي څه كراهت نشته.خكه چې په كلی والو باندې هډو دجمعې لمونځ فرض نه دې.او په معذور باندې جمعه فرض ده.خود عذر په وجه ساقطه شوه.

﴿وَلَوْ صَلَّى قَوْمٌ﴾ وكه كوم قوم په دے ورځ د ماپښين لمونځ جماعت سره اوكړو ﴿أَجْزَأَهُمْ﴾. نو دوی له كافی شو. ﴿لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهِ﴾ خكه چې ددے واړه شرطونه جمع شو.

تشريح:- جوازالظهرجماعة يوم الجمعة مع الكراهة ۞ صاحب د قدوری وائې.چې دجمعې په ورځ د ماپښين لمونځ په جماعت سره كول مكروه دی.خو ددے باوجود كه څينې خلگ ماپښين جماعت سره اداكړی.نودا جائزدی.خكه چې لمونځ خپل شرطونو سره موجود نشو.پاتې شوكراهت نو هغه ددے د ذات نه خارج دجمعې دحق په وجه سره وو.اوهغه اوس هم شته.

## په جمعه كي د امام رالاندې كولو حكم

﴿وَمَنْ أَدْرَكَ الْإِمَامَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ﴾ اوچاچې امام دجمعې په ورځ بيا موندلو ﴿صَلَّى مَعَهُ مَا أَدْرَكَهُ﴾ نوده سره دے اوكړی.هغه چې كوم ده اوموندلو ﴿وَبَنَى عَلَيْهِ الْجُمُعَةَ﴾ و هم په دے دے جمعه بناء كړی



حل اللغة: ① ادرك، ادرك، ادراكاً: موندل ② صلى، صلى صلاة: لمونځ كول، دعا كول

تشريح:- ادراك الامام في الجمعة ۞ مسئله داده.كه چا دجمعې په ورځ امام دجمعې په لمانځه كي بياموندلو او د دوهم ركعت په ركوع كي امام سره شريك شو.نو په اتفاق سره دے دا سړې د امام سره دجمعې لمونځ ادا كړی.او يو ركعت كوم چې فوت شو.دادے د امام دسلام گرځولونه روسته پوره كړی.دده دا لمونځ به دجمعې لمونځ شمارلے شی.د ماپښين نشی شمارلې.

﴿لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ﴾ خكه چې نبی ﷺ فرمائيلی دی {مَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا} چې تاسو څومره قدرے بياموندلو هغه اوكړئ. {وَمَا فَاتَكُمْ فَاقْضُوا}[1] او چې كوم فوت شی .نود هغې قضاء راوړئ.

حل اللغة: ① فاتكم، فات، فوتاً (ن): فوت كيدل ② فاقضوا، قضى قضاءً (ض): قضاكول، اداكول

تشريح:- دليله ۞ دليل داد ےچې نبی ﷺ فرمايي ﴿ما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاقضوا﴾ په حديث كي دننه دصاحب حديث مراددےچې ﴿مافاتكم من صلوة الامام﴾ خكه چې د ﴿ما ادركتم فصلوا﴾ معنی ده ﴿من صلوة الامام﴾ يعنی د امام دمونځ چې كومه برخه بيامومئ هغه كوئ.اوچې كومه برخه فوت شوه د هغې قضاء راوړئ.يعنی د امام دسلام اړولو نه روسته ئې كوئ.دا خبره ښكاره ده چې د امام د لمونځ كومه برخه فوت شوې ده.هغه جمعه ده.نو مقتدی به هم جمعه كوی.بل لمونځ به نه كوی.

## تشهد يا سجده سهو كي دامام رالاندې كول

﴿وَإِنْ كَانَ أَدْرَكَهُ فِي التَّشَهُّدِ أَوْ فِي سُجُوْدِ السَّهْوِ﴾ اوكه امام په تشهد يا په سجده سهو كي بيا مومی. ﴿بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَ عِنْدَهُمَا﴾[1] نود شيخينو رحمهما الله په نيز به په دے باندې دجمعې بناء كوی.

حل اللغة: ① ادرك، ادرك ادراكاً: موندل

تشريح:- المذهبان في ادراك اقل الجمعة ۞ ① صورت دمسئلې دادې.كه چا امام دجمعې په لمانځه كي په تشهد كي بيا موندلو.يا ئې په سجده كي بيا موندلو.نود شيخينو رحمهما الله په نيز به دا سړې دجمعې لمونځ پوره كوی.

﴿وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله إِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَكْثَرَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ﴾ او امام محمد رحمه الله فرمائي.كه د امام سره ئې د دوهم ركعت اكثره برخه بيا موندله ﴿بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَ﴾ نو په دے به جمعه بناء كوی ﴿وَإِنْ أَدْرَكَ أَقَلَّهَا﴾ اوكه د دوهم ركعت كمه برخه ئې اوموندله ﴿بَنَى عَلَيْهَا الظُّهْرَ﴾ نو په دے به د ماپښين بناء اوكړی

حل اللغة: ① اقل: كم ② فوات: فوت كيدل

تشريح:- اوامام محمد رحمه الله فرمائی كه ده اكثره برخه د دوهم ركعت بياموندله.مثلاً د دوهم ركعت په ركوع كي امام سره شريك شو.نو دجمعې لمونځ دے پوره كړی.اوكه د دوهم ركعت اكثره برخه ئې اونه موندله.مثلاً د ركوع نه روسته امام سره شريك شو.نود ماپښين لمونځ دے پوره كړی.هم دا قول د امام مالك او امام

---

(1) من حديث ابی هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاری فی الاذان باب ٢، والجمعة باب ١٨ ومسلم فی المساجد ومواضع الصلوة رقم ١٥١، ١٥٥ و ابوداؤد فی الصلوة باب ٥٤ رقم ٥٧٢ والترمذی فی الصلوة باب ١٢٧ والنسائی فی الامامة باب ٢ وابن ماجه فی المساجد باب ١٤ والدارمی فی الصلوة باب ٥٩ ومالک فی الصلوة رقم ٤ واحمد فی المسند (٢\٢٣٨)۔

(1) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(٢\٣٦) وردالمحتار(١\٦٠٥) وبدائع الصنائع (١\٢٦٧) والهندية (١\١٤٩) والفقه الاسلامی (٢\٢٧٣) نقلا عن القول الراجح (١\١٤٧)۔

شافعي رحمه الله دي.

لِأَنَّهُ جُمُعَةٌ مِنْ وَجْهٍ ظُهْرٌ مِنْ وَجْهٍ خكه چې دده دا لمونځ من وجه جُمعه ده، او من وجه ماپښين دي لِفَوَاتِ بَعْضِ الشَّرَائِطِ فِي حَقِّهِ خكه چې دده په حق كي بعض شرطونه فوت شول فَيُصَلِّي أَرْبَعًا اعْتِبَارًا لِلظُّهْرِ نود ماپښين په اعتبار سره دے څلور ركعته اوكړي وَيَقْعُدُ لَا مَحَالَةَ عَلَى رَأْسِ الرَّكْعَتَيْنِ اعْتِبَارًا لِلْجُمُعَةِ او د جمعې په اعتبارسره دے په دوې (دوه) ركعتو په يقين سره كښيني وَيَقْرَأُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ لِاحْتِمَالِ النَّفْلِيَّةِ او په آخرو دوو ركعتونو كي دې قرات اوكړي.د نفلو د احتمال د وجې.

حل اللغة* ① يقعد، قعد قعوداً (ن): كښينستل ② يقرا قرا قراة (ف): لوستل

تشريح:- دليل محمد ۞ د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چې په تشهد يا په سجده سهوه كي امام سره شريكيدونكې د ده لمونځ من وجه جمعه ده او من وجه ماپښين دې.جمعه خوځكه ده چې دجمعې نيت كول ضروري دې.او ماپښين ځكه چې دده په حق كي دجمعې ځيني شرطونه مثلاً دجماعت فوت كيدل،ځكه چې د امام دسلام اړولو نه روسته دا سړي يواځے دجمعې لمونځ اداكوي.روسته ددے سړي مونځ چې هركله په يو اعتبارسره جمعه ده او په بل اعتبارسره ماسپخين،نو د ماپښين اعتبارسره به څلور ركعته كوي.او دجمعې په اعتبار سره په دوو ركعتو په يقين سره كيني.اوچونكه په آخرو دوو ركعتوكي د نفلو احتمال دې.په دے وجه به دے كي دسورة فاتحه نه علاوه دسورت قرات هم كوي.

تائيد مذهب محمد ۞ د امام محمد رحمه الله دمذهب تائيد شارح د نقايه ملاعلي قاري رحمه الله پيش كړي دابوهريرة رضي الله عنه حديث نه هم كيږي.دحديث الفاظ دادي «من ادرك الركوع من الركعة الاخيرة يوم الجمعة فليضف اليها اخرى ومن لم يدرك الركوع من ركعة الاخيرة فليصل الظهر اربعا» يعني چاچې دجمعې په ورځ د دوهم ركعت ركوع بيامونده نو دےسره دے دوهم ركعت ملاؤ كړي.او چاچې د دوهم ركعت ركوع او نه مونده.نو د ماپښين څلور ركعته دے اوكړي.

وَلَهُمَا أَنَّهُ مُدْرِكٌ لِلْجُمُعَةِ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ اود شيخينو رحمهما الله دليل دادې .چې په دے حالت كي دے د جمعې موندونكې دې حَتَّى يُشْتَرَطَ نِيَّةُ الْجُمُعَةِ تردې چې په ده باندې دجمعې نيت كول شرط ګرځولې شوې دې وَهِيَ رَكْعَتَانِ اوجمعه هم دوې (دوه) ركعته دي

تشريح:- دليل الشيخين ۞ دشيخينو رحمهما الله دليل دادې.چې داسړې په دےحالت كي دجمعې موندونكې دې.تردېچې ده لپاره دجمعې نيت كول شرط دې.كه دجمعې نيت ئې اونكړو.نودده اقتداء نه صحيح كيږي،حاصل داچې په تشهد يا په سجده سهو كي د امام سره شريك شو.اوجُمعه ئې اومونده.او دجمعې موندونكې هم جُمعه اداكوي. ماپښين نه ادا كوي، اودجمعې چونكه دوې (دوه) ركعته دي.ځكه به دا سړې دوې (دوه) ركعته كوي. څلور ركعته به نه كوي،

وَلَا وَجْهَ لِمَا ذُكِرَ اوځه چې امام محمد رحمه الله ذكركړي دي.د هغےهيڅ ځه وجه نسته لِأَنَّهُمَا مُخْتَلِفَانِ ځكه چې دا دواړه لمونځونه مختلف دي. فَلَا يَبْنِي أَحَدَهُمَا عَلَى تَحْرِيمَةِ الْآخَرِ په دے وجه يو د بل په تحريمه باندې نشي مبني كيدى

تشريح:- الجواب من احتياط محمد رحمه الله ۞ پاتې شود امام محمد رحمه الله د احتياط په نظر سره جُمعه او ماپښين په دواړو باندې عمل كول.نو دا غلط دې.ځكه چې جُمعه او ماپښين دوې (دوه) مختلف مونځونه دي.نو په دے كي د يود بل په تحريمه باندې بناء كول څنګه درست كيدےشي.

تائيد مذهب الشيخين رحمهما الله ۞ دشيخينو رحمهما الله دمذهب تائيد د ابوهريرة رضي الله عنه د دے حديث نه هم كيږي. «قال قال رسول الله ﷺ اذا اقيمت الصلوة فلا تاتوها تسعون واتوها وعليكم السكينة فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاتموا وفى لفظ



فاقضوا» يعني چې كله دجمعې لمونځ اودريږي.نوهغه ارخ ته په منډه مه راځئ.بلكه په آرام او په سكون سره راځئ.نوچې څه تاسو د امام سره اوموندلو،هغه كوئ.اوچې څه فوت شو.د هغې قضا راوړئ.يعني د امام دسلام اړولو نه روسته هغه پوره كوئ.

الجواب من مستدل محمد ۞ رحمه الله پاتې شو د امام محمد رحمه الله د ارخ نه پيش كړې شوې د ابوهريرة رضي الله عنه د حديث ځواب نو دا محدثينو ضعيف ګرځولې دې.(عنايه)

## د خطبې لپاره د امام د راوتلو نه روسته د نفلو حكم

وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اوچې كله دجمعې په ورځ امام راوځي تَرَكَ النَّاسُ الصَّلَاةَ وَالْكَلَامَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ نو خلګ دے لمونځ هم پريږدي.اوخبرے هم،تردې چې امام د خطبې نه فارغ شي قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) مصنف فرمائي.چې دا د ابوحنيفه رحمه الله په نيزدي

حل اللغة* ① خرج، خرج خروجاً (ن): وتل ② ترك، ترك تركاً (ن): پريښول ③ يفرغ، فرغ فراغة (ن): اوزګاريدل

تشريح:- المذهبان في الكلام بعد خروج الامام ۞ ① مسئله داده.چې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دجمعې په ورځ چې كله امام د خطبې ور كاوه لپاره دخپلے حجرے نه راوځي.او منبر ارخ ته روان شي.نو خلګ به نه نفل كوي اونه سنت.اونه به خبرے اترے كوي.تردېچې امام دخطبے نه فارغ شي.البته دقضاء لمونځ اجازت شته.دغه ړول د اصح قول په بناء باندې دتسبيح وئيلو اجازت هم شته.بعضو وئيلي دي.چې مطلقاً كلام ممنوع دي.خواه كه تسبيح وي يا غير تسبيح وي.

وَقَالَا: لَا بَأْسَ بِالْكَلَامِ إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ قَبْلَ أَنْ يَخْطُبَ اوصاحبينو رحمهما الله وئيلي دي.چې كله امام بهر ته راوځي.نودخطبه پيل كاوه نه مخكې په كلام كاوه كي څه باك نسته وَإِذَا نَزَلَ اوكله چې د منبر نه راكوز شي قَبْلَ أَنْ يُكَبِّرَ نو د تكبير وئيلو نه مخكې (په كلام كاوه كي هيڅ څه باك نسته)

حل اللغة* ① لاباس: هيڅ باك نشته ⑤ يخطب، خطب خطبة (ن): خطبه وركول

تشريح:- صاحبين رحمهما الله فرمائي.چې د خطبے پيل كيدونه مخكې اودخطبے نه روسته د تكبير نه مخكې په كلام اوخبرو كاوه كي هيڅ باك نشته .البته په دے اوقاتو كي د لمونځ كاوه اجازت نشته.

لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِلْإِخْلَالِ بِفَرْضِ الِاسْتِمَاعِ ځكه چې كراهت خو آوريدو په فرضيت كي د خلل پيدا كيدو په وجه وو وَلَا اسْتِمَاعَ هُنَا اودلته هيڅ اوريدل نسته

تشريح:- دليلهما ۞ دصاحبين رحمهما الله دليل دا دې.چې كلام خو فى نفسه مباح دې.خود خطبے په وخت كلام كول په خطبه كي خلل پيداكوي.حالانكه دخطبے اوريدل فرض دي.نوچونكه كلام په فرض استماع (اوريدو) كي خلل پيدا كوي.ځكه عين د خطبے په وخت كلام كول ممنوع اوګرځولې شو.اوچونكه د خطبے پيل كولونه مخكې اودخطبے ختميدو نه روسته د تكبير نه مخكې د هيڅ شي اوريدل فرض نه دي.په دے وجه دے دواړو وختونو كي كلام خلل نه پيداكوي.اوچې خلل پيدا نه پيدا كيږي.نو په دے دواړو وختونو كي كلام كول هم ممنوع نه دي.

بِخِلَافِ الصَّلَاةِ په خلاف دمانځه، لِأَنَّهَا قَدْ تَمْتَدُّ.ځكه چې لمونځ كله اوږديږي

تشريح:- وجه عدم جواز الصلاة عندهما ۞ پاتې شوداچې په دے دواړو وختونوكي دلمونځ كاوه اجازت ولے نشته .نودے وجه دا ده.چې لمونځ كله اوږديږي ،مثلاً امام دحجرے نه راوځي.او منبر ارخ ته روان شي.چا په دغه

(١) القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى فتح القدير(٢\٣٧) والدرالمختار(١\٦٠٦) وشرح الوقاية (١\٢٠١) نقلا عن القول الراجح (١\١٤٨)_

وخت كي سنت پيل كړل.نو امام منبر ته اوختلو او خطبه ئې پيل كړه.او ددے صاحب سنت ختم نشو.نو په دے صورت كي خطبه اوريدلو كي خلل واقع شو.ځكه مونږه په دے دواړو وختونوكي دلمونځ كاوه اجازت نه دے وركړي.البته د خبرو كاوه اجازت شته.

وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي .چې نبي ﷺ فرمائيلي دي {إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ چې كله امام راوځي فَلَا صَلَاةَ وَلَا كَلَامَ}[1] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ نو نه لمونځ شته اونه كلام، بغير دځه تفصيل نه

تشريح:- دليل ابى حنيفة ۞ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل د ابن عمر او ابن عباس رضي الله عنهما روايت دے «ان النبي ﷺ قال اذا خرج الامام فلا صلوة ولا كلام» په دے حديث كي دخطبه نه مخكې او د خطبه نه روسته هيڅ تفصيل نشته .په دے وجه د امام دخطبے د پاره دحجرے نه راوتلو نه روسته لمونځ او خبرے ممنوع كرځولي شوي دي. دخطبے پيل كاوه نه مخكې هم او دخطبے ختميدو نه روسته د تكبير نه مخكې هم د لمونځ او خبرو ممانعت شوېدي.

السوال ۞ البته يو بل حديث ددے معارض دے هغه دادےچې «ان رسول الله ﷺ كان اذا نزل عن المنبر سال الناس عن حوائجهم وعن اسعار السوق ثم صلى» يعنى رسول الله ﷺ چې به كله دمنبر نه راكوزشو. نود خلكو څخه به ئې ددوى د ضروورياتو او د بازار د نرخ په اړه كي پوښتنه اوكړه .بيا به ئې لمونځ وركولو.په دے حديث كي دخطبے نه روسته د تكبير نه مخكې دكلام كاوه ثبوت ملاويږي.

الجواب ۞ دا د هغه وخت خبره ده.چې په كوم وخت كي په لمانځه كي هم خبرے مباح وې.او په خطبه كي دننه هم.بيا په دے دواړو حالتونوكي دكلام كاوه نه منع اوكړي شوه.په دے وجه دا حديث حجت نه دي.

وَلِأَنَّ الْكَلَامَ قَدْ يَمْتَدُّ طَبْعًا اوځكه چې كله كلام تبعاً هم اوږديږي فَأَشْبَهَ الصَّلَاةَ نود لمونځ مشابه شو.

الجواب من دليل الصاحبين ۞ دصاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب دا دي.چې دلمونځ په شان كله كلام هم اوږديږي.څنګه چې د خطبے پيل كيدو نه مخكې اود خطبے ختميدو نه پس،د تكبير نه مخكې لمونځ مكروه دي.دغه ډول په هغه وختونو كي كلام كول هم مكروه دي.

## په اولنى اذان د خرخولو او اخستلو ممانعت

وَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ لْأَذَانَ الْأَوَّلَ اوچې كله اذان كونكي ړومبے اذان اوكړي. تَرَكَ النَّاسُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ نو خلګ دے اخستل خرڅول پريږدي وَتَوَجَّهُوا إِلَى الْجُمُعَةِ اودجمعې اړخ ته دے متوجه شي

حل اللغة ① اذن، اذن تاذينًا: اذان وركول ② ترک، ترک تركًا(ن): پريښول ③ بيع: خرڅول ④ توجهوا، توجه توجهًا: متوجه كيدل

تشريح:- حرمة البيع بالاذان ۞ مسئله دا ده.چې اذان كونكي چې كله ړومبے اذان اوكړي.نو خلګ دے اخستل خرڅول پريږدي.اوجمعې اړخ ته دے متوجه شي.

لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځكه چې الله تعالى فرمائيلي دي {فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ} او تاسو خلګ ذكر اړخ ته روان شئ.او اخستل خرڅول پريږدئ،،

حل اللغة ① فاسعوا، سعى سعيًا(ف): كوښښ كول ② ذروا، وذرو ذرًا(س): پريښول ①

تشريح:- دليل د الله تعالى ارشاد دے «يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ»

(۱)غربه الزيلعى رحمه الله مرفوعا وقال البيهقى رفعه وهم فاحش انما هو من كلام الزهرى انتهى ثم قال و رواه مالک فى المؤطا (اى برواية الشيبانى (ص،۸۷) رقم (۲۲۸) عن الزهرى قال خروجه يقطع الصلوة وكلامه يقطع الصلوة، نصب الراية (۲۱۰۱۲)-



وَإِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ جَلَسَ اوچې كله امام منبرته اوخيژي. او كښيني وَأَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ بَيْنَ يَدَيِ الْمِنْبَرِ نو اذان كونكي دے دمنبر مخے ته اذان وركړي. بِذَلِكَ جَرَى التَّوَارُثُ په دے فعل باندې توارث راروان دي

حل اللغة ① صعد، صعد صعودًا (ن): ختل ② يدى: مخكې ③ جرى، جرى جريانًا (ض): جاري كيدل

تشريح:- وجه صيغة الجمع المؤذنون في القدوري ۞ صاحب د قدوري رحمه الله مؤذن دجمع په صيغه سره ذكر كړي دي.ځكه چې دجمعې د اذان په سلسله كي عادت دا وو چې ډيرو مؤذنينو به اذان كولو.چې ددوى آوازونه دښار اطرافو او اړخونو ته اورسي.

وَلَمْ يَكُنْ عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا هَذَا الْأَذَانُ[1] اود نبي ﷺ په زمانه كي هم دا اذان وو وَهَذَا قِيْلَ: هُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي وُجُوبِ السَّعْيِ وَحُرْمَةِ الْبَيْعِ د دے وجې ونيلي شوي دي چې د سعى په وجوب او خرڅلو اخستلو په حرمت كښے هم دا اذان معتبردي

تشريح:- حرمة البيع بالاذان الثانى ۞ پاتې شوه داخبره چې هغه كوم يو اذان دي.چې د هغې نه روسته خرڅول اخستل حرام اوسعى واجبيږي. نو په دے اړه كي اختلاف دي.① امام طحاوى رحمه الله فرمائي چې د بيع حرمت اوسعى الى الجمعه په وجوب كي هغه اذان معتبردي.كوم چې د امام دحجرے نه د راوتلو نه روسته د منبر مخے ته كيږي.

دليله ۞ ځكه چې د رسول الله ﷺ په زمانه كي اوپه عهد صديقى او په عهد فاروقى كي دجمعې لپاره هم دا اذان اصل وو.كله چې د دريم خليفه حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه كي خلګ زيات شول. نو لومړي اذان ايجاد كړي شو.نو په قرآن پاک كي چې دكومے نداء ذكرشوېدي.د هغې نه آذان ثاني مراد دي. اذان اول مراد نه دے،

وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْأَوَّلُ إِذَا كَانَ بَعْدَ الزَّوَالِ اوصحيح دا دي.چې لومړي اذان معتبر دي .خوچې د زوال نه روسته وي لِحُصُوْلِ الْإِعْلَامِ بِهِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ ځكه چې اعلان هم د دے سره حاصليږي.

حل اللغة ① حصول: حاصليدل ② اعلا: خبرور كول

تشريح:- حرمة البيع بالاذان الاول ۞ ② حسن ابن زياد رحمه الله د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړي دي.فرمائي چې حرمت د بيع اوسعى الى الجُمعه كي لومړي اذان معتبردي.

دليله ۞ دليل دادي.كه يو سړي په دوهم اذان باندې اخستل خرڅول پريږدي.اوسعى الى الجُمعه اوكړي .نو د جمعې نه مخكې سنت به فوت شي.د خطبے اوريدل به فوت شي.اوكه كور د جامع مسجد نه لرې وي.نوجمعه فوت كيدے شي.په دے وجه لومړي اذان معتبردي.په شرط ددےچې د زوال نه روسته اوكړي شي.ځكه چې مقصد د اعلان ددے نه حاصل شوې دي.والله اعلم

**تمت بالخير**

(۱) من حديث سائب بن يزيد رضي الله عنه اخرجه البخارى فى الجمعة باب ۲۱ و ابوداؤد فى الصلوة باب ۲۱۹ رقم ۱۰۸۷ والترمذى فى الجمعة باب ۲ وابن ماجه فى الاقامة باب ۹۷ رقم (۱۱۳۵)-

Scanned with CamScanner

تمت بالخیر

[چور (حمله
[چم (چل
(ح)
[حکمي مرداري (حکمي نجاست
(خ)
[خلگ (خلق
[خلگو (خلقو
[خپاره (خواره
(د)
[دغه ډول (دغه شان
[د عمل ور (د عمل وړ
[درلودی (لرلو
[دربیم (دریم
(ر)
[راسته (ښي
[راتگ (راتلل
(ز)
[زمور (مونږ
[زیږیدل (پیدائش
(ژ)
[ژمور (مونږ
[ژیږیدل (پیدائش
[ژباړې (ترجمې
[ژباړه (ترجمه
[ژي (مشکیزه
[ژوول (ژوئیل
[ژي (مشکیزه
(س)
[سهار (صبا
[ساتنه (حفاظت
[سربیره (دپاسه
[سراج (ډیوه
[سلواغه (بوقه
[ساعتونه (لمحات
[ساعت (لحمه
[سراج (ډیوه
[سپرلۍ (سورلۍ

[پیوسته (مسلسل
[پیشی (پیشو
[پیشلمی (پیشمنې
[پور (قرض
[پوست (پوستکې
[پور (قرضي
[پوولې (څرولې
[پښو (خپو
[پښی (خپې
[پوول (څرول
[پلنده (تان
[پرېښودې (پرېخودې
(ت)
[توانگر (مالدار
[توپیر(فرق
[توپیر (توپیر (تبدیلی )
[تیخرگ (ترخ
[توان (طاقت
[توپیر (تبدیلي
(ټ)
[ټوک (جلد
(ټ)
[ټوک (جلد
(ج)
[جلا (جدا
[جلا جلا (جدا جدا
(چ)
[چوپوالې(خاموشی
[چپه (گس
[چوپ (چپ
[چم (چل
[چنگوښه (چینڅ
[چوغکه (مرغۍ
[چټلي (گندگی
[چمپلان (څپلۍ
[چاغه (تیاره
[چمپلان (خپلۍ

[امله (وجې
[اړخ (طرف
[انډیوال (ملگری
[اوپریمنځل (اووینځل
[اړتیا ضرورت
[اړه (باره
[الغه (حلقه
[اخته (مبتلا
[انډیوالان (ملگری
[ایله کړې (پرانستې
[انا (نیا
[اکا (تره
[اونه کی (اونکړی
(ب)
[برخو (حصو
[برخه (حصه
[بیرغ (جنډا
[بلا ناغه (پرله پسې
[باید ده (بکار ده
[بوخت (مشغول
[بولې (متیازې
[بازې (لوبې
[بې غوری (کوتاهی
[بوق (قب
[بته (متِه
[بندی خانه (جیلخانه
(پ)
[پاته (باقی
[پیل (شروع
[پوښتنه (تپوس
[په عامه توگه (عام طور
[پرېښولو (پرېخودلو
[پاته (باقی
[پرېښول (پرېخودل
[پرېښولو (پرېخودلو
[پزه (پوزه
[پر (په
[پرېښولو (پرېښولو )



[مخکه (زمکه
(ن)
[ننښانه (نښه
[نجوني (نجوني (جینکۍ )
[نفر (کسان
[ننښلیدل (لگیدل
[ناړې (لیاړې
[ننښتیزل (نچوړول
[نژدې (نیزدې
[نومول (نامدار
(و)
[ویش (تقسیم
[واړه (ټول
[وزه (چیلۍ
[ولاړ شه (لاړ شه
[وروڼ (پتون
[وروڼان (پتونان
[ور کولای شی (کولې شی
[ور کولاې (کولې
[وپلوری (خرڅه کړی
[ویاله (نهر
(ه)
[هسکې (پچې
[هنداره (شیشه

[کولای شی (کولې شی
[کوټ (خیرې
[کوخیو (کونسې
[کښتئ (کشتئ
[کونجته (کونخله
[کولای (کولې
[کرار کرار (مزه مزه )
(گ)
[گډ (شامل
[گونډئ (کونډئ
[گوله (نمرئ
[گښتونه (چکرونه
[گټور (گټور (فائده مند )
[گټور (فائده مند
[گرځ (گرد
(ل)
[لنډیز (خلاصه
[لمر (نمر
[لینگئ (پنډئ
[لنگوټي (پټکی
[لږترلږ (کم ازکم
[لویدیځ (مغرب
[لاستي (لاسکې
[لوټه (کوزه
[لاچاری (مجبوری
(م)
[مهال (دوران
[ماپښین (ماسپخین
[میره (خاوند
[مسبوق (خلیفه
[مرداری (پلیتی
[منځنی (درمیانه
[مسافه (مسافت
[مولښتي (پیوست )
[مچی کول (ښکلول
[منډې (میانډې
[مړینه (مرکیدل
[منگور (کتمل

[سرېټ (سرپوښ
[سرکښه (سرکشه
[ساعت (لمحه
[سپنسی (مزې
(ش)
[شی (ځیز
[شیان (شیان (څگیزونه ) )
[شرموښ (شرمخ
[شاگر (شاگرد
[شتمن (مالدارن
[شتمن (مالدارن
(ص)
[صحرانی (بانډېچی
[صندخ (صندوق
(ط)
[طرفه (اړخه
(ع)
[عکس (تصویر
[عجلی (تیزی
(ف)
[فرش (قالین
(ق)
[فرش (قالین
[قرضونه (پوروته
[قلف (تاله
(ک)
[کوښښ (کوشش
[کاوه (کولو
[کیداې (کیدې
[کومك (مدد
[کښته (ښکته
[کښینستل (کیناستل
[کالی (جامه
[کوځیو (کونسې
[کشور (شمشتئ
[کوځیو (کوځو
[کښت (پټی
[کشف (شمشتئ